# تفسیر خیر کثیر

پښتو ترجمه

# تفسیر ابن کثیر

مؤلف: حافظ عماد الدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیر الدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری

مترجمین: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، وعبدالکریم صدیقی وقاری امیر نواز

## جلد نمبر ①

**تسهیلات از شاه فیصل**

① د قرآنی آیاتونو ټکی په ټکی او روانه ترجمه
② د احادیثو تخریج
③ د فقهی مسئلو کښې مسلک حنفی وضاحت
④ مناسب عنوانات ورکول

خوروونکی

فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتـــاب نـــوم : تفـــسیرخیرکثیرترجمه تفـــسیرابن کثـــیر
مؤلف: حافظ عمادالدین اسماعیل بن عمربن ابن کثیرالدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری
خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنگی
موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د ملاویدو پتې:- د فیصل کتب خانې نه سوا
مکتبه روحانیول جلال آباد
مکتبه رحیمی خوست
نعمت کتب خانه کابل
انتشارات علامه تفتازانی هرات وکابل
صداقت کتب خانه قندهار وکابل
قدرت کتاب فروشی کابل ننګرهار
علمی کتب خانه کردیز
مکتبه علمیه اکوړه خټک
دینی کتب خانه تیمرګره ده
فلاح کتب خانه جلال اباد
مکتبه فریدیه خوست
دیوبند کتب خانه خوست
جدید رشیدیه کتب خانه کابل
مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
مکتبه نعمانیه غزنی
مکتبه رحمانیه قندهار
امیرحمزه کتب خانه قندهار

# تفسیر خیر کثیر

پشتو ترجمه

# تفسیر ابن کثیر

مؤلف: حافظ عماد الدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیر الدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری

مترجمین: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، وعبد الکریم صدیقی وقاری امیر نواز

## جلد نمبر ①

**تسهیلات از شاه فیصل**

① د قرآنی آیاتو لو ټکی په ټکی او رواله ترجمه

② د احادیثو تخریج

③ د فقهی مسئلو کښې مسلک حنفی وضاحت

④ مناسب عنوانات ورکول

خوروونکی

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## مقدمه د مترجم

**الحمد لله رب العالمين، والصلاة والسلام على سيد العرب والعجم وأفضل المرسلين، وعلى آله وصحبه أجمعين.**

**د تفسير ابن كثير د ترجمې كولو سبب:-** د كال دوه زره اووم كال خبره ده چه د پيښور اسلامي كتابونو يو دوكاندار راته اووئيل چه تفسير ابن كثير زمونږ دپاره پښتو ته ترجمه كړه ماورته غاړه كيخوده او خپلو ملګرو ته مې د ترجمې دپاره حواله كړو تقريبا چې دوه پارې اوشوې نو هغه دوكاندار راته د ترجمې نه كولو وينا اوكړه ما پرې شروع كړې وه د دې وجې خپلو ملګرو ته مې د پښتو ترجمې جارې ساتلو خبر وركړو او د دې په دوران كښې نورڅه تاليفي مشكلات راته پيښ شول د دې وجې دابن كثير ترجمه ملګرو ختمه كړې وه او تصحيح ئې هم شوې وه خو ماته فرصت نه ملاويدو چه په دې باندې د خپل طرف نه د بعضې اضافاتو كار اوكړم آخر دا چه الله تعالى راته توفيق راكړو او د ملګرو ترجمې ته د ترتيب وركولو كار مې اوكړل او دغه شان د خپل طرف نه مې په كښې دا څيزونه اضافه كړل

① **هر ټكى ته لاندې ترجمه:-** د تفسير ابن كثير په اردو او پښتو كښې هم ترجمې شوې دى خو د هغې ترجمه روانه ترجمه ده په تفسير ابن كثير كښې چې دوه يا درې يا زيات آياتونه ذكر شوى وى او بيا د هغې تفسير وى د اردو او پښتو په ترجمو كښې هم اول دغه آياتونه ذكر شوى دى او بيا ورپسې لاندې د هغې ترجمه ذكر شوې ده د دې نه مجموعى طور دا معلوميږى چه دا د دغه پورتنو آياتونو ترجمه ده خو دا پته نه لږى چې د كوم ټكى كومه ترجمه ده

په پښتو او اردو كښې بعضې داسې مترجم قرآن شريفونه چهاپ شوى دى چې هغې ته دوه ترجمې دى ټكى په ټكى او روانه يعنې بامحاوره ترجمه. مسلمانانو رونړو دا قسمه ترجمې ډيرې خوښې كړى د دې وجې ما هم اراده اوكړه چه تفسير ابن كثير كښې د ترجمې دا طريقه اختيار كړم خو دومره ده چه بعضې ځايونو كښې د يوې جملې د ټكى په ټكى ترجمې او روانه ترجمې كښې به معمولى غوندې فرق وى كله چه داسې فرق په نظر راشى نو په دې باندې پوهه شئ چه دلته په دې جملې يا ټكى كښې دوه تفسيره شوى دى نو ځكه يو تفسير په لفظى ترجمه كښې او بل تفسير په روانه ترجمه كښې ليكلې شوې دې

② د ،،قوله تعالى،، اضافه:- په اولنو دوو جلدونو كښې كوشش شوې دې چه كله د يوې جملې يا ديو ټكى تفسيرشوى وى نو هلته د ،،قوله تعالى،، په عنوان سره د هغې شروع شوې ده د دې دپاره كه يو كس په آيت كښې دخاص جملې تفسير معلومول غواړى چې هغه ورته په آسانتيا سره ملاويږى د اردو او پښتو په ترجمو كښې دا خصوصيت نشته كه تاسو ديو مخصوص ټكى يا آيت يا جملې تفسير كتل غواړئ نو هله به درته ملاويږى چه د دغه آياتونو ټول تفسير باندې نظر واچوئ انشاءالله كه الله توفيق راكړو نو په نورو جلدونو كښې به هم د دې اضافه اوكړم.

③ **د عنواناتو اضافه:-** په اولنو دوو جلدونو كښې كوشش شوې دې چه هرې خبرې ته مناسب عنوان وركړې شوې دې ځكه چه په عنوان كتلو سره كتونكى ته په اول نظر معلوميږى چه په لاندينى عبارت كښې څه ليكلى شوى دى او په كومه موضوع بحث كيږى

④ **د اياتونو تخريج:-** په اكثرو ځايونو كښې چه په تفسير كښې كوم آياتونه ذكر شوى دى د هغې تخريج شوې دې چه دا دفلانى سورت آيت دې

⑥ **د احادیثو تخریج:**-کوم احادیث چه په تفسیر کښې ذ کرشوی دی نو په هغې کښې د اکثرو احادیثو تخریج شوې دې چه داحدیث فلانی کتاب ذکر کړې دې اوپه څه احادیثو باندې د صحت حکم هم لګولې شوې دې چه داحدیث صحیح دې یا حسن دې وغیره البته په کومو احادیثوچې د صحت حکم نه وی لګیدلې نود هغې په سند کښې به کلام وی

⑦ **د مسلک حنفی بیان:**- هغه ځایونه په کوم کښې چه فقهی مسائل دی او حافظ ابن کثیر په کښې د نورو امامانو مذهب ذکر کړې وی نو په داسې ځایونو کښې ما د فقه حنفی د کتابونو نه د هغې مسئلې وضاحت کړې دې چه د حنفیانو په دې مسئله کښې دا مسلك دې دغه شان که حافظ رحمه الله امام ابو حنیفه رحمه الله ته د یوې مسئلې نسبت کړې وی نو ما د هغې تصویب کړې دې که واقعی د امام ابوحنیفه رحمه الله مسلك هم هغه شان وی کوم چې حافظ رحمه الله نقل کړې وی اوکه د هغې خلاف وی نو بیا ما د هغې وضاحت کړې دې چه د امام ابوحنیفه رحمه الله مسلك په دې مسئله کښې دادې هغه نه دې کوم چې ورته حافظ رحمه الله منسوب کړې دې اوکه په یو ځائې کښې حافظ صاحب په امام ابوحنیفه رحمه الله باندې اعتراض کړې وی نو بیا هلته ما ضرور هغه دلیل ذکر کړې دې د کوم په وجه چې امام ابوحنیفه رحمه الله دغه قول اختیار کړې وی

⑧ **دترجمې تقسیم:**- په دې تفسیر کښې د اولنو شپږو پاروا وداغه شان په اخری پارو کښې د پنځویشتمې نه تراوویشتمې پارې پورې ترجمه قاری امیرنواز صاحب کړې ده خو په دې باندې بیا ما نظرثانی کړې دې اودباقی پارو ترجمه عبدالکریم صدیقی کړې ده دې دواړو حضراتو د نورو ډیروکتابونوترجمې هم کړې دی الله دې ورته مزید توفیق ورکړی

⑨ **د شاه فیصل خدمت:**- البته په تفسیر کښې داکارونه احقرشاه فیصل پخپله کړی دی ټکی په ټکی ترجمه ،روانه ترجمه،عنوانات ورکول د مسلك حنفی وضاحت اود کتاب سیټنګ کول

⑩ **دپښتوترجمې نوم:**-ددې کتاب اصلی نوم کوم چې ورته مفسر رحمه الله کیخودې دې هغه «تفسیرالقران العظیم» دې خوپه تفسیرابن کثیر سره مشهور شوې دې ما په پښتو کښې د دې نوم کیخودو ،،تفسیر خیرکثیر،،دا نوم مې ولې بدل کړو په دې کښې ډیرمقاصد دی د هغې ذکر کول زه دلته څه ضروری نه ګنړم الله دې ورته قبولیت ورکړی اوزمونږ د ټولو ملګرو د دنیا او آخرت د کامیابئ ذریعه دې اوګرځوی امین

**شکریه**.-په آخره کښې زه د خپلو ملګرو یعنی دواړه مترجمینو نه علاوه د مولانا جواد صاحب شکریه ادا کوم چې دوی ما سره د کتاب په تکمیل کښې ښه پوره کار کړې دې که د دوی مرسته نه وی نود دې کتاب په چهاپ کیدو کښې به نوره موده هم لګیده

الحمد لله چه نن د خالی په ورځ په یکم تاریخ د جولائی د میاشتې موافق د دیرشم رجب کال څوارلس سوه دوه دیرشتمه هجری د تفسیر ابن کثیر پښتو ترجمه تفسیرخیرکثیر سر ته اورسیدو الله دې دا سعی په خپل دربار کښې قبوله کړی اود دارینو د کامیابئ ذریعه دې اوګرځوی

احقر شاه فیصل غفرله

## د امام حافظ عمادالدین ابن کثیر رحمه الله دژوند حالات

**نوم او نسب :-** نوم ئې اسماعیل ، کنیت ئې ابوالفداء،لقب ئې عمادالدین او مشهور په ابن کثیر دی.
**سلسله نسب :-** اسماعیل بن عمر بن کثیر بن ضوء بن ذرع القیسی البصروی ثم الدمشقی (دحافظ ابوالمحاسن لاندې دا الفاظ ذال سره چاپ شوی دی.اوشذرات الذهب کښې "ز" سره ).(دحافظ ابن حجر په ،دررکامنه، کښې اودحافظ سیوطی هم په ،القیسی،، کښې ذکر دی ، لیکن د حافظ ابن فهد لاندې په سلسه د وفیات چه په کوم ځائې کښې د ابن کثیر د دواړوځامنو زین الدین رحمه الله او بدرالدین محمد رحمه الله د وفات ذکر راغلې دې ، په دواړو ځایونوکښې القرشی لیکلې شوې دې اود نواب صدیق حسن خان په ابجدالعلوم کښې او دمحمد بن عبدالرزاق حمزه په مقدمه کښې هم دا لیکلې شوې دی) البصروی ثم الدمشقی.ددوی تعلق یو عزت مندې او علمی کورنۍ سره وو.ددوی پلار شیخ ابوحفص شهاب الدین عمردخپل کلی خطیب وو اود دوی مشر رور شیخ عبدالوهاب یو ممتاز عالم دین او فقیه وو.
**ولادت:-** (دحافظ سیوطی رحمه الله په تذکرة الحفاظ کښې او علامه ابن العماد په شذرات الذهب کښې ددوئ د پیدائش کال ۷۰۰ لیکلې دې او حافظ ابو المحاسن حسینی په تذکرة الحفاظ کښې او قاضی شوکانی رحمه الله په البدر الطالع کښې ۷۰۱ هجری کال کښې ونیلې دې ،اوحافظ ابن حجر په الدررالکامنه کښې ۷۰۰ یا ددې نه څه پس بیان کړې دې . اوحافظ ذهبی رحمه الله د تذکرة الحفاظ په خاتمه کښې لیکی چه دوئ ۷۰۰ هجری نه پس یا هم په دې کال کښې پیدا شو. په ۷۰۰ کښې یا ۷۰۱ هجریٔ کښې د مجدل په مقام کښې ئې پیدائش اوشو چه دا د شام په مشهور ښاردبصرې په خواوشا کښې یو کلې دې.په هغه وخت کښې ددوی پلار په دې ځائې کښې خطیب وو. دوی لا د دریو څلوروکالو په عمر کښې وو چه ددوی پلار په ۷۰۳ هجریٔ کښې وفات شو. او ډیر په کم عمر کښې دوی یتیم شو ،
**تعلیم :-**دپلار دا سیورنې چه د سر نه اوچت شو نو خپل مشر رور دوی په خپل تربیت کښې واخستلو. دپلارد وفات نه درې کاله پس یعنی ۷۰۶ هجریٔ کښې دوی د خپل محترم رور سره دمشق ته لاړل او بیا هم په دې ځائې کښې ددوی پرورش اوشو. په شروع کښې ئې د خپل رور نه دفقه تعلیم حاصل کړو اود دې نه پس ئې ذ شیخ برهان الدین ابراهیم بن عبدالرحمان فزاری رحمه الله (المعروف بابن فرکاح شارح تنبیه المتوفی ۷۲۹ هجری ) اوشیخ کمال الدین بن قاضی شهبه نه ددې فن تکمیل اوکړو.
**د فقه تحصیل:-** پدې زمانه کښې دا رواج وو چه طالب علم به کوم یو فن حاصلولو نوددې فن څه مختصر کتاب به ئې زبانی یادولو نودوی هم په فقه کښې ،،التنبیه فی فروع الشافعیه ،،(مصنف شیخ ابواسحاق شیرازی المتوفی ۴۷۶ هجریٔ ) کښې حفظ کړو او په ۷۱۸ هجرنی کښې واورولو او په اصول فقه کښې ئې علامه ابن حاجب مالکی (المتوفی ۶۴۶ هجری) ئې مختصر یاد کړو. د اصولو کتابونـه ئـې د علامـه شمس الـدین محمـود بـن عبـدالرحمان اصـفهانی شـارح مختـصر ابـن حاجـب (المتوفی ۷۴۹ هجری) نه اوونیل.
**د حدیثو تکمیل:-**دفن حدیث تکمیل ئې ددې زمانې دمشهورو استاذانو نه اوونیلو.علامه سیوطی رحمه الله په تذکرة الحفاظ کښې لیکی :
**د حجار نه علم حاصلول:-( سمع الحجار والطبقة)** حجار(ددې زمانې لونې مشهور محدث تیر شوې دې)" مسند الدنیا "(دنیا ته ونیلو والا) او " رحلة الافاق "(چه چا طرف ته آفاق سفر اوکړی هغه ورته ونیلې شی )،دهغوی درس ټوله دنیا کښې مشهور وو.د لرې لرې نه خلقو دوی طرف ته سفر کولو او راتلل او

ددوی نه به نې د حديث سند اخستلو او واپس کيدل به ،دهغوی کنيت ابوالعباس او لقب نې شهاب الدين او نوم نې احمد وو او ابن الشحنه نې عرف دې. سلسله نسب نې داده ، احمد بن ابي طالب بن ابي النعم نعمة بن حسن بن علي بن بيان الدير مقرئي ثم الصالحي حنفي المذهب وو ، حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله په الدررالكامنه کښې اوحافظ شمس الدين ابن طولون (الغرض العليه في ذيل الجواهر المضيه کښې) ددوی ډير تفصيل ذکرکړې دې.

**استاذات او مرويات:**-ددوی شيوخ او مرويات ډير زيات دی ،حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلي دی چه د دوی زيات عمر وو چه د نيکه نه واخله تر نمسو پورې ته دوئ درس ورکړو په دمشق وغيره کښې نې داوږ خلو نه زيات صرف د بخاري درس ورکړو او خپل هغه اعزاز واکرام نې اوخودلو چه ددی نه زيات نشو کيدلې. حفاظوبه ددوی نه حديثونه آوريدل او د لرې لرې نه به نې سفرونه کول اوراتلل به او سبق نې حاصلولو .دوفات نه يوورخ مخکښې محب الدين بن المحب ددوی نه بخاري شريف شروع کړې او تر دوئمې ورځې ماسپخين پورې درس جاري وو. د ماسپخين وخت ته نزدې په ۲۵ صفر ۷۳۰ هجرنی کښې د دوی وفات اوشو او ددې طبقې عالمانو نه دوی د حديث سماع اوکړه . دحجار هغه علماء چه دهغوی نه دوی علم حديث حاصل کړو اوچه دهغوی ذکر په خصوصيت سره ددوی په تذکره کښې عالمانوکړې دې دهغوی نومونه دادی.① عيسى بن المطعم ② بهاوالدين قاسم بن عساكر المتوفى ۷۲۳ هجرى.③عفيف الدين اسحاق بن يحيى الامدى المتوفى ۷۲۵ هجرى ④ محمد بن زراد ⑤ بدر الدين محمد بن ابراهيم معروف بابن سويدى المتوفى ۷۱۱ هجرى ⑥ابن الرضى⑦ حافظ مزى⑧ حافظ ابن تيميه ⑨حافظ ذهبى رحمه الله ⑩ عمادالدين محمد بن الشيرازى المتوفى ۷۴۹ هجرى.

**دحافظ مزى نه استفاده:**-ليکن په دې ټولو حضراتوکښې چه دوی ته دچا نه زياته فائده ملاؤ شوه هغه محدث شام حافظ جمال الدين يوسف بن عبد الرحمان مزى شافعي (مصنف تهذيب الكمال المتوفى ۷۴۲ هجرى)دې.حافظ مزى دخاص تعليم په وجه دخپلې لور نکاح دوی سره کړې وه .ددې رشتې سره دا تعلق نور هم زيات بنکلې شو . دې نيک بخته شاگرد دخپل محترم استاد د شفقت نه پوره پوره فائده اوچته کړه،ډير وخته پورې ددوی په خدمت کښې حاضر وو. اودهغوی نه نې دهغوی اکثر تصانيف واوريدل چه په هغې کښې تهذيب الكمال هم داخل دې اوددې فن پوره پوره تکميل نې ددوی په خدمت کښې اوکړو. سيوطی رحمه الله ليکی چه (وتخرج بالمزي ولازمه وبرع) ، داشان حافظ ابن تيميه (المتوفى ۷۲۸ هجرى) نه هم دوی ډير علم زده کړې وو او ډير وخته پورې ددوی په خدمت کښې حاضر وو.

حافظ ابن حجر ليکلي دی چه مصر نه دوئ ته دبوسى رحمه الله ، وانى رحمه الله او ختنى رحمه الله وغيره دحديث اجازت ورکړې وو غالبًا حافظ امين الدين محمد بن ابراهيم وانى حنفى المتوفى ۷۳۵ هجرى مراد دې . حافظ سيوطى رحمه الله په تذکرة الحفاظ کښې ددې ترجمه ليکلې ده اودوی نې په حفاظ حديث کښې شميرلې دې حافظ عبدالقادر قرشی هم په حديث کښې د هغوی شاگرد دې هغوی په طبقات الحنفيه کښې دهغوی ذکر کړې دې. او دوی نې د الامام المحدث په القابو سره ياد کړيدې اوختنی ( دا د مصر مشهور محدث بدرالدين يوسف بن عمر حنفی دی) " مسند البلاد المصريه " وانی په علوم اسناد کښې ورته يو خانله مقام حاصل وو. په ۷۳۱ هجرنی کښې د خلور اتيا کالو په عمر کښې نې وفات اوشو. امام تقی الدين سبکی احمد دمياطي اوحافظ عبدالقادر قرشی په فن حديث کښې د دوی استاد دې ، حافظ قرشی په الجواهر المضيه کښې ددوی تذکره ليکلې ده .

**د علم مقام:**- امام ابن کثير دعلم حديث نه علاوه فقه ،تفسير ، تاريخ او عربيت کښې هم دوی ته کمال حاصل وو. علامه ابن العماد حنبلی د ابن حبيب نه نقل کوی چه (انتهت اليه رياسة العلم فى التاريخ والحديث

والتفسیر)،په دوی باندې تاریخ ، حدیث اوتفسیر کښې ریاست علمي ختم شو.اومشهور مؤرخ علامه ابو العباس جمال الدین وسف سیف الدین حنفي المنهل الصافي والمستوفي بعد الوافي کښې لیکي (وکان له اطلاع عظیم في الحدیث والتفسیر والفقه والعربیة) حدیث ، تفسیر ،فقه او عربیت کښې دوی ته ډیر لوئې معلومات وو. اوحافظ ابو المحاسن حسیني فرماني چه (وبرع في الفقه والتفسیر والنحو وامعن النظر في الرجال والعلل) فقه،تفسیر اونحو کښې ماهر وو،او په رجال اوعلل حدیث کښې ئې ډیر ژور نظر پیدا کړې وو.

**په علم حدیث کښې مهارت**:- خاص طور سره په علم حدیث کښې د هغوی دا خبره ده چه په حفاظ حدیث کښې د دوی شمار کیږي . حافظ المحیسني او علامه سیوطي رحمه الله د تذکرة الحفاظ لاندې په دې کښې دهغوی تذکره لیکلې ده او په خپله امام ذهبي رحمه الله د تذکرة الحفاظ په خاتمه کښې دخپلو ممتازو شیوخو اود خپلود درس د ملګرو تعارف کړې دې نو د هغوی ذکر ئې هم ورسره کړې دې .

**شعراوشاعري**:-شعراو شاعرئې سره ئې هم شوق وو. خو د دوی نظم به دمتوسطې درجې وو. دکلام نمونه ئې داده :

| | |
|---|---|
| تمر بنا الایام تترې وانما | نساق الی الاجال والعین تنظر |
| فلاعائدذاك الشباب الذی مضی | ولا زائل هذا المشیب المکدر |

یعنې تیریږي مونږ باندې ورځې شپې او بیشکه زمونږ سترګې مرګ طرف ته په برندو دی ،نونه خو او تیره شوې ځواني واپس راتلې شي او نه دادبیمارو نه ډك بوډا والي ختمیدې شي.

په دونمه مصرعه کښې (ذاك الشباب) په ځاې ( صفوة الشباب) وې نو ډیر بلیغ به وې.

**د حافظ عراقي خراج تحسین**:- حافظ زین الدین عراقي (المتوفی ۸۰۶ هجري) نه چا تپوس اوکړو چه (مغلطائي (چه دې یومشهور حفاظ حدیث نه دی حنفي وو،حافظ ابن فهد رحمه الله او حافظ سیوطي رحمه الله په خپلوخپلو کتابونوکښې ددوی تذکره لیکلې ده په ۷۶۲ هجرئي کښې وفات شو) ابن کثیر ابن رافع اوحسیني په دې څلوروواړوکښې دټولو نه لوئې مقام دچا وو؟.حافظ عراقي جواب ورکړو چه په دوی کښې د ټولونه زیات ترمعلوماتو والا او د انساب عالم خو مغلطائي دی او د ټولو نه زیات دمتونو او تاریخ حافظ ابن کثیر رحمه الله دې او دټولونه زیات دحدیث په طلب کښې ایساریدو والا او مولف او مختلف عالم ابن رافع دې او دټولو نه زیات د شیوخ معاصرین نه خبرلرونکې او د تخریج نه واقف حسیني دې

**دحافظ ذهبي رحمه الله خراج تحسین**:-اوحافظ ذهبي رحمه الله په المعجم المختص کښې دابن کثیرذکر په دې الفاظ سره شروع کړې دې (الامام المفتي المحدث البارع فقیه متقن ومحدث متقن مفسر) اوتذکرة الحفاظ په خاتمه کښې ئې په دې القابو سره یادوی (الفقیه المفتي المحدث ذي الفضائل) او ددې نه پس لیکي (وله عنایة بالرجال والمتون والفقه خرج وناظر وصنف وفسر وتقدم) دوی ته په رجال متون حدیث او فقه کښې اغتناء حاصله ده.

دوی داحادیثو تخریج اوکړو،مناظرې ئې اوکړې،تصنیف ئې اوکړو،تفسیرئې اولیکلواوپه وړاندې لاړل

**د نورو عالمانو خراج تحسین**:-① اوحافظ حسیني رحمه الله ددوی باره کښې دا الفاظ لیکي (الشیخ الامام العالم الحافظ المفید البارع) ② اوحافظ سیوطي رحمه الله فرماني چه (الامام المحدث ذوالفضائل) ③ اوعلامه ابن العماد لیکي (الحافظ الکبیر) ④ اوحافظ ابن حجي المتوفی ۸۱۶ هجري چه ددوی مشهور شاګرد دې ، دا رائې ظاهروی (احفظ من ادرکناه لمتون الاحادیث واعرفهم بجرحها ورجالها وصحیحها وسقیمها وکان اقرانه وشیوخه یعترفون له بذالك وما اعرف اني اجتمعت به علی کثرة ترددي الیه الا واستفدت منه) مونږ چه کوم خلق اولیدل په دې ټولو کښې د متون حدیث دټولونه لوئې حافظ اوجرح او رجال اودصحیح او دضعیف دټولونه ښه پیژندونکې وو، او په دې باره کښې ددوی هم عصر او ددوئ شیوخ هم اعتراف کوي ، او ماته یاد نه دی چه څه کله هم ددوی په خدمت کښې حاضر شوې یم اوما ددوی نه څه استفاده نه وی کړې ⑤ اوحافظ ابن ناصر الدین

الدمشقي په،الرد الوافر، کښې ددوی ذکر په داسې طريقه شروع کوی ، ﴿الشيخ الامام العلامة الحافظ عماد الدين ثقة المحدثين عمدة المورخين علم المفسرين﴾

**د حافظ عسقلاني رحمه الله تنقيد:**- اوحافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله (چه ددوی متعلق صاحب د کشف الظنون ليکلی دی چه ددوی قلم د خلقو باره کښې خراب وو او ژبه ئې بنه وه ، کاش چه دا معامله الته وې چه ددې بنه والي باقي وې ، اصل عبارت دادې چه ﴿کان قلم ابن حجر رحمه الله سمنا في مثالب الناس ولسانه حسنا وليته عکس ليبقى الحسن الجواهر والدرر﴾، دوی هم د ابن کثير متعلق دومره تسليموی چه ﴿واشتغل بالحديث مطالعة في متونه ورجاله﴾. دحديث د متون اورجال په باره کښې مشغول وو خوبياهم دخپل عادت مطابق ليکلی دی چه ﴿ولم يکن على طريق المحدثين في تحصيل العوالي وتميز العالي من النازل ونحو ذالك من فنونهم وانما هو من محدث الفقهاء﴾،دې د عالي اسانيدو په تحصيل اود عالي اونازل په تميز او دا قسمه نور فنونوکښې دمحديثنو په شان نه وو او دا دمحدثينو خاص فنون دی بلکه دوی خو د فقهاء کرامو محدث وو.

**د حافظ جلال الدين رحمه الله جواب:**-خو حافظ سيوطی رحمه الله ددې يوبنه جواب ليکلي دې هغوی فرماني چه ﴿قلت في علم الحديث معرفة صحيح الحديث وسقيمه وعلله واختلاف طرقه ورجاله جرحا وتعديلا واما العالي والنازل ونحو ذالك فهو من الفضلة لامن الاصول المهمة﴾ څه وايم چه اصلي څيز په علم حديث کښې د صحيح اوضعيف پيژندګلو او علل او داختلاف طرق علم او درجال جرح وتعديل نه واقفيت دې. پاتې شو عالي (چه په کوم سند کښې وسائط کم وی هغه عالي دې چه په کوم کښې زيات وی هغه نازل دې ،دا شان نور څيزونه نودا د زياتو څيزونو څنی دی چې د اصول مهمه. د فقهاؤ اصل کاردمسائلو استنباط ويه دې وجه ددوی نظر زيات تر متن حديث باندې وی اوهغوی دا ګوری چه ددې مسئلې نه څه راووتل. دسند نه دوی ته صرف دومره بحث وی چه په دې کښې د دومره خلقو نومونه اخستې شی نو هم هغه معتبر او قابل قبول پاتې شو.باقي دا خبره چه په دې باره کښې زيات دی يا کم دا څيز دهغوی په نظر کښې ډير اهم نه دې،خو ارباب روايت کښې ددوی ډير زيات اهميت دې چه ددوی په نيز صرف په يو واسطه دکمولو دپاره هم سفر بنه دې) اونازل وغيره نودا په زواندوکښې داخل دی په اصول مهمه کښې نه ،

**د علامه کوثری جواب:**- اوعلامه محدث زاهد الکوثری ليکی چه حافظ ابن کثير رحمه الله باندې دمتون حديث حفظ کولو زياته غلبه وه ليکن دهغوی حيثيت دومره پريوتې هم نه وو چه هغوی دطبقات رواة اوددوی داحوالو د معرفت په اعتبار سره عالي اونازل کښې هم فرق نشو کولې بلکه دا خبره خو په داسې سړی هم پټه نه شی پاتې کيدې چه په علم رجال کښې ئې ددوی نه ډيره زياته کمه درجه وی . او دا څنګه کيدې شو چه ترکومې پورې هغه ديو اوږدې مودې پورې دمزی رحمه الله په خدمت کښې حاضر وو او د،التکميل،، په جمع کولوکښې اخته وو ، اودحافظ ابن حجر رحمه الله پټې خبرې هم ددې خلقو په مينځ کښې ښکاره شی چه په فضل اوکمال کښې مشهور دی.

**د حافظ رحمه الله قوت حافظه:**- مورخينو دحافظ ابن کثير رحمه الله دحافظې او پوهې خاص طور سره تعريف کړې دې،ابن العماد ليکی چه ﴿کان کثير الاستحضار قليل النسيان جيد الفهم﴾ چه ابن کثير رحمه الله يادولو والا ، لږ هيرولووالا او ډير زيات پوهه وو.

**درس و افتاء ،دالله ﷻ ذکر :**- دحافظ ابن کثير رحمه الله ټول عمر په درس او افتاء اوتصنيف اوتاليف کښې تير شوې وو.دحافظ ذهبی رحمه الله دوفات نه پس دوی په مدرسه ام صالح او مدرسه تنکزيه ( چه په هغه زمانه کښې دټولونه مشهورې مدرسې وې ) کښې د شيخ الحديث په ګدئی ناست وو. د ذکر سره ئې ډير زيات شغل وو ابن حبيب رحمه الله ددوی متعلق ليکلی دی چه ﴿امام ذي التسبيح والتهليل﴾ ،

**ښکلی مزاج:**-ددوی طبيعت ډير زيات نرم او ښکلې وو او خوش طبع وو. حافظ ابن حجر رحمه الله ددوی صفتونوکښې د ﴿حسن الفاکهة﴾ الفاظ استعمال کړی دی يعنی ډير لطف مزاج وو.

غالبا دا قسمه واقعه داهم ده .کله چې حافظ زين الدين عراقي د شيخ الاسلام تقي الدين سبكي درس كښې حاضر شو نوشيخ الاسلام خپل درس كښې ددهٔ ډير په عظمت سره ذكر اوكړو اوډيرو لويو لويو عالمانو سره ئې ددهٔ پيژندګلو اوكړه. او ددوئ د معرفت او اتقان ئې ډير تعريف اوكړو.او دا (حافظ زين الدين عراقي) په فن حديث كښې د امام حافظ علاء الدين ابن التركماني حنفي او مصنف الجوهر النقي في الرد على البيهقي خاص شاګرد وو. حافظ ابن كثير رحمه الله اوفرمائيل چې ماته په دهٔ باندې دومره بهروسه هم نه شته چې دې به هغه حديث راوباسي چې كوم د ماء مشمس باره كښې ابن عباس رضي الله عنه نقل دې .(ماء مشمس هغه اوبه دی چې كومې نمر ګرمې شوې وی)

**علامه ابن تيميه رحمه الله سره خصوصي تعلق** :- په آخر كښې دا ښكاره كول ضروري دی چه دحافظ ابن كثير رحمه الله دخپل استاد علامه ابن تيميه سره خاص تعلق وو. د هغوی ددوی علمي ژوند باندې ډير ژور نظر وو اوهم ددې نتيجه وه چه ددوی په بعضو هغه مسائلو كښې دابن تيميه رحمه الله نه متاثره وو. په كومو كښې چې هغه دجمهورو سلفونه خانله وو.

تيميه قاضي شهبه په خپل طبقات كښې ليكي چه ( كانت له خصوصية بابن تيمية ومناضلة عنه واتباع له في كثير من ارائه وكان يفتي برايه في مسئلة الطلاق وامتحن بسبب ذالك واوذي) ددوی دابن تيميه سره خاص تعلق وو او ددوی د طرف نه به ئې جګړه كوله او ډيرو رائيو كښې به ئې دهغوی اتباع كوله. د طلاق په مسئله كښې (شيخ د ابن تيميه رحمه الله رائې كښې اګر چه درې طلاقه په يو وخت كښې وركړې شي نو هغه به يوشمارلې كيږي ) هم دهغوی په رائې باندې فتوی وركوله چه ددې په وجه په آزميښت كښې پريوتلو او تكليف ورته اورسيدو.

**وفات** :- په آخري عمر كښې ئې نظر لاړو او د زيارت په ورځ دشعبان په شپږيشتم تاريخ ۷۷۴ هجرئی كښې وفات شو او په مقبره صوفيه كښې دخپل محبوب استاد شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله په خوا كښې ښاوروته اوسپارلې شو.ددوی يو شاګرد ددوی په وفات باندې ډيره دردناكه مرثيه ليكلې ده چه د هغې دوه اشعار دادی :

لفقدك طلاب العلوم تأسفوا وجادوا بدمع لا يبيد غزير

ولو مزجوا ماء الدامع بالدماء لكان قليلا فيك يا ابن كثير

يعني دعلوم طالبان ددوی په وفات ډير زيات افسوس مند شو. او دومره ئې ژړل چه بالكل نه په قلاريدل اوكه هغوی داوښكو سره وينې هم شاملې كړی نوبيابه هم ائې ابن كثير رحمه الله ستاسو دپاره لږې دی.

**پسمانده ګان** :- پسمانده ګانو كښې دوه خامن چه ډير مشهور دی او زين الدين عبدالرحمن چه هغوی په ۷۹۲ هجرئی كښې وفات شوې دې او بل بدر الدين ابوالبقاء محمد رحمه الله ډير لوئي محدث تير شوې دې،هغوی په ۸۰۴ هجرئی كښې په رمله كښې وفات شو ددې دواړو ) ذكر حافظ ابن فهد په سلسله وفيات كښې كړې دې .

**د دوی تصنيفاتو د علماؤ داد** :- ددوی تفسير ، حديث ، سيرت اوتاريخ كښې ډير ستر مقام والا تصانيف پريښودې دې. دا ددوی د اخلاص بدله او ددوی دنيت بركت وو چه دالله ﷻ د بارګانه دوی ته قبول عام اوشهرت ملاؤ شو.مورخينو ددوی دتصانيفو د افاديت او اوددوی دقبوليت ذكر خاص طورسره كړې دې.① ذهبي رحمه الله فرمائي چه(وله تصانيفه مفيدة)② .ابن حجر رحمه الله فرمائي چه (سندسادت قصانيفه في البلاد في حياته وانتفع الناس بها بعد وفاته )ددوی په ژوند كښې ددوی تصانيف ښار ښار ته اورسيدل او ددوی د وفات نه پس خلق ددې نه مستفيد كيدل ③ او شوكاني رحمه الله ليكي چه(وقد انتفع الناس بتصانيفه لاسيما التفسير) خلقو ددوی دتصانيفو اوخاص كر دتفسير نه ښه فائده پورته كړه.ددوی د كومو تصانيفو چه مونږ ته اطلاع ملاؤ شوه هغه لاندې ذكر كولې شی.

[۱] تفسیر القرآن الکریم:- ①ددې متعلق حافظ سیوطی رحمه الله تصریح فرمانی چه (لم یؤلف علی نمطه مثله) په دې طرز باندې نورتفسیرونه نه دی لیکلې شوی ②او محدث کوثری رحمه الله فرمانی چه (هومن افید کتب التفسیر بالروایة) داتفسیر په بالروایت کښې دتولونه زیات مفید کتاب دې③د تفسیر قرآن الکریم په خصوصیت کښې قاضی شوکانی رحمه الله لیکی: (وقد جمع فیه فأوعی ونقل المذاهب والاخبار والاثار وتکلم باحسن الکلام وانفسه) په دې کښې ئې جمع کړې ده او ښه ئې محفوظ کړې دې ، مذاهب ئې نقل کړې دی او احادیث ئې لیکلی دی،آثار ئې درج کړی دی او ښه ښکلې اوډیر مزیدار کلام ئې کړې دې،مصنف په دې کتاب کښې دتولو نه مخکښې دتفسیر القرآن باالقرآن أصولوباندې یو آیت تفسیر هم په دې مضمون د بل آیت په رڼا کښې کړې دې ، بیا دمحدیثنودمشهورو کتابونو نه په دې باره کښې چه کوم احادیث روایت شوې دی هغه ئې نقل کړی دی او ددې په اسانید او رجال اوسیر باندې ئې ښه بحث کړې دې او دې نه پس آثارصحابه رضوان الله علیهم اجمعین اوتابعین وراندې کوی.دحافظ ابن کثیر رحمه الله دا د تولونه لویه علمی کارنامه ده چه هغوی د تاریخ او تفسیر نه اسرائلیات چانړ کړې اوبیل کړی ئې دی او ربښتیا دا دی چه ددې اهم کار دپاره هم دداسې لوئې نظروالا محدث ضرورت وو ، دا دومره لوئې کاردې که دهغوی په علمی خدمتونو کښې د هغوی دایوخدمت وو نو بیا به هم دهغوی د فخر دپاره دا کافی وو. الحمدلله دا کتاب مشهور دې او بیا بیا چهاپ شوې دې .

[۲] البدایه والنهایه :- دا فن تاریخ کښې دهغوی یو قیمتی تصنیف دې او دمصر نه چهاپ شوې دې . په دې کښې دکائنات دشروع نه واخله تر دآخرت د احوالو پورې درج دی. دتیر شوؤ نبیانو علیهم السلام اودتیرشوؤ امتونو ذکر دې، بیا دسیرت نبوی ﷺ بیان دې او دې نه پس د خلافت راشده نه واخله تر خپل وخته پورې تفصیلی تاریخ لیکلې شوې دې . بیا د اشراط الساعة او احوال آخرت بیان دې،په دې تاریخ کښې امام موصوف غرائب،مناکیر او اسرائلیات چانړ کړې دې① صاحب کشف الظنون لیکی (اعتمد فی نقله علی النص من الکتاب والسنة وفی وقائع الالوف السالفة ومیزبین الصحیح والسقیم والخبر الاسرائیلی وغیره) دتیرو زرګونو کالو واقعاتو کښې دکتاب او سنت تصریح باندې اعتماد کړې دې او صحیح ضعیف اواسرائیلی روایات وغیره ئې جدا کړی دی ② مورخ ابن تغری بردی ددې تاریخ متعلق لیکی چه (هوفی غایة الجودة) داډیر زیات ښه دې ③امام علامه حافظ بدر الدین محمود عینی حنفی شارح بخاری په خپل تاریخ کښې زیات تر هم په دې کتاب باندې اعتماد کړې دې اوحافظ ابن حجر رحمه الله ددې اختصار هم کړې دې.په کشف الظنون کښې دی چه محمود بن محمدبن دلشاد د البدایه والنهایه په ترکئ زبان کښې ترجمه کړې وه .په دې تاریخ کښې واقعات اووفیات دواړه درج دی . دسیرت نبویه حصه په کښې خاص طور سره دتولونه بهتر ده. خو د ډیرو مشاهیرو علماء تذکره په دې کتاب کښې د درج کیدو نه پاتې شوې ده،په دې کښې د مصنف رحمه الله نه دوه کاله مخکښې پورې حالات راغلې دی ، په پاکستان کښې ددې په اردوکښې ترجمه شوې ده.

[۳] التکمیل فی معرفة الضعفاء والمجاهیل - صاحب کشف الظنون ددې کتاب نوم (التکملة فی اسماء الثقات والضعفاء) لیکلې دې.خو پخپله مصنف په البدایه والنهایه اواختارعلوم الحدیث کښې هم دا نوم لیکلې دې.دا کتاب لکه څنګه چه دنوم نه ظاهردی چه په فن اسماء الرجال کښې دې اود تصریح د حافظ حسینی رحمه الله مطابق په پنځو جلدونوکښې دې ،په دې کښې مصنف دحافظ مزی رحمه الله تهذیب الکمال اود حافظ ذهبی رحمه الله میزان الاعتدال جمع کړې دی او خانې په خانې ئې دخپل طرف نه په دې کښې فائده مندې اضافې کړې دی.په خپله د مصنف رائې ددې کتاب په باره کښې داده چه (هوانفع شئ للفقیه البارع وکذالك للمحدث).داډیر فائده مند څیز دې چه ماهر فقیه اوداشان دیومحدث دپاره ډیر اهم دی

[۴] **الهدى والسنن فى احاديث المسانيد والسنن** :- هم دا کتاب دې چه د "جامع المسانيد به نوم" سره مشهور دې. مصنف رحمه الله په دې کښې مسند امام احمد بن حنبل، مسند بزاز، مسند ابى يعلى، مسند ابن ابى شيبة او دصحاح سته روايات جمع کړى دى 'و دائې په ابواب باندې مرتب کړې دې. محدث کوثرى رحمه الله ليکى (هومن انفع کتبه) دا دعوى په تصنيفاتو کښې دټولونه زيات فائده مند دې ، ددې کتاب قلمى نسخه په دارالکتب المصريه کښې موجود ده . دا کتاب هم په عربئ کښې چهاپ شوې او مارکيټ ته راغلې.

[۵] **طبقات الشافعيه**:-په دې کښې دفقهاء شافعيه ذکر دې،ددې قلمى نسخه شيخ محمد بن عبدالرزاق حمزه دشيخ حسين باسلامه سره کتلې ده چه په مکه معظمه کښې دمجلس شورى رکن وو، دا کتاب هم عربئ کښې چهاپ شوې دې.

[۶] **مناقب الشافعى** :- دا رساله دامام شافعى رحمه الله په حالاتو کښې ده. مصنف ددې ذکر البدايه والنهايه کښې د امام شافعى رحمه الله په تذکره کښې کړې دې ، ددې قلمى نسخه هم طبقات الشافعيه سره مجلد ده ، صاحب الظنون ددې رسالې نوم «الواضح النفيس فى مناقب الامام ابن ادريس» ليکلې دې.

[۷] **تخريج احاديث ادلة التنبيه**:-

[۸] **تخريج احاديث**:-مختصر ابن الحاجب، التنبيه اومختصر دواړه هغه کتابونه دى چه دا مصنف د طالب علمئ په زمانه کښې حفظ کړې وو. پدې دواړو کتابونو کښې دکتب حديث تخريج هم ليکلې شوې دې.

[۹] **شرح بخاري**:- ددې تصنيف ئې هم شروع کړې وو. خو نامکمل پاتې شو . کشف الظنون کښې دى چه صرف د ابتدائى حصې شرح ده . مصنف ددې ذکر په اختصار علوم الحديث کښې کړې دې .

[۱۰] **الاحکام الکبير**:- داکتاب ئې هم په لويه پيمانه باندې داحاديثو په احکامو کښې ليکل شروع کړې وو خو کتاب الحج پورې ئې اوليکلو او ختم نشو، مصنف رحمه الله په علوم الحديث کښې ددې کتاب ذکر کړې دې.

[۱۱] **اختصار علوم الحديث** :- نواب صديق حسن خان په منهج الوصول فى اصطلاح احاديث الرسول» کښې ددې نوم «الباعث الحثيث على معرفة علوم الحديث» ليکلې دې. دا دعلامه ابن صلاح (المتوفى ۶۴۳ هجرى) مشهور کتاب " علوم الحديث " اختصار دې کوم چه په اصول حديث کښې په مقدمه ابن الصلاح سره مشهور دې د هغې اختصار دې.مصنف په دې کښې ځائې په ځائې مفيدې اضافې کړې دى.حافظ ابن حجر عسقلانى رحمه الله ددې کتاب متعلق ليکى چه (وله فيه فوائد) په دې کتاب کښې حافظ ابن کثير رحمه الله ډيرې فائدې ليکلې دى.

[۱۲] **مسند الشيخين** :- په دې کښې دشيخينونه يعنى دحضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه او حضرت عمر فاروق رضی الله عنه نه چه کوم احاديث مروى دى هغه ئې جمع کړې دې.مصنف رحمه الله په «اختصار العلوم الحديث» کښې په خپل يوتصنيف کښې دمسند عمر رضی الله عنه ذکر کړې دې.دامعلومه نشوه چه آيا هغه يومستقل کتاب دې يا هم د دې کتاب دونمه حصه ده.

[۱۳] **السيرة النبوية ﷺ** :- دا په سيرت باندې ډير لوئې کتاب دې .

[۱۴] **الفصول فى اختصار سيرة الرسول ﷺ** :- دا په سيرت باندې يو مختصر کتاب دې . مصنف رحمه الله ددې ذکر په خپل تفسير کښې په سورة احزاب کښې د غزوه خندق په بيان کښې کړې دې.ددې کتاب قلمى نسخه په مدينه منوره کښې په کتب خانه د شيخ الاسلام کښې موجود ده.دا د «الفصول فى سيرة الرسول» نوم سره په عربئ او اردو کښې چهاپ شوې دې .

[۱۵] **کتاب المقدمات**:- ددې ذکر په اختصار علوم الحديث کښې شته يا کړې شوې دې.

[۱٦] **مختصر كتاب المدخل للبيهقي:** ددې ذكر هم د اختصارعلوم الحديث، ، په مقدمه كښې كړې شوې دې .
[۱۷] **الاجتهاد فی طلب الجهاد:-** كله چه فرنګيانو د اپاس د قلعې محاصره اوكړه نو په هغه وخت كښې دوى دا رساله اميرمنجك دپاره ليكلې وه. دا رساله مصر كښې چهاپ شوې ده اوشائع شوې ده.
[۱۸] **رسالة فی فضائل القران:-** دا رساله هم تفسير ابن كثير سره مطبع المنار كښې مصر كښې چهاپ شوې ده.
[۱۹] **مسند امام احمد بن حنبل** رحمه الله :- دا هم دوى په حرفونوباندې مرتب كړې وه او دې سره ئې د طبرانى دمعجم او ابويعلى زواند هم درج كړې وو. دامام ابن كثير رحمه الله ټولو تصانيفوكښې دا ښه والې دې چه څه ليكى ډير په تحقيق او تفصيل سره ليكى .عبارت ئې آسان او طرز بيان ئې زړه ته نژدې وى ﴿ربنا اغفرلنا ولاخواننا الذين سبقونا بالايمان ولا تجعل فى قلوبنا غلا للذين امنوربنا انك رؤف الرحيم﴾ .

## مقدمه د حافظ ابن کثیر

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**حمد سره خپل کتاب شروع کول:-** ټول تعریفونه الله ﷻ لره دی، چه هغه ذات خپل کتاب په حمد سره شروع کړو او وې فرمائیل ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝ مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ۝﴾ اوبل ځائې کښې ئې اوفرمائیل ﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ﴾ ټول تعریفونه الله ﷻ دپاره دی چه هغه ذات په خپل بنده باندې قرآن پاك نازل کړو . چه په دې کښې هيڅ کوږوالې نشته. چه هميشه دين لره قائم ساتلو واله دې، دپاره ددې چه الله ﷻ دسخت عذاب نه خلقو لره خبردار کړی . او چه کومو خلقو ایمان راوړو او نیك عملونه کوی نوهغوی ته بهترینه اودهميشګيږې بدلې زيرې ورکړه . اوچه کوم خلق دخپل پلار نيکه په خبرو دالله ﷻ اولاد منی او دوی سره دليل نشته او نه ددوی پلارانوسره څه دليل وونوهغوی ته خبرداري ورکړی چه دا ډيره لويه غلطی ده او دروغ خبره ده چه ددوی په ژبو باندراخی. انې نبی ﷺ ! تاسوپه دوی مه غمژن کيږئ.

**د مخلوق پيدائش په حمد سره:-** چه څنګه دې پروردګار خپل کتاب په حمد سره شروع کړو داشان هغه عظیم ذات ﷻ د خپل مخلوق پيدا هم د حمد نه شروع کړو ، ارشاد دې چه ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ۬ ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ۝﴾ يعنی ټول تعريفونه الله ﷻ دپاره دی چه هغه عظيم ذات ﷻ آسمان اوزمکه او رڼا اوتياره پيداکړه . او کفار ذدې باجود بياهم دالله ﷻ سره شريك جوړوی.

**د مخلوق خاتمه په حمد سره :-** داشان دمخلوق خاتمه ئې هم په حمد و ثنا سره اوکړه . د جنتيانو اود جهنميانو بيان ئې اوکړو، وې فرمائيل چه ﴿ وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّيْنَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ۚ وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَقِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝﴾ ته به اوګورې چه فرښتې دالله ﷻ د عرش نه څلورو وارو طرفو ته وی اودخپل رب حمدوثناء اوتسبيح اوپاکوالې به بيانوی. فيصلې به دحق سره شوې وی او وئيلې شوی به وی چه ټول تعريفونه دالله ﷻ دپاره دی.هم ددې وجې دالله ﷻ فرمان دې چه ﴿ وَهُوَ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۭ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْاُوْلٰى وَالْاٰخِرَةِ ۡ وَلَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝﴾ يعنی الله هغه ذات دې چه دهغه نه سوا څوك معبود نشته او هم هغه طرف ته به تګ وی اوبل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي الْاٰخِرَةِ ۭ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ۝﴾ ټول تعريفونه الله دپاره دی دآسمان او زمکې ټول څيزونه دهغه په ملکيت کښې دی،آخرت کښې هم حمد دهغه عظيم ذات دپاره دې ، هم هغه حکمت والا اوخبردار دې . اول او آخر کښې هم دهغه تعريف دې،يعنی چه څه هغه ذات پيدا کړی دی اوڅه به پيدا کوی،هغه ذات په ټولو کښې تعريف والا دې . لکه څنګه چه مونځګذار ﴿سمع الله﴾ نه پس وائی ﴿اللهم ربنا لك الحمد ملاء السموات وملاء الارض وملاء ماشئت من شئ بعد﴾ [1] انې الله ﷻ ائې څمونږ ربه هم ستا دپاره ټول تعريفونه دی . د آسمان او د زمکې د ډکيدو په برابر او ددې نه پس هم چه کوم يو څيز لره ته ډکول غواړې .

**جنتياتو ته د حمد الهام کيدل:-** هم ددې وجې به جنتيانوته هم دحمد و ثناء الهام کيږی او ددوی د ساه ګانوسره به بغير د څه تکليف نه دالله ﷻ تعريف او دهغه تسبيح اداکيږی . [2] څکه چه دالله ﷻ عظيم الشان نعمتونه او دهغه ذات قدرتونه اودهغه ذات کامل قدرت اودهغه زبردست سلطنت اودهغه پرله پسې رحمتونه اودده هميشه هميشه احسانات به ددوئ پيش نظر وی . دا قرآن پاك بيان فرمائيلې دی ﴿ دَعْوٰىهُمْ فِيْهَا سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ ۚ وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝﴾ دايمان سره دنيك عمل کونکو

---

[1] ) صحيح مسلم ، كتاب الصلوة ،باب اعتدال اركان الصلوة وتخفيفها : ٤٧١)-

[2] ) صحيح مسلم ، كتاب الجنة ، باب ى صفات الجنة واهلها وتسبيحهم فيها بكرة وعشيا: ٢٨٣٥)-

دپاره به ددوی رب ﷻ ددوی دایمان په ذریعه دوی ته دنعمت والا باغونه ورکړي چه ددې لاندې به نهرونه بهیږی،ددوی آواز (سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ) اوپه خپلو کښې به دسلام تحفه وی .اوآخری غوښتنه به ددوی دا وی چه ټول تعریفونه دالله ﷻ دپاره دي چه دټولوجهان والورب دي .

(رُسُلًا مُّبَشِّرِیْنَ وَمُنْذِرِیْنَ لِئَلَّا یَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ حُجَّةٌۢ بَعْدَ الرُّسُلِ) دالله ﷻ دپاره ټول تعریفونه دی چه هغه خپل رسولان زیری ورکونکی او خبرداري ورکونکی جوړ کړل او وي لیږل چه دې دپاره د رسولانو دراتلو نه پس دخلقو په الله ﷻ باندې څه حجت پاتې نشی . ددې رسولانو سلسله په امی عربی مکی ﷺ باندې ختمه شوه . چه دټولونه زياتې واضحې لارې هدایت کولو والا دې.

**د نبی کریم د رسالت عمومیت**:- دحضور ﷺ د زمانې نه واخله تر قیامته پورې چه څومره انسانان او جنات دی هغه ټولو طرف ته د حضرت محمد ﷺ رسالت دې . لکه څنګه چه په قرآن پاك کښې دی چه (قُلْ یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ اِنِّیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَیْكُمْ جَمِیْعًا) انې نبی ﷺ ته اووایه چه انې خلقو ! زه تاسو ټولو خلقو طرف ته دالله ﷻ رسول یم دهغه الله ﷻ چه د آسمان او زمکې مالك دې چه دهغه نه سوا بل څوك معبود نشته چه هغه پیدا کوی او وژنی ،نو انې خلقو تاسو ټول ایمان راوړئی په الله ﷻ باندې اودهغه په رسول باندې چه نبی دې امی دې چه هغه ایمان راوړې دې په الله ﷻ اودهغه په خبروباندې . انې خلقو هم دده په نقش قدم تللو کښې ستاسو هدایت دې . بل ځائې کښې ارشاد دې چه (لِاُنْذِرَكُمْ بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ) چه څه تاسوهم ویروم او هغه (خلق) هم چه هغوی ته دالله کلام اورسی نوچه کوم یو عربی،عجمی ،تور سپین ته دا قرآن پاك اورسی نونبی کریم ﷺ دهغه دپاره ویرونکی دې.دوجې الله ﷻ فرمائیلی دی چه (وَمَنْ یَّكْفُرْ بِهٖ مِنَ الْاَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهٗ) نو څوك چه کفر کوی په دې قرآن (یعنی ددې نه انکار کوی) هغه په قرآن حکم سره جهمی دې .بل ځائې کښې ارشاد دې چه(فَذَرْنِیْ وَمَنْ یُّكَذِّبُ بِهٰذَا الْحَدِیْثِ ؕ سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَیْثُ لَا یَعْلَمُوْنَ)یعنی ته ما او دا دروغ ویونکې پریږده ، څه به دوی په مزه مزه نیسم د هغه د طرفنه چه دوی ته به پته هم اونه لګی.

رسول کریم ﷺ فرمانی چه ځما پیغمبری عامه ده هر یو سپین او تور طرف ته څه پیغمبر جوړکړې شوې لیږلې شوې یم [١] حضرت مجاهد رحمه الله فرمانی چه ټول جن او انس طرف ته.نو نبی کریم ﷺ ټولوانسانانو او جناتو طرف ته دالله ﷻ رسول دې،ټولو ته دالله ﷻ وحی اوقرآن پاك رسوونکې دې چه دهغه کتاب هیڅ یوطرف نه باطل نه ښکاری. چه دحکمتونو اوتعریفونو والا الله ﷻ نازل کړې دی.

**په قرآن کښې دغور وفکر دعوت** :-الله ﷻ پدې خپل کلام باندې دپوهیدو تاکید هم کړې دې ، فرمانی چه (اَفَلَا یَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ ؕ وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَیْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوْا فِیْهِ اخْتِلَافًا كَثِیْرًا)تاسو ولې په قرآن پاك کښې غور اوتدبر نه کوئی که دا دالله ﷻ نه سوا د بل چا دطرف نه وی نو تاسو به په دې کښې ډیر زیات اختلاف موندې وې. بل ځائې کښې ارشاد فرمانی چه مونږ دا مبارك کتاب ستا طرف ته نازل کړې دې چه په دې کښې خلق غوروفکر اوکړی اوعقل مند خلق ترینه نصیحت حاصل کړی. اوبل ځائې کښې فرمانې چه دا خلق ولې په قرآن پاك دپوهیدو کوشش نه کوی ولې ددوی زړونو ته تالې لګیدلې دی.

**ددنیا غوښتونکو عالمانو مذمت** :-نو په عالمانوباندې واجب دی چه دکلام الله مطلب واضحه کړی ، او زده کړی او(خلقو) ته ښائی اودخلقو صحیح راهنمائی اوکړی . الله ﷻ فرمائی چه مونږ دکتاب والو سره وعده اخستې ده چه هغوی دا بیانوی او پټوی ئې نه خودې خلقو داشاته اوغورزولو او ددې په بدله کښې ئې دنیا طلب کړه. ددوی دا سودا ډیره خرابه ده. او بل ځائې کښې فرمائی چه کوم خلق دالله ﷻ وعده او خپل قسمونه د لږ رقم په بدله کښې خرڅ کړی نو ددوی دپاره په آخرت کښې هیڅ حصه نشته

[١] صحیح مسلم ، كتاب المساجد ، باب المساجد ومواضع الصلوة : ٥٢١)-

. الله ﷻ به دوی سره دقیامت په ورځ خبري نه کوي اونه به دوی طرف ته درحمت نظر سره ګوري. اونه به دوی لره پاکوي بلکه ددوی دپاره دردناك عذاب دي. نو کومو خلقوته چه مونږ مخکښې کتاب ورکړي وو اوهغوی ددي نه مخ واړولو او ددنیا په حاصلولو او ددې په جمع کولوکښې مشغول شو اوالله ﷻ چه کوم څیزونونه منع فرمائیلي دی په هغې پسې روان شو اودالله ﷻ کتاب ئې پریښودو الله ﷻ ددې مذمت بیان فرمائیلې ده. مسلمانانوته پکار دی چه هغوی دې داسې نه کوي چه دمذمت سبب جوړ شي. بلکه دوی ته پکار دی چه دالله ﷻ په کلام کښې د زړه نه مشغول وی او دقرآن پاك په ازده کولو او خودلو او پوهولو کښې مشغول وی .

**قران سره زړونه نرمیږی:-** الله ﷻ فرمائي چه آیا تر اوسه پورې هغه وخت نه دې راغلې چه دمسلمانانو زړونه دالله ﷻ دذکر ( او چه کوم دوی طرف ته حق راغلې دې دهغې نه ) ددوی زړونه اوویریږی اودهغه چا په شان نشی ، چه کومو ته ددې نه مخکښې کتاب ورکړې شوې وو خو چه څه زمانه تیره شوه نودهغوئ زړونه سخت شو اواکثر خلق نافرمانه شو. پوهه شئ مړې زمکې ته نوې ژوند ورکول صرف دالله ﷻ کار دې مونږ خو ستاسو د پوهې دپاره خپل آیتونه بیان کړل.

ددې دواړو آیتونو په ترجمه باندې غور اوکړئی چه په څه لطافت سره بیان شوې دې چه څنګه باران سره خشکه زمکه شنه شی داشان ایمان اوهدایت سره هغه زړونه چه د نافرمانو او ګناهونو په وجه سخت شوی دی نرمیږی ، الله ﷻ چې پاك لوئې اوجواد اوسخی ذات دې د هغه نه مونږ امیدلرو د قبولیت او مونږ دعا کوؤ چه هغه پاك ذات ﷻ زمونږ زړونه هم نرم کړی. آمین.

**دتفسیر صحیح طریقه څه ده ؟** :-واورئی ! دتفسیر بهترینه او صحیح طریقه داده چه اول خودقرآن پاك تفسیر هم په قرآن پاك سره وی خکه چه یوبیان په یو ځائې کښې مختصر دې نو په بل ځائې کښې د هغې تفصیل هم شته . ددې نه پس ددینه دقرآن پاك تفسیرپه حدیثو دې. خکه چه حدیث د قرآن پاك تفسیر او شرح ده. بلکه حضرت امام ابوعبدالله بن محمد بن ادریس شافعی ﷫ فرمائی چه د رسول الله ﷺ ټول احکام هم دقرآن پاك نه ماخوذ دی. دالله ﷻ فرمان دې چه مونږ په تاسو باندې قرآن پاك حق سره نازل اوفرمائیلو چه تاسو دخلقو په مینځ کښې دالله ﷻ د خودلې شوی احکامو مطابق فیصلې اوکړئی .خبردار ! تاسوهغه خلقو سره مه کیږئی چه کوم خیانت کوی. او بل ځائې کښې ارشاد دې چه مونږ په تاسو باندې دا کتاب نازل کړې دې چه دخلقو د اختلاف فیصله اوکړئی . داکتاب دایماندارو دپاره دهدایت اود رحمت (باعث) دې. په یوبل مقام کښې فرمائی چه مونږ ددې ذکر ستاسو طرف ته په دې وجه نازل کړې دې چه تاسو دا خلقوته ښه په ښکاره ښکاره اورسوئی چه په دې غوراوکړی.

**دحدیث اهمیت :-**نبی کریم ﷺ فرمائی خبردارچه ماته قرآن پاك هم راکړې شوې دې او داشان ددې په مثال یو بل څیز هم (۱)نوددې نه مراد سنت دې .یادساتئ احادیث هم دالله ﷻ وحی ده لکه څنګه چه قرآن پاك د الله ﷻ د وحی په ذریعه نازل شو داشان دنبی کریم ﷺ حدیث هم دالله ﷻ وحی ده. خو قرآن پاك وحی متلو ده او احادیث غیرمتلو. امام شافعی ﷫ او نور لوئې لوئې امامانو داپه دلائیلو سره ښه ثابت کړه ده خو په دې ځائې کښې ددې دبیان موقع نه ده. مقصد دادې چه دقرآن پاك تفسیر مخکښې پخپله قرآن پاك سره او بیا په حدیث سره کول پکار دی.

نبی کریم ﷺ چه کله معاذ ﷛ یمن طرف ته لیږلو نو (تپوس ئې ترې اوکړو چه که تاته څه مسئله پیښه شی نو ته به دڅه نه فیصله‌کوې) وې فرمائیل چه په قرآن پاك ، که په دې کښې ئې اونه مومې نووې فرمائیل چه سنت رسول ﷺ سره ، وې فرمائیل چه په دې کښې ئې هم اونه مومې نوبیا ، نو وې فرمائیل چه بیا به اجتهادبه کوم په خپله رائې سره . حضور ﷺ چه دا جواب واوریدو نو دهغوی په سینه

---

(۱) ابوداود کتاب السنة ، باب لزوم السنة : ٤٦٠٤، ترمذی : ٢٦٦٤)–

نې لاس کيخودو او وې فرمائيل چه دالله ﷺ شکر دې چه هغه ذات دخپل نبي قاصد ته هغه توفيق ورکړو چه دهغه دنبي ﷺ خوښ دې[۱]. داحديث په مسندکښې هم دې او په سنن کښې هم او سند هم ددې ډير ښه دې لکه څنګه چه په خپل ځاي ددې ثبوت موجود دې.

**د صحابه کرامو ﷺ د اقوالو اهميت :-** په دې بنا، باندې چه کله ديو آيت تفسير په قرآن پاك او حديث کښې ملاؤ نشي نو صحابه کرامو ﷺ اقوالو طرف ته رجوع کول پکار دي. هغوي تفسير دقرآن پاك باندې ډير زيات پوهه وو. ځکه چه په هغه وخت کښې کومې قرينې او احوال وو دهغې علم هم هغوي ته کيديشي.هغوي ﷺ په هغه وخت کښې موجود وو. ددې نه علاوه هغوي ﷺ ته کامله پوهه ، صحيح علم اونيك عمل حاصل وو. خاص کر هغه بزرګانو ته چه په هغوي ﷺ کښې ډير اوچت مقام والا او زبردست عالمان وو. لکه څنګه چه څلور واړه خلفاء راشدين دي. چه رشد اوهدايت والا وو. يعني حضرت ابوبکر صديق ﷺ،حضرت عمرفاروق ﷺ ،حضرت علي ﷺ اوحضرت عثمان ذي النورين ﷺ د

**عبدالله بن مسعود ﷺ فضيلت:-** اوڅنګه چه دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه روايت دې فرمائي چه په هغه الله ﷺ قسم چه دهغه نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته،دکتاب الله هيڅ يو آيت داسې نشته چه ماته معلوم نه دې چه دا دچا په باره کښې نازل شوې دې او په کوم ځاني نازل شوې دې . که ماته پته وې چه دکتاب الله په علم کښې څما نه څوك زيات دى او څه ترهغه ځاني رسيدلې شوم نو مابه ضرور دهغه کس شاګردي کړې وې[۲] دوي ﷺ دا هم فرمائي چه په مونږ کښې به چا لس آيتونه زده کړل او په دې به نې عمل اونه کړو نو يولسم آيت به ې نه زده کولو .

حضرت ابوعبدالرحمن سلمي تابعي رحمه الله فرمائي چه مونږ د چا نه قرآن پاك زده کړو نوهغوي به مونږ ته فرمائيل چه مونږ د رسول الله ﷺ نه زده کړو چه ترکومې به مونږ د لسو آيتونو علم اوعمل د حضور ﷺ نه زده نه کړو نومخکښې به نه تلو.

**د عبدالله بن عباس ﷺ فضيلت:-** غرض دا چه دقرآن پاك علم اوپه قرآن پاك باندې عمل دواړه مو زده کړل هم په دې کښې يوحبر البحر حضرت عبدالله بن عباس ﷺ دې . د رسول کريم ﷺ د تره ځوئې او ترجمان القران دې. نبي کريم ﷺ د دوي دپاره د برکت دعا کړې وه او فرمائيلي نې وو چه ﴿اللهم فقهه في الدين وعلمه التأويل﴾[۳]اې الله ﷺ دوي ته ددين پوهه ورکړې او دوي ته د قرآن پاك د تفسير علم هم ورنصيب کړې[۴].حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ به فرمائيل چه دقرآن پاك بهترين ترجمان حضرت عبدالله بن عباس ﷺ دې . دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دا قول مخکښې کيدئي او خيال اوکړئي چه ددوي انتقال په ۳۲ هجرئي کښې اوشو او حضرت عبدالله بن عباس ﷺ دهغوي نه پس شپږديرش کاله ژوندي وو نو په دې موده کښې به دوي څومره ترقي کړې وي. حضرت ابو وائل فرمائي چه دحضرت علي ﷺ په زمانه کښې حضرت عبدالله بن عباس ﷺ اميرحج مقرر شوې وو ، دوي په خپله خطبه کښې د سورة بقرة تلاوت اوکړو او په ښه طريقه نې ددې تفسير اوکړو ،که کفارو هم آوريدلې وې نو مسلمانان شوي به وو. په بعضو رواياتو کښې دی چه دوي په دې خپله خطبه کښې دسورة نور تفسير

---

[۱] ) ابو داود، کتاب القضاء ، باب اجتهاد الرای فی القضاء : ۳٦۹۹، ترمذی ابواب الاحکام ، باب ماجاء فی القاضی کيف يقضی: ۱۳۲۷)-

[۲] ) صحيح بخاری ، کتاب فضائل القرآن ، باب القراء من اصحاب الرسول ﷺ رقم : ۵۰۰۳، وصحيح مسلم : ۲٤٦۳)-

[۳] ) حمد ۳۱٤/۱، ۷٦٦، ابن حبان : ۷۰۵۵، وبلفظ (ا للهم فقهه فی الدين ) صحيح مسلم کتاب فضائل الصحابة ، باب فضائل عبدالله بن عبآس : ۲٤۷۷. او صحيح بخاری کښې ( اللهم علمه الکتاب) دې . حديث نمبر: ۷۵، المعجم الکبير للطبرانی : ۱۰۵۸۷/۱۰.

[٤] ) حاکم، ۵۳۷/۳ ، اود شيخينو په شرط صحيح دې او امام ذهبي ددوي موافقت کړې دې)-

اوفرمائیلو ،همدا وجه ده چه اسماعیل بن عبدالرحمن سدی کبیر به په خپل تفسیر کښې هم ددې دوارو بزرگانو اکثر تفسیر نقل کولو لیکن کله کله اهل کتاب نه دا بزرگ چه کوم روایت اخلی هغه هم بیانوی.

**دبنی اسرائیلی روایاتو حیثیت** :دبنی اسرائیلو نه روایت اخستل مباح دی. صحیح بخاری کښې حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ځما د طرف نه اورسوه اګر چه یو آیت وی.دبنی اسرائیلونه په روایت اخستلوهم څه حرج نشته.ماباندې قصداپه دروغه ویونکې بالکل جهنمی دې (۱).

حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ په جنګ یرموك کښې دوه بورنی دیهودیانو او نصرانیانو دکتابو موندلې وې.د هغوی نه پس ده د دې نه هم روایت کولو ،هغوی به داحدیث مدنظر کیخودو او نقل کول به ئې. لیکن یاد لرئی چه د بنی اسرائیلو دا روایات صرف د مسئلې د مضبوطیا اوددې دګواهۍ دپاره راوړې شی. پخپله ددې نه مسئلې نه ثابتیږی.

**د اسرائیلی روایاتو درې قسمونه** :-د بنی اسرائیلو روایات په درې قسمه دی. ① چه دهغې تصدیق په خپله مونږ سره موجود دې یعنی دقرآن پاك دځه آیت یا د حدیث سره مطابق وی اوشهادت کوی ددې په صحت نو داصحیح دی. ②چه دهغې تکذیب پخپله مونږ سره موجود وی یعنی دځه آیت یا دحدیث خلاف وی،ددې په غلط کیدوکښې ځه شك نشته ③چه دهغې مونږ تصدیق نشو کولې ، اونه ئې تکذیب کولې شو ځکه چه نه مونږ سره څه داسې روایت شته وی چه دهغې دمطابقت په وجه مونږ هغې ته صحیح اووایو اونه څه داسې روایت وی چه ددې مخالف وی او په دې وجه مونږ دې ته دروغ یا رښتیا اووایو. نودا دریم قسم روایات هغه دی چه د هغې نه خاموش شو، نه ورته غلط وایواو نه صحیح.البته دا ذکرکول جائز دی. اودا روایات دی هم داسې چه په دې کښې زمونږ ددین ځه فائده نشته . ددې باوجود په داسې خبرو کښې هم لونې لونې اختلافات موجود دی.

**په اسرائیلی روایاتو کښې اختلافات**:- هم په دې وجه چه دداسې روایتونو اخستونکو مفسرینوکښې هم داسې اختلاف راځی.لکه داصحاب کهف نومونه اودهغوی دسپی رنګ ، دهغوی شمیر ، دحضرت موسی ﷺ همسا دکومې ونې وه ؟.حضرت ابراهیم ﷺ چه کوم مارغان حصه حصه کړو وی اوبیا دالله ﷻ په حکم سره چه هغه مارغان ژوندی شو ، هغه مارغان کوم کوم وو؟ او چه کوم مقتول دحضرت موسی ﷺ په زمانه کښې غوا ذبحه کړې شوې وه او ددې د غوښې یوټکړه په دې وهلې شوې وه اوپه دې سره الله ﷻ هغه ژوندې کړې وی، هغه ټکړه کومه یوه وه اودکوم ځائې وه ؟ اوهغه کومه ونه وه چه په هغې حضرت موسی ﷺ نور لیدلې وو او په دې کښې ئې دالله ﷻ کلام آوریدلې وو. وغیره وغیره. نو داداسې څیزونه دی چه په دې باندې الله ﷻ پرده اچولې ده. اودې پیژندل اونه پیژندل مونږته ځه فائده یانقصان نه راکوی. نه ددې په تعین کښې ځه دینی فائده شته او نه دنیاوی.البته داخبره ده چه دا اختلاف نقل کول جائز دی.

**د اصحاب کهف د تعداد په حق کښې د قران بیان**:-لکه ځنګه چه پخپله قرآن پاك داصحاب کهف په تعیین کښې اختلاف نقل کړې دې ، فرمائی چه ﴿سَيَقُولُونَ ثَلَاثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ﴾ دا خلق وائی چه اصحاب کهف درې وو اوڅلورم ددوی سپې وو. او وائی چه دوی پنځه وو او شپږم ددوی سپې وو. دا ټولې هسې تشې خبرې دی ، او دا هم وائی چه دوی اووه وو او اتم ددوی سپې وو . ائې نبی ﷺ ته اووایه چه ددوی شمیر ځما رب ته معلوم دې ښه . تاسو ددې په باره کښې سرسری خبرې کوئی او په دې باره کښې پوښتنه مه کوئی.

---

(۱) صحیح بخاری ،کتاب الانبیاء ، باب من بنی اسرائیل ، : ۳٤٦١، ترمذی : ۲٦٦٩)–

**د قرانی ایت نه څه معلومیږی :-** دا آیت مونږ ته ښائی چه مونږ ته په دې مقام څه کول پکار دی. الله ﷻ په دې ځائې کښې درې قوله فرمائیلی دی. دوؤ ته ضعیف اووئیل او دریم ته ئې د ضعف حکم ورنکړو ددې نه معلوم شو چه دا صحیح دې ځکه که داهم باطل وې نوددې دواړو پشان به دا رد کړې شوې وو. بیائې دې سره دا هم ارشاد اوفرمائیل چه ددوی د شمیر علم تاسو ته هیڅ فائده نه درکوی. بیا تاسو ولې ددې په چاڼ کولوکښې پریشان یئ. تاسودا ولې نه وائې چه ددوی د شمیر حقیقی علم الله ﷻ ته دې. ډیر کم داسې خلق دی چه هغوی ته الله ﷻ صحیح تعداد خودلې دې ، هرکله چه دا معلومه شوه چه دوی اخوا دیخوا خبرې کوی نوبیا دوی پسې ولې انخلئ او ولې تپوسونه کونی؟

دا شان دې نه دا هم معلومه شوه چه د څه اختلاف د نقل کولو صحیح طریقه داده چه ټول اختلافی اقوال بیان کړې شی،صحیح اوغیرصیح باندې خبردارې ورکړې شی،اوددې اختلاف فائده دې هم بیان کړې شی چه هسې څوك سړې په بیکاره کار کښې اخته نشی او د ښه شغل نه اونه خی. چه کوم سړې په اختلاف نقل کولوکښې ټول اقوال بیان نه کړی نودا دهغه قصور دې. ممکن دی چه صحیح قول هغه وی چه کوم هغه پریښودې وی.داشان چه کوم سړې اختلاف نقل کړی اوڅه فیصله اونه کړی نو ده هم غلطی اوکړه. که غیر صحیح ته په قصد سره صحیح اووائی نوبیا هم دې دروغژن دې. اوکه په جهالت سره داسې اوکړی نوبیا دې خطاکاردې. داشان چه یو سړې په څه داسې خبره کښې چه په هغې کښې څه لویه فائده نه وی،یا ډیر اختلافی اقوال نقل کړی یا داسې اختلافات نقل کړی چه د هغې الفاظ معناً مختلف وی خود نتیجې په اعتبار سره هغه اختلاف بالکل ختم شی یاهسې معمولی شان پاتې شی . نو ده هم خپل قیمتی وخت هسې ضائع کړو او د نه کولوکار ئې اوکړو . ددې مثال داسې دې لکه څنګه چه څوك سړې دوه وړوکې کپړې واغوندی ،دښه اونیغې خبرې توفیق خو بس دالله تعالی په لاس کښې دې والله الموفق لسداد.

**﴿ فصل ﴾ تفسیر او د تابعینو اقوال**

کله چه دیوآیت تفسیر قرآن پاك ، حدیث او دصحابه کرامو ﷺ اقوالو کښې ملاؤ نشی نو د دین اکثر امامانو وئیلی دی چه په داسې موقع کښې د تابعینو تفسیر واخستلې شی .

**دامام مجاهد ؒ مقام:-** لکه څنګه چه مجاهد بن جبر ؒ ( چه په تفسیر کښې دالله ﷻ یونښه وه) ، هغوی ؒ فرمائی چه ما د اول نه تر آخره پورې درې ځل د عبدالله بن عباس ﷺ نه قرآن زده کړو او پوهه شوم پرې[1]دیویو آیت باره کښې مې تپوسونه اوکړل او په هغې پوهه شوم. ابن ابی ملیکه ؒ فرمائی چه ما پخپله حضرت مجاهد ؒ اولیدو چه کتاب ، قلم او دوات ئې واخستلواو حضرت ابن عباس ﷺ له ورتللو او دقرآن پاك تفسیر باره کښې به ئې تپوسونه کول او هغه به ئې لیکل. ([2]) د پوره قرآن کریم تفسیر ئې په دې طریقه نقل کړو. دحضرت سفیان ثوری ؒ فرمان وو چه مجاهد ؒ د یو آیت تفسیر اوکړی نودا بیا د چاڼ کول بې فائدې دی. نوددوی تفسیر کافی دې. ([3])

دحضرت مجاهد ؒ په شان حضرت سعید بن جبیر ؒ ، حضرت عکرمه ؒ چه دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ آزاد کړې شوې غلام وواوحضرت عطاء بن ابی رباح ؒ ،حضرت حسن بصری ؒ ، حضرت مسروق ابن اجدع ؒ ، خضرت سعید بن مسیب ؒ ، حضرت ابوالعالیه ؒ ، حضرت ربیع بن انس ؒ ، حضرت قتاده ؒ او حضرت ضحاك بن مزاحم ؒ وغیره تابعینو تبع تابعینو او ددوی نه پس چې کوم خلق دی د هغوئ تفسیر به معتبر منلې شی.

---

[1] ( الطبری: ١/ ٩٠)-
[2] ( الطبری: ١/ ٩٠)-
[3] ( الطبری: ١/ ٩١ )-

**د تابعینو په اقوال کښې ظاهری اختلاف**:- کله داسې هم کیدیشی چه دیو ایت په تفسیر کښې ددې بزرګانو اقوال چه کله ذکر کولې شی او د دوی الفاظو کښې په ظاهر اختلاف په نظر راخی نو بې علمه خلق دې ته معنوی اختلاف وائې او وائی چه ددې آیت په تفسیر کښې اختلاف دې.حالانکه په حقیقت کښې داسې نه وو بلکه چا د یوڅیز تفسیر د هغې په لازم سره کړې وی، چا ددې په مثال سره ، چا پخپله دا څیز بیان کړې وی .اګر چه په دې صورتونو کښې په الفاظو کښې اختلاف وی لیکن معنې نې یو وی. عقل مند ته پکار دی چه په داسې ځائې کښې دې غلطی (خونیدل) اونشی. ﴿والله الهادي﴾

شعبه بن حجاج رحمه الله فرمائی چه کله د تابعین رحمهم الله اقوال په فروعی مسائلو کښې حجت نه دې نو د قرآن پاك په تفسیر کښې به څنګه حجت جوړشی؟ د شعبه رحمه الله قول صحیح دې مراد نې دا دې چه د دوی اقوال حجت نه دې په اختلاف کونکو باندې او دا صحیح ده. خو د دوی اجتماعی اقوال لره حجت کیدلو کښې هیڅ شک نشته او د اختلاف په وخت کښې نه د دوی قول په خپلو کښې په یو بل باندې حجت دې،نه په غیرو باندې ، په دې وخت کښې به د قرآن پاك لغت او حدیث او د عربو عام لغت او د صحابه کرامو ﷺ اقوالو طرف ته رجوع کولې شی.

**د تفسیر بالرائې شرعی حیثیت**:- صرف په رائې سره تفسیر کول حرام دی. رسول کریم ﷺ فرمائی چه چا قرآن پاك کښې خپله رائې داخله کړه یا نې جهالت سره څه اوونیل نو ده خپل ځائې په جهنم کښې جوړ کړو (۱)په ابن جریر او ترمذی شریف او ابوداودشر یف کښې دا حدیث دې. اوامام ترمذی رحمه الله دې ته حسن ونیلې دې . هم دا الفاظ د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه نقل دی. حضرت جندب رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه روایت نقل کوی چه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چا په قرآن پاك کښې د خپلې رائې نه څه اوونیل نو ده خطا اوکړه ابن جریر رحمه الله ،ابوداود ،ترمذی اونسائی کښې هم دا الفاظ موجود دی د حدیث د سهیل بن ابی حزم القطعی نه. امام ترمذی رحمه الله دې ته غریب ونیلی دی او ددې راوی سهیل باندې بعضې اهل علمو کلام هم کړې دې دې حدیث پاك کښې دا الفاظ هم مروی دی چه چا د خپلې رائې نه قران پاك کښې څه صحیح خبره هم اوکړه نو هغه بیا هم خطا کار دې (۲)څکه چه ده ددې څیز تکلف اوکړو چه د هغې ده ته علم نه وو او په داسې لار لاړو چه په هغې باندې ده ته د تګ حکم نه وو. نو اګر چه ده د ژبې نه صحیح خبره وتلې وه خو بیا هم دې خطا کار دې.څکه چه دا کار ده په نبه طریقه باندې اونه کړو

**د تفسیر بالرئی مثال**:ددې داسې مثال دې لکه چه یو سړې بې علمه وی او د خلقو فیصلې کوی ده ته جهنمی ونیلې شوی دی. اګر که نفس الامر کښې دده حکم صحیح هم وی .دا بله خبره ده چه دداسې سړی په صحیح خبره باندې نیول کم وی لیکن خطاکار دې .﴿والله اعلم﴾

او ګورئې الله ﷻ هغه تهمت لګونکی ته کاذب ونیلی دې په قرآن پاك چه ﴿فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا بِالشُّهَدَاءِ فَأُولَٰئِكَ عِندَ اللَّهِ هُمُ الْكَاذِبُونَ﴾ هغه ګواه پیش نه کړې. اګر چه په حقیقت کښې هغه رښتونې وی او په چا باندې د تهمت الزام لګوی هغه واقعی زنا کار وی لیکن چونکه ده دا خبر بغیرد شهادت نه خوره کړه او د دې خورول د ده دپاره حلال نه وه نو دې کاذب اوګرزولې شو. ﴿والله اعلم﴾

**په تفسیر کښې د اسلافو طریقه کار**:-هم دا وجه ده چه دسلفویو لوئې جماعت بغیر د علم نه د تفسیر کولو نه ویریدل. د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه فرمان دې چه زما بوج به کومه زمکه اوچتوی او کوم آسمان به راته سیورې راکوی که څه په قرآن پاك کښې هغه اووایم چه د څه ماته پته نشته. (۳)د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه یو ځل د الله ﷻ د فرمان ﴿وَفَاكِهَةً وَأَبًّا﴾ تفسیر باره کښې تپوس اوشو نو وې فرمائیل

---

۱) ترمذی ، ابواب تفسیر القرآن باب ماجاء ی الذی یفسر القران برایه : ۲۸۵۰، السنن الکبری: ۸۰۸۵)-.

۲) السلسلة الصحیحة : ۲۸/۶ تحت رقم: ۲۵۰۷)-

۳) السلسلة الصحیحة : ۲۸/۶ تحت رقم: ۲۵۰۷)-

چه ماته به کوم یو اسمان سیوري راکړي او کومه زمکه به زما بوج اوچت کړي چه څه په قرآن پاك کښې هغه څه اووایم چه ماته پته نشته. دا روایت منقطع دې. یو ځل حضرت عمر فاروق بن خطاب ﷺ په منبر باندې هم ددې آیت تلاوت اوکړو او بیا ئې اوفرمائیل چه ﴿وَفَاكِهَةً﴾ خومونږ ته معلوم دی لیکن دا (اب) څه څیز دې ؟ بیائې پخپله اوفرمائیل چه ائې عمر په دې تکلف کښې ولې اخته شم ؟[1]

حضرت انس ﷺ فرمائي چه مونږ حضرت عمر بن خطاب سره وو ، ددوی د قمیص په شا څلور پیوندونه لګیدلی وو ،دوی ﷺ ددې آیت ﴿وَفَاكِهَةً وَأَبًّا﴾ تلاوت اوفرمائیلو او وې فرمائیل چه دا (اب) څه څیز دې؟ بیا ئې اوفرمائیل چه تاته ددې تکلف څه ضرورت دې ؟ ددې په نه معلومیدو کښې څه حرج دې؟ مطلب دادې چه د (اب) معنی خو معلوم ده یعنی ګیاه دزمکې پیداوار لیکن د دوئ کیفیت ښکاره علم نشته ، هم په دې آیت کښې موجود دې﴿فَأَنْبَتْنَا فِيهَا حَبًّا وَعِنَبًا وَقَضْبًا﴾ یعنی مونږ په زمکه کښې غلې او انګور زرغون کړل.

**د ابن عباس ﷺ د جواب ورکولو نه انکار:** ابن جریر کښې په صحیح سند سره روایت دې چه ابن ابی ملیکه ﷫ فرمائي چه حضرت ابن عباس ﷺ نه یو کس دیوآیت باره کښې تپوس اوکړو نو دوی بیان نه کړو او وې فرمائیل حالانکه که تاسوکښې ددې باره کښې تپوس شوې وې نو فوراً به مو جواب ورکړې وې . په بل روایت کښې دی چه یوسړی ددوی نه تپوس اوکړو چه په قرآن پاك د زرو کالو برابر دیوې ورځې ذکر دې دا څه دی؟ دوی ﷺ اوفرمائیل چه د پنځوسزرو کالو برابر چه کوم ذکر دې هغه څه دی؟ هغه اووئیل چه څه خو ستاسو نه معلومول غواړم. دوی ﷺ اوفرمائیل چه دا دوه ورځې دی چه ددې ذکر الله ﷻ په خپل کتاب کښې کړې دې ، ددې حقیقی علم الله ﷻ ته دې. خیال اوکړئی دومره لوئې د قرآن مفسرد قرآن په تفسیر کښې څومره د احتیاط نه کار اخلې چه ورته د حقیقت خبرې علم نه وو نوددې د بیانولو نه ئې صفاانکار اوکړو.

**دجندب ﷺ په تفسیر القرآن کښې احتیاط:** په تفسیر ابن جریر ﷫ کښې دی چه حضرت جندب بن عبدالله ﷺ نه یو ځل طلق بن حبیب ﷺ دیو آیت تفسیر اوپوښتلو نو وې فرمائیل چه ته مسلمان ئې نو ستا دې قسم وی که ته ددې خائې نه لاړې. وې فرمائیل چه په دې خائې کښې کینه.

**سعید بن مسیب ﷫ او په تفسیر کښې احتیاط:** حضرت سعید بن مسیب ﷺ نه د قرآن پاك دیو آیت د تفسیر متعلق تپوس اوکړې شو نو وې فرمائیل چه مونږ په قرآن پاك کښې هیڅ نه وایو. ددوی ﷺ دا عادت مبارك وو چه څه به ورته معلوم وو نوهغه به ئې د قرآن پاك په تفسیر کښې وئیل . یو ځل د یوسړی د سوال په جواب کښې دوی ﷺ اوفرمائیل چه مانه دقرآن پاك د تفسیرسوال مه کوه. دقرآن پاك تفسیر دهغه چا اوپوښته چه هغه وائی چا خما نه د قرآن پاك هیڅ یو آیت پټ نه دې. یعنی حضرت عکرمه ﷺ

**د سلفو په تفسیرکښې احتیاط:** بن ابوزید ﷺ وائی چه مونږ حضرت سعید بن مسیب ﷺ نه دحلال اوحرامو مسائلو باره کښې تپوس کړې وو. دوی په دې کښې زیات عالم په نظر راتلل خو چه د قرآن پاك د څه آیت باره کښې به تپوس اوکړې شو نو داسې به خاموش شو چه ګنې هډو دوی آوریدلی نه دی. حضرت عبیدالله بن عمر فرمائي چه ما د مدینې منورې لوئې لوئې عالمان اولیدل چه دوی په تفسیر کښې خبره کول لویه ګنړل. لکه حضرت سالم بن عبدالله ﷫، حضرت قاسم بن محمد ﷫ ، حضرت سعید بن مسیب ﷺ حضرت نافع ﷺ وغیره. حضرت هشام ﷺ فرمائي چه ما خپل پلار عروه ﷺ نه وو کتلې چه هغوی دقرآن پاك دیو آیت تفسیر کړې وی.

[1]) صحیح بخاری کتاب الاعتصام باب مایکره من کثرة السوال....۷۲۹۳ مختصر بلفظ ) نهینا عن التکلف)۔

عبيدالله سلماني رحمه الله نه دقران پاك ديو ايت باره كښې تپوس اوكړې شو نو وې فرمائيل چه كومو خلقو دقرآن پاك آيتونه پيژندل چه په څه باره كښې نازل شو نوهغوى نه دا دنيا خالى شوه. اوس تاسو اوويريږئ دالله تعالى نه او صحيح نيغ اوسئ. حضرت مسلم بن يسار رحمه الله فرمائي چه كله تاسو دكتاب الله په تفسير كښې څه وئيل غواړئ نو مخكښې روستو گورئ څكه دا دالله ﷻ نسبت طرف ته خبره كوئ. حضرت ابراهيم رحمه الله فرمائي چه زمونږ ټولو ملگرو د قرآن پاك تفسير ډير لوئې څيز گڼړلو. او په دې كښې به ئې سخت احتياط كولو. شعبه رحمه الله فرمائي اگر چه ما دقرآن پاك د يو آيت علم حاصل كړې دې خوددې په وينا كښې داوايم چه د الله ﷻ نه روايت دې. حضرت ابن مسروق رحمه الله قول دې چه په تفسير كښې ډير زيات احتياط كوئ څكه چه تفسير خو دالله ﷻ نه روايت كول دى. دا ټول او ددې پشان نور دا آثارصحيحه دحضرات ائمه سلفو نه نقل دى. ددې دا مطلب دې چه دې علماء كرامو به بالكل دعلم نه بغير دقرآن په تفسير كښې څه نه وئيل. خو چه د لغت لحاظ سره يا د شريعت لحاظ سره كوم تفسير معلوم وى دهغې په بيان كولو كښې هيڅ حرج نشته. ددې وجې د دې بزرگانو پاك اقوال د قرآن پاك په تفسير كښې ډير زيات روايت شوې دې.

**يوه شبه او دهغې جواب:** - هېڅوك دې دا نه وائي چه كله به دا بزرگان ويريدل او تفسير به ئې نه بيانولو ، بيادوى نه تفسير ولې نقل دې؟ جواب ددې دادې چه چپ به په هغه خائې كښې وو چه كله به دوى ته كوم معلومات نه وو او وئيل به ئې په هغه خائې كښې چه كوم خائې كښې به دوى ته علم وو. اودا دواړه په هر يو باندې واجب دى. د بې علمئ په وخت كښې چپ پاتې كيدل او علم بيانول قرآن پاك فرمائي چه ﴿لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُ﴾ يعنى دادخلقو مخكښې بيانوئ او پټوئ ئې مه.حديث شريف كښې دى چه دچا نه د څه مسئلې باره كښې تپوس اوكړې شي او دې هغه پټه كړى اگر چه ده ته ددې باره كښې علم وى نو د قيامت په ورځ به ده ته د اوور واگې اچولې شي. (١)

ابن جرير كښې حديث دې چه رسول كريم ﷺ به دقرآن پاك د هغه آيت تفسير كولو چه دكوم تفسير به حضرت جبريل عليه السلام نبي كريم ﷺ ته خودلې وو.خو دا حديث منكر او غريب دې. اوددې راوى جعفر دې ( اودې د محمد بن خالد بن زبير بن عوام قريشى څوئې وو) دده باره كښې امام بخارى رحمه الله فرمائي چه دده په حديث كښې متابعت نشته دې. حافظ ابو الفتح ازدى رحمه الله فرمائي چه دامنكر الحديث دې. كه چرې دا حديث صحيح دې نوبيا هم ددې صحيح مطلب دا كيدېشى چه ددې نه مراد هغه آيتونه دى چه دهغې معنى دالله ﷻ د خودنې نه بغير نه شي كيدلې. دداسې آيتونو مطلب چه رسول كريم ﷺ ته به په ذريعه دحضرت جبريل عليه السلام معلوم‌ولوشو. امام جعفر صادق رحمه الله چه ددې روايت كومه معنى بيان كړې ده فرمائي چه ددې ما حصل هم دا دې. او هم دا معنې صحيح بنديدې هم شي. ددې وجې قرآن پاك كښې داسې آيتونه هم دى چه د هغې علم صرف الله ﷻ ته دې. اوداسې آيتونه هم شته دې چه د هغې علم علماءكرامو ته دې. اوداسې آيتونه هم دى چه د معنى او مطلب لحاظ ئې داشان ښكاره اوواضحه دى چه د چا څه عذر باقى نشى پاتې كيدلې.

**دتفسير اقسام :**-حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائي چه د تفسير څلور قسمونه دى.① دكلام عرب نه معلوميږى ②چه دهغې په جهالت كښې څه عذر نه وى ③چه دا ذى علمه خلقو ته معلوم وى.④ چه هغه دالله ﷻ نه سوا بل څوك نه پيژنى.

يو مرفوع حديث هم دى چه په دې باره كښې دې ليكن ددې په اسنادو كښې كلام دې. په دې كښې حضور ﷺ فرمائي چه دقرآن پاك نزول په څلورو طريقوباندې شوې دې. ①دحلال او حرام آيتونه كه ددې نه څوك ناخبره وو نو دقيامت په ورځ ددوى هيڅ عذر نشى قبلولې.② چه كوم عرب بيان كړى.

(١) ابوادو كتاب العلم باب كراهية منع العلم : ٣٦٥٨، ترمذى: ٢٦٤٩، ابن ماجه: ٧٦١)-

③چه کوم ذی علم اوپیژنی. ④ متشابه آیتونه چه د هغې حقیقي علم دالله ﷻ نه سوا بل چاته حاصل نه دې. چه کوم خلق ددې خبرې دعوی کوی هغه دروغژن دې. په دې حدیث کښې محمد بن سائب کلبی دې ، هغه متروك الحدیث دې، کیدیشی چه هغوی مرقوف روایت یعنی دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه قول ته مرفوع حدیث گنړلې وی ، والله اعلم.

**مکی او مدنی سورتونه** :- حضرت قتاده رضی الله عنه فرمائی چه سورة بقره ، سورة آل عمران ، سورة نساء ، سورة مائدة ،سورة براة ،سورة رعد ،سورة نحل ،سورة حج ،سورة نور ، سورة احزاب ، سورة محمد ، سورة فتح ، سورة حجرات ، سورة رحمان ، سورة حدید ، سورة مجادله ، سورة حشر ، سورة ممتحنه ، سورة صف ، سورة جمعه ،سورة منافقون ، سورة تغابن ، سورة طلاق ، سورة تحریم ، سورة زلزال او ، سورة نصر ، داټول سورتونه خو په مدینه منوره کښې نازل شو اوباقی ټول سورتونه مکه مکرمه کښې نازل شو.

**د ایاتونو تعداد**:- ①دقرآن کریم آیتونه شپږ زره خودلې شی.دې کښې اختلاف دې ، ②خینو ددې نه زیات نه دی خودلی③بعضې شپږ زره دوه سوه او څلور خینې شپږ زره دوه سوه او څوارلس④خینې شپږ زره دوه سوه ده نور لس ، ⑤بعضې دوه سوه پنځویشت ، ⑥بعضې دوه سوه شپږیشت.

**د قران کریم کلمات**:- دقران کریم دکلماتو په نسبت حضرت عطاء بن یسار رحمه الله فرمائی چه اویا زره څلور سوه یو کم څلویښت (۷۰۴۳۹) کلمات دی.

**د قران پاك حروف**:- د حروفو د شمیر په باره کښې حضرت مجاهد رحمه الله نه روایت دې چه د ټول قرآن پاك حروف درې لاکهه یویشت زره او یوسل اتیا(۳۲۱۱۸۰) دی. فضل بن عطاء بن یسار رحمه الله فرمائی چه ټول حروف درې لاکهه درې دیرش زره او پنځلس (۳۳۳۰۱۵) دی.حجاج په خپل وخت کښې قاریان،حافظان او کاتبان جمع کړل او تپوس ئې اوکړو دقران پاك حرفونه اوشمارنی اوماته ئې اووائې، نو ټولو حساب اوکړو او په اتفاق سره ئې اووئیل چه درې لاکهه څلویښت زره او اووه سوه او څلویښت (۳۴۰۷۴۰) دی.

**د حروفو په اعتبارسره د قران تقسیم**:- بیا حجاج اووئیل چه ښه د حرفونو په لحاظ سره نیم قرآن پاك په کوم ځائې کښې ختمیږی؟ نودحساب نه معلوم شو چه سوره کهف کښې دحرف ﴿وَلْيَتَلَطَّفْ﴾په " ف " باندې نیم قرآن پاك ختمیږی. اودسورة برات په سلو آیتونوباندې دقرآن کریم رومبۍ حصه د حروفو په اعتبار سره ختمیږی. اودویمه حصه دسورة شعراء په سلم آیت په سر باندې یا دیوسل یو آیت په سر باندې ختمیږی او دریمه تر آخره پورې.

**د قران پاك منزلونه**:- اوکه دمنزلونو شمار اوکړې شی یعنی که قرآن په اووه منزلونو تقسیم کړې شی نو ①رومبې منزل د ﴿صَدَّ﴾په " د " باندې ختمیږی . چه په دې آیت کښې دې﴿فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ صَدَّ عَنْهُ﴾ ②او دویم منزل د ﴿حَبِطَتْ﴾په " ت " باندې ختمیږی چه داد سورة اعراف آیت ﴿اُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ﴾کښې دې ③ اودریم منزل د ﴿اُكُلُهَا﴾په آخری " ا " باندې ختمیږی چه دا په سورة رعد کښې دې④او څلورم منزل د ﴿جَعَلْنَا﴾په " ا " باندې ختمیږی چه دا په سورة حج کښې په آیت ﴿ جَعَلْنَا مَنْسَكًا﴾ کښې دی. ⑤اوپنځم منزل د ﴿مُؤْمِنَةٍ﴾ په " ه " باندې ختمیږی چه دا په سورة احزاب کښې په آیت ﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ﴾ کښې دې. ⑥او شپږم منزل د ﴿ السَّوْءِ﴾ په " و " باندې ختمیږی چه دا په سورة فتح کښې په آیت ﴿ الظَّآنِّيْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ﴾ کښې دې. ⑦او اووم منزل دقرآن کریم په اختتام باندې.

دابومحمد سلام حمانی رحمه الله بیان دې چه مونږ څلور میاشتې متواتر محنت نه پس دا خبرې حجاج ته اووئیلې.دحجاج معمول وو چه هره شپه به ئې د قرآن پاك یو پاؤ تلاوت کولو. دې لحاظ سره دقرآن پاك یو پاؤ په سورة انعام باندې ختمیږی. او نیم قرآن د سورة کهف د لفظ ﴿وَلْيَتَلَطَّفْ﴾ په " ت " باندې.

او پاؤ کم د سورة زمر په خاتمه باندې او پوره د قرآن کریم په اختتام باندې. شیخ ابو عمر ودانی په خپل کتاب البیان کښې په دې خبروکښې اختلاف نقل کړې دې. پاتې شو د قرآن پاك دوینا په اعتبار سره سورتونه او جزونه نودا مشهورې دیرش پارې دی. او یو حدیث کښې د صحابه کرام ﷺ د قرآن پاك اووه منزلونه کول او ددې د تلاوت کولو بیاندې.

مسند احمد ، سنن ابوداود اوابن ماجه کښې دی چه دحضور ﷺ په ژوند کښې صحابه کرام ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه تاسود قرآن پاك وظیفه څنګه کونې؟ نووې فرمائیل چه ړومبی درې سورتونه په اووه منزلونوباندې ، بیا ددې نه پس دپنځو سورتونو په دویم منزل ، بیا ددې نه پس د اووه سورتونو په دریم منزل ، بیا دې نه پس دنهه سورتونو په څلورم منزل ، بیا دې نه پس دیولسو سورتونو په پنځم منزل باندې ، بیا دې نه پس ددیارلسوسورتونو په شپږم منزل او مفصل یعنی د سورة ﴿ ق ﴾ نه واخله تر آخره پورې ( یعنی اووم ) یومنزل دې [1]

**﴿ فصل ﴾**

**دسورة لفظی معنی①** دسورت لفظی بحث کښې بعضې وائی چه ددې معنی خانله والې او اوچتوالې دې. د نابغه په یوشعر کښې د سورت لفظی معنی په اوچتوالی سره راغلې ده.

الم تران الله اعطاك سورة
تري كل ملك دونها يتذبذب

(ترجمه) آیا ته نه ګورې چه الله ﷻ درکړې دې تالره پورته والې یا جداوالې چه ته وینې هر یو بادشاه لره ددې نه رپیدونکې.

نوددې معنی به داسې وی چه ګویا د قرآن پاك ونیلو والا یومنزل نه دویم منزل طرف ته روان وی . او دا هم ونیلې شی چه دا د شرافت او اوچتوالی په معنی کښې دی. ددې و جې د ښار دیوال ته په عربۍ کښې ﴿سور البلدان﴾ وائی② او بعضې وائی چه په لوښی کښې کومه حصه باقی پاتې شی هغې ته په عربۍ کښې اساره وائی. اود سورة لفظ هم ددې نه اخستې شوې دې. چونکه سورة هم د قرآن پاك یو حصه او ټکړه وی، دهمزه تخفیف شوې دې، بیا همزه په واو سره بدل کړې شو③ یو قول دا هم دې چه د سورة لفظی معنی د تمام اوکمال هم ده. پوره اوښې ته په عربۍ ژبه کښې ددې وجې سور وائی . ④ اودا هم ممکن دی چه څنګه په عربۍ کښې قلعې ته سور په دې وجه وائی چه دې دکورونو احاطه کړې وی اوداکورونه ئې جمع کړې وی .داشان چونکه آیتونو لره سورت جمع کوی اوددې احاطه کوی نودې ته هم سورت ونیلې شی. دسورت جمع سور ده اوکله ﴿سورات﴾ او﴿سوارات﴾ هم راځی.

**د آیت تشریح :-** ① آیت ته آیت په دې وجه ونیلې شی چه د آیت لفظی معنی علامت او نښانه ده ،چونکه آیت باندې کلام ختمیږی او اول او آخر جدا کیږی ددې وجې دې ته آیت وائی. قرآن پاك کښې هم آیت د علامت او نښان په معنی کښې دې. ارشاد دې چه ﴿إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ﴾ یعنی دده دبادشاه کیدو نښه اوعلامه داده. داشان د نابغه په شعرکښې هم آیت په دې معنی کښې دې :

توهمت ايات لها فعرفتها
لست اعوام وذا العام سابع

(ترجمه):- ما معلومې کړې نښې ددې پس ما دا اوپیژندله چه د شپږوکالو وه دائې اوم کال دې

② اود آیت معنی جماعت او ډله هم راځی. د عربو په شعرونوکښې دا لفظ په دې معنی کښې راغلې

[1] ) ابوداود کتاب شهر رمضان باب تحزیب القران : ۱۳۹۳، ابن ما جه: ۱۳٤٥)-

دي. چونکه ایت هم د حرفونو یو جماعت او ډله وی ددې رعایت په وجه دې ته هم ایت ونیلې شی. لکه چه ونیلې شی چه (خرج القوم بآیاتهم) اووتلو قوم سره دخپلو ډلو③او د آیت معنی عجیبه هم ده . چونکه دا عجیبه څیز دې،معجزه ده .ټول انسانان داشان خبره نشی کولې . ددې وجې دې ته هم آیت وائی.

**د ایت صرفی تحقیقی:-** ①سیبویه وائی چه په اصل کښې دا (ایية)وو لکه (اکمة)او (شجرة)،پومبی ی د عربئ د قاعدې مطابق الف جوړ شو. اول یا متحرکه ما قبل تر مفتوح یا مو په الف سره بدله کړه نو اية شو.②دکسائی قول دې چه د آیت اصل (ايية)وو لکه څنګه چه (امنة)ي الف شو اود التباس په وجه پریوتلو. ③ فراء وائی چه دا اصل کښې (ايّة)وو بیا د تشدید په وجه الف بدل کړې شو او (ابة)شو . دآیت جمع (آي آياي آيات ) راځی.

**دکلمې تشریح** :کلمه وائی یو لفظ ته ،کله خو ددې دوه حروف وی لکه څنګه چه (مآ)او (لا)او (له) وغیره اوکله زیات هم وی. زیات نه زیات لس حروف یوکلمه کښې وی. لکه څنګه چه (لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ)او ( أَنُلْزِمُكُمُوهَا)او (فاستقيناكموه)اوکله په یوکلمه کښې صرف یو آیت وی لکه (والفجر)او (والضحی)او(والعصر) اوداشان (الم)او(طه)او(يس)او(حم)،دادکوفیانو قول دې او (حمعسق)ددوی په نیز دوه کلمې دی او ددې نه سوا نور خلق وائی چه دا کلمې نه دی بلکه دا د سورتونو فواتح دی. ابوعمر ودانی فرمائی چه ماته نه دې معلوم.دیو کلمې یوآیت په قرآن کریم کښې سواد (مدهامتان)چه داپه سورت رحمان کښې دې

## ( فصل ) (په قرآن کښې عجمی نومونه)

قرطبی رحمه الله وائی چه د عربئ ژبې نه سوا عجمی ترکیب خو په قرآن پاك کښې نشته دې . البته عجمی نومونه په کښې شته دې لکه ابراهیم ، نوح ، لوط ، او اختلاف ئې کړې دې چه آیا قرآن کښې ددې نه سوا هم څه عجمی دې؟ نو باقلانی او طبری خو صفاانکار کړې دې او وائی چه دعجمیت مطابق چه څه دی قران پاک کښې هغه حقیقت کښې عربی ده لیکن موافقت دې.

## دسوره فاتحې تفسیر

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

**دسورة فا تحې نورنومونه**①ددې سورة نوم سورة فاتحه دې ، فاتحه وائی شروع کولو ته ، چونکه قرآن پاك کښې د ټولو نه مخکښې هم دا سورت لیکلې شوې دې ددې وجې دې ته سورت فاتحه وائی اوددې وجې هم چه په مونځ کښې قرات هم ددې نه شروع کیږی ②او ددې نوم(أُمُّ الْكِتَٰبِ)هم دې . جمهور هم داوائی. البته حسن رحمه الله او ابن سیرین رحمه الله ددې قائل نه دی. هغوی وائی چه د لوح محفوظ نوم " ام الکتاب " دې او د حسن رحمه الله قول دې چه محکم آیاتونو ته " ام الکتاب " وائی. د ترمذی په یوحدیث کښې دی چه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه ( الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَٰلَمِينَ ) پوره سورت پورې هم دا " ام القران ، ام الکتاب ، سبع مثانی او قران عظیم "([1])دې③ددې سورت نوم "سورة الحمد" او④" اوسورة الصلوة " هم دې. نبی کریم ﷺ فرمائی چه الله ﷻ فرمائیلی دی ما صلوة (یعنی سوره فاتحه ) خپل او د خپلوبندګانو په مینځ کښې نیمه نیمه تقسیم کړې ده.کله چه بنده وائی (الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَٰلَمِينَ) نوالله ﷻ فرمائی چه خما بنده خما تعریف اوکړو پوره حدیث پورې([2])په دې حدیث کښې معلوم شوچه دسورت فاتحې نوم سورة الصلوة هم دې،ځکه چه ددې سورت په مونځ کښې ونیل شرط دی⑤ددې سورت نوم

---

[1] ) ابوداود کتاب الصلاة ، باب فاتحة الکتاب:۱٤۵۷، ترمذی: ۳۱۲، صحیح بخاری بلفظ ( ام القران هی السبع المثانی والقران العظیم ) کتا ب التفسیر تفسیر سورة الحجر: ٤۷۰٤ ، صحیح بخاری: ۲٤۹۸)—

[2] ) صحیح مسلم ، کتاب الصلاة باب وجوب قراءة الفاتحة : ۳۹۵، ابوداود: ۸۲۱، ترمذی: ۲۹۵۳، نسائی : ۹۱۰، ابن ماجه: ۸۳۸)—

سورة الشفاء هم دي. دارمي کښې حضرت ابوسعيد ﷛ نه مرفوعا روايت دي چه سورت فاتحه د هر زهر شفاء ده ⑥او ددې نوم "سورة الرقيه "هم دې[۱] حضرت ابو سعيد ﷛ چه کله يوسړي دم کړو اوهغه سړي مارچيچلې وو اوهغه ښه شو نو نبی کريم ﷺ هغه ته اوفرمائيل چه تاته څنګه معلومه شوه چه دا رقيه ده يعنی ونيل او پوك وهلو والاسورت دي[۲]⑦ حضرت ابن عباس ﷛ دې ته "اساس القران" واني. يعنی د قرآن پاك جرړه . اوددې سورت بنياد﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ دې⑧حضرت سفيان ابن عيينه ﷬ فرمائي چه ددې نوم " رقيه " دې⑨يحيی بن کثير ﷬ فرمانی چه ددې نوم "کافيه" هم دې . ددې وجې چه دا خپل ماسوا نه کفايت کوی. او بل هيڅ يو سورت ددې نه کفايت نه کوی په بعضې مرسلواحاديثوکښې دا مضمون هم راغلې دې چه دې ته سورة الصلوة ⑩او سورة الكنز هم ونيلې شوی دی. دزمحشری ﷬ په تفسير کشاف کښې اوګورئی.

**د سورة فاتحه مکی او مدنی حيثيت:** ①حضرت ابن عباس ﷛ ،حضرت قتاده ﷛ او ابو العاليه ﷬ فرمائی چه داسورت مکی دې .حضرت ابوهريره ﷛،حضرت مجاهد ﷬ ، حضرت عطاء بن يسار ﷬ ②او حضرت زهری ﷬ فرمائی چه دا سورت مدنی دې . خو ړومبې قول زيات صحيح دې. ددې وجې په بل آيت کښې دی ﴿ وَلَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ ﴾ يعنی مونږ تاته سبع مثانی يعنی اووه بار بار ونيلو والا سورت درکړې دې. والله اعلم.③دابوالليث سمرقندی ﷬ يو قول قرطبی ﷬ هم نقل کړې دې چه ددې سورت نصف په مکه مکرمه کښې ا و آخری نصف په مدينه منوره کښې نازل شوې دې. ليکن داقول بالکل غريب دې.

**د سورة فاتحې د اياتونو تعداد:**- او دا اووه آياتونه بغير د خلاف نه دی. ليکن عمرو بن عبيد *اته اياتونه*، او حسين جعفری شپږ هم ونيلی دی او دا دواړه اقوال شاذ دی.

**بسم الله د فاتحې مستقل ايت دې که نه؟** ﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ ددې سورت مستقل آيت دې اوکه نه دې ،په دې کښې ا ختلاف دې①تول کوفی قاريان او دصحابه کرام ﷛ اود تابعينو يوه ډله او روستنی ډير بزرګان خو داد سورت فاتحې يو مستقل آيت ګڼړی②بعضې دې ته ددې جز وانی او بعضې دا آيت ددې په شروع کښې هم ومنی نه. لکه څنګه چه دمدينې منورې دقاريانواو فقهاء کرامو دا قول دې. ددې تفصيل به انشاء الله مخکښې راشی.

**د سورة فاتحې کلمات او حروف:**- ددې سورت کلمات پنځويشت دی او حروف ئې يوسل ديارلس دی.

①امام بخاری ﷬ دکتاب التفسير په شروع کښې په صحيح بخاری کښې ليکی چه ددې ام الکتاب نوم په دې وجه دې چه دقرآن کريم کتاب ددې نه شروع کيږی او دمونځ قرات هم ددې سورت نه شروع کيږی ، ②يوقول دا هم دې چه دټول قرآن پاك مضامين اجمالی طور په دې کښې دی . ددې وجې دې ته أم الکتاب ونيلې شی. اودعربو عادت دې چه هر يو جامع کار اودکار جرړه چه دهغې ښاخونه او اجزاء هم ددې تابع وی نو ورته ام وانی . ګورئی ام الراس هغوی جلئ (برده) ته وانی چه ددماغ جامع دې. او لښکری بيرغونه او نښې هم چه دهغې لاندې خلق جمع وی (هغې ته) ام وانی. دشاعرانو په شعرونوکښې هم ددې ثبوت موندلې شی. مکې ته ام القری ونيلې شی اوددې وجه دا هم ده چه دا د ټولونه مخکښې ده اوجامع ده. زمکه هم ددې خانې نه خوره شوه . چونکه ددې نه د مونځګزار مونځ شروع کيږی اود قران ليکلو په وخت کښې هم صحابه کرام ﷛ هم دا مخکښې اوليکله. ددې وجې دې ته فاتحه وانی. ددې يو صحيح نوم " سبع مثانی " هم دې. ددې وجې چه دا باربار په مونځ کښې ونيلې

---

[۱] امام درامی دا مسند نه دې بيان کړې ، په دې روايت کښې : ۳۳۷۰ (فاتحة الكتاب شفاء من كل داء)-

[۲] صحيح بخاری کتاب الاجارة باب ما يعطی ف الرقية: ۲۲۸۶، صحيح مسلم: ۲۲۰۱)-

کیږي. په هر رکعت کښې دا ونیلې کیږي. او دمثانی معنې نورې هم دی چه انشاء الله ﷻ په خپل ځای به بیانیږي. والله اعلم.
مسند احمد کښې حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ د ام القران باره کښې فرمانیلی دی چه دا ام القران دی. هم دا سبع مثانی دې. او هم دا قرآن عظیم دې. [1] او په یو بل حدیث کښې دی چه هم دا ام القران دې. هم دا فاتحة الکتاب دې اوهم دا سبع مثانی دې[2]
تفسیر مردویه کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمانیل د ﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۝ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ۝ ﴾ اووه آیتونه دی او ﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ﴾ هم د دې نه یو آیت دې هم د دې نوم سبع مثانی دې. هم دا قرآن عظیم دې. هم دا ام الکتاب دې. هم دا فاتحة الکتاب دې. [3] دارقطنی کښې هم داشان یو حدیث دې او ونیلی ئې دی چه ددې ټول راویان ثقه دی. بیهقی کښې دی چه حضرت علی ﷺ ، حضرت ابن عباس ﷺ او حضرت ابوهریره ﷺ د سبع مثانی تفسیر کښې دا ونیلی دی چه دا سورة فاتحه دې او ﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ﴾ ددې اووم آیت دې. او د بسم الله په بحث کښې به ددې بیان پوره راشی، انشاء الله .
حضرت ابن مسعود ﷺ نه اوونیلې شو چه تاسو سورة فاتحه په خپل لیکلې شوی قرآن کریم کښې ولې نه ده لیکلې ؟ نو وې فرمانیل که ما لیکلې نو دهر سورة په اول کښې به مې لیکلې. حضرت ابوبکر بن ابوداود رحمه الله فرمانی چه ددې قول مطلب دادې چه په مونځ کښې د ونیلو حیثیت دې. او چونکه ټولو مسلمانانوته حفظ ده ددې وجې څه ضرورت نشته دې د لیکلو.
**د فاتحې د نزول درجه:** دلائل النبویه کښې امام بیهقی یو حدیث کښې وارد کړې دې په هغې کښې دی چه دا سورت د ټولونه مخکښې نازل شو. باقلانی رحمه الله نه نقل دی چه یو قول دا دې چه سورة فاتحه د ټولو نه مخکښې نازل شو۞دویم قول دادې چه ﴿ یٰۤاَیُّهَا الْمُدَّثِّرُ ۝ ﴾ دټولو نه مخکښې نازل شو او لکه څنګه چه صحیح حدیث کښې د حضرت جابر ﷺ نه روایت دې۞او دریم قول دادې چه د ټولو نه مخکښې ﴿ اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ ۝ ﴾ نازل شو.او هم دا صحیح قول دې.ددې تفصیل به مخکښې راشی،انشاء الله.

**دسورت فاتحې فضائل**

**د ټولو نه لوئې سورت:-** مسند احمد کښې د حضرت ابوسعید بن معلی ﷺ نه روایت دې چه ما مونځ کولو او رسول کریم ﷺ څه راوبللم ، ماورته څه جواب ورنکړو ، کله چه مونځ نه فارغ شوم نود رسول کریم ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم نو نبی کریم ﷺ اوفرمانیل اوسه پورې په څه کار کښې وې؟ ما اوونیل انې رسول کریم ﷺ زه په مونځ کښې ووم. رسول کریم ﷺ اوفرمانیل چه آیا تا دالله ﷻ قول آوریدلې دې ؟ ﴿ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اسْتَجِیْبُوْا لِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ اِذَا دَعَاكُمْ لِمَا یُحْیِیْكُمْ ﴾
**ترجمه :-** انې ایمان والو،دالله ﷻ اودهغه رسول ﷺ چه کله تاسو راوبلی نو تاسوجواب ورکړئ
بنه ده واوره ! خه به تاته د جمات نه د بهر وتلونه مخکښې اووایم چه په قرآن کریم کښې د ټولو نه لوئې سورت کوم یودې؟بیائې خما لاس نیولې وو اودجمات نه بهر راوتلو اراده نبی کریم ﷺ اوفرمانیله نو ما رسول کریم ﷺ ته خپله وعده وریاده کړه.رسول کریم ﷺ اوفرمانیل چه هغه سورت﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۝ ﴾ دې،هم دا سبع مثانی دې،هم دا قرآن عظیم دې چه ماته راکړې شوې دې [4] داشان دا حدیث په صحیح بخاری ، ابوداود ، نسائی او ابن ماجه کښې هم په نورو سندونو سره روایت دې.

---

[1] ) احمد: ۴۴۸/۲، وسنده صحیح )-
[2] ) الطبری: ۱۳۴)-.
[3] ) دارقطنی باب وجوب قراة بسم الله الرحمان الرحیم فی الصلاة: ۳۱۲/۱، وهو صحیح)-
[4] )صحیح بخاری کتاب التفسیر،باب ماجاء فی فاتحة الکتاب:۴۴۷۴،ابوداود: ۱۴۵۸،نسائی: ۹۱۴، ابن ماجة: ۳۷۸۵، موطا امام مالک: ۳۷)-

**دابی بی کعب ﷺ باره کښې هم داسې واقعه:-**واقدی ﷺ دا واقعه د حضرت ابی بن کعب بیان کړې ده. موطا امام مالك ﷺ کښې دی چه رسول کریم ﷺ حضرت ابی بن کعب ﷺ ته آواز اوکړو اوهغه مونځ کولو.چه فارغ شو نو نبی کریم ﷺ سره ملاؤ شو. فرمائی چه نبی کریم ﷺ خپل لاس خما په لاس باندې کیخودو . جمات نه بهر راوتل نو وې فرمائیل چه خه غواړم چه د جمات نه د وتلونه اول تاته داسې سورت اوښایم چه تورات اوانجیل او قرآن کښې ددې مثل نشته . نومابه دې باندې خپل چال نرم کړو اودنبی کریم ﷺ نه مې تپوس اوکړو چه هغه سورت کوم یو دې؟حضرت رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه دمونځ په شروع کښې ته څه وائې ؟ما اونیل چه ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَٰلَمِينَ﴾ پوره سورت پورې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل هم داهغه سورت دې ،داسبع مثانی دې او قرآن عظیم دې چه ماته راکړې شوې دې ،هغه هم داسورت دې. ([1])ددې حدیث آخری راوی حضرت ابوسعید ﷺ دې.

**دبعضې عالمانو خطائی:-**په دې بناء باندې ابن اثیر ﷺ اودوی سره د دوی ملګری په دې خانې کښې دهوکه کیږی.دوی هغه ابوسعید بن معلی ګڼړی. دا ابوسعید ﷺ بل دې . دا مولا خزاعی دې او تابعینو کښې دې او هغه ابوسعید انصاری صحابی ﷺ دې ،د هغه حدیث متصل او صحیح دې. اودا حدیث په ظاهرکښې منقطع معلومیږی.که د ابوسعید تابعی دحضرت ابی نه آوریدل ثابت نه وی، اوکه آوریدلې وی نوداحدیث دمسلم په شرط صحیح دې . والله اعلم.

**دابی ﷺ حدیث په بل سند سره:-**ددې حدیث نور هم ډیر طرق دی. مسند احمد کښې دی چه رسول کریم ﷺ کله ابی بن کعب ﷺ راوبللو نودوی په مونځ کښې وو. التفتات نې اوکړو خو جواب نې ورنکړو حضرت رسول اکرم ﷺ ته مونځ نې مختصر کړو او زر د حضرت نبی اکرم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو .سلام نې اوکړو او عرض نې اوکړو،نوحضور ﷺ ورته اوفرمائیل چه تا جواب ولې رانکړو ؟ وې فرمائیل چه انې رسول کریم ﷺ څه په مونځ کښې ووم.نو نبی کریم ﷺ هم هغه آیت تلاوت اوفرمائیلو چه آیا تا دا آیت نه دې آوریدلې؟ وې فرمائیل چه یارسول الله ﷺ غلطی رانه اوشوه بیا به داسې نه کوم. نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه آیا ته غواړې چه زه تاته یوداسې سورت اوښایم چه په تورات ،انجیل اوپوره قرآن پاك کښې داسې سورت بل نشته دې. ما اوونیل ضررو ارشاد اوفرمائې. نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه ددې خانې نه دتلونه اول به نې تاته اووایم. بیا نبی کریم ﷺ خمالاس اونیولو او خبرې نې کولې اوما خپل چال په مزه کړو چه هسې نه هغه خبره پاتې شی او نبی کریم ﷺ بهر لاړ شی آخر چه کله دروازې ته نزدې شو نو مانبی کریم ﷺ ته وعده وریاده کړه . نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته په مونځ کښې څه لولې؟ ما ورته ام القران اولوستو،نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په الله ﷻ قسم چه د هغه په قبضه کښې خما ساه ده چه تورات ، انجیل ، زبور او قرآن پاك کښې ددې پشان بل سورت نشته دې.داسبع مثانی دې ([2])ترمذی کښې دومره اضافه نوره هم ده چه هم دا لونې قرآن دې چه ماته راکړې شوې دې. ([3])داحدیث حسن صحیح دې .

د حضرت انس ﷺ نه هم په دې باب کښې یو حدیث روایت کړې شوې .د مسند احمد یو اورد حدیث کښې هم داشان روایت دې . دنسائی په روایت کښې دا الفاظ هم دی چه دا سورت دالله اودالله ﷻ د بنده ترمینځه تقسیم کړې شوې دې. ([4]) ترمذی دې ته حسن غریب وائی

[1]) الموطا : ۱/۱۸۳، وهو صحیح)-

[2]) احمد ۲/۴۱۳، ترمذی: ۲۸۷۵)-.

[3]) ترمذی ، ابواب فضائل ، باب ماجاء فی فضل فاتحة الكتاب : ۲۸۷۵، وسنده صحیح)-

[4]) نسائی : کتاب الافتتاح باب تاویل قول الله تعالی (ولقد آتیناك من المثانی والقران العظیم) : ۹۱۵ وسنده صحیح)-

**دجابر ﷜ په روایت سره د فاتحې عظمت:** -مسند احمد کښې حضرت جابر ﷜ نه روایت دې چه یو خل د نبی کریم ﷺ خوا ته ورغلم او نبی کریم ﷺ د اودس نه فارغ شوې وو.ما ورته درې خل سلام اوکړو خو نبی کریم ﷺ یوخل هم جواب رانکړو.نبی کریم ﷺ کور ته تشریف یوړو.خه ډیر د غم په حالت کښې جمات ته راغلم. لږ وخت پس نبی کریم ﷺ طهارت کولو نه پس تشریف راوړو او درې خل نې خما د سلام جواب راکړو.بیائې اوفرمائیل چه ائې عبدالله بن جابر ﷜ ! واوره ټول قرآن پاك کښې بهترین سورت ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ (ترآخره پورې) دې. (۱)ددې اسناد ډیر بهترین دی. ابن عقیل چه ددې راوی دې اودا هغه دې چه دده حدیث لونې لونې علماء کرام روایت کوی. اوحضرت عبدالله بن جابر ﷜ بدری صحابی دې.دابن الجوزی هم دا قول دې والله اعلم.

**د قرانی سورتونو په خپل منځ کښې یوبل باندې فضیلت:** ①دحافظ بن عساکر رحمه الله قول هم دا دې چه عبدالله بن جابر انصاری بیاضی ﷜ دې. دا حدیث او ددې پشان نورو احادیث نه نې استدلال کړې دې او ابن راهویه،ابوبکربن عبری،ابن الحصاروغیره اکثرو عالمانو ونیلی دی چه بعضې آیتونو او بعضې سورتونوباندې فضیلت لری ②اویوبله ډله خیال کوی چه دالله ﷻ ټول کلام برابر دې یو ته په بل باندې فضیلت حاصل نه دې. دا به قباحت وی چه نور سورتونه ددې نه کم درجه په نظر راځی.حالانکه کلام الله ټول فضیلت والا دې.قرطبی رحمه الله داشعری رحمه الله اوابوبکر باقلانی رحمه الله اوابوحاتم حبان بستی رحمه الله او ابوحیان اویحیی بن یحیی رحمه الله نه هم داشان نقل دی. امام مالك رحمه الله نه هم په یوروایت کښې دا مذهب نقل دې.

**د فاتحې په دم سره بیمار جوړیدل:** - دسورت فاتحې فضائل ددې پورتونو احادیثو نه علاوه نور هم دی ،په صحیح بخاری کښې په فضائل قران کښې حضرت ابوسعید خدری ﷜ نه روایت دې چه مونږ یو خل په سفر کښې وو،یوخانې کښې ایسار وو چه یو وینځه راغله او وې ونیل چه ددې خانې دقبیلې سردار مار خوړلې دې. زمونږ سړی په دې خانې کښې موجود نه دی. په تاسوکښې داسې څوك شته دې چه هغه دم کړی؟ زمونږنه یوسړې پاسیدو اوهغې سره لاړو. مونږ ته پته نه وه چه ده له څه دم ورځی اوکه نه. دې چه هغه خانې ته لاړو نو دم نې کړو، الله ﷻ په خپل فضل سره هغه بالکل صحیح کړو. هغه ورته دیرش چیلئ ورکړې او زمونږ د ملمستیا دپاره نې ډیر پئ هم راولیږل. هرکله چه هغه واپس راغلو نومونږ ورته اوونیل چه آیا تاته د دم درود څه علم شته دې څه ؟هغه اوونیل چه ماپرې صرف سورة فاتحه دم کړې ده. مونږ ورته اوونیل چه دا راوړونکې مال لا مه چیړه.مخکښې به درسول کریم ﷺ نه تپوس کوو ددې مسئلې باره کښې. کله چه مدینې ته راغلو نو مونږ نبی کریم ﷺ ته ذکر اوکړو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه ته څنګه معلومه شوه چې داد دم کولوسورت دې؟ ددې مال حصې جوړې کړنې اوماته په کښې هم حصه اوکړنې. صحیح مسلم او ابوداود کښې هم داحدیث شته دې(۲)دمسلم بعضې روایاتوکښې دی چه دم کولووالا حضرت ابوسعید خدری ﷜ وو.(۳)

**د فاتحې د نزول سره د زیری دپاره فرشته راتلل:** - مسلم او نسائی کښې حدیث دې چه رسول کریم ﷺ سره یو خل حضرت جبریل ﵇ ناست وو چه د پاس نه دیو زورداری دهماکې آواز راغلو. حضرت جبریل ﵇ چه پاس اوکتل نو وې فرمائیل چه نن د آسمان هغه دروازه پرانستې ده چه هیڅ کله هم نه ده پرانستې شوې. بیا دهغه خانې نه یو فرښته نبی کریم ﷺ ته راخی او وانی چه خوشحاله شئ ، تاسو

---

[1] ) احمد: ۱۷۷/٤،)-

[2] ) صحیح بخاری ، کتاب الایمان باب مایعطی فی الرقیة علی احیاء العرب بفاتحة الکتاب : ۲۲۸٦، صحیح مسلم: ۲۲۰۱، ابوداود: ۳٤۱۸، ترمذی: ۲۰۲۲، ابن ماجة: ۲۱۵٦، الیوم اللیلة للنسائی: ۱۰۲۷)-

[3] ) صحیح مسلم کښې دا نشته دې چه دم کولو والا ابوسعید خدری وو بلکه دا سنن ترمذی ۲۰۲۴ کښې دی )-

ﷺ ته داسې دوه نورونه درکړې شو چه ستاسو ﷺ نه مخکښې بل نبي ﷺ ته نه وو ورکړې شوی سورة فاتحه اود سورة بقرې آخری آيتونه ، يويو حرف دې ته نورورکړې شوې دې. (۱)

**فاتحه د الله او بنده په مينځ کښې تقسيم ده:-** په صحيح مسلم کښې دی چه حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه حضرت رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم سړې په خپل مونځ کښې ام القران اونه وائی نودهغه مونځ ناقص دې ،ناقص دې ، ناقص دې،پوره نه دې. حضرت ابوهريره ﷺ تپوس اوکړچه کله مونږ امام پسې يو؟ نو وې فرمائيل چه په زړه کښې وائی. ما د نبی کريم ﷺ نه آوريدلی دی چه فرمائيل به نې چه دالله ﷻ فرمان دې چه ما مونځ (سورة فاتحه) خپل او دخپل بنده مينځ کښې نيمه نيمه تقسيم کړې ده. اوخما بنده چه خما نه څه غواړی هغه خه ورکوم.کله چه بنده وائی ﴿اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ﴾ نوالله ﷻ فرمائی(حمدنی عبدي) خما بنده خما تعريف اوکړو. بيا بنده وائی ﴿الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ﴾ نوالله ﷻ فرمائی چه( اثنی علی عبدي ) خما بنده خما ثناء بيان کړه . بيا بنده وائی چه ﴿مٰلِكِ يَوۡمِ الدِّيۡنِ﴾ نوالله ﷻ فرمائی چه(مجدنی عبدي)خمابنده خما بزرګی بيان کړه.بعضې روايتونوکښې دی چه الله ﷻ ددې په جواب کښې فرمائی چه (فوض الی عبدي)خما بنده ماته خان حواله کړو.بيا بنده وائی چه ﴿اِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَاِيَّاكَ نَسۡتَعِيۡنُ﴾ نوالله ﷻ فرمائی چه دا خما او خما دبنده ترمينځه دی او خما بنده چه خما نه څه غواړی هغه به ورکوم. بيا بنده آخر سورته پورې وائی نوالله ﷻ فرمائی چه دا ټول خما دبنده دپاره دی او څه چه دې غواړی دا ټول دهغه دپاره دی. نسائی کښې روايت دې (۲)چه دبعضو روايتونو په الفاظوکښې څه بدلون هم دې. ترمذی دې حديث ته حسن وئيلې دې.ابوزرعه ﷺ دې ته صحيح وئيلی دی.مسند احمد کښې هم دا حديث مطول موجوددې.ددې راوی حضرت ابی بن کعب دې (۳)اود ابن جرير رحمه الله په يو بل حديث کښې دا الفاظ هم دی چه الله ﷻ فرمائی چه دا خما دپاره دی او چه څه باقی دی هغه خما دبنده دپاره دی ، دا حديث غريب دې.

**دحديث فوائد:-** اوس ددې حديث په فائدو باندې نظر واچونی① په دې حديث کښې لفظ دصلوة يعنی دمونځ اطلاق دې. اومراد ددې نه قرات دې.لکه څنګه چه په قرآن پاك کښې په يوبل ځائې کښې دی چه ﴿وَلَا تَجۡهَرۡ بِصَلَاتِكَ﴾ يعنی خپل مونځ (قرات) نه ډير په اوچت آواز وايه او نه ډير په روآواز سره بلکه په درميانه آوازسره نې وائی. حضرت ابن عباس ﷺ نه ددې تفسير کښې وضاحت نقل دې چه په دې ځائې کښې د صلوة نه مراد قرات دې ،اوداشان په دې تيرشوی حديث کښې قرات ته نې صلوة وئيلی دی. په دې سره په مونځ کښې چه کوم عظمت دې هغه معلوميږی او ظاهريږی چه قرات دمونځ اعلی رکن دې ،ددې وجې چې د عبادت مطلق نوم اخستې شوې دې.اوددې نه مراديوجزء يعنی قرات ذکر کړې شوې دې.دا هم خيال کول پکاردی چه ددې خلاف هم کار شوې دې چې د قرات اطلاق کړې شوې دې اومراد ترې نه مونځ اخستې شوې دی. فرمان دې چه ﴿وَقُرۡاٰنَ الۡفَجۡرِ ؕ اِنَّ قُرۡاٰنَ الۡفَجۡرِ كَانَ مَشۡهُوۡدًا﴾ يعنی د صبا په مونځ فرښتې نازليږی.په دې ځائې کښې دقران نه مرادمونځ دې.دبخاری اومسلم په حديث کښې دی چه د سحر دمونځ په وخت کښې دشپې اود ورځې فرښتې جمع کيږی (۴)او ددې آيتونو او احاديثو نه هم دا معلوميږی چه په مونځ کښې قرات وئيل ضروری دی ، اودعالمانو هم په دې اتفاق دې.

---

[1] ) صحيح مسلم کتاب الصلاة المسافرين باب فضل الفاتحة وخواتيم سورة البقرة : ۸۰۶، نسائی: ۹۱۳، ابن حبان: ۷۷۸)-

[2] ) صحيح مسلم کتاب الصلاة باب وجوب قراءةالفاتحة الکتاب ....۳۹۵، نسائی: ۹۱۰، ا بوداود: ۸۲۱، ترمذی: ۲۹۵۳، ابن ماجة: ۷۳۷)-

[3] ) احمد: ۱۱٤/۵، زوائد عبدالله بن احمد وسنده صحيح)-

[4] ) صحيح بخاری کتاب الاذان باب فضل صلاة الفجر فی الجماعة : ٦٤٨، صحيح مسلم: ٦٤٩)-

**په مانځه کښې د سورة فاتحې عدم فرضیت:**-په دې کښې اختلاف دې چه په مونځ کښې دسورت فاتحې وئیل ضروری دی اوکه د قرآن پاك نه چه څه وائی نو کافی دی. ①امام ابو حنیفه رحمه الله اوددوی ملګری وغیره وائی چه ددې وئیل متعین نه دی بلکه د قران نه چه څه اووائی نوهغه کافی وی. دهغوی دلیل دا آیت ﴿ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ﴾ دې یعنی چه په قرآن کښې څه آسان وی نو وائی. دبخاری او مسلم په حدیث کښې دی چه یو سړی زر زر مونځ کولو نو حضور ﷺ ورته اووئیل کله چې ته مونځ ته اودرېږې نوتکبیر وایه ،بیا چه څه د قران نه تاته آسان وی نو هغه اووایه [۱]، هغوی فرمائی چه د نبی کریم ﷺ دې سړی ته دا فرمائیل او د سورت فاتحې تعین نه کول ددې نه دا ښکاری چه څه د قرآن نه اووائی نو هغه کافی دی.

**په مانځه کښې د سورة فاتحې فرضیت:**-②دویم قول دادې چه دسورت فاتحې وئیل ضروری دی. او ددې دوئیلونه بغیر مونځ نه کیږی ددې (امامانو) نه علاوه دنوروټولو امامانو هم دا قول دې. حضرت امام مالك رحمه الله ، حضرت امام شافعی رحمه الله ،حضرت امام حنبل اوددوی ټول په ټوله شاګردان وغیره او جمهور علماء کرامو هم دا قول دې. دهغوی دلیل د نبی کریم ﷺ دا حدیث مبارك دې چه کوم دالله ﷺ رسول فرمائیلې دې چه کوم سړې مونځ اوکړی که هر یو مونځ وی او په دې کښې ام القران اونه وائی نو د هغه مونځ ناقص دې پوره نه دې [۲]

داشان ددې بزرګانو دا دلیل هم دې چه کوم په بخاری او مسلم کښې دحضرت عباده ابن صامت رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ فرمائیلی دی چه کوم سړې سورة فاتحه اونه وائی نودده مونځ اونشو [۳].

صحیح ابن خزیمه اوصحیح ابن حبان کښې حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ فرمائیلی دی چه هغه مونځ نه دې چه په هغې کښې ام القران اونه وئیلې شی. [۴]ددوی نه علاوه نور هم ډیراحادیث دی،مونږ ته پدې ځائې کښې مناظرانه طریقه نه دی اختیارول پکار. هغه ډیر اوږد بحثونه دی.مونږ خو مختصر طور سره د بزرګانو دلائل بیان کړی دی. (والله اعلم).

## په هر رکعت کښې د فاتحې لوستلو حکم

**په هر رکعت کښې د فاتحې لوستلو حکم:**-①اوس دا هم واورئی چه امام شافعی رحمه الله وغیره علماء کراموﷺ یو لوې ډلې خو دا مذهب دې چه دسورت فاتحې په هر رکعت کښې وینا واجب ده ②اوبعضې خلق وائی چه په اکثرو رکعتونوکښې وئیل واجب دی.③ اوبعضې وائی چه په مونځونو کښې په یو رکعت کښې ددې وئیل واجب دی ، ددې وجې حدیث کښې دمونځ ذکر مطلق دی.حضرت ابو حنیفه رحمه الله او دده ملګرې ثوری رحمه الله اواوزاعی رحمه الله وائی چه ددې وئیل متعین نه دی بلکه نور هم څه وئیل کافی دی. ځکه چه په قرآن کښې د ﴿مَا تَيَسَّرَ﴾ لفظ دې والله ا علم.

لیکن دا خیال دې وی چه دابن ماجه په حدیث کښې دی چه کوم سړې فرض وغیره دمونځ هر رکعت کښې سورة فاتحه اوسورت اونه وائی نو دده مونځ نه کیږی. [۵]البته ددې حدیث په صحت کښې نظر دې او ددې ټولو خبرو تفصیل داسماء الرجال په کتابونوکښې موجود ده. والله اعلم.

## په مانځه کښې د سورت فاتحه لوستلو حکم

---

[۱] ) صحیح بخاری کتاب الصلاة الاذان باب وجوب القراءة للامام والماموم فی الصلوة کلها....۷۵۷، صحیح مسلم: ۳۹۷)-

[۲] )صحیح مسلم کتاب الصلاة باب وجوب القراة الفاتحة .....۸۷۸، ابوداود: ۸۲۲، ترمذی: ۲۹۵۳، نسائی: ۹۱۰، ابن ماجة: ۸۳۸)-.

[۳] ) صحیح بخاری کتاب الصلاة الاذان باب وجوب القراءة للامام والماموم: ۷۵۶، صحیح مسلم: ۳۹۴)-

[۴] ) ابن خزیمة : ۴۹۰، وسنده صحیح ابن حبان : ۱۷۸۹)-

[۵] ) ابن ماجة کتاب اقامة الصلاة باب القراة خلف الامام: ۸۳۹،)-

**مسلک حنفي**:-دعالمانو ﷭ په دې باره کښې اختلاف دې چه په مانځه کښې دننه د قران قرات په څومره مقدار فرض او رکن دې.① زمونږ د عالمانو مذهب دا دې چه مطلقاً د قران قرات فرض دې.که يو آيت ني اووئيل.نو رکن قرات ادا شو.باقي د سورة فاتحه لوستل او ددې سره د سورت ملاوول دا دواړه زمونږ په نيز په واجباتو کښې دي. (تسهيل الهدايه شرح هدايه ۱/۲۲۳)۔

**په قراءت خلف الامام کښې اختلاف**:په مقتدی باندې سورة فاتحه دواجب کيدويه مسئله کښې د عالمانو درې اقوال دي.①رومبې قول دادې چه د سورت فاتحې وئيل چه څنګه په امام واجب دی دغه شان په مقتدی باندې هم واجب دی . ددې دليل هغه عام حديث دې چه اوس د دونمې فائدې په بيان کښې تيرشو ②دويم قول دادې چه د سره د مقتدی په ذمه باندې قرات واجب نه دې . نه د سورت اونه نورځه اونه په جهری مونځ کښې اونه په سری مونځ کښې.ددوی دليل دمسند احمد هغه حديث دې چه په کوم کښې چه نبی کريم ﷺ فرمائی چه د چا امام وی نو دامام قرات دهغه قرات دې. (١)ليکن دا روايت ضعيف دې اودا پخپله دحضرت جابر ﷛ دقول نه روايت دې. اګر چه ددې مرفوع حديث سندونه هم شته دې ليکن هيڅ يو سندصحيح نه دې . والله اعلم . ③ دريم دادې چه په کومو مونځونو کښې امام په رو قرات کوی په هغې کښې په مقتدی باندې قرات واجب دې ، ليکن چه په کومو مونځونو کښې قرات په زوره وئيلې کيږی په هغې کښې واجب نه دې. ددوی دليل دصحيح مسلم والا حديث دې چه امام ددې وجې مقرر شوې دې چه دهغه اقتداء اوکړې شی. دده تکبير چه واورې نوتکبير اووائې اوکله چه قرات وائی نوتاسو چپ اوسئ.(٢)په سنن کښې هم داحديث دې(٣) امام مسلم ﷫ ددې تصحيح کړې ده. دامام شافعی ﷫ رومبې قول هم دا دې . او ا مام احمد نه هم دا يو روايت دې. (٤)

## د قراءت خلف الامام حکم

**مسلک حنفي**:- امام قدوری ﷫ د احنافو ﷭ مسلك نقل کوی.اوفرمائی.چه مقتدی به په امام پسې بيخی قرات نه وائی.نه فاتحه او نه سورت،که جهری مونځ وی اوکه سری مونځ وی.(تسهيل الهدايه ۱/۲۷۵)-

**د احکامو په اعتبار سره د فاتحې اهميت**:- زمونږ غرض ددې مسائلو دبيانولونه دادې چه دسورة فاتحې سره داحکامو څومره تعلق دې دبل يو سورت سره نشته دې. په مسند بزاز کښې حديث دې چه رسول کريم ﷺ فرمائی چه کله تاسو په بستره باندې څملئ اوسورت فاتحه او سورت اخلاص اووائې نو دمرګ نه سوا دهر څيز نه به په امن کښې راشئ. (٥)

## د ( اعوذ بالله ) تفسير او ددې احکام

**د بدئ بدله په نيکئ سره ورکړه** ①په قران کريم کښې دی چه﴿خُذِ الْعَفْوَ﴾ يعنی تاسود معاف کولو عادت خپل کړئ، دنيکئ حکم کوئ او دجاهلانو نه مخ اړوئ، که شيطان طرف نه څه وسوسه وی نو دالله ﷻ سره پناه اوغواړئ چه اوريدنکې اوعلم والا دې②په يو مقام فرمائی چه﴿اِدْفَعْ بِالَّتِیْ﴾ بدئ په نيکئ سره ختمې کړئ. مونږ ددوی بيانات ښه پيژنو③وائې چه اې پروردګاره د شيطان دوسوسو نه اوده دحاضرئ نه مونږ ستا پناه غواړو④ارشاد کيږی چه ﴿اِدْفَعْ بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِیْ﴾ يعنی په ښه طريقه ئې

---

(١) ابن ماجة كتاب الصلاة بآب اذا قرأة الامام فانصتوا: ٨٥٠)-

(٢) صحيح مسلم كتاب الصلاة بآب التشهد فى الصلاة : ٩٠٥)-

(٣) رواه ابوداود : ٦٠٤، نسائى : ٩٢٤، ابن ما جة : ٨٣٤، وهو صحيح)-

(٤) ابوداود كتاب الصلاة من ترك القراة فى صلاته بفاتحة الكتاب : ٨٢٣، ترمذى: ٣١١، نسائى: ٩٢١، صحيح )-

(٥) حافظ هيثمی دادمسند البزار حوالې سره مجمع الزوائد ۱۷۱/۱ کښې نقل کړی دی )-

لرې کړنې. که په تاسو کښې او دبل کس دښمنی وی نوهغه به داسې شی لکه ولی، دوست، دا کار دصبر کوونکو دې او نصیب والو دې .

کله چه شیطانی وسوسه راشی نودالله ﷻ آوریدونکی او علم واله نه پناه غواړنې. په دې دریو آیتونو کښې دالله ﷻ حکم دې چه په انسانانو کښې چه کوم تاسو سره دښمنی کوی نودهغه ددښمنۍ علاج دادې چه دهغه سره نیکی کوئی اواحسان کوئی چه دهغه انصاف والا طبیعت پخپله هغه شرمنده کړی چه هغه نه صرف ستا ددښمنۍ نه منع شی بلکه ستا بهترین دوست جوړ شی.

**د دشیطان نه حفاظت وسله:** اودشیطانانو د دښمنۍ نه د بچ کیدو دپاره هغه لوئې ذات درته خپله پناه اوخودله.خکه چه دا پلید دښمن په احسان سره په قبضه کښې نه رازی.ده ته خو د انسان په تباهۍ او بربادئ کښې خوند حاصلیږی. او دده سره ئې پخوانۍ دښمنی دحضرت آدم ﷺ د وخت نه ده. ①قرآن فرمائی چه اې بنی آدمو گورئ هسې نه چه شیطان تاسو لره دهوکه نه کړی لکه څنګه چه ئې ستاسو پلاردجنت نه راوښکلې وو ② په یومقام فرمائی چه شیطان ستاسو دښمن دې،دې دښمن گنړنی. دده د ولې خوهم داخواهش دې چې تاسو جهنمیان شئ.③ په یوبل ځائې کښې فرمائی چه تاسو ددې شیطان او دده د اولاد سره دوستی کوئ او ما پریږدنی. هغه ستاسو دښمن دې ، یاد ساتئی دظالمانو دپاره خرابه بدله ده.

**د قراءت نه وړاندې تعوذ غوښتل:**-هم دا هغه لعین دې چه ده قسم خوړلې دې اوزمونږ پلارحضرت آدم ﷺ ته نیې ونیلی وو چه زه ستا خیرخواه یم. نواوس خیال اوکړئی چه مونږ سره دده څه معامله وی؟ زمونږ دپاره خوهغه قسم کړې دې چه په الله ﷻ رب العزت قسم چه زه به دوی دهوکه کوم. ددې وجې دالله ﷻ فرمان دې چه﴿ فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴾ کله چه قران پاك تلاوت کوی نو دالله ﷻ پناه غواړنې دشیطان رټلئ شوی نه. په ایمان والو اوپه الله ﷻ باندې توکل کوونکو والوباندې دده هیڅ زورنه رسی.دده زور خو په هغه چا باندې رسی چه ده سره دوستی کوی اودالله ﷻسره شریك جوړوی.

**تعوذ د قراءت نه وړاندې نه پس:**①دقاریانو یوه ډله خو وائی چه دقران لوستلو نه پس ﴿أَعُوذُ بِاللَّهِ﴾ ونیل پکار دی. په دې کښې دوه فائدې دی. یوخو د قران په طرز باندې عمل. بل دعبادت نه پس دغرور خاتمه .ابوحاتم سجستانی رحمه الله او ابن فلوفا د حمزه مذهب نقل کړې دې .لکه څنګه چه ابوالقاسم یوسف بن علی بن جناده په خپل کتاب العبادت الکامل کښې بیان دې. حضرت ابوهریره ﷺ نه هم دا روایت دې لیکن اسناد ئې غریب دی. رازی رحمه الله په خپل تفسیر کښې دا نقل کړې دې او فرمائی چه د ابراهیم نخعی رحمه الله اوداوداظاهری رحمه الله هم دا قول دې. قرطبی رحمه الله داامام مالك رحمه الله مذهب هم دابیان کړې دې.خو ابن العربی رحمه الله فرمائی چه دا غریب دې②یومذهب دا هم دې چه په اول اوآخر دواړو مقاماتو باندې ﴿ أَعُوذُ بِاللَّهِ﴾ دې وائی چه دواړه دلیلونه جمع شی③اودجمهورعلماء کراموشهور مذهب دادې چه دتلاوت نه مخکښې ﴿أَعُوذُ بِاللَّهِ﴾ ونیل پکار دی چه وسوسې لرې شی. نوددې بزرگانو په نیز د آیت معنی داده چه کله وایې نو یعنی چه کله ونیل غواړی نو اوبه شی لکه آیت ﴿ فَإِذَا قُمْتُمْ ﴾ یعنی کله چه تاسو مونځ دپاره اودریږئی نو ‹اودس کوئی› معنی چه کله تاسو مونځ دپاره د اودریدو اراده اوکړنی. د احادیثوپه رڼا کښې هم دا معنی صحیح معلومیږی .

**په مانځه کښې د قراءت نه وړاندې تعوذ:**-مسند احمد کښې حدیث دې چه کله به رسول کریم ﷺ د شپې مونځ دپاره اودریدلو نو الله اکبر سره به ئې مونځ شروع کولو، بیا به ئې ﴿سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالى جدك ولا اله غيرك﴾ ونیل دري ځله به ئې﴿لا اله الا الله﴾ونیل بیابه ئې فرمائیل چه ﴿اعوذبالله السميع

العليم من الشيطان الرجيم من همزة ونفخه ونفثه ) ()په سنن اربعه کښې هم دا حديث دې . امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه په دې باب کښې دتولو نه مشهور هم دا دی. دهمزه معنی دمرګی خفه کولو او د نفخ تکبر او د نفث معنی شعر ونيل دی. دابن ماجه په يو روايت کښې هم دا معنی بيان شوې ده. اوپه دې کښې دی چه حضرت رسول اکرم ﷺ مونځ ته داخليدو نو درې ځل به ئې (الله أكبر كبيرا) اودرې ځل به ئې (الحمد لله كثيرا) ونيل. بيا به ئې فرمائيل چه ﴿سُبْحَانَ اللّٰهِ بُكْرَةً وَّأَصِيْلًا﴾ ()بيا به ئې فرمائيل چه (اللهم اني اعوذبك من الشيطان من همزه ونفخه ونفثه )په ابن ماجه کښې په بل سند سره دا روايت مختصر راغلی دی (). د مسند احمد په حديث کښې دی چه دوی مخکښې درې ځل تکبير فرمائيلو،بيابه ئې درې ځل (سبحان الله وبحمده) آخر پورې فرمائل ().

**په تعوذ سره غصه ختميدل**:-په مسند ابويعلی کښې دی چه د رسول کريم ﷺ مخکښې دوه سړی په جنګ شو.ديو غصه ډيره زياته شوه. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل که دې ﴿أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ﴾ اووائی نودده غصه به اوس ختمه شی. په دې کښې دومره اضافه ده نسائی په خپل کتاب کښې هم دا روايت کړې دې.مسند احمد ، ابوداود ، ترمذی کښې هم دا حديث دې ().

**په يو روايت کښې اضافه**:-هم ددې په يو بل روايت کښې دومره زياتوالې نورهم دې چه حضرت معاذ رضی الله عنه دې سړی ته د لوستلو اوفرمائيل. ليکن هغه اونه ونيل اودهغه غصه نوره هم زياته شوه. امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه دا اضافې والا روايت مرسل دې،ددې وجې عبدالرحمان بن ابی ليلی رحمه الله چه د حضرت معاذ رضی الله عنه نه دا روايت کوی،دده حضرت معاذ رضی الله عنه سره ملاقات کول ثابت نه دی. بلکه دې شل کاله مخکښې وفات شوې وو.خو دا کيدشی چه عبدالرحمان رحمه الله د حضرت ابی ابن کعب رضی الله عنه نه آوريدلې وی.هغه هم ددې حديث راوی دې.اوهغه ئې حضرت عبدالرحمان ته رسولې وی.خکه چه ددې واقعې په وخت کښې خوډير صحابه کرام رضی الله عنهم موجود وو.صحيح بخاری،صحيح مسلم،ابوداود ، نسائی کښې هم مختلفوسندونو سره مختلفو الفاظو سره دا حديث روايت شوې دې. () د استعاذې متعلق نورهم ډير احاديث دی خو په دې ځائې دهغې بيانولو سره به بحث اوږد شی. ددې بيان دپاره د اذکارو او فضائل او داعمالودفضائلودبيان کتابونه دی. والله اعلم.

**په اوله وحی کښې هم د تعوذ حکم**:-په يو روايت کښې دی چه کله حضرت جبريل عليه السلام د ړومبئ وحی سره حضرت محمد ﷺ ته تشريف راوړو نو ورته ئې د اعوذ بالله ونيلو حکم اوکړو. تفسير ابن جرير کښې د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه په ړومبی ځل کله حضرت جبريل عليه السلام حضرت محمد ﷺ له وحی راوړه نو وې فرمائيل (اعوذ) اووايه. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه (استعيذ بالله السميع العليم من الشيطان الرجيم) بيا ئې اوفرمائيل چه ﴿اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ﴾ حضرت عبدالله رضی الله عنه فرمائی چه د **سورة فاتحې د اولنی نزول روايت**:-دټولونه ړومبې سورت چه الله جل جلاله د حضرت جبريل عليه السلام په ذريعه

---

[1] ) ابوداود کتاب الصلاة باب من رای الاستفتاح بسبحانک اللهم وبحمدک : ۷۷۵، وسنده حسن . ترمذی : ۲۴۲، نسائی : ۹۰۰، ابن ما جة: ۸۰٤)-

[2] ) ابوداود کتاب الصلاة باب مايستفتح به الصلاة من الدعاء: ۷٦٤، وسنده حسن ابن ماجة: ۸۰۷)-

[3] ) ابن ماجة : ابواب اقامة الصلوة باب الاستعاذة فی الصلاة: ۸۰۸)-

[4] ) احمد: ۲۵۳/۵)،-

[5] ) ابوداود کتاب الادب باب مايقول عند الغضب:۵۷۸۰، ترمذی: ۲٤۵، اليوم والليلة للنسائی: ۳۹۳، احمد:۲٤۰/۵،وهو حديث صحيح بالشواهد)-

[6] )صحيح بخاری کتاب بدء الخلق باب صفة ابليس وجنوده: ۲۷۸۲،صحيح مسلم:۲٦۱۰:ابوداود:٤۷۸۱، ابن حبان : ۵٦۹۲)،

حضرت محمد ﷺ باندې نازل کړو هم دا سورت دې. ليکن دااثر غريب دی اوددې په اسنادکښې ضعف او انقطاع ده ، مونږ دا صرف په دې وجه بيان کړو چه معلوم شی. والله اعلم.

**د تعوذ حکم:** ①دجمهور عالمانو قول دې چه اعوذبالله وئيل مستحب دی ، واجب نه دی ددې په نه وئيلوکښې دې څه ګناه وی ②دعطاء بن ابی رباح رحمه الله قول دې چه کله هم څوک قرآن پاك لولی د اسعاذې لوستل واجب دی. که په مونځ کښې وی او که غير د مونځ نه وی. امام رازی رحمه الله داقول نقل کړې دې ③ابن سيرين رحمه الله فرمائی چې په ټول عمر کښې يو ځل وئيلو سره وجوب ساقطيږی . د حضرت عطاء دقول دليل دآيت ظاهری الفاظ دی. ځکه چه په دې کښې ( فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ) امر دې او د عربئ دقواعدو په لحاظ امر دوجوب دپاره وی اودغه شان د حضور نبی کريم صلی الله عليه وسلم په دې باندې هميشوالي کول هم ددې دوجوب دليل دې او دې سره دشيطان شر لرې کيږی. اوددې لرې کيدل واجب دی او چه په کوم څيز سره واجب پوره کيږی نوهغه هم واجب ګرزی. او استعاذه زيات احتياط والا ده. او دوجوب پوره طريقه دا هم ده ④دبعضې عالمانو قول دې چه ( اَعُوْذُ بِاللّٰهِ ) وئيل د نبی کريم ﷺ باندې واجب وو.د نبی کريم ﷺ په امت باندې واجب نه دی⑤دامام مالك رحمه الله نه دا هم روايت دې چه په فرض مونځ کښې دې (اَعُوْذُ) اووائی.اودرمضان شريف داولې شپې مونځ کښې دې [اَعُوْذُ] اووائی.

## د قراءت نه وړاندې د تعوذ وئيلو حکم

**مسلک حنفی:-** داحنافو په نيز هم د قراءت نه وړاندې تعوذ سنت دې واجب نه دې ځکه چه نبی کريم ﷺ بعضې وختونو کښې بغير د تعوذ نه قراءت کړې دې دا د عدم وجوب دليل دې (تفسيرمظهری ۲۲۲،۲۲۷/۵)_

**اعوذبالله به کله او کوم ځائې کښې وائی :** حضرت امام شافعی رحمه الله په ،،الام،، کښې ليکی چه اعوذ دې زور سره اووائی. اوکه په پټه ئې اووائی نو بياهم په دې کښې څه حرج نشته دې. او په ،،الام،، کښې ليکی چې په اوچت او رو وئيلوکښې اختيار دې. ځکه چه د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه نه په پټه وئيل او د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه په رو وئيل ثابت دی. دړومبی رکعت نه سوا په نورو رکعتونو کښې ( اَعُوْذُ ) وئيلو کښې د حضرت ا مام شافعی رحمه الله دوه اقوال دی. يودمستحب کيدو او بل د مستحب نه کيدو ، اوترجيح دويم قول ته ده ، والله اعلم.

**د تعوذ کلمات:** ①صرف (اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ)وئيل دحضرت ا مام شافعی رحمه الله اودحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خو کافی دی② ليکن بعضې وائی چه ( اعوذبالله السميع العليم من الشيطان الرجيم ان الله هوالسميع العليم ) دې اووائی.د حضرت ثوری رحمه الله او دحضرت اوزاعی رحمه الله هم دا مذهب دې. ③ بعضې وائی چه ( اِسْتَعِيْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ) دې اووائی چه دآيت پوره الفاظ ادا شی. اود حضرت ابن عباس رضی الله عنه په حديث باندې هم عمل اوشی. چه مخکښې تير شوې دې. ليکن چه کوم صحيح احاديث مخکښې تير شوی دی هغه د اتباع دپاره بهتر دی. والله اعلم.

په مونځ کښې (اَعُوْذُ بِاللّٰهِ) وئيل د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله او حضرت امام محمد رحمه الله په نيز خو د تلاوت دپاره دې اودحضرت امام ابويوسف رحمه الله په نيز دمونځ دپاره دې. نومقتدی لره پکاردی چه وې وائی اګر چه هغه به قرات نه وائی.اود اختر په مونځ کښې دړومبی تکبير نه پس وئيل پکار دی.

## د مانځه په رکعتونو کښې د تعوذ حکم:-

**مسلک حنفی:** زمونږ په نيز د مونځ په شروع کښې تعوذ مسنون دې.(فتح القدير) باقی پاتې شوه دا خبره.چه تعوذ د قرات تابع دے که د ثنې.نو په دے باره کښې زمونږ په عالمانو رحمهم الله کښې اختلاف دې.

①د طرفینو ﷫ په نیز تعوذ د قرات تابع دے د ثناء نه دې.② او د امام ابویوسف ﷫ په نیز د ثناء تابع دې.نو د طرفینو په نیز چه په کوم کس باندې قرات واجب وی.هغه به تعوذ وائی.نو مسبوق به تعوذ وائی.ځکه چه په ده باندې په فوت شوو رکعتونو کښې قرات کول واجب دی.البته مقتدی به تعوذ نه وائی.ځکه چه په ده باندې قرات واجب نه دې.او د اخترونو په مونځ کښې به تعوذ د اختر د تکبیرونو نه روستو کوی.ځکه چه د اخترونو په اولنی رکعت کښې قرات د تکبیرات العیدین نه پس وی.او دامام ابویوسف ﷫ په نیز چه څوك ثناء وائی.هغه به تعوذ هم وائی.دامام ابویوسف ﷫ دلیل دا دې چه تعوذ د ثناء د جنس څنې دې.ځکه چه لکه څنګه ثناء دعا ده.دغه شان تعوذ هم یوه دعا ده.اود څیز تابع د هغه نه پس وی.نو ثابته شوه.چه تعوذ د ثناء تابع دې.د قرات نه دې.اود طرفینو ﷫ دلیل د الله تعالی قول دې.﴿ فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ﴾ دې.(تسهیل الهدایه (۲۳۰۱۱) -

**په مونځ کښې د تعوذ حکم:-** دجمهور عالمانو مذهب دې چه داختر تکبیرونه مکمل کیدونه پس دې اعوذبالله اووائی. بیا دې قرات اووائی.

**د تعوذ فائدې:-** ①په اعوذ کښې عجیبه عجیبه فائدې دی. اخوا دیخوا خبرې دخلې نه اوزی هغه په دې سره پاکیږی. اوخله د کلام الله د تلاوت جوګه شی②داشان په دې کښې دالله ﷻ نه مدد غوښتل دی ③اودهغه دعظیم الشان قدرتونو اقرارکول دی④اوددې باطنی ښکاره دښمن په مقابله کښې د خپلې کمزورئ او عاجزئی اقرار کول دی.ځکه چه د انسانی دښمن مقابله کیدیشی . په احسان او ښیګړې سره دهغه دښمنی لرې کیدیشی.لکه څنګه چه دقران کریم بدې دریو آیتونوکښې دی چه کوم مخکښې بیان شو.اوپه بل ځائې کښې ارشاددې چه﴿إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ﴾ یعنی خما خاص بندګانوباندې ستا غلبه نشته دې. درب وکالت کافی دې. الله ﷻ د دښمنان اسلام په مقابله کښې خپلې فرښتې اولیږلې او هغه دښمنان ئې تباه کړه.

**د کافراو د شیطان په مغلوب کښې فرق:** یوه اهمه خبره یاده ساتنی چه کوم مسلمان دکافرودلاسه اووژلې شی هغه شهید دې. لیکن چه کوم ددې دباطنی دښمن شیطان دلاسه اووژلې شی نوهغه به ښه حالت کښې نه وی.اوچه په چا کفار غالب راشی نوهغه ته به بدله ورکړې کیږی لیکن چه په چا باندې شیطان غالب راشی نوهغه به هلاك شی.ځکه شیطان انسان وینی خوانسان شیطان نه وینی. ددې وجې په قران عظیم کښې تعلیم دې چه تاسو دده دشر نه دهغه لوئې ذات پناه غواړئی چه ته هغه کوری او دوی هغه ته نه شی کتلې.

**فصل . خلاصه دکلام**

**د تعوذ حکمت:-** اعوذبالله ونیل دالله په حضور کښې زاری کول دی ، او دهرې بدئ والا دبدئی نه دهغه لوئې ذات په لمن کښې دراتلو پناه طلب کول دی . د عیاذ معنی خرابی لرې کول دی. او دلیاذة معنی ښیګړه حاصلول دی ، دمتبنی شعر دې چه :

یامن الوذبه فی ما اومله ومن اعوذ مما احاذره

لایجبر الناس عظما انت کاسره ولا یهیضون عظما انت جابره

**ترجمه :-** انې هغه پاك ذاته چه دهغه ذات پورې خماټول امیدونه پیوسته دی او انې هغه پروردګاره چه زه دهغه سره د ټولو خرابونه پناه غواړم. چه کوم یو هغه مات کړې دې هغه هیڅوك نشی جوړولې. او چه هغه کوم یو جوړ کړی نو بل څوك هغه نشی ماتولې.

**د اعوذ معنی:-**داعوذ معنی داده چه زه الله ﷻ سره پناه غواړم چه شیطان رجیم په دین او دنیا کښې ماته څه ضرر اونه رسوی. چه د کومو ماته حکم شوې دې هسې نه چه دهغې نه منع شم او چه دکومو کارونو نه منع کړې شوې یم هسې نه چه هغه خراب کارونه خما دلاس نه اوشی.

**د انسان اود شیطان د ضرر نه د بچ کیدو دوه مختلفې طریقې:-** داظاهره ده چه د شیطان نه د بچ کولو والا سوا دیو رب نه نور هیڅوک نشته دې. ددې وجې پروردګار عالم دانسان دشر نه دمحفوظ پاتې کیدلو دپاره خو دسلوك او احسان طریقه خودلې ده اودشیطان د شر نه دبچ کیدو دپاره ئې دا صورت خودلې دې چه مونږ دهغه پاك ذات نه پناه اوغواړو. ځکه چه هغه ته رشوت ورنه کړې شي اونه د ښیګړې اودسلوک په وجه هغه دخپل شرارت نه منع کیږي ،دده د بدو نه دبچ کیدو والا خوصرف یو الله ﷻ دې. په مخکښې دریو آیتونوکښې دا مضمون تیر شوې دې. په سورة اعراف کښې دی چه ﴿خُذِ الْعَفْوَ﴾ الخ او په سورة مومنون کښې دی ﴿ اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ﴾ او په سورة سجده کښې دی﴿ وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ ﴾ الخ ، ددې دریو واړو آیتونو مفصل بیان او ترجمه مخکښې تیره شوې ده.

**د شیطان لفظی تحقیق:-** ① لفظ دشیطان د شطن نه جوړ دې. ددې لفظی معنی دلرې والی ده. چونکه دا مردود هم د انسانی طبیعت نه لرې دې بلکه دهرې ښیګړې نه لرې دې ددې وجې ده ته شیطان ونیلې شي. ②او داهم ونیلې شوی دی چه دا د شاط نه مشتق دې . ځکه چې دې د اور نه پیدا شوې دې. اودشاط معنی هم اور ده. بعضو ونیلی دی چه د معنې په لحاظ سره دا قول صحیح دې لیکن اول زيات صحیح دې. دعربو دشاعرانو په شعرونوکښې هم ددې تصدیق ملاویږي. د امیه بن ابوصلت او نابغه په شعرونو کښې هم دا لفظ دشطن نه مشتق دې او د لرې والی په معنی مستعمل دې. د سیبویه قول دې چه کله یو شیطان کار اوکړې نو عرب وانی چه ﴿ تشیطن فلان ﴾ دا نه وانی چه ﴿ تشیط فلان﴾ ، ددې نه ثابته شوه چه دا لفظ د شاط نه نۀ دې بلکه د شطن نه ماخوذ دې . او ددې صحیح معنی هم دلرې والی ده،چه کوم جنات انسانان او حیوانات سرکشی اوکړي نودوی ته شیطان ونیلې شي. په قران پاك کښې دی چه ﴿ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ ﴾ الخ ، یعنی داشان مونږ دهر نبی د ښمنان شیاطین دانسانانواو جناتو نه جوړ کړی دی ، چه په خپلوکښې یو بل ته د دهوکې خبرې کوی.

**انسی شیطان هم شته:-**په مسند احمد کښې د حضرت ابوذر رضی الله عنه نه حدیث روایت شوې دې چه نبی کریم ﷺ دوی ته اوفرمانیل انې ابوذر رضی الله عنه ادجناتو او انسانانو د شیطان نه دالله ﷻ پناه اوغواړه. ما اوونیل چه آیا په انسانانوکښې هم شیطانان شته دې . حضرت نبی اکرم ﷺ دوی ته اوفرمانیل چه ابوذر رضی الله عنه ! آو[1]

**تور سپې کله شیطان هم وی:-**صحیح مسلم کښې هم ددوی نه روایت دې چه حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمانیل چه مونځ لره ښځه،خر اوتور سپې ماتوی. ما اوونیل چه حضور ! سور، زیړ سپو کښې د تور سپی څه تخصیص دې ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه تور سپې شیطان دې .[2]

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه یو ځل په ترکی اس باندې سور شو اوهغه ډیر په ناز ونعم باندې تګ کولو. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دا اس اووهلو خوبیا به هم ډیر په ناز ونعم سره روان وو. دوی ترې راکوز شول فرمانی چه تاسو خو خما د سورلۍ دپاره څوك شیطان راوستې دې. خما په نفس کښې کبر راتلل شروع شو. نوما ددې نه کوزیدل مناسب اوګنړل

**د رجیم معنی:-**د رجیم او فعیل په وزن باندې دمفعول په معنی سره دې. یعنی هغه مرجوم دې یعنی دهرې ښیګړې نه لرې کړې شوې دې. لکه چه الله فرمانی ﴿وَزَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ وَحِفْظًا﴾ الخ ، مونږ ددنیا آسمان په ستورو سره ښانسته کړو او دا مو د شیطانانو دپاره رجم جوړ کړي دې﴿ اِنَّا زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِزِيْنَةِ الْكَوَاكِبِ﴾ الخ مونږ ددنیا آسمان ته زینت ورکړو او دهر سرکشه شیطان نه مو دده حفاظت اوکړو. دوی داعلی فرښتو خبرې نه آوری. اودهر طرف نه وهلې کیږي او تښتولې شي او دا لازمی عذاب

[1] احمد:۵/۱۷۸، نسائی کتاب الاستعاذ باب الاستعاذة من شرالشیطان الانس: ۵۵۰۹)-.

[2] صحیح مسلم کتاب الصلاة باب ما یستر المصلی :۵۱۰، ابوداود: ۷۰۲، نسائی: ۷۵۱. ابن ماجة: ۹۵۷، ابن حبان: ۲۳۸۵)-

ددوی دپاره دي. چه کوم یو په دوی کښې خبره واوري او په منډه شي نو هغه پسې یو چمك داره شعله ورویشتلې شی. یو ځاۍ کښې ارشاد دي چه ﴿وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَآءِ بُرُوْجًا﴾ الخ یعنی مونږ آسمان کښې برجونه جوړ کړی دی او دې ته دکتونکوالو دپاره مو زینت جوړ کړو. اودهر ړوند شیطان نه مونږ محفوظ کړوخوچه کوم یو څه خبره پټه کړی نودوی پسې یو پړقیدونکې شعله شی،داشان نور آیتونه هم دی.

**د رجیم دویمه معنی**:-د رجیم یو معنی دراجم هم ده ، چونکه شیطان په وسوسو او گمراهو سره رجم کوی نوده ته رجیم یعنی راجم ونیلې شی.

د بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ تفسیر

| الرَّحِيْمِ | الرَّحْمٰنِ | اللّٰهِ | بِسْمِ |
|---|---|---|---|
| شروع کوم ا په نوم د الله اچې بیحده مهربان ارحم کونکي دې | | | |
| دالله ﷻ د بخښني کوونکی او مهربان په نوم شروع کوم ؛ | | | |

**دبسم الله د جزئیت مسئله**:- حضرات صحابه کرام ﷺ، کتاب الله په دې سره شروع کړې وو. دعلماء کرامو اتفاق دې چه ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ دسورت نمل یو آیت دې①البته په دې کښې اختلاف دې چه دادهرسورت په شروع کښې یومستقل آیت دې. چه ددې په شروع کښې لیکلې شوې دې②یادهر سورت بعضې آیت دې.③ یا داشان دسورت فاتحې ایت دې او د نورو سورتونو نهٔ دې.④ یا صرف یو سورت د بل سورت نه د جدا کولو دپاره لیکلې شوې ده. او آیت نه دې. د عالمانواو سلفو اوخلقو په دې حکمونوکښې اختلاف دې . او په خپل خپل ځائې ددې تفصیل موجود دې.

سنن ابوداود کښې په صحیح سند سره حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ د سورتونو جداوالې نه پیژندو. ترکومې چه نبی کریم ﷺ باندې ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ نه وه نازل شوې. (۱)

په مستدرك حاکم کښې داپه یومرسل حدیث کښې دحضرت سعید بن جبیر ﷺ نه هم روایت دې

په صحیح ابن خزیمه کښې حضرت ام سلمه ﷺ نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ ﴿بِسْمِ اللّٰهِ﴾د سورت فاتحې په شروع کښې په مونځ کښې اولوسلته. اودا نې یو آیت شمیر کړو(۲)لیکن ددې یو راوی عمر بن هارون بلخی ضعیف دې. اوداشان یوروایت حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې(۳)داشان د حضرت علی ﷺ حضرت ابن عباس ﷺ وغیره نه هم مروی دې حضرت عبدالله بن عباس ﷺ ، حضرت عبدالله بن عمر ﷺ،حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ،حضرت ابوهریره ﷺ،حضرت علی ﷺ اوحضرت عطاء رحمه الله . حضرت طاؤس رحمه الله. حضرت سعید بن جبیر رحمه الله،حضرت مکحول رحمه الله اوحضرت زهر رحمه الله هم دا مذهب دې چه بسم الله دهر سورت یو مستقل آیت دې. سوا د سورت براءت نه .

ددې صحابه کرامو ﷺ اوتابعینو رحمهم الله نه علاوه حضرت عبدالله بن مبارك رحمه الله،حضرت امام شافعي رحمة الله علیه،حضرت ا مام احمد رحمه الله،په یو قول کښې اوحضرت اسحاق بن راهویه رحمه الله او حضرت ابوعبیده قاسم بن سلام رحمه الله هم دامذهب دې. البته حضرت امام مالك رحمه الله،حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله ،اوددوی ملگری وائی چه﴿بِسْمِ اللّٰهِ﴾ الخ نه دسورت فاتحې یو آیت دې او نه د بل یوسورت ،دحضرت امام شافعی رحمه الله خو یو قول دا روایت دې چه داد سورت فاتحې یو آیت دې. خو د نورو

---

۱) ابو داود کتاب الصلاة باب من جهر لها : ۷۸۸، وهو صحیح )-

۲) ابن خزیمة باب الذکر الدلیل علی ان بسم الله الرحمان الرحیم: اية من الفاتحة الکتاب: ۴۹۳ ؛ )-

۳) دار قطنی باب وجوب قراءة بسم الله الرحمان الرحیم : فی الصلاة : ۳۱۲/۱) وهو صحیح)-

سورتونو نه نۀ دي. ددوی يو قول دا هم دې چه دا دهر سورت دشروع دايت حصه ده. ليکن دا دواړه اقوال غريب دي.

حضرت داود رحمه الله فرمائی چه دا د هر سورت په شروع کښې يو مستقل آيت دی. په سورت کښې داخل نه دې.د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم دا روايت دې. اود حضرت ابوبکر رازی رحمه الله او حضرت ابوالحسن کرخی رحمه الله هم دا مذهب بيان فرمائيلې دې. چه دوې د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله يو ډير ښه ملګرې هم دې. دا خو وو بحث د بسم الله د سورت فاتحې د آيت دکيدواو ده نه کيدو

**په جهري مونځونو کښې د جهر او اخفاء په اعتبار د تسميه وئيلو حکم:-** اختلاف دې چه دا دې په اوچت آواز سره اووئيلې شی اوکه په رواواز سره . چه کوم خلق دا د سورت فاتحې آيت نه ګڼړی نوهغوی ددې د اوچت آواز د وئيلو قائل نه دی. داشان چه کوم خلق داسورت فاتحې نه بيل آيت منی هغوی ددې د رو آواز سره د وئيلو قائل دی. پاتې شو هغه خلق . چه هغوی داد هر سورت نه اول شمار کوی ، نو په هغوی کښې اختلاف دې.دحضرت امام شافعی رحمه الله مذهب دې چه دسورت فاتحې اودهر سورت نه مخکښې په اوچت آوازسره وئيل پکاردی.حضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم اوتابعينواو دمخکښې مسلمانانو هم دا مذهب دې. په صحابه رضی الله عنهم کښې دا په اوچت آواز سره د وئيلو کښې حضرت ابوهريره رضی الله عنه ، حضرت ابن عمر رضی الله عنه ،حضرت ابن عباس رضی الله عنه او حضرت ا مير معاويه رضی الله عنه دی. حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ، حضرت عمر رضی الله عنه،حضرت عثمان رضی الله عنه اودحضرت علی رضی الله عنه نه هم يو غريب سندسره امام خطيب رحمه الله نقل کړی دی. بيهقی رحمه الله اوابن عبدالبر رحمه الله دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه اوحضرت علی رضی الله عنه نه همدا روايت نقل کړې دې. تابعينو کښې حضرت سعيد بن جبير رحمه الله ، حضرت عکرمه رحمه الله ، حضرت زهری رحمه الله ، حضرت علی بن حسن رحمه الله ،ددوی خوئې حضرت محمد بن سعيد بن مسيب رحمه الله ، حضرت عطاء رحمه الله ، حضرت طاوس رحمه الله ،حضرت مجاهد رحمه الله ،حضرت ابن سيرين رحمه الله ،حضرت علی بن عبدالله بن عباس رضی الله عنه ددوی خوئې حضرت محمد نافع رحمه الله ، دحضرت ابن عمر مولی زيد بن اسلم رحمه الله ، حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله ،ازرق بن قيس رحمه الله ،حبيب بن ابی ثابت رحمه الله حضرت ابوشعثاء مکحول رحمه الله ، حضرت عبدالله بن معقل بن مقرن رحمه الله ، اوپه روايت د بيهقی عبدالله بن صفوان رحمه الله ، حضرت محمد بن حنفيه رحمه الله ،او په روايت د حضرت ابن عبد البر عمر وبن دينار ،دوی ټولو به په هغه مونځ کښې ﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ په زوره وئيله چه په کومو مونځونو کښې به قرات په زوره وئيلې کيدو .يو دليل خوددې دادې چې هرکله دا آيت دسورة فاتحې نه دې نو بيا ديو پوره سورة په شان داهم په اوچت آواز لوستل پکار دی.دې نه علاوه سنن نسائی صحيح بن خزيمه ،صحيح ابن حبان ، مستدرك حاكم کښې روايت دې چه حضرت ابوهريره رضی الله عنه مونځ ورکړو اوپه قراءت کښې ئې په اوچت آواز سره ئې﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ اووئيله. اوفارغيدو نه پس ئې اوفرمائيل چه زه په تاسو ټولوکښې زيات مشابه يم د نبی کريم ﷺ سره په مونځ کښې . دې حديث ته دارقطنی ، خطيب اوبيهقی وغيره صحيح وئيلی دی.(۱)

ابو داود اوترمذی کښې حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه حضرت ر سول کريم ﷺ به مونځ دبسم الله نه شروع کولو. حضرت امام ترمذی رحمه الله ،فرمائی چه دا حديث څه داسې زيات صحيح نه دې (۲)په مستدرك کښې هم ددوی نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ به ﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ په اوچت آواز سره وئيله . امام حاکم دې ته صحيح وئيلی دی. (۳)

---

[۱] ) نسائی کتاب الافتتاح باب قراءة بسم الله الرحمان الرحيم: ۹۰۶، ابن خزيمة : ۴۹۹، ابن حبان: ۱۷۹۷، حاكم: ۲۳۷/۱،)-

[۲] ) ترمذی ابواب الصلاة باب من رای الجهر بسم الله الرحمان الرحيم: ۲۴۵)-

[۳] ) حاكم: ۲۰۸/۱،)-

**د رسول کریم ﷺ دقراءت انداز:-** په صحیح بخاری کښې دی چه د حضرت انس ؓ نه سوال اوشو چه د رسول کریم ﷺ قراءت څنګه وو؟وې فرمائیل نبی کریم ﷺ به هرولاړ لفظ اوږدولو بیا ئې ( بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ) اووئیل. په بسم الله باندې ئې مد اوکړو په الرحمن ئې مد اوکړو او په رحیم ئې مد اوکړو (۱)
په مسند احمد ،سنن ابوداود ، صحیح ابن خزیمه اومستدرك حاکم کښې د حضرت ام سلمه ؓ نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ به په هر هر آیت باندې وقف کولو. او د نبی کریم ﷺ قرات به جدا جدا وو لکه ( بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ )باندې به اودریدل اوبیابه (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ)باندې اودریدل بیابه ( بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ) باندې اودریدل بیا به(مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ)باندې اودریدل.دارقطنی دې ته صحیح وائی. (۲)
حضرت امام شافعی ؒ ،حضرت امام حاکم ؒ دحضرت انس ؓ نه روایت کوی حضرت امیر معاویه ؓ په مدینه منوره کښې مونځ ورکړو او بسم الله ئې اونه وئیله نو چه کوم مهاجرین په هغه وخت کښې موجود وو نوهغوی اورټلو. نوبیا چه کله مونځ ته اودریدل نو وې وئیله. (۳) غالبا دومره احادیث اوآثار ددې مذهب د حجت دپاره کافی دی. باقی پاتې شو ددې خلاف آثار ، روایات،ددې سندونه،ددې تعلیل،ددې ضعف اوددې تقریرونه وغیره نوددې تفصیل به بل ځائې کښې دې.
دویم مذهب دادې چه په مونځ کښې ( بِسْمِ اللّٰهِ ) په اوچت آواز سره وئیل پکار دی ، څلو واړه خلفاء کرام ، عبدالله بن مغفل اوتابعین او ددې نه پس خلقو د نورو ډلو نه دا ثابت دی. حضرت امام ابوحنیفه ؒ حضرت ثوری ؒ اود احمد بن حنبل ؒ هم دا مذهب دې.
د حضرت ا مام مالك ؒ مذهب دادې چه بالکل دې هډو( بِسْمِ اللّٰهِ) ﷺ وانی نه په اوچت آواز او نه په رو.ددوی دلیل خو یو د صحیح مسلم والا دحضرت عائشه ؓ روایت دې چه رسول کریم ﷺ به مونځ د تکبیر اود قراءت د(اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ)نه شروع کولو(۴)بخاری اومسلم کښې دحضرت انس ؓ نه روایت دې چه مانبی کریم ﷺ پسې او حضرت ابوبکر صدیق ؓ پسې اوحضرت عمر ؓ پسې مونځ کړې دې تولو به د ( اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ) نه شروع کوله.(۵)په مسلم کښې دی چه دبسم الله ذکر به ئې نه فرمائیلو نه د قراءت په شروع کښې او نه دقراءت په آخر کښې (۶)
په سنن کښې حضرت ابن مغفل نه هم روایت داشان روایت دې . (۷)دا دلیل دې د هغه ائمه کرامو د بسم الله په رو وئیلو قائل دی. دا خیال دې وی چه دا څه لوئې اختلاف نه دې. هر یو ډله دیو بل د مونځ د صحت قائله ده .( اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ)

## په جهری مونځ کښې د تسمیه د جهر او اخفاء حکم

**مسلك حنفی:**-صاحب د قدوری ؒ فرمائی.چه په تسمیه او تعوذ کښې به پټوالے کوی.یعنی په مانځه کښې به دا په پټه وائی.
**دلیله:**دلیل دابن مسعود ؓ قول دې.چه څلور څیزونه داسې دی.کوم چه امام پټ وائی.هغه څلور څیزونه دا دی.تعوذ ،تسمیه ،تحمید (ربنالك الحمد)او آمین، صاحب د شرح نقایه د تحمید په ځائې

---

۱ ) صحیح بخاری کتاب فضائل القران باب مع القراة : ۵۰۴۶)-
۲ ) ابوداود کتاب الحروف والقراة: ۴۰۰۰، ترمذی:۲۹۷۷،احمد: ۳۰/۶،حاکم: ۲۳۲/۲، صحیح ابن خزیمة: ۴۹۳،دار قطنی :۳۱۲/۱)
۳ ) مسند الشافعی : ۸۰/۱، رقم الحدیث: ۲۷۳، حاکم: ۲۳۲/۱، وسنده حسن)-
۴ ) صحیح مسلم ، کتاب الصلاة باب ما یجمع صفة الصلاة وما ینفع به.....۴۹۸، ابوداود: ۷۸۳، ابن ماجة: ۸۵۹)-.
۵ ) صحیح بخاری : کتاب الاذان باب یقول بعد التکبیر: ۷۴۳، صحیح مسلم: ۳۹۹)-
۶ ) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب حجة من وقال لایجهر بالبسملة: ۳۹۹)-
۷ ) ترمذی : ابواب الصلاة باب ماجاء فی ترك الجهر بسم الله الرحمان الرحیم: ۲۴۴، نسائی: ۹۰۹، ابن ماجة: ۲۱۵)-

ثناء ذکرکړي ده. ځکه چه امام محمد رحمه الله په اثار کښې روایت کړې دي (عن أبي حنيفة عن حماد عن ابراهيم النخعي أنه قال أربع تخفيهن الإمام التعو وبسم الله الرحمن الرحيم، وسبحانك اللهم وبحمدك وآمين) (شرح نقايه) (تسهيل الهدايه ۱\۳۲۱)-

## فصل ـ دبسم الله فضائل :-

**بِسْمِ اللّٰهِ د الله لويې نوم دي:-** تفسير ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت عثمان بن عفان د رسول کريم ﷺ نه د بسم الله متعلق پوښتنه اوکړه. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا دالله ﷻ نوم دي. دا دالله ﷻ دلويو نومونونه ده او په دې کښې دومره نزديکت دې چه لکه د سترګي توروالي او سپين والي. ()

**دبِسْمِ اللّٰهِ په حروفو کښې اشارې:-** په ابن مردويه کښې هم داشان روايت دي. اودا روايت هم په ابن مردويه کښې دي. چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل کله چې حضرت عيسی ؑ لره دده مور بی بی معلم سره کينولو نوهغه اوونيل چه بسم الله . حضرت عيسی ؑ اوفرمائيل چه دا بسم الله څه دی؟ استاد ورته اوونيل چه ماته پته نشته .حضرت عيسی ؑ ورته اوفرمائيل چه د " ب " نه مراد دالله ﷻ اوچتوالي ، د "س" نه مراد ددې سنا يعنی نور اورنړا ده . اود " م " نه مراد دهغه ذات مملکت يعنی بادشاهی ده. او الله ﷻ وانی دمعبودانو معبود ته او رحمن وانی په دنيا او آخرت کښې رحم کولووالا او رحيم وانی په آخرت کښې رحم اوکرم کولو والا . ابن جرير کښې هم دا روايت دي . ليکن د سند په لحاظ سره بيحد غريب دي. ممکن دی چه د چا صحابی وغيره نه روايت وی. او ممکن دی چه د بنی اسرائيلو د رواياتو نه وی او مرفوع حديث نه وی. والله اعلم.

**بِسْمِ اللّٰهِ دې امت خصوصيت دي:-** ابن مردويه کښې دی چه رسول کريم ﷺ اوفرمائيل ماباندې يو داسې آيت نازل شو چه په هيڅ يو نبی باندې نه دې نازل شوې سواد حضرت سليمان ؑ . هغه آيت ﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ ()دې .

**دبسم الله د نزول په وخت کښې خارق العادت کارونه:-** حضرت جابر ؓ فرمائی چه کله دا آيت نازل شو نو وريځې مشرق طرف ته لاړې او هواګانې اودريدې ،سمندرونه اودريدل ، ځناورو غوږونه کيخودل ، شيطانانوباندې دآسمان نه شغلې اوغورزولې شوې ،او پروردګار عالم په عزت اوجلال قسم اوخوړو او وې فرمائيل چه په کوم څيز باندې ځما دا نوم واخستلې شی په هغې کښې به ضرور برکت وی.

**بسم الله وئيل د جهنم د نورلسو فرشتو نه حفاظت:-** حضرت ابن مسعود ؓ فرمائی چه څوک غواړی چه هغه دې دجهنم دنورلسو داروغه ګانو نه بچ شی نوهغه دې ﴿ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ وانی. ددې هم نورلس حروف يعنی توری دی. هر حرف به دهرې فرښتې نه دبچ کيدو ذريعه جوړه شی. دا ابن عطيه بيان کړې دي. او ددې تائيد به په يو بل حديث سره هم کړې دې په هغې کښې دی چه ماد ديرشو نه زياتې فرښتې اوکتلې چه هغوی تيزی کوله. دا نبی کريم ﷺ په هغه وخت کښې بيان کړی وو چه کله يو سړی (ربناولك الحمد حمداكثيراطيبامباركافيه) ()ونيلی وو.په دې کښې هم د ديرشو نه زيات حروف دی ، هم دومره فرښتې راکوزې شوې. داشان بسم الله کښې هم نورلس حروف دی . او په هغه ځائې کښې دفرښتو تعداد هم نورلس دې وغيره وغيره.

**بسم ا لله سره شيطان ذليل کيږی:-** مسند احمد کښې دی چه د نبی کريم ﷺ په سورلۍ پسې چه کوم صحابی ؓ سور وو دهغوی بيان دې چه نبی کريم ﷺ اوبنه لړه شان اوخوزيده نوما اوونيل چه دشيطان

---

۱ ) الضعفاء للعقيلی : ۲/۱٦۲)-

۲ )امام ابن کثير سورة نمبل آيت نمبر ۳۰ لاندې فرمائی چه داحديث پاک غريب دې اوددې سند ضعيف دې داروايت مردود دې)

۳ ) صحيح بخاری کتاب الاذان باب رقم: ۱۲٦، رقم الحديث : ۸۹۹)-

دې کور ویران شی.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل دا مه وایه په دې سره شیطان خوشحالیږی او خیال کوی چه ګویا دې نې دخپل قوت نه غوزار کړو. اوبسم الله وئیل سره هغه دمچ په شان ذلیل او خواریږی [١] نسانی په خپل «کتاب الیوم واللیلة» کښې او ابن مردویه په خپل تفسیر کښې هم داسې بیان کړې دې. او دصحابی ﷺ نوم ئې ابن اسامه بن عمیر خودلې دې. او په دې کښې دی چه بسم الله وایه دا د بسم الله برکت دې[٢]

**بِسۡمِ اللهِ نه وئیل بې برکتی ده:-** چه ددې وجې دهر کار اودهرې خبرې په شروع کښې بسم الله وئیل مستحب دی. دخطبې په شروع کښې بسم الله وئیل پکار دی. په حدیث مبارک کښې دی چه کوم یو کار په بسم الله سره شروع نه شی نو په هغې کښې برکت نه وی. [٣] بیت الخلاء (لیټرین) ته دتلو په وخت کښې دې بسم الله وائی .[٤]

**په اودس کښې بسم الله وئیل:** په حدیث کښې داهم راغلی دی چې د اودس په وخت کښې دې هم وائی، مسند احمد او سنن کښې د حضرت ابوهریره ﷺ، سعید بن زید ﷺ او ابوسعید نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې په اودس کولو کښې دالله ﷻ نوم وانخلی نودده اودس نه کیږی. اوداحدیث حسن دې [٥]. بعضې عالمان داودس په وخت کښې بسم الله وئیل واجب ښائی. بعضې د مطلق وجوب قائل دی.

## د اودس په اول کښې د بسم الله حکم

صاحب دقدوری رحمه الله فرمائیلی دی.چه د دواړو لاسونو تر مړوندونو پورې وینځل خویه اودس باندې وراندې دی.خوچه کله اودس شروع کوی.① نود الله په نوم دے شروع کوی.او د تسمیه ادنی درجه دا ده.چه بسم الله اووائی.اوشروع اوکړی. اواعلی درجه نې دا ده.چه بسم الله الرحمن الرحیم اووائی. ②اوعلامه ابن الهمام رحمه الله فرمائیلی دی.چه امام طحاوی رحمه الله فرمائیلی دی.چه ﴿بسم الله العظيم والحمد لله على دين الإسلام﴾ دے وائی.هم دادسلفو نه منقول ده.او بعضو فرمائیلی دی.چه دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مرفوعا نقل دی.(تسهیل الهدایه ۱۱/۵۵)-

**د ذبحې په وخت کښې بِسۡمِ اللهِ وئیل:**-د خناورو د ذبح کولو په وخت کښې هم ددې وئیل مستحب دی. د حضرت امام شافعی رحمه الله اودیوې ډلې هم دا خیال دې.بعضو دذکر په وخت کښې اوبعضو مطلق دې ته واجب وئیلی دی . ددې بیان به نزدې راشی.ان شاءالله تعالی

## د متروك التسمیه خاورې حکم

**مسلک حنفی:**- د احنافو په نیز په کوم څاروی چې د الله تعالی نوم وانخستې شی نو د دې دوه صورتونه دی یو دا چې د ذبحې په وخت کښې ترې د الله تعالی نوم هیر شی نو په دې صورت کښې دغه ذبیحه حلاله ده اودویم صورت دا دې چې په قصد باندې د الله تعالی نوم د ذبحې په وخت کښې وانخلی په دې صورت کښې دغه بیحه خوړل ناجائز او حرام دی (احکام القرآن للجصاص ۳/۱۱۱)-

**د جماع په وخت کښې بسم الله وئیل:**- حضرت امام رازی رحمه الله په خپل کتاب کښې ددې آیت په فضیلت کښې ډیر احادیث نقل کړی دی. په یو کښې دی چه کله ته خپلې بی بی لره ورشې او بسم الله اووائې او

---

[١] ) احمد: ٥/٥٩)-،

[٢] ) الیوم واللیلة للنسائی : ٥٥٩، وسنده ضعیف وهو صحیح بالشواهد)-

[٣] ) الطبقات الشافعیه : ١/٦،)-

[٤] )ترمذی ابواب الجمعة باب ماذکر تسمیة من دخول الخلاء : ٦٠٦، ابن ماجة: ٢٩٧)-،

[٥] ) احمد: ٢/٤١٨، ابوداود: کتاب الطهارة باب فی التسمیة علی الوضوء: ١٠١، ابن ماجة: ٣٩٨)-

هم ددې نه الله ﷻ تاته څه اولاد درکړي نو ددې اوددې د اولاد دساه ګانو په برابر به ستاپه اعمال نامه کښې نيکئ ليکلې شي. خودا روايت بالکل بې اصل دې. ما خودا روايت چرته نه دې موندلې.
د خوراك وغيره خوړولو په وخت کښې هم بسم الله وئيل مستحب ده. صحيح مسلم کښې دی چه رسول کريم ﷺ حضرت عمربن ابوسلمه ؓ ته اوفرمائيل (دوئ ستاسو په کور کښې د ام سلمه ؓ دمخکښې خاوند نه وو) چه بسم الله وايه او په ښي لاس سره خوراك کوه او خپلې مخښې نه نمړنی خوره [1]
بعضې علماء کرامو په دې وخت کښې هم بسم الله وئيل واجب ګروزلې دی.

**د خوراك نه وړاندې د بسم الله حکم**

**مسلك حنفی:**-د خوراك نه وړاندې بسم الله وئيل سنت دی (منهاج الصالحين شرح رياض الصالحين. د بی بی سره دملاويدو په وخت کښې هم بسم الله وئيل پکار دی. په بخاري شريف او صحيح مسلم شريف کښې دابن عباس ؓ نه روايت دې چه رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چه کله تاسو نه څوك خپلې بی بی سره دملاويدو اراده اوکړی نو اودې وائی چه (بسم الله اللهم جنب الشيطان وجنب الشيطان مارزقتنا) يعنی اې الله ﷻ مونږه او چه ته مونږ ته کوم اولاد راکوې هغه د شيطان نه اوساتې. فرمائی که ددې جماع نه حمل شو نو دې بچی ته به شيطان هيڅ کله نقصان نشی رسولې. [2]

**دبسم الله ،،با،، تعلق:**-ددې خائې نه دا هم معلومه شوه چه دبسم الله د"ب"تعلق چاسره دې. په دې کښې دنحويانودوه اقواله دی. اودواړه يو بل سره نزدې نزدې دی① بعضې وائی چه دا اسم دې② اوبعضې وائی چه دا فعل دې. د هريو دليل په قرآن پاك کښې ملاويږی چه کوم خلق د اسم متعلق وائی هغوی خو وائی چه (بِسْمِ اللّٰهِ ابتدائی) يعنی دالله ﷻ دنوم سره څما شروع ده. په قرآن کښې دی چه (ارْكَبُوا فِيهَا بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا) په دې کښې اسم مصدر ظاهر شوې دې. اوچه کوم خلق ئې د فعل سره مقدر وائی که هغه امر وی اوکه خبر لکه (ابدا بِسْمِ اللّٰهِ) او (ابتدات بِسْمِ اللّٰهِ) ددوی دليل دا آيت (اِقْرَاْ بِاسْمِ) دې اصل کښې دواړه صحيح دی ددې وجهې نه چې دفعل دپاره دمصدر کيدل ضروری دی نواختيار دې چه فعل مقدر اومنلې شی او ددې مصدر مطابق ددې فعل چه ددې نوم مخکښې اخستې شوې دې اودريدل، کښيناستل، خوراك کول، څکل، دقران پاك تلاوت کول يا اودس کول او مونځ وغيره وی نوددې ټولو په شروع کښې دبرکت حاصلولو دپاره امداد غوښتلو دپاره او دقبوليت دپاره دالله ﷻ نوم اخستل پکار دی. والله اعلم.

**نبی کريم ﷺ د بِسْمِ اللّٰهِ تعليم ورکول:**- ابن جرير او ابن ابی حاتم کښې روايت دې چه ابن عباس ؓ فرمائی چه دټولونه مخکښې حضرت جبريل ؑ چه کله حضرت محمد ﷺ ته وحی راوړه نووې فرمائيل ائې محمد ﷺ اوفرمائی چه (استعيذبالله السميع العليم من الشيطان الرجيم) بيا اووايه چه (بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ) مقصد داوو چه پاسيدل، کښناستل، وئيل ټول دې دالله ﷻ په نوم سره شروع کړې شی. [3]

**بې کاره بحث:**-هم اسم (يعنی نوم) مسمی (يعنی نوم والا) دې يا څه نور او په دې کښې د عالمانو درې اقوال دی. يو داچه هم اسم مسمی دې. دابوعبيد ؒ اوسيبويه ؒ هم داقول دې. باقلانی او ابن فورك هم دا خوښوی. ابن خطيب رازی ؒ د خپل تفسيرپه مقدماتو کښې ليکی چه حشويه او کراميه او اشعريه خودا وائی چې اسم نفس مسمی دې اود نفس تسمې غير دې. اومعتزله وائی چې اسم د مسمی

---

[1]) صحيح بخاری: کتاب الاطعمة باب التسمية على الطعام...... ٥٣٧٦، صحيح مسلم: ٢٠٢٢)-
[2]) صحيح بخاری : کتاب الوضوء باب التسمية على کل حال وعند الوقاع: ١٤١، وانظر: ٣٢٧١، صحيح مسلم: ١٤٣٤، ابوداود: ٢١٦١، ترمذی : ١٠٩٧، ابن ماجة: ١٩١٩)-
[3]) الطبری : ٥٠/١، ٥١)-

غیر دي. اونفس تسمیه دي .زمونږ په نیزاسم مسمی هم غیر دي او د تسمي هم غیر دي مونږ وایو که ددي نه مراد لفظ وی چه د آوازونو د ټکړو او دحرفونومجموعه ده نویالبداهت ثابته ده چه دا د مسمی غیر دي.که د اسم نه مراد ذات مسمی وی نو دا وضاحت لره واضحه کوی چه محض بیکاردي. نو ظاهره ده چه په دي بیکاره بحث کښي پریوتل فضول دی.

**په اسم او مسمی کښي فرق:**-دي نه پس د اسم مسمی په فرق باندي دلائل موراوړی دی چه اسم او کله مسمی وی هډو وی نه لکه معدوم لفظ کله د یومسمی ډیر اسمونه وی لکه مترادف، کله اسم یو وی دمسمی ډیر اسمونه وی لکه مشترك .ددي نه معلومه شوه اسم بل څیز دي او مسمی بل څیز دي. یعني نوم بیل څیز دي او نوم والا بیل څیز دي.او دلیل واورئی چه اسم خو لفظ دي او هغه عرض اوکله ذات وی،ممکن دی یا واجب .او واورئی که هم اسم مسمی اومنلي شی نوداور نوم آوریدو سره دی کره والي محسوس شی او د واوري په آوریدو سره دي یخ والي محسوس شی، حالانکه هیڅ عقل والا داسي نه شی ونیلي.

**د اسم او مسمی جدا جدا کیدو دلائل:**-او دلیل واورئی دالله ﷻ فرمان دي چه دالله ﷻ ډیر بهترین نومونه دی ،تاسو په دي نومونو سره الله ﷻ لره بلئ. په حدیث شریف کښي دی چه دالله ﷻ یو کم سل نومونه دی نوخیال کوئی چه نومونه څومره زیات دی، حالانکه مسمی هم یو دي. اوهغه الله ﷻ وحده لاشریك له دي داشان ﴿اسماء﴾ دالله ﷻ طرف ته په دي آیت کښي مضاف کول او بل ځاي کښي فرمائی چه﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ﴾ وغیره دا اضافت هم دي دا اضافت ددي تقاضا کوی چي اسم دي بل وی اومسمی دي بل وی،ځکه د اضافت مقتضاء مغائرت دي .دا شان دا حکم فرمائیل چه ﴿فَادْعُوْهُ بِهَا﴾یعنی الله ﷻ لره دهغه په نومونو سره بلئ. دا هم ددي امر دلیل دي چه نو یو دي او نوم والا بل

**د اسم او مسمی یو کیدو دلائل** -او اوس دهغه چا دلائل واورئی چه اسم اومسمی ته یو وائی.دالله ﷻ فرمان دي چه ﴿تَبٰرَكَ اسْمُ رَبِّكَ﴾ یعنی جلال واکرام والا ستا د رب برکت والا نوم دی. نوم یو ته برکتونو والا ونیل حالانکه پخپله الله ﷻ برکتونو والادي ، ددي آسان جواب دادي چه ددي مقدس ذات په وجه دده نوم هم لوئي والا دي. دویم دلیل ددوی دادي چه کله یو سړي اووائی زینب ته طلاق نو طلاق په هغه ښځي د چاچي نوم زینب دي واقع کیږی،که نوم اونوم والا کښي فرق وی نویه نوم به طلاق پریوتي وي. په نوم والا باندي څنګه پریوزی؟ ددي جواب دادي چي ددي نه مراد هم داوی چه په هغه ذات طلاق چه د هغه نوم زینب دي.دتسمیه داسم نه بیل کیدل ددي دلیل په وجه دی چه تسمیه وائی د چا نوم مقرر کولو او ظاهرولو ته چه دا څیز بیل او نوم بیل څیز دي.دحضرت امام رازی رحمه الله قول هم دادي چه دا ټول هر څه د لفظ باسم متعلق دی.

**د الله لفظ اسم ذات دي:**اوس لفظ " الله "معنی او اشتقاق متعلق واورئی دا "خاص"نوم دي. د رب تبارك وتعالی ﷻ. ونیلي شی چه اسم اعظم هم دادي. ددي وجي چي ټولو ښو صفتونو سره هم دا موصوف وی . لکه څنګه چه په قرآن پاك کښي دي چه ﴿هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ﴾یعنی الله ﷻ هغه ذات دي چه دهغه نه سوا بل معبودنشته چه د ټولو پټو ښکاره پیژندونکي دي . چه رحم کوونکي دي. اومهربانه دي. هغه الله ﷻ چه دهغه نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته چه بادشاه دي،پاك دی،سلامتیاوالا دي،امن والادي ، محافظ دي ،غلبي والا دي ، زبردست دي،لوئی والادي.هغه دهر شرك نه اودشرك دهر څیز نه پاك دي ،هغه الله ﷻ پیدا کولو والا دي ، جوړولو والادي ،صورت بخښلووالا دي،دده دپاره بهترین پاك نومونه دی ،د آسمان او زمکي ټول څیزونه دهغه تسبیح بیانوی ،هغه ذات عزتونو والا او حکمتونو والا دي په دي آیتونو کښي باقی تمام نومونه صفتی دی ، اودلفظ الله صفات دی،نو اصلی نوم الله ﷻ دي لکه څنګه چه یو ځاي کښي فرمایی چه دالله ﷻ دپاره پاك او ښه نومونه دی نو تاسو هغه په دي نومونو سره

بلې:اوفرمائی چه الله ﷻ بلې: یارحمن بلنی چه کوم نوم سره بلې: هم دده ښائسته ښائسته او ښه ښه نومونه دی

**دالله د نومونو یادولو فضیلت:-** بخاری شریف اومسلم شریف کښې دی د حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل دالله ﷻ یوکم سل نومونه دی چه څوك دا یاد کړی نوهغه جنتی دی.

()دترمذی شریف اوابن ماجه په روایت کښې ددې نومونو تفصیل هم راغلې دې. او په دواړو روایتونو کښې الفاظ څه بدل بدل دی. (۲)

**دالله پنځه زره نومونه:** رازی رحمه الله په خپل تفسیرکښې دبعضو خلقونه روایت کړې دې چه د الله ﷻ پنځه زره نومونه دی یو زرخو په قرآن کریم اوصحیح احادیثو کښې دی اویو زر په تورات کښې اویو زر په انجیل کښې او یو زر په زبور کښې اوزر په لوح محفوظ کښې دی.

**د «الله» د اشتقاق بحث:-** الله ﷻ هغه نوم دې چه سوادالله ﷻ نه د بل چا نشته دې. هم داوجه ده چه تر ننه پورې عربو ته دامعلومه نشوه چه ددې اشتقاق څه دې ؟ ددې باب څه دې؟ بلکه دیو لوې ډلې دامذهب نقل شوې دې چې دا اسم جامد دې او ددې هډو اشتقاق نشته قرطبی رحمة الله دعلماء یو مذهب نقل کړې دې چه په هغې کښې حضرت امام شافعی رحمه الله ،حضرت امام خطابی رحمه الله ،او امام الحرمین رحمه الله او امام غزالی رحمه الله ،وغیره دی.

خلیل اوسیبویه نه روایت دې چه الف لام په دې کښې لازم دې. امام خطابی رحمه الله ددې یودلیل دا هم ورکړې دې چه یاالله ﷻ وئیلې خوشې خویا(الرَّحْمٰن)وئیلویاندې موځوك نه دی لیدلی.که دالله لفظ کښې الف لام اصل کلمه نه وې نو په دې باندې د ندا لفظ (یا)نشو داخلیدلې ځکه د قواعد عربی لحاظ سره حرف د ندا په الف لام والا اسم باندې داخلیدل جائز نه دی.

دبعضې خلقو قول دا هم دې چه دامشتق دې اوپه دې باندې د روبه یو شعرددلیل په طور راوړې. چه په دې کښې مصدر(تأله) بیان دې چه ددې ماضی مضارع (اله یاله) او(تألها)دې لکه حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه هغه (وَيَذَرَكَ وَإِلٰهَتَكَ) وائی ، ددې نه مراد عبادت دې. یعنی دهغه عبادت کولې شی دنور چا عبادت نشی کولې.مجاهد رحمه الله وغیره وائی چه بعضو په دې باندې دا ایت دلیل نیولې دې چه (وَهُوَ اللّٰهُ فِي السَّمٰوٰتِ وَفِي الْاَرْضِ) اوآیت کښې(وَهُوَ الَّذِيْ فِي السَّمَآءِ اِلٰهٌ وَّفِي الْاَرْضِ اِلٰهٌ) یعنی هم هغه الله ﷻ دې چه په آسمانونو او زمکه کښې هم هغه دې چه په آسمان کښې معبود دې او په زمکه کښې معبود دې.

سیبویه خلیل نه نقل کوی چه اصل کښې (اله) وو لکه (فعال)بیا همزه به بدله د الف لام کښې راوړې شو لکه (الناس) چه ددې اصل (اناس) دې. بعضو وئیلی دی د لفظ الله اصل (لاه) دې،الف لام حرف د تعظیم په طور راوړې شوې دې.دسیبویه هم داخوښ قول دې،دعربو شاعرانوپه شعرونوکښې هم دا لفظ ملاویږی.کسائی اوفراء وائی چه ددې اصل (الاله) وو ،همزه حذف کړې شو اومخکښې لام په دویم کښې مدغم شو لکه (لکناهوالله ربی) کښې (لکن انا) (لکنا) شوې دې.نود حضرت حسن رحمه الله په قرات کښې هم (لکن انا) دې او ددې اشتقاق (وله) نه دې،او ددې معنی (تحیر) ده.(وله) عقل تلو ته وئیلې شی ،عربی کښې (رجل واله) او (امراة وله) او (مولوهة) په هغه وخت کښې.وائی چه کله هغه ځنګل ته لیږلې شی.چونکه دالله ﷻ دصفتونو په تحقیق کښې عقل حیرانیږی ددې وجهې دې ذات پاك ته وئیلې شی. په دې بناء باندې اصل کښې دا لفظ (ولاة) وو ،واو په همزه سره بدل کړې شو لکه (وشاح)او(وسادة) کښې چې اشاح اواسادة وئیلې شی

---

۱) صحیح بخاری : کتاب الشروط باب مایجوز فی الاشتراط : ۲۷۳٦، وانظر:۷۳۹۲، صحیح مسلم: ۲٦۷۷)-

۲) ترمذی: ابواب الدعوات باب حدیث فی اسماء الله الحسنی : ۳۵۰۷، ابن ما جة: ۳۸٦۱)-

درازى رحمه الله قول دې چه دا لفظ د (الهت الى فلان) نه مشتق دې چه په معنى کښې د (سکنت) هم هغه دې ، يعنى ما فلانې سره سکونت اوراحت حاصل کړو. چونکه دعقل سکون صرف دالله ﷻ ذات د ذکر طرف ته دې. اود روح حقيقى خوشحالى هم دهغه په معرفت کښې ده. ددې وجهې على الاطلاق کامل هم دا دى ، ددې نه سوا نور څوک نه دې،هم ددې وجهې ده ته الله ﷻ ونيلې شى.قرآن مجيد کښې دى چه(اَلَا بِذِكْرِاللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ ۝) يعنى دايمان والو زړونه صرف دالله ﷻ په ذکر سره اطمينان حاصلوى.

يوقول داهم دې چه د (لاه يلوه) نه ماخوذ دې چه ددې معنى پټيدل اوپرده کول دى، . اودا هم ونيلې شوى دى چه دا (اله الفصيل) نه دې، چونکه بندګان دې پاك ذات طرف ته تضرع او زارئ سره سجده کوى اوپه هر حال کښې دده درحمت لمن نيسى،ددې وجې دې پاك ذات ته الله ﷻ اونيلې شو. يو قول داهم دې چه عرب (اله الرجل باله) په هغه وخت کښې وائى کله چې ديو اچانك امر نه څوک اويريږى او بل هغه ته پناه ورکړى او بچ ئې کړى چونکه ټول مخلوق لره دهر مصيبت نه بچ کولو والا صرف سبحانه وتعالى دې ددې وجې پاك ذات ته الله وائى. لکه په قران کريم کښې دى چه(وَهُوَيُجِيْرُوَلَايُجَارُعَلَيْهِ) يعنى هغه ذات دې بچ کولو والا اودهغه نه څوک نشى بچ کيدلې.حقيقى منعم هغه ذات دې.فرمائى چه تاسوسره څومره نعمتونه دى هغه ټول دالله ﷻ دطرف نه درکړې شوى دى. هم هغه ذات (مطعم) دې فرمائى چه هغه خوراك ورکوى او هغه ته څوك خوراك نه ورکوى.هم هغه موجد دې اوفرمائى چه دهر څيز وجود دالله ﷻ دطرف نه دې.د رازى رحمه الله مختارمذهب هم دادې لفظ الله مشتق نه دې ،خليل سيبويه اکثر اصولى او دفقهاء کرام دا قول دې چه ددې ډير زيات دليلونه دى،که دا مشتق وې نوددې په معنى کښې به دډيرو سرو شرکت وې حالانکه داسې نه ده.

د ،، الله،، لفظ موصوف دې.بيا دا لفظ موصوف جوړولې شى او ددې ډيرزيات صفات رازى. لکه رحمان ، مالک، رحيم،قدوس وغيره.نومعلومه شوه چه دا مشتق نه دې. قرآن پاك کښې يو خائې کښې (عَزِيْزُ الْحَمِيْدِ اللّٰهِ) چه کوم راغلې دې هغه ځائې دا عطف بيان شوې دې.يو دليل ددې دمشتق نه کيدو دا هم دې چه (هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ۝) يعنى آيادهٔ څوک هم نامه هم تاسو پيژنئ ؟بيان کولې شى ليکن داغور طلب خبره ده. والله اعلم بعضې هغې خلقو دا هم ونيلى دى چه دا عبرانى لفظ دې ،

**د الله د معرفت نه مخلوق عاجز دې**.- رازى رحمه الله فرمائى چه دمخلوق دوه قسمونه دى يو خوهغه چې د معرفت الهى غاړې ته رسيدلى دى او دويم هغه چې ددې نه محروم دى. چه دحيرت په تيرو کښې پراته دى. اودجهالت په ازغنو ميدانونو کښې پراته دى. هغوى خوعقل ورك کړې دې او روحانى کمالات ئې هيرکړى دى. ليکن چه کوم د معرفت غاړې ته رسيدلى دى چه دنورانيت په فراخه باغونو کښې اوسيږى،چه هغوى دجلا ل اودکبريائى وسعت اندازه کړې ده.هغوى هم چې دې ځائې پورې رارسيدل نوحيران ولاړ پاتې شو او د بارګاه فردانيت او دربار صمديت کښې حيران ولاړ دې.

غرض داچه ټول مخلوق د هغه د پوره معرفت نه عاجزه دى او پريشان اوحيران دى.نو دا ددې معانى په بناء د هغه ذات نوم الله ﷻ دې ، ټول مخلوق د هغه محتاج دې ، دهغه مخکښې سر بسجود دى او د هغه ذات په تلاش کښې دى.دې معنى کښې ده ته الله ﷻ ونيلې شى لکه څنګه چې د خليل قول دې ، عرب محاوره کښې هر اوچت ځائې او اوچت څيز ته لاه وائى.نمر چه کله راخيژى نو بيا هم وائى چه (لا هت الشمس) چونکه پروردګار عالم هم د ټولونه اوچت او بالا دې نوددې وجې هغه ذات ته هم الله ﷻ ونيلې شى.اود (اله) معنى دعبادت کولو او د (تاله) معنى په حکم بردارئ اوقربانئ کولوده . اودالله ﷻ د ټول عالم عبادت کوى. اودهغه ذات په نوم قربانى ورکوى ، ددې وجهې هغه ته الله ﷻ وائى . د حضرت ابن عباس رضی الله عنه په قراءت کښې دى چه (وَيَذَرَكَ وَاِلٰهَتَكَ) ،ددې اصل (الاله) دې،نو( ف ) دکلمې په

خاني چه کوم همزه دې هغه حذف کړې شوې،بيا نفس کلمې لام زائد لام سره چه کوم تعريف دپاره راوړې شوې دې،ددې سره ملاو شو اويو بل کښې مدغم شو نويو لام مشدد پاتې شو او تعظيما (الله) اوونيلې شو.نو دا د الله د لفظ تفسير دې

﴿الرَّحۡمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ دادواړه نومونه د رحمت نه مشتق دی،دواړو کښې مبالغه ده. رحمان کښې د رحيم نه زياته مبالغه ده.د علامه ابن جرير رحمه الله دقول نه معلوميږی چه ګويا په دې اتفاق دې. دبعضې سلفود تفسيرونو نه هم دا معلوميږی .دحضرت عيسی عليه السلام قول هم ددې معنی تير شوی دې چه رحمان نه مراد دنيا او آخرت کښې رحم کولو والا او د رحيم نه مراد آخرت کښې رحم کولو والا دې . بعضې خلق وائی چه رحمان مشتق نه دې ، که داشان وې نو (مرحوم) سره به نه ملاويدو حالانکه په قران کريم کښې ﴿بِالۡمُؤۡمِنِينَ رَحِيمًا﴾ راغلې دې. مبرد وائی چه رحمان عبرانی نوم دې عربی نه.ابو اسحاق زجاج معانی القران کښې ليکی چه داحمد بن يحيی قول دې چه رحيم دعربئی لفظ دې او رحمان دعبرانئ دې ،دواړه جمع کړې شوی دی . ليکن ابو اسحاق فرمائی چه دې قول طرف ته زړه نه مانيله کيږی . قرطبی رحمه الله ددې لفظ د مشتق کيدو دا دليل راوړې دې چه د ترمذی صحيح حديث دې . رسول کريم ﷺ فرمائی چه دالله ﷻ فرمان دې چه څه رحمان يم ما رحم پيدا کړې دې او د خپلو نومونو نه مې ددې نوم اشتقاق کړې دې ددې يو خانې کولو والابه څه يو خانې کړم او ددې ماتولو والا به څه پرې کړم. (١) اوس د صريح حديث په موجودګئ کښې د انکار کولو اومخالفت کولوهيڅ ګنجائش نشته . پاتې شو دکفار عرب ددې نوم نه انکار کول نو دا محض ددوی جهالت وو. قرطبی رحمه الله فرمائی چه رحمان او رحيم په يومعنی کښې دی . لکه ﴿ندمان﴾ او ﴿نديم﴾ دابو عبيد رحمه الله هم داقول دې.يو قول دا هم دې چه دا﴿فعلان د فعيل﴾ په شان نه دې. فعلان کښې مبالغه ضروری وی ، لکه څنګه چې غضبان هغه سړی ته وائی چه ډير غصه ناک وی او فعيل کله فاعل اوکله مفعول دپاره هم رازی. کوم چې د مبالغې نه خالی وی . ابوعلی فارسی رحمه الله وائی چه رحمان عام اسم دې چه دا هر قسمه رحمتونو ته شامل دې. اوصرف الله ﷻ سره مخصوص دې او رحيم په اعتبار دمومنانو دې.فرمائی چه ﴿وَكَانَ بِالۡمُؤۡمِنِينَ رَحِيمًا﴾ مومنانو باندې رحيم دې . حضرت ابن عباس فرمائی دا دواړه نومونه رحمت او رحم والا دی ، په يو کښې د بل نه زيات رحم او رحمت دې .

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه په دې روايت کښې لفظ د ﴿ارق﴾دې،ددې معنی خطابی رحمه الله وغيره ﴿ارفق﴾ کوی. لکه څنګه چه په حديث کښې دی چه الله ﷻ رفيق يعنی نرمی کوونکې اومهربانی کوونکې دې. هغه ذات په هر کار کښې نرمی اوآسانی خوښوی. هغه په نرمی اوآسانی سره هغه نعمتونه ور کوی. چه په سختئ باندې ئې نه ورکوی.(٢)

ابن المبارک رحمه الله فرمائی چه رحمان هغه ته وائی چه کله دهغه نه څه اوغوښتلې شی نوهغه ورکړی او رحيم هغه ذات دې کله چې دهغه نه اونه غوښتلې شی نوهغه غضبناك شی(٣)دبعضې شاعرانوقول دې چه :

الله يغضب ان تركت سئواله وبنى ادم حين يسئال يغضب

يعنی الله ﷻ نه که نه غوارئ نوهغه خفه کيږی اوکه دبنی آدم نه غوارئ نوهغوی غصه کيږی : عزرمی رحمه الله فرمائی چه درحمن معنی په ټول مخلوق باندې رحم کولو والا د رحيم په معنی کښې دې. اوګورئ

---

١) ابوداود كتاب الزكوة باب فى صلة الرحم : ١٦٩٤، ترمذى: ١٩٠٧)-

٢) صحيح مسلم كتاب البر والصلة باب فضل الرفق:٢٥٩٣)-

٣) ترمذى كتاب الدعوات باب من لم يسأالله ......٣٣٧٣، ابن ماجة: ٣٨٢٧،)-

د قران پاك دوه آيتونه ﴿ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ﴾ او ﴿اَلرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى﴾ كښې ﴿اسْتَوٰى﴾ سره د رحمان لفظ ذكركړې شو. دې دپاره چې ټول مخلوق ته دا لفظ دخپل عام رحم اوكرم په معنى سره شامل شي او دمومنانوسره ئې لفظ د رحيم. فرمائى ﴿وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا﴾ نو معلومه شوه چې په رحمان كښې مبالغه په نسبت د رحيم ډيره زياته ده. لېكن دحديث په يو دعا كښې ﴿يارحمان الدنيا والاخرة ورحيمهما﴾ راغلې دى.

(١) رحمان دا نوم هم دالله ﷻ سره مخصوص دې. دده نه سوا د بل چا نوم نه دې لكه دالله تعالى فرمان دې چه الله ﷻ لره بلئ يا رحمن لره چه په كوم نوم سره ئې غواړئې بلئ يئ. دده ډير ښه ښه نومونه دى ، په يو آيت كښې دى چه ﴿وَسْئَلْ مَنْ اَرْسَلْنَا﴾ الخ ،يعنى دخپل ځان نه مخكښې رسولانو نه تپوس اوكړئې چه هغوى دپاره څوك بل څوك معبود وو د رحمان نه چه هغوى به دهغه عبادت كولو. كله چه مسيلمه كذاب لوئې لوئې دعوې كول شروع كړې او خپل نوم ئې رحمان اليمامه كيخودو نو الله ﷻ هغه لره ډير زيات رسوا او تباه او برباد كړو. او په دروغه او كذب سره مشهور شو.نن هغه ته مسيلمه كذاب وئيلې شى.اوهر د دروغودعويدار ته ده سره تشبيه وركولې شى.هريو كلى والا اوهر ښاروالا،هر پوخ او كچه كور والا هغه ډير ښه پيژنې.

بعضې وائى چه په رحيم كښې درحمن نه زياته مبالغه ده ځكه چه په دې لفظ سره د مخكښې لفظ تاكيد شوې دې او تاكيد په نسبت دهغه چه د هغه تاكيد اوكړې شى زيات قوى وى. ددې جواب دادې چه په دې ځائې كښې تاكيد هډوشته دې نه بلكه داخو صفت دې .اوپه صفت كښې دا قاعده نشته دې ، نودالله ﷻ نوم واخستلې شو.چه په دې نوم كښې هم دهغه سره شريك نشته دې. اودده صفت مخكښې د رحمان بيان اوشو چه دا نوم كيخودو دنورودپاره ممنوع دې لكه څنگه چه ئې اوفرمائيل چه الله ﷻ لره په رحمان سره اوبلئ چه په كوم نوم سره غواړئې وې بلئ دده دپاره اسماء حسنى ډير دى. مسيلمه خودابدترين جرات اوكړو اوبربادشو اودده گمراه ملگرو نه سوادې خبرې په بل چا باندې عمل اونكړو.

**رحيم د مخلوق صفت هم كيدې شى:-** درحيم وصف سره الله ﷻ نورو لره هم موصوف كړې دې. فرمائى چه ﴿لَقَدْ جَآءَكُمْ﴾ په دې آيت كښې ئې خپل نبى ته رحيم اووئيل. داشان خپلو بعضې نومونو سره ئې نور خلق هم ياد كړى دى،لكه آيت ﴿اِنَّا خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ﴾ الخ كښې انسان ته سميع و بصير وائى. حاصل دادې چه دالله ﷻ بعضې نومونه خو داسې دى چې په نورو باندې نورو معنو كښې ددې اطلاق كيديشى.او بعضې داسې دى چه نه كيږى . لكه الله ﷻ اورحمن اوخالق اورازق وغيره . داشان الله ﷻ خپل رومبې نوم الله واخستلو. بيا د هغه صفت ئې په رحمان سره اوكړو ځكه چې رحمن د رحيم په نسبت زيات خاص دې. او زيات مشهور دې،قاعده ده چه مخكښې دټولو نه زيات بزرگ نوم سره نوم اخستلې شى ځكه دټولو نه مخكښې زيات خاص نوم سره واخستلې شوبيا ددې نه كم ،بيا ددې نه كم ، كه اووئيلې شى چه په رحمان كښې د رحيم نه زياته مبالغه موجود ده نو بيا هم په دې باندې اكتفا ولې نه ده ؟ نوددې په جواب كښې د حضرت عطاء خراسانى رحمه الله داقول پيش كولې شى چه چونكه كافرانو رحمان نوم هم دغيرو دپاره كيخودلې وو ددې وجې ئې د رحيم لفظ هم راوړو چه هډو هيڅ قسمه وهم پاتې نشى . رحمان او رحيم صرف دالله ﷻ نوم دې، ابن جرير رحمه الله نه دا قول نقل كړې دې .

بعضې خلق وائى چه دجاهليت په زمانه كښې عرب درحمان نه هډو واقف نه وو. تردې چه الله ﷻ د قران پاك آيت كښې فرمائى چه ﴿قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ﴾ نازل كړو اوددې ترديد اوكړو. دقريشوكافرو د حديبيې په كال كله چه رسول الله ﷺ حضرت على رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ اوليكه

[1]) مستدرک حاكم : ۱/۵۱۵)-

نوهغوی ونیلی وو چې مونږ رحمان او رحیم نه پیژنو. بخاری شریف کښې روایت موجوددې() بعضې روایتونو کښې دی چه هغوی اووئیل مونږ رحمان د یمامه ته وایو بل رحمان مونږ نه پیژنو، داشان په قران پاك کښې په بل ځائې کښې دی چه ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اسْجُدُوا لِلرَّحْمَٰنِ﴾ یعنی کله چه دوی ته اوئیلې شی د رحمان په وړاندې سجدئی اوکړئی نو دوی په ویره کښې شی. او جواب ورکوی چه رحمان څوك دې؟ چه مونږ هغه ته ستاد قول په وجه سجده اوکړو. ددې ټولو صحیح مطلب دادې چه بدکاره خلقو به صرف دعناد او تکبر،سرکشئ اودښمنئ په وجه درحمان نه انکار کولو.دا نه چه دوی ددې نوم نه خبر نه وو. خکه چه دجاهلیت په زمانې په زړوشعرونو کښې هم دالله ﷻ نوم رحیم موجود دې چه هم ددې شاعرانو شعرونه دی.

دسلامه شعر اودنورو اشعارو ملاحظه اوکړئی.حضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه په تفسیر ابن جریر کښې نقل دی چه رحمان د فعلان په وزن سره د رحمت نه ماخوذ دې.اودعربود کلام ځنی دې. هغه الله ﷻ رفیق ذات دې په چا باندې رحم کول غواړی او چه چا ته غصه شی نودهغه نه ډیر لرې وی او په هغه باندې سخت هم وی

داشان دده ټول نومونه دی. حسن رحمه الله فرمائی چه درحمان نوم دنورو دپاره منع دې. خکه چه پخپله دا د الله ﷻ نوم دې. دخلقو په دې نوم هیڅ حق نشته دې. دام سلمه رضي الله عنها په حدیث کښې دی چې په هر آیت به نبی کریم ﷺ اودریدلو مخکښې تیر شوې دې.() اویوجماعت داشان هم دې چې هغوئ بسم الله باندې ته آیت وائی او دا جدا وائی اوځینې ئې یو ځائې وائی.میم باندې دوه ساکن دی نو په دې وجه ئې ته زیر سره وائی د جمهورو هم دا قول دې. کوفی وائی چې ځینې عرب دا دمیم په زبر سره وائی. د همزه حرکت د میم زبر ته ورکوی.لکه الٓمٓ ﴿اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾.ابن عطیه رحمه الله فرمائی چې زما خیال دې چې د زبر والا قرآت د چا نه هم مروی نه دې.

**د سورة فاتحه تفسیر**

| الْحَمْدُ | لِلَّهِ | رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١﴾ | |
|---|---|---|---|
| ټول تعریفونه | الله لره دی | چه پالونکې دې دټولو مخلوقاتو | |
| ټول تعریفونه الله پاک لره ښائی چې پالونکې دټولو مخلوقاتو دې | | | |

**قوله تعالی:- الْحَمْدُ**

د ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ قراءت:-اووه واړه قاریان ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ د دال په پیښ سره لولی او ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ مبتدا ء خبر منی دسفیان ابن عیینه او روبه بن عجاج قول دې چې د دال زبر سره دې او فعل په دې ځائې کښې مقدر دې،ابن ابی عبله رحمه الله د ﴿لِلَّهِ الْحَمْدُ﴾ دال اود ﴿لِلَّهِ﴾ مخکښې لام دواړه پیښونوسره لولې. او دا لام مخکښې تابع کوی اګر چه ددې شهادت د عربو د ژبې نه ملاویږی ، لیکن شاذ دی. حسن رحمه الله او زید بن علی رحمه الله دا دواړه حرفونه په زیر سره لولې. او ،،لام،، د دال تابع کوی.

**د حمد معنی:-** ابن جریر رحمه الله فرمائی چه د ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ معنی داده چه صرف دالله ﷻ شکر دې دده نه سوا هیڅوك ددې لائق نشته دې که هغه مخلوق نه څوك هم وی. خکه ټول نعمتونه چه کوم لره مونږ نه شو شمیرلې او سوا د هغه مالك نه نور څوك ددې تعداد نشی پیژندې هم د هغه طرف نه دی. هم هغه ذات د خپل اطاعت ټول اسباب مونږته راکړی دی،هم هغه ذات د خپلو فرائضو پوره کولودپاره نعمتونه

[1] ) صحیح بخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد: ۲۷۳۱)–
[2] ) ابوداود کتاب الحروف والقراة :۱۰۰٤، ترمذی: ۲۹۲۷)–

قوتونه مونږ ته راکړي دي،بيا دنياوي بې شميره نعمتونه اود ژوند ټول ضرورتونه زمونږ حق نه بغير هغه ذات مونږته هبه کړل.دده هميشگيرنعمتونه دده تيارشوي پاك مقامات دجنت به مونږڅنګه حاصلوو؟ داهم هغه ذات مونږ ته خودلی دی. نومونږ وايو چه اول آخرهم دهغه مالك پاك ذات دهر شان تعريف او حمد اوشکر لائق دي. ()

**په حمد او شکر کښې فرق:** ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ داد ثناء کلمه ده ، الله ﷻ خپله ثناء په خپله کړې ده او هم په دې ضمن کښې ئې دا فرمائيلی دی چه تاسو وائی چه ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ بعضو وئيلی دی چه ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ ونيل دا دالله ﷻ په پاکو نومونو کښې اودهغه په اوچتو صفتونو سره دهغه ثناء کل دی ی او ﴿الشكر لِلَّهِ﴾ ونيل دا دالله ﷻ دنعمتونو او دهغه د احسان شکر ادا کول دی. ()ليکن دا قول صحيح نه دې خکه د عربۍ ژبې عالمانو دا اتفاق دې دشکر په ځائې لفظ دحمداودحمدپه ځائې لفظ دشکر وئيلې شي. جعفر صادق رحمه الله او ابن عطاء رحمه الله صوفی هم دا فرمائی.حضرت ابن عباس رحمه الله فرمائی چه هر شکر کولو والا کلمه د﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ ده.قرطبی رحمه الله د ابن جرير رحمه الله قول معتبر کولودپاره دا دليل هم بيان کړې دې اوکه څوك ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ شكرا﴾ اووائی نودا جائز دی.دراصل د علامه ابن جرير رحمه الله په دې دعوی کښې کلام دې. په مخکښې عالمانو کښې مشهوردی چه ﴿حمد﴾ وائی زبانی تعريف بيانولو ته اګر که د چا حمد کولې شي دهغه په متعدی صفتونوباندې وی اوکه په لازمی صفتونوباندې.اوشکرصرف متعدی صفتونوباندې کيږی اوهغه په زړه ژبه او ټول ارکانو سره کيږی ، دعربو شاعرانو په شعرونو کښې ددې دليل شته دې.

**د حمد يا د شکر عموميت:**-خو په دې کښې اختلاف دې چه دحمد لفظ عام دې يا دشکر.او صحيح خبره داده چه په دې کښې عموم په دې حيثيت سره خصوص دې چه د حمد لفظ چه په دې واقع وی هغه عام طوردشکر په معنی کښې رازی.ددې وجې دا لازم او ملزوم دواړه اوصاف باندې رازی. قدوسيت اوکرم دواړو باندې(حمدته) وئيلې شی ليکن په دې حيثيت سره چه داصرف ژبې سره اداکيدلې شی،دا لفظ خاص دې او دشکر لفظ عام دې خکه چه هغه قول وفعل او نيت دريو واړو دپاره وئيلې کيږی او صرف متعدی صفتونو باندې وئيلی کيږی په دې اعتبارسره د شکر لفظ خاص دې.قدوسيت باندې (شکرته) نشو وئيلې البته (شکرته علی کرمه واحسانه إلی)وئيلې شو دا وه خلاصه دمتاخرينودقول ، والله اعلم.

ابونصر اسماعيل حماد جوهری رحمه الله حمد مقابل وئيلی دی د ذم ،داسې وائی چه ﴿ حمدت الرجل احمده حمدا ومحمدا فهو حميد ومحمود ﴾تحميد چه حمد سره هم زياده مبالغه ده،حمد دشکرنه عام دې.شکروانی ديو محسن ورکړې شوی نعمتونو باندې دهغه ثناء وئيلوته. په عربۍ ژبه کښې (شکرته)او(شکرت له) دواړه وئيلې شی ليکن لام سره وئيل زيات فصيح دی ، د مدح لفظ د حمد نه هم زيات عام دې. خکه ژوندې ،مړ،بلکه جماداتو دپاره هم د مدح لفظ استعمالولې شی.د خوراك او دمکان اودداسې څيزونو مدح کولې شی،د احسان نه مخکښې احسان نه پس لازمی صفتونو باندې متعدی صفتونه باندې ددې اطلاق کيدلې شی،نو ددې عام کيدل ثابت شو. والله اعلم.

**دحمد تفسير کښې دسلفودعالمانو اقوال:**-حضرت عمر فاروق يو ځل اوفرمائيل چه(سبحان الله) او(لااله الاالله) اوبعضو روايتونو کښې دی چه (الله اکبر) خومونږ ته پته ده ليکن دا د﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ څه مطلب دې.حضرت علی ﷺ جواب ورکړو دا کلمه الله ﷻ دځان دپاره خوښه کړې ده. اوبعضو روايتونو کښې

[1] ) الطبری: ۱/۱۳۵)-

[2] ) الطبری: ۱/۱۳۷)-

دی ددې وئیل الله ﷻ دپاره بنه لري.(١) حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه دا کلمه دشکر ده ، ددې په جواب کښې الله ﷻ فرمائي چه خما بنده خما شکر اداکړو. نو په دې کلمه کښې دهغه ذات دشکر نه علاوه دهغه دنعمتونو ،هدايتونو اواحسان وغيره اقرار هم دې.دحضرت کعب بن احبار ﷺ قول دې چه دا کلمه دالله ﷻ ثناء ده ، ضحاك وائي چه دا دالله څادر دې،يو حديث کښې داسې هم دی چه رسول الله ﷺ فرمائي چه کله تاسو ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ اووئيل نوتاسودالله شکراداکړو،اوس به الله ﷻ تاسو ته برکت درکړي.(٢) حضرت اسود بن سريع يوځل د رسول کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو چه ما دالله ﷻ په حمد کښې اشعار وئيلی دی که اجازت وی نو هغه به واوروم. وې فرمائيل چه الله ﷻ ته خپل حمد ډير خوښ دې.(٣) (مسند احمد ونسائی)

**افضله دعا:**- ترمذی نسائي او ابن ماجه کښې هم حضرت جابر بن عبدالله ﷺ نه روايت دې چه رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چه افضل ذکر ﴿لااله الا الله﴾ دې او افضله دعا ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ ده. امام ترمذی رحمه الله دې حديث ته غريب وئيلی دی.(٤)دابن ماجه په يوحديث کښې دی چه کوم يو بنده ته الله ﷻ څه نعمت ورکړي او هغه په دې باندې﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ اووائي نو دا ددې ورکړې شوی نعمت نه افضل دې.(٥)

**دنعمت په ملاويدو حمد وئيل:**فرمائي چه که خما په امت کښې الله ﷻ چاته دنيا ورکړی اوهغه ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ اووائي نودا کلمه دټولې دنيا نه افضله ده. قرطبی رحمه الله فرمائي چه مطلب دادې چه ټول ورکړه دومره لوئې نعمت نه دې چه څومره د﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ دوئيلو توفيق دې. ځکه چه دنيا فاني ده او دا کلمه پاتې کيدو والا ده. لکه څنګه چه په قران پاك کښې دی ﴿اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ﴾ يعنی مال او اولاد ددنيا زينت دې. اونيك اعمال هميشه پاتې کيدونکی اوثواب والا او نيك اميد والا دی.

ابن ماجه کښې دحضرت عمرفاروق ﷺ نه روايت دې چه رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چه يوسړی اووئيل چه﴿ياربِّ لك الحمد كما ينبغي لجلال وجهك وعظيم سلطانك﴾ نوفرښتې اوويريدې چه مونږ ددې اجر څومره اوليکو آخر الله ﷻ ته دوی عرض اوکړو چه ستا بنده دا کلمه وئيلې ده اومونږ نه پوهيږو چه ددې څه اجر اوليکو؟الله ﷻ ورته سره د خبر نه اوفرمائيل هغه څه وئيلی دی ؟ هغوی اووئيل چه ده داکلمه وئيلې ده . الله ﷻ اوفرمائيل داهم داسې اوليکئی زه به ددې اجر خما سره دملاقات په وخت کښې ورکوم. (٦)

**په کمله دتوحيد د الحمد فضيلت:**-قرطبی رحمه الله دعلماء کرامو يوجماعت نه نقل کوی چه ﴿لااله الا الله﴾ نه هم﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ افضل دې. ځکه چه په دې کښې چه توحيد اوحمد دواړه دی. اودعلماء کرامو خيال دې چه ﴿لااله الا الله﴾ افضل ده ځکه چه په ايمان او کفر کښې دا فرق کوی. هم ددې وئيلو دپاره کفارو سره جنګونه اوشول لکه په صحيح بخاری کښې او صحيح مسلم کښې چې په يو حديث کښې هم دی.(٧)او په يو مرفوع حديث کښې دی چه څه ما او خما نه مخکښې ټولو نبيانو اووئيل په هغې کښې د ټولونه افضل ﴿لااله الا الله وحده لاشريك له﴾ ده(١).

---

[1] ) ابن ابی حاتم : ١/١٥)-

[2] ) الطبری: ١/٦٠)-

[3] ) السنن الکبر للنسائی: ٧٧٤٥، احمد: ٣/٤٣٥)-

[4] ) ترمذی باب الدعوات باب ما جاء ان دعوة المسلم مستجابة رقم: ٣٣٨٣، ابن ماجة: ٣٨٠٠، اليوم والليله؟؟ للنسائی: ٨٣١، ابن حبان: ٨٤٦)

[5] ) ابن ماجة كتاب الادب فضل الحامدين: ٣٨٠٥)-

[6] ) ابن ماجة كتاب الادب فضل الحامدين: ٣٨٠٥)-

[7] ) صحيح بخاری : كتاب الزكوة باب وجوب الزكاة : ١٣٩٩، صحيح مسلم: ٢٠٤)-



حضرت جابر ﷺ نه په یو مرفوع حدیث کښې مخکښې تیر شوی دی چه افضل ذکر (لااله الاالله) او افضله دعا (اَلْحَمْدُلِلّٰهِ رَبِّ) ده. ترمذی دې حدیث ته حسن ونیلی دی.(۱)

**د ,,الحمد،، کښې د الف لام تشریح:-** الحمد کښې الف لام استغراق دپاره دی یعنی دحمد ټول قسمونه اوجنسیات ټول په ټوله صرف دالله ﷻ دپاره ثابت دی لکه څنګه چه په یوحدیث کښې دی اني الله ﷻ هم ستا دپاره ټول تعریفونه دی او ټول ملکونه دی ، هم ستا په اختیار کښې ټولې ښیګړې دی او ټول کارونه هم ستا طرف ته رجوع کوی. (۲)

**قوله تعالی:- رَبِّ**

**د رب معنی:-** رب وانی مالك اومتصرف ته . لغت کښې ددې اطلاق سردار او اصلاح دپاره هلې ځلې کولو والا باندې هم کیږی او ددې ټولو معنو په اعتبار سره د پاك ذات دپاره دا نوم ښائیږی. درب لفظ هم سوا دالله ﷻ د بل چا دپار ه نشی ونیلې کیدې. خوپه اضافت سره که وی نو بله خبره ده لکه څنګه (ربالدار) یعنې کور والا وغیره دی. د بعضو قول دې چه دا اسم اعظم دې.

**قوله تعالی:- اَلْعٰلَمِیْنَ**

**دعالمین تشریح :-** (اَلْعٰلَمِیْنَ) جمع ده د(عالم)د الله ﷻ نه سوا ټول مخلوق ته عالم ونیلې شی،لفظ دعالم هم جمع دې اود دې واحد لفظ نشته دې.دآسمانونو مخلوق اود اوچې او لمدې مخلوق ته هم عوالم یعنی ډیر عالمونه ونیلې کیږی. دا شان یوې یوې زمانې او یویو وخت ته هم عالم ونیلې کیږی.
حضرت ابن عباس ﷺ نه ددې آیت تفسیر په باره کښې روایت دې چه ددې نه مراد ټول مخلوق دې که هغه په آسمانونو یا په زمکو کښې دی یا ددې په مینځ کښې دی،که د هغې علم مونږ ته وی اوکه نه وی ،داشان ددې نه جنات او انسانان هم مراد اخستلې شوی دی. حضرت سعید بن جبیر رحمه الله ، حضرت مجاهد رحمه الله او ابن جریج رحمه الله نه هم دا روایت دې. حضرت علی ﷺ نه هم غیر معتبر سند سره دامنقول دی. ددې قول دلیل داقرآن پاك په دې آیت کښې هم( لِیَکُوْنَ لِلْعٰلَمِیْنَ نَذِیْرًا۞) بیانولې شی یعنی تردې چه هغه( اَلْعٰلَمِیْنَ ) یعنی جن وانس لره ویرولو والا جوړ شی.
دفراء او ابوعبیده قول دې چه پوهه ته عالم ونیلې شي. او انسانان او جنات ،فرښتې او شیاطین هغه ته عالم وانی.څناورو ته به نشی ونیلې. زید بن اسلم رحمه الله او ابومحیص رحمه الله فرمانی چه په روح والا څیز به عالم ونیلې شی. قتاده رحمه الله فرمانی چه هر قسم ته یو عالم وانی ، مروان بن حکم عرف جعد چه دده لقب حمار وو او په بنو امیه کښې وو او دخپلې زمانې خلیفه وو ، وانی چه الله ﷻ اویا زره عالمان پیدا کړی دی. آسمان والا یو عالم، زمکې والا ټول یو عالم ، او باقی الله ﷻ ته ددې پته ده . مخلوق ته ددې پته نشته دې. ابوالعالیه رحمه الله فرمانی چه ټول انسانان یو عالم دې ،دټولو جناتو یو عالم دې او ددې نه سوا اتلس زره یا څوارلس زره عالم دی. او فرښتې په زمکه دی اود زمکې څلور ګوټونه دی او په هر ګوټ کښې درې نیم زره عالمونه دی. چه دا الله ﷻ صرف دخپل عبادت دپاره پیدا کړی دی. دا قول بالکل غریب دې اوداسې خبرې چه کله څه دصحیح قول نه ثابتې نه وی نو دمنلو قابلې نه وی. حمیری وانی یو زر امتونه دی،شپږ سوه په لمده اوڅلور سوه په اوچه کښې،حضرت سعید بن مسیب رحمه الله نه هم دا روایت دې ، یو ضعیف روایت کښې دی

---

۱) ترمذی ابواب الدعوات باب فی دعاء یوم عرفة: ۳۵۸۵، احمد: ۲۱۰/۲، بیهقی : ۱۱۷/۵، موطا امام مالک: ۲۱۴/۱، تخریج فتح المجید لعبد الرازق المهدی: ۴۰)-

۲) ترمذی ابواب الدعوات باب ماجاءان دعوة المسلم مستجابة : ۳۳۷۳، وسنده حسن ابن ماجة : ۳۸۰۰)-

۳) احمد: ۳۴۶/۵)-

**د ملخانو ورکيدل:-** د حضرت عمرفاروق ﷺ په خلافت کښې يو کال مولخان اونه ليدلي شول بلکه په تپوس کولو هم پته اونه لګيده. دوی غمژن شول او يمن اوشام طرف ته ني سواره اوليږل چه په نورو خابونو کښې مولخان شته دي اوکه نه . نو يمن والا کس لږ شان مولخان راوړل او دامير المومنين په مخکښې ني پيش کړل. دوی چه کله هغه اوکتل او تکبير ني اووئيلواو وې فرمائيل چه ما درسول الله ﷺ نه آوريدلي دی چه فرمائيل ني چه الله ﷻ يو زر امتونه پيدا کړي دی چه په دې شپږ سو په لمده کښې دی او څلور سوه په اوچه کښې دی. په دې کښې دټولونه مخکښې چه کوم امت به هلاکيږي نو هغه به مولخان وی. نوددې دهلاکت نه پس به پرله پسې نور امتونه هلاکيږی لکه څنګه چه دتسبيح تاراوشليږی اويوبل نه پس ټولې مرنی ګډې وډې شی. ددې راوی محمد بن عيسی هلالی ضعيف دې. سعيد بن مسيب رحمه الله نه هم دا قول روايت دی. (۱)

**اويازره مخلوقات:-** وهب بن منبه فرمائی چه اتلس زره عالمونه دی ،ټوله دنيا په دې کښې يو عالم دې. حضرت ابوسعيد خدری ﷺ فرمائی چه څلويښت زره عالمونه دی ،او ټوله دنيا په دې کښې يو عالم دې. زجاج رحمه الله فرمائی چه الله ﷻ په دنيا او آخرت کښې څه پيدا کړی دی هغه ټول يوعالم دې. قرطبی رحمه الله دې قول ته صحيح وئيلی دی. ځکه چې دا په ټولو عالمينو کښې شامل دې. لکه فرعون چه ددې سوال په جواب کښې وئيلی وو ستا رب څوك دې؟ حضرت موسی ﷺ فرمائيلی وو چه دآسمانونو او زمکې ترمينځه څه دی ددې ټولو رب هغه پاك رب دې. دعالم لفظ دعلامت نه مشتق دې ځکه چه عالم يعنی مخلوق خپل پيدا کولو والا او جوړولووالا باندې نښه او دده وحدانيت باندې علامت دې. لکه ابن معتز شاعر وائی چه :

فيا عجبه کيف يعصی الاله ام کيف يجحده الجاحد
وفی کل شئ له اية تدل علی انه واحد

يعنی تعجب دې چه څنګه دالله ﷻ نافرمانی کولې شی او څنګه دهغه نه انکار کولې شی حالانکه په هرڅيز کښې دهغه دپاره نښه ده او دده په وحدانيت باندې دلالت کوی.

د ﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ نه پس د ﴿ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ تفسير اولولئ:

| الرَّحْمٰنِ | الرَّحِيْمِ |
|---|---|
| ډيرمهربان | زيات رحم کونکې دې |
| بيحده مهربان اوډيررحم کونکې دې | |

ددې مکمل تفسير مخکښې تيرشوې دې او اوس د دوباره تفسير ضرورت نشته دې. قرطبی رحمه الله فرمائی چه د ﴿ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ دوصف نه پس د ﴿ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴾ وصف دترهيب عينی ويرولو نه پس د ترغيب يعنی اميد دې لکه فرمائی چه ﴿نَبِّئْ عِبَادِيْ﴾ يعنی خما بندګانو ته خبر اوکړه چه څه بخښونکې اومهربان يم او خما عذاب هم دردناك دې او وې فرمائيل چه ستا رب سزا ورکولو والا او مهربانی اوبخښلووالا هم دې.(۲)

**په رحمن او رحيم کښې اميد:-** د رب لفظی معنی د ويرولو ده. او درحمان او درحيم په لفظ کښې اميد دې. صحيح مسلم چه د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل که ايمان دار دالله ﷻ د غضب اوغصې او دده دسختو عذابونو نه پوره واقف وې نو په هغه وخت کښې به دده دزړه نه د

---

۱) مجمع الزوائد للهيثمی : ۳۲۲/۷-
۲) قرطبی : ۱۳۹/۱-

جنت طمع وتلې وي اوکه کافر دالله ﷻ دنعمتونو او دده درحمتونو نه پوره واقف وي نو کله به نه نااميده کيدو ()

| مٰلِكِ | يَوۡمِ الدِّيۡنِ ۝ |
|---|---|
| د مالک | د ورځې قيامت دې |
| دانصاف دورځې(تنها) واکدار دې | |

**مالک قراءت**: بعضې قاريانو (مٰلِكِ) ونيلې دې او باقي ټولو (مٰلِكِ) او دواړه قراتونه صحيح او متواتر دی. اود اووه واړه قراتونو نه دی. اومالك ﷫ دلام زير او ددې سکون سره (مَلِكِ)او(مَلِكَي) هم ونيلې دې. مخکښنې دواړه قراء تونه دمعنی په اعتبار سره ترجيح والا اودواړه صحيح دی. او بنـه دی. زمحشري ﷫ (مَلِكِ) ته ترجيح ورکړې ده. خکه حرمينووالوداقراءت دې اويه قران هم(لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ) او(قَوْلُهُ الْحَقُّ وَلَهُ الْمُلْكُ) دی. حضرت امام ابوحنيفه ﷫ نه روايت دې چه هغوی(مَلِكِ) اوونيلو، په دې وجه فعل اوفاعل او مفعول رازی. ليکن دا شاذ دی اوډير غريب دې،ابوبکر بن ابوداود ﷫ په دې کښې يو غريب روايت نقل کړې دې چه حضرت رسول اکرم ﷺ او درې واړه خلفاء کرامو ﷺ او حضرت امير معاويه ﷺ او دده خونې به هم دا ونيلو. ابن شهاب ﷫ وائي چه دټولونه مخکښې مروان(مَلِكِ) اوونيله،زه وايم چه مروان ته په دې خپل قرات باندې د صحت اطلاع وه چه راوی ابن شهاب ته نه وه ، والله اعلم.

ابن مردويه ﷫ نه په ډير وسندونو سره دا بيان شوی دی حضرت رسول اکرم ﷺ به مالك لوستل.د مالك لفظ دملك نه ماخوذ دې لکه څنګه چه په قرآن پاك کښې دی چه(اِنَّا نَحْنُ نَرِثُ الْاَرْضَ)يعنی د زمکې او ددې دپاسه د ټول مخلوق هم مونږ مالکان يو.اومونږ طرف ته مخلوق ټول رازی. او وې فرمائيل چه ( قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ ۝ مَلِكِ النَّاسِ ۝) يعنی اووايه چه خه پناه غواړم دخلقو په رب سره او د خلقو په مالك سره. اودملك لفظ دملك نه ماخوذ دې. لکه فرمائي(لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ)يعنی نن ملك دچا دې؟ صرف دالله ﷻ چه غلبې والا دې. او فرمائي چه (قَوْلُهُ الْحَقُّ وَلَهُ الْمُلْكُ) يعنی دهغه حق فرمان اوهم دهغه ټول ملك دې. اوفرمائي چه نن هم درحمن حق دې او نن ورځ په کافرانو باندې ډيره سخته ده. په دې فرمان کښې دقيامت په ورځ سره دملکيت تخصيص کولو سره دې دا دې اونه ګنړلې شی چه دهغه نه سوا انکار دې. خکه چه مخکښې خپل صفت (رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝)کيدل بيان شو. چه دنيا اوآخرت دواړو ته شامل دی. دقيامت په ورځ سره ددې تخصيص وجه داده چه په هغه ورځ به هيڅوك دملکيت دعوی کوونکې نه وی. بلکه بغير ددې حقيقی مالك داجازت نه به څوك ژبه هم نه شي خوزولې.لکه فرمائي چه په کومه ورځ روح او فرښتې په صف کښې ولاړې وی اونور هيڅ کار به نشی کولې تر دې پورې چه رحمان ورته اجازت ورکړی او هغه صحيح خبره ده. يو بل ځائې ارشاد دې چه ټول آوازونه د رحمن وړاندې کمزوری دی او سوا د ګنړاری به هيڅ نه شي آوريدلې. او فرمائي چه کله قيامت راشی نو په هغه ورځ به د رب العالمين د اجازت نه بغير به هيڅ سړې خبرې نشی کولې.بعضې به په دې کښې بدبخته وی او بعضې نيك بخته

حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه په هغه ورځ به دهغه پاك ذات په بادشاهۍ کښې دهغه نه سوا نور څوك نه وی لکه څنګه چه په دنيا کښې مجازی طور وو( يَوۡمِ الدِّيۡنِ ۝) نه مراد دمخلوق دحساب ورځ يعنی قيامت دې. چه په کومه ورځ به د ټولو ښه اوبد اعمالو بدله به ورکولې شی خو که د بدئ ورته

[1] صحيح بخاری:کتاب الرقاق باب الرجاء مع الخوف: ٦٤٦٩، وانظر: ٦٠٠٠، صحيح مسلم: ٢٧٥٥، ترمذی: ٣٥٤٢)

الله ﷻ معافي کوي نو دا د هغه رب اختيار کښې دي. صحابه کرام ﷺ،تابعين اوسلف صالحين رحمهم الله نه هم دا روايت دي،بعضو نه دا قول هم نقل دي چه واني چه ددې نه مراد دادې چه الله ﷻ د قيامت په قائم کولو باندې قادر دې. ابن جرير رحمه الله دې قول ته ضعيف ونيلي دی ليکن په ظاهر کښې په دې دواړو اقوالو کښې څه مخالفت نشته دې.دهر يو قائل قول د بل د قول تصديق کوي،خود رومبی قول مطلب باندې دلالت کوی لکه څنګه چه فرمان دې چه﴿اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِلّٰهِ﴾ اوبل قول ددې آيت مشابه دې. چه فرمائی﴿وَيَوْمَ يَقُوْلُ كُنْ فَيَكُوْنُ﴾يعنی په کومه ورځ چې به اووائی چه شه نوشي به هم په هغه وخت والله اعلم.

**د شهنشاه وئيلو حکم** :حقيقي مالك هم الله ﷻ دې لکه فرمائی﴿هُوَ اللّٰهُ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْمَلِكُ﴾بخاری شريف اومسلم شريف کښې دحضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه رسول کريم ﷺ فرمانيلی دی چه بدترين نوم دالله ﷻ په نيز دهغه سړی دې چه هغه ته شهنشاه اوونيلې شی،حقيقی مالك الله ﷻ نه سوا بل څوك نشته(١)

**دالله نه سا (مالك) بل چاته د وئيلو حکم**:-يو حديث شريف کښې دی چه الله ﷻ به زمکه په خپله قبضه کښې واخلي او آسمان به دده ښی لاس کښې راغونډ وی بیا به فرمائی چه څه بادشاه یم ،اوبه ونیلې شی چه دزمکې بادشاهان چرته لاړل؟ تکبر کوونکي چرته لاړل؟(٢)په قران عظيم الشان کښې دی نن بادشاهی دچا دې؟ صرف دالله ﷻ غلبې والا ده؟ اونور چا ته دا ونيل صرف مجازا ونيلی شی،په قران عظيم الشان کښې طالوت ته ملك اوونيلې شو اود﴿وَكَانَ وَرَآءَهُمْ مَّلِكٌ﴾ لفظ راغلې دې (٣)او په بخاری اومسلم شريف کښې دملوك لفظ راغلې دې اوبه قران عظيم الشان کښې دی چه﴿ اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا﴾يعنی تاسو کښې ئې نبيان پيدا کړل او بادشاهان مو جوړ کړل .

**قوله تعالي**:- الدِّيْنِ

**د دين معنی** :هغه ورځ د بدل جزا اوحساب ده لکه په قران عظيم الشان کښې دی ، په هغه ورځ به الله ﷻ دوی ته پوره پوره بدله ورکړی او دوی به پوهه شی،اوبه بل ځائې کښې دی چه آيا مونږ به بدله ورکوو؟ په يوحديث شريف کښې دی چه هوښيار هغه دې دخپل نفس نه پخپله بدله واخلی اودمرګ نه پس په کار راتلونکی کارونه اوکړی (٤)يعنی خپل نفس سره خپله حساب اوکړی. لکه د حضرت عمر فاروق ﷺ قول دې چه تاسو پخپله دخپلو نفسونو نه حساب واخلئ ددې نه مخکښې چه ستاسو حساب واخستلې شی او دخپلو عملونو پخپله وزن اوکړئ ددې نه مخکښې چه په تله کښې کيخودلې شی. اود هغه لوئې پيښې دپاره تيار شئ کله چه تاسو د هغه الله ﷻ په مخکښې اودريږئ چه په هغه باندې ستاسو هيڅ عمل پټ نه دې لکه پخپله الله ﷻ اوفرمائيل چه په کومه ورځ تاسو پيش کولې شئ نو هيڅ يوه خبره به درنه پټه نه وی.

| نَسْتَعِيْنُ ۝ | وَاِيَّاكَ | نَعْبُدُ | اِيَّاكَ |
|---|---|---|---|
| او هم خاص ستا نه مدد غوارو | | خاص ستا عبادت کوو | |
| انې الله مونږ صرف ستا عبادت کوو او صرف ستا نه مدد غواړو | | | |

---

١) صحيح مسلم کتاب الادب باب تحريم التسمي بملك الاملاک: ٢١٧٣، ابوداود: ٤٩٦١، ترمذی: ٨٣٧)-

٢) صحيح بخاری کتاب التفسير تفسير سورة الزمر : ٤٨١٢، صحيح مسلم: ٢٧٨٧، ابن ماجة: ١٩٢)-

٣) صحيح بخاری کتاب الجهاد باب فضل مايصرع في سبيل الله فمات فهزموهم رقم: ٢٧٩٩، صحيح مسلم: ١٩١٢)-

٤) ترمذی: ابواب صفة القيامة باب حديث الکيس من دان نفسه : ٢٤٥٨، -

**قوله تعالي. إِيَّاكَ نَعْبُدُ**

**عبادت څه څیز دي**:اووه وارِه قرا،حضرات اوجمهورودا﴿إِيَّاكَ﴾لوستلي دي،عمر بن فانددا﴿إِيَاكَ﴾ لوستلي دي ﴿إِيَّاكَ﴾ ليكن داقراءت شاذ اومردود دي څکه چه د﴿إِيَّاكَ﴾ معنی دنمر رڼرا ده اوبعضودا﴿حَيَّاكَ﴾ لوستلي دي اوبعضو﴿هَيَّاكَ﴾لوستلي دي.دعربوشاعرانوپه شعر کښې هم﴿هَيَّاكَ﴾ونيلي دي﴿نَسْتَعِينُ﴾هم دا قراءت دټولو قراء حضراتو دي. سوا د يحيى بن وثاب رحمه الله اواعمش رحمه الله نه ، دوی دواړه مخکښې نون په زير سره وائي. دقبيله بنو اسد ،ربيعه اوبنو تميم هم دا لغت دي. لغت کښې عبادت ته ونيلې شي اوذلت او کمزورنی ته. طر يق معبد هغه لارې ته ونيلي شي چه ذليله وی داشان ﴿بعير معبد﴾هغه اوښ ته وائی چه ذليله وی

**دعبادت شرعی تعريف**:-او په شريعت کښې دعبادت نوم دي. محبت خشوع خضوع او د وېرې مجموعه ده. لفظ د﴿إِيَّاكَ﴾ چه مفعول دي مخکښې راوړې شو اوبيا همدا دوباره اولوستلي شو چه ددې اهميت زيات شي اوعبادت او طلب دمدد دالله ﷻ دپاره مخصوص شي. نو ددې جملې معنی دا شوه چه مونږ ستا نه سوا د بل چا عبادت نه کوو اوستا نه سوادبل چا نه مدد نه غواړو د کامل اطاعت اود پوره دين حاصل هم دا دوه څيزونه دی.

**فاتحه د ټول قران خلاصه**:-دبعضو سلفوفرمان دې چه دټول قران پاك راز سورت فاتحه دې. او دپوره سورت راز په دې آيت ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾کښې دي. دآيت په رومبئ حصه کښې دشرك نه دبيزارئ اعلان شوې دې. او په بله جمله کښې دخپلو قوتونو او طاقتونو انکار دې او دالله ﷻ طرف ته خپل ټول کارونه حواله کول دی. ددې مضمون نور هم ډير آيتونه په قران کريم کښې موجود دی. لکه فرمائي ﴿فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ﴾يعنی دالله ﷻ عبادت کونې اوهم په هغه ذات بهروسه کوئی. ستارب ستا د عملونو نه غافله نه دې.بل ځائې کښې فرمائي﴿قُلْ هُوَ الرَّحْمَنُ﴾اووايه چه هم هغه پاك ذات رحمن دې، مونږ په هغه پاك ذات باندې ايمان راوړې دې .او په هغه باندې توكل كوو. اوفرمائی چه ﴿رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلًا﴾يعنی مشرق اومغرب دهغه پاك ذات دی،دهغه نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته دې ، نوته هغه پاك ذات لره خپل كار ساز اوګڼره. هم دا مضمون په دې آيت كريمه كښې راغلې دې. ددې نه مخکښې آيتونوکښې خطاب نه وو (بلکه دغائب صيغه استعمال شوې وه )ليکن په دې آيت کريمه کښې الله ﷻ ته خطاب اوكړې شو (اياك اوونلي شو) چه ډير زيات لطافت او مناسبت لری.

ددې وجې کله چه بنده دالله ﷻ صفتونه اوثناء بيانوی نو ګويا چه ده دالله ﷻ قرب ته حاضر شو.اودالله ﷻ حضور ته اورسيدو اوس هغه مالك ته خطاب کوی اودخپل ذلت او عاجزنی اظهار کوی.او وائی چه ائې الله ﷻ مونږ خوستا ذليله غلامان يو اوپخپلو ټولوکارونو کښې هم ستامحتاج يو.په دې آيت کريمه کښې ددې خبرې هم دليل دې چه ددې نه مخکښې ټولو جملو کښې خبر وو.

**الله خپله خپل تعريف کول**: الله ﷻ پخپلو بهترينو صفاتوخپله ثناء پخپله بيان کړې ده اوخپلو بندګانوته نې هم په دې صفاتو دبيانولو ارشاد فرمائيلې دې. ددې وجې دهغه سرې مونځ صحيح نه دې چه هغه ته داسورت لوستل معلوم وی. او بيا نې اونه اووائی لکه بخاری شريف او مسلم شريف يوحديث د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چه دهغه سرې مونځ نه کيږی چه هغه په خپل مونځ کښې سورت فاتحه اونه وائی. ([1])

**دسورة فاتحې تقسيم**:-صحيح مسلم کښې دحضرت ابو هريره رضي الله عنه نه يوحديث نقل دې چه رسول کريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه د الله ﷻ فرمان دې چه ما مونځ په خپل مينځ کښې اود بندګانو په مينځ کښې

[1] ) صحيح كتاب الاذان باب وجوب القراءة الامام والماموم: ٧٥٦، صحيح مسلم: ٣٩٤)-

نیم نیم تقسیم کړې دې ، ددې نیمه حصه څما ده او نیمه حصه څما دبنده دپاره ده . او څما بنده دپاره هغه دی چه څه هغه طلب کوی. کله چه بنده ﴿اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ﴾ اووائی نوالله ﷻ فرمائی چه څمابنده څما حمد بیان کړو. کله چه وائي﴿الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ﴾ نوالله ﷻ فرمائی چه څما بنده څما ثناء بیان کړه. کله چه ﴿مٰلِکِ یَوۡمِ الدِّیۡنِ﴾ اووائی کله چه هغه﴿ اِیَّاکَ نَعۡبُدُ وَاِیَّاکَ نَسۡتَعِیۡنُ﴾اووائی نوالله ﷻ فرمائی چه داڅما او څما دبنده په مینځ کښې دی او څما دبنده دپاره هغه دی چه څه هغه غواړی ،بیا آخرسورت پورې وائی نوالله ﷻ فرمائی چه دا څما دبنده دپاره دی او څما بنده چه څما نه څه غواړی نودهغه دپاره دی.(1)

**قوله‌تعالیٰ:- اِیَّاکَ نَعۡبُدُ**

**دعبادت او مدد غوښتلو لائق څوک دی ؟:-**حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه د ﴿اِیَّاکَ نَعۡبُدُ﴾ معنی دا ده چه اې الله ﷻ مونږ خاص ستا توحید منو اومونږ هم خاص ستا نه ویرېږو اوهم ستا دذات نه امید لرو. ستانه سوادبل چا خونه مونږ عبادت کوؤ اونه د چا نه امید ساتو.اود ﴿ وَاِیَّاکَ نَسۡتَعِیۡنُ﴾نه مراد دادې چه مونږ ستا په اطاعت باندې په خپلو ټولو کارونو کښې هم ستا نه مدد غواړو.قتاده ﷫ فرمائی چه مطلب دادې چه د الله ﷻ حکم دې چه تاسو ټول خالص دهغه عبادت کوئی اوتاسو ټول په خپلو کارونو کښې دهغه پاك ذات نه مددغواړئی.

**د عبادت دتقدیم وجه** او﴿اِیَّاکَ نَعۡبُدُ﴾ مخکښې بیانول ددې وجې دی چه اصل مقصود دالله ﷻ عبادت دې اومدد طلب کول دا دعبادت وسیله او اهتمام او ددې پوخ والې دې اودا ظاهره ده چه زیات اهمیت والا څیز مخکښې راوړل او دې نه کم اهمیت والا څیز ددې نه پس راوړلی دی. والله اعلم.

**دجمعې د صیغې راوړو وجه**:-که اووئیلې شی چه په دې ځائې د جمعې د صیغې دبیانولو یعنی د "مونږ" څه ضرورت وو؟ که دا دجمعې دپاره ده نو ویونکې خو یو دې اوکه د تعظیم دپاره ده نو په دې مقام کښې دا ډیر زیات نامناسب دی ځکه چه په دې ځائې کښې خو عاجزی ظاهرول مقصود دی. ددې جواب دادې چه دیو بنده دطرف نه ټولوبندګانو لره خبردار کوی اوخاص کر چه کله دې عبادت ته اودریدو یا امام جوړ شو،نو ګویا چه دې دخپلو ټولومومنانو رونړو د طرف نه اقرار کوی چه هغه ټول ددې پاك ذات بندګان دی. اوهم دهغه عبادت دپاره پیدا شوی دی. اودې دهغوی د طرف نه دبنیګړې دپاره مخکښې شوې دې.

بعضو ونیلی دی چه دا دتعظیم دپاره دی ګویا کله چه بنده عبادت کښې داخلیږی نو هم هغه ته ونیلې شی چه ته شریف نې او اوستا عزت زمونږ په دربار کښې ډیرزیات دې. نو اوس﴿اِیَّاکَ نَعۡبُدُ وَاِیَّاکَ نَسۡتَعِیۡنُ﴾ اووایه او خپل ځان په عزت سره یاد کړه . که عبادت نه بیل شوې نو په هغه وخت کښې " مونږ " مه وایه اګرکه په زرګونو اولکهونو کښې یې ځکه ټول په ټوله دالله ﷻ محتاج دی او دده په دربار کښې فقیران دی.

دبعضوقول دې چه﴿ اِیَّاکَ نَعۡبُدُوۡا ﴾ کښې تواضع اوعاجزی ده اوهغه په﴿ایاك عبدنا﴾ کښې نشته دې ددې وجې چه په دې کښې خپل دنفس لوئې والې او دخپل عبادت اهلیت مونډلې شی. حالانکه هیڅ یوبنده د الله ﷻ په پوره عبادت او چه څنګه غواړی په هغه شان صفت او ثناء باندې د بیانولو قدرت نه لری. دیوشاعر قول دې چه ماته دهغه غلام اووایه ځکه څما د ټولو نه ښه نوم هم دادې.

**نبی کریم ته عبد وئیل:-** الله ﷻ د خپل رسول ﷺ نوم عبد یعنی غلام په هغه ځایونوکښې اخستې دې . چه په کوم ځائې کښې دخپلو لویو لویو نعمتونو ذکر ئې کړېدې لکه قران پاك نازلول ، مونځ ته اودریدل ،معراج کول وغیره فرمان دې چه ﴿اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡۤ اَنۡزَلَ عَلٰی عَبۡدِهِ الۡکِتٰبَ وَلَمۡ یَجۡعَلۡ لَّهٗ عِوَجًا﴾ ،بل ځائې

---

(1) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب وجوب قراة فاتحة الکتاب فی کل رکعة : ۳۹۵)-

کښې فرمائي چه ﴿ وَأَنَّهُ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللَّهِ يَدْعُوهُ كَادُوا يَكُونُونَ عَلَيْهِ لِبَدًا ﴾ او ﴿سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ﴾ او ورسره قران پاك داتعليم ورکړو چه اني نبي ﷺ چه په کوم وخت کښې ستا زړه دمخالفينو په رټلوسره تنګ شي نو ته ځما په عبادت کښې مشغول شه.فرمان دې﴿وَلَقَدْ نَعْلَمُ﴾ يعنې مونږ ته معلومه ده دمخالفو خلقو خبرې ستازړه ته درد ورکوي نو ته په داسې وخت کښې دخپل رب تسبيح بيانوه اوسجده کوه. اودمرګ وخت پورې دخپل رب عبادت کوه .

**دعبادت مقام د رسالت نه افضل:** رازي ﷫ پخپل تفسير کښې دبعضو خلقونه نقل کړې دي چه دعبوديت مقام درسالت دمقام نه افضل دې ځکه چه دعبادت تعلق مخلوق نه خالق طرف ته دې. اود رسالت تعلق د الله نه د مخلوق طرف ته دې. او ددې دليل نه هم دا ثابتيږي چې د بنده د ټولو اصلاحي کارونومتولي پخپله الله ﷻ دې . او رسول د خپل امت د مصلحتونو والي وي. ليکن دا قول غلط دې او ددې دواړه دليلونه بوګس او لاحاصل دي،افسوس چه رازي ﷫ نه دې ته ضعيف اووئيل اونه ئې دا رد کړو،

**دعبادت اغراض:**-دبعضو صوفياء کرامو قول دې چه عبادت يا خو دثواب حاصلولو دپاره وي اويا د عذاب لرې کولو دپاره وي، هغوي وائي چه دا څه دفائدې خبره نه ده. ځکه چې په دې وخت کښې مقصد صرف او صرف د خپل مراد حاصلول دي . اوددې مقصد حاصلولو دپاره په تکليفونو راضي کيدل هم کمزوري ده .د اعلى مرتبې عبادت دادې چه انسان دهغه مقدس ذات چه دټولو کاملو صفاتو سره موصوف دې ،صرف دهغه عبادت اوکړي او مقصود ئې هيڅ نه وي. ددې وجې مونږ صرف دالله ﷻ دپاره ادا کولې شي.که هغه د ثواب موندل او عذاب لرې کولو دپاره وي نو باطل دې. دويم که ددې ترديد کوي او وائي چه عبادت د الله ﷻ دپاره کيدل څه ددې خلاف نه دې د ثواب دطلب دپاره او عذاب نه بچ کيدو دپاره مطلوب نه وي. ددې دليل دا دې چه يو اعرابي د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او وې وئيل چه يارسول الله ﷺ نه خه لوستونکې يم ستا په شان او نه د معاذ په شان خه خو دجنت سوال کوم او دجهنم نه نجات غواړم .حضور ﷺ اوفرمائيل چه مونږ هم ددې نزدې نزدې يو

| اِهْدِنَا | الصِّرَاطَ | الْمُسْتَقِيْمَ | |
|---|---|---|---|
| اوښايه مونږ ته | لار | نيغه | |
| (اني الله) مونږ په نيغه لار روان کړه | | | |

قوله تعالى:- اِهْدِنَا

**دسوال کولو طريقه :**-جمهورو ﴿صِرَاطَ﴾ لوستلې دې،بعضو ﴿سِرَاطَ﴾ لوستلې دې او زې هم يوقراءت دې. فراء وائي چه دبني عذره او بني کلب هم داقراءت دې. چونکه مخکښې ئې ثناء اوصفت بيان کړونو اوس مناسب وو چه دخپل حاجت طلب کړي لکه څنګه چه مخکښې حديث کښې تير شو چه ددې نيمه حصه ځما دپاره ده اونيمه حصه ځما دبنده دپاره او ځما دبنده دپاره هغه دي چه هغه طلب کړي. خيال اوکړئ چه په دې کښې څومره لطافت او ښه والې دې اومخکښې دپروردګارعالم تعريف اوتوصيف ئې اوکړوبيا ئې خپل اودخپلو روڼړو حاجت بيان کړو،دا هغه لطيفه کرښه ده چه دمقصود حاصلولو دپاره اودمراد موندلو دپاره په نيغه لار روان ده.دې کاملې طريقې خپلولوسره الله ﷻ ددې هدايت کړې دې

کله سوال دا شان وي چه سائل خپل حاجت او حالت ظاهروي لکه حضرت موسى ﷺ فرمائيلي وو ﴿رَبِّ إِنِّي لِمَا أَنزَلْتَ إِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيرٌ﴾ اني الله ﷻ چه کومې ښيګړې تا ماسره کړې دی خه دهغې محتاج يم. حضرت يونس ﷺ هم دعا غوښتلې ده چه ﴿ لَّا إِلَٰهَ إِلَّا أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴾ انې الله ﷻ ستا نه سوا هيڅوک دعبادت لائق نشته دې ته پاك ئې اود نقصان اوچتوونکو نه يم کله سوال داشان هم وي

چه سائل صرف تعریف او بزرګی بیان کړی او چپ شی لکه د شاعر قول دې چه ماته د خپل حاجت دبیانولو هیڅ ضرورت نشته دې ،ستا دمهربانو نه ډك بخشش مالره کافی دې. ماته پته ده چه داد او دهش ستا په پاکو عادتونو کښې داخل دې ، صرف ستا پاکوالي بیانوم ستا حمد اوثناء خما د حاجت پوره کولو دپاره کافی ده. د هدایت معنی په دې ځائې کښې ارشاد او د توفیق ده.

**دهدایت نحوی تشریح**:کله هدایت بنفسه متعدی وی لکه پدې ځائې چه کښې دی نو معنی (الهمنا ووفقنا ارزقنا) او (اعطنا) یعنی مونږ ته راکړه اوبه بل ځائې کښې ارشاد دې(وَهَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ) یعنی مونږ هغه ته دواړه لارې اوخودلې نیکه او بده دواړه .اوکله هدایت (الی)سره متعدی وی لکه فرمانی . وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ) او فرمانی چه( فَاهْدُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطِ الْجَحِيْمِ)په دې ځائې کښې هدایت او ارشاد د دلالت په معنی کښې دی.داشان فرمان دې چه (وَاِنَّكَ لَتَهْدِيْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ)یعنی ته خوالبته په نیغه لار ګورې اوکله هدایت لام سره متعدی وی لکه د جنتیانو قول قران کریم کښې دی چه ( اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ هَدٰىنَا لِهٰذَا )یعنی دالله ﷻ شکر دې.هغه مونږ ته دنیغې لارې توفیق راکړو اوهدایت والا ئې جوړ کړو.

**قوله تعالى**:- الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ

**د صراط مستقیم معنی**:-دصراط مستقیم معنی واورنی① حضرت امام جعفر ابن جریر رحمه الله فرمانی چه دې نه مراد واضحه او صفا لاره ده چه په هیڅ ځائې کښې کږه نه وی. دعربو په لغت کښې او دشاعرانو په شعرونوکښې دا معنی ښکاره مونډلې شی. اوبه دې بې شماره شواهد موجود دی. دصراط استعمال د استعارې په طور په قول او فعل باندې هم رازی. اوبیا ددې وصف استقامت او کوږ والی سره رازی.

② سلفو اوخلفو مفسرینو ددې ډیر زیات تفسیرونه نقل کړی دی او دهغه ټولو خلاصه یو ده او هغه دالله ﷻ اوهغه درسول ﷺ په نقش قدم تګ اوتابعداری ده.

③ په یومرفوع حدیث کښې دی چه صراط مستقیم کتاب الله دې. ابن ابی جریر رحمه الله او ابن ابی حاتم رحمه الله نه دا روایت دې .فضائل قران مجیدباره کښې مخکښې حدیث تیر شوې دې چه دالله ﷻ مضبوطه رسئ،حکمتونو والا ذکر اونیغه لاریعنی صراط مستقیم هم دالله ﷻ کتاب الله قران پاك دې ()(مسند احمد ترمذی )حضرت علی رضی الله عنه نه هم داقول نقل دې. اودیومرفوع حدیث موقوف کیدل هم زیات مشابه دې. والله اعلم. حضرت عبدالله رضی الله عنه نه هم دا روایت دې. د حضرت ابن عباس رضی الله عنه قول دې چه حضرت جبریل علیه السلام اوفرمانیل چه انې محمد ﷺ (اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ) اووایه یعنی مونږ ته هدایت والا لار اوښایه او ددین پوهه راکړې چه په هغې کښې څه کوږوالې نه وی.

④ د نبی کریم ﷺ نه دا هم روایت کړې شوې دې چه ددې نه مراد اسلام دې.حضرت ابن عباس رضی الله عنه ، حضرت ابن مسعود رضی الله عنه او صحابه کرام رضی الله عنه اجمعین نه هم دا تفسیر نقل دې. حضرت جابر رضی الله عنه فرمانی چه د صراط مستقیم نه مراد اسلام دې چه دهر هغه څیز نه زیات وسعت والا دې چه دآسمانونو او زمکې ترمینځه دې. ابوحنیفه رحمه الله فرمانی چه ددې نه مراد دالله ﷻ هغه دین دی چه ددې نه سوا بل مقبول نشته دې. دعبدالرحمن بن زید بن اسلم قول دې چه صراط مستقیم اسلام دې.

**د صراط مستقیم مثال**:-دمسند احمدپه یوحدیث روایت کړې شوې دې چه رسول الله ﷺ فرمانی چه الله ﷻ یومثال بیان کړې دې د صراط مستقیم چه ددې دواړه طرفونو ته دوه دیوالونه دی چه په دې کښې ډیرې بیرته دروازې دی اوبه دروازو باندې پردې وی .د صراط مستقیم په درازو باندې یو آواز کونکې مقرر دې چه وانی انې خلقو تاسو ټول په ټوله په دې نیغه لار روان شئ په کږو وږو لاروباندې مه ځئ ،یو آواز کوونکې په دې لارباندې دې،لکه چه څوك سړې پدې درزاوکښې یودروازه بیرته کوی نووانی

---

[1] ) احمد: ۹۱/۱، ترمذی: ابواب الفضائل: باب ماجاء فی فضل القران : ۲۹۰۶)۔

خبردارد‌ا مه بیرته کوه،که بیرته دې کړه نو هم ددې لارې به شې. اوصراط مستقیم نه به واوړې. نو صراط مستقیم خو اسلام شو اودیوالونه دالله ﷻ حدونه دی او بیرته دروازې دالله حرام څیزونه دی ، او دروازوباندې آواز کوونکې قرآن کریم دې او په لاره باندې آواز کوونکې هغه دې چه دهر ایماندار په زړه کښې دالله ﷻ دطرف نه دواعظ په طور وی ()،داحدیث ابن ابی حاتم رحمه الله ،ابن جریر رحمه الله ، ترمذی او نسائی نه نقل دې. اوددې سند هم صحیح دې والله اعلم.

⑤مجاهد رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد حق دې. ددوی دا قول د ټولو نه زیات مقبول دې او په دې ټولو قولونو کښې هیڅ مخالفت نشته دې .

⑥ابو العالیه رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد نبی کریم ﷺ او د نبی کریم ﷺ نه پس ددوی دواړو خلفاء دی. ابوالعالیه رحمه الله ددې قول تصدیق اوتحسین کوی،

**په اقوالوکښې تطبیق:-** په اصل کښې دا ټول قولونه صحیح دی اویو بل تصدیق کوی.

نبی کریم ﷺ او ددوی دواړه خلفاء کرام ﷺ ، حضرت صدیق او فاروق تابعدار دحق تابع دې. او دحق تابع داسلام تابع دې اوداسلام تابع دقران پاك تابع دې او قران پاك دالله ﷻ کتاب اوهغه پاك ذات طرف ته مضبوطه رسۍ او نیغه لار ده. بیا دصراط مستقیم په تفسیر کښې دا ټول اقوال صحیح دی او دیو بل تصدیق کوی. فالحمد لله .

حضرت عبدالله فرمائی چه صراط مستقیم هغه دې چه په هغې باندې مونږ رسول الله ﷺ پرینبودی وو . دامام ابوجعفر ابن جریر فیصله ده چه خما په نیز ددې آیت دټولونه بهترین تفسیر دادې چه هغوی اوونیل چه مونږ ته توفیق راکړه دهغه څیز چه کوم دالله ﷻ مرضی وی اوپه هغې باندې دتلو په وجه الله ﷻ دخپلو بندګانو نه راضی کیږی او په هغوی باندې انعام کوی او همداصراط مستقیم دې. خکه چه کوم سړی ته ددې څیز توفیق ورکړې شوې وی چه دکومې توفیق دالله ﷻ په نیکو بندګانوباندې وو. او چه په هغوی باندې دالله ﷻ انعام شوې وو او چه کوم نبیان علیهم السلام ا و صدیقین او شهیدان او نیك خلق وو. اوهغوی داسلام اود رسولانو تصدیق اوکړو او دالله ﷻ کتاب ئې مضبوط اونیولو او دالله ﷻ احکام ئې پوره کړل او دهغه کارونو نه منع شو چه دکومو نه هغه ذات منع کړې وو او د نبی کریم ﷺ او د څلورو واړو خلفاء راشدینو ﷺ او د نیکو خلقو دلارې توفیق ورکړې شوې وی نو هم دا صراط مستقیم دې.

**یو اعتراض او د هغې جواب:-** که دا اوونیلې شی چه مومن دالله ﷻ د طرف نه هدایت حاصل کړې دې ، بیا مونځ او مونځ نه بهر د حاجت غوښتلو څه ضرورت دې؟ نوددې جواب دادې چه ددې نه مراد ثابت قدمی ده په هدایت باندې او رسوخ اوبینائی او همیشه دپاره طلب دې. خکه بنده په هر حالت او هر ساعت کښې دالله ﷻ محتاج دې. هغه په خپله د خپل خان د نفع او نقصان مالك نه دې. بلکه شپه ورځ خپل رب ته محتاج دې. ددې وجې الله ﷻ ده ته اوخودل چه هر وخت دالله ﷻ نه هدایت غواړه او ثابت قدمی او توفیق ترې غواړه. بنه او نیك بخته انسان هغه دې چه کوم لره الله ﷻ دخپل در سوال ګرې جورکړی. اوهغه الله ﷻ په هر وخت دهر سوال کوونکی اوغوښتونکی کفیل دې. خاصکر دبې قراره محتاج او دده په در کښې دخپلو حاجتونو پیش کوونکی دهر آواز الله ﷻ ضامن دې.

**یو داسې قسم بل ایت:-** او په بل خائې کښې ارشاد دې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ ءَامِنُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَٱلْكِتَٰبِ ٱلَّذِى نَزَّلَ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ وَٱلْكِتَٰبِ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ مِن قَبْلُ﴾ انې ایمان والو په الله ﷻ باندې اودده په ر سولانو باندې ایمان راوړنی اودده په کتابونو باندې چه دې پاك ذات په خپل رسول ﷺ باندې نازل کړی دی او چه کوم کتابونه ددې نه مخکښې نازل شوی دی په ټولو ایمان راوړنی.

---

[1] ) احمد: ۹۱/۱، ترمذی: ابواب الامثال باب ماجاء فی مثل الله عزوجل لعباده: رقم: ۲۸۵۹ وهو الصحیح السنن الکبری : ۱۱۲۳۳)

**د صراط مستقیم د غوښتلو حکم:** په دې ایت کریمه کښې ایمان والو ته دایمان راوړو حکم کول داسې دی لکه چه په د ې خائې کښې چه هدایت والو ته د هدایت د غوښتنې حکم ورکول. مراد په دواړه ځایونو کښې ثابت قدمی ده او په داسې عملونو باندې همیش والې کول دې چه دده د مقصد په حاصلولو کښې مدد اوکړی. په دې باندې اعتراض هم نشې وارد کیدلې چه دا د حاصل شوی څیز حاصلول دی والله اعلم.

اویاد ساتئی الله رب العزت خپلوبندګانوته حکم ورکړې دې چه هغوی دې وائی ﴿رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوْبَنَا بَعْدَ اِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْوَهَّابُ﴾ یعنی اني زمونږه ربه زمونږه زړونه هدایت نه پس مه کږوه او مونږ ته دخپل طر ف نه رحمت راکړه اوته ډیر لوئې ورکونکې او ورکړې والا ئې. داهم روایت دې حضرت ابوبکر صدیق ؓ دماښام د مونځ په دریم رکعت کښې دسورت فاتحې نه پس داآیت په پټه لوستلو. د ﴿اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ﴾ معنی داشوه چه اني الله ﷻ مونږ صراط مستقیم باندې ثابت قدم اوساته او ددې نه مونږ مه اړوه.

| | صِرَاطَ | الَّذِيْنَ | اَنْعَمْتَ |
|---|---|---|---|
| | لار | دهغه خلقو | چې نعمت کړې دې تا |
| | دهغه چا په لارچې تاپرې نعمت کړې دې | | |

| عَلَيْهِمْ | غَيْرِ | الْمَغْضُوْبِ | عَلَيْهِمْ | وَلَا | الضَّآلِّيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغوی باندې | د نه لار هغه خلقو | چه هغوی غضب شوې | په هغوی | او نه | د هغه خلقو لار چه ګمراه شوی دی |
| چې غضه شوې پرې نه نې اونه ګمراهان دی | | | | | |

قوله تعالی:- صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ

**د انعام والا څوک دی :-** ددې بیان مخکښې تیر شوې دې چه بنده په دې قول باندې الله ﷻ فرمائی چه دا څما دبنده دپاره دې او څما دبنده دپاره هغه څه دی چه څه هغه غواړی. د آیت تفسیر د صراط مستقیم . او دنحویانو په نیز دا دې بدل دې. او عطف بیان هم کیدشی . والله اعلم. او چه په کومو باندې الله ﷻ انعام کړې دې دهغوی بیان په سورت نساء کښې بیان دې . فرمان دې:

﴿وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ۝ ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا﴾ یعنی دالله ﷻ اودده د رسول منلووالا خلق به دوی سر ه وی چه په کومو باندې دالله ﷻ انعام دې چه نبیان اوصدیقین او شیهدان او نیکان دی. دا بهترین ملګری دې او نیک خلق دی. داد الله ﷻ فضل دې او د علم په اعتبار سره الله ﷻ کافی دې.حضرت عبدالله بن عباس ؓ فرمائی مطلب دادې چه یاالله ﷻ ا ته ما د دې فرښتو، نبیانو،صدیقینو ، شهیدانو او دصالحانو په لار باندې روان کړې چه په هغوی باندې تا دخپل اطاعت اوعبادت په وجه انعام کړې دې. دا آیت بالکل د ﴿وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ﴾ په شان دې.ربیع بن انس ؓ وائی چه ددې قول نه مراد نبیان دی. حضرت ابن عباس ؓ او مجاهد ؒ فرمائی حضرت رسول الله ﷺ او د رسول کریم ﷺ صحابه کرام ؓ مراد دی.د حضرت ابن عباس ؓ قول زیات قوی دې او معقول دې . والله اعلم.

قوله تعالی:-غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ

**د غیر د قراءت تحقیق:-** دجمهورو په قراءت کښې ﴿غَيْرِ﴾ د " ر "په زیر سره دې او صفت دې.زمحشری ؒ فرمائی چه د " ر"په زبر سره لوستلې شوې دې چه ضمیر دې .هغه دده ذوالحال دې او ﴿اَنْعَمْتَ﴾ عامل دې. معنی داشوه چه اني الله ﷻ مونږ ته نیغه لار اوښایه دهغه خلقو لار چه په هغوی باندې تا

انعام کړي دي چه کوم هدایت او استقامت والا دی او دالله ﷻ اودده د رسول ﷺ تابعدار دی او دده په حکمونو باندې عمل کولو والا ، اودده د منع شوی کارونو نه منع کیدونکی دی.

**مغضوب څوک دي**:-دهغه لارې نه مو بچ کړه چه په هغوی باندې غضب شوې دې چه دهغوی ارادې فاسدې شوې حق نې پیژنده او ددې نه واوړیدل او د گمراهانودلارې نه مو اوساتې چه بالکل ورته علم نشته سروهلی بروهلی گرځی او لاره ترې نه هیره شوې ده اوحیران او سرگردان دی او حق لارې طرف ته نې را هنمائی نه کیږی.

**د «لا» کلمې دوباره راوړو وجه**:- ﴿لا﴾ نې دوباره راوړو اودکلام تاکید کول ددې دپاره دي چه په دې ځائې کښې دوه غلطې لارې دی،یو دیهودیانو لاره اوبله د نصارٰی .بعضې نحویان وائی چه د ﴿غَيْرِ﴾ لفظ په دې ځائې کښې داستثناء دپاره دې نو استثناء منقطع کیدلې شی،ځکه چه په چا باندې انعام شوېدې په هغوی کښې دا استثناء ده اودا خلق په انعام والو کښې داخل نه وو. لیکن مونږ چه کوم تفسیر کړې دې هغه ډیرښه دې،دعربو شاعرانو په شعرونو کښې داسې موندلې شوی دی چه هغوی موصوف حذف کوی اوصرف صفت بیانوی،داشان پدې آیت کښې هم صفت بیان شوې دې.اوموصوف حذف شوېدې.
﴿ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ﴾ نه مراد ﴿ غَيْرِ الصِّرَاطِ الْمَغْضُوبِ﴾ دی.دمضاف الیه په ذکرکولوسره کفایت اوشو.اودمضاف بیان اونه کړې شو ځکه چه د عبارت الفاظ په دې باندې دلالت کوی . مخکښې دوه ځل دا لفظ راغلې دې. بعضې وائی چه ﴿وَلَا الضَّالِّينَ﴾کښې ﴿لا﴾ زائدې او ددوی په نیز تقدیر د کلام څه دا شان دې.﴿ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَالضَّالِّينَ ﴾ اوددې شهادت دعربو شاعرانو د شعرونو نه کیږی لیکن صحیح خبره داده چه کومه مونږ بیان کړه مخکښې.

دحضرت عمر فاروق ؓ نه غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَغَيْرِ الضَّالِّينَ)لوستل په صحیح سندسره روایت دی. اوداشان حضرت ابی بن کعب ؓ نه هم روایت دی اودا محمول دې په دې باندې ددې بزرگانونه دا د تفسیر په طور صادر شو. نوزمونږ دقول تائید اوشو چه لا دنفی د تاکید دپاره ده چه دا وهم نه وی چه په ﴿ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ﴾ باندې عطف دې او ددې وجې هم د دواړو لاروفرق معلوم شی چه هر سړې ددې دواړونه بچ اوسی. دایمان والو طر یقه ده چه دحق علم ورته هم وی او په حق روان هم وی. یهودیانو سره علم نشته دې او نصرانیانو سره عمل نشته دې. نوېدې وجه دعلم نه باجودعمل پریښودل دغضب سبب دې. یعنی دیوڅیز قصد خو کوی لیکن ددې صحیح لار نشی موندلې،ځکه چه ددوی طریقه کار غلط دې. دوی د حق د اتباع نه اوړیدلی دی. هسې خو غضب او گمراهی ددې دواړو ډلو په حصه کښې ده لیکن یهودیان دغضب په حصه کښې مخکښې مخکښې دی.لکه څنگه چه په قران پاك کښې دی چه﴿ مَنْ لَعَنَهُ اللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ﴾اونصرانیان په ضلالت کښې مخکښې دی.دالله ﷻ فرمان دې چه﴿قَدْ ضَلُّوا مِنْ قَبْلُ وَأَضَلُّوا كَثِيرًا وَضَلُّوا عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ﴾ یعنی دوی دمخکښې نه په گمراهی کښې دی اوډیرخلق نې گمراهان کړی دی اودنیغې لارې نه اوړیدلی دی ددې په تائید کښې ډیرزیات روایات اواحادیث پیش کیدې شی.

**دعدی ؓ د ایمان راوړو واقعه**:-مسند احمد کښې دی چه حضرت عدی بن حاتم ؓ فرمائی چه د رسول کریم ﷺ لښکرخما تروراو څه نور خلق گرفتار کړل اودحضور اکرم ﷺ په خدمت نې پیش کړل نو خما ترور اووئیل چه خما خبر اخستونکې لرې دې او څه بوډئی یم .اودڅه خدمت کولو نه یم. انې حضور ﷺ ماباندې احسان اوکړئې. اوما دبند نه خلاصه کړئې.الله ﷻ به په تاسوباندې هم احسان اوکړی.حضور ﷺ ترې تپوس اوکړو چه ستا خبر اخستونکې څوك دې ؟ هغې اووئیل چه عدی بن حاتم . حضور ﷺ اوفرمائیل چه هغه کس چه دالله ﷻ اود رسول ﷺ نه تښتې.بیا حضور ﷺ هغه دبند نه خلاصه کړه. هرکله چه واپس شوه نو رسول کریم ﷺ سره یو کس وو او غالباً هغه حضرت علی ؓ وو. هغوی اوفرمائیل چه دده نه سورلی اوغواړئې. خما ترور دوی ته درخواست اوکړو او منظور شو. اوسورلی ورته ملاؤ شوه.

هغه ددې خاني دبند نه خلاصه شوه اوماته راغله او وې ونيل چه د حضور ﷺ سخاوت خو خما دپلار حاتم سخاوت لره هم پاتې راوستو.حضور ﷺ ته چه څوك راشي نوهغه خالي لاس نه خي په دې آوريدو سره خه هم د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې حاضرشوم، ما اوكتل چه وړوكى ماشومان او بوډۍ ښځې هم دحضور ﷺ په خدمت كښې حاضرېږي. اوحضور ﷺ هغوى سره ډير په بې تكلفۍ سره خبرې كوي. دې خبرې ماته يقين راكړو چه د قيصر او كسرى په شان بادشاهت او وجاهت طلب كولو والا نه دى. حضور ﷺ چه كله خه اوليدم نووې فرمانيل چه عدى (لا اله الا الله) نه ولې تبنتې. آيا دالله ﷻ نه سوا نور څوك دعبادت لائق شته دې ؟ د(الله اكبر)ونيلو نه ولې مخ اړوې. آيا الله ﷻ نه هم څوك لونې شته دې؟ ما باندې دې كلماتو اود حضور ﷺ سادګۍ ډير زيات اثر اوكړو او ما زر كلمه اوونيله او مسلمان شوم او په دې سره نبي ﷺ ډير زيات خوشحاله شو او وې فرمانيل ﴿غَيْرِالْمَغْضُوْبِ﴾نه مراد هم دا يهود دى او د﴿الضَّآلِّيْنَ﴾ نه مراد نصرانيان دى (١).

په يوبل حديث كښې دى چه د حضرت جعفر عدى ؓ په سوال باندې حضور ﷺ دا تفسير بيان كړې وو. ددې حديث ډير زيات سندونه دي او مختلف الفاظو سره روايت دې. د بنو قين يو سړى په وادى القرى كښې د حضور ﷺ نه دا سوال اوكړو نو حضور ﷺ په جواب كښې هم دا اوفرمانيل . بعضو روايتونو كښې ددوى نوم عبدالله بن عمرو ؓ راغلې دې. والله اعلم.

ابن مردويه كښې د حضرت ابوذر ؓ نه هم دا روايت دې.حضرت عبدالله بن عباس ؓ،حضرت عبدالله بن مسعود ؓ اوډير نور صحابه كرامو ؓ نه هم دا تفسير نقل دې. ربيع بن انس رحمه الله،عبدالرحمن بن زيد بن اسلم رحمه الله وغيره هم دا فرمانې. بلكه ابن ابى حاتم رحمه الله خو فرمانې چه په مفسرينو كښې په دې باره كښې اختلاف نشته دې. ددې امامانو ددې تفسير دليل خو هغه حديث دې چه كوم مخكښې تير شو .دويم دسورت بقره هغه آيت دې چه په هغې كښې بنى اسرانيلوته خطاب شوې دې﴿ بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ﴾په دې آيت كښې دى چه په هغوى باندې غضب نازل شو.او دسورت مائده په آيت ﴿قُلْ هَلْ اُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ مَثُوْبَةً عِنْدَ اللّٰهِ﴾كښې هم دى چه په هغوى باندې غضب نازل شوې وو.يو خانې ارشاد دې كښې ﴿لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾يعنى بنى اسرانيلو كښې چه كوموخلقو كفر اوكړو په هغوى لعنت اوكړې شو. دحضرت داود ؑ اود حضرت عيسى بن مريم ؑ په ژبه دا دهغوى دنافرمانۍ او د حدنه دتيريدو په وجه وو. دې خلقو به خپلو كښې يوبل د بدو نه نه منع كول. يقينًا ددې خلقو كارونه ډير خراب وو.

**د حق دين په تلاش كښې د څو كسانو كوشش**:-او دتاريخ په كتابونو كښې دى چه زيد بن عمرو بن نفيل چه كله خپلو ملګروسره دالله ﷻ دين په تلاش كښې اووتلواوشام ملك ته راغلونودوى ته يهوديانو اوونيل ته زمونږ په دين كښې نشې داخليدې تركومې پورې چې ته دالله ﷻ د غضب حصه جوړه نشې. هغوى اوونيل چه ددې نه دبچ كيدو دپاره خو دالله ﷻ ددين په تلاش كښې وتلي يو نوبيا به دا څنګه قبول كړو. نصرانيانو سره ملاو شو. هغوى اوونيل چه ته تركومې پورې دالله ﷻ د خفه كيدو حصه جوړه نشې نو تر هغه پورې زمونږ دين كښې نشې داخليدې. هغوى اوونيل چه مونږ خو داسې هم نشوكولې. نوهغوى په خپل فطرت باندې پاتې شو. د بتانو عبادت او دقوم دين ئې پريښودو. ليكن يهوديت اونصرانيت ئې اختيار نه كړو(٢)البته د زيدملګرو عيسانى مذهب قبول كړو ځكه چه دا يهودى مذهب سره يوشان وو. هم په دې كښې حضرت ورقه بن نوفل هم وو. ده ته د نبي كريم ﷺ زمانه ملاو شوه اود الله ﷻ هدايت دده راهنمائى اوكړه اوده په رسول كريم ﷺ باندې ايمان راوړو او چه كومه وحى په هغه وخت كښې نازل شوې وه هغه ددې تصديق اوكړو.

---

١) احمد: ٣٧٨/٤، ابواب التفسير: باب ومن سورة فاتحة الكتاب : ٢٩٥٣ وسنده حسن )-

٢) صحيح بخارى : كتاب المناقب الانصار باب حديث زيد بن عمرو بن نفيل: ٣٨٢٧)-

**( مسئله )**

**د ض او دظ فرق :-** ضاد او ظاء په قراءت کښې ډیر زیات باریکئ دی او دا فرق دهر یو په وس کښې نه دی. ځکه چه د عالمانو صحیح مذهب دادې چه دا فرق معاف دې. د ضاد صحیح مخرج خودادې چه د ژبې په اولې غاړې اودې سره نزدې داړهې سره، او د ،ظاء، صحیح مخرج دژبې یو طرف او مخامخ پاسنو دوؤ غاښونو غاړه. دویم دا چه دا دواړه حرفونه مجهوره دی او رخوه او مطبقه دی. نو هغه سړی ته دا معاف دی چه په دې کښې فرق نشی کولې چه ضاد دظاء په شان اووائی. په یو حدیث کښې دی چه د ټولو نه زیات صحیح ونیلو والا خه یم لیکن داحدیث بالکل بې اصل او لاپته دې.

**(فصل) دسوره فاتحه خلاصه**

دا مبارك سورت ډیر زیات کارآمد مضمونونو والا مجموعه دې. په دې اووه آیتونو کښې دالله ﷻ حمد وثناء دهغه بزرګی بیان شوې ده.او دهغه دپاکو نومونو اود هغه د اوچتو صفتونو بیان دې. ورسره د قیامت د ورځې ذکر دې. او بندګانو ته ارشاد دې چه دوی دې دهغه مالك نه سوال کوی اودهغه طرف ته دې تضرع کوی او هغه ته دې دخپلې غریبئ او د بې قرارئ اظهار کوی. او دهغه عبادت دې خلوص سره کوی.اودهغه د توحید د الوهیت اقرار دې کوی. او هغه پاك ذات دې د شرك او نظیر او مثل نه بالکل پاك او غوره اومنی. اودصراط مستقیم او په دې باندې د ثابت قدمئ مدد دې غواړی. اوهم دا هدایت به دوی د قیامت په ورځ د پل صراط نه هم پورې باسی او په جنت کښې به د نبیانو او صدیقینواو نیکانواو صالحانوسره دده ګاونډ وی. ورسره په دې سورت کښې دنیکو عملونو ترغیب دې چه دقیامت په ورځ دنیکانو سره یوځائې شی. او باطلو لارو باندې دتلو نه ویرول دی چه د قیامت په ورځ هم د هغوی د ډلونه لرې وی ، دا باطل پرست یهودیان او نصرانیان دی.

**دضلالت نسبت الله ته نه دې شوې:-** په دې باریکه نکته باندې هم غور اوکړئ چه د انعام اسناد الله ﷻ طرف ته اوشو.او (اَنْعَمْتَ) اُوئیلې شو اودغضب اسناد اونکړې شو. پدې ځائې کښې فاعل حذف کړې شو او (غَيْرِالْمَغْضُوْبِ) اووئیلې شو نو په دې کښې د پروردګار عالم په حضور کښې ادب اوساتلې شو. په اصل کښې حقیقی فاعل الله دې لکه په بل ځائې کښې فرمائی چه (غَضِبَ اللهُ) او داشان دضلالت اسناد هم دهغوی طرف ته اوشو چه کوم ګمراه دی حالانکه په بل ځائې کښې دی چه ( مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِىْ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝ ) او چاته چه الله ﷻ لار اوښائی نو هغه لار بیا مونده. او چه څوك ګمراه کړی نو دده ولی اومرشد هیڅوك نشته دې. او په بل ځائې کښې فرمائی چه (مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِىَ لَهٗ) یعنی الله ﷻ چه څوك ګمراه کړی نو دده هیڅوك هادی نشته دې نودوی په خپله سرکشئ کښې دی.داشان نور آیتونه هم دی چه دهغې نه ثابتیږی چه لاره خودونکې اوګمراه کوونکې صرف دالله ﷻ ذات دې.

**دقدریه فرقې مذهب:-** قدریه فرقه اخوادیخوا نه متشابه آیتونه دلیل جوړوی او هغه پیش کوی اووائی چه بندګان په خپله مختار دی دا (بندګان) په خپله خوښه روان دی او پخپله یو کار کوی خو دا غلط دی. صریح او صفا صفا آیتونه ددې په ضد کښې موجود دی. لیکن د باطل پرستو فرقو هم دا عقیده دې چه صراحت پریږدی او متشابه پسې روان وی صحیح حدیث کښې دی چه کله تاسوهغه خلق اوګورئ چه دمتشابه آیتونو پسې روان وی نو پوهه شئ الله ﷻ هم ددې خلقو نومونه اخستی دی تاسو دوی پریږدئ ()د نبی کریم ﷺ ارشاره دې آیت مبارك طرف ته ده چه ( فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ ) یعنی چه دکومو خلقو زړونه کاږه دی هغوی متشابه پسې روان وی او د فتنواوتاویلونو په تلاش کښې وی. نو

[1] ) صحیح بخاری کتاب التفسیر: تفسیر سورة آل عمران : ۴۵۴۷، صحیح مسلم: ۲۶۶۵ )-.

الحمد لله د بدعتیانو دپاره په دې قران کریم کښې صحیح دلیل هیڅ نشته دې . قران پاك خو حق او باطل او ضلالت او هدایت کښې فرق کولو دپاره راغلې دې. په دې کښې تناقض او اختلاف نشته . دا خو د حکیم اوحمید نازل شوې کتاب دې .

**( فصل )**

**امام پسې اوچت اواز سره امین وئیل** :-د سورت فاتحه په خاتمه آمین ونیل مستحب دی. ( آمین ) د یا سین په شان دې. او آمین هم ونیلې شوې دې. او ددې معنی داده چه انې الله ﷻ ته نې قبول کړه. د آمین د مستحب کیدو دلیل دا حدیث دې چه کوم په مسند احمد ،ابوداود اوترمذی کښې د وائل بن حجر ﷺ نه روایت دې. هغه وائی چه ماد رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه ﴿ غَيْرِالْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ﴾ ونیلو نه پس نې (آمین) ونیل. امام ترمذی رحمه الله دې حدیث ته حسن وائی[1]حضرت علی کرم الله وجهه ، حضرت ابن مسعود ﷺ او حضرت ابوهریره ﷺ وغیره نه هم روایت دې چه درسول الله ﷺ آمین به هغه خلقو آوریدو چه کوم به په ړومبی صف کښې حضور ﷺ سره نزدې وو. ابوداود او ابن ماجه کښې هم دا حدیث شته دې. په ابن ماجه کښې هم دی چه دآمین آوازسره کښې جمات ګنړار شو[2]دار قطنی کښې هم دا حدیث دې اودار قطنی دې ته حسن وائی. بلال ﷺ نه روایت دې چه هغه به رسول الله ﷺ ته ونیل چه څما نه مخکښې آمین مه وایه.[3](ابوداود) حسن بصری رحمه الله او جعفر صادق رحمه الله نه آمین ونیل روایت شوېدې. لکه په قران کریم کښې دی ﴿ آمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ ﴾ .زمونږ اصحاب وغیره وائی که په مونځ کښې نه وی نو هم آمین ونیل پکار دی. خو که په مونځ کښې وی نو په دې کښې تاکید زیات دې.

**امین د هرچا وظیفه ده**:-که مونځګزار یوازې وی او که مقتدی اوکه امام وی په هر حالت کښې آمین دې وائی.بخاری شریف او مسلم شریف کښې دحضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه امام آمین اووائی .نوتاسو هم آمین وائې.د چا آمین چه دفرښتو آمین سره یو ځائې شی نو دده مخکښې روستی ګناهونه معاف کیږی [4].مسلم شریف کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه کله په تاسو کښې څوك په خپل مونځ کښې آمین اووائی نو فرښتې په آسمان کښې آمین وائی او چې د یو آمین دبل د آمین سره مطابقت راشی نو دده ټول مخکښې روستو ګناهونه معاف کیږی [5]. مطلب دادې چه دده دآمین اود فرښتو د آمین وخت یو شی یاموافقت نه مراد قبولیت کښې موافق کیدل دی یا اخلاص کښې. صحیح مسلم کښې د ابوموسی اشعری ﷺ نه مرفوعاً روایت دې چه کله امام ﴿ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ﴾ اووائی نو آمین وائې الله ﷻ به نې قبلوی. [6]

**د امین معنی**:- ①حضرت ابن عباس ﷺ د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چې د آمین څه معنی ده؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه انې الله ﷻ ته نې قبول کړه②جوهری رحمه الله فرمائی چه ددې معنی دې " داشان وی "③ ترمذی وائی چه ددې معنی ده " زمونږ امیدونه مات نه کړې"④ اکثر علماء کرام وائی چه ددې معنی ده " انې الله ﷻ زمونږ دعا قبوله کړه ".

---

[1] ) احمد ٣١٨/٤، ابوداود کتاب الصلوة باب التامین وراء الامام: ٩٣٢، وهو صحیح، ترمذی : ٢٤٨)-

[2] ) ابوداود کتاب الصلاة باب التامین وراء الامام : ٩٣٤)_

[3] ) ابوداود کتاب الصلوة باب التامین وراء الامام: ٩٣٧، احمد:١٢/٦، وهو صحیح )-

[4] ) صحیح بخاری : کتاب الاذان باب جهر الامام بالتامین : ٧٨٠، وانظر: ٦٤٠٢، ابوداود: رقم: ٩٣ نسائی: ٩٢٦)-

[5] ) صحیح بخاری : کتاب الصلوة باب التسمیع والتامین: رقم: ٤٠٩)-

[6] ) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب التشهد فی الصلاة : ٤٠٤، ابوداود: ٩٧٢)-

مجاهد ؒ ، جعفر صادق ، هلال بن سیاف، فرمائي چه امین دالله ﷻ په نومونو کښي یونوم دي.حضرت ابن عباس ؓ نه مرفوعاً هم روایت دی لیکن صحیح نه دی. دحضرت امام مالك ؒ د اصحابوهم دامذهب دي چه امام دي آمین نه وائي اومقتدی دي آمین وائی ځکه چه موطا امام مالك ؒ په حدیث کښې دی چه کله امام ﴿وَلَا الضَّآلِّينَ﴾ اووائی نو تاسو آمین وائي.(1)

داشان ددوی ددلیل په تائید کښې صحیح مسلم والا د ابو موسیٰ اشعری ؓ دا روایت هم راخی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل کله چه امام ﴿وَلَا الضَّآلِّينَ﴾ اووائی نو تاسوآمین وائي (2). لیکن د بخاری او مسلم حدیث مخکښې بیان شو کله چې امام آمین وائی نو تاسو هم آمین وائي اودا حدیث هم دي چه کله به حضور ﷺ ﴿ولاالضالین﴾ اونیلو نو بیا به ني آمین ونیلو.

**امین د چا وظیفه ده؟**

**مسلک حنفي:-** مسئله دا ده.چه د سورة فاتحې په ختمیدو باندي چه کله امام ﴿وَلَا الضَّآلِّينَ﴾ اووائی نو امام او مقتدی دواړو لره آمین ونیل پکار دی. (تسهیل البدایه ۳۲۴/۱)-

جهری مونځونو کښې آمین په اوچت آواز سره ، جهری مونځونو کښې مقتدی آمین په اوچت آواز سره وائی که نه به وائی په دې کښې زمونږ دملګرو اختلاف دې. د هغې خلاصه داده که امام نه آمین ونیل هیر شو نو مقتدی دې په اوچت آواز سره آمین اووائی . که امام پخپله په اوچت آوازسره آمین اوونیلو نو نوې قول دادې چه مقتدی دې په اوچت آواز سره نه وائی. داد حضرت امام ابوحنیفه ؒ مذهب هم دې. او په یو روایت کښې د امام مالك ؒ نه دا هم نقل دی ځکه چه د مونځ او نورو ذکرونو په شان دا هم یو ذکر دې. خو دا په اوچت آواز سره ونیلې کیږې اونه دغه په اوچت آواز سره. لیکن ړومبې قول دا دې چه دا آمین دې په اوچت آواز سره اووائی. د حضرت امام احمد بن حنبل ؒ هم دا مذهب دې. او د حضرت امام مالك ؒ د بل روایت مطابق هم دا مذهب دې. اوددې دلیل هغه دې چه مخکښې کوم بیان شو چه د آمین سره به جمات کښې شور شو(3)زمونږ یو دریم قول دا هم دې که جمات وړوکې وی نو مقتدي دې په اوچت آواز سره آمین نه وائی ځکه چه دې دامام قرات آوری. او که جمات لوې وی نو په اوچت آوازدې وائی چه د جمات ګوټ ګوټ ته د آمین آواز اورسی. والله اعلم .

**د یهودو مسلمانانوسره دحسد وجه:-** مسند احمد کښې حضرت عائشه ؓا نه روایت دې چه رسول کریم ﷺ سره دیهودو ذکر اوشو نو رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه زمونږ په دریو څیزونوباندې یهودو ته ډیر زیات حسد او بغض دې چه په بل څه نه دې . یو خوجمعه ده چه الله ﷻ مونږ ته ددې هدایت کړې دې او دوی اورغریدل. دونمه قبله ، دریم امام پسې آمین په اوچت آواز سره ونیل. د ابن ماجه په یو حدیث کښې دی چه یهودو ته په سلام او آمین ونیلو باندې څومره حسد دې دومره په بل څه نه دې. (4)او حضرت عبدالله بن عباس ؓ نه روایت دې چه حضور نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چه یهودیان څومره حسد ستاسوسره په آمین ونیلو کوی دومره په بل څه نه کوی. تاسو هم آمین په کثرت سره وائي. ددې په اسناد کښې طلحه بن عمرو راوی ضعیف دې(5)ابن مردویه د حضرت ابوهریره ؓ نه روایت کوی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آمین دالله ﷻ مهر دې په خپلومومنانو باندې.(6)دحضرت انس ؓ والا

---

(1) موطا امام مالک کتاب الصلوة باب ماجاء فی التامین خلف الامام :٤٥، وهو صحیح)-

(2) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب التشهد فی الصلاة: ٤٠٩)-

(3) ابو داود کتاب الصلاة باب التامین وراء الامام رقم: ٩٣٤، ابن ماجة: ٨٥٣)-.

(4) احمد:١٣٤/٦، ابن ماجة: كتاب اقامة الصلاة باب الجهر بآمين: ٨٥٦، وسنده صحيح ابن خزيمة : ١٥٨٥، الترغيب: ٧١٩)-

(5) ابن ماجة: كتاب اقامة الصلاة باب الجهر بآمين: ٨٥٧) -

(6) الدعاء للطبراني : ٢١٩)-

حديث کښې دی چه په مونځ کښې امين ونيل او په دعا باندې امين ونيل ماته راکړې شوی دی. چه خما نه مخکښې نور چا ته نه وو ورکړې شوی. خودومره دی چه د حضرت موسیٰ ﷷ په خاص دعا به حضرت هارون ﷷ آمين ونيلو. تاسو به خپلې دعاګانې په آمين باندې ختمونی. الله ﷻ به دا ستاسو په حق کښې قبولی ()

**امين به په جهر ونيلې شي که رو؟**

**مسلک حنفي:-** زمونږ په نيز د امام او مقتدی ټولو دپاره آمين په پټه ونيل مسنون دی. دليل د حضرت ابن مسعود‌ رضی الله عنه حديث دې.کوم چه وړاندې تير شو.يعنی «قال أربع يخفيهن الإمام التعوذ وبسم الله الرحمن الرحيم واللهم ربنا لك الحمد وآمين»او په يو روايت کښې دی.« خمس يخفيهن الإمام»او دذکر شوی څلورو څيزونو نه علاوه نې «سبحانك اللهم وبحمدك»هم ذکر کړې دې.ددې روايت نه آمين په پټه ونيل ثابت شو(تسهيل البدايه ۱/۳۲۵)

داحديث مد نظر کيږدئی او دقران پاك هغه الفاظ اوګورئی چه په هغې کښې د حضرت موسیٰ ﷷ دعا ﴿رَبَّنَآ إِنَّكَ ءَاتَيۡتَ فِرۡعَوۡنَ﴾ ده يعنی اې الله ﷻ تا فرعون او فرعونيانوته ددنيا زينت او مال ددنيا په ژوند کښې ورکړې دې په دې سره دوی ستا د لارې نه خلق اړوی. اې ربه ددوی مالونه تباه کړې او د دوی زړونه سخت کړې چې دوی ترهغه وخته پورې ايمان رانوړی ترڅو چه دوی سخت عذاب نه وی ليدلې.

د حضرت موسیٰ ﷷ ددې دعا د قبليدو اعلان په دې الفاظو کښې دې چه ﴿قَالَ قَدۡ أُجِيبَت دَّعۡوَتُكُمَا﴾ يعنی ستاسو د دواړو دعا قبوله شوه. تاسو مضبوط اوسئ او دې بې علموته لار مه ښائې. دعابه صرف موسیٰ ﷷ کوله او هارون ﷷ به په دې آمين ونيلو. ليکن قران پاك ددعا نسبت دواړو طرف ته کړې دې. ددې نه بعضې خلقو استدلال کړې دې چه کوم سړې د چا په دعا باندې آمين اووائی نو داداسې شو لکه چه ده په خپله دعا اوکړه. اوس دا استدال مخکښې اړدی او هغوی قياس کوی چه مقتدی دې قراءت نه کوی ځکه دده په سورت فاتحه باندې آمين ونيل داسې دی لکه چه ده اوونيله . دا حديث هم دليل کښې راوړلې شی چه د چا امام وی نو دامام قرات دمقتدی دپاره کافی دی()(مسند احمد) .

حضرت بلال رضی الله عنه فرمائی چې حضور نبی ﷺ به فرمائيل چې اې خلقو په آمين کښې خمانه مه وړاندې کيږئی()په دې بحث مباحثه کښې په مقتدی باندې په جهری مونځونو کښې سورت فاتحه ونيل ثابت کول دی. والله اعلم

ابوهريره رضی الله عنه فرمائي چه رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چه کله امام﴿ غَيۡرِ ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ﴾ اووائی او بيا آمين وائی او دآسمان والو آمين د زمکې والو آمين سره ملاوشی نودالله ﷻ دبندګانو ټول مخکښې ګناهونه معاف فرمائی. ()

د آمين نه ونيلو مثال داسې دې لکه چه يوسړې يو قوم سره شو او جنګ کښې شريك شو اودوی پرې غالب شو اومال غنيمت نې جمع کړو،اوس قرعه اندازی کوی او حصې اخلی نوددې سړی د نوم هدو قرعه راو نه وته او ورته څه حصه ملاؤ نشوه ،هغه وائی چه دا ولې؟ نو جواب ملاؤ شی چه ستا دآمين نه ونيلو په وجه.

[1] ) ابن خزيمة: رقم:١٥٨٦)-

[2] ) احمد: ٣٣٩/٣، ابن ماجة كتاب اقامة الصلوات باب اذا قرء الامام فانصتوا..... ٨٥٠)-

[3] ) ابوداود كتاب الصلاة باب التامين وراء الامام : ٩٣٧، داروايت صحيح دې )-.

[4] ) مسند ابي يعلى : ٦٤١١)-

بسم الله الرحمن الرحیم

## د سورت بقره تفسیر

**د سورة بقري د نزول کیفیت**:- حضرت معقل بن یسار ﷛ فرمائی چه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه سورت بقره دقران پاك کوب دي. اوددې اوچتوالي دي خکه چه ددې یویو آیت سره به اتیا زره فرښتې راکوزیدې. اوخاص کر آیت الکرسی خو خاص د عرش دلاندې نه نازله شوې ده. اودې سورت سره یو خاني شوه. سورت یس د قران پاك زړه دې. چه کوم سړې دا د الله ﷻ درضا او دآخرت د طلب کولو دپاره اولولي نودې به اوبخښی.دا مړو ته وائی (۱)(مسند احمد) ددې حدیث په سند کښې یو خانې "عن رجل"دی نودامعلومه نه شوه چه ددې نه مراد څوك دی؟ لیکن دمسند احمد په یو بل روایت کښې د ده نوم ابوعثمان راغلې دې. دا حدیث داشان په ابو داود ،نسائی اوابن ماجه کښې هم دې (۲).

**سورة بقره د قران اوچتوالي دي**:- دترمذی په یو ضعیف سند والا حدیث کښې دی چه دهر څیز دپاره یو اوچتوالي وی او دقران پاك اوچتوالي سورت بقره دې.په دې سورت کښې یو آیت دې چه د ټولو آیتونو سردار دې اوهغه آیت الکرسی ده (۳).

**کورونو کښې سورة بقره وئیل**:-مسند احمد ،صحیح مسلم ، ترمذی اونسائی کښې حدیث دې چه خپل کورونو نه قبرونه مه جوړوئی. چه په کوم کور کښې سورت بقره اولوستلې شی نو هغه خانې ته شیطان نه داخلیږی(۴)حضرت امام ترمذی ﷫ دې حدیث ته حسن وائی. په یو بل حدیث کښې دی چه په کوم کور کښې سورت بقره اولوستلې شی نود هغه کور نه شیطان تښتی(۵)ددې حدیث راوی یحیی بن معین ته خو ثقه وائی لیکن احمد وغیره دده حدیث ته منکر وائی. حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ نه هم داشان قول نقل دې دا نسائی په،عمل الیوم اللیلة، کښې اوحاکم په مستدرك کښې روایت کړې دې او ددې سند ته ني صحیح ونیلی دی.

**د سورة په وئیلو د شیطان تختیدل**:- ابن مردویه کښې دی چه رسول کریم ﷺ فرمائی چه خه دې زه دې په تاسو کښې داسې کس اونه وینم چه هغه ډیر تلاوت کوی ولې سورة بقره اونه وائی. واورئی چه په کوم یوکور کښې دا آیت مبارك لوستلې شی نو دهغه خانې نه شیطان تښتی. په ټولو کورونو کښې بدترین او ذلیل کورهغه دې چه په هغې کښې دالله ﷻ دکتاب تلاوت نه کیږی. امام نسائی دا په ،،عمل الیوم واللیلة،، کښې هم نقل کړی دی(۶).

**سورة بقره د قران مغز دې** - په مسنددارمی کښې دحضرت ابن مسعود ﷛ نه روایت دې چه په کوم یو کور کښې سورت بقره اوونیلې شی نوهغه کور نه شیطان په تیښته خی. دهر څیز اوچتوالی وی اود قران پاك اوچتوالي سورت بقره ده.دهرڅیز دپاره لباب (مغز) وی او د قران کریم لباب مفصل سورتونه دی(۷).

---

(۱) احمد:۲۶/۵،)-

(۲) ابوداود کتاب الجنائز ،باب یقراة عندالمیت: ۳۱۲۱،)-

(۳) ترمذی ابواب فضائل القران باب ماجاء فی سورة بقرة وایة الکرسی :۲۸۷۸،)-

(۴) صحیح مسلم : کتاب صلاة المسافرین باب استحباب صلاة النافلة فی بیته: ....۷۸۰، احمد: ۳۷۸/۷، ترمذی : ۲۸۷۷، السنن الکبری للنسائی: ۱۰۸۱۰)-

(۵) فضائل القرانِ لابی عبید: ۳٤/۹،)-

(۶) السنن الکبری للنسائی : کتاب عمل الیوم واللیلة : ۹٦٤،)-

(۷) مسند دارمی : ۲٤۱۸،)-.

**د سورة بقرې د لس ایاتونو فضیلت:-** حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چه کوم سړی د سورت بقره رومبي څلور آیتونه او آیت الکرسی او دوه آیتونه دې نه پس اودرې آیتونه دټولو نه آخرې چه دا ټول لس آیتونه شو دشپې په وخت کښې اووائي نودې کور ته شیطان نشي راتلې. او په دې ورځ کښې به دې کور والا ته شیطان یا څه بل څیز تکلیف نشي رسولې. که دا آیتونه په لیوني باندې دم کړې شي نو دهغه لیونتوب به ختم شي (¹).

**د شیطان نه حفاظت:-** رسول کریم ﷺ فرمائي چه څنګه دهر څیز دپاره اوچتوالې وی دقران پاك اوچتوالې سورت بقره ده. چه څوك د شپې په وخت کښې دا په خپل کور کښې وائي نو تر دریو ورځو پورې شیطان دې کور ته نه داخلیږی (²)(طبراني . ابن حبان ، ابن مردویه ).

**سورة بقره د سرداریٔ سبب:-** ترمذی ، نسائي او ابن ماجه کښې دی چه رسول کریم ﷺ یو خائې ته یو ورکې شان لښکر اولیږلو اوددې سرداری رسول کریم ﷺ هغه سړی ته ورکړه چه کوم سړی وئیلی وو چه ما ته سورت بقره یاده ده. په هغه وخت کښې یو شریف سړی اووئیل چه څه هم دا یادوم، لیکن څه ویریدم چه هسې نه چه په دې باندې عمل اونکړې شم. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل قران پاك زده کړه ، قران وایه، چه څوك دا زده کوی او وائي ئې بیا په دې عمل هم کوی نودهغه مثال داسې دې لکه د مشکو نه ډك لوښې چه دهغې خوشبو هر طرف ته خوره وی. اوکوم سړی چه دا سورت یاد کړې وې اوبیا ئې لولی نه نو دده مثال د هغه لوښې پشان دې چه په هغې کښې خو مشك وی لیکن خوله پرې بنده وی. امام ترمذی ﷺ دې ته حسن وائي او دا روایت مرسل هم دې والله اعلم (³).

**د سورة بقرې دپاره د فرشتو راکوزیدل:-** صحیح بخاری کښې دی چه حضرت اسید بن حضیر ﷺ یو شپه د سورت بقره تلاوت شروع کړو نودده آس چه ده سره تړلې وو هغه په ټوپونو شو نو دوی قرات پریښودو آس قلا ر شو نودوی بیا لوستل شروع کړل نو آس بیا په ټوپونو شو. نودوی بیا وئیل موقوف کړل. آس بیا صحیح شو. په دریم خل بیا داسې اوشول . چونکه دده خوئې یحیی د آس سره ملاست وو ددې وجې ویریده چه هسې نه بچې نه خلاص شي (یعنی هغه چخنړی کړی) نو قران پاك وئیل ئې بندکړو اودې ئې اوچت کړو. آسمان طرف ته ئې اوکتل چه د خناور د آواز څه وجه ده؟ سحر د حضور اکرم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوټوله واقعه ئې ورته بیان کړه. حضور ﷺ آوری او فرمائي چه اسید وایه . حضرت اسید اووئیل چه حضور ا د یحیی په وجه خو مونږ وئیل بندکړل. اوس چه مې اوکتل نو څه ګورم چه یو نوراني څیز د سیوری کوونکې وریځې پشان دې اوپه دې کښې د چراغونو په شان رڼرا ده نو څما په کتلو سره هغه پورته لاړو. حضور اکرم ﷺ اوفرمائیل چه تاته پته ده چه دا څه څیز وو. دا فرښتې وې چه ستا آواز آوریدو سره نزدې راغلې وې او که تا تلاوت کول نه وې پریښودې نو ترصبا پورې به هم داسې وې او هر سړی به دوی کتلې د چا نه به نه پټیدلې (⁴). دا حدیث په څو کتابونو کښې چه په څو سندونو سره موجود دې. والله اعلم.

**داسې یوه بله واقعه:-** ددې نزدې نزدې یو واقعه حضرت ثابت بن قیس بن شماس دې . یو خل حضور ﷺ ته خلقو اووئیل چه مونږ اوکتل چه ټوله شپه د حضرت ثابت کور په نور سره رڼرا کوی او پړقا کوی . حضور ﷺ اوفرمائیل شائد ده دشپې سورت بقره لوستې وی. کله چه ده نه تپوس اوکړې شو نو هغوی

---

[1] ) دارمی کتاب فضائل القران باب فی فضل سورة البقرة:۳۳۷۵)-

[2] ) مسند ابی یعلی :۷۵۵، -

[3] ) ترمذی ابواب فضائل القران باب ماجاء فی سورة وایةالکرسی:۲۸۷۶، ابن ماجة : ۲۱۷، ابن حبان : ۷۱۷۶، ابن خزیمة: ۱۵۰۹ : وسنده حسن)-

[4] ) صحیح بخاری کتاب فضائل القران باب نزول السکینة والملائکة: ۵۰۱۸، تعلیقا ، صحیح مسلم: ۷۹۶)-

اوونیل چه ربښتیا دی. دشپې څه د سورت بقره په تلاوت کښې مشغول اووم ، ددې اسناد ډیر ښه دی مګر په دې کښې ابهام دی. اودا مرسل هم دی.(۱) والله اعلم.

**د سورت بقره اود سورت آل عمران فضیلت :**-نبی کریم ﷺ فرمانی چه سوره بقره وایې ځکه چې د دې اخستل برکت دې او ددې پرېښودل تاوان دې ، جادوګر ددې طاقت نه لرې. بیا څه وخت پس چپ پاتې کیدو نه پس ئې اوفرمائیل چه سورت بقره او سورت آل عمران زده کړئی . دا دواړه نوارنی سورتونه دی ، خپل لوستونکی باندې سیورې کوئی. یا وریخ کوی یا د مارغانو سیل په شان دقیامت په ورځ سیورئی کوی. قران پاك لوستونکې کله چه د قبر نه راوزی نو ګوری به چې یو نورانی خوان نورانی مخ سره دې سړی سره ولاړ وې او وانی به آیا ته ما پیژنې؟ دې به اووانی نه ، نو جواب به ورکړی څه قران پاك یم. چه دې ته اوږې تږې کړې وې او دشپو ئې د بسترې نه لرې کړې وې ، هر تاجر دخپل تجارت په سوچ کښې دې.خونن ته په هر تجارت پسې ئې.یعنی د خلقو یوتجارت وی چې په هغې کښې هغوی ګټه کوی اوستا هر یو عمل ګټه ګټه ده ، اوس به ده ته بادشاهی په ښی لاس کښې ورکړې شی او همیشوالې په ګس لاس کښې اودده په سر به د وقار او عزت والا تاج کیخودې شی. دده مور پلار ته به داسې دوه قیمتی جوړې واغوندلې شی چه ټوله دنیا به هم ددې قیمت مخکښې هیڅ نه وی ،هغوی به حیران شی او وانی به چه آخر ددې رحم اوکرم اوانعام څه وجه ده ؟ نودوی ته به جواب ملاؤ شی چه ستاسو د بچو د قران پاك د ونیلو په وجه په تاسوباندې انعام شوې دې ، بیا به اوونیلې شی چه لوله او د جنت په درجو ورخیژه. نو هغه به وانی او په درجو به خیژی ، که په ترتیل سره ئې وانی او که بغیر د ترتیل نه. (۲)

**دحدیث د سند تحقیق:**-ابن ماجه کښې هم ددې حدیث څه روایت شوې دې(۳)ددې اسناد حسن دی. اودا مسلم په شرط دې.ددې راوی بشر بن مهاجر دې.امام مسلم رحمه الله هم روایت کړې دې.اوامام بن معین رحمه الله ده ته ثقه وانی. د نسائی رحمه الله قول دې چه په دې کښې هیڅ حرج نشته ، خو امام احمد رحمه الله ده ته منکر الحدیث وانی. اوفرمانی چه ما تلاش کړل او اومې کتل چه هغه عجیبه عجیبه احادیث راوړی.د حضرت امام بخاری رحمه الله فیصله ده چه دده احادیث لیکلې شی خو دلیل پرې نشی نیولې. د حضرت ابن عدی رحمه الله قول دې چه دده داسې روایتونه هم دی چه ددې متابعت نشته دې. دارقطنی فرمانی چه دا قوی نه دې.

**د سورة بقرې د لوستلو حکم:**مسند احمد کښې دی چه قرآن پاك وانی چه داخپلو ویونکو دپاره دقیامت په ورځ شفاعت کوی. دوه نورانی سورتونه بقره اوآل عمران وانې.دا دواړه به د قیامت په ورځ دا شان رازی چه ګنې دادوه سیوری دی یابه دوه وریځې وی یادواړه دمارغانودوه سیلونه دی.خپلو ویونکو والو دپاره به الله ﷻ ته سفارش کوی.بیا حضور ﷺ اوفرمائیل چه سوره بقره وانې، ددې ونیل د ویونکو دپاره برکت دې. اوپرېښودل ئې حسرت دې. ددې طاقت باطل کیدو والا نه دې. په صحیح مسلم کښې هم حدیث دې (۴)

**د سورة بقرې سفارش:**- دمسنداحمد په یوحدیث کښې دی چه قرآن پاك اوددې ویونکې به دقیامت په ورځ راوبللې شی. مخکښې مخکښې به سورت بقره او سورت آل عمران وی اودوی به د وریځو په شان

---

۱ ) فضائل القران لابی عبید : ۱۲/۳٤،)-

۲ ) احمد۵/۳٤۸، دارمی کتاب فضائل القران باب سورة البقرة و آل عمران : ۳۳۹٤، وسنده حسن)-

۳ ) ابن ماجة کتاب الادب باب ثواب قراة القران رقم:۳۷۸۱، وسنده حسن)-

٤ ) احمد: ۲٤۹/۵، صحیح مسلم: کتاب فضائل القران باب فضل قراة القران وسورة البقرة: ۸۰٤)-

یا دسیوری پشان یا د چترئ په شان یا د مارغانو د سیل په شان وی اودواړه به الله ﷻ ته سفارش کوی مسلم او ترمذی کښې هم دا حدیث دې (۱)امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن ونیلی دی.

**په سورة بقره کښې اسم اعظم دې:-** یوسړی په خپل مونځ کښې سورت بقره او سورت آل عمران اونیلو ، ددې د فراغت نه پس حضرت کعب اوفرمائیل په الله ﷻ قسم چه د چا په اختیار کښې خما سا ده ،په دې کښې دالله ﷻ هغه نوم دې چه دې نوم سره کله هم هغه راوبللې شی نوهغه ذات ئې قبلوی.اوس دې سړی حضرت کعب ﷺ ته عرض اوکړو ماته اووائې هغه نوم کوم دې. حضرت کعب ﷺ ددې نه انکار اوکړو او وې فرمائیل چه هسې نه خه ئې اووایم او ته ددې نوم په برکت سره دعا اوکړې اوهغه خما او ستا د هلاکت سبب جوړ شی.

**د سورة بقرې ویونکو دپاره عجیبه زیرې:-** حضرت ابوامامه فرمائی چه ستا رور ته په خوب کښې اوخودلې شو چه ګویا خلق په اوچتو غرونو باندې خیژی،دغر په څوکه باندې دوه شنې ونې دی او ددې نه آوازونه رازی چه آیا په تاسو کښې څوك سورت بقره والاشته دې ؟ آیا په تاسو کښې څوك سورت آل عمران والاشته دې؟ کله چه څوك اووائی نو هغه ونه دوی طرف ته خپلې میوې رانښکته کړی اودوی دهغې په ښاخونو باندې کښینی او دوی لره پورته کړی.

**سورة بقره ترخپله وسه پورې خپل تالی ملګرتیا کوی:-** حضرت ام درداء رضی الله عنها وائی چه یو سړی به قرآن پاك لوستلو او ده خپل ګاونډی مړ کړو اوبیا په قصاص کښې دی هم اوژولې شو نو قران پاك یویو سورت شواو بیل بیل شو تردې چه ده سره صرف سورت آل عمران او سورت بقره پاتې شوه. یو جمعه پس سورت آل عمران هم لاړو . بیا یو جمعه نوره تیره شوه نو آواز راغلو خما خبرې نه بدلیږی او خه په خپلو بندګانو باندې ظلم نه کوم. نودا مبارك سورت یعنی سورت بقره هم دده نه جدا شوه ، مطلب دادې چه دا دواړه سورتونه دده دپاره د عذاب او بلاګانو نه حفاظت کوی. او دده قبر دده دلجوئی کوی او د ټولونه په آخر کښې دده دګناهونو په وجه دده سفارش نه شی کولې.

**سحرمابنام د سورة بقرې لوستل:-** یزید بن اسود جرشی رحمه الله وائی چه د دې دواړو سورتونو لوستونکې ټوله ورخ دې د نفاق نه بری کوی او ددې د شپې لوستونکې ټوله شپه دې د نفاق نه بری کوی. پخپله حضرت یزید رحمه الله دخپل معمول په وظیفه کښې د قران پاك نه علاوه به دا دوه سورتونه سحر مابنام لوستل.حضرت عمر فاروق ﷺ فرمائی چه کوم سړې دا دواړه سورتونه وائی نودالله ﷻ په نیز دې په فرمانبردارو کښې شمارلې شی. ددې سند منقطع دې. بخاری اومسلم کښې دی چه رسول کریم ﷺ دا دواړه سورتونه په یو رکعت کښې اوونیل . (۲)

**د اوو لوسو سورتونو فضیلت.-** رسول کریم ﷺ فرمائی چه ماته اووه لوئې لوئې سورتونه د تورات په ځائې راکړې شوی دی. اود انجیل په ځائې ماته دوه آیتونه راکړې شوی دی. اود زبور په ځائې ماته دوؤ سووؤ نه کم آیتونو والا سورتونه راکړې شوی دی. اوبیا ماته په فضیلت کښې خاص سوره «ق» نه واخله تر آخری پورې سورتونه ملاو شوی دی(۳)داحدیث غریب دې اوددې راوی سعید بن ابوالبشر رحمه الله کښې څه کلام شوې دې ابوعبید رحمه الله دا په بل سند سره روایت کړې دې ، والله اعلم.

یو بل حدیث کښې دی چه کوم سړې دا اووه سورتونه حاصل کړی نو هغه ډیر لوئې عالم دې (۴). دا روایت هم غریب دې ،

---

۱) احمد: ۲۴۹/۵، صحیح مسلم: کتاب صلاة المسافرین باب فضل قراة فی صلاة اللیل: ۷۷۲، ترمذی: ۲۶۲)-،

۲) صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین استحباب تطویل قراة فی صلاة اللیل: ۷۷۲)

۳) فضائل القران لابی عبید: ۳٤/۱)-

٤) احمد: ۷۲/٦، مشکل الاثار: ۱۵۳/۲، حاکم: ٥٦٤/۱، وسنده حسن وصححه الحاکم ووافقه الذهبی)-

**د سورة بقرې په وجه امارت ملاويدل**:-مسند احمد کښې دا روايت دې چه يو خل حضور ﷺ يو لښکر اوليږلو او ددوی امير ئې هغه سړې مقرر کړو چه چاته سورت بقره ياده وه. حالانکه هغه په دې ټولو کښې کشر وو(١)

حضرت سعيد بن جبير ﷺ د ﴿ وَلَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْاٰنَ الْعَظِيْمَ ﴾ په تفسير کښې فرمائی چه ددې نه مراد هم دا اووه سورتونه دی،سورة بقره،سورت نساء،سورت مانده،سورت انعام، سورت اعراف او سورت يونس .حضرت مجاهد مکحول رحمه الله ،حضرت عطيه بن قيس رحمه الله ،حضرت ابو محمد فارسی رحمه الله ،شداد بن اوس رحمه الله ،حضرت يحيی بن حارث ذماری رحمه الله نه هم دا نقل دی.

**( فصل ) مقام نزول او نور معلومات**

سورت بقره ټوله په مدينه منوره کښې نازله شوه. او په شروع شروع کښې چه کوم سورتونه نازل شو په هغې کښې يو دا هم دې البته ددې يو آيت﴿وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ اِلَى اللّٰهِ ﴾ دټولونه په آخر کښې نازل شوې دې. يعنی قران پاک کښې د ټولو نه آخری آيت دا دې. ممکن دی چه نازل شوې دې نه پس وی خو موجود په دې کښې دې اودا شان د سود د حرمت آيتونه هم په آخر کښې نازل شوی وو. حضرت خالد بن معدان ﷺ سورت بقره ته فسطاط القران وائی يعنی دقران پاك خيمه. دبعضو عالمانو فرمان دې چه په دې کښې يو زر خبرونه دی او يو زر احکام دی او يو زر کارونو نه منع کړې شوې ده . ددې آيتونه دوه سوه اووه اتيا دی.ددې کلمات شپږ زره دو سوه او يويشت دی. ددې حروف پنځويښت نيم زره دی. والله اعلم.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دا سورت مدنی دې. عبدالله بن زبير ﷺ اوحضرت زيد بن ثابت ﷺ او ډير امامان اوعالمان مفسرينو نه بلاخلاف دا روايت شوې دې.

**سورة بقرې ته سورة بقره وئيل**:- ابن مردويه نه يو حديث کښې دی چه سوره بقره ، سورت آل عمران اوسورت نساء وغيره وغيره دې ته مه وائې بلکه داسې وائې چه هغه سورت چه په هغې کښې د بقره ذکر دې.اوهغه سورت چه په هغې کښې دعمران ذکر دې. اوداشان د قرآن پاك دټولو سورتونو نومونه وائې(٢) ليکن دا حديث غريب دې بلکه د دې فرمان د رسول عليه السلام نه ثابت کيدل صحيح نه دی.ددې راوی عيسی بن ميمون ابوسلمه خواص ضعيف دې دده روايت د سند لحاظ سره صحيح نه وی.ددې خلاف بخاری اومسلم کښې ابن مسعود ﷺ نه روايت دې چه هغوی په بطن وادئی کښې په شيطان باندې کانړی ويشتلی وو. دا د بيت الله شريف ګس طرف ته وو. او دمنی نه بنی طرف ته او فرمائ چه هم دې ځائې نه به ئې پرې کانړی ويشتل چه په کوم ځائې سورت بقره نازل شوې وو(٣). نوددې حديث نه صفا ثابت شو چې سورت بقره وغيره وئيل جائز دی.

**په جنګ حنين کښې د صحابوُ راجمع کيدل**.- ليکن نور واورئی په چې ابن مردويه کښې دی کله چې نبی کريم ﷺ په خپلو صحابه کرام ﷺ څه سستی اوليده نو دوی ته ئې (ياأصحاب) (سورةالبقرة) اووئيل.غالبًا دادحنين د ورځې ذکر دې کله چه دلښکر قدمونه خويدلی وو نودنبی کريم ﷺ په حکم سره حضرت عباس ﷺ انې ونې والو،يعنی انې بيعت الرضوان والو او انې سورت بقره والو ونيلی وو چه په دوی کښې بهادری پيدا شی. نو په دې آواز سره صحابه کرام دهر طرف نه راجمع شول.

**په جنګ يمامه کښې د صحابوُ راجمع کيدل**:- مسيلمه چه د نبوت دروغژنه دعوی کړې وه دده سره د جنګ په وخت کښې چې کله د قبيله بنوحنيفه تکليفونو پريشان کړل او قدمونه ئې اوخويدل ، نو

---

١) ترمذی ابواب فضائل القران باب ماجاء في سورة البقرة : ٢٨٧٦، وسنده حسن فقال الترمذی حسن ، وصححه ابن خزيمه : ١٥٠٩. ابن حبان : ١٧٨٩، والحاكم على الشرط الشيخين: ٤٤٣/١، ووافقه الذهبی)-

٢) مجمع الزوائد:١٥٧/٧)-

٣) صحيح بخاری کتاب الحج باب رمی الجمال من بطن الوادی: ١٧٤٧، صحيح مسلم: ١٢٩٦)-

صحابه کرامو دا شان خلقو ته اونیل چه (یااصحاب سورة البقره) یعنی دي ائي د سورې بقر والو نې اوونیل .او په دې آواز ټول جمع شو. او په یو مخ نې جنګ اوکړو تر دې چه په دې مرتدانو باندې الله ﷻ خپل لښکر ته فتح ورکړه، الله ﷻ دې دخپل رسول د ټولو صحابه کرامونه راضي وی.

| بِسْمِ | اللّٰهِ | الرَّحْمٰنِ | الرَّحِيْمِ |
|---|---|---|---|
| شروع کوم په نوم | د الله | چه ډیرمهربان | زیات رحم کونکې دې |

| الٓمّٓ ۝ |
|---|
| ا ل م ا |
| الم |

قوله تعالى:- الٓمّٓ

**د حروف مقطعات معنى شته که نه؟:-** (الٓمّٓ) ددې پشان حروف مقطعات چه د سورتونو په شروع کښې رازی ددې په تفسیر کښې د علماء کرامو اختلاف دې ① خینې وائی چه ددې معنی صرف الله ﷻ ته معلومه ده بل چاته نه ده معلومه ، په دې وجه هغوئ ددې تفسیرنه کوی. قرطبی رحمه الله حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه ،حضرت عمرفاروق رضی الله عنه ، حضرت عثمان غني رضی الله عنه ،حضرت علی رضی الله عنه او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه هم دا نقل کړی دی .عامرشعبی رحمه الله، سفیان ثوری رحمه الله، ربیع بن خثیم رحمه الله هم دا وائی . ابوحاتم رحمه الله،ابن حبان رحمه الله هم دا خوښوی ② خینې خلق ددې حروفو تفسیر هم کوی خو ددې تفسیر کښې ډیر اختلاف دې

**د حروف مقطعاتو معنى کښې اقوال:-** ① عبدالرحمان بن زید بن اسلم رحمه الله فرمائی چه دا دسورتونو نومونه دی .علامه ابوالقاسم محمود بن عمرزمخشری رحمه الله خپل تقریر کښې لیکی چه داکثرو خلقویه دې اتفاق دې . سیبویه هم دا ونیلی دی او ددوی دلیل د بخاري او مسلم هغه حدیث دې په کوم کښې چې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ به د جمعې په ورځ د سحر مونځ کښې (الم السجدة) او (هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ) ونیل (¹).حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه (الم)او (حم)او (المص)او (ص)دا ټول د سورتونو ابتداء ده او ددې نه دا سورتونه شروع کیږی . دا هم منقول دی چه [ الم ] دقران پاک د نومونو نه یو نوم دې د حضرت قتاده رحمه الله او حضرت زید بن اسلم رحمه الله هم دا قول دې اوشاید چه ددې مطلب هم دا وی چه کوم عبدالرحمان بن زید بن اسلم رحمه الله فرمائي چه دا د سورتونو نومونه دی . خکه چې هر سورة ته قران ونیلی کیدیشی او دا نشی کیدې چې د ټول قرآن پاک نوم [ المص ] وی خکه چه کله یو سړې اووائی چه ما سورة (المص) اولوستو نو په ظاهره دا ګنړلې کیږی چه دۀ سورة اعراف اوونیلو ،ټول قران پاک نې نه دې ونیلې والله اعلم

② خینې مفسرین وائی چه دا د الله ﷻ نومونه دی . حضرت شعبی ، سالم بن عبدالله ، اسماعیل بن عبدالرحمن،سدی کبیر هم دا فرمائی .حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه الم دالله لوئې نوم دې یو روایت کښې دی چه ( حم ) ،(طسم) او( الم) دا ټول دالله ﷻ لوئې نومونه دی . حضرت علی رضی الله عنه او حضرت ابن عباس رضی الله عنه دواړو نه دا مروی دی . او یو روایت کښې دی چه دا دالله ﷻ قسم دې اودهغه نوم هم دې حضرت عکرمه رضی الله عنه فرمائی چه داقسم دې ، حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه هم دا مروی دی چه ددې معنی أنا الله اعلم ده ،یعنی زه یم الله ﷻ چه ماته زیات معلومات دی . حضرت سعید بن جبیر رضی الله عنه نه هم دا مروی دی.ابن عباس رضی الله عنه او ابن مسعود رضی الله عنه او نور صحابه کرام رضی الله عنهم فرمائی چه دالله ﷻ بیل بیل نومونه دی (²)

[1] صحیح بخاری : کتاب ما یقرأ فی صلاة الفجر یوم الجمعة: ۸۹۱، صحیح مسلم: ۸۷۹)
[2] الطبری: ۱/۸۸،)-

③ابوالعاليه فرمائي چه دا درې حروف الف ،لام او ميم يو كم ديرشو حرفونو نه دى او دا ټولو ژبو كښې رازى . دې كښې هر يو حرف دالله ﷻ يويو نوم نه شروع كيږى . او دالله ﷻ نعمت او دې كښې د قومونو او د هغه دوختونوبيان دې . حضرت عيسى عليه السلام تعجب سره ونيلى وو چه هغه خلق به كفر كوى او د هغوئ په خلو به دالله ﷻ نومونه وى دهغه په روزئ خو دوى ژوندى دى.

«الف» نه دالله ﷻنوم شروع كيږى . او لام نه دهغه «لطيف» نوم شروع كيږى .او ميم نه د هغه نوم مجيد شروع كيږى.او «الف» نه مراد «الاء» يعنى نعمتونه دى اود «لام» نه مراد د الله ﷻ لطيف نوم دې او ميم نه مراد دالله ﷻ «مجيد» يعنى بزرگي ده. د «الف» نه مراد يو كال دې او «لام» نه ديرش كاله دى او «ميم» نه څلويښت كاله دى (ابن ابى حاتم ) ( [1] )

**په اقوالو كښې تطبيق**:-امام جرير رحمه الله دې ټولو اقوالو كښې تطبيق كوى يعنى ثابت كړى ئې دى چه دې كښې داسې اختلاف نشته دې چه هغه د يوبل خلاف وى . كيديشى چه داد سورتونو نومونه هم وى او د الله ﷻ نومونه هم وى اود سورتونو د شروع الفاظ هم وى او ددې نه د هر هر حرف نه دالله ﷻ د نوم مبارك طرفته اشاره هم وى او دهغه ذات صفت طرفته هم او مودې وغير ته هم . يويو لفظ څو څو معنو كښې رازى. لكه امة ، ددې يو معنى ده دين

لكه قران پاک كښې دى چه ﴿إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ﴾ يعنى مونږ خپل پلار نيكه په دې دين باندې اوموندو. دويمه معنى ئې دالله ﷻ اطاعت والا بنده ده لكه ﴿إِنَّ إِبْرَاهِيمَ كَانَ أُمَّةً﴾يعنى حضرت ابراهيم عليه السلام دالله ﷻ مطيع اوفرمانبردار بنده وو. او هغه مشركانو نه نه وو. دريمه معنى ئې جماعت «ډله» ده لكه فرمائى چه ﴿وَجَدَ عَلَيْهِ أُمَّةً﴾الخ يعنى هغه(موسى عليه السلام)يوجماعت اوليدوچه ددې كوهى نه ئې اوبه څكلې.څلورمه معنى ئې دمودې او زمانې ده.فرمان دې چه ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا﴾ يعنى مونږ يو جماعت اوليږلو. فرمان دې چه ﴿وَادَّكَرَ بَعْدَ أُمَّةٍ﴾يومودې نه پس هغه ته ورياد شو. نوځنگه چه دلته ددې مطلب دادې چه يو لفظ سره يو ځائې كښې ددې ډيرې معنې دى اولفظ دامت وغيره چه په ډيرومعنوكښې استعماليږى اودې ته اصطلاح كښې الفاظ مشتركه وائى اوددې معنى هر ځائې كښې جدا جدا ضرور وى خو هر ځائې كښې ئې يو معنى وى اوهغه د عبارت نه معلوميږى اوټول ځائې كښې ټولې معنې مراد نه وى او ټولو باندې ديو محمول كولو مسئله كښې علماء كرامو داصول لوئې اختلاف كړې دې او زمونږ د تفسير موضوع نه ددې بيان خارج دې ، والله اعلم.

دويم دا چه دامت وغيره الفاظو چې كومې معانې دى ،نو هغه ډيرې زياتې دى .اودا الفاظ هم د دې دپاره مقررشوى دى. اود كلام په تركيب كښې او د الفاظو په وضع سره يو معنى صحيح شى خو د يو حرف دلالت په يو داسې نوم باندې ممكن دې چه هغه داسې بل نوم باندې هم دلالت كوى، او يو ته په بل فضيلت نه وى . نو مقدر منلو سره، نه ضمير وركولو سره، نه د وضع اعتبار سره او نه د بل څه اعتبار سره ،خو داسې خبره علمى طور سره په پوهه كښې نشى راتلې البته كه منقوله وى نو بله خبره ده . خو دلته اختلاف دې او اجماع نشته دى ، په دې وجه دا فيصله قابل غور ده . اوس د عربو خينې اشعار چه د دليل په طور پيش كولې كيږى چه د كلمې بيانولودپاره صرف ددې رومبې حرف وائى ، دا صحيح دى خو داسې اشعارو كښې عبارت داسې وى چه په دې دلالت كوى . يو حرف وئيلو سره پوره جمله په پوهه كښې رازى. خو دلته داسې هم نه دى. والله اعلم.

قرطبى رحمه الله وائى چه يو حديث مبارک كښې دى چه څوک ديو مسلمان په قتل كولو د نيمې كليمې هومره هم مدد اوكړى ()، مطلب دادې چه أُقتل پوره اونه وائى بلكه صرف اق ا ووائى.

---

[1] ) طبرى: ۸۸/۱ عن ابى العالية)-

مجاهد رحمة الله عليه وائي چه دسورتونو شروع کښې چه کوم حروف دی لکه ( ق ، حم ،طسم ، الر)
وغیره ټول حروف هجا دی . خینې عرب دان وائي چه دا حروف چه بیل بیل اتویشت دی لیکلې کیږی.
دې کښې څو ذکر کولو نه پس باقی پرېښودې شوی دی لکه چه څوک اووائی چه زما خوښې اب ت لیکلې
شی نو ددې مطلب دادې چه دا ټول اتویشت حروف لیکلې کیږی خو د ابتداء څو حروف ذکر کړې شو
اوباقی پریخودې شو. د سورتونو شروع کښې داشان څوارلس حروف رازی چه ( ال م ص ر ک ه ی ع ط س
ح ق ن ) ، که دا ټول یو ځائې کړې شی نو ددې نه عبارت جوړیږی چه ( نص حکیم قاطع له سر ) د تعداد لحاظ
سره دا څوارلس حروف دی او جمله حروف چونکه اتویشت دی نو په دې وجه دا نیم شو. دا چه کوم حروف
بیان کړې شو دا د هغه حروفونه دی چه کوم نه دی راوړې شوی او زیات فضیلت والا دی یعنی مهموسه
مجهوره وغیره سبحان الله ! هر څیز کښې د هغه مالک حکمت په نظر رازی . دا خبره یقینی ده چه دالله
ﷻ کلام لغو، بیهوده او بې کاره او بې معنی الفاظو نه پاک دې . کوم جاهل خلق چه وائی چه ددې حروفو
هډو معنی نشته دې نوهغوی بالکل په خطا باندې دی ، ددې څه نه څه معنی ضرور شته دې .
که حضرت نبی کریم ﷺ نه ددې څه معنی ثابت وی نو مونږ به ئې هم کوؤ او ګنړو به ئې نو چرته چه حضور
نبي کریم ﷺ نه ددې څه بیان نه دې شوې نو مونږ به ئې هم نه کوؤ خو په دې به ایمان راوړو خکه چه دا
دالله ﷻ د طرفنه دی .دحضور ﷺ طرفنه خو په دې کښې مونږ ته ملاؤ نشو. دعلماء کرامو په دې کښې
ډیر اختلاف دې ،

**د حروف مقطعاتو حکمتونه**:-که چاته په دې باندې څه قوی دلیل ملاؤ شی نو خیر هغه دې اومنی ګنی
بهتر دادی چه په دې دې ایمان راوړې شی چه دا حروف دالله ﷻ کلام دې او دا دې منی چه ددې معنی
ضرور شته دې او هغه رب علیم ته معلومې دی او مونږ ته نه دې معلومې.

① اویل حکمت ددې حروفو په راوړلو کښې دا هم دې چه ددې سورتو نو آغاز معلوم شی . خو دا وجه
ضعیفه ده خکه چه ددې نه بغیر هم د سورتونو جدائی معلومیږی او چه د کومو سورتونو شروع کښې
داسې حروف نه وی نو د هغې ابتداء او انتها معلومه نه ده څه ؟ بیا د سورتونو نه اول (بِسْمِ اللهِ) الخ ونیلو
او د لیکلو اعتبار سره موجود کیدل ولې دا یو سورت د بل سورت نه جداکوی څۀ ؟

② ابن جریر ددې یو حکمت دا بیان کړې دې مشرکانو به کتاب الله هډو آوریدو نه نو دوی ته دآورولو
دپاره داسې حروف راوړې شو. چه دوی متوجو شی او بیا ددې تلاوت شروع کړې شی. خودا وجه هم
ناقصه ده . خکه که داسې وې نو د ټولو سورتونو ابتداء به ددې حروفو نه کیده خوداسې نه ده بلکه اکثر
سورتونه ددې نه خالی دی . بیا چه کله مشرکانو سره کلام شروع کول وی نو هم دا حروف ادا کول پکار
دی دانه چه صرف د سورتونو شروع کښې هم دا حروف دې وی . بیا په دې غور کول پکار دی چه داسورة
یعنی سورة بقره او دې نه پس سورت یعنی سورت آل عمران دا خو مدینه منوره کښې نازل شوی وو او
ددې دنازلیدو په وخت کښې مشرکان هلته نه وو ، بیا دې کښې دا حروف ولې راغلل ؟

③ دلته یو بل حکمت بیان شویدې چه ددې حروفو په راوړلو کښې د قران پاک معجزه داده چه ددې نه
ټول مخلوق عاجزه دې ، ددې نه باوجود چه دا حروف د روزمره استعمال والا حروفو ترکیب سره ورکړې
شوی دی . خود خلقو دکلام نه بالکل یو طرفته دی . دمبرد او محققینو یو جماعت اوفراء او قطرب نه هم
دا منقول دی . زمحشری کشاف کښې ددې قول نقل کولو نه پس ددې ډیر تائید کړې دې . زمحشری ،
ابن تیمیه او حافظ مزی رحمة الله علیهم نه هم دا حکمت بیان شوې دې . زمحشری رحمه الله فرمانی چه هم دا
وجه ده چه دا ټول حروف یو ځائې نه دی .

[1] ابن ماجة ابواب الديات باب التغليظ في قتل ظلمان : ٢٦٢٠)-

**د حروفو مقطعاتو د بار بار راوړلو وجه:-** ددې حروفو د بار بار راوړلو وجه داده چه مشرکانو له عاجزه کړې شي او لاجواب کړې شي او دوی اورتلې شي او دهمکی ورکړې شي. لکه چه قران پاک کښې اکثر قصې څو څو ځل بیان شوی دی او بار بار دقران د مثل راوړلو سره ددوی د عاجزئی بیان شوې دې. خینو خایونو کښې صرف یو حرف راغلې دې. لکه (ص)، (ن)، (ق)، او خینو خایونو کښې دوه حروف راغلی دی لکه (حم)، او چرته درې حروف راغلی دی. لکه (الم)، او چرته څلور لکه (المر)، او (المص)، اوچرته پنځه راغلی دی لکه (کهیعص)، او (حم عسق)، ځکه چه دعربو کلمات هم داشان دی چه هغې کښې څو یا یو حرف وی یا دوه یا درې یا څلور یا پنځه حروف وی او پنځو حروفو نه زیات کلمات نه وی خو خبره داده چه دا حروف قران پاک کښې په طور دمعجزې راغلی دی نو ضروری وو چه د کومو سورتونو شروع کښې دا حروف راغلی وی نو هلته ذکرهم دقران پاک وی او دقران پاک بزرګی اولوئې والې بیان شوې وی نو یو کم دیرش سورتونو کښې هم داشان دی، دالله فرمان دې چه ﴿الٓمٓ ۚ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ ۛ فِيْهِ ۛ﴾ دلته هم قران پاک د الله ﷻ کلام کیدو کښې څه شک نشته دې. اوبل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿الٓمٓ ۚ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ۚ نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ هغه الله ﷻ چه دهغه نه سوابل څوک دعبادت لائق نشته دې او هغه دوام والا دې اوهغه تا باندې حق سره کتاب نازل کړو چه د اولنو کتابونو تصدیق کوی. دلته هم ددې حروفو نه پس دقران عظمت بیان شوې دې. او بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿الٓمٓصٓ ۚ كِتٰبٌ اُنْزِلَ اِلَيْكَ﴾ الخ، یعنې دا کتاب ستا طرفته نازل کړې شوې دې او ته خپل زړه مه تنګوه. اوبل ځائې کښې فرمائی چه ﴿الٓرٰ ۚ كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ﴾ الخ، مونږ دا کتا ستا طرفته نازل کړې دې چه خلق دخپل رب په حکم سره د تیرو نه راوباسې او رڼا ته ئې راولې ارشاد دې چه ﴿الٓمٓ ۚ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۚ﴾ ددې کتاب د رب العالمین دطرفنه نازلیدو کښې هیڅ شک نشته دې. فرمائی چه ﴿حٰمٓ ۚ تَنْزِيْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۚ﴾ بخښنو والا اومهربانو والا مالک دا نازل کړو ﴿حٰمٓ ۚ عٓسٓقٓ ۚ كَذٰلِكَ يُوْحِيْٓ اِلَيْكَ﴾ الخ یعنی داسې وحی کوی چه الله ﷻ غالب حکمتونو والا ستا طرفته اوددې نبیانو طرفته چه ستا نه مخکښې وو. داشان او ددې په پشان نورو سورتونو ته که بغور اوکتلې شی نو معلومیږی چه ددې حروفو نه پس د کلام الله دعظمت ذکر دې. اوددې نه دا خبره قوی معلومیږی چه دا حروف په دې وجه راوړې شوی دی چه خلق ددې د معارضی او مقابلې نه عاجزه شی (والله اعلم).

خینې خلقو دا وئیلی دی چه ددې حروفو نه موده معلوم کړې شوې ده اود فتنو او جنګونو او د داسې کارونو اوقات خودلې شوی دی. خودا قول ضعیف معلومیږی. ددې په دلیل کښې بو بل حدیث پاک بیانیږی اول خو هغه ضعیف دې ددې حدیث پاک اوددې قول پوخوالې یو طرفته کړه خوددې باطل کیدل زیات ثابت دی. هغه حدیث پاک محمد بن اسحاق بن یسار نقل کړې دې چه د تاریخ مصنف دې.

**دابن اخطب یهودی حاضری:-** دې حدیث پاک کښې دی چه ابویاسر بن اخطب یهودی خپلو څو ملګرو سره دحضورنبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضرشو. اوحضور نبی کریم ﷺ هغه وخت کښې دسورة بقرة آیت ﴿الٓمٓ ۚ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ ۛ فِيْهِ ۛ﴾ تلاوت فرمائیلو. ددې آوریدو نه پس هغه خپل رور حیې بن اخطب ته رازی او وائی چه ما حضور نبی کریم ﷺ نه دا آیت مبارک آوریدلې دې؟ هغه تپوس اوکړو چه تا ترې پخپله واوریدو؟ وې وئیل چه آؤ ما پخپله آوریدلې دی. حیې (دا دیو سړی نوم دې)، دا ټول یهود دحضور نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر کړل او عرض ئې اوکړو چه یارسول الله ﷺ آیا دا رښتیا دی چه تاسو ددې آیت مبارک تلاوت کولو.؟ حضور نبی کریم ﷺ اوفرمائیلو چه آؤ دا رښتیا دی. هغه اووئیل چه واوره ستا نه مخکښې چه څومره نبیان علیهم السلام راغلی دی هغوئ هیچا ته هم دا نه وو وئیلې شوی چه دهغه ملک او مذهب به تر کومې مودې پورې وی او حضور نبی کریم ﷺ ته وئیلې شوی دی. بیا پورته شو او خلقو ته اووئیل چه دالف عدد شو دیو لام دیرش، دمیم څلویښت جملې یو اویا شوې. آیا تاسو د نبی کریم

ﷺ اطاعت کول غواړئ چه دهغه ملک او امت به یو اویا کاله وی . بیا حضور نبی کریم ﷺ ته متوجه شو او وې ونیل چه آیا داسې څه بل آیت هم شته دې ؟
حضور نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه آو ﴿الٓمٓصٓ﴾ هغه اوونیل چه دا ډیر اوږد ا و دورند دې .د الف یو لام د دیرشو ، دمیم څلویښت ، دصاد یو نوی ﴿لس کم سل﴾ ،دا ټول یو سل یوشپیته کاله شو وې ونیل چه داسې څه بل آیت هم شته دې ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آؤ ، ﴿الر﴾ هغه ونیل چه داهم ډیر درونډ او اوږد دې . د الف یو لام د یرشو، او د راء دوه سوه ، ټول دوه سوه یو اویا کاله شو. آیا دې سره څه بل آیت هم شته دې ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آؤ ﴿الٓمٓرٓ﴾ هغه اوونیل چه دا ډیر دروند دې . دالف یو لام د دیرشو ، میم د څلویښتو او راء د دوه سوؤ، ټول چه یو خائې شې نو دوه سوه یو اویا کاله شو . اوس خو کار مشکل شواو خبره ګډه وډه شوه څنې خلقو ا وونیل چې څئ . ابویاسر خپل رور او نورو یهودوعالمانو ته اوونیل چې په دې کښې تعجب کیدیشی چې ددې حرفونو مجموعه نبی ﷺ ته ملا شوې وی . یو اویا یو،یو سل یو دیرش بل،دوه سوه یو دیرش،دوه سوه یو اویا ،دا ټول چه راجمع کړې نو اووه سوه څلور کاله شو. هغه اوونیل چه اوس کار ګډوډ شو.
دځینې خلقو خیال دې چه دا آیت مبارک دهغه خلقو حق کښې نازل شو﴿هُوَ الَّذِيٓ اَنۡزَلَ عَلَيۡكَ الۡكِتٰبَ مِنۡهُ اٰيٰتٌ مُّحۡكَمٰتٌ﴾ الخ . یعني هغه الله چه هغه په تا باندې نازل کړو کتاب چه دې کښې محکم آیتونه دی او دا اصل کتاب دې او نور آیتونه متشابه والا دی .ددې حدیث پاک دارومدار په محمد بن سائب کلبی باندې دې . اوچه دکوم حدیث پاک راوی یو وی نو محدثین هغه حجت نه نیسی .اوبیا که دا شان اومنلې شی نوهر داسې عددونه راویستلې شی نو چه کوم څوارلس حروف مونږ بیان کړې دی دهغې عددونه به ډیر زیات شی او چه کوم حروف دې کښې ډیر څل راغلی دی که دهغې عددونه شمیر کړې شی نو بیا به هم ډیر لونې شمیر شی . والله اعلم .

| ذٰلِكَ | الۡكِتٰبُ | لَا | رَيۡبَ | فِيۡهِ | هُدًى | لِّلۡمُتَّقِيۡنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دا | کتاب دې | نشته دې | شک | په دې کښې | لارښودنکې دې | دپاره دپرهیزګارو |
| دادالله | هغه کتاب دې | چې هیڅ | شک شبه | په کښې نشته | هغې پرهیزګارو ته | |

**قوله تعالی:- ذٰلِكَ**
**قران مجید بیشکه د الله کلام دې:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دلته د ﴿ ذالك﴾ معنی کښې هذا دپاره ده. مجاهد ، عکرمه ، سعید بن جبیر ، سدی ، مقاتل بن حیان ، زید بن اسلم او ابن جریج ﷺ نه هم داقول نقل دې . دا دواړه الفاظ د یو بل قائمقام عربئ ژبه کښې یو بل دپاره اکثر رازی.امام بخاری ﷫ حضرت ابوعبیده ﷺ نه هم نقل کړی دی .مطلب دادې چه ﴿ ذالك ﴾ اصل کښې د لرې اشارې دپاره دې اوددې معنی ده هغه ، خو کله کله دا د نزدې معنی دپاره هم رازی . نو په هغه وخت کښې به ددې معنی وی دا. دلته هم ددې معنی داده . زمحشری وائی چه ددې نه اشاره الم طرفته ده لکه آیت مبارک کښې دی چه ﴿ فَارِضٌ وَّلَا بِكۡرٌ عَوَانٌ بَيۡنَ ذٰلِكَ ﴾ یعنی نه خو هغه غوا بوډئی ده او نه وره څخی ده بلکه ددې مینځ کښې ده او بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿ ذٰلِكُمۡ حُكۡمُ اللّٰهِ يَحۡكُمُ بَيۡنَكُمۡ ﴾ او ددې مثال اومواقع مخکښې تیر شوی دی . والله اعلم
**په ذلک سره وعدې ته اشاره ده:-** ځینو مفسیرینو ونیلی دی چه ددې نه اشاره ده قران پاک طرفتـه ده چه ددې د نازلیدو وعده حضرت نبی کریم ﷺ سره شوې وه.ځینې وائی چه دا انجیل طرفته اشاره ده او ځینی وائی چه دا تورات طرفته اشاره ده .اودا شان لس اقوال دی. خو دې ته اکثرو مفسرینو ضعیف ونیلی دی . والله اعلم .

قوله تعالى:- الْكِتٰبُ

**د كتاب نه مراد:**-كتاب نه مراد قران پاک دې .كومو خلقو چه ونيلي دی چه د ﴿ذٰلِكَ الْكِتٰبُ﴾ اشاره انجيل اوتورات طرفته ده نو دوی ډيره لرې لار اختيار کړې ده او ډير تکليف نې پورته کړې دې او هيڅ بې هيڅه نې خبره کړې ده اوهغوئ ته ددې علم نشته دې چه د﴿ريب﴾ معنی شک ده .حضرت ابن عباس ﷺ ، حضرت ابن مسعود ﷺ او ډير صحابه كرام ﷺنه هم دا معنی مروی ده. حضرت ابو درداء ﷺ او حضرت ابن عباس ﷺ،حضرت مجاهد ﷺ ،حضرت سعيد بن جبير ﷺ ،حضرت ابومالک نافع ﷺ چه د ابن عمر ﷺ مولادې ،عطاء، ابوالعاليه ، ربيع بن انس ،مقاتل بن حيان ، سدی ،قتاده اسماعيل بن ابوخالد رحمة الله عليهم نه هم دا مروی دی .

قوله تعالى:- لَا رَيْبَ ۚ ۛ فِيْهِ ۚ ۛ

**د ريب معنی** :ابن ابی حاتم فرمائی چه د مفسرينو دې کښې اختلاف دې چه د﴿لَا رَيْبَ﴾ لفظ دعربو شاعرانو شعرونو د تهمت معنی کښې هم راغلې دې او د حاجت معنی کښې هم استعمال شوې دې . ددې جملې معنی داشوه چه دا قران پاک د الله ﷻ طرفنه نازليدو کښې هيڅ شک نشته دې.لکه څنګه چه سورة سجده کښې دی چه ﴿الٓمّٓ ۚ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ؕ﴾ يعنی بيشکه دا قران پاک د ټولو جهانونو پالونکی طرفنه نازل شوې دې . څينوونيلی دی اګر چه داخبر دې خو په معنی د نهی کښې دې يعنی دې کښې شک مکوئ

څينې قاری حضرات ﴿لَا رَيْبَ﴾ باندې وقف کوی ﴿فِيْهِ ۚ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ﴾ جدا وائی خو ﴿لَا رَيْبَ﴾ باندې وقف کول ډير بهتر دی .څکه چه هم دا مضمون تير شوې دې او په هغې کښې په نسبت د﴿فِيْهِ ۚ هُدًى﴾ زياته مبالغه ده

قوله تعالى:- هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ۙ

**د ،،هدی،، تشريح:**-﴿هُدًى﴾ نحوی اعتبارسره صفت کيدو نه پس مرفوع کيدېشی اود حال په بناء هم کيدېشی .دې خائې کښې هدايت متقينو سره خاص کوی. لکه بل خائې کښې ارشاد دې چه ﴿قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى وَّشِفَآءٌ ؕ﴾ الخ ،يعنی دا قران پاک هدايت او شفاء ده ايمان والو دپاره اود بې ايمانو د غوږونو دروندوالې دې او سترګې نې ړندې دی ، دوی ډير لرې خائې نه آواز کوی﴿ وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ﴾ الخ ،يعنی دا قران ايمان والو دپاره شفاء او رحمت دې او ظالمان خلق خو خپل نقصان کښې مخکې روان دی . ددې مضمون نور آيتونه هم دی . اودهغه ټولو مطلب هم دادې چه قران پاک پخپله هدايت او صرف هدايت دې ا و ټولو دپاره دې . خو ددې هدايت نه نفع اوچتونکی نيک بخت خلق دی .

لکه فرمائی چه ﴿يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَتْكُمْ مَّوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ الخ ،انې خلقو تاسو لره دالله ﷻ نصيحت اود سينې دبيمارو شفاء راغلې ده .اودا مومنانو دپاره شفا او رحمت دې .حضرت ابن عباس او څينې نورو صحابه کرامو نه مروی دی چه هدايت نه مراد نور دې .

قوله تعالى:- لِّلْمُتَّقِيْنَ ۙ

**متقيان څوک دی ؟** ①حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه متقيان هغه خلق دی چه ايمان راوړلو نه پس د شرک نه لرې اوسيږی اودالله ﷻ احکامو باندې عمل کوی②او يو بل روايت کښې دی چه متقيان هغه خلق دی چه دالله ﷻ عذابونو نه ويريدو نه پس هدايت نه پريږدی . او د هغه رحمت اميد ساتلو سره د هغه طرفنه چه څه نازل شوی دی هغه رينښتونی منی③حضرت حسن بصری ﷫ فرمائی چه متقيان هغه خلق دی چه حرامو نه خان بچ اوساتی او فرائض پوره کړی④اعمش دحضرت ابوبکر عياض ﷫ نه سوال کوی چه متقيان خلق څوک دی ؟ دوی ورته هم دا جواب ورکوی . بيا دوی فرمائی چې ما د حضرت کلبی نه هم ددې باره کښې تپوس اوکړم ، نو هغوئ اوونيل چه متقيان هغه خلق دی چه د کبيره ګناهونو نه بچ اوسی .

په دې د دواړو اتفاق دي⑤حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه متقيان هغه خلق دی چه دهغوئ صفت الله ﷻ په خپله دې آيت مبارک کښې بيان فرمائی چه ﴿الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ﴾ الخ ،

حضرت ابن جرير فرمائي چه داټول اوصاف متقيانو کښې جمع دی . دترمذی او ابن ماجه روايت کښې دی چه نبی کريم ﷺ فرمائی چه بنده ترهغه وخته پورې حقيقی متقی نشی کيدې تر چه هغه څيزونو پرې نږدی چه په هغې کښې گناه نشته دې ددې ويرې چه هسې نه هغې کښې مبتلا شی.کوم چې حرام دی ترمذی دې ته حسن غريب وائی (¹)

ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت معاذ ﷜ فرمائی چه کله د قيامت په ورځ خلق يو ميدان کښې را ايسار کړې شی نو هغه وخت کښې به يو آواز کوونکې آواز کوی چه متقيان خلق چرته دی ؟دې آواز باندې به هغوئ اودريږی او الله ﷻ به دوی خپله قبضهٔ قدرت کښې واخلی او دوی سره به بغير حجاب نه ديدار اوکړی . ابو عفيف تپوس اوکړو چه متقيان خلق څوک دی ؟ دوی اوفرمائيل چه کوم شرک نه او بت پرستئ نه ځان بچ اوساتی او خالص دالله ﷻ عبادت اوکړی نو هم دې عزت سره به جنت ته داخل کړې شی

**دهدايت وضاحت:** ①دهدايت معنی کله زړه کښې پيوست ايمان سره رازی او په دې هدايت خو بغير دالله ﷻ نه نور څوک قدرت نه لری . فرمان دې چه ﴿اِنَّكَ لَا تَهْدِیْ مَنْ اَحْبَبْتَ﴾ يعنی ائې نبی ! ته چه چاته غواړې نو هدايت نه شی ورکولې .فرمائی چه ﴿لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ﴾ الخ، تا باندې ددوی هدايت لازم نه دې . فرمائی چه ﴿مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِیَ لَهٗ﴾ الخ ،چالره چه الله ﷻ گمراه کړی نو هيڅوک هغه په لار کولې نشی .فرمائی چه ﴿وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ﴾ الخ يعنی چاته چه الله ﷻ هدايت ورکړی نو هغه هدايت والادې او چالره چه هغه ذات گمراه کړی نو دهغه په لار کولو والا به ته هيڅوک دوست اونه مومی او نه مرشد . داسې قسمه نور هم آيتونه دی②او کله د هدايت معنی حق سره او حق لره واضح کوونکې او حق باندې د دلالت کونکی رازی . او حق طرفته لار خودلو والاهم رازی . دالله ﷻ فرمان دې چه ﴿وَاِنَّكَ لَتَهْدِیْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ يعنی ته يقينی طور د نيغې لارې رهبری کوې . اوفرمائی چه ﴿اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرٌ وَّلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ﴾ يعنی ته صرف ويرولو والا ئې اودهر قوم يو هادی يی . يو بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَاَمَّا ثَمُوْدُ فَهَدَيْنٰهُمْ﴾ الخ،يعنی مونږ ثموديانو ته هدايت اوخودلو خوهغوئ ړوندوالې خوښ کړو. فرمائی چه ﴿وَهَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ﴾ مونږ هغوئی ته دواړه لارې اوخودلې يعنی ښه اوبده .د تقوی اصل معنی د خراب څيز نه بچ کيدل ده. اصل کښې داد قوی او وقايت نه ماخوذ ده. دنابغه وغيره شعرونو کښې هم راغلې ده .

حضرت ابی بن کعب ﷜ نه حضرت عمرفاروق ﷜ تپوس اوکړو چه تقوی څه څيز دې ؟ هغوئ اوفرمائيل چه ته کله په ازغی داره لاره تلې ئې ؟ لکه څنګه چه هلته کپړې او بدن بچ کول وی نو داشان د گناهونو نه د بچ کيدلو نوم هم تقوی دې . ابن المعتز شاعر وائی چه :

خل الذنوب صغيرها وکبيرها ذاك التقى
واصنع کما فوق ارض الشوك يحذر ما يري
لا تحقرن صغيرة ان الجبال من الحصى

**ترجمه** :: واړه او لوئې گناهونه پريږده هم دا تقوی ده . داسې اوسه لکه چه څنګه يو سړې په ازغی داره لاره کښې ځی . واړه گناهونه هم واړه مه گڼره . اوګوره کنه غر وړو وړو کاڼړو نه جوړ شوې دې .

ابو درداء ﷜ خپلو اشعارو کښې فرمائی چه انسان د خپلو خواهشواتو پوره کولو خواهش مند وی اودالله ﷻ په ارادو ئې نظر نه وی . حالانکه کيږی هغه چه کوم الله ﷻ غواړی . هغه دخپل دنياوی فائدې او مال پسې انختې وی اود هغه بهترينه فائده او مال تقوی دې .

¹) ترمذی ابواب صفة القيامة ، باب علامة التقوى : ۲٤٥۱، ابن ماجة : ٤۲۱٥، وسنده حسن.

ابن ماجه کښې دي چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائي چه ټولو نه ښه فائده چه انسان ته حاصليږي هغه د الله ﷻ ويره ده. دې نه پس نيکه ښځه ده چه خاوند کله دې طرفته اوګوري نو هغه خوشحاليږي . او چه کوم حکم ورکړي نو هغه پوره کوي . اوکه قسم ورکړي نو پوره کوي ني . او کله چه هغه موجود نه وي نو د هغه مال کښې خيانت نه کوي . (¹)

| الَّذِيْنَ | يُؤْمِنُوْنَ | بِالْغَيْبِ |
|---|---|---|
| دا هغه خلق دي | چې ايمان راوړي | په ناليده څيزونو |
| دالله، او(د رسول) لار ښانې چې په ناليده څيزونو ايمان راوړي | | |

**قوله تعالى:- الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ**

**دايمان معنى اومفهوم:**①حضرت عبدالله ﷺ فرمائي چه ايمان وائي تصديق ته. حضرت ابن عباس ﷺ نه هم دانقل دي.②زهري ﷫ فرمائي چه ايمان وائي عمل ته③ربيع بن انس ﷫ فرمائي چه په دې ځاني کښې دايمان نه مراد ويريدل دي.حضرت ابن جرير ﷫ فرمائي چه دا ټول اقوال ملاويږي. مطلب دادې چه د ژبې نه او زړه نه او عمل نه په غيبوباندې ايمان راوړل.اودالله ﷻ ويره (په خپلوزړونو)کښې ساتل. دايمان مطلب دې چې په الله ﷻ باندې، دده په کتابونو باندې ، دده په رسولانو باندې ايمان راوړل او ددې اقرارتصديق سره عمل کولو ته(ايمان وائي)خه وايم چه په لغت کښې ايمان وائي صرف رښتيا ګنړلو ته.قران کريم کښې هم په دې معنى کښې استعمال شوې دې لکه فرمائي چه(الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ) يعني الله ﷻ لره منې او ايمان والا ريښتوني ګنړي.دحضرت يوسف ﷺ رونړو خپل پلارته ونيلي وو چه (وَمَآ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صٰدِقِيْنَ) يعنى ته په مونږ باندې يقين نه کوې اګرچه مونږ ريښتوني يو.داشان ايمان ديقين په معنى کښې رازي.کله چه داعمالو ذکرسره يوځاني شي لکه فرمائي چه(اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ) نو په کوم وخت کښې ددې استعمال مطلق وي نو ايمان شرعى چه دالله ﷻ په نيز مقبول دي ، هغه د اعتقاد،قول اودعمل مجموعي ته وائي.داکثرو امامانو هم دامذهب دې.بلکه امام شافعى ﷫،امام احمد ﷫ او امام ابوعبيده ﷫ وغيره په دې باندې اجماع نقل کړې ده چه ايمان نوم دې په ژبې سره دوينا او عمل کول او ايمان زياتيږي اوکميږي.اوددې په ثبوت کښې آثار او احاديث هم راغلي دي چه مونږ دبخاري په شرح کښې نقل کړي دي ، فالحمد لله.

بعضې خلقود ايمان معنى دالله ﷻ نه ويره او خوف هم کړې ده. لکه فرمان دې چه(اِنَّ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ)چې کوم خپل رب نه پټ په ته هم ويريږي. اوپه بل ځاني کښې فرمائي چه(مَنْ خَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ) يعنى چې کومو خلق الله ﷻ نه دې ليدلې او په ټيټو زړونو سره راغلي دي(اِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا). يعنى د رب نه هغه خلق ويريږي چه کوم علم والا دي. بعضې وائي چه هغوى په غيبو باندې هم داسې ايمان لري لکه څنګه چه په حاضر باندې ايمان لري. او ددوى حال دمنافقانو پشان نه دې چه کله ايمان والو ته مخامخ شي نو خپل ځان ايماندار بولي ليکن کله چه خپلو کښې وي نو هغوى ته وائي چه مونږ تاسوسره يو مونږ دوى پورې خنداګاني کوو،ددې منافقانو حال په سورت منافقين کښې داسې راغلې دې چه ( اِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ) يعنى منافقان چه کله تاسو ته رازي نو وائي چه مونږ د زړه دکومې شهادت ورکوو چه ته دالله ﷻ رسول ني او الله ﷻ ته ښه معلوم دی چه ته دهغه رسول ني ليکن الله ﷻ ګواهى ورکوي چه دا منافقان تاته دروغ وائي ددې معنى اعتبار سره (بِالْغَيْبِ) به حال وي يعنى هغوى ايمان

¹) ابن ماجة كتاب النكاح ، باب الفضل النساء : ۱۸۵۷)۔

راوړي،حال دادي چه دخلقونه پټ وي دغيب لفظ په دې خاني کښې دې،ددې معنی کښې هم مفسرینو نه ډير اقوال ذکر کړی دی او هغه ټول صحيح دی او جمع کيدیشي.

ابوالعاليه رحمه الله فرمائي چه ددې نه مراد په الله ﷻ باندې ، په فرښتو باندې ، کتابونو باندې ، رسولانو باندې،قيامت باندې ، جنت دوزخ باندې،ملاقات باندې،دمرګ نه پس ژوند باندې، ايمان راوړل دی.

د حضرت قتاده رضي الله عنه هم داقول دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنه ، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او نورو صحابه کرام رضي الله عنهم نه روايت دې چه ددې نه مراد پټ څيزونه دی چه د نظر نه پټ دی لکه جنت ، دوزخ وغيره ،هغه امور چه په قران پاك کښې ذکردی. عطاء رحمه الله فرمائي چه الله ﷻ باندې ايمان راوړلو والا په غيبوباندې ايمان راوړلووالا دې. حضرت اسماعيل بن ابو خالد رحمه الله فرمائي چه ددې نه مراد داسلام پټ څيزونه دی .حضرت زيد بن اسلم رحمه الله فرمائي چه ددې نه مراد تقدير باندې ايمان راوړل دی. نودا ټول اقوال دمعنى په لحاظ سره يو دی ځکه چه دا ټول څيزونه پټ دی او دغيب تفسير ددې ټولودپاره دې او په ټولوباندې ايمان راوړل واجب دی.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په يومجلس کښې يو خل د صحابه کرامو رضي الله عنهم فضائل بيانيدل نو دوی اوفرمائيل چه کومو خلقو نبی کریم ﷺ ليدلې وو هغوی خو په نبی کريم ﷺ باندې ايمان راوړو خو په الله قسم ايماني حيثيت سره هغه خلق افضل دی چه دليدو نه ئې بغير ايمان راوړی. بيا دوی د ﴿الٓمٓ﴾ نه واخله تر﴿ الْمُفْلِحُوْنَ﴾ پورې آيتونه اولوستل (ابن ابی حاتم ، مردويه )مستدرك حاکم،امام حاکم رحمه الله دا روايت صحيح ګڼړی .

په مسند احمد کښې هم ددې مضمون يو حديث دې. ابوجمعه صحابی رضي الله عنه ته ابن محيريز رحمه الله اوفرمائيل چه څه حديث اوواوايه چه هغه تا د نبی کريم ﷺ نه آوريدلې وی .وې فرمائيل چه ښه ده څه تا ته يو ډير ښه حديث وايم. مونږ د نبی کريم ﷺ سره يو ځل ناشته اوکړه .مونږ سره حضرت ابوعبيده بن جراح رضي الله عنه هم وو. هغوی اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ آيا زمونږ نه هم څوك بهتر شته دې؟ مونږ تاسو باندې ايمان راوړو او تاسو سره په جهاد کښې شريك شو، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل آو هغه خلق چه ستاسونه پس رازی اوپه ماباندې به ايمان راوړی. حالانکه هغوی به زه نه يم ليدلې.

تفسير ابن مردويه کښې دی صالح بن جبير رحمه الله فرمائي چه ابوجمعه انصاری رضي الله عنه مونږ سره بيت المقدس ته راغلو،رجابن حيوه رضي الله عنه هم مونږ سره وو،کله چه واپس کيدو نو مونږ د رخصت اخستلو دپاره ورسره شو.کله چه جدا کيدو نو وې فرمائيل چه ستاسوددې مهربانو بدله اوحق ماته ادا کول پکار دی. واورئ څه تاسو ته يو حديث وايم چه دا ما د نبی کريم ﷺ نه آوريدلې دې .مونږ اووئيل الله ﷻ دې په تاسو باندې رحم اوکړی ضرور اووائې. هغوی اووئيل چه مونږ نبی کريم ﷺ سره وو اومونږ لس کسان وو. په دوی کښې معاذ بن جبل هم وو. مونږ اووئيل يارسول الله ﷺ آيا مونږ د لويو اجرونو مستحق يو؟مونږ په الله ﷻ باندې ايمان راوړې دې اوستاسوتابعداری مواوکړه.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه تاسو به ولې نه کوئی ؟ دالله ﷻ رسول په تاسو کښې موجود دې ، دالله ﷻ وحی دآسمان نه نازليږی. ايمان خو دهغه خلقودې چه ستاسو نه به پس رازی . د دوئ جلدونو مينځ کښې به قرآن پاك مومی. په دې باندې به ايمان راوړی. او په دې باندې به عمل کوی. داخلق به ستاسونه په اجر کښې دوچندوی.

دې حديث کښې وجاده دقبوليت دليل دې اوپه دې کښې دمحدثينو اختلاف دې.ما دامسئله د بخاری شريف په شرح کښې ښه واضحه کړې ده . ځکه چه ددې نه پس دکومو خلقو تعريف کيږی نو هغه ددې وجه کيږی. او دوئ ته چې کوم دا زيات اجر ملاويږی نو دا په دې حيثيت سره دی ګنی على الاطلاق هر لحاظ سره بهتر او افضل خو صحابه کرام رضي الله عنهم دی .

يوحديث کښې دی چې نبی کريم ﷺ يو ځل دصحابه کرامو رضي الله عنهم نه تپوس اوکړو ،ستاسو په نيز په ايمان راوړو کښې څوك زيات افضل دی؟هغوی اووئيل فرښتې،وې فرمائيل چه هغوی به ايمان ولې نه

راوړي هغوی خوخپل رب سره دی.صحابه کرامو ﷺ اوفرمائیل چه بیا نبیان علیهم السلام نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې هغوئ به ایمان ولې نه راوړي په هغوی خو وحی نازلیږی. وې فرمائیل بیا مونږ ، وې فرمائیل چه تاسوبه ایمان ولې نه قبولی؛ ،حالانکه خه په تاسو کښې موجود یم. واورئ ! خما په نیز دټولو نه زیات افضل ایمان والا به هغه خلق وی چه ستاسونه پس به ایمان راوړی. په صحیفو کښې به لیکلې شوی مومی او په دې باندې به ایمان راوړی.ددې سند کښې مغیره بن قیس دې.ابوحاتم رازی رحمه الله دوی ته منکر الحدیث وئیلی دی.لیکن هم ددې مضمون یو حدیث ضعیف سند سره مسند ابویعلي،تفسیر ابن مردویه ، مستدرك حاکم کښې روایت دې. حضرت انس بن مالك ﷺ نه هم داشان یو مرفوعاً روایت دې . والله اعلم.

**په غیبو باندې د ایمان راوړو مصداق خلق:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت بدیله بنت اسلم فرمائی چه دبنو حارثه په جمات کښې مونږ د ماسپخین مونځ کښې وو. او بیت الله شریف طرف ته مو مخ وو. دوه رکعته مو اداکړی وو. چا خبر راوړو چې نبی کریم ﷺ بیت المقدس طرف ته مخ کړې دې. مونږ په دې آوریدوسره واوړیدو. ښځې د سړو ځائې کښې شوې. او د سړو په ځائې ښځې شوې. اوباقی دوه رکعته مونږ بیت الله شریف ته ادا کړل. کله چه نبی کریم ﷺ ته داخبر اورسیدو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل دا هغه خلق دی چه په غیبوباندې ایمان راوړی. دا حدیث داسناد لحاظ سره غریب دې.

| وَمِمَّا | الصَّلٰوةَ | وَيُقِيْمُوْنَ |
|---|---|---|
| اودهغه مالونو نه | مونځ | اوقایئموی |
| | او صحیح مونځونه ادا کوی اوکوم مالونه | |

| رَزَقْنٰهُمْ | يُنْفِقُوْنَ ۝ |
|---|---|
| چې ورکړې دې مونږ هغوی ته | خرج کوی |
| چې مونږ دوی ته ورکړې دی دهغې نه (حقداروته) ورکړي | |

**قوله تعالی:- وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ**

**د مونځ قائمولو نه مراد** ① حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه د مونځ فرائض ادا کوی ، رکوع کوی، تلاوت کوی،خشوع اوخضوع او توجه قائمه ساتی② قتاده رحمه الله وائی چه دوختونو خیال ساتل،اودس ښه طریقې سره کول،رکوع پوره کول اقامت صلوة دی ③ مقاتل رحمه الله وائی چه دوخت خیال ساتل ، کامل طهارت،رکوع سجده پوره کول،تلاوت په ښه طریقه کول ، التحیات اودرود شریف وئیل اقامت صلوة دی.

**قوله تعالی:- وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ**

**د زکاة ادا کول:** ① حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه ﴿وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾ معنی زکوة ادا کول دی. حضرت ابن عباس ﷺ،حضرت ابن مسعود ﷺ اوبعضې صحابه کرامو ﷺ فرمائیلی دی چه ددې نه مراد د سړی خپلو بچو ته خوراك ورکول دی. دا د زکوة د حکم نه مخکښې آیت دې② حضرت ضحاك رحمه الله فرمائی چه دزکوة اووه آیتونه چه په سورت براة کښې دی ، ددې دنازلیدو نه مخکښې دا حکم شوې وو چه د خپل طاقت مطابق چه څه درسره وی لږلږ خرج کونی③ حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه دا مال تاسو سره دالله ﷻ امانت دې. نزدې ده چه ستاسو نه به دا جدا شی. په خپل ژوند کښې دا د الله ﷻ په لار کښې خرج کړنی④ حضرت ابن جریر رحمه الله فرمائی چه دا آیت عام دې د زکوة دپاره، داهل وعیال خرج دپاره،او چه کوموخلقو ته ورکړه ضروری ده دهغوی ټولو دپاره.څکه چې الله ﷻ یو عام وصف بیان

کړې دې او عام تعریف نې کړې دې. نوهر شان خرچ ته به شامل وی⑤ خه (حافظ ابن کثیر) وایې چه په قرآن پاك کښې اکثرو ځاینو کښې دمال او دمونځ ذکر یو ځائې راغلې دې ځکه چه مونځ دالله ﷺ حق اودهغه عبادت دې چه څوك دهغه توحید اودهغه ثناء اودهغه بزرګی او دهغه طرف ته ټیټیږی ، په هغه ذات باندې توکل کوی نوپه دې سره ددعا کولو نوم دې. اوخرچ کول دمخلوق سره احسان کول دی. چه په هغې سره هغوی ته فائده اورسی. ددې زیات حقدار اهل وعیال او غلامان وی ، بیا لرې خلق ، اجنبی ، نو ټول واجب خرچ او اخراجات او فرض زکوة په دې کښې شامل دی ،

**داسلام پنځه ارکان:**-بخاری اومسلم کښې ابن عمر نه روایت دې چه حضرت رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د اسلام بنیادونه پنځه دی① دالله ﷺ توحید د رسول کریم ﷺ د رسالت ګواهی ② مونځ قائمول ③ زکوة ورکول④ درمضان روژې نیول⑤اودبیت الله شریف حج کول(۱)ددې په باره کښې نورډیر احادیث دی. دعربئ لغت کښې د صلوة معنی دعا ده. دعربو د شاعرانو شعرونه په دې باندې ګواه دی. بیا په شریعت کښې ددې استعمال په مونځ باندې دې چه درکوع او سجدې او دنورو خاصو افعالو نوم دې چه په مخصوص وختونو چه کښې د جمله شرائطو او صفاتو اواقسام سره ادا کولې شی.

**د صلاة وجه تسمیه:**-① حضرت ابن جریر رحمه الله فرمانی چه مونځ ته صلوة په دې وجه وائی ځکه چه په مونځ کښې دالله ﷺ نه دخپل عمل ثواب طلب کوی . او خپل حاجتونه غواړی② بعضو وئیلی دی چه کوم دوه رګونه د ملا نه د ملا د تیر هډوکی دواړو طرفونوته رازی ، هغې ته په عربئ کښې صلوین وائی.چونکه په مونځ کښې داخوزی ددې وجې مونځ ته صلاة اووئیلې شو. لیکن داقول صحیح نه دې.③ بعضو وئیلی دی چه دا ماخوذ دې د «صلی» نه چه ددې معنی انختل او لازم کیدل دی لکه قرآن پاك کښې دی چه ﴿لَا يَصْلٰهَا﴾ یعنی په جهنم کښې به همیشه دپاره نه اوسیږی مګر بدبخته خلق. ④ د بعضې عالمانوقول دې چه کله لرګې دصحیح کولودپاره په اوورکیخودې کیږی نو عرب ورته ﴿تَصْلِيَةٌ﴾ وائی. چونکه مونځګذار هم دخپل نفس کوږوالې صحیح کوی نو ددې وجې دې ته صلوة وائی . لکه قرآن پاك کښې دی چه ﴿اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ﴾ یعنی مونځ دهرې بې حیانی نه منع کوی. لیکن ددې د دعا په معنی کښې استعمال زیات صحیح اوزیات مشهور دی. والله اعلم . لفظ دزکوة بحث به انشاء الله په بل ځائې کښې راشی.

| بِمَآ | يُؤْمِنُوْنَ | وَالَّذِيْنَ | |
|---|---|---|---|
| په هغه کتاب | اچې یقین ساتی ا | اوهغه خلق دی | ا |
| چې مونږ دوی ته ورکړی دی دهغې نه (حقداروته) ورکړی اوکوم کتاب چه په تاباندې نازل شوې | | | |

| وَبِالْاٰخِرَةِ هُمْ | اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ | وَمَآ | اِلَيْكَ | اُنْزِلَ |
|---|---|---|---|---|
| چې نازل شوې دې ا تاته ا اوپه هغه کتابونو اچې نازل شوی وو مخکښې ستاته ا اوپه اخرت باند هغوئ | | | | |
| هغه هم منی اوهغه ټول کتابونه هم منی چې ستا نه مخکښې (نبیانوباندې) نازل شوي وو اود قیامت په | | | | |

| يُوْقِنُوْنَ⑤ |
|---|
| یقین ساتی ا |
| ورځ پوخ یقین لری |

(۱) صحیح بخاری : کتاب الایمان باب دعاؤکم ایمانکم : ۸، صحیح مسلم: ۱۱)-

**قوله تعالى:- ﴿وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ﴾**

**د مومنانو څو نور صفات:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي ددې مطلب دادې چه څه د الله ﷻ د طرف نه په تاسو باندې نازل شو اوستاسونه مخکښې نبيانو باندې نازل شو هغوی ددې ټولوتصديق کوی. دا نه ده چه څه منی او څه نه منی بلکه د خپل رب ټولې خبرې منی او په آخرت باندې هم ايمان لری. يعنی بعث او قيامت ،جنت او دوزخ ، حساب اوميزان ټول منی. قيامت به چونکه ددنيا د فنا کيدو نه پس راځی نو ددې وجې ده ته آخرت اووئيلې شو. بعضې مفسرين وائی چه دکومو کسانو مخکښې په ايمان بالغيب سره صفات بيان شوی دی هم دهغوی دوباره صفات بيان کړې شو. يعنی ايماندار که عرب مومن وی اوکه اهل کتاب وغيره. حضرت مجاهد رحمه الله ،حضرت ابوالعاليه رحمه الله ، حضرت ربيع بن انس رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله نه هم دا قول نقل دې. بعضو ونيلی دی چه دا دواړه خو يو دی مګر مراد ددې نه صرف هم اهل کتاب دی. په دې دواړو صورتونو کښې به واؤ عطف دپاره وی او د صفتونو عطف به په صفتونوباندې وی. لکه ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ کښې د صفتونو عطف په صفتونو باندې دې. اود شاعرانو په شعرونو کښې هم دا راغلی دی. دريم قول دادې چې ړومبی درې صفتونه دهغه مومنانو دی چې کوم عرب دی او ﴿وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ﴾ نه د اهل کتابو د مومنانو صفات مراد دی.دا سدی رحمه الله دحضرت ابن عباس ﷺ اوبعضې نورو صحابه کرامو ﷺ نه نقل کړې دې او ابن جرير رحمه الله هم دا خوښ کړې دې. اوددې شهادت کښې دا آيت راوړی ﴿وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَمَن يُؤْمِنُ بِاللَّهِ﴾ يعنی اهل کتابو کښې داسې خلق هم دی چه د الله ﷻ باندې او په هغه وحی باندې چه په تاسو نازله شوې ده او په هغه وحی باندې چه ستاسونه مخکښې نازله شوې وه ايمان راوړی. اودالله ﷻ نه ويريږی .اوپه بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ مِن قَبْلِهِ﴾ يعنی چه چا ته ددې نه مخکښې کتاب ورکړې شوې وو او دې سره ايمان لری او کله چه په دوی باندې قران پاك لوستلې شی نو وائی چه مونږ په دې باندې ايمان راوړې دې او دا مود خپل رب طرف نه حق اومنلو. مونږ خوددې نه مخکښې مسلمانان وو . دوی ته به د صبرکولو اود بدئی په بدله کښې د نيکئ او دالله ﷻ په لار کښې د خرچ کولو په وجه دوچند اجر ملاويږی.

**درې کسانو ته دوچنده اجر ملاويدل:-** بخاری شريف او مسلم شريف کښې دی چه رسول کريم ﷺ فرمائی چه دريو سړو ته به دوچند اجر ملاويږی①يو اهل کتاب چه په خپل نبی نې ايمان راوړې وو اوبيا په ماباندې ايمان راوړی②دويم هغه غلام چه د الله ﷻ حق ادا کړی اود خپل مالك هم③دريم هغه سړې چه خپلې وينځې ته ښه آدب اوښائی بيا دا آزاده کړی اودې سره نکاح اوکړی. (۱)

دحضرت ابن جرير رحمه الله ددې قول مناسبت سره ددې نه هم معلوميږی چه د دې سورت په شروع کښې د مومنانو اودکافرانو بيان شوې دې نو څنګه چه د کافرانودوه قسمونه دی کافر او منافق، داشان د مومنانو هم دوه قسمونه شو ،عربی مومن او کتابی مومن. څه وايم چه دا ظاهره ده چه د مجاهد رحمه الله داقول صحيح دې چه دسورت بقره ړومبی څلور آيتونه د مومنانو دصفاتو په باره کښې دی. اوددې نه پس ديارلس آيتونه دمنافقانو په حق کښې دی. عربی وی که عجمی ، کتابی وی که غيرکتابی ، انسانانو نه وی اوکه جناتونه څکه چه په دوی کښې هر يووصف دبل دپاره لازم او شرط دې ، يو بغير د بل نشی کيدلې.

غيب باندې ايمان راوړل ، مونځ کول اوزکوة ورکول صحيح نه دی تر کومې چه رسول کريم ﷺ باندې اوپه مخکښونبيانو باندې ايمان چه کوم کتابونه نازل شوی ووپه هغې ايمان راونړی اودې سره په

---

(۱) صحيح بخاری : کتاب العلم باب تعليم الرجل امته واهله : ۹۷. صحيح مسلم: ۱۵۴)-

اخرت باندې ایمان راوړي. چه څنګه رومبی درې څیزونه بغیر د مخکښو دریو څیزونو نه غیر معتبر دی داشان مخکښې درې څیزونه د درې روستنو نه صحیح نه دی. ددې وجې ایمان والو ته دالله ﷻ حکم دې چه﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا آمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَالْكِتَابِ﴾یعنی انې ایمان والوپه الله ﷻ اودده په رسول ﷺ باندې اوچه کوم کتاب په ده نازل شوې دې او چه کوم کتابونه ددې نه مخکښې نازل شوی دی په هغې ایمان راوړئ.اوبل ځائې کښې فرمائی چه :﴿وَلَا تُجَادِلُوا أَهْلَ الْكِتَابِ﴾

یعنی اهل کتابو سره په جنګ کولو کښې ښه طریقه اختیار کړئ او وائی چه مونږایمان راوړې په هغه څه چه مونږ ته نازل شوې دې او چه کوم تاسو طرف ته نازل شوې دې. خمونږ معبود یو دې .او په بل ځائې کښې ارشاد دې چه انې اهل کتابو چه څه مونږ نازل کړی دی په هغې ایمان راوړئ دا د هغې تصدیق کوونکې دې چه کوم تاسوسره دې. اوپه بل ځائې کښې ارشاد دې چه انې اهل کتابو تاسو په هیڅ څیز باندې نه یئ ترکومې پورې چه تورات او انجیل او څه چه ستاسو طرف ته ستاسو د رب د طرف نه نازل شوی دی قائم اونه ساتئ. اویو بل ځائې کښې دټولو ایمان والو دطرف نه خبر ورکوی او قران پاك کښې وائی چه: ﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ﴾ الخ یعنی رسول ایمان راوړو په هغه باندې چه دوی طرف ته نازل شوی ددوی درب دطرف نه اوټول ایماندار هم .ځر یو ایمان راوړو په الله ﷻ باندې او دده په فرښتو باندې او دده په کتابونوباندې او دده په رسولانوباندې او مونږ په رسولانو کښې فرق اوجدائی نه کوو . داشان ارشاددې چه کوم خلق په الله ﷻ باندې اودده په رسولانو باندې ایمان راوړی او په رسولانو کښې فرق نه کوی . دا مضمون په نورو آیتونو کښې هم دې. چه په هغې کښې ټولو ایمان والوته په الله ﷻ باندې او دده په ټولو رسولانو باندې او په ټولو کتابونو باندې دایمان راوړو ذکر شوې دې.

دا بله خبره ده چه داهل کتابوپه ایماندارو کښې یوخاص خصوصیت دې. ځکه چه ددوی ایمان په خپلو کتابونو باندې تفصیل سره وی اوبیا کله چه د نبی کریم ﷺ په لاس ئې ایمان راوړو نو په قران پاك باندې هم تفصیل سره ایمان راوړی. ددې وجې دوی ته دوچند اجر ملاویږی. اوددې امت خلق هم مخکښې کتابونو باندې ایمان راوړی. لیکن ددوی ایمان اجمالی طور سره وی لکه څنګه چه په صحیح حدیث کښې دی چه کله تاسوته اهل کتاب څه بیان اوکړی نوتاسو نه ئې دروغ ګنړی او نه رښتیا بلکه اووائې چه مونږ ته څه نازل شوی دی مونږ هغه منو. او څه چه په تاسو باندې نازل شوی دی په هغې هم ایمان لرو. (¹)

په بعضوموقعو باندې داسې هم کیږی چه کومو خلقو په نبی کریم ﷺ باندې ایمان راوړی دې دهغوی ایمان د اهل کتابو په نسبت زیات پوره اوزیات کمال والا اوزیات راسخ اوزیات مضبوط وی، په دې حیثیت سره ممکن دی چه دوی ته اهل کتابونه هم زیات اجر ملاؤ شی. اګر چه هغوی په خپل پیغمبر او په نبی کریم ﷺ باندې د دوچنده اجر حقدار شوی دی خو داخلق دکمال په وجه په ایمان او اجر کښې هم زیات مخکښې دی. والله اعلم

| أُولَٰئِكَ | عَلَىٰ هُدًى | مِنْ رَبِّهِمْ | وَأُولَٰئِكَ |
|---|---|---|---|
| داسې خلق | په صحیح لار قائم دی | دطرفه درب خپل نه | اودا خلق چې دی |
| دغه کسان | دخپل پروردګارپه توفیق سره په سمه لار(روان) دی | | اوهم دوی |

(¹) صحیح بخاری : كتاب التفسير سورة البقرة : ٤٤٨٥، بلفظ ( لا تصدقوا الكتاب ولاتكذبوهم( وقولو امنا بالله) ابوداود: ٣٦٤٤، بلفظ ( ماحدثكم اهل الكتاب فلا تصدقوهم ولاتكذبوهم ) سنن ابی داود والی روایت ګله )-

| هُمُ الْمُفْلِحُونَ۝ |
| --- |
| هم دوئ| کامیاب دي | |
| په دنیا او آخرت کښې کامیاب دي |

**قوله تعالى:- أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ**

**هدایت موندونکې څوک دي:-** یعنې هغه خلق چه د کومو صفتونه مخکښې بیان شو لکه په غیبو باندې ایمان راوړول ، مونځ قائمول ، دالله ﷻ په ورکړې شوی مال کښې خرچ کول، په نبی کریم ﷺ باندې چه څه نازل شوی دی په هغې ایمان راوړل ، د نبی کریم ﷺ نه مخکښې چه کوم کتابونه نازل شو په هغې باندې ایمان راوړل ، په آخرت باندې ایمان راوړل او د هغه ځائې دپاره نیك عملونه کول ، د بدو او حرامو کارونو نه بچ کیدل،هم دا خلق هدایت والا دی کوموته چه دالله ﷻ د طرف نه نورملاؤ شوې دې. او بیان اوبصیرت ورته حاصل شوې دې. اوهم ددې خلقو دپاره په دنیا او آخرت کښې کامیابی ده.

حضرت ابن عباس رضی الله عنه د هدایت تفسیر نوراو استقامت کړې دې. اود فلاح تفسیر ئې خپله خوښه موندل او دبدو نه بچ کیدل کړې دې. حضرت ابن جریر رحمه الله فرمائی چه دا خلق د خپل رب د طرف نه په نور او دلیل اوثابت قدمئی او رښتیا او دحق په توفیق باندې دی. اوهم دا خلق د خپلو پاکو اعمالوپه وجه د نجات او د ثواب او همیشه د جنت موندلو مستحق دی. اود عذابونونه لرې دی.

ابن جریر رحمه الله دا هم فرمائی چه نور خلق د ﴿أُولَٰئِكَ﴾ اشاره اهل کتابو ته کوی چه د هغوی صفت ددې نه مخکښې بیان شو. لکه مخکښې تیر شو په دې اعتبار سره ﴿وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ﴾ مخکښې آیت نه به جدا وی. اومبتدا به جوړه شی او مرفوع به وی او ددې خبر به ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ۝﴾ وی. خو بنه قول دادې چه ددې اشاره دمخکښو صفتونو والو طرف ته ده. اهل کتاب وی اوکه عرب. حضرت ابن عباس رضی الله عنه اوابن مسعود رضی الله عنه او بعضې نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه روایت دې چه د ﴿يُؤْمِنُونَ بِالْغَيْبِ﴾ نه مراد عرب ایماندار دی.

**قوله تعالى:- وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ**

**کامیاب خلق:-** اودې نه پس جمله نه مراد اهل کتاب ایماندار دی. بیا دواړو دپاره زیرې دې چه دا خلق په هدایت باندې دی او فلاح والا دی. او مخکښې بیان شوی دی چه دا آیتونه عام دی اودا اشاره هم عامه ده .والله اعلم. حضرت مجاهد ابوالعالیه رحمه الله ، حضرت ربیع بن انس رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله نه هم دا روایت دې.

یو ځل رسول کریم ﷺ نه سوال کیړې چه دقران پاک ځینې آیتونه مونږ ته تسلی راکوی او امید راکوی.او ځینې آیتونه زمونږ ملا ماتوی او نژدې وی چه نا امیده شو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څه به تاسو د جنتی او جهنمی پیژندګلو اوښایم صفا صفا .بیا نبی کریم ﷺ ﴿الٓمٓ﴾ نه تر ﴿الْمُفْلِحُونَ۝﴾ پورې تلاوت اوکړو او وې فرمائیل چه دا جنتان دی،حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم ډیر خوشحاله شو او وې فرمائیل چه الحمد لله مونږ ته امید دې چه مونږدوی نه یو. بیا نبی کریم ﷺ د ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ نه تر ﴿عَظِيمٌ۝﴾ پورې تلاوت اوکړو او وې فرمائیل دا جهنمیان دی، صحابه کرام رضی الله عنهم اوفرمائیل چه مونږ داسې نه یو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه آو. (ابن ابی حاتم).

| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ |
| --- |
| | بیشکه | هغه خلق اچې انکار ئې کړې دې |ئوشان ده| هغوئ دپاره |
| بیشکه چاچې رښتا ددې خبرودمنلونه انکار کړې دې (انې رسوله) د هغوی په |

| عَاَنْذَرْتَهُمْ | اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ | لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ |
| --- | --- | --- |
| که ته ویروې هغوی \| يا نه | ويروې هغوی \| | خونه راوړی ايمان هغوی \| |
| حق کښې ستا ويرول او نه ويرول دواړه برابر دي \| هغوی ايمان نه راوړی \| | | |

**قوله تعالى:-** اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ

**بدنصيبه خلق**: يعنى كوم خلق چې حق لره پټوى او د پټولو عادى دى او ددوى په قسمت كښې هم داديٍ نوستا دپاره ددوى ويرول او نه ويرول برابر دى، دوى به هيڅ كله دالله ﷻ د وحي تصديق اونه كړى چه كومه په نبى كريم ﷺ باندې نازله شوې ده. او په بل ځاى كښې فرمائى چه(اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ) يعنى چه كومو خلقو باندې دالله ﷻ خبره ثابته شوې ده هغوى به ايمان نه راوړى. اګر چه ټول آيتونه اوګورى ترديې چه دردناك عذاب هم اوګورى.

عَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ

اودا شان د سركشه اهل كتابو په باره كښې فرمائى چه(وَلَئِنْ اَتَيْتَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ بِكُلِّ اٰيَةٍ) يعنى دې اهل كتابو ته اګر چه ټول دليلونه راوړې نو دوى به ستا قبله اونه منى. يعنى دې بدنصيبو ته دا نيك بختى نه ده حاصله ، نودې ګمراهانو ته هدايت دكومه اړخه ؟ نوائې نبى تاسو په دوى باندې افسوس مه كونى ستا كار صرف د رسالت حق ادا كول دى او رسول دى ، منلو والا كه نصيب والا وى نو فائده به واخلى. اوكه څوك نه منى نو نه دې منى ستا فرض ادا شو ،مونږ به پخپله ددوى نه حساب اخلو. ته صرف ويرولو والا نې او دهر څيز هم الله ﷻ وكيل دى.

ابن عباس فرمائى چه نبى كريم ﷺ ته ددې خبرې ډير حرص وو چه ټول ايماندار شى او هدايت قبول كړى، ليكن الله ﷻ ورته اوفرمائيل چه دا سعادت دهر چا په حصه كښې نشته دې دا نعمت تقسيم شوې دې چه د چا په حصه كښې راغلې دې هغوى به ستا منى او چه كوم بدقسمته دى هغوى به هيڅ كله ستا اطاعت طرف نه رانشى. نو مطلب دادې چه څوك دقران پاك نه انكارى دى او وائى چه مونږ مخكښې كتابونه منو نوددوى ويرولو هيڅ فائده نشته دې ځكه هغوى خو پخپله په حقيقت كښې خپل كتاب نه منى ځكه په دې كښې ستا دمنلو وعده ده . نوهركله چه دوى دخپل نبى نصيحت او كتاب نه منى نو انې نبى ﷺ ستا خبره به څه اومنى؟

ابوالعاليه رحمه الله فرمائى چه دا آيت د جنګ احزاب د سردارانو په باره كښې نازل شوې وو. چه ددې په باره كښې الله فرمائى( اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ ) . ليكن چه كومه معنى مونږ مخكښې بيان كړې ده هغه زياته ظاهره ده. او د بل آيت مطابق ده . والله اعلم. په دې حديث باندې چه كوم ابن ابى حاتم رحمه الله حوالې سره نن بيان شو په هغې دوباره نظر واچونى(لَا يُؤْمِنُوْنَ) دمخكښې جملې تاكيد دې. ددوى كفر به مات نشى. دا هم ممكن دى چه ( لَا يُؤْمِنُوْنَ) خبر وى ځكه چه تقدير كلام د ( اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ عَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ) دې او (سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ) جمله معترضه به شى ، والله اعلم.

| خَتَمَ اللّٰهُ | عَلٰى قُلُوْبِهِمْ | وَعَلٰى سَمْعِهِمْ | وَعَلٰى اَبْصَارِهِمْ |
| --- | --- | --- | --- |
| مهرلګولې دې الله \| | دهغوى په زړونو باندې \| | اودهغوى په غوږونو باندې \| | اودهغوى په سترګو باندې \| |
| الله تعالى د هغوى په زړونو او غوږونو باندې مهر لګولې دې \| | | اود دوى په سترګو ئې پرده غوړولې ده | |
| غِشَاوَةٌ | وَلَهُمْ | عَذَابٌ | عَظِيْمٌ ۝ |
| پرده ده \| | اودې هغوى دپاره \| | عذاب \| | لوى \| |
| اوهغوى لره لويه سزا مقرر ده \| | | | |

**قوله تعالى:- خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ ؕ**

**په زړونو او غوږونو مهرلګول:**-حضرت سدی رحمه الله فرمائي چه د ختم نه مراد طبع ده يعني مهر لګول دی. قتاده رحمه الله فرمائي چه په دوی شيطان غالب شو اودوی دده په ماتحتئ کښې اولګيدو.تر دې پورې چه مهر الهي ددوی په زړونواو ددوی په غوږونوباندې اولګيدو. اوپه سترګو ئې پردې شوې او دوی هدايت نشی کتلی او نه پرې پوهيږی.

حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي ګناه دخلقو په زړونو باندې راوړی او دوی د هر طرف نه ګيروي ، بس هم دا طبع او ختم يعني مهر دې. اود غوږونو دپاره محاوره کښې مهر رازی. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي په قران کښې د(ران) لفظ دې د(طبع) لفظ دې. اود (اقفال) لفظ دې او(ران) د(طبع) نه کم دې. او (طبع) د (اقفال) نه کم دې. (اقفال) د ټولو نه زيات دې. حضرت مجاهد رحمه الله خپل لاس اوخودلو او وې فرمائيل زړه د لاس د تلی په شان دې او دبنده دګناهونو په وجه راټوليږی او بنديږی. داشان چه يوګناه اوکړې شوه نو ګويا چه کچه ګوته بنده شو او بيا ئې ګناه اوکړه نوګويا چه بله ګوته بنده شوه تر دې پورې چه ټولې ګوتې بندې شی او اوس موټې بند شو چه په دې کښې هيڅ نشی داخليدې. داشان د ګناهونو په وجه په زړه باندې پردې راشی اومهر پرې اولګی. بيا په دې باندې هيڅ اثر نه کيږی ، دې ته «رين» هم وائی. مطلب دا شو چه د دوی تکبر اود دوی د حق نه مخ اړول بيانيږی. لکه وئيلې شی چه فلانې سړې ددې خبرې په آوريدوسره کوڼ شو. مطلب دا وی چه تکبر او بې پرواهئ کولو سره دوی دې خبرې طرف ته غوږ نه کيخودو.حضرت امام ابن جرير رحمه الله فرمائي ليکن دا مطلب صحيح نه دې خکه چه په دې خائې کښې خو الله ﷻ پخپله فرمائي هغه پاک ذات ﷻ ددوی په زړونو باندې مهر اولګولو. زمحشری رحمه الله ددې ترديد کړې دې او پنځه تاويلونه ئې کړی دی . ليکن ټول په ټوله بالکل فضول او بکواس دی او صرف د خپل معتزله کيدو په وجه ده دا ټول تکلفات کړی دی. خکه چه ددوی په نيز دا خبره ډير خرابه ده چه دچا په زړه باندې الله ﷻ مهر اولګوی. ليکن افسوس چه هغوی په نورو صفا او واضحه آيتونوباندې غور اونکړو.دالله ﷻ ارشاد دې چه(فَلَمَّا زَاغُوْٓا اَزَاغَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ ؕ) يعني کله چه دوی کاږه شو نو الله ﷻ به ددوی زړونه کاږه کړی.اوفرمائی چه(وَنُقَلِّبُ اَفْـِٕدَتَهُمْ وَاَبْصَارَهُمْ) يعني مونږ به ددوی زړونه او ددوی نظرونه الټه کړو ګويا چه دوی هډو ايمان نه وو راوړې اوفرمائی مونږ دوی ددوی په سرکشئ کښې سروهلی پريږدو.داقسمه آيتونه هم دی چه الله ﷻ ددوی په زړونو باندې مهر اولګولو او هدايت ئې ددوی نه لرې کړو ،ددوی حق ئې لرې کولو او په باطل باندې د ټينګيدو په وجه.اودا سراسر عدل و انصاف دې او عدل بنه خيز دې . دا نه چه خراب. که زمحشری هم په دې آيتونو باندې نظر کړې وې نو تاويل به ئې نه کولو. والله اعلم.

قرطبی رحمه الله فرمائي چه دامت اجماع ده چه الله ﷻ خپل يو صفت مهر لګول هم بيان کړې دې چه د کفارودکفر بدله ده. فرمائی(بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ) يعني بلکه ددوی دکفر په وجه الله ﷻ په دوی مهر لګولې دې.حديث شريف هم دی چه الله ﷻ زړونه اړوی راوړوی،په دعا کښې دی چه(يامقلب القلوب ثبت قلوبنا على دينك) يعني اې د زړونو اړوونکيه زمونږ زړونه په خپل دين باندې قائم اوساته.

د حضرت حذيفه رضی الله عنه په حديث کښې دی چه رسول کريم ﷺ فرمائيلی دی چه په زړونو باندې فتنې داشان پيش کيږی لکه دشليدلې بورئې يو ټکره،چه کوم زړه داقبلوی نو په دې کښې يوتوره نقطه لګی او چه په کوم زړه کښې د فتنې اثر نه کوی نو په هغې يو سپين داغ لګی. چه ددې سپين والې زياتيږی اوبالکل صفا شی اومنور شی.اوبيا دې (زړه) ته هيڅ فتنه نقصان نشی رسولې. اوددې بل زړه توروالې هم خوريږی تر دې پورې چه ټول تور شی او اوس دا دالټه کوزې په شان شی. نه په دې بنه خبره لګی او نه ورته ګناه خرابه معلوميږی .

ابن جریر رحمه الله فیصله کړې ده چه په حدیث کښې راغلي دي چه کله مومن ګناه کوي نو دده په زړه باندې یو تور داغ لګی که دې منع شي اوتوبه اوکړي نو هغه داغ ختم شي او دده زړه صفاشي. او که هغه ګناه زیاته شي نو هغه توروالي خوریږي تر دې پورې چه په زړه خوره شي، هم دا هغه ران دې چه د هغې ذکر په آیت کښې دې چه ﴿ كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴾ یعني مونږ ددوی په زړونو باندې "ران" لګولې دې ددوی د بدعملونو په وجه. (ترمذی ، نسائی ، ابن جریر). امام ترمذی رحمه الله دې حدیث ته حسن وئیلې دې. نومعلومه شوه چه دګناهونوزیاتوالې په زړه باندې غلاف راولی او ددې نه پس مهر الهی پرې لګی چه دې ته ختم یا طبع وئیلې شی ، اوس په زړه کښې د ایمان د تلو او د کفر د پاتې کیدو هیڅ لار پاتې نشی.

**قوله تعالی:-** وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ

**په سترګو پردې:-** هم ددې مهر ذکر د دې آیت په (خَتَمَ اللَّهُ) کښې دې. دامثال دې زمونږ د سترګود لیدلو څیزونو کله چه مونږ ددې خله بنده کړو اوبه دې مهر اولګوؤ نو ترکومې پورې چې هغه مهر مات نشی نو په دې کښې نه څیز داخلیدې شی اونه ددې نه څه څیز راوتلې شی. داشان چه ذکومو کفارو په زړونو باندې اوغوږونوباندې دالله ﷻ مهر لګیدلې دې په هغې کښې هم ددې د ماتیدو او لرې کیدو نه بغیرهدایت نشی داخلیدې اونه ترې کفر وتلې شی.

په (سَمْعِهِمْ) باندې پوره وقف دې. او (وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ) بیله پوره جمله ده ختم او طبع په زړونواوغوږونوباندې وی. اوغشاوه یعنی پردۀ په سترګو باندې رازی لکه حضرت ابن عباس ﷺ، حضرت ابن مسعود ﷺ، او نورو صحابه کرامو ﷺ نه روایت دی. په قران پاك کښې دی چه ﴿ فَإِن يَشَإِ اللَّهُ يَخْتِمْ عَلَىٰ قَلْبِكَ ﴾ او په بل خائې کښې دی چه ﴿ وَخَتَمَ عَلَىٰ سَمْعِهِ وَقَلْبِهِ وَجَعَلَ عَلَىٰ بَصَرِهِ غِشَاوَةً ﴾. په دې آیتونو کښې زړه اوغوږ باندې د (مهر) ذکر دې او په سترګو باندې دپردې.

بعضو په دې خائې کښې د (غِشَاوَةً) زبر وئیلې دې، نوممکن دی چه ددوی په نیز فعل (جعل) مقدر وی اوممکن دی چه نصب دمحل اتباع وی. لکه په (وَحُورٌ عِينٌ) کښې دسورت دشروع څلورآیتونو کښې د مومنانو اوصاف بیان شوی دی بیا دوه آیتونو کښې دکافرو حال بیان شوې دې، اوس دمنافقانو ذکر کیږي ، چه څوك په ظاهره ایماندار جوړیږي لیکن په حقیقت کښې کافر دی. چونکه ددې خلقو چالاکئ عام طور پټې پاتې کیږي څکه چه ددوی بیان لږ په تفصیل سره اوشو اوډیرې نښې ددوی بیان شوې. هم ددوی باره کښې سورت براءت نازل شو. او هم ددوی ذکر په سورت نور وغیره کښې کړې شوې دې چه ددوی نه پوره بچ کیدل اوشي او ددوی دمذمومو خصلتونونه مسلمانان لرې شی ، نو فرمائی:

| وَمِنَ النَّاسِ | مَن | يَقُولُ | آمَنَّا |
|---|---|---|---|
| اوخینی دخلقو نه | هغه څوك دی | چې وائی | ایمان راوړی دې مونږ |
| اوخینې خلق داسې دی چې (په خولې) وائی چې مونږ په الله او په ورځ | | | |

| بِاللَّهِ | وَبِالْيَوْمِ | الْآخِرِ | وَمَا | هُم | بِمُؤْمِنِينَ | يُخَادِعُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په الله | اوپه ورځ | دخرت باندې | اوحال داچې نه دی | هغوئ | مومنان | دهوکه کوی هغوئ |
| داخرت ایمان راوړې دې | خودوئ (په ربښتیانه) مسلمانان نه دی | دوئ (پخپل ګمان کښې) | | | | |

| اللَّهَ | وَالَّذِينَ | آمَنُوا | وَمَا يَخْدَعُونَ | إِلَّا | أَنفُسَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| الله سره | اوهغه کسانو سره | چې ایمان نې راوړې دې | خو نه کوی دهوکه | مګر | اخانونوخپلوسره |
| د الله پاک او مسلمانانو سره تګی کوی | خو په اصل کښې خپلو خانونو ته دهوکه ورکوی | | | | |

| | |
|---|---|
| وَمَا | يَشْعُرُونَ |
| او نه لري | هغوئ پوهه |
| او پوهيږي پرې نه | |

**قوله تعالى:** - وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ

**دنفاق دوه قسمونه:** دراصل نفاق واني نيکئ لره ظاهرولواوبدئ لره پټولوته.د نفاق دوه قسمونه دي ①اعتقادی ②عملی. رومبی قسم منافق خوابدی جهنمی وی اودويم قسم بدترين مجرم دې. ددې بيان به په تفصيل سره انشاء الله په څه مناسب ځائې کښې راشي.

ابن جريج رحمه الله فرمائي چه د منافق قول دده د فعل خلاف وی دده باطن دده د ظاهر خلاف وی.دده تګ د راتګ خلاف وی، دده موجودګی دده د عدم موجودګئ نه خلاف وی. نفاق خوهډوبه مکه کښې وو نه بلکه ددې خلاف وو. بعضې خلق داسې وو چه په زبردستئ په ظاهره دکافرو سره وو خو په زړه کښې به مسلمانان وو، کله چه نبی کریم ﷺ هجرت اوکړو او مکه معظمه ئې پريښوده اومدينې منورې ته ئې تشريف يوړو او په دې ځائې کښې د اوس او خزرج قبيلې انصار جوړ شواو ددوی ملګرتيا ئې اوکړه او د جاهليت مشرکانه بت پرستی ئې پريښوده او په دواړو قبيلو کښې خوش نصيبه مسلمانان شو ، ليکن يهوديان تر اوسه پورې دالله ﷻ ددې نعمت نه محروم وو. په هغوی کښې صرف حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه دارښتونې دين قبول کړې وو. تردې وخته پورې دمنافقانو دا خبيثه ډله نه وه قائمه شوې او نبی کريم ﷺ دې يهودو او دعربو نورو قبيلو سره صلحه کړې وه.

**د نفاق ابتداء:** ددې ډلې د قيام ابتداء څه په دا ډول اوشو چه دمدينې ديهودو درې ډلې قبيلې وې. ① بنو قينقاع ② بنو نضير③ بنو قريظه. بنو قينقاع خود بنو خزرج رونړه اوحليف وو. اوباقی ددوئ قبيلو رورولی اوس سره وه. کله چه جنګ بدر اوشو او په دې کښې الله ﷻ خپل دين والو ته غلبه ورکړه اود اسلام شان اوشوکت ظاهر شو ، دمسلمانانو غلبه شوه او دکفر زور مات شو نو په هغه وخت کښې دا ناپاکه ډله قائمه شوه. عبدالله بن ابی سلول خو وو دخزرج قبيلې نه ليکن اوس اوخزرج دواړو دې خپل مشر منلو. بلکه دده دبادشاهت او دده دسردارئی باقاعده داعلان اراده کولو والا وو چه ددې دواړو قبيلو رخ اسلام طرف ته شو او دده سردارى همداشان پاتې شوه. ()دا ازغې خو دده په زړه کښې وو ، بل طرف ته د اسلام ورځ په ورځ پرمختګ او په جنګ کښې کاميابئ دې ډير زيات هواس باخته کړې وو. اوس ده اوکتل چه داسې به کار اونه چليږی . زر په ظاهره مسلمان شو اوبه باطن کښې ئې دکافر پاتې کيدو اراده اوتړله. اوځومره ډله چه ده سره وه ټولو ته ئې هم دا هدايت اوکړو اوداشان د منافقانو يوه ډله (جماعت) په مدينه منوره کښې اوددې په چاپير چل کښې قائمه شوه. په دې منافقانو کښې بحمدالله يومکی مهاجر هم نه وو. بلکه دې بزرګانو خو خپل ځانونه او خپل اهل وعيال او مالونه د الله ﷻ په نوم قربان کړی وو او د الله ﷻ رسول ﷺ سره راغلی وو. ﴿ رضی الله عنهم اجمعين﴾حضرت عباس رضي الله عنه فرمائي چه دا منافقان د اوس او خزرج قبيلو کښې وو. او يهوديان هم چه ددوی په طريقو باندې وو.په دې آيتونو کښې دقبيله اوس اود قبيله خزرج بيان دې ابوالعاليه رحمه الله ، قتاده رحمه الله او سدی رحمه الله هم دابيان کړې دې.

**قوله تعالى:** - يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

**منافقان په خپل ګمان کښې الله او مومنانو ته دهوکه ورکوی.** -په دې ځائې کښې الله ﷻ د منافقانو ډيرو خصلتونوذکرکړې دې چه مسلمانان ددوی دظاهر نه دهوکه کښې پريوتنړی. اوهسې نه چه دوی

---

[1]) صحيح بخاری : کتاب التفسير تفسير سورة بقرة آل عمران باب لقسمعن من الذين....٤٥٦٦، صحيح مسلم: ١٧٩٨)-

مسلمانان اوګڼي او خپل نې کړي. اوددې په وجه څه لونې فساد اوشي. دا ياد ساتئ چې بد کاره خلق نيک ګڼل ډير خراب عمل دې اګر چې دا (بد کول) پخپله هم ډير خراب عمل دې. لکه څنګه چه په دې آيت کښې بيان شوی دی چه داخلق زبانې اقرار خو ضرور کوي خو په زړه کښې ددوی ايمان نشته دې. داشان په سورة منافقون کښې هم ونيلې شوی دی چه: ﴿ إِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ ۘ ﴾ يعنی دامنافقان تاله راځي او وائي چې مونږ ګواهي ورکوو چه ته دالله ﷺ رسول نې او الله ﷺ ته پته ده چه ته دهغه پاک ذات رسول نې. خو په حقيقت کښې د منافقانو داقول ددوی د عقيدې مطابق نه وو ځکه چه ددې خلقو دشاندارو الفاظو او دتاکيد نه باوجود الله ﷺ دوی ته دروغژن اوونيل

او وې فرمائيل چه﴿وَاللّٰهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ ۚ﴾ يعنی الله ﷺ ګواهي ورکوی چه په يقين سره دا منافقان دروغژن دی. او په دې ځائې کښې هم فرمائي چه﴿وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ﴾يعنی دراصل دوی ايمان نه دې راوړې دوی خپل ايمان ظاهروی او خپل کفر لره پټوی او په خپل جهالت سره الله ﷺ ته دهوکه ورکوی. او دا فائده ورکونکې او الله ﷺ ته دهوکه ورکونکې کاريګری ګڼړي لکه څنګه چه په بعضو مومنانوباندې ددوی مکر چليږي . په قران پاک کښې دی چه : ﴿يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيَحْلِفُوْنَ لَهٗ﴾ يعنی د قيامت په ورځ چه کله الله ﷺ دوی ټولو لره اودروی لکه څنګه چه دوی په دې ځائې دايمان والو په مخکښې قسمونه خوری ،دالله ﷺ په مخکښې به هم قسمونه خوری اودا به ګڼړي چه دوی هم څه دی. خبردار ! يقيناً دوی دروغژن دی.په دې ځائې کښې نې هم ددوی د غلطې عقيدې مقابله کښې اوفرمائيل چه په اصل کښې دوی ته ددوی دخپل کار خرابی نه ده معلومه. دوی دا دهوکه خپلوخانونو ته ورکوی لکه په بل ځائې کښې ارشاددې چه﴿إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ ۚ﴾يعنی منافقان الله ﷺ ته دهوکه ورکوی اوهغه ذات دوی ته (دهوکه) ورکوی .

بعضو قاريانو دا﴿يُخٰدِعُوْنَ﴾ لوستلې دې. اوبعضو﴿يَخْدَعُوْنَ﴾اود دواړو قراءتونومعنی اومطلب يو دې. اوکه څوك اووائي چه الله ﷺ ته اوايمان والو ته به دهوکه څنګه ورکوی؟ دوی دخپل زړه خلاف ظاهروی او دا خو صرف دبچ کيدو دپاره وی. نو په جواب کښې به ونيلې شی چه داشان خبره کولو والو ته هم چه د ويرې نه بچ کيدل غواړی،په عربئ کښې(مخادع) وائې چونکه منافقان هم قتل ، قيد او د دنياوی عذابونو نه دمحفوظ کيدو دپاره چال چلولو او د باطن خلاف الفاظ نې ظاهرول ځکه دوی ته دهوکه بازاوونيلې شو.

**قوله تعالى:-** وَمَا يَخْدَعُوْنَ إِلَّآ أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ

**د منافقانو خپل ځان ته دهوکه ورکول:-** ددوی دا کار اګر چه چا ته په دنيا کښې دهوکه هم ورکړي ليکن په حقيقت کښې هغوی خپل ځان ته پخپله دهوکه ورکوی. ځکه چه هغوی په دې کښې کاميابی ګڼړي. اوپه اصل کښې به دا ددوی د عذاب الهی سبب وی چه په دوی کښې به د هغې د برداشت کولو طاقت نه وی. نو په حقيقت به دا دهوکه ددوی دپاره عذاب شی. هغوی چه د کوم کار انجام ښه ګڼړي هغه (کار) به ددوی په حق کښې خراب او ډير خراب وی. ددوی د کفر او ددوی دتکذيب په وجه به د دوی رب ددوی نه سخت خفه وی. خو افسوس په دې چه په دوی کښې شعور نشته دې او دوی په خپل ړوندتوب کښې مست دی. ابن جريج رحمه الله ددې په تفسير کښې فرمائي چه د ﴿لا اله الا الله﴾اظهار کوی او خپل ځان بچ کوی ، داکلمه به ددوی په زړونو کښې ځائې اونکړي. قتاده رحمه الله فرمائي چه دمنافقانو هم داحالت دې چه په ژبه نې څه او په زړه کښې بل څه ، عمل يو څه وی او عقيده بل څه ، سحر يو او ماښام بل څه. دکشتئ په شان چه دهوا په وجه کله يو خوا شی او کله بل خوا.

| فِيْ قُلُوْبِهِمْ | مَّرَضٌ | فَزَادَ | هُمُ | اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|
| په زړونو دهغوئ کښي | مرض دي | نو زيات کړل | هغوئ لره | الله |
| ددوئ په زړونو کښي (د نفاق)مرض دي نو الله (دقانون قدرت مطابق) ددوئ مرض | | | | |

| مَرَضًا | وَلَهُمْ | عَذَابٌ | اَلِيْمٌ | بِمَا | كَانُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| د حيثيت د مرض نه | اودي دهغوئ دپاره | عذاب | دردناك | په سبب دهغي | چي وو هغوئ |
| زيات کړو اودوئ دپاره د دوی د دروغو ونيلو په وجه دردناکه سزا مقررشوې ده | | | | | |

| يَكْذِبُوْنَ۝ |
|---|
| چي دروغ ني ونيل |

**قوله تعالى:- فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا**

**د نفاق مرض:-** دبيمارني نه مراد په دې ځائې کښي شك او شبه ده. حضرت ابن عباس ، حضرت ابن مسعود اوځو صحابه کرامو نه هم دا روايت دې. حضرت مجاهد ، عکرمه ، حسن بصري ، ابوالعاليه ، ربيع بن انس اوقتاده نه دا قول روايت شوې دې. عکرمه او طاوُس ددې تفسير په ريا سره کړې دې. اوحضرت ابن عباس نه ددې تفسير نفاق هم روايت شوې دې. زيدبن اسلم فرمائي چه په دې ځائې ترې ديني بيماري مراد ده جسماني نه ده ، دوی ته په اسلام کښي دشك بيماري وه او الله تعالى د دوی په ناپاکئ کښي نور زيات والې اوکړو.

**د قرانى ايتونونه شواهد:-** لکه په قران پاك کښي په يو بل ځائې کښي دی چه(فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَزَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّهُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ۝ وَاَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا اِلٰى رِجْسِهِمْ وَمَاتُوْا وَهُمْ كٰفِرُوْنَ۝) يعنى د ايمان والو په ايمان کښي زياتي کوی او دوی خوشحاله کوی، ليکن د بيماری والو په ناپاکئ کښي او پليتئ کښي نور هم زياتي کوی (يعنى ددوی ابدی گمراهي نوره هم زياتيږی) دا بدله ده ددوی د عملونو مشابه ده. دا ښه تفسير دې،هم ددې په مثل يو فرمان هم دې چه(وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَّاٰتٰهُمْ تَقْوٰىهُمْ۝) دهدايت والوهدايت کښي زياتوالې کوی اوداقوی کوی.(يَكْذِبُوْنَ)قاريانو(يُكَذِّبُوْنَ)هم ونيلې دې.دادواړه خراب خصلتونه دي چه په دوی کښي وو دابه ني په دروغه هم کنړل او دوی دروغژن هم وو.

**دمنافقانو نه قتلولووجه:-** رسول الله بعضي منافقان پيژندلو نه باوجود هم دوی نه قتلول اوددې وجه هغه ده چه کومه د بخاری اومسلم په روايت کښي ده چه نبی کريم حضرت عمر فاروق ته اوفرمائيل چه څه دا خبره نه خوښوم چه په خلقو کښي دامشهوره شي چه حضرت محمد خپل ملګری قتل کوی ([1])

مطلب دادې چه کوم اعرابيان چاپير چل کښي دی هغوی ته به دا معلوم نه شي چه دا کافران ددوی پټ کفر په وجه قتل کړې شوی دی ، ددوی نظرونه خو صرف په ظاهر باندې وی. کله چه په دوی کښي دا خبره مشهوره شي چه نبی کريم خپل ملګری قتل کوی نو ويره ده چه هسې نه دوی داسلام قبلولو نه منع شي. حضرت قرطبی فرمائي چه زمونږ د عالمانو هم دا قول دې دا صحيح دې دا شان نبی کريم مولفة القلوب چه دکومو زړونه اسلام طرف ته مائل کړی نو هغوی ته به ني مال ورکولو حالانکه نبی کريم ته معلومه وه د دوی عقيدې خرابي دی. حضرت امام مالك هم د منافقانو د

[1] ) صحيح بخاري : كتاب المناقب ،باب ماينهى من دعوى الجاهلية: ٣٥١٨، صحيح مسلم: (٢٥٨٤)-

نه قتل کولو هم دا وجه فرمائي ، لکه څنګه چه محمد بن جهم ، قاضی اسماعیل او ابهری نه نقل شوی دی. حضرت امام مالك رحمه الله نه په قول د ابن ماجشون یو وجه داهم نقل شوې ده چه دا په دې وجه وو چه د حضرت محمد ﷺ امت ته معلومه شي چې حاکم په خپل علم باندې فیصله نشي کولې. امام قرطبی رحمه الله فرمائي اګر چه په ټولو مسئلو کښې د عالمانو اختلاف دې لیکن په دې مسئله کښې د ټولو اتفاق دې چه قاضي صرف د ذاتي معلوماتو په وجه یو کس نشي قتل کولې. حضرت امام شافعي رحمه الله یو وجه دا هم بیان کړې ده، دوی فرمائي د نبي کریم ﷺ د منافقانو نه قتل کولو وجه ددوی ایمان په خپله ژبه باندې ظاهرول وو اګر چه ددې ورته علم وو چه ددوی زړونه ددوی خلاف دی. خو ظاهري کلمه دا رومبئ خبره لرې کوی.

ددې په تائید کښې د بخاري شریف او مسلم شریف دا حدیث هم پیش کولې شي چه په هغې کښې دی چه ماته حکم راکړې شوې دې چه څه خلقوسره جنګ اوکړم تر دې چه هغوی (لااله‌الاالله) اووائي. هرکله چه دوی ته دا کلمه اووئیلې شوه نو هغوی خما نه خپل ځانونه اومالونه بچ کړل او ددوی حساب په الله ﷻ باندې دې ()مطلب دادې چه ددې کلمې وئیلو سره دا سلام ظاهري احکام په دوی باندې جاري شي ، اوس که ددوی عقیده هم ددې مطابق وی نو په آخرت کښې به دنجات سبب جوړ شي ګنې په هغه ځای کښې به دوی ته هیڅ نفع نه ورکوی. لیکن په دنیا کښې خو به دمسلمانانو احکام په دوی باندې جاري وی . اګر چه دا خلق به دوی په دې ځای کښې دمسلمانانو په صفونو کښې او ددوی په فهرست کښې په نظر راځي لیکن آخرت کښې په پل صراط باندې به دوی بیل شي اوپه تیرو کښې به حیران اوپریشان وی او په اوچت آوازسره به مسلمانانو ته آوازونه کوی چه آیا مونږ تاسو سره نه وو؟ لیکن دهغه ځای نه به ورته جواب ملاؤ شي چه وئ خو صحیح مګر تاسو په فتنو کښې پریوتئ او په انتظار کښې پاتې شوئ او خپل کړه مو کول او خپلو خواهشاتو پسې شوی وئ تر دې پورې چه دالله ﷻ حکم راغلو.

غرض دا چه په آخرت کښې به هم مسلمانانو پسې لګیدلي وی خو آخر دوی به بیل کړې شي، او ددوی په امیدونو باندې به اوبه تونې شي. هغوی به غواړی چه مسلمانانو سره په سجده کښې پریوزی لیکن سجده به نشي کولې (). لکه څنګه چه په احادیثو کښې تفصیل سره بیان راغلي دې .بعضو محققینو وئیلي دی چه ددوی د نه قتل کولو وجه دا وه چه د الله ﷻ رسول په موجودګئ کښې ددوی شرارتونه نشي ملاویدلې. الله ﷻ به مسلمانان دخپلې وحی په ذریعه ددوی د بدو نه محفوظ کړې وې. لیکن نبي کریم ﷺ نه پس الله ﷻ دې نه کړی که داسې خلق وي ددوی نفاق ښکاره شي او مسلمانان ترې ښه واقف شي نو هغوی به قتلوی .د حضرت امام مالك رحمه الله فتوی ده چه نفاق د نبي کریم ﷺ په زمانه کښې وو لیکن نن خو دا بې دیني او زندیقیت دې.

داهم یاد ساتل پکار دی چه د زندیق په باره هم د عالمانو اختلاف دې چه کله هغه کفر ښکاره کړی نودده د قتل کولو نه مخکښې دې ده ته دتوبې کولو پیشکش اوکړی یا نه ؟ او هغه زندیق چه خلقو ته هم ددې تعلیم ورکوی اوهغه زندیق چه معلم نه وی ، په دې دواړو کښې به فرق کولې شي یا نه ؟ او که دا ارتداد څو ځل شوې وی نو بیادې څه حکم دې یا صرف په یو ځل کولو باندې هم ؟ بیا په دې کښې هم اختلاف دې چه دا اسلام راوړل او رجوع کول دده دخپل طرف نه وی او په ده باندې د زور کولو نه پس هم دا حکم ؟ غرض په دې ټولو خبرو کښې اختلاف دې. لیکن ددې دبیان ځائې داحکامو کتابونه دی تفسیرونه نه دی.

---

[1] ) صحیح بخاری : کتاب الایمان باب ( فان تابوا...) :۲۵، صحیح مسلم: ...۲۱)-.

[2] ) صحیح بخاری:کتاب الاذان فصل ل السجود: ۸۰۶،کتاب التوحید باب قول الله تعالی (وجوه یومئذ ناظرة): ۷۴۳۹،صحیح مسلم: ۱۸۲)

نبی کریم ته د بعضې کسانو د نفاق علم:- د څوارلسوکسانو د نفاق علم خو نبی کریم ﷺ ته وو (). دا هغه بدظن خلق وو چه هغوی په غزوه تبوک کښې مشورې کړې وې اودا ئې فیصله کړې وه چه نبی کریم ﷺ سره دهوکه اوکړي. دوی د نبی کریم ﷺ دقتل کولو پوره سازش کړې وو چه د شپې په تیاره کښې چه کله رسول کریم ﷺ فلانی غر ته نزدې شی نو د رسول کریم ﷺ اوښه اویرونی ،هغه به اویریږی او په منډه به شی او رسول کریم ﷺ به په غر کښې پریوزی ، الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته په هغه وخت کښې وحی اوکړه اوددوی ناپاک سازش نه ئې خبر کړل . نبی کریم ﷺ حضرت حذیفه ؓ راوبللو اوددې واقعې خبرې ئې ورکړو. او ددې غدارو نومونه ئې هم ورته اوخودل. بیا هم رسول کریم ﷺ ددوی د قتل کولو حکم اونه فرمائیلو()ددې نه سوا رسول کریم ﷺ ته د نورو منافقانو علم نه وو. قران پاك فرمائی چه (وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ مِّنَ الْأَعْرَابِ مُنَافِقُونَ ۖ)یعنی ستاسوچاپیر چل کښې بعضې اعرابیان منافق دی اوبعضې سرکشه په مدینه کښې هم دی تاسو ته د هغوی معلومات نشته دې.خو مونږته معلوم دی. اوبه بل ځائې کښې فرمائی چه(لَّئِن لَّمْ يَنتَهِ الْمُنَافِقُونَ )یعنی که دامنافقان گنده زړونو والا اوفساد کولووالا او تکبر کولودخپلو شرارتونو نه منع نه شو نومونږبه هم دوی نه پریږدو. اوبه مدینه کښې ډیرکم باقی پاتې شی بلکه په دوی به لعنت اوکړې شی چه په کوم ځائې موندلې شی نونیولې به شی او ټکړې ټکړې کولې به شی.

ددې آیتونو نه معلومه شوه چې نبی کریم ﷺ ته ددې منافقانو علم وو چه څوك څوك دی؟ خو ددوی مذموم خصلتونه چه بیان شو ، دا چه په چا کښې وی نو په هغه به نفاق صادق رازی. لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ( وَلَوْ نَشَاءُ لَأَرَيْنَاكَهُمْ) یعنی که مونږ اوغواړو نودوی به ښکاره کړو تاسو به دوی د دوی د انداز گفتگو نه اوپیژنئ: په دې منافقانو کښې د ټولونه زیات مشهور عبدالله ابی ابن سلول وو ، حضرت زید بن ارقم دده د منافقانه خصلتونو د حضور اکرم ﷺ په مخکښې گواهی ورکړې وه . ()دې چه کله مړ کیږی نو حضور اکرم ﷺ دده دجنازې مونځ کوی او دده په دفن کولوکښې شریکیږی ()لکه څنګه چه ئې دعامو صحابه کرامو ؓ په جنازه کښې شرکت کولو. بلکه عمر فاروق ؓ چه کله حضور اکرم ﷺ ته لړ په زور سره ورياد کړل نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه څه نه غواړم چه خلقو کښې دا خبرې مشهورې شی چه حضرت محمد ﷺ خپل صحابه کرام وژنی (). یو صحیح حدیث کښې روایت دې چه ماته اختیار راکړې شو داستغفار کولو اونه کولو نو ما کول خوښ کړل()په یو روایت کښې دی که اویا ځلو نه زیات استغفار کولو کښې هم ما ته دده بخښش معلوم شوې وې نوما به ددې نه هم زیات استغفار غوستې وې ()

| وَإِذَا | قِيلَ | لَهُمْ | لَا تُفْسِدُوا | فِي الْأَرْضِ ۙ |
|---|---|---|---|---|
| اوهر کله | چې اوونیلې شو | هغوئ ته | چې مه کوئ فساد | په زمکه کښې |
| اوهرکله چې دوئ ته (داصلاح دپاره)اوونیلې شی چې د زمکې په مخ فسادمه کوئی (اونفاق پریږدئ) | | | | |

۱) صحیح مسلم کتاب صفات المنافقین واحکامهم باب صفات المنافقین:۲۷۷۹)۔
۲) صحیح مسلم: کتاب صفات المنافقین واحکامهم باب صفات المنافقین:۲۷۷۹)۔
۳) صحیح بخاری : کتاب التفسیر، سورة المنافقون: ۴۹۰۰)۔
۴) صحیح بخاری : کتاب الجنائز باب الکفن القمیص: ۱۲۶۹، صحیح مسلم: ۲۷۷۳)۔
۵) صحیح بخاری : کتاب المناقب باب ماینهی من دعوی الجاهلیة:۳۵۱۸، صحیح مسلم: ۲۵۸۴)۔
۶) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب مایکره من الصلاة علی المنافقین: ۱۳۶۶)۔
۷) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب مایکره من الصلاة علی المنافقین: ۱۳۶۶)۔

| قَالُوْٓا | اِنَّمَا | نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ۝ | اَلَآ | اِنَّهُمْ | هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| نووي ونيل | بيشكه مونږ | اصلاح اكونكي يو | خبردار | بيشكه هم دوئ | فساد كونكي دي |
| نودوئ وائي مونږ خو(خپله، لګيا يو(دخلقو)اصلاحوكوۀ | | | بلكه هم دوئ ښكاره فساديان دي | | |
| وَلٰكِنْ | لَّا يَشْعُرُوْنَ۝ | | | | |
| خو | نۀ لري دوي پوهه | | | | |
| خو(پخپلو خانونو) نه پوهيږي | | | | | |

**قوله تعالى:-** وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ

**فساديان منافقان :-** حضرت ابن عباس ، حضرت ابن مسعود اود رسول كريم بعضي صحابه كرامو نه روايت دي چه دا بيان هم دمنافقانو دي ددوى فساد كفر او معصيت الهي دي[1] مطلب دادي چه په زمكه كښي دالله نافرماني كول يا د نافرمانئي كولو حكم وركول په زمكه كښي فساد پيداكول دى او دزمكي او آسمان اصلاح دالله اطاعت دي ([2])حضرت مجاهد فرماني چه كله دوى د الله دنافرمانئ نه منع كولي شي نو وائي چه مونږ خو په هدايت اواصلاح باندي يو.

حضرت سلمان فارسي فرمائي چه ددي خصلت خلق اوسه پوري نه دي راغلي. مطلب دادي چه د حضور اكرم په زمانه كښي دبدخصلت دا خلق موجود وو. خواوس چه څوك رازى نوهغوى به ددوى نه هم بدترين وى. دا نه دي ګنرل پكار چه دوى دا وائي چه ددي وصف د حضور په زمانه كښي هډو وو نه. حضرت ابن جرير فرماني چه ددي منافقانو فساد پيدا كول دا وو چه د الله نافرماني به ئي كولي. چه دكوم كار نه الله دوى منع كول هغه (كارونه) به ئي كول. او دالله فرائض به ئي ضائع كول.دالله په ريښتوني دين كښي به ئي شك كولو،ددي په حقيقت اوصداقت باندي ئي يقين نه كولو. مومنانوته چه به كله راغلل نو لاپي به ئي ويشتلي. حالانكه په زړونو كښي ئي رنګ په رنګ وسوسي وي.موقع به ئي كتله اودالله ددښمنانو امداد او مدد به ئي كولو او د الله دنيكو بندګانو په مقابله كښي به ئي دهغوى مدد كولو اوددي مكر او فسا د نه پس به ئي خپل خان ته مصلح ونيل او مصلح ګنړلو ([3]).

**كافرو سره دوستي هم فساد دي:-** قران پاك دكافرو سره دوستي او تعلق نه هم په زمكه كښي د فساد كولوسره تعبير كړي دي. ارشاد فرماني چه(وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ)يعني كفارپخپلو كښي ديو بل دوستان دى كه تاسو داسي اوكړل (دي كافرو سره مو دوستي اوكړه) نو په زمكه كښي به غټ فساد او فتنه پيدا شي.په دي آيت كښي ئي دمسلمانانو اوكفارو د دوستاني اوتعلقاتو كټ كولو حكم كړي دي او بل خاني كښي فرماني چه اني ايمان والو مومنان مه پريږدني او كافران خپل دوستان مه جوړوني ، آيا تاسوداغواړني چه د الله په تاسوباندي ښكاره حجت شي يعني ستاسودنجات دليل پريكړي. بيا فرماني چه منافق خلق به د جهنم په لاندي حصه كښي وى او تاسو به ددوى دپاره بالكل مددګار نشي. چونكه دمنافقانو ظاهر ښه وى ددي وجي په مسلمانانو باندي حقيقت پټ وى.دوى مومنانو ته په خپلو خوندوروخبرو دهوكه وركوى. او ددوى د بې حقيقته كلماتونه او دكافرو د پټي دوستاني نه مسلمانانو ته ډير زيات مصيبتونه برداشت كول دى.دامنافقان دفساد كولو مشران دى. كه دوى پخپل كفر باندي

---

[1] ) الطبرى: ۲۸۸/۱)-.
[2] ) ابن ابى حاتم : ۱ / ٥٠)-
[3] ) الطبرى: ۲۸۹/۱)-

اوسی نو د دوی خوفناکوسازشونو او غټو چالونو به مسلمانانوته دومره نقصان بالکل نه رسيدو او پوره به مسلمانان شوی وې. او خپل ظاهر او باطن به ئې بنه کړې وې. نوبيا به دوی د دنيا د امن سره د آخرت نجات به هم حاصل کړې وې.ددې خطرناکې پاليسئ باوجود کله چه دوی ته نصيحت کولې شی نو دوی وائی چه مونږ خوصلح کوونکی يو او دوی دروغ وائی ، مونږ د چا څه ويرانول نه غواړو مونږ فريقينو سره اتفاق کوؤ.

**قوله تعالى:-** قَالُوْٓا اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ

**خپل ځانته مصلح وئيل:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه هغوی به وئيل چه مونږ د دواړو ډلو يعنی مومنانو او اهل کتابو مينځ کښې صلح کوونکی يو. ليکن الله ﷻ اوفرمائيل چه دا د دوی سراسر جهالت دې کوم ته چه دوی صلح وائی دا عين فساد دې خودوی ته هيڅ پته نشته دې (١)

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاِذَا | قِيْلَ لَهُمْ | اٰمِنُوْا | كَمَآ |
| اوهر کله | چې اووئيلې شوهغوئ ته | چې ايمان راوړئ | لکه څنګه |
| اوهر کله چې دوئ ته اووئيلې شی چې داسې (ربښتينی) ايمان راوړنی لکه | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اٰمَنَ | النَّاسُ | قَالُوْٓا | اَنُؤْمِنُ | كَمَآ | اٰمَنَ |
| چې ايمان راوړې دې | نو | روخلقو | نووې وئيل | آيا مونږ ايمان اراوړولکه څنګه چې | ايمان راوړې دې |
| چې نورومسلمانو) خلقو راوړنی دې نو وائی (بنه) داسې ايمان ايمان راوړو | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| السُّفَهَآءُ ط | اَلَآ | اِنَّهُمْ | هُمُ | السُّفَهَآءُ | وَلٰكِنْ |
| بيوقوفانو | خبردار | په حقيقت کښې | دوئ چې دی | دوئ پخپله بيوقوفان دی | خو |
| لکه دې کم عقلوخلقو چې راوړنی دې ا واوړئی چې هم دوئ پخپله بې عقله دې خو (پخپلې بې عقلئ هم) | | | | | |
| لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ | | | | | |
| نهٔ پوهيږی دوئ | | | | | |
| نه پوهيږی (څکه دوئ نورو خلقو ته بې عقله وائی) | | | | | |

**قوله تعالى:-** اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ وَلٰكِنْ لَّا يَعْلَمُوْنَ

**حقيقی بيوقوفان:-** مطلب دادې کله دې منافقانو ته دصحابه کرامو ﷺ پشان په الله ﷻ دايمان راوړو ، په فرښتوباندې دايمان راوړو ،په رسولانو باندې دايمان راوړو ، مرګ نه پس ددوباره ژوند ،د دوزخ اود جنت حقانيت دتسليمولو ،دالله ﷻ تابعدارئ کولو ،د نيك عملونو کولو او د بدونه دمنع کيدلو اووئيلې شی نودامل عونه ډله داسې ايمان ته بيوقوفه ايمان وائی.ابن مسعود ﷺ اوبعضې نورصحابه کرام ﷺ او ربيع بن انس رحمه الله ،عبدالرحمان بن زيد رحمه الله وغيره نه هم دا تفسير نقل شوې دې (٢)

**د سفيه معنی:-** (السُّفَهَآءُ) د (سفيه) جمع ده لکه حکماء اوحکيم او حلماء اوحليم، جاهل کم عقل او نفع نقصان لره پوره نه پيژندلووالا ته (سفيه) وئيلې شی. قران پاك کښې په بل ځائې کښې ارشاد دې چه (وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ) بيوقوفوته مال مه ورکونی کوم چه ستاسودقيام سبب جوړيږی. دعامو مفسرينو دا قول دې چه په دې آيت کښې (السُّفَهَآءُ) نه مراد ښځې اوبچی دی،ددې منافقانو په جواب کښې پخپله په دې

١) ابن ابی حاتم : ١ / ٥٢ )-
٢) الطبری: ١/٢٩٣)-.

خائي كنبي پروردګار عالم ﷻ جواب وركړو اوتاكيد ئې اوفرمائيل چه بيوقوف خو دوى دي او ورسره جاهلان هم دي داسې چه خپله بيوقوفي ورته معلومه هم نه ده. نه ورته خپل جهالت اوګمراهي معلومه ده . ددې نه زيات به ددوى خرابي او ړوندتوب او ـهدايت نه لرې كيدل نور څه وي؟

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَإِذَا | لَقُوا | الَّذِينَ | آمَنُوا |
| اوكله چې | ملاويږي دوئ | دهغه خلقو سره | چې ايمان ئې راوړي دي |
| اوهركله چې دوئ مسلمانانو سره ملاو شي | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوا | آمَنَّا | وَإِذَا | خَلَوْا | إِلَىٰ شَيَاطِينِهِمْ | قَالُوا |
| نو وايئ | چې ايمان راوړې دې مونږ | اوكله چې | خانله شي | دشيطانانو ملګروخپلو سره | نو وائي |
| نو (مسلمانانو ته) وائي چې مونږ(هم)ايمان راوړنې دي اوهركله چې خپلوشيطانانو(يارانو) سره يوازې شي نو وائي | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّا | مَعَكُمْ | إِنَّمَا نَحْنُ | مُسْتَهْزِئُونَ | اللَّهُ | يَسْتَهْزِئُ |
| په حقيقت كنبې مونږ | تاسو سره يو | بيشكه مونږ | توقې كونكى يو | الله | بدله د توقو وركوى |
| چې مونږخو ستاسو ملګرى يو مونږ خو په مسلمانانو پورې توقې كوؤ (الله دوئ ته ددې توقوسزا وركوى | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِهِمْ | وَيَمُدُّهُمْ | هُمْ | فِي طُغْيَانِهِمْ | يَعْمَهُونَ |
| دوئ ته | اومهلت وركوى | دوئ ته | اودوئ په سركشئ خپله كنبې | سرګردان دي |
| او دوئ ته مهلت وركوى (چې پخپله سرتيزئي كنبې سروهلې بروهلې ګرځي. | | | | |

**قوله تعالى:-** وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا

**منافقانه رويه:**:مطلب دادې چه دا بدظن مسلمانانو لره رازي او خپل ايمان اودوستي او خيرخواهي ظاهروى اودوى په دهوكه كنبې اچوى. چه دمال او خان بچ كيده اوشي او نيكي او د غنيمت مال كنبې هم ددوى حصه اورسى،اوكله چه خپلې ډلې(شيطانانو) ته لاړ شي نو دهغوى حق كنبې خبرې كوى.

**قوله تعالى:-** وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَاطِينِهِمْ

**دخلو معنى:**-د (خَلَوْا) معنى په دې خائې كنبې د (انْصَرَفُوا) او (ذَهَبُوا)او(خَلَصُوا) او د (مَضَوْا) ده يعنى واپس كيږى او رسى اوپه خانله والى كنبې وى او خى.چه د «الى» سره متعدى ده دا په معنى د واپس كيدو ده. په فعل مضمر او ملفوظ دواړو باندې دلالت كوى ، بعضې وائى چه (الى) په معنى د مع دې . مګر ړومبئ معنى صحيح ده.

**د شيطانانو نه مراد:**-دابن جرير رحمه الله دكلام خلاصه داده چه دشياطين نه مراد مشران او لوئې لوئې سرداران دى لكه د يهودو عالمان او د قريشو اومنافقينوسرداران.

حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او نور صحابه كرام رضي الله عنهم قول دې چه دا شياطين ددوى مالداره مشران او دكفر سرداران وو. او ددوى په عقيده كنبې شامل خلق وو. د يهودو دې شيطانانو به دوى ته د پغمبرني دروغ ګنړلواو دقران پاك د تكذيب كولو مشورې وركولې. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه د شياطين نه مراد دهغوى هغه ملګرى دى چه يا خومشركان وو او يا منافقان وو. حضرت قتاده رحمه الله فرمائى چه ددې نه مراد هغه خلق دى چه په خرابو او شرك كنبې ددوى سرداران وو. ابو العاليه رحمه الله سدى رحمه الله ، ربيع بن انس رحمه الله هم دا تفسير كړې دې. ابن جرير رحمه الله فرمائى چه هر دهوكه وركونكى او سركشى كونكى ته شيطان وئيلې شى كه هغه د جناتونه وى اوكه د انسانانو نه . په قران

پاك كښي هم دى چه(شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ) يعنى د انسانانو اوپيريانو شيطانان. په حديث كښي دى چه مونږ د جناتو اود انسانانود شيطانانونه دالله ﷻ پناه غواړو. ابو ذر رضی الله عنه د رسول كريم ﷺ نه تپوس اوكړو چه يارسول الله ﷺ ! آيا په انسانانو كښي هم شيطانان وى ؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه آو. (١)

**قوله تعالى:-** قَالُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ ۙ اِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ

**د منافقانو دوه پړيقتوب:-** كله چه دامنافقان مسلمانانو سره ملاويږى نو وائى چه مونږ تاسوسره يو يعنى خنگه چه تاسو يئ داشان مونږ هم يو.مونږ خو هغوى سره هسې ټوقې كوو. حضرت ابن عباس رضی الله عنه ، ربيع بن انس رحمه الله او قتاده رحمه الله نه هم دا تفسير شوې دې. الله ﷻ دوى ته جواب وركوى اوددوى ددې مكر او فريب د فعل باره كښې فرمائى چه الله ﷻ به هم دوى سره ټوقې اوكړى او دوى به په سركشئ كښې نور هم زيات كړى لكه څنگه چه بل ځائې كښې فرمائى چه د قيامت په ورځ به منافقان سړى او ښځې ا يمان والو ته وائى چه لږ شان اودرېږئ چه مونږ هم ستاسو دنور نه فائده اوچته كړو. ورته به اووئيلې شى چه روستو لاړشئ او نورتلاش كړئ.ددوى په روستو كيدو به ددوى په مينځ كښې يو ديوال قائم كړې شى. په دې كښې به دروازه وى. ددې يو طرف ته به رحمت وى او بل طرف ته عذاب. اوپه بل ځائې كښې ارشاد فرمائى چه كافر دې زمونږ صبر (ډهيل) ته ښه نه وائى په دې تاخير كښې دوى په خپل بدكردارونو كښې نورهم زياتيږى.نو قران پاك كښې چه په كوم ځائې كښې استهزاء، مسخريت يعنى ټوقې،مكر،خديعت يعنى ددهوكې الفاظ راځى نوپه هغه ځائې كښې به هم دامراد وى

**قوله تعالى:-** اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ

**د الله په دوى پورې د ټوقو كولو معنى:-** يو ډله وائى چه داالفاظ صرف د زورنې او خبردارنې دپاره استعمال كړې شوى دى ، ددوى دبدوكردارونو اود دوى كفر اوشرك باندې ددوى ملامته كړې شوى دى. مفسرين ليكى چه دا الفاظ صرف په جواب كښې راوړې شوى دى. لكه څنگه چه يو نيك سړې : يو مكار سړى د دهوكې نه بچ شى او په دوى باندې غالب شى او وائى چه اووايه ما څنگه فساد اوكړو حالانكه دده دطرف نه فريب نشى كولې.داشان دادالله ﷻ فرمان دې چه(وَمَكَرُوْا وَمَكَرَ اللّٰهُ) او (اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ) كنى دالله ﷻ ذات دمكر او فريب نه پاك دې. مطلب دادې چه ددوى فن به هم دوى لره برباد كړى ددې الفاظو مطلب دا هم بيان شوې دې چه الله ﷻ به ددوى دتمسخر او ددوى د دهوكې او ددوى دهيرې بدله وركړى .نوپه بدله باندې هم د دې الفاظو اطلاق شوې شو ، معنى د دواړو لفظونو په دواړو ځايونو كښې جداجداده.اوگورئ قرآن پاك كښې دې چه(جَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا) يعنى د بدئ بدله بدى ده.(فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ) چه څوك په تاسو باندې ظلم اوكړى نوتاسوهغه سره زياتې كوئ،نوظاهره ده چه د بدئ بدله په بدئ سره خرابه نه ده. دزياتئ په بدله كښې دزياتئ بدله اخستل زياتى نه ده. ليكن لفظ په دواړو ځايونو كښې هم يو دې. حالانكه اوله بدى اوزياتى ظلم دې. او بله بدى او زياتى عدل دې. ليكن لفظ په دواړو ځايونو كښې يو دې. داشان چه په كوم ځائې كښې دالله ﷻ په كلام كښې داسې عبارتونه دى په هغه ځائې كښې هم دا مطلب دې، او يو مطلب بل هم واورئ . په دنيا كښې دا منافق د خپلې دې پليتې پاليسئ سره دمسلمانانوسره مذاق كولو،الله ﷻ هم دوى سره هم داسې اوكړل چه په دنيا كښې دوى ته امن وامان ملاؤ شو او اوس دوى مست شول . حالانكه دا عارضى امن دې.د قيامت په ورځ به دوى ته هيڅ امن نه وى. په دې ځائې كښې اگر چه ددوى مالونه او ددوى ځانونه بچ شو ليكن الله ﷻ سره به دوى ته درد ناك عذاب ملاويږى؟. ابن جرير رحمه الله هم دې قول ته ترجيح وركړې ده. او ددې نې ډير تائيد كړې دې. ځكه چه مكر دهوكه او مذاق چه بغير د څه وجې

---

(١) احمد:٥/١٧٨، كتاب الاستعاذه باب الاستعاذه من شر شياطين الانس: ٥٥٠٩)-

نه وی ددې نه خو دالله ﷻ ذات پاك دې. خود انتقال او بدلې اودمقابلې په طور دا الفاظ دالله ﷻ په حق کښې د ونیلو څه حرج نشته. حضرت ابن عباس ﷺ هم دا فرمائی چه دا ددوی بدله ده اوددوی سزا ده.

قوله تعالى:- وَيَمُدُّهُمْ

**منافقانو ته مهلت ورکول:-** د ﴿وَيَمُدُّهُمْ﴾ مطلب ډهيل ورکول او زياتول کړې شوې ده. لکه فرمائی ﴿أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِ﴾ یعنی آیا دوی دا ګنړی چه ددوی مالونه او ددوی اولاد زیاتیدل ددوی دپاره ښه څيز دې نه دوی ته بالکل صحیح شعور نشته دې. او فرمائی چه ﴿سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ﴾ یعنی داشان به مونږ دوی په مزه مزه نیسو چه دوی ته به معلومه هم نشی. نو مطلب داشوچه يو خوا دوی دا ګناه کوی او بل طرف ته ددوی دنیاوی نعمتونه زیاتیږی اودوی خوشحالیږی حالانکه په اصل کښې دا عذاب دې. قرآن پاك کښې په بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ﴾ یعنی کله چه دې خلقونصیحت هیر کړو نو مونږ په دوی باندې دټولو څیزونو دروازې پرانیستې تردې پورې چه دوی په خپلو څیزونوباندې نازیدل نو مونږ دوی لره راونیول نو اوس اوویریدل اود ظالمانو بربادی اوشوه او اوونیلې شو چه تعریفونه دالله ﷻ دپاره دی. ابن جریر رحمه الله فرمائی چه دوی د مهلت ورکولو او دوی ته په خپلې سرکشئ او بغاوت کښې دزیاتیدو دپاره نوره زیاتی اوکړې شوه. بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ﴾ مونږ د دوی زړونه اړوو راړوو

قوله تعالى:- فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ

**د طغیان معنی:-** ﴿طُغْيَانِهِمْ﴾ وانی په یو څیز کښې داخلیدو ته. لکه چې فرمائی ﴿إِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَاءُ﴾ ابن عباس ﷺ فرمائی چې دوئ خپل کفر کښې ډير وربوختیږی. عَمَه ګمراهئ ته وانی، نو ددې جملې مطلب داشو چه ضلالت او کفر کښې ډوب شول. او دې ناپاکئ دوی لره راګیرکړل. او اوس دوی په دې دلدل کښې راکوزیږی. او هم په دې ناپاکئ کښې انخلی. او د خلاصی ټولې لارې په دوی باندې بندې شوی دی. نو په داسې دلدل کښې چه وی او بیاړوندوالې، او کونړتوب اوبیوقوفتیا وی، هغوی به څنګه نجات بیامومی. د سترګو ړندو دپاره په عربئ کښې دعمی لفظ رازی. او د زړه د ړوند دپاره دعمه لیکن کله د زړه د ړوند دپاره دعمی لفظ رازی لکه په قران پاك کښې دی چه ﴿وَلَٰكِن تَعْمَى الْقُلُوبُ الَّتِي فِي الصُّدُورِ﴾ لیکن زړونه نې ړانده دی کوم چه په سینو کښې دی.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ فَمَا رَبِحَت

داهغه خلق دی | چې اغستلې نې ده ګمراهی | په بدله دهدایت کښې | خو اونه کړه | ګټه

داهغه کسان دې چې د هدایت په بدل کښې نې ګمراهی په بیعه اخستې ده خو ددوی سوداګرئ څه

تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ﴿۱۶﴾

سوداګرئ ددوئ | اونه دی دوئ | صحیح لارموندونکی |

ګټه او نکړه | اونه دوی (دحق) لار موندونکی دی |

قوله تعالى:- أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ

**دهدایت په بدله کښې ګمراهی اخستل:-** حضرت ابن عباس ﷺ، حضرت ابن مسعود ﷺ او بعضې نورو صحابه کرامو ﷺ نه روایت دې چه هغوی هدایت پریښودو او ګمراهی نې واخستله. حضرت عبدالله فرمائی چه دوی دایمان په بدله کښې ګمراهی خوښه کړه. لکه څنګه چه د ثمودیانو باره کښې ارشاد دې چه ﴿وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَاهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمَىٰ عَلَى الْهُدَىٰ﴾ یعنی ددې باوجود چه مونږ ثمودیانو ته لار اوښائیله مګر بیاهم هغوی ددې رهنمائی په بدله کښې ړوندتوب خوښ کړو. مطلب دا شو چه منافقان د هدایت نه

واوړيدل او ګمراهۍ طرف ته راغلل. اودهدايت په بدله کښې ئې ګمراهي واخسته يعنى هدايت ئې خرڅ کړو او ګمراهي ئې واخسته. که اوس ئې ايمان راوړې وى او بيا کافر شوى وى يا ورته هډو د ايمان راوړل نه وى نصيب شوى. او په دې منافقانو کښې دوه قسمه خلق وو. چنانچه په قران پاک کښې دى چه ﴿ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ﴾ يعنى دا په دې وجه چه دوى ايمان راوړو او بيا کافران شو نوددوى په زړونو باندې مهر اولګولې شو.اوداسې منافقان هم دى چه هغوى ته ايمان نصيب نشو.

قوله تعالى:- فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ

**په تجارت کښې تاوان:-** نو نه خودوى ته په دې سودا کښې څه فائده ملاؤ شوه او نه ورته لار ملاؤ شوه. بلکه دهدايت د چمن نه اووتل او په ازغو کښې داخل شو او د جماعت د مضبوطې قلعه نه اووتل او په تنګو جيلونو کښې داخل شو اود امن نه اووتل او په ويرو اوتيارو کښې داخل شو اود سنت د پاکو باغونو نه اووتل او د بدعت په ويرانو ځنګلونو کښې داخل شو(١)

| |
|---|
| مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِي |
| مثال ددوى \| إيشان دمثال \| دهغه کس دې |
| \| ددې درغلوخلقو مثال دهغه چا پشان دې |
| اسْتَوْقَدَ نَارًا فَلَمَّآ اَضَآءَتْ مَا حَوْلَهٗ ذَهَبَ اللّٰهُ |
| چې بل کړې ئې وى \| اور \| نوهر کله \| چې روښانه کړو \| دې وور \| خو اوشاوول خائې دهغه \| نو واخستلو الله |
| چې اور ئې په تياره کښې بل کړو \| نوهر کله چې ګيرچاپيره خائې ئې رڼا کړو \| نو الله پاک د دوى |
| بِنُوْرِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِىْ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ |
| طاقت دليدلو دهغوى \| اوپريښودل ئې هغوى \| په تيروکښې \| چې نه وينى هيڅ څيز |
| (د سترګې رڼا ختمه کړه \| اوپه تورو تيرو کښې ئې پريښودل \| چې هيڅ نه وينى (دوى) |
| صُمٌّ بُكْمٌ عُمْىٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ |
| کانړه دى \| چاړاګان دى \| ړانده دى \| اوس دوى \| نه واپس کيږى \| |
| کانړه ،ګونګيان اوړانده دى \| نود(خپلې ګمراهۍ نه)بيرته نه راګرځى \| |

قوله تعالى:- مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِى اسْتَوْقَدَ نَارًا

**دمنافقانو مثال:-** مثال ته په عربۍ کښې مثيل هم وائى. ددې جمع امثال راځى. لکه په قران پاک کښې دى چه ﴿وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ﴾ يعنى دامثالونه مونږ خلقو دپاره بيانوؤ اوپه دې باندې صرف عالمان پوهيږى. دآيت مطلب دادې چه منافق ګمراهى دهدآيت په بدله کښې او ړوند واَلې دبينائى په بدله کښې اخلى.

قوله تعالى:- فَلَمَّآ اَضَآءَتْ مَا حَوْلَهٗ ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِىْ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ

**په تياره کښې اور بلول:-** ددوى مثال دهغه سړى په شان دې چه په تياره کښې اور بل کړى اوده ته بنى طرف ته او ګس طرفته څيزونه په نظر راغلل او پريشانى ترې لرې شى او د فائدې اميد ورته اوشى چه په دې کښې اورمړ شى اويو دم تياره شى،چه نه نظر کار کوى او نه لار معلوميږى او دې سره سره هغه سړې پخپله کوڼ وى، نه د چا خبره آوريدې شى،ګونګې وى د چا نه تپوس نشى کولې، ړوند وى چه

(١) الطبرى: ٣١٦/١)-.

په رڼا سره هم کار نشي کولی. اوس به دې خنګه لار اومومي. هم داشان دامنافقان هم دی چه هدایت لره ئې پريخودې دي او لاره ترې هيره شوې ده او نيکی ئې پريخودې ده او بدی غواړی. ددې مثال نه معلومه شوه چه دې خلقو ايمان قبول کړې وو خوکفر ئې کړې وو. لکه څنګه چه په قران پاك کښې په ډيرو ځايونو کښې په صراحت سره موجود دی. والله اعلم.

حضرت امام رازی رحمه الله په خپل تفسير کښې د سدی رحمه الله نه دانقل کړی دی ،بيا وائی چه دا تشبيه ډيره ښه ده او صحيح ده ځکه چه مخکښې دې منافقانوته دايمان نور حاصل شو او بيا ددوی دنفاق په وجه هغه (نور)مړ شو. اودوی په حيرت کښې پريوتل. او د دين د حيرت نه به زيات حيرت بل څه وی؟

حضرت ابن جرير رحمه الله فرمائی چه د چا دپاره دامثال بيان شوې دې هغوی ته هيڅ وخت هم ايمان نه وو نصيب شوې ځکه چه مخکښې دالله ﷻ فرمان تير شوی دې چه ﴿وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ﴾ يعنی اګر چه دوی په ژبه باندې په الله ﷻ اوپه ورځ دقيامت باندې د ايمان راوړلو وائی خو په حقيقت کښې دوی ايماندار نه دی. ليکن صحيح خبره داده چه په آيت مبارك کښې ددوی دکفر او د نفاق دوخت خبر ورکړې شوې دې . ددې نه ددې انکار نشی کولې چه ددې حالت کفر او نفاق نه مخکښې دوی ته ايمان نصيب شوې وو. ممکن دی چه ايمان ئې راوړې وی ، بيا ددې نه روستو شو او اوس ددوی په زړونو باندې مهر لګيدلې دې. اوګورئی دقران پاك په بل ځائې کښې څه وائی﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا﴾دا په دې وجه دوی دايمان نه پس کفر کړې وو. بيا ددوی په زړونو باندې مهر اولګولې شو او اوس دوی هيڅ نه پيژنی. هم دا وجه ده په دې مثال کښې د رڼا اوتياړې ذکر دې. يعنی کلمه دايمان د ظاهرولو په وجه په دنيا کښې پرې څه نور اوشو ليکن دکفر دپټولو په وجه بيا په آخرت کښې په تيارو کښې راګير شو.

**دجماعت نه په يو فرد سره تعبير:-** ديوجماعت مثال اکثر په يوسړی سره ذکر کولې شی قران پاك فرمائی چه﴿رَأَيْتَهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ﴾يعنی ته به اوګورې چه دوی به ستا طرف ته سترګې نيولې ګوری د هغه سړی پشان د مرګ په سلګو کښې وی. اوپه دې آيت کښې هم اوګورئی ﴿مَّا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ﴾ يعنی ستاسو دټولو پيداکول او دوژلو نه پس بيا ژوندی کول داسی دی لکه څنګه چه ديو څيز نفس دوباره ژوندی کيدل . په دريم ځائې کښې دی چه تورات زده کړی او عمل اوعقيده ئې ددې مطابق نه وی نو ددوی مثال بيانوی ﴿كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا﴾ چې د دوی مثال د خر په شان دې چه کتابونه پرې بار شوی وی. په دې ټولوآيتونو کښې ديو ډلې مثال ورکړې شوې دې ، داشان په ذکر شوی پورتنو آيتونو کښې د منافقانو ديوډلې مثال په يو سړی سره ورکړې شوې دې ،

**تقديردکلام:-** بعضې وائی چه تقدير کلام څه داسې دې چه ﴿مثل قصتهم كمثل قصة الذين استوقدوانارا﴾ يعنی ددوی د واقعې مثال دهغه خلقو د واقعې پشان دې چه اوور بل کړی،بعضې وائی اووربلوونکې يو دې ليکن بلوې ئې ديو جماعت دپاره چه ده سره دې. اوځه خلق وائی چه ﴿الَّذِي﴾ په دې ځائې کښې په معنی د ﴿الَّذِينَ﴾ دې لکه چه دشاعرانو په شعرونو کښې رازی. څه وايم چه پخپله په مثال کښې د واحد صيغې نه پس د جمعې صيغه هم ده. ﴿بِنُورِهِمْ﴾ او﴿وَتَرَكَهُمْ﴾ او﴿لَا يَرْجِعُونَ﴾ اوګورئی او داشان په کلام کښې اعلی فصاحت او بهترين ښه والې راغلو. الله ﷻ ددوی رڼا بوتله. ددې مطلب دادې چه کوم نود نفع ورکونکې هغه خودوی نه لرې کړې شو اولکه څنګه چه اوور نه پس ددې د ګرموالی لوګې اوتياره پاتې کيږی داشان دوی سره نقصان رسولو والا څيز يعنی شك ،کفر اونفاق پاتې شو نه خو دوی صحيح لار کتلې شی اونه دنورو ښه خبره آوريدلې شی اونه د چا نه دښيګړې سوال کولې شی ، اوس بيا واپس کيدل او په هدايت باندې راتلل محال شو ، ددې تائيد کښې د مفسرينو اقوال واورئی.

**دابن کثير د رائې تائيد:-** حضرت ابن عباس رضي الله عنه ، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او بعضې صحابه کرام رضي الله عنهم فرمائی چه دحضور ﷺ مدينې ته د راتلونه پس څه خلقو اسلام قبول کړو خو بيا منافقان جوړ شو ،

ددوی مثال دهغه سړي پشان دي چه په تياره كښې وي ، بيا اور بل كړي او رڼرا شي او چاپير چل كښې ښه اوبد اوګوری اوورته معلوم شي چه په كومه لار باندې دي ؟ چه په دې كښې يو دم اوور مړ شي او رڼرا ختمه شي. اوس ورته معلومه نه ده چه په كومه كومه لار څه څه دی ؟ داشان منافقان د شرك او كفر په تيارو كښې وو ، بيا ئې اسلام راوړو او ښه او بد يعنی حلال حرام وغيره ئې اوكتل خو بيا هم كافر شو اوحرام اوحلال خير او شر كښې څه فرق پاتې نشو.

**دنور اوظلمت نه مراد:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه د نور نه مراد ايمان اود ظلمت نه مراد ضلالت اوكفر دې. دا خلق په هدايت باندې وو. ليكن بيا ئې سركشی اوكړه او اوخوټيدل. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه دايماندارئی او د هدايت طرف ته د رخ كولو نه د چاپير چل څيزونو په رڼرا كولو سره تعبيركړې شو. د عطاء خراسانی رحمه الله قول دې چه منافق كله كله نيكی ګوری او دا پيژنی هم خوبيا دده د زړه روندتوب په ده باندې غالب شی . حضرت عكرمه رحمه الله ،حضرت عبدالرحمن ، حضرت حسن رحمه الله ،حضرت سدی رحمه الله او ربيع رحمه الله نه دا نقل شوی دی .عبدالرحمن بن زيد رحمه الله فرمائی چه د منافقانوهم دا حالت دې چه ايمان راوړی او ددې پاكې رڼرا سره ددوی زړونه ګويا پړقيږی ، لكه څنګه چه په اوور بلولو سره د چاپير چل څيزونه روښانه كيږی. خوكفر بيا دا رڼرا مړه كوی . لكه څنګه چه اوور مړه كيدل بيا تياره كوی ،داټول اقوال خو زمونږ د تفسير په تائيد كښې وو چه دكومو منافقانو دا مثال بيان شوې دې هغوی ايمان راوړې وو ، بيا ئې كفر اختيار كړو .

**دابن جرير تائيد:-** اوس د ابن جرير رحمه الله په تائيد چه كوم تفسير دې هغه واورئی. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دا مثال د منافقانو دې چه هغوی داسلام په وجه عزت حاصلوی. په مسلمانانو كښې نكاح ، وراثت او مال غنيمت تقسيميږی . ليكن مړكيدو سره ترې دا عزت لاړشی. لكه څنګه چه د اور رڼرا د اورمړ كيدو سره لاړه شی. ابوالعاليه رحمه الله فرمائی كله منافق ﴿لا اله الا الله﴾ وائی نو په زړه كښې ئې نور پيدا كيږی،بيا چه په كوم څائې ئې شك اوكړو نو نور لاړو،لكه څنګه چه لرګی بل شی او رڼرا شروع كړی اوچه كله مړ شی نو ددې رڼرا ختمه شی. ضحاك رحمه الله فرمائی نور نه مراد په دې څائې كښې ايمان دې چه ددوی ژبو باندې وو. قتاده رحمه الله فرمائی چه ﴿لا اله الا الله﴾ ددوی دپاره رڼرا كوی. امن و امان او خوراك څكاك او ښځه بچې ټول ملاؤ شی ، خود شك او نفاق په وجه ددوی نه دا راحتونه واخستلې شی. لكه څنګه چه د اور مړ كيدو سره رڼرا لاړه شی. قتاده رحمه الله فرمائی چه ﴿لا اله الا الله﴾وئيلو سره منافق ته دينی فائده لكه په مسلمانانو كښې د هلك اوجينئ لين دين ، وراثت ، دمال تقسيم اوحفاظت وغيره ملاؤ شی ليكن چونكه ددوی په زړه كښې د ايمان جرړه او دده په كارونو كښې حقيقت نه وی څكه دمرګ په وخت كښې هغه ټولې فائدې دده نه واخستلې شی لكه د اور رڼرا چه كله مړه شی.

حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه په تيارو كښې پريښودل دمرګ نه پس عذاب دې. دا خلق حق ګوری ،په ژبه ئې وائی اوكفر اوظلمت نه اوزی ، ليكن بيا دكفر او نفاق په وجه دهدايت كتل او حق باندې د قائم پاتې كيدل د دوې نه واخستلې شی.د سدی رحمه الله قول دې چه د تيارو نه مراد د دوی نفاق دې. حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه دمرګ په وخت كښې دمنافق بدعملونه دتيارو په شان په ده باندې راشی او هيڅ د ښيګړې رڼرا ده سره پاتې نشی چه په دې سره دده دتوحيد تصديق اوكړې شی.

**قوله تعالى:-** صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ

**دنفاق نه نهٔ واپس كيدل:-** دوی د حق اوريدو نه ګونګيان دی،او د حق د لارې ليدو نه اوبه دې د پوهيدلو نه رانده دی .اوهدايت طرف ته واپس نشی راتلې.او دوی ته دا نه نصيب كيږی او نه نصيحت حاصلولې شی.

| اَوْ كَصَيِّبٍ |
|---|
| يانې مثال \| اېشان دشيبو باران دې |
| ياددوئ مثال دهغه چادي چې د آسمان نه په شيبو شيبو |
| مِّنَ السَّمَآءِ فِيهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعْدٌ وَّبَرْقٌ يَجْعَلُونَ |
| چې وريږي داسمان نه \| چې په هغې كښې \| تيرې \| اوتندر \| اوبريښناوې \| ردي هغوئ |
| باران وريږي \| چې په كښې څوڅو تيرې وي او گړزهار اوبريښنا وي \| نو دوئ خپلې گوتې په غوږونو |
| اَصَابِعَهُمْ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ ۭ وَاللّٰهُ |
| گوتې خپلې \| په غوږونو خپلو \| دوجې د گړزارى نه \| د وجې د يرې د مرگه \| الله |
| كښې تومبى \| دتندر دگړزهار دلاسه \| د هلاكت د ويرې نه \| اوالله پاک (پخپل قدرت سره) |
| مُحِيْطٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ۝ يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ اَبْصَارَهُمْ ۭ |
| په گيره كښې اغستونكې دې \| حق منكرو خلقو لره \| نزدې ده \| چې دابريښنا \| ويسى نظر دسترگو دهغوئ |
| دكافرانو نه راتاؤشوې دې \| نزدې ده چه بريښنا دسترگو نظر اوتختوى (اونظرئې كار پريږدى) |
| كُلَّمَآ اَضَاۗءَ لَهُمْ مَّشَوْا فِيْهِ ۤۙ وَاِذَآ اَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوْا ۭ |
| كله چې \| رنړا شي \| هغوئ ته \| نوروان شي \| په هغې كښې \| اوكله چې \| تياره شي \| په هغوئ باندې \| نو ودريږى |
| هر كله چې لره رنړا شي نو دوئ په كښې روان شي \| او چې پرې تياره شي نو بيا په تپواودريږى |
| وَلَوْ شَاۗءَ اللّٰهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ ۭ |
| اوكه چرې \| غوښتلې \| الله \| نو اغستلې به ئې وې \| قوت داوريدو دهغوئ \| اودليدو دهغوئ \| |
| اوكه الله تعالى رضاشوې وه \| نو (سره دهرقسم حفاظت نه) بخ ئې ددوئ غوږونه كانړه سترگې ړندې كړې وې |
| اِنَّ اللّٰهَ عَلٰي كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ۝ |
| بې شكه چې الله \| په هر څيز باندې \| قادردې \| |
| بيشكه الله تعالى په هرڅيز پوره پوره قدرت لرى \| |

**قوله تعالى: ﴿اَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيْهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعْدٌ وَّبَرْقٌ﴾**

**دمنافقانودويم مثال:-** دا دويم مثال د بل قسم منافقانو دپاره بيان شوې دې . دا هغه قوم دې چه په هغوى باندې كله حق ظاهريږى اوكله په شك كښې پريوزى .نودشك په وخت ددوى مثال لكه د باران په شان دې. د (صَيِّبٍ) معنى باران دى . بعضو د وريځو معنى هم كړې ده. ليكن زيات مشهور باران دې چه په تيارو كښې وريږى. د(ظُلُمٰتٌ) نه مراد شك ، كفر اونفاق دې او(رَعْدٌ) يعنى تندر چه خپل خوفناك آواز سره زړه ويروى. هم دا حال د منافقانو دې چه دوى سره هر وخت ويره وى او پريشانى وى لكه څنگه چه په بل ځائې كښې دى ﴿يَحْسَبُوْنَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ ۭ﴾ هر آواز په خپل ځان گنړى. او په بل ځائې كښې ارشاد دې چه دا منافقان دالله ﷻ په نوم قسمونه خورى او وائى چه هغوى ستاسونه دى ليكن په اصل كښې دوى ويريدونكى خلق دى او كه دوى ځه پناه يا لار بيا مومى نو يقيناً دوى به هغې ته ورشى. چې كوم ايمان په يو وخت كښې په زړه كښې يو رنړا جوړوى نو دهغې مثال ئې بجلۍ سره وركړې دې.

قوله تعالى:- يَجْعَلُونَ أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِم مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ

**په غوږونو کښې ګوتې ورکول:**- نو دوی په هغه وخت کښې دوی خپلې ګوتې دمرګ د ويرې د وجې په خپلو غوږونو کښې ورکوی،ليکن دا دوی ته هيڅ فائده نه ورکوی. دا د الله ﷻ دقدرتونو اود هغه دارادو لاندې دی.دوی بچ کيدلې نشی.لکه څنګه چه په بل ځائې کښې دی چه(هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْجُنُودِ ۝ فِرْعَوْنَ وَثَمُودَ)يعنې آيا تاته د لښکر اودفرعون او دثمود واقعات نه دی راغلې.که راغلی هم وی خو دا کافران هغه دروغ ګڼړی او الله ﷻ دوی راګيروی.

قوله تعالى:- يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَارَهُمْ كُلَّمَا أَضَاءَ لَهُم مَّشَوْا فِيهِ

**د نظرونو سوزول:**-دبجلی د سترګو برېښنول او ( ددې د برښيدو په وخت کښې) ددې د قوت او سختی بيان دې او دې سره سره) ددې منافقانو د بينائی دکمزورئ اود دوی د ضعف ايمان بيان دې. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه مطلب دادې چه دقران پاك مضبوط آيتونه به ددوی رازونه ښکاره کړی او ددوی پټ عيبونه به ښکاره کړی. او دوی به په خپل نورانيت سره چپ کړی ([1])

قوله تعالى:- وَإِذَا أَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوا

**په تيارو کښې اودريدل:**-کله چه په دوی باندې تياره شی نو اودريږی يعنی کله چه په دوی باندې دايمان رڼړا ظاهره شی نو ددوی زړونه روښانه شی او په (حق) پسې روان شی خو بيا چه کله دوی ته څه شك او شبه راشی نو په زړونو کښې ئې نفرت او ظلمت پيدا شو او تش اودريږی. ددې مطلب دادې چه اسلام ته لړ شان عروج ملاؤ شی نو ددوی زړونه لږ شان په اطمينان کښې شی خو کله چه اسلام د دې خلاف په نظر راغلو نودوی التـه شول او واپس شو([2])لکه دالله ﷻ ارشاد دې چه (وَمِنَ النَّاسِ مَن يَعْبُدُ اللَّهَ عَلَىٰ حَرْفٍ) بعضې د خلقونه هغه هم دی چه په غاړه باندې ولاړ وی او دالله ﷻ عبادت کوی نو که ورته لږه شان ښيګړه ملاؤ شوه نو مطمئن شو او که ورته لږ بد ملاؤ شو نو بيا واپس اورغړی.حضرت ابن عباس ﷺ دا هم فرمائی چه ددوی په رڼړا کښې تګ داسلام کلمه وئيل دی او په تياره کښې تګ کفر طرف ته تګ دې. او نورو مفسرينو نه هم دا قول نقل دې. اوزيات صحيح هم داقول دې ([3]). والله اعلم.

**د قيامت په ورځ د ايمان رڼړا:**-دقيامت په ورځ به ددوی داحال وی چه خلقو ته به ددوی دايمان د اندازې مطابق نور ملاويږی. بعضوته به د څو څو ميلو پورې او بعضو ته به ددې نه هم زيات او چاته به ددې نه هم کم تر دې چه بعضو ته به دومره نور ملاؤ شی چه کله به روښانه کيږی اوکله به پرې تياره کيږی بعضې خلق به داسې هم وی لږ شان مزل به کوی اوبيا به اودريږی،بيا به لږ شان مزل کوی او بيا به اودريږی. بيا به ورته لږ شان نور ملاؤ شی اوبيا به مړ شی.اوبعضې بې نصيبه به هغه خلق وی چه د هغوی نور به بالکل مړشوې وی.دا (خلق) به منافق وی چه ددوی په باره کښې الله ﷻ فرمائی(يَوْمَ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ لِلَّذِينَ آمَنُوا انظُرُونَا)يعنی په کومه ورځ چه به منافقان سړی اومنافقانې ښځې ايماندارو ته آوازونه کوی او وائی به لږ شان اودريږئی موږ هم ځان سره بوزئی چه موږ هم ستاسو دنور نه فائده اوچته کړو. نوورته به اووئيلې شی واپس لاړ شئ او رڼړا تلاش کړئی. ددې مومنانو په باره کښې الله ﷻ فرمائی چه (وَالْمُؤْمِنَاتِ يَسْعَىٰ نُورُهُم) يعنی په هغه ورځ به ته اوګورې چه دمومنانوسړو اومومنانې ښځو نه به مخکښې مخکښې اوښی طرف ته نور وی اوورته به وئيلې شی چه تاسو ته دې نن ورځ د جنتونو زيری وی چه ددې لاندې به نهرونه بهيږی.

---

[1]) الطبری: ۱/۳۴۹)-

[2]) الطبری: ۱/۳۴۹)-.

[3]) ابن ابی حاتم : ۱ / ۷۵)-

اوفرمائي چه په کومه ورځ به نه رسوا کوي الله ﷻ نبي ﷺ لره اوهغه خلقو لره چه په دوي باندې ني ايمان راوړې وي. د دوي نور به ددوي نه وړاندې طرف ته وي او ښئ طرفته به وي او هغوي به وائي چه ائې زمونږ ربه مونږلره زمونږ نور پوره کړه او مونږ اوبښه او يقينا ته په هر څيزباندې قادر يې. ددې آيتونو نه پس ددې مضمون نور احاديث هم واورئ.

**احاديث مبارکه:**- نبي کريم ﷺ فرمائي چه بعضو مومنانو ته به دمدينې نه واخله تر عدن پورې نور ملاؤ شي ،بعضو ته به ددې نه کم تر دې چه بعضو ته به دومره کم ملاؤ شي چې صرف د پښې کيخودو ځائې به پرې روښانه کيږي (ابن جرير رحمه الله)

حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي ايمان والو ته به ددوي د اعمالو مطابق نور ملاويږي. بعضوته به دفجورې د ونې برابر او چاته به د قدم برابر اوچاته به صرف دومره نور ملاويږي چه دده ګوته به روښانه وي اوکله به مړ کيږي او کله به روښانه کيږي. (ابن ابي حاتم رحمه الله)

حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي چه دوي ته به نور ملاويږي ددوي داعمالو مطابق چه ددې رڼا کښې به دوي په پل صراط باندې تيريږي. دبعضو نور به دغر برابر وي ، دبعضو دقجورې برابر او دټولو نه کم نور والا به هغه څوك وي چه دهغه نور به دهغه په ګوته باندې وي ،کله به روښانه کيږي او کله مړکيږي. (ابن ابي حاتم رحمه الله)

**دمومنانو رڼا:**- حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه ټولو توحيدو والوته به دقيامت په ورځ نور ملاويږي کله چه د منافقانو نور مړشي او موحد به ويريږي او وائي به ﴿رَبَّنَآ أَتۡمِمۡ لَنَا نُورَنَا﴾ يعني ائې الله ﷻ زمونږ نور لره پوره کړه (ابن ابي حاتم رحمه الله) دضحاك رحمه الله هم داقول دې .

ددې احاديثو نه معلومه شوه چه خالص مومنان هغه دي چه دهغوي بيان په تيرو شوؤ څلورو آيتونو کښې بيان شو.خالص کفار چه د هغوي ذکر ددې نه پس دوؤ آيتونوکښې راغلې دې اومنافق چه د هغوي دوه قسمونه دي يوخالص منافقان دي چه دهغوي مثال د اور رڼا سره ورکړې شو ، نورمنافقان هغه دي چه په شك کښې دي کله خو ئې ايمان رڼا کوي او کله مړشي. ددوي مثال د باران سره ورکړې شوې دې دا د ړومبي قسم منافقانو نه لږکم دي.

داشان په سورت نور کښې هم الله ﷻ دمومنانو اوددوي د زړه د نور مثال د هغه روښانه چراغ سره ورکړې دې چه په روښانه فانوس کښې وي او پخپله فانوس ورسره هم د ستوري پشان پرق کوي نود ايماندار خو يو طرفته زړه روښانه وي او بل دده (نبي کريم ) خالص شريعت سره امداد شوي دې ، نو دا نورعلى نور دې .داشان په بل ځائې کښې د کافرو مثال هم ورکوي د خپلې بې وقوفتيا په وجه خپل خانونه څه ګنړي خو په حقيقت کښې دوي هيڅ نه دي،فرمائي دکافرو دعملونو مثال دشګې د پړقيدونکو ډيرکو پشان دې چه ترې پرې د اوبه ګمان کوي ترديې چه نزدې ورته راشي او اوګوري نو هيڅ نه وي. بيا په بله موقع باندې ددې جاهلانو او کافرو مثال بيانوي چې په سخت جهالت کښې ګرفتار دي.ددوي په مثال کښې فرمائي دسختو تيارو په شان دي چه په ژورسمندر کښې وي چه په چپو باندې چپې وي،بيا د وريځو نه ډك وي اوبه تيارو باندې تيارې وي،که لا س راوباسي نوهغه ورته هم نه ښکاري. حقيقت دادې چه د چا دپاره دالله ﷻ نور نه وي نوده سره به نورد کومه راشي ؟

**دکافرانو دوه قسمونه:**-نو دکافرو هم دوه قسمونه دي.① يو خو نورو خلقو لره کفر طرف ته رابلونکي② بلدنورو تقليد کونکي لکه د سورت حج په شروع کښې دي چه ﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِي ٱللَّهِ بِغَيۡرِ عِلۡمٖ وَيَتَّبِعُ كُلَّ شَيۡطَٰنٖ مَّرِيدٖ﴾ يعني بعضې خلق هغه دي چې دالله ﷻ په باره کښې دعلم نه بغير جګړې کوي اوهر سرکشه شيطان پسې روان دي. او بل ځائې کښې الله ﷻ فرمائي چه ﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِي ٱللَّهِ بِغَيۡرِ عِلۡمٖ وَلَا هُدٗى وَلَا كِتَٰبٖ مُّنِيرٖ﴾ يعني بعضې خلق د علم او کتاب او هدايت نه بغير د الله ﷻ په باره کښې جګړې کوي

دسورت واقعه په شروع کښې او په اخر دسورت نساء کښې د مومنانو دوه قسمونه بیان شوی دی .سابقین او اصحاب یمین یعنی د الله ﷻ په درګاه کښې مقرب او پرهیزګاره اونیك خلق ، نو ددې آیتونونه معلومه شوه چه دمومنانو دوه ډلې دی ① مقرب او② ابرار. اودکافرو هم دوه قسمونه دی ①کفر طرفته بلونکی ②او ددوی تقلید کونکې اود منافقانو هم دوه قسمونه دی.① خالص پاخه منافقان ②اوهغه منافقان چه په هغوی کښې د نفاق یونیم بناخ شته وی.

**د منافق درې خویونه**:- بخاری او مسلم شریف کښې حدیث دې .چې حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمانی نبی کریم ﷺ فرمانی چه درې خصلتونه دی په چا کښې چه درې واړه وی هغه پوخ منافق دې. او چه په چا کښې یو وی په هغه کښې یوخصلت دنفاق موجود دې.تر کومې پورې چه دا پرې نږدی①په خبرو کښې دروغ ونیل ② وعده خلافی کول ③ په امانت کښې خیانت کول (¹)ددې نه ثابته شوه چه په انسان کښې هم کله څه حصه د نفاق وی خواه که هغه عملی نفاق وی اویا اعتقادی لکه چه د آیت او حدیث نه معلومیږی. دسلفو اود عالمانو د یوې ډلې هم دامذهب دې .ددې بیان مخکښې هم تیر شوې دې. اوبیابه هم رازی انشاءالله .

**د زړه څلور قسمونه**:- مسند احمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمانی چه زړه په څلور قسمه دې. ① یو خو صفا زړه دې چه د روښانه چراغ په شان پرقیږی.② دونم هغه زړه چې غلاف کښې وی ③ دریم هغه زړه دې چه الټه دې④ هغه زړه چه مخلوط وی. رومبې زړه د مومن دې چه پوره شان سره نورانی دې دویم دکافر زړه دې په دې پردې پرتې دی. دریم خالص دمنافق زړه دې چه ده ته معلومه وی خو بیا هم انکار کوی. څلورم زړه د هغه منافق دې په هغې کښې ایمان او نفاق دواړه وی. دایمان مثال دهغه شینکی پشان دې چه پاکو اوبه سره وده کوی او دمنافق مثال دهغه دانې په شان دې چه په هغې پیپ او وینه زیاتیږی ، اوس چه کومه ماده زیاته شی هغه به غالبه رازی (²). ددې حدیث اسناد هم عمده دی.

**دغوږونو او سترګو هلاکت**:- حضرت ابن عباس ﷺ فرمانی چه که الله ﷻ غواړی نوددوی غوږونه او ددوی سترګې به بربادې کړی. مطلب دادې چه کله دوی ته حق معلوم شو اوددوی هغه پریښودو نو الله ﷻ په هرڅیز باندې قادر دې یعنی الله ﷻ که غواړی نو دوی ته به عذاب ورکړی. اوکه غواړی نو معاف به ئې کړی (³).

**په ایت کښې د ،،او، کلمې تحقیق**:- په دې ځانې کښې دقدرت بیان دې. څکه مخکښې ئې منافقان دخپل عذاب اوجبروت نه ویرولی دی اوفرمانی چه هغه پاك ذات ددوی په راګیرولو باندې قادر دې. د قدیرمعنی قادر ده(⁴).لکه څنګه چه دعلیم معنی عالم ده .ابن جریر ﷫ فرمانی چه دا دوه مثالونه دیو قسم دی. اومعنی کښې د"و"دی. لکه بل ځانې کښې چې فرمانی [وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ اٰثِمًا اَوْ كَفُوْرًا] یا لفظ "او" د اختیاردپاره دې یعنی که دامثال بیانوئ اوکه هغه مثال بیانوې دواړوکښې اختیار دې. قرطبی ﷫ فرمانی او په دې ځانې کښې تساوی یعنی برابرئ دپاره دې لکه دعربئ محاوره ده (جالس الحسن اوابن سيرين )زمحشری ﷫ هم دا توجیه کوی نو مطلب داشو چه په دې دواړو مثالونو کښې چه کوم مثال غواړې بیانوه ، دواړه ددوی دحال مطابق دی.

---

¹ ) صحيح بخاری: كتاب الايمان باب علامات المنافق : ٣٤، صحيح مسلم: ٥٧)-
² ) احمد: حضرت/١٧، )-
³ ) ابن ابي حاتم : ١ / ٧٦)-
⁴ ) الطبری: ٣٦١/١)-

خه وایم داپه اعتبار دمنافقانو اود دوی داحوالو اود صفاتو په اعتبارسره دي.لکه په سورت برائت کښې ﴿فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ وَمِنْهُمْ مَّنْ كَفَرَ﴾ بیانوی او هم د دوی نې ډیرقسمونه اوډیر اقوال بیان کړي دی. نو دا دوه مثالونه د دوه قسمه منافقانو دی چه د هغوی اقوالو او صفاتو سره بالکل مشابه وو. والله اعلم.

سورت نورکښې دوه قسمونه د کفارومثالونه بیان شوی دی① یوکفرطرفته بلونکی او②مقلد فرمائی ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍۢ بِقِيْعَةٍ﴾بیا فرمائی ﴿اَوْ كَظُلُمٰتٍ﴾ نورومېې مثال یعنی د شګې ډیری دکفر طرفته بللو والادی چه په جهل مرکب کښې انختی دی.دویم دمقلد دې چه سخت جهالت کښې اخته دي والله اعلم.

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ |
| اے \| خلقو \| عبادت کوئ \|درب خپل\| هغه رب |
| انې خلقو دهغې پروردګارعبادت کوئ |
| خَلَقَكُمْ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۲۱﴾ |
| چې پیدائې کړئ تاسو\|اوهغه خلق \|چې وووراندې ستاسو نه\| د دپاره چه تاسو\| پرهیزګارجو شئ |
| چې تاسو اوستاسو نه پخوانی نې پیدا کړی دی \| چې په دې طریقه تاسو خان د عذاب نه بچ کړئ |
| الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ فِرَاشًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً وَّاَنْزَلَ |
| هغه (رب) چې اجوړه کړئ نې ده تاسو دپاره\|زمکه \| فرش \| اوآسمان \| چت \| اووې ورولی |
| الله تعالی هغه لوئې ذات دې چې زمکه نې تاسودپاره بستره ګرخولې ده\|او آسمان نې دربانده ګنبدبنکاره کړېدی\| اودآسمان |
| مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ فَلَا |
| د آسمان نه \| اوبهٔ \| او راوی ویستی\|په دې سره\| هر قسم میوې \| دپاره د خوراک \| ستاسو\| نو مهٔ |
| (دطرفه) اوبه رالیږی \| نوپه هغې سره نې ستاسو د خوراک دپاره رنګ رنګ میوې پیداکړی دی نواوس مه |
| تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا وَّاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۲﴾ |
| جوړوئ الله سره\| مقابل \| اوحال داچې تاسو\| پوهیږئ \| |
| پیداکوئ د الله تعالی سره شریکان\| حا دا چه تاسو پوهیږئ \| |

**قوله تعالی:-** يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ

**د الله د حدانیت دلائل:-** ددې خائې نه دالله ﷻ توحید او دهغه د ذات الوهیت بیان شروع کیږی او هم هغه ذات خپلو بندګانو لره دعدم نه وجود ته راوستولو او هم هغه ذات هر شان ظاهری او باطنی نعمتونه ورکړی دی.

**قوله تعالی:-** الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ فِرَاشًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً

**دزمکې او اسمان نعمت:-** هم هغه ذات دزمکې فرش جوړ کړو او په دې کښې نې مضبوط غرونه میخونه جوړ کړل اوآسمان لره چت جوړکړو.لکه بل خائې کښې فرمائی چه﴿وَجَعَلْنَا السَّمَآءَ سَقْفًا مَّحْفُوْظًا﴾یعنی آسمان نې محفوظ چت جوړ کړو ددې باوجود چه دوې د نښنو نه مخ اړوی.

**قوله تعالی:-** وَّاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ

**دباران نازول:-** اوبه د آسمان نه د نازلو مطلب د وریځو نه نازل فرمائیل دی. په هغه وخت کښې چه کله خلق ددې پوره محتاج وی، بیا په دې اوبو سره رنګ په رنګ میوې پیدا کول دی چه دې نه خلق فائده اوچتوی. او ددوی ځناور هم .لکه په قران پاک کښې خائې په خائې ددې بیان راغلې دې،یو خائې کښې

ارشاد دي چه ﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ قَرَارًا﴾ يعنى الله تعالى ستاسو دپاره زمكه فرش اوآسمان چت گرزولي دي اوتاسوته ني ښكلي ښكلي صورتونه دركړي دى.او پاكه روزى ني دركړه. هم دا الله ﷻ دي چه بركتونو والا اود ټول عالم پالونكې دي . نودټولو خالق ، دټولو رازق ، دټولو مالك هم الله ﷻ دى ، اوهم دا وجه ده چه د هر قسمه عبادت مستحق دې او د دې چې څوک ورسره شريک نکړې شى څکه ني اوفرمائيل چه الله ﷻ سره شريك مه جوړونى حالانكه تاسوته پته ده.

**قوله تعالى:-فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا**

**دالله ﷻ په بندګانو باندې حق:**-بخارى شريف اومسلم شريف كښې حديث دې،ابن مسعود ﷺ تپوس كوى انې نبى كريم دټولو نه لويه ګناه كومه يوه ده ؟ فرمائى دالله ﷻ سره شريك جوړول (۱)، كوم ذات چه پيدا كړى يې ،هغه پاك ذات خالق دې. حضرت معاذ ﷺ والا حديث كښې دى تاته څه پته ده چه دالله ﷻ حق په بندګانو باندې څه دې؟ دا چه دهغه عبادت كوى او هېڅوك هغه سره په عبادت كښې نه شريكوى (۲)دويم حديث كښې دى چه په تاسو كښې دې هيڅوك دا نه وائى چه څه الله ﷻ غواړى او فلانې غواړى بلكه داسې دې وائې څه چې صرف يو الله غواړى (۳)

**چه څه الله ﷻ او رسول ﷺ غواړى دا وئيل شرك دې:**- طفيل بن سخره ﷺ ( چه دې دحضرت عائشه ﷺ ناسكه رورد ي) فرمائى چه ما خوب كښې څو يهوديان اوكتل،ما ددوى نه تپو س اوكړو چه تاسو څوك يې ؟وې وئيل مونږ يهود يو. ما اوونيل افسوس چه تاسويه لويه خرابئ كښې يئ چه تاسو حضرت عزير ﷺ ته دالله ﷻ څوئې ونيلې دې. هغوى اونيل چه تاسو هم ښه خلق يئ مګر افسوس چه تاسو وائې چه څه الله ﷻ غواړى او څه حضرت محمد ﷺ غواړى.بيا د نصرانيانو ډلې لره ورغلم اوددوى نه مې نه هم دا تپوس اوكړو.هغوى هم داجواب راكړو.ما اوونيل چه تاسومسيح ﷺ ته دالله ﷻ څوئې اوونيلو، هغوى هم داجواب راكړو.ما سحر ددې خوب ذكر څه خلقو ته اوكړو،بيا د نبى كريم ﷺ په دربار كښې حاضر شوم او نبى كريم ﷺ ته مې ټوله واقعه بيان كړه. نبى كريم ﷺ تپوس اوكړو چه تا خو ددې ذكر بل چاته نه دې كړې. ما ورته اوونيل چه كړې مې دې. نبى كريم ﷺ اوس اودريدو او دالله ﷻ حمدو ثناء ني بيان كړه او وې فرمائيل طفيل يو خوب كتلې دې او تاسو كښې ني بعضو خلقو ته دا بيان كړې هم دې ،ما غوښتل چه تاسو ديو كلمې نه منع كړم خود فلانې فلانې كارپه وجه ما درته اونه وئيلې شو. ياد لرئى چه بالكل دا اونه وائې چه " الله ﷻ غواړى او دهغه رسول ﷺ " . بلكه داسې وائې چه صرف الله ﷻ څه غواړى (۴)(ابن مردويه )

يو سړى نبى كريم ﷺ ته اوونيل چه څه الله ﷻ غواړى او څه ته غواړې . نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه آيا ته ما دالله ﷻ سره شريك جوړوې.داسې وايه چه څه صرف الله ﷻ غواړى(۵)(ابن مردويه )داټول كلمات سراسر دتوحيد خلاف دى. د الله ﷻ د توحيد بچ كولو دپاره دا ټول احاديث بيان شوى دى. والله اعلم.

**دالله د عبادت حكم:**-ټول كافرانو اومنافقانوته الله ﷻ د عبادت حكم وركړو او وې فرمائيل چه د الله ﷻ عبادت كونى يعنى د هغه دتوحيد پابنداوسئ. دهغه سره شر يك مه جوړونى چه نه تاسو ته نفع دركوى اونه نقصان. او تاسوته معلومه ده چه دهغه ذات نه سوا بل هيڅوك رب نشته دې چه تاسو ته روزى دركوى.اوتاسو ته معلومه ده چه دالله ﷻ رسول ﷺ تاسوهغه توحيد طرف ته رابلى.چه د هغې په حق

۱) صحيح بخارى : كتاب الادب باب قتل الولد خشية ان ياكل معه: ۶۰۰۱، صحيح مسلم: ۸۶)-
۲) صحيح بخارى : كتاب الجهاد باب اسم الفرس والحمار: ۲۸۵۶، صحيح مسلم: ۳۰)-
۳) ابو داود كتاب الادب باب لايقال خبث نفسى : ۴۹۸۰، وسنده صحيح ،اليوم والليلة للنسائى : ۹۸۵)-
۴) احمد: ۷۲/۱، ابن ماجة كتاب الكفارات باب النهى عن يقال ماشاء الله وشئت : ۲۱۱۸ ، دارمى: ۲۶۹۹)-
۵) احمد: ۲۱۴/۱)-

کیدو او ربښتیا والی کېښې هیڅ شك نشته دی. شرك ددې نه هم زیات پټ دې. لکه میږې چه د شپې په تیاره کښې په صفا کاڼړی باندې روان وی.

**بعضې شرکیه کلمات:**-دانسان داویناچه قسم دې دالله ﷻ اوقسم دې ستا دژوند،دا هم شرك دې. دانسان دا وینا که د شپې داسپې نه وې نو غل به زمونږ کور ته راغلې وې،داهم شرك دې. د سړی داقول که په کور کښې بطخ نه وی نو غلا به شوې وی. دا هم دشرك کلمه ده. دیو کس دا وینا څه چې الله ﷻ غواړی او تاسو غواړئ،نو دا هم شرك دې.د یو کس دا وینا که الله ﷻ نه وې او فلانې نه وې ،دا ټول کلمات شرکیه دی.

صحیح حدیث کښې دی چه یوکس نبی کریم ﷺ ته اوونیل چه څه الله ﷻ غواړی اوڅه چه تاسو غواړئ. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل آیاته ما دالله ﷻ سره شریك جوړوې. ؟ په بل حدیث کښې دی چه تاسو ښه خلق یئ که تاسو شرك اونه کړئ.تاسو وائې چه څه الله ﷻ غواړی اوڅه فلانې غواړی() ابو العالیه رحمه الله فرمائی چه د ﴿أَندَادًا﴾ معنی شریك او برابر ده . مجاهد رحمه الله فرمائی تاسو تورات وانې او درته معلوم دی چه الله ﷻ یو او لاشریك دې ، بیا تاسوته پته ده ولې دالله ﷻ سره شریك جوړوئ ؟

**یحیی علیه السلام ته د پنځو خبرو حکم** :مسند احمد کښې دی نبی کریم ﷺ فرمائی الله ﷻ حضرت یحیی علیه السلام ته دپنځو احکامو حکم ورکړې وو. چه په دې باندې عمل کوه او بنی اسرائیلو ته هم په دې باندې دعمل کولو حکم وو. نزدې وه چه هغوی په دې کښې سستی کړې وې نوحضرت عیسی علیه السلام دوی ته وریاد کړل دوی ته د پروردګار عالم دا حکم وو چه په دې پنځوو څیزونو باندې پخپله مضبوط اوسئ او نورو ته هم حکم کوئ.

① یوداچه دالله ﷻ عبادت کوئ اوده سره هیڅوك شریك مه جوړوئ. ددې مثال داسې دې لکه چه یوسړې خاص په خپل مال سره یو غلام واخلی ، غلام کار کوی او چه څه مومی هغه بل چاته ورکوی ، آیا تاسو کښې څوك دا خبره خوښوی چه دهغه غلام دې داسې وی؟ هم داشان ستاسو پیداکولووالا ، تاسوته روزی درکولو والا ستاسو حقیقی مالك الله ﷻ وحده لاشریك دې،نو تاسو دهغه پاك ذات عبادت کوئ اوهغه سره هیڅوك شریك مه جوړوئ.

② دویم دا چه مونځ کوئ ، دالله ﷻ مخ دبنده مخ طرفته وی څو پورې چه دې په مونځ کښې یوخوا بل خوا نه ګوری ، کله چه تاسوپه مونځ کښې یئ نو یو خوابل خوا توجه مه کوئ.

③ دریم دا چه روژې نیسئ .ددې مثال داسې دې لکه یو سړی سره دمشکو تهیلئ ډکه وی چه په دې سره دده دټولوملګرودماغ معطر وی اویادساتئ دروژه داردخلې بدبوئی الله ﷻ ته دمشکود خوشبوئی نه هم زیاته خوښه ده.

④ څلورم داچه صدقه ورکوئ،ددې مثال داسې دې لکه یو سړې دښمنانو قید کړې وی او دده لاسونه ئې دده څټ سره تړلی وی او دده د څټ وهلو دپاره ئې دې بوتلی وی. نوهغه وائی چه تاسو خما نه فدیه واخلئ اوما پریږدئ نو ده سره چه څه وی کم یا زیات هغه ټول ئې راوړل او خپل ځان ئې بچ کړو.

⑤ پنځم داحکم دې چه د هغه ذات د نوم مبارك ورد په کثرت سره کوئ. ددې مثال دهغه سړی په شان دې چې ده پسې په تیزئی دښمن روان وی او هغه یوې مضبوطې قلعې ته داخل شی او په امن سره شی. داشان دې دالله ﷻ دذکر په وخت کښې د شیطان نه په امن کښې وی.

دې فرمانیلوسره نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوس څه تاسو ته دپنځو خبرو حکم کوم ، چه ددې حکم الله ﷻ ماته راکړې دې① دمسلمانانو ډله لازمی نیسئ (دالله ﷻ دهغه د رسول ﷺ او د حاکم وخت احکام)

---

[1] ) ابن ماجة کتاب الکفارات باب النهی عن یقال ماشاء الله وشئت : ۲۱۱۸ وسنده ضعیف )-

آوریدل اومنل ⑨هجرت کول ⑩اوجهاد کول.چه کوم سړي د ډلې نه یو لیشت هم لرې شو نو ده داسلام رسۍ دخپلې مرئی نه اوویستله .دا بیله خبره ده چه دې واپس شي. چه کوم سړي د جاهلیت خبرې کوی نودې دجهنم خشاك دې. خلقو اوونیل یا رسول الله ﷺ اګر چه دې روژې نیسي او مونځګذار وی ، وې فرمائیل اګر چه مونځګذار وی او روژې نیسي ،او خپل خان مسلمان بولی. مسلمانان په هغه نومونو سره بلې چه پخپله الله ﷻ اینبودی دی،مسلمین ، مومنین اوعبادالله ، دا حدیث حسن دې (۳).

په دې آیت مبارك کښې هم دابیان دې چه الله ﷻ تاسو پیدا کړی یی،هغه تاسوته روزی درکوی ، نو تاسو هم دهغه ذات عبادت کوئی،دهغه سره شریك مه جوړوئی . ددې آیت نه ثابته شوه چه په عبادت کښې دتوحید پوره خیال ساتل پکار دی . ـلـ چا عبادت نه دی کول پکار.دهرقسمه عبادتونو لائق صرف هغه پاك ذات دې.

حضرت امام رازی رحمه الله وغیره دالله ﷻ په وجود باندې ددې آیت نه دلائل اخستی دی. او فی الواقع دا آیت ډیرغټ دلیل دې دالله ﷻ په وجود باندې.دزمکې اوآسمان مختلف شکل وصورت مختلف رنګونه ، مختلف مزاج او مختلفې فائدې موجودات ، په دې کښې دهر یو نفعې والا کیدل او خاص حکمت سره ثابتیدل دی .ددوئ د خالق وجود ،د هغه عظیم الشان قدرت او حکمت، زبرست سطوت او سلطنت ثابتیږی .

**دالله په وحدانیت د یو بانډیچی استدلال**:- دیو بانډیچی نه تپوس اوکړې شو چه دالله ﷻ په ذات اقدس باندې څه دلیل دې؟ نوهغه اوونیل چه: (یاسبحان الله ان البعر لیدل علی البعیر وان اثر الاقدام لتدل علی المسیر فسماء ذات ابراج وارض ذات فجاج وبحار ذات امواج الا یدل ذالك علی وجود اللطیف الخبیر) یعنی د غوشی (څپیاکې) نه اوښ معلوم شی اودپښو نښې په زمکه باندې کتلو سره معلوم شی چه سړې تلې دی نو آیا دا برجونووالا آسمان ، دا لارو والازمکه، او موجونووالا سمندر دالله ﷻ دباریکۍ اوخبردارۍ دالله ﷻ په وجود باندې دلیل نشی جوړیدلې؟ (۲)

**دالله په وجود د امام مالك رحمه الله استدلال**:- د حضرت امام مالك رحمه الله نه هارون الرشید تپوس اوکړو چه دالله ﷻ په وجودباندې څه دلیل دې. نودوی اوفرمائیل دژبو مختلف کیدل ،د آوازونو مختلف کیدل ، دنغمو بیل کیدل دا ټول ثابتوی چه الله ﷻ شته دې.

**دالله په وجود د امام ابوحنیفه رحمه الله استدلال**:- حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم دا سوال اوکړې شو نو دوی په جواب کښې فرمائی پریږده څه په بل سوچ کښې یم ، خلقو ماته ونیلی دی چه یو ډیره لویه کشتی چه په هغې رنګ په رنګ تجارتی څیزونه دی ، نه ئې څوك نګهبان شته دې او نه ددې مانړګې او ددې باوجود هغه روانه وی. او لونې لونې چپو نه تیریږی. داودریدو په ځائې اودریږی او د روانیدو په ځائې روانیږی. او نه دده څوك مانړګی شته دې او نه څوك منتظم . سوال کولو دهریانو اوونیل تاسو څنګه سوال کوئی څوك داسې خبرې کولې شی ، چه دومره لویه کشتۍ دومره سامانونو سره د نظام سره بنه په طریقه روانه وی په سمندر کښې اوهیڅوك ددې دچلولووالا نه وی؟ دوی اوفرمائیل افسوس ستاسو په عقلونو باندې،چه یوکشتۍ بغیر دمانړګی نه نشی تلې لیکن دا دومره لویه دنیا او آسمان او زمکه اویه دې کښې ټول څیزونه په خپل خپل ځائې صحیح کار کوی او ددې مالك او حاکم او خالق دې څوك نه وی؟ دې جواب آوریدو سره هغه خلق لاجوابه شو او حق معلومیدو سره مسلمانان شو.

---

[۳]) احمد: ۱۳۰/٤، ترمذی ابواب الامثال ، باب ماجاء فی مثل الصلوة والصوم والصدقة : ۲۸۶۳، وسنده صحیح. مسند ابی یعلی : ۱۵۷۱، ومسند طیالسی: ۱۱۶۱، ابن خزیمة: ۱۸۹۵، ابن حبان: ۶۲۰۰، حاکم: ۱۱۷/۱)-

[۲]) الرازی :۹۱/۲)-

**دالله په وجود د امام شافعي رحمه الله استدلال:**-دحضرت امام شافعي هم داسوال اوشو نودوی په جواب کښې اوفرمائيل چه د توت پاڼې يو دي په يوذائقه کښې دي ، چينجي او دشهدو مچۍ او غواګانې اوچيلۍ او اوسۍ وغيره ټول دا خوري او په دې کښې څرېږي ،ددې په خوراك د چينجو نه ريښم راوزي. دشهدو مچۍ شهد ورکوي . اوسۍ مشك پيدا کوي. اوغوا ميخې سوتې کوي. آيا دا ددې امر صفا دليل نه دې چه په يو پاڼه کښې مختلف خصلتونه پيدا کولو والا څوك شته دې؟ هم د دې وجې مونږ الله ﷻ منو او هم هغه ذات موجد اوصانع دې.

**د الله په وجود د امام احمد بن حنبل رحمه الله استدلال:**- امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم يو ځل دالله ﷻ په وجود باندې دليل طلب شو نو دوی اوفرمائيل واورئ يو ډيره مضبوطه قلعه ده ، چه په دې کښې يو دروازه هم نشته دې ،اونه په کښې څه لار شته ، بلکه سورې هم نشته دې ، دبهر نه د چاندئ په شان ځليږي او دننه دسروپشان ځليږي اوپاس اولاندې په کښې هيڅ دروازه نشته دې د څلوروواړو طرفونونه بالکل بندې.پدې هواهم نه ورځي.يکدم يوديوال راپريوزي اويوژوندې سترګووالا ،غوږونووالا، ګرځيدونکې ښکلې صورت او ښکلې خبروکولو والا راوزي . نواووائې چه په دې بند محفوظ مکان کښې دده څوك پيداکونکې شته دې اوکه نشته دې اوهغه هستی د انسانانودهستۍ نه بالاتر ،دهغه ذات قدرت غير محدود ده که نه ده ، مطلب ددوی دا وو چه اندې (اګۍ) ته اوګورئ چه د څلورواړو طرفونو نه بنده ، بيا صرف هغه واحد ذات دې چه په دې کښې ژوندې بچې پيدا کوي. هم دا دليل دې د الله ﷻ په وجود باندې او د هغه د ذات په توحيدباندې.

**د الله په وجود د ابونواس رحمه الله استدلال:**-ابونواس نه چه کله دا مسئله اوپوښتلې شوه ، د آسمان نه دباران وريدل او ددې نه دونو پيداکيدل اوپه شنو شنو ښاخونو باندې ښکلې ميوې کيدل دالله ﷻ په وجود باندې دوحدانيت دليل دې.

**دالله د توحيد باره کښې د ابن المعتز قول:**-دابن المعتز قول دې،افسوس دالله ﷻ په نافرمانۍ اود هغه ذات دروغ ګڼړلو باندې څومره بهادري خودلې شي حالانکه هريوځيز دالله ﷻ په هستۍ باندې او لاشريك کيدو باندې ګواه دې.

**دالله په وحدانيت د کائناتو نه استدلال:**- اودنورو بزرګانو قول دې چه آسمان ته اوګورئ ددې اوچتوالې ، ددې واړه لوئې او ځليدونکې او روښانه ستورو باندې نظر واچوئ. ددې د ځليدو او تګ راتګ او داودريدو اود ظاهريدو او دپټيدو مطالعه اوکړئ. بيا سمندرونوته اوګورئ چه چپې وهي او زمکه نې ګيره کړې ده . بيا اوچت اوچت غرونو ته اوګورئ چه په زمکه کښې ښخ دی او دا خوزيدلو ته نه پريږدي ، چه ددې په رنګ کښې ددې صورتونه مختلف دی. بيا په قسم قسم مخلوقاتو باندې نظر واچوئ او چاپير چل کښې پټې اوباغونو ته او شنه کونکې ښکلې نهرونو ته اوګورئ اودباغونو شنه کيدوته او ددې رنګ رنګ ميووته اوددې په ښکلو ښکلو ميوؤ باندې غور اوکړئ. زمکه يو ، اوبه يو ، ليکن ددې شکلونه ، صورتونه ،خوشبوياني ، ذائقې ، اوفائدې جدا جدا دی. آيا دا ټول مصنوعات تاسوته دا نه ښائي چه ددې څوك صانع (جوړونکې) شته دې؟ آيا دا ټول موجودات په اوچت آوازدا نه وائي چه ددې موجد څوك شته دې .آيا دا ټول مخلوق دخپل خالق په هستۍ باندې اودده په توحيد باندې دلالت نه کوي؟ دا دی هغه مضبوط دلائل چه د الله ﷻ د خپل ذات منلو دپاره هر يو نظر کونکې ته وړاندې کړی دی آيادا ټول د هغه ذات په زبردست قدرتونو،دهغه په زبردست حکمتونو اودهغه ذات په لاثاني رحمتونو،دهغه ذات په بې نظيره انعامونو،دهغه ذات په لازواله احسانونوباندې دلالت دپاره کافي نه دی.

زمونږ اقراردې چې د هغه ذات نه سوا هيڅوك پالونکې نشته ، دهغه ذات نه سوا بل هيڅ څوك پيدا کونکې او حفاظت کونکې نشته دهغه ذات نه سوا بل هيڅوك معبود برحق نشته .د هغه ذات نه سوا



بل هیڅوك مسجود نشته،نوددنیا خلقو واورئی،څما بهروسه په هغه ذات باندې ده،څما انابت اوالتجا هغه طرفته ده ،څما تيتيدل او پست كيدل د هغه په وړاندې دی. څما د خواهشاتو مرکز څما د امیدونو آسرا،څما ماویٰ او څما ملجا هغه یو ذات دې هم د هغه دست رحمت ته ګورم ،اوهر وخت هم د هغه نوم اخلم.

| وَاِنْ كُنْتُمْ فِیْ رَیْبٍ |
|---|
| اوكه چرې \| یئ تاسو \| په شك كښې |
| \|اوكه ستاسو د هغه کتاب په حقله |
| مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ |
| په هغه کتاب کښې\|چې نازل کړې دې مونږ\|په بنده خپل باندې\|نوراوړئ\| یو سورة \| پشان ددې |
| څه شک شبه پاتې وی \| چې مونږ خپل بنده (محمد ﷺ)باندې نازل کړیدې\| نوتاسوهم ددې پشان یووړکې سورة راوړئ |
| وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ۝ |
| او رااوغواړئ \| ملګری مددګاران خپل\| ماسوا دالله نه \| که چرې \|یئ تاسو\| رېښتینی \| |
| او د یو ورکوټی سورت پشان جوړولو کښې، بې دالله نه نور ټول خپل مددګاران راوبلئ که تاسو رښتوني يئ |
| فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا وَلَنْ تَفْعَلُوْا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِیْ وَقُوْدُهَا |
| خوكه \| اونه کړو تاسو داکار\| اوهرګز نې نشئ کولې\| نو اویریږئ \| دوورنه \| هغه \| چې خشاك دهغې |
| اوکه تاسو داکاراونکړې شو\| او بالکل به نې اونه کړې شئ\| نوځان دهغه اور نه بچ اوساتئ چې دهغې خشاک |
| النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ ۚ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِیْنَ۝ |
| خلق دی\| اوکاڼړی \| چی تیار شوې دی\| دپاره دکافرانو\| |
| (کافر) خلق اوكاڼړی (بتان)دی\| دغه اور د کافرانو دپاره تیار شوې دی \| |

**قوله تعالى:-** وَاِنْ كُنْتُمْ فِیْ رَیْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ

**د محمد ﷺ دنبوت تصديق** :-دتوحید دبیان نه پس اوس دنبوت تصدیق کیږی. کافرو ته خطاب کوی او فرمانی مونږ چې کوم قران پاك په خپل بنده ( حضرت محمد ﷺ )باندې نازل کړې دې، که دا تاسو دالله ﷻ کلام نه منئ اوستاسو ټول مددګار یوځائې شی نوپوره قران خولاڅه چې یو سورت هم ددې پشان نشئ جوړولې.هرکله چه تاسو دا نشئ کولئ اوددې نه عاجزه يئ نو بیا د دې قران پاك په کلام الله کیدو کښې ولې شك کونی ؟

**قوله تعالى:-** وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ

**د شهداء نه څوک مراد دی؟**:-د(**شهداء**) نه مراد مددګار او ملګری دی (۱)چه ددوی مدد به نې کولو نو مطلب داشوڅوک چې تاسو خپل معبودان جوړکړی دی نوهغوی هم راوبلئ اودهغوی نه مددحاصل کړئی.بیا ددې په شان یوسورت جوړکړئی. حضرت مجاهد رحمه الله فرمانی چه تاسو خپلو حاکمانو او خپل زباندان ،فصیح او بلیغ خلق راوبلئ او دهغوی نه هم مدد اوغواړئی. (۲)

---

[1] ) الطبری: ۳۷٦/۲۱)-

[2] ) ابن ابی حاتم : ۱ /۸۵ )-

**دقران پاک اعجاز** :-د قران پاك ددې معجزې اظهار اودا طرزكلام په څو ځايونوكښې دې.په سورت قصص كښې دى چه﴿ قُلْ فَأْتُوا بِكِتٰبٍ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ هُوَ اَهْدٰى مِنْهُمَآ اَتَّبِعْهُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴾ يعنى كه تاسوريښتونى يئ نو ددې دواړو نه(يعنى قران پاك اوتورات نه) زيات هدايت والا بل د الله ﷻ كتاب راوړئى نو زه به دهغې تابعدارى اوكړم. په سوره سبحان كښې فرمائى چه ﴿قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لَا يَاْتُوْنَ بِمِثْلِهٖ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيْرًا﴾ يعنى كه ټول جنات او انسانان جمع شى اوهر يو د يو بل مدد كول غواړى چه ددې پشان قران جوړ كړى نو بيا هم ددې هيڅ امكان نشته دې. په سورت هودكښې دى﴿اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ۭ قُلْ فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّثْلِهٖ وَادْعُوْا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ﴾يعنى آيا داخلق داسې وائى چې دا قران ده (نبى كريم ﷺ) پخپله جوړكړې دې .تاسو اووائئ كه چرې تاسو ريښتونى يئ نو ټول يو ځائې شئ اودالله ﷻ نه سوا چه تاسو څوك رابللې راوبلئ اوددې پشان لس سورتونه جوړ كړئى. په سورت يونس كښې دى ﴿وَمَا كَانَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ اَنْ يُّفْتَرٰى مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ تَصْدِيْقَ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيْلَ الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ يعنى دا قران پاك دالله ﷻ نه سوا دبل چا دطرفه نه دې. بلكه دا د ړومبوكتابونو تصديق كولو والا اودكتاب تفصيل دې پدې كښې هيڅ شك نشه دې چه دالله ﷻ كلام دې اوچه داد رب العالمين د طرفنه دې. آيا دا خلق دې ته پخپله جوړشوې (كتاب) وائى؟ دوى ته اووايه ذالله ﷻ نه سوا هرسړې راوبلئ(اوددې قران پاك د سيكړو سورتونو نه ).يو وړوكې شان سورت جوړ كړئى چه ستاسو ريښتيا ظاهر شى.

دا ټول آيتونه خو په مكه مكرمه كښې نازل شو او اهل مكه خلق ددې د پيش كولو نه عاجزه شو د دې نه پس په مدينه منوره كښې هم دا مضمون پيش كړې شو. لكه څنګه چه په پورتنى آيت كښې د مثله ضمير بعضو دا قران پاك طرف ته راجع كړې دې يعنى ددې پشان څه سورت راوړئى.اوبعضو دا ضمير حضرت محمد ﷺ طرف ته راجع كړې دې. يعنى دحضرت محمد ﷺ پشان هېڅوك نشى كيدلې حالانكه دوى څه ليك لوست والا نه دې او د دې باوجود هغه كلام وائى چه ددې مثل هيڅوك نشى جوړولې. ليكن صحيح قول ړومبې دې. عمر ﷺ ،حضرت ابن مسعود ﷺ ،حضرت ابن عباس ﷺ ، مجاهد رحمه الله ، قتاده رحمه الله ،او حسن بصرى رحمه الله او اكثرو محققينو نه هم دا قول نقل دې. ابن جرير رحمه الله ، طبرى رحمه الله ، زمخشرى رازى رحمه الله هم دا خوښ كړې دې.

**دا ولنى تفسير وجوه ترجيح**:- ددې د ترجيح ډير زيات وجوهات دى. ①يو دا چه په دې كښې اجتماعى او انفرادى طور سره ټولو ته زورنه ده. كه هغه امى وى يا ليك لوست والا نه وى ، كه اهل كتاب وى اوكه ليك لوست والا خلق وى.② بيا په دې كښې دمعجزې كمال دې .اوددې (ليک لوست) خلقو په نسبت غيرليک لوست والا عاجزه كړې شى او په دې كښې زياته مبالغه ده.③ بيا د لسو سورتونو مطالبه كول ، ددې دمثال نه راوړو پيشن ګونى كول هم دا ثابتوى چه ددې نه مراد قران پاك دې . د رسول الله ﷺ ذات مبارک نه دې . نو ددې عام اعلان چه بار بار اوشو او ورسره پيشن ګونى هم اوكړې شوه چه دا خلق په دې باندې قادر نه دى ،مكه معظمه او مدينه منوره كښې، دد خل ددې اعاده اوكړې شوه. او هغه خلق چه دهغوى مورنئ ژبه عربى وه ، خپل فصاحت او بلاغت باندې هغوى فخر كولو. چه كومو خلقو ددوى اوددوى دين سره دښمنى كوله،هغوى په حقيقت كښې ددې نه عاجزه وو. نه صرف دپوره قران پاك نه چه جواب نې وركړې او نه دلسو سورتونو او نه ديو سورت.

نويو معجزه خو داشوه چه ددې پشان يو وړوكې سورت هم هغوى جوړ نه كړې شو.دونمه معجزه دا شوه چه دا پيشن ګونى هم ريښتيا ثابته شوه چه دوى بالكل ددې پشان نه شى جوړولې اګر كه ټول جمع شى اوترقيامته پورې كوشش اوكړى اوداسې هرګز نه دى شوې نه په دې زمانه كښې او نه چاته ددې دكولو جرات اوشو اونه ددې نه پس تر ننه پورې اونه ترقيامته به څوك داسې اوكړې شى. او څنګه به اوكړې

شی ؟ لکه څنګه چه د الله ﷻ ذات بې مثاله دې نوداشان دهغه کلام هم بې مثله دې،حقيقت هم دادې چه دقران پاك په کتلوسره ددې ظاهري باطني ، لفظي او معنوي ، هغه کمالات ظاهريږي چه د مخلوق په وس کښې نه دی. پخپله الله ﷻ فرماني چه ﴿الٓرٰ كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ﴾ يعنی د كتاب آيتونه چه د حکمت والا،د خبرداره الله ﷻ دطرف نه نازل شوی ددی محکم اومضبوط او مفصل بيل بيل دی. نوالفاظ ئې محکم او معاني ئې مفصل يا الفاظ ئې مفصل او معاني ئې محکمې دی ، نو قران پاك دخپلو الفاظو اوخپلومضمونونو لحاظ سره يو داسې کتاب دې چې ددې مثال بالکل نتشه اوددې د مقابلې او معارضې نه دنيا عاجزه او بې بسه ده.

دې پاك کلام کښې مخکښې خبرونه چه د نيا نه پټ وو،هغه هوبهو بيان شو.د راتلونکو امورو ذکر اوشو ، چه کوم لفظ په لفظ پوره نازل شو،دټولو نيکو احکام په دې کښې دی اود ټولو بدو نه ممانعت هم په دې کښې دې. ربښتيا دی چه ﴿ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا ﴾يعنی اوستا د رب د کلام صداقت او عدالت پوره دې. دا ټول قران پاك ټول په ټوله حق ، دصداقت او عدالت نه ډك دې. نه په دې کښې واهيات شته دې اونه  په کښې د تباهئ خبرې شته ، نه په دې کښې دمذاق خبرې شته اونه په کښې افتراء شته کومه چه دشاعرانو په کلام کښې عام طور موندلې شی. بلکه ددوی داشعارو قدر اوقيمت هم په دې باندې دې .مقوله مشهوره ده چه ﴿اعذبه اكذبه﴾ چې څومره دروغ زيات وی دومره مزه زياته وی تاسو ګورئی چه اوږدې اوږدې پرزوره قصيدې په وی او دې کښې به ټول دروغ وی او مبالغې نه په کښې اخستې شوې وی. يا به په کښې د يو انسان په حق کښې لوئې لوئې تعريفونو شوی وی ، يا داوښانو په ښانسټ يا بهادرئی باندې دمبالغې سره سندرې يا د جنګونو چالونه ،يا دويرې خيالی منظرونه بيانولو کښې وی ، چه په هغې کښې نه د دين څه فائده وی اونه ددنيا. صرف د شاعر په ژبه دهغه د کلام قدرت نه دهغه کمال ظاهريږی. او نه په اخلاقو باندې ددې څه اثر شته اونه په اعمالو باندې ، بيا نفس مضمون کښې هم پوره قصيدو کښې هم په مشکله سره دوه شعرونه وی. باقی د يوخوا بل خوا او فضول بکواس وی.

**دقران پاك اعجاز:-** ددې مقابله کښې قران پاك باندې نظر واچوئی نوتاسو به ګورئی چه ددې يويو لفظ دفصاحت او بلاغت ،د دين او دنيا د نفعې اوخير اوبرکت باندې مشتمل دې. بيا دکلام ترتيب او تهذيب ، دالفاظو بندش ،دعبارت رواني ، دمعنو نورانيت ،دمضمون پاکوالې نورعلی نور دې. د دې دخبرو حلاوت ، ددې بيان شوی واقعات اوسلاست ، دمړ شوۍ زړونو ژوندی کيدل دې. ددې اختصار داعلی کمال نمونه ده اوددې تفصيل معجزه ده.ددې يو څيز دوباره کول دقندو مزه ورکوی.دا معلوميږی چه ګويا د حقيقی غمو باران وريږی. دا بار بار وايه او زړه ترې نه مړيږی. مزې اخله او هر وخت نوې نوې مزې اخله ،مضامينو باندې ئې پوهيږه او ختميږی به نه ، دا د قران پاك خاصه ده ، ددې خوند ، ددې خوږوالی مزه ، ددې تپوس د هغه چا نه اوکړه چې هغوئ ته الله ﷻ د عقل او حواس ، علم و فضل څه حصه قدرې ورکړې ده. ددوی دعذابونونه ويرول ،او دنيولو رانيولو بيان چه مضبوط غرونه خوزوی ،انسانی زړه څه څيز دې . ددې وعدې او زيری ، نعمتونه اورحمتونو سره د زړه غوټئ پرانيستې کيږی ،اود شوق اود خواهش پټ جذباتو لره راپاروونکي دې ،د جنتونو او راحتونو خواږه خواږه منظرونه د سترګو مخکښې رازی. دې سره زړه پرانيستې کيږی. غوږونه دې طرف ته لګی او سترګې پرانيستې کيږی.

**د قران ترغيب:-** الله تعالی رغبت ورکوی او فرمانی ﴿ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ﴾ چاته څه پته ده چې د ده د نيکو اعمالو بدله ،دده د سترګو يخوالې دپاره څه څه سامان پټ په پټه تيار شوې دي

اوفرمائی (وَأَكْوَابٍ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنْفُسُ) اوددې همیشه جنتونو کښې هرهغه څيز دې چې زړه ته ښه معلومیږی او په سترګوباندې اثر غورزوی.

**د قران ترهيب:-** اوزورنه ورکوی فرمائی (أَفَأَمِنْتُمْ أَنْ يَخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ)، او (ءَأَمِنْتُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ أَنْ يَخْسِفَ بِكُمُ الْأَرْضَ فَإِذَا هِيَ تَمُورُ) آیا تاسودخپلو ښخولویا دآسمان نه کاڼړو وروړو نه بې ویرې شوئ. آیا دآسمان والا په دې باندې قادرنه دې. داصرف دهمکۍ مه ګڼړئ بلکه ددې حقیقت به تاسوباندې نزدې ده چه واضحه شی.

**د پخوانو قومونو انجام:-** زورنه او ویره ورکوی او ارشاد فرمائی چه (فَكُلًّا أَخَذْنَا بِذَنْبِهِ) مونږ یویو کس د هغوی په کردارونو باندې اونیول. بیا په طرز د نصیحت فرمائی چه (أَفَرَأَيْتَ إِنْ مَتَّعْنَاهُمْ سِنِينَ) ګوره که مونږ څو کاله دوی ته فائده ورکړې وه نو څه اوشو؟ آخر د وعدې د پورا کولو وخت راغلو او دې مال و متاع ورته هیڅ فائده او نه رسوله. مقصد دا چې څه نی ترکومې پورې بیانوی. اوچې کوم مضمون شروع کړی هغه کمال ته رسوی او رنګ په رنګ فصاحت اوبلاغت، حلاوت او حکمت نه ډک دې.

**دقراٰن پاک احکام:-** داحکامو روك ټوك اوګورنی، هرحکم ښه یا بد، دنفع او پاکوالی جامع، هر ممانعت، قباحت، رزالت، دنائت اودخباثت قاطع دې. د حضرت ابن مسعود ﷺ وغیره اسلافو قول دې چه کله قران پاك کښې (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا) اووینې نو واورنی چه یا به دادنیکۍ حکم وی یا به د بدئی نه منع وی. پخپله پروردګار عالم فرمائی (يَأْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَالَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ) یعنی دنیکوحکم کوی اودبدونه منع کوی، پاك څیزونه لره حلالوی او پلیت څیزونه حراموی، هغه بیړئی چه ددوی په پښو کښې وې، هغه سخت طوق چه ددوی په څټونو کښې وو هغه پرانیزی.

**قران او د قیامت بیان:-** دقیامت دبیان آیتونه، دهغه خاني هولناك منظرونه، د جنت اود دوزخ بیان، د رحمتونواوزحمتونو پوره پوره وصف، داولیاءالله دپاره رنګ په رنګ نعمتونه، دالله ﷻ د دښمنانودپاره رنګ په رنګ عذابونه، چرته بشارت دې، او چرته ویرول دی، چرته نیکو طرف ته رغبت دې او چرته دبدو نه منع کول دی، چرته ددنیا دزهد طرفته اوچرته د آخرت طرف ته د رغبت تعلیم دې. هم دا هغه ټول آیتونه دی چه نیغه لار ښائی، بهترینه رهنمائی کوی، او دالله ﷻ خوښې شریعت طرف ته راوستل کوی او زړونو ته خوشحالی ورکوی اوشیطانی دروازې بندوی او خراب اثرات ختموی.

**قران پاك ټولونه لویه معجزه ده:-** په صحیح بخاری او مسلم کښې د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی هرنبی ته داسې معجزې ورکړې شوی دی چه دهغې په کتلو سره خلقو ایمان راوړو او خما معجزه د الله ﷻ وحی ده یعنی قران پاك دې. ددې وجې خما امیددې چه خما تابعدار خلق به د نورو نبیانو په نسبت ډیر زیات وی ()(څکه چه دنورو نبیانومعجزې دهغوی سره ختمې شوې خو د نبی کریم ﷺ دا معجزه به تر قیامت پورې باقی وی. خلق به دې ته ګوری او په اسلام کښې به داخلیږی). د نبی کریم ﷺ دافرمان چه خما معجزه وحی ده چه ماته راکړې شوې ده، مطلب دادې چه څه دې سره خاص شوې یم. اودا قران پاك ماته ملاؤ شوې دې. چه دا دخپلې معارضې او مقابلې سره ټولې دنیا لره عاجزه کوونکې دې. په خلاف د نوروآسمانی کتابونو چه هغه د اکثرو عالمانوپه نیز ددې وصف نه خالی دی. والله اعلم.

د نبی کریم د نبوت په صداقت اود دین اسلام په حقانیت باندې ددې معجزې نه علاوه نور هم دومره دلائل موجود دی چه د شمیر نه بهر دی. ولله الحمد والمنه.

---

[۱] صحیح بخاری : کتاب فضائل القران، باب کیف نزل الوحی واول مانزل: ٤٩٨۱، صحیح مسلم: ۱۵۲)۔

بعضو متکلمینو دقران پاك معجزې په داسې طريقه بيان کړی دی چه داهل سنت او معتزله په قول کښې مشترك دی. هغوی وائی ① چه يا خو دا قران پاك في نفسه معجزه ده ، انسان دپاره ممکن نه دی چه ددې په شان جوړ کړی. په ده کښې ددې دمعارضې کولو طاقت او قوت نشته.② يا دا اگر چې ددې معارضه ممکن ده او د انسانی طاقت نه بهر نه ده ، ليکن ددې باوجود د معارضې چلينج ورکولې شی. هغوی په عداوت او دښمنۍ کښې د حد نه تير شوی دی ، هغوی دحق دين ختمولو دپاره هر وخت هرطاقت سره د هرڅيز تباه کولو دپاره تيار دی . ليکن دقران پاك معارضه اومقابله دوی نشی کولې. دا دليل په دې خبره باندې دی چه دا قرآن پاك دالله ﷻ د طرف نه دی او قدرت او طاقت نه باوجود هغه دوی لره منع کوی اود قران پاك مثل پيش کولو نه عاجزه کيږی. نودا بله وجه دومره بنه نه ده خوکه دا هم اومنلې شی نو دې نه هم د قران پاك معجزه ثابتيږی چه په طريقه دتنزل حمايت حق او دمناظرې دخاطره صلاحيت لری.حضرت امام رازی رحمه الله هم د وړو وړو سورتونو په سوال و جواب کښې هم دا طريقه اختيار کړې ده.

**قوله تعالى:-** ﴿وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ﴾

**د جهنم خشاک :-** د ﴿وَقُودُ﴾ معنی خشاك ده ، چه په دې سره اور بلولې شی. لکه لرگی وغيره. په قران پاك کښې يوځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَأَمَّا الْقَاسِطُونَ فَكَانُوا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا﴾ يعنی ظالمان خلق به د جهنم خشاك وی .او په بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ تاسو اوستامعبودان چه دالله ﷻ نه سوا دی د دوزخ خشاك دی،تاسو ټول به په دې کښې داخليږئی که چرې هغوی ريښتونی معبودان وې نودې ځائې ته به نه داخليدې.قرطبی رحمه الله او رازی دې قول ته ترجيح ورکړې ده او وائی چه دگندهک کاڼړی باندې اور لگيدل څه نوې خبره نه ده په دې وجه مراد ترې هم دا اصنام او بتان دی چه دهغوی عبادت کولې شی د الله ﷻ د عبادت نه بغير.خو دا وجه څه وجه نه ده ځکه که اور گندهک سره بل کړې شی نو ظاهر ده چه ددې اوور ډير تيز وی. الله ﷻ دې مونږ ددې نه محفوظ اوساتی. آمين .

**دجهنم خشاک د رنړو کاڼړو:-** حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه دا کاڼړی د آسمان اوزمکې پيداکيدو سره په اول آسمان کښې پيدا شوی دی (). (ابن جرير،ابن ابی حاتم مستدرک)ابن عباس رضی الله عنه ، حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ، او نورو څو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه سدی نقل کړی دی چه په جهنم کښې دا تورخاورې (کومه چې تروه وی) کاڼړی هم دی ، چه په دې سره به سختو کافرانو ته عذاب ورکولې شی. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چې ددې کاڼړ و بدبو دمردارې د بو نه هم زياته وی. محمد بن علی او ابن جريج هم وائی چه ددې نه مراد دگندهك غټ غټ او سخت کاڼړی دی. بعضو ونيلی دی چه ددې نه مراد هغه کاڼړی دی چه هغې نه تصويرونه وغيره جوړولو او بيابه نې د هغې عبادت کولو. لکه په بل ځائې کښې فرمائی ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ تاسواوستاسوهغه معبودان چه دالله ﷻ نه سوا دی ، داوور لرگی دی .

حضرت ا مام قرطبي رحمه الله او امام رازی رحمه الله هم دې قول ته ترجيح ورکړې ده او فرمائی چه (کومه چې تروه وی) کاڼړو باندې اوور لگيدل څه نوې خبره ده. ددې وجې مراد ترې هم دا اصنام او بتان دی دکومو کاڼړو چې د الله تعالی نه سوا عبادت دالله شوې دي

**د حافظ ابن کثير رحمه الله رائې :-** ليکن دا وجه څه قوی وجه نه ده ځکه چه کله اور د (کومه چې تروه وی) په کاڼړو سره بل کړې شی نوظاهره ده چه ددې تيزی او حرارت به د معمولی اور نه هم زيات وی ،ددې شغلې وهل او بليدل به هم ډيرې زياتې وی. ددې نه علاوه بيا د سلفو نه هم ددې تفسير هم دا روايت شوې دې. دا شان په دې کاڼړو باندې اور لگيدل هم ظاهر دی او په آيت کښې مقصود د اور تيزی او

---

[1] ) المستدرک ۲۶۱/۲، وسنده صحيح وصححه الحاکم)-

ددې د سوزولو بيانول دی او ددې دبيانولودپاره هم په دې خائې کښې ددې کاڼړو نه مراد دګندهك کاڼړی اخستل زيات مناسب دی.څکه چه ددې اورتيز وی او اوېدې سره په عذاب کښې سختی هم وی.په قران پاك کښې دی چه﴿كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا﴾کله چې شغلې کمې شوې نوموږ به نورې هم زياتې کړو.
په يوحديث شريف کښې دی چه هر موذی (ضرری څيز) په اور کښې دې ليکن دا حديث محفوظ او معروف نه دې.
امام رازی رحمه الله فرمائی چه ددې دوه معنائی دی. ① هغه سړې چه نورو ته تکليف ورکوی جهنمی دې. ② دويم دا چه هر تکليف ورکونکې څيز به د جهنم په اوور کښې موجود وی چه دا به جهنميانوته عذاب ورکوی.

**قوله تعالى:- أُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ**

**د جهنم تيارى:-** ﴿أُعِدَّتْ﴾ يعنی تيار کړې شوې دې ، دې نه مراد په ظاهرهم دامعلوميږی چه دا اوور د کافرو دپاره تيارکړې شوې دې اودا هم کيدې شی چه ددې نه مراد کاڼړی وی يعنی هغه کاڼړی چه تيار شوی دی دکافرو دپاره. دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه هم دا قول نقل دې. او په حقيقت کښې په دواړو معنو کښې هيڅ اختلاف نشته دې څکه چه دکاڼړو تيارول داوور بلولو دپاره دی اوداوور کاڼړی تيارول ضرزری دی نو يوبل سره لازم او ملزوم شو. نبی کريم ﷺ فرمائی هر هغه سړې چه په کفر باندې وی دهغه دپاره اوور تيار کړې شوې دې .په دې آيت باندې استدلال کړې شوې دې چه جهنم اوس موجود او پيدا شوې دې څکه چه د ﴿أُعِدَّتْ﴾ لفظ دې او ددې دليل کښې ډير احاديث هم دی.

**جهنم اوس هم موجود دې:-** يو اوږد حديث کښې دی چه دجنت او دوزخ مينځ کښې جګړه اوشوه (¹). په بل حديث کښې دی چه جهنم دالله ﷻ نه ددوه ساه ګانواخستلو اجازت اوغوښتلو او ده ته په يخنئ کښې ديو ساه اوپه ګرمئ کښې دبلې ساه د اخستلو اجازت ورکړې شو (²)په دريم حديث کښې دی صحابه کرام رضی الله عنهم فرمائی چه مونږ يو خل ډير زوردار آواز واوريدو .د نبی کريم ﷺ نه مو تپوس اوکړو چه دا د څه څيز آواز وو؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل اوياکاله مخکښې يو کاڼړئ په جهنم ته غورزولې شوې وو نن هغه (ويخ) ته اورسيدو(³)په څلورم حديث کښې دی چه نبی کريم ﷺ د نمر د تندر په وخت مونځ اداکولو په وخت جهنم اوليدو(⁴)په پنځم حديث کښې دی چه نبی کريم ﷺ د معراج په شپه جهنم اوليدو اوددې عذابونه ئې اوکتل. داشان نور صحيح اومتواتر احاديث هم روايت شوی دی.

**د معتزلو جهالت:-** معتزله دخپل جهالت په وجه دا نه منی او ددې نه خلاف وائی او قاضی اندلس منذر بن سعيد بلوطی هم ددوی سره موافقت کړې دې.

**د سورت جوړولو اعلان:-** يادساتل پکار دی چه په دې خائې او په سورت يونس کښې ونيلې شوی دی چه هم يو سورت ددې پشان راوړئ شامل دی. وړوکې او لوئې هر سورت ته ددې وجې چه دعربئ قواعدو مطابق چه کوم اسم نکره وی او دشرط په طور راوړې شوې وی نوهغه دعموميت فائده ورکوی لکه څنګه چه نکره دنفی لاندې داستغراق فائده ورکوی. نو په لوئې او وړوکې هر سورت کښې اعجاز دې. او په دې خبره باندې د سلفواو خلفو اتفاق دې.
امام رازی رحمه الله په خپل تفسير کښې ليکی که څوك اووائی چه دسورة لفظ کښې سورة کوثر او سورة العصر او سورةالکافرون واړه واړه سورتونه هم شامل دی ،اودا بالکل يقين سره معلوم دی چه ددې په

---

(¹) صحيح بخاری : کتاب التفسير باب قوله تعالى ( وتقول هل من مزيد) : ٤٨٥٠، صحيح مسلم: ٢٨٤٦)-
(²) صحيح بخاری : کتاب المواقيت الصلاة باب الابراد بالظهر فى شدة الحجر: ٥٣٨، صحيح مسلم: ٦٢١)-
(³) صحيح المعلم کتاب الجنة باب جهنم اعاذنا الله منها: ٢٨٤٤)-
(⁴) صحيح بخاری : کتاب الکسوف باب صلاة الکسوف جماعة : ١٠٥٢، صحيح مسلم: ٩٠٧)-

شان یا دې ته نزدې نزدې څه سورت جوړول ممکن دی،دې ته د انسانی طاقت نه بهر ونیل یو وړوه شان هڅ دهرمی او بې ځایه طرفداری ده. نوموړې به جواب ورکوۍ چه موږ ددې د معجزې دوه طریقې بیان کړی دی او دویمه طریقه مو خوښه کړې ده. موږ وایو چه واړه سورتونه هم په فصاحت اوبلاغت کښې ددې برابر دی چه دې ته هم معجزه ونیلې شی اوددې تعارض ممکن نه دې نو مقصودحاصل شو ځکه چه باوجود پداسې سورتونو باندې د انسان د جوړولو طاقت کیدل او بیا هم د ډیرو سختو کوششونو اوسختې دښمنئ نه باوجود ددې نه جوړل نو داددې قرآن پاک دپاره صفا دلیل دې چې دا قران پاك ا و دې واړه واړه سورتونه معجزه دې.

دا خو دامام رازی رحمه الله کلام دې. خو صحیح قول دادې چه د قرآن پاك هر وړوکې اولونې سورت فی الواقع معجزه دی. او انسان ددې نظیر جوړولو نه محض عاجزه اوبالکل بې طاقت دې. حضرت ا مام شافعی رحمه الله فرمائی که خلق غور اوتدبر او عقل سره صرف سورت العصر باندې پوهه شی نو د ټولو دپاره داکافی دې.

**دعمربن العاص رضي الله عنه د کفر په حالت کښې د سورة کوثر د اعجاز اقرار:-** حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه چه کله په وفد کښې مسیلمه کذاب لره ورغلو اوتر اوسه پورې دې لا پخپله هم مسلمان شوې نه وو نودهغه نه ئې تپوس اوکړو چه تاسو د مکې نه تشریف راوړئی ،نن سبا په مکه معظمه کښې څه نوې وحی نازله شوې ده ؟ هغه اوونیل چه اوس اوس یو مختصر نوې سورت نازل شوې دې چه ډیر زیات فصیح ، بلیغ او جامع اومانع دې. بیانې ورته سورت العصر تلاوت کړو نومسیمله څه وخت سوچ اوکړو او ددې په مقابله کښې ئې اوونیل چه په ماباندې اوس اوس یو سورت داشان نازل شوې دې . هغه اوونیل چه ته هم اووایه نوهغه اوونیل چه (یاوبر یاوبر انما انت اذنان وصدر وسائرك حفرنقر) یعنی انې څنګلی مره انې څنګلی مره ستا وجود د دوۀ غوږونواو سینو نه سوا هیڅ نه دې. باقی سراسر ته ناچیزنې. بیا ئې په فخر سره اوونیل چه اووایه انې عمرو څنګه مې اوونیلو؟ هغه اوونیل خمانه څه له تپوس کوې دا خو تاته پخپله معلوم دی سراسر کذب اوبهتان دې. چرته دا فضول کلام او چرته هغه حکمتونو والا کلام.

| | | وَبَشِّرِ | الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|
| | | اوزیرې ورکړه | هغه خلقو ته |
| | | او ایمان راوړې دې هغوی ته | |

| اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا | الصّٰلِحٰتِ | اَنَّ | لَهُمْ | جَنّٰتٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ایمان ئې راوړې | او عمل ئې | نیك | بیشکه چې | دی دهغوی دپاره | باغونه |
| زیرې ورکړه چاچې او دنیکئ کارونه کوی | هغوی لره داسې باغونه تیار کړې شوی دی | | | | |

| تَجْرِیْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | كُلَّمَا | رُزِقُوْا | مِنْهَا | مِنْ ثَمَرَةٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بهیږی به | لاندې د هغې نه | نهرونه | هر کله چې | اورکړې شی هغوی ته | ددغه باغونو نه | څۀ میوه |
| چې دهغې د ونو او مانړو لاندې همیشه ولې بهیږی | هر خلې چې دوی ته د خوراک دپاره ددې باغونونه څه میوه دانه | | | | | |

| رِزْقًا | قَالُوْا | هٰذَا | الَّذِیْ | رُزِقْنَا | مِنْ قَبْلُ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دخوراك | نو اوبه وایئ | چې دا | هغسې میوې دی | چې راکړې شوې وې موږ ته | وړاندې د دې نه |
| ورکړې شی | نو دوی به وائ چې داخو هغه (رنګ) میوه ده چې موږته پخوا (په دنیا کښې) راکولې شوه | | | | |

| وَأُتُوا | بِهٖ | مُتَشَابِهًا | وَلَهُمْ | فِيهَآ |
|---|---|---|---|---|
| اوورکولی به شی هغوئ ته | دغه میوې | دیوبل پشان | اووی به دهغوئ دپاره | په هغې کښې |

اودامیوې به ورته هم شکل ورکولې شي| اودوی ته به په دغه باغونو کښې پاکدامنې جوړې ورکولې شی

| أَزْوَاجٌ | مُّطَهَّرَةٌ | وَّهُمْ | فِيهَا | خٰلِدُونَ |
|---|---|---|---|---|
| بیبیانې | پاکې | اووی به هغوئ | په هغې کښې | همیشه |

(یعنی بیبیانې اود جنت حورې) اودوی به همیشه دپاره په هغې کښې وی|

**قوله تعالى:- وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ**

**ایمان دارو ته د جنت زیرې:**-مخکښې دکافرانواو ددین ددښمنانو سزا او عذاب اودهغوی درسوانی ذکر وو ددې وجې په دې مقام کښې د ایمان دارو او نیک صالحو خلقو داجر اوثواب اوکامیابئ بیان کیږی د قران پاک مثانی کیدو یو معنی دا هم ده او صحیح قول هم دا دې چه په دې کښې هر مضمون تقابلې جائزې سره بیان کړې شوې دې. ددې تفصیلی بیان به هم څه خاص موقعه باندې راشی. مطلب دادې چه دایمان سره کفر او دکفر سره دایمان ، دنیکو سره دبدو او بدو سره دنیکو ذکر راتلل ضروری دی. چه کوم څیز بیان کیږی دې سره دهغې دمقابلې دڅیز ذکر رازی. دیو څیز ذکر کولو سره دهغې مثال هم بیان کړې شوې دې. دامعنې د ﴿مُتَشَابِهًا﴾ کیدو او دا دواړه لفظونه دقران پاک په اوصافو کښې راغلی دی ، دې ته مثانی هم ونیلې شوی دی اومتشابه هم ونیلې شوی دی.

**قوله تعالى:- أَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ**

**دجنتو لاندې د نهرونو بهیدلو مطلب:**-د جنتونولاندې نهرونه بهیدل ،ددې د ونو او بالاخانو لاندې بهیدل دی. حدیث مبارک کښې دی چه نهرونه بهیږی خو ددې کنده نشته دې . حدیث مبارک کښې دی چه دکوثرنهردواړو طرفونوته د غمیشان دې ، ددې بناوره خالص مشک دی او ددې کانړی ملغلرې او جواهر دی(۱) الله ﷻ دې په خپل فضل وکرم سره مونږته دانعمتونه راکړی اوهغه احسان کولووالا او لونې رحیم دې. حدیث مبارک کښې دی چه دجنت نهرونه دمشکی غرونو لاندې بهیږی (ابن ابی حاتم)

**قوله تعالى:- وَأُتُوا بِهٖ مُتَشَابِهًا**

**د میوو یوبل سره مشابه کیدل:**- حضرت عبدالله ﷛ نه هم دا روایت دې. دجنتیانو دا قول چه دا مونږ ته مخکښې راکړې شوی وو ،دې نه مراد دادې چه په دنیا کښې هم دا میوې ملاو شوې وې. صحابه کرام او ابن جریر ﷫ هم ددې قول تائید کوی. بعضې وائی چه مطلب دادې چه مونږ ته ددې نه مخکښې یعنی پرون هم دا راکړې شوې وې. دا په دې وجه چه په ظاهری شکل وصورت کښې به دا بالکل مشابه وی، یحیی بن کثیر ﷫ وائی چه یو پیاله به راشی هغه به اوخکی ، بیا به بله پیاله راشی نو وائی به چه دا خو مو اوس اوڅکله .فرښتې به ورته وائی اګر چه داپه شکل وصورت کښې یوشان دی لیکن مزه نې بدله ده.

فرمائی چه دجنت واښه زعفران دی اوددې ډیرئ مشک دی . واړه واړه ښکلی غلمان د یو خوا بل خوا نه به میوې راوړی او پیش کوی به نې اودوی به نې خوری ،بیا به دوی ته پیش کولې شی نووائی به چه دا خو مو اوس اوخوړلې. هغوی به جواب کښې فرمائی حضرت رنګ او شکل خو نې یو دی لیکن خوند نې نور دې،دا تاسواوخکئ اواوګورئ نو خوند به درکړی. هم دا معنی ده چه هم شکل به راوړی. ددنیا میوؤ سره به صرف نوم او شکل وصورت کښې یو شان وی خوددې نه به نې خوند بیل وی.

---

(۱) صحیح بخاری : کتاب الرقاق: باب : فی الحوض: (۶۵۷۱)–

دابن عباس ﷺ قول دې چه صرف نوم کښې مشابهت دې ګنې چرته ددنیا څیز اوچرته د جنت د نعمتونو خوانچه ؟ په دې مقام صرف نوم دې. دعبدالرحمان رحمه الله قول دې چه ددنیا دمیوو په شان میوې چه اوګوری نو وائی به چه دا خومونږ په دنیا کښې خوړلې دی خوکله چه نې اوخوری نو خوند به نې څه نور وی.

قوله تعالى:- وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ

دجنت بیبیانې:-په هغه ځائې کښې به چه دوی ته کومې بیبیانې ملاویږی هغوی به دګندګنی،ناپاکنی ،حیض ، نفاس ، میتازو ، توکانړو ، خړینګ اومنیٔ وغیره نه بالکل پاکې وی .یو قول دې چه حضرت حواعلیها السلام هم مخکښې دحیض نه پاکه وه ، لیکن د نافرمانئی په وجه ورته دا بلا وریپښه شوه. خوداقول دسند لحاظ سره غریب دې().

په یو غریب او مرفوع حدیث کښې دی چه حیض ، غټ اودس ماتنی او خړینګ نه به پاکې وی. حاکم دې حدیث ته صحیح او د شیخینو په شرط باندې ئې وائی. لیکن دا دعوی صحیح نه ده ،ددې یو راوی عبدالرازق بن عمربزینی دې چه دې ابو حاتم د احتجاج قابل نه دې ګنړلې. په ظاهره دا معلومیږی چه دا مرفوع حدیث نه دې بلکه د حضرت قتاده رحمه الله قول دې . والله اعلم.

قوله تعالى:- وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ

ددې ټولونعمتونو سره دې زبردست نعمت ته اوګورنی چه نه به نعمتونه فنا شی او نه به دنعمتونو والا اونه به نعمتونه د دوی نه اخستلې شی او نه به دوی د نعمتونو نه جدا کولې شی. نه به په مرګ سره خاتمه وی او نه آخرشته. نه ماتیدل او نه کمیدل شته. دالله رب العالمین جواد الکریم او براو رحیم نه درخواست دې چه هغه پاک مالك دې مونږ داخل جنت په زمره کښې شامل کړی او هم هغوی سره دې زمونږ حشر اوکړی . آمین.

إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي
| بیشکه الله | شرم نهٔ کوی |
| بیشکه الله پدې نه شرمیږی

أَنْ يَضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا
چې بیان کړی | مثال | دیو ماشی | یازیات سپك دهغه نه | نو هغه خلق | چې ایمان ئې راوړې دې
چې یومتل بیان کړی | که هغه دماشې وی اوکه د ماشی نه هم کم وړوکې څیز وی | نومؤمنانو خو په دې

فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا
پوهیږی هغوی | چې دامثال | حق دې | دطرفه درب دهغوی نه | اوکوم خلق چې | نهٔ منونکې دی
ډیربنه پوهیږی چې دامتل په ربښتیا دالله دطرفه دې (چې مونږ پرې پوهوی) | پاتې شوکافران

فَيَقُولُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا يُضِلُّ بِهِ كَثِيرًا
نو هغوی وائی | چې څه اراده کړی ده | الله | په دې | مثالونو سره | ګمراه کوی | په دې سره | ډیر خلق
نوهغوی وائی چې په داسې متل وئیلو کښې دالله څه مطلب دې | په داسې متلونوسره الله ډیرګمراه کوی

[1] ) داسرائیلیات ڪدي ، عبدالرحمان بن زید بن اسلم)-.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّيَهْدِيْ | بِهٖ | كَثِيْرًا | وَمَا يُضِلُّ | بِهٖٓ | اِلَّا الْفٰسِقِيْنَ |
| اوصحيح لاربنائي | په دې سره | ډيروته | اونه گمراه كوي | په دې سره | مگر فاسقان خلق |
| اوډيروته پرې سمه لار ښائي؛ اوپه داسې متلونو باندې صرف هغه فاسقان گمراه كوي | | | | | |
| اَلَّذِيْنَ | يَنْقُضُوْنَ | عَهْدَ اللّٰهِ | مِنْۢ بَعْدِ | مِيْثَاقِهٖ | وَيَقْطَعُوْنَ | مَآ |
| هغه فاسقان | چې ماتوي | وعده دالله | روستو | دمضبوطوالي دهغې نه | اوپريكوي | هغه |
| چې دالله سره په ښه شان سره پخه كړې وعده بيابيا ماتوي؛ اوهغه تعلقات (خپلولي) پريكوي دكوموچه | | | | | | |
| اَمَرَ اللّٰهُ | بِهٖٓ | اَنْ يُّوْصَلَ | وَيُفْسِدُوْنَ | فِي الْاَرْضِ |
| چې حكم كړې دې الله | په هغې سره | چې پيوند دې كړې شي | اوفساد كوي | په زمكه كښې |
| الله تعالى د ساتلو حكم كړيدې؛ اوپه ملك كښې فسادونه جوړوي | | | | |
| اُولٰٓئِكَ | هُمُ الْخٰسِرُوْنَ |
| هم داخلق | په حقيقت كښې تاوانيان دي |
| همدا خلق زيات كاران دي (ښه نې اوبېژنې) | |

**دايت شان نزول:**- حضرت ابن عباس ﷛ ،حضرت ابن مسعود ﷛ او نور صحابه كرامو ﷡ نه روايت دې چه كله په پورتنې آيت كښې دوه مثالونه دمنافقانو بيان شو يعني د اوراو داوبو نوهغوی اووئيل چه داسې واړه مثالونه الله ﷻ هيڅ كله نه بيانوی. په دې باندې دا دوه آيتونه نازل شو(۱) حضرت قتاده ﷫ فرمائي چه كله قران پاك كښې د جولا اودمچئ مثال بيان شو نو مشركانواووئيل چه دداسې حقير څيز دبيانولو په قران پاك كښې څه ضرورت وو؟ نو په جواب كښې داآيت نازل شو(۲)
اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيٖٓ اَنْ يَّضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوْضَةً فَمَا فَوْقَهَا
اواووئيلې شو چه دحق بيان نه الله ﷻ ته شرم نه ورزی كه هغه كم وی اوكه زيات وی ، ليكن ددې نه څه داسې معلوميږی چه گويا دا آيت په مكه معظمه كښې نازل شو حالانكه دا سې نه وو. والله اعلم.
اودبزرگانو نه دا رنگ شان نزول هم روايت دې. ربيع فرمائي چه دا خپله يو مستقل مثال دې كوم چې ددنيا بيان شوې دې ماشئ چه كله اوږې وی نو ژوندې وی كله چه موړ شو نو مړ شی، داشان دا خلق هم دی كله چه دنياوی نعمتونه ورته حاصليږی نو الله ﷻ دوی راونيسی لكه بل ځائې كښې فرمائي ﴿فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ﴾ يعنی كله چه دوی زمونږ نصيحت هيركړو نومونږ په دوی باندې دټولو څيزونو دروازې پرانيستې. تردې پورې چه دوی ښه په مزو كښې شو. او اوس يكدم مونږ دوی راونيول ( ابن جرير رحمة الله عليه، ابن ابی حاتم ﷫). ابن جرير رحمة الله عليه(۳) رومبې قول خوښ كړې دې. او مناسبت هم ددې زيات ښه معلوميږی،والله اعلم.نومطلب داشو چه دهيڅ وړوكی نه وړكی مثال او د لوئي نه لوئي مثال نه الله ﷻ نه منع كيږی اونه ورته د هغې د بيانولو نه شرم ورځي.
**د ‹‹ما›› او ‹‹بعوضة›› اعرابی تحقيق:**- لفظ د "ما" په دې مقام د كمی په معنی كښې دې او د ﴿بَعُوْضَةً﴾ د زبرد بدليت په بناء باندې دعربئ دقاعدې مطابق دې. چه په ادنی څيز باندې صادق راتلې شی. يا

---
[1] ) الطبری: ۱/۳۹۸)-
[2] ) الطبری: ۱/۳۹۹)-
[3] ) الطبری: ۱/۳۹۸)-

نکره موصوفه ده او (بَعُوضَةً) صفت دې. ابن جرير رحمه الله دا خوښوي چې "ما" ماصوله ده او د (بَعُوضَةً) هم ددې په اعراب سره معرب دې اودعربو په کلام کښې دا په کثرت سره شائع دی چه هغوی "ما" او د "من" په بدله کښې دواړوته اعراب ورکوی خکه کله دا نکره وی اوکله معرفه، لکه د حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه په شعرونو کښې دی چه:

یکفی بنا فضلا علی من غیرنا حب النبی محمد ایانا

يعني مونږ ته په غيرو باندې صرف دا فضيلت دې چه زمونږ زړونه دنبی ﷺ د محبت نه ډك دی.
اودا هم کيديشی چه (بَعُوضَةً) منصوب وی او دحرف جار په وجه اوددې نه مخکښې د (بين) لفظ مقدر اومنلې شی. کسائی او فراء هم دا خوښوی. ضحاك رحمه الله او ابراهيم بن عبله رحمه الله (بَعُوضَةٌ) وائی. ابن جنی رحمه الله فرمائی چه دا به د "ما" صله وی او عائد به حذف منلې شی لکه ( تَمَامًا عَلَى الَّذِيٓ أَحْسَنَ ) کښې ( فَمَا فَوْقَهَا ) دوه معنې بيان شوی دی.① يودا چه ددې هم سپك او ردی څيز لکه ديوسړی د بخيلتوب وغيره ذکر اوشی اوبل اووائی چه هغه ددې نه هم زيات دې نو مراد ترې داوی چه هغه ددې نه هم زيات پريوتې دې.
کسائی رحمه الله اوابوعبيده رحمه الله فرمائی چه يو حديث کښې راغلی دی که د دنيا قدر او وقعت دالله ﷻ په نيزد ماشی د يو وزر برابر هم وې نو کافر ته به نې يو گوټ اوبه هم نه وې ورکړې ()② بله معنی دا ده چه ددې نه زيات لوئې خکه چه ماشی؛ نه به وړوکې اوسپك څيز بل څه وی؟ د حضرت قتاده رحمه الله هم دا قول دې. ابن جرير رحمه الله هم دا قول خوښ کړې دې.
په صحيح مسلم کښې حديث دې چه کله ديو مسلمان (بدن) کښې يو ازغې ننوځی يا ددې نه زيات نوپه دې سره هم دده درجې اوچتيږی اوگناهونه نې رژيږی ()په دې حديث کښې هم دا لفظ (فَمَا فَوْقَهَا) دې. نومطلب داشو چه خنگه الله ﷻ ددې لويوورو څيزونو پيدا کولو کښې شرم نه کوی اونه نې منع کوی نو داشان دا دمثال په توگه بيانولو نه هم هغه ته څه شرم نه ورځی. يو ځائې کښې په قران پاك کښې ارشاد دې چه انې خلقو ايو مثال بيانولې شی اودې ته ښه غوږاونيسئ؛ چه کوم تاسو دالله تعالی نه سوا بلئ؛ هغه ټول که جمع شی نو يو ماشئ هم نشی جوړولې بلکه که ددوی نه ماشئ څه اوتښتوی نو هغه ترېنه هم نشی واپس کولې، عابد اومعبود ددواړه بې حده کمزوری دی. په بل ځائې کښې ارشاددې چه ددې خلقو مثال چه دالله ﷻ نه سوا نورو لره خپل مددگار بولی د جولا دجالې پشان دی. چه دهغه کور دټولو کورونو نه زيات کمزورې دې. اوپه مقام کښې الله ﷻ دکلمه طيبه مثال ورکړې دې د پاکې ونې سره چه دهغې جرړه مضبوطه او دهغې ښاخونه په آسمان کښې وی او دالله تعالی په حکم سره هروخت ميوې ورکوی. دامثالونه الله ﷻ دخلقو دعبرت دپاره بيانوی. او دناپاکی کلمې مثال د ناپاکې ونې پشان دې. چه په زمکه باندې وی او ددې جرړې مضبوطې نه وی او الله ﷻ ايماندار په دنيا اوآخرت کښې په مضبوطې خبرې سره برقرار ساتی. اوظالمان گمراه کوی الله ﷻ چه څه غواړی هغه کوی. اوپه بل مقام کښې الله ﷻ ددې مملوك غلام مثال پيش کوی چې هغه ته په څه څيز باندې اختيار نه وی. او په بل ځائې کښې د دوو سړو مثال الله ﷻ بيان فرمائی چه په دې کښې يو گونگې او بالکل پريوتې بې طاقته وی چه په خپل مالك باندې بوج وی چه چرته خی نو دخان سره خرابی اوړی او بل هغه چه د عدل اوحق حکم کوی آيا دا دواړه برابريديشی ؟ په بل مقام کښې دی چه الله ﷻ ستاسو دپاره پخپله مثال بيان فرمائی ، آيا تاسو په خپلو څيزونو کښې خپل غلامان هم شريك او برابر حصه دار گڼړئ؟ اوپه بل مقام کښې ارشاد فرمائی چه دهغه سړی مثال الله ﷻ بيان فرمائی چه دهغه ډير

---

[1]) ترمذی: ابواب الزهد باب ماجاء فی هوان الدنيا....۲۳۲۲، وهو حسن .، ابن ماجه: ۴۱۱۰)-
[2]) صحيح بخاری : کتاب المرضی باب، ماجاء فی کفارة المرض: ۵۶۴۰، صحيح مسلم: ۶۵۶۱، ترمذی : ۹۶۵)-

شریکان وی . او په بل خانې کښې الله ﷻ ارشاد فرمائی چه دا مثالونه مونږ دخلقو دپاره بیانوؤ او په دې باندې صرف (په ښه شان) پوره علم والا پوهیږی.

ددې نه علاوه نور هم ډیر مثالونه په قران پاك كښې بیان شوی دی .بعضې سلف صالحین فرمائی کله چه څه په قران پاك كښې څه مثال آورم او په دې نه پوهیږم نو ماته ژړا راشی څکه چه الله ﷻ فرمائیلی دی چه دې مثالونو باندې صرف عالمان پوهیږی. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی مثالونه که واړه وی او که لوئې ایماندار په دې باندې ا یمان راوړی او داحق گنړی اوددې نه هدایت مومی.د حضرت قتاده رحمه الله قول دې چه هغه دا مثال د الله ﷻ کلام گنړی.د﴿أَنَّهُ﴾ ضمیر مرجع مثال دې. یعنی مومن دامثال دالله ﷻ د طرفه حق گنړی اوکافر په دې پسې خبری جوړوی لکه په سورت مدثر کښې دی ﴿ وَمَا جَعَلْنَا أَصْحٰبَ النَّارِ ﴾یعنی مونږ د اورد فرښتو شمیر د کافرانو د آزمیښت دپاره مقرر کړې دې د دې دپاره چې اهل کتاب پرې یقین اوکړی ، ایماندار په ایمان کښې زیات کړی. دې دواړو ډلو ته څه شك نشته دې. لیکن د بیمار زړه خاوندان او کافران وائی چه ددې مثال نه څه مراد دې ؟ دا شان الله ﷻ چه چالره غواړی نو هغه گمراه کوی اوچا لره چه غواړی نو هدایت ورته کوی. ستا درب لښکرو لره دهغه ذات نه سوا نور هیڅوك نه پیژنی ، په دې مقام کښې هم ددې هدایت او ضلالت بیان اوشو.

﴿الَّذِينَ يَنْقُضُونَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ﴾

**د الله ﷻ وعدې څوك ماتوی؟:** صحابه کرامو رضی الله عنهم نه روایت دې چه په دې سره گمراه کیږی منافق او لار مومی مومن اودا اقرارکوی اودې سره هدایت اوایمان زیاتیږی.﴿الْفٰسِقِيْنَ﴾ نه مرادمنافقان دی.بعضو ونیلی دی چه دې نه کافران مراد دی چه دوی ته پته ده اوبیا هم انکار کوی. حضرت سعد رضی الله عنه فرمائی چه مراد ترې نه خوارج دی . که ددې قول سند حضرت سعد بن ابی وقاص پورې صحیح وی نو مطلب به دا وی چې دا تفسیر معنوی دې ، دا نه چه خوارج دی بلکه دا چه دا فرقه هم فاسقانو کښې داخله ده. چه هغوی نهروان کښې علی کرم الله وجهه باندې حمله کړې وه،دا خلق ددې آیت د نازلیدوپه وخت کښې موجود نه وو.لیکن د خپل بدترین وصف په وجه معنوی طور سره دوی هم فاسقانو کښې داخل دی. دوی ته خوارج په دې وجه اووئیلې شو چه د امام برحق د اطاعت نه وتلی وو او داسلامی شریعت د پابندئی نه آزاد شوی وو.

په لغت کښې فسق وائی د اطاعت او فرمانبردارئی نه وتلوته ، کله چه پوستکې اخوا کړې شی او په دې کښې دننه غوټینه راوبښکلې شی نوعرب وائی چه ﴿فسقت﴾مږی ته هم ﴿فویسقه﴾ وائی. څکه چه دا خپلې سوړې نه راوز ی نو فساد کوی . د بخاری او مسلم شریف په یو حدیث کښې دی چه نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چه پنځه ځناورفاسقان دی،په حرم کښې اود حرم نه دې بهرقتل کړې شی①کارغه ②باخه ③ لړم ④ منږك ⑤ تور سپې[1]. نو لفظ د فسق کافر دپاره او هر نافرمان دپاره دې. لیکن دکافر فسق زیات سخت او زیات خراب دې. په آیت کښې فاسق نه مراد کافر دی. والله اعلم.

ددې لوئې دلیل دادې چه دې نه پس ددوی وصف بیان شوې دې چه دوی دالله ﷻ وعده ماتوی،دهغه پاك ذات فرمان ماتوی ،اوپه زمکه کښې فساد پیدا کوی او دا ټول صفتونه د کافرانو دی. دمومنانو صفتونه خو ددې خلاف وی لکه په سورة رعد کښې بیان دې چه ﴿ أَفَمَنْ يَّعْلَمُ﴾ آیا هغه سړې چه هغه نه پته ده چه څه ستا د رب طرف نه په تاباندې نازل شوی دی دا حق دی آیا دهغه سړی په شان کیدې شی چه کوم ړوند وی؟ نصیحت خو صرف عقلمند خلق حاصلوی چه کوم دالله ﷻ وعدې پوره کوی. او میثاق نه ماتوی او الله ﷻ چه دکومو کارونو د جوړولو حکم کړیدې هغه جوړوی یعنی یو خانې کوی اودخپل رب نه ویریږی او د حساب د خرابوالی نه ویریږی .

---

[1] ) صحیح بخاری : کتاب بدء الخلق: باب اذا وقع الذباب فی شراب احدکم:۳۳۱۴ صحیح مسلم: ۱۱۹۸)۔

مخکښې ارشاد فرمائي چه کوم خلق دالله ﷻ وعدو لره ددي دمضبوطيا نه پس ماتوي او چه دکومو څيزونو د جوړښت حکم الله ﷻ ورکړې دې هغه نه جوړوي او په زمکه کښې فساد پيدا کوي نو د دوی دپاره لعنتونه دي او ددوی دپاره ډير خراب کوردې. په دې مقام کښې د عهد نه مراد هغه وصيت دې چه کوم الله ﷻ خپلو بندګانوته کړې وو چه په دې کښې د هغه پاك ذات ټول احکامو باندې عمل او د ټولو نافرمانونه بچ کيدل شامل دی. ددې ماتول په دې عمل نه کول دی.بعضې وائی چه ماتوونکی اهل کتاب کافران اومنافقان دی. اوعهد هغه دې چه ددوی نه په تورات کښې اخستلې شوې وو چه دوی به ددې په ټولوعملونو باندې عمل کوی اودحضرت محمد ﷺ اتباع به کوی کله چه حضرت محمد ﷺ تشريف راوړی. نود محمد ﷺ دنبوت اقرار دې اوکړی او څه چې د نبی اکرم ﷺ په ذريعه د الله ﷻ د طرفنه راغلی دی د هغې تصديق دې اوکړی اوعهد ماتول دا دی چه دوی د حضرت نبی اکرم ﷺ د نبوت او اطاعت نه ا نکار کړې وو او د عهد د علم باوجود ئې دا پټ کړو او د دنيا مصلحتونو په وجه ئې ددې خلاف اوکړل. امام ابن جرير رحمه الله دا قول خوښ کړې دې. اود مقاتل رحمه الله هم دا قول دې.

قوله تعالی:- وَيَقْطَعُونَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖۤ اَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ فِی الْاَرْضِ

**د قطع نه مراد:-** بعضې وائی چه ددې نه مراد خاص ډله نه ده بلکه شرك ،کفر او نفاق والا ټول په ټوله مراد دی. دعهد نه مراد د خپل توحيد اود خپل نبی ﷺ د نبوت اقرار دې چه په دې باندې ښکاره نښې او لوې لونې معجزې موجود دی او ددې ماتول د توحيد اوسنت نه مخ اړول دی ، دا قول ښه دې .
زمخشری هم دا قول خوښ کړې دې. هغه وائی چه دعهد نه مراد د الله ﷻ د توحيد دمنلو اقرار دې چه په انسانی فطرت کښې د داخليدونه علاوه په ورځ د ميثاق کښې هم منلې شوی دی . فرمائيلې شوی وو چه :( اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ) يعنی آيا څه ستاسو رب نه يم ؟ نوټولو جواب ورکړې وو چه بيشکه ته څمونږ رب ئې. بيا چه کوم کتابونه ورکړې شوی وو ، په هغې کښې هم اقرار اخستې شوې وو لکه فرمائی (وَاَوْفُوْا بِعَهْدِیْۤ )څما وعده پوره کړئی څه به هم خپله وعده پوره کړم. بعضې وائی چه ددې نه مراد هغه وعده ده چه د روحونو نه اخستې شوې وه کله چه دوی د حضرت آدم عليه السلام د ملا نه راوويستی شو . لکه فرمائی( وَاِذْ اَخَذَ رَبُّكَ ) کله چه ستا رب د آدم اولاد سره وعده اوکړه چه څه ستاسو رب يم او دوی ټولو اقرار کړې وو او ددې ماتول ددې پريښودل دی. دا ټول اقوال تفسير ابن جرير کښې منقول دی.

**د منافقانو شپږ خصلتونه:-** ابوالعاليه رحمه الله فرمائی چه دالله ﷻ عهد ماتول چه دا دمنافقانو کار وو هغه شپږ خصلتونه دی ①په خبرو کښې دروغ ونيل ② وعده خلافی کول③ په امانت کښې خيانت کول ④ د الله ﷻ عهد د هغې د مضبوطيا نه پس ماتول ⑤ الله ﷻ چه دکومو کارونو د يوځائې کولو حکم کړې دې هغه يو ځائې کول ⑥ په زمکه کښې فساد پيدا کول. دا شپږ خصلتونه دهغوی په هغه وخت کښې ظاهريږی کله چه د هغوی غلبه وې او کله چه مغلوب شی نو مخکښې درې کارونه پريږدی او دې نه پس درې کارونه کوی. امام سدی رحمه الله فرمائی چه دقران پاك احکام لوستل ، په دې پوهيدل ، رښتيا ونيل ، بيا نه منل هم دعهد ماتول دی . الله ﷻ چه د کومو کارونو د يو ځائې کولو حکم کړې دې دهغې نه مراد صله رحمی ساتل او د رشته دارئ حقوق ادا کول وغيره دی لکه په بل مقام کښې قران پاك کښې دی چه ( فَهَلْ عَسَيْتُمْ اِنْ تَوَلَّيْتُمْ اَنْ تُفْسِدُوْا فِی الْاَرْضِ وَتُقَطِّعُوْۤا اَرْحَامَكُمْ ) يعنی نزدې ده که تاسو زمکې نه واپس شئ نو په زمکه کښې به فساد پيدا کړئی او رشتې به پريکړئی.

قوله تعالی:- اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ

**دکافرانو تاوان:-** ابن جرير رحمه الله هم دې ته ترجيح ورکړې ده اودا هم وائی چه دا آيت عام دې. چه ددې د

یوخاني کولو او ادا کولو حکم ګران وو ،هغوی دا مات کړو او وي نه کړو (الخٰسِرُوْنَ) نه مراد آخرت کښې نقصان اوچتول دی لکه د الله ﷻ فرمان دې(۱)چه(اُولٰٓىِٕكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ) په دې خلقو باندې لعنت دې اوددوی دپاره خراب کور دې. د حضرت ابن عباس ؓ فرمان دې چه د اهل اسلام نه علاوه نورو ته چه په کوم مقام کښې قرآن پاك (خَاسِرُ) ونیلی دی په هغه مقام ترې مراد کافر دی او داهل اسلام دپاره په کوم خاني کښې دا لفظ راغلې دې په هغه خانې کښې ترې مراد ګناهګار دی (۲)

(خَاسِرُوْنَ) جمع ده د( خَاسِرْ)چونکه دا خلق په نفساني خواهشاتواو دنیاوی لذتونو کښې اخته وو او خپل خانونه ئې دالله ﷻ د رحمت نه لرې کړي وو نو دوی ته نقصان والا اوونیلې شو . لکه هغه سړې چه هغه ته په خپل تجارت کښې نقصان اوشي،دا شان دا کافر اومنافقان هم دی چه کله د رحم اوکرم زیات ضرورت وی یعنی د قیامت په ورځ نو په هغه ورځ په د الله ﷻ د رحمت نه محروم وی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكُنْتُمْ | بِاللّٰهِ | تَكْفُرُوْنَ | كَيْفَ | |
| او داحال دا چي وئ تاسو | دالله نه | تاسو انکار کوئ | څرنګې | |
| تاسو دالله (دوجودنه)څنګه انکار کولی شئ ته نه ګورئ چي تاسو | | | | |

| يُحْيِيْكُمْ | ثُمَّ | يُمِيْتُكُمْ | ثُمَّ | فَاَحْيَاكُمْ | اَمْوَاتًا |
|---|---|---|---|---|---|
| (دوباره) ژوندی کړی تاسو | بیابه | به مړه کړی تاسو | بیا | نو به ژوندی کړی تاسو | مړه |

مړی وې نوهغه ژوندی کړئ اوس یوخل بیابه تاسومړه کړی اوبیا به مودوباره ژوندی کړی

| تُرْجَعُوْنَ | اِلَيْهِ | ثُمَّ |
|---|---|---|
| واپس کیږئ تاسو | هغه ته | بیا به |

اوبیابه هغه ته واپس شئ

**قوله تعالی:-كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ**

**د عدم نه وجود کښې راوستولو والا څوک دې؟** ددې خبرې ثبوت ورکوی چه الله ﷻ موجود دې اوهغه قدرتونو والا دې هم هغه ذات پیدا کونکې دې او اختیار والادې ، په دې آیت کښې فرمائی چه تاسو دالله ﷻ د وجود نه څنګه انکار کولې شئ یا هغه پاك ذات سره دبل عبادت څنګه کولې شئ؟ حالانکه تاسو د عدم نه وجود ته راوستولو والا یو ذات دی لکه فرمائی چه آیا دوی بغیر دڅه څیزنه پیدا شوی دی ؟ یا دوی په خپله پید اشوی دی ؟ یا دوی زمکه آسمان هم پیدا کړې دې ؟ بالکل نه بلکه دا بې یقینه خلق دی .او په بل خانې کښې ارشاد دې چه ( هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ) یقینًا په انسان باندې هغه زمانه هم راغلې وه چه هغه وخت کښې دې قابل ذکر څیزنه وو او نور هم دا شان آیتونه دی.

حضرت ابومسعود ؓ فرمائی چه کافران به وائي چه (قَالُوْا رَبَّنَآ اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ) اني الله ﷻ دوه خل تا مونږ مړه کړو او دوه خل دې راژوندې کړو ، مونږ دخپلو ګناهونواقرار کوو ،ددې نه مراد هم دادی چه په آیت ( وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا) کښې کوم مطلب دې. مطلب دادې چه تاسو دخپلو پلارانو په ملاګانو کښې مړه وئ یعنی څه هم نه وې ،هغه پاك ذات تاسو ژوندی کړنې بیا به تاسو مړه کړی یعنی مرګ به یو ورځ ضرور رازی بیا به هغه ذات تاسو د قبرونو نه راپاسوی. نو دیو حالت مړه کیدو نه دنیا کښې د راتلو نه مخکښې بیا بلې دنیا کښې د مرکیدو اود قبرونو طرف ته ،بیا دقیامت په ورځ دپاسیدو ، دوه ژونده

---

۱) ابن ابي حاتم : ۱ /۱۰۱ )-

۲) الطبری: ۱/ ٤١٧)-

او دوه مرګونه. ابو صالح ﷫ فرمائي په قبر کښې انسان ژوندي کولې شي.دعبدالرحمن بن زيد ﷫ بيان دې چه حضرت آدم ﷺ په ملا کښې ئې دوی لره پيدا کړل ، بيا ئې د دوی نه وعده واخستله او په دوی کښې ئې ساه واچوله ، بيا ئې دوی د مور په خيټه کښې پيدا کړل ،بيا ددنيا مرګ په دوی باندې راغلو،بيا دقيامت په ورځ به دوی لره راپاسوی. ليکن دا قول غريب دې. رومبې قول صحيح دې.

قوله تعالى:- ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ

**الله ته واپس کيدل**:-ابن مسعود ﷛ او ابن عباس ﷛ او دتابعين رحمهم الله يوډلې نه هم دا قول نقل دې. په قران پاك کښې يو بل ځائې کښې دی چه ﴿قُلِ اللّٰهُ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ﴾ اووايه چه الله تعالى تاسوپيدا کړئي بيا ئې تاسومړهٔ کړئي اوبيا به تاسو دقيامت په ورځ راټول ندی کوی.ددې کاڼړواو تصويرونوبه چه مشرکانوسجدې کولې،قرآن پاك دوی ته مرده اووئيل،فرمائي﴿ أَمْوَاتٌ غَيْرُ أَحْيَاءٍ [۱]﴾ داټول مړه دی ژوندي نه دی. دزمکې باره کښې فرمائي چه ﴿وَآيَةٌ لَّهُمُ الْأَرْضُ الْمَيْتَةُ [۲]﴾ ددوی دپاره په مرده زمکه کښې هم زمونږ دصداقت نښې دی چه دا مونږ ژوندئ کړې ده او ددې نه دانې راوزی چه دوی ئې خوری.

| | | | |
|---|---|---|---|
| هُوَ الَّذِي | خَلَقَ | لَكُمْ | مَّا |
| هم هغه دې | چې پيدا کړے ئې دی | ستاسو دپاره | هغه څيزونه |
| الله هغه ذات دې چې ستاسو دفائدې دپاره ئې د زمکې ټول نعمتونه | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي الْأَرْضِ | جَمِيعًا | ثُمَّ | اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ | فَسَوَّاهُنَّ | سَبْعَ | سَمَاوَاتٍ |
| چې په زمکه کښې دی | ټول | بيائې | توجه اوکړه پورته طرفته | نو برابرئې کړل | اووه | آسمانونه |
| پيدا کړل | بيا ئې د آسمان پيدا کولو اراده اوکړه نو اووهٔ آسمانونه ئې پيدا کړل | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَهُوَ | بِكُلِّ | شَيْءٍ | عَلِيمٌ ﴿٢٩﴾ |
| او هغه | په هر | څيز | عالم دې |
| او هغه په هر څه باندې ښه پوهه دې | | | |

قوله تعالى:- ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ فَسَوَّاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ

**د کائناتو تخليق**:-په تير شوی دی آيت کښې دقدرت ددې دلائلو بيان وو يا څه چه په انسان کښې دننه دی.خکه په دې آيت مبارك کښې دهغه دلائلو بيان کيږی چه کوم د روزمره سترګو په مخکښې دی. ﴿اسْتَوَىٰ﴾پدې مقام کښې د قصد کولواومتوجه کيدو په معنی دې خکه چه ددې بدله ﴿إِلَىٰ﴾ ده .د ﴿فَسَوَّاهُنَّ﴾ معنی صحيح کول او د اووه وارو آسمانونو جوړول ده. ﴿السَّمَاءِ﴾ اسم جنس دې. بيا فرمائي چه دهغه ذات علم په هر څيزمحيط دې لکه په بل مقام فرمائي چه ﴿ أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ ﴾ خبردارهغه څوك چه بې علمه کيديشي چې هغه خالق وی؟دسورت حٰمٓ سجده ﴿قُلْ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ﴾ لکه چه ددې آيت تفصيل دې. په هغې کښې فرمائي چه آيا تاسو د الله ﷻ نه انکار کوئی ؟ چه هغه پاك ذات زمکه صرف په دوو ورځو کښې پيدا کړه،تاسوهغه پاك ذات سره شريك جوړوئی ؟ چه رب العالمين دې . چه هغه پاك ذات په زمکه کښې مضبوط غرونو د پاسه نه ښخ کړل. هغه ذات په دې زمکه کښې برکتونه او روزئي پيدا کړې او په څلورو ورځو کښې ئې ټول څيزونه د زمکې صحيح کړل. چه په دې کښې د تپوس کونکو دپاره تشفي ده. بيا آسمان طرف ته متوجه شو چه دلوږی په شکل کښې وو ، فرمائي چه ائې زمکې او آسمانه! په خوشحالئ يا خفګان سره راشئ ، نو دواړو اووئيل چه ائې الله ﷻ مونږ خو په خوشحالئ سره

راغلي يو. په دوو ورځو کښې ئې دا اووه اسمانونه جوړ کړل او په هر اسمان کښې ئې دهغه کار تقسيم کړو اود دنيا آسمان ئې په ستورو سره ښکلې کړو او دوی ئې د (شيطانانو) نه بچ کړو.
مونږ ګورو چې د هر عمارت هم دا قاعده ده مخکښې ئې لاندې حصه جوړولې شی اوبيا ددې پاسنی حصه. مفسرين حضراتوهم ددې تشريح کوی چه دهغې بيان مخکښې رازی انشاء الله .خو داګنړل پکاردی چه په قران پاك کښې په يو بل مقام کښې فرمائی ﴿ءَاَنۡتُمۡ اَشَدُّ خَلۡقًا اَمِ السَّمَآءُ ؕ بَنٰهَا﴾ ستاسو پيدائش مشکل دې يا دآسمانونو ؟ الله ﷻ ددې غټوالې اوچت کړو اوداني صحيح کړو او په دې کښې ئې شپه ورځ پيدا کړه ، بيا ددې نه پس ئې په زمکه کښې ددې نه اوبه او خوراك راوويستلو او غرونه ئې په کښې ښخ کړل چه ستاسو او ستاسو د څناورو دکار څيزونه دی ، په دې آيت کښې فرمائی چه د زمکې پيدائش دآسمان نه پس دې. نو بعضې بزرګانو خو فرمائيلی دی چه په تير شوی آيت کښې (ثُمَّ) صرف عطف د خبر دپاره دی ،عطف د فعل دپاره نه دې. يعنی دا مطلب نه دې چه د زمکې نه پس د آسمان پيدائش شروع شو بلکه صرف خبر ورکول مقصود دی چه آسمانونه ئې هم پيدا کړل او زمکې هم. د عربوشاعرانو په شعرونو کښې هم دا موجود دی چه دې آيت ﴿ءَاَنۡتُمۡ﴾ کښې د آسمانونو پيدا کولو نه پس د زمکې خورولو او غوړولو بيان شوې دې نوصحيح ده چه مخکښې ئې زمکه پيدا کړه بيا ئې آسمان پيدا کړو بيا ئې زمکه صحيح کړه نو دواړه آيتونه د يوبل نه خلاف نه دی ددې عيب نه دالله ﷻ کلام بالکل پاك دې : حضرت ابن عباس ؓ نه هم دا معنی بيان کړې شوې ده. فرمائی ( يعنی مخکښې د زمکې پيدائش ،بيا دآسمانونو ، البته دزمکې صحيح والیٔ وغيره دا د دې نه پس شوې دې) حضرت ابن مسعود ؓ او نور صحابه کرامو ؓ نه روايت دې چه دالله ﷻ عرش په اوبوباندې وو او هيڅ څيز ئې نه وو پيدا کړې ، کله چه ئې نور مخلوق لره پيدا کول اوغوښتل نو اوبو نه ئې لوږې اوچت کړو اوهغه اوچت شو او ددې نه آسمان جوړ شو بيااوبه اوچې شوې او ددې نه ئې زمکه جوړه کړه. بيا ئې دا بيله بيله کړه او اووه زمکې ئې جوړې کړې. د اتواراوکل دوو ورځو کښې دا ټولې اووه زمکې جوړې شوې. زمکه په مهی (کب ) باندې ده ، مهی هغه دې چه دهغې ذکر د قرآن پاك په دې آيت کښې راغلې دی ﴿ نٓ وَالۡقَلَمِ﴾ مهی په اوبوکښې دې او اوبه په صفاة باندې دی او صفاة فرشتو باندې او فرښته په کاڼړی باندې اودا کاڼړیٔ هغه دې چه دهغې ذکر لقمان کړې دې. دا کاڼړی په هوا کښې دې . دمهی خوزيدلو سره زمکه خوزيدله نو الله تعالی په دې زمکه باندې غرونه ښخ کړل او زمکه اودريدله . هم دا معنی ده دالله ﷻ دفرمان ﴿ وَجَعَلۡنَا فِی الۡاَرۡضِ رَوَاسِیَ اَنۡ تَمِیۡدَ بِہِمۡ﴾ چه زمکه او نه خوزی مونږ په دې باندې غرونه ښخ کړل ، غرونه د زمکې پيداوار او ونې وغيره دزمکې ټول څيزونه ئې د نهې او چارشنبې په ورځ پيدا کړل هم ددې بيان ﴿قُلۡ اَئِنَّکُمۡ لَتَکۡفُرُوۡنَ﴾ والا آيت کښې دې بيا آسمان طرفته متوجه شو چه لوږې وو اودې نه ئې آسمان جوړ کړو ،بيا ددې نه ئې اووه آسمانونه جوړ کړل دزيارت (جمعرات) او جمعې په دواړو ورځو کښې ، بيا جمعې ته په دې وجه جمعه ونيلې شی چه په دې کښې د زمکې او آسمان پيدائش جمع شو. په هر آسمان کښې هغه پاك ذات فرښتې پيدا کړې اوهغه څيزونو لره چه دهغې علم دهغه پاك ذات نه سوا بل چاته نشته دی. د دنيا آسمان ئې په ستورو سره ښکلې کړو او دا ئې د شيطان نه دبچ کيدو سبب جوړ کړو او دا ټول څيزونه ئې پيدا کړل او پروردګار عالم په عرش باندې قرار اونيولو. لکه فرمائی ﴿ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَمَا بَیۡنَہُمَا فِیۡ سِتَّۃِ اَیَّامٍ﴾ يعنی شپږو ورځو کښې ئې آسمان او زمکه پيدا کړل او بيا په عرش باندې برابر شو. بل مقام کښې فرمائی ﴿ کَانَتَا رَتۡقًا﴾ يعنی دا دواړه د لوږی نه وو مونږ دا اوشلول او دې سره مو اوبوباندې هر څيز ته ژوند ورکړو. (تفسير سدی)

ابن جرير رحمه الله فرمائي چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائي چه داتوار نه دمخلوق پيدائش شروع شو. په دوو ورځو کښې زمکې پيدا شوې. اوپه دوو ورځو کښې ددې تول ځيزونه پيداشو. په دوو ورځو کښې آسمان پيدا شو ،د جمعې په ورځ آخرى وخت وو نوددې پيدائش ختم شو اوهم په دې وخت حضرت آدم علیه السلام پيدا شو. او هم په دې وخت به قيامت قائمېږي. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه الله ﷻ زمکه دآسمان نه مخکښې پيدا کړې وه ، ددې نه چه کوم لوږې پاس اوختلو نودهغې نه آسمان جوړ کړې شو چه داشان يو باندې اووه آسمانونه دى. او زمکې د يو بل لاندې داشان اووه دى. ددې آيت نه صفا معلومېږي چه د زمکې پيدائش دآسمانونونه مخکښې شوې دې. لکه سوره حم سجده په آيت کښې چه دى()عالمان هم په دې باندې متفق دى.صرف حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه آسمان دزمکې نه مخکښې پيدا شوې دې . قرطبى رحمه الله په دې کښې توقف کړې دې .د﴿وَالنّٰزِعٰتِ﴾د آيت په وجه دا خلق وائي چه په دې ځائې کښې د آسمان د پيدا کيدو ذکر د زمکې نه مخکښې دې . په صحيح بخارى کښې دى چه کله د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه سوال اوشو نو هغوى جواب اوفرمائيل چه زمکه خو دآسمان نه مخکښې پيدا شوې وه ليکن دې نه پس خوره شوې وه . هم دا جواب مخکښې روستى تول عالمان ورکوى. د سورت نازعات په تفسير کښې به ددې بيان راشى انشاء الله . حاصل امر دا دې چه د زمکې خورول او غوړول روستودى. او د﴿دَحٰىهَا﴾لفظ په قران پاك کښې دى.اوددې نه پس چه د اوبو اوخوراك وغيره ذکر دې نودا ددې لفظ تشريح ده. چه دکومو کومو د نشوونما قوت په دې زمکه کښې اېښودې شوې وو نوهغه تول نې ښکاره کړل. او دزمکې پيداوار او رنګ په رنګ مختلفو شکلونو اومختلفو قسمونو کښې راوختل. داشان په آسمان کښې هم اوسيدونکى او تلونکى ستورى وغيره نې جوړ کړل والله سبحانه وتعالى اعلم.

صحيح مسلم او نسائى کښې حديث دې چه حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ ځما لاس اونيولو او وې فرمائيل خاوره الله ﷻ د خالى په ورځ پيدا کړه او غرونه نې داتوار په ورځ او ونې نې د پير په ورځ او بدئ نې د نهې په ورځ او نور د چارشنبې په ورځ او ځناور د جمعرات په ورځ او حضرت آدم علیه السلام د جمعې په ورځ د مازيګر نه پس په آخرى وخت کښې د مازيګرنه واخله تر شپې پورې ()دا حديث په غرائب مسلم کښې دې او امام ابن مدينى رحمه الله او امام بخارى رحمه الله وغيره په دې کښې کلام کړې دې او فرمائيلى نې دى چه دا د کعب رضی الله عنه خپل قول دې او حضرت ابوهريره رضی الله عنه کعب رضی الله عنه نه دا کلام آوريدلى دې اوبعضو روايت کوونکو دې ته غلطئ سره مرفوع حديث وئيلې دې ، ا مام بيهقى رحمه الله هم دا فرمائي.

<table>
<tr><td>وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ</td></tr>
<tr><td>او ياد کړه کله | چې اووئيل | ستارب | فرښتوته | چې زه</td></tr>
<tr><td>او(هغه خبره ياده کړه)،چې ستارب فرښتوته اووئيل چې خه</td></tr>
<tr><td>جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً قَالُوْا اَتَجْعَلُ فِيْهَا مَنْ</td></tr>
<tr><td>جوړونکې يم | په زمکه کښې | يوخليفه | هغوئ اووئيل | آيا ته جوړوې | په زمکه کښې | هغه څوك</td></tr>
<tr><td>په زمکه کښې يو نائب جوړوم | هغوئ اووئيل چې(زمونږ ناقص فکروائى چې)ته اسې مخلوق پرې آبادوې</td></tr>
</table>

() صحيح بخارى : کتاب التفسير: سورة حم السجدة)-

() صحيح مسلم کتاب صفات المنافقين: باب ابتداء الخق وخلق آدم علیه السلام :۲۷۸۹)-

| يُّفْسِدُ | فِيْهَا | وَيَسْفِكُ | الدِّمَآءَ | وَنَحْنُ نُسَبِّحُ | بِحَمْدِكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې فساد به کوی | په دې کښې | او تویوی به | وینې | او مونږ | تسبیح بیانوو سره د ثنا ستا |
| چې په زمکه کښې به فسادونه کوی او (د یو بل) وینې به تویوی (او بل خوا) مونږ هر وخت ستا ثنا وایو | | | | | |

| وَنُقَدِّسُ | لَكَ | قَالَ | اِنِّيْٓ | اَعْلَمُ | مَا | لَا تَعْلَمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او پاکي بیانوو | تالره | او وونیل الله | بیشکه زه | پوهیږم | په هغه څیزونو | چې نه پوهیږئ پرې تاسو |
| اوستا پاکي بیانوو الله ورته په جواب کښې اوونیل چې څه په هغه کارونو ښه پوهیږم چې تاسو پرې نه پوهیږئ | | | | | | |

قوله تعالىٰ:-وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً

**دخلیفه معنی او مقاصد:-** د الله ﷻ دې احسان ته اوګورئ چه هغه ذات د حضرت آدم ﷺ د پیدا کولو نه وړاندې فرښتو ته د هغوی ذکر اوفرمائیلو ددې بیان په دې آیت مبارك کښې دې چه انې بنی آدم ! تاسو یادکړئ او خپل امت ته ددې خبرورکړه .حضرت ابوعبیده ؓ خو وائي چه لفظ د (اذ) په دې مقام کښې زیاتی دې. لیکن ابن جریر ؒ وغیره مفسرین ددې رد کوی،د( خَلِيْفَةً ) نه مراد دا دې چه دده به بعضې د بعضو جانشین وی پرله پسې او دیو دور نه پس به بل دور وې او داشان به ترزمانو پورې دا سلسله روانه وی لکه په بل ځائې کښې ارشاد فرمائی(وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ الْاَرْضِ) او فرمائی(وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ الْاَرْضِ)یعنی تاسو ئې ددې زمکې خلیفاګان جوړکړئ.او په بل مقام کښې فرمائی که مونږ غوښتلې نوفرښتې به مونږ خلیفه جوړې کړې وې. اوپه بل ځائې کښې ارشاددې چه ددوی نه پس ددوی خلیفه یعنی جانشین خراب خلق شو ، په یو شاذ قرات کښې( خَلِيْقَةً )هم دی. بعضې مفسرین وائی دخلیفه نه مراد صرف حضرت آدم ﷺ دې لیکن په دې کښې تامل دې. تفسیر رازی وغیره کښې دااختلاف ذکر شوې دې،په ظاهره دا معلومیږی چه دا مطلب نه دې ،ددې یودلیل خو دا فرښتو داقول دې چه دوی به په زمکه کښې فساد پیدا کوی او وینې به تویوی نو ظاهره ده چه هغوی د آدم ﷺ داولاد باره کښې دا فرمائیلې وو خاص د حضرت آدم ﷺ په باره کښې نه وو.

قوله تعالىٰ:-قَالُوْٓا اَتَجْعَلُ فِيْهَا مَنْ يُّفْسِدُ فِيْهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ

**فرشتو ته د ادم ﷺ د اولاد په زمکه د فساد کولو علم:-** اودا خبره ده چه ددې علم فرشتو ته څنګه اوشو؟ یا خو په څه خاصه وجه هغوی ته معلوم شوی وی یاد بشری طبیعت د تقاضې په کتلو سره به ئې دا فیصله کړې وه. څکه دا فرمائیلې شوی وو چه دده پیدائش به دخاورې نه وی. اود دې یو وجه دا هم کیدیشی چه لفظ خلیفه مفهوم نه به هغوی پوهه شوی وی چه هغه به فیصله کوونکې او مظالمو نه منع کولووالا اودحرامو اودګناه خبرو کولو نه منع کولو والا وی. او دویمه وجه دا چه هغوی د زمکې مخلوق په رومبنی خل کتلې وو او قیاس به ئې کړې وی.(څکه چه وړاندې په زمکه جنات اباد وو او هغوی هم فساد کړې وو)

**د فرشتو خبره د اعتراض په وجه نه وه:-**دا خبره یاد ساتل پکار ده چه د خبرو داغرض د اعتراض په طور نه وو اونه بنی آدم سره د حسد په طور وو دکومو خلقو چې دا خیال دې هغوی بالکل غلطی کوی. د فرښتو په شان کښې قران عظیم الشان فرمائی چه (لَا يَسْبِقُوْنَهٗ بِالْقَوْلِ) یعنی د کومو خبرو د معلومولوچې دوی ته اجازت نه وی هغوی په کښې شوندې هم نه خوزوی. (او داهم ظاهره ده چې د فرښتو طبیعت د حسد نه پاك دې)

قوله تعالىٰ:-وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ

بلکه صحیح مطلب دا دې چه داسوال صرف ددې حکمت د معلومولو او د راز ښکاره کولو دپاره وو چه دا د هغوی دپوهې نه بالاتر وو. دا خو ورته معلوم وو چه په دې مخلوق کښې به فسادیان خلق هم

وی نو ډیر په ادب سره ئې سوال اوکړو چې اې الله ﷻ دداسې مخلوق په پیدا کولو کښې څه حکمت دې؟ که عبادت مقصد وی نو مونږ ئې کوو، که تسبیح او تقدیس اوتحمید مقصد وی نوهر وخت زمونږ په ژبه باندې دا جاری وی. بیا دفساد وغیره نه پاك یو نوې مخلوق چه په دوی کښې به فساد کوونکی اووینه تویونکی هم وی په څه مصلحت سره پیدا کوې؟ نوالله ﷻ دوی ته په جواب کښې فرمائی چه ددې فساد اوخونی کیدونه باوجود دکومو مصلحتونو اوحکمتونو د وجې چه څه دوی پیدا کوم نو هغه خما په علم کښې دی. ستاسو علم هغې ته نشی رسیدلې. ماته معلوم دی چه په دوی کښې به نبیان علیهم السلام اورسولان علیهم السلام وی،په دوی کښې به صدیقین او شهیدان وی ، په دوی کښې به عابدان، زاهدان ، اولیاء کر ام ،ابرار،نیکان ،دالله په دربار کښې مقرب بنګان،عالمان، صالحان،پرهیزګار،دالله ﷻ نه ویریدونکی دالله ﷻ سره محبت ساتلونکی،دالله د احکاموسرپه سترګو سره منولو والا، خما د نبیانوعلیهم السلام په ارشاداتو باندې لبیك ویونکی وی. بخاری او مسلم کښې په یو حدیث کښې دی چه د ورځې فرښتې د صبا صادق په وخت کښې رازی اود مازیګر په وخت کښې واپس ځی ،اوپه دې وخت کښې د شپې فرښتې رازی او د صبا فرښتې واپس ځی .راتلونکې چه کله رازی په دې وخت کښې او کله چه ځی نو د سحر اومازیګر په مونځ کښې خلق وینی اودالله ﷻ په دربار کښې دواړه ډلې په سوال اوجواب کښې دا وائی چه تلو نو په مونځ کښې مو اوموندل او چه راتلو نو په مونځ کښې مو اوموندل.()

قوله تعالی:-قَالَ إِنِّيٓ أَعۡلَمُ مَا لَا تَعۡلَمُونَ

هم دا هغه مصلحت دې چه دا فرښتوته فرمائیلې شوی وو چه هغه ماته معلوم دې تاسو ته نه دې معلوم .دا فرښتې ددې څیز دکتلو دپاره لیږلې شی او د ورځې عملونه د شپې نه مخکښې اود شپې د ورځې نه مخکښې الله ﷻ ته پیش کولې شی()غرض تفصیلی حکمت چه د انسان په پیدا کولو کښې وو د هغې باره کښې فرمائی چه داخما په مخصوص علم کښې دی. تاسو ته ددې پته نشته دې. بعضې وائی چه دا جواب د هغوی د قول چه مونږ ستا تسبیح وغیره بیانوؤ کښې وو.نو دوی ته ئې اوفرمائیل چې ماته پته ده یعنی تاسو چه څنګه ګڼړئ اوتول یو تله کښې تلئ داشان نه ده بلکه تاسو کښې یوابلیس هم دې. یودریم قو ل داهم دې چه د فرښتودا هر څه وئیل په اصل کښې ددې مطلب دا وو چه مونږ دې زمکې اولیږلې شو نو په جواب کښې اووئیلې شو چه ستاسو په آسمانونو کښې د اوسیدو مصلحت هم ماته معلوم دی اوماته علم دې چه ستاسو لائق ځائې هم دا دې. والله اعلم. حسن رحمه الله اوقتاده رحمه الله وغیره وائی چه الله ﷻ فرښتو ته خبر ورکړو. سدی رحمه الله فرمائی چه مشوره ئې واخسته. خو ددې معنی خبر ورکول هم کیدیشی. او که دا معنی ئې نه وی نو بیا دا خبره بې وزنه کیږی

ابن ابی حاتم رحمه الله فرمائی چه رسول کریم ﷺ فرمائیلې دی چه کله دمکې نه زمکه خوره شوه او اوغوړولې شوه نو دبیت الله طواف تولو نه مخکښې فرښتو اوکړو. او زمکه کښې دخلیفه جوړولو نه مراد مکه کښې خلیفه جوړول دی (). داحدیث مرسل دې بیا په دې کښې ضعف دې او مدرج دې یعنی د زمکې نه مراد مکه اخستل د راوی خپل خیال دې .والله اعلم.

په ظاهر خو دامعلومیږی د زمکې نه مراد عام ، ټوله زمکه مراد ده. فرښتو چه کله واوریدل نو تپوس ئې کړې وو چه هغه خلیفه به څوك وی؟ نو په جواب کښې وئیلې شوی وو چه ددوی په اولاد کښې به داسې خلق هم موجود وی چه په زمکه کښې به فساد کوی ،حسد ،بغض او وینه به تویوی. هغه خلیفه

() صحیح بخاری : کتاب مواقیت الصلاة باب فضل صلاة العصر : ۵۵۵، صحیح مسلم: ۱۳۲)-

() صحیح مسلم ، کتاب الایمان باب ل قوله ﷺ ان الله لاینام:۱۷۹)-.

() الطبری: ۱۹۹/۱، عن عطاء السائب عن ابن سابط مرسلا)-

به په دوی کښې عدل وانصاف کوی او خما احکام به جاری کوی. نوددې نه مراد آدم ﷺ دې چه دده قائمقام دې. دالله ﷻ اطاعت او مخلوق کښې عدل او انصاف کولو کښې،لیکن فساد کولو او وینه تویولو والا خلیفه نه دې.

خویاد لرئی چه په دې ځائې کښې مراد خلافت دې. یوې زمانې د خلقو نه پس د بلې زمانې خلق راتلل. خلیفه د فعیله په وزن باندې دې،کله چه د یو نه پس بل د هغه قائمقام جوړ شی. عرب وائی (خلف فلان فلانا) (فلانې سړې د فلانې سړی خلیفه جوړ شو). لکه چه په قران پاك کښې دی چه مونږ د دوی نه پس تاسو په زمکه کښې خلیفګان جوړ کړئ چه تاسو څنګه عمل کوئی. او ددې وجې سلطان اعظم ته خلیفه وائی. څکه چه هغه دمخکښې بادشاه خلیفه وی. ابن اسحاق وائی چه مراد دا دې چه د زمکې ساکن یعنی د آبادولو والا.

حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه مخکښې په زمکه کښې جنات اوسیدل . هغوی په دې کښې فساد اوکړو او وینې ئې تونې کړې او قتلونه ئې اوکړل. بیا ابلیس اولیږلې شو نوده اودده ملګرو هغوی په وهلو وهلو سره جزیرو ته اوشړل او غرونو ته ئې اوشړل. بیا حضرت آدم ﷺ ئې پیدا کړو او په زمکه ئې د هغه د اوسیدو قابله کړه. نودوی د مخکښنو خلقو جانشین اوخلیفګان شو. نو د فرښتو د قول نه مراد دحضرت آدم ﷺ اولاد دې.کله چه دوی ته اووئیلې شو چه زه په زمکه کښې د دې اوسیدونکې مخلوق پیدا کوم. په هغه وخت کښې زمکه وه لیکن په دې کښې آبادی نه وه .دبعضې صحابه کرامو ؓ نه روایت دې چه چونکه الله ﷻ دوی ته معلومه کړې وه چه د حضرت آدم ﷺ اولاد به په دې کښې داسې داسې کارونه کوی نو هغوی ددې باره کښې تپوس اوکړو. اودا هم روایت دې چه دجناتو په فساد کولو هغوی د بنی آدم فساد قیاس کړو اودا سوال ئې اوکړو. حضرت عبدالله بن عمرو ؓ نه روایت دې چه د حضرت آدم ﷺ نه دوه زره کاله مخکښې جنات په زمکه کښې موجود وو. ابوالعالیه ؒ فرمائی چه فرښتې د چارشنبې په ورځ پیداکړې شوې او جنات د زیات په ورځ پیدا کړې شو او دجمعې په ورځ حضرت آدم ﷺ پیدا شو.دحسن ؒ او قتاده ؒ قول دې چه الله ﷻ دوی ته خبر ورکړې وو چه ابن آدم ﷺ به داسې داسې کوی نوپه دې بناء باندې هغوی وئیلې وو.

ابوجعفر محمد بن علی ؒ فرمائی سجل نومې یو فرښته ده چه دې سره هاروت او ماروت وو. دې ته هره ورځ درې ځل لوح محفوظ باندې دنظر اچولو اجازت وو. یو ځل دې دحضرت آدم ﷺ د پیدائش د امورو په غور مطالعه اوکړه نو پټ ئې خپلو دواړو ملګرو ته هم ددې خبر ورکړو. اوس کله چه الله ﷻ د خپلې ارادې د ښکاره کول بیان اوفرمائیل نو دې دواړو داسوا ل اوکړو.خو دا روایت غریب دې او صحیح منل ئې هم ممکن دی چه ابو جعفر ؒ دا د اهل کتاب یهود اونصاری نه اخستې وی. بهر حال دایو فضول روایت دې. او قابل تردید دې. والله اعلم.

بیا په دې کښې دی چه دوئ فرښتو دا سوال اوکړو.دا د قران روانی عبارت نه هم خلاف دی. دا روایت هم روایت شوې دې چه دا ویونکې فرښتې لس زره وې او هغه ټولې اوسیزلې شوې. دا هم اسرائیلی روایت دې او ډیر زیات غریب دې. ابن جریر ؒ فرمائی چه ددې سوال هغوی ته اجازت ورکړې شوې وو اودا هم وئیلې شوی وو چه دا مخلوق به نافرمان هم وی نو هغوی تعجب سره د مصلحت الهی معلومولو دپاره دا سوال اوکړو نه دا چه مشوره ئې واخستله. انکار ئې اوکړو یا ئې اعتراض اوکړو.

حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه کله د حضرت آدم ﷺ پیدائش شروع شو نو فرښتو اووئیل ناممکن ده. چې یو مخلوق زمونږ نه زیات بزرګان او عالمان شی. نو په دوی باندې داامتحان راغلو او هیڅوك د امتحان نه بچ نشو. د زمکې او آسمان هم امتحان اخستې شوې وو. او هغوی سرتیټ کړو او دالله ﷻ اطاعت ته ئې غاړه اینبودې وه. د فرښتو د تقدیس او تسبیح نه مراد دالله ﷻ پاکی بیانول او مونځ کول بې ادبئ نه بچ کیدل،لوئی عظمت وغیره کول،نافرمانی نه کول(سبوح قدوس) وغیره وئیل دی. د

قدوس معنی پاك ده ، پاكې زمكې ته مقدس ونیلې شي.د نبي كريم ﷺ نه سوال كيږي چه كوم يو كلام افضل دې؟نبي كريم ﷺ جواب كښې فرمائي چه هغه چه كوم الله ﷻ دخپلو فرښتو دپاره خوښ فرمائيلې دې (سبحان الله وبحمده) [1] (صحيح مسلم) نبي كريم ﷺ دمعراج په شپه په آسمانونو كښې د فرښتو دا تسبيح واوريدلو (سبحان الاعلى سبحانه وتعالى) [2]

**دخليفه انتخاب او ددې دوجوب شرعي حيثيت** :- قرطبي وغيره ددې آيت نه استدلال كوي چه دخليفه مقرر كول واجب دی چه هغه د خلقو د اختلاف فيصله كوي ، ددوی جنګونه ختموي ، دمظلوم نه بدله واخلي ، حدود قائم كړي د بدو نه خلق منع كړي او دوی ته زورنه وركړي، هغه لوئې لوئې كارونه چه بغير د امام د انجام نه نشي كيدلی. چونكه دا كارورنه واجب دی او دا بغير دامام نه نشي پوره كولې . او چه كوم څيز بغير د واجب نه نه پوره كيږي نوهغه هم واجب وي ددې وجې خليفه مقرر كول ثابت شو. امامت خو به د قران پاك د ظاهري لفظونو نه ملاويږي لكه څنګه چه د ا هل سنت والجماعت د يو ډلې د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په باره كښې هم دا خيال دې چه دهغوی نوم نبي كريم ﷺ د خلافت دپاره اخستې وو. يا قران اوحديث كښې دې طرف ته اشاره ده. لكه د اهل سنت والجماعت د خليفه اول په حقله دا خيال كوي. چه اشارتًا د هغوی ذكر نبي كريم ﷺ دخلافت دپاره كړې وو يا يو خليفه خپل خان نه پس بل څوك نامزد كړي. لكه څنګه چه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه لره خپل جانشين مقرر كړې وو. يائې د صالحانو كميټي جوړه كړې وي اود انتخاب كار ئې د هغوی په ذمه اچولې وي. لكه څنګه چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه كړی وو. يا اهل حل و عقد (يعني بااثره سرداران علماء،صلحاء وغيره) د دوی په بيعت باندې اجماع اوكړي.يا په دوی كښې څوك بيعت واخلي نود جمهوروپه نيز دده لازم نيول به واجب شي،امام الحرمين رحمه الله په دې باندې اجماع كړې ده والله اعلم.

يا څوك سړې په زور او جبر سره خلقو لره خپل ماتحت جوړ كړي. نوبياهم واجب كيږي چه دده په لاس باندې بيعت اوكړي چه اختلاف او فساد نه وي. امام شافعي رحمه الله په صفا لفظونو كښې ددې فيصله كړې ده ، په دې وخت د ګواهانو د موجودكيدو په وجوب كښې اختلاف دې. بعضې خو وائي چه دا شرط نه دې،اوبعضې وائي چه شرط دې.اودوه ګواهان كافي دی. د جبائي رحمه الله قول دې چه بيعت كولو والا او چه دچا په لاس باندې بيعت شوې وی د دې دواړونه علاوه څلور ګواهان پكار دی لكه څنګه چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه كړی وو چه دشوری شپږ اركان ئې مقرركړي وو. بيا هغوی عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ته اختيار وركړو اوهغوی د حضرت عثمان رضي الله عنه په لاس باندې د باقي څلورو په موجودګئ كښې بيعت اوكړو. په دې استدلال كښې كلام دې. والله اعلم.

**د امامت كبرى شرطونه**:-امام به سړې وی،آزاد به وي ، بالغ به وي ، عقل والا به وي ، مسلمان به وي ، عادل به وي ، مجتهد به وي، بينا به وي ، صحيح سالم به وي په اندامونوباندې، د جنګ د فنونو اود رائې نه به خبر وي، قريشي كيدل به واجب وي. اوهم دا صحيح قول دې. خو هاشمي كيدل او د خطا نه پاكيدل شرط نه دې. دا دوه شرطونه كلك رافضي مقرر كوي.

**د فاسق امام د معزوله كولو حكم**:- امام كه فاسق شي نو هغه معزول كول پكار دی كه نه ، په دې كښې اختلاف دې. او صحيح خبره داده چه معزول دې نه كړې شي. څكه چه په حديث كښې راغلي دی چه تر كومې پورې په كښې ښكاره كفر نه وي كتلې شوې ، چه دهغه د كفر كيدو ستا سره څه ظاهري دليل وی [3] داشان امام پخپله خپل خان معزوله كولې شي يا نه ؟په دې كښې هم اختلاف دې. حضرت حسن

---

[1] ) صحيح مسلم: كتاب الذكر والدعاء باب فضل سبحان الله وبحمده: ۲۷۳۱)-

[2] ) مجمع الزوائد : ۸۷/۱،)-

[3] ) صحيح بخاری : كتاب الفتن باب قول النبي ﷺ سترون بعدی امور تنكرونها: ۷۰۵۶، صحيح مسلم: ۱۷۰۹)-

بن علي ﷺ خان پخپله معزوله کړې وو. او امامت ئې حضرت امير معاويه ﷺ ته ورکړې وو، ليکن دا دعذر په وجه وو چه په دې باندې دهغه تعريف اوکړې شو.

**په يو وخت کښې يو امام جوړيدې شي:**-په مخ دزمکې يو نه زيات امامان په يو وخت کښې نشي کيدلې.نبي کريم ﷺ فرمائي کله چه ستاسو کارجمع شي اوس يو کس راشي اوستاسو مينځ کښې جدائي راوستل غواړي نوهغه قتل کړئ که هرڅوك وي (١).

د جمهورو هم دا مذهب دې او ډيرو بزرګانو نه په دې باندې اجماع شوې ده. چه په هغوي کښې يو امام الحرمين رحمه الله دې. دکراميه (شيعه ) قول دې چه په يو وخت کښې دوه او زيات امامان کيدېشي. لکه څنګه چه حضرت علي ﷺ او حضرت امير معاويه ﷺ دواړه د اطاعت لائق وو. دا ډله وائي چه کله په يو وخت کښې دوه يا دزياتو نبيانوراتلل جائزدي نود امامانو جائز کيده ولې نه دي؟ د نبوت مرتبه خو يقينًا دامام دمرتبې نه زياته ده.(ليکن په صحيح مسلم حديث کښې دي اوداتاسو مخکښې هم لوستلې دې چه نورو لره قتل کړئ خکه صحيح مذهب هم دادې چه کوم مخکښې بيان شو) امام الحرمين استاد ابواسحاق نه هم حکايت کړې دې چه هغه د دوؤ يا د زياتو امامانو مقرر کول په هغه وخت کښې جائز ګڼړي چه کله دمسلمانانو سلطنت ډير وسيع وي او څلورو واړو طرفونوته خور شوې وي او ددوؤ امامانويه مينځ کښې د ډيروملکونو فاصله وي. امام الحرمين په دې کښې په تردد کښې وو،د خلفاء بني عباس په عراق کښې اودخلفاء بني فاطمه په مصر کښې،اود خاندان بني اميه په مغرب کښې حکومتونه وو.خما په خيال دهغوي هم دا حال وو.ددې بسط اوتفصيل به انشاء الله په کتاب الاحکام کښې په مناسب مقام کښې رازي.

| وَعَلَّمَ | اٰدَمَ | الْاَسْمَآءَ | كُلَّهَا | ثُمَّ | عَرَضَهُمْ | عَلَى | الْمَلٰٓئِكَةِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوښودل (الله ) | آدم ته عليه السلام | نومونه | دټولو څيزونو | بيائي | وړاندې کړل | هغه | فرښتوته |

اوالله آدم ﷺ ته ټول نومونه (دهغه څيزونو) اوخودل (چه ورته ضرورت وو)بيا ئې هغه څيزونه فرښتوته وړاندې کړل

| فَقَالَ | اَنْۢبِـُٔوْنِىْ | بِاَسْمَآءِ | هٰٓؤُلَآءِ | اِنْ | كُنْتُمْ | صٰدِقِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوورته ئې اووئيل | اوښايئ ماته | نومونه | ددې څيزونو | که چرې يئ | تاسو | رښتني |

اووې وئيل چې اوس ماته ددې څيزونونومونه اوښائې که تاسو (پخپله دعوی) کښې رښتونې يئ

| قَالُوْا | سُبْحٰنَكَ | لَا عِلْمَ | لَنَآ | اِلَّا | مَا | عَلَّمْتَنَا | اِنَّكَ اَنْتَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اووئيل هغوی | پاکي ده تالره | نشته دې علم | مونږ لره | مګر | هغو مره | چې راکړې دې تامونږ ته | بيشکه ته ئې |

فرښتو اووئيل اې الله ته پاک ئې مونږ په هيڅ خبر نه يو بغير دهغې خبرونه چې تامونږته خودلې دي بيشکه ته

| الْعَلِيْمُ | الْحَكِيْمُ | قَالَ | يٰٓاٰدَمُ | اَنْۢبِئْهُمْ | بِاَسْمَآئِهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هر څيز پوهه | دحکمت خاوند ئي | اووئيل (الله) | اې ادمه | خبر ورکړه دوئ ته | د نومونو ددې څيزونو |

په هرڅۀ پوهه اودحکمتونومالک ئې الله اوفرمائيل اې ادم ته دوئ ته ددې څيزونونومونه اوښايه

| فَلَمَّآ | اَنْۢبَاَهُمْ | بِاَسْمَآئِهِمْ | قَالَ | اَلَمْ اَقُلْ | لَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نوکله چې | هغه خبرورکړو هغوی ته | د نومونو دهغه څيزونو | اووئيل (الله) | آيانه وؤ وئيلې ما | تاسوته |

نوهرکله چې هغه فرښتو ته د ټولونومونواوخودل نو الله ورته اوفرمائيل ولې ماتاسوته نه ووئيلي

(١) صحيح مسلم: کتاب الامارة باب حکم من فرق المسلمين: ١٨٥٢، ابوداود: ٤٧٦٢، نسائي: ٤١٩٦)-

| إِنِّيٓ أَعۡلَمُ | غَيۡبَ | ٱلسَّمَٰوَٰتِ | وَٱلۡأَرۡضِ | وَأَعۡلَمُ | مَا | تُبۡدُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چي زه پوهیږم | په پټو | دآسمانونو | او دزمکي | اوپوهیږم | په هغه څه | چي تاسو ئي ښکاره کوئ |
| چي څه دآسمانونو اوزمکي په پټورازونو ډیرښه پوهیږم اوستاسوپه سرګنده خبرو اوپه پټوخیالاتو | | | | | | |

| وَمَا | كُنتُمۡ | تَكۡتُمُونَ ۝ |
|---|---|---|
| اوپه هغه څه | چي تاسو ئي | پټوئ |
| هم پوهه یم (نوما چه د آدم د پیدانش کومه اراده کړي ده هغه صحیح ده | | |

**په فرښتو باندې د حضرت ادم ﷺ دفضیلت وجه**:- په دې خانې ددې خبرې بیان کیږي چه الله ﷻ په یو خاص علم کښې حضرت آدم ﷺ ته په فرښتو باندې فضیلت ورکړې دې. داواقعه د فرښتود سجدې کولونه پس ده لیکن دالله ﷻ حکمت چه د حضرت آدم ﷺ په پیدا کولو کښې وو او چه ددې علم فرښتو ته نه وو اودهغې اجمالی بیان په تیر شوی آیت کښې اوشو، ددې مناسبت په وجه ئې داواقعه مخکښې بیان کړه اود فرښتو سجده چه ددې نه مخکښې وه هغه ئې روستو بیان کړه. چه دخلیفه د پیدا کولو مصلحت او حکمت ظاهر شي او دا معلوم شي چه دا شرافت او فضیلت حضرت آدم ﷺ ته ملاؤ شو دا هغه علم چې فرښتې ددې نه عاجزه وې.

قوله تعالی:- وَعَلَّمَ ءَادَمَ ٱلۡأَسۡمَآءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمۡ عَلَى ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ

فرمائی چه حضرت آدم ﷺ ته مو ټول نومونه اوخودل یعنی دده دټول اولاد ،دټولو څناورو، دزمکې او آسمان،اوچې او لمدې ، آسونه ، خره لوښی،چرندو پرند ،فرښتې ستوری ر وغیره دټولو څیزونو نومونه (۱)امام ابن جریر ﷫ فرمائی چه د فرښتو او انسانانو نومونه ورته معلوم کړې شوی وو. څکه چه ددې نه پس لفظ د ﴿عَرَضَهُمۡ﴾ رازی. او عقل مندو خلقو دپاره رازی. خودا داسې معقول وجه نه ده چه په کوم خائې کښې ذی عقل او غیر ذی عقل جمع کیږي. په هغه خائې کښې چه کوم لفظ راوړې شي نو هغه د هوښیارو او عقل مندو خلقو دپاره راوړې شي. لکه قران پاك کښې دی چه ﴿أَنَّهُ خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٍ مِّن مَّآءٍ﴾ الله ﷻ ټول څناور د اوبونه پیدا کړی دی چه په دوی کښې بعضې په خیټه باندې کشیږی او بعضې په دوؤ پښو اوبعضې په څلورو پښو ،الله ﷻ چه څه غواړی نو پیدا کوی اوپه هر څیز باندې هغه ذات قادر دې. نو ددې آیت نه ظاهره ده چه غیر ذی عقل هم په دې کښې داخل دی خو صیغې ټولې د ذی عقل دی.

ددې نه علاوه ﴿عَرَضَهُنَّ﴾ هم د حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ په قرات کښې دی. اود حضرت ابی بن کعب ﷛ په قرات کښې ﴿عرضها﴾ هم دی. صحیح قول دادې چه د ټولو څیزونو نومونه ورته خودلې شوی وؤ ، ذاتی نومونه هم او صفاتی نومونه هم اودکارونو نومونه هم لکه د حضرت ابن عباس ﷛ قول دې چه د ګوزنر نوم ورته خودلې شوې وو.

**دقیامت په ورځ شفاعت کبری**:- په صحیح بخاری په کتاب التفسیر کښې ددې آیت په تفسیر کښې حضرت امام بخاری ﷫ حدیث راوړې دې چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه ایماندار به د قیامت په ورځ جمع شي او وائی به څه ښه به وې که مونږ څوك سفارشي جوړ کړې وې او الله ﷻ ته مو لیږلې وې. نو دوی ټول به حضرت آدم ﷺ ته ورشي،اوهغوی ته به اووائی چه ته زمونږ د ټولو پلار ئې ، الله ﷻ ته په خپل لاس پیدا کړې،دخپلو فرښتو سجده ئې درته اوکړه ، تاسوته ئې دټولو څیزونو نومونه اوخودل، ته دالله ﷻ په وړاندې زمونږ سفارش اوکړه چه مونږ ددې تکلیف نه راحت بیامومو. حضرت آدم ﷺ به ددې په آوریدوسره جواب ورکړی څه ددې قابل نه یم. حضرت آدم ﷺ ته به خپله ګناه یاده شي. تاسو

---

(۱) الطبری: ۱/۴۵۸)-.

حضرت نوح ﷺ ته ورشي: هغه ړومبې رسول دې چه هغه الله ﷻ د زمکې خلقو ته لیږلې وو. په دې آوریدوسره به ټول حضرت نوح ﷺ ته ورشي هغه به هم دا جواب ورکړی اود الله ﷻ د مرضۍ خلاف دخپل خوښې دپاره به ورته خپله دعا یاده شي او اوبه شرمیږي. او اوبه فرماني چه تاسو خلیل الرحمن (حضرت ابراهیم ﷺ ) ته ورشئ . دا ټول به دوی ته ورشي خو ددې خاني نه به ورته هم دا جواب ملاؤ شي. هغوی به ورته اوفرمائي چه تاسو حضرت موسیٰ ﷺ ته ورشئ چه هغه سره الله ﷻ کلام کړې دې. اوهغه ته نې تورات ورکړې وو. په دې آوریدو سره به ټول حضرت موسیٰ ﷺ ته ورشي او دوی ته به دا درخواست اوکړي. خو ددې خاني نه به ورته هم جواب ملاؤ شي. دوی ته به هم یو سړې بغیر د قصاص وژل یاد شي. او شرمنده به شي او فرماني به چه تاسو حضرت عیسی ﷺ ته ورشئ هغه دالله ﷻ بنده دې اود هغه رسول دې اوکلمة الله او روح الله دې. دا ټول به جمع شي او حضرت عیسی ﷺ ته به ورشي خو هغوی به هم دا جواب ورکړي چه څه ددې لائق نه یم. تاسو حضرت محمد ﷺ ته ورشئ چه دهغه ټول مخکښې روستی ګناهونه معاف دی. نودا ټول به ما ته راشي او څه به د خپل رب نه اجازت اوغواړم اوماته به اجازت ملاؤ شي. څه به دخپل رب په کتلو سره په سجده کښې پریوزم . ترکومې پورې چه الله ﷻ ته منظور وی نو په سجده کښې به پروت یم. بیا به آواز اوشي سر اوچت کړه سوال کوه هغه به پوره کولې شي ، وایه آوریدلې به شي ، شفاعت کوه هغه به قبلولې شي. څما دپاره به حد مقرر کړې شي څه به هغوی جنت ته رسوم اوبیا به راځم. بیا به خپل رب ته ګورم اوداشان سجده به کوم ،بیا به شفاعت کوم ،بیا به حد مقرر کولې شي. هغوی به جنت ته رسوم او په دریم ځل به بیا رازم. بیا په څلورم ځل به حاضر شم تر دې چه په جهنم کښې هغه خلق به پاتې شي چه کوم قران منع کړی وی او چه دهغوی دپاره همیشه دپاره جهنم واجب شوې وی ()(یعنی شرك اوكفر كولو والا) صحیح مسلم شریف نسائی ، اوابن ماجه وغیره کښې هم د شفاعت دا حدیث موجود دې. په دې حدیث کښې دا جمله هم ده چه خلق به حضرت آدم ﷺ ته اووائي چه الله ﷻ تاسو ته دټولو څیزونو نومونه خودلی دی .

**قوله تعالی:- قَالُوا سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا**

**د فرښتو د خپلې لاعلمۍ اقرار :-** بیا نې دا څیزونه فرښتوته پیش کړل او هغوی ته نې اوفرمائیل که تاسو په خپل قول کښې رښتونی یئ چه دټول مخلوق نه زیات علم والا تاسو یئ نویا په دې قول کښې چه الله ﷻ دې په زمکه خلیفه نه جوړوی رښتونی یئ نو ددې څیزونو نومونه اوښائی. دا هم روایت دی که په دې خبره کښې رښتونی یئ چه بنی آدم به په دې زمکه کښې فساد کوی او وینه به تویوی. نوددې نومونه اوښائی. لیکن بهتر قول ړومبې دې. ګویا دوی نی اورټل چه اووائې که تاسو د زمکې دخلافت لائق یئ اوانسانان نه دې نو ، هم تاسو څما تسبیح خوان یئ او اطاعت ګزار یئ او انسان نه دې،که دا رښتیا وی نو ددې څیزونو نومونه چه کوم ستاسو مخکښې دی اوښائی. اوکه تاسونې نه شئ خودلې نو پوهه شئ چه تاسو ته ددې موجوده څیزونو نومونه هم معلوم نه دی نو بیا دپاره د نورو څیزونو په باره کښې به تاسو ته څه علم وی.

فرښتو چه دا واوریدل نو دالله ﷻ پاکی او لوئی نې بیان کړه اود خپل علم د کمۍ اقرار نې شروع کړه او وې وئیل چه الله ﷻ تا چې څومره علم مونږ ته خودلې دې هغه هومره علم مونږ ته شته. انی الله ﷻ نه دټولو څیزونواحاطه کوونکې صرف ستا علم دې ، ته دهر څیز پیژندو والا او خپلو ټولو احکامو کښې حکمت والا چې چاته خودنه اوکړې نو هغه هم حکمت نه خالی نه وی. او چه چاته اونکړې نو هغه هم حکمت نه خالی نه وی نو حکمتونو والا او عدل والا نې.

[1]) صحیح بخاری : کتاب التفسیر سورة البقرة: ٤٤٧٦، صحیح مسلم: ١٩٣، السنن الکبری للنسائی: ابن ما جه: ٤٣١٧)-

**د تسبیح فضیلت**:- حضرت ابن عباس ﷛ فرمائی چه دسبحان الله معنی دالله ﷻ پاکی ده، چه هغه پاك ذات دهرې برائی نه پاك دې. حضرت عمر فاروق ﷛ ، حضرت علی ﷛ او نور صحابه کرامو ﷛ نه یو خل سوال اوکړې شو چه د ﴿لااله الاالله﴾ خو مونږ ته پته ده لیکن د ﴿سبحان الله﴾ څه معنی ؟ نو حضرت علی ﷛ جواب ورکړو چه دا کلمه الله ﷻ دخپل ځان دپاره خوښه کړې ده . اوپه دې سره هغه پاك ذات خوشحالیږی اوددې وئیل هغه پاك ذات ته خوښ دی. حضرت میمون ﷫ فرمائی چه په دې کښې دالله ﷻ تعظیم دې او دټولو بدو نه دپاکوالی بیان دې.

کله چه ددوی نه تپوس اوکړې شو نو هغوی اوخودل. چه ستا نوم حضرت جبریل ﷺ دې او ستا نوم حضرت میکائیل ﷺ دې او ستا نوم حضرت اسرافیل ﷺ دې ،تر دې چه د کارغه ، باز وغیره ټول نومونه. کله چه د حضرت آدم ﷺ دا فضیلت فرښتوته معلوم شو نو الله ﷻ اوفرمائیل ګورئی ما تاسوته مخکښې نه وو وئیلی چه هم څه د ټولو پټو او ښکاره څیزونو پیژندونکې یم او په بل مقام فرمائی ﴿وَاِنْ تَجْهَرْ بِالْقَوْلِ فَاِنَّهٗ يَعْلَمُ السِّرَّ وَاَخْفٰى﴾ که ته په اوچت آواز اووائې ( که نه وائې) الله ﷻ د هر پټ او ښکاره څیزونو پیژندونکې دې او په بل ځائې کښې فرمائی ﴿اَلَّا يَسْجُدُوْا﴾ دا خلق ولې هغه الله ﷻ ته سجده نه کوی چه هغه ته د آسمانونواود زمکې ټولو څیزونه ښکاره کوونکې دې اوستاسو هر پټ او ښکاره څیزونه پیژنی. الله ﷻ یوازې یو معبود دې اوهم هغه دعرش عظیم رب دې چه څه تاسو ظاهروئی اوتاسوپټوئی ، هغه ماته معلوم دی. مقصود د فرښتو دا قول چه دې چې په زمکه کښې ادم ولې پیدا کوې ،دوی به په زمکه کښې فساد کوی او وینه به تویوی. دا خو هغه قول وو چه هغوی ظاهر کړې وو. حضرت ابن عباس ﷛ ،حضرت ابن مسعود ﷛ او نور صحابه کرام ﷛ او سعید بن جبیر ﷫ ، مجاهد ﷫ ،سدی ﷫ ، ضحاك ﷫ او ثوری ﷫ نه هم داقول نقل دی. ابن جریر ﷫ هم دا قول خوښ کړې دې. اود ابوالعالیه رحمة الله علیه، ربیع بن انس ﷫ ، حسن ﷫ او قتاده ﷫ قول دې چه د دوی پټه خبره ددوی دا خبره وه چه کوم مخلوق هم پیدا کوې مونږ د هغوی نه زیات عالمان او زیات بزرګان یو ، خو دې نه پس ثابته شوه او پخپله هغوی ته هم معلومه شوه چه حضرت آدم ﷺ ته په علم او کرم دواړو کښې فرښتو باندې فوقیت حاصل دې. عبدالرحمن بن زید ﷫ فرمائی چه الله ﷻ فرښتوته اوفرمائیل چه څنګه تاسو ددې څیزونو دنومونونه بې خبره یې نوداشان تاسو ته ددې هم پته نشته چه په دوی کښې به ښه او خراب هر رنګه خلق وی ، فرمانبردار به هم او نافرمانه به هم وی ، اوما مخکښې هم لیکلی دی چه زه جنت او دوزخ دواړه ډکوم. لیکن تاسوته ما ددې خبر درنکړو. اوس کله چه فرښتو آدم ﷺ ته ورکړې شوې دا علم اوکتلو نو ده دبزرګئ اقرار ئې اوکړو.

ابن جریر ﷫ فرمائی چه دټولو نه اعلی قول د حضرت ابن عباس ﷛ دې چه د آسمان او زمکې د غیبو علم ،ستاسو د ظاهراوباطن علم ، ددوی د ظاهر اوباطن قول او د ابلیس باطنی مکر اوغرور الله ﷻ ته معلوم وو. په دې کښې د پټولووالا صرف یو ابلیس وو خو صیغه ئې د جمعې راوړه. خکه چه په عربو کښې دا دستور دې اوددوی په کلام کښې هم دا خبره موندې شی چه دیو یا د بعضو کسانو کار نسبت هم یو ته کوی ،هغوی وائی چه لښکر اووهلې شو یا دوی ته شکست اوشو حالانکه شکست او قتل د یویادبعضو کیږی او صیغه د جمعې راوړې شی. دبنو تمیم یو سړی نبی کریم ﷺ ته د نبی کریم ﷺ د حجرې دشانه آواز کړې وو(^۱)نوپه قرآن پاك کښې دهغه بیان په دې لفظونو سره دې چه ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يُنَادُوْنَكَ مِنْ وَّرَآءِ الْحُجُرٰتِ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ﴾ چه کوم خلق تاسو ته د حجرې دشانه آوازونه کوی. نو اوګورئی آواز کوونکې یو وو او صیغه د جمعې راوړې شوه . دا شان ﴿وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ﴾ کښې هم په خپل زړه کښې بدی پټوونکې صرف یو کس ابلیس وو لیکن صیغه د جمعې راوړې شوه.

---

[۱] (احمد:۳/۴۸۸)-

| | | |
|---|---|---|
| وَإِذْ | قُلْنَا | لِلْمَلٰٓئِكَةِ |
| اوياده كړه كله چې \| | اوونيل مونږ \| | فرښتو ته |
| او(بيا) مونږ فرښتوته اوونيل | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اسْجُدُوْا | لِاٰدَمَ | فَسَجَدُوْٓا | اِلَّآ اِبْلِيْسَ ط | اَبٰى | وَاسْتَكْبَرَ ق | |
| چې سجده اوكړئ \| | آدم ته \| | انو هغوئ سجده اوكړه \| | خو شيطان اونكړه \| | انكار اوكړو \| | هغه اولونى ئې اوكړه | |
| چې آدم ته (د مشرئ) سجده اوكړئ انوبغير د ابليس نه نوروټولوسجده اوكړه هغه انكاراوكړو اولونى ئې اوكړه | | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| وَكَانَ | مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ۞ | |
| اوشو \| | د \| | نافرمانونه \| |
| اود كافرانو په ټولګى كښې شمير شو \| | | |

قوله تعالى:- وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ

**د فرښتو حضرت ادم عليه السلام ته سجده :-** دحضرت آدم ﷺ ډيره لويه بزرګى ذكر كوى او الله ﷻ په انسانانو باندې خپل احسان ظاهره وى او خبر وركوى چه هغه ذات فرښتو ته حكم اوكړو چه هغوى حضرت آدم ﷺ ته سجده اوكړى. ددې په دلالت كښې ډير زيات احاديث دى، يو د شفاعت حديث اوس بيان شو. په دويم حديث كښې دى چه حضرت موسى ﷺ الله ﷻ ته درخواست اوكړو چه ائي الله ﷻ خما ملاقات حضرت آدم ﷺ سره ا وكړه ، هغه په خپله هم دجنت نه راووتلواومونږ ئې هم د جنت نه راوويستلو. هر كله چه دواړه پغمبران جمع شو نو حضرت موسى ﷺ اوفرمائيل ته هغه آدم ﷺ ئې چه الله ﷻ تاسو په خپل لاس سره پيداكړئى او خپل روح ئې پوك وهلو او خپلو فرښتو باندې ئې تاسو ته سجده اوكړه. ()(آخره پورې) پوره حديث به نزدې ذكر كړې شى. انشاء الله .

حضرت ابن عباس ﷺ فرمائى چه ابليس دفرښتو د يوې قبيلې نه وو. چه د اور د شغلونه پيدا شوې وو. د ابليس نوم حارث وو او دجنت خازن وو او ددې قبيلې نه سوا باقى ټولې فرښتې دنور وې. قران پاك هم دجناتو د پيدائش ذكر كړې دې. اوفرمائى چه﴿مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ نَّارٍ﴾ د اور شغلې چه په تيزئ سره اوچتيږى دې ته ﴿مَارِجٍ﴾ وائى. چه ددې نه جنات پيداكړې شوى وو. او انسان د خاورې نه پيدا كړې شوې وو. په مخ دزمكې دټولونه مخكښې جنات اوسيدل ،هغوى فساد او وينه تويول شروع كړل نوالله ﷻ ابليس ته دفرښتو لښكر وركړو ور وې ليږلو ،دې ته جنات وئيلې شى. ابليس دوى سره جنګونه اوكړل او دوى ئې سمندرونواو جزيرواو غرونوته اوشړل. اودابليس په زړه كښې دا تكبر پيدا شو چه ماداكار كړې دې. چه بل چا اونه كړې شو. د زړه ددې بدنى علم صرف الله ﷻ ته وو ،كله چه پروردګار عالم اوفرمائيل چه خه په زمكه كښې يو خليفه جوړوم نو دې فرښتو عرض اوكړو چه بيا داسې خلق ولې پيدا كوې چه د مخكښنو خلقو په شان به فساد كوى او وينې په تويوى. نو دوى ته ئې جواب وركړو چه ما د هغه څه پته ده چه تاسو ته د هغې پته نشته دې. يعنى د ابليس په زړه كښې چه كوم غرور او تكبردې دهغې علم ماته دې تاسوته ددې خبر نشته .بيا دحضرت آدم ﷺ خاوره اوچته كړې شوه چه ډيره مزيداره اوښكلې وه. كله چه دده خميره اوچته كړې شوه نو ددې نه الله تعالى حضرت آدم ﷺ پخپله پيدا كړو. او تر څلويښتو ورخو پورې هم داشان ډهانچه پرته وه. ابليس به راتلو او دې ته به ئې لتې وركولې او كتل به ئې چه دا څه مره خاوره ده لكه روست څيز وى ،بيا به په دې (ډهانچه) كښې د خلې دسورى نه داخل

---

[1] صحيح مسلم :كتاب القدر باب حجاج آدم وموسى ﷺ : ۲۶۵۲ ، ابوداود: ۴۷۰۲)-

شو او د روستو سوري په لار به اووتلو اوبيا به ددې په خلاف ورننوتلو. او وئيل به ئې چه په حقيقت کښې دا څه څيز نه دې اوکه څه په ده مسلط شم نو دې به برباد کړم او که دې په ماباندې مسلط کړې شي نو څه به بالکل دا نه منم.

**په حضرت ادم ﷺ باندې دالله ﷻ احسانات** :- بياکله چه الله ﷻ په دې کښې روح پوك وهلو او هغه د سرد طرفنه لاندې طرفته راغلو نوچه کوم کوم ځائې ته اورسيدو نو هغه ځايونه غوښنه او وينه شو . کله چه نامه پورې روح راورسيدو نو حضرت آدم ﷺ خپل جسم اوکتلو او ډير خوشحاله شو او زر پاسيدو ليکن لاندې حصې ته ئې روح نه وو رسيدلې ، ددې وجې پانه سيدو. هم ددې تيزئې بيان په دې آيت کښې دې ﴿وَكَانَ الْإِنْسَانُ عَجُولًا﴾ يعنى انسان بې صبره او جلدباز دې. نه خويه خوشحالۍ باندې صبر کولې شي اونه په غم. هرکله چه روح ئې جسم ته اورسيدو نو انتوشې ورته راغلو نو وې فرمائيل چه ﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ نوالله ﷻ ورته جواب ورکړو چه ﴿ يرحمك الله ﴾بيا صرف د ابليس ملګرو او فرښتو ته اووئيلې شو چه آدم ﷺ ته سجده اوکړئى نو هغه ټولو سجده اوکړه خو ابليس اونکړه ، هغه نه غرور اوتکبر ظاهر شو.ده او نه منلو او دسجدې نه ئې انکار اوکړو او وې وئيل چه څه دده نه بهتر يم ، دده نه په عمر کښې زيات يم اودده نه قوى يم اومضبوط يم ، دې دخاورې نه پيدا شوې دې او څه د اور نه جوړ کړې شوې يم. او اوردخاورې نه قوى دې اوپه دې انکار باندې الله ﷻ دې دخپل رحمت نه نا اميده کړو او هم ددې وجې ده ته ابليس اووئيلې شو. دده د نافرمانۍ په سزا کښې دې ئې شيطان جوړ کړو.
بيا ئې حضرت آدم ﷺ ته دانسانانو،څناورو،زمکې،سمندر،غرونو وغيره نومونه اوخودل او دا ئې فرښتوته وړاندې کړل چه کومې ابليس سره وې او د اورنه پيدا کړې شوې وې.

قوله تعالى:- فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِيْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ

**دفرښتو نه تپوس کول**:-اوهغوى ته ئې اوفرمائيل چه که تاسو په دې خبره کښې رښتونى يئ چه څه به په دې زمکه کښې خليفه جوړوم . نوماته ددې څيزونو نومونه اوښايئ . کله چه دې فرښتو اوکتل چه زمونږ په مخکښې خبره الله ﷻ ناراض شوې دې نو وې وئيل چه اې الله ﷻ ته ددې خبرې نه پاك ئې چه ستانه سوابل څوك غيب پيژنى. خمونږ توبه ده او اقرار دې چه مونږ غيب نه پيژنو. مونږ ته خو صرف د هغه څيزونو علم شته دې چه ته راته اوښائې لکه تا ﷻ د ددوى نومونه صرف حضرت آدم ﷺ ته خودلى دى.اوس الله ﷻ حضرت آدم ﷺ ته اوفرمائيل چه ته ددې ټولو څيزونو نومونه اوښائې. نوهغوى اوخودل. نو وې فرمائيل اې فرښتو ! آيا ماتاسوته نه وو وئيلى چه هم زه صرف په آسمانونواو زمکه کښې دټولو څيزونو خبر لرونکې يم بل څوك نشته دې. څه پټ څيزونه داسې پيژنم لکه څنګه چه ښکاره څيزونه پيژنم. يعنى د ابليس کبراو غرور هم پيژنم حالانکه تاسوددې ټولو نه بې خبره يئ. ليکن دا قول غريب دې او په دې کښې ډيرې خامۍ دى . که مونږ د بيل بيل بيان اوکړو نومضمون به ډير اوږد شى.اوحضرت ابن عباس ﷺ پورې ددې سند هم هغه دې چه دچا نه دهغه مشهورتفسير روايت شوې دې. يو بل اثر هم داشان روايت شوې دې په هغې کښې څه کمې زياتې شته دې. او په هغې کښې دا هم دى چه د زمکې خاورې اخستلو دپاره حضرت جبريل ﷺ لاړو نو زمکې اووئيل چه څه دالله ﷻ پناه غواړم چې هسې نه ته څما نه څه کم کړې. هغه واپس لاړو بيا ملك ا لموت راغلو ،هغه هم دا اووئيل خوهغه ورته دا هم اووئيل چه څه هم دالله ﷻ پناه غواړم چه زه د الله ﷻ حکم پوره کولونه بغير لاړشم. نوهغوى دټولې زمکې نه يويو موټې خاوره واخستله،دخاورې رنګ په بعض ځايونو کښې سور او په بعضو ځايونو کښې سپين وو اوپه څه ځائې کښې تور وو،نو هم په دې وجه د انسانانو رنګونه هم رنګ په رنګ دى. ليکن دا روايت هم د بنى اسرائيلو نه دې،غالبًا په دې کښې ډيرې خبرې د روستو خلقو ملاؤ شوى دى دصحابى بيان نه دې او که دصحابى قول هم وى نو بياهم هغوى به دبعضو روستو کتابونو نه اخستې وى. والله اعلم.

**ابلیس په خطاب کښې شامل وو:**-امام حاکم په خپل مستدرك کښې ډېر داسې روايات ليکلی دی او ددې سند ئې په شرط بخاری باندې وئيلې دې ()مطلب دادې کله چه الله ﷻ فرښتو ته حکم اوکړو چه تاسو حضرت آدم ﷺ ته سجده اوکړئ نو په دې خطاب کښې ابليس هم داخل وو. اګر چه ددوی نه نه وو نو ددوی پشان وو او ددوی په شان کارونه ئې کول. ددې وجې په دې خطاب کښې داخل وو. او بيا ئې دنافرمانئ سزا اوموندله. ددې تفسير به انشاء الله په كان من الجن کښې راشي.

حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه د نافرمانئ نه مخکښې هغه دفرښتونه وو. دده نوم عزازيل وو ، دده استوګنه په زمکه باندې وه او دده اجتهاد اوعمل ډېر زيات وو نو ددې په وجه دده په دماغو کښې غرور وو. او دده دجماعت اودده تعلق د جناتوسره وو ([2])دده څلور وزرې وې. دجنت خازن وو. د زمکې اوآسمان سلطان وو. حضرت حسن ﷺ فرمائي چه ابليس فرښته نه وه ، دده أصل دجناتو نه دې ، لکه : حضرت آدم ﷺ أصل انس دې ،ددې اسناد صحيح دی .دعبدالرحمن بن زيد بن اسلم ﷫ او شهر بن حوشب ﷫ هم دا قول دې .

سعدبن مسعود ﷫ فرمائي چه فرښتو كله جنات اووهل نو بيا ئې دا جنات قيد كړې او آسمان ته ئې بوتلې وو اوپه هغه ځائې د عبادت په وجه پاتې شو ، حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه مخکښې الله ﷻ يو مخلوق پيدا کړو،اوهغوی ته ئې اووئيل چه حضرت آدم ﷺ ته سجده اوکړې خو هغوی انکار اوکړو نو په دې وجه هغوی اوسيزلې شو ، بيا بل مخلوق ئې پيدا کړو اودهغوی هم دا حشر وو ، بيا دريم مخلوق ئې پيدا کړو او هغوی د حکم تعميل اوکړو ليکن دا اثر هم غريب دې. اوددې اسناد هم تقريباً صحيح نه دی. په دې کښې يو راوی مبهم دې ، په دې وجه دا روايت قابل حجت نه دې.د﴿كَٰفِرِينَ﴾ نه مراد نافرمان دی.د ابليس شروع هم په كفر او ضلالت باندې وه ،خو ورځې صحيح وو خو بيا په خپل اصليت راغلو.دسجدې کولو حکم پوره کول دالله ﷻ حکم منل او دالله ﷻ اطاعت کول او د حضرت آدم ﷺ اکرام وو.

**ادم ته د سجدې نوعيت:**- بعضې خلق وائی چه دا سجده د سلام اوعزت او اکرام وه. لکه څنګه چه د حضرت يوسف ﷺ باره کښې ارشاد دې چه هغوی خپل پلار په تخت باندې کينولو او هغوی ټول په سجده پريوتل. اوحضرت يوسف ﷺ اوفرمائيل چه ائې پلاره هم دا خما دهغه خوب تعبير دې چه خما رب دارښتيا کړو.په مخکښوامتونو کښې سجده کول جائز وو. خو څمونږ په دين کښې دا منسوخ شوه.

**دمعاذ ﷺ نبی کريم ته د سجدې کولو درخواست:**-حضرت معاذ ﷺ فرمائي چه ما دشام خلق اوليدل چه هغوی به خپلو سردارانو اوعالمانو ته سجده کوله نو نبی کريم ﷺ ته ئې درخواست اوکړو چه تاسو ددې زيات حقداريئ چه مونږ تاسوته سجده اوکړو.نونبی کريم ﷺ اوفرمائيل که ما اجازت کولې چه يو انسان دې بل انسان ته سجده اوکړی نو ښځو ته به مې حکم کړې وې چه خپلو خاوندانوته دې سجده کوی. ځکه هغوی په دوی باندې ډېر زيات حق دار دې.امام رازی دې ته ترجيح ورکړې ده (3)

بعضې وائی چه سجده دالله ﷻ دپاره وه حضرت آدم ﷺ ورته دقبلې په طور سره وو لکه څنګه چه په قران پاك کښې ارشاد دې چه﴿أَقِمِ الصَّلَوٰةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ﴾ خو په دې کښې نظر دې او د رومبی قول زيات ظاهر کيدل صحيح دی ځکه چه دهغه د ذات حکم وو. امام رازي ﷫ هم دې قول ته قوی وئيلی دی او فرمائي چه ددې نه سوا دواړه اقوال ضعيف دی.يو خو دحضرت آدم ﷺ په طور د قبلې چه په دې کښې

[1] ) حاكم : ۲۶۱/۲، وسنده صحيح وصححه الحاكم ووافقه الذهبی)-
[2] ) الطبری:۵۰۲/۱)-
[3] ) ابن ما جه كتاب النكاح ، باب حق الزوج على المراة : ۱۸۵۳، وسنده حسن وصححه ابن حبان (الموارد:۱۲۹۰) والحاكم (۱۷۲/٤) ووافقه الذهبی)-

دوی ته څه لوئي شرف نه حاصليږي. دويم تاويل دا دې چې د سجدې نه مراد عاجزه کيدل دی ددې نه د تندې په زمکه لګول او حقيقي سجده کول مراد نه دی خو دا دواړه تاويلونه ضعيف دی.
حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه دټولو نه مخکښې هم دا تکبر د ابليس نه شوې وو. په صحيح حديث کښې دی چه د چا په زړه کښې دغوښت ددانې هومره هم کبر وی نوهغه به جنت ته نه داخليږي ، هم د دې تکبر په وجه دابليس په غاړه د لعنت هار واچولې شو او درحمت نه مايوسه شو دالله ﷻ دغضب لاندې راغلو (ا)په دې ځائې کښې د (كَانَ) معنی (صَارَ) هم اوخودلې شوه لکه څنګه چه په ( فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِيْنَ۝ ) او په ( فَتَكُوْنَا مِنَ الظّٰلِمِيْنَ۝ ) کښې دی. دشاعرانو په شعرونو کښې هم ددې ثبوت شته دې نو معنی هم داشوه چه هغه کافرشو.ابن فورك رحمه الله وائي چه هغه دالله ﷻ په علم کښې دکافرو نه وو.
قرطبي رحمه الله هم دې ته ترجيح ورکړې ده.او په دې ځائې کښې يومسئله بيان فرمائي چه ديوکس دلاس نه څه کرامتونه ښکاره شي نودده دولی کيدو ثبوت نه دې اګر چه بعضې صوفيان او رافضيان ددې خلاف دی. څکه چه مونږ ديو خبرې د چا دپاره فيصله نشو کولې چه هغه دايمان په حالت کښې الله ﷻ ته ملاو شو.دې شيطان ته اوګورئی ،ولی نې جوړ کړې وو او فرښته جوړه شوې وه . ليکن آخر د کفر او کفارو سردار شو ،
**خارق عادت د نبوت خاصه نه ده:-** ددې نه علاوه داسې خلاف عادت او عقل نه خلاف خبرې چه په ظاهره کرامات په نظر راځي ،اولياء الله نه سوا د نورو خلقونه هم کيږي بلکه دفاسق ، فاجر،مشرك او کافر نه هم دا ظاهريږي.نبي کريم ﷺ په خپل زړه کښې (فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ۝ ) دا آيت مبارك پټ کړواوکله چه نې دابن صياد نه تپوس اوکړوچه اووايه ما څه پټ کړی دی؟نوهغه ونيلی وو چه دخان (۲) بعضې حديثونو کښې دی چه دغصې په وخت کښې به دده بدن دومره پلن شو چه دده په و جه به ټونه لاره بنده شوه. حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه دې اوژولو(۳)د دجال داسې ډيرې خبرې هم په احاديثو کښې واردشوی دی لکه دده دآسمان نه باران ورول،د زمکې نه پيداوار زرغونول، د زمکې د خزانو پسې لګيدل،يو نوجوان وژل اوبيا هغه ژوندی کول وغيره (۴)حضرت ليث بن سعد رحمه الله او حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي که تاسو څوك اووينئ چه په اوبو باندې روان دې او په هواګانو کښې الوزی نو دې ولی مه ګنړئ تر کومې پورې چه دده ټول اعمال او افعال دحديث مطابق اونه ګورئی. ددې سجدې حکم دزمکې او آسمان ټولو فرښتو ته وو. اګر چه ديو ډلې قول دې چه صرف د زمکې فرښتو ته دا حکم وو. ليکن دا صحيح نه دی. په قران پاك کښې دی چه (فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ۝)يعنی دابليس نه سوا ټولوفرښتوسجده اوکړه .نواول خودجمعې صيغه راوړل اوبيا ( كُلُّهُمْ) نه تاکيد کول اوبيا (اَجْمَعُوْنَ۝) بيا صرف ابليس استثناء کول ، د دې څلورو واړو وجوهاتو په وجه صفا ظاهره ده چه دا حکم عام وو. والله اعلم.

| وَزَوْجُكَ | اَنْتَ | يٰۤاٰدَمُ اسْكُنْ | وَقُلْنَا |
|---|---|---|---|
| اوبی بی ستا | ته | اے آدمه وسيږه | بيا اوونيل مونږ |
| (د دې نه پس ، اومونږ حضرت آدم ته اوونيل چې ته اوستا جوړه | | | |

۱) صحيح مسلم : کتاب الايمان باب تحريم الكبر وبيانه: ۹۱)-
۲) صحيح بخاري : کتاب الجنائز باب اذا سلم الصبي فمات.....۱۳۵٤، صحيح مسلم: ۲۹۳۰)-
۳) صحيح بخاري : کتاب الفتن، باب ذكر ابن صياد: ۲۹۳۲)-
٤) صحيح بخاري : کتاب الفتن باب الذكر الدجال : ۷۱۲۲، صحيح مسلم، کتاب الفتن باب الذكر الدجال: ۲۹۳۷)-

| الْجَنَّةَ | وَكُلَا | مِنْهَا | رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا | وَلَا | تَقْرَبَا |
|---|---|---|---|---|---|
| په جنت کښې | اوخورئ دواړه | ددې جنت نه | پريمانه هرچرته چې | مو خوښه وي | اومه نزدې کيږئ |
| په جنت کښې اوسيږئ او چې دکوم ځائې نه موخوښه وي خوراکونه کوئ اوفلانئ ونې ته مه ورنژدې | | | | | |

| هٰذِهِ الشَّجَرَةَ | فَتَكُونَا | مِنَ الظّٰلِمِيْنَ | فَأَزَلَّهُمَا | الشَّيْطٰنُ |
|---|---|---|---|---|
| دې ونې ته | گنې شئ به تاسو دواړه | د ظالمانو نه | آخر ولمسول دواړه | شيطان |
| کيږئ گنې (که ميوه مو اوخوړله نو) په ځان به زياتې اوکړئ نوشيطان دوی دواړو ته د هغې ونې لغزش ورکړو | | | | |

| عَنْهَا | فَأَخْرَجَهُمَا | مِمَّا | كَانَا | فِيْهِ | وَقُلْنَا | اهْبِطُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دغه ونې ته | اوراوې ويستل دواړه | دهغه حالت نه | چې وو | په هغې کښې | اوووئيل مونږ | کوز شئ تول |
| اودوی ئې د هغه نعمتونو نه راويستل چه دوی په کښې وو اومونږورته اوونيل چې (لاندې زمکې ته) کوز شئ | | | | | | |

| بَعْضُكُمْ | لِبَعْضٍ | عَدُوٌّ | وَلَكُمْ | فِي الْأَرْضِ | مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| ځينې ستاسو به | دپاره دنورودپاره | دشمنان وي | اودې ستاسو دپاره | په زمکه کښې | ځائې داستوګنې اوفائده |
| (چه کله کوز شئ نو) تاسوبه ديوبل دښمنان يئ اوستاسودپاره د يو مقرر وخته پورې په زمکه باندې | | | | | |

| إِلٰى حِيْنٍ |
|---|
| دخاص وخته پورې |
| اوسيدل دي |

**قوله تعالى:- وَقُلْنَا يٰۤاٰدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ**

**د حضرت ادم ﷺ اوبي بي حواء جنت ته داخلول:-** دحضرت آدم ﷺ دايو بله بزرگي بيانيږي چه په فرښتو سره د سجده کولو نه پس ئې هغه جنت کښې اوساتلو اودهر څيز ئې رخصت ورکړو. د ابن مردويه حديث کښې دي چه حضرت ابوذر‌ﷺ يوځل د نبي کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چه يارسول الله ﷺ آيا حضرت آدم ﷺ نبي وو؟ نبي کريم ﷺ فرماني چه آو نبي هم اورسول هم بلکه الله ﷺ دوی سره مخامخ په مخامخ خبرې اوکړې او دوی ته ئې اوفرمائيل چه ته اوستا ښځه په جنت کښې اوسيږئ (1)دعامو مفسرينو خيال دې چه په آسمانی جنت ئې دوی اوسول. ليکن معتزله او قدريه وائي چه دا جنت په زمکه باندې وو. ددې بيان به په سورة اعراف کښې انشاء الله راشي.

ددې قرآني عبارت نه هم معلومه شوه چه په جنت کښې داوسيدونه مخکښې حضرت حوا پيدا کړې شوې وه. محمد بن اسحاق ﷺ فرماني چه داهل کتابو وغيره عالمانو نه د حضرت ابن عباس ﷺ يو روايت شوې دې چه په ابليس باندې د غصې او لعنت کولو نه پس ئې د حضرت آدم ﷺ علم ښکاره کړو او بيا ئې په دوی باندې پرکالي راوستلې شوه اودده د ګسې پوښتئ نه ئې حوا پيدا کړه. هرکله چه دوی سترګې پرانيستې او حضرت آدم ﷺ هغه اوکتلو نو د خپلې وينې اوغوښې په وجه ئې هغې سره محبت پيدا شو،بيا الله ﷺ حضرت آدم ﷺ ته داپه نکاح کښې ورکړه.او دوی ته ئې په جنت کښې دپاتې کيدو حکم ورکړو.بعضې وائي چه حضرت آدم ﷺ جنت ته داخليدو نه پس حضرت حواپيدا شوه.دحضرت ابن عباس ﷺ او حضرت ا بن مسعود وغيره صحابه کرامونه نقل دی چه د ابليس د جنت

---

(1) صحيح ابن حبان ( الاحسان : ٦١٥٧، دويمه نسخه: ٦١٩٠) وسنده صحيح)-

نه دوتلو نه پس حضرت آدم ﷺ ته په جنت کښې خاني ورکړې شو خو یوازې وو. نو په دې وجه په خوب کښې د دوی د ګسې پوښتۍ نه حضرت حوا پیدا کړې شوه. کله چې بیدار او دانې اوکتله نو تپوس نې اوکړو ته څوك نې ؟ او ولې پیدا کړې شوې نې ؟ حوا اوفرمائیل چه څه یوښځه یم.اوستاسو دتسکین او ستاسوسره اوسیدو دپاره پیدا کړې شوې یم. نو زر ترې فرښتوتپوس اوکړو چه ددې نوم څه دې؟آدم ﷺ اوفرمائیل حوا. نوهغوی تپوس اوکړو چه ددې نوم څه وجه ده؟ وې فرمائیل ځکه چه دادیو ژوندی نه پیدا شوې ده. نو هم په دې وخت کښې دالله ﷻ آواز راغلو.چه انې آدم ﷺ اوس ته اوستابی بی دې په جنت کښې په آرام او اطمینان سره اوسیږئ اوچه څه غواړئ نوهغه خورئ اوڅکئ:

قوله تعالى:- وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظّٰلِمِينَ

**دوونې د نزدیکت نه ممانعت**:-یو خاص ونې نه منع کول دا د امتحان په طور وو.بعضې وانی چه داد انګورونیلې وه.څوك وانی چه دا د غنمو ونه وه ، څوك وانی چه د سنبله وه. څوك وانی چه دا دقجورې ونه وه. څوك وانی چه دا انځر وو. څوك وانی د دې ونې په خوراك سره انسانی حاجت پیدا کیدو او دا په جنت کښې نه وو. څوك وانی چه ددې ونې خوراك سره ژوند همیشه کیدو. ابن جریر ﷫ فرمانی چه یو ونه وه چه دهغې نه الله ﷻ منع فرمائیلې وه. نه دقران پاك نه ددې تعین ثابت دې اونه په څه صحیح حدیث کښې دی. اوپه مفسرینو حضراتو کښې اختلاف دې.اوددې په معلومولو کښې څه فانده نشته اوپه نه معلومولوکښې څه نقصان نشته دې. نوېدې کښې مونږ ته دمحنت کولو څه ضرورت دې. الله ﷻ ته ددې ښه علم دې.امام رازی ﷫ وغیره هم دافیصله کړې ده اوهم داخبره نې صحیح هم معلومیږی

قوله تعالى:-فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ

د (عَنْهَا) د ضمیر مرجع:-د ( عَنْهَا) ضمیر مرجع بعضو جنت ونیلې او بعضو شجره.یو قرات د ( فَأَزَالَهُمَا) هم دې. نو معنی نې داشوه چه ددې جنت نه دوی دواړه بیل شو او دویمه معنی دا شوه چه هم ددې ونې په وجه شیطان دوی لره دهوکه کړل.

قوله تعالى:-وَقُلْنَا اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ

**زمکه باندې د انسانی ژوند اغاز** :-لفظ د(عن) د سبب معنی کښې هم راغلې دې . دده د نافرمانۍ په وجه د ده نه جنتی لباس،هغه پاك کور،هغه پاکه روزی وغیره ټول هر څه واخستلې شو.اودنیا ته راکوز کړې شو. اوورته اوونیلې شو چه اوس به ستاسو رزق وغیره په زمکه کښې وی او تر قیامته پورې به هم په دې کښې یئ. او ددې خانې نه به فائدې حاصلونی.د مار اوابلیس قصه،ابلیس څنګه جنت ته اورسیدو او وسوسې وغیره نې واچولې ،وړې اوږدې قصې په دې مقام کښې مفسرینو نقل کړی دی. لیکن هغه ټول اسرائیلی روایات دی. خومونږ به دا په سورة اعراف کښې بیانوو. ځکه چې ددې واقعې پوره بیان به هغه خانې کښې ښه په تفصیل سره وی.

ابن ابی حاتم نه په یو حدیث کښې نقل شوی دی چه د ونې خوړولو سره ترې جنتی لباس اووتلو. خپل خان نې پخپله بربنډ اولیدلو. یو طرف ته بل طرف ته نې منډې وهلې. لیکن ددوی قد اوږد وو او دسر ویښته نې اوږده وو نو دوی یو ونې کښې انخښته. الله ﷻ اوفرمائیل چه انې آدم ﷺ آیا څما نه تیښته کوې؟ عرض نې اوکړو نه ، انې الله ﷻ څه دشرم په وجه مخ پټوم ()او په یو روایت کښې دی چه الله ﷻ اوفرمائیل چه انې آدم ا څما نه لاړ شه ، څما دې په خپل عزت قسم وی څما سره څما نافرمان نشی اوسیدلې. که زمکه ډکه شی اوپه هغوی کښې ستاسویشان نافرمانه پیداشی اوبیاهغوی څما نافرمانی اوکړی نو یقینًا څه به هغوی لره دنافرمانو کور ته اورسوم. دا روایت غریب دې ، او ورسره په دې کښې انقطاع ده بلکه معضل هم دې.

[1] ) ابن ابی حاتم : ۱ / ۱۳۹ ، دې روایت کښې قتاده ا وحسن مدلس راوی دی ، نودا ضعیف دې )-

**د آدم ﷺ په جنت کښې وخت تیرول:-** حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه حضرت ادم ﷺ د مازیګر نه واخله تر نمر پریوتلو پورې په جنت کښې یو ساعت دپاره وو(). حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه یو ساعت دیرش کاله وو. ربیع بن انس رحمه الله فرمائی چه په نهم لسم ساعت کښې د حضرت آدم ﷺ اخراج اوشو اودوی سره دجنت یوښاخ وو او دجنت دونې یو تاج ددوی په سر وو.د سدی رحمه الله قول دې چه حضرت آدم ﷺ په هند کښې راکوز شوې وو او دوی سره حجر اسود وو. او ورسره جنتی ونې او پانړې وې چه په هند کښې خواره شو. اوددې نه خوشبو داره ونې پیداشوې. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دهند په ښار وحنا کښې راکوز شوې وو. یو روایت کښې دی چه د مکې او د طائف په مینځ کښې راکوز شوې وو()حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه حضرت آدم ﷺ په هند کښې او مور (حوا) په جده کښې راکوزه شوې وه.او ابلیس دبصرې نه څومیله لرې په دست میسان کښې اوغورزولې شو. اومار اصبهان کښې()دحضرت ابن عمر ﷺ قول دې چه حضرت آدم ﷺ په صفا باندې اوحضرت حواپه مروه باندې راکوز شوی وو.دراکوزیدو په وخت ددوی لاسونه ددوی په ځنګونونوباندې وو او سرونه ئې ټیټ وو او ابلیس ګوتې په ګوتو کښې ورکړې وې او دآسمان نه راکوز کړې شو و آسمان ته ئې کتل. حضرت ابوموسی ﷺ فرمائی چه الله ﷻ دوی ته ټولې طریقې خودلې وې. او دسبزیانو تونه ئې ورکړې وه ()یو حدیث کښې دی چه په ټولو ورځو کښې بهترینه دجمعې ورځ ده ، هم په دې ورځ حضرت آدم ﷺ پیدا شوې وو ،هم په دې ورځ جنت ته داخل شوی وو اوهم په دې ورځ راویستلې شوی وو ،اوګورئی صحیح مسلم اونسائی ().

**دامام رازی تحقیق:-** امام رازی رحمه الله فرمائی چه په دې آیت کښې په څو وجو غصه او زورنه ده. اول سوچ کول پکار دی په لږه شان غلطئ باندې حضرت آدم ﷺ ته څومره سزا ملاؤ شوه ، یو شاعر څه ښه ونیلی دی که ته په ګناه پسې ګناه کوې اود جنت طالب ئې نو آیا ستانه هیر شو چه ستا پلار په وړه شان ګناه باندې دجنت نه راویستلې شوې وو ، مونږ په دې خانې کښې ددښمن په قید کښې یو چه کله به صحیح سلامت خپل وطن ته واپس شو. فتح موصلی رحمه الله وائی چه مونږ جنتیان وو. دابلیس په قید دنیاته راغلو. اوس په دې خانې سوا دغم او خفګان نه څه پاتې دی. دا تکالیف به هله ختم شی چې کله مونږ هغه خانې ته اورسو چه دکوم خانې نه راویستلې شوې وو.

**یواعتراض:-** که معترض اعتراض اوکړی چه کله حضرت آدم ﷺ دآسمانی جنت نه راکوز کړې شو. او ابلیس د خپله دره ویشتلې شو نو بیا هغه خانې ته څنګه اورسیدو؟

**جواب:-** نوددې یو جواب خو دادې چه یو قول داهم دې چه هغه جنت په زمکه باندې وو ،لیکن دې نه علاوه نور هم ډیر جوابونه دی چه دده داخلیدل په طور د اکرام منع وو داهانت او غلا په طور نه وو منع. نوپه تورات کښې دی چه هغه دمار په خله کښې ناست ووا و جنت ته لاړو اودا هم جواب دې چه هغه جنت ته نه وو تلې. بلکه دبهرنه ده وسوسه اچولې وه. اوبعضو ونیلی دی چه د زمکې نه ئې وسوسه اچولې وه. امام قرطبی رحمه الله په دې مقام کښې دمار په باره کښې اودده دوژلو په باره کښې یوحدیث هم نقل کړې دې چه ډیر مفید او باموقع دې.

---

[1] ) حاکم:۵٤۲/۲، وسنده حسن صححه الحاکم: ۵٤۳/۲، واتحاف المهرة: ۱۱۱/۱۰، وسنده حسن وصححه الحاکم ووافقه الذهبی)-

[2] ) ابن ابی حاتم : ۱ /۱۳۱ )-

[3] ) ابن ابی حاتم : ۱ / ۱۳۱)-

[4] ) حدیث ابی موسی ﷺ حاکم : ۵٤۳/۲، واتحاف المهرة: ۱۱۱/۱۰)

[5] ) صحیح مسلم ، کتاب الجمعة باب فضل یوم الجمعة : ۸۵٤، ترمذی: ٤۸۸، نسائی: ۱۳۷۳)-

| فَتَلَقّٰٓى | اٰدَمُ | مِنْ رَّبِّهٖ | كَلِمٰتٍ | فَتَابَ | عَلَيْهِ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| انو زده كړې | آدم | درب خپل نه | يو څو كلمې | او رجوع اوكړه الله | په هغه باندې |
| بيا آدم ﷺ خپل رب د نه (د معافۍ) يو څو كلمې زده كړې انو الله دده توبه قبوله كړه | | | | | |
| اِنَّهٗ | هُوَ | التَّوَّابُ | الرَّحِيْمُ ۝ | | |
| بيشكه چې | هغه | ډير توبه قبلونكې | او رحم كونكې دې | اووئ | |
| بيشكه الله معاف كوونكئ مهربان دې | | | | | |

قوله تعالى:- فَتَلَقّٰٓى اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ؕ

**د معافۍ كلمات**:-چه كوم كلمات حضرت آدم ﷺ زده كړې وو دهغې بيان پخپله قران پاك كښې موجود دې.﴿قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا ٚ وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝﴾ يعنى دې دواړو اووئيل چه اې زمونږه ربه مونږ په خپلو ځانونو باندې ظلم اوكړو ، كه ته مونږ اونه بښې او په مونږ باندې رحم اونكړې نومونږ به نقصان كوونكو نه شو.

ډاكثرو بزرگانو همدا قول دې . حضرت ابن عباس ﷺ نه احكام د حج زده كول هم مروى دى عبيد بن عمير ﷺ وائي چه هغه كلمات دا وو چه هغوى اووئيل چه اې الله ﷺ ! چه كومه خطا مو اوكړه هغه خما د پيدائش نه مخكښې خما په تقدير كښې ليكلې شوې وه يا مادا خپله ايجاد كړه؟ جواب ملاؤشو چه ايجاد دې نه كړه بلكه مخكښې نه ليكلې شوې وه . په دې آوريدو سره حضرت آدم ﷺ اووئيل اې الله ﷺ ! نو بيا ما معاف كړه. حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه حضرت آدم ﷺ اوفرمائيل اې الله ﷺ آيا تا څه په خپل لاس پيدا نكړم ؟ او په ما كښې دې خپل روح وانه چولو څه ؟ او خما په انتوشى دې ﴿يرحمك الله﴾ اونه وئيلو؟آياستا رحمت ستا په غضب باندې غالب شوې نه دې ؟آيا خما د پيدائش نه وړاندې خما په تقدير كښې دا گناه نه وه ليكلې شوې څه ؟جواب ملاؤ شو چه آو داټول ماكړى دى. نووې فرمائيل اې الله ﷺ ! چه خما توبه قبليدېشى او بيا ماته جنت ملاويدې شى كه نه ؟ جواب ملاؤ شو آو(). همدا هغه كلمات يعنى څو خبرې وې چې دوى ﷺ دالله ﷺ نه زده كړې.

ابن ابى حاتم ﷺ يو بل مرفوع حديث روايت كوى چې حضرت آدم ﷺ اوفرمائيل چه اې الله ﷺ كه څه توبه اوباسم اورجوع اوكړم نو آيا ماته جنت بيا ملاويدېشى ؟ جواب ملاو شو آو،هم دا معنى ده دالله ﷺ دكلمو تلقين حاصلول. ليكن داحديث د غريب كيدلو نه علاوه منقطع هم دې.بعضو بزرگانو نه روايت دې چه داكلمات تفسير كښې﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَآ الخ﴾ اوهغه ټولې خبرې شاملې دى كومې چه حضرت مجاهد ﷺ نه روايت شوى دى،هغه كلمات دادى ﴿اللهم لا اله الا انت سبحانك وبحمدك رب انى ظلمت نفسى فاغفرلى انك خير الغافرين، اللهم لا اله الا انت سبحانك وبحمدك رب انى ظلمت نفسى فارحمنى انك خير الراحمين، اللهم لا اله الا انت سبحانك وبحمدك رب انى ظلمت نفسى فتب على انك انت التواب الرحيم﴾ قران پاك كښې په بل كښې فرمانې چه آيادې خلقو ته پته نشته دې چه الله ﷺ دخپلوبندگانو توبه قبلوى. اوپه بل ځائې كښې ارشاد دې چه څوك خراب كار اوكړى يا په خپل ځان باندې ظلم اوكړى نو توبه استغفار دې كوى نوهغه به اوگورى چه الله ﷺ دده توبه قبلوى او دې په خپل رحمت اوكرم كښې داخلوى.اوپه يو بل مقام كښې فرمائې﴿اِلَّا مَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا﴾پدې ټولو آيتونو كښې بيان دې چه الله ﷺ دبندگانو توبه قبلوى.داشان په دې مقام كښې هم فرمان دې چه هغه الله ﷺ توبه قبلونكې اوډير زيات رحم او كرم والا دې .د الله ﷺ دې لطف اوكرم او دهغه ذات فضل او رحم ته اوگوره چه هغه په خپل گناهنگاربندگان هم دخپل در نه نه محرومه كوى

---

[1] ) الطبرى: ۵٤۳/۱)-

رښتیا دي چه دهغه نه سوا هیڅوك معبود نشته دي ، نه دهغه نه څوك زیات مهربان اوکرم والا ، شته نه د هغه نه زیات څوك خطا ښنونکي او رحم کونکي شته دي.

| |
|---|
| قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا ۚ |
| ا اوونیل مونږ ا کوز شئ ا ددې خائې نه ا ټول |
| امونږ ورته اوونیل چې ددې خائې نه ټول په یوخائې کوز شئ |
| فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِّنِّيْ هُدًى فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ |
| بیا که چرې ا راغلو تاسو ته ا دطرفه زمانه ا څه هدایت ا نوکوموخلقو ا چې تابعداری اوکړه ا دهدایت زما |
| بیا چې تاسوته خماد طرفنه هدایت درشي ا نوچاچې خماد (کتاب) هدایت پیروی اوکړه (اوپه هغې ئې عمل اوکړو) |
| فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| نونه به وی ا ویره ا په هغوئ باندې ا اونه به ا هغوئ ا غمژن شي ا اوهغه کسان ا چې انکار ئې کړې |
| نو په هغوئ باندې هیڅ قسمه ویره نشته ا اونه به په راروان ژوند کښې غمژن شي ا اوچاچې انکاراوکړو |
| وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ |
| اودروغ ئې اوونیل ا آیتونو زمونږ ا هغوئ ا ملګری د ووردی ا هغوئ به ا په هغې کښې ا همیشه وی ا ا |
| اوخما آیتونه ئې دروغ اوګنړل ا هغوئ دوزخیان دی اوپه دوزخ کښې به ترتله پراته وی ا ا |

قوله تعالى:- قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا

**دنیانو په تابعدارئ به جنت ملاویږئ** :- دجنت نه دویستلوپه وخت کښې چه کوم خبر حضرت آدم ﷺ او حضرت حوا او ابلیس ته ورکړې شوې وو دهغې بیان په دې خائې کیږی چه کتابونه ، نبیان اورسولان مو اولیږل، معجزې مو ښکاره کړې، دلائل مو بیان کړل، حق لارمو ښکاره کړه. حضرت محمد ﷺ به هم راخي. اوپه حضرت محمد ﷺ باندې به قران پاك نازلیږی. او څوك چه دخپلې زمانې کتابونو او نبیانو تابعداری کوی، هغو ی باندې به په آخرت کښې هیڅ ویره نه وی. اودنیا په مال ومتاع به نې هم څه غم نه وی. په سورة طه کښې هم دا فرمانیلې شوی دی چه خما دهدایت موندونکی به نه ګمراه کیږی اونه به بدبخت وی اونه به بې نصیبه وی او څوك چې خما دیادلو نه مخ اړوی نو هغه به په آخرت او دنیا کښې تنګ وی او ړوند به وی، په دې مقام کښې ئې اوفرمائیل چه انکاراوتکذیب کوونکی به همیشه په جهنم کښې وی ،

ابن جریر رحمه الله یو حدیث نقل کوی چه رسول الله ﷺ فرمائي چه کوم اصلي جهنمیان دی هغوی ته به نه په جهنم کښې مرګ راخي او نه به ورته ژوند ملاویږی ،خو چه کوم خلق موحد وی اودسنتو تابع وی نودوی به د دوی دبعضو ګناهونو په وجه په جهنم کښې وی دوی به سوزلې شي او ایره به شي اوبیابه په شفاعت سره راوښکلې شي. په صحیح مسلم کښې هم یو حدیث کښې دی[1] چه په دویم خل د جنت نه دوتلو د کوم حکم ذکر شوې وو نوځینې وائی چه دا په دې وجه وو چه په دې خائې کښې نور احکام بیانول وو. اوبعضې وائي چه په ړومبی خل دجنت نه ړومبی آسمان کښې کوز کړې شوې وو ،دوباره د اول آسمان نه زمکې طرف ته راکوز کړې شوې وو او لیکن صحیح قول ړومبې دې ، والله اعلم.

---

[1] ) صحیح مسلم: کتاب الایمان باب اثبات الشفاعة : ۱۸۵، ابن ماجة: ۴۳۰۹)-

يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَوْفُوْا بِعَهْدِيْٓ

اے بني اسرائيلو | ياد کړئ | نعمت زما | هغه | چې ما کړې وو | په تاسو | او پوره کړئ | وعده زما

اې د يعقوب اولاده! خما هغه نعمت ياد کړئ چې په تاسو مې کړې وو او خما (سره کړې) وعده پوره کړئ | نو زه به هم

اُوْفِ بِعَهْدِكُمْ ۚ وَاِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ ۝ وَاٰمِنُوْا بِمَآ

پوره به کړم زه | وعده ستاسو | او خاص زما نه | او ويرېږئ | او ايمان راوړئ | په هغه کتاب |

تاسو سره کړې وعده پوره کړم | او خاص خما (د رانيولو) نه ويرېږئ | او په هغه کتاب ايمان راوړئ

اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُوْنُوْٓا

چې نازل کړې دې ما | چې تصديق کونکې دې | د هغه کتاب | چې تاسو سره دې | او مه کيږئ تاسو

چه ما درليږلې دې | چې ستاسو د مذهبي کتاب (توراة) سره (په اصولو کښې) موافقت لري | او په قران باندې

اَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهٖ ۠ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۡ وَّاِيَّايَ فَاتَّقُوْنِ ۝

اول | انکارکونکي | د دې نه | او مه خرڅوئ ايتونه زما | په قيمت | لږ | او خاص زما نه | او ويرېږئ

د ټولو نه وړاندې کفر مکوئ | او خما ايتونو په بدل کښې (د دنيا) لږ قيمت مه اخلئ | او خما (د عذاب نه) او ويرېږئ

**قوله تعالى:-** يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ

**بنی اسرائيلو ته خطاب:** پدې ايتونو کښې بنی اسرائيلوته داسلام قبلولو او حضرت محمد ﷺ د تابعدارئ حکم کولې شي. او په يو اشارې سره دوی ته پوهولې شي چه تاسو د يو پيغمبر اولاد يئ. او ستاسو په لاسونو کښې کتاب الله موجود دې. او د قران پاك تصديق کيږی، نو بيا تاسو ته نه دی پکار دی چه مخکښې انکار تاسو شروع کړنی. اسرائيل نوم وو د حضرت يعقوب ؈ نو دوی ته اونيلې شو چه تاسو خما د فرمانبردار او صالح بنده اولاد يئ نو تاسو ته پکار دی چه د جد امجد په شان د حق تابعداری اوکړنی لکه ځنګه چه ونيلې شي چه تاسو د سخی اولاد يئ او مخکښې شئ، تاسو د پهلوان اولاد يئ د شجاعت داد ورکړنی، تاسو د عالم بچی يئ په علم کښې کمال پيدا کړنی. په بل مقام کښې فرمائی چه ﴿ ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ ؕ اِنَّهٗ كَانَ عَبْدًا شَكُوْرًا ۝ ﴾

تاسو دهغه چا اولاد ئې چه مونږ د نوح ؈ سره سوارۀ کړي وې هغه زمونږ شکرګذاربنده وو په يو حديث کښې دی چه د يهودو د يوې ډلې نه نبی کريم ﷺ تپوس اوکړو چه آيا تاسو ته پته نشته دې چه اسرائيل دحضرت يعقوب نوم وو هغوی ټولو قسم اوخوړو چه والله دا رښتيا دی. نو نبی کريم اوفرمائيل چه ائې الله ﷻ ته ګواه اوسه ([1]).

**داسرائيل معنی:-** د اسرائيل لفظی معنی عبدالله ده([2]) دلته دوی ته هغه نعمتونه وريادولې شی چه د کامل قدرت عظيمې نښې دی. لکه دکاڼې نه نهرونه جاری کيدل، من سلوی نازليدل، دفرعونيانو نه نجات([3]) هم په دوی کښې نبيان اورسولان مبعوث کول، په دوی کښې سلطنت او بادشاهان ليږل وغيره.

**قوله تعالى:-** وَاَوْفُوْا بِعَهْدِيْٓ اُوْفِ بِعَهْدِكُمْ

خما وعدې پوره کړنی يعنی چه کومه وعده ما ستاسو نه اخستې وه چه محمد ﷺ راشی او په نبی کريم باندې خما کتاب نازل شی نو تاسو به په هغه باندې ايمان راوړنی نوهغه به ستاسو بوج کم کړی. او

---

[1]) مسند الطيالسي: ۲۷۳۱، دوبعه نسخه: ۲۷۵۴، وسنده حسن)-
[2]) الطبري: ۱/۵۵۳)-
[3]) الطبري: ۱/۵۵۶)-

ستاسو زنځیرونه به مات کړي او ستاسو طوقونه به اوباسي او خما وعده به هم پوره شي چه خه دین دسختو احکامو په بدله کښي تاسو ته د نبی آخرالزمان ﷺ باندې د ایمان راوړو په بدله کښي تاسو ته یو آسان دین درکړم .په بل مقام کښي فرمانی چه ﴿وَقَالَ اللهُ إِنِّي مَعَكُمْ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَآتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ﴾ که تاسو مونځونه قائمونی،زکوة ورکونی،ماته خپل قرض راکونی،نوستاسو بدنی به لرې کړم اوتاسو به هغه جنتونوته داخل کړم چه په هغې کښي نهرونه بهیږي . دا مطلب هم بیان شو ې دې چه په تورات کښي وعده کړې شوې وه چه د حضرت اسماعیل په اولاد کښي به یو عظیم ا لشان پیغمبر پیدا کوم د هغه تابعداری به په ټول مخلوق باندې فرض کوم اودده تابعدار به بنیم. اوهغوی به جنت ته داخلوم او لوئې اجر به ورکوم. امام رازی په خپل تفسیر کښي د لویو لویو نبیانو علیهم السلام نه د نبی کریم ﷺ باره کښي پیښن ګونی نقل کړی‌س دی. داهم روایت شوې دې چه دبندګانو عهد اسلام قبلول او په دې باندې عمل کول دی (۱)دالله ﷻ د خپلې وعدې پوره کول دادی چې دوی به خوشحاله کړی او دوی ته به جنت ورکړی (۲).

**قوله تعالی:- وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ**

**دالله نه د ویرې حکم:**-او خما نه ویرېږئی هسې نه چه کوم عذاب په مخکښي خلقو باندې نازل شوې وو په تاسو هم نازل شي.اودې لطیفې اشارې ته اوکورئ چه د ترغیب د بیان نه پس د ترهیب بیان طرفته واپس شو. ترغیب او ترهیب دواړه جمع کوی او دحق د اتباع او د حضرت محمد ﷺ د نبوت دعوت ورکوی . قرآن پاك سره نصیحت حاصلول او د هغه د خودلې شوی احکامو منلواو د ده د منع شوو کارونو نه منع کولو هدایت ورکوی. هم په دې وجه ددې نه پس فرمانی چه تاسو په دې قرآن باندې ایمان راوړئی چه دا ستاسو دخپل کتاب تصدیق هم کوی اوتائید هم . دا یو نبی راوړې دې چه امی دې،چه عربی دې،چه نذیر دې،چه بشیر دې ، سراج منیر دې، چه دهغه اسم مبارك محمد ﷺ دې : چه ستاسو د انجیل تصدیق کوونکې او دحق خورونکې دې. چونکه په تورات او انجیل کښي هم د حضرت محمد ﷺ ذکر وو. نود نبی کریم ﷺ تشریف راوړل د تورات دربنتینوالی دلیل وو ، خکه چه ونیلې شوی دی چه هغه ستاسودلاسونو دځیزونو تصدیق کوی ، ددې باوجود چه تاسو ته علم دې ، بیا تاسوددې رومبی منکرجوړیږئی.بعضې وائی چه د(به)ضمیر مرجع قران دې او مخکښي راغلی هم دی(بِمَآ أَنْزَلْتُ) اودواړه قولونه حقیقت او رېښتونی هم دی. قران پاك لره منل رسول ﷺ لره منل دی اود رسول تصدیق دقرآن پاك تصدیق کول دی.

**قوله تعالی:-وَلَا تَكُونُوٓا أَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهِۦ**

**د اول کافر کیدو نه منع کول**:-اول کافر نه مراد د بنی اسرائیلو اول کافر دی،خکه چه د قریشوکفارو هم انکارکړې وونو اوس د بنی اسرائیلو انکار داهل کتابو د رومبی جماعت انکار وو. خکه چه هغوی نه کافراوونیلې شو ،هغوی سره هغه علم وو چه دنورو سره نه وو. خما دآیتونو په بدله کښي لږ شان عوض مه اخلئ یعنی د دنیا په بدله کښي چه لږه او فانی ده ، خما په آیتونوباندې ایمان راوړل او خما درسول تصدیق کول نې پرې نښودل. اګر چه ټول په ټوله دنیا ورته هم ملاؤ شي،بیا هم هغه د آخرت په مقابله کښي لږه او ډیره لږه ده او دا پخپله په هغه کتابونو کښي موجود وو.

---

(۱) الطبری: ۱/۵۵۸)-.
(۲) ابن ابی حاتم : ۱ / ۱٤۳)-

قوله تعالى:- وَلَا تَشۡتَرُوۡا بِاٰيٰتِىۡ ثَمَنًا قَلِيۡلًا

**دینی تعلیم باندې اجرت اخستل څنګه دی ؟**:- په سنن ابوداود کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه کوم سړې داعلم چه په دې علم سره دالله ﷻ رضامندی حاصلیږی ، ددې دپاره زده کړی چه په دې سره دنیا اوګټی هغه به دقیامت په ورځ دجنت خوشبو اونه مومی (۱)د علم خودلواجر بغیر دمقرر کولو جائز دی. داشان علم خودلو والا عالمانو ته دبیت المال نه ورکړه هم جائز ده. چه هغه بنه فرسوده حال وی او خپل ضروریات پوره کړې شی. که دبیت المال نه څه ملاؤ نشی اود علم خودولو په وجه څه کار وغیره هم نشی کولې نو بیا اجرت مقرر کول اواخستل جائزدی. حضرت امام شافعی رحمه الله او حضرت امام مالك رحمه الله ، حضرت امام احمد رحمه الله او دجمهورو علماء هم دا مذهب دې ، ددې دلیل هغه حدیث هم دې چه په صحیح بخاری کښې دې . حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه هغه اجرت مقرر کړو او ده یو سړې دم کړو چه هغه مار چیچلې وو ، کله چه نبی کریم ﷺ ته داقصه بیان کړې شوه نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ﴿ان احق ما اخذتم علیه اجرا کتاب الله﴾ یعنی چه په کومو څیزونو تاسو اجرت واخلئ نو د ټولو نه زیات حقدار څیز کتاب الله دې (۲)په بل طویل حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ دیو سړی نکاح یوښځې سره کوی او فرمائی چه ﴿زوجتکها بما معك من القران﴾ ما دا ستا په زوجیت کښې درکړه په دې مهر باندې چه تاته قران پاك یاد دې نو دا هغې ته یاد کړه(۳)دابوداود یو حدیث کښې دی چه یوسړی اهل صفه ته دقران پاك څه حصه اوخودله.ده هغه ته یوکمان د هدیه په طور ورکړو. ده د نبی کریم ﷺ نه دمسئلې تپوس اوکړو. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که ته داورکمان اخستل غواړې نودا واخله. نو هغه پرېښودلو(۴)حضرت ابی ابن کعب رضی الله عنه نه هم داسې مرفوع روایت دې (۵). ددې دواړو احادیثو مطلب دادې چه کله ده خالص دالله ﷻ د پاره اوخودلو ، بیا نې په دې باندې تحفه هدیه واخستله اوخپل ثواب نې ختم کړو نو ددې څه ضرورت وو؟ او کله چه دشروع نه د اجرت تعلیم نې ورکړو نو بیا بیشکه جائز دی لکه څنګه چه په مخکښنو دوو حدیثونو کښې دی. والله اعلم.

قوله تعالى:- وَاِيَّاىَ فَاتَّقُوۡنِ۝

**صرف دالله ﷻ د ویرې څه مقصد دې**:- صرف الله ﷻ نه د ویرې معنی داده چه دالله ﷻ د رحمت په امید دهغه ذات باری تعالی عبادت کولو کښې مشغول اوسیدل. او دده دعذابونو نه ویریدل ، دده نافرمانی پریخودل او په دواړو حالتونو کښې دخپل رب نه رسئ لاس نه پریخودل. غرض دا چه دې جملې سره هغوی ته ویره ورکړې شوه چه هغوی ددنیا په لالچ کښې راشی او د نبی کریم ﷺ دنبوت هغه تصدیق پټ نه کړی چه کوم ددوی کتابونو کښې دې. اوددنیا ریاستونو په مقابله کښې د نبی کریم مخالفت اونه کړی بلکه دالله ﷻ دویرې حق دې ادا کړی.

| وَلَا تَلۡبِسُوا | الۡحَقَّ | بِالۡبَاطِلِ | وَتَكۡتُمُوا الۡحَقَّ | وَاَنۡتُمۡ | تَعۡلَمُوۡنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومه ګډوډ کوئ | حق | دباطل سره | او (مه) پټوئ حق | او حال داچې تاسو | پوهیږئ |
| اوحق (چه دنبی کریم صفتونه دی) د باطل سره مه ګډوډ کوئ او سره دپوهې حق مه پټوئ | | | | | |

(۱) ابوداود کتاب العلم باب ما فی طلب العلم لغیر الله: ۳۶۶۴، ابن ماجة: ۲۵۲، وسنده حسن وصححه ابن حبان : ۸۹، والحاکم: ۸۵/۱) والذهبی)-

(۲) صحیح بخاری : کتاب الطب باب بالشروط فی الرقیة بفاتحة الکتاب : ۵۷۳۷)-

(۳) صحیح بخاری : کتاب النکاح باب الصدق وجواز کونه تعلیم القران : ۵۱۴۹، صحیح مسلم: ۱۴۲۵)-

(۴) ابو داود کتاب البیوع باب فی کسب المعلم : ۳۴۱۶، وسنده حسن بیهقی : ۱۷۵/۶. حاکم: ۴۱/۲)-

(۵) ابن ماجة : ۲۱۵۸)-

| وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ۝ |
|---|
| اوقائيموئ \| مونځ \|او ورکوئ \| زکاة \| او ټيټ شئ \| دټيټيدونکو خلقو سره \| |
| (او مسلمانان شئ) بيا مونځونه کوئ اوزکاة ورکوئ اوعاجزي کوئ نکوسره (په شريکه) عاجزي کوئ |

قوله تعالى:- وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ

**حق پټول ديهوديانو خصلت دې** :- ديهوديانو په دې بد خصلت باندې دوی لره متنبه کولې شی چه دوی ته ښه معلوم وو خو بيابه ئې هم کله حق اوباطل سره ګډوډ کول او کله به ئې پټولو، کله به ئې باطل ظاهرول نو دوی ته پکار دی چه دا ناپاك عادتونه پريږدی او حق ظاهر کړی او داسې ښه په ښکاره دحق دبيانولو هدايت ورته کيږی چه حق او باطل په خپلو کښې يو بل سره مه يو ځائې کوئ. دالله ﷺ د بنده ګانو خيرخواهي غواړئ.ديهوديانو اونصرانيانو بدعات داسلام په تعليم کښې مه ګډوډ کوئ. د خلقو نه د نبی کريم ﷺ د پيشن ګوئی چه تاسو په خپلو کتابونو کښې وائی هغه مه پټوئ.

(تَكْتُمُوا) مجزوم هم کيديشی اومنصوب هم ، يعنی دا اوهغه مه جمع کوئ.د حضرت ابن مسعود ﷺ په قرات کښې( وَتَكْتُمُونَ) هم دی. دابه حال وی اودې نه پس جمله هم د حال ده.معنی ئې داشوه چې حق حق منئ او بې حيائی مه کوئ. اودا معنی هم کيديشی چه د علم باوجود دا (حق) مه پټوئ او دا ګډوډ کوئ مه اوتاسو ته معلومه چې ددې وبال به څه وی خو بياهم په تاسو افسوس دې چه تاسو په دې بې حيائی کښې اخته ښکارئ.

قوله تعالى:-وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ

**د مونځ او زکاة حکم**:-بيا دوی ته حکم ورکولې شی چه د نبی کريم ﷺ سره مونځونه کوئ ، او نبی کريم ﷺ ته زکوة هم ورکوئ او دنبی کريم ﷺ سره سجده او رکوع کښې شامل اوسئ ،هم په دې کښې يو ځائې شئ او پخپله هم د نبی کريم ﷺ امتيان جوړشئ[1] اطاعت اواخلاص ته هم زکوة وائی. حضرت ابن عباس ﷺ ددې آيت په تفسير کښې هم دا فرمائی . زکوة دوه سوه درهمه يا ددې نه په زياته باندې واجب کيږی. مونځ او زکوة فرض او واجب دی. ددې نه بغير عملونه خراب دی. د زکوة نه بعضې خلقو فطرانه هم مراد اخستې ده.

قوله تعالى:- وَارْكَعُوا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ

**د رکوع حکم**:-د رکوع کونکوسره رکوع کوئ ، مراد دادی په ښه اعمالو کښې دايماندارو سره شئ او په دې کښې بهترين څيز مونځ دې ، ددې آيت نه اکثر عالمان د جمعې مونځ مراد اخلی او په دې ځائې کښې امام قرطبی ﷫ دجمعې مسائل په وضاحت سره بيان فرمائيلی دی.

| اَتَاْمُرُوْنَ |
|---|
| \|آيا تاسوحکم کوئ |
| آيا تاسو نورو |

| النَّاسَ بِالْبِرِّ | وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ | وَاَنْتُمْ | تَتْلُوْنَ | الْكِتٰبَ ط |
|---|---|---|---|---|
| خلقو ته د نيکئ \| او هيروئ | خانونه خپل \| | او حال داچې تاسوا | لولئ \| | کتاب \| |
| خلقوته دنيکئ حکم کوئ \|اوخپل خانونه مو هيرکړی دی \| سره ددې چې سحرمابښام کتاب (توراة) لولئ | | | | |

[1]) الکشاف: ۱/۱۳۳)-

| أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿۴۴﴾ |
|---|
| آیا نه اخلئ تاسو دعقل نه کار؟ |
| آیاتاسودعقل نه کار نه اخلئ؟ |

قوله تعالى:- أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ

**بل ته وئیل او خپل ځان هیرول مکوئ:**- یعني اهل کتاب دعلم باوجود چه څه واني هغه نه کوي،په دې باندې څومره عذاب دې.بیاتاسو پخپله داسې ولې کوئ؟ لکه څنګه چه نورو ته تقوی او پرهیزګاری او طهارت ښانی نوددې پخپله هم عمل کوونکی جوړ شی .خلقو ته د روژې حکم کول اوپخپله ددې پابند نه کیدل داخو ډیره دشرم خبره ده.نورو ته دوینا نه مخکښې انسان ته پخپله عمل کول پکاردی. دا معنی هم ده چه تاسو خو نورخلق د خپل کتاب دکفر نه منع کوئ خو دالله ﷺ دا نبی دروغ ګنړئ اودا تاسوپخپل کتاب کفر ولې کوئ ؟دا مطلب هم دې چه تاسونوروته ددې دین د قبلولو وائی اود دنیاوی ویرې په وجه دا پخپله نه قبلوئی.

**د واعظینواومبلغینو دپاره هدایات** :حضرت ابوالدرداء ﷺ فرمائی چه انسان پوره پوهې والا نشی جوریدې ترڅو چې د هغه خلقو دښمن جوړ نشی چه کوم د الله ﷺ خلاف دی او خپل نفس د ټولو نه زیات دشمن دې. دې خلقو ته به چه رشوت وغیره نه ملاویدو نو حق به نې وئیل خو پخپله به نې په دې عمل نه کولو په دې وجه الله ﷺ ددوی مذمت اوکړو او په دې مقام کښې یوه خبره یاد ساتل پکار س دی چه د ښه څیز حکم کولو سره د هغې برانی اونشوه بلکه پخپله د نه کولوپه وجه برانی بیان شوې ده. ښه خبره کول خو پخپله ښه والې دې بلکه دې سره سره انسان ته پخپله هم په دې عمل کول پکار دی لکه څنګه چه حضرت شعیب ﷺ فرمانیلی وو چه ( وَمَآ أُرِيدُ أَنْ أُخَالِفَكُمْ ) یعنی څه داسې نه یم چه تاسو دهغه څه نه منع کړم چې زه ئې پخپله کوم زه د خپل وس مطابق د اراده لرم.څما توفیق د الله ﷺ په مدد دې او څما بهروسه هم په هغه ذات ده او څما رغبت هم د هغه طرف ته دې. نود نیکو کارونو حکم کول هم واجب دی او پخپله کول هم واجب دی. د یو واجب کیدو په وجه بل واجب نه دی پریښودل پکار. دسلفواوخلفو عالمانو هم دا قول دې اګر چه د بعضو خلقو دا قول هم چې کوم کس پخپله بدنی او ګناهونه کوی نو هغه دې نورو ته د نیکئ حکم نه ورکوی،لیکن صحیح قول دا نه دې بیا ددې حضراتو ددې دلیل نیول بالکل صحیح نه دی بلکه صحیح دادی چه د نیکئ حکم دې کوی او د بدنی نه دې منع کوی او پخپله دې هم کوی او منع دې هم کوی،که دواړه پریږدی نو ګناهګار به وی او دیو په پریښودلوهم ګناهګاریږی .دطبرانی په معجم کبیر کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه کوم عالم خلقو ته دنیکئ حکم ورکوی اوپخپله پرې عمل نه کوی نوددې مثال د چراغ پشان دې چه خلق ددې نه فائده اخلی. خو پخپله هغه (چراغ) بلیږی. (۱)داحدیث غریب دې.

**د بې عمله واعظه سزا**:- د مسند احمد په روایت کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمانی چه دمعراج په شپه ما اوکتل چه دڅه خلقو شونډې د اور په قینچیانو سره پرې کولې شوې ماتپوس اوکړو دا کوم خلق دی؟ نواوونیلې شو چه دا د نبی کریم ﷺ دامت خطیبان او واعظان اوعالمان دی چه خلقو ته به نې د نیکو حکم کولو او پخپله به نې نه کول ، د علم باوجود به نې پوهه نه لرله. په دویم حدیث کښې دی چه ددوی ژبې اوشونډې پرې کولې شوې (۲)دا حدیث صحیح دې،ابن حبان،ابن ابی حاتم ، ابن مردویه وغیره کښې هم دا حدیث موجود دې.

---

۱) المعجم الکبیر للطبرانی : ۱۶۶/۱، مجمع الزوائد: ۱۸۴/۱، الترغیب: ۱۰۳/۱)-

۲) احمد: ۱۲۰/۵، وسنده ضعیف وللحدیث شواهد)-

ابو وائل رحمه الله فرمائي چه يوځل حضرت اسامه ﷺ ته اووئيلي شو چه ته حضرت عثمان ته څه نه وائې دوی جواب ورکړو چه آيا څه ددې خلقو په مخکښې على الاعلان اووايم نو بيا به وئيل وی څه خو ښه په پټه هر وخت وايم ، خو څه يوکار لره خورول نه غوارم ،په الله ﷻ قسم څه يو سړی ته د ټولو نه افضل نه وايم ځکه چه ما د نبی کريم ﷺ نه آوريدلی دی چه يو سړې به د قيامت په ورځ راوستلې شی او دې به جهنم ته داخل کړې شی ، دده کولمې به راوزی او هغه به دده نه ګيرچاپيره چکرلګوی او جهنميان به راجمع شی او تپوس به ترې کوی چه حضرت تاسوخومونږ ته د ښو خبرو حکم کولو اوبدونه به مومنع کولو ، دا ستاسوڅه حالت دې ؟ هغه به اووائی چه افسوس مابه تاسوته وئيل خو ما به پرې پخپله عمل نه کولو،تاسو به مې منع کولئ ليکن خپله به نه منع کيدم مسند احمد ()بخاری او مسلم شريف کښې هم دا روايت دې. (۲)

دمسند په يو بل حديث کښې دی چه الله ﷻ به ان پړهه خلقو ته دومره معافئ کوی چه دومره به علم والوته نه کوی(۳) بعضې آثارو کښې دا هم روايت دې چه عالم په يو ځل بښلې شی او عامی به اويا ځله بښلې شی عالم اوجاهل يوشان نشی کيدلې.په قران کريم کښې دی چه ﴿ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ لوستونکی اوغير لوستونکی يوشان نه دی. نصيحت صرف عقل والا حاصلولې شی.په ابن عساکر کښې دی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه جنتيان خلق به د جهنم خلقو ته ګوری او وائی به ستاسود نصيحتونو په آوريدو آوريدو خو مونږ جنتيان شوی يو، تاسو ولې جهنميان شوئی؟ هغوی به اووائی چه افسوس مونږ به تاسو ته وئيل خو پخپله به مو نه کول. (۴)

حضرت ابن عباس ته يو سړی اووئيل څه خلقوته د نيکئ حکم اود بدئی نه منع کول غوارم دوی اووئيل چه آيا ته دې درجې ته رسيدلې ئې ؟ هغه اووئيل آو.دوی اوفرمائيل که ته ددې دريو آيتونو : رسوائی نه په امن شوې يې نو صحيح ده وعظ شروع کړه. هغه تپوس اوکړو چه هغه درې آيتونه کوم کوم دی؟ دوی ورته اوفرمائيل چه يو خو ﴿ أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ ﴾ دې يعنی آيا تاسو خلقو ته د نيکئ حکم کونی اوپخپله خپل خانونه هيرونی.دويم آيت ﴿ لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللَّهِ أَنْ تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝ ﴾ يعنی ولې تاسو هغه وائی چه پخپله ئې نه کوئی،دالله ﷻ په نيز دا لويه ناخوښی ده چه تاسو هغه وائې چه پخپله ئې نه کونی. دريم آيت د حضرت شيعب ﷺ فرمان دې چه ﴿ وَمَا أُرِيدُ أَنْ أُخَالِفَكُمْ إِلَىٰ مَا أَنْهَاكُمْ عَنْهُ ۚ إِنْ أُرِيدُ إِلَّا الْإِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ ﴾ يعنی د کومو کارونونه چه څه تاسو لره منع کوم په هغې کښې څه ستاسو مخالفت کول نه غوارم ، ځما اراده صرف ستاسو اصلاح کول دی. اووايه ته ددې دريو آيتونونه بې ويرې ئې ؟ هغه اووئيل چه نه . وې فرمائيل چه ته دخپل نفس نه شروع اوکړه. (تفسير ابن مرديه)

په يو ضعيف حديث د طبرانی کښې دی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه څوک څه قول او فعل طرف ته خلق رابلی او پخپله هغه نه کوی نو هغه د الله ﷻ په غضب کښې وی. تر دې پورې چه هغه پخپله عمل اونکړی. (۵)ابراهيم نخعی رحمه الله هم د حضرت ابن عباس ﷺ والا درې آياتونه پيش کړی دی او فرمائيلی ئې دی چه څه ددې په وجه قصه ګو نه خوښوم

---

۱ ) احمد: ۲۰۵/۵ ،وهو صحيح)-

۲ ) صحيح بخاری : کتاب بدء الخلق باب صفة الصلوة وا لها مخلوقة : ۳۲۶۷، صحيح مسلم: ۲۹۸۹)-

۳ ) حلية الاولياء :۲۲۲/۹، والسند ظاهره الصحة ولکنه منکرقال الامام احمد)-

۴ ) طبرانی: ۱۵۰/۲۲)-

۵ ) مجمع الزوائد: ۲۷۶/۷، -

| وَاسْتَعِيْنُوْا | بِالصَّبْرِ | وَالصَّلٰوةِ ؕ | وَاِنَّهَا |
|---|---|---|---|
| او مدد غواړئ | په صبر | او په مانځه سره | اوبيشکه دا مونځ |

په صبر اومونځ کولو سره د الله نه مدداوغواړئ ابيشکه دا مونځ

| لَكَبِيْرَةٌ | اِلَّا | عَلَى الْخٰشِعِيْنَ ۙ | الَّذِيْنَ | يَظُنُّوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| خامخا گران عمل دي | مگرنه دي گران | په ويريدونکو (د الله نه) | اوويريدونکي هغه دي | چي يقين لري |

(دعاموخلقودپاره) گران کار دي امگر هغه چاته (آسان دي) چي دالله نه ويريږي اودا يقين کوي

| اَنَّهُمْ | مُّلٰقُوْا | رَبِّهِمْ | وَاَنَّهُمْ | اِلَيْهِ | رٰجِعُوْنَ ۟ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي آخرهغوئ | ملاويدونکي دي | دخپل رب سره | اوچي بيشکه هغوئ | هغه ته | واپس ورتلونکي دي |

چي دوی به خپل پروردگارسره به ملاقات کوي اوبيشکه هغه ته به دوئ ټول واپس (پيش) کيږي

قوله تعالی:- وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ؕ

**صبر څه څيز دي ؟** :- په دي آيت کښي فرماني چه تاسو د دنيا اود آخرت په کارونو کښي په مونځ او صبر سره مدد غواړئ،فرض پوره کوئ او مونځ ادا کوئ.روژه نيول هم په صبرکولوکښي داخل دی او هم ددي وجي رمضان ته د صبر مياشت ونيلي شوي ده. نبی کريم ﷺ فرمائی چه روژه نيم صبر دي . (۱) صبر نه مراد دگناهونونه منع کيدل هم دی. په آيت مبارك کښي که صبر نه مراد دا واخستلي شی نود بدو نه منع کول او نيکئ کول دواړه بيان شو. ، په نيکو کښي دټولو نه اعلی څيز مونځ دي.

حضرت عمر فاروق فرمائی چه د صبر دود قسمونه دی.① دمصيبت په وخت کښي ② اودگناهونونه صبرکول.اودا صبرد مخکښي نه زيات ښه دي.سعيد بن جبير رحمه الله فرمائی چه د انسان دا اقرار کول چه هر څيز دالله ﷻ د طرفه کيږی ، او په باندي ثواب طلب کول،او د الله ﷻ سره د مصيبتونو د اجر ذخيره گنړل دا صبردي. دالله ﷻ دمرضئ په کار باندي صبر کوئی او دا هم د الله ﷻ اطاعت اوگنړئ.

د نيکو په کارونو هم په مونځ سره صبرملاويږی. پخپله په قران پاك کښي دی چه﴿ اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ ؕ﴾ مونځ قائم کړئی دا د ټولو بدو نه منع کوی او يقيناً دالله ﷻ ذکر ډير لوئي څيز دي.

حضرت حذيفه رضي الله عنه فرمائی چه کله به نبی کريم ﷺ ته څه مشکل کار او غم پيښ شو نو زر به نبی کريم ﷺ مونځ طرفته متوجه شو(۲) هم داشان د خندق په موقع باندي د شپي په وخت کښي حذيفه رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ په خدمت کښي حاضر شو نو نبی کريم ﷺ مونځ کولو. حضرت علی رضي الله عنه فرمائی چه د غزوه بدر په شپه ما اوکتل چه مونږ ټول اوده وو. خو دالله ﷻ رسول ﷺ ټوله شپه په مونځ کښي مشغول وو. او تر صبا پوري ئي مونځ کولو او دعاگاني ئي غوښتلي(۳)تفسير ابن جرير رحمه الله کښي دی چه نبی کريم ﷺ حضرت ابوهريره رضي الله عنه اوليدو چه داولړي په وجه ئي په خيټه مبارکه درد دي ، نبی کريم ﷺ دهغوی نه په فارسئ ژبه کښي تپوس اوکړو چه " درد شکم داری " آيا ستا په خيټه کښي درد دي څه ؟ هغوی اوفرمائيل چه آو. نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه پاسه مونځ اوکړه په دي کښي شفا ده. (۴)

---

[۱] ) ترمذی: کتاب الدعوات باب التسبيح نصف الميزان: ۳۵۱۹، احمد۴/۲۶۰، ابن ماجه: ۲/۴۱۲،

[۲] ) ابوداود کتاب الصلاة ، باب وقت قيام النبی ﷺ من الليل :۱۳۱۹،)-

[۳] ) احمد: ۱/۱۲۵، وسنده صحيح ،:۱۳۸، ابن حبان: ۱۴۰۸، ابن خزيمه: ۸۹۹)-

[۴] ) احمد: ۲/۴۰۳، ابن ماجة: ۳۴۵۸،)-

حضرت ابن عباس ﷺ ته په سفر کښې دخپل رورقثم د انتقال خبر ورکړې شو. نو دوی (اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّاۤ اِلَیۡهِ رٰجِعُوۡنَ) اوونیل اویوطرفته شو او اوښ نې کینولو او مونځ نې شروع کړو او ډیر اوږد مونځ نې اوکړو. بیا په خپلې سورلۍ طرفته لاړل او دا آیت ئې اوونیل غرض په دې دواړو څیزونو صبر او صلوة سره دالله ﷻ مدد حاصلیږي.

**قوله تعالى:-وَاِنَّهَا لَکَبِیۡرَۃٌ اِلَّا عَلَی الۡخٰشِعِیۡنَ**

**دضمیر وضاحت:-** د (اِنَّهَا) دضمیر مرجع ،بعضو خلقو خو صلوة یعنی مونځ خودلې دی.بعضې وائی مدلول کلام یعنی وصیت ددې مرجع دی. لکه د قارون په قصه کښې د (وَلَا یُلَقّٰهَاۤ) ضمیر او د بدئ بدله کښې د نیکئ کولو حکم کښې (وَمَا یُلَقّٰهَاۤ) ضمیر . مطلب دادې چه دا کار یعنی صبر اوصلوة د هر سړی د وس کار نه دې. دا کار د ویرې والا ډلې دې. یعنی څوک چې قران پاك منی نو دغه رښتونی مؤمنان دی او (دغه شان) ویریدونکې او عاجزه خلق، اطاعت طرف ته راتلونکی خلق ، د وعدې پوره کوونکی خلق، وعید لره منوونکی خلق ، په دې صف کښې شامل دی. لکه په یو حدیث کښې دی چه د یو سړی په سوال باندې نبی کریم ﷺ فرمائیلی وو چه دا ډیر لوې څیز دې لیکن په چا چه الله ﷻ مهربان وی آسان دی ()

ابن جریر ﷫ ددې آیت مبارک معنی کوی او فرمائی چې دا هم دیهودیانو په خطاب کښې شامل دې.لیکن ظاهری خبره داده چه دا د هغوی په بیان کښې ده خو د حکم اعتبار سره عام دی. والله اعلم.

**قوله تعالى:-الَّذِیۡنَ یَظُنُّوۡنَ اَنَّهُمۡ مُّلٰقُوۡا رَبِّهِمۡ**

**د خپل رب د پیشئ یقین کول:-** مخکښې د (خٰشِعِیۡنَ) صفت دې. په دې کښې د ظن معنی یقین ده اګرچه ظن په معنی د شك هم رازی. لکه څنګه چه (سدفة) د تیارې په معنی کښې رازی. او د رڼا په معنی کښې هم راځی.اود صارخ لفظ د فریاد کولو او فریاد آوریدونکی دواړو دپاره راځی. اودا شان ډیر نومونه دی. د هغې معنی د دوه مختلفو څیزونو دپاره استعمالیږی. ظن د یقین په معنی د عربو شاعرانو په معنی هم راغلی دی. پخپله په قران پاك کښې په بل مقام کښې دی چه(وَرَاَ الۡمُجۡرِمُوۡنَ النَّارَ فَظَنُّوۡۤا اَنَّهُمۡ مُّوَاقِعُوۡهَا)یعنی ګناهګار چه جهنم اووینی/ نو یقین به اوکړی چه اوس به مونږ دې ته داخل کړې شو .

په دې ځائې کښې هم ظن دیقین په معنی کښې دې. بلکه حضرت مجاهد فرمائی چه په قران پاك کښې هر ځائې کښې دا لفظ د ظن په معنی د یقین او علم راځی. ابوالعالیه ﷫ هم په دې ځائې کښې ظن په معنی د یقین کولو اخلی. حضرت مجاهد ﷫ ، حضرت سدی ﷫ ،حضرت ربیع بن انس ﷫ حضرت قتاده ﷫ او ابن جریج ﷫ نه هم دا قول نقل دې. په قران پاك کښې په بل ځائې کښې دی چه (اِنِّیۡ ظَنَنۡتُ اَنِّیۡ مُلٰقٍ حِسَابِیَهۡ)یعنی ماته یقین وو چه ماسره به حساب کتاب کیږی.

یوصحیح حدیث کښې دی چه د قیامت په ورځ به یو ګنهګار بنده ته الله ﷻ اوفرمائی چه آیاما تاته ښځه اوبچې نه وو درکړی ؟ آیا په تاباندې مې رنګ په رنګ احسانات نه وو کړی ؟ آیا ستا دپاره مې آسونه او اوښان نه وو ښانسته کړی ؟ آیا تاته مې د آرام او راحت والا خوراك نه وو درکړې ؟ دې به اووائی چه آو (راکړی دې وو)اې الله ﷻ دا ټول هر څه وو.بیا به الله ﷻ اوفرمائی چه آیا ستا علم او یقین په دې خبره نه وو چه ته به خما سره ملاویږې ؟ دې به اووائی آو اې الله ﷻ ما دامنل الله ﷻ به اوفرمائی څنګه تا څه هیر کړې وم نن به څه تا هیر کړم()په دې حدیث کښې هم د ظن لفظ دې اومعنی نې یقین ده. ددې مزید تحقیق او تفصیل به ا نشاء الله په (نَسُوا اللّٰهَ فَاَنۡسٰهُمۡ اَنۡفُسَهُمۡ)(سورة حشر) کښې راشی.

---

[1] ) ترمذی ابواب الایمان ماجاء فی حرمة الصلاة :۲۶۱۶، ابن ماجة: ۳۸۷۳، وهو حسن وقال الترمذی حسن صحیح )-

[2] ) صحیح مسلم ، کتاب الزهد باب الدنیا سجن المومن .....۷۴۳۸)-

| يَبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ | اذۡكُرُواْ | نِعۡمَتِيَ | ٱلَّتِيٓ | أَنۡعَمۡتُ | عَلَيۡكُمۡ | وَأَنِّي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اې بني اسراءيلو | ياد کړئ | نعمت زما | هغه | چې ما کړې وو | په تاسو | او بله خبره دا چې ما |
| اني د يعقوب اولاده! خماهغه نعمت يادکړئ چې په تاسومې کړې وو اوتاسو مې د(په خپله زمانه کښې) | | | | | | |

| فَضَّلۡتُكُمۡ | عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿٤٧﴾ |
|---|---|
| په د دنيا په ټولو قومونوغوره کړي وئ | |
| په ټولوخلقو باندې افضل کړي وئ | |

**قوله تعالى:- يَبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ اذۡكُرُواْ نِعۡمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ**

**دبني اسرائيلو په پلار نيکه باندې انعامات:-** دبني اسرائيلو پلار نيکه ته چه کوم نعمتونه ورکړې شوي وو ،دهغې ذکر کولې شي چه په دوی کښې مونږ رسولان جوړ کړل او په هغوی باندې مو کتابونه نازل کړل اودهغوی په زمانه کښې مو دوی ته په نورو خلقو مرتبه ورکړه لکه فرمائي چه ﴿وَلَقَدِ ٱخۡتَرۡنَٰهُمۡ عَلَىٰ عِلۡمٍ عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ يعنى دوی ته مو ددوی په زمانه کښې په نورو خلقو په علم کښې فضيلت ورکړو. (¹)بل ځائې کښې فرمائي ﴿ وَإِذۡ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوۡمِهِۦ يَٰقَوۡمِ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ إِذۡ جَعَلَ فِيكُمۡ أَنۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُم مُّلُوكٗا وَءَاتَىٰكُم مَّا لَمۡ يُؤۡتِ أَحَدٗا مِّنَ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ يعنى موسى ﷺ اوفرمائيل اې زما قومه تاسودالله ﷻ هغه نعمت يادکړئ چه په تاسو باندې شوي دې هغه ذات په تاسو کښې پيغمبران راوليږل ،تاسو ئې بادشاهان جوړ کړئ ، اوهغه څه ئې درکړل چه نورو ته ئې نه وو ورکړي.

**د امت محمدي ﷺ فضيلت(اول قول):** په ټولو باندې تاسو ټولو ته دفضيلت ورکولو نه مراد دهغوی دزمانې نور خلق دي. ځکه امت دمحمد ﷺ دهغوی نه يقيني افضل دې. ددې امت په باره کښې فرمائيلې شوي دي چه ﴿كُنتُمۡ خَيۡرَ أُمَّةٍ﴾تاسو بهتر امت يئ چه خلقو دپاره جوړشوي يئ تاسو د نيکئ حکم کوئ اود بدئ نه منع کوئ او تاسو په الله ﷻ باندې يقين لرئ. که اهل کتابو هم ايمان راوړې وې نو دا به دهغوی دپاره بهتر وې.په مسانيد او سنن کښې هم روايت دې چه نبي کريم ﷺ فرمائي چه تاسو اويايم امت يئ اوډټولونه بهتر ئې اوبزرګ يئ. (²)داسې نور ډير احاديث به انشاء الله په ﴿ كُنتُمۡ خَيۡرَ أُمَّةٍ﴾ آيت کښې راشي.

**دويم قول:** او وئيلې شوي دي چه په ټولو خلقو باندې د فضيلت نه مراد دادې چه په دې سره هر قسمه فضيلت نه لازميږي. رازي رحمه الله نه هم دا نقل دي. خو د غور خبره ده.

**دريم قول:** او داهم وئيلې شوي دي چه دهغوی فضيلت په نورو ټولو امتونوباندې دې ځکه نبيان هم ددوی نه وو. ليکن په دې هم دغور کولو ضرورت دې ځکه داشان عموم ددوی نه په مخکښې خلقو کښې هم شامل وو. او په حقيقت کښې مخکښې نبيان ددوی نه وو لکه چه ابراهيم خليل الله ﷺ ، حضرت محمد ﷺ مصطفى ﷺ چه ددوی نه پس راغلي وو چه په ټول مخلوق کښې افضل وو او چه دټول اولادآدم ﷺ سردار دي په دنيا کښې هم او په آخرت کښې هم.صلاة الله وسلامه عليه.

| وَٱتَّقُواْ يَوۡمٗا | لَّا تَجۡزِي |
|---|---|
| او د هغه ورځې (د راتلو نه) اوويريږئ | چې نه به ځوک د بل |
| اوځان دهغې ورځې(دعذاب نه)چې هيڅ په کارنه راځي | |

---

(¹) ابن ابي حاتم : ١ / ١٥٨)-

(²)احمد: ٤٤٧/٤، ابواب التفسير،باب ومن سورة آل عمران: ٣٠٠١. ابن ماجة: ٤٢٨٨، وهو حديث حسن وحسنه الترمذي)

| وَّلَا | شَفَاعَةٌ | مِنهَا | وَّلَا يُقبَلُ | شَيْئًا | عَنْ نَّفسٍ | نَفسٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونه شي به | سفارش | دطرفه ددغه نفس نه | اونه به شي قبلولي | څه څيز | دپاره دبل نفس | يونفس |

چا نه عذاب لرې کولې شي او نه به د ده نه د چا په حق کښې سفارش قبليدې شي او نه به

| وَّلَا هُم يُنصَرُونَ | عَدلٌ | مِنهَا | يُؤخَذُ |
|---|---|---|---|
| اونه به دهغوئ سره مدد اوکړې شي او ياد | فديه | ددغه نفس نه | اخستي |

دچا نه بدله اخستې شي او نه به دهغوئ څه قسم مدد کولې شي

**قوله تعالى:-** وَاتَّقُوا يَومًا لَّا تَجزِي نَفسٌ عَن نَّفسٍ شَيئًا

**په حشر کښې به هيڅ سفارش اوفديه وغيره نه وي:-** دنعمتونو بيان اوشو.او اوس نې د عذابونونه ويروي چه هيڅوك به چاته څه فائده ورنکړې لکه فرمائي چه ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزرَ أُخرَىٰ﴾ يعنې د هيچا بوج به په بل چاباندې نه پريوزي. په يو مقا كښې دي چه﴿ لِكُلِّ امرِئٍ مِّنهُم يَومَئِذٍ شَأنٌ يُغنِيهِ﴾ يعني په هغه ورځ هر سړې به په خپل سوچ کښې وي. فرمائي انې خلقو دخپل رب نه اوويريږئ اودهغه ورځې نه چه په کومه ورځ به پلار دخپل خوئي نه او خوئي به دخپل پلار نه هيڅ فائده اوچته نه کړي﴿وَلَا يُقبَلُ مِنهَا شَفَاعَةٌ﴾ يعني كافر به څوك سفارش نه کوي اونه دده سفارش قبول دې دي

كافرو ته به دسفارش كولوسفارش هيڅ فائده ورنکړې.او په بل ځائي د اهل جهنم دا قول نقل شوې دې چه افسوس نن زمونږ څوك سفارش کولو والا نشته دې اونه مو څوك دوست. اوپه يو بل مقام باندې فرمائي چه فديه به هم نشي اخستلې .

**قوله تعالى:-** وَلَا يُؤخَذُ مِنهَا عَدلٌ

**دفديه نه قبليدل:** په يوبل مقام کښې فرمائي چه کوم خلق په كفر باندې مړه شي که هغوی سروزرونه دكه دادنيا ورکړې اود عذابونونه بچ کيدل غواړي نوبيا هم نشي اخستلې.په يو بل مقام کښې فرمائي که کافرو سره که دټولې زمکې ټول څيزونه اوددې په شان نور هم وي او دقيامت په ورځ هغه فديه ورکړي اود عذاب نه بچ کيدل غواړي نوبيا به هم قبول نه وي. اوپه دردناك عذاب کښې به اخته وي. اوپه بل ځائې کښې دی اگرچه هغوی زبردسته فديه هم ورکړي نوبيا به هم قبول نه وي او په يو بل مقام کښې دی چه نن به نه ستاسونه فديه اخستې شي او نه به دکافرونه.ستاسو ځائې دوزخ دې او هم به دې اوور کښې ستاسو مولا دې.مطلب دادې چه ايمان نه بغير صرف دسفارش او شفاعت آسره بې کاره ده. په قران پاك کښې دی چه دهغه ورځې نه مخکښې مخکښې خپلې نيکۍ اوکړئ چه په كومه ورځ اخستل خرڅول نه وي او نه به شفاعت وي او په بل ځائې کښې دی چه ﴿ لَّا بَيعٌ فِيهِ وَلَا خِلَالٌ﴾ په هغه ورځ به نه بيعه وي او نه به دوستانه وي.

دعدل معنى په دې ځائې کښې د بدلې ده. اوبدل او فديه يو ده. د حضرت علي ﷺ والا روايت کښې دشفاعت معنى نفل اودعدل معنى فريضه روايت ده. ليکن دا قول په دې ځائې کښې غريب دې. او صحيح قول ړومبې دې. په يو بل روايت کښې دی چه نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړې شو دعدل څه معنى ده؟نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه فديه . ([1])

**قوله تعالى:-** وَلَا هُم يُنصَرُونَ

**مدد به نشي كولې:-** دهغوی مدد به هم نشي كولې.يعني ددوی به هيڅوك حمايت كولو والا نه وي. رشته دارنې به ختمې شي. مرتبې به ختمې شي. د هيچا په زړه کښې به ددوی دپاره څه رحم نه وي. نه

---

[1] الطبري: ١/٧٦٩،

به دوی کښې په خپلوکښې څه رحم وی اونه به څه قوت وی .په یو بل مقام کښې فرمائی چه﴿وَهُوَيُجِيْرُوَلَا يُجَارُعَلَيْهِ﴾هغه پناه ورکوی اودهغه دنیولو نه هېڅوك نجات ورکولو والانشته دې. اوپه بل مقام کښې فرمائی چه نن ورځ د الله تعالی پشان نه څوک عذاب ورکوونکې شته اونه دهغه پشان څوک قیدوونکی او بندونکې. په بل مقام کښې دی چه ﴿مَالَكُمْ لَاتَنَاصَرُوْنَ۞بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُوْنَ۞﴾ تاسو نن ولې دیوبل مدد نه کونې؟ بلکه هغوی به ټول په ټولو سرونه ټیټ کړی وی او فرمانبردار به ولاړ وی. په بل آیت کښې دی چه ﴿فَلَوْلَانَصَرَهُمُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ قُرْبَانًا اٰلِهَةً﴾ هغوی چه به دالله ﷻ نه سوا دالله تعالی دنزدیکت دپاره د نورومعبودانو عبادت کولو نن هغه معبودان ددوی مدد ولې نه کوی. بلکه هغوی ورك شو.

مطلب دادې چه محبتونه فنا شو ، رشوتونه کټ شو ، شفاعتونه ختم شول، په خپلو کښې مدد کول او نصرت کول لرې شول. معامله هغه حاکم عادل او قهار او جبارذات سره ده چه هغه ذات ته به څوك شفاعت کولو والا نه وی او نه به څوک مددکولو والا وی. بلکه دوی به دټولو بدو بدله مومی.داد هغه په بندګانو کامل رحم او هغوئ باندې انعام او اکرام دې چه دګناه بدله یوشان ورکوی اودنیکۍ بدله کم ازکم لس چنده زیاته وی. په قران کریم کښې یومقام کښې ارشاد فرمائی چه دوی لره شان ایسار کړنی چه ددوی نه یو سوال اوکړې شی چه نن دوی دیوبل سره دمدد کولو نه دی او په خپل فکر کښې ولې اخته ولې دی ؟ بلکه زمونږ په وړاندې نې سرونه ټیټ کړی اوتابع فرمان ولاړ دی. [1]

| وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ |
|---|
| اوبادکړئ هغه وخت\| کله چې مونږ نجات درکړو تاسوته \|دفرعونیانو نه\|چې رسول به نې تاسو ته\|سختې\| د عذاب |
| اوهغه وخت(یادکړئ)چې مونږتاسو دآل فرعون نه نجات درکړواچې تاسوته به نې سخت عذاب رسولو(هغه عذاب دا) |
| يُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ ط وَفِيْ ذٰلِكُمْ |
| چې ذبح کول به نې\| خامن ستاسو\|اوژوندئ به نې پرېښودلې\|جینکئ ستاسو\|اوپه دې حالت ستاسو کښې |
| چې ستاسو خامن به نې حلالول اوستاسوجینکئ به نې(دوینځ توب دپاره) ژوندنی ساتلې\| اوپدې کښې ستاسو |
| بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ۞ وَاِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ |
| آزمیت وو\| دطرفه درب ستاسو نه\| لوئ \| اویادکړئ کله چې\|جدا کړو مونږ\|ستاسو دپاره دریاب |
| دپروردګار دطرفه ډیرلوئې آزمیښت وو\| اوهغه وخت (یادکړئ) چې مونږستاسودپاره سمندر راوشلولو\| |
| فَاَنْجَيْنٰكُمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ۞ |
| نو نجات درکړو مونږ تاسو ته\| او غرق کړل مونږ\| فرعونیان \| اوتاسو ورته کتل\| |
| نوتاسوموخلاص کړنی اوآل فرعون موستاسوپه وړاندې ډوب کړل \| |

قوله تعالی:- وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ

**په بنی اسرائیلو باندې دالله ﷻ انعامات**:- په دې آیتونو کښې دالله ﷻ فرمان دې چه اې دیعقوب ﷺ اولاده زما هغه مهربانی هم یاده کړئ چه ما تاسو دفرعون دبدترین عذاب نه بچ کړنی.فرعون یوخوب لیدلې وو چه دبیت المقدس طرفنه یو اوور راوچت شو چه دمصر دهر قبطی په کور کښې داخل شو او دبنی اسرائیلو کورونو ته داخل نشوچه دهغې تعبیر داوو چه بنی اسرائیلو کښې به یو سړې پیدا کیږی چه دهغه دلاسه به دفرعون غرور ختم شی. اوهغه ته به دخدائی د دعوې بدترینه سزا ملاؤ شی. ددې

[1] الطبری: ۱/۳۵–

وجې دې ملعون خلورو وارو طرفونوته احکام جاري کړل چه په بني اسرائيلو کښې کوم بچې پيدا کيږي نو سرکاري طور به ددې خبرې خيال ساتلې شي که هغه ماشوم نر وي نوهغه به زر تر زره قتلولې شي. اوکه ښځه وي نو هغه دې پريښودې شي او دبني اسرائيلو نه دې سخت بيګار واخستلې شي اومشقت د کارونو بوج دې په هغوي واچولې شي.

**قوله تعالى:- يُذَبِّحُونَ أَبْنَاءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَاءَكُمْ**

**د هلاکانو ذبح کول:-** په دې خاني کښې دعذاب تفسير دهلکانو دوژلوسره اوکړې شو. او په سورت ابراهيم ﷺ کښې ديوعطف نې په بل باندې واچولو چه ددې پوره تشريح به انشاء الله ﷻ په سورت ق کښې بيانيږي. الله ﷻ دې مضبوطي راکړي او خمونږ مدد دې اوکړي او تائيد دې اوکړي آمين.

د ﴿يَسُومُونَكُمْ﴾ معنى لګول اوهميشه کول دى. يعني هغوي به برابراينبودل. چونکه پدې آيت کښې مخکښې دا فرمائيلى شوي وو چه زما نعمتونه ياد کړئي خکه نې دفرعونيانو عذاب کښې د تفسير په طور هلکانووژلو سره بيان اوفرمائيلو. اوسورت ابراهيم په شروع کښې فرمائيلې شوي دي چه تاسو دالله ﷻ نعمتونه يادکړئي خکه چه په هغه خاني کښې ئې عطف سره بيان کړې دې چه دنعمتونو تعداد نور هم زيات شي. يعني دمختلفو عذابونونه او دبچو قتل کولو نه موتاسو بچ کړئي د حضرت موسى ﷺ په لاس سره.

دمصر چه څومره بادشاهان عماليق وغيره په کفارو کښې وو هغه ټولوته به ئې فرعون وئيلو. لکه څنګه چه د روم بادشاه ته قيصر او دفارس بادشاه ته کسرى اود يمن بادشاه ته تبع او د حبشې بادشاه ته نجاشى اودهند بادشاه ته بطليموس وئيلې شو. ددې فرعون نوم وليد بن مصعب بن ريان وو. بعضو مصعب بن ريان هم وئيلى دى. دا د عمليق بن اود بن ارم بن سام بن نوح په اولاد کښې وو. دده کنيت ابومره وو. په اصل کښې داصطخر فارسيبانونه وو ، دالله ﷻ غصه او لعنت په ده باندې نازل شو.

**قوله تعالى:- وَفِي ذَٰلِكُم بَلَاءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ**

**په نجات کښې امتحان وو:-** بيا ئې اوفرمائيل چه په دې نجات ورکولو کښې خمونږ د طرف نه يو ډير لوئي نعمت وو. د ﴿بَلَاءٌ﴾ اصل معنى آزمينښت ده. ليکن په دې خاني کښې حضرت ابن عباس ؓ، حضرت مجاهد رحمه الله ، ابوالعاليه رحمه الله اوسدى وغيره نه دنعمت معنى نقل ده. [1] امتحان ښيګره ، بدى دواړه سره راځي. ليکن دبلاء لفظ عام طور د آزمينښت دپاره [2] او ﴿ابليه ابلاء وبلاء﴾ لفظ دښيګړې سره دآزمينښت په طور رازى. دا وئيلې شوى دى چه په دې کښې ستاسو آزمينښت وو يعني په دې عذاب کښې او ددې بچو په قتل کولو کښې. قرطبى رحمه الله دې دويم مطلب ته د جمهورو قول وائى نو دې کښې اشاره ده د ذبح وغيره طرفته او د ﴿بلاء﴾ معنى به د بدئى وي.

**قوله تعالى:- وَإِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَأَنجَيْنَاكُمْ وَأَغْرَقْنَا آلَ فِرْعَوْنَ**

**دفرعونيانو نه نجات:-** بيا فرمائي چه مونږ فرعونيانو نه بچ کړئى . تاسو حضرت موسى عليه السلام سره روان شوئى او فرعون ستاسو نيولو پسې در اووتلو. او تاسو دپاره اوبه اودرولې او تاسو مو دې کښې پورې ويستئ اوستاسو مخکښې مو دفرعون سره د لښکره ډوب کړو. ددې پوراتفصيل به انشاء الله سورة شعراء کښې رشى.

**د بني اسرائيلو موسى ﷺ سره روانيدل:-** عمرو بن ميمون اودى رحمه الله فرمائي چه کله حضرت موسى ﷺ بني اسرائيل خان سره واخستل او اووتلو او فرعون ته ددې خبر اوشو نو هغه اووئيل کله چه چرګ اذان اوکړي نوبيا اوزئى او هغه اونيسئ او وې وژنئ. خو په هغه شپه چرګ هډو تر سحره پورې اذان اونکړو

[1] الطبرى : ۱ / ۴۸-

[2] الطبرى : ۱ / ۴۸-

دالله ﷻ په حکم سره ، د چرګ اواز اوریدو سره فرعون يوچيلي ذبحه کړ ه او وي ونيل چه ددي نه مخکښي چه ددي د کليجي نه خه فارغ شم ددي نه مخکښي دشپږ لاکهو قبطيانو لښکرزما په وړاندي حاضريدل پکار دي.نوحاضر کړي شو. اودي ملعون دومره غټ تعداد سره دِله واخستله اودبني اسرائيلو د هلاکت دپاره ډير په شان وشوکت سره اووتلو اودسمندرپه غاړه ني اوموندلو.اوس په بني اسرائيلوباندي دنيا تنګه شوه. که روستو کيږي نو دفرعونيانو دتورو لاندي راځي اوکه مخکښي ځي نو د مهيانو خوراك کيږي . په دغه وخت کښي حضرت يوشع ﷺ اوفرمائيل چه اني دالله ﷻ نبي اوس په څه کيږي ؟ دوي اوفرمائيل چه اوس امر د رب مخکښي دي ، په دي آوريدو سره هغوي خپل آس اوبوته داخل کړو خوکله چه ني په ژورو اوبو غوپي اووهلي نو واپس غاړي ته راغلو او تپوس ني اوکړو اني موسی ﷺ دالله ﷻ مدد چرته دي ؟ نه خو مونږ تا په دروغه ګڼړو او نه الله ﷻ لره. دري ځل داشان ني اووئيل. بيا حضرت موسى ﷺ طرفته وحي راغله چه خپله همساباندي سمندراووهه، دهمسا وهلو سره اوبو لار جوړه کړه اوبه دغرونو پشان سختي شوي .حضرت موسى ﷺ او ددوی منلووالا په دي لارو باندي تير شول ، کله چه فرعون اودهغه لښکر ددوی دا داسي پوري کيدل اوليدل نو هغوی هم خپل آسونه درياب کښي داخل کړل ، هرکله چه دفرعون ټول لښکر سمندر ته داخل شو نواوبو ته ديوځائي کيدو حکم اوشو اود څلورو وارو طرفونو نه يو حال جوړ شو اوټول په ټوله ډوب شو. بني اسرائيلو چه دالله ﷻ دقدرت دانظاره اوکتله په خپلوسترګو سره اوکتله نو پدي سره هغوي ډير زيات خوشحاله شو او خپله آزادي او دفرعون بربادي ددوی دپاره دخوشحالي سبب جوړ شو. دا هم روايت دي چه دا د عاشوري ورځ او دمحرم لسمه نيټه وه.

**ديهوديانو روژه نيول**:- په مسند احمد کښي يو حديث دي چه کله حضرت محمد ﷺ مديني منوري ته تشريف راوړو نو وي کتل چه يهوديان دعاشوري دورځي روژه نيسي نو تپوس ني اوکړو چه تاسو ددي ورځي روژه ولي نيسئ ؟ هغوی اونيل خکه چه په دي مبارکه ورځ بني اسرائيل دفرعون د لاس نه آزاد شوي وو او دهغوی دښمن غرق شو. نودهغي په شکر کښي حضرت موسى ﷺ دا روژه اونيوله. نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه په تاسو کښي زيات حقدار دحضرت موسى ﷺ څه يم . نو نبي کريم ﷺ پخپله هم ددي ورځي روژه اونيوله. او خلقو ته ني هم ددي ورځي د روژي نيولو حکم اوکړو. ([1])بخاري ،مسلم،نسائي اوابن ماجه کښي هم دا حديث موجود دي([2])يو بل ضعيف حديث کښي دی چه نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه په دي ورځ باندي الله ﷻ دبني اسرائيلو دپاره اوبه اودرولي وي . ددي حديث راوي زيد العمی دي او دده شيخ يزيد رقاشي دده نه هم زيات ضعيف دي.

| وَإِذْ وٰعَدْنَا | مُوسٰى | أَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِهٖ |
|---|---|---|
| اوياد کړئ کله چي وعده کړي وه مونږ دموسی سره څلويښت شپي بيا اونيولو تاسو سخي روستو دتلو دهغه نه | | |
| اوبيا مونږ موسی سره دتوراة ورکولو دپاره دڅلويښتو شپو وعده اوکړه نوتاسو دهغه دکوه طور دتلو نه پس | | |

| وَأَنْتُمْ | ظٰلِمُوْنَ ۞ | ثُمَّ | عَفَوْنَا | عَنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| دغه وخت وئ تاسو زياتي کونکي په نفسونو خپلو | | بيا | معافي اوکړه مونږ | تاسو ته |
| دسامري په وينا خخي په خدائي اونيولو او پخپل خان موزياتي اوکړو بيامونږ تاسود دي جرم نه | | | | |

[1] ) احمد: ۲۹۱/۱۔

[2] ) صحيح بخاری : کتاب الصوم صوم يوم عاشوراء : ۲۰۰۴، صحيح مسلم: ۱۱۳۰، ابوداود: ۲۴۴۴، ابن ماجة: ۱۷۳۴)۔

| مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ | لَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ۝ | وَاِذْ اٰتَيْنَا | مُوْسَى |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| روستو ددغه نه | شايد چې تاسو | شكر گزار شئ | اوياد كړئ كله چې اوركړو مونږ | موسى ته |
| پس معاف كړئ اچې تاسو (زما د دې نعمت) شكراوباسئ \| او (ياد كړئ) كله چې مونږ موسى ته | | | | |

| الْكِتٰبَ | وَالْفُرْقَانَ | لَعَلَّكُمْ | تَهْتَدُوْنَ۝ |
| --- | --- | --- | --- |
| كتاب \| اوفرق كونكې ادپاره ددې اچې تاسو نيغه لاربيا مومئ \| اوياد كړ | | | |
| كتاب (توراة) وركړواچې دحق اوباطل بيلونكې ووا چې تاسو سمه لار اومومئ ا | | | |

قوله تعالى:- وَاِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً

**دڅلويښتو ورځووعده او دسخى عبادت**:-په دې ځائې كښې هم الله ﷻ خپل احسانات وريادوى چه كله ستاسونبى حضرت موسى ﷺ دڅلويښتو ورځو په وعده ستاسونه لاړو اودده دتلو نه پس تاسود سخى عبادت شروع كړو اوبيا دهغه په راتگ باندې تاسو ددې شرك نه توبه اوويستله نو مونږ ستاسوددې دومره كفرنه باوجود تاسواوبخښلئ. او په بل ځائې كښې ارشاد دې چه ﴿وَوٰعَدْنَا مُوْسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً وَّاَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ﴾ يعنى مونږ دحضرت موسى ﷺ نه د ديرشوشپو وعده واخستله اولس (ورځې) مويرې زياتې كړې او څلويښت شپې مو كړې.ونيلې شى چه دوعدې دا زمانه پوره د ذى القعده مياشت وه او لس ورځې د ذى الحجې وې. دا واقعه دفرعونيانو نه دنجات او دسمندر نه د راوتلو نه پس راپيښه شوې وه.

قوله تعالى:- وَاِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ

**دكتاب ملاويدل**:- دكتاب نه مراد تورات دې او فرقان هر هغه څيز ته وئيلې شى چه په حق او باطل اوهدايت او ضلالت كښې فرق اوكړى.داكتاب هم ددې واقعې نه پس ملاؤ شو لكه څنگه چه سورت اعراف ددې واقعې په طرز بيان شوې دې. په بل ځائې كښې ﴿مِنْۢ بَعْدِ مَآ اَهْلَكْنَا الْقُرُوْنَ الْاُوْلٰى﴾ هم راغلى دى. يعنى مونږ دمخكښنو خلقو د هلاكت نه پس حضرت موسى ﷺ ته مونږ هغه كتاب وركړو چه دټولو خلقودپاره بصيرت وركوونكې اوهدايت او رحمت دې چه خلق ددې نه نصيحت حاصل كړى.دا هم وئيلې شوى دى چه واؤ زائد دې او پخپله كتاب ته فرقان وئيلې شوى دى. ليكن دا غريب دې. بعضو وئيلې دى چه په كتاب باندې د فرقان عطف دې يعنى كتاب مو هم وركړو اومعجزه هم. په اصل كښې دمعنې اعتبار سره د دواړو مفهوم هم يو دې. او دداسې يو څيز دوه نوموننه بطور عطف كلام عرب كښې راځى. دعربو شاعرانو ډير شعرونه ددې شاهد دى.

| وَاِذْ | قَالَ |
| --- | --- |
| اوياد كړئ كله چې ا | اووئيل |
| اوكله چې موسى ﷺ | |

| مُوْسٰى | لِقَوْمِهٖ | يٰقَوْمِ | اِنَّكُمْ | ظَلَمْتُمْ | اَنْفُسَكُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| موسى ا | قوم خپل ته ا | اے قومه زما | اېيشكه تاسوا | ظلم كړې دې ا | په نفسونو خپلو باندې |
| خپل قوم ته اووئيل اچې انې قومه تاسو په خان ډير زياتې كړيدې | | | | | |

| بِاتِّخَاذِكُمُ | الْعِجْلَ | فَتُوْبُوْٓا | اِلٰى بَارِئِكُمْ | فَاقْتُلُوْٓا | اَنْفُسَكُمْ ط |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| په سبب دنيولو ستاسوا | سخى لره انوتو به اوباسئ ا | خالق | خپل ته ا | اواووژنئ ا | خانونه خپل |
| چې څخې موپه خدائې سره نيولې دې انوخپل پيداكونكى ته توبه اوباسئ (داسې) چې خپل خانونه اووژنئ | | | | | |

| ذٰلِكُمْ | خَيْرٌ | لَّكُمْ | عِنْدَ بَارِئِكُمْ | فَتَابَ | عَلَيْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| داخان وژل ستاسو | بهتر دی | ستاسو دپاره | په نزد د خالق ستاسو | نو قبوله ئې کړه توبه | ستاسو |
| دا کار (چه قتل دې) ستاسو دپاره دالله په نزد غوره دې | (نو الله) ستاسو توبه قبوله کړه | | | | |

| إِنَّهُ | هُوَ التَّوَّابُ | الرَّحِيمُ |
|---|---|---|
| بیشکه هغه دې | ډیر توبه قبلونکې | رحم کونکې |
| بیشکه هغه معاف کوونکې ،مهربان دې | | |

**قوله تعالی:- وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ إِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ أَنفُسَكُم بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ فَتُوبُوا إِلَىٰ بَارِئِكُمْ**

**توبه قبلیدل:-** په دې خاني دهغوی دتوبې طریقه بیانیږي.هغوی د سخی عبادت اوکړواودهغې محبت ددې خلقوپه زړونو کښې پریوتو.بیا دحضرت موسی ﷺ په پوهولو دوی په هوش کښې شو اوپخپلو کړو باندې شرمنده شو. اودوی ته دخپلې ګمراهۍ یقین اوشو او توبه ئې ویستله نوبیا دوی ته حکم اوشو چه تاسو په خپلو کښې یو بل قتل کړئ. هغوی دا اوکړل اوالله ﷻ دهغوی توبه قبوله کړه. او قاتل مقتول دواړه ئې اوبخښل. ددې پوره بیان به دسورت طه په تفسیر کښې راشي انشاء الله.د حضرت موسی ﷺ دا فرمان چه خپل خالق ته توبه ګار شئ ،دا ښائی چه ددې نه به زیات بل کوم ظلم وی چه تاسو دې الله ﷻ پیدا کړی او بیاتاسو دبل چا عبادت کوئ.په یو روایت کښې دی چه هغوی ته ئې حکم دالله ﷻ واورولو او چه کومو خلقو د سخی عبادت کړې وو هغوی ئې کینول او نور خلق ئې اودرول او قتل کول ئې شروع کړل. قدرتی طور تیاره شوې وه ، هرکله چه تیاره لاړه نو دوی منع کړې شو. په شمار کولو سره معلوم شو چه اویازره کسان قتل کړې شوی وو. اود ټول قوم توبه قبوله کړې شوه. دا یوسخت حکم وو چه خلقو پوره کړو. او خپل پردئی ئې ټول قتل کړل تر دې پورې چه الله ﷻ دوی اوبخښل او حضرت موسی ﷺ اوفرمائیل چه اوس بس کړئ. مقتول ته ئې دشهید اجر ورکړو اود قاتل او دباقی خلقو توبه ئې قبوله کړه. او هغوی ته ئې د جهاد ثواب ورکړو. حضرت موسی ﷺ او حضرت هارون ﷺ چه کله خپل قوم قتل کول اولیدل نو دعا ئې شروع کړه چه انې الله ﷻ دې سره خو به بنی اسرائیل ختم شی نودوی ئې معاف کړل. اوالله ﷻ اوفرمائیل چه زما پیغمبره د مقتولینو غم مه کوه دهغوی درجه خمونږ په نیز دشهیدانو ده هغوی مونږ سره ژوندی دی. او رزق به ورته ملاویږی. اوس حضرت موسی ﷺ اوددوی قوم ته صبر راغلو او دبنځو او ماشومانو فریاد کول ختم شو ، توری بندې شوی،نیزې اوچړې بندې شوې. په خپلوکښې په پلاراو خونې کښې قتل ختم شو او الله ﷻ ددوی توبه قبوله کړه. (1)

| وَإِذْ | قُلْتُمْ | يَامُوسَىٰ |
|---|---|---|
| اویاد کړئ کله چې اونیلې وو تاسو | | اے موسی |
| (او بیا) کله چې تاسو موسی ﷺ ته اوونیل | | |

| لَن | نُّؤْمِنَ | لَكَ | حَتَّىٰ | نَرَى | اللَّهَ | جَهْرَةً |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هرګز | مونږ یقین نه کوو | په خبره ستا | ترهغه پورې | چې اووینو مونږ | الله | ښکاره |
| مونږستاپه خبره هیڅکله یقین نه کوو | تردې چې الله ﷻ پخپله سرکند اووینو (نوهله به باور اوکړو) | | | | | |

(1) ابن ابی حاتم : ۱ / ۱۲۷ ،الطبری: ۳۰۶/۱۸)-

فَاَخَذَتْكُمُ الصّٰعِقَةُ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ﴿۵۵﴾ ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ

پس اونیولې تاسو | یوتندر | اوحال داچې | تاسو کتل | بیا | اژوندی کړې مونږ تاسوا | روستو

نو په تاسو تندر راغلو | او (د تندر راتلو په وخت کښې) تاسو ښکاره کتل | بیا د دې مرګ نه پس دوباره

مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴿۵۶﴾

دمرګ ستاسو نه | دې دپاره چې تاسو | شکر ګزار شئ | |

مونږ راژوندی کړئ | چې (د دې احسان) شکر ادا کړئ |

**قوله تعالى:-** وَاِذْ قُلْتُمْ یٰمُوْسٰی لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰی نَرَی اللّٰهَ جَهْرَةً

**دالله د ليدو مطالبه:-** حضرت موسى ؑ چه كله دبنى اسرائيلو اويا كسانو سره كوه طور ته دالله ﷻ دوعدې مطابق لاړو اوهغه كسانو دالله ﷻ كلام واوريدو نو حضرت موسى ؑ ته ئې اووئيل چه مونږ به هله اومنو چه كله الله ﷻ خمونږ مخامخ راشي. په دې ګستاخانه سوال باندې په دوى باندې د آسمان نه تندر راپريوتلو اويو سخت آواز راوچت شو په دې سره ټول په ټوله مړه شو. حضرت موسى ؑ چه كله دا اوكتل نو الله ﷻ ته په زارو شو اودالله تعالى په دربار كښې ئې عرض اوكړو چه زه به بنى اسرائيلو ته څه جواب وركوم داډله دهغوى سرداران او دهغوى بهترين خلق وو. ائې الله ﷻ كه ستا دا خوښه وه نو څه او دا خلق به دې ددې نه مخكښې مړه كړې وې. ائې الله تعالى! ددې بې وقوفانو په بې وقوفئ باندې مونږ مه نيسئ. دا دعا قبوله شوه او حضرت موسى ؑ ته اووئيلې شو چه په اصل كښې دوى د سخى عبادت كوونكو كښې وو. دوى ته هم سزاملاؤ شوه. بيائې هغوى ژوندى كړل او يونه پس بل ژوندى كړې شو. [1]ديو بل ژوندى كيدل ئې اوليدل.

محمد بن اسحاق ؒ فرمائى چه كله حضرت موسى ؑ خپل قوم ته ئې راغلو اودوى ئې د سخى په عبادت كولو اوكتل نو خپل رور اوسامرى ته ئې خبردارې وركړو او سخى ئې اوسيزلو اوددې ايره ئې په سمندر كښې واچوله اوددې نه پس ئې په دوى كښې بهترين خلق منتخب كړل اوځان سره ئې واخستل ددې خلقو تعداد اويا وو او كوه طور ته دتوبې دپاره لاړل. دوى ته ئې اووئيل چه تاسو توبه اوكړئى او روژه اونيسئ اوپاكې كپړې واغوندئى او پاك شئ. هركله چه كوه طور ته دالله د حكم مطابق اورسيدل نو دې خلقو حضرت موسى ؑ ته اووئيل چه ائې دالله ﷻ پيغمبره الله ﷻ ته دعا اوكړه چه هغه ذات مونږ ته خپل كلام واوروى. هركله چه حضرت موسى ؑ غره لره ورغلو نو يو وريځ راغله او ټول غر ئې په خپل ګيره كښې واخستلو او هم په دې كښې دننه حضرت موسى ؑ الله ﷻ ته نزدې شو. هركله چه دالله كلام شروع شو نو د حضرت موسى ؑ تندې نور په ځليدو شو. نوداشان دوى يو هم هغه طرفته نظر نشو كولې. وريځې ختمې شوې او ټول سجده كښې پريوتل. حضرت موسى ؑ دعاسره خلقوهم دالله ﷻ كلام واوريدو چه هغوئ ته د احكامو حكم بيان كيدو. هركله چه دالله ﷻ كلام ختم شو نو وريځې ختمې شوې او حضرت موسى ؑ دې خلقو ته راغلو نودې خلقو اووئيل چه اې موسى ؑ مونږ به تر هغه وخته پورې ايمان نه راوړو تركومې پورې چه خپل رب مونږ پخپله مخامخ اونه ګورو. ددې ګستاخئ په وجه باندې په هغوى زلزله راغله او ټول په ټوله هلاك شو.

**دموسى ؑ دعا:-** پس حضرت موسى ؑ دزړه په اخلاص سره دعاشروع كړه او وې وئيل چه ددې نه خو دا ښه وه چه مونږ مخكښې ددې نه هلاك شوې وې، دبې وقوفانو په كارونو باندې مونږ هلاك نه كړې دا خلق خو د هغوئ خاص خاص او خوښ خلق وو كله چه څه يوازې بنى اسرائيلو ته لاړشم نوهغوى ته به څه جواب وركوم ، څوك به زما دا خبره رښتيا ګڼړى او ددې نه پس به څوك په ما باندې

[1] ابن ابي حاتم : ۱ / ۱۷۳ )-

ایمان راوړی. انې الله ﷻ خمونږ توبه دلته قبوله کړه اوپه مونږ باندې رحم او فضل اوکړه. حضرت موسی ﷺ همداشان په خشوع او خضوع کښې دعا غوښتله تردې پورې چه الله ﷻ دده دا دعا قبوله کړه اوهغه مړی ئې ژوندی کړل. ددې نه پس تپولو یو خله سره دبنی اسرائیلو د طرف نه توبه غوښتل شروع کړل ، دوی ته اووئیلې شو چه تر کومې پورې دوی خپل ځانونه هلاك نه کړی او یو بل لره قتل نه کړی نو ددوی توبه به نه قبلوم. سدی ﷫ وغیره وائی چه دا واقعه د بنی اسرائیلو په خپلو کښې دجنګ جګړې نه پس ده ،ددې نه دا هم معلوم شوچه داخطاب عام دې لیکن حقیقت کښې ددې نه مراد هم دا اویا کسان دی.

**دامام رازی یوضعیف روایت:**-رازی ﷫ په خپل تفسیر کښې ددې اویا کسانو قصه لیکلې ده چه هغوی دخپل ژوندی کیدو نه پس اووئیل انې د الله ﷻ نبی ا دالله ﷻ نه دعا اوکړه چه الله مونږ نبیان کړی . دوی دعا اوکړه او هغه قبوله شوه خو دا غریب قول دې.د حضرت موسی ﷺ په زمانه کښې سوا د حضرت هارون ﷺ نه اودده نه پس حضرت یوشع بن نون ﷺ او دنورو نبوت ثابت نه دې. اهل کتاب دا هم عوی کوی چه دې خلقو دخپلې دعا مطابق الله ﷻ لره په خپلو سترګو هم په دې ځائې کښې اولیدو ، دا هم غلط دی ځکه چه پخپله حضرت موسی ﷺ چه کله دالله ﷻ د دیدار دپاره سوال اوکړو نو دې منع کړې شو. نودا اویا کسان به څنګه دالله ﷻ دیدار اوکړې ؟ ددې آیت په تفسیر کښې یو بل قول هم دې حضرت موسی ﷺ تورات راوړو او په دې کښې داحکامو مجموعه وه او دوی ته ئې اووئیل چه دا دالله ﷻ کتاب دې ، په دې باندې عمل اوکړئی او مضبوطیا سره په دې باندې پابند اوسئی نو هغوی اووئیل چه انې حضرت موسی ﷺ مونږ ته څه خبردې الله ﷻ دې مونږ ته په خپله رابنکاره شی او مونږ ته پخپله ولې نه وائی؟ څه وجه ده چه هغه تاسو سره خبرې کوی اومونږ سره نه کوی؟ ترکومې پورې چه الله ﷻ مونږ پخپله اونه ګورو تر هغه پورې به ایمان راونړو. ددې قول په وجه په هغوی باندې دالله ﷻ غضب نازل شو اوهغوی هلاك شو. بیا ژوندی کړې شو ،بیا حضرت موسی ﷺ هغوی ته اووئیل چه اوس تاسو دا تورات اونیسئ ،هغوی بیا انکار اوکړو ، دې ځل فرښتو غر اوچت کړو اوددوی په سرونو ئې زوړند کړو که چرې نه منئ نودا غر به ستاسو په سرونو راغوزار کړې شی او تاسو تپول به مړه شئ ،[۱] ددې نه داهم معلوم شو چه مرګ نه پس به دوی ژوندی شو اوبیاهم دوی مکلف وو. یعنی دالله ﷻ احکام بیاهم په دوی باندې جاری وو.

**دامام ماوردی قول:**- ماوردی ﷫ وئیلی دی چه بعضې خلق وائی چه کله هغوی د الله ﷻ دا زبردسته نښه اوکتله او دمرګ نه پس بیا ژوندی شو نو بیا ددوی نه شرعی تکلیف لرې شو. ځکه چه اوس دوی مجبور وو چه تپول هر څه اومنی او پخپله دوی سره دا واقعه پیښه شوه نو اوس تصدیق یو بې اختیار امر جوړ شو. دوئمه ډله وائی چه نه بلکه باوجود ددې نه هغوی په شرعی احکامو باندې مکلف وو ځکه چه هر عاقل مکلف دې.

**دامام قرطبی قول:**- قرطبی ﷫ وائی چه صحیح قول هم دادې. دا امور په هغوی باندې قدرتی طور سره راغلی وو دوی د شریعت د پابندئی نه نشو آزادیدلې. پخپله بنی اسرائیلو هم لوئې لوئې معجزې اوکتلې ، دوی سره داسې داسې کارونه اوشول چه بالکل عجیبه او خلاف قیاس او زبردستې معجزې وې. ددې نه باوجود هغوی هم مکلف وو ،داشان دوی هم. صحیح هم دا قول دې او واضح امر هم دا دې ، والله اعلم.

---

[۱]) الطبری:۲/۸۸)-

| وَظَلَّلْنَا | عَلَيْكُمُ | الْغَمَامَ |
|---|---|---|
| اوسورې کړې وه مونږ | په تاسو باندې | وريځ |
| اوپه تاسوباندې مې د وريځې سورې جوړ کړې وو | | |

| وَاَنْزَلْنَا | عَلَيْكُمُ | الْمَنَّ | وَالسَّلْوٰى ط | كُلُوْا | مِنْ طَيِّبٰتِ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونازل کړل مونږ | په تاسو باندې | من | مرزان | خورئ | د پاکو څيزونونه | هغه |
| اومن وسلوى (ترنجبين اومرزان)مو درته اوليږل (اواجازت مودرکړو)چې مونږ درته کوم پاک څيزونه | | | | | | |

| رَزَقْنٰكُمْ ط | وَمَا ظَلَمُوْنَا | وَلٰكِنْ | كَانُوْٓا | اَنْفُسَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې درکړې دى مونږ تاسو ته | اوظلم نه ووکړې هغوئ په مونږ باندې | بلکه | ووهغوئ | په ځانونوخپلو باندې |
| درکړې دى هغې نه خورئ | اوپه مونږ په هغوى هيڅ زياتې نه ووکړې | بلکه هغوى په خپله پخپلوځانونو | | |

| يَظْلِمُوْنَ۝ |
|---|
| چې ظلم به ئې کولو |
| زياتې کولو |

**قوله تعالى:-وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ**

**په بنى اسرائيلو باندې دوريځو سورې** :-مخکښې بيان شوى وومونږ ستاسونه فلانى تکليفونه لرې کړل. اوس بيان کيږى چه مونږ تاسو ته فلانى فلانى نعمتونه درکړل. غمام د غمامة جمع ده ، چونکه دا آسمان پټوى نوددې وجې دې ته غمامه وائى.دايوسپين رنګک والاوريځ وه.چه په وادى تيه کښې د دوى په سرونو باندې سيورنى(سورې) شوې وو.نسائى وغيره کښې دحضرت ابن عباس ﷺ نه يواوږد حديث روايت شوې دې. ابن ابى حاتم وائى چه حضرت ابن عمر ﷺ،حضرت ربيع بن انس رحمه الله،حضرت ابومجلز رحمه الله،ضحاك رحمه الله،او سدى رحمه الله وغيره کښې ددې تائيد کړې دې. بعضې خلق وائى چه دا وريځې دعامو ورځو د وريځو نه هم زياتې يخې وې او ښه وې. مجاهد رحمه الله فرمائى چه دا هم هغه وريځ وه چه په دې به الله تعالى د قيامت په ورځ رازى.د حضرت ابوحذيفه ﷺ قول هم دادې .

﴿هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ فِيْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ﴾ الخ په دې آيت کښې ددې ذکر دې چه دې خلقو ته ددې انتظاردې چه الله ﷻ په وريځ کښې راشى او دهغه ذات فرښتې هم.همدا هغه وريځې دى چه په دې کښې دبدر په ورځ فرښتې راغلې وې.

قوله تعالى:-وَاَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ط

**دالله ﷻ خاص نعمت من اوسلوى** :-چه کوم من په هغوى باندې نازل شو هغه په ونو باندې نازل شوې وو. دوى به سحرتلل او هغه به ئې راغونډولو او خورلو به ئې.دا دګوند په شان وو. څوك وائى چه دپرخې په شان وو. حضرت قتاده رحمه الله فرمائى چه ږلې په شان من او سلوى به ددوى کورنو ته نازليده چه د پيو نه زيات سپين اودشهدونه زياته خواږه وو. دصباصادق نه واخله تر نمر ختلوپورې به نازليده . هر سړى به دخپل كور دپاره دومره اوره چه څومره به دذوى دپاره ددې ورځې دپاره كافى وو. كه چا به زياته واخستله نوهغه به خرابيده. دجمعې په ورځ به هغوى د دوو ورځو اخستله.دجمعې او هفتې ورځ په دې وجه چه هفته دهغوى لويه ورځ وه. ربيع بن انس رحمه الله فرمائى چه من دشهدو په شان وو او په دې کښې به ئې اوبه يو ځائې کولې او څکل به ئې.شعبى رحمه الله فرمائى چه ستاسودا شهد دهغه من سلوى اويايمه حصه ده.په شعرونو کښې هم من دشهدو په معنې رازى. دا ټول قولونه نزدې نزدې دى.غرض دا چه

دا يوشيز وو چه هغوی ته به بغير د څه تکليف نه ملاويدو. که دا خانله خوری نودادخوړلو ښيز وو او که په اوبو کښې ګډ کړی نو دڅکلو ښيز وو او که نورو ښيزونوسره ګډ کړې شي نو بل ښيز ترې جوړيږي خو
په دې ځائې کښې دمن نه مراد هم دا مشهور من نه دې.
صحيح بخاري کښې په يو حديث کښې دی چه نبي کريم ﷺ فرمائي چه خريږی د من پشان دی او ددې اوبه دسترګې دپاره شفاده[1] ددې حديث ته ترمذی حسن وائی. په ترمذی کښې دی چه عجوه چه داد مديني دکهجورونه يوقسم دې ،هغه جنتي ښيز دې او په دې کښې دزهرو ترياق دې او خريږې دمن پشان دې اوددې اوبه دسترګې د درد دپاره دوائي ده[2] دا حديث حسن غريب دې. په نورو مفيدو طريقو سره هم روايت شوې دې. دابن مردويه په يو حديث کښې دی چه صحابه کرامو ﷺ ددې ونې په باره کښې اختلاف کړې دې چه دزمکې دپاسه وی چه ددې جرړې مضبوطې نه وی ،بعضې وائی چه د خريږې ونه ده. نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه خريږې من دې اوددې اوبه دسترګې دپاره مفيد دې.[3]
سلوی يو قسم مارغه دې چه دچڼچڼې نه لږ شان غټ وی. سره بخنه وی. د جنوب د طرف نه به هواګانې چليدې او دا مارغان به نې هغه ځائې کښې جمع کول. بنی اسرائيلو به دخپل ضرورت مطابق دا نيول او ذبح کول به نې او دبلې ورځې دپاره به نې اينبودل نوخرابيدل به اودجمعې په ورځ به نې د دوؤ ورځو دپاره اينبودل ځکه دهفتې ورځ به دهغوی دپاره د اختر ورځ وه. په دې ورځ باندې به په عباداتو کښې مشغول اوسيدل او دښکار وغيره نه ورته دبچ کيدو حکم وو. بعضو خلقو ونيلی دی چه دا مارغان د کونترو پشان وو. ديو ميل په فاصله کښې به ديو نيزې برابر يو اوچت ډيرې ددې مارغانو وو. دا دواړه ښيزونه په هغوی باندې په وادی تيه کښې نازل شوې وو. چه په هغه ځائې کښې دوی خپل پيغمبر ﷺ ته ونيلی وو چه په دې ځنګل به زمونږ دخوراك انتظام څنګه کيږی. نو دوی باندې من وسلوی نازله شوه.
**داوبو انتظام:**-اوکله چه حضرت موسیٰ ﷺ ته داوبو دپاره درخواست اوکړې شونو الله ﷻ ورته اوفرمائيل چه دا کاڼړنې په خپله همسا باندې اووهه ، همسا وهل وو چه ددې کاڼړی نه دولس چينې روانې شوې او دبنی اسرائيلو دولس قبيلې وې. هرې يوې قبيلې ځان دپاره يويو چينه اونيوله. بيا نې دسيوری دپاره سوال اوکړو چه په دې خوشې ميدان کښې دسيوری نه بغير اوسيدل مشکل دی نوالله ﷻ په دوی باندې دطورغر سيورنې کړو.پاتې شو لباس نوداالله ﷻ قدرت سره به چه هغوی کوم لباس اغوستلو نو هغه به ددوی قد سره اوږديدو. ديو کال بچې چه به کوم لباس وو هغه به دده قد سره سره اوږديدو اوبه نه هغه شليدو اونه خرابيدو اونه به خيرنيدو. ددې ټولو نعمتونو ذکر په قران پاك کښې په مختلفو ځايونو کښې موجود دې لکه د ﴿وَاِذِاسْتَسْقٰى﴾ والا آيت چه دې. وغيره.
هذلی ﷫ فرمائي چه سلوی شهدو ته ونيلې شي. ددوی داقول غلط دې. مؤرخ او جوهری ﷫ هم دا قول ونيلې دې او ددې په شهادت کښې نې دعربو شاعرانو شعرونه او بعضې لغوی محاورې پيش کړې دی .بعضوونيلی دی چه ديو دوائې نوم دې. نسائي ياکسائي وائی چه سلوی واحدلفظ دې. او د دې جمع سلاوی رازی.اوبعضې وائی چه په جمع او مفردکښې هم دا صيغه رازی. يعنی لفظ سلوی.
الغرض داالله ﷻ دوه نعمتونه وو چه دهغې خوراك ددوی دپاره مباح کړې شوې وو او خو دې خلقو داالله ﷻ ددې نعمتونو ناشکری اوکړه. اوهم ددوی په خپلو ځانونوباندې ظلم وو ددې باوجود چه په دوی باندې د الله ﷻ ډير نعمتونه نازل شوی وو.

---

[1] ) صحيح بخاري:کتاب التفسير باب(وظللنا عليكم الغمام..): ۴۴۷۸، وانظر: ۵۷۸، صحيح مسلم: ۲۰۴۹، ترمذی:)-
[2] ) ترمذی کتاب الطب: باب ماجاء في الكماء.....۲۰۶۶، سنده حسن)-
[3] ) ددې سن بالشواهد حسن دې)-

**صحابه کرام ﷺ او بنی اسرائیل :-** چه دبني اسرائیلو دحالت دانقشه مخکښې کېږدو او بیا د رسول الله ﷺ دصحابه کرامو ﷺ حالت باندې یو نظر واچوو چه باوجود د سختو مصیبتونو برداشت کولو اوډیروزیاتو تکلفیونو برداشت کولو نه پس هم هغوی ﷺ دالله ﷻ په عبادت او د نبي کریم ﷺ په اطاعت باندې کلك ولاړوو. نه ئې معجزې اوغوښتلې اونه ددنیا راحتونه ئې اوغوښتل اونه ئې دخپل عیش دپاره څه دنیوی څیز دپیدا کولو خواهش اوکړو. په جنګ تبوك کښې چه کله د صحابه کرامو ﷺ د اولږې نه په بدحال وواودمرګ مزه ورته راغله نو صحابه کرام ﷺ نبي کریم ﷺ ته اوفرمائیل چه یارسول الله ﷺ دعا اوکړئی چه الله ﷻ په دې خوراك کښې برکت واچوی اوالله ﷻ ئې دعا قبوله کړه او الله ﷻ په دې کښې برکت واچولو. هغوی ښه خوراك اوکړو اوټول لوښي ئې هم ډك کړل. هرکله چه داوبودیویو ګوټ دپاره فریادیان شول نو دالله ﷻ درسول په دعا سره وریځ راغله او (اوبه) ډیرې زیاتې شوې او دوی پخپله هم څکلې او په نورونې هم اوڅکولې. او مشکونه ئې ترې ډك کړل، نوصحابه کرام ﷺ ددې ثابت قدمۍ، اولولعزمی، کاملې اتباع او د رښتونې توحید د (نبی کریم ﷺ) صحابه کرام ﷺ د حضرت موسی ﷺ په ملګرو باندې ښکاره فضیلت ثابت کړو.

| وَاِذْ | قُلْنَا | ادْخُلُوْا | هٰذِهِ | الْقَرْيَةَ |
|---|---|---|---|---|
| او یاد کړئ کله چې | اووئیل مونږ | چې ننوځئ | ادې (مخامخ) | کلی ته |
| او (هغه وخت یاد کړه هغه د یادولو لائق دې)، کله چې مونږ اووئیل چې دې ښار ته ننوځئ | | | | |

| فَكُلُوْا | مِنْهَا | حَيْثُ | شِئْتُمْ | رَغَدًا | وَّادْخُلُوا | الْبَابَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوخورئ | دهغې دبیداوار نه | چې څنګه | خوښه وی ستاسو | پریمانه | اوننوځئ | په دروازه |
| اودخپلې خوښې خوراکونه په کښې کوئی او د ښار دروازې ته سرټیټې (په عاجزۍ سره) ننوځئ | | | | | | |

| سُجَّدًا | وَّقُوْلُوْا | حِطَّةٌ | نَّغْفِرْ | لَكُمْ | خَطٰيٰكُمْ ط |
|---|---|---|---|---|---|
| سرټیټې | اووایئ | زمونږ ګناه معاف کړه | مونږ به معاف کړو | تاسو ته | ګناهونه ستاسو |
| اولفظ حطة (یعنی توبه توبه)، وائې (په دې طریقه کولوبه) مونږبه ستاسو ګناهونه معاف کړو | | | | | |

| وَسَنَزِيْدُ | الْمُحْسِنِيْنَ۝ | فَبَدَّلَ | الَّذِيْنَ | ظَلَمُوْا |
|---|---|---|---|---|
| اوبه زیات فضل به اوکړومونږ | په نیکانوخلقو باندې | نو بدله کړه | هغه کسانو | چې ظلم ئې کړې وو |
| او نیکانو ته به زیات اجر ورکړو، نو ظالمانو هغه خودلې شوې لفظ بدل کړل | | | | |

| قَوْلًا غَيْرَ | الَّذِيْ | قِيْلَ | لَهُمْ | فَاَنْزَلْنَا | عَلَى الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| خبره چې نه وه | هغه | وئیلې شوې | هغوئ ته | آخر نازل کړو مونږ | په هغه کسانو باندې |
| (او استغفار نه ئې ټوقې جوړې کړې) نومونږ په هغه کسانو د آسمان د طرفه عذاب راولیږلو | | | | | |

| ظَلَمُوْا | رِجْزًا | مِّنَ السَّمَآءِ | بِمَا | كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ۝ ع |
|---|---|---|---|---|
| چې ظلم ئې کړې وو | عذاب | د آسمان نه | په سبب د دې | چې نافرمانی به ئې کوله |
| څکه چه هغوی بې ظلم کولو (او د ظلم سزا هم دا وی) څکه چې دوی بدعمله شوی وو | | | | |

**قوله تعالى:-** وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوا هَٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا

**مقدس ځمکې ته دداخليدو حکم:**-کله چه حضرت موسیٰ ﷺ د مصر نه بنی اسرائيلو سره راغلو اودوی ته ارض مقدس دتلو حکم اوشو ، چه کومه ځمکه ددوی موروثي وه ،هغوی ته اووئيلې شو چه په دې ځائې کښې چه کوم عماليق دی هغوی سره جهاد اوکړئی. نودې خلقوبزدلی اوکړه چه ددې په سزا دوی دوادی تيه ميدان ته اوليږلې شو. لکه څنګه چه په سورت مائده کښې ذکر دې.

**دا کوم کلی وو؟:**-دقريه نه مراد بيت المقدس دې.[1] حضرت سدی رحمه الله ،حضرت ربيع رحمه الله ،حضرت قتاده رحمه الله اوابومسلم وغيره هم دا وئيلی دی. په قران پاك كښې دی چه موسیٰ ﷺ خپل قوم ته اووئيل چه ائې زما قومه ! دې پاکې ځمکې ته لاړشئ چه دا ستاسو دپاره ليکلې شوې ده. بعضو وئيلی دی چه ددې نه مراد اريحاء دې. بعضې وائی چه ددې نه مراد مصر دې. ليکن صحيح قول رومبې دې چه ددې نه مراد بيت المقدس دی. دا واقعه دتيه نه دوتلو نه پس ده. دجمعې په ورځ دمابنام په وخت كښې الله ﷻ دوی ته فتح ورکړه بلکه نمر ئې ددوی دپاره لږ شان اودرولو چه فتح اوشی دفتحې نه پس دوی ته حکم اوشو چه دې ښار کښې سجده کوونکې ور داخل شئ ، دابه ددې فتحې دشکر دپاره وی.

**قوله تعالى:-** وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا

**دسجدې حالت کښې داخليدلو مطلب.**- حضرت ابن عباس ﷺ دسجدې نه مراد رکوع اخستې ده.[2] راوی وائی چه دسجدې نه په دې ځائې کښې مراد خشوع او خضوع ده. ځکه چه په حقيقت باندې ئې محمول کول ناممکن وو. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دا دروازه دقبلې طرف ته وه اوددې نوم باب الحطه وو . امام رازی رحمه الله دا هم وئيلی دی چه د دروازې نه مراد د قبلې طرف دې. دسجدې په ځائې دې قوم په ځنګونو تګ شروع کړو ،اوپه شاباندې داخل شو اودسرونو د ټيټولو په ځائې ئې اوچت کړی وو.[3]

**قوله تعالى:-** وَقُولُوا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ

**د حطة معنی:**-د (حِطَّةٌ) معنی بخښش ده[4] بعضو وئيلی دی چه دا امر حق دې.عکرمه رحمه الله وائی چه ددې نه مراد لااله الا الله وئيل دی. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه په دې کښې دګناهونو اقرار وو. حسن رحمه الله او قتاده رحمه الله فرمائی چه ددې معنی ده ائې الله ﷻ ازمونږ ګناهونه زمونږ نه لرې کړه[5] بيادوی سره وعده کيږی که تاسو داسې وائې اوښار ته داخل شئ او د فتح په وخت تاسو دخپلې کمزورتيا اودالله ﷻ دنعمتونو او دخپلو ګناهونو اقرار اوکړو او ځمانه مو بخښش اوغوښتلو نو چونکه داځيزونه ماته ډير خوښ دی نو زه به هم ستاسوګناهونه معاف کړم.

**دفتحې په موقع عاجزی کول:**- دفتح مکه په موقع باندې دالله ﷻ فرمان په سورت اذاجاء الخ کښې نازل شوې وو اوپه دې کښې هم داحکم وو چه کله دالله ﷻ مدد راشی او خلق دالله ﷻ دين کښې داخليږی نو ائې نبی ﷺ ته دخپل رب تسبيح اوحمد وثناء وايه اودهغه نه بخښنه غواړئی،بيشکه هغه توبه قبلوونکې دې.په دې سورت کښې چه په کوم ځائې کښې د استغفار ذکر دې نو بل طرفته د نبی کريم ﷺ دآخری وخت خبر هم دې. حضرت ابن عباس ﷺ د حضرت عمر فاروق ﷺ په مخکښې ددې سورت يومطلب داهم بيان کړې وو چه هغوی خوښ کړې وو[6]کله چه دمکې د فتح نه پس نبی کريم ﷺ ښار

---

[1]) ابن ابی حاتم : ۱ / ۱۸۱ )-
[2]) الطبری:۲/۱۱۳)-
[3]) ابن ابی حاتم: ۱۸۳/۱)-
[4]) ابن ابی حاتم: ۱۸۳/۱)-
[5]) ابن ابی حاتم: ۱۸۳/۱)-
[6]) صحيح بخاری : کتاب المغازی ، باب : ۵۱، حديث رقم: ۴۲۹۴، وا نظر: ۴۹۸۰)-

ته داخل شو نو ډیر په عاجزۍ او انکسارنی سره وو. تر دې پورې چه سرمبارك ئې تیټ وو چه د اوښې کوب سره ئې سرمبارك لګیدلې وو. بنار ته د داخلیدو په وخت کښې ئې غسل اوکړو او ضحی یعنې د چاشت په وخت کښې ئې اته رکعته نفل اوکړل (۱)چه هغه د ضحی مونځ هم وو او دمکې دفتح دشکر هم. او دواړه قسمه اقوال دمحدثینو دی. حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ چه کله دایران ملك فتح کړو او دکسری شاهی محلونوته اورسیدو نوهم ددې سنت مطابق اته رکعته مونځ ئې اوکړو.دوه دوه رکعته په یو سلام سره د ادا کولو مذهب دبعضو دې. اوبعضې دا هم وئیلی دی چې اته په یوځائې او یوسلام سره ئې ادا کړل. والله اعلم.

قوله تعالی:-فَبَدَّلَ الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَیْرَ الَّذِیْ قِیْلَ لَهُمْ .

**په الفاظو کښې تبدیلی کول**- صحیح بخاری کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه بنی اسرائیلو ته حکم ورکړې شوې وو هغوی دسجدې په حالت کښې او (حِطَّةٌ) وئیلوسره دی په دروازه باندې داخل شی، لیکن هغوی دا بدل کړو او په خپلو ځنګونونو باندې او(حِطَّةٌ)په ځائې (حبة فی شعرة)ئې وئیل او داخل شو(۲)نسائی رحمه الله،عبدالرزاق رحمه الله ، ابوداود رحمه الله،مسلم او ترمذی کښې هم دا حدیث دالفاظو په اختلاف سره موجود دې، او سند ئې صحیح دې.(۳)حضرت ابوسعید خدری ﷺ فرمائی چه مونږ نبی کریم ﷺ سره روان وو،ذات الحنظل نومې غر ته نزدې اورسیدلو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ددې غر مثال دبنی اسرائیلو د دروازې پشان دې چه په کوم ځائې کښې هغوی ته دسجدې کولو حکم شوې وو او(حِطَّةٌ)وینا سره داخلیدو دپاره وئیلې شوې وو، او ددوی دګناهونودمعافۍ کولو وعده کړې شوې وه. حضرت براء ﷺ فرمائی چه په (سَیَقُوْلُ السُّفَهَآءُ) کښې ( سفهاء) یعنی بې وقوفو نه مراد یهود دی چه هغوی دالله ﷻ خبره بدله کړې وه.

حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائی چه د (حِطَّةٌ) په بدله کښې هغوی (حنطة حبة حمراء فیها شعیرة) وئیلی وو. دهغوی په خپله ژبه کښې د هغوی الفاظ دا وو چه ( هطاسمعاناازب مزبا) . حضرت ابن عباس ﷺ هم د هغوی بدلون بیانوی او فرمائی چه درکوع کولوپه بدله کښې هغوی په دواړو ځنګونونو تلل او د(حِطَّةٌ) په بدله کښې ئې (حنطة) وئیل اوداخل شو.حضرت عطاء رحمه الله ، حضرت مجاهد رحمه الله ، ضحاك رحمه الله ، حضرت حسن رحمه الله ، حضرت قتاده رحمه الله ، حضرت ربیع رحمه الله او حضرت یحیی رحمه الله هم دابیان کړې دی. مطلب دادې چه دکوم قول او فعل هغوی ته حکم شوې وو هغوی هغې پسې خند ګانې کولې او بنکاره مخالفت ئې اوکړو او دښمنی ئې اوکړه ، هم په دې وجه الله ﷻ په هغوی باندې عذاب نازل کړو.

قوله تعالی:-فَاَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا یَفْسُقُوْنَ

**دعذاب نازلول**:- فرمائی چه مونږ په ظالمانو دهغوی دفسق په وجه آسمانی عذاب نازل کړو. درجز نه مراد عذاب دې ، څوك وائی غضب دې او چا ورته طاعون وئیلی دی. یو مرفوع حدیث کښې دی چه طاعون رجزدې او دا عذاب ستاسو نه په مخکښې خلقو باندې نازل کړې شوې وو(۴) بخاری اومسلم کښې هم د نبی کریم ﷺ حدیث مبارك دې چه کله تاسو واورئی چه په فلانی ځائې کښې طاعون دې نو هغه ځائې ته مه ځئ. الخ(۵)ابن جریرکښې هم دی چه دا تکلیف او بیماری رجز چه دې سره ستاسونه مخکښې خلق عذابولې شوی وو.

---

۱) صحیح بخاری : کتاب التقصیر، باب من تطوع فی السفر:۱۱۰۳. صحیح مسلم: ۷۱۹)-

۲) صحیح بخاری : کتاب التفسیر ، باب سورة البقرة: باب رقم: ۵، حدیث رقم: ٤٤٨۹)-

۳) صحیح بخاری : کتاب التفسیر ، باب فی آیات متفرقات: ۳۰۱۵، ترمذی: ۲۹۵٦، السنن الکبری للنسائی: ۱۰۹۸۹)-

٤) صحیح مسلم : کتاب السلام باب الطاعات والطیرة: ۲۲۱۸، السنن الکبری للنسائی: ۲۵۲۳، احمد: ۲۱۳/۵)-

۵) صحیح بخاری : کتاب الطب باب مایذکر فی الطاعون : ۵۷۲۸، وانظر: ۳٤۷۳ ، صحیح مسلم: ۲۲۱۸)-

| وَاِذِ | اسْتَسْقٰى | مُوْسٰى | لِقَوْمِهٖ | فَقُلْنَا | اضْرِبْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوياد کړئ کله چې | اوبه اوغوښتې | موسى | دپاره دقوم خپل | نو اوونيل مونږ | چې اووهه |
| اوريادکړئ کله چې موسىؑ دخپل قوم دپاره دڅکلو اوبۀ اوغوښتې نومونږورته اوونيل چې | | | | | |
| بِّعَصَاكَ | الْحَجَرَ | فَانْفَجَرَتْ | مِنْهُ | اثْنَتَا عَشْرَةَ | عَيْنًا قَدْ عَلِمَ |
| په همسا خپله | دغه گټ | نو رواني شوې | دهغې نه | دولس | چينې پيژندل |
| په خپله همسا باندې دغه گټه اووهه نودهغې نه دولس چينې راوخوټ کيدې اهرې قبيلې خپل خپل | | | | | |
| كُلُّ اُنَاسٍ | مَّشْرَبَهُمْ | كُلُوْا | وَاشْرَبُوْا | مِنْ رِّزْقِ | اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا |
| هرې قبيلې اخانې داوبو څکلو خپلوا | خورئ | اوڅکئ | د رزق | د | الله نه او مۀ گرځئ |
| گودر(داوبو خانې) پيژندل اواورته مواوونيل چې د الله رزق خورئ او څکئ اوپه زمکه کښې د فساد | | | | | |
| فِى الْاَرْضِ | مُفْسِدِيْنَ۝ | | | | |
| په زمکه کښې | فساد کونکى | | | | |
| (چه شرک اوگناهونه دې، کوشش مکوئ) | | | | | |

قوله تعالى:- وَاِذِ اسْتَسْقٰى مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ

**دولس چينې راويستل:** دا يوبل نعمت ورته يادولې شي چه کله ستاسو نبي ستاسو دپاره اوبه اوغوښتلې نومونږ د هغۀ کاڼږي نه اوبه جاري کړې چه ستاسو سره به وو. اوستاسو دهرې يوې قبيلې دپاره مو په دې کښې يو يو چينه جاري کړه او مونږ اوونيل من او سلوى خورئ اوددې چينو اوبه څکئ او بې محنته روزي خورئ اوبه عبادت کښې اخته اوسئ، نافرمانئ کولوسره په زمکه کښې فسادمه خورونئ گنى دا نعمتونه به درنه هم واخستلې شي. حضرت ابن عباس ؓ فرمائي چه دا يو څلورکونجه کاڼږي وو چه هم دوى سره وو. حضرت موسىٰؑ دالله ﷻ په حکم دا کاڼږي په همسا باندې اووهلو اود څلوروواړو طرفونونه ددې نه چينې رواني شوې. دا کاڼږي د غونى دسر هومره وو چه په غوني به ئې بارولوچه کوم خائې کښې به کوزيدل نودا به ئې ايښودو او همسا وهلو سره به ددې نه چينې روانيدې . کله چه به ئې کوچ کولو نو دا به ئې رااوچت کړو چينې به ترې بندې شوې او دا به ئې دخان سره واخستلو. دا کاڼږي دطور دغرووو. دا يو گز اوږد او يو گز پلن وو.

**جنتي کاڼږي:-** بعضې وائي چه دا جنتي کاڼږي وو. لس لس گزه اوږد او پلن او دوه ښاخونه ووپکښې چه دابه پرقيدل. يوبل قول کښې دي چه داکاڼږي حضرت آدمؑ سره دجنت نه راغلې وو او همداشان ديو بل نه حواله کولو سره تر دې وخته راورسيدو. حضرت شعيبؑ ته ملاؤ شوې وواوهغه دا کاڼږي او لرگې حضرت موسىٰؑ ته ورکړې وو. بعضې وائي چه دا هغه کاڼږي دې چه حضرت موسىٰؑ به دې خپلې جامې ايښودې وې اولامبلې ئې وو. او دې کاڼږي دالله ﷻ په حکم دحضرت موسىٰؑ جامې تښتولې وې. او دا حضرت موسىٰؑ د حضرت جبريلؑ په مشوره اوچت کړې وو. چه ددې نه دا معجزه ښکاره شوه.

**د زمخشري تحقيق:-** زمخشري فرمائي چه حجر باندې الف لام دجنس دپاره دې ، دوعدې دپاره نه دې يعنى يو کاڼږئ په لرگې اووهئ دانه چه فلانې کاڼږي دې په لرگې اووهئ. دحسن ؒ هم دا روايت دې. اوهم دادمعجزې اود قدرت پوره کمال دې. حضرت موسىٰؑ په لرگى وهلوسره دهغې نه چينې روانيدې اوبيا په لرگى وهلو سره هغه (چينې )اوچيتدې، بنى اسرائيلو پخپلو کښې اوونيل که دا

کانړنی ورك شو نو مونږ به تندي نه مړه شو نوالله ﷻ اوفرمائیل چه ته دا په لرګی مه وهه بلکه صرف په ژبه اووایه چه دوی ته یقین راشی. والله اعلم.

**قوله تعالی:-** قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ۖ

**دهرې قبیلې خپله چینه:-** هره یوه قبیله خپل خپل نهر داشان پیژنی چه دهرې قبیلې یو یو سړې کانړی سره ولاړ وی اوپه لرګی وهلو سره ددې نه چینې راوزی. چه کوم سړی طرفته کومه چینه زی نوهغه خپله قبیله رابلی او وائی چه داچینه ستاسوده.دا واقعه دمیدان تیه ده. په سوره اعراف کښې هم ددې واقعې بیان دې لیکن چونکه هغه مکی سورت دې ددې وجې نه دهغې بیان په غائب ضمیر سره شوې دی. او الله ﷻ چه کوم احسانات په هغوی باندې نازل کړی وو هغه نې خپل رسول ﷺ ته دوباره بیان کړل. او داسورت اعراف مدنی دی خکه چه په دې کښې دوی ته پخپله خطاب شوې دې.

(فَانْبَجَسَتْ)ونیلې شوی دی او دې خائې کښې(فَانْفَجَرَتْ)ونیلې شوی دی خکه چه په هغه خائې کښې اول اول دجاری کیدو معنی کښې دې اوپه دې خائې کښې د آخری حال بیان دې. والله اعلم.او ددې دواړو مقاماتو بیان کښې په لسو وجوهاتو فرق دې چه دا فرق لفظی هم دې اومعنوی هم. زمخشری ﷫ په خپل طورباندې داټول وجوهات بیان کړی دی او په دې کښې حقیقت نزدې دې. والله اعلم.

وَإِذْ قُلْتُمْ يَٰمُوسَىٰ لَن

| اویاد کړئ کله چې| اوونیل تاسو|اے موسی |هر ګز نشو کوو

|او(مونږبه تاسو ته تیار خوراک درکولونو) تاسواوونیل ای: موسی

نَّصْبِرَ عَلَىٰ طَعَامٍ وَٰحِدٍ فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا

مونږ صبر|په خوراك | یو باندې |نو اوغواړه مونږ دپاره|درب خپل نه|چې راوباسئ |دپاره زمونږ

مونږ په یوقسم خوراک (چه من وسلوی دی) بیخی صبرنشو کولې|نوخپل رب ته سوال اوکړه چې زمونږ دباره داسې

مِمَّا تُنۢبِتُ ٱلْأَرْضُ مِنۢ بَقْلِهَا وَقِثَّآئِهَا

خینی هغه پیداوار | چې زرغونوی نې| زمکه | لکه ساګ د دې |اوبادرنګ د دی|

څیزونه پیدا کړی چې د زمکې نه رازرغونیږی| لکه ساګ ، بادرنګ

وَفُومِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَا ۖ قَالَ أَتَسْتَبْدِلُونَ ٱلَّذِى هُوَ

اوغنم ددې | اودال ددې | اوپیاز ددې |اوونیل الله | آیا تاسو بدلول غواړئ |هغه څیزا چې هغه

غنم ، دال او پیاز شول | هغه (موسی) په جواب کښې اوونیل | چې آیا تاسو هغه معمولی څې

أَدْنَىٰ بِٱلَّذِى هُوَ خَيْرٌ ۚ ٱهْبِطُوا۟ مِصْرًا فَإِنَّ

د ادنی درجې دې|په خائې دهغه څیزاچې هغه|بهتر دې| کوزشئ |یو ښار ته |بیشکه (ملاوبه شی)

(چه په مشقت به پیدا کیږی) دبهتر(چه د آسمان نه تیار راځی) په بدله کښې بدلوئ|(ښه ده نو) (دشام یو) ښار ته کوز شئ

لَكُم مَّا سَأَلْتُمْ ۗ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ ٱلذِّلَّةُ وَٱلْمَسْكَنَةُ

تاسو ته | هغه څیزاچې غواړئ نې تاسو|آخر دا چې مقرر شو |د هغوئ دپاره| ذلت | اومحتاجی

تاسو چې څه غواړئی هلته به درته ملاو شی|نوآخردې حدته راوغورزیدل چه دوئ دپاره خواری اوعاجزی مقررشوه

| وَبَآءُوْ | بِغَضَبٍ | مِّنَ اللّٰهِ ؕ | ذٰلِكَ | بِاَنَّهُمْ | كَانُوْا | يَكْفُرُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او گير شوا | په غضب كښې | دطرفه دالله نه | داپه دې وجه | چې هغوئ | وو چه | انكار ئې كولو |
| اودالله ﷻ په غضب اخته شول‌اوا رسوائي او ذلت دغه شان په غضب كښې اخته كيدل، خكه چې دوئ د الله تعالى | | | | | | |

| بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | وَيَقْتُلُوْنَ | النَّبِيّٖنَ | بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ | ذٰلِكَ | بِمَا | عَصَوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دآيتونو دالله نه | اووژل ئې | پيغمبران | په نا حقه | دا | په دې وجه | چه نافرماني ئې كړې وه |
| آيتونه منل او د الله تعالى پيغمبران به ئې په ناحقه وژل دا لويې گناهونه دوی كول خكه چې دوئ سركشه شوی | | | | | | |

| وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿٦١﴾ |
|---|
| اودشريعت دحدونونه بهرته وتل |
| اود الله حدود به ئې ماتول |

قوله تعالى:- وَاِذْ قُلْتُمْ يٰمُوْسٰى لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ

**د زمكې پيداوار كيدو مطالبه** :-په دې خائې كښې دبنی اسرائيلوبې صبری اودالله ﷻ دنعمت بې قدری بيانيږی چه هغوی دمن اوسلوی پشان پاك نعمتونو باندې هم صبر اونكړې شو او بې كاره څيزونه ئې غوښتل،ديو طعام نه مراد يو قسم طعام دې، يعنی من و سلوی.د (فوم) معنی كښې اختلاف دې.د حضرت ابن مسعود ﷺ په قرات كښې (ثوم) دې. حضرت مجاهد رحمه الله د (فوم) تفسير په ثوم سره كړې دې. يعنی اوږه.ابن عباس ﷺ نه داروايت دې.دمخكينې لغت په مخكينو كتابونو كښې ( فوموالنا)په معنی د(اختبزوا) سره دې. يعنی زمونږ روټئ پخه كړې سره ده.ابن جرير رحمه الله فرمانی كه دا صحيح وی نودا حروف مبدله دې.لكه (عاثور شر،عافور شر،اثاثی،الاثی،مغافير،مغاثير)وغيره چه په دې كښې ف په ث او ث په ف سره بدله كړې شوې ده. خكه چه دا دواړه دمخرج په اعتبار سره ډير نزدې دی. والله اعلم.
اوخلق وانی چه د(فوم)معنی د غنمو ده.حضرت ابن عباس ﷺ نه هم دا نقل دی. او داحيجه په شعرونو كښې هم (فوم)دغنمو په معنی سره راغلې دې.دبنو هاشم په ژبه كښې فوم دغنمو په معنی كښې استعمال شوې دې.دفوم معنی روټئ هم ده.بعضو ئې معنی سنبله كړې ده.حضرت قتاده رحمه الله او حضرت عطاء رحمه الله فرمانی چه دكومې غلې نه روټئ پخيږی هغې ته فوم وئيلې شی. اوبعضې وانی چه فوم دهرقسمه غلې دپاره استعماليږی. حضرت موسی ﷺ خپل قوم اوريلو چه تاسو ولې دبنو څيزونو په بدل كښې خراب څيزونه غواړئ.

قوله تعالى:-اِهْبِطُوْا مِصْرًا فَاِنَّ لَكُمْ مَّا سَاَلْتُمْ ؕ

**يوښار ته د كوزيدو حكم**:-بياني اوفرمانيل چه خی تاسو به په ښار كښې داټول څيزونه اوموموئ. د جمهوروبه قرات كښې (مصرا)دې. اوپه ټولو قرانتونو كښې هم دا ليكلې شوی دی. حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دی چه دښارونونه يو ښارته لاړشئ.حضرت ابی ابن كعب ﷺ او حضرت ابن مسعود ﷺ نه د (مصر) قرائت هم دې.اوددې تفسير مصرښارسره كړې شوې دې. اوداهم كيدېشی چه د(مصرا) نه مراد خاص ښارمصر واخستلې شی اودا الف د(مصرا)داشان دې لكه (قواريرا قواريرا) كښې چه دې مصر نه مرادعام ښار اخستل بهتر دی.نو مطلب داشوچه تاسو كوم څيز غواړئ هغه خودېراسان څيزدې او تاسوچه كوم ښار ته خئ هغه به تاسو ته ملاويږی.(هغې دپاره) زماددعا هډو ضرورت نشته .خكه چه دهغوئ داټول صرف تكبر،سركشئ او لوئی په طوروو خكه هغوی ته څه جواب ورنكړې شو.والله اعلم

قوله تعالی:- وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ

**د اعمالو شامت**:-مطلب دادې چه ذلت او مسکینی په دوی مسلط کړې شوه. ذلت او پستی په دوی باندې واچولې شوه. ددوی نه جزیه وصول کولې شوه. دمسلمانانو پښو ته راغلل. دوی ته اولړه او خیر غوښتلو نوبت راغلو. په دوی باندې دالله ﷻ غضب او غصه راغله .دبا،ومعنی واپس شو او رجوع نې اوکړه.د باء دښیګرې بدلې سره او کله دبدیٔ بدلې سره راځی.پدې ځائې کښې دبدنی بدلې سره راغلې ده. داټول عذاب دهغوی د تکبردښمنیٔ په وجه اودحق دقبولیت نه دانکار په وجه اودالله ﷻ دآیتونو نه دکفراودنبیانو علیهم السلام او دهغوی نه پس د هغویٔ دتابعدارو اهانت او دهغوی دقتل په وجه وو. ددې نه به زیات کفر څه وی دالله ﷻ دآیتونو نه انکار کوی او دهغه نبیان علیهم السلام بغیر د څه وجې قتل کول دی،حضرت نبی اکرم ﷺ فرمائی چه دتکبرمعنی حق پټول او خلقو لره ذلیله کول دی(۱) مالك بن مراره رهاوی رضی الله عنه یوه ورځ د حضرت نبی اکرم ﷺ په خدمت کښې حاضرشو او عرض نې اوکړو چه یارسول الله ﷺ څه ښکلې سړې یم زما زړه نه غواړی چه دچا د پیزار تسمه هم زما نه ښه وی نو آیا داتکبر او سرکشی ده؟ حضرت نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چه نه بلکه سرکشی خو حق پټول او خلقو لره سپک ګڼړل دی. (۲)

قوله تعالی:- ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ الْحَقِّ

**کفر د نبیانو قتلول**:- چونکه دبنی اسرائیلوتکبر اوکفردنبیانو قتل کولو ته اورسیدل.څکه په دوی باندې دالله ﷻ غضب په دنیا او آخرت کښې لازم شو. حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه بنی اسرائیلو یویو ورځ کښې به درې درې سوه نبیان قتل کول ،بیا به بازارونو ته تلل او په خپلو کاروبارونو کښې به مشغول وو. (ابوداود طیالسی.)(۳)حضرت نبی اکرم ﷺ فرمائی چه دټولو نه زیات سخت عذاب به د قیامت په ورځ دهغه سړی وی چه هغه نبی قتل کړې وی یا دې یو نبی قتل کړې وې اودګمراهیٔ امام او تصویر جوړولووالا وی.دا بدله وه دهغوی دنافرمانیٔ او دظلم او د زیاتیٔ ، دا دویم سبب دې چه هغوی به هغه کارونه کول چه دکومو نه منع شوی وو اودحد نه به تیر شو. والله اعلم. (۴)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | إِنَّ الَّذِينَ | | آمَنُوا |
| | | | \| بشکه چې کوموکسانو\| | | ایمان راوړې دې (په نبی) \| |
| | | | \|بیشکه چاچې په ظاهره ایمان راوړنی دې (اوکلمه د توحید او رسالت نې ونیلی ده) | | |
| وَالَّذِينَ | هَادُوا | وَالنَّصَارَىٰ | وَالصَّابِئِينَ | مَنْ | آمَنَ |
| اوچې کوم کسان \| | یهودیان شوی دی\| | او که عیسایان دی\| | اوکه صابیان دی\| | اچا چې هم \| | ایمان راوړو |
| یا یهودیان یا نصاری یا صابئین دی\| | (نو زمونږ چا سره ضد نشته بلکه) | | | هر هغه څوک چه | په الله |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِاللَّهِ | وَالْيَوْمِ الْآخِرِ | وَعَمِلَ صَالِحًا | فَلَهُمْ | أَجْرُهُمْ | عِنْدَ |
| په الله \| | اوپه ورځ دآخرت \| | اوعمل نې اوکړو\| نیك | انوده دهغویٔ دپاره \| | بدله دهغویٔ \| | په نزد |
| اوپه ورځ دآخرت باندې ایمان راوړی \| | اوښه کارونه کوی \| | نوهغوی د رب په نیز د هغوی دپاره اجر | | | |

---

(۱) صحیح مسلم : کتاب الایمان باب تحریم الکبر وبیانه: ۹۱ ، )-

(۲) احمد: ۳۸۵/۱، حاکم: ۱۸۲/٤،)-

(۳) ابن جریر: ۱٤٤/۳، تفسیر ابن ابی حاتم:۱۲٦/۱،

(٤) احمد: ٤۰۷/۱، وسنده حسن مسندالبزار: ۱٦۰۳، الطبرانی: ۱۰۱۵۱۵، الترغیب : ۱۳٦/۳)-

| رَبِّهِمْ ۚ | وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ | وَلَا هُمْ | يَحْزَنُونَ ۝ |
|---|---|---|---|
| د رب دهغوئ | اونه به وی یره په هغوئ باندې | اونه به هغوئ | غمژن شي |
| مقرر دي | اونه به په هغوی (په آخرت کښې) څه قسمه ویره وی | اونه به په پرې څه خفګان وی | |

**قوله تعالى:-** إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالنَّصَارَىٰ وَالصَّابِئِينَ

**په الله او اخرت ایمان راوړل:-** مخکښې دفرعونیانو د عذاب ذکر وو نو په دې خائې کښې چه کوم خلق نیکان وو دهغوی ثواب بیانیږی. د نبی کریم ﷺ تابعدارو دپاره دا زیرې د قیامته پورې دې چه نه به ورته دمستقبل ویره وی او نه به ورته د فوت شوؤ څیزونو څه افسوس او حسرت وی او په بل خائې کښې دی چه :﴿ أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾یعنی دالله ﷻ په دوستانوباندې به هیڅ ویره او غم نه وی.اوهغه فرښتې چه دمسلمانانو د روح اخستلو دپاره راځی هغوی هم داوائی چه : ﴿أَلَّا تَخَافُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَبْشِرُوا بِالْجَنَّةِ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ﴾تاسومه ویریږئی اوتاسومه خفه کیږئ مونږ تاسو ته دهغه جنت زیرې درکوؤ چه دکوم تاسو سره وعده شوې وه.

حضرت سلمان فارسی ﷺ فرمائی چه زه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضریدو نه مخکښې دکومو دیندارو سره ملاؤشوې وم دهغوی دعبادت او روژو او مونځ وغیره ذکر اوشو نو دا آیت نازل شو (ابن ابی حاتم ) . په یو بل روایت کښې دی چه حضرت سلمان دهغوی ذکر اوکړو او وې فرمائیل چه هغوی مونځګزاراو روژه دار او ایماندار وو اوددې خبرې معتقد وو چه محمد ﷺ معبوث کیدونکې دې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغوی جهنمیان دی.حضرت سلمان فارسی ﷺ په دې سره سخت خفه شو. نودا آیت نازل شو.خو دا دې واضحه وی چه په یهودیانو کښې ایماندار هغه څوك دی چه تورات لره منی او دحضرت موسیٰ ﷺ دسنتو عامل وی او دحضرت موسیٰ ﷺ په سنتو باندې ولاړ وی اوکه دحضرت موسیٰ ﷺ نه ئې انکار اوکړو او تابعدارئی ئې اونکړه نو بیا بې دینه شو.

داشان په نصرانیانو کښې ایماندار هغه څوك دی چه انجیل لره کلام الله منی،اودحضرت عیسی ﷺ په شریعت باندې عمل کوی او په چه خپله زمانه کښې نبی کریم ﷺ اووینی نود نبی کریم ﷺ تابعداری او د نبوت تصدیق اوکړی. او که بیا هم هغه انجیل او اتباع دعیسی ﷺ پرې نښودہ او دنبی کریم ﷺ په طریقه ئې عمل اونکړو نو هلاك به شی(ابن ابی حاتم)سدی رحمه الله او سعید بن جبیر رحمه الله هم دا فرمائی. مطلب دادې چه دهر نبی تابعدار اودده منلووالا ایمانداراو صالح دې او الله ﷻ سره نجات موندونکې دې.خو کله چه بل نبی راغلو او ده دهغه نه انکار اوکړو نوکافر به شی. دقران پاك یو خودا آیت چه مخامخ دې او بل دا آیت چه په هغې کښې بیان دې چه ﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ ﴾ یعنی چه کوم سړې داسلام نه سوا بل دین تلاش کړی نو هغه دین به دده نه قبول نه وی او په آخرت کښې به هغه دنقصان والو نه وی.

په دې دواړوآیتونو کښې هم دا تطبیق دې . چه دیوسړی هیڅ یو عمل او هیڅ یو طریقه به قبوله نه وی چه هغه د شریعت محمدی ﷺ مطابق نه وی خو دا په هغه وخت کښې دی چه کله دوی مبعوث شو اودنیا ته راغلل. د نبی کریم ﷺ نه مخکښې چه دکوم نبی زمانه وه او چه کوم خلق په هغه زمانه کښې وو دهغوی دپاره دهغه زمانې د نبی تابعداری اودهغه د شریعت مطابق عمل کول شرط وو

**یهودیان څوك دی ؟**لفظ یهود د هواده نه ماخوذ دې چه ددې معنی مودة او دوستی ده یا دا ماخوذ دې د تهود نه چه ددې معنی توبه ده. لکه څنګه چه په قران پاك کښې دی چه ﴿إِنَّا هُدْنَا إِلَيْكَ﴾حضرت موسیٰ ﷺ فرمائی چه اې الله ﷻ مونږ تاته توبه کوؤ . نو هغوی ته هم ددې دوؤ وجوهاتو په وجه یهود ونیلې شوی دی.یودتوبې په وجه اوبل خپلو کښې د دوستئ په وجه،اوبعضې وائی چه دوی دیهودا د اولاد نه

رو نویه دې وجه دوی ته یهود اوونیلې شو. یهودادحضرت یعقوب ﷺ د مشرخونې نوم وو.یو قول دا هم دې چه دوی دتورات د لوستلوپه وخت کښې به خوزیدل نو په دې وجه دوی ته یهود یعنی حرکت والا اوونیلې شو.

کله چه د حضرت عیسی ﷺ دنبوت زمانه راغله نوپه بنی اسرائیلو باندې دهغوی د نبوت تصدیق اوددوی د فرمان اتباع واجب شوه او دهغوی نوم نصاری شو ځکه چه هغوی په خپلو کښې دیو بل نصرت یعنی تائید او مددکړې وو. اودوی ته انصار هم ونیلې شوی دی. ځکه چه د حضرت عیسی ﷺ قول دې چه : ﴿ مَنْ أَنصَارِيٓ إِلَى اللَّهِ ۖ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ ﴾ دالله ﷻ په دین کښې زما مددګار څوك دې ؟ حواریانو اوونیل چه مونږ یودالله ددین دپاره مددکونکی.بعضې وائی چه دا خلق په کوم ځائې کښې کوز شوی وو دهغې زمکې نوم ناصره وو نو په دې وجه دوی ته نصاری اوونیلې شو. حضرت قتاده ﷫ او حضرت ابن جریج ﷫ نه همدا قول نقل دې. حضرت ابن عباس ﷛ نه هم دا روایت نقل شوې دې والله اعلم.

**دنصاراوپیژندګلو**:- نصاری د ﴿نصران﴾ جمع ده لکه دنشوان جمع نشاوی او سکر جمع سکاری ، ددې مونث ﴿نصرانة﴾ راځی. اوس چونکه د نبی کریم ﷺ زمانه راغله او نبی کریم ﷺ ټولې دنیا طرفته رسول اولیږلې شو نو په هغوی باندې او په ټولو باندې د نبی کریم ﷺ اتباع واجب شوه. او دنبی کریم ﷺ دامت نوم مومن کیخودلې شو ددوی دایمان او د یقین دپوخوالی په وجه او په دې وجه هم چه ددوی ایمان دټولو مخکښنو نبیانو علیهم السلام باندې هم دې اوپه راتلونکو خبرو باندې هم .

**دصابی په تعریف کښې اقوال**:-① دصابی معنې یوخو بې دینه اوبې مذهبه شوې ده اود اهل کتابو یو ډلې نوم هم وو چه هغوئ زبور لوستلو او هم په دې وجه د ابوحنیفه ﷫ اواسحاق ﷫ مذهب دې چه ددوی دلاس ذبح زمونږ دپاره حلاله ده. او ددوی ښځو سره نکاح کول هم جائز دی. حضرت حسن ﷫ اوحضرت حکم ﷫ فرمانی چه دا ډله په شان د مجوسیانو ده ، دا هم روایت دې چه دې خلقو به د فرښتو عبادت کولو ، زیاد چه کله دا واوریدل چه دا خلق پنځه وخت مونځ قبلې طرف ته کوی نواراده ئې اوکړه چه ددوی جزیه معاف کړی لیکن ورسره دا هم معلومه شوه چه هغوی مشرکان دی نوزیاد دخپلې ارادې نه منع شو.

②ابوالزناد ﷫ فرمانی چه دا خلق عراقیان وو اودبکوثی اوسیدونکی وو ،ټول نبیان علیهم السلام ئې منل،هر کال کښې به ئې دیرش روژې نیولې اویمن طرفته به ئې مخ کولو او ورځ کښې به ئې پنځه مونځونه کول .وهب بن منبه وائی دا خلق الله ﷻ پیژنی. دوی په هیڅ شریعت باندې نه دی اوکفار هم نه دی.دعبدالرحمان بن زید ﷫ قول دې چه داهم یومسلك دې چه دا خلق په جزیره موصل کښې وو﴿لااله الاالله﴾به ئې ونیل او هیڅ یوکتاب یا نبی به ئې نه منلو اونه به ئې څه خاص شریعت باندې عمل کولو. مشرکانوبه هم په دې بناء باندې نبی کریم ﷺ اود نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ﷛ ته صابی ونیل.د ﴿لااله الاالله﴾ ونیلو په وجه ددوی دین نصرانیانو سره ملاویږی. دهغوی قبله جنوب طرف ته وه. دې خلقو به ونیل چه مونږ دحضرت نوح ﷺ په دین باندې یو. یو قول دا هم دې چه دا دیهودو اود مجوسیانو ګډوډ شوې دین وو. ددوی ذبح خوړل اوددوی ښځو سره نکاح کول منع دی.حضرت مجاهد ﷫ ، حضرت حسن ﷫ او د ابن ابی نجیح ﷫ هم دا فتوی ده.قرطبی ﷫ فرمانی چه ماته ترکومې پورې معلوم شوی دی چه دا خلق موحد وو لیکن د ستورود تاثیر او د نجوم معتقد وو.ابو سعید اصطخری ﷫ په دوی باندې دکفر فتوی ورکړې ده.

③رازی ﷫ فرمانی چه دا خلق ستوری پرست وو. اودوی طرف ته حضرت ابراهیم ﷺ لیږلې شوې وو. دحقیقت حال علم خو ئې صرف الله ﷻ ته دې خو په ظاهر دا قول ښه معلومیږی چه دا خلق نه یهودیان

وو او نه نصرانیان او نه مجوسیان او نه مشرکان وو بلکه دا خلق فطرت باندې وو. د یو خاص مذهب پابند نه وو. او هم په دې وجه به مشرکانو نبی ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته صابی ونیل. یعنی دې خلقو ټول مذهبونه ترک کړي وو. دبعضو عالمانو قول دې چه هغوی صابیان وو چه دوی ته هیڅ یونبی دعوت نه وی رسیدلې. والله اعلم.

## د صابی د ذبیحې حکم

**مسلک حنفي:-** په هدایه کنبې دی وَتَجُوزُ تَزْوِيجُ الصَّابِئَاتِ إِنْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِدِينِ نَبِيٍّ وَيُقِرُّونَ بِكِتَابٍ لِأَنَّهُمْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ او جائز دې نکاح کول د صابیه ښځو سره که هغوی ایمان لرلو د چا نبی په دین او منلو ئې څه کتاب لره. په دې عبارت کنبې د صابیه تعریف شوې دې او د دې سره د نکاح جواز خودلې شوې دې نو هرکله چه د دې سره نکاح جائز شوه دغه شان به د دې ذبیحه هم حلاله وی لکه څنګه چه د اهل کتابو ذبیحه حلاله ده او نکاح ورسره هم جائز ده از شاه فیصل (تسهیل الهدایه ۴۰۱۳)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذْ | أَخَذْنَا | مِيثَاقَكُمْ | وَرَفَعْنَا | فَوْقَكُمُ | الطُّورَ | خُذُوا |
| اویادکړئ کله چې | واخسته مونږ | پخه وعده ستاسو نه | اوپورته کړه مونږ | دپاسه ستاسو | اکوه طور | اونیسئ |
| اوکله چې مونږ ستاسونه وعده واخسته (چې دتوراة حکمونه اومنئ) | | | اوکوه طورمودرباندې اوچت کړو | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَآ | آتَيْنَاكُمْ | بِقُوَّةٍ | وَاذْكُرُوا | مَا | فِيهِ |
| هغه کتاب | چې درکوونې مونږ تاسو ته | په مضبوطیا سره | اویادکړئ | اهغه احکام | چې په دې کنبې دی |
| اودرته مواوونیل چه په دې حکمونو په کوشش سره اوعمل اوکړئ | | | اوپه دې کنبې چه څه دی هغه یاد کړئ | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَعَلَّكُمْ | تَتَّقُونَ۝ | ثُمَّ | تَوَلَّيْتُمْ | مِّنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ ۚ |
| دې دپاره چې تاسو | دتقوی په لارروان شئ | خوبیا | واپس شوئ تاسو | روستو ددغه وعدې نه |
| ددې دپاهر چه خان دګناه نه اوساتئ | | اخوددغې پخې (وعدې) نه پس هم تاسو دخپلوځونونه اوګرزیدئ | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَلَوْلَا | فَضْلُ اللّٰهِ | عَلَيْكُمْ | وَرَحْمَتُهُ | لَكُنْتُمْ |
| نوکه چرې نه وې | فضل د الله | په تاسو باندې | اورحمت د هغه | نوخامخابه شوې وئ تاسو |
| نوکه دالله مهربانی اورحمت درباندې نه وې (اونرمی نې درسره نه وې کړې) نو تاسو به (د خپل دې عمل په وجه) | | | | |

| |
|---|
| مِّنَ الْخَاسِرِينَ۝ |
| دنقصان موندونکونه |
| د تاوانیانو ځنی وئ (اوهلاک شوې به وئ) |

**قوله تعالی:- وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ**

**د کوه طور د سرونو دپاسه کول:-** په دې آیتونو کنبې الله ﷻ بنی اسرائیلو ته وعده وریادوی چه تاسو نه مادخپل عبادت او خمادنبی دتابعدارنی وعده اخستې ده او ددې وعدې پوره کولو دپاره اومنلو دپاره ما ستاسوپه سرونو باندې کوه طور غر راتیټ کړې وو. اوبل ځائې کنبې ارشاد دې چه ﴿وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ﴾ الخ .کله چه مونږ دهغوی په سرونو باندې سیورئ کړو غر لره اودوی یقین اوکړو چه دا به اوس دوی لره تباه اوچخړی کړی نو په هغه وخت دوی زمونږ ورکړې شوی څیزونه کلك اونیول او په دې کنبې چه څه دی دا یادکړنی نو بچ به شئ.دطور نه مراد غر دې لکه چه د سورت اعراف آیت کنبې دې

اولکه څنګه چه دصحابه کرامو ﷺ او تابعینونه ددې تفسیر شوې دې (۱)اوهم دا ظاهر دی. طور هغه غر ته وئیلې شی چه په هغې باندې څه زرغونیږي(۲)په حدیث فتون کښې د حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه کله هغوی د اطاعت نه انکار اوکړو نوپه هغه وخت غر دهغوی دسرونو دپاسه راتیټ شو چه اوس واورئې. سدی ﷫ وائی چه ددوی دسجدې کولو دانکار په وجه ددوی په سرونو باندې غر راتیټ کړې شو لیکن په دغه وخت کښې دوی ټول په سجده کښې پریوتل او دویرې دوجې نې پاس کتل،الله ﷻ په دوی باندې خپل فضل اوکړو او غر نې ترې اخوا کړو. هم په دې وجه هغوی داسې سجده خوښوی چه نیمه تنه ئې په سجده کښې وی او بل طرفته هغوی پاس ګوری .

**دکوم څیز د نیولو حکم شوې وو؟**:- چه کوم مونږ درکړل ددې نه مراد تورات دې. دقوت نه مراد اطاعت دې یعنی تورات باندې مضبوطیا سره دعمل کولو وعده اوکړئ ګنی تاسو باندې به غر راوغورزولې شی. او په دې کښې چه څه دی هغه یادکړئ یعنی تورات لره لولئ (۳) خو دې خلقو ددې دومره پوخ میثاق او د اعلی وعدې هم لحاظ اونه ساتلواووعده خلافی نې اوکړه ، اوس دالله ﷻ رحمت او کرم نه وې او هغه توبه قبلونکې نه وی. اود نبیانو سلسله نې جاری نه وې ساتلې نو یقیناً تاسو ته به زبردست نقصان رسیدلې وې ددې وعدې د ماتولو په وجه او په آخرت کښې تاسو بربادشوی وې.

| وَلَقَدْ | عَلِمْتُمُ | الَّذِينَ | اعْتَدَوْا |
|---|---|---|---|
| اوخامخا | معلومه ده تاسو ته قیصه | دهغه کسانو | اچې تجاوز نې کړې وو |
| اوتاسوهغه کسان ښه پیژنئ چې د خالی په ورځ نې نافرمانی | | | |

| مِنْكُمْ | فِي السَّبْتِ | فَقُلْنَا | لَهُمْ | كُونُوا | قِرَدَةً | خَاسِئِينَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ستاسو نه | په په ورځ د خالی کښې | نواووئیل مونږ | هغوئ ته | شئ | شادوګان | ذلیلان |
| (چه دمهیانونیولو) کړې وه | نومونږورته اووئیل چې خوار اوذلیله د شادوګانو شکلونه اختیار کړئ | | | | | |

| فَجَعَلْنَاهَا | نَكَالًا | لِمَا | بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا |
|---|---|---|---|
| پس اوګرخوله مونږ دا واقعه | یوعبرت | دهغه وخت خلقو دپاره | اودروستو راتلونکی نسل دپاره |
| نومونږ دغه واقعه دهغه زمانې (دخلقو دپاره) او د راتلونکو خلقو دپاره عبرت اوګرزوله (اودغه شان) | | | |

| وَمَوْعِظَةً | لِلْمُتَّقِينَ ۝ |
|---|---|
| اونصیحت | دپاره دپرهیزګارانو |
| د پرهیزګارو خلقودپاره مو نصیحت اوګرخولو | |

**قوله تعالی**:-وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِينَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ فِي السَّبْتِ فَقُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ

**دخالی په ورځ د ښکار کولو واقعه** :- ددې واقعې پوره تفصیل په سورت اعراف کښې دې چه په هغه ځائې کښې فرمانیلې شوی دی چه ﴿وَاسْأَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي﴾ الخ.هم هغه ځائې کښې به ددې پوره تفسیر بیان کړې شی،انشاء الله .دا دایله کلی اوسیدنکی وو. په دوی باندې د هفتې (خالی )دورځې تعظیم لازم کړې شوې وو ،په دې ورځ ښکارهم منع کړې شوې وو او دالله ﷻ په حکم سره به په دې ورځ مهیان

---

۱) ابن ابی حاتم : ۱ / ۲۰۳)-
۲) ابن ابی حاتم : ۱ / ۲۰۳)-
۳) ابن ابی حاتم : ۱ / ۲۰۳)-

زيات وو نوهغوی حيله جوړه کړه اوکندې نې اوکنستلې،رسئ او کونډې بـه نې واچولې اودهفتې پـه ورځ هغه (مهيان) راغلل او په دې ( کونډو او کندو) کښې به انختل او داتوار په ورځ دوی هغـه اونيـول. په دې جرم باندې الله ﷻ دهغوی شکلونه بدل کړل.

**د مجاهد يوغريب قول:**- مجاهد رحمه الله فرمائي چه شکلونه نې نه وو بدل شوی بلکه زړونه نې مسخ کړې شوی وو ، داصرف دمثال په طور دی لکه څنګه چه د عمل نه کولو والا علماء دخرو سره مثال ورکړې شوې دې. ليکن داغريب قول دې او د قران پاك واضحه الفاظو نه هم خلاف دی. په دې آيت باندې بيا سورت اعراف آيت ﴿وَاسْئَلْ﴾ الخ او﴿ وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ﴾ الخ باندې نظر واچونی. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه ددوی خوانانونه شادوګان جوړ شو او بوډاګانو نه نې خنزيران جوړ شو. [1] قتاده رحمه الله فرمائی چه د ټولو ښخواوسرو نه نې لکئ والا شادوګان جوړ شوی وو.آسمانی آواز راغلو﴿كُونُوا قِرَدَةً﴾ چه تاسو شادوګان جوړ شئ. نو ټول په ټوله شادوګان شو. [2] چه کومو خلقو دوی لره ددې مکرو و فريب نه منع کول اوس هغوی راغلل او وې وئيل چه آيا مونږ مخکښې تاسو نه منع کولئ څه ؟ نو هغوی سر خوزولو يعنی آو.

**د مسخ شوو خلقو هلاکت:**- حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه په لږ وخت کښې هغوی ټول هلاك شو اودهغوی نسل هډوپاتې نشو[3]،دريو ورځو نه زيات هيڅ يومسخ شوې قوم نه پاتې کيږی.دا ټول په دريو ورځو کښې راښکلو سره هلاك شو په پوزه پوزه راښکلو سره. خوراك څکاك او نسل نې ټول منقطع شو.دا خو خناور دی چه داشان پيدا شوی وو ،الله ﷻ چه څه غواړی او څنګه نې غواړی پيدا کوی او چا لره څنګه غواړی نوهغه شان تر جوړوی[4] (الله ﷻ دې مونږ دخپل غضب اوغصې او دخپلو نيولونه او دخپل دنياوی او اخروی عذاب نه دې مونږ ته نجات راکړی آمين ) د﴿خَاسِئِينَ﴾ معنی ذليل او کمينه ده. ددوی تفصيلی واقعه حضرت ابن عباس رضي الله عنه وغيره چه کومه بيان کړې ده هغه واورئ. په دوی باندې دجمعې احترام او ادب فرض کړې شوې وو ليکن هغوی دجمعې ورځ خوښه نه کړه اود هفتې ورځ نې مقرر کړه او په دې ورځ دعزت په طور په دوی باندې ښکارکول وغيره په دې ورځ حرام کړې شو. بل طرفته د آزمينبت په وجه دهفتې په ورځ به ټول مهيان پاس راتلل او ټوپونه به نې وهل ، په باقی ورځو کښې به په نظر نه راتلل،ترڅه وخته پورې دوی خوخاموش وو اودښکار کولو نه منع وو.

**دښکار دپاره حيله لټول:**- دې نه پس په دوی کښې يو سړی داحيله راويستله چه دهفتې په ورځ نې مهيان اونيول او کونډه نې واچوله او يو غاړې ته نې تار په څه څيز پورې اوتړلو. او د اتوار په ورځ لاړواو هغه نې راواخستل او پاخه نې کړل او ددې خوشبو په خلقو باندې اولګيدله نو خلقو ترې نه تپوس اوکړو نو ده اووئيل چه ما خو نن داتوار په ورځ باندې ښکار کړې دې ، آخر دا راز ښکاره شو او خلقو داحيله خوښه کړه اوداشان هغوئ ټولو دماهيانو ښکار شروع کړو ،بيا بعضو د درياب سره نزدې کندې ويستلې.دهفتې په ورځ چه به کله مهيان په دې کښې راتلل نو دابه نې بندوله او داتوار په ورځ به نې دا نيول ،

**نيکان خلق:**- څه خلق چه په دوی کښې نيکان وو او رېښتونی مسلمانان وو هغوی به دوی منع کول ليکن ددوی جواب به داوو چه مونږ دهفتې په ورځ ښکار نه کوؤ ، مونږ خو د اتوار په ورځ ښکار کوؤ .ددې ښکار کولو والو او ددې نه منع کولو والونه سوا يوه بله ډله راووتله چه دمصلحت وخت تيرولو

---

[1] ) ابن ابی حاتم : ۱ / ۲۱۰ )–
[2] ) ابن ابی حاتم : ۱ /۲۰۹ )–
[3] ) ابن ابی حاتم : ۱ /۲۰۹ )–
[4] ) الطبری: ۲/۱۶۷)–

او دوارو ولو لره راضي كولو والا وو . هغوى خو نه ددوى سره ملګرتيا كوله او نه به نې ښكار كولو اونه به نې ښكار نه خلق منع كول. بلكه منع كوونكى ته نې ونيل چه دې قوم ته ولې نصيحت كونې ،دوى به الله ﷻ هلاك كړې يا به ورته سخت عذاب وركړي او تاسو خپل فرض ادا كړو دوى مو منع كړه. هركله چه نه منى نو اوس دوى پريږدنى ، منع كوونكو به جواب وركولو چه يو طرفته خو دالله تعالى په نيز مونږ چه معذور شو ددې په وجه او بل په دې وجه چه شاند نن نه نو سبا اوكه سبا نه وى نوبله ورخ به دوى اومنى اودالله ﷻ دعذاب نه به بچ شى. بالاخر دې مسلم جماعت ددې حيله كوونكو ولې سره بانيكاټ اوكړو اوددوى نه بالكل جدا شو. دكلى په مينځ كښې نې يو ديوال اووهلو او يو دروازه نې دتګ راتګ دپاره پريښودله.په دې حيله كوونكې نافرمانوياندې هم داشان څه موده تيره شوه. يو ورځ چه كله دامسلمانان دخوب نه رابيدار شو دخوب نه او ورځ راوختله نوتر هغه وخته پورې دې خلقو خپله دروازه بيرته نه كړه او نه ددوى آوازونه راتلل ، دا خلق حيران وو چه نن څه خبره ده؟

**دعجيبه منظر ليدل**:- آخر چه كله وخت زيات تير شو نو خلقو په ديوال باندې اوكتل نو په هغه خانې كښې عجيبه منظر ورته په نظر راغلو،وې كتل چه ټول خلق ښځو او ماشومانو سره شادوګان شوى دى اودهغوى كوررونه څنګه چه دشپې نه بند وو هم هغه شان بند وو او دننه ټول خلق د شادوګانو پشان وو او ددوى لكئ شوې وې. بچى د وړوكو شادوګانو په شان ، سړى د لويو شادوګانو په شان او ښځو نه ماده شادوګانې جورې شوې وې. اوهر سړې به پيژندې كيدو چه دا فلانى كس دې اودا فلانئ ښځه ده اودا فلانې بچې دې. وغيره وغيره. اودا هم ياد ساتل پكار دى چه كله داعذاب راغلو نو نه صرف دا خلق هلاك شو چه كومو ښكار كولو بلكه هغه خلق هم هلاك شو چه مصلحت پسند وواو دوى نې نه منع كول او خاموشه ناست وو اوددوى سره نې تګ راتګ نه وو پريښودې. بلكه صرف هغه خلق باقى پاتې شو چه كومو منع كول او ددوى نه جدا شوى وو. دا ټول اقوال اودقران پاك ډير آيتونه وغيره په دې ګواه دى صحيح خبره داده چه دهغوى شكلونه بدل شوى وو او په رښتياؤ ترينه شادوګان جوړ شوى وو. نه صرف دا چه معنوى مسخ وه يعنى ددوى زړونه دشادوګانو په شان وو لكه څنګه چه د حضرت مجاهد رحمه الله قول دې،صحيح تفسير هم دا دې چه الله ﷻ دوى نه خنزيران او شادوګان جوړ كړى وو او ظاهرى شكلونه نې هم ددوى دبدو ځناورو په شان وو،والله اعلم.

**په واقعه كښې عبرت**:- ﴿فَجَعَلْنٰهَا﴾ كښې د﴿ها﴾ ضمير مرجع د﴿قِرَدَةً﴾ دې يعنى مونږ دې شادوګانو لره د عبرت سامان جوړ كړل .ددې مرجع ﴿حيتان﴾ دې يعنى مهيانو لره يا ددې مرجع﴿عقوبة﴾ دې يعنى دا سزااودا هم ونيلې شوى دى چه ددې مرجع ﴿قرية﴾دې يعنى دا كلئ مونږ دمخكښنو اوروستوخلقو دپاره عبرتناك جوړكړو او صحيح خبره دا معلوميږى چه قريه ترې مراد ده او قريه نه مراد اهل قريه دى.

﴿ نَكَالًا ﴾ وانى عذاب او سزا ته لكه څنګه چه په بل خانې كښې دى چه ﴿ فَأَخَذَهُ اللّٰهُ نَكَالَ الْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰى ﴾ دامو دعبرت سبب جوړ كړل د مخكښنو روستو والو كلو دپاره لكه څنګه چه په بل خانې كښې دى چه ﴿ وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ مِّنَ الْقُرٰى الخ ﴾ مونږ ستاسو چاپيرچل كلى هلاك كړل او نښې مو جوړ كړل چه داخلق واپس راشى اوارشاد دې چه ﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا نَاْتِى الْاَرْضَ ﴾

**بل مطلب**:- اودا هم مطلب بيان شوې دې چه دهغه وخت موجوده خلقو دپاره اودهغوى نه پس راتلونكو خلقو دپاره دعبرت واقعه او دليل جوړ شى. اګر چه بعضې خلق وانى چه دمخكښنو روستو دپاره دا يوسبق دې. ليكن ظاهر دى تير شوى خلق د راتلونكو خلقو دپاره . واقعه كه هر څومره زبردسته او عبرتناكه وى دليل نشى جوړيدلې څكه چه هغوى خو تير شو. نو قول صحيح هم دادې چه په دې خانې كښې مراد مكان او خانې دې يعنى دهغوى نه ګير چاپيره كلى او هم دا تفسيردې د حضرت ابن عباس ﷺ اوسعيدبن جبير رحمه الله. والله اعلم. او دا معنى هم بيان شوې ده چه دهغوى مخكښې ګناهونه اوددوى نه پس دراتلونكو خلقو داسې ګناهونو دپاره مونږ د داسې سزا سبب جوړ كړل ليكن صحيح هم هغه

دي چه دکومې صحت مونږ بيان کړو د چاپيرچل کلی. قران پاك فرماني چه ﴿ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُم مِّنَ الْقُرَىٰ الخ﴾ او فرمان دي چه ﴿ وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا الخ ﴾ اوفرمان دي چه ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ الخ﴾.

**امت محمديه دپاره تنبيه:-** غرض دا چه عذاب دراتلونکو خلقو دپاره او ددوی نه پس خلقو دپاره يو سبق دی. او هم ددې وجې نه ﴿وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ﴾ يعنی دا روستو راتلوونکو پرهيزګارانو دپاره دعبرت سامان دې. تر دې پورې چه د حضرت محمد ﷺ د امت دپاره چه دا خلق ويره کښې وی چه کوم عذاب اوسزا په هغوی باندې دهغوی دحيلو او مکر او فريب په وجه ، او حرام لره حلال ګڼړلو په وجه نازل شو نو اوس چه څوك داسې کوی هسې نه چه هم هغه سزا په هغوی باندې راشی. يو صحيح حديث امام ابوعبدالله بن بطه ﷫ وارد کړې دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ﴿لاترتکبوامارتکبت اليهود فتستحلوا محارم الله بادن‌ی الحيل﴾ يعنی تاسو هغه مه کونی چه کوم يهودو اوکړل په حيلوحوالو سره ني دالله ﷻ حرام حلال وي. يعنی په شرعی احکامو کښې حيلې کولو نه بچ اوسئ ، داحديث بالکل صحيح دې او ددې ټول راويان ثقه دی. والله اعلم.

| وَإِذْ | قَالَ | مُوسَىٰ | لِقَوْمِهِ | إِنَّ اللَّهَ | يَأْمُرُكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ياده کړه هغه واقعه کله چې | اوونيل | موسی | اقوم خپل ته چې | بيشکه الله | حکم کوی تاسو ته |
| او(يادکړنی)هغه وخت چې موسی خپل قوم ته اوونيل دالله حکم دې چې تاسو(دقاتل معلومولودپاره) | | | | | |
| أَنْ تَذْبَحُوا | بَقَرَةً | قَالُوا | أَتَتَّخِذُنَا | هُزُوًا | |
| چې ذبحه کړئ تاسو | يوه غوا | اوونيل هغوئ | آيا ته نيسې مونږ لره | په ټوقو سره | |
| يوه غواحلاله کړنی هغوئ ورته اوونيل آياته مونږ پورې ټوقې کوې هغه (موسی ﷺ ورته) | | | | | |
| قَالَ | أَعُوذُ | بِاللَّهِ | أَنْ أَكُونَ | مِنَ الْجَاهِلِينَ | |
| اوونيل موسی | زۀ پناه غواړم | په الله سره | چې زۀ شم | دجاهلانو نه | |
| اوونيل چې زه په الله د دې خبرې نه پناه غواړم (د الله د حکم په بيانولوکښې) ټوقو کونکو نه شم | | | | | |

**د خپل تره قتل کول:-** ددې پوره واقعه داده چه په بنی اسرائيلو کښې يو سړې وو چه ډير مالدار وو. دده نارينه اولاد نه وو. صرف يوه لور ني وه او يو وراره ني وو. کله چه ني دې وراره اوکتل چه دا بوډها هډومر کيږی نه نو د وراثت په باره کښې ورته خيال راغلوچه خه دې ولې قتل نه کړم؟ چه دده لور سره نکاح اوکړم او دقتل تهمت په نوروباندې اولګوم اوديت هم وصول کړم او دمقتول مالك هم جوړشم. په دې شيطانی خيال کښې هغه باحوصله شو او يوورځ ني موقع بيا مونده اوخپل تره ني قتل کړو. دبنی اسرائيلو ښه خلق ددوی دجنګ جګړو نه تنګ شو او جدا شو ترې اوپه بل ښار کښې اوسيدل. دماښام به ني دخپلې قلعې دروازه بندوله سحر به ني بيرته کوله. هيڅ يو مجرم به ني نه پريښودلو. دې هلك (وراره) د خپل لاش واخستلو او د قلعې پاټك سره ني واچولو. واپس راغلو او خپل تره ني تلاش کولو. بيائې هله ګله جوړه کړه چه زما تره چا قتل کړې دې او په دې قلعې والو باندې ني تهمت اولګولو. اوده د ديت درقم مطالبه اوکړه. هغوی ددې قتل اود ديت نه انکارا وکړو او وې ونيل مونږ ترېنه نه يو خبر. خو دې په ضد شو تردې پورې چه خپل ملګری ني واخستل او جنګ ني جوړکړو.

**موسی ﷺ ته تلل:-** داخلق عاجزه شو او حضرت موسی ﷺ ته راغلل او واقعه ني ورته عرض کړه چه انې دالله ﷻ رسوله هيڅ بې هيڅ په مونږ باندې دقتل تهمت لګوی حالانکه مونږ بری الذمه يو. حضرت موسی ﷺ دالله ﷻ نه دعا اوکړه او د هغه ذات د طرفنه نه وحی نازله شوه يو غوا ذبحه کړئ. هغوی اوونيل چه انې دالله ﷻ رسوله چرته د قاتل معلومول اوچرته د غوا ذبح کولو حکم؟ آيا ته مونږسره ټوقې

کوي څه ؟ حضرت موسی ﷺ ورته اوونیل اعوذبالله (دشریعت دمسئلو په وخت کښې ) د ټوقې کول د جاهلانوکار دی. دالله ﷻ حکم هم دادي.
**عبث تپوسونه کول:** اوس که دا خلق تلي وې اوغوائې ذبح کړې وې نو کافي به وه لیکن هغوی سوالونه شروع کړل او وې وئیل چه هغه غوا څنګه ښکار ده؟
**د غوا صفتونه:-** په دې باندې حکم نازل شو چه نه ډیره بوډئی ده اونه ډیره وړه ده (بلکه ) خوانه ده. هغوی اوونیل چه داسې غواګانې خو ډیرې دی دا اوفرمانې چه دهغې رنګ څنګه دې؟ وحی راغله چه دهغې رنګ بالکل صفا زیړه ده. او هر کتونکی ته ډیره ښکلې ښکاری. بیائې اوونیل چه حضرت داسې غواګانې خوډیرې دی. څه بل خاص صفت نې بیان کړئی. وحی راغله چه هغې باندې هېڅ کله هم ییوه نه ده شوې،پټو ته پرې اوبه نه دی ورکړې شوی دهر عیب نه بالکل پاکه ده.یو رنګ نې دې ، هېڅ داغ پرې نشته دې ،چه څومره به دوی سوالونه کول دومره په حکم کښې سختی راتله.
**د پلار تابعداری :-** اوس دداسې غوا په تلاش کښې اووتل اوهغه صرف یو هلك سره ملاؤ شوه. دا ماشوم دخپل پلار ډیر زیات فرمانبردار وو. یو ځل دده پلار اوده وو اودنقدو د پیټئ چابی دده سر ته پرته وه ، یو سوداګر یو قیمتی هیرا خرخوله . هغه اوونیل چه څه دا خرڅول غواړم ،هلك ورته اوونیل چه څه به نې درنه واخلم. اوددې قیمت اویا زره مقرر شو. هلك ورته اوونیل چه لږ صبر اوکړه چه کله زما پلار پاسی نو څه به دهغه نه چابی واخلم او تاته به قیمت درکړم. هغه اوونیل که اوس رقم راکوې نو څه به ستا نه لس زره کمې واخلم. هلك اوونیل چه نه څه خپل پلار نه پاسوم. که ته لږ شان ایسار شې نو څه به تاته د اویازروپه ځائې اتیا زره درکړم. همداشان یوطرفنه او بل طرفنه کمې زیاتې شروع شو تر دې پورې چه تاجر ورته دیرش زره قیمت مقرر کړو. که ته اوس پلار پاسوې اوماته رقم راکړې نو څه ستا نه دیرش زره واخلم. هلك ورته اوونیل که ته لږ ایسار شې چه زما پلار پاسی نو څه به تاته یو لاکهه درکړم. آخر هغه خفه شو او خپله هیره نې واپس واخستله او لاړو. د پلار ددې بزرګئ او دهغه د راحت او دهغه دادب خیال ساتلو په احترام کښې الله ﷻ ددې هلك نه ډیر خوشحاله شو او ده ته نې دا غوا ورکړه.
**دهلك نه دغوا مطالبه کول:-** هرکله چه بنی اسرائیلوداقسمه غوابیا مونده اوددې هلك نه بغیر بل چا سره داسې نه وه ، نو ده ته وائی چه ددې غوا په بدله کښې دوه غواګانې واخله خو هغه هلك انکار کوی. بیا وائی چه درې غواګانې واخله خو هغه هلك نه راضی کیږی . هغوی تر لسو (غواګانو) پورې شمیر اورسو خو دې نه منی اودا خلق حضرت موسی ﷺ ته شکایت کوی. حضرت موسی ﷺ ورته اوونیل چه څه دې غواړې هغه ورکړئی او غوا ترې واخلئ. آخر د غوا د وزن برابر ورته سره زر ورکړې شو نو بیا دې هلك خپله غوا خرڅه کړه. دا برکت الله ﷻ دې هلك ته مور پلار دخدمت په بدله کښې ورکړو. او دې ډیر زیات محتاج وو او دده پلار وفات شوې وو. اودده کونډه مور ډیره غریبه وه.
**د غوا اخستل:-** غرض دا چه غوا نې ترې واخستله او دائې ذبح کړه او ددې دبدن یو حصه نې دمقتول په جسم باندې اووهله نو دالله ﷻ په قدرت سره هغه مړې ژوندې شو اودهغه نه تپوس اوکړې شو چه ته چا قتل کړې نې ؟ هغه اوونیل زما وراره ځکه چه هغه زما مال واخلی او زما لور سره نکاح اوکړی ، بس دومره وینا وه او هغه دوباره مړ شو اودقاتل معلومات اوشو. او په بنی اسرائیلو کښې جنګ چه کیدونکې وو ختم شو.اودا فتنه ختمه شوه. دهغه مړده دا وراره خلقو اونیولو اودهغه دا مکار توب ښکاره شو اوهغه ددې په بدله کښې قتل کړې شو. داواقعه مختلفو الفاظو سره روایت کړې شوې ده. په ظاهره دا معلومیږی چه دا واقعه دبنی اسرائیلو ده چه ددې تکذیب یا تصدیق مونږ نشو کولې. خو روایت جائزدې. او په دې آیت کښې هم بیانیږی چه ائې بنی‌اسرائیلو زما هغه نعمت هم مه هیروئی چه

مادعادت خلاف د معجزې په طور دیو غوا (دغوښې ټکړې) په لګولو سره هغه مرده ژوندې کړو او دهغه مقتول اود قاتل معلومات اوشو. او یو خوریدونکې فتنه ختمه شوه.

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا

| اوونیل هغوئ| اوغواړه | دپاره زمونږ درب خپل نه|چې بیان کړي|مونږته| چې څنګه ده

|هغوئ اوونیل زمونږ دپاره د خپل رب نه تپوس اوکړه

هِيَ ۚ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ

هغه | اوونیل موسی| چې بیشکه| الله فرمانی | چې وی دې هغه | داسې غوا | چې نه بوډئ وی |

چه دا غوا به څنګه وی | هغه (موسی) اوونیل چې الله وائی دایوه داسې غواده چې نه ډیره زړه ده

وَلَا بِكْرٌ ۖ عَوَانٌ بَيْنَ ذَٰلِكَ ۖ فَافْعَلُوا مَا تُؤْمَرُونَ ﴿٦٨﴾

اونه بچئ| بلکه میانه حاله وی| په منځ ددې کښې| پس اوکړئ| هغه | چې دکومې درته حکم کیږي

اونه ډیره وړه ده | بلکه ددې په مینځ کښې درمیانه ده | نوتاسوته چه کوم حکم کولې شې په هغې عمل اوکړئ

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا لَوْنُهَا ۚ

اوونیل هغوئ|اوغواړه |دپاره زمونږ| درب خپل نه | چې بیان کړي| مونږته | چې څه دی| رنګ دهغې

هغوئ اوونیل چې دخپل رب نه زمونږ دپاره بیا تپوس اوکړه چې مونږته دهغې رنګ اوښائی

قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ

اوونیل موسی|چې بیشکه | الله وائی | چې وی دې هغه غوا| زیړه | شوخ دې وی |رنګ دهغې|چې خوشحالوی

هغه (موسی) اوونیل چې الله پاک وائی دایوه تکه زیړه غوا ده| چې (په کتلو سره) د زړونه خوشحالوی

النَّاظِرِينَ ﴿٦٩﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا

کتونکولره | اوونیل هغوئ | اوغواړه | دپاره زمونږ|د رب خپل نه | چې بیان کړي مونږته

هغوئ اوونیل چې ته زمونږ دپاره د خپل رب نه یوځل بیا تپوس اوکړه چې مونږته (د کار کولو په اعتبارسره)

مَا هِيَ إِنَّ الْبَقَرَ تَشَابَهَ عَلَيْنَا وَإِنَّا إِن شَاءَ اللَّهُ

چې څه قسم ده هغه| بیشکه غواګانې| ګډې وډې شوې|په مونږباندې|او مونږ |که اوغواړي| الله |

اوښائي، چې داڅنګه غوا ده | ځکه چې غواګانې په مونږ باندې ګډې وډې شوې |اوکه الله اوغواړي

لَمُهْتَدُونَ ﴿٧٠﴾ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُولٌ

خامخالارموندونکی یو | اوونیل موسی | بیشکه | الله وائی | چې هغه |داسې غوا ده| چې نه ده کار کونکې

نومونږبه نې خامخابیاموندې شو|هغه (موسی)اوونیل الله فرمائی چې دایوه داسې غوا ده چې جوتی نه ده

تُثِيرُ الْأَرْضَ وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيهَا ۚ

چې اړوی | زمکه | اونه اوبهٔ کوی | پتې (فصل)|صحیح سالمه ده | نښته داغ | په هغې کښې

چه یوې کوی یا اوبهٔ خورکوی بالکل سالمه ده| (د کار نه کولو په وجه) هیڅ داغ پرې نښته

| قَالُوا | الْئٰنَ | جِئْتَ بِالْحَقِّ ط | فَذَبَحُوهَا | وَمَا | كَادُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| اووئيل هغوئ | اوس راغلې ته | حق خبرې ته | بيا ذبحه كړه هغوئ | هغه | اونه وو نزدې |
| هغوئ اووئيل چې هيله اوس دې پوره تفصيلي خبره اوكړه نو(غوا ئې پيدا كړه او) غوائې حلاله كړه | | | | | |
| يَفْعَلُونَ﴿۷۱﴾ | | | | | |
| چې كړې ئې وې دا كار | | | | | |
| اونزدې وو چه دا كار ئې نه وو كړې) | | | | | |

**د غوا باره كښې تپوسونه:-** دبنى اسرائيلو دسركشئ او د نافرمانئ او دالله ﷻ په حكم كښې خبرې كولو بيان په دې خائې كښې كيږى چه حكم آوريدو سره په دې باندې ئې عمل اونكړو بلكه په دې كښې ئې مچختې لټول اوبار بار به ئې سوالونه كول .ابن جريج فرمائى چه هغوى حكم ملاويدو سره هره يوه غوا ذبح كړې وې نو دابه كافي وه. خو هغوى پرله پسې سوالونه كول اوپه كار كښې سختي زياتيده. آخر كښې كه هغوى انشاء الله نه وې وئيلې نو نوره به هم دا سختى هيڅكله نه وه لرې شوې اوپه دوى باندې به اظهار نه وو شوې[1]

د رومبى سوال په جواب كښې اووئيلې شو چه نه هغه بوډئى ده اونه بالكل كم عمر والا ده بلكه د درميانه عمر ده. بيا د دويم سوال په جواب كښې ددې رنګ بيان شو چه هغه دزيړ رنګ والا ده او چمكداره ده چه كتونكو باندې ښه لګى.د حضرت ابن عباس ﷺ قول دې چه څوك زيړ پيزار اچوى هغه به هر وخت خوشحاله وى اوددې جملې نه استدلال دې چه ﴿تَسُرُّ النّٰظِرِيْنَ﴾[2] بعضو وئيلى دى چه ددې نه مراد سخت تور رنګ دې ليكن اول قول صحيح دې اودابله خبره ده چه مونږ داسې اووايو چه ددې د شوخئ اود چمك په وجه تور رنګې معلوميده. وهب بن منبه وائى چه دومره شوخه وه چه داسې معلوميده چه ددې نه دنمر شغلې راخيژى .په تورات كښې چه ددې رنګ سور بيان كړې شوې دې خو شاند دا عربئ والو غلطى ده .والله اعلم.

**د غوا د كار نوعيت:-** چونكه دې رنګ اوددې عمر غواګانې دوى ته ډيرې په نظر راغلې نوهغوى بيا اووئيل چه انې د الله ﷻ نبى څه بله نښه اوښايه چه شك ختم شى،انشاء الله اوس به لار ملاؤ شى. كه هغوى انشاء الله نه وې وئيلې نوهغوى ته به تر قيامته پورې پته نه لګيده اوكه هغوى داسوالونه كولې نوپه هغوى باندې به دومره سختى نه وې بلكه چه كومه غوائې هم ذبحه كړې وې نو هغه به كافي وې. ددې مضمون په يو مرفوع حديث كښې هم راغلې دې ليكن دهغې سند غريب دې . صحيح خبره دا معلوميږى چه دا د حضرت ابو هريره ﷺ خپل كلام دې والله اعلم.دې څل ددې صفتونه بيان شو چه هغې باندې يوه نه ده شوې ، اوبه پرې نه دى راويستلې شوې ددې په څمره باندې څه داغ نشته دې ، يو رنګ ې دې ، په ټول بدن كښې ئې يو خائې كښې هم بل رنګ نشته دې.ددې لاسونه مخكښې او روستو پښې او د ټول بدن اندامونه بالكل صحيح دى او مضبوط دى.

بعضې وائى چه هغه غوا كار كولو والا نه ده خو د پټو كار كوى. اوبه راوباسى خو دا قول غلط دې. نه په دې كښې څه داغونه شته دې . اوس ددومره كوششونو نه پس دوى ددې قربانئ طرفته متوجه شو ، هم ددې وجې ئې اوفرمائيل چه ذبح كولو ته نيزدې نه وو او د نه ذبح كولو په بهانه كښې وو ، چا وئيلى دى چه هغوى ته خپلې رسوائى خيال وو چه پته نشته چه قاتل څوك دې. بعضې وائى ددې

---

[1] ) الطبرى:۱/۳۴۸ ،
[2] ) ابن ابى حاتم : ۱/۱۳۸)-

قیمت په اوریدو سره هغوی ویریدلی وو، خو په بعضوروایتونو کښې راغلی دی چه ټول ددې قیمت درې دیناره مقرر شوې وو. خو دا درېو دینارو والا اود غوا د وزن برابر سرو زرو والا روایتونو کښې اسرائیلي روایتونه دي. صحیح خبره داده چه ددوی اراده د حکم پوره کولو نه وه خو اوس ددومره وضاحت نه پس اودقتل مقدمې په وجه دوی دا حکم اومنلو . والله اعلم.

**یوه فقهي مسئلهٔ:-** ددې آیت نه په دې مسئله هم استدلال کیدیشي چه څناور بغیر دکتلو نه قرض اخستل جائز دي. څکه چه صفات ښکاره کړې شوی دی اوصفتونه ټول بیان کړې شو. لکه څنګه چه حضرت امام مالك رحمه الله ،امام اوزاعي رحمه الله ، امام لیث رحمه الله ، امام شافعي رحمه الله ، امام احمد رحمه الله اود جمهور عالمانو مذهب دې ، دمتقدمینو او متاخرینو مذهب دې. اوددې دلیل د بخاري او مسلم دا حدیث هم دې چه هېڅ یو ښځه دې دبلې ښځې صفات دخپل خاوند په وړاندې داسې نه بیانوی لکه چه هغه ئې وینی. (۱)اوپه حدیث مبارك کښې نبی کریم ﷺ د دیت داوښانو صفتونه هم بیان کړی دی . قتل

خطا کښې او هغه قتل چه قصدسره مشابه وی (۲)، خوامام ابوحنیفه رحمه الله او او نور کوفي عالمان او امام ثوري رحمه الله وغیره دبیع سلم قائل نه دی. هغوی وائی چه د څناورو په صفتونو اواحوالویاندې پوره ضبط نشي کیدلې ،داشان حضرت ابن مسعود ﷺ ، حضرت حذیفه بن یمان ﷺ او عبدالرحمان بن سمره ﷺ وغیره نه منقول دی .

**بغیر د لیدو نه د څناورخرڅولو حکم**

**مسلک حنفي:-** علامه عثماني رحمه الله فرمائي چه امام صاحب په څناورو کښې د وصف بیانول کافي نه ګنړی نو دا خبره صحیح ده اودا ایت د امام رحمه الله خلاف حجت نشي جوړیدې څکه چه په دې کښې الله تعالی د غوا وصف بیان کړې دې او امام ابوحنیفه رحمه الله دا نه فرمائي چه د الله تعالی په وصف بیانولو سره تعین نه راځی هغوی چه انکار کړې دې نود خلقو د وصف په بیانولو سره ئې د تعین نه انکار کړې دې (احکام القران للعثماني (۱۱۱/۳)۔

| فِيهَا ۚ | فَادّٰرَءْتُمْ | نَفْسًا | قَتَلْتُمْ | وَإِذْ |
|---|---|---|---|---|
| په باره دمړی کښې | نو په یوبل موالزامونه لګول | یوسړې | مړکړو تاسوا | اوکله چې |
| | | | | اویادکړئ کله ، چې تاسو یوسړې دوژلو بیا (دقاتل په حقله پخپلو |

| اضْرِبُوهُ | فَقُلْنَا | تَكْتُمُونَ ۚ | مَّا كُنْتُمْ | مُخْرِجٌ | وَاللَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووهئ دامړې | انو اوونیل مونږ | چه پټول مو | دهغه څه چې تاسووئ | ښکاره کونکې وو | اوالله |
| کښې په جګړه شوئ او الله هغه څیز ښکاره کولو کوم چې تاسو پټولوا نو مونږ اوونیل چې دامقتول دغوا په یوه حصه | | | | | |

| لَعَلَّكُمْ | اٰیٰتِهٖ | وَيُرِيكُمْ | الْمَوْتٰى ۙ | يُحْيِ اللَّهُ | كَذٰلِكَ | بِبَعْضِهَا ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې | اوښائي تاسو ته نښې خپلې | | مړی | ژوندی کوی الله | درانګې | په یوه حصه ددې غوا |
| اووهئ (نوژوندې اوګویابه شي، دغه شان به الله (د قیامت په ورځ مړی ژوندی کوی اوتاسوته دخپلوقدرتونونښې ښائی | | | | | | |
| تَعْقِلُونَ ۞ | | | | | | |
| چې تاسو پوهه شئ | | | | | | |

(۱) صحیح بخاري : کتاب النکاح باب لاتباشر المراة المراة: ۵۲۴۰، صحیح مسلم: ۳۳۸، ۲،تصرا)۔

(۲) ابو داود ، کتاب الدیات ، باب في دیة الخطا شبه العمد: ۴۵۴۷، وهو صحیح نسائي : ۴۸۹۵، ابن ماجه: ۲۶۲۷)۔

جې تاسو دعقل نه کار واخلئ!

**الله ديټو ځيزونو ښکاره کونکې دې:-** په صحيح بخاري کښې (ادارئتم) معنی ده چه تاسو اختلاف کړې دې.[1] مجاهد رحمه الله وغيره نه هم دا روايت دې.[2] مسيب بن رافع رحمه الله وائي چه کوم سړې په اوو کوټونو کښې پټ شي اونيك عملونه کوي نو الله ﷻ به دده نيکئ ظاهرې کړي. داشان که څوك په اوو کوټونو کښې پټ شي او دبدئ کار کوي نوالله ﷻ به دده دا بدي ښکاره کړي. بياني دا آيت تلاوت کړو چه (وَاللَّهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ)

**قوله تعالى:-** فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ بِبَعْضِهَا ۚ كَذَٰلِكَ يُحْيِي اللَّهُ الْمَوْتَىٰ وَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ

**دغوا په څه حصه د مړي وهل:-** په دې ځاني کښې هم هغه د تره او وراره واقعه بيانيږي چه ددې په وجه هغوی ته دغوا د ذبح حکم شوې وو او ونيلې شوي وو چه ددې يو ټکړه واخلی او په دې باندې د مقتول بدن اووهی، هغه ټکړه د کوم ځاني وه ؟ ددې بيان خو نه قرانپاك کښې شته دې اونه په څه صحيح حديث کښې او نه مونږ ته ددې په معلوميدو سره څه فانده ملاويږي ،د نه دمعلوميدوسره هيڅ نقصان نشته . ښه خبره داده چه دکوم ځيزبيان نه وی نو چه مونږ هم په هغې پسې لټون نه کوو . اګر چه بعضو ونيلی دی چه هغه دغضروف نرم هډوکې وو. څوك وائي چه هډوکې نه وو بلکه داد پټون غوښه وه. څوك وائي چه د دواړو اوږو په مينځ کښې غوښه وه. څوك وائي چه دژبې غوښه وه. څوك وائي چه دلکئ غوښه وه وغيره .ليکن زمونږ بهتری په دې کښې ده چه څنګه الله ﷻ پټ ساتلی دی مونږ ئې هم پټ اوساتو. ددې ټکړې په لګيدوسره هغه مرده ژوندې شو. او الله ﷻ د هغوی د جګړو فيصله اوکړه اودقيامت په ورځ ئې هم دا دليل جوړ کړو.

**پنځه ځايه د مرګ ذکر:-** په دې سورت کښې پنځه ځاني کښې دمرګ نه پس ژوندی کيدل بيان شوی دی. يوخودې آيت( ثُمَّ بَعَثْنَاكُم مِّن بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ) کښې دی او بل په دې قصه کښې او دريم د هغوی په قصه کښې چه د زرګونو په شمير وتلی وو او په يو ويران کلی باندې تير شوی وو. څلورم د ابراهيم عليه السلام دڅلورو مارغانو وژلو نه پس په ژوندی کيدو کښې . او پنځم دزمکې دمړکيدو نه پس ددې دپاره ژوندی کيدو ته په مرګ او ژوند سره تشبيه ورکول دی.

**په بيا ژوند يو دليل:-** د ابو داود طيالسي رحمه الله يو حديث دې چه ابو رزين عقيلي رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړو چه يارسول الله ﷺ مړی الله ﷻ څنګه ژوندی کوی ؟ وې فرمانيل چه کله ته په ويرانه زمکه باندې تير شوې ې. وې فرمانيل چه آو ، بيا ئې اوفرمانيل چه بيادې دا شنه کتلې ده ؟ وې فرمانيل چه آو .نو نبی کريم ﷺ اوفرمانيل چه داشان دمرګ نه پس ژوندی کيدل دی.[3] په قرآن پاك کښې يو بل ځاني کښې دی چه ( وَآيَةٌ لَّهُمُ الْأَرْضُ الْمَيْتَةُ ) يعنی ددې منکرانو دپاره د امړه زمکه هم يو ښه ده. چه دامونږ ژوندئ کوو.اوددې نه دانې راوباسو او دادوئ خوری اومونږ په دې کښې د انګورو او کهجورو باغونه پيدا کوو اوددې څلور واړه طرفونو ته نهرونه بهيږی او دوئ ددې ميوې ښه په خوند خوند خوری. حالانکه دا دهغوی دلاسو جوړ شوی يا پيدا شوی نه دی.

**دويمه فقهي مسئله:-** آيا بيا به هم دوی شکر نه ادا کوی ؟ يو زخمی سړې که اووائی چه فلانی سړی د غصې په وجه قتل کړې يم نوددې دا قول به ثبوت ګنړلې شي. په دې مسئله باندې ددې آيت نه دليل اخيستې شوې دې. د امام مالك رحمه الله په مذهب کښې دې ته تقويت ورکړې شوې دې. ځکه چه د مقتول

---

[1] ) صحيح بخاری : کتاب احاديث الانبياء باب قوله تعالی ( واذ قال موسی لقومه.....)۔

[2] ) ابن ابی حاتم : ۲۲۹/۱۔

[3] ) مسند الطيالسی : ۱۰۸۹، وسنده حسن

بيان ژوندى كيدو نه پس اودهغه د تپوس كولو نه پس چه كوم قاتل هغه خودلې ووهغه قتل كړې شو او دمقتول په قول باندې باور اوكړې شو. ظاهره ده چه په داسې حالت كښې انسان رښتيا وائى او په دې دروغژن نه شى كېدلى.

**د نبى كريم (ص) د مړى ژوندى كولو يوه معجزه:-** حضرت انس ﷺ فرمائى چه يو يهودى ديوې وينځې سر په كاڼړى باندې كيخودلو . سرئې ورله مات كړو اوددې كړې (بنګړى) ئې ويستل . هركله چه ددې پته نبى كريم ﷺ ته اولګيدله نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه ددې وينځې نه تپوس اوكړئى چه دا چا قتل كړې ده. خلقو تپوس كول شروع كړو چه آيا ته فلانى قتل كړې ئې ، فلانى قتل كړې ئې ؟ هغې به دځپل سر په اشارې سره انكار كولو تر دې پورې چه ددې يهودى نوم راغلو نو دې دسر په اشارې سره اووئيل چه آو. نو دايهودى ګرفتار كړې شو اودهغه نه باربار تپوس كولو سره هغه اقرار اوكړو نو نبى كريم ﷺ حكم وركړو چه دده سر هم دهغې وينځې پشان د دوو كاڼړو په مينځ كښې مات كړئى. (۱)

**دريمه مسئله-** اود امام مالك رحمه الله په نيز كله چه دې د غصې په وجه وى نو دمقتول وارثانو ته به قسم وركولې شى په طور د قسامت ليكن جمهور ددې مخالف دى او د مقتول دې قول باره كښې ثبوت نشته دى.

| |
|---|
| ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ |
| ابيا \| سخت شو \| زړونه ستاسو \| روستو \|ددې نه \|نو دغه \| دى پشان دكاڼړو |
| ابيا ددې واقعې نه پس(هم)ستاسوزړونه سخت شوانودازړونه داسې(سخت)دى لكه |
| أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً ۚ وَإِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ |
| بلكه زيات دى په سختوالى كښې\| اوبيشكه \| خينى دكاڼړو نه \| هغه دى \| چې بهيږى \| |
| كاڼړى يادكاڼړونه هم زيات سخت دى\| (خكه چې) خينى كاڼړى داسې دى چې د هغې نه ولې بهيږى |
| مِنْهُ الْأَنْهٰرُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ |
| دهغې نه\| چينې \| اوبيشكه خينى كاڼړى\| هغه دى\| چې چوى\| نو راوخى \| دهغې نه |
| اوخينى كاڼړى داسې دى چه اوچوى نواوبه (چينې) ترينه روانې شى |
| الْمَاءُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ۗ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ |
| اوبهٔ \| اوبيشكه خينى كاڼړى\| هغه دى\| چې رارغړى\| ديرې دالله نه\|اونه دې الله\| ناخبره |
| اوخينى دالله دويرې نه راورغړيږى\| اودغر دسوكو نه د زمكې تل ته راځى\| اوالله ستاسو د كارونو |
| عَمَّا تَعْمَلُونَ ۝ |
| دهغه كارونو نه\| چې تاسو ئې كوى\| |
| نه بې خبره نه دى \| |

**قوله تعالى:-** ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ

**د قساوت په لحاظ سره د زړونو قسمونه :-** په دې آيت كښې بنى اسرائيلو ته زورنه وركړې شوې ده چه دداشان زبردستې معجزې او دقدرت دنښو په كتلو نه پس بيا ستاسو زړونه سخت شو لكه دكاڼړى په

---

۱) صحيح بخارى : كتاب الخصومات باب مايذكره في الاشخاص والخصومة بين المسلم واليهود : ۲۴۱۳، صحيح مسلم: ۱۶۷۲)-

شان شو. نو په دې وجه ايماندار داشان سختې سره منع کړې شو او ونيلې شوي دي چه ﴿ أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنْ تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴾ يعني آيا تراوسه پورې هغه وخت مومنانو ته نه دې راغلې چه کله د ايماندارو زړونه په ويريدو شو دالله ﷻ د ذکر نه اودالله ﷻ د نازل شوي حق نه درزيږي ؟ او دمخکنيو اهل کتابو په شان دې نه شي چه دهغوی زړونه دزمانې دتيريدو نه پس سخت شو او په دوی کښې اکثر فاسقان وو.

**د قاتل وراره د قتل کولو نه انکار:-** حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه ددې مقتول وراره هم دخپل تره دوباره مړ کيدو نه پس دهغه تکذيب اوکړو او وې ونيل چه ده دروغ اوونيل او بيا څه وخت پس د بنی اسرائيلو زړونه هم دکاڼړي پشان سخت شو بلکه ددې نه هم زيات سخت. ځکه چه دکاڼړو نه خو نهرونه راوزی او اوبه ترې بهيږي ، بعضې کاڼړي اوشليږي اوددې نه اوبه رواني شي اګر چه هغه د بهيدو قابلې نه وي ، بعضې دالله ﷻ دويرې نه راپريوزي ،ليکن ددوی زړونه په څه وعظ او نصيحت سره نه نرميږي.ددې ځايه داهم معلوم شو چه په کاڼړو کښې پوهه او ادراک شته دې او په بل ځاني کښې ارشاد دې چه﴿ تُسَبِّحُ لَهُ السَّمَاوَاتُ السَّبْعُ وَالْأَرْضُ وَمَنْ فِيهِنَّ وَإِنْ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَٰكِنْ لَا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ﴾ يعنی اووه واره آسمانونه او اووه واره زمکې او ددې ټول مخلوق او هر څيزدالله ﷻ تسبيح بيانوي خوتاسو دهغه پاک ذات تسبيح نه کوئی ، الله ﷻ حليم او بخښونکې دې.

**يو غلط تاويل:-** ابو علی جبائی د کاڼړي دويرې نه دپريوتلوتاويل په رېلې سره ورکړې دې. خو دا صحيح نه دې. رازی رحمه الله هم دې ته صحيح نه وائی او حقيقت کښې دا تاويل صحيح نه دې ځکه چه ددې دليل نه بغير لفظی معنی پريښودل لازم رازی ، والله اعلم.نهرونه بهيدل زيات ژړيدل دی. او شليدل او داوبو راوتل ددې نه کم ژړيدل دی. راپريوتل د زړه ويريدل دی، بعضې وائی چه دا دمجاز په طور ونيلې شوي دی. لکه په بل ځاني کښې ارشاد دې چه ﴿ يُرِيدُ أَنْ يَنْقَضَّ ﴾ ديوال غورزيدل ئې غوښتل . ظاهر دی چه دامجاز دی او په حقيقت کښې دديوال هډو اراده نه وي.رازی رحمه الله او قرطبی رحمه الله وائی چه دداسې تاويلونو هيڅ ضرورت نشته دې. الله ﷻ چه دکوم څيز نه کوم صفت پيدا کول غواړي نو پيدا کولې شي

**جمادات هم خاص قسم ژوند لري:-** اوګورئی دهغه فرمان دې چه ﴿ إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ الخ ﴾ ( مونږ امانت په زمکه اوآسمانو او په غرونو باندې پيش کړو،اوهغوی ددې د اوچتولو نه مجبوری ظاهره کړه او اوويريدل).مخکښې آيت تيرشو چه ټول څيزونه دالله ﷻ تسبيح وائی،او په بل ځاني کښې ارشاد دې چه ﴿ وَالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدَانِ ﴾ (ستوري او ونې الله ﷻ ته سجده کوی)او فرمانی چه ﴿ يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ الخ ﴾او فرمانی چه ﴿ قَالَتَا أَتَيْنَا طَائِعِينَ ﴾(زمکې او آسمان اوونيل چه مونږ په خوشحالۍ خوشحالۍ حاضر يو) او په بل ځاني کښې ارشاد دې چه غرونه هم د قران پاک نه متاثره شو او د ويرې له کبلې اوشليدل او په بل ځاني ارشاد دې چه ﴿وَقَالُوا لِجُلُودِهِمْ﴾(ګناهنګار خلق به خپلو بدنونو ته اووائی چه تاسو زمونږ خلاف ولې شهادت ورکړو ؟ هغوی به جواب ورکړی چه مونږ ته هغه الله ﷻ د ويناطاقت راکړو چه هغه پاک ذات هرڅيز ته د وينا طاقت ورکوی).

**د احد د غر واقعه -** يوصحيح حديث کښې دی چه نبی کريم ﷺ د احدغر په باره کښې اوونيل چه دا غر مونږ سره محبت کوی او مونږ هم دې سره محبت کوو، (¹په يوبل حديث کښې دی چه دکهجورې کومې ونې ته به نبی کريم ﷺ اډانړه لګوله او دجمعې خطبه به ئې ورکوله،نو کله چه منبر جوړ شو او

[1] ) صحيح بخاری : کتاب الجهاد باب فضل الخدمة فی الغزو :، ۲۸۸۹، صحيح مسلم: ۱۳۹۲)-

هغه ته پريخودلې شوه نوهغه تنې په چغو چغو اوژړل[١]دصحيح مسلم په يو حديث كښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي چه خه دمكې هغه كانړني پيژنم چه دنبوت نه به نې مخكښې ماته سلام كونو.[٢]، دحجر اسود په باره كښې دي چه چا دا په حق سره ښكل كړو نودا به دهغه دايمان گواهي د قيامت په ورځ وركوي[٣]،اوداشان ډير احاديثو كښې دي چه دهغې نه صفا معلوميږي چه پدې ځيزونو كښې پوهه او حس شته اودا ټول په حقيقت باندې محمول دي نه په مجاز باندې.

**قوله تعالى:- أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً**

**د ،،او،، د لفظ تحقيق:**- په دې آيت كښې لفظ " او " په باره كښې قرطبي رحمه الله او رازي رحمه الله وائي چه دا دتخيير دپاره دي. يعني ددوی زړونه د كانړي په شان سخت اوګنړني او يا ددې نه هم زيات. رازي رحمه الله يو وجه دا هم بيان كړې ده چه داټول د ابهام دپاره دي اګر چه دمخاطب په مخكښې باوجود ديو ځيز نه دوه ځيزونه پيش كولې شي په طور دابهام. دبعضو قول دې چه مطلب دادې دبعضوزړونه دكانړي په شان او دبعضو دې نه هم زيات سخت ، والله اعلم.

ددې لفظ چه كومه معنى په دې ځاني كښې ده هغه هم واورنې. په دې باندې خو اجماع ده چه او شك دپاره نه دې ، يا خوداد واو په معنى كښې ده يعني ددوی زړونه كانړي پشان يا ددې نه هم زيات سخت شو. لكه په( لَا تُطِعْ مِنْهُمْ اٰثِمًا اَوْ كَفُوْرًا ) كښې او ( عُذْرًا اَوْ نُذْرًا ) كښې . دشاعرانو په شعرونو كښې هم " او " دواو په معنى كښې دجمعې دپاره راغلې دې. يا " او "په دې ځاني كښې د بل يعني بلكه ده لكه ( كَخَشْيَةِ اللّٰهِ اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً ) كښې او ( فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى ) كښې او ( وَاَرْسَلْنٰهُ اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ اَوْ يَزِيْدُوْنَ ) او كښې اودبعضو قول دې چه مطلب دادې چه هغه لكه د كانړي پشان دي يا په سختئ كښې ستاسو په نيز ددې نه هم سخت دي. بعضې وائي چه صرف په مخاطب باندې ابهام اچولې شوې دې اوداشاعرانو په شعرونو كښې هم موندې شي د پوخ علم او يقين نه باوجود صرف مخاطب باندې دابهام اچولو دپاره داسې كلام كوي.په قران پاك كښې په بل ځاني كښې دي چه ( وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ) يعني مونږ ياتاسو په صفا هدايت ياګمراهئ باندې يو،نو ظاهر ده چه دمسلمانانو په هدايت باندې كيدل اوكفارو په ګمراهئ باندې كيدل يقيني ځيز دې .ليكن دمخاطب ابهام دپاره دهغه په مخكښې كلام مبهم ونيلې شوې دې.

**د ايت بل مطلب:**-داهم مطلب كيدېشي چه ستاسو زړونه د دې دواړو نه خارج نه دي يا هغه د كانړي پشان دي يا ددې نه هم زيات سخت يعنى بعضې داسې اوبعضې هغه سې. ددې قول مطابق دا قول هم دې چه( كَمَثَلِ الَّذِى اسْتَوْقَدَ نَارًا ) بيا فرمائي چه( اَوْكَصَيِّبٍ الخ ) او فرمان دې چه (كَسَرَابٍ) او بيافرمائي چه (اَوْ كَظُلُمٰتٍ الخ ) مطلب هم دا دې چه بعضې داسې او بعضې هغه سې دي. والله اعلم.

**د زړه د سختوالي مذمت:**- تفسير ابن مردويه كښې دي چه نبي كريم ﷺ فرمائي چه دالله ﷻ دذكر نه سوا زياتې خبرې مه كوئي،داسې خبرې زړه سختوي اوسخت زړه والا دالله ﷻ نه لرې كيږي[٤]،امام ترمذي رحمه الله هم دا حديث بيان فرمائيلې دې او ددې يو طريقې ته نې غريب ونيلې دي،بزار كښې حضرت انس رضي الله عنه نه مرفوع روايت دې چه ځلور ځيزونه د بدبختئ دي ① دالله ﷻ دويرې نه دستركې نه اوښكې نه تلل ② دزړه سختيدل ③ دام‌يدونو زياتوالئ ④ لا لچې جوړيدل.[٥]

---

[١] ) صحيح بخاري : كتاب الجمعة باب الخطبة على المنبر:٩١٨)-

[٢] ) صحيح بخاري : كتاب الفضائل ، باب نسب ا لنبي : ٢٢٧٧، ترمذي : ٣٦٢٤)-

[٣] ) ترمذي كتاب الحج باب ماجاء في الحجر الاسود: ٩٦١، ابن ماجة : ٢٩٤٤، وهو حسن)-

[٤] ) ترمذي : كتاب الزهد باب رقم: ٢٤١١:٦١،

[٥] ) مسند البزار كشف الاستاد: ٣٢٣٠،

| | | |
|---|---|---|
| أَفَتَطْمَعُونَ | أَنْ يُؤْمِنُوا | لَكُمْ |

آيا تاسو اميد لرئ | چي ايمان به راوړي دوئ | په وينا ستاسو

| نو آيا تاسودا اميد كوئى چي دا (يهوديان) به ستاسو په دين باندې ايمان راوړي

وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُونَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ

اوحال دا چي وه| يوه ډله | ددوئ نه | چي اوريدوبه ئي| كلام دالله |بيابه ئي| بدلولو هغه كلام|

(حال دا) چي ددوئ يوې ډلي به دالله خبرې اوريدلې |اوپه هغې باندې د پوهولو نه پس به ئي په كښې كمې زياتې كولو

مِنْ بَعْدِ مَا عَقَلُوهُ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ۝ وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ

روستو دهغې نه|چي پوهه به شول په هغې|اوهغوئ پوهيدل | اوكله چي| ملاويږي|دهغه كسانو سره

او دوئ پوهيدل (چه د الله تعالى په كتاب كښې بدلون گناه ده) او كله چي دوئ مسلمانانو سره مخامخ شي

آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا ۖ وَإِذَا خَلَا

| چي ايمان ئي راوړي دې| نو وايئ |چي ايمان راوړې دې مونږ | اوكله چي | خانله شي

نو (دوئ ته) وائي (تاسو چه څنگه ايمان راوړې دې دغه شان) مونږ هم ايمان راوړې دې |او چي كله شي

بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُم بِمَا فَتَحَ اللَّهُ

خيني دهغوئ |دخينو نورسره |نو واني | آيا تاسوخبروئ هغوئ | په هغه خبروا| چي ښودلې دي الله |

په خپل مينځ كښې يو بل سره يوخاني شي| نو واني چي آياتاسومسلمانانوته هغه خبرې ښائي كومې چي

عَلَيْكُمْ لِيُحَاجُّوكُم بِهِ عِندَ رَبِّكُمْ ۚ

تاسو ته | دپاره ددې چي جګړه اوكړي تاسو سره| په ذريعه دهغې | په نزد د رب ستاسو

الله تعالى تاسو ته خودلې دي | (د دې نه نقصان دا دې) چه (مسلمانان به) تاسوسره دالله په مخكښې جګړه كوي

أَفَلَا تَعْقِلُونَ ۝ أَوَلَا يَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا

آيا نه پوهيږئ (په دې ) | اوولې معلومه نه ده دوئ ته | چي بيشكه الله ته | معلوم دى | هغه څه

نوتاسوولې نه پوهيږئ| او آيا دا يهوديان نه (په دې خبره نه) پوهيږي چي الله ته د دوى هغه خبرې كومې

يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ۝

چي دوئ ئي پټوي| اوهغه څه| چي ښكاره كوئ ئي دوئ |

چه دوئ پټوي اوكومې چه ښكاره كوي تولې معلومې دي|

قوله تعالى:- أَفَتَطْمَعُونَ أَنْ يُؤْمِنُوا لَكُمْ

**د يهوديانو د ايمان اميد مه ساتئ:-** ددې ګمراه قوم يهود دايمان نه الله ﷻ خپل نبى او د نبى كريم ﷺ صحابه كرامو ﷺ ته نااميدى وركوى چه دې خلقو لوئي لوئي پريشانئ اوكتلې او خپل زړونه ئې د كاڼړى په شان سخت كړل ، دالله ﷻ كلام ئې واوريدو اوبيا هم ددې تحريف كوى او په دې كښې تبديلې راولى نوتاسو ددې نه څه اميدساتئ؟ هم ددې آيت پشان بل ځائې فرمائى چه ﴿ فَبِمَا نَقْضِهِم

مِّيثَاقَهُمْ الخ ﴾ يعنی ددوی د وعده خلافئ په وجه مونږ په دوی باندې لعنت اوکړو او ددوی زړونه مو سخت کړل. خکه چه دوی به دالله ﷻ کلام کښې تبديلی کوله.

**قوله تعالى:-** وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُونَ كَلَامَ اللَّهِ

**دالله د کلام اوريدلو مطلب:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه په دې ځاې کښې دکلام الله آوريدل اوفرمائيل.ددې نه مراد د حضرت موسیٰ ﷺ د ملګرو هغه ډله ده چه هغوی دحضرت موسیٰ نه دالله ﷻ کلام په خپلو غوږونود آوريدلو درخواست کړې وو. او کله چه هغوی پاك شو او روژه ئې اونيوله او حضرت موسیٰ ﷺ سره کوه طور ته لاړل او په سجده پريوتل نوالله ﷻ دوی ته خپل کلام واورولو. کله چه دوی واپس راغلل او حضرت موسیٰ ﷺ دالله ﷻ دا کلام بنی اسرائيلو ته بيانول شروع کړل نو دې خلقو په هغې کښې تحريف او بدلون کول شروع کړل.

**قوله تعالى:-** ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ مِن بَعْدِ مَا عَقَلُوهُ وَهُمْ يَعْلَمُونَ

**په تورات کښې تحريف کول:-** سدی ﷺ فرمائی چه دې خلقو په تورات کښې تحريف کړې وو ، هم دا عام معنی صحيح ده. چه په دې کښې به هغه خلق هم شامل شی اودا بدخصلت والا نور يهود هم وو. په قران پاك کښې په بل ځاې کښې دی چه ﴿فَأَجِرْهُ حَتَّىٰ يَسْمَعَ كَلَامَ اللَّهِ﴾ يعنی په مشرانو کښې که څوك ستاسو نه پناه اوغواړی نو هغه ته پناه ورکړه تر دې پورې چه هغوی کلام الله واوری نو ددې نه مراد دا نه دې چه دالله ﷻ کلام په خپلو غوږونو واوری بلکه قران واوری ، نو په دې ځاې کښې هم دکلام الله نه مراد تورات دې. داتحريف کونکی او پټوونکی دهغوی عالمان وو . [1]

**قوله تعالى:-** وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُم بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ لِيُحَاجُّوكُم بِهِ عِندَ رَبِّكُمْ

**ديهودو عالمانو بد خصلتونه:-** د نبی کريم ﷺ صفتونه دهغوی په کتابونو کښې وو ،هغوی به دې تولو کښې تاويلونه اوکړل داصل مطلب نه ئې لرې کړی وو. داشان حلال به ئې حرام ، حق به ئې باطل کول. رشوتونه به ئې اخستل اوغلطو مسائلو وئيلو عادت په کښې وو.خو کله چه به ورته درشوت اخستلو امکان نه وو ،درياست د تللو ويره به ورته نه وه ، دمريدانو نه به جدا شو نو حق خبره ئې هم کوله. مسلمانانو سره به ملاويدل نو وئيل به ئې ستاسو نبی رښتونې دې،دا په حقه پيغمبر دې[2] خو بيا چه به خپلو کښې کيناستل نو وئيل به ئې چه ولې عربو ته داخبرې کونې بيا خو به دوی په تاسو باندې غالب شی اودالله ﷻ په نيز به هم تاسو لره لاجوابه کړی. نوددې په جواب کښې الله ﷻ اوفرمائيل چه آيا دې بې وقوفوته دومره علم نشته دې چه مونږ ته پټ او ښکاره هر څه معلوم دی.

**د يهوديانو منافقت:-** يوروايت کښې دی چه رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چه په مدينه کښې زمونږ سره دايمان والو نه سوا بل څوك نه وو. نودې کافرو او يهودو اووئيل ورشئ او وائې چه مونږ هم ايمان راوړو او دلته راغلل نو بيا هم هغه شان زوړ حالت کښې پاتې شو چه څنګه وو. نودا خلق به سحر راغلل او دايمان دعوی به ئې کوله او مابنام چه به کافرو ته ورغلل نو هغوی سره به شامل شو. په قران پاك کښې دی چه ﴿ وَقَالَت طَّائِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمِنُوا بِالَّذِي الخ ﴾ (د اهل کتابو يو ډلې اووئيل چه په ايمان والو باندې څه نازل شوی دی نو په هغې باندې دورځې په يو حصه کښې ايمان راوړنی بيا په (دويمه حصه) کښې کافر شئ چه پخپله ايمان والا هم دخپل دين نه واوړی) دې خلقو په دهوکه ددې ځاې رازونه معلومول او دائې خپلې ډلې ته بيانول غوښتل او مسلمانان ئې هم ګمراه کول غوښتل. خو د هغوی دا چالاکی اونه چليده. او الله ﷻ دا راز ښکاره کړو. کله چه به په دې ځاې کښې وو نو خپل ايمان او اسلام به ئې ظاهرولو نو صحابه کرامو ﷺ به ددوی نه تپوس کولو چه آيا ستاسو په کتاب

---

[1]) الطبری:۱/۲۴۵)–

[2]) الطبری:۱/۲۴۵)–

کتبې د نبي کريم ﷺ بشارت وغيره نښته دي؟ نو هغوی به اقرار کولو. کله چه به خپلو مشرانو ته ورغلل نو هغوی به دوی رټل او وئيل به نې چه تاسو خپلې خبرې ولې هغوی ته کوئی او وسله هغوی له په لاس کښې ورکوئی.(١)

**قوله تعالى:-** أَوَلَا يَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ

**د يهوديانو پټې خبرې نبي کريم ته معلوميدل:-** مجاهد رحمه الله فرمائی چه نبي کريم ﷺ د قريظه په ورځ ديهوديانو په قلعه کښې اودريدلو او وې فرمائيل چه ائې د شادوګانو او خنزيرانو او دطاغوت د عبادت کوونکو رونړو(٢) نو دوی په خپلو کښې اووئيل چه زمونږ دکور داخبره دوی ته چا اوکړه؟ خبردار خپلې خبرې دوی ته مه کوئې ګنې هغه به دالله ﷻ په مخکښې حجت جوړشي. اوس الله ﷻ اوفرمائيل اګر چه تاسو پټوئی ليکن زما نه هيڅ يو څيز نشي پټيدلې، تاسو دا پټ په پټه ولې خپلې دلې ته وائې چه خپلې خبرې هغوی ته مه رسوئی او دا چه تاسو دخپل کتاب خبرې پټوئی نو ستاسو ددې خراب کار نه څه ښه خبر يم اودا تاسو چه خپل ايمان ښکاره کوئی نوستاسو ددې اعلام حقيقت هم ماته پته ده.

| | | |
|---|---|---|
| وَمِنْهُمْ | أُمِّيُّونَ | لَا يَعْلَمُونَ |
| اوخيني ددوئ نه | اميان دي | اچې نۀ پوهيږي |
| اوپه دوئ کښې خيني خلق اميان دي چې بيخي | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْكِتٰبَ | إِلَّا | أَمَانِيَّ | وَإِنْ هُمْ | إِلَّا يَظُنُّونَ ﴿٧٨﴾ | فَوَيْلٌ |
| په کتاب | مګر | صرف آرزوګانو دي | اونه دي دوئ | مګر ګمانونه چلوي | نو هلاکت دي |
| په کتاب (چه توراة دې) نه پوهيږي \| تش د زړه ارمانونه اوخپل ګمانونه کوي \| نو افسوس دې | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِّلَّذِينَ | يَكْتُبُونَ | الْكِتٰبَ | بِأَيْدِيهِمْ | ثُمَّ | يَقُولُونَ | هٰذَا | مِنْ عِنْدِ اللَّهِ |
| دپاره دهغه کسانو | چې ليکي | کتاب | په لاسونو خپلو | بيا | وائي | اچې دا | دطرفه دالله نه دي |
| دهغه چاپه حال چې اول پخپلو لاسونويو کتاب اوليکي \| بيا وائي چې داکتاب دالله دطرفنه دي | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لِيَشْتَرُوا | بِهٖ | ثَمَنًا | قَلِيلًا | فَوَيْلٌ لَّهُمْ | مِّمَّا | كَتَبَتْ |
| دپاره ددې چې واخلي | په هغې | قيمت | لږ | انو تباهي ده دپاره دهغوئ | په سبب دهغې | اچې ليکلي دي |
| چې ددې (دهوکې) په ذريعه (د دنيا) لږ مال واخلي \| نو ددوی په دې ليکلو باندې افسوس دې | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَيْدِيهِمْ | وَوَيْلٌ | لَّهُمْ | مِّمَّا | يَكْسِبُونَ ﴿٧٩﴾ |
| لاسونو دهغوئ | اوتباهي ده | دپاره دهغوئ | په سبب دهغې | چې ګټې نې هغوئ |
| او ددوئ په دې کار کسب بيا افسوس دې (چه دکتاب ناشکره دې اوبل نې دا ظلم اوګورئ چه) | | | | |

**قوله تعالى:-** وَمِنْهُمْ أُمِّيُّونَ لَا يَعْلَمُونَ الْكِتٰبَ

**دامي دلفظ وضاحت:-** دامي معنی ده چه هغه سړې چه په ښه شان ليکل نشي کولې ددې جمع (أُمِّيُّونَ) ده. دنبي کريم ﷺ په صفتونو کښې يو صفت دامي هم راغلې دې څکه چه نبي کريم ﷺ هم ليک لوست

(١) الطبری: ١٣٥٢)-
(٢) الطبری: ١٣٤٨ -

والا نه وو. قران پاك كښې فرمائي چه ﴿ وَمَاكُنْتَ تَتْلُوْامِنْ قَبْلِهٖ مِنْ كِتٰبِ الـخ﴾ اې نبي ﷺ تا ددې نه مخکښې نه لوست کولې شو او نه ليکل،که داسې وې نو دې باطل پرستو ته به دشك کولو گنجائش باقي پاتې وې،نبي کريم ﷺ فرمائي چه مونږ امي او ان پړهه خلق يو ، نه ليکل کولې شو او نه ونيل ،نه حساب کولې شو ، مياشت کله دومره وی او کله دومره دومره . په روميبي خل خو نبي کريم ﷺ دخپلودواړولاسونو ټولې گوتې درې ځل لاندې طرفته مائلې کړې يعنی ديرش ورځې او دوباره بيا ئې هم داسې اوکړل. خو په دريم ځل ئې د کښې گوتې نه حلقه جوړه کړه يعنی يو کم ديرش ورځې (¹) مطلب دا دې چه خمونږ عبادتونه دهغوی دوختونو حساب باندې موقوف نه دی. قران پاك په بل ځائې کښې فرمائي چه الله ﷻ په ناليوستونکو خلقو کښې يورسول اوليږلو چه هم ددوی نه دې. ابن جرير رحمه الله فرمائي چه په دې لفظ کښې ان پړهه سړې مور طرفته منسوب کړې شوې دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه يو روايت دې چه په دې ځائې کښې امی هغه چاته اوونيلې شو چه هغوی نه ديو رسول تصديق اوکړو اونه ئې چرته يو کتاب اومنلو اوخپل ليکلې شوی کتابونه ئې دکتاب الله ﷻ پشان په خلقو منل غوښتل.خو اول دا قول عربو د محاورو نه خلاف دې ، دويم دا چه ددې قول سند صحيح نه دې.

**قوله تعالى:-** اِلَّآاَمَانِيَّ

**د اماني تشريح:-** د "اَمَانِيَّ" معنی خبرې او اقوال .حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه كذب خواهشات او د دروغو پورې کولو معنی هم کړې شوې ده، دتلاوت او د ظاهری الفاظو معنی هم روايت شوې ده. لکه په قران پاك کښې په بل ځائې کښې دی چه ﴿ اِلَّآاِذَاتَمَنّٰٓى اَلْقَى الشَّيْطٰنُ فِىْٓ اُمْنِيَّتِهٖ ﴾ په دې ځائې کښې دتلاوت معنی صفا ده. دشاعرانو په شعرونو کښې هم دا لفظ دتلاوت په معنی کښې دې. او هغه صرف په گمان باندې ده. يعنی حقيقت لره نه پيژنی او ناحق گمان کوی او فضول خبرې کوی. بيا ديهودو ديوبل قسم په دې ځائې کښې بيان کيږی چه ښه ليك لوست والا خلق وو. او په الله ﷻ پورې به ئې دروغ پورې کول (نعوذبالله) او دمريدانو مال به ئې خوړلو.

**قوله تعالى:-** فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ ق

**د ويل څه معنی ده :-** د ﴿وَيْلٌ﴾ معنی هلاکت او بربادی ده او دجهنم د يوکندې نوم هم دې. چه دهغې اوورتيز دې ، که په هغې کښې غرونه هم واچولې شی نو ويلې به شی ، ابن ابی حاتم کښې يو حديث دې چه نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه دجهنم ديو وادی نوم ﴿وَيْلٌ﴾ دې چه په هغې کښې به کافران اچولې شي،ددې ژوروالې دومره دې چه متواتر څلويښت کاله په لاندې تگ اوشی نو ويخ ته به ئې اورسی. (²)خو دسند اعتبار سره دا حديث غريب هم دې ، منکر او ضعيف هم. يو بل غريب حديث کښې دی چه دجهنم د غر نوم ﴿ وَيْلٌ﴾ دې .يهوديانو د تورات تحريف اوکړو اوپه دې کښې ئې کمې اوکړو. د نبي کريم ﷺ نوم مبارک ئې ترې اوويستلو ، نو په دې وجه دالله ﷻ غضب په هغوی باندې نازل شو، تورات پورته کړې شو او الله ﷻ اوفرمائيل چه ددوی دلاسونو ليکلو او ددوی گټې لره هلاکت دې(³)د ﴿وَيْلٌ﴾ معنی سخت عذاب،ډير بد ، هلاکت،افسوس ، درد ، غم ، او ملامتيا وغيره هم رازی﴿ وَيْلٌ ويح ، ويش ،ويه،ويك،ويب ﴾ دټولو يو معنی ده. اگر چه بعضو ددې الفاظو بيله بيله معنی کړيده. لفظ د ويل نکره دې . او نکره مبتدا نشی جوړيدلې چونکه دا په معنی کښې د بددعا ده ، څکه دا مبتدا جوړه کړې شوه. بعضې خلقو ددې معنی نصب کښې کول هم جائز ليکلې ده. ليکن د ويل قرات نشته . په دې

¹) صحيح بخاری : کتاب الصوم باب قول النبی ﷺ لانکتب ولا نحسب: ۱۹۱۳صحيح مسلم: ۱۰۸۰، ابوداود: ۲۳۱۹، نسائی : ۲۱٤۲)–

²) ترمذی: کتاب التفسير القران با ب ومن سورة الانبياء: ۳۱٦٤)–

³) الطبری: ۱۳۸۹)–

خانې کښې د يهودو دعالمانو غندنه کيږي چه هغوی به خپلو خبرو ته دالله ﷻ کلام ونيلو، او خپله ډله به ئې خوشحالوله او دنيابه ئې ګټله. حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه تاسو داهل کتابو هم تپوس کوئ ؟ دالله ﷻ تازه ليکل ستاسو په وړاندې دې ستاسو لاسونو کښې دې. اهل کتاب خپه کلام الله ﷻ کښې تحريف اوکړو، دخپل لاس ليکلو ئې الله ﷻ طرفته منسوب کړل او خواره ئې کړل، نوبيا تاسوته ددې څه ضرورت وو چه تاسو خپل محفوظ کتاب پرېښودو ؟ اود هغوئ د تحريف شده کتاب ضرورت نه وو. افسوس چه هغوی ستاسو نه تپوس کوی او تاسو هغوئ نه معلومات نه کوئ.[1]

**قوله تعالى:- لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا**

**لږ قيمت څه وو:-** دلږ قيمت نه مراد چه ددنيا ټول مال ملاؤ شي خو بيا هم دآخرت په مقابله کښې ددې هيڅ قدر وقيمت نشته دې. خو د جنت په مقابله کښې دا ډير زيات حقير څيز دې. بيائې اوفرمائيل چه دهغوئ ددې فعل په وجه چه هغوی خپلو خبرو لره دالله ﷻ د خبرو پشان په خلقومنی او په دې باندې دنيا ګټي. او دا هلاکت او بربادی ده.

| وَقَالُوْا | لَنْ تَمَسَّنَا | النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا | مَّعْدُوْدَةً ۭ | قُلْ | اَتَّخَذْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووائی هغوئ | هرګز به ونۀ رسيږي مونږ ته | وور | امګرڅوورځې | شمارلې شوی | ورته اوويه | آيا تاسو اخستې ده |
| وائی چې مونږ ته د شمير د څو ورځې نه سوا ددوزخ اور نه رارسی | ورته اووايه آيا تاسوپه دې باره کښې د | | | | |
| عِنْدَ اللّٰهِ | عَهْدًا | فَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ | عَهْدَهٗٓ | اَمْ تَقُوْلُوْنَ | عَلَى اللّٰهِ مَا |
| دالله نه | څه وعده | چې نشی کولې خلاف الله | دوعدې خپلې | يا وايئ تاسو | په الله باندې | هغه |
| الله تعالى نه څه لوظ اخستې دې | چې هغه به ګنی دخپل لوظ خلاف نه کوی | اوکنه تاسو دخانه په الله باندې | | | |
| لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ | | | | | |
| چې نۀ ده معلومه تاسو ته | | | | | |
| هيڅ بې هيڅه دروغ جوړونی | | | | | |

**قوله تعالى:- وَقَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً ۭ**

**دجهنم عذاب څوورځې دې:-** حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه يهوديانو به ونيل چه ددنيا ټوله موده اووه زره کاله ده. دهرو زرو کالو بدله کښې به مونږ ته يو ورځ سزا راکولې شي نودا به صرف اووه ورځې په جهنم کښې اوسيدل وی. ددې قول ترديد کښې دا آيت نازل شو. بعضې خلق وائی چه دې خلقو به دا منل چه مونږ به څلويښت ورځې په اوور کښې يو. څکه دا خلق په دې دهوکه شوی وو چه دوی به ونيل چه په تورات کښې دی چه دجهنم دواړو طرفونو ته د زقوم ونو پورې دڅلويښتو کالو لاره ده، نوهغوی به ونيل چه ددې مودې نه پس به عذاب لرې شي. په يو روايت کښې دی چه نبی کريم ﷺ لره راغلل او وې ونيل چه مونږ به څلويښت ورځې په جهنم کښې يو، بيا به زمونږ په ځانې نور خلق راشي يعنې د نبی کريم ﷺ امت، نبی کريم ﷺ د هغوی په سرونو لاس کېخودلو او وې فرمائيل نه، بلکه تاسو به هميشه هميشه په جهنم کښې پراته يئ، په دې باندې دا آيت نازل شو.

**د يهوديانو نه څو تپوسونه کول:-** حضرت ابوهريره ؓ فرمائی چه دفتح خيبر نه پس د نبی کريم ﷺ په وړاندې د هدئې په طور د چيلئ پخه غوښه پيش کړې شوه او په دې کښې زهر ګډ شوی وو. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل ددې ځانې يهود جمع کړئ، بيائې دهغوی نه تپوس اوکړو، ستاسو پلار څوک دې ؟

[1] صحيح بخاری : کتاب الشهادات باب لا يسئل اهل الشرک عن الشهادة: ۲۶۷۵–

هغوی اوونیل چه فلانی.نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاسو دروغ وائي،ستاسو پلار رخو فلانی دې. هغوی اوونیل چه تاسو صحیح اوفرمائیل هم هغه زمونږ پلار دې. نبي کریم ﷺ اوفرمائیل گورئی اوس خه څه بله پوښتنه کوم. تاسو به رښتیا رښتیا وائئ. هغوی اوونیل چه اې ابو القاسم ﷺ که مونږ دروغ اووایونو ستا په وړاندې هغه نه چلیږی مونږ په دې آزمښت اوکړو. نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه اووائي کوم خلق جهنمیان دی؟ هغوی اوونیل چه څو ورځې خو مونږ یو، بیا ستاسو امت. نبي کریم ﷺ اوفرمائیل لرې شئ بالکل نه، بیائې اوفرمائیل چه اووائي تاسو په دې غوښه کښې زهر گډ کړی دی که نه . هغوی اوونیل چه آو .نبي کریم ﷺ اوفرمائیل ولې ؟ وې ونیل که تاسو رښتونی یئ نو دا زهر تاسوته نقصان نشي درسولي. اوکه تاسو په دروغه یئ نو مونږ به ستاسونه نجات حاصل کړو. (مسند احمد ، بخاري ، نسائي). (۱)

| بَلٰى | مَنْ | كَسَبَ | سَيِّئَةً | وَّاَحَاطَتْ | بِهٖ | خَطِيْٓئَتُهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ولې نهٔ | چاچې | وکړه | بدی | اوچاپیره شوه | دهغهٔ نه | گناه دهغه |

| بلکه خبره داده چې څوک گناه اوکړی اوخپل گناهونه ترینه راچاپیره شي |
|---|

| فَاُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ | النَّارِ | هُمْ | فِيْهَا | خٰلِدُوْنَ | وَالَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو هغوئ | خاوندان | دووردی | هغوئ به | په هغې کښې | همیشه وی | اوهغه کسان |

| نوهم دغه کسان دوزخیان دی او تر تله به په اور کښې پراته وی اوکومو کسانو چه ایمان راوړې دې |
|---|

| اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا | الصّٰلِحٰتِ | اُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ | الْجَنَّةِ | هُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې ایمان ئې راوړو | او وې کړو عمل | نیک | هغوئ | خاوندان دی | دجنت | هغوئ به |

| اوردایمان راوړلو نه پس صرف په ایمان بسوالې نه کوی بلکه ، نیک کارونه کوی نوهغوئ جنتیان دی |
|---|

| فِيْهَا | خٰلِدُوْنَ |
|---|---|
| په هغې کښې | همیشه وی |

| ټول عمر به جنت کښې عیش وعشرت کوی |
|---|

قوله تعالٰی:- بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً وَّاَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓئَتُهٗ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ

**په گناهونوکښې راگیر خلق:-** مطلب دادې چه دچا عملونه سراسر بد دی، چه کوم دنیکو نه خالی لاس دی، هغه جهنمیان دی.او چه کوم سړې په الله ﷻ او دهغه په رسول ﷺ باندې ایمان راوړی او دسنتو مطابق عمل کوی هغه جنتی دې لکه بل خائې کښې فرمائی چه( لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ وَلَآ اَمَانِيِّ اَهْلِ الْكِتٰبِ الخ) ( نه خوستاسو منصوبې چلیدې شی اونه د اهل کتابو، هره بدئ کولو والا به دخپلې بدئی سزا بیا مومی او هرې نیکئ کولو والا به د خپلې نیکئ، دبدو به هیڅوک مددگار نه وی اود نیک به هیڅ یو عمل نه بربادیږی نه دسړ ی او نه دښځې).

**دبدئ نه مراد.-** حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه په دې خائې کښې چه دبدئی نه مطلب کفر دې . او په یوروایت کښې دی چه ددې نه مراد شرک دې(۲)ابو وائل رحمه الله، ابوالعالیه رحمه الله، مجاهد رحمه الله ، حسن رحمه الله ، قتاده رحمه الله ، ربیع بن انس رحمه الله وغیره نه هم دا روایت شوی دی. سدی رحمه الله فرمائی چه ددې نه

---

۱) صحیح بخاری : کتاب الجزیة باب اذا غدر المشرکون بالمسلمین: ۳۱۶۹)-

۲) ابن ابی حاتم : ۱ /۲۵۲ )-

مراد کبیره گناهونه دی چه دا پرله پسې وی نوددې سره زړه گنده کیږی([1]) حضرت ابو هریره ﷺ وغیره فرمانی چه مرادترې شرك دې چه د چا په زړه باندې قابض شی. د ربیع بن خثیم ﷫ قول دې چه څوك په گناهونو باندې مړ شی او توبه ورته نصیب نه شی.په مسند احمد کښې یو حدیث دې چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه گناهونه سپك مه گڼرئی،دا جمع کیږی اودانسان د هلاکت سبب جوړیږی . گورئی نه چه د ډیرو همساگانونه یو گیډې جوړیږی بیا که په دې کښې اوور اولگولې شی نو ډیر غټ غټ څیزونه لره ایره کوی .([2])

**قوله تعالی:-** وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ

**د ایمان دارو د نیکو عملونو بدله:-** بیا دایمان والو حال بیانوی فرمانی چه څوك ستاسو پشان عمل نه کوی بلکه ستاسو دکفر په مقابله کښې دهغوی ایمان دې اوستاسو دبدعملونو په مقابله کښې دهغوی پاك عملونه دی،دوی ته به ابدی راحتونه او همیشه جنتونه ملاویږی، دالله ﷻ عذاب اوثواب دواړه پائیدار دی.

| وَاِذْ | اَخَذْنَا | مِيْثَاقَ | بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ |
|---|---|---|---|
| اویاد کړئ کله چې | واغسته مونږ | پخه وعده | داولاد داسرائیل نه |
| اوویاد کړئ کله، چې مونږبنی اسرائیلونه پوخ لوظ واخستل | | | |

| لَا تَعْبُدُوْنَ | اِلَّا اللّٰهَ | وَبِالْوَالِدَيْنِ | اِحْسَانًا | وَّذِي الْقُرْبٰى | وَالْيَتٰمٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| چې مه کوئ عبادت | مگر دالله | اودموراوپلارسره | اکوئ احسان | اوخپلوانو سره | اویتیمانو سره |
| چې بغیر دالله پاك نه به دبل چا عبادت نه کوئی اومورلارسره به نیکی کوئی اوخپلوخپلوانویتیمانو | | | | | |

| وَالْمَسٰكِيْنِ | وَقُوْلُوْا | لِلنَّاسِ | حُسْنًا | وَّاَقِيْمُوا | الصَّلٰوةَ | وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اودمسکینانو سره | اوکوئ | خلقو سره | ښې خبری | اوقائیموئ | مونځ | اوورکوئ زکاة |
| مسکینانوسره به هم نیکی کوئی اوخلقوسره به په خوږه خوله خبره کوئی اومونځونه به کوئی اوزکاة به ورکوئی | | | | | | |

| ثُمَّ | تَوَلَّيْتُمْ | اِلَّا قَلِيْلًا | مِّنْكُمْ | وَاَنْتُمْ | مُّعْرِضُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| خو بیا | اواپس شوئ تاسو | بغیرد لږو کسانو | ستاسو نه | اوحال داچې تاسو | مخ اړونکی یئ |
| نوبیا لږکسانو نه بغیرتاسولوظ نامې ته شاکړه اوتاسوهمیشه (دالله دحکمونونه)مخ گرزولې دې | | | | | |

**قوله تعالی:-** وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ

**صرف الله ﷻ دعبادت لائق دې :-** بنی اسرائیلو ته چه کوم احکام ورکړې شوی وو اودهغوی نه چه په کومو څیزونو باندې وعده اخستلې شوې وه ، دهغې بیان کیږی. او دهغوی د وعده خلافئ ذکر کیږی. هغوی ته حکم ورکړې شوې وو چه هغوی دې توحید اومنی اودالله ﷻ نه سوا دې د نورو عبادت نه کوی. نه صرف بنی اسرائیلو ته بلکه ټول مخلوق ته هم دا حکم شوې دې فرمان دې چه ﴿ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ ﴾ او مونږ چې ستا نه وړاندې کوم پیغمبر هم لیږلې وو نو هغه ته مو وحی کړې وه چې دعبادت لائق زما نه سوا نور څوك نشته دې ، ټول خلق دې هم زما عبادت کوی.

[1] ابن ابی حاتم : ۱ /۲۵۳ )-

[2] احمد: ۱/ ۴۰۲ ،،

او فرمائي چه ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ﴾ يعنی مونږ هر امت ته رسول اوليږلو چه هم دالله ﷻ عبادت کوئی او دهغه نه سوا د نورومعبودانو باطلو نه بچ شئ.دتولو نه زيات حق دالله ﷻ دې اودهغه په تولو حقونو کښې لوئې حق دادې چه دهغه عبادت اوکړې شي او دبل هيچا عبادت دې اونکړېشي ، بيا د حقوق الله نه پس د حقوق العباد ذکر کيږي.

قوله تعالى:- وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا

مور پلارسره ښه سلوک:- دبندګانو په حقونو کښې دمور پلار حق چونکه زيات دې نوددې وجې مخکښې دا بيانوي.او ارشاد فرمائي چه﴿ أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ إِلَيَّ الْمَصِيرُ﴾ (زما شکرادا کړئي او دخپلې مورپلارهم احسان اومنئ) اوبل ځائې کښې فرمائي چه ﴿وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ الخ﴾(ستاسودرب فيصله داده چه دهغه نه سوا دنورو عبادت مه کوئی او دمور پلار سره احسان کوئی) . په بخارى او مسلم شريف کښې دی چه حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ کوم يو عمل دټولو نه افضل دې ؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل مونځ په وخت باندې ادا کول. بيا تپوس کوی چه ددې نه پس . نبی کريم ﷺ فرمائی چه مور پلار سره ښه سلوك اواحسان کول. بيا تپوس کوی چه ددې نه پس کوم يو دې ؟ فرمائی چه دالله ﷺ په لار کښې جهاد کول . (1) په يوصحيح حديث کښې دی چه چاتپوس اوکړو چه يارسول الله ﷺ څه دچا سره ښه سلوك اوکړم او ښيګړه اوکړم ؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل دخپلې مور سره. بيا تپوس کوی دچا سره ؟ نبی کريم ﷺ فرمائی چه دخپلې مور سره. بيا تپوس کوی دچا سره ؟ نبی کريم ﷺ فرمائی چه دخپل پلار سره ، بيا نزدې (رشته دار) سره او بيا نزدې (رشته دار) سره. (2)

په آيت کښې ﴿لَا تَعْبُدُونَ﴾فرمائی خکه چه په دې کښې په نسبت د﴿لَا تَعْبُدُوا﴾زياته مبالغه ده .داخبر دې په معنى دطلب دې.بعضې خلقو دا﴿ أَنْ لَا تَعْبُدُوا ﴾ هم وئيلې دي.ابی او ابن مسعود ﷺ نه داروايت دې هغوی په﴿ لَا تَعْبُدُوا﴾ وئيل .

قوله تعالى:-وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ

يتيم چاته وائی؟:-يتيمان هغه وړو بچو ته وائي چه دهغوی سرپرست پلار نه وی. مسکين هغه خلقو ته وئيلې شي چه هغه دخپل اود خپلو بچو پرورش او نور ضروريات پوره نشی ادا کولې. ددې نوره تشريح به انشاء الله په سورت نساء کښې هم ددې پشان آيت کښې راشي.

قوله تعالى:- وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا

د ښه سلوک حکم:-بيا فرمائی چه خلقو ته ښه خبرې کوئی يعنی دهغوی سره نرمې خبرې او په فراخه تندی سره ملاويږئي.دښو خبرو حکم کوئی،د بدئی نه منع کوئی. حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه دنيکئ حکم کوئی،د بدئی نه منع کوئی ، برداشت کوئی ، بردباری درګزر اوخطاګانې معاف کول خپله جوړه کړئي. هم دا ښه اخلاق دی اودا اختيارول پکار دی.حضرت رسول الله ﷺ فرمائی چه ښه څيز لره حقير مه ګڼرئي که ستاسو نه نور څه نشی کيدې نو خپل رور سره په رون تندی ملاقات کوئی (مسند احمد) (3)قرآن پاك کښې دالله ﷺ دعبادت حکم دې ، بيا خلقو سره دښيګړې کولو، بيا ښه خبرې کول ،بيا د څه نورو اهمو څيزونو حکم هم راغلې دې چه مونځ کوئی اوزکوة ورکوئی.

بياخبر ورکوی چه دې خلقو وعده خلافی اوکړه او عام طور سره نافرمان جوړ شو خو لږ خلق په خپله وعده باندې قائم پاتې شو ، دې امت ته هم دا حکم ورکړې شوې دې . فرمائی چه ﴿وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا الخ ﴾(دالله ﷺ عبادت کوئی اودهغه ذات سره شريك مه جوړوئی،مورپلار سره ،

---

(1) صحيح بخاری : کتاب الادب باب البر والصلة: ۵۹۷۰،صحيح مسلم:۲۵۲، ترمذی: ۱۸۹۸، نسائی: ۲۱۱)-

(2) صحيح بخاری : کتاب الادب من احق الناس بحسن الصحبة :۱۷۳)-

(3) احمد: ۲۱۰۰۸، صحيح مسلم:کتاب البروالصلة، باب استحباب طلاقة الوجه عندالقاء :۲۶۲۶، ترمذی: ۱۸۳۳)-

رشته دارو سره، یتیمانو سره اومسکینانو سره او نـزدې ګوانډیـانو سره، اجنبی ګوانډیانوسره، دپیژندګلو سره، مسافرو سره ، وینځو او غلامانو سره ښه سلوك او احسان کوني، یاد ساتنې تکبر او فخر کوونکی الله ﷻ ته خوښ نه دی. الحمدلله دا امت په نسبت دنوروامتونو ددې احکامو په منلو کښې او په دې باندې عمل کولو کښې زیات مضبوط ثابت شو. اسدبن وداعه ﷫ نه روایت دی چه هغه به یهودیانو او نصرانیانوته سلام کولو او دلیل به ئې ورکولو چه دالله ﷻ فرمان دی چه ﴿وَقُولُوا لِلنَّاسِ﴾ لیکن دااثر غریب دی. او دحدیث خلاف دی ، په حدیث کښې صفا موجود دی چه یهودیانو او نصرانیانو سره شروع په السلام علیکم باندې مه کوني. والله اعلم. (۱)

| وَإِذْ | أَخَذْنَا | مِيثَاقَكُمْ | لَا تَسْفِكُونَ | دِمَاءَكُمْ | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اویادکړئ کله چې | واغسته مونږ | محکمه وعده ستاسو نه | چې مهٔ تویوئ | وینې خپلې | | | |
| او(یادکړئ) هغه وخت چې مونږ ستاسو مشرانو نه پوخ لوظ اخستې ووچې خپلې وینې مه تویوئ | | | | | | | |
| وَلَا تُخْرِجُونَ | أَنْفُسَكُمْ | مِنْ دِيَارِكُمْ | ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ | وَأَنْتُمْ | | | |
| اومهٔ اوباسئ | خانونه خپل | د کورونو خپلو نه | بیا اقرار وکړو تاسو | اوتاسو | | | |
| خپل خپلوان دکورکلی نه مه شړئ نو(هغه وخت)تاسو په دې لوظ کلك اقرار اوکړو او په دې خبره | | | | | | | |
| تَشْهَدُونَ ۝ | ثُمَّ أَنْتُمْ | هَؤُلَاءِ | تَقْتُلُونَ | أَنْفُسَكُمْ | وَتُخْرِجُونَ | | |
| ګواهان یئ | بیا هم تاسو | هغه کسان یئ | چې وژنئ | خانونه خپل | اواوباسئ تاسو | | |
| (اوس هم)ګوایان یئ بیاهم دغه تاسویئ چې خپل خپلوان بې دریغه وژنئ او اوباسئ | | | | | | | |
| فَرِيقًا | مِنْكُمْ | مِنْ دِيَارِهِمْ | تَظَاهَرُونَ | عَلَيْهِمْ | بِالْإِثْمِ | | |
| څه خلق | اد روروالي خپلې | ادکو رونو دهغوئ نه | امرسته کوئ یو بل سره | دهغوئ خلاف | په ګناه | | |
| خینې (کمزوری) خلق دکورونونه شړی یئ اودهغوئ خلاف (دهغوی دشمنانوسره) په ګناه | | | | | | | |
| وَالْعُدْوَانِ ط | وَإِنْ | يَأْتُوكُمْ | أُسَارَى | تُفَادُوهُمْ | | | |
| اوپه زیاتئ سره | اوکه چرې | راشی هغوئ تاسو ته | په حیثیت دقیدیانو | نوپه فدیه ورکولوسره تاسو آزادوئ هغوئ | | | |
| اوزیاتی کولو کښې مددکوی او(عجیبه خبره داده)چې دغه خلق قیدیان شی اوتاسوته دمددپاره راشی | | | | | | | |
| وَهُوَ مُحَرَّمٌ | عَلَيْكُمْ | إِخْرَاجُهُمْ ط | أَفَتُؤْمِنُونَ | بِبَعْضِ | | | |
| حالانکه حرام کړې شوی وو | په تاسو باندې | اویستل دهغوئ | آیا تاسو ایمان راوړئ | په یوه حصه | | | |
| نوتاسودهغوئ دخلاصولودپاره فدیه ورکوني حال دا چه د دوی (دکورونونه) ویستل ناروا وو نو آیا تاسو | | | | | | | |
| الْكِتَابِ | وَتَكْفُرُونَ | بِبَعْضٍ ج | فَمَا | جَزَاءُ | مَنْ | يَفْعَلُ | ذَلِكَ |
| د کتاب | اوکفر کوئ | په بله حصه | نو څه ده | بدله | دهغه چا | چې کوی | داسې کار |
| ایمان لرئ په بعضې حصه د کتاب اود بعضې نه انکارکوني نو په تاسو کښې څوك چې داسې کارونه کوی | | | | | | | |

(۱) صحیح بخاری : کتاب السلام باب النهی عن ابتداء اهل الکتاب بالسلام: ۲۱۶۷.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْكُمْ | اِلَّا | خِزْيٌ | فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ | يُرَدُّوْنَ |
| ستاسو نه | ما سوا/ د رسوايئ/ انه په ژوند | | د دنيا کښې/ | او په ورځ/ د قيامت | به واپس کړې شي |

هغوی لره فقط دومره سزا بس ده چې په دنيا کښې به د رسوائۍ ژوند تیروي او د قيامت په ورځ به

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِلٰۤى اَشَدِّ الْعَذَابِ | وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ | عَمَّا | تَعْمَلُوْنَ | اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ |
| سخت عذاب ته | او نه دې الله/ ناخبره | د هغه کارونو نه | چې تاسو ئې کوئ | دا هغه خلق دي |

زیر سخت عذاب کښې واچولی شي او الله پاک د ستاسو کارونو نه بې خبره نه دې دا هغه کسان دي چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اشْتَرَوُا | الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا | بِالْاٰخِرَةِ | فَلَا يُخَفَّفُ | عَنْهُمُ الْعَذَابُ | وَلَا هُمْ |
| چې اغستې ئې دي/ ژوند د | دنيا/ په مقابله د آخرت | نو سپک به نه کړې شي/ د دوي نه | عذاب | | او نه به د دوي سره |

د آخرت په بدل کښې ئې د دنيا ژوند غوره کړې دې نو د دوی نه به نه خو عذاب سپکولې شي او نه به ئې

| |
|---|
| يُنْصَرُوْنَ |
| امداد او کړې شي |

هيڅ مدد او کړې شي

**د یهودیانو خپل مینځ کښې جګړې کول** :- اوس او خزرج د مدینې د انصارو دوه قبیلې وې. د اسلام نه مخکښې د دې قبیلو په خپلو کښې څه اتفاق نه راتلو. هیشه به ئې خپلو کښې جنګونه کول. د مدینې دیهودو درې قبیلې وې. ① بنو قینقاع ② بنو نضیر ③ بنو قریظه. بنو قینقاع او بنو نضیر خو د خزرج طرفدار او ددوی سره ئې رورولی وه. او د بنو قریظه رورولی د بنو اوس سره وه. کله چه به د خزرج او د اوس جنګ وو نو دیهودو دې دریواړو قبیلو به هم د خپل حلیف ملګرتیا کوله. اودوی سره یو ځائې شو اوددوی دښمنانو سره به جنګیدل. د دواړو طرفونو نه به یهود د یهودیانو دلاسه مړه کیدل او موقعې ته به ئې کتل او دیوبل کورونه به ئې هم وران ول. او د وطن نه به ئې بې دخله کول هم. اودهغوی په مال او دولت باندې به ئې هم قبضه کوله. کله چه به جنګ ختم شو نو مغلوبې دلې به څه فدیه ورکړه او خپل قیدیان به ئې راخلاصول. او ونیل به ئې چه مونږ ته دالله ﷺ حکم دې چه په مونږ تولو کښې ځوك قید شي نو مونږ دې فدیه ورکړو او هغه دې راخلاص کړو. په دې موقعه باندې الله ﷻ فرمائي چه ددې څه وجه ده چه تاسو زما دا حکم اومنلو. او ما خو دا هم ونیلي دی چه په خپلو کښې یوبل لره مه قتل کوئ. اودکورونو نه ئې هم مه اوباسئ، ولې نه منئ: په یو حکم باندې ایمان راوړل او بل حکم نه انکار کول دا دکومه ځایه ایمانداري ده ؟ په دې آیت کښې اوفرمائیلې شو چه خپلې وینې مه تویوئ او خپل خانونه دکورنو نه مه اوباسئ: دا په دې وجه چه یو مذهب والا دیو خان په شان وی. دا په حدیث کښې هم دی چه ټول ایماندار په دوستئ کښې ، صله رحمئ کښې او رحم وکرم کښې دیو بدن پشان دی. دیو اندام په درد سره ټول جسم لړزیږي، تبه ئې اونیسي او دشپې خوب ئې خراب شي[1] داشان په یوادنی مسلمان باندې د ټول جهان مسلمانان لړزیدل پکار دی.

**دعبدالله بن سلام ؓ یوه واقعه** - عبد خیر ؒ وائی چه مونږ د سلمان بن ربیعه ؒ په نګرانئ کښې په بلخبر کښې جهاد کولو ، دمحاصرې نه پس مونږ دا ښار فتح کړو او په دې کښې ډیر قیدیان ملاؤ شو. حضرت عبدالله بن سلام ؓ په هغوی کښې یو وینځه په اووه سوه واخستله. مونږ چه کله راس الجالوت

[1] صحیح بخاری : کتاب الادب رحمة الناس والبهائم :۶۰۱۱، صحیح مسلم: ۲۵۸۶)-

ته اورسیدو نو عبدالله بن سلام ﷺ هغې لره ورغلو او وې فرمائیل چه دا وینخه خو ستا مذهب والا ده
ما دا په اووه سوه اخستې ده ، اوس تاسو دا زما نه واخلئ او آزاده ئې کړئ . هغه اوونیل چه ډیره ښه
ده خه دا په څوارلس سوه اخلم . دوی اوفرمائیل چه خه نې د څلورو زرو نه کمه نه خرخوم . هغه اوونیل
چه خه ئې بیا نه اخلم. دوی اوونیل چه یا خو ته دا واخله ګنې ستا دین به لاړشی. په تورات کښې
لیکلي دي چه د بنی اسرائیلو څوك بنده ګرفتار شي نو هغه واخلئ اوآزاد ئې کړئ. اوکه قید شي او
تاسو لره راشي نو فدیه ئې ورکړئ اوهغه راخلاص کړئ او دهغوی دخپلو کورونو نه مه بې دخله
کوئ.اوس خو ته یا تورات لره اومنه اودا واخله او یا دتورات نه منکر شه. هغه پوهه شو او وې وئیل
چه داسې معلومیږی چه ته شائد عبدالله بن سلام ئې؟ دوی اوفرمائیل چه آو. هغه څلور زره راوړې او
دوی ترې دوه زره واخستلې او دوه زره ئې واپس کړې.بعضو روایتونو کښې دی چه راس الجالوت په
کوفه کښې وو. دوی به دهغه وینځو فدیه نه ورکوله چه عربو نه بچ شوې نه وی. نو په دې باندې
عبدالله ﷺ هغوی ته دتورات آیت واورولو. غرض په دې آیت کښې دیهودیانو مذمت شوې دې چه
هغوی دالله ﷻ احکام پیژنی او بیا هم هغه شاته غورزوی. امانتداری او ایماندای اوچته شوې وه. د
نبی کریم ﷺ صفات ، د نبی کریم ﷺ نبنې ، د نبی کریم ﷺ دنبوت تصدیق ، د نبی کریم ﷺ دپیدائش
مقام مبارك ، د هجرت خائې وغیره ټول ځیزونه دهغوی په کتاب کښې موجود وو. خو دوی هغه پټ
کړی وو او دومره هم نه بلکه دوی به د نبی کریم ﷺ مخالفت کولو ، هم په دې وجه په هغوی باندې
ددنیا رسوائی راغله او په نه کمیدونکې او اُخروی عذاب کښې هم اخته شو.

| وَقَفَّيْنَا | الْكِتٰبَ | مُوْسَى | اٰتَيْنَا | وَلَقَدْ |
|---|---|---|---|---|
| اوپرله پسې لیږلي وومونږ | کتاب | موسی ته | چې ورکړې وو مونږ | اویقینی خبره ده |

اوبیشکه مونږ موسی ﷺ ته کتاب(تورات) ورکړې وو اوهغه پسې

| الْبَيِّنٰتِ | عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ | وَاٰتَيْنَا | بِالرُّسُلِ | مِنْۢ بَعْدِهٖ |
|---|---|---|---|---|
| ښکاره نښې | عیسی خوئ دمریم ته | اوورکړې وې مونږ | رسولان | روستودهغه نه |

مویرله پسې نورپیغمبران اولیږل اوعیسی ﷺ دمریم خوئې ته موښکاره معجزې ورکړې

| رَسُوْلٌ | جَآءَكُمْ | اَفَكُلَّمَا | بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ | وَاَيَّدْنٰهُ |
|---|---|---|---|---|
| یو رسول | راغې تاسوته | آیانو هر کله چې | په روح پاك سره | اوامداد کړې وو مونږ هغه |

اوپه روح القدس(جبریل)سره مودهغه مددکړې ووکله چه راوړی تاسو ته یو پیغمبر

| كَذَّبْتُمْ ز | فَفَرِيْقًا | اسْتَكْبَرْتُمْ ج | لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ | بِمَا |
|---|---|---|---|---|
| دروغ اوګڼل تاسو | تاسو انوخه خلق | اوکړه | چې نۀ به خوښول نفسونو ستاسو انولوئی | دهغه حکمونوسره |

داسې حکمونه چې هغه ستاسو دخوښې مطابق نه وی نوتاسوبۀ کبرشروع کړنی چاته به دروغژن وائې

| تَقْتُلُوْنَ ۝ | وَفَرِيْقًا |
|---|---|
| او وژل تاسو | اوخه خلق |

اوڅوک به وژنئ

**بنی اسرائیلو کښې پرله پسې پیغمبران رالیږل:-** دبنی اسرائیلو دعناد تکبر او دهغوی د خواهش پرستئ
بیان کیږی چه په تورات کښې تحریف او تبدیلی اوکړه.حضرت موسٰی ﷺ نه پس هم دده په شریعت

باندې راتلونکي نبیان علیهم السلام راغلل او دهغوی ئې هم مخالفت اوکړو. چنانچه فرمانی چه ﴿اِنَّآ اَنۡزَلۡنَا التَّوۡرٰىةَ فِيۡهَا هُدًى وَّنُوۡرٌ﴾ الخ (مونږ تورات نازل کړو چه په دې کښې هدایت وو او نور وو چه په دې باندې به نبیانو علیهم السلام به پخپله هم عمل کولو او یهودیانوته به ئې حکم کولو او دهغوی علماء اودرویشانو به هم ددې د منلو حکم کولو.)غرض دا چه پرله پسې نور نبیان علیهم السلام هم راتلل تر دې پورې چه دا سلسله په حضرت عیسی ﷺ باندې ختمه شوه.حضرت عیسی ﷺته انجیل ملاؤ شو چه په هغې کښې بعضې احکام د تورات خلاف وو ، نو ددې وجې نه هغه ته نوی معجزې هم ملاؤ شوې. لکه دالله ﷻ په حکم سره ژوندی کیدل ، د بناورې نه مارغان جوړول اوپه دې کښې پوك وهل اودالله ﷻ په حکم سره الوزول ، بیماران دالله ﷻ په حکم سره روغول ، دبعضو غیبو خبرونه بیانول وغیره. بیا ددوی په تائید باندې روح القدس یعنی جبریل ﷺ ئې مقرر کړو.

**دبنی اسرائیلو تکبر**:- لیکن بنی اسرائیل په خپل تکذیب و تکبر کښې زیات شو او حسدئې کولو اودې تولو نبیانو علیهم السلام سره ډیر په بدسلوك پیش شول. څوك به ئې په دروغه ګڼړل او څوك به ئې قتل کول ، صرف په دې وجه چه نبیانو علیهم السلام تعلیم به ددوی دطبیعت نه خلاف وو. ددوی د رائې اوددوی دقیاساتو او ددوی دجوړ شوی اصولواو احکامو د قبولیت نه منع کوونکی وو. ددې وجې نه دښمنئ ئې شروع کړه.

**د روح القدس نه مراد**:- ①حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ، حضرت عبدالله بن عباس ﷺ ، محمد بن کعب ﷫، اسماعیل بن خالد ﷫ ، ربیع بن انس ﷫ ، عطیه عوفی ﷫ اوقتاده ﷫ وغیره نه هم دا قول نقل دې چه روح القدس نه مراد حضرت جبریل ﷺ دې لکه قران پاك کښې په بل ځائې کښې دی چه ﴿ نَزَلَ بِهِ الرُّوۡحُ الۡاَمِيۡنُ الخ﴾ ( دا روح الامین راوړی دې.

**حسان بن ثابت ﷺ سره د روح القدس مدد کول**:- صحیح بخاری کښې تعلیقًا روایت دې چه نبی کریم ﷺ د حسان بن ثابت شاعر دپاره په جمات کښې یو منبر کیخودو هغوی به د مشرکانو د هجوې جوابونه ئې ورکول او نبی کریم ﷺ به دده دپاره دعا کوله چه ائې الله ﷻ د حسان مدد په روح القدس سره اوکړې لکه څنګه چه دې ستا دنبی دطرف نه جواب ورکوی.[1] دصحیح بخاری په یو بل حدیث کښې دی چه حضرت حسان ﷺ یو ځل دعمرفاروق ﷺ په دور کښې په مسجد نبوی کښې څه اشعار وئیل ، حضرت عمر ﷺ ورته په کوږ نظر اوکتل نو هغه (حسان بن ثابت ﷺ ) اوفرمائیل چه ما خو په دې ځائې کښې هغه وخت دااشعار وئیل چه ستانه مخکښې په دې ځائې یو بهترین سړې موجود وو. بیا حضرت ابوهریره ﷺ طرف ته ئې اوکتل او وې فرمائیل چه ائې ابوهریره ﷺ ستادې په الله قسم وی آیا تا د نبی کریم ﷺ نه دا آوریدلی دی چه ائې حسان ته دمشرکانو د اشعارو جواب ورکړه ، ائې الله ﷻ ته دحسان تائید په روح القدس سره اوکړه. حضرت ابوهریره ﷺ اوفرمائیل چه په الله ﷻ قسم ما د نبی کریم ﷺ نه دا آوریدلی دی. ([2])

په بعضې روایاتو کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ائې حسان ته ددې مشرکانو هجوه اوکړه حضرت جبریل ﷺ تاسره دې. ([3])د حضرت حسان په شعر کښې هم حضرت جبریل ﷺ ته روح القدس وئیلې شوې دې. یو بل حدیث کښې دی چه کله یهودیانو د حضرت محمد ﷺ نه د روح په حقله تپوس اوکړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ستاسو دې په الله ﷻ قسم وی دالله ﷻ نعمتونه یادکړئی او اووائې چه آیا تاسو ته پخپله دا معلومه نه ده څه چه هغه حضرت جبریل ﷺ دې او هم هغه مالره هم وحی راوړی،

---

[1] ) ابوداود کتاب الادب باب ماجاء فی الشعر: ۵۰۱۵، وسنده حسن)-

[2] ) صحیح بخاری : کتاب بدء الخلق ذکر الملائکة صلوات الله علیهم :۳۲۱۲، وانظر: ۴۵۳، صحیح مسلم: ۲۴۸۵)-

[3] ) صحیح بخاری : کتاب بدء الخلق ذکر الملائکة صلوات الله علیهم :۳۲۱۲، وانظر: ۴۵۳، صحیح مسلم: ۲۴۸۲)-

هغوئ تولو اوونيل او بيشكه (١) (ابن اسحاق)په ابن حبان كښې دي چه نبي كريم ﷺ فرمائي چه حضرت جبريل ﷺ زما په زړه كښې چه اوونيل چه هيڅ يو سړی ددې نه مخكښې نه مری چه هغه خپله روزي او خپل ژوند پوره نه كړي. دالله ﷻ نه اويريږه او ددنيا په ګټلو كښې ددين خيال ساته. (٢) بعضو د روح القدس نه مراد اسم اعظم اخستي دې. بعضو ونيلي دي چه دا دفرښتو يو سردار، فرښته ده.

**د روح القدس په تعريف كښې نور اقوال:** ② بعضې وائي چه دقدس نه مراد الله ﷻ او د روح نه مراد اسم اعظم دې ③چا ونيلي دي چه قدس يعني بركت ④چا ونيلي دي پاك ، چا ونيلي دی دروح نه مراد انجيل دې لكه فرمائي چه ﴿ وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا ﴾ (داشان مونږ ستا طرف ته د روح وحی په خپل حكم سره اوكړه ). امام ابن جرير ﷫ هم دا فيصله كوی چه په دې ځاني كښې د روح نه مراد روح القدس حضرت جبريل ﷺ دې لكه بل ځاني كښې فرمائي چه ﴿ اِذْ اَيَّدْتُّكَ بِرُوْحِ الْقُدُسِ الخ﴾ په دې آيت كښې روح القدس دتائيد ذكر كوی او ورسره د كتاب او حكمت ،تورات اود انجيل خودلو بيان هم دې. معلوم شو دا بل ځيز دې اوهغه بل ځيز او د رواني عبارت هم ددې تائيد كوی ، دقدس نه مراد مقدس دې لكه فرمائي چه ﴿خاتم جود﴾ او ﴿رجل صدق﴾ كښې. روح القدس ونيلو كښې او ﴿روح منه﴾ ونيلو كښې قربت او بزرګي يو خصوصيت مونډې شي. دا په دې وجه هم اوونيلې شو .بعضو مفسرينو ددې نه مراد د حضرت عيسى ﷺ روح اخستي دې. ځكه چه دهغه روح دانساني شا وغيره نه پاك او بيل وو. بيا فرمائي چه يو ډله تاسو دروغ اوګنړله او يو ډله مو قتل كړه. په دروغ ونيلو كښې د ماضي صيغه ئې راوړه خوپه قتل كښې دمستقبل. ځكه چه دهغه خلقو حالت ددې آيت دنازليدو نه پس هم هغه شان وو. چنانچه نبي كريم ﷺ په خپل مرض الموت كښې اوفرمائيل ددې زهرو نمړنی (لقمې) اثر چه ما باندې كيدو چه كوم ما په خيبر كښې خوړلې وو او په هغه وخت خوهغوی رګ وهلې وو. (٣)

| وَقَالُوْا | قُلُوْبُنَا | غُلْفٌ ؕ | بَلْ |
|---|---|---|---|
| او وائي هغوئ | زړونه زمونږ | پرده بندي دي | نه ده داسې بلكه |
| اويهوديان وائي چې زمونږ زړونه انغختي دي (داسلام آواز نه ورسي)نه بلكه | | | |

| لَّعَنَهُمُ | اللّٰهُ | بِكُفْرِهِمْ | فَقَلِيْلًا | مَّا | يُؤْمِنُوْنَ ﴿٨٨﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| لعنت كړي دي په هغوئ باندې | الله | په سبب دكفر دهغوئ | نو ډير لږ دي | هغه | چې ايمان راوړي |
| دوئ دكفرپه وجه الله ﷻ رټلي دي (هم دا وجه ده) نوډير لږ كسان په كښې ايمان راوړي | | | | | |

**دغلف معنى او مفهوم :-** ديهوديانو يو قول دا هم دې چه خمونږ په زړونو باندې غلافونه دي يعني دا دعلم نه ډك دی، اوس مونږ ته دنوی علم هيڅ ضرورت نشته دې. (٤)ددې وجې جواب ملاؤ شو چه نه داسې نه ده بلكه د الله ﷻ دلعنت مهر پرې لګيدلې دې دوی ته ايمان نه نصيب كيږی. ﴿غُلْفٌ﴾(غُلُفٌ) هم ونيلې شوې دې.يعني دوی دعلم لوښی دی. اوپه بل ځاني كښې قران پاك كښې فرمائيلي دی چه ﴿وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ الخ﴾ (چه كوم ځيز طرفته تاسو مونږ بلئ دهغه ځيز نه زمونږ زړونه پردو كښې دی او په دې باندې مهرلګيدلې دې. هغوی په دې باندې نه پوهيږی اونه دې طرف ته مائله كيږی اونه دا ياد ساتي).

---

١ ) الطبري:١٤٩٢ )-

٢ ) ابن ماجة:٢١٤٤، وصحيح ابن حبان (الموارد : ٨٤) وهو صحيح)-

٣ ) صحيح بخاری : ٤٢٢٨ تعليقا)-

٤ ) قرطبي:٢/٢٥)-

یوحدیث کښې دی چه بعضې زړه والا وی چه په هغوی باندې دالله ﷻ غضب وی دا زړونه دکفارو وی.
په سورت نساء کښې هم یو آیت هم ددې معنې دې ﴿وَقَوْلِهِمْ قُلُوبُنَا غُلْفٌ الخ﴾ دلږ ایمان راوړو یو معنی خوداده چه په دوی کښې ډیر کم خلق ایماندار دی او بله معنی ئې دا هم ده چه ددوی ایمان ډیر کم دې یعنی د قیامت ، ثواب ، عذاب وغیره قائل، په حضرت موسی ؑ باندې ایمان راوړنکی ، تورات لره کتاب الله منی خو دا پغمبر آخرالزمان نه منی چه خپل ایمان لره پوره کړی ، بلکه د نبی کریم ﷺ په انکار سره خپل هغه لږ ایمان هم تباه کوی. دریمه معنی ئې داده چه دا بالکل بې ایمانه دی ځکه عربئ ژبه کښې په داسې موقعو باندې بالکل نشت په صورت کښې داسې الفاظ وئیلې کیږی ، لکه ددې پشان مې ډیر کم اوکتل ددې مطلب دادې چه بالکل مې کتلی نه دی ، والله اعلم.

| مَعَهُمْ | لِّمَا | مُصَدِّقٌ | مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ | كِتٰبٌ | جَآءَهُمْ | وَلَمَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې ددوئ سره دې | دهغه کتاب | چې تصدیق کونکې دې | دطرفه د الله نه | کتاب | راغې دوئ ته | اوهرکله چې |
| اوهرکله چې دوئ ته دالله ﷻ دطرفه داسې کتاب راغلوچې ددوی دمذهبی کتابو سره (په اصولو کښې موافق) وو | | | | | | |

| عَلَى الَّذِيْنَ | يَسْتَفْتِحُوْنَ | مِنْ قَبْلُ | وَكَانُوْا |
|---|---|---|---|
| په مقابله دهغه کسانو کښې | چې فتحه به ئې غوښتله | مخکښې دراتلو ددې کتاب نه | اوحال دا چې وودوی |
| احال دادې چې ددې کتاب نه د راتلونه وړاندې دوئ فتحه غوښتله دهغه کسانو په مقابله کښې | | | |

| كَفَرُوْا | عَرَفُوْا | مَّا | جَآءَهُمْ | فَلَمَّا | كَفَرُوْا ۚ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو انکار ئې اوکړو | چې اوپیژندو دوئ | هغه پیغمبر | راغې دوئ ته | اخو کله چې | چې کافران وو |
| چې کافر وو خوهرکله چې هغه کتاب دوی ته راغلواودوئ په ښه شان اوپیژندو نوانکار ئې اوکړو | | | | | |

| عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿٨٩﴾ | فَلَعْنَةُ اللّٰهِ | بِهٖ |
|---|---|---|
| په دې انکار کونکو بدد | نو لعنت دالله دې | دمنلو دهغې نه |
| ددې نه نوپه داسې انکار کوونکو باندې دالله لعنت وریږی | | |

**دیهودوانکار د حسد په وجه دې** :- کله چه به دیهودیانواو دعربو مشرکانو په مینځ کښې جنګ کیدو نو یهودو به وئیل نزدې ده چه دالله ﷻ یو کتاب سره یو عظیم نبی تشریف راوړلو والا دې. مونږ به هغه سره شو اوستاسو سره به داسې جنګ اوکړو چه ستاسو به هډو نوم پاتې نشی. دالله ﷻ نه به ئې دعا کوله چه انې الله ﷻ ته دا نبی زر راولیږه چه د هغه صفات مونږ په تورات کښې وئیلی دی چه مونږ په هغه باندې ایمان راوړو او هغه سره شو او خپلې متې مضبوطې کړو اوستاد دښمنانو نه بدله واخلو. مشرکانو ته به ئې وئیل چه اوس دهغه نبی زمانه نزدې ده ، لیکن چه کله نبی کریم ﷺ مبعوث شو او ټولې نښې دوی اوکتلې او وې پیژندو ، او په زړه سره قائل شو خو چونکه نبی کریم ﷺ دعربونه وو ، ددې وجې نه به ئې حسد کولو او د نبی کریم ﷺ دنبوت انکار به ئې کولو او دالله ﷻ په لعنت کښې راغلل. بلکه دمدینې هغه مشرکان چه ددوی نه به ئې دا آوریدل ، هغوئ ته ایمان نصیب شو او بالآخر نبی کریم ﷺ سره شواو په یهودو باندې غالب شو.[1]

**دمعاذ ؓ یهودیانو سره خبرې کول**:- یو ځل حضرت معاذ بن جبل ؓ ، حضرت بشر بن جراء ؓ او حضرت داود بن سلمه ؓ دمدینې یهودو ته اوونیل چه تاسو به زمونږ دشرك په حالت کښې خمونږ په

[1] صحیح ابن حبان المورد: ۲۱۰۷، وسنده حسن)-

مخکښې د نبي کريم ﷺ دنبوت ذکر کولو بلکه مونږ به مووېرولو او چه کوم اوصاف به تاسو بيانو، هغه ټول اوصاف په نبي کريم ﷺ کښې موجود دی ،بيا تاسو پخپله ولې ايمان نه راوړنی ؟ د نبي کريم ﷺ سره ملګرتيا ولې نه کوئی. نوسلام بن مشکم جواب ورکړو چه مونږ به دده په باره کښې نه ونيل (۱)هم ددې ذکر په دې آيت کښې دې چه مخکښې به ئې منل او منتظر وو خو د راتلو نه پس ئې حسد او تکبر اوکړو چه هسې نه زمونږ نه رياست لاړ نشی .

| | | |
|---|---|---|
| بِئْسَمَا | اشْتَرَوْا | |
| بد دې هغه څيز | چې خرچ ئې کړل | |
| ډير بد دې هغه څيز چې دوی پرې خرڅ کړی دی | | |

| بِهِ | أَنفُسَهُمْ | أَن يَكْفُرُوا | بِمَا | أَنزَلَ اللَّهُ | بَغْيًا |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغې سره | ځانونه خپل چې | انکار کوی دوئ | د هغه کتاب نه | چې نازل کړو الله | صرف ددې ضد په وجه |
| خپل ځانونه (هغه دا) چې دا الله ﷻ دکتاب نه د بغض په وجه انکار کوی (او مسلمانانو سره حسد ساتی) چې (ولې) | | | | | |

| أَن يُنَزِّلَ | اللَّهُ | مِن فَضْلِهِ | عَلَىٰ مَن | يَشَاءُ | مِنْ عِبَادِهِ | فَبَاءُو |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې نازلوی | الله | فضل | خپل | په هغه چا | چې خوښه ئې وی | د بندګانو خپلونه | نو مستحق شوی دی |
| الله خپل فضل په هغه چاکوی چې پخپلو بندګانو کښې دهغه خوښ شی (او پيغمبر مونږ کښې ولې نه راليږی) | | | | | | |

| بِغَضَبٍ | عَلَىٰ غَضَبٍ | وَلِلْكَافِرِينَ | عَذَابٌ | مُّهِينٌ |
|---|---|---|---|---|
| ديو غضب | دپاسه دبل غضب | او دې دپاره دکافرانو | عذاب | سپکونکې |
| خکه خودوئ په لاندې باندې غضب کښې اخته شو او کافرو دپاره سپکونکې سزا مقرر ده | | | | |

**ديهوديانود تکبر اوحسد سزا** :-مطلب دادې چه دې يهوديانو چه د نبي کريم ﷺ دتصديق په بدله کښې تکذيب اوکړو او په نبي کريم ﷺ ئې دايمان دراوړو په بدله کښې کفر اوکړو او د نبي کريم ﷺ د مدد کولو په ځائې ئې ددوی مخالفت اوکړو اودښمنی ئې اوکړه او په دې سره ئې خپل ځان د الله ﷻ دغضب اوسزا قابل جوړ کړو. دابدترين څيز دې چه دبهترين څيز په مقابله کښې دې خلقو خپل کړو. او ددې وجه سوا دحسد او بغض او تکبر اوعناد نه نور هيڅ نه ده. چونکه نبي کريم ﷺ ددوی نه نه وو بلکه دعربو نه وو ، په دې وجه ددوی په خيټو کښې درد وو.حالانکه په الله ﷻ باندې څوك حاکم نه وو. هغه د رسالت حقدار ښه پيژندو او هغه خپل فضل او کرم چه کوم بنده ته ورکول غواړی نو ورکوی ئې. نو يو خو د تورات د احکامو نه منلو په وجه په دوی باندې غضب وو او اوس بل د نبي کريم ﷺ نه د انکار په وجه نازل شو. داسې اوګنړئی چه ړومبې غضب د حضرت عيسی ﷺ د پغمبرئی نه منلو (۲)او دويم دحضرت محمد ﷺ دپيغمبرئی نه منلو.يا ړومبې غضب هغه وو چه دسخی د عبادت په وجه وو او دويم غضب د نبي کريم ﷺ دمخالفت په وجه وو.

چونکه دوی دحسداو بغض په وجه د نبي کريم ﷺ د نبوت نه انکاری شوی وو او ددې حسد اصلی وجه دهغوی تکبر وو ، خکه هغوی په ذليله عذابونو کښې اخته کړې شو چه دګناهونو بدله پوره شی. لکه قران پاك کښې فرمان دې چه ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ ﴾ (زما دعبادت نه چه څوك هم تکبر کوی هغه به ذليل وی او جهنم ته به داخليږی). نبي کريم ﷺ فرمائی چه دکبر کوونکو

---

۱) الطبری: ۲/۳۳۳)-
۲) ابن ابی حاتم : ۱ /۲۷٦ )-

خلقو حشر به دقیامت په ورځ په انساني صورت کښې دميږو په شان وي. چه دوی لره به تول ځيزونه چخړه کوي او روان به وي اود جهنم بوس نومي قيدخانه کښې به اچولې شي ، چه په هغه خانې کښې اوور دنورو تولو قسمونو اوور نه زيات تيز وي او دوی باندې به د جهنميانو وينې زوې ځکولې شي.

| وَاِذَا قِيْلَ | لَهُمْ | اٰمِنُوْا | بِمَآ | اَنْزَلَ اللّٰهُ | قَالُوْا | نُؤْمِنُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکله چې اوونيلې شي | دوئ ته | چې ايمان راوړئ | په هغه | چې نازل کړې دې الله | نو وائي | مونږ ايمان راوړو |

اوکله چې چې دوئ ته اوونيلې شي چې دالله په کتاب ايمان راوړئ نووائي چې مونږخوپه هغه کتاب ايمان ساتو

| بِمَآ | اُنْزِلَ | عَلَيْنَا | وَيَكْفُرُوْنَ | بِمَا | وَرَآءَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه | چې نازل کړې شوې دې | په مونږ | او انکار کوي | دمنلودهغې نه | چې ماسوا دی دهغې نه |

چې مونږ ته(اوزمونږ کورنئ ته) راليږلې شوې دې اودهغې نه بغيردنورو کتابونونه انکار کوي

| وَهُوَ | الْحَقُّ | مُصَدِّقًا | لِّمَا | مَعَهُمْ | قُلْ | فَلِمَ | تَقْتُلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حالانکه هغه | حق دې | تصديق کونکې دې | د هغه کتاب | چې ددوئ سره دې | اووايه | نو ولې | وژل تاسو |

دا کتاب (قران پاک) حق دې اود دوئ دکتاب (توراة) تصديق کوي ورته اووايه چې ولې مو اووژل

| اَنْۢبِيَآءَ | اللّٰهِ | مِنْ قَبْلُ | اِنْ | كُنْتُمْ | مُّؤْمِنِيْنَ ۝ | وَلَقَدْ | جَآءَكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پيغمبران | دالله | مخکښې ددې نه | که چرې | يئ تاسو | مؤمنان | او په تحقيق سره | راغلې ووتاسو ته |

رومبي پيغمبران دالله ﷺ که تاسو رښتوني مؤمنان يئ اوراغلې وو تاسو ته

| مُّوْسٰى | بِالْبَيِّنٰتِ | ثُمَّ | اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ | مِنْۢ بَعْدِهٖ | وَاَنْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| موسی | په ښکاره معجزو سره | بيا | اونيووتاسوځ سخي | روستو دهغه نه | او وئ تاسو |

موسی په معجزو څرګندو (د دې باوجود) تاسوخخې معبود جوړکړلودهغه (کوه طور ته دتلونه) پس

| ظٰلِمُوْنَ ۝ |
|---|
| ظلم کونکې |

اوپه خان مو زياتي کوړ

**دخواهش بندګان د نفس غلامان دی** :- يعنی کله چه دوی ته په قران باندې او نبی کريم ﷺ باندې د ايمان راوړلو دپاره اوونيلې شي نو دوئ اوونيل چه مونږ لره په تورات باندې ايمان راوړل کافي دی. اللّٰه ﷻ فرمائي چه دوی په دې کښې هم دروغژن دی. قران پاک خودهغه کتابونو تصديق کوونکې دې او پخپله دهغوی په کتابونو کښې هم د نبی کريم ﷺ تصديق موجود دې.لکه فرمائي چه ﴿اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ؕ﴾ (اهل کتاب نبی کريم ﷺ داشان پيژنی لکه څنګه چه څوک خپل اولاد پيژنی) . نو د نبی کريم ﷺ انکارسره ددوی په تورات باندې او انجيل باندې هم ايمان پاتې نشو. او اوس بل حجت قائموی چه ښه په تورات او انجيل باندې خو ستاسو ايمان دې ، بيا مخکښې نبيان چه ددې تصديق کوونکي او تابعداری ئې کوله او دنوی شريعت او نوی کتاب بلکه تاسو صرف دخواهش بندګان او د نفس غلامان دخپل رائې او قياس ماتحت يئ. بيا فرمائي چه ښه ده تاسو حضرت موسی ﷺ نه ډيرې غټې غټې معجزې کتلې وې ، طوفان ، مولخان ، سپږې ، چينډخان ، وينه وغيره د حضرت موسی ﷺ په بددعا سره داټول د معجزې په طور ظاهر شو ، دلرګی نه مارجوړيدل ، دلاس روښانه کيدل ،

دریاب شلیدل ، او اوبه د کاڼي پشان کیدل ، دوریخو سیورنی ، من و سلوی نازلیدل ، د کاڼي نه نهرونه جاري کیدل ، وغیره ټول غټې غټې معجزې وې چه د حضرت موسی ﷺ د نبوت او د الله ﷻ د توحید روښانه معجزې وې. ټولې مو په خپلو سترګو اوکتلې خو کله چه حضرت موسی ﷺ کوه طور ته لاړو نو تاسو د سخي عبادت شروع کړو ،اوس اووائې چه پخپله په تورات او په حضرت موسی ﷺ باندې ستاسو ایمان چرته پاتې شو؟ آیا ددې بدکارونو په وجه تاسو د ظالمان ونیلو قابل نه نې ؟ ﴿مِنۡ بَعۡدِهٖ﴾ نه مراد حضرت موسی ﷺ کوه طور ته د تلو نه پس ده . لکه په بل ځائې حضرت فرمائی چه ﴿وَاتَّخَذَ قَوۡمُ مُوۡسٰی مِنۡۢ بَعۡدِهٖ الخ﴾ (موسی ﷺ چه کوه طور ته لاړو نو تاسو سخي خپل معبود جوړ کړو او په خپلو ځانونو مو ددې سخي د عبادت په وجه ډیر ظلم اوکړو). چه ددې احساس ددې نه پس هغوی ته هم اوشو. لکه فرمائی چه ﴿وَلَمَّا سُقِطَ فِیۡۤ اَیۡدِیۡهِمۡ الخ﴾ ( کله چه هغوی ته هوش راغلو نو شرمنده شو او خپله ګمراهي نې محسوس کړه) په هغه وخت کښې نې اوونیل اې الله ﷻ که مونږ باندې ته رحم اونکړې او خمونږ خطاګانې معاف نه کړې نو مونږ به د نقصان کوونکو نه شو).

| وَاِذۡ | اَخَذۡنَا | مِیۡثَاقَکُمۡ | وَرَفَعۡنَا | فَوۡقَکُمۡ |
|---|---|---|---|---|
| او یاد کړئ کله چې | اواغستله مونږ | پخه وعده ستاسو نه | اوپورته کړو مونږ | دپاسه ستاسو |
| او (یاد کړئ) چې مونږ ستاسو نه پوخ لوظ واخستو او مونږ ستاسو د پاسه کوه طور | | | | |

| الطُّوۡرَ | خُذُوۡا | مَاۤ | اٰتَیۡنٰکُمۡ | بِقُوَّةٍ | وَّاسۡمَعُوۡا |
|---|---|---|---|---|---|
| طور غرا | چې اونیسئ | هغه | چې درکوو مونږ تاسو ته | په سختئ سره | او په غور ورونئ واورئ |
| اوچت کړو چې مونږ کوم کتاب درکړې دې هغه مضبوط اونیسئ (زمونږ د خبرې آورید و پشان) واورئ | | | | | |

| قَالُوۡا | سَمِعۡنَا | وَعَصَیۡنَا | وَاُشۡرِبُوۡا | فِیۡ قُلُوۡبِهِمُ |
|---|---|---|---|---|
| اوونیل هغوئ | اواوریدل مونږ | او ونه منل مونږ | او اخکلې شوې وو | په زړونو د هغوئ کښې |
| نو دوئ اوونیل چې مونږ واوریدلې خو منلې نې نه شو خکه چې د دوئ زړونه د څخې په مینه کښې | | | | |

| الۡعِجۡلَ | بِکُفۡرِهِمۡ | قُلۡ | بِئۡسَمَا | یَاۡمُرُکُمۡ | بِهٖۤ |
|---|---|---|---|---|---|
| محبت د سخي | په سبب د کفر د هغوئ | ورته اووایه | بد دې هغه څیز | چې حکم کوی تاسو ته | په هغې سره |
| د کفر په وجه خروب شوې وو | | ورته اووایه چې ډیر خراب تعلیم درکوی تاسو ته | | | |

| اِیۡمَانُکُمۡ | اِنۡ کُنۡتُمۡ | مُّؤۡمِنِیۡنَ |
|---|---|---|
| ایمان ستاسو | که چرې یئ تاسو | مؤمنان دو |
| دا ایمان ستاسو که چرې تاسو مؤمنان یئ (نو دا خوځه عجیبه غوندې ایمان دې) | | |

**دیهودیانو دټولو نه لوئې کفر** :- الله ﷻ د بنی اسرائیلو خطاګانې ، سرکشی ، مخالفتونه او د حق نه مخ اړول بیانوی . چه کله هغوی کوه طور غر په سرونو باندې اوکتلو نو اقرار نې اوکړو خو کله چه هغه لرې شو نو بیا منکر شو ، ددې تفسیر مخکښې تیر شوې دې .د سخي محبت د هغوی په زړونو کښې پوخ شوې وو. لکه څنګه چه حدیث کښې دی چه د یو څیز محبت انسان ړوند کوڼ کوی.[1] حضرت موسی ﷺ دا سخي تکړې تکړې او وې سیزلو او ددې ایره نې په هوا کښې والوزوله او په دریاب کښې نې

[1] ابوداود کتاب الادب باب مالی الهوی : ۵۱۳۰).-

راچوله. چه ددې اوبه بنی اسرائیلو اوڅکلې. اوددې اثر په هغوی باندې ظاهر شو. سخې تباه کړې شو خو ددې سخی تعلق دهغوی په زړونو کښې وو. ددې آیت مطلب دادې چه تاسو دایمان دعوی څنګه کونی ؟ په خپل ایمان باندې نظر نه اچونی او باربار وعده خلافی کوی ، ډیر ځل مو کفر اوکړو ، آیا تاسو هغه ټول هر څه هیر کړل ؟ تاسو د حضرت موسیٰ ﷺ نه انکار اوکړو اودهغوی نه پس تاسو پغمبرانو سره سرکشی اوکړه تر دې پورې چه دافضل الانبیاء علیهم السلام ، د خاتم المرسلین حضرت محمد ﷺ نبوت نه هم انکاری شونې او دا ټولو نه لونې کفردې.

قُلْ | اِنْ كَانَتْ | لَكُمُ

دوئ ته اووایه | که چرې وی | ستاسو دپاره

ورته اووایه که (د) آخرت

الدَّارُ الْاٰخِرَةُ | عِنْدَ اللّٰهِ | خَالِصَةً | مِّنْ دُوْنِ النَّاسِ | فَتَمَنَّوُا

کور د آخرت | په نزد الله | خالص | ماسوا دنورو خلقو نه | نو آرزو اوکړئ |

(نعمتونه) خالص تاسو دپاره مقرر وی اودنورچا په کښې څه برخه نه وی نوراځئ د مرګ خواهش اوکړئ

الْمَوْتَ | اِنْ كُنْتُمْ | صٰدِقِيْنَ ۝ | وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ | اَبَدًا | بِمَا

دمرګ | که چرې یئ تاسو | ربنتینی | اوهرګزبه آرزو اونکړی | همیشه دپاره | په سبب دهغه

که تاسو په (خپله دعوی کښې) رینښتونی یئ اودوی به دمرګ خواهش هیڅ کله اونکړی

قَدَّمَتْ | اَيْدِيْهِمْ ط | وَاللّٰهُ | عَلِيْمٌ | بِالظّٰلِمِيْنَ ۝ | وَلَتَجِدَنَّهُمْ

چې مخکښې لیږلې دې | لاسونه ددوئ | اوالله | ښهٔ خبردې | په حال ددې ظالمانو | اوخامخابه ته بیا مومې دوئ

دخپلو (بدو) عملونو په وجه | او الله ﷻ ظالمان خلق ډیر ښهٔ پیژنی | اوته بهٔ دوئ او مومې

اَحْرَصَ النَّاسِ | عَلٰى حَيٰوةٍ ۚ | وَمِنَ الَّذِيْنَ | اَشْرَكُوْا ۚ | يَوَدُّ اَحَدُهُمْ

زیات حرص کونکې دخلقو نه | په ژوند باندې | اودهغه خلقو نه | چې شرک ئې کړې دی | غواړی هریو سړې ددوئ

ډیرزیات حرصناک د ټولو خلقونه په ژوندن پسې | دمشرکانونه هم زیات حرصناک | په دوئ کښې هریو دا غواړی

لَوْ يُعَمَّرُ | اَلْفَ سَنَةٍ ۚ | وَمَا | هُوَ | بِمُزَحْزِحِهٖ | مِنَ الْعَذَابِ

که عمر ورکړې شی | زر کاله | اوحال دا چې نهٔ دې | هغه | خلاصونکې ده لره | د عذاب نه

که ورته زر کاله عمر ورکړې شی نو ښه به وی اخو نشی خلاصولې دوئ دعذاب (دالله نه)

اَنْ يُّعَمَّرَ ط | وَاللّٰهُ | بَصِيْرٌ | بِمَا | يَعْمَلُوْنَ ۝

چې ورکړې شی عمر | اوالله | الیدونکې دې | ادهغه عمل | چې کوی ئې دوئ |

دعمر زیات والئ | او الله ددوئ کارونه ډیرښه وینی ګوری |

**یهودیانو ته دمباهلې دعوت :.** حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی چه دې یهودیانو ته د نبی کریم ﷺ په خله باندې پیغام ورکړې شوکه تاسو رښتونی یئ نو مقابلې دپاره راشئ ، تاسو ټول یو ځائې شئ

اوداالله ﷻ نه دعا اوکړئ چه په مونږ کښې دروغژن خلق هلاك کړه. او دې سره دا پیشنګوئي هم اوکړې شوه چه دا خلق بالکل داسې کولو باندې نه راضي کیږي. نو داسې اوشو چه دا خلق مقابلې دپاره رانغلل. ځکه چه دې خلقو نبي کریم ﷺ او قران کریم ربښتیا منلو . که داخلق په دې اعلان سره راوتلې وې نو ټول په ټوله به هلاك شوي وو. په مخ دزمکې به یو یهودي هم بچ نه وو پاتې شوې. یو مرفوع حدیث کښې دی که یهودیان دمقابلې دپاره راوتلی وې او د دروغو دپاره ئې د مرګ دعا کړې وې نو ټول په ټوله به مړه شوي وې او خپل ځائي به ئې جهنم کښې جوړ کړې وو. داشان چه کوم نصرانیان به نبي کریم ﷺ لره راتلل که هغوی هم دمقابلې دپاره تیار شوي وې نوهغوی به تباه شوي وو اودهغوی د اهل وعیال به هډو نوم ونشان نه ووپاتې شوې. (مسند احمد).[1]

په سورت جمعه کښې هم داشان دعوت دوی ته ورکړې شوې دې . آیت ﴿ قُلْ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ هَادُوْٓا ﴾ تر آخره پورې اولولئ،دهغوی دعوه وه چه ﴿ نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ﴾ مونږ خوداالله ﷻ اولاد او دهغه خوښ یو،دا به ئې وئیل ﴿ وَقَالُوْا لَنْ يَّدْخُلَ الْجَنَّةَ اِلَّا مَنْ كَانَ هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى ﴾ جنت ته به صرف یهودا و نصرانیان داخلیږي ، ځکه دوی ته اووئیلې شو چه رازئي چه ددې فیصله داشان اوکړو چه دواړه ډلې دې میدان ته راوزي اوداالله ﷻ نه دې دعا اوکړي چه الله ﷻ دې په مونږ کښې دروغژن هلاك کړي. چونکه دې ډلې ته دا علم وو چه دوی دروغژن دی.ځکه دوی تیار نشو اوددوی کذب په ټولو باندې ښکاره شو. داشان چه کله دنجران نصرانیان نبي کریم ﷺ ته راغلل ، بحث او مباحثه اوشوه نو هغوئ ته هم اووئیلې شو چه ﴿ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ اَبْنَآءَنَا وَاَبْنَآءَكُمْ الخ ﴾ (رازئي چه مونږ اوتاسو خپل خپل اولاد او ښځې واخلو او اوخو اود الله ﷻ نه دعا اوکړو چه هغه ذات دې په دروغژنو باندې لعنت اوکړي ). خو هغوی ټولو په خپلو کښې اووئیل چه بالکل نه ، نبي کریم ﷺ سره مباهله مه کوئي ګنې برباد به شئ. نودمباهلې نه ئې انکار اوکړو او سرونه ئې ټیټ کړل او صلح ئې اوکړه او جزیه ورکول ئې منظور کړل. نبي کریم ﷺ حضرت ابوعبیده بن جراح ﷺ دوی سره په طور د امین اولیږلو.

داشان مشرکان دعربو ته هم اووئیلې شو چه ﴿ قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلٰلَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمٰنُ مَدًّا ﴾ (مونږ کښې چه څوك ګمراه شي نوالله ﷻ دې د هغه ګمراهي زیاته کړي) . ددې پوره تفصیل ددې آیت لاندې به بیانیږي. انشاء الله . ددې پورتني ایت په تفسیر کښې یو مرجوح قول دا هم دې چه تاسو دخپلو ځانونو دپاره مرګ اوغواړئ ځکه په قول دستاسو د آخرت ښیګړې صرف ستاسو دپاره دی. خوهغوی انکار اوکړو اودا قول څه زړه ته نزدې نه دې. ځکه چه ډیرو نیکو کسانو هم ژوند غوښتلو. بلکه په حدیث کښې دی چه په تاسوکښې بهتر هغه څوك دی چه دهغه عمر زیات وی او اعمال ئې ښه وي،[2] ددې نه علاوه دا قول یهودو هم وئیلې شو نو خبره به فیصله نه وي ، صحیح تفسیر هم هغه دې چه کوم مخکښې تیر شو چه دواړه ډلې دې د دروغژنود هلاکت او دهغه دمرګ دعا اوکړي. ددې اعلان آوریدو سره یهودیانو باندې یخې اوبه توئې شوې او ټول خلقو ته ددوی دروغ معلوم شو او پیشګوئي هم صحیح ثابت شوه چه دا خلق بالکل دمرګ طلب نه کوی.ددې مباهلې په اصطلاح کښې (تمنی) کیخودلې شوه ځکه چه هرې ډلې به د باطلو دمرګ خواهش کولو.

**د مشرکانو نه زیات د عمر سره محبت ساتل**:- بیا فرمائي چه د دوی د مشرکانو هم د زیات عمر غوښتلو خواهشمند دی. ځکه چه ددې کافرو دپاره دنیا جنت ده. او ددوی خواهش اوکوشش دی چه په دې دنیا کښې زیات پاتې شي.حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائي چه دمنافق د دنیا ژوند دکافر د حرص نه هم زیات وي. یهودو خو په یوخل زرکاله عمر غوښتلو حالانکه دا زیات عمر هم دوی ته د

[1] ) مسند احمد: ۱/۲٤۸)-

[2] ) ترمذی : کتاب الزهد باب ماجاء فی طول العمر اللمومن: ۲۳۲۹)-

عذابونو نه نجات ورکولې نشي ، چونکه کفار په اخرت باندې يقين نه ساتي او يهودت يقين ساتي د آخرت، بيا ددوی دهوکې هم ښکاره شوې نوددې وجې دمرګ نه زيات ويريدل. څوکه د ابليس برابر عمر ورته هم ملاؤ شي نوعذاب نه نشي بچ کيدې. (۱)الله ﷻ ددوی دبدو عملونو نه بې خبره نه دې ، دټولو بندګانو ټول نيک عملونو نه هغه ښه خبر دې او داشان بدله به ورکوی. (۲)

| |
|---|
| قُلْ مَنْ كَانَ |
| اووېه \| هغه څوک چې وی |
| ورته اووايه هرڅوک چې \| |
| عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ بِاِذْنِ اللّٰهِ |
| دشمن \| دجبريل \| نوبيشکه هغه \| نازل کړې دې دا(قرآن) \| په زړه ستا \| په حکم دالله \| |
| دښمن دې دجبريل (نوتکړه دې شي)بيشکه داقران هم هغه دالله په حکم سره ستاپه زړه نازل کړې دې |
| مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَّبُشْرٰى |
| تصديق کونکې دې \| دهغه کتابونو \|چې مخکښې ددۀ دی \| اوهدايت دې \| اوزيرې دې \| |
| چې د مخکښنو کتابونو تصديق کوی \| اودالله لار خودونکې او زيرور کوونکې دې |
| لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۝ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ |
| دپاره دمومنانو \| هرڅوک چې وی \| دشمن دالله \|اودفرښتو دهغه \| اودرسولانو دهغه \| اودجبريل |
| مومنانو ته \| څوک چې دښمن وی دالله اودهغه دفرښتو او دهغه درسولانو اود جبريل ﷺ |
| وَمِيْكٰىلَ فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ ۝ |
| اودميکائيل \| نو بې شکه، چې الله \| دشمن دې \| دکافرانو \| اوپه تحقيق سره \| |
| اود ميکائيل \| نوبيشکه الله تعالی دکافرانو دښمن دې \| |

**قوله تعالی:- قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ**

**ديهوديانو حضرت جبريل ﷺ سره دښمني :-** امام طبری ﷫ فرمائی چه په دې خود مفسرينو اتفاق دې چه کله يهوديانو حضرت جبريل ﷺ لره خپل دښمن او حضرت ميکائيل ﷺ لره دخپل دوست جوړولو ونيلی وو نو په هغه وخت دهغوی په جواب کښې دا آيت نازل شو(۳)خو بعضې وائی د نبوت باره کښې چه کومې خبرې اترې دهغوی نبی کريم ﷺ سره شوې وې نوهغوی دا ونيلی وو. بعضې وائی چه حضرت عمرفاروق ﷛ سره چه کومه مناظره دهغوی نبی کريم ﷺ دنبوت باره کښې کړې وه نو دا ئې ونيلی وو..

**د يهوديانو د نبی کريم ﷺ نه سوالونه :-** حضرت ابن عباس ﷛ فرمائی چه ديهوديانو يو ډله نبی کريم ﷺ ته راغله او وې ونيل چه مونږ ستاسو نبی ﷺ نه څه سوالونه کوو چه دهغې صحيح جوابونه د ستاسو نبی ﷺ نه سوا بل ته نه دی معلوم. که تاسو په رښتيا نبی يې نو ددې سوالونو جوابونه ورکړئ . نبی

---

۱) الطبری: ۲/ ۳۷۶)-
۲) الطبری: ۲/ ۳۷۷)-
۳) الطبری: ۲/ ۳۷۷)-

کریم ﷺ اوفرمائیل تپوس کونی.خودا وعده اوکړئی که ما جوابونه صحیح درکړل نو تاسو به زما دنبوت تصدیق کوئی او زما فرمانبردار به جوړیږئی. هغوی د نبی کریم ﷺ سره وعده اوکړه. نبی کریم ﷺ هم دحضرت یعقوب ﷺ پشان دالله ﷻ دشهادت پخه وعده واخستله اوهغوی ته ئې دسوال کولو اجازت ورکړو(دهغوی سوال وجواب څه په دې ډول وو مترجم).

**یهود** :- هغوی اوونیل چه مخکښې خو دا اووائې چه د تورات نازلیدونه مخکښې حضرت اسرائیل ﷺ په خپل نفس باندې کوم یو څیز حرام کړې وو؟

**حضرت محمد** ﷺ :- نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واورئی کله چه حضرت یعقوب ﷺ به دعرق النساء په بیمارئی کښې سخت بیمار شو نو نذر ئې اومنلو که الله ﷻ ماته ددې مرض نه شفا را کړی نو څه به خوراك کښې خپل محبوب (خوښ) څیز او په څکاك کښې خپل محبوب څیز پریږدم. کله چه صحت مند شو نود اوښ غوښه خوړل او داوښ پئ څکل ئې پریښودل چه دا دواړه حضرت یعقوب ﷺ ته ډیر زیات خوښ وو. ستاسو دې په الله ﷻ قسم وی چه هغه پاك ذات په حضرت موسیٰ ﷺ باندې تورات نازل کړو دارښتیادی که نه.دې ټولو قسم اوخوړو او وې ونیل آو دارښتیا دی،تاسو صحیح اوفرمائیل.

**یهود** :- یهودو اوونیل چه زمونږ سوال دادې چه د ښځې اودسړی داوبو څه کیفیت دې ؟او ولې کله هلك پیدا کیږی او کله جینئ؟

**حضرت محمد** ﷺ:- نبی کریم ﷺ اوفرمائیل واورئی د سړی اوبه ټینګې اوسپینې وی او د ښځې اوبه نرئی او زیړبخنې وی. په دې کښې چه کومې هم غالبې شی نو دهغې مطابق پیدائش کیږی او په شکل کښې هم ددې مطابق وی ، کله چه دسړی اوبه د ښځې په اوبوباندې غالبې شی نو دالله ﷻ په حکم سره نر اولادپیدا کیږی او کله چه د ښځې اوبه دسړی په اوبو غالبې راشی نودالله ﷻ په حکم جینئ پیدا کیږی. ستاسو دې په الله ﷻ قسم وی چه دهغه نه سوابل معبودنشته دې،رښتیا اووائې زما جواب صحیح دې که نه؟ ټولو قسم اوخوړلو او اقرار ئې اوکړو بیشکه تاسو رښتیا اوفرمائیل ، دوی په دې دواړو خبرو باندې الله ﷻ ګواه کړو.

**یهود**:- هغوی اوونیل چه ښه ده اوس اووائې چه په تورات کښې د کوم یونبی اُمی خبر دې دهغه نبی خاص نښې کومې کومې دی؟ اوده لره کومه فرښته وحی راوړی؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل دهغه خاص هغه حضرت موسیٰ ﷺ ته تورات ورکړو ،اووائې ما رښتیا اوونیل که نه ، ټولوقسم اوخوړو او وې ونیل چه تارښتیا اوونیل. تاسو زمونږدسوال دبلې حصې جواب راکړئی. چه په دې باندې دبحث خاتمه اوشی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه زما ولی حضرت جبریل ﷺ دې ، هغه ماته وحی راوړی او هغه دالله ﷻ د طرفنه مالره پیغام راوړی. رښتیا اووائې اوقسم اوخورئی چه زما جواب صحیح دې ؟ هغوی ټولو قسم اوخوړو او جواب ئې ورکړو جواب خو صحیح دې خو چونکه حضرت جبریل ﷺ خمونږ دښمن دې هغه سختئ او خونریزی وغیره راوړی ، خکه مونږ دهغه نه منو. اونه ستاسومنو، خوکه تاسو لره حضرت میکائیل ﷺ وحی راوړی چه هغه دالله ﷻ رحمت باران راولی او پیداوار وغیره راوړی اوهغه خمونږدوست دې نو مونږ به ستا سو نبی ﷺ تابعداری اوکړو او تصدیق به ئې اوکړو ، په دې باندې داآیت نازل شو. [1]

بعضې وائی چه هغوی دا سوال هم کړې وو چه " رعد " څه څیز دې؟ نبی کریم ﷺ فرمائیلی وو چه هغه یو فرښته ده په وریځوباندې مقرر ده چه هغه دالله ﷻ په حکم سره دا (وریځې) یو طرفته اوبل طرفته

---

[1] ) مسندالطیالسی : ۲۷۳۱، وسنده حسن احمد: ۲۷۳/۱)۔

اوري راوړي. هغوی اوونیل دا تندر څه څیز دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمانیل دا ددې فرښتې اواز دې .
اوکورئی مسند احمد وغیره. (۱)

**دعبدالله بن سلام اسلام قبلول** :-د صحیح بخاري په یو حدیث کښې دی چه کله نبی کریم ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړو نو په هغه وخت کښې عبدالله بن سلام رضی الله عنه په خپل باغ کښې وو او په یهودیت باندې وو .هغه چه کله دا واوریدل نو نبی کریم ﷺ لره راغلو او وې وئیل اتې نبی کریم ﷺ څه ستاسو نه د دریوخبرو تپوس کوم چه دهغې جواب د نبیانونه سوا بل چاسره نشته دې.① دا اووائې چه دقیامت رومبې شرط کوم دې ؟ ② او دجنتیانو رومبې خوراك کوم یو دې ؟ ③ او کوم یو څیز بچی لره کله مور طرفته راکاږی اوکله پلار طرفته ؟

نبی کریم ﷺ اوفرمانیل ددې دریواړو سوالونو جوابونه اوس ماته حضرت جبریل علیه السلام راوړه . حضرت عبدالله بن سلام اوونیل چه هغه خو زمونږ دښمن دې . نو حضرت محمد ﷺ دا آیت تلاوت کړو ، بیانې اوفرمانیل ① رومبې نښه دقیامت یواوور دې چه خلقو پسې به شي اوهغوی به دمشرق نه مغرب طرفته جمع کوی . ② د جنتیانو رومبې خوراك دمهیانو کلیجی ده③ کله چه دسړی اوبه دښځې په اوبوباندې سبقت واخلی نو هلك پیدا کیږی او کله چه د ښځې اوبه سړی باندې غالبې شي نو جینئ پیدا کیږی. په دې جواب آوریدو سره حضرت عبدالله بن سلام مسلمان شو او وې ونیل ﴿اشهد ان لااله الاالله وانك رسول الله﴾ بیا ئې اوونیل چه اتې نبی کریم ﷺ یهودیان ډیر بیوقوف خلق دی که هغوی ته زما اسلام راوړل معلوم شي نوما ته به بدرد وائی.نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه مخکښې هغوی لره قائل کړه.

نبی کریم ﷺ لره چه کله یهود راغلل نو نبی کریم ﷺ ترې تپوس اوکړو په تاسو کښې عبدالله بن سلام څنګه سړې دې ؟ هغوی اوونیل چه ډیر بزرګ او باخبره سړې دې او دبزرګانو داولاد نه دې. هغه خو زمونږ سردار دې.اود سردارانوداولاد نه دې. نبی کریم ﷺ اوفرمانیل که هغه مسلمان شي نو بیا خو به ستاسو په اسلام راوړلو کښې څه رکاوټ نه وی که نه ؟ هغوی اوونیل ﴿اعوذبالله اعوذبالله﴾ ، هغه به ولې مسلمانیږی.حضرت عبدالله بن سلام چه تراوسه پورې پټ وو بهر راغلو او په زوره ئې کلمه اوونیله ، بیا یهودیانوشور جوړ کړو چه دې پخپله هم خراب دې او دده پلار نیکه هم خراب وو. دا ډیر د لاندې درجې سړې دې او خاندانی کمینه دې. حضرت عبدالله بن سلام اوفرمانیل چه اتې نبی کریم ﷺ ماته ددې خبرې ویره وه (۲)

**د لفظ جبریل وغیره معنی** :- په صحیح بخاری کښې دی چه عکرمه رحمه الله فرمانی چه د ﴿جبر،میك،اسراف﴾ معنی عبد یعنی بنده ده (۳)او دایل معنی الله ده نو د جبریل وغیره معنی عبدالله شوه. بعضې خلقو ددې خلاف معنی هم کړې ده، هغوی وائی چه د ایل معنی عبد ده او ددې نه دمخکښې لفظ معنی دالله ﷻ دنوم ده. لکه په عربی کښې عبدالله ، عبدالرحمان ، عبدالمالك ، عبدالقدوس ، عبدالسلام ، عبدالكافی،عبدالجلیل وغیره.لفظ دعبد هرخائې کښې باقی دې اودالله ﷻ نوم بدلیږی،داشان ایل په هر خائې کښې باقی دې او دالله ﷻ اسماء بدلیږی. په غیر عربئ ژبه کښې مضاف الیه مخکښې رازی او مضاف بعد کښې هم ددې قاعدې مطابق په دې نومونو کښې هم دې. لکه جبریل ، میکایل ، اسرافیل ، عزرایل وغیره.

**دخلقو کانړی سره مونځ کول او دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه خفګان** :- اوس دمفسرینو د بلې ډلې دلیل واورئی چه لیکی چه دا خبرې اترې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه سره شوې وې. شعبی رحمه الله وائی حضرت

---

(۱) احمد ۲۷٤/۱، ترمذی ، کتاب تفسیر القران ، باب و من سورة الرعد: ۳۱۱۷، وهو حسن-
(۲) صحیح بخاری : کتاب احادیث الانبیاء ،باب خلق آدم و ذریته: ۳۳۲۹-
(۳) صحیح بخاری : کتاب التفسیر: سورة البقرة باب من کان عدوا لجبریل قبل حدیث: ٤٤٨٠-

عمر فاروق ﷺ روحاء ته راغلو او وې کتل خلق منډې وهي اويو کانړي سره مونځ اداکوي. تپوس ئې اوکړو چه داخبره څه ده ؟ جواب ملاؤ شو چه په دې ځائې کښې نبي کريم ﷺ مونځ ادا کړې وو. حضرت عمر فاروق ﷺ ډير خفه شو او وې فرمائيل چه نبي کريم ﷺ ته به کله هم د مونځ وخت ملاويدو نو مونځ به ئې کولو. بيابه ئې تشريف اوړو. اوس دا مقامات متبرك ګڼړل او په هغه ځائې خامخا مونځ کول څا ونيلي دي ؟ بيا دوي په نورو خبرو کښې اخته شول.

**د حضرت عمرفاروق ﷺ ديهودو سره مکالمه :-** حضرت عمر فاروق ﷺ فرمائي چه څه به کله ديهودو ولې ته تلم او کتل به مې چه څنګه قران پاك د تورات او تورات دقران پاك تصديق کوي. يهوديانو هم ماسره محبت کولو. او اکثر به خبرې اترې کيدې. يو ورځ ئې دوی سره خبرې اترې کولې چه په لار کښې نبي کريم ﷺ راووتلو. هغوی (يهوديانو) ماته اوونيل هغه دې ستا نبي روان دې. ما اوونيل څه خو څم خو دا اووائې ستاسو دې په يو الله ﷻ باندې قسم وی ، درب حق ياد کړئي او د رب نعمتونو باندې نظر واچوئي،دالله ﷻ کتاب په تاسو کښې موجود دې ددې خيال اوساتئ،په هغه رب قسم اوخرئ آيا تاسو نبي کريم ﷺ لره نه منئی . ټول خاموش شو ،دهغوی لوئې عالم چه په هغوی ټولو کښې په علم کښې زيات وو اوډټولو سردار هم وو ، هغوی ته ئې اوونيل چه ده دومره سخت قسم درکړو تاسو صفا اوريښتيا جواب ولې نه ورکوئی ؟ هغوی ټولو اوونيل حضرت تاسو زمونږ مشر يې تاسو جواب ورکړئی . په دې باندې پادري اوونيل چه واورئی ده زبردست قسم درکړې دې ، ريښتيا دادی مونږ دزړه نه وايو چه نبي کريم ﷺ دالله ﷻ ريښتونې پغمبر دې.

ما اوونيل چه تاسو ته پته ده نو ولې ئې نه منئ: وې ونيل صرف په دې وجه چه دوی لره آسماني وحی حضرت جبريل ﷺ راوړی ، هغه ډيره زياته سخته ، تنګئي ، شدت ، عذاب او تکليف والا فرشته ده. مونږ دهغه اوهغه زمونږ دښمن دې. که وحی حضرت ميکائيل ﷺ راوړه چه ډيره درحمت ، تخفيف اوراحت والا فرښته ده نو مونږ به په منلو کښې هيڅ صبر نه وې کړې . ما اوونيل چه ښه ده دا اووائې چه ددې دواړو دالله ﷻ په نيز څه قدر او احترام شته دې ؟ هغوی اوونيل چه يو خودالله ﷻ ښې لاس دې اوبل دالله ﷻ کس لاس دې . ما اوونيل دالله ﷻ قسم چه دهغه نه سوا بل څوك معبود نشته دې چه څوك په دوی کښې دچا دښمن وی نودهغه دښمن الله ﷻ دې اودويمه فرښته هم ، د حضرت جبريل ﷺ دښمنانو سره حضرت ميکائيل ﷺ دوست کيدې نشي او د حضرت ميکائيل ﷺ دښمن د حضرت جبريل ﷺ دوست نه شي کيدې. اونه ددې دواړو دښمن دالله ﷻ دوست کيدې شي. اونه دا دواړه دالله ﷻ د حکم نه بغير زمکې ته راتلې شي اونه څه کار کولې شي. والله ﷻ نه ماته ستاسو نه څه لالچ شته دې اونه څه ويره، واورئي چه کوم سړې دالله ﷻ دښمن وی دهغه دفرښتو ، دهغه د رسولانو ، اود حضرت جبريل ﷺ دښمن وی نودداسې کافر الله تعالى دښمن دې ، دومره ويناسره څه لاړم.حضرت نبي ﷺ لره چه راغلم نو زما په کتلو سره ئې اوفرمائيل چه ائې ابن خطاب په ماباندې اوس اوس وحی راغله. ما اوونيل چه ائې نبي کريم ﷺ اوفرمائې. نبي کريم ﷺ هم دا آيت تلاوت اوفرمائيلو. ما اوونيل چه ائې نبي کريم ﷺ په تاسو دې زما مورپلار قربان وی هم دا خبرې خواوس اوس ما ديهودو سره اوکړې . ما خو دا غوښتل او همددې دپاره ستاسو په خدمت کښې حاضر شوم چه تاسو ته ددې خبر درکړم خو زما دراتلونه مخکښې هغه لطيف اوخبير بصير او سميع ذات الله ﷻ تاسو ته دا خبردرکړو. اوګورئي دابن ابی حاتم [1] وغيره. مګر دا روايت منقطع دې، سند ئې متصل نه دې ، شعبي ﷺ د حضرت عمر فاروق ﷺ په زمانه کښې موجود نه وو.

[1] ابن ابي حاتم : ٢٩٠-

**فرشتو کښې هم رسولان شته** :-د ایت مطلب دې چه حضرت جبریل ﷺ دالله ﷻ امین فرښته ده ، دالله ﷻ په حکم سره نبی کریم ﷺ ته دالله ﷻ وحی رسولو باندې مقرر ده. هغه په فرښتو کښې دالله تعالی رسول دې. دیو رسول سره دښمنې کولو والا دټولو رسولانو سره دښمنې کولو والا دی.لکه په یورسول باندې ایمان راوړل په ټولو رسولانو باندې ایمان راوړل دی ، اویو رسول سره کفر کول دټولو نبیانو سره کفر کول دی. پخپله الله ﷻ دبعضو رسولانو منلووالو ته کافر وائی فرمائی چه ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيدُونَ ﴾ (چه کوم خلق دالله تعالی سره اودهغه رسولانو سره کفر کوی،اوالله ﷻ او دهغه رسولانو په مینځ کښې تفرقه اچوی او وائی چه مونږ بعضې منو او بعضې نه منو ، د دویم آیت آخر پورې). نو په دې آیتونوکښې په وضاحت سره دې خلقو ته کافر اوونیلې شو چه یو رسول نه منی.داشان د حضرت جبریل ﷺ دښمن دالله ﷻ دښمن دې . ځکه چه هغه (جبریل ﷺ ) په خپله مرضۍ نه رازی. قرآن پاك فرمائی چه ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ[۱]﴾ اوفرمائی چه﴿ وَإِنَّهُ لَتَنزِيلُ﴾ (مونږ دالله ﷻ د حکم نه بغیر نه راکوزیږو دا نازل شوی دالله ﷻ دطرفه دی چه دا جبریل ﷺ راوړی اوستا په زړه کښې ئې اچوی چه خلقو لره هوښیار کړی.په صحیح بخاری کښې یو حدیث قدسی کښې دی چه زما دوستانو سره دښمنې کولو والا ماسره د جنګ اعلان کولو. ([۱])

قوله تعالی:- فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللَّهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ

**قران د اسمانی کتابو مصدق دې**:- دقران پاك دا یو صفت هم چه دې دا دمخکښې نبیانو علیهم السلام تصدیق کوی اودایماندارو زړونوته هدایت اوددوی دپاره دجنت زیرې ورکوونکې دې.لکه فرمائی﴿ قُلْ هُوَ لِلَّذِينَ آمَنُوا هُدًى وَشِفَاءٌ ۖ وَالَّذِينَ ﴾ (دا قران پاك د ایمان والو دپاره هدایت اوشفا دې).بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿ وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاءٌ وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ[۲]﴾. په رسولانو کښې انسانی رسولان او آسمانی رسولان هم شامل دی.لکه فرمائی چه﴿ اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ[۴]﴾ ( الله ﷻ په فرښتو کښې انسانانو کښې خپل رسولان منتخب کوی) . حضرت جبریل ﷺ او حضرت میکائیل ﷺ هم د فرښتونه دی. خو ددی خاص طور سره نوم واخستلې شو چه مسئله بالکل صفا شی او یهودیانو ته پته اولږی چه په دوی کښې دیو دښمن دبل هم دښمن دې بلکه دالله ﷻ دښمن دې.

حضرت میکائیل ﷺ هم کله کله نبیانو علیهم السلام لره راتلو لکه نبی کریم ﷺ سره به په اول اول کښې وو. خو په دې کار باندې مقرر حضرت جبریل ﷺ دې. لکه حضرت میکائیل زرغونیدو او باران وغیره باندې او حضرت اسرافیل ﷺ په صور (شپیلۍ) وهلو باندې مقرر دې ، په یو حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ به کله دشپې پاسیدونو دا دعا به ئې کوله **(اللهم رب جبرائيل وميكائيل واسرافيل فاطر السموات والارض عالم الغيب والشهادة انت تحكم بين عبادك فيما كانوا فيه يختلفون، اهدني لما اختلف فيه من الحق باذنك انك تهدى من تشاء الى صراط مستقيم)** (ترجمه . انې الله ﷻ ،انې د جبریل ﷺ ، اسرافیل ﷺ ، میکائیل ﷺ ربه ، انې دزمکې او آسمان پیدا کولو والا ، انې دپټو او ښکاره پیژندو والا دخپلو بندګانو داختلاف فیصله هم ته کوې ، انې الله ﷻ په اختلافی کارونو کښې حق طرفته زما رهبری اوکړه ته چه چاته غواړې نونیغه لار ورته ښائې ) ([۲])د لفظ جبریل وغیره تحقیق اوددې معنې بیان شوی دی.

**په فرشتو کښې دجبریل نوم** :- حضرت عبدالعزیز بن عمیر رحمه الله فرمائی چه په فرښتو کښې د حضرت جبریل ﷺ نوم خادم الله دې .ابو سلیمان دارانی رحمه الله چه دا واوریدل نو ډیر زیات خوشحاله شو او وې فرمائیل چه دا روایت ماته د روایتونو د یو دفتر نه هم زیات محبوب دې .د حضرت جبریل او حضرت میکائیل په الفاظو کښې ډیر زیات لغات او قراتونه دی چه دهغې تفصیل د لغت په کتابونو کښې

---

[۱]) صحیح بخاری : کتاب الرقاق باب التواضع : ۶۵۰۲)-

[۲]) صحیح بخاری : کتاب صلاة المسافرین باب الدعاء فی صلاة اللیل وقیامه: ۷۷۰)-

موجود دي. مونږ دهغې په بيانولو سره دزياتو پاڼو زياتول نه غواړو ، ځکه چه ديوې معنى يا پوښته يا حکم په دې باندې موقوف نه دې. الله ﷻ دې خمونږ مدد اوکړی ، خمونږ بهروسه اوتوکل په هغه پاك ذات باندې دې.

**قوله تعالى:-** فَإِنَّ اللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَافِرِينَ

**الله د کافرانو دښمن دې:-** د ايت په خاتمه کښې ئې دا نه دی فرمائلي چه الله ﷻ هم ددې خلقو دښمن دې بلکه فرمائی چه الله ﷻ دکافرو دښمن دې. په دې کښې دداسې خلقو حکم هم شامل شو. دې ته په عربئ کښې د «مضمر» په ځائې «مظهر» ونيلې شی او په کلام عرب کښې اکثر ددې مثالونه په شعرونو کښې مونډې شی. ګويا داسې ونيلې شی چه چا دالله ﷻ دوست سره دښمنی اوکړه نو هغه دالله ﷻ سره دښمنی اوکړه او چه څوك دالله ﷻ دښمن شو الله ﷻ دهغه دښمن دې او چه دچا دښمن الله ﷻ شی بيا نو دهغه په کفر او تباهئ کښې بيا څه شك دې؟ په صحيح بخاري کښې يو حديث مخکښې تير شوې دې چه الله ﷻ فرمائی چه زما دوستانو سره دښمنئ کولو والاته څه د جنګ اعلان کوم[1] يوحديث کښې دی چه څه دخپلو دوستانوبدله اخلم[2] يوحديث کښې دی چه چه د چا دښمن څه شم نو هغه برباد شو[3]

| وَلَقَدْ | أَنزَلْنَا |
|---|---|
| اوبه تحقيق سره | نازل کړې دی مونږ |
| او (اني پيغمبر) مونږ درليږلې دی | |

| إِلَيْكَ | ءَايَٰتٍ | بَيِّنَٰتٍ | وَمَا يَكْفُرُ | بِهَآ | إِلَّا | ٱلْفَٰسِقُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تاته | داسې ايتونه | چې ښکاره دی | او نۀ کوی انکار | دهغې | نه | مګر فاسقان خلق |
| تاته ښکاره ايتونه \| اودهغې نه بل څوک نه صرف فاسقان (نافران) انکار کوی | | | | | | |

| أَوَكُلَّمَا | عَٰهَدُوا۟ | عَهْدًا | نَّبَذَهُۥ | فَرِيقٌ | مِّنْهُم | بَلْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اياداسې نۀ ده چې هرکله | اوکړه هغوئ | وعده | نوهيره کړه هغه | يوې ډلې | ادهغوئ نه | بلکه |
| ايا هرچرې چې دوی يو لوظ نامه اوکړی \| نو (خواه مخواه) يوډله به هغه لوظ نامه ماتوی بلکه | | | | | | |

| أَكْثَرُهُمْ | لَا يُؤْمِنُونَ | وَلَمَّا | جَآءَهُمْ | | رَسُولٌ | مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| زيات خلق دهغوئ | نۀ راوړی ايمان | اوهرکله چې | راغې | دوئ ته | يو رسول | دطرفه دالله نه |
| دوئ زيات (خو په توراةهم) ايمان نه راوړی \| اوهرکله چې دوئ ته دالله دطرفه رسول راغلو | | | | | | |

| مُصَدِّقٌ | لِّمَا | مَعَهُمْ | نَبَذَ | فَرِيقٌ | مِّنَ ٱلَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې تصديق کونکې دې | دهغه کتاب | چې ددوئ سره دې | انو اوغورزول | يوې ډلې | دهغه کسانونه |
| چې ددوئ سره دموجوده کتاب تصديق اوتائيد کوی نو ددغې | | | | | |

| أُوتُوا۟ | ٱلْكِتَٰبَ | كِتَٰبَ ٱللَّهِ | وَرَآءَ | ظُهُورِهِمْ | كَأَنَّهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې ورکړې شوې وو | ورته کتاب | کتاب دالله | روستو | دشاګانو خپلو نه | لکه چې دوئ |
| اهل کتابو خلقونه يوې ډلې دالله کتاب داسې شاته اوغورزولو لکه چې دوئ | | | | | |

[1] ) صحيح بخاری : کتاب الرقاق باب التواضع:۶۵۰۲)-

[2] ) شرح السنة للبغوی : ۱۲۴۹، بلفظ اخر)-

[3] ) ابن ماجة کتاب الدهن ، باب اجرالاجراء: ۲۴۴۷، وسنده حسن وصحيح بخاری : ۴۱۲۲۷)-

لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ وَاتَّبَعُوْا مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ عَلٰى مُلْكِ

نه پوهيږي په هيڅ څيز|او وريسي شوا په هغه څيز پسې| چې پيش كوڼ به| شيطانانو | په زمانه د بادشاهۍ

هڅوود سره نه پيژندو| او په هغوخبرو (منترجادو) پسې روان شول چې شيطانانو به په زمانه د بادشاهۍ

سُلَيْمٰنَ ۚ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا

د سليمان | حلانكه نه دې كفر كړې | سليمان هيڅري | ليكن | شيطانانو به | كفر كولو|

دسليمان كښې كولې |اوسليمان ﷺ هيڅ كله كفر نه وو اختياركړې كفرخوبه شيطانانو كولو

يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ ۗ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ

چې ښودوبه نې| خلقو ته | جادو | او په هغه څيز پسې|چې نازل شوې وو| په دوو فرښتو

چې ناپوهه اوساده خلقو ته به نې جادو خودلو|اوپه هغې پسې روان شو چې نازل شوې وو په دووفرښتو

بِبَابِلَ هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ ۭ وَمَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى

په بابل كښې|چه هاروت او ماروت وه | اونۀ به |ښودلو هغوئ دواړوا هيچا ته | تردې پورې|

هاروت وماروت باندې په بابل ښاركښې |اوهغې دواړوبه ترهغې هيچاته تعليم نه وركولو

يَقُوْلَآ اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ۭ فَيَتَعَلَّمُوْنَ

چې اوبه ونيل دواړو | چې مونږ | آزمينبت يو| نومۀ كوه تۀ كفرا نو زده كولو به هغوئ

چې اول به نې ورته اونه ونيل چې ګوره مونږ آزمينبت (له راغلي) يو|نوكفر مه كوه| خوبيا هم زده كول به

مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ ۭ

ددې دواړونه | هغه څيز|چې جدائى راولى | په هغې سره | په منځ دسړى | اوډښځې دهغه كښې |

دوئ هغه (تعويزونه)چې په هغې سره به نې د خاوند او ښځې ترمينځه جدائى راوسته

وَمَا هُمْ بِضَاۗرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ

اونۀ وو| هغوئ |ضرررسونكى |په هغه جادو سره| هيچا ته | مګر| په حكم ذالله|

اوبه دې (جادو) سره به نې بې دالله دحكم نه هيچاته ضرر نشو رسولى

وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ ۭ

اوزده كوڼ به هغوئ|هغه څيزا چې ضرر به نې رسولو هغوئ ته| اونۀ به نې وركوله| فانده هغوئ ته

خو (دومره څيز بۀ نې دهغې نه )زده كولوچې پخپله ددوئ په حقله به زيان وو|اوسودمند به نه وو

وَلَقَدْ عَلِمُوْا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ

اويقينا|چې ښۀ معلومه ده هغوئ ته داخبره|چې خامخا هغه څوك| چې وانې غستودا| نشته| هغه لره

اودوئ ښۀ پوهيدل چې چا دغه (جادو)اختياركړوا هغه دپاره هيڅ حصه نشته دې

| لَوْ | بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ؕ | شَرَوْا | مَا | وَلَبِئْسَ | مِنْ خَلَاقٍ ۛ | فِي الْاٰخِرَةِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پہ آخرت کښې \| څه برخه \| او ډیر بد دی \| هغه څیز \| چې خرچ کړل هغوی \| پہ هغې سره خانونه خپل \| افسوس چې | | | | | | |
| د نیکۍ پہ آخرت کښې \| او دوی خپل خانونه د خراب څیز پہ بدل کښې خرچ کړي دي \| که چرې | | | | | | |

| وَاتَّقَوْا | اٰمَنُوْا | اَنَّهُمْ | وَلَوْ | يَعْلَمُوْنَ ۝ | كَانُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| وې هغوی \| چې پوهیدلې \| او که چرې \| هغوی \| ایمان راوړي وې \| او تقوی ئې اختیار کړې وې \| | | | | | |
| دوی پوهیږی (نو داسې به ئې نه وو کړي) او (کاش) که دوی ایمان راوړي وې او خان ئې (د جادونه) بچ ساتلی وې | | | | | |

| يَعْلَمُوْنَ ۧ | كَانُوْا | لَوْ | خَيْرٌ ؕ | مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ | لَمَثُوْبَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو خامخا هغه ثواب \| چې د طرفه د الله نه دی \| هغه ډیر بهتر وو \| افسوس که چرې \| وې هغوی \| چې خبروی | | | | | |
| نو الله د طرفنه به لړ ثواب هم (د دې هر څه) نه بهتر وو \| کاش که دوی پوهیدلې (نو داسې به ئې نه وو کړي) | | | | | |

**قوله تعالى:-** وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ۚ وَمَا يَكْفُرُ بِهَآ اِلَّا الْفٰسِقُوْنَ

**د قران ایاتونه واضح دي:-** یعنی ائې حضرت محمد ﷺ مونږ داسې پټې نښې چه هغه ستادنبوت ښکاره دلیل جوړ شی نازلې کړې دی. دیهودیانو دمخصوص معلومات ذخیره، دهغوی د کتاب پټې خبرې، دهغوی تحریف او تبدیل احکام وغیره ټول مونږ پہ خپل معجزنما کتاب قران پاك کښې بیان فرمائیلې دی. چه ددې پہ آوریدو سره هر ژوندې ضمیر ستا نبوت طرفته مجبوریږی. آودا بیله خبره ده چه یهودو لره دهغوی سخت حسد او بغض منع کړې. ګنی هر سړې ته معلومیدیشی چه دیو امی سړی نه داسې پاکیزه صفات او حکمتونو والا کلام نشی جوړیدې.

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه ابن صوریا قطوینی رسول کریم ﷺ ته ونیلی وو چه تاسوڅه داسې څیز راوړئ چه مونږ دهغې نه تااوپیژنو. تاسوسره داسې څه ښکاره دلیلونه نشته دې. پہ دې باندې دا آیت نازل شو. چونکه یهودیانو ددې خبرې نه انکار کړې وو چه مونږ نه د رسول کریم ﷺ پہ باره کښې وعده اخستې شوې ده نو پہ دې باندې الله ﷻ دا آیت نازل کړو. چه دا خو ددوی عادت دې چه وعده ئې اوکړه او بیائې هغه ماته کړه. بلکه ددوی اکثریت خو دایمان نه بالکل خالی دې.

**د نبذ معنی:-** د " نبذ " معنی غوزرول دی، چونکه دې خلقو دالله ﷻ وعده یعنی قران پاك داسې پریخودې وو ګویا چه غورزولې ئې وو، ددې وجې دهغوی پہ غندنه کښې دا الفاظ بیان کړې شو.

پہ بل ځائې کښې صفا بیان دې چه ددوی پہ کتابونو کښې د رسول کریم ﷺ ذکر موجود وو. فرمائی چه ﴿ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ ﴾ ( داخلق پہ تورات او انجیل کښې د رسول کریم ﷺ ذکر مومی)

**قوله تعالى:-** وَاتَّبَعُوْا مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ ۚ

**د جادو تابعداری کول:-** پہ دې ځائې کښې ئې هم فرمائیلې دی چه ددې کتاب تصدیق کولو والا خمونږ پیغمبران دوی لره راغلل نوددوی یوې ډلې دکتاب الله نه بې پرواهی اوکړه او دائې داشان پریخودو چه ګنی هډو دوی ته علم نشته دې بلکه جادو پسې شو او پہ رسول کریم ﷺ ئې جادو اوکړو چه ددې اطلاع نبی ﷺ ته الله ﷻ ورکړه او ددې اثر ختم شو او رسول کریم ﷺ ته شفا ملاؤ شوه. پہ تورات سره ئې د رسول کریم ﷺ مقابله نشوه کولې. خکه هغه ددې تصدیق کوونکې وو، نو دائې پریخودواو نور کتابونه ئې واخستل او پہ هغې پسې شو. او دالله ﷻ کتاب ئې داسې پریخودو ګویا چه ګنی هډو ورته پته نشته، نفسانی خواهشات ئې مخکښې کیخودل او کتاب الله ئې روستو اوغورزولو اودا هم ونیلې شوی دی چه ډول سرناګانې ټولې دالله ﷻ دذکر نه منع کوونکی څیز پہ ﴿ مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ ﴾ کښې داخل دی.

قوله تعالى:- وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ

**دیهودیانو سلیمان ﷺ ته د جادوګر نسبت کول:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرماني چه حضرت سلیمان ﷺ سره یو ګوته وه ،کله چه به دوی اودس ماتی له تلل نو دا ګوته به نې خپلې بي‌بي حضرت جراده ته حواله کوله. هرکله چه د حضرت سلیمان ﷺ د آزمیښت وخت راغلو نو په هغه وخت کښې یو شیطان جن ددوی په شکل کښې ددوی بي‌بي لره راغلو او ګوته نې ترې اوغوښتله اوهغې ورته حواله کړه. هغه دا ګوته واچوله او په تخت سلیمانی باندې کیناستو ،ټول جنات وغیره دده په خدمت کښې حاضر شو او ده پرې حکومت کولو. بل طرفته چه حضرت سلیمان ﷺ واپس راغلو او دبي‌بي نه ګوته نې طلب کړه نو هغې ورته په جواب کښې اووئیل چه ته دروږغن نې ګوته خوما سلیمان ته حواله کړې ده. حضرت سلیمان ﷺ ته معلومه شوه چه دا دالله ﷻ د طرفنه یو آزمیښت دې. په دې ورځو کښې شیطانانو د جادو، نجوم ،کهانت شعر وادب او دغیبو د دروغو خبرونو کتابونه اولیکل او د حضرت سلیمان ﷺ د کرسۍ لاندې نې ښخول شروع کړل. ددوی د آزمیښت دا زمانه تیره شوه. حضرت سلیمان ﷺ بیا د تاج و تخت مالك شو. هرکله چه طبعی عمر ته اورسیدو او ددې دنیا نه نې رحلت اوکړونوشیطانانو انسانانو ته وئیل شروع کړل چه د حضرت سلیمان ﷺ هغه خزانه او کتابونه چه د هغې په ذریعه به هغه په هواګانو اوجناتو حکومت کولو دده دکرسۍ لاندې ښخ شوی دی. چونکه جنات به ددې کرسۍ لاندې نه شو ورتلې نو په دې وجه انسانانو دا اوکنستلو نوهغه کتابونه برآمدشو. نودا مشهور شو او دهر سړی په ژبه باندې هم دا وینا وه چه د حضرت سلیمان ﷺ د حکومت راز هم دا وو. بلکه خلق د حضرت سلیمان ﷺ د نبوت نه انکاری شول او دوی ته نې جادوګر وئیل شروع کړل. حضرت نبی اکرم ﷺ دا خبره ښکاره کړه چه د جادوګرنې دا کفر شیطانانو خو رکړې دې. حضرت سلیمان ﷺ ددې نه بری الذمه دې.

**د علی ﷺ د نه وفات کیدو عقیده:-** حضرت ابن عباس ﷺ لره یو سړې راغلو . دوی ترې تپوس اوکړو دکومه خایه راغلې نې ؟ هغه اووئیل عراق نه . دوی ترې تپوس اوکړو چه عراق کښې دکوم ښار نه ؟ هغه اووئیل کوفې نه . تپوس نې ترې اوکړو څه خبر دې ؟ هغه اووئیل چه په هغه ځائې کښې خبرې کیږی چه حضرت علی ﷺ وفات شوې نه دې بلکه غائب شوې دې. او نزدې ده چه هغه به راشی. دوی په لړزیدو شو او وې فرمائیل که داسې وې نو مونږ به دهغه میراث نه وو تقسیم کړې. او نه به دهغه ښخو نورې نکاح کولې. واوره شیطانانو آسمانی خبرې راښتولې او په دې کښې به نې خپلې خبرې شاملولې. او دا به نې بیا خورولې.حضرت سلیمان ﷺ داکتابونه دخپلې کرسۍ لاندې جمع کړی اوښخ کړی نې وو.ددوی د انتقال نه پس جناتو هغه راوویستل،هم هغه کتابونه په عراقیانو کښې خواره شوی دی.اوهم ددې کتابونو خبرې هغوی بیانوی اوخوروی نې. هم ددې ذکر په آیت (وَاتَّبَعُوْا) کښې دې. [1]

**شیطانانوته د غیبو علم نشته:-** هم په هغه زمانه کښې دا مشهور شوی وو چه شیطانانو ته دعلم غیب پته ده. حضرت سلیمان ﷺ ددې کتابونو نه صندقونه ډك کړل او ددې دښخولو حکم نې اوکړو اودا حکم نې جاری کړو چه څوك دا وائی نو هغه به قتل کولې شی. بعضو روایتونو کښې دی چه جناتو د حضرت سلیمان ﷺ د انتقال نه پس هغه کتابونه ددوی دکرسۍ لاندې دفن کړی وو. اوددې د شروع په صفحه باندې لیکلې شوی وو چه دا علمی خزانه د آصف بن برخیا جمع کړې شوې ده. اودې د حضرت سلیمان ﷺ وزیراعظم وو. مشیرخاص او ولی اودوست وو. یهودیانو مشهوره کړې وه چه حضرت سلیمان ﷺ نبی نه ووبلکه جادوګر وو. په دې وجه دا آیت نازل شو اودالله ﷻ یو رښتونی نبی دیورښتونی نبی دبرائت اعلان اوکړو. او دیهودیانو دا عقیده نې باطله کړه. چه کله نې د حضرت

---

[1] ) اخرجه الحاکم فی کتاب التفسیر: ۲/۲۶۵، وسنده حسن)-

سليمان ﷺ نوم ئې د نبيانو په زمره کښې واوريدو نو ډير به ئې غېل په دې وجه دا واقعه مو په تفصيل سره بيان کړه. يو وجه دا هم ده چه حضرت سليمان ﷺ د ټولو موذی ځناورو نه وعده اخستې وه اوددوی ته چه هغه وعده ورياد ولې شي وه نو دوی ستومانه کيدل به نه او بيا خلقو دځپل طرفنه عبارتونه جوړکړل اود جادو پشان منترونه به ئې جوړول او ټول به ئې حضرت سليمان ﷺ ته منسوب کول. دا يادساتل پکار دی چه (على) په دې ځائې کښې د (فى) په معنى کښې دې. يا (تَتْلُوا) متضمن دې د (تکذيب) . اوهم دا اولى او احسن دي والله اعلم.

**جادو د سليمان ﷺ نه وړاندې شروع وو:-** د حسن بصری رحمه الله قول دې چه جادو د حضرت سليمان ﷺ نه مخکښې هم وو. او دا بالکل ريښتيا دی. حضرت سليمان ﷺ د حضرت موسى ﷺ نه پس راغلى دی. اود حضرت موسى ﷺ په زمانه کښې دجادوګرو موجودګی د قران پاك نه ثابت ده. اود حضرت سليمان ﷺ دحضرت موسى ﷺ نه پس راتلل هم د قران پاك نه ثابت دی. د داود ﷺ اود جالوت په قصه کښې دی چه (مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى) بلکه د حضرت ابراهيم ﷺ نه هم مخکښې حضرت صالح ﷺ ته خپل قوم ونيلی وو چه (اِنَّمَآ اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ) يعنى ته دجادوګرو نه ئې. بيا فرمائی چه (وَمَآ اُنْزِلَ الخ) . بعضې خلق وائی چه په دې ځائې کښې "ما" نافيه ده. يعنی دانکاربه معنى کښې ده.اوددې عطف (وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ) باندې دې.

**د يهوديانو د عقيدې ترديد:-** ديهوديانو دويمه عقيده چه جادو په فرښتو باندې نازل شوې دې ، په دې آيت کښې ددې ترديد دې.

دهاروت اوماروت لفظ دشيطانانو بدل دې ، په تثنيه باندې هم د جمعې اطلاق کيږی لکه (فَاِنْ كَانَ لَهٗۤ اِخْوَةٌ) کښې [1] يا په دې وجه جمع اوونيلې شوه چه دده منلو والا هم شامل کړې شی. اوددوی نومونه ددوی دسرکشئ په وجه ښکاره کړې شوی دی. قرطبی رحمه الله خو وائی چه ددې آيت هم دا مطلب صحيح دې ، ددې نه سوا نورو مفتيانو طرفته توجه نه ده پکار. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه جادو دالله ﷻ د طرفنه نه دې نازل شوې [2] ربيع بن انس رحمه الله فرمائی چه په دوی باندې هيڅ جادو نه وو نازل شوې [3] نو په دې بناء به ددې آيت ترجمه څه په دې ډول وی چه دې يهوديانو ددې څيز تابعداری اوکړه چه دحضرت سليمان ﷺ په زمانه کښې به شيطانانو لوستل. حضرت سليمان ﷺ کفر نه وو کړې اونه الله ﷻ جادو په دې دوو فرښتو باندې نازل کړې وو (لکه انې يهوديانو ستاسو خيال حضرت جبريل ﷺ اوحضرت ميکائل ﷺ طرفته دې)بلکه دا کفر د شيطانانو دې چه په بابل کښې به ئې خلقو ته جادو خودلو. او ددوی سرداران دوه سړی وو. اوددوی نومونه هاروت اوماروت وو. حضرت عبدالرحمان بن ابزی رحمه الله به دا داسې ونيل چه (وَمَآ اُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ داود وسليمان) (داود او سليمان دواړه بادشاهانو باندې جادو نه وو نازل شوې) يا دا چه هغوی به ددې نه منع کوله څکه چه دا کفر دې. امام ابن جرير رحمه الله ددې زبردست رد کړې دې ، هغه فرمائی چه (ما) په معنى کښې د (الذي) دې او هاروت او ماروت دوه فرښتې دی. چه هغوی الله ﷻ زمکې طرفته ليږلی وې. او خپلو بندګانو د ازمينښت او امتحان دپاره ئې دوی ته د جادو د تعليم اجازت ورکړې وو ، نو هاروت اوماروت دالله ﷻ د فرمان پوره کولو والا فرښتې وې. يوغريب قول دا هم دې چه دجناتو دوه قبيلې دی (الْمَلَكَيْنِ) يعنى د بادشاهانو په قرات باندې د (انزال خلق) په معنى کښې به وی لکه فرمائی چه وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ ثَمٰنِيَةَ

[1] ) القرطبی: ۲/ ۵۰)-

[2] ) الطبری: ۲/ ۴۱۹)-

[3] ) الطبری: ۲/ ۴۱۹)-

أَزْوَاجٍ (مونږ ستاسو دپاره اته قسمه چارپایان پیدا کړی دی)[1] او فرمائی ﴿ وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ ﴾ (او اوسپنه موجوده کړه) او فرمائی ﴿ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً ﴾ (او دآسمان نه موتاسودپاره رزق نازل کړو). په حدیث شریف کښې دی چه ﴿ ماانزل الله داء ﴾ (یعنی الله ﷻ چه څومره بیمارئی پیدا کړی دی هغې دپاره علاجونه ئې هم پیدا کړی دی) مثال مشهو ردې چه نیکئ او بدئی لره پیدا کولو والا الله ﷻ دې . په دې ټولوځایونو کښې انزال خلق یعنی دپیدائش په معنی کښې دې. ایجاء یعنی د راوړنکی او نازلوونکی په معنی کښې نه دې. داشان په دې آیت کښې هم داکثرو سلفو مذهب دې چه دا دواړه فرښتې وې. په یو مرفوع حدیث کښې هم دا مضمون په تفصیل سره راغلې دې چه اوس بیان شو ، خکه چه دا دواړه به هم په عامو فرښتو خاص شی لکه چه د ابلیس په حقله تاسو ﴿وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ﴾ په تفسیر کښې تاسو لوستی دی. حضرت علی ؓ ، حضرت ابن مسعود ؓ ، حضرت ابن عباس ؓ ، حضرت ابن عمر ؓ ، حضرت کعب بن احبار ؓ اوحضرت کلبی رحمه الله هم داسې فرمائی ، اوس دا حدیث واورئی.

**د هاروت ماروت واقعه** :- نبی کریم ﷺ فرمائی چه کله حضرت آدم ؑ لره الله ﷻ زمکې ته راولیږلو اودده اولاد خور شو او په زمکه کښې دالله ﷻ نافرمانئی شروع شوې نو فرښتو اوونیل دا اوګورئی څومره بد خلق دی، څومره نافرمانه او سرکشه دی ، که مونږ ددوی په ځائې وې نو هیڅکله به مو نافرمانی نه وه کړې. الله ﷻ اوفرمائیل چه ښه تاسو په خپلو کښې د دوو فرښتو انتخاب اوکړئی . څه په هغوی کښې انسانی خواهشات پیدا کوم او هغوی لره لیږم اوبیا ګورم چه هغوی څه کوی؟ نو هغوی هاروت اوماروت پیش کړل. الله ﷻ په هغوی کښې انسانی طبیعت پیدا کړو او دوی ته ئې اوونیل چه ګورئی بنی آدمو ته څه دپیغمبرانوپه ذریعه خپل احکام رسوم ،لیکن تاسو ته بلاواسطه وایم چه زما سره هیڅوک شریك مه جوړوئی ، زنا مه کوئی ، شراب مه څکئی . اوس دا دواړه زمکې ته راکوزې شوې اوزهره ئې ددوی د آزمیښت دپاره دیو ښکلې ښځې په صورت کښې دوی لره اولیږله چه ددې په کتلو سره دوی سم لیونې شو. اودې سره ئې زنا کول غوښتل. دې ورته اوونیل که تاسوشرك اوکړو نو څه به ستاسو خواهش پوره کړم. دوی هغه هم اومنل. بیا راغله اودوی ته ئې اوونیل چه دا شراب اوڅکئی. هغوی دا هم اوکړل اودائې یو معمولی ګناه اوګڼړله . اوس نشه کښې مست وو او دوی زنا هم اوکړه. اوهغه بچې ئې هم قتل کړو.هرکله چه هوش کښې راغلل نو هغه ښځې ورته اوونیل چه تاسودکومو کومو کارونونه مخکښې انکار کولو هغه ټول تاسو اوکړل .دوی شرمنده شو. بیا دوی ته اختیار ورکړې شو چه یا ددنیا عذاب لره اومنئ او یا دآخرت عذاب. دوی ددنیا عذاب خوښ کړو. په صحیح ابن حبان ، مسند احمد .ابن مردویه ، ابن جریر ،عبدالرزاق کښې دا حدیث په مختلفو الفاظو سره راغلې دې [2]دمسند احمد روایت غریب دې په دې کښې یو راوی موسی بن جبیر انصاری سلمی حذاء لره حاتم مستورالحال لیکلې دې.

ابن مردویه کښې یو روایت دا هم دې چه یو شپه دسفر په دروان کښې حضرت عبدالله بن عمر ؓ د حضرت نافع ؓ نه تپوس اوکړو چه آیا زهره ستورې راختلې دې ؟ هغه اوونیل چه نه . د دوه درې څله سوالونو کولو نه پس زهره راوختله نو وې فرمائیل چه دا دی نه خوشحاله وی اونه دې ورسره نیکی اوشی. حضرت نافع ؓ اوفرمائیل چه یو ستورې دالله ﷻ په حکم سره راخیژی او پریوزی .تاسو هغې ته بد ولې وائې ؟ وې فرمائیل چه واوره څه هغه وایم چه څه ما د نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی. بیا ئې ددې نه پس پورتنې حدیث (دالفاظو په اختلاف سره) واورولو. خو داهم غریب دې. د حضرت کعب ؓ والا حدیث د مرفوع نه زیات صحیح موقوف دې . اوممکن دی چه هغه اسرائیلی روایت وی. والله اعلم

---

[1]) صحیح بخاری : کتاب الطب باب ماانزل الله داء ......:۵۶۷۸، ابن ماجة: ۳۴۳۸)-

[2]) احمد : ۱۳۴/۲، مسند البزار:۲۹۳۸، ابن حبان : ۶۱۸۶)-

دصحابه کرامو ﷺ او تابعینو نه هم داقسمه ډیرروایات نقل شوی دی. په بعضو کښې دی چه زهره یو ښځه وه چه هغې فرښتو سره دا شرط لګولې وو چه تاسو ماته هغه دعا اوښائې چه تاسو هغه وائې او آسمان ته خیژئی. هغوی ورته اوخودله. اودا پورته اوختله. او په هغه خانې ددې نه دستوری شکل جوړشو.[۱] په بعضو مرفوع روایاتو کښې داهم شته دې خو هغه منکر او غیر صحیح دی. په یو بل روایت کښې دی چه ددې واقعې نه مخکښې فرښتو به صرف دایمان والو دپاره دعا دمغفرت کوله خودددې نه پس نې دټولې زمکې والو دپاره دعا شروع کړه. په بعضو روایتونو کښې دی چه کله ددې دواړو فرښتونه دا غلطئ اوشوې نوبیا نورو فرښتو اقرار اوکړو بنی آدم چه دالله ﷻ نه لرې دی او دالله تعالی ذات ئې لیدلې نه دې اوبه ده باندې ایمان راوړی ، ددوی نه د ګناهونو کیدل څه داسې عجیبه څیز نه دې. دې دواړو فرښتوته اووئیلې شو چه اوس یا خو ددنیا عذاب خوښ کړئی یا د آخرت عذاب دپاره تیارې شئ. دواړو په خپلو کښې مشوره اوکړه او ددنیا عذاب ئې اختیار کړو ځکه دافناکیدووالا او د آخرت عذاب دائمی دې. په یو روایت کښې دی چه هغوی ته الله ﷻ کوم احکام ورکړی وو په هغې کښې دقتل او حرام مال نه منع شوې وه. اودا هم وو چه فیصله انصاف سره کوئی. دا هم وارد شوی دی چه دا درې فرښتې وې خو یود آزمینښت نه انکار اوکړو او واپس شوه ، بیا د دوؤ آزمینښت اوشو.

حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دا واقعه د حضرت سلیمان ﷺ د زمانې ده. په دې خانې کښې د بابل نه مراد بابل دنیاوند دې. ددې ښځې نوم په عربئ کښې زهره وو او په نبطی ژبه کښې ددې نوم بیدخت وو او په فارسئ کښې ناهید وو. دې ښځې دخپل خاوند خلاف یو مقدمه راوړې وه. هرکله چه هغوی ددې سره د بدنی کولو اراده اوکړه نو دې ورته اووئیل چه مخکښې زما دخاوند خلاف فیصله اوکړئی نوبیا څه تیاره یم. هغوی هم داسې اوکړل. بیا ورته هغې اووئیل چه تاسو څه وائې چه آسمان ته پرې خیژئی ؟ هغوی ورته داهم اوخودل. نو دې هغه اووئیل او آسمان طرفته اوختله. څو دراکوزیدو وظیفه ترې هیره شوه. اوهم په هغه خانې دستوری په شکل کښې مسخ کړې شوه. عبدالله بن عمر ﷺ چه به کله ستوری ته کتل نو لعنت به ئې پرې وئیلو. اوس چه دې فرښتو کله پورته ختل اوغوښتل نو نه ئې شو وئیلې. پوهه شو چه اوس مونږ هلاك شو.

حضرت مجاهد ﷫ فرمائی چه اول اول خو دا فرښتې ترڅو ورڅو پورې ثابت قدم وې ، دسحر نه ماښام پورې ئې په عدل سره فیصلې کولې . ماښام به آسمان ته ختلې او بیا د زهره په کتلو سره ئې په خپلو نفسونو قابو اونه موندلو. زهره ستوری لره دیو ښکلې ښځې په صورت کښې اولیږلې شوه. الغرض د هاروت او ماروت قصه په تابعینو کښې اکثرو خلقو بیان کړې ده. لکه مجاهد سدی ﷫ ، حسن بصری رحمة الله علیه، قتاده ﷫ ، ابوالعالیه . زهری ﷫ ، ربیع بن انس ﷫ ، مقاتل بن حیان ﷫ وغیره او متقدمینو او متاخرینو مفسرینو په خپلو خپلو تفسیرونو کښې دا نقل کړی ده. خوددې زیات نه زیات دارومدار دبنی اسرائیلو کتابونو باندې دې. څه مرفوع متصل حدیث په دې باب کښې د نبی کریم ﷺ نه نه دې ثابت شوې او نه په قران پاك کښې دا دومره په وضاحت سره شته دې ، نو زمونږ ایمان دې چه څومره په قران پاك کښې دی صحیح او درست دی. او حقیقت علم الله ﷻ ته دې (دقران پاك ظاهری الفاظ دمسند احمد ، ا بن حبان ، بیهقی وغیره مرفوع حدیث ، د حضرت علی ﷺ اوحضرت ابن عباس ﷺ او حضرت ابن مسعود ﷺ وغیره موقوف روایات او دتابعینو وغیره تفسیرونه وغیره یو خانې کولو سره دې واقعې ته څه تقویت ملاویږی. نه په دې کښې څه محال عقلی دې اونه په دې کښې څه داسلامی اصولو خلاف شته دې. بیا د ظاهر نه یوطرفته کیدل او دبې خایه تکلفاتو هیڅ ضرورت نشته دې والله اعلم ، فتح البیان).

---

[۱] ) حاکم : ۲۶۵/۲، الطبری: ۴۷۸/۲، والعجاب فی بیان الاسباب لابن حجر: ۱ /۳۲۲)۔

**یوه عجیبه واقعه** :- ابن جریر رحمه الله کښې یو غریب اثر او یو عجیبه واقعه ده هغه هم واورئې. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه د دومة الجندل یو ښځه د نبی کریم ﷺ د وفات نه لږ وخت پس د نبی کریم ﷺ په تلاش کښې راغله او د نبی کریم ﷺ دوفات دخبر په آوریدو سره هغه ډیره خفه شوه او ژړل ئې شروع کړل. ما دهغې نه تپوس اوکړو چه دا څه خبره ده ؟ نوهغې اووئیل چه زما او خماد خاوند په مینځ کښې به همیشه جګړه وه ، یو خل هغه خه پرینبودم او چرته لاړو. ما یو بوډۍ ښځې ته ددې ذکر اوکړو. هغې اووئیل چه څه وایم هغه کوه. هغه به تالره ضرور راشي . څه تیاره شوم. هغې دوه سپې دشپې مالره راوستل ، په یو باندې هغه پخپله سوره شوه او په بل باندې څه سوره شوم. لږ وخت پس مونږ بابل ته اورسیدو. ما اوکتل چه دوه سړي هغه ځائې کښې زوړند دی او په اوسپنه کښې تړلې شوی دی. دې ښځې ماته اووئیل ،دوی لره ورشه او دوی ته اووایه چه څه دجادو زده کولو دپاره راغلې یم . ما هغوی ته اووئیل. هغوی اووئیل واوره مونږ خو په آزمینبت کښې یو ته جادو مه زده کوه ، د دې زده کول کفر دې.

ما اووئیل زه خو به ئې زده کوم. هغوی اووئیل ښه بیا لاړه شه او په دې تنور کښې متیازې اوکړه اوراشه. ما اراده اوکړه خو په ماباندې څه ویره راغله . څه واپس شوم او ورته مې اووئیل چه څه فارغه شوم. هغوی اووئیل څه دې اوکتل ما اووئیل هیڅ هم نه. هغوی اووئیل چه ته غلط وائې. تر اوسه پورې هیڅ نه دی شوی ستاایمان لا صحیح دې اوس هم واپس شه او کفر مه کوه. ما ورته اووئیل چه څه خو جادو زده کوم .هغوی بیا اووئیل چه لاړه شه او په دې تنور کښې متیازې اوکړه اوبیا راشه. څه بیا لاړم خو دې خل هم زما زړه اونه منل او واپس راغلم. بیا مې داشان سوال وجواب اوشو. څه په دریم خل بیا تنور لره ورغلم او زړه مې کلك کړو او متیازو کولو دپاره کیناستم اوما اوکتل چه یو په آس سور چه دده په مخ باندې نقاب وو آسمان طرفته پورته لاړو. څه واپس راغلم او دوی ته مې ذکر اوکړو. هغوی اووئیل چه ته دې خل رښتیا وائې. هغه ستاایمان وو چه ستانه لاړو اوس لاړه شه. څه راغلم او دې بوډۍ ته مې اووئیلې چه هغوی خوماته هیڅ زده نه کړل. هغې اووئیل چه اوس ستا هر څه زده شو. اوس چه ته څه وائې هغه به کیږي. ما دآزمینبت په طور یو دانه دغنمو واخستله او دامې په زمکه باندې غوزاره کړه اوورته مې اووئیل چه زرغونه شه نو هغه زر زرغونه شوه. ماورته اووئیل چه په تا کښې دې وږي زرغون شي. نو هغه اوشو. ما اووئیل اوچ شي نو هغه اوچ شو. ما اووئیل بیلې بیلې دانې شي نو هغه شوې. بیا مااووئیل اوچې شي نوهغه اوچې شوې ، بیا ما اووئیل اوړه شي نوهغې نه اوړه جوړ شو. ما اووئیل روټئ شي پخې نو هغه پخې شوې. په دې کتلو سره خمازړه شرمنده شو او ماته په خپل بې ایمانه کیدو ډیر زیات خفګان اوشو. انې ام المومنین رضي الله عنها! مادې جادو نه هیڅ کار نه دې اخستې اونه مې په چا جادو کړې دې . څه خوداشان په ژړا د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوې یم چه نبی کریم ﷺ ته اووایم ، خوافسوس بدقسمتئ سره ما نبی کریم ﷺ هم اونه لیدو ، اوس څه څه اوکړم. دې وینا سره هغې ژړه انګولا شروع کړه اودومره ئې اوژړل چه هر چاته په دې باندې ترس راغلو. صحابه کرام ﷺ هم حیران وو چه دې ته څه فتوی ورکړي. آخر بعضو صحابه کرامو ﷺ اوفرمائیل چه اوس سوا ددې نه څه کیدیشي چه ته دا کار مه کوه اوتوبه اوباسه او د خپل مور پلار په خدمت کښې اوسه.

ددې اسناد بالکل صحیح دی. خودلته دا خیال ساتل هم پکار دی چه صحابه کرامو ﷺ به په فتوی ورکولو کښې ډیر زیات احتیاط کولو چه په وړه خبره کښې به هم دوی تامل کولو. نن مونږ د لوئې نه لوی خبره هم په خپلې رائې او قیاس سره کوو. ددې اسنادبالکل صحیح دی. بعضې خلق وائی چه نظر دجادو په زورسره بدل شي او بعضې وائی چه نه کتوونکو ته دا خیال رازی ، اصلی څیز پشان وی چه څنګه هغه وی لکه څنګه چه په قرآن پاك کښې دی چه ﴿سَحَرُوٓا۟ أَعْيُنَ ٱلنَّاسِ﴾ (دوی دخلقو په سترګو باندې

جادو اوکړو) اوفرمائی چه ﴿يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِن سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ﴾ حضرت موسیٰ ﷺ طرفته به خیال کیدلی شو چه ګویا هغه ماران وغیره دده د جادو په زور سره روان دی. دې واقعې نه داهم معلوم شو چه په دې آیت کښې د بابل لفظ نه مراد دعراق بابل دنیاوند نه دې. د ابن ابی حاتم په یو روایت کښې دی چه حضرت علی ﷺ د بابل په زمکه باندې روان وو ، د مازیګر د مونځ وخت شو خو دوی په هغه ځائې کښې مونځ ادا اونه فرمائیلو بلکه ددې زمکې دحد نه دوتلونه پس نې مونځ ادا اوفرمائیلو. او وې فرمائیل چه زما حبیب ﷺ خه منع کړې یم چه په قبرستان کښې مونځ اوکړم او دبابل په زمکه نې دمونځ کولونه منع کړې یم. دا زمکه ملعونه ده. (۱) په ابوداود کښې هم داحدیث روایت شوې دې او ابوداود رحمه الله په دې کښې هیڅ کلام نه دې کړې او چه کوم یو حدیث ابوداود په خپل کتاب کښې راوړې دې اوددې په سند باندې خاموش پاتې شوې دې نودهغه حدیث ددوی په نزد حسن وی. دې نه معلوم شو چه دبابل په زمکه باندې مونځ کول مکروه دی لکه د ثمودیانو دزمکې په حقله د نبی کریم ﷺ ارشاد دې چه ددې خلقو منزلونو ته مه ځئی که دتلو اتفاق اوشی نو دالله ﷻ دویرې نه ژاړئی (۲). د هینت دانو خلقو قول دې چه د بابل لرې والې د بحر غربی اوقیانوس نه اویا درجې او وسط دزمکې نه جنوب طرفته بخط استواء درې دیرش درجې دې ،والله اعلم.چونکه هاروت اوماروت ته الله ﷻ دخیر او شر ، کفر او ایمان علم ورکړې دې ، ددې وجې دهر یو کفر طرفته ورتلونکی ته نصیحت کوی او په هره طریقه ئې منع کوی، کله چه دا نه منی نو دا کلمات دهغه نه ادا شی او دده د ایمان نور لاړشی . او دایمان نه لاس اووینځی. او ده سره جادو راشی. شیطان دده دوست جوړ شی. د ا یمان دتلو نه پس په ده باندې دالله ﷻ غضب راشی. ابن جریر رحمه الله فرمائی چه سوا د کافر نه دې هیڅوک د جادو زده کولو کوشش نه کوی.

**دفتنه نه مراد:-** دفتنه معنی په دې ځائې کښې ، مصیبت ،آزمینبت اوامتحان دې .دحضرت موسیٰ ﷺ قول په قران پاك کښې ذکردې چه ﴿إِنْ هِيَ إِلَّا فِتْنَتُكَ﴾ ددې آیت نه داهم معلوم شو چه جادوزده کول کفر دې. په حدیث کښې هم دی چه کوم سړې کاهن یا جادوګر لره ورشی او دهغه خبرې ته رښتیا اووائی نوده په هغه وحی باندې کفر اوکړو چه کومه په حضرت محمد ﷺ باندې نازله شوېده (بزاز). دا حدیث صحیح دې اوددې تائید په نورو احادیثو کښې هم شته دې.

بیا فرمائی چه خلق د هاروت او ماروت نه جادوزده کوی چه ددې په ذریعه غلط کارونه کوی.د ښځې سړی محبت او موافقت په بغض او مخالفت سره بدلوی. په صحیح مسلم کښې حدیث دې چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه شیطان خپل تحت په اوبو باندې ایږدی ، بیا خپلې لښکرې د خلقو د غولولودپاره لیږی او دهغو نه زیات مرتبې والا دهغه په نیزد هغه دې چه هغه په فتنه کښې دټولو نه لوئې وی. کله چه دوی واپس رازی نو دخپلوبدترینو کارونو ذکر کوی. څوك وائی ما فلانې داشان بې لارې کړو ، څوك وائی ما فلانې داشان بې لارې کړو. څوك وائی ما دفلانی سړی نه دا ګناه سرګنده کړه . شیطان دوی ته وائی چه هیڅ مو نه دی کړی دا خود معمول کارونه دی. تر دې پورې چه یو راشی او وائی چه مادفلانی سړی او دهغه دښځې په مینځ کښې جنګ تود کړو تردې پورې چه دهغوئ په مینځ کښې بیلتون راغلو. شیطان دې راغاړه باسی او ورته وائی چه تا دټولو نه لوئې کار اوکړو. اودې خان سره کینوی اودهغه رتبه اوچتوی(۳)نوجادوګر هم په خپل جادو سره داسې کار کوی چه په هغې سره ښځه او خاوند جدا شی، لکه په شکل وصورت کښې دې ښه اونه لګی یادهغه دعاتونو د طریقو نه دده نفرت

---

۱) ابوداود: کتاب الصلاة باب فی المواضع التی لا تجوز فیها الصلاة : ۴۹۰)-

۲) صحیح بخاری : کتاب الصلوة باب الصلاة مواضع الخسف والعذاب: ۴۳۳، صحیح مسلم: ۲۹۸۰)-

۳) صحیح بخاری : کتاب صفات المنافق ، باب تحریش الشیطان: ۲۸۱۳)-

پیداکړي اگر چه دا دشریعت خلاف نه وي یاني په زړه کښې عداوت پیدا شي وغیره وغیره. په مزه مزه دا خبرې زیاتیږي د ښځي خاوند په مینځ کښې جدائي راشي. " مرء " واني سړی ته ، ددې مذکر مونث او تثنیه خو شته دې خوددې جمع نه جوړیږي. بیافرمائي چه هیچاته هم دالله ﷻ دمرضۍ نه بغیر تکلیف نشي ورکولې. یعني دا ددوی دوس خبره نه ده. دالله ﷻ د قضااو قدرت او دهغه د ارادې نه نقصان هم نشي ورکولې که الله ﷻ اونه غواړي. ددوی جادو بې اثره او بې فائدې دې. دا مطلب هم کیدیشي چه دا جادو هغه سړي ته نقصان ورکوی چه څوك دا حاصل کړي او په دې کښې داخل شي. بیا ارشاد فرمائي چه دوی دا زده اودا ددوی دپاره بالکل نقصاني دی. چه په دې کښې هېڅ فائده نشته دې. او یهودیانو ته دا معلوم دی چه د نبی کریم ﷺ تابعدارئي په پرینبودو او جادو پسې لګیدلو والوپه آخرت کښې هیڅ حصه نشته دې اونه ددوی څه قدر او وقعت دالله ﷻ سره شته دې اونه دوی ته دیندار وئیلې کیږي.

قوله تعالى:- وَلَوْ أَنَّهُمْ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَمَثُوبَةٌ مِّنْ عِندِ اللَّهِ خَيْرٌ

**ایمان راوړل او تقوی اختیارول ښه وو:-** بیا فرمائي که دوی ددې کار بدی محسوس کړي او ایمان اوتقوی اختیار کړي نو یقیناً ددوی دپاره ډیره بهتری ده خودا خلق بې علمه دی. او فرمائي که علم والو اوونیل نوبه هغوی باندې افسوس دې. دالله ﷻ ورکړې شوې ثواب دایماندارو او نیك عملونووالو دپاره ډیر بهتر دې. خودا صبر کوونکو ته ملاویدیشي. د دین بزرګانو په دې آیت هم استدلال کړې دې چه جادوګر کافر دې. څکه چه په آیت کښې ئې ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَمَثُوبَةٌ ﴾ فرمانیلی دی. حضرت امام احمد رحمه الله اود سلفو یو ډله هم جادو زده کونکي ته کافر واني. بعضې ورته کافر نه واني خو فرمائي چه جادوګر حد دادې چه دې دې قتل کړې شي.بجاله بن عبید رحمه الله فرمائي چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په خپل یو فرمان کښې لیکلي وو چه هر یو جادوګر ښځه سړي دې قتل کړې شي. نومونږ دریوجادوګرانو څټونه جدا کړل . ([1]په صحیح بخاری کښې دی چه ام المومنین حضرت حفصه رضي الله عنها باندې ددې یو وینځې جادوکړې وو چه په دې وجه هغه (وینځه) قتل کړې شوه. ([2]حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي چه د دریو صحابه کرامو رضي الله عنهم نه د جادوګر د قتل کولو فتوی ثابت ده. په ترمذی کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائي چه دجادوګر حد په توری قتلول دی([3]ددې حدیث راوی اسماعیل بن مسلم ضعیف دې. صحیح خبره دامعلومیږي چه غالبًا داحدیث موقوف دې ، خو طبرانی کښې یو بل سند سره هم دا حدیث مرفوع روایت شوې دې . والله اعلم.

ولیدبن عقبه سره یوجادوګروو چه هغه به خپل کره وره خودل. چه په ظاهره به دیوسړي سر قلم کړې شو اوبیابه ئې آواز ورکولو نو سر به په خپل ځاني باندې شو هغه به موجود شو. په مهاجرینو رضي الله عنهم کښې یو بزرګ صحابی دا اوکتل او بله ورځ توره ترلې راغلو ، هر کله چه ساحر خپل کهیل شروع کړو نو ده په خپلې تورې سره دهغه سړي څټ پریکړو نو ورته ئې اوفرمائیل که ته رښتونې یې نو دا ژوندې کړه . بیا ئې دقرآن پاك دا آیت خلقو ته واورولو ﴿ أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ ﴾ (آیا تاسو جادولره ورځئ ؟). چونکه دې بزرګ صحابی ددې سړي دقتل کولو اجازت دولید نه نه وو ا خستې نوددې وجې هغه دې اونیولو او ډیر خفه شو او بیائې دې پرینبودو.([4] حضرت امام شافعی رحمه الله ،د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه

[1]) احمد: ۱۹۰/۱، وهو صحیح ، ددې اصل صحیح بخاری كتاب الذمة باب الجزية والموادعة مع اهل الحرب: ۳۱۵۶، کښې موجود دې ، خو په هغې کښې د قتل او سحر ذکر نشته دې)-

[2]) موطا امام مالک ، كتاب العقول باب ماجاء فی الغيلة والسحر: ۸۷۱/۲، وهو صحیح بالشواهد)-

[3]) ترمذی كتاب الحدود باب ما جاء فی حد الساحر: ۱۴۶۰)-

[4]) سنن دارقطنی: ۱۱۴/۳، وسنده صحیح )-

فرمان او د حضرت حفصه رضي الله عنها دواقعې متعلق دا ونیلی دی چه دا حکم په هغه وخت کښې دې چه کله جادو په شرکیه لفظونو سره وی.

**دجادو وجود** :- معتزله دجادو دوجود منکر دی ، هغوی وائی چه جادوهیڅ څیزنه دې ، بلکه بعضې خلق خو بعضې وخت دومره پورې وائی چه څوك دجادو وجود منی هغه کافر دې. لیکن اهل سنت والجماعت دجادو دوجود قائل دی او دامنی چه جادو ګر دخپل جادو په زور سره په هوا باندې قابوموندې شی. اوانسان په ظاهره خر او خر په ظاهر انسان جوړوی. خو دکلماتو اومنتر وغیره په وخت کښې ددې پیدا کولووالا الله تعالی دې. آسمان او ستورو لره تاثیر پیدا کولو والا اهل سنت نه منی. دفلسفې او نجوم والا او بې دینه خلق خو ستورو او آسمان اثرپیدا کولو والا منی. داهل سنت یودلیل دا آیت دې چه ﴿ وَمَا هُم بِضَآرِّينَ ﴾او دویم دلیل پخپله په نبی کریم ﷺ باندې جادوکیدل دی او په نبی کریم ﷺ باندې ددې اثر کیدل دی ، دریم دهغه ښځې واقعه چه کومه حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کړې ده: چه دهغې ذکر شوې دې او هم دا شان نور په سوونوواقعات وغیره دی.

**آیا دجادو علم زده کول جائز دی** :- ؟ رازی رحمه الله په خپل تفسیر کښې لیکلی دی چه دجادو زده کول بد نه دی. دمحققینو هم دا قول دې . ځکه چه دا هم یو علم دې اوالله ﷻ فرمائی چه قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (علم والا او بې علمه برابر نه دی ) او ددې نه وجې هم چه دا معلوم شی چه په دې سره معجزې او دجادو فرق واضح شی. اود معجزې علم واجب دې. او هغه موقوف دې په جادو زده کولو باندې چه په دې سره فرق معلوم شی نو جادو زده کول هم واجب شو. د رازی رحمه الله دا قول بالکل غلط دې ، که هغه عقلی لحاظ سره دې ته بد نه وائی نو معتزله موجود دی چه عقلی لحاظ سره ددې قائل دی. اوکه هغه شرعی لحاظ سره دې ته بدنه وائی نو دقران پاك دشرعی بدو دپاره کافی دې. په صحیح حدیث کښې دی چه یوکس یو جادوګر یا کاهن لره ورشی نوهغه کافر شو. [1]په سنن کښې حدیث دې چه چا غوټه جوړه کړه او بیا ئې په دې چف اوکړو نو ده جادو اوکړو. نو درازی رحمه الله دا قول غلط دې ، [2]دهغوی دا وینا چه دا دمحققینو قول دې ،دا هم صحیح نه دی ، آخر دداسې محققینودپاره داسې اقوال چرته دی ؟ په آئمه اسلام کښې چا داسې هم ونیلی دی چه بیا ﴿هَلْ يَسْتَوِي ﴾ آیت پیش کول هم سوا دجرات نه نور څه نه دی لیکن په آیت کښې دعلم نه مراد دینی علم دې. آیت کښې دشرعی علم والو عالمانو فضیلت بیان شوې دې. بیا دهغوی داقول چه په دې سره دمعجزې علم حاصلیږی نودا خو بالکل فضول او غلطه اوفاسده خبره ده ، ځکه چه د نبی کریم ﷺ دټولو نه لویه معجزه قرآن پاك دې. چه دا د باطل نه بالکل محفوظ دې. خوددې معجزې منلو دپاره دجادو علم زده کولو باندې موقوف نه دی. هغه خلق چه هغوی د جادو نه ډیر لرې دی هغوی هم دامعجزه منلې ده. صحابه کرام رضي الله عنهم ،تابعین رحمهم الله، آئمة المسلمین بلکه عام مسلمان هم دا معجزه منی. حالانکه په دې ټولو کښې نه چا جادو زده کړو اونه جادو لره ورغلو او نه ئې جادو اوخودلو بلکه دې ټولو کارونو ته کفروائی . بیا دا دعوی کول چه دمعجزې پیژندل واجب او دجادو اومعجزې فرق په جادو زده پیژندو باندې موقوف دی ، لهذا دجادو زده کول واجب دا خومره مهمله دعوی ده.

**دجادو قسمونه**:- اوس دجادو قسمونه واورئی چه دا ابوعبدالله رازی بیان کړی دی .

① یو جادو دستاره پرست ولې دې. هغوی د اوو ستورو متعلق دا عقیده لری چه نیکی بدی ددې اوو ستورو په وجه دی. ددې وجې دې (ستورو) طرفته خطاب کوی او مقرر شوی الفاظ لولی او ددې عبادت کوی. په دې قوم کښې حضرت ابراهیم علیه السلام راغلو او دوی ته ئې هدایت اوکړو. رازی رحمه الله په

---

[1] ) البزار:۴۰۶۷)-

[2] ) نسائی کتاب المحاربة باب الحکم فی السحرة: ۴۰۸۴)-

دې فن کښې يو خاص کتاب تصنيف کړې دې چه د هغې نوم "السر المکتوم في مخاطبة الشمس و النجوم" دې. اوګورنی ابن خلکان وغيره. بعضې وائی چه بيانې ددې نه توبه اوويستله. اوبعضې وائی چه صرف معلومولو دپاره او دخپل دې علم ظاهرولو دپاره ئې دا کتاب ليکلې وو او نه دده داعقيده وه چه سراسر کفر دې. په دې کتاب کښې ئې دهغه خلقو طريقې بيان کړې دی.

② دونمه ډله د قوی نفس او قوت واهمه والو خلقو ده. ، دوی وهم او خيال ډير اثر ګنړی. ګورنی که په يوتنګ پل په زمکه باندې کيخودې شی نو په دې باندې به انسان په آسانئ سره لاړشی. خو که دا پل په يو درياب باندې وی نو نه شی پرې تيريدې. خکه چه په هغه وخت کښې خيال وی چه دادې اوس پريوتم ، دادې اوس پريوتم. نودا واهمه دکمزورنی په وجه چه څومره خانې باندې په زمکه باندې تلې شو نو په هغه هومره خانې باندې د ويرې په وجه نشی تلې. حکيمانو او طبيبانو هغه سړی دسور څيز دکتلو نه منع کړې دې چه دچا نکسير وی. او مرګی والا ئې دزياتې تيزې رنړا او دتيز حرکت څيزونو کتلو نه منع کړی دی چه ددې نه ظاهر دی چه د قوت واهمه يو خاص اثر په طبيعت باندې وی. عقل مندو خلقو په دې باندې هم اتفاق دې چه نظر لګی ،[1] اوپه صحيح حديث کښې هم راغلی دی د نظر لګيدل حق دی. که يو څيز په تقدير باندې سبقت والا وې نو نظر به وو. اوس چه کله نفس قوی دې نو ظاهر اړانړو او ظاهری کارونو هيڅ ضرورت نشته دې. اوکه دومره قوی نه وی نو بيا ددې آلاتو هم ضرورت پيښيږی. چه څومره دنفس قوت زياتيږی نو هغه به په روحانياتو کښې پرمختګ کوی. او په تاثير کښې به هم پرمختګ کوی. او چه څومره دا قوت کميږی نو دومره به کميږی. داکيفيت د غذا دکمی او دخلقو سره د ملاويدو په پريښودو سره هم کيږی. کله کله خو انسان دا حاصل کړی او انسان خپل کارونه دشريعت مطابق اخلی ددې نه. دې حال ته دشريعت په اصطلاح کښې کرامت وائی. دې ته جادو نه وائی. اوکله کله ددې حال نه دباطلو کارونو په کولو کښې مدد اخلی اود دين نه لرې کيږی. داسې خلقونه که څه خلاف شرع کار اوشی نو په دې دهوکه کښې هغوی ته ولی ونيل نه دی پکار. خکه دشريعت نه خلاف تلو والا ولی الله نشی کيدې. تاسو ګورئی نه چه په صحيح احاديثو کښې ددجال باره کښې څه راغلی دی ؟ هغه به څنګه څنګه خلاف عادت کارونه کوی اوددې په وجه هغه دالله ﷻ ولی نه دې بلکه هغه ملعون او مردود دې.

③ دريم قسم دجادو دجناتو په ذريعه دزمکې والو روحونو نه امداد طلب کول دی. معتزله او فلاسفه ددې قائل نه دی. دې روحونو سره بعضې مخصوص الفاظ او اعمالو سره تعلق پيدا کيږی ، دې ته سحر بالعزائم او عمل تسخير وائی.

④ څلورم قسم د خيالاتو بدلول ، په سترګو باندې تياره راتلل اودهوکه ورکول. چه په هغې سره د حقيقت نه خلاف څه نه څه ښکاره شی. تاسو به کتلی وی دهوکه ورکول رومبې يو کار شروع کوی ، هرکله چه خلق دې طرفته متوجه شی او ټول په ټوله دده خبرو کښې مشغول شی نو دې چالاکئ سره يو بل کار اوکړی چه دخلقو د نظرونو نه پټ وی او دې ته خلق اوګوری او حيران شی . دبعضو مفسرينو قول دې چه د فرعون د جادوګرو جادو هم داسې وو. هم ددې وجې نه په قران پاک کښې دی چه (سَحَرُوٓا۟ أَعْيُنَ ٱلنَّاسِ وَٱسْتَرْهَبُوهُمْ) (دخلقو په سترګو ئې جادو اوکړو اوددوی په زړونو کښې ې ويره پيدا کړه) . په بل مقام باندې دی چه (يُخَيَّلُ إِلَيْهِ) د حضرت موسی ﷺ په خيال کښې هغه ټول لرګی اورسو نه ماران جوړ شوی وو او منډې به ئې وهلې ، حالانکه په حقيقت کښې داسې نه وو. والله اعلم.

⑤ بعضو څيزونو ته څه ترکيب ورکول اوددې نه څه عجيبه کار اخستل ، لکه د خر شکل ئې جوړ کړو اوپه دې باندې يو سور جوړول او دده په لاس کښې ناقوس دې او کله چه يو ساعت تير شو نو ددې

[1] ) صحيح بخاری : کتاب السلام باب الطب والمرض والرقی: ۲۱۸۸، ترمذی: ۲۰۹۲)-

ناقوس نه یواوازراووتلو حالانکه هیڅ دې لره نه وو چیړلې. داشان نې انسانی شکل په دې کاریګرنی سره جوړ کړو لکه چه اصلی انسان خاندی یا ژاړی. دفرعون دجادوګرو جادو هم داشان وو ، چه هغوی به ماران وغیره جوړ کړل او د رنبق په وجه دا په حرکت کښې ښکاریدل. ګهړنی او ګنهټی او واړه واړه ځیزونه چه په دې سره به وزنی ځیزونه راتلل تول په دې قسم کښې داخل دی. حقیقت کښې دې ته جادو نه دی ویل پکار. څکه چه دا خویو ترکیب او کاریګری ده. چه ددې اسباب بالکل ظاهر دی چاله دا کار ورځی نو هغه ددې فنونو نه کار اخستې شی. داشان هغه حیله هم ده چه د بیت المقدس نصرانیانو به کوله چه پراسرار طور سره به نې د ګرجې قندیلونه اوسیزل اودا به نې مشهور کړل چه دا ددې ګرجې کرامت دې. او خلق به ئې خپل دین طرفته راماتل کول. دبعضو کرامیه صوفیاء هم داخیال دې که دترغیب او ترهیب حدیثونه بیان کړې شی او خلق غبادت طرفته متوجه کړې شی نو هیڅ حرج نشته دې ، خودالویه غلطی ده . نبی کریم ﷺ فرمائی چه کوم سړې په مابانډې دقصده دروغ پورې کړی نوهغه دې خپل ځانې په جهنم کښې مقرر کړی. [1] او فرمائی چه زما حدیثونه بیانونی خو په مابانډې دروغ مه تړنی ، په مابانډې دروغ تړلوولا بالکل جهنمی دې. [2]

یونصرانی پادری یو ځل اوکتل چه د مرغئ یو وړوکې بچې په ژاله کښې ناست دې اودې الوتې او تللې نشی. هرکله چه هغه خپل ضعیف آواز راوباسی نو مارغان په دې بانډې رحم کوئی او د زیتون میوه راوړی او دده په خله کښې ئې ورکوی. دې پادری هم په دې شکل کښې یومرغئ جوړه کړه اوهغه نې دلاندې نه ډډه کړه اوددې په مخوکه کښې نې یو سوری پرېښودو چه په دې سره به هوا دې کښې دننه ورتله او چه ددې نه به په مخوکه هوا وتله نوددې نه به یوآوازپیدا کیدو اودائې راوړه او په خپله ګرجه کښې نې کیخوده دهوا په طرف. په چت کښې نې یو وړوکې شان سورې اوکړو چه په دې سره هوا رازی، اوس چه کله به هوا راتله اوددې نه به آواز راوتلو نوداقسمه مارغان به جمع کیدل اودزیتونو میوې به نې راوړې او اینبودې به ئې. ددې په خلقو کښې یو شهرت جوړشو چه په دې ګرجا کښې دا کرامت دې.تر دې پورې چه دیو بزرګ مزار دې اودا دهغه کرامت دې. خلقو چه دا په سترګو سره اوکتل نو عقیده نې په دې پیدا شوه. او په دې قبر بانډې نې نذرونه او منختې اچول شروع کړل اودا کرامت تر لرې لرې پورې مشهور شو. حالانکه نه دا څه کرامت وو او نه څه معجزه. صرف یو پټ فن وو چه دا هغه ملعون سړی د خیټو ډکولو دپاره په پټه اینبودې وو اوهغه لعنتی فرقه په دې بانډې معتقد شوی وه.

⑥دبعضې دوایانو پټ خواص معلومول اوهغه په کارراوستل. اودا ظاهردی چه په دوایانوکښې عجیبه عجیبه خاصیتونه وی. مقناطیس ته اوګورئی چه ده طرفته اوسپنه څنګه رازی،اکثر صوفی اوفقیر او درویش هم په داسې حیله بهانوسره دکرامت په طور خلقو ته ښائی او هغوی سره خپل مریدان جوړوی.

⑤ په زړه بانډې یو خاص قسمه اثر اچول او چه څه غواړی نو په ده نې منی. لکه هغه ته وائی چه مانه اسم اعظم یاد دې یا جنات زما په قبضه کښې دی. اوس که اوریدو والا دکچه زړه والا او کمزورد غوړونووالا او خرابې عقیدې والا دې نو هغه به دا ریښتیا ګنړی ، دې ته یو قسم لره ویره او هیبت او رعب به دده په زړه کښې کینی چه دې سره به دې ضعیف شی. اوس چه څه دې غواړی نو هغه به کولې شی اودده کمزورې زړه به ده ته عجیبه عجیبه خبرې ښائی. دې ته تنبله وائی اودا اکثر کم عقلو خلقوته کیږی. او په علم فراست کامل عقل والا او کم عقل والا انسان معلومولې شی. اوددې حرکت کولو والا په خپل فعل قیافه سره کم عقل والا پیژنی.

---

[1] ) صحیح بخاری : کتاب العلم باب اثم من کذب علی النبی ﷺ : ۱۱۰، صحیح مسلم: ٤)-

[2] ) احمد:۳۹/۳، العلم باب اثم من کذب علی النبی ﷺ : ۱۱۰، صحیح مسلم: ٤)-

⑧ اتم قسم چغلي کول دروغ ربنتیا یو خاني کول اود چا په زړه کښي خپل خاني پیدا کول او په پټو چالونو سره هغه خپل مرید جوړول. دا چغل خوری که دخلقو دلمسولو او دهغه دراپاراکولو دپاره او دهغوی په مینځ دبسمني پیدا کولو دپاره وی نو دا شرعي طورسره حرامه ده. هرکله چه داصلاح په طور وی اوپه خپلو کښي یو بل لره یو خاني کولو دپاره څه داسي ظاهری خبره اووائي چه په هغي باندي په خپلو کښي صلح اوشی یا مسلمانانو نه څه راتلونکي مصیبت لري شي یا دکافرو قوت ختم شی ، په هغوی د زړه بدوالي پیدا شی او په هغوی کښي مخالفت راشي نو دا جائز دی. په حدیث کښي دی چه هغه سړي دروغژن نه دي چه دښیګړي دپاره خلق یو خوا بل خوا بوزی[1] اولکه څنګه چه په حدیث کښي دی چه جنګ کول دمکر نوم دي[2] او لکه څنګه چه حضرت نعیم بن مسعود ﷺ دجنګ احزاب په موقعه باندي دعربو کافرو او یهودو ترمینځه څه دیو خوا بل خوا لاندي باندي خبري کړي وي او په هغوی کښي ئي بیلتون راوستي وو. اوهغوی ته دمسلمانانو په مقابله کښي شکست اوشو، داکار ډير د اعلي دماغو والا او زیرك او معامله فهم سړي وی.

یاد ساتئ: امام رازی رحمه الله چه دجادو کوم اته قسمونه بیان کړی دی دا په اعتبار د لفظ دی. څکه چه په عربئ ژبه کښي سحر یعني جادو هر هغه څیز ته وائي چه ډیر لطیف او باریك وی او په ظاهر کښي دانسان په نظر کښي دهغي اسباب پټ پاتي شی. هم ددي وجي نه یو حدیث مبارك کښي دی چه بعضي بیان هم جادو وی[3] او هم ددي وجي دسحر اول وخت ته سحور وائي څکه چه دا پټ وی او هغه رګ ته هم سحر وائي چه د خوراك نالئ ده . ابو جهل د بدر په ورځ دا ونیلی وو چه دده سحر یعني د خوراك نالئ پولئ شوه . حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه څماد سحر اونحر په مینځ کښي نبی کریم ﷺ وفات شو[4] نودنحرنه مراد سینه اود سحرنه مراد رګ د خوراك. په قران پاك کښي هم دی چه ﴿ سَحَرُوٓا أَعۡيُنَ ٱلنَّاسِ﴾ ( دخلقو د نظرونو نه ئي پټ خپل کار اوویستلو.

ابوعبدالله قرطبی رحمه الله وائي چه مونږ وایو جادو دي او منو چه کله الله تعالی ته منظور وی اوهغه ذات دجادو په وخت کښي چه څه غواړي نوهغه کوی ، اګر چه معتزله اوابو اسحاق اسفرائنی شافعي رحمه الله ددي قائل نه دي. اوکله جادو دلاس په صفائي سره هم کیږي. او کله په غوټو وغیره هم. کله دالله ﷻ دنوم په دم کولو سره چه په دي کښي هم یو خاص اثر دي ، کله دشیطان په نوم اخستلو سره دشیطاني کارونودپاره ئي هم خلق کوی. کله د دوایانووغیره په ذریعه سره. د نبی کریم ﷺ ددي فرمان چه " بعضي بیان جادو دي " دوه مطلبونه کیدیشی.یوخودا چه نبی کریم ﷺ دا د تعریف په طور اوونیل او ممکن دی چه په طور دغندني ئي دا ارشاد فرمائيلي وی چه هغه خپله غلطه خبره داسي بیانوی چه ربنتیا معلومیږی. لکه څنګه چه په یوبل حدیث کښي دی چه کله تاسو مالره څه مقدمه راوړئ او یو سړي په خپلي چالاکئ سره خپله غلطه دعوی صحیح ثابتوی[5] وزیر ابوالمظفر یحیی بن محمد بن هبیره رحمه الله په خپل کتاب الاشراف علی مذاهب الاشراف کښي دسحر په باب کښي ونیلی دی چه اجماع ده چه جادو حقیقت دي. خو امام ابوحنیفه رحمه الله ددي قول قائل نه دي . دجادو زده کوونکي او ددي استعمالونکی ته حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله ، حضرت امام مالك رحمه الله ؛ حضرت امام احمد رحمه الله

[1] ) صحیح بخاری : کتاب الصلح باب لیس الکاذب یصلح بین الناس: ۲۶۹۲، صحیح مسلم: ۲۶۰۵، ابوداود: ۴۹۲۹، ترمذی: ۱۹۳۸)-

[2] ) صحیح بخاری : کتاب الجهاد، باب الحرب خدع: ۳۰۳۰، صحیح مسلم ۱۷۳۹)-

[3] ) صحیح بخاری : کتاب النکاح ، باب الخطبة: ۵۱٤۵)-

[4] ) صحیح بخاری : کتاب المغازی باب مرالنبی ووفاته: ٤٤٤٩)-

[5] ) صحیح بخاری : کتاب المظالم باب اثم من خاصم فی باطل وهو یعلمه: ۲٤۵۸، صحیح مسلم: ۱۷۱۳)-

کافر وائي. دامام ابوحنيفه دبعضو شاګردانو قول دي که جادو دخپل بچاؤ دپاره زده کړي نو کافر نه دي ، خو چه څوك ددي عقيده ساتي او دا فائده رسونکي ګڼړي نو هغه کافر دي. اوداشان چه څوك دا خيال کوي چه شيطانان ذا کارکوي او دومره قدرت لري هغه هم کافر دي. حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي چه دجادوګر نه دي تپوس اوکړي شي که هغه د بابل والو پشان عقيده لري اواوؤ ستورو لره دتاثير والا ګڼړي ، نو کافر دي . اوکه نه وي اوجادو لره جائز ګڼړي نوبيا هم کافردي. د حضرت امام مالك رحمه الله اوحضرت امام احمد رحمه الله هم داقول دي چه جادوګر کله جادو کوي اوجادو په استعمال کښي راولي نو هغه دي په هغه خاني کښي قتل کړي شي. حضرت امام شافعي رحمه الله او حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه تر کومي پوري بار بار اونکړي يا د چامعين کس په باره کښي پخپله اقرار اونکړي نوهغي پوري دي نه قتل کوي. دري واړه اماما رحمهم الله فرمائي چه دده قتل کول د حد په وجه دي. خو امام شافعي رحمه الله بيان دي چه دا په وجه دقصاص دي.د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله او حضرت امام مالك رحمه الله او يو مشهور قول کښي د حضرت امام احمد رحمه الله فرمان دي چه په جادوګر دي توبه هم نه اوباسي خکه چه دده توبه دي دحد نه شي بچ کولي.دحضرت امام شافعي رحمه الله قول دي چه دده توبه به قبوله وي. په يو روايت کښي دامام احمد رحمه الله هم دا قول دي. د اهل کتابو جادوګر به هم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزقتل کولي شي. خو د حضرت امام مالك رحمه الله ، حضرت امام شافعي رحمه الله او د حضرت ا مام احمدبن حنبل رحمه الله مذهب ددي نه خلاف دي. لبيد بن اعصم يهودي په حضرت محمد ﷺ باندي جادو کړي وو او نبي کريم ﷺ دهغه دقتل کولو حکم نه وو فرمائيلي. (۱)که څوك مسلمانه جادوګره وي نودهغي باره کښي حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه هغه دي قيد کړي شي او حضرت امام ا حمد بن حنبل رحمه الله فرمائي چه هغه دي هم دسړي پشان قتل کړي شي.والله اعلم.

د حضرت زهري رحمه الله قول دي چه مسلمان جادوګر دي قتل کړي شي او مشرك دي قتل نه کړي شي. حضرت امام مالك رحمه الله فرمائي که د ذمي په جادو سره څوك مړ شي نو ذمي هم قتل کول پکار دي. دا هم ددوي نه روايت دي چه مخکښي دي هغه ته اووئيلي شي چه توبه اوباسه که هغه توبه اوباسي او اسلام قبول کړي نو خير دي ګني قتل دي کړيشي. اودا هم ددوي نه روايت دي چه که اسلام قبول کړي نوبيا دي هم قتل کړي شي. هغه جادوګر لره چه دهغه په جادو کښي شرکيه الفاظ وي ، آئمه اربعه وغيره هغه ته کافر وائي. خکه چه په قران پاك کښي دي ﴿ فَلَا تَكْفُرْ ﴾.

حضرت امام مالك رحمه الله فرمائي که په ده باندي غلبه اوموندي شي اوبيا دي توبه اوباسي نوتوبه ني قبوله نه ده لکه زنديق .خوکه ددي نه مخکښي توبه اوباسي نو قبوله به وي. که دده په جادو سره څوك مړه شو نوبيا به دي په هر صورت کښي قتل کړي شي. امام شافعي رحمه الله فرمائي که چرې هغه اووائي چه ما دده دوژلو دپاره په ده جادونه دي کړي نو دقتل خطا ديت (جرمانه) دي واخستلي شي.

جادوګرنه دهغه جادو لري کولو دپاره حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله اجازت ورکړي دي. لکه څنګه چه په صحيح بخاري کښي دي. (۲)عامر شعبي رحمه الله هم په دي کښي څه حرج نه ښائي. خو حضرت حسن بصري رحمه الله دي ته مکروه وائي. حضرت عائشه رضي الله عنها د نبي کريم ﷺ په خدمت کښي عرض کړي وو چه تاسو ولي جادو لري کوئي نه ؟ نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل ماته الله ﷻ شفا راکړه او خه په خلقو باندي بدني لري کولو نه ويريږم. (۳)حضرت وهب رحمه الله فرمائي چه د بيري اووه پتي دي واخستي شي او په چتو دي ميده کړي شي او په اوبو کښي دي ګډ کړي شي ،بيا دي په دي باندي آيت الکرسي اووائي او

---

[1] ) صحيح بخاري : کتاب الطب باب السحر: ۵۷٦۳، صحيح مسلم: ۲۱۸۹)-
[2] ) صحيح بخاري : کتاب الطب ، باب هل يستخرج السحرتعليقا)-
[3] ) صحيح بخاري : کتاب الطب باب السحر: ۵۷٦٦، صحيح مسلم: ۲۱۸۹)-

چه په چا باندې جادو شوې وي هغه ته دې درې کوټه ورکړېشي او په باقي اوبودې غسل اوکړي نوانشاء الله دده به دجادو اثر لرې شي. داعمل دهغه سرې دپاره ډېر ښه دې چه د خپلې بي بي نه منع (بند) کړې شوې وي. دجادو لرې کولو اوددې ختمولودپاره دټولونه ښه څيز سورت الفلق اوسورت الناس دې سورتونه دی. په حديث مبارك کښې دی چه ددې په شان هيڅ تعويذ نشته دې.[1] داشان آيت الکرسي هم دشيطان لرې کولو دپاره ډېر داعلی درجې څيز دې.[2]

## د جادو حکم

**مسلك حنفی:-** دسحر په باره کښې پوره تفصيل زه دلته کښې نشم کولې خکه چه د سحر مختلف قسمونه دی او دهريو خپل خپل حکم دې که تفصيل غواړئ نو احکام القران للعثمانی رحمه الله ته رجوع اوکړئ.(احکام القران (۱/۱۱۱ ۴۰ تا ۵۳).

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا تَقُوْلُوْا | رَاعِنَا | وَقُوْلُوا انْظُرْنَا |
| اے هغه کسانو چې ايمان موراوړې دې | مه وايئ | راعنا تکې | اووايئ | انظرنا |
| اۓ مسلمانانو تاسو هيڅرې لفظ د راعنا مه وائي | | | او ددې په ځائې انظرنا وائي | |
| وَاسْمَعُوْا | وَلِلْكٰفِرِيْنَ | عَذَابٌ اَلِيْمٌ | مَا يَوَدُّ | الَّذِيْنَ |
| اواورئ خبره په توجه سره | اودې دپاره دکافرانو | عذاب دردناك | نهٔ خوښوی | هغه کسان |
| اوخبرې ته ښه غور اوونيسئ اوکافرو دپاره دردناك عذاب مقرر دې | | | نو خوښوی هغه کسان | |
| كَفَرُوْا | مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ | وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ | اَنْ | يُّنَزَّلَ |
| چې دحق نه ئې انکارکړې دې | د اهل کتابونه | اونهٔ د مشرکانونه | دا خبره چې | نازل شي |
| چه کفرئې کړې دې د اهل کتابو نه | | اونه بت پرست مشرکان | چې په تاسو نازل شي | |
| عَلَيْكُمْ | مِّنْ خَيْرٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ | وَاللّٰهُ | يَخْتَصُّ | بِرَحْمَتِهٖ مَنْ |
| په تاسو باند څهٔ | خيرد طرفه درب ستاسو نه | اوالله | خاص کوی | په رحمت خپل سره هغه خوك چې |
| په تاسوباندې دخپل پروردګار دطرفنه لږ ډېر خير (وحی) | | اوالله خپل رحمتونه خاص هغه چا ته ورکوی | | |
| يَّشَآءُ | وَاللّٰهُ | ذُو الْفَضْلِ | الْعَظِيْمِ | |
| خوښ ئې شي | اوالله | خاوند دفضل | لوئ دې | |
| چې چاته ئې رضا شي (هغه دچانه مشورې نه اخلی) | | | | |

**د مشتبه الفاظو د نه استعمال حکم :-** په دې آيت کښې الله ﷻ خپلو مومنانو بندګانوته دکافرو په شان بول چال او دهغوی دکارونومشابهت نه منع کوی. يهودو به بعضې الفاظ په پټه ژبه کښې ونيل. او دهغې مطلب به ئې بد اخستو. هرکله چه به هغوی دا ونيل چه زمونږ واوره نو ونيل به ئې "راعنا" او ددې نه مراد به ئې رعونت او سرکشي اخسته لکه په بل ځائې کښې فرمائي چه ﴿مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا الخ﴾ په يهودو کښې داسې خلق هم دی چه هغوی خبرې داصليت نه اړوی او وائی چه مونږ آورو خو منو ئې نه خپلې ژبې به ئې کږې وږې کړې او په دين کښې د طعنې دپاره به ئې ﴿رَاعِنَا﴾ ونيل. او که اوونيلې شی

[1] ) نسائی کتاب الاستعاذه باب ماجاء فی سورتی المعوذتين : ۵۴۴۰، وهو حسن )-
[2] ) صحيح بخاری : کتاب فضائل القران باب فضل فی سورة البقرة : ۵۰۱۰)-

چه مونږ واوریدل او مونږ اومنل اوزمونږ خبره واوره او مونږ طرفته متوجه شه نو ددوی دپاره به دا بهتر وې اومناسب به وې خو ددوی دکفر په وجه الله ﷻ دوی لره دخپل رحمت نه لرې کړی دی په دوی کښې ایمان ډیر کم دې.

په احادیثو مبارکو کښې دی چه کله خلق سلام کوی نو (السامرعلیکم)وائی او د (سام)معنی مرګ دې نو تاسو ددوی په جواب کښې (وعلیکم)وائې ، زمونږ دعا به ددوی په حق کښې قبوله شی اوددوی بددعا به زمونږ په حق کښې قبوله نه وی. ([1]) غرض دا چه په قول او فعل کښې ددوی مشابهت منع دې. په مسند احمد کښې یو حدیث دې چه " خه قیامت ته نزدې دتورې سره لیږلې شوې یم ، زما رزق الله ﷻ دتورو او نیزو لاندې اېښودې دې ، ذلت اورسوائی دهغه خلقو دپاره ده چه څوک زما احکامو خلاف کوی. اوچه دکوم سړې یو غیر مسلم قوم سره مشابهت اوکړی هغه دهغوی نه دې([2])په ابو داود کښې هم دامشابهت والا حصه روایت شوې ده([3])ددې آیت او حدیث نه ثابت شو چه کافرواقوال ،لباس ، اختر اوعبادت کښې دهغوی مشابهت کول زمونږ دپاره مشروع او مقرر نه دی ،سخت منع دی او په دې باندې شریعت کښې دعذاب زورنه اوسخته ویره او حرمت دی.

**مسلمانانو ته د خطاب نه پس:-** حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائی چه کله تاسو په قران کریم کښې واورئی چه ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ نو غوږ ورته کیږدئی اودزړه په توجه سره ئې آورئی نود څه بدئی نه به ممانعت وی یا به دنیکئ حکم وی. حضرت خیثمه ﷺ فرمائی چه په تورات کښې الله ﷻ بنی اسرائیلو ته خطاب کوی او فرمائی چه (یاایهاالمساکین) خو د محمد ﷺ امت ته ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ په معززو الفاظو سره خطاب کوی.د ﴿رَٰعِنَا﴾ معنی ده زمونږ طرفته غوږ اونیسه. لکه (عاطنا)([4])حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه ددې معنی دمخالفت ده ([5])یعنی خلا ف مه وایه . ددوی نه دا هم روایت دې چه مطلب دادې چه نه زمونږ واوره او مونږ به ستا. انصارو هم دا لفظ نبی کریم ﷺ ته ونیل شروع کړې وو ، خو قران پاك ددې نه دوی منع کړل([6])حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه راعن وائی دخندا خبرې ته یعنی تاسو د نبی کریم ﷺ خبرو او اسلام سره خندا مه کوئی. ابوصخر رحمه الله وائی چه کله به نبی کریم ﷺ تلو او دوی به ورته څه خبره کوله نودوی به ونیل خپل غوږ دې خوا کړه. الله ﷻ دوی ددې بې ادبئ نه منع کړل. او دخپل نبی دعزت کولو تعلیم ئې ورکړو. حضرت سدی رحمه الله فرمائی چه رفاعه بن زید یهودی نبی کریم ﷺ سره خبرې کولې اودا الفاظ ئې ونیل. مسلمانانو هم دا خیال اوکړو چه دا د ادب لفظ دې نودوی هم لفظ ونیل شروع کړو. چه ددې نه دوی منع کړې شو. لکه څنګه چه په سورت نساء کښې دی . مقصد دادې چه داکلمه الله ﷻ ته بند او نه لګیده او ددې د استعمال نه ئې مسلمانان منع کړل. لکه څنګه چه په حدیث مبارك کښې دی چه انګور ته کرم او غلام ته عبد مه وائې ([7])وغیره . او الله ﷻ ددې بدظنو خلقو حسد او بغض بیانوی چه انې مسلمانانو ! چه تاسو ته ددې کامل نبی ﷺ په ذریعه کامل شریعت ملاؤ شوې دې ، ددې نه دوی سوزی ، دوی ته اووایه چه دا خودالله ﷻ فضل دې چه چاته ئې ورکول غواړی نو ورکوی ئې . هغه ډیر لوئې فضل والا او کرم والا دې.

---

[1] )صحیح بخاری : کتاب الاستئذان ، باب کیف الراد علی اهل الذمة بالاسلام: ٦٢٥٧، صحیح مسلم : ٢١٦٤)-
[2] ) احمد ٢/٥٠)-
[3] ) ابو داود: کتاب للباس: باب فی لبس الشهرة: ٤٠٣١، وهو حسن مشکل الاثار للطحاوی: ١/٨٨)_
[4] ) الطبری: ٢/٤٦١)-
[5] ) ابن ابی حاتم: ١/٣١٨)-
[6] ) ابن ابی حاتم : ١ /٣١٨ )-
[7] ) صحیح مسلم : کتاب الالفاظ من الادب ، باب کراهیة العنب کرما: ٢٢٤٨، صحیح بخاری: ٢٥٥٢)-

| مَا نَنۡسَخۡ | مِنۡ اٰيَةٍ |
|---|---|
| هغه چې منسوخ کوو مونږ | يو آيت |
| مونږ چې کوم حکم منسوخ کړو | |

| اَوۡ نُنۡسِهَا | نَاۡتِ | بِخَيۡرٍ | مِّنۡهَآ | اَوۡ مِثۡلِهَا | اَلَمۡ | تَعۡلَمۡ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يائې هير کړو | نو راوړو مونږ | بهتر | د هغه ايت نه | يا په مثل دهغې | آيا نشته | علم تاته |
| يائې ستا زړه نه هيروو | نو دهغې نه غوره يا دهغې پشان (بل حکم) راليږو | | | اولې ته نه پوهيږې | | |

| اَنَّ اللّٰهَ | عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ | قَدِيۡرٌ | اَلَمۡ | تَعۡلَمۡ | اَنَّ اللّٰهَ | لَهٗ | مُلۡكُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې بيشکه الله | په هرځيز باندې | قادر دی | آيا نشته | پته تاته | چې بيشکه الله | لره ده | بادشاهي |
| چې الله په هرڅه قدرت لري | | | آيا ته نه پوهيږې (بلکه ښه پوهيږې) چې بادشاهي | | | | |

| السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ | وَمَا | لَكُمۡ | مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ | مِنۡ وَّلِىٍّ | وَّلَا نَصِيۡرٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| دآسمانونو اودزمکې | او نشته | ستاسو دپاره | ماسوا د الله نه | څوک دوست | او نه مددګار |
| دآسمانونو اودزمکې يوازې دالله ده او بې دالله نه ستاسو څوک دوست نشته او نه څوک مددګار شته | | | | | |

**دناسخ اومنسوخ بحث** :- حضرت ابن عباس ؓ فرمائي چه دننسخ معنی دبدلون ده. حضرت مجاهد ؒ فرمائي چه د ختمولو په معنی کښې دی. چه هيڅ کله په ليکلو کښې باقي پاتې نشي. او حکم بدليږي. د حضرت ا بن مسعود ؓ شاګرد او ابوالعاليه ؒ او محمد بن کعب قرظی ؒ نه هم دا شان روايت دې.ضحاك ؒ فرمائي چه دهيرولو په معنی کښې دی. عطاء ؒ فرمائي چه د پريښودلو په معنی کښې رازی.سدی ؒ فرمائي چه داوچتولو په معنی دی. لکه آيت ﴿الشيخ والشيخة اذازنيا فارجموهما البتة﴾ يعنی زانی سړی او زانيه ښځه دې سنګسار کړې شی ، او لکه څنګه چه په آيت ﴿ لوکان لابن ادمو اديان من ذهب لابتغی لهما ثالثا﴾ يعنی ابن آدم ته که دوه ځنګلونه ملاو شی نو بيا به هم دې د دريم په تلاش کښې وی. ابن جرير ؒ فرمائي چه په احکامو کښې بدلون ته مونږ کوو. حلال لره حرام ، حرام لره حلال،جائز لره ناجائز او ناجائز لره جائز وغيره. حکم کول ، منع کول او رخصت او اجازت او په ممنوعه کارونو کښې تنسيخ وی. خو چه کوم خبر ورکړې شوې دې ، واقعات بيان شوی دی په هغې کښې ردوبدل او ناسخ اومنسوخ نه کيږی.

**دنسخې لفظی معنی**:- د نسخ لفظی معنی نقل کول دی. لکه دکتاب ديو نسخې نه بله نسخه نقل کول. داشان ديو حکم په بدله کښې بل حکم بدلول. دې وجې نه دې ته نسخ وائی. که د حکم بدلون وی اوکه د الفاظو بدلون وی.

**د نسخ اصطلاحی معنی**:- د علماء اصول عبارتونه اګر چه په دې کښې مختلف دی خو د معنې په لحاظ سره ټول نزدې نزدې دی. دنسخ معنی په شرعی حکم کښې ددې دروستو والا دليل په وجه لرې کول دی. کله د آسان ځيز په بدله کښې ګران وی او کله د ګران په بدله کښې آسان. اوکله هډو څه بدلولې نشی،پاتې شو دنسخ احکام ، ددې قسمونه او ددې شرائط وغيره د فن په کتابونو کښې کتل پکار دی. په تفسير کښې ددې احکامو دبيانولو ځائې نشته دې.

په طبرانی کښې يو حديث دې چه دوه کسانو د حضرت نبی اکرم ﷺ نه يوسورت ياد کړې وو ، او دوی به هغه لوستلو. يوځل نې دشپې په مونځ کښې ډير ګوشش اوکړو چه دا اووائی خو قوت حافظې ورسره ملګرتيا اونکړه. په دې اوويريدل او د حضرت نبی اکرم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او حضرت

نبی اکرم ﷺ ته ئې ددې ذکر اوکړو. حضرت نبی اکرم ﷺ ورته اوفرمائیل دا منسوخ شوې دې او هېر کړې شوې دې، دزړونو نه اوښکلې شوې دې ،تاسو هیڅ غم او فکرمه کوئی.
زهری به د نون خفیفه پیش سره ونیلو(نُنسِهَا) ددې یو راوی سلیمان بن ارقم دې او هغه ضعیف دې ابوبکر انباری رحمه الله نه هم په بل سند سره دا مرفوغ روایت نقل کړې دې. لکه د قرطبی رحمه الله بیان دې چه (ننسها) لره (ننساها) هم ونیلې شوې دې.د (ننساها) معنی روستوکول اوموخر کول دې.حضرت ابن عباس رضی الله عنه ددې په تفسیر کښې فرمائی چه یعنی مونږ دا پرېږدو ، منسوخ کوؤ نه . د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه شاګرد وائې یعنی مونږ ددې الفاظو لره باقی ساتو او حکم ئې بدلوؤ. عبد بن عمیر رحمه الله ، مجاهد رحمه الله اوعطاء رحمه الله نه روایت دې چه مونږ دا موخر کوؤ او روستو کوؤ ئې. عطیه عوفی رحمه الله ، سدی رحمه الله او ربیع رحمه الله وائی یعنی منسوخ کوؤ ئې نه،ضحاك رحمه الله وائی چه ناسخ منسوخ لره روستو کوی. ابوالعالیه رحمه الله وائی چه دا خپل ځان سره ساتو. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په خطبه کښې (ننساها) اوونیل اوددې معنی موخر کول ئې بیان کړې ده. (ننساها) چه کله اووائی نو مطلب به ئې داوی چه مونږ دا هیروؤ. الله ﷻ چه کوم حکم لره اوچتول غوښتل نوهغه به ئې د حضرت نبی اکرم ﷺ نه هیرولو داشان هغه آیت به پورته شو. سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه به دا ( ننسها) ونیلو. نوده ته قاسم بن ربیعه اوونیل چه سعید بن مسیب رحمه الله خو دا (ننساها) وائی.نوهغوی اوفرمائیل چه په سعید یا د سعید په خاندان خو قران پاك نه دې نازل شوې. الله ﷻ فرمائی چه ( سَنُقۡرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰٓ ) (مونږ به تاته زده کوؤ چه هغه به ته نه هیروې). او فرمائی چه ( وَٱذۡكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ ) (هرکله چه هیر کړې نو خپل رب لره یاد کره). حضرت عمر فاروق رضی الله عنه فرمائی چه حضرت علی رضی الله عنه دټولونه ښه فیصله کولو والا دې. او ابی رضی الله عنه دټولونه زیات قاری دقران پاك دې او مونږ د ابی رضی الله عنه قول پرېږدو ځکه چه ابی رضی الله عنه وائی چه ما څه درسول الله ﷺ نه آوریدلی دی هغه به نه پرېږدم .اوالله ﷻ فرمائی چه (مَا نَنسَخۡ) یعنی مونږ چه څه منسوخ کړل یا هیرکړو نوهغې نه بهتر راوړو. یا ددې پشان یا ددې نه بهتر وی. (بخاری و مسند احمد)یعنی د بندګانودسهولت یا ددوی دآرام لحاظ سره یا ددې په شان وی خو دالله ﷻ مصلحت په دې روستی ځیز کښې وی.

**دنسخې جواز:-** الله ﷻ حاکم مطلق او مختار کل دې. په مخلوق کښې هیر پهیر کولووالا ، دپیدانش او د حکم اختیار لرلو والایوالله ﷻ دې. چه څنګه غواړی نو جوړوی او چه چاته اوغواړی نو نیك بختی ورکوی او چه چالره اوغواړی نو بدبختی ورکوی ، چالره چه اوغواړی نو صحت ورکوی او چالره چه اوغواړی بیماری ورکوی. چالره چه اوغواړی نو توفیق ورکوی او چالره چه اوغواړی نو بدنصیبه ئې کړی. په بندګانو چه کوم حکم غواړی نوجاری کوئی ئې ، چه څه اوغواړی نو حلالوی او چه څه اوغواړی نوحراموی،چالره چه اوغواړی نو رخصت ورکړی او چالره چه اوغواړی نو منع ئې کړی ، هغه حاکم مطلق دې چه څه احکام جاری کول غواړی نو هغه جاری کړی او ،هیڅوك دهغه حکم نشی ردکولې . چه څه غواړی هغه کوی دهغه نه څوك تپوس کولو والا نشته دې.هغه پاك ذات بندګانو لره آزمائی اوګوری چه هغوی دنبیانواو د رسولانو څنګه تابعداری کوی ، دیو ځیز دمصلحت په وجه ئې د هغې حکم ورکړو او بیا د څه مصلحت په وجه ئې هغه ختم کړو. اوس آزمښت کیږی دنیکو خلقو نو په هغه وخت هم هغوئ لاس په نامه ولاړ وو او اوس هم دی. خوبد باطن خلق خبرې جوړوی او پوزې نچونړه وی.حالانکه ټول مخلوق لره پکار دی چه دخپل خالق ټولې خبرې اومنی.اوپه هر حال کښې د رسول ﷺ په نقش قدم باندې تلل پکار دی او چه څه اووائی هغه په زړه سره منل پکار دی ، او چه څه حکم ورکوی هغه منل پکار دی او چه دکومو نه منع اوکړی نو دهغې نه دې منع اوکړی.

**د یهودیانودعدم نسخ تردید:-** په دې ځائې کښې هم دیهودیانو زبردست رد دې. اودهغوی دکفر بیان دې چه هغوی د تنسیخ قائل نه وو. بعضې خووائی چه په دې کښې محال عقلی لازم رازی او بعضې به

محال نقلي منلو. په دې ايت کښې اګر چه خطاب رسول کريم ﷺ ته دې مګر دراصل دا کلام يهوديانو ته آورول دی.چه هغوی انجيل اوقران په دې وجه نه منلو چه په دې کښې بعضې احکام د تورات منسوخ شوي وو. او هم په دې وجه هغوی ددې نبيانو د نبوت نه هم دعناد او تکبر په وجه منکر وو. ګنی عقلاً نسخ محال نه ده خکه چه څنګه هغه په خپلو کارونو کښې بااختيار دې داشان په حکمونوکښې هم بااختيار دې چه څه غواړي اوکله غواړي ، څنګه غواړي او څنګه ئې غواړي او چه په څه وخت کښې ئې غواړي،داشان چه څه غواړي او په څه وخت کښې ئې غواړي حکم ورکوی ، ددې حاکمانوحاکم څوك دې؟داشان نقلاً داهم ثابت شوې امردې چه کوم په ړومبنی کتابونوکښې او په ړومبنی شريعتونو کښې موجود دې.

**فرعي احکامو کښې تبديلۍ:** ①د حضرت آدم ﷺ خامن او لونړه په خپلو کښې رونړه خوندې وې ليکن نکاح ئې جائز وه. بيا ئې دا حرام کړل②حضرت نوح ﷺ چه کله په کشتۍ کښې سور شو نو په دې وخت کښې دټولوحيواناتو خوراك حلال وو. خو بيا دبعضو حلت منسوخ شو③د دوو خوندو نکاح په بنی اسرائيلو اوددوی په اولاد حلاله وه ليکن بيا ددې نه پس په تورات کښې حرام شو④حضرت ابراهيم ﷺ ته د خوئې د قربانی کولو حکم اوشو بيا د قربانۍ کولو نه مخکښې مخکښې دا منسوخ کړې شو⑤بنی اسرائيلو ته حکم شوی وو چه څوك د سخی په عبادت کولو کښې شامل وو ټول دې خپل خانونه قتل کړی خو اوسه پورې لا ډير باقي وو چه دا منسوخ کړې شو. داشان نور ډير واقعات موجود دی ، او پخپله يهوديان هم ددې اقرار کوی ، ليکن بيا هم قران پاك او نبی آخر الزمان ﷺ لره دوی نه منی اودا وائی چه په دې سره دالله تعالی په کلام کښې نسخ لازميږی او هغه محال ده.

بعضې خلق ددې په جواب کښې په لفظی بحثونو کښې پريوزی ، هغوی دې يادساتی چه په دې سره دلالت نه بدليږی او مقصودتری هغه دې. د رسول کريم ﷺ بشارت به دې خلقو په خپلو کتابونو کښې موندلو ، د رسول کريم ﷺ د تابعدارئی حکم به ئې کولو ، اودا ورته هم معلوم وو د رسول کريم ﷺ شريعت مطابق کوم يو عمل نه وی هغه مقبول نه دې.دا بيله خبره ده چه څوك اووائی چه هغه مخکښې شريعتونه صرف د رسول کريم ﷺ تر راتلو پورې وو،ددې وجې دهغوی دا شريعت ناسخ نشو ، يا اووائی چه ناسخ دې. بهر حال د رسول کريم ﷺ دتابعدارئی نه بغير هيڅ چاره نشته دې. خکه چه رسول کريم ﷺ د الله ﷻ د طرفنه خپل آخری کتاب راوړی دې ، نو په دې آيت کښې الله ﷻ دنسخ جواز بيان کړې دې او ددې ملعونې دلې يعنی يهودو رد ئې کړې دې.په سورت آل عمران کښې هم بنی اسرائيلو ته خطاب شوې دې ، دنسخ دواقع کيدو ذکر موجود دې. فرمان دې چه ﴿ كُلُّ الطَّعَامِ ﴾ يعنی ټول خوراکونه په بنی اسرائيلوباندې حلال وو خو چه کوم يو څيز حضرت اسرائيل ﷺ په خپل خان باندې حرام کړې وو ، دهغې نور تفصيل به مخکښې په هغه مقام باندې راشی انشاء الله . دټولو مسلمانانو په دې باندې اتفاق دې چه دالله ﷻ په احکامو کښې نسخ کول جائز دی بلکه واقع شوې هم دې. اوهم په دې باندې دالله ﷻ حکمت بالغه دې.

**دابومسلم اصبهانی نظريه د عدم نسخ :-** ابو مسلم اصبهانی مفسر ليکی چه په قران پاك کښې نسخ نه واقع کيږی خودده دا قول ضعيف دې اومردود دې او صرف غلط او دروغ دې. چه په کوم کوم خانې کښې د قرانپاك نسخ موجود ده ددې په جواب کښې اګر چه ابو مسلم ډير محنت کړې دې خو بې سوده دې. چه د کومې ښځې خاوند مړ شی . مخکښې دهغې عدت يو کال وو ، بيا څلور مياشتې لس ورځې شو. او دواړه آيتونه په قران پاك کښې موجود دی. قبله مخکښې بيت المقدس وه او بيا کعبه شوه. دويم آيت بالکل صفا او ړومبی حکم ضمناً ذکر شوې دې. مخکښې مسلمانانو ته حکم وو يو يو مسلمان دې لسولسو کافرو سره جنګ کوی اوددوی دمقابلې نه دې مخ نه اړوی. خوبيا دا منسوخ شو او د دوو په مقابله کښې دصبر کولو حکم اوشو او دواړه آيتونه په کلام الله کښې موجود دی. مخکښې

حکم وو چه نبي ﷺ سره دپټو خبرو نه مخکښې صدقه ورکوئی خوبيا دا حکم منسوخ شو او دواړه آيتونه په قران پاك کښې موجود دی ، وغيره وغيره ، والله اعلم.

| أَمْ تُرِيدُونَ | أَنْ تَسْأَلُوا | رَسُولَكُمْ | كَمَا | سُئِلَ |
|---|---|---|---|---|
| نوآيا تاسو غواړئ | اچې تپوسونه اوکړئ | د رسول خپل نه | لکه څنګه چې | تپوسونه شوی وو |

آيا تاسودخپل پيغبرنه هغه شان تپوسونه کول غواړئی لکه څنګه چې به د دې نه وړاندې د موسی

| مُوسَىٰ | مِنْ قَبْلُ | وَمَنْ يَتَبَدَّلِ | الْكُفْرَ | بِالْإِيمَانِ | فَقَدْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دموسی ﷺ نه | مخکښې ددې نه | حالانکه څوك چې بدلوی | کفر | په ايمان باندې | نو يقينا چې |

نه ددې نه تپوسونه کولې شوا اوچاچې کفرپه ايمان بدل کړو نوبيشکه

| ضَلَّ | سَوَاءَ السَّبِيلِ |
|---|---|
| بې لاره شو | دصحيح لارې نه غواړې |

هغه دسمې لارې نه واوړيدو شو(اوپه غلطه لار روان شو)

**د بې فائدې سوالونو نه ممانعت**:- په دې ايت کريمه کښې الله ﷻ ايماندار منع کوی چه د څه واقعې د کيدو نه مخکښې زما دنبی نه فضول سوالونه مه کوئی. د ډيرو سوالونو عادت ډير خراب دې. لکه دالله ﷻ ارشاد دې چه﴿ يَآأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَاتَسْئَلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ ﴾ (اې ايماندارو دهغه څيزونو سوال مه کوئی که هغه ښکاره کړې شی نو ستاسو به خوښ نه شی اوکه د قران پاك د نازليدو په زمانه کښې داسې خبرې اترې کوئی نو دا څيزونه به ښکاره کړې شی. هسې نه چه د يو څيز باره کښې دسوال کولو نه مخکښې هغه څيز حرام نشی).

**بې مطلبه تپوس کول**:- په صحيح حديث مبارك کښې دی چه په مسلمانانو کښې دټولونه غټ مجرم هغه دې چه ديو څيز باره کښې سوال اوکړی چه هغه حرام نه وو او دده په سوال کولو سره هغه څيز حرام شو [1] يوځل د رسول کريم ﷺ نه تپوس اوشو که يو سړې خپلې ښځې سره پردې سړې اووينی نو څه به کوی ؟ که خلقو ته ددې خبر کوی نو دا هم ډيره دبې شرمئ خبره ده او که نه کوی نو دا هم ډيره دبې غيرتئ خبره ده. رسول کريم ﷺ ته داسوال ډير خراب معلوم شو. آخر هم په دې سړی باندې داقسمه واقعه راغله اود لعان حکم نازل شو. [2]

دبخاری او مسلم په يوحديث کښې دی چه رسول کريم ﷺ د بکواس کولو نه او مال ضائع کولو او زياتوتپوسونو کولو نه منع فرمانيلې ده. [3] په صحيح مسلم کښې دی چه ترکومې پورې څه څه اونه وايم تر هغه وخته پورې تاسو هم څه تپوس مه کوئی. ستاسو نه مخکښې خلق هم داشان خصلتونو هلاك کړی دی چه هغوی به ډيرزيات سوالونه کول. او خپلو نبيانو سره به ئې اختلاف کولو. هرکله چه څه تاسو ته څه حکم اوکړم نودخپل طاقت مطابق هغه پوره کوئی اوکه تاسو لره منع کوم نو منع کيږئ. دا رسول کريم ﷺ په هغه وخت کښې فرمائيلی وو چه کله ئې خلقو ته خبر ورکړو چه الله ﷻ په تاسو باندې حج فرض دې.، نو چا رسول کريم ﷺ ته اووئيل چه هر کال؟نو رسول کريم ﷺ خاموش شو.هغه بياتپوس اوکړو.رسول کريم ﷺ هيڅ جواب ورنکړو. هغه په دريم ځل سوال اوکړو.رسول کريم ﷺ

[1] ) صحيح بخاری : کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة باب ما يکره من کثرة السوال: ۷۲۸۹، صحيح مسلم: ۲۳۵۸)-
[2] ) صحيح بخاری : کتاب التفسيرباب سورة النور:۴۷۴۵)-
[3] ) صحيح بخاری کتاب الاستقراض ، باب ما ينهی عن اضاعة المال : ۲۴۰۸، صحيح مسلم: ۱۷۱۵)-

اوفرمانيل هر کال نه . ليکن که ما اوئيلی وې نو هر کال به فرض شوې وو اوبيا به تاسو دا حکم هيڅکله نشو پوره کولې. (۱)بيا رسول کريم ﷺ دا مخکښې آيت مبارك اولوستلو.حضرت انس ﷺ فرمائي چه کله مونږ د رسول کريم ﷺ نه دسوال کولو نه منع کړې شو نو مونږ د رسول کريم ﷺ نه به تپوس کولو کښې ويره کيده او مونږ به غوښتل چه يو ناواقفه سړې راشي او هغه تپوس اوکړي او مونږ نې واورو. (۲)حضرت براء بن عازب فرمائي چه کله به ما د رسول کريم ﷺ نه څه سوال کول غوښتل نوکلونه کلونه به تيرشو نودهيبت په وجه به ما جرات نشو کولې. مونږ خو خواهش ساتلو چه څوك اعرابي راشي او د رسول کريم ﷺ نه سوال اوکړي اومونږ نې هم واورو(۳)ابن عباس ﷺ فرمائي چه د حضرت محمد ﷺ د اصحابونه بهتر جماعت بل نه وو ، هغوی رسول کريم ﷺ صرف دولس کاله مسائل اوپوښتل چه ټول په ټولـه پـه قـران پاك کښې سوال وجواب سره ذکر دی لکه دشرابو سوال ، دحرمت والامياشتې په باره کښې سوال ، ديتيمانو په باره کښې سوال وغيره وغيره. (۴)

په دې ځائې کښې " ام " يا خو د بل په معنی کښې دې يا په خپله اصلی معنی کښې دې. يعنی دسوال په باره کښې چه په دې ځائې کښې ا نکاری دې. دا حکم دمومن کافر ټولو دپاره دې. ځکه چه د رسول کريم ﷺ رسالت دټولو دپاره وو. په قرآن پاك کښې په بل ځائې کښې دی چه ﴿يَسْـَٔلُكَ أَهْلُ الْكِتٰبِ﴾ (اهل کتاب ستاسونه سوال کوی چه ته په هغوی باندې څه آسمانی کتاب نازل کړې هغوی داسې سوال د حضرت موسٰی ﷺ نه هم کړې ووچه الله ﷻ مونږ په خپلو سترګوسره کتل غواړو چه دهغوی د ظلم په وجه هغوی د تيز آواز په وجه هلاك کړې شو). رافع بن حريمله او وهب بن زيد ونيلی وو چه ائې حضرت محمد ﷺ په مونږ باندې څه آسمانی کتاب نازل کړه چه هغه مونږ وايو او زمونږپه ښارونو کښې هغه دريابونه جاری کړې. نو بيا به مونږ تاسو رسول کريم ﷺ لره اومنو ، نو په دې باندې دا آيت نازل شو.

ابوالعاليه وائې چه يوسړي رسول کريم ﷺ ته اووئيل يارسول الله ﷺ چه کاش زمونږ دګناهونو کفاره هم هغه وې لکه څنګه چه دبنی اسرائيلو دګناهونو وه. ددې په آوريدو رسول کريم ﷺ درې ځل دالله ﷻ په درګاه عاليه کښې عرض اوکړو چه ائې الله ﷻ مونږداسې نه غواړو مونږ دا سې نه غواړو. بيائې عرض اوکړو چه واورئې په بنی اسرائيلو کښې به چه چا څه ګناه کوله نو دهغه په دروازه باندې به ليکلې کيدل او ورسره به ددې کفاره هم ليکلې کيدله. اوس خو يادنياوی رسوائی منظوره کړئې اوکفاره ادا کړئې او خپل پټ ګناهونه ښکاره کړئې يا کفاره مه ورکوئې اود آخرت رسوائی منظوره کړئې. خوتاسو ته الله ﷻ فرمائيلی دی چه ﴿ وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْيَظْلِمْ نَفْسَهٗ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴾ ( چه دچا نه څه خراب کاراوشي يا هغه په خپل ځان باندې ظلم اوکړی،بيا بخښنه غواړی نو دې به الله ﷻ لره ډيربخښنې والا اومهربانه ذات بيامومی). داشان يومونځ تر بل مونځ پورې دګناهونوکفاره ګرزی. بيا يوه جمعه تر بلې جمعې پورې دګناهونو کفاره ګرزی. واورئې چه کوم سړې د بدئ اراده اوکړي او بدی اونکړې نودده په حق کښې بدی نه ليکلې کيږی ، اوکه د نيکئ اراده اوکړي او هغه نيکی اونه کړی نو بياهم دده دپاره نيکی ليکلې کيږی. او که نيکی اوکړی نو بيا دده دپاره لس نيکئی ليکلې کيږی. اوس تاسو اووائې تاسوښه شوئې او که بنی اسرائيل ؟ نه تاسو د بنی اسرائيلو نه ډير ښه يئ . باوجود ددې دومره کرم او رحم نه بيا هم که څوك هلاك شی نو پوهه شئ چه هغه پخپله هلاك شو. نوپه دې باندې داآيت نازل شو.

---

۱) صحيح بخاری : کتاب الاعتصام ، باب الاقتداء بسنن رسو ل الله ﷺ : ۷۲۸۸، صحيح مسلم :۱۷۱۵)-
۲) صحيح بخاری : کتاب الاعتصام با ب الاقتداء بسنن رسول الله ﷺ : ۷۲۸۸، بدون قصة ومسلم: ۱۳۳۷)-
۳) ددې سند دشرط مسلم مطابق دې )-
۴) مجمع الزوائد: ۱۵۹/۱، ۱

قریشو رسول کریم ﷺ ته اوونیل که د صفا غر دسرو زرو شي نو مونږ به تاسو باندې ایمان راوړو رسول کریم ﷺ اوفرمائیل ښه د مانده (آسماني دسترخوان ) والو چه څه انجام وو هغه به ستاسو هم شي. نو په دې باندې هغوی انکاری شو او خپل سوال نې پرېښودو. مراد دا دې چه په سرکشئ او عنادسره دنبیانو نه سوال کول ډېر دغندنې حرکت دې . چه کفر لره دایمان په بدله کښې اخلی او آسانی دسختئ په بدله کښې اخلی نوهغوی دنیغې لارې نه اړوی او جهالت او ګمراهئ کښې پرېوزی. داشان دغیرضروری سوالونو کولو نه هم .لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿ اَلَمۡ تَرَ اِلَى الَّذِیۡنَ بَدَّلُوۡا ﴾ (آیا نه هغه کسانوته نه ګورې چه دالله تعالی نعمتونو لره په کفر سره بدلوی او خپل قوم لره په هلاکت کښې اچوی ، دوی به جهنم ته داخلیږی اوهغه ډېر خراب ځائې دې.

وَدَّ کَثِیۡرٌ مِّنۡ اَهۡلِ الۡکِتٰبِ لَوۡ یَرُدُّوۡنَکُمۡ
| غواړی | اکثر خلق | د اهل کتابونه | چې واپس کړی تاسو
ډېر اهل کتاب (کافر) داغواړی چې

مِّنۡۢ بَعۡدِ اِیۡمَانِکُمۡ کُفَّارًا ۚ حَسَدًا مِّنۡ عِنۡدِ اَنۡفُسِهِمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَا
روستو| دایمان ستاسونه|اوشئ تاسو کافران |دوجې دحسدنه|دطرفه دخپلونفسونو |اروستو دهغې نه
چې تاسودایمان راوړلونه پس بیادوباره کافران کړی | ځکه چې په زړونو کښې نې حسدشته دې سره دې نه چه

تَبَیَّنَ لَهُمُ الۡحَقُّ ۚ فَاعۡفُوۡا وَاصۡفَحُوۡا حَتّٰی یَاۡتِیَ اللّٰهُ
چې ښکاره شو| هغوئ ته حق| نو معافی کوئ | اومخ اړوئ|تر هغې پورې چې | راولیږی الله
په ښه شان سرګنده شوې ده چې دادین (اسلام)حق دې نوتاسو(فی الحال)دوئ معاف کړئ اومخ ترې واړوئ تردې

بِاَمۡرِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ ﴿۱۰۹﴾ وَاَقِیۡمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا
فیصله خپله| بیشکه چې الله| په هر څیز باندې | قادر دې| اوقائیموئ | مونځ| اوورکوئ
چې الله خپل حکم راولیږی| بیشکه الله په هرڅه پوره پوره قدرت لری ||اومونځونه کوئی او زکاة

الزَّکٰوةَ ؕ وَمَا تُقَدِّمُوۡا لِاَنۡفُسِکُمۡ مِّنۡ خَیۡرٍ تَجِدُوۡهُ
زکاة | اوهغه | چې مخکښې لیږئ تاسو| دپاره دځانونو خپلو| څه نیکی | اوبه مومئ هغه|
ورکوئ||اوتاسو چې ځان نه مخکښې هر څه نیکی اولیږله نویقین اوکړنی چې بیا مومئ

عِنۡدَ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِیۡرٌ ﴿۱۱۰﴾
دالله سره | بیشکه | چې الله | د هغه څه | چې کوئ نې تاسو | لیدونکې دې |
هغه دالله څخه بیشکه چې الله ستاسو کارونه وینی ګوری اودوئ وای؛

**دایت شان نزول:-** دحضرت ابن عباس ؓ نه روایت دې چه حيي بن اخطب او ابویاسر بن اخطب دا دواړه یهودیان مسلمانانوسره دټولو نه زیات حسد کوونکی وو. خلق به نې داسلام نه منع کول. اوعربو باندې به سوزیدل. ددوی په باره کښې دا آیت نازل شو .دکعب بن اشرف هم د ا قول وو. زهری ؒ وائی ددوی په باره کښې داآیت نازل شوې دې. دا هم یهودی وو او په خپلو شعرونو کښې به نې د رسول

کریم ﷺ هجوه کوله(۱)اګر چه د هغوی په کتابونو کښې د رسول کریم ﷺ تصدیلق موجود وو. او دوی د رسول کریم ﷺ دصفاتونه ښه خبر وو. او رسول کریم ﷺ نې ښه پیژندو ، اودوی دا هم کتل چه قرآن پاك ددوی دکتاب تصدیق کوی. یو امی او ان پړهه دا کتاب وائی نو دا سراسر معجزه ده. خوصرف د حسد په وجه چه رسول کریم ﷺ ولې په عربو کښې مبعوث شو دوی کفر اوانکار بانديې کلك شو. بلکه نوروخلق نې هم لمسول شروع کړل. نوالله ﷻ مومنانوته حکم ورکړو چې تاسو معافی کونی او دالله ﷻ دحکم اودهغه دفیصلې انتظار کوئي . لکه څنګه چه په بل ځائې کښې فرمائی چه تاسو به د مشرکانو اواهل کتابو نه ترخې خبرې آورئی. آخرداچې حکم نازل شو چه تاسو اوس ددې مشرکانو نه مه ویرېږئی تاسو ته ددوی د جنګ کولو اجازت دې.

**قوله تعالى:-فَاعْفُوْا وَاصْفَحُوْا**

**د عفو او درګـذرحکم:-** حضرت اسامه بن زید ﷺ وائی چه رسول کریم ﷺ او د رسول کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ به مشرکانو اواهل کتابو ته معافی کوله. او دهغوی تکلیفونه به نې برداشت کولو(۲)او په دې آیت بانديې به نې عمل کول. تر دې پورې چه بل آیت نازل شو اوداحکم منسوخ شو.اوس ددوی نه بدله اخستل اود خپل بچاؤ کولو حکم اوشو. اوړومبې جنګ چه د بدر په میدان بانديې شوې وو په هغې کښې کفاروته شکست اوشو اودهغوی د لویولویو سردارنو لاشونه په میدان دجنګ کښې پراته وو.

**قوله تعالى:-وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ**

**د مونځ او زکاة حکم:-** بیا مومنانو ته رغبت ورکولې شی چه تاسود مونځ اود زکوة وغیره حفاظت کونی دابه تاسو دآخرت دعذاب نه بچ کړي او په دنیا کښې به هم په دې سره ستاسو غلبه او نصرت وی.

**قوله تعالى:-وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ**

**په نیک عمر د ثواب وعده:-** بیا فرمائی چه الله ﷻ به ستاسو دهر نیک اوبد عمل بدله درکوی په دواړو جهانونو کښې ، دهغه پاك ذات نه هیڅ څه وړوکې غټ ، پټ ، ښکاره ، ښه او خراب عمل پټ نه دې. دا نې په دې وجه اوفرمائیل چه دا خلق اطاعت طرفته متوجه شی اودنافرمانۍ نه بچ شی.

**د بصیرمعنی:-** (مبصر) ئې په بدله د (بصیر) کښې اووئیل لکه څنګه چه (مبدع) په دبدله کښې (بدیع) او د (مولم) په بدله کښې (الیم) دې. ابن ابی حاتم کښې یو حدیث دې چه رسول کریم ﷺ به په دې آیت کښې (سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ) ونیلو او فرمائیل به نې الله ﷻ هرڅیز وینی

| وَقَالُوْا | لَنْ يَّدْخُلَ | الْجَنَّةَ | اِلَّا | مَنْ | كَانَ | هُوْدًا | اَوْ نَصٰرٰى | تِلْكَ | اَمَانِيُّهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اووائی دوی | هر ګز به داخل نشی | جنت ته | مګر | هغه څوك | چې وی | یهودی | یا عیسائی | دا | آرزوګانې ددوی دی |

چې جنت ته به بل څوک نه ننوځي مګر (یهود وائي چې) یهودیان او (نصاری وائي) نصاری دا ددوئ هسې آرزوګاني دي

| قُلْ | هَاتُوْا | بُرْهَانَكُمْ | اِنْ كُنْتُمْ | صٰدِقِيْنَ | بَلٰى | مَنْ | اَسْلَمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ورته اوویه | راوړئ | دلیل | خپل اکه چرې یئ تاسو | رېښتني | احق دادې چاچې | | وتابعدار کړل |

ورته اووایه چې خپل دلیل پیش کړئي که تاسو رښتوني یئ؛ بلکه هرڅوک چه خپل ځان الله ته اوسپاری

| وَجْهَهٗ | لِلّٰهِ | وَهُوَ | مُحْسِنٌ | فَلَهٗٓ | اَجْرُهٗ | عِنْدَ رَبِّهٖ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ځان خپل | دالله | اوهغه | په نیك لارتلونکي وي | نودې هغه لره | اجر دهغه | درب خپل سره |

اونیک کارونه کوی نو دهغه ثواب د خپل رب سره موجود دې (چه هغه ته به ثواب ورکوی ........

۱) ابن ابی حاتم : ۳۳۳/۱)-

۲) صحیح بخاری : کتاب التفسیر ،باب ولتسمعن من اللدین........۴۵۶۶، صحیح مسلم: ۱۷۹۸)-

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ | وَلَا هُمْ | يَحْزَنُوْنَ | وَقَالَتِ | الْيَهُوْدُ | لَيْسَتِ |
| اونهٔ به وی یره په هغوی | اونهٔ به هغوی | غمژن شی | او وائی | یهودیان | نهٔ دی |
| اوپه داسې خلقوبه هیڅ قسم ویره نه راځی\| اونه به غمژن کیږی\| او یهودیان وائی\| چې عیسایان | | | | | |
| النَّصٰرٰى | عَلٰى شَيْءٍ | وَّقَالَتِ النَّصٰرٰى | لَيْسَتِ الْيَهُوْدُ | عَلٰى شَيْءٍ | |
| عیسایان | په هیڅ څیز (حق دین) | او وائی عیسایان | نهٔ دی یهودیان | په هیڅ څیز (حق دین) | |
| په هیڅ دین نه دی ............ \| اونصاری وائی چې دیهودو مذهب هیڅ مذهب نه دی | | | | | |
| وَّهُمْ | يَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ | كَذٰلِكَ | قَالَ | الَّذِيْنَ | لَا يَعْلَمُوْنَ |
| حال دا چې دوئ دواړه\| لولی کتاب | | هم دغه شان\| | وائی | اهغه کسان | چې علم نهٔ لری |
| (اوعجیبه داده) چې دا دواړه د الله کتابونه لولی\|داشان نورونا پوهه خلقو(مشرکانواومجوسیانو) | | | | | |
| مِثْلَ قَوْلِهِمْ | فَاللّٰهُ | يَحْكُمُ | بَيْنَهُمْ | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ | فِيْمَا |
| پشان د وینا ددوئ\| | نوالله | به فیصله کوی\| | په منځ ددوئ کښې\| | په ورځ\| دقیامت | په هغه کارونوکښې |
| هم ددوی پشان خبرې اترې کړی دی\| نوالله به دقیامت په ورځ په هغه خبرو کښې د دوی په مینځ کښې | | | | | |
| كَانُوْا | فِيْهِ | يَخْتَلِفُوْنَ | | | |
| چې وو دوئ\| | چې په هغې کښې به نې\| | اختلاف کولو\| اوڅوک دی | | | |
| پخپله فیصله کوی په کومو کښې چه دوی اختلاف کوی\| | | | | | |

قوله تعالی:- بَلٰى مَنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ

**دهر عمل د قبولیت دپاره دسنتو اتباع شرط ده:-** په دې خانې کښې د یهودیانو او نصرانیانو د غرور بیان دې چه هغوی دخپل ځان نه سوا نور خلق څه نه ګڼړی اوصفا وائی چه زمونږ نه سوا به جنت ته هیڅوك نه ځی. په سورت مائده کښې ددوئ بیان شوې دې چه مونږ دالله ﷻ اولاد اودهغه محبوب یو.نو ددې په جواب کښې قرآن پاك وائی چه بیا تاسو ته په ګناه ولې عذاب درکوی ؟ داشان مخکښې تیر شو چه ددوی دعوی دا هم وه چې مونږ به یو څو ورځې به په جهنم کښې یو.نو ددې په جواب کښې دالله ﷻ ارشاد دې چه دا دعوی هم بې دلیله ده. داشان په دې مقام کښې د دوی د دعوې تردید کوی او وائی چه راوړئ پیش کړئ دلیل ، دوی عاجزه ثابتوی او وائی چه څوك هم دالله ﷻ فرمانبردار شی او خلوص او توحید سره نیك عمل اوکړی نوهغه ته به پوره بدله ملاویږی . لکه په بل مقام باندې فرمانی که دوی جګړه کوی نو دوی ته اووایه چه ما او خما منلو والو خپل مخونه رب طرفته کړل ، الغرض د قبولیت دپاره اخلاص اود سنت مطابق هر عمل کول شرط دې نو د ( اَسْلَمَ وَجْهَهٗ ) نه مراد خلوص (¹) او د (وَهُوَ مُحْسِنٌ) نه مراد اتباع دسنت ده ، ستاسو اخلاص هم عمل لره مقبول نشی کولې ترڅو پورې چه دسنت تابعداری اونکړئ. په حدیث مبارکه کښې دی چه کوم یو کس دا عمل اوکړی چه زمونږ په طریقه کښې نه وی نو هغه مردود دې. (مسلم). (²)

---

[1] ابن ابي حاتم : ۱ / ۳۳۷۱-

[2] صحيح بخاری : كتاب الا قضية باب نقض الاحكام الباطلة ، ۱۷۱۸، صحيح بخاری : ۲۶۹۷، ابوداود: ٤٦۰٦، ابن ماجة: ١٤٠-

**دسنت نه خلاف عمل نتیجه:-** نود رهبانیت عمل اگر چه په ا خلاص سره وي خو د اتباع سنت مطابق نه کیدو په وجه هغه مردود دی. هم دداسې اعمالو په باره کښې قرآن عظیم الشان فرمائی چه ﴿وَقَدِمۡنَآ إِلَىٰ مَا عَمِلُواْ مِنۡ عَمَلٖ فَجَعَلۡنَٰهُ هَبَآءٗ مَّنثُورًا﴾ ( هغوی چه کوم اعمال کړي وو مونږ به ټول رد کړو اوبه خانې د کافرو داعمالو مثال دشګې پرقیدونکو ډیرو پشان دې چه تږې په دې باندې د اوبو خیال اوکړي خوکله چه دې ته ورشي نو هیڅ به نه مومي). او په بل مقام باندې دی چه د قیامت په ورځ به په ډیرو مخونو باندې ذلت خور وی هغه خلق به عمل کوونکی تکلیف اوچتونکی وی او په لمبه شوی اور کښې به داخل کړې شي اودوی ته به ګرمې اوبه ورکولې شي دځکلو دپاره. حضرت امیر المومنین ددې آیت مبارك نه دیهودو اونصرانیانو علماء او عابدان مراداخستی دی.

**د اخلاص نه بغیر عمل:-** دا هم یاد ساتل پکاردی که یو عمل د سنت مطابق هم وی خویه دې کښې اخلاص نه وی ، ددې مقصد د الله ﷻ رضا نه وی ، نوهغه عمل هم مردود دی. د ریاکارو او منافقو خلقود اعمالو هم دا حال دې. لکه څنګه چه الله ﷻ فرمائی چه دوی رب لره دهوکه ورکول غواړی او ر به دوی ته دهوکه ورکوی اوچې مونځ کوی نو سستی په کښې کوی او صرف خلقو ته دخودنې دپاره عمل کوی اودالله ﷻ ذکر ډیر کم کوی. او فرمائی چه ﴿فَوَيۡلٞ لِّلۡمُصَلِّينَ﴾ د هغه مونځګذارو دپاره ویل دې چه خپلو مونځونو نه غافل دی چه څوك ریاکاری کوی او واړه واړه د استعمال څیزونه هم منع کوی. او په بل خائې کښې ارشاد دې چه ﴿ أَفَمَن كَانَ يَرۡجُواْ اللَّهَ﴾ چه کوم سړې دخپل رب دملاقات خواهش مند وی نوهغه له پکار دی چه نیك عملونه کوی او دخپل رب په عبادت کښې هیڅوك نه شریکوی.

**قوله تعالی:-** وَلَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ

بیا فرمائی چه دوی ته به ددوی رب اجر ورکوی. او د ویرې او خوف نه به نې بچ کړی. په آخرت کښې به په دوی باندې ویره نه وی او ددنیا د پریښودو هیڅ غم به نه وی.

**قوله تعالی:-** وَقَالَتِ الۡيَهُودُ لَيۡسَتِ النَّصَٰرَىٰ عَلَىٰ شَيۡءٖ

**د اهل کتابو په خپل مینځ کښې اختلاف:-** بیا دیهودیانو او نصرانیانو په خپلو کښې د بغض او دښمنۍ ذکر فرمائی.

دنجران د نصرانیانو وفد د رسول کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نو رسول کریم ﷺ سره دیهودو عالمان هم ناست وو. په هغه وخت کښې دې (وفد) هغه خلقو ته اوهغوی دوی ته ګمراهان اوونیل. حالانکه دواړه اهل کتاب وو. په تورات کښې دانجیل تصدیق او په انجیل کښې دتورات تصدیق موجود دې.نوبیا ددوی داقول څومره لغوه دې[1]مخکښې یهودیان او نصرانیان په حق دین باندې قائم وو.خوبیا د بدعتونو اوفتنو په وجه دین ددوی نه لاړو.اوس نه یهود په هدایت وو اونه نه نصرانیان.

**قوله تعالی:-** كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ لَا يَعۡلَمُونَ مِثۡلَ قَوۡلِهِمۡ

**د زړونو مشابهت:-** بیا فرمائی چه کومو خلقو ته معلوم نه وو هغوی هم داسې اوونیل. په دې کښې هم اشاره هغوی طرفته ده.اوبعضو ونیلی دی چه ددې نه مراد دیهودیانو او نصرانیانو نه مخکښې خلق وو.بعضې وائی چه دې نه دعربو خلق مراد دی. امام ابن جریر رحمه الله ددې نه مراد عام خلق اخلی چه په دې کښې ټول شامل دی. او هم دا صحیح دی. والله أعلم.

**قوله تعالی:-** فَاللَّهُ يَحۡكُمُ بَيۡنَهُمۡ يَوۡمَ الۡقِيَٰمَةِ فِيمَا كَانُواْ فِيهِ يَخۡتَلِفُونَ

**د قیامت په ورځ فیصله:-** بیا فرمائی چه ددوی داختلاف فیصله به دقیامت په ورځ پخپله الله ﷻ کوی. چه په هغه ورځ به هیڅ څه ظلم او زور نه وی. او په بل مقام ځائې کښې هم دا مضمون راغلې دې. په سورت حج کښې ارشاد دې چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُواْ وَالَّذِينَ هَادُواْ وَالصَّٰبِـِٔينَ وَالنَّصَٰرَىٰ وَالۡمَجُوسَ وَالَّذِينَ أَشۡرَكُوٓاْ إِنَّ اللَّهَ يَفۡصِلُ

[1] ) الطبری : ۱۸۱۳)-

﴿بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ إِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ۝﴾ (دمومنانو او يهوديانو او صابيانو او نصرانيانو اومجوسيانو اومشركانو په مينځ كښې به الله ﷻ دقيامت په ورځ فيصله كوي. الله تعالى په هر څيز باندې قادر اوګواه دې) . او په بل مقام باندې فرمائي چه ﴿قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا﴾ (ا ووايه زمونږ رب به مونږ لره جمع كوي بيا به حق سره فيصله كوي او هغه باخبره بهترين فيصله كوونكې دې).

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ

| اوڅوك دې | زيات ظالم | دهغه چانه |

اوهغه چانه بل لوئې ظالم څوك كيديشي

مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ أَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ وَسَعٰى

چې منع كوي | عبادت خانې دالله | ددې نه چې | ياد كړې شي | په هغې كښې | نوم دهغه | اوكوشش كوي

چې جماتونه ددې خبرې نه بندوي چې په هغې كښې دالله نوم واخستې شي | اود هغې په شاړولو

فِيْ خَرَابِهَا ۭ أُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَنْ يَّدْخُلُوْهَآ إِلَّا

په ورانولو دهغې كښې | داسې خلق | نۀ دی لائق هغوئ له | اچې داخل شي دغه عبادت خانوته | مګر

كښې كوشش كوي (هغه وخت نزدې دې چې) هم دوئ به دغې جماتونو ته په ويره ويره ورځي

خَآئِفِيْنَ ڛ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَّلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ

يريدونكې | دپاره ددوئ | په دنيا كښې | شرمندګي ده | اودپاره ددوئ | په آخرت كښې | عذاب |

............ هم دوئ لره په دنيا كښې خوارى او(رسوائى) ده | اودوى دپاره په آخرت كښې لوئې عذاب

عَظِيْمٌ ۝

لوئ دې |

دې | ......

**دجماتونو نه منع كونكې:-** ددې آيت په تفسير كښې دوه قولونه دي. ①يو خو دا چه ددې نه مراد نصرانيان دي. ②دويم دا چه ددې نه مراد مشركان دي.

**دنصاراو سركشي:-** نصرانيانو به دبيت المقدس په جمات كښې پليتي اچوله او خلق به ئې په دې كښې دمونځ كولونه منع كول. بخت نصر چه كله دبيت المقدس دبربادولو دپاره حمله كړې وه نو دې نصرانيانودهغه ملګرتيا كړې وه اوهغه سره ئې مدد كړې وو. بخت نصر دبابل اوسيدونكې وو او مجوسي وو. ديهوديانو په مدد كولو دې نصرانيانو هم هغه سره ملګرتيا كړې وه. او په دې وجه هم چه بنى اسرائيلو حضرت يحيى عليه السلام قتل كړې وو. اومشركانو هم د حديبيه په كال د كعبة الله نه منع كړې وه. تر دې پورې چه رسول كريم ﷺ په ذى طوى كښې قرباني اوكړه اومشركانو سره ئې صلح اوكړه. رسول كريم ﷺ هم دغه خائې نه واپس شو حالانكه دا د امن خائې وو. د رور او پلار قاتل ته هم چا په دې خائې كښې څه نشو وئيلې. اوددې د شاړولو كوشش هم دا وو چه دذكر الله او حج او عمرې كولو نه دمسلمانانو جماعت منع كړو[1] دحضرت ابن عباس رضي الله عنه هم دا قول دې. ابن جرير رحمه الله مخكښې قول خوښ كړې دې. او وئيلې ئې دى چه مشركانو د كعبة الله ورانولو كوشش نه كولو داكوشش د

[1] الطبرى: ٢/٥٢١-

نصرانیانو وو چه هغوی دبیت المقدس ویرانولو پسې راخستي وه. خوپه حقیقت کښې دویم قول زیات صحیح دی.د ابن زید رحمه الله او حضرت ابن عباس رضی الله عنه هم دا قول دی.

**دیهودیانو دمغلوبیت وجه:**- یاد دې وی چه کله نصرانیانو یهودیان دبیت المقدس نه منع کړی وو نو په هغه وخت کښې یهود هم بالکل بې دینه شوی وو. په هغوی باندې خود حضرت داود علیه السلام او حضرت عیسی بن مریم علیه السلام په زبان لعنتونه نازل شوی وو ،هغوی نافرمان او دحد نه تیر شوی وو. اونصرانیان دحضرت مسیح علیه السلام په دین باندې وو. ددې نه معلومه شوه چه ددې آیت نه مراد مشرکان دمکې دی اویو وجه دا هم ده چه مخکښې دیهودیانو اونصرانیانو مذمت بیان شوې وو او په دې ځائې کښې د عربو دمشرکانو دابدخصلت بیانوی چه هغوی رسول کریم ﷺ او د رسول کریم ﷺ ملګری رضی الله عنهم دمسجد حرام نه منع کړی وو او مکې نه ئې ویستل او د حج کولو او عمرې کولو نه ئې منع کړل.

**دابن جریر قول:**- د ا بن جریر رحمه الله وینا ده چه دمکې والا خلق دبیت المقدس په ویرانولو کښې هلو ځلو والا نه وو.ددې جواب دادې چه رسول کریم ﷺ او صحابه کرام رضی الله عنهم ئې د هغه ځائې نه اوویستل او منع کول او په بیت الله شریف کښې بتان اینښودلو نه به زیاته لویه ویرانی څه وی. پخپله په قرآن پاك کښې موجود دی چه ﴿ وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ﴾ (داخلق دمسجد حرام نه منع کوی ، مشرکان دالله ﷻ کور لره نشی آبادولې ، په خپل کفر باندې خپله ګواه دی ، ددوی اعمال تباه دی ، او دوی دهمیشه دپاره جهنمیان دی. دجماتونو آبادی دهغه خلقو ده چه څوك په الله ﷻ باندې او ورځ دقیامت باندې ایمان لری او مونځ کوی او زکوة پابندنی سره ورکوی اوصرف دالله ﷻ نه ویریږی اوهم دا خلق په نیغه لار باندې دی)او په بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿ هُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ﴾ (دا هغه خلق دی چې کفر ئې هم اوکړو او تاسو ئې د جمات نه هم اوویستلې او تاسو دقربانئی ذبح کولو ځائې ته هم اونه رسیدلی،که مونږ ته ددې مومنانو سړاو ښځو خیال نه وې چه دخپلې کمزورنی او بې وسئ په وجه د مکې نه بهر نه شی وتلې چه هغوی لره تاسو پیژنئی نو مونږ به دوی سره جنګ کړی وې او ددوی د تباه کولوحکم به مو ورکړې وې خوهسې نه چه دا مسلمان بې ګنا ه خراب شی نو په دې وجه مونږ دا حکم اونه فرمائیلو. خو که دا کفار دخپلو شرارتونو نه منع نشو نوهغه وخت لرې نه دې چه په دوی باندې به دردناك عذاب نازل شی). نو هغه مسلمانې هستئ چه په هغوی سره دجماتونو آبادی په حقیقی معنو کښې ده نو هم هغه خلق منع کړې شو نو دجماتونو په ویجاړولو کښې بل کوم کار پاتې شو؟ د جماتونوآبادی صرف په ظاهری زیب وزینت او رنګ روغن سره نه ده بلکه په دې کښې دالله تعالی ذکر کیدل ، دشریعت قائمول ، دا دشرك او ظاهری پلیتئ نه پاك ساتل ، دا ددې آبادی ده.

**قوله تعالی:**-أُولَٰئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَن يَدْخُلُوهَا إِلَّا خَائِفِينَ ۚ

بیا فرمائی چه دوی لره نه دی لائق چه بې ویرې شی او جمات ته راشی . مطلب دادې چه انې مسلمانانو دوی لره په بې خوفئ او بې باکئ سره بیت الله ته مه پریږدئی ، هرکله چه مونږ تاسو لره غالب کړو نو تاسو په هغه وخت کښې هم داسې کوئی. نومکه فتح شوه او رسول کریم ﷺ راتلونکې کال په نهمه هجرئی کښې اعلان اوکړو چه دې کال نه پس دې هیڅ یو مشرك حج ته نه رازی. او هیڅوك دې د بیت الله شریف طواف په بربنډه نه کوی. دکومو خلقوپه مینځ کښې چې د صلح موده مقرر ده هغه قائمه ده (۱)، دا حکم په اصل کښې تصدیق او عمل دې په دې آیت باندې چه ﴿فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَٰذَا ۚ﴾ (مشرکان خلق نجس دی ددې کال نه پس دې دوی مسجد حرام ته نه نزدې کیږی ②اودا معنی هم بیان شوې ده چه پکار خودا وو چه دا مشرکان په ویرې سره جمات ته راغلې وې خوددې خلاف دوی مسلمانانو لره منع کوی. ③دا مطلب هم کیدیشی چه په دې آیت کښې الله ﷻ

---

(۱) صحیح بخاری، کتاب صلاة باب ما یستر من العورة:۳۶۹، صحیح مسلم: ۱۳۴۷، مختصرا نسائی: ۲۹۶۱)-

ایماندارو ته زیرې ورکوی چه نزدې ده چې زه تاسو غالب کړم اودا مشرکان به دې جمات طرفته په رنګ کولو هم ویریږی،نو هم داسې اوشو او رسول کریم ﷺ وصیت اوکړو چه په جزیره عرب کښې دې دوه دینونه باقي پاتې نشی (۱)او یهود اونصرانیان دې ددې ځائې اوویستلې شی. (۲)الحمد لله چه حضرت محمد ﷺ دامت بزرګانو د رسول کریم ﷺ په دې وصیت باندې عمل کول هم اوخودل. ددې نه دجماتونو فضیلت او بزرګی هم ثابته شوه. خاص کر ددې ځائې او ددې جمات چه دې ته د ټول جن وانس رسول حضرت محمد ﷺ لیږلې شوې وو ، په دې ګناهنګاروباندې د دنیا رسوائی هم راغله او څنګه چه دوی مسلمانان منع کړل او جلاوطن نې کړل ، داشان دوی ته ددې پوره بدله داهم ملاؤ شوه چه دوی هم منع کړې شو او جلاوطن کړې شو. اودوی لره اُخروی عذاب هم باقی دې. خکه چه دوی دبیت الله حرمت مات کړو ، په دې ځائې کښې ئې بتان کیخودل ، دغیرالله نه ئې دعاګانې اوکړې او مناجات ئې شروع کړل ، په برینډه ئې دبیت الله شریف طوافونه کول وغیره.

اوکه ددې نه مراد نصرانیان واخستلې شی نو بیا هم ظاهره ده چه هغوی هم بیت المقدس ته په ویرې سره څی. هغوی هم دبیت المقدس بې حرمتی کړې وه او خاص کرد دې صخره (کاڼړې) چه دې طرفته به یهودومونځ کولو ،داشان هرکله چه یهودیانو بې حرمتی اوکړه او دنصرانیانو نه هم زیات شو نوبه هغوی باندې په دې وجه داذلت هم نازل شو. ددنیا درسوائی نه مراد دامام مهدی ؈ دزمانې رسوائی ده او دجزیه ادا کول هم. په حدیث کښې یو دعا راغلې ده ﴿اللهم احسن عاقبتنا فى الامور كلها واجرنا من خزي الدنيا وعذاب الاخرة﴾ (اې الله ﷻ ! ته زمونږ دکارونو انجام لره ښه کړه اوددنیارسوائی او د آخرت دعذاب نه مونږ ته نجات راکړه). دا حدیث حسن دې ، مسند احمد کښې موجود دې. په صحاح سته کښې نشته دې. ددې راوی بشر بن ارطاة صحابی ؓ دې ، دهغوی نه خوداحدیث روایت شوې دې اوبل حدیث هغه روایت شوې دې چه په هغې کښې دی چه دغزوه او دجنګ په موقع دې هغه ځائې کښې لاس پرې نکړې شی.(۳)

| وَلِلّٰهِ | الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۚ | فَأَيْنَمَا | تُوَلُّوا | فَثَمَّ |
|---|---|---|---|---|
| اودپاره دالله دې | طرف دمشرق اودمغرب | نوهرطرفته | چې تاسو مخ کرزوئ | نو هم هغه طرفته |

| ...... اومشرق دې که مغرب ، ټول اړخونه دالله پاک دی نو چې کوم اړخ ته مخ اوګورزئې هغې اړخ ته |
|---|

| وَجْهُ اللّٰهِ ۭ | اِنَّ اللّٰهَ | وَاسِعٌ | عَلِيْمٌ ۝ |
|---|---|---|---|
| مخ دالله دې | بیشکه الله | دیرفراښې والا دې | په هرڅه عالم دې اودانې دوئ |

| الله ﷻ شته الله د فراخوخاوند او ښه پوهه دې |
|---|

**دبیت المقدس په ځائې کعبه قبله جوړول** :- په دې ایت کښې رسول کریم ﷺ اود رسول کریم ﷺ صحابه کرامو ؓ ته تسلی ورکول کیږی چه د مکې نه ویستلې شوی وو او دخپل جمات نه منع کړې شوی وو. رسول کریم ﷺ به په مکه معظمه کښې په مونځ کښې بیت المقدس طرفته مخ کولو نو کعبة الله به ئې هم مخامخ وه. هرکله چه مدینې منورې ته تشریف راوړو نو شپاړس یا اوولس میاشتو پورې خو به ئې (بیت المقدس) طرفته مونځ کولو خوبیا ورته الله ﷻ کعبة الله طرفته د مخ کولو حکم اوکړو. (۴)

---

۱) احمد:۲۷۵/۶، موطا امام مالک کتاب الجامع با ماجاء فی اجلاء الیهود من المدینة، ۱۷، ۱۸، مرسلا)۔

۲) صحیح مسلم : کتاب الجهاد: باب اخراج الیهود والنصارى من جزيرة العرب: ۱۷۶۷)۔

۳) ابوداود کتاب الحدود باب السارق یسرق فی الغزور ایقطع ......۴۴۰۸، ترمذی : ۱۴۵۰، نسائی : ۴۹۴۲)۔

۴) صحیح بخاری : کتاب صلاة باب التوجه نحو القبلة حیث کان: ۳۹۹، صحیح مسلم: ۵۲۵)۔

**د تولو نه ړومبی منسوخ حکم:**-ابوعبیده قاسم بن سلام رحمه الله پخپل کتاب ناسخ اومنسوخ کښې دابن عباس رضی الله عنه نه روایت نقل کړی دی چه قرآن پاك کښې دټولو نه مخکښې منسوخ حکم د قبلې دې.د ﴿وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ﴾ والا آیت نازل شو او رسول کریم ﷺ بیت المقدس طرفته مونځ کولو،بیا ﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ الخ﴾ آیت نازل شو او رسول کریم ﷺ بیت الله شریف ته مخ کړو او مونځ کول ئې شروع کړو[۱]،
په مدینه منوره کښې چه کله رسول کریم ﷺ بیت المقدس طرفته مونځ کولو ، نویهودیان به ډیر خوشحاله وو خو کله چه دا حکم څو میاشتې پس منسوخ شو او رسول کریم ﷺ ته دخپلې خوښې او دعا او دانتظار مطابق کعبة الله طرفته دمونځ کولو حکم اوشو نودې یهودو ورته طعنې ورکول شروع کړل چه ته ولې ددې قبلې نه واوړیدلې. نوالله ﷻ دا آیت نازل کړو چه مشرق اومغرب دالله ﷻ دی الخ .
بیادا اعتراض څنګه دې؟ چه کوم طرفته دهغه ذات حکم وی هغه طرفته مخ کول پکار دی. ([۲])حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه هم روایت دې چه په مشرق او مغرب کښې تاسو چرته هم یئ نو مخ کعبې طرفته کوئی ([۳])، دبعضې بزرګانوبیان دې چه دا آیت کعبې طرفته د مخ کولو نه مخکښې نازل شوې وو او مطلب دادې چې مشرق اومغرب کښې تاسو کوم طرفته هم مخ کوئی نو کوئی خکه چه ټول طرفونه دالله ﷻ دی اوهر طرفته الله ﷻ موجود دې. دهغه پاك ذات نه هیڅ یوځائې خالی نه دې. لکه فرمائی﴿ وَلَآ أَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ أَكْثَرَ إِلَّا هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا﴾ (نه د دې نه کم او نه زیات دوی چې کوم ځائې کښې هم وی الله به دوی سره وی).بیا دا حکم منسوخ شو اوکعبة الله طرفته مخ کول فرض شو،
**په هر ځائې کښې د الله د وجود مطلب:**- په دې قول کښې دا لفظ دې چه دالله ﷻ نه هیڅ یوځائې خالی نه دې ، که ددې نه مراد د الله ﷻ علم واخستلې شی نو صحیح دی ، هیڅوك دالله تعالی د علم نه خالی نه دی. اوکه دالله ﷻ پاك ذات ترې مراد و ی نو صحیح نه ده. دالله ﷻ پاك ذات ددې نه ډیر زیات اوچت او بالادې چه ګنې هغه دې دخپل مخلوق په یو څیز کښې حاضر شی. هم داشان دآیت مطلب دا هم بیان شوې دې چه دا آیت دسفر او راه روئی او دویرې دوخت دپاره نازل شوې دې چه په دې وختونو کښې نفل مونځ کښې کوم طرفته مخ کوئی نو کوئی.([۴])
**په سورلئ دمونځ کولوحکم:**- د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه دهغه داوښې مخ به کوم طرفته وو هغه طرفته به ئې مونځ کولو. او فرمائیل به ئې چه د رسول کریم ﷺ به هم دا طر یقه وه. او ددې آیت مطلب هم دادې. د آیت دذکر نه بغیر دا حدیث په مسلم شریف ، ترمذی ، نسائی ، ابن ابی حاتم او ابن مردویه وغیره کښې هم روایت شوې دې. اوددې اصل په صحیح بخاری ، صحیح مسلم کښې هم موجود دې([۵])په صحیح بخاری کښې دی چه د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه د ویرې دمونځ په باره کښې تپوس اوشو نو دویرې مونځ به ئې بیان فرمائیلو او فرمائیل به ئې که ددې نه هم زیاته ویره وی نو پیدل یا سور یا په ولاړه یا ناسته مونځ کوئی که مخ مو قبلې طرفته وی اوکه نه وی.
د حضرت نافع رحمه الله بیان دې فرمائی چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه خما په خیال سره دامرفوع کړې دې([۶])د امام شافعی رحمه الله مشهور فرمان دې او دامام ابوحنیفه رحمه الله قول دې که سفرکه څوك په امن

---

[۱]) حاکم: ۲/۲۶۷)-
[۲]) الطبری: ۲/۵۲۷)-
[۳]) ابن ابی حاتم : ۱/۳۴۷ )-
[۴]) الطبری: ۲/۵۳۰)-
[۵]) صحیح بخاری : کتاب التقصیر، باب صلاة علی الدواب: ۱۰۹۵، صحیح مسلم: ۷۰۰)-
[۶]) صحیح بخاری : کتاب التفسیر سورةالبقرة ، باب فی قوله تعالی ( فان خفتم فرجالا اورکبانا) ۴۵۳۵. وصحیح مسلم: ۸۳۹)-

کښې سفر کوی او د جنګ د ویرې وی نو په سورلۍ باندې نفل مونځ ادا کول جائز دی. امام مالک رحمه الله او ددوی ډله ددې خلاف کوی. امام ابویوسف رحمه الله او ابوسعید اصطخری رحمه الله بغیر د سفر نه هم دا جائز ګڼړی. حضرت انس رضی الله عنه نه دا هم روایت دې چه امام ابوجعفر طبری رحمه الله هم دا خوښوی او تردې پورې چه هغه پیدل تلونکو ته هم اجازت ورکوی.

**په سورلۍ باندې د نفل مونځ کولو حکم**

**مسلک حنفی:**- په سورلۍ باندې نفل مونځ جائز دې که سفر وی او که حضر البته د صبا د سنتو د پاره د سورلۍ نه راکوزیدل پکار دی دا د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې (مفتاح الفلاح شرح نورالایضاح تالیف احقر العباد شاه فیصل) صفحه ۵۲۰.

**د ایت شان نزول:**-د بعضې نورو مفسرینو په نیز دا آیت د هغه خلقو په باره کښې نازل شوې دې چه هغوی ته قبله معلومه نشوه. او هغوی په اندازې سره مختلفو طرفونو ته مخ کړو او مونځ ئې ادا کړو نو پدې باندې دا آیت نازل شو او ددوی مونځ ته ادا شوې او ونیلې شو. حضرت ربیعه رضی الله عنه فرمائی چه مونږ نبی کریم ﷺ سره په یو سفر کښې وو، یو ځائې مو پړاؤ اوکړو، شپه تیاره وه، خلقو کانړی واخستل او دنشان په طور ئې قبلې طرفته کیخودل او مونځ کول ئې شروع کړل، صبا چه کله دوی په رڼا کښې اوکتل نو مونځ ئې قبلې طرفته نه وو ادا کړې. مونږ د رسول کریم ﷺ نه پوښتنه اوکړه نو په دې باندې دا آیت نازل شو. داحدیث په ترمذی کښې موجود دې[1] امام صاحب رحمه الله دې ته حسن ونیلې دې. ددې دوه راویان ضعیف دی، یو بل روایت کښې دی چه په هغه وخت کښې ډیره تیاره خوره وه او مونږ مونځ اوکړو او خپلو مخو ته مو نښې اولګولې چه صبا په رڼا کښې معلوم کړو چې مونځ مو قبلې طرفته ادا کړې دې که نه؟ سحر معلومه شوه چه قبلې معلومولو کښې مونږ غلطی کړې وه. خو رسول کریم ﷺ مونږ ته ددې مونځ د دوباره کولو حکم اونه فرمائیلو او دا آیت نازل شو. ددې روایت هم دوه راویان دی او دواړه ضعیف دی، دا روایت دارقطنی وغیره کښې موجود دې. ([2])په یو روایت کښې دی چه دوی سره رسول کریم ﷺ نه وو. دا سند هم ضعیف دې. ددا سې مونځ دا راګرزولو باره کښې د عالمانو دوه قولونه دی. صحیح قول هم دا دې چې دا دې راونه ګرزولې شی او هم ددې قول تائید کولو والا حدیث مخکښې بیان شو.

**غیر قبلې ته د مشتبه علیه القبله د مونځ حکم**

**مسلک حنفی:**- اوچه کوم سړی ته په قبله کښې شك شی (یعنی دقبلې صحیح طرف ور ته معلوم نه وی) او هغه سره څوك خبر ورکونکے هم نه وی اونه محراب وی نو هغه دے غور اوکړی. اودے به دوباره مونځ نه کوی. که خطا شوے وو. اوکه ده غلطی اوکړه او خپله غلطی ورته په مانځه کښې معلومه شوه نو مخ دے واړه وی او بنا دے اوکړی (یعنی خپل مخکښې مونځ سره دے باقی مونځ ملاو کړی او دوباره دے نیت نه کوی). اوکه بغیر دځه غور نه ئې مونځ شروع کړے وو او د فراغت نه پس ورته معلومه شوه چه ده صحیح طرف ته مونځ کړے دے نو دده مونځ اوشو. اوکه خپله غلطی ورته په مانځه کښې ورپه یاد شوه نو مونځ ئې مات شولکه څنګه چه ده ته خپله غلطی نه وی معلومه (نو په هغه وخت کښې هم مونځ ماتیږی.).
اوکه یو قوم د سوچ کولو نه پس مختلفو طرفونو ته مونځ اوکړو (او هرکس یو د خپل خپل خیال مطابق مخ کړے وو) او د خپل امام د حالت نه ناخبره وو نو د ټولو مونځ اوشو (پدے شرط چه د چا ملا دامام مخے ته نه وی) کذا فی نورالایضاح).

---

[1] ترمذی: کتاب الصلوة باب ماجاء فی الرجل یصلی لغیر القبلة فی الغیم: ۳۴۵، ابن ما جة: ۱۰۲۰)-

[2] دار قطنی ۲۷۱/۱، حاکم: ۲۵۶/۱)-

**دجنازې مونځ غائبانه کولو بيان:-** بعضې مفسرين وائي چه ددې نازليدو وجه نجاشي دې. هر کله چې رسول کريم ﷺ دهغه د مرګ خبر ورکړو او وې فرمائيل چه دهغه غائبانه دجنازې مونځ اوکړئ نوبعضو اووئيل چه هغه خو مسلمان نه وو نصراني وو. نو په دې باندې دا آيت نازل شو چه ﴿وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ يُؤْمِنُ بِهٖ﴾(بعضې اهل کتاب په کتاب الله باندې او په هغه څيز باندې چه کوم ائې مسلمانانو ستاسو طرفته نازل شو اوپه هغه څيز باندې چه دوی طرفته نازل شوی دې ايمان راوړی او دالله ﷻ نه ويريږي)هغوی اووئيل يارسول الله ﷺ هغه خو به قبلې طرفته مونځ نه کولو. نو په دې باندې دا آيت نازل شو. خودا روايت غريب دې. ([1])والله اعلم.ددې معنی دا هم شوې ده هغوی بيت المقدس طرفته په دې وجه مونځ کولو چه هغوی ته ددې دمنسوخ کيدو علم نه وو. قرطبي رحمه الله فرمائي چه دهغه دجنازې مونځ رسول کريم ﷺ په خپله کړې وو. او دا دليل دې چه غائبانه نماز جنازه ادا کول پکار دی.

**د غائبانه جنازې عدم جواز د قائلينو درې تاويلونه:-** اوددې نه منلو والا دا مخصوص ګنړی اوددې درې تاويلونه کوی ، ①يوخوداچې رسول کريم ﷺ دهغه جنازه کتلې وه ، رسول کريم ﷺ دپاره زمکه راغونډه کړې شوه ، ②دويم دا چه په هغه ځائې هغه سره دهغه دجنازې مونځ کولو والا څوك نه وو نوپه دې وجه رسول کريم ﷺ د هغه دجنازې مونځ غائبانه اوکړو. ابن عربي هم دا جواب خوښوی. قرطبي رحمه الله وائي چه دا ناممکن دی چه يو بادشاه دې مسلمان وی اوودده دقوم يو سړې دې هم ده سره مسلمان نه وی،ابن عربي ددې په جواب کښې وائي چه شائد دهغه په نيز دجنازې مونځ نه وی د هغوی دشريعت مطابق. دا جواب ډير ښه دې ③دريم دا چه رسول کريم ﷺ دجنازې مونځ غائبانه ادا کړو چه خلقو ته ترغيب اوشی اووده په شان نور بادشاهان اسلام طرفته مائل شی.

**دغائبانه جنازې حکم**

**مسلک حنفي:-** داحنافواودمالکيانوپه نزدغائبانه جنازه جائزنه ده .اوترکومې چه دنجاشي دواقعي تعلق دې.نودا ددوی خصوصيت ووځکه چه هغه مسلمان بادشاه وو.اودمسلمانانودوی خاص امدادکړې وو.اوپه دوی چامونځ نه ووکړې.دې وجه نه حضورﷺ په دوی په مدينه کښې مونځ اوکړو.اونجاشي وفات په خپل مل کښې شوې وو.ددينه علاوه درواياتونه معلوميږی چه دنبي کريمﷺ اودنجاشي په مينځ کښې چه څومره حجابات وو هغه ټول لرې کړې شوی وو.تردې چه دنجاشي جنازه ددوی وړاندې په نظرغله لکه واحدی رحمه الله په خپل " اسباب النزول کښې دحضرت ابن عباس نه بغيردسندنه نقل کړې دې. (درس ترمذی (۱۱۳ ۱۰)-

ابن مردويه کښې يو حديث دې چه رسول کريم ﷺ فرمائي چه د اهل مدينه ، اهل شام ، اهل عراق قبله دمشرق او مغرب ترمينځه ده ([2])دا روايت په ترمذی کښې هم په نورو الفاظو سره روايت دې اوددې يو راوی ابومعشر په حافظه باندې دبعضو اهل علمو کلام دې. امام ترمذی رحمه الله دا په يوسند سره هم نقل کړې دې اودې ته ني حسن ونيلی دی.([3]) حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه ،حضرت علي کرم الله وجهه رضی الله عنه ، حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه هم دا نقل شوی دی . حضرت عمر رضی الله عنه فرمائي چه کله ته مغرب خپل ښی طرفته او مشرق خپل ګس طرفته کړنی نو مخامخ به تاته قبله وی. حضرت ابن عمر نه هم د اپورتني حديث روايت شوې دې د مشرق او مغرب ترمينځه قبله ده ([4])اوګورئ دارقطني ، بيهقي وغيره.

---

[1] ) الطبرى:۱۸٤٦، عن قتادة مرسلاً-

[2] ) ترمذى: كتاب صلاة باب ماجاء بين المشرق والمغرب قبلة: ۳٤٦، ابن ماجة : ۱۰۱۱، نسائى: ۲۲٤٥، تعليقا وهو صحيح )

[3] ) ترمذى: كتاب صلاة باب ماجاء بين المشرق والمغرب قبلة : ۳٤٤)،

[4] ) ايضا)-

امام جریر فرمائي چه دا مطلب ددې ايت کيديشي چه تاسو په دعا غوښتلو کښې کوم طرفته مخ کړئ نو خما مخ به هم هغه طرفته مومئ او څه ستاسو دعاګانې قبلوم. حضرت مجاهد ﷫ فرمائي چه کله دا آيت ﴿ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾ (خما نه دعا غواړی څه قبلوم) نازل شو نو خلقو اووئيل کوم طرفته دعا کوو. ددې په جواب کښې دا آيت ﴿فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا﴾ نازل شو.

**قوله تعالى:- إِنَّ اللَّهَ وَاسِعٌ عَلِيمٌ**

بيا فرمائي چه الله ﷻ په ټولو وسعتونو باندې غالب دې او ګنجائش والا اوعلم والا دې. د هغه کفايت سخاوت او فضل وکرم ټول مخلوق باندې احاطه کړې ده. هغه ټول څيزونه پيژني، دوړوکی نه وړوکې څيز هم دهغه پاك ذات د علم نه بهر نه دې بلکه هغه دټولو څيزونو عالم دې.

| وَقَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا |
|---|
| اووائي دوئ اچې نيولې دې الله ا خونې |
| اويهوداونصاری وائي چې الله خونې لری |
| سُبْحَانَهُ ط بَلْ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ط كُلٌّ لَّهُ |
| پاکی ده هغه لره ا بلکه اهغه لره دی هرهغه څه اچې په آسمانونوکښې دی ا اوپه زمکه کښې دی ا ټول هغه لره |
| هغه پاك دې (دهغه خونې ته حاجت نشته څکه چې) دآسمانونواوزمکې مالك ټول څيزونه (هسې هم) |
| قَانِتُونَ ۝ بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ط وَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا |
| تابعدار دی اهغه پيداکونکې دې ا دآسمانونو ا اودزمکې ااوهرکله چې ا فيصله کوی ا ديوکار |
| فرمان منونکی دی االله دآسمانونو اوزمکې پيداکونکې دې ااوهغه چې ديوکارفيصله اوکړی |
| فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ ۝ |
| نوبيشکه ا وائي اهغه کار ته ا شه ا نو هغه موجود شي ا |
| نووائي چې اوشه (نوهغه کار هم هغه شان) اوشي |

**الله ﷻ مقتدر اعلی او بې نياز دې :-** دا او ددې سره ايت دمشرکانوپه رد کښې دې. اوددوی په شان نصرانيانو او يهودو په رد کښې هم دې چه وائي چه دالله تعالی لره اولادشته دې . دوی ته ونيلې کيږی چه د زمکو اوآسمانونو وغيره ټولو څيزونو مالك الله ﷻ دې ، ددوی پيدا کولو والا، رزق ورکولو والا ، ددوی اندازې مقرر کولو والا، دوی ته قبضه کښې ساتلو والا، په دوی کښې بدلون کولو والا هم الله تعالی دې. نوبيا په دې مخلوق کښې د هغه اولاد څنګه کيديشي . نه عزير ﷺ اونه عيسی ﷺ دالله ﷻ خامن کيديشی لکه څنګه چه يهوديانو او نصرانيانو خيال کولو ، نه فرښتې دهغه لونړه کيديشی لکه څنګه چه دعربو دمشرکانو خيال وو څکه چې دوه برابر څيزونه چې خپلو کښې هم جنس وی دهغې نه اولاد پيدا کيږی ، نوهغه پاك ذات اولاد به څنګه اوشی ؟ دهغه څوك ښځه نشته دې هغه پاك ذات دهر څيز خالق او دهر څيز عالم دې. الله تعالی په بل ځائې کښې فرمائي تاسو رحمان لره اولاد جوړوئ دا تاسو څومره بې هوده خبره کوئ ، دا دومره خرابه خبره تاسو په خپلو ژبو راولئ چه په دې سره د آسمان شليدل، دزمکې شليدل اود غرونو ريزه ريزه کيدل ممکن دی. ستاسو دعوی ده چه الله ﷻ اولاد والا دې. دالله ﷻ اولاد څو هډو کيدې نشي دهغه نه سوا چه څوك دی دهغه په ملکيت کښې دی ، دزمکې او آسمان ټولې هستئ دهغه په غلامئ کښې دی چه هغه پاك ذات دا ټول په خپله قبضه کښې ګير کړی دی او شمير کړی دی او په دوی کښې به هر يو کس هغه ته د قيامت په ورځ خانله خانله پيش

کیږي نو غلام اولا د نشي کیدلي ، ملکیت او ولدیت دوه مختلف څیزونه او متضاد څیزونه دي اویه سورت اخلاص کښې هم ددې نفی شوې ده ﴿قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ۝ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ ۝ لَمۡ يَلِدۡ وَلَمۡ يُولَدۡ ۝ وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌۢ ۝﴾ (اووایه چه الله تعالی یو دې ، الله ﷻ بې نیازه دې ، دده څوك اولاد نشته دې ، نه ئې مور پلار شته دې ، دده څوك هم جنس نشته دې. ) په دې آیتونو کښې او ددې په شان نورو آیتونو کښې هغه خالق کائنات خپله تسبیح بیان کړې ده ، خپل بې نظیری ، بې مثله کیدل او شریك نه لرل ئې ثابت کړی دی او دمشرکانو ددې گنده عقیدې دباطل کیدو اعلان ئې کړې دې اوفرمائیلي یې دی چه هغه ذات خو دټول کائنات رب اوخالق دې نو بیا د هغه ذات اولاد او لونړه چرته نه راغلل ؟

**حدیث قدسی :-** دسورت بقرې ددې آیت تفسیر په بخاری کښې په یو حدیث قدسی کښې دی چه الله ﷻ فرمائی چه ابن آدم زما تکذیب کوی اوده دپاره دا لائق نه دی ، هغه ماته کنځل کوی ده دپاره دا نه دی پکار . دده په دروغه گنړل خو دادی چه هغه دا خیال کوی چه څه دده دمرګ نه پس دده په بیا ژوندی کولوباندې قادر نه یم .اود ده کنځل کول دادی چه هغه زما دپاره اولاد ښائی حالانکه څه پاك یم او اعلی ذات یم اوددې نه پاك یم چه ځما دې اولاد وی او ځما دې ښځه وی(١) هم دا حدیث په نوروسندونو سره په کتابونو کښې هم په اختلاف دالفاظو راغلې دې. بخاری اومسلم کښې دی چه رسول کریم ﷺ فرمائی چه بدوخبرو آوریدل او په دې باندې صبر کولو کښې دالله تعالی نه څوك زیات (صابر) نشته دې ، خلق دهغه ذات اولاد ښائی او هغه پاك ذات دوی ته رزق او معافی کوی. (٢)

**قوله تعالی:-** كُلٌّ لَّهُۥ قَٰنِتُونَ

**هرڅیز دالله تابع دې:-** بیافرمائی چه هر څیز دده اطاعت والا دې ، دده دغلامۍ اقرار کوی ، دده دپاره اخلاص کولو والا دې ، دده په دربار کښې دقیامت په ورځ لاس په نامه ولاړ په دنیا دده غلامان دی چه چاته اووائی نو وائی چه داشان جوړ شه نو هغه هم هغه شان جوړ شی .داشان هر یو د هغه په وړاندې تابعدار او سرټیټې دې .اګر چه کافران نه غواړی خوبیاهم ددوی سیوری دالله ﷻ په وړاندې ټیټیږی . قران پاك کښې په بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَلِلَّهِ يَسۡجُدُ﴾ (د زمکې آسمان ټول څیزونه خوشحاله اوخفه دالله تعالی په وړاندې سجده کوی ، ددوی سیني سحرمابنام ټیټیږي) یو حدیث پاك کښې دی چه چرته قران پاک کښې دقنوت لفظ دې نودهغې نه مراد اطاعت دې . (٣)خو ددې مرفوع کیدل صحیح نه دی.ممکن دی چه د صحابی یا دبل چاکلام وی.دې سندسره دنورو آیتونو تفسیر هم مرفوع مروی دې.خو یاد ساتل پکاردی چه دا ضعیف دی. څوک دې هم په دې نه دهوکه کیږی.والله اعلم.

**قوله تعالی:-** بَدِيعُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ

**د زمکې اواسمانونو پیدا کونکې:-** بیا فرمائی چه هغه پاك ذات زمکې اوآسمان پیدا کولو والا دې بغیر د څه مخکښنۍ نقشې کتلو نه. په لغت کښې دبدعت معنی خو پیدا کولو والا اونوې جوړولو والا ده. په حدیث شریف کښې دی چه هر بدعت ګمراهی ده. (٤)دا خو شو شرعی بدعت ، کله کله د بدعت اطلاق صرف په لغت باندې وی ، شرعی طور مراد نه وی. لکه حضرت عمر فاروق ﷺ خلق په تراویح باندې جمع کړل ، بیا دا شان ئې جاری اوساتل او وې فرمائیل چه دا ښه بدعت دې. (٥)

---

١) صحیح بخاری : کتاب التفسیر باب ( وقالوااتخذالله ولد سبحانه) ٤٤٨٢)-

٢) صحیح بخاری : کتاب الادب باب الصبر فی الاذی:٦٠٩٩، وصحیح مسلم: ٢٨٠٤)-

٣) احمد: ٧٥/٣)-

٤) ابوداود: کتاب السنة باب فی لزوم السنة:٤٦٠٧، وسنده صحیح ، ترمذی : ٢٦٧٦)-

٥) صحیح بخاری: کتاب صلاة التراویح باب فضل من قام رمضان : ٢٠١٠)-

دبديع تشريح:- (بديع دمبدع) نه راختني شوېدې لکه د (مولم) نه (اليم) او د (مسمع) نه (سميع). د (مبدع) معنی انشاء او نوی پيدا کولو والا ده ، بغير دمثال او نمونې نه او بغير د رومبی خل دپيدائش نه پيدا کولو والا ده. بدعتی ته په دې وجه بدعتی وئيلې شی چه هغه هم دالله ﷻ په دين کښې هغه کار يا هغه طريقه ايجاد کوی چه دده نه مخکښې په شريعت کښې نه وی ، داشان څه نوی کار پيدا کولو والا ته په عربۍ ژبه کښې مبتدع وائی. ابن جرير رحمه الله فرمائی چه مطلب دا شوچې الله ﷻ د اولاد نه پاك دې ، هغه پاك ذات دزمکې او آسمان او دټولو څيزونو مالك دې. هر يو څيز دهغه د وحدانيت دليل دې. هر څيز دهغه اطاعت کولووالا دې. دټولو پيدا کولووالا ، جوړولو والا ، موجود کولو والا ، بغير داصلی او مثال نه هغه په وجود کښې راوستلو والا هم هغه يو رب العالمين دې. دهغه پاك ذات گواهی هر يو څيز ورکوی. پخپله مسيح ﷺ هم دهغه گواه او بيانولو والا دې. چه کوم يو رب دا ټول څيزونه بغير دنمونې او بغير دمادې او اصل نه پيدا کړه،هغه پاك ذات حضرت عيسی ﷺ بغير د پلار نه پيداکړو بيا هيڅ وجه نشته دې چه تاسو هغه (حضرت عيسی ﷺ) لره دالله ﷻ خوئې اومنئ.

**قوله تعالى:-** وَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ

**دکائناتو هر څيز کول هغه ته اسان دی:-** بيا فرمائی چه دهغه الله ﷻ قدرت او سلطنت او شوکت داسې دې چه کوم يو څيز لره څنګه جوړوی او پيدا کوی نوهغه ته وائی چه داشان شه نوهغه هم هغه شان شی . لکه فرمائی چه ﴿ إِنَّمَا أَمْرُهُ إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَن يَقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴾ په بل ځای کښې فرمائی چه ﴿ إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ أَن نَّقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴾ او ارشاد دې چه ﴿وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ﴾ . شاعر وائی چه :

اذا ما اراد الله فانما      يقول له كن فيكون

مطلب دټولو دادې چه دالله ﷻ اراده ديو څيز وی او هغه پاك ذات اووائی چه شه نوهغه موجود شی.دهغه پاك ذات د ارادې نه ؟؟ د هغه پاك ذات د ارادې نه مراد جدا کيدل نه دې. نو ددې پورتنو آيتونو په ذريعه عيسايان ډير په نازك انداز سره پوهولې شی چه حضرت عيسی ﷺ هم ددې کن په وينا سره پيد اشوی دې. په بل ځای کښې صفاصفا فرمائی چه ﴿ إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴾ (د حضرت عيسی ﷺ مثال دالله ﷻ په نيز د حضرت آدم ﷺ په شان دې چه هغه د خاورې نه پيدا شوی وو ، بياني اوفرمائيل چه شه نو هغه شو).

| |
|---|
| وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ |
| او وائی \| هغه کسان \| چې نه لری پوهه |
| اوناپوهه کسان وائی |
| لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللَّهُ أَوْ تَأْتِينَا آيَةٌ ۗ كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ |
| ولې نه کوی خبرې زمونږ سره الله \| يا ولې نه راځی مونږته \| يوه نښه \| هم دارنګ \| به وئيل \| هغه کسانو |
| چې الله پاك مونږ سره ولې پخپله خبرې نه کوی \| ياولې مونږته دسادصداقت نښې نه راليږی ادغسې خبرې کړې |
| مِن قَبْلِهِم مِّثْلَ قَوْلِهِمْ ۘ تَشَابَهَتْ قُلُوبُهُمْ ۘ قَدْ بَيَّنَّا |
| چې مخکښې ددوی نه وو \| په شان دويناددوی \| يوشان شوی دی \| زړونه ددوی \| بيشکه بيان کړی دی مونږ |
| پخوانوخلقوهم کړې وې \| اددوی اودهغوی زړونه ، په کفر کښې ،يود بل پشان دی \| مونږ بيان کړی دی |
| الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ |
| اياتونه \| دپاره دهغې خلقو \| چې يقين لری \| |
| نښې نښانې ديقين لرونکو دپاره \| |

**دالله د خبرو مطالبه کول**:- رافع بن حريمله رسول كريم ﷺ ته ونيلي ووكه ته رښتوني نبي نو الله ﷻ مونږ ته پخپله ولې نه وائي؟چه مونږپخپله هم دهغه ذات كلام واورو. نو په دې باندې دا آيت نازل شو (۱) مجاهد رحمه الله فرمائي چه دا خبره نصرانيانو كړې وه. ابن جرير رحمه الله فرمائي چه هم دا صحيح معلوميږي ځكه چې دا آيت دهغوی دبيان په دوران كښې دې.خو په دې قول د سوچ كولوضرورت دې.قرطبي رحمه الله فرمائي چه هغوی ونيلي وو چه درسول كريم ﷺ دنبوت خبرمونږ ته الله ﷻ پخپله ولې نه راكوی. اوهمدا خبره صحيح ده. والله اعلم بعضې مفسرين وائي چه دا قول دعربو د كفارو وو

**قوله تعالى**:- كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّثْلَ قَوْلِهِمْ

اوبيا چې دا فرمائي چه داشان بې علمه خلقو هم ونيلي وو ، ددې نه مراد يهود او نصرانيان دی. (۲)

**ددې مطلب تائيدی اياتونه**:- قرآن پاك كښې په بل ځائې كښې دی ﴿وَإِذَا جَاءَتْهُمْ آيَةٌ قَالُوا لَن نُّؤْمِنَ حَتَّىٰ نُؤْتَىٰ مِثْلَ مَا أُوتِيَ رُسُلُ اللَّهِ﴾( دوی ته چه كله څه نښه راشي نو وائي چه مونږ به ترهغه وخته پورې نه منو چه تر كومې پورې هغه رانكړې شي كوم چه رسولانو ته وركولې شي ) او په بل مقام باندې فرمائي چه ﴿قَالُوا لَن نُّؤْمِنَ﴾ ( او هغوی وائي چه مونږ په رسول كريم ﷺ باندې هيڅ كله ايمان راونړو تر كومې پورې ته زمونږ دپاره په دې زمكه كښې چينې جاری نه كړې ) او په بل ځائې كښې فرمائي چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا﴾ (زمونږ دملاقات نه منكر وائي چه په مونږ باندې فرشتې ولې نه نازليږی ، الله ﷻ مونږ ته ولې نه مخامخ كيږی ؟ الخ. او په بل مقام كښې فرمائي چه ﴿بَلْ يُرِيدُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ أَن يُؤْتَىٰ صُحُفًا مُّنَشَّرَةً﴾ په دوی كښې هر سړی دا غواړی چه هغه ته دې پخپله يو كتاب وركړې شي ، وغيره وغيره.

**دعناد په وجه د معجزاتو مطالبه كول**:- دا آيت صفا وائي چه د عربو مشركانو د رسول كريم ﷺ نه صرف دعناد او تكبر په وجه د داسې داسې څيزونو مطالبه كړې وه، داشان دا مطالبه هم ددې مشركانو وه او ددوی نه مخكښې اهل كتابو هم داسې فضول سوالات كړی وو.ارشاد دې چه ﴿يَسْأَلُكَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَن تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ الخ﴾ (اهل كتاب ستاسونه دا غواړی چه تاسو په دوی باندې څه كتاب نازل كړئ او د حضرت عيسی عليه السلام نه هم دوی ددې نه زيات غټ سوال كړې وو. هغوی ته نې ونيلي وو چه مونږ ته الله ﷻ مخامخ اوښايه). او په بل ځائې كښې (اهل كتابو ته ) فرمان دې چه كله تاسو اوونيل چه اې موسی عليه السلام مونږ په تاسو باندې بالكل ايمان نه راوړو تر كومې چه رب مونږته مخامخ ځان اونه ښائې.

**قوله تعالى**:- تَشَابَهَتْ قُلُوبُهُمْ

**د كافرو په زړونو كښې مشابهت**:- بيا فرمائي چه ددوی اودهغوی زړونه يوشان او مشابه دی يعنی ددې مشركانو زړونه د نوروكافرو پشان دی. او په بل مقام باندې فرمائي چه خلقو هم خپلو نبيانو ته جادوګر او ليونی ونيلي وو، دوی هم دهغوی موافقت اوكړو.

**قوله تعالى**:- قَدْ بَيَّنَّا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ

**اهل يقين دپاره د اياتونو كفايت**:- بيا فرمائي چه مونږ يقين والو ته خپل آيتونه بيان كړل ددې نه درسول تصديق ښكاره دې. دڅه بل څيز طلب كولو حاجت باقي نشته دې ، هم دا نښې دايمان والو دپاره كافي دی. خو چه دچا په زړونوباندې مهر لګيدلې دې نو هغوی ته دهيڅ بو آيت نه څه فائده نه وی لكه فرمائي چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ الخ﴾ (چه په دوی باندې ستا درب خبره ښكاره شوې ده هغوی ايمان نه راوړی اګر چه دوی ته ټول آياتونه راشي تر كومې پورې چه دوی دردناك عذاب اونه ګوری).

---

۱) ابن ابي حاتم : ۱ /۳۵۲ )-
۲) ابن ابي حاتم : ۱ /۳۵۲ )-

| إِنَّآ أَرۡسَلۡنَٰكَ | بِٱلۡحَقِّ | بَشِيرٗا |
|---|---|---|
| بیشکه لیږلي ئي مونږته | په حق سره | زیري ورکونکی |

(اوددې نه لویه نښه به څه وی چې) مونږ ته په حقه سره (د جنت) زیري ورکونکي

| وَنَذِيرٗاۖ | وَلَا تُسۡـَٔلُ | عَنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡجَحِيمِ ١١٩ |
|---|---|---|
| اویرونکي | اونۀ به کیږی ستانه تپوس | په باره دخاوندانو د دوزخ کښې |

او (دعذاب نه) ویرونکي لیږلي ئي او ستانه به د دوزخیانو باره کښې تپوس نه کیږی

**په پیغمبر صرف تبلیغ دي:-** حدیث پاک کښې د جنت خوشخبری او د جهنم نه ویرل دی. د (لَاتُسْئَلُ) دویم قرات (مَاتُسْئَلُ) هم دي .اود حضرت ابن مسعود ﷜ په قرات کښې (لَنْ تُسْئَلُ) دې. یعنی ستانه به دکافرو په حقله سوال نشي کولي. لکه فرمانی چه (فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَٰغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ) (ستا کار صرف رسول دی ، حساب خو زمونږ په ذمه دي) او فرمانی چه (وَفَذَكِّرْ إِنَّمَا أَنتَ مُذَكِّرٌ لَّسْتَ عَلَيْهِم بِمُصَيْطِرٍ) (ته نصیحت کوه ته صرف نصیحت کوونکی ئي ته په دوی باندې داروغه نه ئې).او په بل مقام کښې فرمانی چه (نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ) (مونږته ددوی خبرې ښه معلومې دی ته په دوی باندې زور کونکي نه يې ته دقران پاك په ذریعه دوی ته نصیحت اوکړه چه دقیامت نه اوویریږی). هم ددې مضمون نور آیتونه هم ډیردی.په یو قرات کښې (ولاتسئلن) هم دې.یعنی ائې نبی ﷺ ددې جهنمیانو په باره کښې خما نه تپوس مه کوه.

عبدالرزاق کښې دی چه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه کاش ماته دخپل مور پلار حال معلوم وې ، کاش چه ماته دخپل مور پلار حال معلوم وې ، کاش چه ماته دخپل مور پلار حال معلوم وې. نو په دې باندې دا فرمان نازل شو ، بیا تر آخره پورې رسول کریم ﷺ د خپل مور پلار باره کښې ذکر اونکړو[1] ابن جریر رحمه الله هم په روایت د موسی بن عبیده رحمه الله وارد کړی دی خو په راوی باندې کلام دې. قرطبی رحمه الله وائی چه مطلب دادې چه جهنمیانو حال دومره خراب او بد دې چه ته هیڅ تپوس مه کوه.

**درسول کریم ﷺ د والدینو دکفر او ایمان بیان :-** قرطبی رحمه الله په تذکره کښې یو روایت نقل کړې دې چه د رسول کریم ﷺ والدین ژوندی کړې شو او هغوی ایمان راوړو. او په صحیح مسلم کښې یو حدیث دې چه په هغې کښې رسول کریم ﷺ دچا په سوال باندې اوفرمائیل خما پلار اوستا پلار په اور کښې دی ددې جواب هم په هغه ځائې کښې دې[2] خو یادساتل پکار دی چه د رسول کریم ﷺ مور پلار دژوندی کیدو حدیث په صحاح سته وغیره کښې نشته دې اوددې اسناد ضعیف دی والله اعلم.

ابن جریر رحمه الله یو مرسل حدیث کښې فرمانی چه رسول کریم ﷺ یو ورځ تپوس اوکړو چه خما مور پلار چرته دې ؟ نو په دې باندې دا آیت نازل شو. ابن جریر رحمه الله ددې تردید کړې دې او فرمانی چه دا محال دی چه رسول کریم ﷺ دخپل مور پلار باره کښې شك اوکړی. رومبې قرات صحیح دې. خو مونږ ته په امام همام باندې تعجب دې چه هغه دې ته محال څنګه اووئیل ؟ ممکن دی چه دا واقعه دهغه وخت وی چه کله رسول کریم ﷺ دخپل مورپلار دپاره استغفار کولو. اوانجام ورته معلوم نه وو. بیا چه کله ورته ددې دواړو حالت معلوم شو نو رسول کریم ﷺ دا پرینښودل او بیزارئی ئې ظاهره کړه او صفا ئې اوفرمائیل هغه دواړه جهنمیان دی لکه څنګه چه دصحیح حدیث نه ثابت شوی دی او ددې نور هم ډیر مثالونه دی

---

[1] ) اخرجه عبدالرزاق ل تفسير: ١٢٦، الطبرى: ١٨٧٧)-

[2] ) صحيح مسلم ، كتاب الايمان باب بيان ان من مات على الكفر.....٢٠٣)-

**په تورات کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم صفتونه:-** مسند احمد کښې دي چه حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ﷛ نه حضرت عطاء بن یسار ﷫ تپوس اوکړو چه د رسول کریم ﷺ صفت او ثناء په تورات کښې څنګه ده؟ نو دوی اوفرمائیل چه آو په الله ﷻ قسم چه کوم صفتونه د رسول کریم ﷺ په قران پاک کښې دی هم هغه په تورات کښې دی. په تورات کښې دي چه اني نبی ﷺ مونږ ته ګواه او زیری ورکوونکی او ویرولو والا او دان پړهو بچ کولو والا لیږلې ئې ته خما بنده او خما رسول ئې، ما ستا نوم متوکل اېښودې دې. نو نه خو بدزبانه ئې نه سخت زړه ، نه بداخلاقه ، نه په بازارونو کښې شور کولو والا ، نه دبدئي په بدله کښې بدئي کولو والا ئې. بلکه ته خو معاف کولو والا ئې، الله ﷻ به هغه تر هغه وخته پورې ددنیا نه اوچتوی تر څو چه دهغه په وجه دین صحیح نه کړی او درست ئې نکړی او خلق د ﴿لااله‌الاالله﴾ اقرار اونکړی. اوددوی ړندې سترګې غږې نشی. اوددوی کاڼه غوږونه اوریدونکی نشی. او ددوی زنګ شوی زړونه صفا نشی. دبخاري په کتاب البیوع کښې هم دا حدیث دې چه او په کتاب التفسیر کښې هم [1] ابن مردویه کښې دذې روایت نه پس دی چه عطاء وائی چه څه بیا لاړم اود حضرت کعب ﷛ نه مې دا سوال اوکړو نو هغوی هم دا جواب راکړو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَنْ تَرْضٰى | | | | | | |
| اوهیڅکله به راضی نشی | | | | | | |
| اوستا نه یهود او | | | | | | |
| عَنْكَ | الْيَهُوْدُ | وَلَا النَّصٰرٰى | حَتّٰى | تَتَّبِعَ | مِلَّتَهُمْ ۗ | قُلْ |
| ستانه | یهودیان | اونه عیسایان | ترهغې پورې | چې ته روان شې | په طریقې دهغوی | ورته اووایه |
| نصاری هیڅکله نه راضی کیږی ترڅو چې ته ددوی د مذهب تابعداری اونکړې ورته اووایه | | | | | | |
| اِنَّ هُدَى اللّٰهِ | هُوَ الْهُدٰى ۗ | وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ | اَهْوَآءَهُمْ | | | |
| چې بیشکه لاربنودنه دالله | بس هغه حقیقي لاربنودنه ده | اوکه چرې تابعداري اوکړه تا | دخواهشاتو دهغوی | | | |
| چې الله ماته کومه لار خودلې ده هم هغه سمه لار ده اوکه ته ددوی خواهشاتو پسې روان شوې | | | | | | |
| بَعْدَ الَّذِيْ | جَآءَكَ | مِنَ الْعِلْمِ ۙ | مَا لَكَ | مِنَ اللّٰهِ | مِنْ وَّلِيٍّ | وَّلَا نَصِيْرٍ ۝ |
| روستو دهغې نه | چې راغلې دې تاته | علم | نو نشته ستا دپاره | دالله نه سوا | څوك دوست | اونه مددګار |
| دپوره علم نه پس نوالله (د عذاب) نه دبچ ساتلو به ستا هیڅ دوست او مددګار پیدانشی | | | | | | |
| اَلَّذِيْنَ | اٰتَيْنٰهُمُ | الْكِتٰبَ | يَتْلُوْنَهٗ | حَقَّ | | |
| هغه کسان | چې ورکړې دي مونږ هغوی ته | کتاب | هغوی لولی هغه کتاب | الکه څنګه چې حق دی | | |
| هغه خلق چاته چې مونږ کتاب (توارت) ورکړې دی اوهغوی په حقه د هغې کتاب تلاوت کوی | | | | | | |
| تِلَاوَتِهٖ ۗ | اُولٰٓئِكَ | يُؤْمِنُوْنَ | بِهٖ ۗ | وَمَنْ يَّكْفُرْ | بِهٖ | |
| دوینا دهغې | هغوی | ایمان راوړی | په هغې باندې | اوچاچې انکاراوکړه | دهغې نه | |
| هغوی په دې کتاب (قران) هم ایمان راوړی (اوقران دچا منت کونکې نه دی) اوڅوک چې ترې انکار اوکړی | | | | | | |

[1] صحیح بخاری : کتاب البیوع ، باب کراهیة السخب في السوق: ۲۱۲۵، کتاب التفسیر ، باب ( انا ارسلناک شاهدا و مبشرا ونذیرا) ۴۸۳۸)-

فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُونَ ﴿۱۲۱﴾

نو هغوئ | په اصل کښې نقصان موندونکی دی |

نو هغوئ يوازې خپل تاوان کوی |

**قوله تعالى:-** وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى

ددې پورتنی آیت مطلب دا دې چه خلق هیڅ کله ستانه نهٔ راضی کیږی. ته دوی پریږده او د رب په رضا پسې روان شه. دوی ته د رسالت دعوت اورسوه. حق دین هغه دې چه کوم الله ﷻ تاته درکړې دې. ته په دې باندې قائم اوسه. په حدیث کښې دی چه څما دامت یو جماعت به په حق قائم وی او دنورو مقابله به کوی او غلبې سره به وی. تر دې پورې چې قیامت راشی. (۱)

**د باطل پرستو د تابعدارئ ممانعت:-** بیا خپل نبی ته خطاب کوی او خبرداری ورکوی چې بالکل ددوی د رضا او د صلحې دپاره په خپل دین کښې سستی مه کوه. دوی طرفته مه تیتیږه. اونه ددوی خبره منه فقهاء کرامو ددې آیت نه استدلال کړې دې چه کفر یو مذهب دې که هغه یهودی وی او که نصرانی وی یا بل یو وی، څکه چه ملت لفظ په دې ځائې کښې مفرد راغلې دې لکه څنګه چه په بل مقام باندې دی چه ﴿لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ﴾ (ستاسودپاره ستاسو دین او زما دپاره څما دین دې) . په دې استدلال باندې ددې مسئلې بنیاد اینبودې شوې دې مسلمان او کافر په خپلو کښې وارثان نشی کیدلې اوکافران په خپلو کښې دیو بل وارثان کیدیشی. که هغوی د یو قسم کافران وی او که دبیل بیل کفر کافر وی. امام شافعی رحمه الله او امام ابوحنیفه رحمه الله هم دامذهب دې. او امام احمد رحمه الله نه هم په یو روایت کښې دا نقل دی. او په بل روایت کښې دی چه امام احمد رحمه الله او امام مالک رحمه الله نه دا قول روایت دې چه دوه مختلف مذهبونو والا خپلو کښې دیو بل وارثان نشی جوړیدې ، یو صحیح حدیث کښې هم دا مضمون راغلې دې. (۲) والله اعلم.

**مختلف دين والا يو بل نه ميراث نشی اوړې**

**مسلک حنفی:-** هرکله چې دینونه مختلف وی مثلا یو مسلمان وی او بل کافر وی نو اګرچې په نسب کښې دیر نزدې وی بیا هم د یو بل میراث نشی اوړې (سراجی فصل في الموانع صفحه ۶)-

**قوله تعالى:-** اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ

**دتلاوت حق څه دې:-** بیا فرمائی چه مونږ چاته کتاب ورکړې دې هغوی دتلاوت حق ادا کوی او لولی ئې. قتاده رحمه الله وائی چه ددې نه مراد یهود اونصرانیان دی. او په بل روایت کښې دی چه ددې نه اصحاب درسول الله ﷺ مراد دی ① حضرت عمر فاروق فرمائی چه دتلاوت حق دا دې چه دجنت د ذکر په وخت کښې دجنت سوال وی او دجهنم دذکر په وخت کښې ددې نه پناه غوښتل وی (۳) ② حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه دحرام اوحلال پیژندل ، کلمات په خپل ځائې ادا کول کمې زیاتې نه کول وغیره هم دا دتلاوت حق ادا کول دی (۴) ③ حسن بصری رحمه الله فرمائی چه واضح آیتونو باندې عمل کول ، متشابه آیتونو باندې ایمان راوړل ، مشکلات دعالمانو په وړاندې پیش کول دتلاوت حق سره ونیل دی ④ حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه ددې مطلب د اتباع حق ادا کول هم روایت شوې دې. نو تلاوت په معنی داتباع دې. لکه څنګه چه ﴿وَالْقَمَرِ اِذَا تَلٰهَا﴾ کښې دی. یو مرفوع حدیث کښې ددې هم دا معنی روایت

---

(۱) صحیح مسلم : ۱۹۲۲)-

(۲) ابن ماجة کتاب الفرائض باب میراث اهل الاسلام من اهل الشرک: ۲۷۳۱، وهو صحیح)-

(۳) القرطبی : ۹۵/۲)-

(۴) الطبری: ۵۶۷/۲)-

شوي ده.خو ددې بعضې راويان مجهول دى اگر چه معنى صحيح ده. حضرت موسى اشعرى ﷺ فرمانى چه د قران پاك اتباع كولو والا دجنت په باغيچو كښې كوزيدو والا دې.د حضرت عمر فاروق ﷺ د تفسير مطابق دا هم روايت دې چه رسول كريم ﷺ چه به كله د رحمت دذكر آيت لوستلو نو اوريدلو به اودالله ﷻ نه به ئې د رحمت طلب كولو اوكله چه به ئې دعذاب آيت تلاوت كولو نو اوريدلو به اوالله ﷻ نه به ئې پناه غوښتله . (۱)

**قوله تعالى:- أُولَٰئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِ**

**د بعضې اهل كتابو په قران ايمان راوړل:**-بيا فرمانى چه په دې باندې ايمان هم دا خلق ساتى. يعنى چه كوم اهل كتاب خپل كتاب لره ښه په سوچ او پوهې سره تلاوت كوى ، دغه خلق د قران عظيم الشان نه متاثره شى او په دې خامخا ايمان راوړى. لكه يو ځائې كښې ارشاد دې چه ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا التَّوْرَاةَ ﴾ (كه دوى په تورات او انجيل باندې او دالله ﷻ دطرفنه په نازل شوى ځيزباندې قائم پاتې وې نو دوى ته به د پورته نه او دلاندې نه خوراك ملاويدو الخ) او فرمانى چه ﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَسْتُمْ عَلَىٰ شَيْءٍ حَتَّىٰ تُقِيمُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ﴾ انې اهل كتابو تركومې پورې چه تاسو په تورات او انجيل او هغه ځيز چه ستاسو طرفته نازل شوې دې په هغې قائم پاتې نشئ نو تر هغه پورې تاسو په هيڅ ځيزباندې نه يئ ددې قائم ساتل لازم دى چه په دې كښې څه دى هغه رښتيا اومنئ او په دې كښې د رسول كريم ﷺ ذكر او د رسول كريم ﷺ صفات اود رسول كريم ﷺ دتابعدارئى حكم دې ، ددوى همركابى ټول هر څه موجود دى. او په بل مقام باندې فرمانى چه كوم خلق د أُمى نبى تابعدارى كوى ، چه دكوم رسول ذكر او تصديق په خپل كتاب تورات اوانجيل كښې هم دوى ليكلې شوى گورى . او په بل مقام باندې فرمانى چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مِن قَبْلِهِ﴾ (تاسو كه ايمان راوړئ اوكه راونړئى چه چاته ددې نه مخكښې علم وركړې شوې دې په هغوى باندې چه كله دالله ﷻ دكتاب تلاوت كيږى نودوى په سجده كښې پريوزى اووائى چه زمونږ رب پاك دې اوزمونږ درب وعده بالكل رښتونې او صحيح ده. او په بل ځائې كښې دى چه كومو خلقو ته مونږددې نه مخكښې كتاب وركړې وو هغوى هم په دې باندې ايمان راوړى او كله چه په هغوى ته دا لوستلې شى نوهغوى دخپل ايمان اقرار كوى او وائى چه مونږ خودا د مخكښې نه منو،دوى ته به ددوى دصبر دوچند اجر وركولې شى. دا خلق بدنى لره په نيكئ سره لرې كوى. زمونږ په وركړه كښې خيرات كوى . په بل مقام باندې فرمانى چه﴿وَقُل لِّلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ﴾ (دې لوستونكو او نه لوستونكى ته اووايه چه آيا تاسو اسلام قبلوئى ؟ كه دوى اومنى نو په لار دى اوكه نه منى نو په تاباندې صرف تبليغ دې ، الله ﷻ خپلوبندگان ښه وينى.

**قوله تعالى:- فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ**

**ايمان نه راوړونكى تاوانيان دى:**- هم په دې وجه فرمانى چه په هغه ذات باندې كفر كونكې په نقصان كښې دى. لكه فرمانى چه ﴿ وَمَن يَكْفُرْ بِهِ مِنَ الْأَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهُ ﴾ چه څوك هم دهغه سره كفر كوى نو هغوى په نقصان كښې دى. په صحيح حديث كښې دى چه دهغه ذات قسم چه دهغه لاسو كښې خما ساه ده په دې امت كښې څوك خما واورى كه هغه يهودى وى اوكه نصرانى او بيا هم په ما باندې ايمان راونړى نو هغه جهنمى دې.(۲)

---

۱) ابن ماجه: ۱۳۵۱، صحيح مسلم : كتاب صلاة المسافرين ، باب استحباب تطويل القراءة فى صلاة الليل : ۱۸۱۴)-

۲) صحيح مسلم : كتاب الايمان ، باب وجوب الايمان برسالة نبينا: ......۱۵۳)-

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ | ٱذۡكُرُواْ | نِعۡمَتِيَ | ٱلَّتِيٓ |
| اے بني اسرائيلو | ياد كړئ | نعمت زما | هغه |

اي دحضرت يعقوب(ﷺ) اولاده خما هغه نعمت يادكړئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنۡعَمۡتُ | عَلَيۡكُمۡ | وَأَنِّي | فَضَّلۡتُكُمۡ | عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝ | وَٱتَّقُواْ |
| چې ماکړي وو | په تاسو باندې | اوبل دا چې ما | غوره کړي وئ تاسو | په خلقو | اواويرېږئ |

چې په تاسومې کړې وو || اوتاسومې (دخپلې زمانې) په ټولوخلقوغوره کړې وئ || او ويرېږئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَوۡمٗا | لَّا تَجۡزِي | نَفۡسٌ | عَن نَّفۡسٖ | شَيۡـٔٗا |
| دهغه ورځې نه | چې نۀ به شي ورکولي | په بدله کښې يو نفس | دبل يونفس نه | هيڅ څيز |

دهغې ورځې (دنيولونه) چې هيڅوک به د هيچا په کار رانشي (که پلار وي اوکه اولاد اوکه ياران)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا يُقۡبَلُ | مِنۡهَا | عَدۡلٞ | وَلَا تَنفَعُهَا | شَفَٰعَةٞ | وَلَا |
| اونۀ به شي قبلولې | ددغه نفس نه | فديه | اونۀ به ورکوي فائده دغه نفس ته | سفارش | اونۀ به |

اونه بۀ دچانه نه فديه قبوله کړې شي || اونه به چاته سفارش فائده اورسوی || اونه به (دکافرانو)

| | |
|---|---|
| هُمۡ | يُنصَرُونَ ۝ |
| دهغوئ سره | مدداوکړې شي |

هيڅ قسمه مدداوکړې شي

**تاکيدي خطاب:-** مخکښې خو تقريباً په دې موضوع باندې ايت تير شوې دې اودهغې مفصل تفسير هم بيان شوې دې. په دې ځائې کښې صرف دتاکيد په طور ذکر کړې شوې دې او دوی ته دامی نبی دتابعدارئ رغبت ورکړې شوې دې. چه دهغه صفتونه به دوی په خپلو کتابونو کښې لوستل. چه دهغه کار او نوم مبارك هم ليکلې شوې وو. د رسول کريم ﷺ د امت ذکر هم په دې کښې موجود دې. نو دوی لره ددې دپټولو او دالله ﷻ دنورو نعمتونو دپټ ساتلو په وجه ويرولې شي. او ددنياوی او دينی نعمتونو ذکر کولې شي. اوپه عربو کښې چه ددوی دتره (اسماعيل عليه السلام) خامن دی. دالله ﷻ چه کوم نعمت راغلې دې ، په هغې کښې خاتم النبين الله ﷻ راوليږلو هغه سره حسد نه کوی او دنبی په مخالفت او ددوی په تکذيب باندې د نه راضی کيدو هدايت ورکولې شي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِذِ | ٱبۡتَلَىٰٓ | إِبۡرَٰهِـۧمَ | رَبُّهُۥ | بِكَلِمَٰتٖ |
| اويادكړئ كله چې | ازآمايو | ابراهيم لره | رب د هغه | په خوخبرو |

(او يادکړه هغه وخت چې) دابراهيم رب په يوڅوخبرو کښې دهغه آزمينت اوکړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَتَمَّهُنَّۖ | قَالَ | إِنِّي | جَاعِلُكَ | لِلنَّاسِ | إِمَامٗاۖ |
| نو هغه پوره كړې هغه خبرې اوونيل الله | چې زه | جوړونكې يم تالره | دپاره دخلقو | پيشوا | |

نوهغه ټول حکمونه په ځائې کړل | الله ورته اوفرمائيل چې زه تا د خلقو دپاره پيشوا ګرځوم هغه اوونيل چې

| قَالَ | وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ ط | قَالَ | لَا يَنَالُ | عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اوونيل ابراهيم | اوداولادزما نه هم اوگرځوئ | اوونيل الله | نۀ شامليږي | وعده زما ظالمانو ته |
| زما په اولاد كښي هم (دا سلسله قائمه اوساته) الله ورته اوونيل چي (ښۀ ده خو) زما وعده د ظالمانو په حق كښي نه ده | | | | |

**په توحيد كښې ددنيا امام:** - په دې ايت كښې دخليل الله حضرت ابراهيم ﷺ د بزرګۍ بيان دې چه په توحيد كښې ددنيا امام دې.چه هغه په تكليفونو باندې صبر اوكړو اودالله ﷻ داحكامو پوره كولو كښې ثابت قدم پاتې شو . فرمانى چه ائې نبى ﷺ ! چه ته دا مشركان او اهل كتاب چه د ملت ابراهيمى دعويدار دى ، لږ خو دوى ته ابراهيم ﷺ د فرمانبردارنې اود اطاعت واقعات واوروه چه دوى ته معلومه شي چه په دين حنيف باندې اوپه اسوه ابراهيم باندې څوك قائم دى ؟ هغه خوته ﷺ او ستا اصحاب ﷺ دى .

**د دې معنى تائيدى ايا تونه:** ①اوپه قران پاك كښې په بل ځاني كښې ارشاد دې چه ﴿وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰىٓ﴾ (او ابراهيم ﷺ هغه دې چه هغه پوره وفادارى اوخودله)②او په بل مقام باندې فرمانى چه ﴿اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ كَانَ اُمَّةً قَانِتًا﴾ ( ابراهيم ﷺ دخلقو پيشوا دالله ﷻ فرمانبردار ، مخلص او د نعمت شكرګزار وو. هغه الله ﷻ خوښ كړې وو او په نيغه لار ې راوستلو. هغه ته مونږ په دنيا كښې نيكي وركړې وه او په آخرت كښې به د نيكانو په ډله كښې وى بيا مونږ ائې نبى ﷺ ستا طرفته وحى نازله كړه ، ته د حضرت ابراهيم ﷺ د ملت په نقش قدم باندې روان شه او هغه دمشركانو نه نه وو③او په بل مقام باندې ارشاددې چه حضرت ابراهيم ﷺ نه يهودى وو ، نه نصرانى وو،اونه مشرك وو. بلكه خالص مسلمان وو اوهغه قربت اونزديكت كښې هغه سړې دې چه د هغه دتعليم تابع وى او ادا نبى ابتلاء او ايمان والا ، ددې ايمان والو الله ﷻ پخپله دوست دې. دابتلاء معنى امتحان او آزميښت ده.

**كلمات كوم كوم دى ؟:** ①د كلماتو نه مراد دشريعت حكم او ممانعت وغيره دې.②كلماتو نه مراد كلمات دتقدير هم وى.لكه دحضرت مريم عليها السلام په باره كښې ارشاد دې چه﴿وَصَدَّقَتْ بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا﴾ (هغې دخپل درب كلماتو تصديق اوكړو اودهغه دليك شوى هم ، هغه ډيره فرمانبرداره وه)③اودكلمات نه مراد كلمات شرعيه هم وى﴿ وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا ﴾ (دالله ﷻ شرعى كلمات صداقت او عدل سره پوره شوې)،داكلمات يا خو رښتيا خبرې دى يا طلب دعدل دې. غرض ددې كلماتو دپورا كيدو په بدله كښې دوى ته دامامت درجه ملاؤشوه.

**دكلماتو باره كښې اقوال:** -ددې كلماتو په باره كښې ډير اقوال دى،لكه احكام دحج ، بريت كمول ، خوله كښې اوبه اچولو،پوره صفا كول ،مسواك كول،دسر ويښته خرنيل يا ساتل اوپه دې كښې لاره ويستل ، نوكونه پريكول،دنامه نه لاندې ويښته خرنيل،سنت (ختنه) كول ، دترخ ويښته خرنيل،د متيازو نه پس استنجاء كول،دجمعې په ورځ غسل كول،طواف كول،د صفااو مروه په مينځ كښې سعى كول ، رمى جماركول،طواف افاضه كول وغيره.

**لس خصلتونه د سورة توبه :** حضرت عبدالله بن مسعود فرمانى چه ددې نه پوره اسلام مراد دې چه ددې درې حصې دى،دلسو بيان په سورت براءت كښې دې.د ﴿اَلتَّآئِبُوْنَ﴾ نه تر ﴿الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ پورې يعنى ①توبه كول② عبادت كول③حمدبيانول ④دالله تعالى په لار كښې تلل⑤ركوع كول⑥سجده كول ⑦دنيكئ حكم كول ⑧دبدئ نه منع كول ،دالله ﷻ حفاظت كول ، ⑩ايمان راوړل .

**لس خصلتونه د سورة مومنون اومعارج :** -دلسو بيان د سوره مومنون په شروع كښې او په سورت معارج كښې ﴿ قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ۝ ﴾ يعنى ①مونځ په خشوع او خضوع سره كول ②لغو اوفضول خبرو او كارونونه مخ اړول ③زكوة وركول ④دشرمگاه حفاظت كول⑤امانتدارى كول ⑥دوعدې پوره كول ⑦په مونځ

باندې همېشوالې کول ⑧قيامت ربښتونې ګڼړل ⑨د عذابونو نه وېرېدل ⑩ربښتونې شهادت باندې قائم پاتې کېدل .

**لس خصلتونه د سورة احزاب** :-دباقي لسو بيان په سورت احزاب کښې د (اِنَّ الْمُسْلِمِيْنَ) نه تر (عَظِيْمًا) پورې دې.يعني ①اسلام راوړل ②ايمان راوړل ③قران پاك وئيل ④ربښتيا وئيل ⑤صبر کول ⑥عاجزي کول ⑦خيرات ورکول ⑧ روژه نيول ⑨، دبدکارئ نه بچ کېدل ⑩دالله ﷻ ذکر هر وخت کثرت سره کول،ددې ديرشو احکامو عامل (عمل کوونکې ) وی نوهغه دپوره اسلام پابند دې . او دالله ﷻ د عذابونو نه بری دې.

**دکلمات ابراهيمی مزيد وضاحت**:- ①په کلمات ابراهيمی کښې دخپل قوم نه جدا کېدل ②د وخت د بادشاه نه نه وېرېدل ③او هغه ته تبليغ کول ④بيا دالله ﷻ په لار کښې چه کوم مصيبت راشي په هغې باندې صبر کول ⑤بيا وطن او کور وغيره پرېښودل او هجرت کول ⑥ميلمستوب ⑦جانی اومالی مصيبتونه دالله ﷻ په لار کښې برداشت کول ⑧، تردې پورې چه بچې دالله ﷻ په لار کښې قربانول او هغه هم په خپل لاس سره،داټول احکام خليل الله حضرت ابراهيم ﷺ پوره کړل.

**دامتحان نور اجزاء**:- ①په نمر ②سپوږمئ او ③ستورو سره هم ددوی آزمېښت اوشو ④امامت سره، ⑤د بيت الله جوړولو حکم سره ⑥احکام حج سره ⑦مقام ابراهيم سره ⑧دبيت الله شريف داوسيدونکو په روزئ سره ⑨حضرت محمد ﷺ لره ددوی په دين باندې دليږلو سره هم آزمېښت اوشو. الله ﷻ اوفرمائيل چه اې خليل الله ! خه په تا آزمېښت کوم ، ګورم چه څه کوې ؟ نو حضرت ابراهيم ﷺ اوفرمائيل مالره دخلقو امام جوړ کړه .کعبه دخلقو د ثواب او د اجتماع مرکز جوړ کړه. ددې خانې خلقو ته امن ورکړه .مونږ لره فرمانبردار مسلمانان جوړ کړه. زمونږ په اولاد کښې يو فرمانبرداره ډله جوړه کړه. ددې خانې خلقو ته د ميوې روزی ورکړه .داټولې خبرې الله ﷻ پوره کړې . اوداټول نعمتونه دوی ته ورکړې شو. صرف يو خواهش پوره نه شو ، فرمائيلی ئې وو چه څما اولاد ته امامت ملاؤ شی . نو جواب ملاؤ شو چه څما وعده ظالمانو دپاره نه ده. دکلماتو نه مراد آيتونه دی.

**سنت دابراهيمی** ﷺ :- په مؤطا وغيره کښې دی چه دټولو نه مخکښې سنت (ختنه)کونکې د،دټولو نه مخکښې ميلمستيا کونکې،دټولو نه مخکښې نوکونو کټ کولووالا،دټولو نه مخکښې بريتو لره کټ کوونکې،دټولو نه مخکښې سپين وېښتو کتونکې صرف حضرت ابراهيم ﷺ دې. دسپينو وېښتو په کتوسره حضرت ابراهيم ﷺ تپوس اوکړو چه يا الله ﷻ دا څه دی ؟ جواب ملاؤ شو چه دا وقار او عزت دې. وې وئيل چه اې الله ﷻ بيا خو دا زيات کړه. (¹)دټولو نه مخکښې په منبر باندې خطبه ورکونکې ، دټولو نه مخکښې قاصد ليږونکې،دټولو نه مخکښې توره چلونکې،دټولونه مخکښې مسواك کونکې،دټولو نه مخکښې په اوبو سره استنجا کونکې،دټولو نه مخکښې پائجامه اغوستونکې حضرت ابراهيم خليل الله وو.

په يو غير ثابت حديث کښې دی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل که څه منبر جوړ کړم نو څما پلار حضرت ابراهيم ﷺ هم جوړکړې وو. اوکه لرګې (همسا ) په لاس کښې واخلم نو داهم څما دپلار سنت دی.(²) دمختلفو صحابه کرامو ﷺ او تابعينو وغيره چه د کلماتو په تفسير کښې څه وئيلی وو هغه مونږ بيان کړل. او صحيح هم دادی چه دا ټولې خبرې په دې کلماتو کښې وې . د څه خاص تخصيص څه قوی وجه ملاؤ نشوه ، والله اعلم.

¹ ) الموطا : ۲/۹۲۲، عن سعيد ا لمسيب وسنده صحيح )-

² ) البزار: ۶۳۳)-

**لس دفطرت خبري:** - په صحيح مسلم كښې د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه لس خبرې د فطرت دی او اصل دين دې. ① بريت كمول ② ږيره لويول ③ مسواك كول ④ په پوزه كښې اوبه اچول ⑤ نوكونه پريكول ⑥ دگوتو سرونه وينځل ⑦ د ترخ ويښته ويستل ⑧ دنامه نه لاندې ويښته خرئيل ⑨ استنجا كول . راوی وائی خما نه لسمه خبره هيره شوېده. [1] شاند چه په خوله كښې اوبه اچول وو.

په بخاری اومسلم كښې دی چه نبی كريم ﷺ فرمائی چه پنځه خبرې دفطرت دی ① ختنه (سنت) كول ② دشرم گاه ويښته اخستل ③ بريت كمول ④ نوكونه پريكول ⑤ [2] دترخ ويښته خرئيل . په يو حديث كښې دی چه حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام ته وفا كولو والا په دې وجه اووئيلې شو چه هغوی به دهر سحر په وخت كښې ﴿ فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ ۝ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَعَشِيًّا وَّحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ ۝ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ ۝﴾ ونيل. [3] په يو روايت كښې دی چه په هره ورځ كښې به ئې څلور ركعته كول ، خودا دواړه احاديث ضعيف دی. اوپه دې كښې ډير راويان ضعيف دی. اود ضعف ډير وجوهات دی. بلكه دهغه روايت ذكر د ضعف دذكر نه بغير بيانول جائز نه دی. متن هم په ضعف باندې دلالت كوی.

**قوله تعالى:- قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ ؕ**

حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام چه دخپل امامت زيرې واوريدو نو دخپل اولاد دپاره ئې هم دا دعا كوله. اودا قبوله شوه خو دې سره دا هم اووئيلې شو چه ستاسو په اولاد كښې به ظالمان هم وی هغوی دپاره دا وعده نه ده. هغوی به امامان نشی جوړولې. سورت عنكبوت دا مطلب واضح كوی چه دخليل الله دا دعا هم قبوله شوه ،په هغه مقام باندې فرمائی چه ﴿ وَجَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ ﴾ (مونږ ددوی په اولاد كښې نبوت اوكتاب كيخودو). د حضرت ابراهيم عليه السلام نه پس چه څومره نبيان عليهم السلام او رسولان عليهم السلام راغلل نوهغه ټول د حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام په اولاد كښې وو. او چه څومره كتابونه نازل شو هغه ټول د حضرت ابراهيم خليل ا لله عليه السلام په اولاد كښې نازل شو (صلوت الله وسلامه عليهم اجمعين) .

**د ظالم اوعهد وضاحت:** - په دې ځائې كښې دا خبر وركړې شوې دې چه د حضرت ابراهيم عليه السلام په اولاد كښې به ظلم كونكی هم وی. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه ددې مطلب دادې چه څه به ظالم لره امام نه جوړوم. دظالم نه مراد بعضو مشرك اخستې دې. دعهد نه مراد امر دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه ظالم لره دې د څه څيز ولي او مشر جوړ نه كړې شی. اگر چه هغه د حضرت ابراهيم عليه السلام د اولاد نه وی. د حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام دعا دهغوی په اولاد كښې د نيكانوپه حق كښې شوې ده. دا معنی هم شوې ده چه د ظالم هيڅ عهد نشته دې چه دهغه دې اطاعت اوكړې شی. دهغه عهددې مات كړې شی او پوره دې نكړې شی. اودا هم مطلب دې چه دقيامت په ورځ دالله ﷻ وعده دوی سره هيڅ نشته دې. په دنيا كښې خو دوی خوراك څكاك كوی او عيش و عشرت كوی. دعهد نه مراد دين هم دې.يعنی ستا اولاد ټول ايماندار نه دی لكه څنگه چه فرمائی چه﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَّظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ مُبِيْنٌ ۝﴾(دهغوی په اولاد كښې نيك هم او خراب هم شته) اود اطاعت معنی هم كړې شوې ده يعنی

---

[1] )صحيح مسلم : كتاب الطهارة باب خصالة الفطر: ۲۶۱، ابوداود: ۵۳، ترمذی : ۲۷۵۸، نسائی : ۵۰۴۳)–

[2] )صحيح مسلم : كتاب اللباس باب قص الشوارب : ۵۸۸۹، صحيح مسلم: ۲۵۷)–

[3] ) الطبری : ۱۹۴۰)،

اطاعت صرف نیکی او ښیګړه ده. اودعهد معنی نبوت هم ده.ابن خویز مندا مالکی رحمه الله فرمانی چه ظالم سړی نه خلیفه جوېدې نشي نه حاکم ،نه مفتي او نه ګواه او نه راوی.

| وَإِذْ | جَعَلْنَا | الْبَيْتَ | مَثَابَةً | لِلنَّاسِ | وَأَمْنًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اویاد کړئ کله چې | مقرر کړو مونږ | دا کور | ځایٔ دثواب (مرکز) | دپاره دخلقو | اوځائي دامن |
| او(یادکړه)هغه وخت چې مونږ بیت الله (خانه کعبه)دخلقو دپاره دثواب اودامن ځاني مقرر کړو | | | | | |
| وَاتَّخِذُوا | مِنْ مَّقَامِ إِبْرٰهِيمَ | مُصَلًّى | | | |
| اوحکم مواوکړو چې جوړ کړئ | دځایٔ داودریدودابراهیم نه | ځائي دمونځ | | | |
| اوخلقوته موحکم اوکړو چې تاسو په مقام ابراهیم کښې مونځونه کوئ | | | | | |

**قوله تعالى:- وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا**

**بيت الله دامن او امان ځائي** :- د (مَثَابَةً) نه مراد باربار راتلل ،حج به کوی او واپس به ځي. خودتولو به زړه کښې به يو شوق وی. دهر هر ځائي نه به خلق رازی دې طرفته ډلې ډلې . دا دجمع کیدو ځائي دې ، هم دا دامن مقام دې. چه په دې کښې وسله نشی اوچتولې .دجاهلیت په زمانه کښې هم ددې چاپیر چل کښې لوټ مار کیدو خو په دې ځائي کښې به امن وو. چا به بل ته کنځل نه کول ، دا ځائي همیشه متبرك اوشریف وو، نیك روحونه به دې طرفته په شوق وو چه هر کال ددې زیارت اوکړي.خو خیال به نې دې طرفته وو. دا د حضرت ابراهیم خلیل الله عليه السلام ددعا اثر دې ،حضرت ابراهیم عليه السلام دعاکړې وه چه (فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِي إِلَيْهِمْ) (نه دخلقو زړونه دې طرفته مائل کړه)په دې ځائي کښې که څوك د پلاراو رور قاتل هم اووینی نو خاموش شی .په سورت مائده کښې دی چه ( قِيَامًا لِّلنَّاسِ)(دادخلقو دقیام ځائي دې).حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمانی چه که خلق حج کول پریږدی نو په زمکه به آسمان راپریوزی ددې کور دشرف په کتلو ددې د اول باني حضرت ابراهیم خلیل الله عليه السلام شرف ته خیال اوکړئی. الله تعالی فرمانی چه ( وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ)(مونږ دبیت الله ځائي ابراهیم ته ورکړو او ورته مو اووئیل چه مونږ سره څوك شریك مه جوړوه) او په بل مقام باندې دی چه ( إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ) (دالله تعالی ړومبی کور مکه دې چه د برکت اود هدایت نه ښبو دې).

**قوله تعالى:- وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى**

**مقام ابراهیم عليه السلام څه دې ؟** :- مقام ابراهیم نه مراد ټول حرم دې ،امن وامان والا .او خاص مقام ابراهیم هم دې .او پوره حج هم دې. لکه عرفات ، مشعر الحرام،منی،رمی وجمار،د صفا مروه طواف .مقام ابراهیم په اصل کښې هغه کاڼړې دې چه هغه د حضرت ابراهیم عليه السلام بی بی د اسماعیل عليه السلام د لمبلو دپاره ددوی د پښو لاندې ایښودې وو.[1]خو حضرت سعید بن جبیر رحمه الله وائي دا غلط دی، اصل کښې دا هغه کاڼړې دې چه په دې باندې اودریدو او حضرت ابراهیم عليه السلام به کعبه تعمیر کوله.

**مقام ابراهیم دمونځ ځائي ګرځول**:- د حضرت جابر یو اوږد حدیث دې چه هرکله نبی عليه السلام طواف اوکړو نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه مقام ابراهیم طرفته اشاره اوکړه او وې فرمائیل چه آیا هم دا زمونږ دپلار حضرت ابراهیم عليه السلام مقام دې ؟ حضرت نبی کریم عليه السلام اوفرمائیل چه آو. بیائې اوفرمائیل چه مونږ دې دا ولې قبله جوړه نکړو ؟ نو په دې باندې دا آیت نازل شو. په یو بل حدیث کښې دی چه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په سوال باندې لږ وخت تیر شوې وو چه دا حکم نازل شو. په یوبل حدیث کښې دی چه دمکې

[1] (الطبری : ۳/۳۵)-

دفتحې په ورځ حضرت عمر فاروق ﷺ مقام ابراهيم طرفته اشاره کړې وه اوتپوس ئې کړې وو چه ايا هم دا مقام ابراهيم دې چه مونږ ددې دقبلې جوړولو حکم راکړې شوې دې. رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چه آو هم دا دې. (۱)

**د حضرت عمر فاروق ﷺ فضيلت** :- په صحيح بخاري کښې دی چه حضرت عمر فاروق ﷺ به فرمائيل چه ما دخپل رب سره په دريو خبرو کښې موافقت اوکړو، چه الله ﷻ ته منظور وو هغه خما دژبې نه اووتل.① ما اووئيل انې رسول کريم ﷺ کاش چې مونږ مقام ابراهيم لره د مانځه ځائې جوړه کړې وې نو حکم راغلو چه ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ ② ما اووئيل چه يارسول الله ﷺ امهات المومنين ته دپردې حکم ورکړه ، نو په دې باندې دپردې آيت نازل شو. ③ هر کله چه ما ته معلومه شوه چه رسول کريم ﷺ د خپلو بيبيانو نه خفه دی نو څه لاړم او هغوی ته مې اووئيل که تاسو منع نه شوئي نو الله ﷻ به ستاسونه ښې بيبيانې ستاسوپه بدله کښې خپل نبی ته ورکړی . نوپه دې باندې الله تعالی نازل اوفرمائيل چه ﴿عَسَىٰ رَبُّهُ﴾(۲)د دې حديث ډير سندونه دی او په ډيرو کتابونو کښې روايت شوې دې. په يو روايت کښې دی چه دبدر د قيديانو په باره کښې هم د حضرت عمر فاروق ﷺ موافقت نقل شوې دې. دوی فرمائيلی وو چه ددوی نه فديه مه اخلئ بلکه دوی دې قتل کړې شی. اوالله ﷻ ته هم دامنظور وو(۳)عبدالله بن ابی سلول چه هرکله مړ شو او رسول کريم ﷺ دهغې جنازه کله ادا کولو دپاره تيار شو نو ما وئيلي وو چه تاسو ﷺ به ددې منافق جنازه کوئی ؟ رسول کريم ﷺ څه په دې اورتلم. نو په دې باندې دا آيت نازل شو چه ﴿وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم﴾او رسول کريم ﷺ دداسې جنازو نه منع کړې شو.

**دمقام ابراهيم نور تفصيل** :- دابن جريج په روايت کښې دی چه رسول کريم ﷺ په رومبنی طواف کښې درې ځل رمی کړې وه يعنی په پهلوانئ سره تلل او څلور ځکرې ئې اولګولو. بيا دمقام ابراهيم شاته راغلل او دوه رکعته مونځ ئې اوکړو او دا آيت مبارك ئې تلاوت کړو چه ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ . حضرت جابر ﷺ نه يو حديث نقل دې چه مقام ابراهيم او دبيت الله شريف په مينځ کښې ولاړ وو(۴)، ددې احاديثو نه معلومه شوه چه دمقام ابراهيم نه مراد هغه کاڼړې دې چه په هغې باندې حضرت ابراهيم ﷺ دکعبې تعمير کولو. حضرت اسماعيل ﷺ به دوی ته کاڼړې ورکول اوکعبه ئې تعمير کوله او په دې کاڼړې به اودريدل ، څومره چه به ديوال اوچتيدو نوهغه ځائې ته به ئې اوړو ، اوداشان دکعبې ديوالونه پوره شو. ددې پوره بيان به دحضرت ابراهيم ﷺ په واقعه کښې راشی انشاء الله. په دې کاڼړې باندې ددوی د دواړو پښو نښې ښکاره وې چه عربو د جاهليت دزمانې خلقو هم کتلی وو ، ابو طالب په خپله مشهوره قصيده کښې وئيلی دی چه :

ومو طیء ابراهيم فی الصخر رطبة على قدميه حافيا غير ناعل

(په دې کاڼړې کښې د حضرت ابراهيم ﷺ د دواړو پښو نښې تازه دی ، چه په هغې کښې پيزار نشته).

بلکه مسلمانانو هم دا کتلی وو.حضرت انس فرمائی چه په مقام ابراهيم کښې ما د حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ د پښو د ګوتو نښې کتلې وې. بياخلقو هغه په چوني سره ختم کړل.حضرت قتاده ﷺ فرمائی چه دې ته دمونځ کولو حکم دې. دتبرك په طور د لاس لګولو دپاره نه دې. دې امت هم د مخکښو امتونو په شان دالله ﷻ د حکم نه بغير بعضې کارونه په خپل ځان لازم کړل ، او دا نقصانی دی. هغه نښې د خلقو دلاس لګولو په وجه ورانې شوې. دا مقام ابراهيم مخکښې ديوال سره نزدې وو ،

---

۱) ابن ابی حاتم : ۱ / ۳۷۱ ، السنن الکبری للنسائی : ۱۰۹۹۸)-

۲) صحيح بخاری : کتاب التفسير: سورة البقرة باب ( واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى ) ۴۴۷۳، ترمذی: ۲۹۵۹)-

۳) صحيح مسلم : کتاب فضائل الصحابة باب من فضائل عمر ﷺ : ۲۳۹۹)-

۴) صحيح مسلم : کتاب الحج باب حجة النبی ﷺ : ۱۲۱۸)-

د کعبې د دروازې طرفته ، دحجر اسود سره د دروازې ښی طرفته په يو مستقل ځاى باندې وو چه نن هم خلقوته معلوم دى. خليل الله ﷺ خو يا داپه دې ځاى ايښودې وو يا دبيت الله د جوړولو په وخت آخرى حصه ئې هم دا جوړه کړې وه. او هم په دې ځاى ئې هغه کانړى کيخودو.

امير المومنين حضرت عمر فاروق ﷺ دخپل خلافت په زمانه کښې دا روستو کړې وو. ددې په ثبوت کښې ډير روايات دى. بيا ؟؟يوځل په دې خانه کعبه کښې اوبه راغلې وى او اوبو سره دا کانړى يعنى حجر اسود هم دخپل ځاى نه اخوا شوې وو.. خليفه ثانى دا بياپه خپل ځاى باندې کيخودو.

حضرت عثمان فرمائى چه ماته نه دى معلوم چه کله دا دخپل ځاى نه بې ځايه کړې شو نو ددې نه مخکښې دا ددې ديوال نه څومره لرې وو، يو روايت کښې دى چه پخپله رسول کريم ﷺ دا دهغه ځاى نه اخوا کړې وو او په هغه ځاى کښې ئې ايښودې وو چه په کوم ځاى کښې چه اوس دې. خو دا روايت مرسل دې. صحيح خبره داده چه حضرت عمر ﷺ دا روستو ايښودې وو ، والله اعلم.

وَعَهِدْنَآ
| اوتاکيدى حکم کړې وو مونږ
اوپيغام مو ورکړو

اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ اَنْ طَهِّرَا بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِيْنَ
ابراهيم او اسماعيل ته | چې پاك ساتئ تاسودواړه | كورزما | دپاره دطواف كونكو
ابراهيم(اودهغه نوموړنى خوئې)اسماعيل ته چې زماكور(كعبه د هرڅه نه) پاكه كړئ د طواف كونكو

وَالْعٰكِفِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ ۝ وَاِذْ قَالَ
اودپاره داعتكاف كونكو|اودپاره د ركوع كونكو|دپاره دسجده كونكو| اوياد كړئ كله چې| اووئيل|
داعتكاف كونكو، ركوع كونكو اوسجده كونكو دپاره | او(ياد كړئ هغه وخت) چې اووئيل

اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا بَلَدًا اٰمِنًا وَّارْزُقْ اَهْلَهٗ
ابراهيم |اے ربه زما| جوړ كړه | دا| ښار د امن |او وركړه | اوسيدونكو ددې ته|
حضرت ابراهيم انئ زما ربّ دا ښار د امن ځائې اوګرزوه| اوددې ځاى خلقوته

مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ قَالَ
هرقسم ميوې | هغه چاته| چې ايمان ئې راوړې دى| ددوئ نه| په الله باندې| اوپه ورځ داخرت باندې| اووئيل الله
رنګ رنګ ميوې نصيب كړې | هغه چاته چې په الله او په ورځ دقيامت يقين لرى(الله په جواب كښې)الله اووئيل

وَمَنْ كَفَرَ فَاُمَتِّعُهٗ قَلِيْلًا ثُمَّ اَضْطَرُّهٗٓ اِلٰى عَذَابِ النَّارِ ؕ وَبِئْسَ
اوچاچې كفراوكړو| نوفائده به وركړو هغه له هم| لږه ابيا به راكاږم هغه |عذاب د وورته | اوبد ځاى
اوڅوك چې خمادحكم منلونه انكار اوكړې| هغه نه به هم لږه فائده وركړم| بيابه دې په ذلت سره ددوزخ عذاب ته اوسپارم

الْمَصِيْرُ ۝ وَاِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهٖمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَاِسْمٰعِيْلُ ؕ
دورتلودې هغه |اوياد كړئ كله چې | اوچتول | ابراهيم | بنيادونه | ددې كور | اواسماعيل |
كوم چه داستوګنې په لحاظ ډيرخراب ځاې دې او(ياد كړه )كله چې ابراهيم او اسماعيل دديوالونو

| رَبَّنَا | تَقَبَّلْ | مِنَّا ط | إِنَّكَ | أَنْتَ | السَّمِيعُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو دعا به ئې کوله اے ربه زمونږ | قبول کړې | زمونږنه | بیشکه ته | هم خاص ته | ډېر اورېدونکې |
| دبیت الله بنیادونه خیژول او دعاګې غوښتله اې زمونږ ربه زمونږ (داخدمت) قبول کړه بشکه ته اورېدونکې | | | | | |

| الْعَلِيمُ ○ | رَبَّنَا | وَاجْعَلْنَا | مُسْلِمَيْنِ | لَكَ | وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| او په هرڅه پوهه ئې | اے ربه زمونږ | جوړ کړې مونږ | تابعدار | ستا | او را پورته کړې د اولاد زمونږ نه |
| او په هرڅۀ پوهه ئې | اې زمونږ ربه مونږ دواړه خپل تابعدار اوفرمانبردار اوګرزوه | اوزمونږ په اولاد کښې هم | | | |

| أُمَّةً | مُسْلِمَةً لَكَ ص | وَأَرِنَا | مَنَاسِكَنَا | وَتُبْ عَلَيْنَا ج |
|---|---|---|---|---|
| یو قوم | حکم منونکې ستا | او اوښایه مونږته | طریقې دعبادت زمونږ | او قبولوالې د توبې اوکړې په مونږ |
| یو ډله خپل فرمانبردار کړه او مونږته دحج طریقې اوښایه اوزمونږ توبه قبوله | | | | |

| إِنَّكَ | أَنْتَ | التَّوَّابُ | الرَّحِيمُ ○ |
|---|---|---|---|
| بیشکه ته | خاص هم ته | ډېر معاف کونکې | او رحم کونکې ئې |
| بیشکه ته توبه قبلونکې مهربان ئې | | | |

**احکام د بیت الله او مساجد** :- په دې ځائې کښې دعهد نه مراد حکم دې. پاک ساتل، د ګندګۍ نه، او پلیتۍ نه اود خرابو څیزونو نه[1] دعهد تعدیه په " الی " سره اوشوه نومعنی داشوه مونږ هم وحی اوکړه او مخکښې نه موده ته اووئیل، دپاك ساتلو مطلب دبتانو نه بچ کول دی، په هغه ځائې کښې دغیرالله ﷻ عبادت نه کول، په دې کښې د لغوه کارونو ، فضول بکواس ، دروغو خبرو ، شرك او کفر او ټوقو نه هغه بچ ساتل هم شامل دی.

**قوله تعالی**:- لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْعٰكِفِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ

د(طائف)یو معنی طواف کونکی دی. په دې تقدیر باندې د ﴿ وَالْعٰكِفِيْنَ ﴾ معنی دمکې اوسیدونکی شوه. یو خل خلقو اووئیل امیر وخت ته وئیل پکاردی چه خلق د بیت الله کښې دځملاستو نه منع کړی. ځکه چه ممکن دی چه جنب شی، ممکن دی چه په خپلو کښې څه فضول خبرې اوکړی ، نومونږ واوریدل چه هغه منع کول نه دی پکار. ابن عمر ﷺ به هغوی ته هم﴿ وَالْعٰكِفِيْنَ ﴾ وئیل. یو صحیح حدیث کښې دی چه په مسجد نبوی ﷺ کښې به د حضرت عمر فاروق ﷺ خوئې عبدالله ځملاستلو ، هغه ځوان او خلمې وو[2] د ﴿ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ ○ ﴾ نه مراد مونځ ګزاردی[3] ددې دپاك ساتلو حکم په دې وجه ورکړې شو چه په هغه وخت کښې هم بت پرستی قائم وه. بلکه خبره دا وه چې ددې بزرګانو ذهن کښې دا خبره وی. په بل ځائې کښې ارشاد دی چه ﴿ وَاِذْ بَوَّاْنَا لِاِبْرٰهِيْمَ ﴾ په دې آیت کښې هم دا حکم دې چه ځما سره شریك مه جوړوئی، او ځما کور لره پاك ساتئ، دفقهاء کرامو په دې کښې اختلاف دې چه د بیت الله مونځ افضل دې او که طواف. حضرت ا مام مالك ﷫ فرمائی چه دبهر والو دپاره طواف افضل دې ، دجمهورو قول دې چه دهر یو دپاره مونځ افضل دې ، ددې د تفصیل مقام دا نه دې.

---

[1] ) ابن ابي حاتم : ۳۸٦/۱)–

[2] ) صحيح بخارى : كتاب الصلاة باب نوم الرجل في المسجد. ٤٤٠، صحيح مسلم : ۲۷۷۹)–

[3] ) ابن ابي حاتم : ۳۷٦/۱)–

## طواف افضل دي که مونځ

**مسلک حنفي:-** کوم کسان چه اهل حرم نهٔ وی نو د هغوی دپاره طواف د نفلی مونځ نه افضل دي او کوم کسان چي اهل حرم وی نو د هغوی دپاره نفلی مونځ افضل دي (احکام القران للعثمانی ۱۱۱/۷۲).

**په ایت کښې په اهل کتابو رد:-** مقصد ددې نه مشرکانو ته تنبیه او تردید دې چه بیت الله خو خاص د الله ﷻ دعبادت دپاره جوړ شوې دې ، په دې ګنبې ذنورو غبادت کول او خالص دالله ﷻ عبادت کوونکی ددې نه منع کول څومره زیاته ناانصافی ده. ددې وجې په بل ځائې کښې فرمائی چه داسې ظالمانو ته به مونږ دردناکه سزا ورکوؤ. د مشرکانو ددې ښکاره تردید سره سره د یهودو او نصرانیانو هم ښکاره تردید اوشو چه هغوی د حضرت ابراهیم ﷺ او حضرت اسماعیل ﷺ دبزرګئ قائل دی. هرکله چه دوی ته پته ده چه دا شریف کور هم ددې متبرکو لاسونوجوړ شوې دې ، او دوی ددې هم قائل دی چه داصرف دمونځ او طواف او د رب د عبادت دپاره جوړ شوې دې ، حج او عمرې وغیره دپاره مخصوص کړې شوې دې نوباوجود ددې نبیانو دتابعدارئ دعوې نه ولې (خلق) دحج اوعمرې نه منع کوی ، ولې بیت الله شریف ته حاضری نه کوی. بلکه پخپله حضرت موسی ﷺ ددې بیت الله شریف حج اوکړو لکه څنګه چه په حدیث کښې صفا موجود دی . ([1])

د دې آیت کریمه نه دا هم ثابته شوه چه جمات لره پاك صاف ساتل پکار دی. او په بل مقام باندې دی چه ﴿ فِىْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ يُسَبِّحُ لَهٗ فِيْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ﴾ الله ﷻ د جماتونود اوچتولو اجازت ورکړې دې ، په دې کښې دې دهغه پاك ذات دنوم ذکر اوکړې شی ، په دې کښې دې سحر مابنام دهغه پاك ذات تسبیح اوکړې شی اودا دهغه پاك ذات نیك بندګان کوی. په حدیث کښې هم دی چه جمات دکوم کار دپاره دې هم دهغې دپاره دی ([2]) او په احادیثو کښې ډیر زیات تاکید سره دجماتونو دپاکوالی حکم راغلې دې . (امام ابن کثیر رحمه الله په دې باره کښې یوخاص رساله لیکلې ده ) .

**د بیت الله د تعمیر تاریخ:-** ①بعضې خلق خو وائی چه دټولو نه مخکښې کعبة الله فرښتو جوړه کړې وه . خو دا سند غریب دې. ②بعضې وائی چه حضرت آدم ﷺ دټولونه مخکښې جوړه کړې وه. حرا ، طور سیناء ،طور زیتا ، جبل لبنان او جودی ، ددې پنځو غرونو نه جوړه کړې شوې وه. خو دا سند هم غریب دې([3]) ③بعضې وائی چه حضرت شیث ﷺ دټولو نه مخکښې دا جوړه کړې وه. خودا هم د اهل کتابو خبره ده. په حدیث مبارك کښې دی چه حضرت ابراهیم ﷺ مکې لره حرم جوړکړو ، څه مدینې لره حرم جوړوم ، په دې ځائې کښې دې ښکار اونکړې شی ، ددې ونې دې اونه وهلې شی ، په دې ځائې کښې دې وسله وانخستلې شی([4])دصحیح مسلم په یو حدیث کښې دی چه خلقوبه نوې میوې واخستلې او د رسول کریم ﷺ په خدمت کښې به حاضریدل ، رسول کریم ﷺ به هغه واخستلې او دعابه ئې کوله چه اې الله ﷻ زمونږ په میوو کښې ، زمونږ په ښار کښې ، زمونږ په ناپ تول کښې برکت واچوې،اې الله ﷻ ! حضرت ابراهیم ﷺ ستا بنده ، ستا خلیل اوستا رسول وو ،څه هم ستابنده ستا رسول یم ، هغه ﷺ ستا نه دمکې دپاره دعا کړې وه ، څه هم ستا نه دمدینې دپاره دعا کوم. لکه څنګه چه هغه دمکې دپاره دعا کړې وه دغه شان څه دمدینې دپاره هم کوم ، بیا به رسول کریم ﷺ څوك ماشوم راوستلو او هغه میوې به ئې هغه ته ورکړې. ([5])

---

[1]) صحیح مسلم ، کتاب الایمان ، باب الاسراء برسول ﷺ :۱۶۶)-

[2]) صحیح مسلم ، کتاب المساجد ، باب النهی عن نشد الضالة فی المسجد: ۵۶۹)-

[3]) ثابت نه دی ( ضعیف الترغیب والترهیب: ۶۹۵)-

[4]) صحیح مسلم : کتاب الحج ، باب فضل المدینة: ۱۳۶۳)-

[5]) صحیح مسلم : کتاب الحج ،فضل المدینة: ۱۳۷۳: الترمذی: ۲۴۵۴، ابن ماجه: ۳۳۲۹)-

**د مدینې منورې حرمت** :- حضرت انس بن مالك ﷺ فرمائي چه رسول کریم ﷺ یو ځل ابوطلحه ﷺ ته اوفرمائیل چه لاړشه او دخپلو بچونه یو بچې مالره ځما د خدمت دپاره راوله ،نو حضرت ابوطلحه ﷺ څه راوستلم ، څه په سفر اوحضر کښې د رسول کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر ووم . یو ځل رسول کریم ﷺ د بهر نه راتللو ،کله چه ا حد غر باندې د رسول کریم ﷺ نظر پریوتلو نو رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا غر ماسره او څه ده سره محبت کوم. هرکله چه مدینې منورې باندې ئې نظر اولګیدونو وې فرمائیل چه یا الله ﷻ څه ددې د دوو غارو په مینځ ځائې حرم مقررکوم لکه څنګه چه حضرت ابراهیم ﷺ مکه حرم جوړ کړې وو.اې الله ﷻ ددوی په مد او صاع کښې اوناپ تول کښې برکت واچوې([1])اوپه بل حدیث کښې دی چه یا الله ﷻ څومره برکت چه تا مکې ته ورکړې دې ددې نه دوچند برکت مدینې منورې ته ورکړه([2])په یو بل روایت کښې دی چه په مدینه منوره کښې قتل اونکړې شی.اود ګیا نه سوا دې ددې ځائې د ونو پاڼړې هم اونه څنډلې شی([3])ددې مضمون نور هم ډیر احادیث دی چه دهغې نه ثابتیږی چه په مدینه کښې هم دمکې پشان حرم دې.

**د مکې حرمت د اولې ورځې نه دې**:- په دې مقام باندې ددې احادیثو د لیکلو نه زمونږ غرض دمکې مکرمې حرمت اوددې امن بیانول دی.بعضې خو وائی چه دا د شروع نه حرم اوامن دې،بعضې وائی چه د خلیل الله ﷺ د زمانې نه دې. خو رومې قول زیات ظاهر دې. د بخاری او مسلم حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ دمکې دفتحې په ورځ اوفرمائیل هرکله چه الله ﷻ آسمانونه او زمکې پیدا کړې د هغه وخت نه دا ښار حرمت او عزت والا جوړ کړې شوې دې.اوس به دا تر قیامته پورې حرمت او عزت والا وی. په دې کښې جنګ جګړې دهچا دپاره حلال نه دی. ځما دپاره هم صرف په نن ورځ ، دلږ وخت دپاره حلال کړې شوی وو اوس دا حرام دې. واورئ ! په دې کښې دې ښکار اونکړې شی ، ددې وانبه دې پرې نکړې شی. په بل روایت کښې دی چه دا حدیث رسول کریم ﷺ دخطبې په دوران کښې بیان اوفرمائیلو.اود حضرت ابن عباس ﷺ په سوال باندې رسول کریم ﷺ د ،اذخر، نومې وښو پرې کولو اجازت ورکړې وو. ([4])

**د مکې حرمت دائمی دې**:- حضرت ابن شریح عدوی ﷺ عمرو بن سعید ته په هغه وخت کښې اوونیل چه کله هغه مکې طرفته لښکر لیږلو چه اې امیر واوره دمکې دفتحې په ورځ رسول کریم ﷺ په خپله خطبه کښې سحر فرمائیلی وو چه هغه ځما غوږونو واوریدل اویادئې اوساتل اوما په خپلو سترګو رسول کریم ﷺ په هغه وخت کښې اوکتلو،رسول کریم ﷺ حمدوثناء اوونیله او دې نه پس ئې اوفرمائیل چه مکې لره الله ﷻ حرم کړې دې خلقو نه دې کړې. په دې کښې یو ایماندار لره وینه تویول ، وونه کټ کول حلال نه دی.که څوك ځما دا جنګ دلیل جوړوی نوورته اووائې چه صرف په نن ورځ ځما دپاره په دې ځائې کښې داحلال کړې شوی وو،بیا ددې ښار حرمت راغلو لکه څنګه چه پرون وو ، خبردار حاضر دې غائبو ته اورسوی. خوعمرو چه دا حدیث واوریدو نو صفا ئې اوونیل چه ماته ستا نه زیات ددې حدیث پته ده.حرم نافرمانه ، خونی او بربادئ کولو والا نه بچ کوی. ([5])

**تطبیق**:-هیڅوك دې په دې دواړو احادیثو کښې تعارض اونه ګنړی،تطبیق ئې دادې چه مکه د اولې ورځې نه حرمت والا وه لیکن ددې حرمت تبلیغ حضرت خلیل الله ﷺ اوکړو،څنګه چه رسول کریم ﷺ د

---

[1]) صحیح بخاری : کتاب الجهاد: باب من غز بصبی للخدمة: ۲۸۹۳، صحیح مسلم: ۱۳۶۵)-

[2]) صحیح بخاری : کتاب فضائل المدینة: ۱۸۸۵، صحیح مسلم: ۱۳۶۹)-

[3]) صحیح مسلم : کتاب الحج ، باب الترغیب والترهیب فی سکنی المدینة......۱۳۷۴)-

[4]) صحیح بخاری : کتاب الجنائز باب الاذخرو الحشیش فی القبر، ۱۳۴۹، صحیح مسلم : ۱۳۵۳)-

[5]) صحیح بخاری : کتاب العلم ، باب لیبلغ الشاهد الغائب: ۱۰۴، صحیح مسلم: ۱۳۵۴)-

هغه وخت نه نبی وو کله چه د حضرت ادم عليه السلام خمبیر اخکلي شوي وو. بلکه دوی ته په هغه وخت کښې هم خاتم النبين ونیلي شوی وو[۱] خوحضرت ابراهیم خلیل الله عليه السلام د رسول کریم ﷺ نبوت دعا اوکړه چه ﴿وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ﴾ (هم په دوی کښې یورسول اولیږه) او دا الله ﷻ قبول کړل او دتقدیر لیکلي شوي خبره ظاهره اوښکاره شوه .

**د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د نبوت ابتداء:-** په يو حديث کښې دی چه خلقو رسول کريم ﷺ ته اوونیل چه تاسودخپل نبوت دابتدا خو لږ ذکر اوفرمائې. نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل زه د خپل پلارحضرت ابراهیم خلیل الله عليه السلام دعایم اود عیسی بن مریم بشارت یم او خپلې مور خوب یم، هغه خوب ګوری چه دهغې نه یونور پیدا شوچه په دې سره د شام ټول محلات روښانه شول او هغه په نظر راغلل.(۲)

**د مکې او مدینې په خپل مینځ کښې افضیلت:-** ددې خبرې بیان چه آیامکه د مدینې نه افضله ده لکه څنګه چه دجمهورو قول دې، یا مدینه دمکې نه افضله ده لکه څنګه چه امام مالك رحمه الله او ددوی د تابعینو مذهب دې، دا به مونږ دداړو طرفونوپه دلائلوسره نزدې بیانوو انشاء الله .حضرت ابراهیم خلیل الله عليه السلام دعا کوی چه یاالله ﷻ دا ښار امن والا یعنې ددې ځائې اوسیدونکی بهادر او نه ویریدونکی جوړکړه. الله ﷻ دا قبلوی لکه فرمائی چه ﴿وَمَن دَخَلَهُ كَانَ آمِنًا﴾ ( په دې کښې چه څوك داخل شو هغه امن والا شو) او په بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا﴾ (آیا هغوی نه ګوری چه مونږ حرم ځائې د امن جوړ کړې دې ، خلق دې طرفته په منډه راځي او په دې ځائې کښې هغوی په امن سره وی). داقسمه نور آیتونه هم دی اوددې مضمون نور ډیر احادیث هم پورته تیر شوی دی چه مکه معظمه کښې قتل کول حرام دی. حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی چه ما درسول الله ﷺ نه واوریدل چه رسول کریم ﷺ به فرمائیل چه هیچا له حلال نه دی چه په مکه معظمه کښې وسله پورته کړی. (صحیح مسلم). (۳) ابراهیم عليه السلام دا دعا دمکې دحرمت دپاره مخکښې نه وه په هغې کښې ئې دا فرمائیلی وو چه ائې الله ﷻ دا ښاردامن والا جوړکړه. په سورت ابراهیم کښې هم دادعاپه دې الفاظوسره ده چه﴿ رَبِّ اجْعَلْ هَٰذَا الْبَلَدَ آمِنًا﴾کیدې شی چه دادعا دوباره وه. هرکله چه بیت الله تیار شو او ښار جوړ شو او حضرت اسحاق عليه السلام چه دحضرت اسماعیل عليه السلام نه درې کاله کشر وو پیدا شو،نو ددې وجې ددعا په آخر کښې د هغوی دپیدائش شکریه هم ده.

**قوله تعالی:-** ﴿قَالَ وَمَن كَفَرَ﴾

**دکافرو دپاره صرف دنیاوی فائده ده:-** ﴿وَمَن كَفَرَ﴾ نه تر آخره پورې دالله ﷻ کلام دې. بعضو دا هم په دعا کښې شامل کړی دی.نوپه دې تقدیر به مطلب دا وی چه کفارو ته هم څه لږه شان فائده ورکړه،بیا هغوی عذاب طرفته بې بس کړه.په دې کښې هم دحضرت ابراهیم خلیل الله عليه السلام الله تعالی سره خالصه دوستانه ظاهریږی چه هغه دخپل اولادهم مخالف وو. اوکه دا د الله کلام اومنلې شی نو په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه چونکه د امامت سوال ئې چه کله دخپل اولاد دپاره اوکړو او دظالمانو دمحرومئ اعلان ئې واوریدو اومعلوم شو چه د دوی نه پس راتلونکی به هم دالله ﷻ نافرمان وی نو اوس ئې دویرې نه ادب سره دروستو راتلونکو والو د روزئي طلب هم صرف ایماندار اولاد دپاره اوکړو خو دالله ﷻ ارشاد اوشو چه دنیاوی فائده خوبه کافرو ته هم وی.لکه څنګه چه فرمائی ﴿كُلًّا نُّمِدُّ هَٰؤُلَاءِ وَهَٰؤُلَاءِ مِنْ عَطَاءِ رَبِّكَ ۚ وَمَا كَانَ عَطَاءُ رَبِّكَ مَحْظُورًا﴾ الخ (مونږ دوی ته اوهغوی ته فائده ورکوو. ستا درب ورکړه بنده نه

---

۱) احمد : ۱۲۷/۴)-

۲) احمد: ۱۲۸/٤)-

۳) صحیح مسلم : کتاب الحج . باب النهی عن حمل السلاح بمکة.... ۱۳۵۶)-

ده.او په بل خائې کښې ارشاد دې چه کوم خلق په الله ﷻ باندې دروغ پورې کوي هغوی به فلاح نه مومي اګر چه ددنیا څه فائده ورته وی خوزمونږ طرفته په راتلو به دوی ته سخت عذاب ورکولې شی.
اوپه بل مقام باندې ارشاد دې چه دکافرو کفر دې تاله غمګین نه کړي دوی مونږ طرفته واپس کیږی اومونږ به ددوی په اعمالو دوی ته تنبیه کوو.الله ﷻ ته دسینو پټې خبرې ښه معلوم دی،مونږ به دوی ته لږه فائده ورکړو او بیابه ئې سخت عذاب کښې بې قرار کړو.اوپه بل مقام باندې دی چه(لَوْلَآ اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً)که داخطره نه وې چه خلق به یو امت شی نومونږ به دکافرانو چتونه او پوړهئ دسپینو زرو جوړې کړې وې اوددوی دکورونو دروازې اوتختونه چه په هغې دوی تکیه لګوی اوکینې پرې اوسره به مو هم ورکول خو داټولې دنیاوی فائدې دی.دآخرت نیک کور خو صرف د پرهیز ګارو دپاره دې.
هم دا(ددوئ دانجام باره کښې) په دې آیت دی چه ددوی انجام خراب دې. په دې دنیا کښې دې عیش اوکړی بیا به مونږ لکه فرمائي چه(فَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ الخ ) (مونږ ډیر ظالمانو کلوته مهلت ورکړو بیا مو راونیول اوددوی انجام ډیر خراب وو دوی به مونږ ته واپس کیږی) بخاری او مسلم کښې یو حدیث کښې دی چه دخرابو خبرو آوریدو باندې صبر کولو کښې دالله ﷻ نه زیات څوك نشته. خلق وائی چه دهغه پاك ذات اولاد شته دې ، خوبیاهم الله ﷻ هغوی ته رزق ورکوی.([1]) اوپه یو حدیث کښې دی چه الله ﷻ ظالمانوته صبرکوی بیا دوی زر راونیسی([2]) بیا نبی کریم ﷺ دا آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو چه ( وَكَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ الخ)دا جمله دحضرت ابراهیم ؑ په دعا کښې شاملول یو شاذ قرات دې. چه اوږ قراتونو د قرات نه خلاف دی. اوترکیب او سیاق اوسباق په ظاهره ددې انکار کوی. والله اعلم. خکه چه دې صورت کښې دقال ضمیر مرجع چې الله ﷻ شی نوددې شاذقرات په وجه ده که ددې فاعل او مفعول هم حضرت ابراهیم ؑ وی اودا خبره دنظم کلام نه په ظاهره مخالف ده.

**قوله تعالی:- وَاِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهٖمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَاِسْمٰعِيْلُ**

**د خانه کعبې تعمیر**:-قواعد جمع ده د قاعدة.الله ﷻ فرمائي چه ائې د الله نبی ﷺ خپل امت ته دبناء ابراهیمی خبر ورکړه،په یو قرات کښې د(واسماعیل)نه پس(ویقولان) هم دی ، هم ددې دلالت مخکښې لفظ (مُسْلِمَيْنِ ) هم دې([3])دواړه نبیان علیهم السلام په نیك کار کښې هم مصروف وو او د نه قبلیدو ورته ویره هم ده نوالله ﷻ نه د قبولیت دپاره دعا کوی . ﷺ حضرت وهیب ؒ چه به کله دا آیت تلاوت کولو نوډیر به ئې ژړل او فرمائیل به ئې چه د خلیل الله ؑ پشان مقبول پغمبر دالله تعالی په حکم سره کار کوی ، دهغه پاك ذات کور دهغه پاك ذات په حکم سره جوړوی.او ورته ویره ده چه هسې نه داقبول نه شی. رښتیا دادی چه دمخلصو مومنانو هم دا حال دې.[ وَالَّذِيْنَ يُؤْتُوْنَ مَآ اٰتَوْا وَّقُلُوْبُهُمْ الخ](هغوی نیك کار کوی،صدقې او خیراتونه ورکوی خوبیا هم ورته ویره وی دالله ﷻ نه او ریږی ( چه هسې نه قبول نشی).
د حضرت عائشه ؓ په سوال باندې ددې آیت مطلب د نبی کریم ﷺ په ژبه هم دا بیان شوې دې. ([4])
بعضې مفسرینو وئیلی دی چه بنیادونه به حضرت ابراهیم ؑ اوچتول او دعا به حضرت اسماعیل ؑ کوله ، خو صحیح دادی چه دواړه په هر کار کښې شریك وو. د صحیح بخاری یو روایت او بعضې آثار ددې واقعې متعلق په دې خائې کښې دذکر قابل دی.
حضرت ابن عباس ؓ فرمائي چه ملا بند ښځو د حضرت اسماعیل ؑ دمور بی بی نه زدکړه کړې ده. هغوی دا تړلې وو چه حضرت ساره ؓ ته دهغوی نقش قدم ملاؤ نشی.دا اوددې د زړه سر اوخپل آکې

---

[1] ) صحیح بخاری : کتاب الادب ، باب الصبر فی الاذی : ۶۰۹۹، صحیح مسلم : ۲۸۰۴)-
[2] ) صحیح بخاری : کتاب التفسیر: سورة هود باب قوله تعالی ( وکذالک اخذ ربک...) ۴۶۸۶، صحیح مسلم : ۲۵۸۳)-
[3] ) القرطبی : ۱۲۶/۲)-
[4] ) ترمذی کتاب التفسیر القران باب : ومن سورة المومنون : ۳۱۷۵، ابن ماجه: ۴۱۹۸ وهو حسن)-

یو خوني حضرت اسماعیل ﷺ نې بوتلو او حضرت ابراهیم ﷺ په سفر اووتلو اودا ښکلې بچې لا پې رودونکې وو.

**د بی بی هاجرې د مکې خوشې میدان ته بوتلل:-** اوس چه په کوم ځائې باندې بیت الله جوړ شوې دې په دې ځائې باندې یو غونډئی وه او خوشې خوشیا میدان ووا و په دې ځائې داوسیدو والا څوك نه وو. حضرت هاجره ورته آواز اوکړو چه ائې خلیل الله ﷺ چه مونږ په خوشې میدان کښې یوازې پریږدې چه په دې ځائې کښې زمونږ څوك نشته دې. تاسو چرته تشریف اوړئی ؟ لیکن حضرت ابراهیم ﷺ ورته هیڅ جواب ورنکړو بلکه دې طرفته ته ئې هډو توجه اونکړه.اونه ئې هډوروستو اوکتل.دحضرت هاجره په باربار وینا سره هم هیڅ توجه ورنکړه اووې فرمائیل چه دالله ﷻ خلیل ﷺ !مونږ چاته حواله کوې؟حضرت ابراهیم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ ته. وې فرمائیل چه آیا تاته دالله ﷻ حکم دې ؟ نو حضرت ابراهیم اوفرمائیل چه ماته دالله ﷻ حکم دې.

**بی بی هاجره پریښودل اود ابراهیم ﷺ دعا :-** په دې آوریدو سره حضرت هاجرې ته لږ تسکین اوشو او وې فرمائیل چه بیاتاسو تشریف یوسئ هغه الله ﷻ به مونږ بالکل نه ضائع کوی،هم د هغه سهارا او هم دهغه بهروسه ده. حضرت هاجره واپس شوه اود خپل زړه سر ، دخپلو سترګونور ،د الله ﷻ دنبی خونې نې په غیرې کښې واخستو اوپه دې خوشې او بیابان میدان کښې کیناستله. ابراهیم ﷺ چه کله ثنیه ته اورسیدو او دا ورته معلومه شوه چه اوس حضرت هاجره دوی پسې نه ده اوتردې پورې دهغوی نظر هم کار نشی کولې نو بیت الله طرفته متوجه شو اولاسو نه ئې اوچت کړل او دعا ئې اوکړه چه ﴿رَبَّنَآ إِنِّىٓ أَسْكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِى بِوَادٍ غَيْرِ ذِى زَرْعٍ عِندَ بَيْتِكَ ٱلْمُحَرَّمِ﴾ الخ (یاالله ﷻ ماخپل بال بچ په یو غیر آباد ځنګل کښې ستا دښکلی کور سره پریښودل چه هغوی مونځ قائم کړی،نو دخلقو زړونه دې طرفته راواړوه او هغوی ته د میوې روزی ورکړه ، دې دپاره چه دوی شکر ګزار شی) حضرت ابراهیم ﷺ خو دا دعا اوونیله او دالله ﷻ حکم ئې اومنلو او خپل بچی ئې الله ﷻ ته حواله کړو او لاړو.

**د بی بی هاجرې صبر .-** بل طرفته حضرت هاجره بی بی شکراوصبر سره خپل بچی سره مشغوله وه، هغې سره لږې شان کهجورې او اوبه وې هغه ختمې شوې ،او ورسره نه د څکلو څه وو اونه د خوړلو دپاره،پخپله هم تږې او ددې بچې هم د تندې نه بیتاب وو.تردې چه دې ته د معصوم نبی زاد ښکلې مخ غمګین شو اود تکلیف په وجه ئې ژړل .دمینې نه ډکه مورکله خو دتنهائی اود بې کسئ خیال کوی،اوکله دخپل معصوم بچی حال ته ګوری اودا برداشت کوی. معلومه ده چه په دې خوفناك ځنګل کښې هیڅ انسان نشی تیریدې. دمیلونو میلونو پورې د آبادئی هیڅ نښه پته نه وه. خوراك لا څه کوې د اوبو یو څاڅکې هم نه وو.

**دصفا او مروه دسعی شروع :-** آخر کښې کله چې ددې وړوکی شان ماشوم تکلیف ترې برداشت نشو نو پاسې او خې.اوصفا مروه چه ورسره نزدې وه په هغې باندې خیژې. او میدان طرفته ګوری چه څوك خې راځی که نه.خوددې مبارکونظرونه د ځلورو واړو طرفونو نه مایوسه واپس کیږی.نو بیا لاندې راکوزیږی اودمیدان مینځ ته راشی او بیا په منډه شی او په مروه غر باندې اوخیژی . په دې باندې دختلو نه پس ځلورو واړو طرفونو ته مبارك نظرونه واړوی خو هیڅوك نه ګوری او بیا دهغه ځائې نه هم واپس شی.اوداشان ددې دواړو غرونو ترمینځه لږه شان حصه کښې په منډه منډه خې او باقی حصه کښې په تیزئی سره خې اوبیا صفا باندې خیژی. داشان اووه ځل کوی .دهر چکر نه پس راځی او بچې ګوری چه دده حالت وخت په وخت خرابیږی.( نبی کریم ﷺ فرمائی چه د صفا او مروه سعی چه کوم حاجیان کوی ددې شروع دې هم ددې ځائې نه کوی)په اووم ځل چه کله دا مروه ته راځي نو څه آوازونه ئې غوږونوته رازی نودا خاموشه شی او په احتیاط سره دې طرفته متوجه کیږی چه دا آواز څنګه دې؟

اوازبیاراخی او دې خل ورته صفا اوریدلې کیږی نو دا اواز طرفته په منډه ورغی(او اوس چه په کوم خائې کښې زمزم دې) په دې خائې حضرت جبریل ﷺ وینی.

**د زم زم چینه راوتل:-** حضرت جبریل ﷺ ترې تپوس کوی چه ته څوك ئې ؟ دا جواب ورکوی چه ځه هاجره یم ،څه د حضرت ابراهیم ﷺ د زوئې مور یم. حضرت ابراهیم ﷺ ته په دې خوشې بیابیان کښې څنګه پرینبودې ؟حضرت هاجره فرمائی چه الله ﷻ ته ئې پریخودو.وې فرمائیل چه بیا الله کافی دې .

حضرت هاجره ورته فرمائی چه ائې غیبی سړیه ، واز خوما واوریدو آیا خما به هم څه اوشی که نه ؟ حضرت جبریل ﷺ خپلې پوندې په زمکه باندې مخی اوددې نه یوچینه راوزی.حضرت هاجره ددې اوبه په خپلو لاسونو مبارکوسره په خپل مشك کښې اچول شروع کوی ، مشك چې کله ډك کړی نو ددې اوبونه ګیر چاپیره یو دیوال جوړوی چه هسې نه اوبه یو خوابل خوا اونه بهیږی.(نبی کریم ﷺ فرمائی چه الله ﷻ دې دحضرت اسماعیل ﷺ په مور بی بی باندې رحم اوکړی که هغې اوبه نه وې رامنع کړې نو زمزم به د یو کوهی په شکل کښې نه وې بلکه دیو نهر په شکل کښې به وې. ( حضرت هاجرې اوبه اوڅکلې او بچی ته ئې هم ورکړې اوبیائې بچی ته پی ورکړل. فرښتې ورته اوونیل چه ا وس ته بې فکر اوسه الله ﷻ به تالره نه ضائع کوی. چه په کوم خائې چه ته ناسته ئې په دې خائې دالله تعالی یوکوربه ددې بچی اوددې بچی د پلاریه لاسو جوړیږی.حضرت هاجره په دې خائې کښې اوسیدل شروع کړل.دزمزم اوبه به ئې څکلې او خپل بچی سره به مشغولیده.دباران په موسم کښې به د سیلاب اوبه دڅلورو واړو طرفونونه راتلې خودا خائې لږ په لوړه باندې وو ، ددې خائې نه به تیرې شوې او په دې خائې کښې به امن وو.

**د جرهم قبیله راتلل:-**څه موده پس د جرهم قبیله دکداء دلارې د طرفنه اتفاقی طور تیره اومکې مکرمې سره ئې نزدې پړاؤ اوکړو. دوی یو د اوبو مارغه اولیدو.نودوی په خپلو کښې اوونیل چې دامارغه خو د اوبودې،او په دې خائې کښې خو هډو اوبه نه وې. مونږ خو په دې خائې ډیر خل تیر شو،داخویو اوچ څنګل او خوشې میدان دې. په دې خائې کښې اوبه دچرته راغلې ؟نودوی خپل څه کسان د معلوماتو دپاره اولیږل. هغوی چه واپس راغلل نو وې وئیل چه په هغه خائې کښې خو ډیرې بهترینې او ډیرې اوبه دی. هغوی ټول راغلل او د حضرت اسماعیل ﷺ مور بی بی نه ئې تپوس اوکړو چه ائې مور بی بی آیامونږ په دې، خائې کښې اوسیدې شوځکه په دې خائې کښې اوبه دی. حضرت هاجره ورته اوونیل چه اوسیږئې په شوق سره خو په دې اوبو به خما قبضه وی. نبی کریم ﷺ فرمائی چه حضرت هاجرې خودا غوښتل چه څوك هم جنس ملاؤ شی نودې قافلې په دې خائې کښې پړاؤ اوکړو.

**دحضرت اسماعیل ﷺ رومبئ نکاح :-**حضرت اسماعیل ﷺ هم لوئې شو اوددغه ټولو خلقو حضرت اسماعیل ﷺ سره محبت وو. تردې پورې چه دوی بالغ شو نوپه دغه خلقو کښې ئې نکاح هم اوکړه. او هم ددې خلقو نه ئې عربی هم زده کړه. د حضرت هاجره انتقال هم په دې خائې کښې اوشو. هرکله چه حضرت ابراهیم ﷺ ته دالله ﷻ د طرفنه اجازت ملاؤ شو نو حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ دخپل خوئې ملاقات دپاره تشریف راوړو. په بعضو روایاتو کښې دی چه د حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ داتګ راتګ به په براق وو.

**دابراهیم ﷺ تلل راتلل:-** حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ به د شام دملك نه راتلو او بیا به واپس تلو. په دې خل خو دوی ته حضرت اسماعیل ﷺ په کور کښې ملاؤ نشو ، دخپلې انګور نه ئې تپوس اوکړو چه حضرت اسماعیل ﷺ چرته دې ؟نو وې وئیل چه د خوراك څکاك په تلاش کښې دې یعنی څنګل ته تلې دې.حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ ترې تپوس اوکړو ستاسوڅه حال دې ؟وې وئیل ډیر خراب حال مو دې. ډیره تنګی او سختی ده. حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه بنه چه کله ستا خاوند راشی نو ورته اووایه چه دخپلې دروازې درشل بدله کړه.

**داسماعيل عليه السلام د ښکار نه واپس راتلل:-** حضرت ذبيح الله عليه السلام واپس راغلونو دوى ته څه محبت معلوم شو . تپوس ئې ترې اوکړو چه څوك راغلى وو څه ؟نو بى بى ورته اووئيل چه يو سړې په داسې داسې شکل وصورت کښې راغلى وو او ډير عمر والا وو .ستاسو باره کښې ئې تپوس اوکړو نو ما ورته اووئيل چه هغه ديښکار په تلاش کښې وتلې دې .بيا ئې تپوس اوکړو چه وخت مو څنګه تيرېږى ؟ ما ورته اووئيل چه ډيره سختى او تنګى ده. وې فرمائيل چه مادپاره ئې هم څه وئيلى دى ؟ بى بى ورته اووئيل چه آو،هغه (عليه السلام) اووئيل چه کله هغه راشى نو هغه ته خما سلام وايه او ورته اووايه چه دخپلې دروازې درشل بدله کړه. دوى ورته اووئيل چه ښخې واوره دا خما پلار وو ، اودا چه څه ئې وئيلى دى ددې مطلب دادې چه څه تاله جدا کړم (چونکه تا ناشکرى کړې ده) نوماتا طلاق درکړو.

**دابراهيم عليه السلام دوباره راتلل:-** څه موده پس بيا دالله ﷻ په حکم سره حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام راغلو ،دې خل هم ذبيح الله عليه السلام سره ئې ملاقات اونشو. انګور نه ئې تپوس اوکړو نو جواب کښې ئې اووئيل چه زمونږ دروزئ په تلاش کښې وتلى دې. تاسو راځئ تشريف راوړئ چه څه حاضر دى هغه اوخورئ. حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام اوفرمائيل چه اووايه وخت مو څنګه تيرېږى ؟ څه حال مو دى ؟ جواب ملاؤ شو چه الحمد لله مونږ بالکل خيريت سره يو ، اودالله ﷻ په فضل سره ښه خوشحاله او راحت سره يو. دالله ﷻ ډير شکر دې. حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام اووئيل چه ستاسو څه خوراك دې ؟ وې وئيل غوښه. حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام تپوس اوکړو چه څکئ څه ؟ جواب ملاؤ شو اوبه. نو حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام دعا اوکړه چه ياالله ﷻ دوى ته غوښه او اوبه ښه ډيرې ورکړې. ( نبى کريم ﷺ فرمائى چه که هغوى سره غله وې او هغې وئيلې وې نو حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام به دهغوى دپاره د غلې دعا هم کړې وې ، اوس ددې دعا په برکت سره مکې والوته صرف په غوښه او اوبو باندې ګزاره پکار ده ، نور خلق نشى کولې). حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام اوفرمائيل چه ښه څه خم ته خپل خاوند محترم ته خما سلام وايه او ورته اووايه چه خپله درشل ثابته اوساته او آباده ئې ساته . دې نه پس حضرت اسماعيل عليه السلام راغلو او ټوله واقعه ورته معلومه شوه. نو دوى اوفرمائيل چه دا خما والد محترم وو،ماته ئې حکم کړې دې چه څه دې تاله جدا نه کړم (ته شکر کوونکې ئې).

**د بيت الله د تعميردپاره د ابراهيم عليه السلام راتلل :-** بيا څه موده پس حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام ته اجازت ملاؤ شو او حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام راغلو اوحضرت اسماعيل عليه السلام ئې زمزم سره اوليدو چه غشئ نيغولو. حضرت اسماعيل عليه السلام چه کله خپل پلار اوليدو نو دادب په وجه پاسيدو. هرکله چه پلار خونې يو بل سره ملاقات نه فارغ شو نو حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام اوفرمائيل چه اې اسماعيل عليه السلام ماته د الله ﷻ حکم شوې دې حضرت اسماعيل عليه السلام اوفرمائيل چه څه حکم شوې دې اې اباجانه هغه پوره کړئ.حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام اوفرمائيل چه اې خويه ته به هم ماسره ملګرتيا کوې. عرض ئې اوکړو څه حاضريم .حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام اوفرمائيل چه په دې ځائې کښې دالله ﷻ يوکور جوړول دى.

حضرت اسماعيل عليه السلام اوفرمائيل ډيره ښه ده . دواړو پلار خونې دبيت الله بنياد کيخودو او ديوالونه ئې اوچتول شروع کړل.حضرت اسماعيل عليه السلام به کانړى راوړل او حضرت ابراهيم خليل الله عليه السلام به کيخودل. هرکله چه ديوالونه اوچت شو نو حضرت اسماعيل عليه السلام داکانړئې يعنى د مقام ابراهيم والاکانړئ راوړو،په دې اوچت کانړى باندې به اودريدلو دبيت الله ﷻ ديوالونه به ئې وهل. اودواړو پلارخونې دا دعا غوښتله چه اې الله ﷻ ته زمونږ دا خدمت قبول کړې.بيشکه ته آوريدونکې او پيژندونکې ئې[1]دا روايت د احاديثو په نورو کتابونو کښې هم موجود دې. چرته مختصر او چرته

[1] ) صحيح بخارى ، کتاب احاديث الانبياء باب يزفون النسلان فى المشى: ٣٣٦٤)-

تفصیل سره دي ، يو صحيح حديث كښې دی چه د حضرت ذبيح الله ﷺ په بدله كښې كوم يو ګډ ذبح شوې وو دهغې ښكرې هم په بيت الله كښې وې. (١)

دا پورته اورد روايت دحضرت علي ﷺ نه روايت شوې دې. په دې كښې دا هم دی چه كله حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ بيت الله ته نزدې ورغلو نو په خپل سر ئې يو سيوری اوليدو ، ددې نه آواز راغلو چه تر كوم خائې پورې ددې وريځې سيورې دې تر هغه پورې دبيت الله زمكه واخله. كمې زياتې په كښې مه كوه. په دې روايت كښې داهم دی چه حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ بيت الله جوړ كړو او په دې خائې كښې ئې حضرت هاجره او حضرت اسماعيل ﷺ پرينبودو او تشريف ئې يوړو.(يعنی چې د بيت الله د تعمير په وخت كښې بی بی هاجره ژوندئ وه) خو ړومبې روايت صحيح دې. اوداشان تطبيق هم كيديشې چې بنياد ئې مخكښې اينبودې وې او دې نه پس ئې جوړه كړې وی. او په جوړولو كښې پلار خوئې دواړه شامل وو لكه څنګه چه د قران پاك الفاظ دی.

**دحجر اسود لګول:-** په يو روايت كښې دی چه خلقو د حضرت علي ﷺ نه د بيت الله شريف د بنياد د كيخودو تپوس اوكړو . نو هغوی اوفرمائيل چه الله ﷻ حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ ته اوفرمائيل چه خما كور جوړ كړه.حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ اوويريدو چه ماته خو جوړول نه رازی. څومره او څنګه پكار دې. وغيره.په دې باندې سكينه نازله شوه او حكم اوشو چه په كوم خائې كښې دا ايساره شی نو هغه خائې كښې خما كور جوړ كړه. حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ جوړول شروع كړل. هركله چه دحجر اسود خائې راغلو نوحضرت اسماعيل ﷺ ته ئې اوونيل خويه څه ښه شان كانړئی راوړه. حضرت اسماعيل ﷺ كانړئی راوړو نو وې كتل چه پلار محترم ئې په هغه خائې كانړئی لګولې وو. تپوس ئې اوكړو چه دا چاراوړې دې ؟ حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ اوفرمائيل چه دالله ﷻ په حكم سره دا كانړې حضرت جبريل ﷺ دآسمان نه راوړې دې. (٢)

**دكعب بن احبار روايت:-** حضرت كعب بن احبار ﷺ فرمائی چه اوس په كوم خائې كښې بيت الله شريف دې،ددې زمكې دپيدائش نه مخكښې په دې خائې باندې برېرقو سره خګ وو. هم دې نه زمكه خوره كړې شوه. حضرت علي ﷺ فرمائی چه دكعبة الله جوړولو دپاره حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ د آرمينيه نه تشريف راوړې وو.حضرت سدی ﷬ فرمائی چه حجر اسود حضرت جبريل ﷺ د هند نه راوړې وو،په هغه وخت دا سپين چمكدار ياقوت وو او دا دحضرت آدم ﷺ سره دجنت نه راغلې وو. دخلقو د ګناهونو له كبلې دا كانړئی تور شو. په دې روايت كښې هم دی چه بنيادونه مخكښې نه موجود وو.هم په هغې باندې حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ تعمير شروع كړو. عبدالرزاق كښې دی چه حضرت آدم ﷺ په هند كښې كوز شوې وو.په هغه وخت كښې دهغوی قد اورد وو.زمكې ته راتلو نه پس به ئې دفرښتو تسبيح او مونځ وغيره آوريدو .هركله چه (قد) ئې وړوكې شو نو هغه آوازونه راتلل بند شو.نو ويريدو نو حكم اوشو چه مكې طرفته لاړشه .حضرت آدم ﷺ تشريف يوړو.په كوم خائې باندې چه د حضرت آدم ﷺ قدم مبارك اينبودې شوې وو په هغه خائې كښې آبادی اوشوه. الله تعالی د جنت نه يو ياقوت نازل كړو او دبيت الله په خائې باندې يې كيخودو اودا ئې خپل كور اوګرزولو. حضرت آدم ﷺ په دې خائې طواف كول شروع كړه او دې سره مانوس شو ، ويره ترينه لاړه.د حضرت نوح ﷺ دطوفان په زمانه كښې دا كانړې اوچت شو او د ابراهيم ﷺ په زمانه كښې بيا الله ﷻ راوليږلو . حضرت آدم ﷺ دا كور دحرا، طورزيتا، طور سينا ، جودی ، دې پنځو غرونونه جوړ كړې وو. خو په دې ټولو روايتونو كښې تضاد دې. والله اعلم.

---

١) مسند احمد : ٦٨/٤، والفظ له : سنن ابي داود : ٢٠٣٠. وهو حديث حسن)-

٢) حاكم: ٢٩٤/٢، ٢٩٣، وابن جرير في تفسيره و سنده حسن)-

**د ذوالقرنین د ابراهیم ﷺ سره ملاقات:**- په بعضو روایاتو کښې دي چه دزمکې پیدائش نه دوه زره کاله مخکښې بیت الله شریف جوړ شوې وو. حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ سره دبیت الله شریف نښو اچولودپاره حضرت جبریل ﷺ راغلې وو. په هغه وخت کښې په دې ځائې د ځنګلونو نه سوا نور څه نه وو. لرې ترې نه د عمالیقو آبادي وه . په دې ځائې کښې حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ خپله بی بی هاجره او خپل خوني حضرت اسماعیل ﷺ پرېښودو د یو چپر لاندې. په یو بل روایت کښې دي چه بیت الله څلور ارکان دي او تر اوومې زمکې پورې لاندې تلې دي. او په یو روایت کښې دي چه کله ذو القرنین دې ځائې ته راورسیدو او وې کتل حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ بیت الله جوړوي نو تپوس ئې اوکړو دا څه کوئې ؟ حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ اوفرمائیل چه مونږ دالله تعالی په حکم سره دهغه کور جوړوو. تپوس ئې ترې اوکړو څه دلیل دې ؟ حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ اوفرمائیل دا شرمخان به ګواهي ورکړي. پنځو شرمخانو اووئیل چه مونږ ګواهي ورکوو دا دواړه دالله ﷺ مامور دي. ذو القرنین ډیر خوشحاله شو او وې فرمائیل ما اومنل.د ارزقي په تاریخ مکه کښې دي چه ذو القرنین د حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ او ذبیح الله ﷺ سره د بیت الله شریف طواف اوکړو. والله اعلم.په صحیح بخاري کښې دي چه قواعد بنیادنوته ونیلې شي ، دا د قاعدة جمع دې. په قران پاك کښې په بل ځائې کښې دي چه ﴿ وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ ﴾ ، ددې مفرد هم قاعده دې.

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه رسول کریم ﷺ ماته اوفرمائیل چه تاته معلوم نه دي چه ستا قوم چه کله بیت الله جوړکړو نو دقواعد ابراهیم نه ئې کم کړو. ما ورته اووئیل چه تاسو دا زیات او په خپل اصل حالت کښې ئې کړئې. حضرت محمد ﷺ اوفرمائیل که ستا دقوم اسلام تازه نه وې او ددوی دکفر زمانه نزدې نه وې نو مابه داسې کړي وې.حضرت ابن عمر ﷺ ته چه کله داحدیث راورسیدو نو وې فرمائیل چه کیدې شي هم دا وجه ده چه رسول کریم ﷺ به حجراسود سره نزدې دوه ستني نه بنګلولې. [1] په صحیح مسلم کښې دي چه رسول کریم ﷺ فرمائي چه اني عائشه رضي الله عنها که ستا دقوم دجاهلت زمانه نزدې نه وې نوما به د کعبې خزانې دالله ﷺ په لار کښې خیرات کړې وې او دروازې به مې راغوروزولې وې [2] اوحطیم به مې په بیت الله شریف کښې داخل کړې وې.دصحیح بخاري په یو حدیث کښې دي چه ما به ددې دونمه دروازه هم جوړه کړې وې. یود راتلو دپاره او بله د تلو دپاره. نو ابن زبیر ﷺ د خپل خلافت په زمانه کښې هم داسې اوکړل [3] اوپه یو روایت کښې دي چه ما به دوباره د ابراهیم ﷺ په بنیادونو باندې جوړکړې وې [4] اوپه یو بل روایت کښې دي چه یو دروازه به مشرق طرفته وې اوبله به مغرب طرفته او شپږ ګزه حطیم به مې په دې کښې شامل کړې وې خکه چه قریشو دا بهر کړې دې. [5]

**په عهد قریشي کښې د بیت الله تعمیر:**-د رسول کریم ﷺ د نبوت نه پنځه کاله مخکښې قریشو بیت الله نوې جوړ کړې وو. ددې تفصیل بیان اوګورئ په دې جوړولو کښې رسول کریم ﷺ پخپله هم شریك وو. د رسول کریم ﷺ عمر پنځه دیرش کاله وو. او رسول کریم ﷺ به هم پخپله کانړي اوچتول. ابن اسحاق رحمه الله فرمائي چه هرکله د رسول کریم ﷺ عمر مبارك پنځه دیرش کاله شو نو قریشو دبیت الله شریف دنوی جوړولو اراده اوکړه. خکه چه ددې دیوالونه ډیر واړه وو. چت ئې نه وو.

---

[1] ) صحیح بخاری : کتاب التفسیر سورة البقرة: ( واذ یرفع ابراهیم القواعد) ۴۴۸٤، صحیح مسلم: ۱۳۳۳)-
[2] ) صحیح مسلم : کتاب الحج باب نقض الکعبة ......: ۱۳۳۳)-
[3] ) صحیح بخاری : کتاب الحج، باب من ترک بعض الاختیار مخافة: ۱۲۶، و صحیح مسلم: ۱۳۳۳)-
[4] ) صحیح بخاری : کتاب الحج باب فضل مکة وبنیانها: ۱۵۸۵، وصحیح مسلم: ۱۳۳۳)-
[5] ) صحیح بخاری : کتاب الحج باب نقض الکعبة: ۱۳۳۳)-

**په بيت الله کښې خزانه**:- دويم په دې وجه هم چه دبيت الله خزانه پټه شوې وه چه دا دبيت الله شريف په مينځ کښې يو ژوره کنده کښې ښخه شوې وه. داما‌ل د "دويك" نومې سړی نه برآمد شوې وو. اودې د خزاعه قبيلې د بنو مليح بن عمرو مولی وو. ممکن دی چه غلو په دې خانې کښې ايښودې وی اودده لاسونه دده دغلا په وجه پريکړې شوی وی. ددې د جوړولو دپاره يو بل قدرتی سهولت هم شوې وو چه دروم دتاجرانو يو کشتۍ چه په هغې ډير اعلی لرګی وو،هغه دطوفان په وجه دجدې غاړې ته راغلی وو. دا لرګی په چت کښې استماليدېشو نو په دې وجه قريشو دا واخستل. او دمکې ترکانې ته نې د چت د کار اوونيل او دهغه تعلق د قبطی خاندان سره وو.

**د مار لرې کولو غيبی انتظام**:- دا ټولې تيارنی کيدلې خود بيت الله شريف د ويرانولو په چا کښې همت نه وو. ددې قدرتی اسباب هم مهيا کړې شو. دبيت الله په خزانه کښې يو ډيره غټه اژدها وه. هرکله چه به خلق نزدې ورتلل نو هغه اژدها به خله وازه کړه او دوی طرفته به نې رامنډه کړه. دامار به هره ورځ دې کوهی نه راوتلو او دبيت الله شريف په ديوالونو به کيناستلو. يوه ورځ ناست وو چه الله ﷺ يو غټ مارغه راوليږلو ، هغه مارغه دامار واخستلو او والوتلو. قريشو اوونيل چه زمونږ اراده دمولی دمرضۍ مطابق ده. لرګی هم مونږ ته ملاو شو ، ترکانې زمونږ سره موجود دی. مار هم الله ﷺ لرې کړو.اوس دوی پخه اراده اوکړه چه بيت الله ويران کړی او دا دوباره جوړ کړی. دټولو نه مخکښې وهب اودريدو او يو کانړی د کعبة الله نه اونړولو اوهغه دده د لاس نه لاړو بيا په خانې باندې نصب شو. ده ټولو قريشو ته اوونيل چه واورنی،هرسړې دې خپل پاك مال دبيت الله شريف په جوړولوکښې خرچ کړی. په دې د زنا کانړنی پيسه،دسودی کاروبار پيسه او دظلم پيسه مه لګونی. بعضې خلق وائی چه دامشوره وليد بن مغيره ورکړې وه. (۱)

**دبيت الله د جوړولو تقسيم**:- اوس دبيت الله شريف حصې تقسيم کړې شوې. د دروازې حصه به بنو عبد مناف اوبنوزهره جوړوی،حجر اسود او رکن يمانی والا حصه دې بنو مخزوم جوړه کړی،قريش او قبائل دې هم دوی سره مدد اوکړی. دکعبې مخکښنې حصه دې بنو جمح او بنو سهم جوړه کړی ، دحطيم سره حصه دې بنو عبدالدار بن قصی او بنو اسد بن عبدالعزی او بنو عدی بن کعب جوړه کړی

**د وليدبن مغيره په نړولو شروع کول**:- د دې معامله د حل کيدو نه پس دبيت الله شريف روميې عمارت د غورزولو مسئله راپيښه شوه چه دا جداکړی. خو د هيچا همت نه کيدو چه ددې نړول شروع کړی.آخر وليد بن مغيره اوونيل څه شروع کوم. کودالـه نې واخستله او پورتـه اوختلو او وې ونـيل انـي الله ﷺ ! تاته ښه علم دې زمونږ اراده غلطه نه ده،مونږ ستا کور نړو نـه غواړو ،بلکـه ددې د آبادولو پـه فکر کښې يو.په دې وينا سره نې د دواړو رکن غاړې اونړولې. قريشو اوونيل چه اوس نې پريږدنی او ټولـه شپه انتظار اوکړنی. کـه پـه دې سړی باندې څـه وبال راغلـو نـو دا کـانړنی بـه پـه خپـل خـانې بانـدې اولګونی اوخاموشه شی: اوکه څه عذاب رانغلـو نـو پوهـه شی:چه ددې نړول الله ﷺ تـه خوښ دی. بيـا صباله په خپل خپل کار کښې اختـه شی: کله چه صبا شـو نـو بالکل خيريت وو. نـو اوس ټـول پـه ټولـه راغلل او دبيت الله شريف نور عمارت اونړولې شو.تردې پورې اصلی بنيادونو يعنـی بنـاء ابراهيمـی تـه اورسيدل. پـه دې خانې دشين رنـګ کـانړی وو.اويـو بـل سـره پيوسـت وو.يـو سـړی دوه کـانړی بيلـول اوغوښتل،پـه دې کښـې نـې کودالـه واچولـه او زور نـې اوکـړو نـود کـانړی خوزيـدو سـره ټولـه زمکـه اوخوزيدله. نو هغوی پوهه شو چې ددې کانړو لرې کول او د دې په ځائې نور کانړی الله ﷺ ته منظور نه دی. ددې وجې دا زمونږ دوس کار نه دې. ددې ارادې نه منع شو او داکانړنی همداشان پريښودل. (۲)

---

(۱) ابن هشام : ۲۰۳/۱)-

(۲) ابن هشام : ۲۰۷/۱)-

**د حجر اسود لګولو واقعه** :- بیا هرې قبیلې د خپلې خپلې حصې مطابق بیل بیل کاڼړی جمع کړل. او عمارت جوړیدل شروع شو. تر دې پورې د حجراسود د ایښودو وخت راغلو. اوس هرې قبیلې دا غوښتل چه داشرف هغوی حاصل کړی. په خپلو کښې په جنګ شو. تر دې پورې د باقاعده جنګ نوبت راغلو. قبیلې په خپلو کښې تقسیم شوې. او د جنګ په تیارو کښې اخته شو. بنو عبدالدار او بنو عدی یولوښی کښې وینه واخستله او په دې کښې نې لاسونه کیخودل اوحلف نې اوکړو ټول به مړه شی خو هیڅوک به حجر اسود کینخودې شی. داشان څلور پنځه ورځې تیرې شوې. بیا قریش مسجد حرام کښې جمع شو چه په خپلو کښې مشوره او انصاف اوکړی ، نو ابوامیه بن مغیره چه قریشی وو ، زیات دعمر والا اوعقل مند وو،وې وئیل که تاسو خپل څوک منصف جوړ کړئی چه هغه فیصله اوکړی چه ټولو ته منظور وی ، خو بیا به په منصف جوړولو کښې اختلاف وی ، ددې وجې داسې اوکړئی چه څوک دټولو نه مخکښې دې مسجد حرام ته راشی نو هغه به زمونږ منصف وی. په دې رائې باندې اتفاق اوشو.اوس منتظر دی څوک به دټولونه مخکښې راځی ؟ .

**د نبی کریم ﷺ په نصیب کښې د حجراسودکیخودل راتلل**:- نودټولو نه مخکښې حضرت محمد ﷺ تشریف راوړو.د رسول کریم ﷺ په کتلو سره دا ټول خلق خوشحاله شو او وې وئیل مونږ ته ستا فیصله منظور ده.مونږ ستا په حکم راضی یو.دا خو امین دې دا خو محمد (ﷺ) دې. بیا ټول ددوی په خدمت کښې حاضر شو. اوټوله واقعه نې رسول کریم ﷺ ته بیان کړه. رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چه لاړ شئ اویو غټ شان څادر راوړئی. هغوی راوړو. رسول کریم ﷺ حجر اسود واخستلو او په خپلو لاسونو مبارکو نې په دې څادر کښې کیخودو. بیا نې اوفرمائیل چه دهرې قبیلې سردار دې راشی اوددې کپړې یو ګوټ دې اونیسی اوداشان دې دحجر اسود داوچتولو حصه دار جوړ شی. په دې باندې ټول خلق ډیر خوشحاله شواو ټولو سردارانو دا څادر اونیولواو اوچت نې کړو. هرکله چه ددې دکیخود ځائې راغلو نود الله ﷺ نبی ﷺ دا کاڼړی واخستلو او په خپل ځائې باندې نې کیخودو. او داشان هغه اختلاف اوجنګ بالکل ختم شو.او داشان الله ﷺ د خپل نبی ﷺ په لاسونو مبارکو سره په خپل کور کښې کاڼړی نصب کړو.(دوحی نازلیدو نه مخکښې به قریشو رسول کریم ﷺ ته امین وئیلو). اوس پورتنۍ حصه جوړه شوه.او د کعبة الله تعمیر پوره شو.

**په خلافت د ابن زبیر رضی الله عنه کښې د کعبې تعمیر**:- ابن اسحاق فرمائی چه د رسول کریم ﷺ په زمانه کښې کعبه اتلس ګزه وه ، په دې باندې به دقباطی پرده اچولې شوه. بیا پرې د څادر پرده اچولې شوه. رینښمی کپړه پرې دټولونه مخکښې حجاج بن یوسف اچولې وه. (۱)

دکعبې مبارکې هم دا عمارت وو تردې پورې چه د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه دور خلافت په ابتداء زمانه کښې شپیته کاله پس په دې ځائې کښې اور اولګیدو او کعبه مبارکه اوسوزیده. دا د یزید بن معاویه د ولایت آخری زمانه وه. او هغه ابن زبیر رضی الله عنه په مکه مکرمه کښې ګیر کړې وو. په دې ورځو کښې خلیفه په مکه مکرمه کښې حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه خپلې ترور حضرت عائشه رضی الله عنها نه چه کوم حدیث آوریدلی وو،هم دهغې مطابق نې د رسول کریم ﷺ په خواهش باندې بیت الله شهید کړو او په دابراهیم علیه السلام په بنیادونو باندې نې جوړ کړو ، حطیم په کښې دننه شامل کړې شو.مشرق او مغرب طرفته دروازې کیخودې شوې یود ننوتلواو بله دراتلو. او دروازې نې زمکې سره یو شان کیخودې . ددوی دامارت دزمانې پورې کعبة الله همداسې وه. تردې پورې چه د ظالم حجاج دلاسه بیت الله شهید شو ، اوس حجاج بیاد عبدا الملک بن مروان په حکم سره بیت الله شهید کړو او دمخکښې پشان نې جوړ کړو.

---

(۱) ابن هشام : ۱/۲۱۱)-

**د تعمير نه وړاندې استخاره کول:-** په صحيح مسلم کښې دي چه د يزيد بن معاويه په زمانه کښې ، چه شام والو په مکه باندې حمله کړې وه او چه څه کيدل هغه اوشو. حضرت عبدالله ﷺ بيت الله شريف هم داسې پريښودو. دحج په موقعه خلق جمع شو او هغوی دا ټول هر څه اوکتل اوددې نه پس خلقو مشوره اوکړه چې ټوله کعبه دې شهيده کړې شی او بيا دې نوې جوړه کړې شی يا چه کومه نړيدلې ده هغه صحيح کړنی ؟ نو عبدالله بن عباس ﷺ اوفرمائيل چه خما رائې داده چه اوس کومه نړيدلې ده هغه جوړه کړنی اوباقی نوره پخوانئ پريږدئ. دوی اوفرمائيل چه تاسو کښې که دچا کوراوسوزی نو دهغه به دا خواهش نه وی چه هغه دې نوې جوړ کړی. بيا تاسو دالله ﷻ دکور متعلق داسې کمزورې رائې ولې ساتئی. بنه ده څه درې ورځو پورې دخپل رب سره استخاره کوم او بيا چه څه خما په زړه کښې وو هغه به کوم. درې ورځې پس ددوی هم دا رائې وه چه باقی ديوالونه دې هم غوزار کړې شی اوکعبه دې دوباره تعمير کړې شی. نودا حکم ورکړې شو. خودکعبې شهيدکولو په چا کښې همت نه وو. ويره وه چه څوك هم مخکښې د شهيد کولو دپاره مخکښې شو په هغه به عذاب رازی. خو يو همت والا سړې پورته اوختلو او هغه يو کاڼې اوغورزولو ، هرکله چه خلقو اوکتل چه هغه ته هيڅ تکليف اونه رسيدو نو بيا ټولو نړول شروع کړل. او زمکې پورې ئې ټوله صفا کړه. په هغه وخت کښې څلور واړو طرفونو ته ستنې اودرولې شوې اويو کپړه پرې زوړنده کړې شوه. ([1])

**په تعمير باندې شروع کول:-** اوس د بيت الله شريف تعمير شروع شو. حضرت عبدالله ﷺ فرمائی چه ما د حضرت عائشه ﷺ نه واوريدل ، هغې به فرمائيل چه رسول کريم ﷺ فرمائيلی دی که دخلقود کفر زمانه نزدې نه وې اوماسره دخرچ کولو څه هم وې چه په دې سره مې جوړ کړې وې نو د حطيم نه به مې پنځه گزه بيت الله شريف کښې شامل کړې وې او دکعبې به مې دوه دروازې جوړې کړې وې ، يو دراتلو او بله دتلو.حضرت عبدالله ﷺ داروايت بيان کړو او وې فرمائيل چه اوس دخلقو د کفر زمانه لرې ده،اوس ويره ختمه شوه ، او خزانه هم ډکه ده ، خماسره کافی روپئ دی ، بيا هيڅ وجه نشته دې چه څه د نبی کريم ﷺ خواهش پوره نکړم . نو پنځه لاسه ئې حطيم کښې دننه واخستل او اوس ئې کنستل اوکړل نو ابراهيمی بنياد په نظر راغلو اوخلقو داپخپلو سترگو اوليدو اوهم په دې ديوال باندې دبيت الله شريف اوږدوالې اتلس گزه وو. اوس په دې کښې پنځه گزه نور هم زيات شو نو پلن والې ئې کم شو نو ددې وجې په پلن والی کښې لس گزه نور هم زيات کړې شو او دوه دروازې جوړ کړې شوې يو دننه طرفته او بله بهر طرفته ،

**د حجاج بن يوسف تعمير:-** د ابن زبير ﷺ دشهادت نه پس حجاج عبدالملك ته اوليکل اوهغه سره ئې مشوره اوکړه چه اوس څه اوکړې شی ، دائې هم ورته اوليکل چه دمکې مکرمې عادلانو ددې متعلق معلومه ده. او بالکل د حضرت ابراهيم ﷺ په بنيادونو باندې کعبه تياره کړې شوې ده. خو عبدالملك جواب ورکړو پلن والې باقی پريږده ، او حطيم بهر کړه او دويمه دروازه بنده کړه . حجاج ددې حکم مطابق کعبه شهيده کړه اوبيائې دعبدالملك په وينا باندې جوړه کړه. خو سنت طريقه هم دا وه چه د حضرت عبدالله بن زبير بنياد باقی ساتلې شوې وې. خکه چه دا د نبی کريم ﷺ خوښه وه. خو په هغه وخت کښې نبی کريم ﷺ ته داويره وه چه خلق بدگمانی اونکړی خکه چه اوس اوس نوی نوی اسلام کښې داخل شوی دی.

**دعبدالملك بن مروان افسوس :-** خوداحديث عبدالملك بن مروان ته نه وو رسيدلې. خکه هغه کعبه شهيده کړه. هرکله چه هغه ته داحديث اورسيدو نو ډير خفگان به ئې کولو او وئيل به ئې چه کاش مونږ هغه داشان پريښودې وې او شهيده کړې مو نه وې. د صحيح مسلم په يو بل روايت کښې دی چه

[1]) صحيح مسلم : کتاب الحج: باب نقض الکعبة: ۱۳۳۳)-

حارث بن عبدالله كله ديو وفد په شكل كښې عبدالملك بن مروان ته راغلو نو عبدالملك بن مروان اوونيل خما خيال دې چه ابوحبيب يعنى حضرت عبدالله بن زبير ﷺ به داحديث دخپلې ترور حضرت عائشه ﷺ نه آوريدلې وى حارث اوونيل ضرور نې آوريدلې دې. ما پخپله هم دا دمور بى بى نه آوريدلې دې. تپوس ترې اوكړو تاترې نه څه آوريدلى دى ؟ وې ونيل ماترې آوريدلى دى چه هغې به فرمانيل نبى كريم ﷺ يو ځل ماته اوفرمانيل انې عائشې ﷺ! ستا قوم بيت الله شريف تنګ كړو. كه ستا دقوم دشرك زمانه نزدې نه وې نو ما به دوباره ددې (بيت الله ) كمې پوره كړې وې . خو رازه چه څه تاته نوى بنيادونه اوښايم كه ستاقوم دا بياتعمير كوى نو چه په اصلى صورت نې جوړه كړى. نو نبى كريم ﷺ حضرت عائشه ﷺ ته په حطيم كښې اووه ګزه دننه داخلولو اوونيل او وې فرمانيل چه مابه ددې دوه دروازې كړې وې ، يو دراتلو اوبله دتلو. اودواړه دروازې به مې زمكې ته نزدې جوړې كړې وې،يو مشرق طرفته اوبله مغرب طرفته. تاته پته ده چه ستا قوم دروازې دومره اوچتې ولې كړې دى ، دې ﷺ اوفرمانيل چه حضور ﷺ ماته نه دى معلوم. نبى كريم ﷺ اوفرمانيل چه صرف دخپل اوچتوالى او لونې والى په خاطر چه چالره اوغواړى نو چه دننه نې پريږدى او چالره چه اوغواړى نو منع نې كړى.عبدالملك اوونيل انې حارث اتا پخپله دا حديث د حضرت عائشه ﷺ نه آوريدلى دې . هغه اوونيل آومايخپله آوريدلې دې.نو لږ وخت عبدالملك خپله همسا ټكوله سوچ نې كولو ،بيانې اوونيل چه كاش ما هغه هم دهغه پشان پريښودې وې. ([1])

د صحيح مسلم په يرحديث كښې دى عبدالملك بن مروان يو ځل طواف كولو او حضرت عبدالله ﷺ نې اورتلو او وې ونيل چه ددې حديث په وجه په حضرت عائشه ﷺ باندې الزام لګولو نو حضرت حارث ﷺ هغه منع كړو اوګواهى نې وركړه چه هغه رښتونې وومـا هـم د حضرت عائشه ﷺ نـه دا حديث آوريدلې دې.اوعبدالملك افسوس اوكړو او وې ونيل كه ماته دمخكښې نه معلوم وې نو ما به هغه نه وه شهيده كړې. ([2])

**د هارون الرشيد اراده:-** قاضى عياض ﷫ او امام نووى رحمة الله عليه ليكلى دى چه خليفه هارون رشيد د حضرت امام مالك رحمة الله عليه نه تپوس كړې وو كه اجازت وى نو زه به دوباره كعبه هغه شان جوړه كړم څنګه چه حضرت زبير جوړه كړې وه. امام مالك رحمة الله عليه اوونيل تاسو داسې مه كونى.هسې نه كعبه هم دبادشاهانو دپاره لوبې توقې شى چه هر څوك نې دخپلې خوښې مطابق جوړوى او ورانوى.نو خليفه دخپلې ارادې نه منع شو هم دا خبره صحيح معلوميږى چه كعبه باربار چيړل صحيح نه دى.دبخارى او مسلم په يو حديث كښې دى چه نبى كريم ﷺ اوفرمانيل دا (كعبه به) دوه پندو والا حبشى بيا نوړوى([3])نبى كريم ﷺ فرمانى لكه چه څه هغه وينم. هغه تور سړې به يو يو كاڼړې بيلوى. ([4])ددې غلاف به اخلى او ددې خزانه به هم ،دهغه لاسونه به كاږه وى اوپښې هم او ګنجې به وى. څه وينم چه هغه كودالـه ټنګوى او ټكړې كوى نې([5])غالبًا دا بدنصيبه واقعه به د ياجوج او ماجوج راوتلونه پس وى( ددې دكتلونه دې مونږ الله ﷻ محفوظ اوساتى)په صحيح بخارى كښې يو حديث دې چې نبى كريم ﷺ فرمانيلى دى چه تاسوبه د ياجوج اوماجوج راوتلو نه پس ([6])هم د بيت الله حج اوعمره كونى .

[1] ) صحيح مسلم : كتاب الحج باب نقض الكعبة: ۱۳۳۳)-
[2] ) ايضا)-
[3] ) صحيح بخارى : كتاب الحج با ب هدم الكعبة : ۱۵۹۵)-
[4] ) صحيح بخارى : كتاب الحج: باب هدم الكعبة ۱۵۹۵)-
[5] ) احمد: ۲/ ۲۲۰)-
[6] ) صحيح بخارى كتاب الحج : باب قول الله تعالى ( جعل ا لله الكعبة البيت .....) ۱۵۹۳)-

**قوله تعالی:- رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ**

**د حضرت خلیل الله او حضرت ذبیح الله دعاګانې :-** حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ او حضرت اسماعیل ذبیح الله ﷺ په خپلو دعاګانو کښې وائی چه مونږ لره مسلمانان جوړ کړه یعنی مخلص مو جوړ کړه ، مطیع مو جوړ کړه ، موحد مو جوړ کړه ، دشرك نه مو بچ کړه اوریا کارئ نه مو بچ اوساته ، خشوع او خضوع راکړه. حضرت سلام بن ابی مطیع فرمائی چه مسلمانان خو وو خوداسلام ثابت قدمی ئې طلب کوله. چه ددې په جواب کښې الله ﷻ ارشاد فرمائی چه ﴿قَدْفَعَلْتُ﴾ (ماستاسو دا دعا قبوله کړه) بیا دخپل اولاد دپاره هم دادعا کوی چه قبلیږی. بنی اسرائیل هم حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ په اولاد کښې دې او عرب هم ،په قران پاك کښې دی چه﴿ وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰىٓ اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ۝﴾ (دموسی ﷺ په قوم کښې یو ډله پیه حق اوعدل باندې وه) خو دعبارت روانئ نه معلومیږی چه دعربو دپاره دا دعا ده. اګر چه نورو لره هم شامله وی. ځکه چه ددې نه پس بله دعاده چه په دوی کښې یو رسول اولیږه او د رسول نه مراد حضرت محمد مصطفی ﷺ دې، نودا دعا هم پوره شوه لکه فرمائی چه ﴿هُوَالَّذِىْ بَعَثَ فِى الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ﴾ خوددې نه ددوی رسالت خاص نه دې

**د نبی کریم ﷺ د رسالت عمومیت:-** بلکه د نبی کریم ﷺ رسالت عام دې. دعربو عجمو ټولو دپاره ، لکه فرمائی چه ﴿قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّىْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا ﴾ (اووایه چه ائې خلقو څه تاسو ټولو ته یو رسول رالیږلې شوې یم).

ځنګه چه ددې دواړو نبیانو دعاده داسې دې دهر متقی هم وی ، لکه څنګه چه په قران پاك کښې تعلیم دې چه مسلمانان دا دعا کوی﴿ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ اَزْوَاجِنَا وَذُرِّيّٰتِنَا قُرَّةَ اَعْيُنٍ وَّاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِيْنَ اِمَامًا۝﴾ (ائې زمونږه ربه ! مونږ لره زمونږ بیبیانې او اولاد زمونږ د سترګو یخوالې جوړ کړې. او مونږ دپرهیزګارونه اوګرزوې). دا هم دالله ﷻ دمحبت دلیل دې چه انسان غواړی چه ځما اولاد ځما نه پس هم دالله تعالی عابدان وی، او په بل ځائې کښې ددې دعا الفاظ دادی چه﴿ وَّاجْنُبْنِىْ وَبَنِىَّ اَنْ نَّعْبُدَ الْاَصْنَامَ۝﴾ (ائې الله ﷻ !ما اوځما اولاد لره د بت پرستئ نه بچ اوساتې).

**دانسان په مرګ د اعمالو خاتمه خو:-** نبی کریم ﷺ فرمائی چه دانسان مړ کیدو سره دده اعمال ختم شی خو درې کارونه به باقی پاتې شی① صدقه جاریه ② علم چه دهغه نه فائده واخستلې شی او③ نیك اولاد چه دعا کوی. (مسلم) .([1])

**قوله تعالی:- وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا ۚ**

**د حج احکام ګول:-** بیا دعا کوی چه مونږ ته مناسك اوښایه یعنی احکام د حج او د ذبح وغیره اوښایه. دکعبې دعمارت پوره کیدو نه پس حضرت جبریل ﷺ دوی لره صفا ته راولی،اوبیا مروه ته څی او فرمائی چه دا دالله ﷻ شعائر دی. بیا منی طرفته لاړل.عقبه سره شیطان یوونې سره ولاړ وو ، ملاؤ شو نووې فرمائیل تکبیر اووایه اودې په کاڼړی اووله. ابلیس ددې ځائې نه اوتښتیدو او جمره وسطی سره اودریدو ، دې ځائې کښې هم دې په کاڼرو اوویشتلې شو نو خبیث ناامیده شو او لاړو. دده اراده وه چه دحج په احکامو کښې څه مداخلت اوکړی خو موقعه ورته ملاؤ نشوه اومایوسه شو. ددې ځائې نه دوی مشعر الحرام ته راوستلو. بیا ئې عرفات ته بوتلو ،بیائې ترې درې ځل تپوس اوکړو اووایه پوهه شوې. دوی اوفرمائیل آو.([2]) په دویم روایت کښې درې ځائې کښې شیطان په کاڼرو ویشتلې شوې دې. او هر شیطان ئې په اووه اووه کاڼړوویشتلې دې.

---

[1] ) صحیح مسلم کتاب الوصیة باب مایلحق الانسان من الثوب......) ۱۶۳۱)-

[2] ) ابن ابی حاتم : ۱/ ۳۹۰)-

| رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ |
|---|
| اې ربه زمونږ \| راولیږه \| په دوی کښې |
| اې ربه په دوی کښې د دوی د نسب نه یو رسول راولیږه |
| رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ |
| یو پیغمبر \| د دوی نه \| چې اوروي \| هغوی ته \| ایتونه ستا \| او ښائي هغوی ته \| کتاب \| |
| چې ستا آیتونه ورته لولي \| او د کتاب (قرآن) تعلیم ورکوي (د خپل احادیثو په ذریعه) |
| وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ ۭ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۟ |
| او حکمت \| او پاکوي هغوی لره \| بیشکه خاص هم ته \| غالب \| صاحب د حکمت ئې \| |
| او (تعلیم ورکوي) دهوښیارتیا \| او د گناهونو نه ئې پاکوي \| بیشکه ته غالب او صاحب د حکمت ئې |

**د دعاء ابراهیمی ظهور**:- دحرم والو دپاره دابله دعاده چه ددوی په اولاد کښې یو پیغمبر پیدا شي نودا هم پوره شوه. مسند احمد کښې دي چه نبی کریم ﷺ فرمائي خه د الله ﷻ په نیز خاتم النبیین ﷺ دهغه وخت نه یم چه کله حضرت آدم ﷺ لا دښاوري په صورت کښې وو. خه تاسو ته ابتدائي امر اوښایم، خه دخپل پلار حضرت ابراهیم ﷺ دعا یم او د حضرت عیسی ﷺ بشارت یم او دخپلې مور خوب یم. د نبیانو میاندې هم داسې خوبونه وینی (۱) ابو امامه ﷺ یوځل سوال اوکړو مونږ ته خپل ابتدائي حالات بیان اوفرمائي. نبی کریم ﷺ اوفرمائيل خه دخپل پلار حضرت ابراهیم ﷺ دعا او د حضرت عیسی ﷺ زیرې یم او خما مور اوکتل چه ددې نه یو نور روان شو چه دې سره دشام محلونه په رڼا شو. مطلب دادې چه په دنیا کښې دشهرت دا ځیزونه شو. د نبې کریم ﷺ دمور خوب هم په عربو کښې مخکښې نه مشهور شوې وو. اوهغوی به وئیل چه د حضرت آمنه درحم نه به یو لوئې سړې پیدا کیږي. د بنی اسرائیلو نبی خاتم حضرت روح الله ﷺ چه به کله خطبه وئیله نو د ددوی (نبی کریم ﷺ) نوم به ئې هم اخستلو او فرمائيل به ئې انې خلقو! خه دالله تعالی د طرفنه تاسو ته رسول یم. خما نه مخکښې کتاب تورات دې دهغې هم خه تصدیق کوونکې یم، او خما نه پس د راتلونکې نبی تاسو ته بشارت درکوم چه دهغه نوم احمد (ﷺ) دې. هم دې طرفته په دې حدیث کښې اشاره ده ، په خوب کښې نور نه دشام محلونه پرقیدلو کښې دې طرف ته اشاره ده ، چه دین به په هغه ځائې قائم شي.

بلکه دروایتونونه ثابت دی چه په آخره زمانه کښې به شام داسلام او داهل اسلام مرکز جوړ شي. دشام په مشهور ښار دمشق کښې به حضرت عیسی ﷺ په شرقی سپینه مناره باندې راکوزیږي. په بخاری اومسلم کښې دی چه خمادامت یو ډله به په حق باندې قائم وي. ددوی مخالفین به دوی ته نقصان نه شي رسولې تر دې پورې چه دالله ﷻ حکم راشي(۲) په صحیح بخاری کښې دومره اضافه ده چه هغوی به شام کښې وي(۳) دابو العالیه نه روایت دې چه ددې دعا په جواب کښې اووئیلې شو چه دا هم قبول شوې ده او داپیغمبر به په آخری زمانه کښې مبعوث کیږي.

**قوله تعالی**:- وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ

**د کتاب او حکمت نه مراد**:- دکتاب نه مراد قران او حکمت نه مراد سنت او حدیث دی. حسن رحمه الله ، قتاده رحمه الله ، مقاتل رحمه الله ، بن حیان رحمه الله او ابومالک رحمه الله وغیره هم دا فرمان دې. او دحکمت نه مراد ددین پوهه

---

(۱) مسند احمد: ۱۲۷/٤)-

(۲) صحیح مسلم کتاب الامارة باب قوله ﷺ (لاتزال طائفة من امتی.....) ۱۹۲۰)-

(۳) صحیح بخاری : کتاب التوحید ،باب قول تعالی ( انما قولنا لشیء.....) ۷٤٦۰)-



هم ده. پاکول یعنی اطاعت او اخلاص خودل ، نیکئ کول ، دبدو نه منع کول ، دالله ﷻ اطاعت کول او دالله ﷻ رضا حاصلول. الله ﷻ عزیز دي ، هغه پاك ذات هیڅوك نشي عاجز کولي ، په هر څیزباندي غالب دي ، حکیم دي یعنی دهغه پاك ذات هیڅ یو قول او فعل دحکمت نه خالي نه دي ، هغه هر څیز لره پخپل محل باندي حکمت او عدل سره کوي.

| وَلَقَدِ | سَفِهَ نَفْسَهُ ط | مَنْ | اِلَّا | اِبْرٰهٖمَ | عَنْ مِّلَّةِ | يَّرْغَبُ | وَمَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوحقیقت دادي | چي بیوقوف کړي ني وي خان خپل | هغه څوك | مګر | دابراهیم نه | دطریقي | چي نفرت اوکړي | اوڅوك دي |

اوڅوك دي(یعنی نشته)چي مخ واړوي دملت ابراهیمی نه بغیر دهغه چانه چي خپل خان ني کم عقل کړي وي

| لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۞ | فِي الْاٰخِرَةِ | وَاِنَّهٗ | فِي الدُّنْيَا | اصْطَفَيْنٰهُ |
|---|---|---|---|---|
| اوچتونیکانونه | په آخرت کښي | او بیشکه وی به هغه | په دنیا کښي | چي غوره کړي وو مونږهغه لره |

اومونږهغه(ابراهیم)په دنیا کښي هم غوره کړخولي وو او په آخرت کښي به هم دنیکانو په ډله کښي شمیر وی

| اَسْلَمْتُ | قَالَ | اَسْلِمْ | رَبُّهٗٓ | لَهٗ | قَالَ | اِذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چي زهٔ تابعدار شوم | اوونیل هغه | چي تابعدار شه | رب خپل | هغه ته | اوونیل | کله چي |

(داحال وو)چي الله ورته اوفرمانیل چي(خما حکم ته)غاړه کیږده هغه (زر)اوونیل چي ما غاړه اینښودي ده

| وَيَعْقُوْبُ ط | بَنِيْهِ | اِبْرٰهٖمُ | بِهَآ | وَوَصّٰى | لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞ |
|---|---|---|---|---|---|
| او یعقوب هم | اولاد خپل ته | ابراهیم ﷺ | په دي سره | او وصیت کړي وو | دمالك دکائناتو |

هغه چانه د ټول جهان مالك دي | اوبیا ددي خبري وصیت ابراهیم او(هغه نمسي)یعقوب خپل اولاد ته هم کړي وو

| فَلَا تَمُوْتُنَّ | الدِّيْنَ | لَكُمُ | اصْطَفٰى | اِنَّ اللّٰهَ | يٰبَنِيَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| نومهٔ مرئ تاسو | دادین | ستاسودپاره | غوره کړي دي | بیشکه چي الله | چي اے بچو زما |

چي اني خماخامنوالله تعالی ستاسو دپاره دین (اسلام) غوره کړي دي نو(خبردار)تاسو مه مرئ

| مُّسْلِمُوْنَ ۞ ط | وَاَنْتُمْ | اِلَّا |
|---|---|---|
| مسلمانان | آیا وئ تاسو | مګر په داسي حال کښي چي یئ تاسو |

مګرهله چي مسلمان یئ (هروخت مسلمانان اوسیږئ)

**ددین ابراهیمی دعویدار دمشرکینو ذکر :** په دي اَیتونو کښي هم دمشرکانو رد دي چه هغوی به خپل خان په دین ابراهیمی باندي ګڼرلو.حالانکه هغوی مکمل طور سره مشرکان وو. اوحضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ خودموحدینو امام وو. توحید لره دشرك نه ممتاز کولو والا وو. په ټول عمر کښي ني د سترګي درپ هومره هم دالله ﷻ سره شرك نه وو کړي. بلکه دهر مشرك او دهرقسمه شرك او ددي نه بیزاره وو،هم په دي دقوم نه بیل شو. وطن ني پرینښودو. تردي پوري چه دپلارني هم مخالفت اوکړو اوددي ني هیڅ پرواه اونکړه.او صفاني اوونیل( اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ط الخ ) (خه بیزاره یم ددي څیزنه چه کوم تاسو شرك کوئ ، خه یو خواته شوم اوخپله ټوله توجه مي هغه پاك ذات طرفته کړه. چه هغه پاك ذات زمکي اوآسمانونه پیدا کړي دي.خه دشرك کونکو نه نهٔ یم.)په بل خاني کښي دی چه حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ خپل پلار اوخپل قوم ته اوونیل چه خه ستاسو دمعبودانونه بری یم. خه خود خپل حقیقی الله ﷻ سره محبت لرم ، هغه پاك ذات به ماته نیغه لار ښائي. اوپه بل خاني کښي دی چه

﴿ وَمَاكَانَ اسْتِغْفَارُ اِبْرٰهِيْمَ الخ﴾ حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ به صرف ديو وعدې په وجه دخپل پلار دپاره استغفار کولو.خو کله چه هغه ته معلومه شوه چه هغه دالله ﷻ دښمن دې نودهغه نه بيزاره شو.

**دابراهيم ﷺ صفات:** حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ ډير رجوع کوونکې او بردبار وو. او په بل ځائې کښې دي چه حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ مخلص او مطيع وو اومشرك بالکل نه وو.دالله تعالىٰ دنعمتونوشکر کوونکې وو.دالله ﷻ خوښ وو.او په نيغه لار باندې روان وو. ددنيا دښو خلقو نه وو او په آخرت کښې هم د صالحانو ځنې وى.ددې آيتونو په شان په دې ځائې کښې هم فرمائى چه په خپلو ځانونوباندې ظلم کوونکى بې تدبير او ګمراه خلق هم دحضرت ابراهيم خليل الله ﷺ ملت پريږدى ځکه چه حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ الله ﷻ دهدايت دپاره منتخب کړې وو. او ورکوالى نه ئې ورته توفيق هم ورکړې وو. دخليل پشان ښکلې خطاب ئې ورکړې وو.په آخرت کښې به هم د نيك بختو خلقو ځنې وى. دحضرت ابراهيم خليل الله ﷺ مسلك او ملت لره پريښودونکى او ګمراهئ کښې اخته کيدونکى نه به زيات بې وقوف او ظالم څوك وى ؟په دې آيت مبارك کښې ديهوديانو هم رد دې. لکه فرمائى چه ﴿مَاكَانَ اِبْرٰهِيْمُ يَهُوْدِيًّا وَّلَا نَصْرَانِيًّا الخ ﴾ (ابراهيم ﷺ نه يهودى وو او نه نصرانى اونه مشرك بلکه موحد او مسلمان او مخلص وو ،اوهغه ته نزدې هغه خلق دى چه دهغه تابعدار دى او دا نبى او چې ايماندار دى.الله تعالى دمومنانو ولى دې.کله ورته الله ﷻ فرمائى چه دا اومنئ نو هغوى جواب ورکوى چه ائې رب العالمين ما اومنل. هم ددې ملت وحدانيت وصيت حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ او حضرت يعقوب ﷺ خپل اولاد ته کړې وو.د "ها" مرجع يا خو ملت دې يا کلمه.

دملت نه مراد اسلام او کلمې نه مراد ﴿اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾ دې.اوګورئى ددوى زړونو کښې داسلام څومره محبت اوعزت وو چه په دې باندې تر عمره پورې عمل کوونکې وواو خپل اولادته ئې هم ددې وصيت اوکړو.لکه فرمائى چه ﴿وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً﴾(مونږ هغه کلمه دده په اولاد کښې هم باقى اوساتله) بعضې سلفو﴿يَعْقُوْبُ﴾ هم وئيلې دې خوبيا به په "بنيه" باندې عطف وى.اومطلب به داوى حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ خپل اولاد او داولاد اولاد نه حضرت يعقوب ﷺ ته چه په هغه وخت کښې موجود وو ،دهغه ددين داستقامت په وجه وصيت اوکړو. قشيرى رحمه الله فرمائى چه حضرت يعقوب ﷺ د حضرت ابراهيم ﷺ د وفات نه پس پيدا شوې وو. خودا صرف دعوى ده. په دې باندې هيڅ دليل نشته. والله اعلم.

**يعقوب ﷺ د ابراهيم ﷺ په ژوند کښې پيدا شوې وو:** بلکه په ظاهره دامعلوميږى چه حضرت يعقوب ﷺ د حضرت اسحاق ﷺ کره د حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ په ژوند کښې پيدا شوې وو ځکه چه دقران پاك آيت دې چه﴿ فَبَشَّرْنٰهَا بِاِسْحٰقَ وَمِنْ وَّرَآءِ اِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ۝﴾(مونږ هغه ته داسحاق اوداسحاق نه پس د يعقوب زيرې ورکړو).اوددې نصب د خفض په لرې کولوسره هم لوستلې شوې دې.نوکه حضرت يعقوب ﷺ د حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ په ژوند مبارك کښې ژوندې نه وې نو بيا د هغه دنوم په اخستلو کښې څه غټه فائده باقى نه پاتې کيږى. په سورت عنکبوت کښې هم دى چه مونږ حضرت ابراهيم ﷺ ته حضرت اسحاق ﷺ ورکړو او حضرت يعقوب مو ورکړو اومونږ دهغه په اولاد کښې نبوت اوکتاب جارى کړو.اوپه آيت کښې دى چه مونږ هغه ته اسحاق ﷺ او يعقوب ﷺ زياتى ورکړو.نو ددې نه معلوميږى چه حضرت يعقوب ﷺ د حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ په ژوند کښې وو. په مخکښنو کتابونوکښې هم دى چه هغه به بيت المقدس ته رازى.

**په بيت الله او بيت المقدس کښې فاصله.** حضرت ابوذر رضي الله عنه بو خل دنبى کريم ﷺ نه تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ ! کوم يو جمات مخکښې جوړکړې شوې دې ؟ نو نبى کريم ﷺ اوفرمائيل مسجد حرام. تپوس کوى بيا ؟نبى کريم ﷺ اوفرمائيل بيت المقدس .ما اووئيل د دواړو په مينځ کښې څومره موده

وه ؟وې فرمانيل څلوېښت كاله الخ.(۱)ابن حبان ونيلي دي چه د حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ اود حضرت سليمان ﷺ په مينځ كښې د فاصلې دا بيان دې حالانكه داقول بالكل مخالف دې ، ددې دواړو نبيانو په مينځ كښې خو د زرګونو كلونو موده وه. بلكه مطلب د حديث څه بل څه دې. اوشاه زمان سليمان ﷺ خو ددې مرمت كړې وو.داشان يعقوب ﷺ هم وصيت كړې وو چه د هغې ذكر هم رازي.وصيت ددې امر شوې وو چه په ژوند كښې مسلمان اوسئ چه مرګ هم درته په دې كښې راشي.

**چه څه كرې هغه به ريبې** :-عام طور انسان چه په ژوند كښې په كوم څيز باندې اوسيږي،په هغې باندې ورته مرګ هم راځي. او چه په كوم مرې په هغې به پاسي. دالله ﷻ غادت داشان دې چه دنيكئ ارادې كولو والا ته دنيكئ توفيق وركوي. نيكي دده دپاره آسانولې هم شي.او ده لره ثابت قدم ساتلې شي هيڅ شك نشته دې چه دا حديث هم راغلې وی چه انسان دجنتيانو عمل كولوسره جنت ته يو ليښت نزدې شي اودده تقدير غالب شي،اودجهنميانو كار كولو سره جهنمي شي(۲) اوكله ددې خلاف هم وی.ددې مطلب دادې چه دا ښه او خرابو كارونه ظاهري طور سره كيږي حقيقي طور سره نه .نو بعضو رواياتو كښې هم دا لفظ هم دې.(۳)قران پاك وائي سخاوت ، تقوى او ﴿لااله‌الاالله﴾ تصديق كولووالا دپاره مونږ دآسانئ لارپيداكوو او بخل او بې پرواهئ او دنيكو خبروتكذيب كوونكو دپاره مونږ دسختئ لار آسانوو.

| |
|---|
| أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ |
| \| آيا وئ تاسو \| حاضر \| په هغه وخت كښې |
| \| ايا تاسو حاضروئ څه وخت چې |
| حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعْبُدُونَ |
| چې راغې \| يعقوب ته \| مرګ اكله چې اوونيل هغهٔ\| خامنو خپلو ته\| دچا عبادت به كوئ تاسو |
| يعقوب ﷺ ته (د) مرګ (نښې) ښكاره شوې \| او هغه خپلوخامنو ته اوونيل \| چې د څه عبادت به كونی |
| مِنْ بَعْدِي قَالُوا نَعْبُدُ إِلَٰهَكَ وَإِلَٰهَ آبَائِكَ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ |
| روستو زمانه \| انواوونيل هغوئ\|مونږ به عبادتكوو\|دمعبود ستا\|اودمعبود دپلارونوستا\|چې ابراهيم اواسماعيل |
| خما (دمرګ) نه پس \| هغوئ ورته اوونيل چې ستا دمعبود اوستاد پلار نيكه د معبود دابراهيم ،اسماعيل |
| وَإِسْحَاقَ إِلَٰهًا وَاحِدًا وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ |
| او اسحاق دی\|چې معبود يو دې \| او مونږ دهغه حكم منونكي يو\| هغه څه خلق وو \| چې تير شو |
| اوداسحاق چه يوالله معبود دې \| اومونږ دهغه احكامو ته غاړه ايخودې ده\| دغه يوه ډله په چې لاړه تيره شوه |
| لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَا كَسَبْتُمْ |
| دهغوئ دپاره دی\| هغه څه\| چې كړی وو هغوئ \| اوستاسو دپاره دی\| هغه څه \| چې كړی دی تاسو |
| هغوئ ته به دخپل عمل بدله وركولې شي \| اوتاسوته به ستاسو دكارونو بدله دركولې شي |

---

۱) صحيح بخاری ، كتاب احاديث الانبياء ، باب رقم: ۳۳۶۶/۱۰، صحيح مسلم : ۵۲۰، نسائی : ۶۸۱، ابن ماجه: ۷۵۳)-

۲) صحيح بخاری كتاب القدر باب رقم :آ،ح/ ، ۶۵۹۴ ، صحيح مسلم : ۲۶۴۳)-

۳) صحيح بخاری ، كتاب الجهاد، باب لا يقال فلان شهيد ، ۲۸۹۸، صحيح مسلم، ۱۱۲)-

| وَلَا تُسْـَٔلُوْنَ | عَمَّا | كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝ |
|---|---|---|
| اونه به کيږی تپوس ستاسو نه | دهغه څه | چې کول به هغوئ |
| اوتاسونه به دهغوئ دعملونوپحقله هيڅ تپوس نه کيږی | | |

**دتوحيد الوهيت ثبوت:-** دعربو مشرکان چه د حضرت اسماعيل ؑ اولاد وو ، او کفار بنی اسرائيل چه د حضرت يعقوب ؑ اولاد وو هغوئ (دواړو باندې) دليل راوړی او الله ﷻ فرمانی چه حضرت يعقوب ؑ خو اولاد ته په خپل آخری وخت هم دالله ﷻ وحده لاشريك لـه دعبادت وصيت کړې وو. دوی نه نې مخکښې تپوس اوکړو چه تاسو به د چا عبادت کونی ؟ تولو جواب ورکړو چه ستا او ستا د (اله) او د بزرگانو حق د معبود.

حضرت يعقوب ؑ د حضرت اسحاق ؑ خونې وو او حضرت اسحاق د حضرت ابراهيم ؑ خونې وو، د حضرت اسماعيل ؑ نوم دپلار نيکه په ذکر کښې دتغليب په طور راغلې دې. خکه دوی د حضرت يعقوب ؑ تره دې اودادې هم ښکاره وی چه عربو کښې تره ته هم پلار وائی. ([1])

**د ايت نه يو استدلال:-** په دې آيت باندې استدلال کولې شی چې تره هم د پلار په زمره کښې ذکر دې نودنيکه په موجودگئ کښې به رور خور د وراثت نه محروم وی.د حضرت صديق اکبر ؓ فيصله هم داده لکه څنگه چه په صحيح بخاری کښې موجوددی. ([2])د ام المومنين حضرت عائشه ؓ مذهب هم دادې. حضرت حسن بصری ؒ ، حضرت عطاء ؒ او حضرت طاؤس ؒ هم دا وائی. د امام ابوحنيفه ؒ او ډير و سلفو او خلفو هم دا مذهب دې. امام مالك ؒ ، امام شافعی ؒ او يو مشهور روايت کښې امام احمد ؒ نه هم منقول دی چه دوئ رونړو خويندوته هم وارث ونيلې شی. حضرت عمر فاروق ؓ ، حضرت عثمان ؓ ، حضرت علی ؓ ، حضرت ابن مسعود ؓ ، حضرت زيد ؓ او سلفو خلفو هم دا مذهب دې. قاضی ابويوسف ؒ ، اودمحمد بن حسن عنهم دا مذهب دې. اودا دواړه د امام ابوحنيفه شاگردان دی.ددې مسئلې د صفايې دامقام نه دې. اونه دتفسير موضوع ده.

### دنيکی په موجودگئ کښې د نمسی حصه

**مسلك حنفی:-** دنيکه په موجودگئ کښې درونړو او خويندو حصه نشته لکه څنگه چه په سراجی کښې دی (وبنوالاعيان والعلات کلهم يسقطون بالابن وابن الابن وان سفل وبالاب بالاتفاق وبالجد عند ابی حنيفه الصفحة ۱۱ وقال فی بحث اولاد الام... ويسقطون بالولد وولد الابن وبالاب والجد بالاتفاق الصفحة ۷ وقال فی باب مقاسمة الجد قال ابوبکر الصديق رضی الله عنه ومن تابعه من الصحابة رضی الله بنوالاعيان وبنو العلات لايرثون مع الجد وهذا قول ابی حنيفة رحمه الله وبه يفتی الصفحة ۲۹ )سراجی)-

قوله تعالى:- قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ الخ

**بچی دالله د الوهيت اقرار کوی:-** دې تولو بچو اقرار اوکړو چه مونږ به ديو معبود عبادت کوؤ يعنی دالله ﷻ اودهغه ذات په الوهيت کښې به څوك نه شريک کوؤ. اومونږ به دهغه پاك ذات اطاعت کوؤ، فرمانبرداری به کوؤ ، خشوع اوخضوع کښې به مشغول اوسو. او په بل ځائې کښې دی چه ﴿ لَهٗٓ اَسْلَمَ الخ ﴾ دزمکې اوآسمان هر څيز خوشحالئ او زور سره د هغه پاك ذات تابع دی هغه طرفته به تاسو واپس کيږئی.دتولونبيانو دين هم دا اسلام وو.اگر چه په احکامو کښې جدائی شته دې لکه فرمانی چه ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ۝﴾ (ستا نه چه مخکښې څومره رسولان مونږ ليږلی ووتولوطرفته مووحی کړې وه چه څما نه سوابل څوك دعبادت لائق نشته دې تاسوټول څما عبادت

---

[1] القرطبی:۲/۱۳۸)-

[2] (صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء قول الله تعالى ( واذكر فی الكتاب مريم) ۳٤٤۳،صحيح مسلم: ۲۳٦٥)-

کوني).او نوردا مضمون په نورو ډيرو اياتونوکښې دی. اوپه احاديثو کښې هم دامضمون په کثرت سره وارد شوې دې.نبي کريم ﷺ فرماني چه مونږعلاتې رونړه يو ، زمونږ يودين دې (١).

**قوله تعالى:-** تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ

**هرچاته به د خپل بدله ملاويږي:-** بيا فرمائي چه دا يو امت وو چه تير شو ستاسو دپاره خپل عملونه دی او دو ی دپاره خپل عملونه دی. هغوی چه څه اوکړل هغوی ته به د هغې جزاء ملاويږی او ستاسو چې څه کوئ تاسو ته به د هغې بدله ملاويږی .ستاسونه به دهغوی دکارونو تپوس نه کيږی . په حديث مبارك کښې دی چه څوك چې په عمل کښې کمزورې وی نو دهغه نسب به هغه په عمل کښې تيز نکړی (٢)

وَقَالُوْا كُوْنُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوْا ؕ قُلْ بَلْ

اووانی(يهوديان ) | چې شئ | يهوديان | ياعيسايان | نو صحيح لاربه بيا مومئ | ورته اووايه | نا بلکه

اويهوديان اوعيسايان وائی چې شئ يهوديان يانصاری نوسمه لار به بيامومئ | ورته اووايه چې(نه)بلکه

مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ حَنِيْفًا ؕ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝

| طريقه | دابرهيم | يو مخيزی | اونهٔ ووهغه | دمشرکانونه

مونږ دابراهيم په ملت قائم يوچې (ټول عمر) دباطل نه روګردان اودحق پيروکار وواودمشرکانوملګرې نه وو

**داهل كتاب ترديد:-** عبدالله بن صوريا اعور نبی کريم ﷺ ته ونيلی وو چه په هدايت خو مونږ يو که ته زمونږ منې نوتاسوته به هم هدايت درکړو.نصرانيانو هم دا ونيلی وو،په دې باندې دا آيت نازل شو چه مونږ خود ابراهيم د دين حنيف تابع يو،اوهغه استقامت والا،اخلاص والا،حج والا،بيت الله طرفته مخ کولو والا،داستطاعت په وخت کښې دحج فرض پيژندلووالا،دالله ﷻ فرمانبرداری کولووالا،په ټولو رسولانو باندې ايمان راوړلو والا،د لا اله الا الله شهادت کولو والا،مور،ترور،اودپلار خور لره حرام کولو والا،اوټولوحراموکارونوونه بچ کيدو والا وو.دټولې معنې دحنيف مختلفو حضراتوبيان کړی دی.

قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ

| اووايئ اې مسلمانانو | چې ايمان راوړې دې موا | په الله | او په هغه هدايت باندې

| تاسوورته ښهٔ په ډاګه اووائې | چې مونږ په الله ايمان راوړنی دې اوپه هغه کتاب

اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ

چې نازل شوې دې | مونږته | او په هغه | چې نازل شوې وو | ابراهيم ته | او اسماعيل | او اسحاق

کوم چې مونږ ته راليږلې شوې دې | اوپه هغه کتابونو چې ابراهيم عليه السلام اسماعيل عليه السلام اواسحاق عليه السلام

وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِىَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَمَآ

او يعقوب | او اولاد (د يعقوب ) ته | اوپه هغه | چې ورکړې شوې وو | موسی | او عيسی ته | او په هغه

اويعقوب ته اوددوی نمسوته راليږلې شوی دی | اوپه هغه کتابونو چې په موسی او عيسی نازل شوی اوپه هغه

اُوْتِىَ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ؗ

چې ورکړې شوې ووا | پيغمبرانوته | دطرفه درب خپل نه | نهٔ کوومونږ فرق په مينځ | ديودهغوئ کښې

کتابونو چې نورپيغمبرانو ته دخپل رب دطرفه ورکړې شوی ووا مونږ ددوئ ترمينځ(په منلواونه منلو

---

(١) صحيح مسلم : كتاب الذكر والدعاء ، باب فضل الاجتماع على تلاوة ا لقرا ن الكريم: ٢٦٩٩)-

(٢) ابن ابي حاتم :١/٣٩٧)-

| وَنَحْنُ لَهٗ | مُسْلِمُوْنَ |
| --- | --- |
| اومونږ هغه لره | تابعداران يو |

کنبي،هيڅ فرق نه کوو اودالله حکمونوته موغاړه ايخودې ده

**په ټولو پيغمبرانو ايمان راوړل:-** الله ﷻ خپل ايماندارو بندګانو ته فرمائي چه څه په حضرت محمد ﷺ باندې نازل شوی دی په هغې باندې په تفصيل سره ايمان راوړئ،اوچه څه په مخکښې نبيانو باندې نازل شوی وو په هغې باندې هم اجمالي طور ايمان راوړئ. په هغه مخکښې نبيانو کښې ئې دبعضو نومونه هم واخستل او دباقی نبيانونې مجمل ذکراوکړو. ورسره ئې اوفرمائيل چه دوی دې د هيڅ يونبي په مينځ کښې فرق نه کوی . چه يو منی او بل نه منی،چه کوم عادت دنورو وو چه هغوی به دنبيانو په مينځ کښې فرق کولو او څوک به ئې منل او څوک به ئې نه منل. يهوديان حضرت عيسیٰ ؑ لره،نصرانيان حضرت محمد ﷺ لره ، حجازی عرب حضرت موسیٰ ؑ لره،حضرت عيسیٰ ؑ لره او حضرت محمد ﷺ لره يعنی دريواړو لره نه منی. دې ټولو ته فتوی ملاو شوه چه ﴿ أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقًّا ﴾ (داخلق په يقين سره کافران دی). حضرت ابوهريره ؓ فرمائي چه اهل کتابو به تورات په عبرانئ (ژبه) کښې لوستلو. او ددې تفسير به ئې په عربئ (ژبه) کښې کولو او اسلام والو ته به ئې وئيلو. نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه داهل کتابو منل يا تکذيب مه کوئ ، وائې چه په الله ﷻ باندې اودهغه په نازل کړې شوو کتابونوباندې زمونږ ايمان دې. ([1])

**دسحر په سنتوکښې قراءت:-** نبی کريم ﷺ به دسحر په دوو سنتوکښې په رومبی رکعت کښې آيت ﴿ آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْنَا ﴾ پوره آيت اوپه دويم رکعت کښې به ئې دآل عمران آيت ﴿ آمَنَّا بِاللَّهِ وَاشْهَدْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴾ لوستلو.([2])

**داسباط تشريح :** ① اسباط د حضرت يعقوب ؑ خامنوته وائی ، چه دولس وو. چه ددوی په هر يو نسل کښې ډير انسانان وو. بنی اسماعيل ته ئې قبائل وئيل. اوبنی اسرائيلو ته به ئې اسباط وئيل([3])
② زمحشری رحمه الله په کشاف کښې ليکلی دی چه دا د يعقوب ؑ نمسې وو چه دهغوی د دولسو خامنو اولاد وو.په بخاری شريف کښې دی چه د قبائل نه مراد بنی اسرائيل دی،په دوی کښې هم نبيان وو.چه په هغوی باندې وحی نازله شوې وه.لکه حضرت موسیٰ ؑ فرمائي﴿ إِذْ جَعَلَ فِيكُمْ أَنبِيَاءَ ﴾ دالله ﷻ نعمتونولره يادکړئ چه هغه ذات په تاسوکښې نبيان راوليږل.اوپه بل مقام باندې فرمائي چه﴿ وَقَطَّعْنَاهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ أَسْبَاطًا أُمَمًا ﴾ (مونږ ددوی دولس قبيلې جوړې کړې).
د "سبط " وائی تتابع ته ، دا هم يو بل پسې وو. بعضې وائی .دا ماخوذ دې د "سبط "نه ،سبط وانی ونې ته يعنی دوی په مثال دونې دی. چه ددې ښاخونه خواره شوی دی. حضرت ابن عباس ؓ فرمائي چه ټول نبيان عليهم السلام په بنی اسرائيلو کښې دی سوا دلسو نه. حضرت نوح ؑ ، حضرت صالح ؑ ،حضرت شعيب ؑ ، حضرت ابراهيم ؑ ، حضرت يعقوب ؑ ، حضرت اسماعيل ؑ ، حضرت هود ؑ ، حضرت اسحاق ؑ او حضرت محمد ﷺ ، سبط وائی هغه ډلې اوقبيلې ته چه د هغوی مورث اعلی پورته په سلسله نسب کښې يو وی. ([4])

---

[1] صحيح بخاری ، کتاب التفسير ،سوورة البقرة ، باب قول الله ( قولو امنا بالله) ٤٤٨٥ـ
[2] صحيح مسلم کتاب الصلوة المسافرين ،باب استحباب ركعتى سنة الفجر: ٧٢٧ـ
[3] ابن ابی حاتم : ٣٩٩/١ـ
[4] ..طبی : ٤١/٣ ـ

**ایمان په ټولو خو عمل په قران**:- مونږ ته په تورات او انجیل باندې ایمان راوړل ضروري دي. لیکن عمل کول صرف په قران پاک باندې دي ، ابن ابی حاتم کښې دي چه نبی کریم ﷺ فرمائي چه تورات ، انجیل ، زبور باندې ایمان ساتئ لیکن عمل دپاره صرف قران پاک کافي دي.

| فَإِنْ | اٰمَنُوْا | بِمِثْلِ | مَآ | اٰمَنْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| نو که چرې | ایمان راوړو هغوئ | په شان | | دهغې | چې ایمان راوړې دې تاسو |
| که دوئ هم ستاسو په شان په نورو کتابونو ایمان راوړو | | | | |

| بِهٖ | فَقَدِ اهْتَدَوْا | وَإِنْ | تَوَلَّوْا | فَإِنَّمَا هُمْ | فِيْ شِقَاقٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغې | نو په هدایت دي هغوئ | او که چرې | مخ ني واړوو | نو بې شکه هغوئ | په ضد کښې پراته دي |
| نو سمه لار ني بیاموندہ | او که | دې ته نې | شاکړه | نو دوئ پخپلو اختلافونو کښې ږوخت، پراته دي |

| فَسَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ | وَهُوَ | السَّمِيْعُ | الْعَلِيْمُ |
|---|---|---|---|
| نو زرده چې کافي به شي تالره په مقابله دهغوئ کښې الله | او هغه | هر څه اوریدونکې | او به هر څه پوهه دي |
| انې پیغمبره ددوئ دشرنه دبچ کیدو دپاره تالره الله کافي دې | او هغه ښه آوریدونکې او ډیر پوهه دې په مونږ | | |

| صِبْغَةَ اللّٰهِ | وَمَنْ أَحْسَنُ | مِنَ اللّٰهِ | صِبْغَةً | وَّنَحْنُ | لَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوو ایه چې رنګ دالله | او بل څوک زیات ښه دې | د الله نه | په لحاظ درنګ سره | او مونږ | هغه لره |
| دالله رنګ دې | او د الله پاک نه د بل چا رنګ ښائسته کیدې شي | او مونږ یوازې دهغه | | | |

| عٰبِدُوْنَ ﴿۱۳۸﴾ |
|---|
| عبادت کونکی یو |
| عبادت کوونکی یو |

**دنجات موندودپاره شرط**:- یعني انې ایماندارو صحابه کرامو ﷺ اکه دا کفار هم ستاسو په شان ایمان راوړي یعني په ټولو کتابونو باندې، او ټولو رسولانو باندې نو حق او رشدوهدایت سره به نجات اومومي. او که دحجت دقائمیدو نه پس بیا هم دوی نه منع کیږي نو یقینا دحق خلاف دي. الله ﷻ به تاسوته په دوی باندې غلبه درکړي. او ستاسو دپاره به کافي شي. هغه آوریدونکې او عالم دي.

**دعثمان ﷺ د شهادت په وخت کښې تلاوت**:- نافع ابن ابی نعیم وائي چه یو خلیفه ته د حضرت عثمان ﷺ دتلاوت والا قران پاک اولیږلې شو. زیاد چه دا واوریدل نو وې ونیل چه په خلقو کښې مشهور دي چه حضرت عثمان خلقو کله شهید کړو ، په هغه وخت کښې دا کلام دهغه په غیږ کښې وو او دهغوی وینه بالکل په دې لفظونو باندې وه چه ( فَسَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ) آیا دا صحیح دي؟ حضرت نافع رحمه الله اوونیل بالکل صحیح دی. ماپخپله په دې آیت باندې د حضرت عثمان ﷺ وینه کتلې ده ( )

**د صبغة نحوي تحقیق**.- درنګ نه مراد دین دي[۲] او ددې زبر په طور داغراء دې لکه فطرة الله کښې . مطلب دادې چه د الله ﷻ دین لازم اونیسئ او په دین باندې وررپریوزئي. بعضې وائي چه دا بدل دې د ( مِلَّةِ إِبْرٰهٖمَ ) نه. چه ددې نه مخکښې موجود دي. سیبویه وائي د امصدر موکد دې د ( اٰمَنَّا بِاللّٰهِ ) وجې

[۱] ) ابن ابی حاتم: ۱/۴۰۲)-.

[۲] ) ابن ابی حاتم : ۱/۴۰۲)-

سره منصوب ده. لکه ( وَعْدَاللّٰهِ حَقًّا ) په یو مرفوع حدیث کښې دی چه بنی اسرائیلو اوونیل انې داللہ ﷺ رسوله ﷺ ! آیا زمونږ رب هم رنګ کوی. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل دالله ﷺ نه ویرېږئ. آواز را غلو چه دوی ته اووایه چه ټول رنګونه خوزه پیدا کوم. هم دا مطلب ددې آیت هم دې. لیکن ددې روایت موقوف کیدل صحیح دی. اوداهم په هغه وخت کښې چه کله ددې اسناد صحیح وی.

| فِي اللّٰهِ | أَتُحَاجُّونَنَا | قُلْ |
|---|---|---|
| په باره دالله کښې | چې ایا جګړې کوئ تاسو زمونږ سره | اووایه (دوئ ته) |

ورته اووایه چې آیا تاسو مونږ سره دالله په حق کښې جګړې کوی

| وَلَكُمْ | أَعْمَالُنَا | وَلَنَا | وَرَبُّكُمْ | رَبُّنَا | وَهُوَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوتاسولره دی | عملونه زمونږ | اومونږ لره دی | اورب ستاسوهم دې | رب زمونږ دې | حال داچې هغه |

حال دا چې هغه ستاسواوزمونږ (په شریکه) پالونکې دې او زمونږ خپل عملونه دی اوستاسو

| إِنَّ | أَمْ تَقُولُونَ | مُخْلِصُونَ | لَهُ | وَنَحْنُ | أَعْمَالُكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې بیشکه | ایاوایئ تاسو | خاص بندګی کونکی یو | هغه لره | اومونږ | عملونه ستاسو |

خپل عملونه دی اومونږ خالص دهغه عبادت کوو آیاتاسو دا وائې چې ګنې

| أَوْ نَصَارَىٰ | هُودًا | كَانُوا | وَالْأَسْبَاطَ | وَيَعْقُوبَ | وَإِسْحَاقَ | وَإِسْمَاعِيلَ | إِبْرَاهِيمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| یاعیسایان | یهودیان | وو | اولاد | او دیعقوب | اوسحاق | اواسماعیل | ابراهیم |

ابراهیم ﷺ، اسماعیل ﷺ اواسحاق ﷺ اویعقوب ﷺ اودهغوئ نمسی ټول یهودیان یا عیسایان وو

| كَتَمَ | مِمَّنْ | أَظْلَمُ | وَمَنْ | أَمِ اللّٰهُ | أَعْلَمُ | ءَأَنْتُمْ | قُلْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې پټه کړې نې وی | دهغه چانه | زیات ظالم | | که الله اوخوك دې | بنه پوهیږئ | ایا تاسو | ورته اووایه |

ورته اووایه چې تاسوښه پوهیږئ اوکه الله او دهغه چانه لونې ظالم څوك کیدې شي چې پټ

| عَمَّا | بِغَافِلٍ | اللّٰهُ | وَمَا | مِنَ اللّٰهِ | عِنْدَهُ | شَهَادَةً |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دهغه کارونونه | نا خبره | الله | او نه دی | دطرفه دالله نه | چې وه په ذمه دهغه | ګواهی |

کړې نې وی شهادت دالله چې ورسره وی اوالله ستاسو د عملونو نه ناخبره نه دې

| كَسَبَتْ | مَا | لَهَا | قَدْ خَلَتْ | تِلْكَ أُمَّةٌ | تَعْمَلُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې هغوئ کړی وو | اوهغه څه | دهغوئ دپاره وو | چې تیرشو | اهغه څه خلق وو | چې تاسو نې کوئ |

(دکومو پیغمبرانو نومونه چه ذکرشول) دغه یوه ډله وه چې لاړه تیره شوه دهغوئ خپل عمل وو

| عَمَّا | وَلَا تُسْأَلُونَ | كَسَبْتُمْ | مَا | وَلَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| دهغه عملونو | اونه به کیږی ستاسو نه تپوس | چې تاسو نې کوئ | هغه څه | او ستاسو دپاره دی |

اوستاسو خپل عملونه دی اوستاسو نه به د هغوی د عملونو په باره کښې هیڅ تپوس نشی کولې

| كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ |
| --- | --- |
| چې وو هغوئ | چې كول به ئې |
| بلكه د هغوی دپاره خپل اعمال دي او ستاسو دپاره ستاسو عملونه دي | |

**حقيقي دين اسلام دي** :- دمشر كانو جنګونه ختمولو دپاره الله ﷻ خپل نبي ته حكم فرماني چه ته دوی ته اووايه مونږ سره دالله ﷻ توحيد ، اخلاص،اطاعت وغيره باره كښې ولې جنګ كونې؟ هغه پاك ذات خوصرف زمونږ نه بلكه ستاسو هم رب دې. مونږاوتاسو باندې قابض اومتصرف هم هغه يوازې دې ، زمونږ عملونه مونږ سره دی او ستاسو عملونه ستاسوسره .اومونږ ستاسو د شرك نه بيزاره يو. او په بل ځائې كښې ارشاد دې چه ﴿فَإِنْ كَذَّبُوكَ الخ﴾(كه تا په دروغه ګڼړی نواووايه چه ځما دپاره ځما عمل دې او ستاسو دپاره ستاسوعمل دې. تاسو ځما دنيك كار نه او ځه ستاسو د اعمالونه بيزاره يم. او په بل ځائې كښې ارشاد دې چه﴿فَإِنْ حَاجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ﴾ دوی تا سره جنګ كوی نو اووايه ما او ځما منلووالا خپل مخونه الله ﷻ طرفته كړل.

حضرت ابرا هيم ﷺ هم خپل قوم ته هم دا ونيلي وو ﴿أَتُحَاجُّونَنَا فِي اللَّهِ﴾ ( تاسو دالله ﷻ په حق كښې ماسره جنګ كونې. اوپه بل ځائې كښې ارشاد دې چه ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ فِي رَبِّهِ﴾ (تا هغه هم اوكتلو چه ابراهيم ﷺ سره ئې دهغه در ب په حق كښې جنګ كولو) نو په دې ځائې كښې دې جګړه كونكو خلقو ته اووئيلې شو چې زمونږ عملونه خمونږ دپاره اوستاسو عملونه ستاسو دپاره.مونږ ستاسو نه بيزاريو اوتاسو خمونږ نه بيل .مونږ خو په عبادت اوتوجه كښې اخلاص او يكسوئي كولو والا خلق يو.

**قوله تعالى**:- مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا الخ

**ابراهيم مسلمان وو**:- بيا ددې خلقو د دعوې ترديد كيږی چه حضرت ابراهيم ﷺ نه خو يهودی وو اونه نصراني،تاسو ائې يهودو او ائې نصرانيانو ولې داخبرې جوړونې ؟ آيا ستاسو علم دالله ﷻ نه زيات دې څه ؟ الله ﷻ خو صفا وائی چه ﴿ مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَكِنْ كَانَ حَنِيفًا مُسْلِمًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴾ (حضرت ابراهيم ﷺ خو نه يهودی وو اونه نصراني اونه مشرك بلكه خالص مسلمان وو) دهغوی د الله ﷻ شهادت لره پټول ډير لوئې ظلم كول دا وو او چه دالله ﷻ كتاب كوم چه دوی سره وو ، په هغې كښې دوی اولوستل چه حقيقي دين اسلام دې، محمد ﷺ دالله ﷻ رينښتوني رسول دې . حضرت ابراهيم ﷺ، حضرت اسماعيل ﷺ او حضرت يعقوب ﷺ وغيره ديهوديت او نصرانيت نه بيل وو. ليكن دائې اونه منل او دومره نه بلكه داخبره ئې پټه كړه.

**قوله تعالى**:- وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ

بيا فرمائي ستاسو أعمال دالله ﷻ نه پټ نه دی. دهغه محيط علم ټول څيزونه ګير كړی دی. هغه به دهرې نيكئ او هرې بدئي پوره پوره بدله وركوی.

**قوله تعالى**:- تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ

**هرڅا دپاره د هغه عمل دې** - دا ددې تنبيه وركولو نه پس فرمائي دا پاكباز جماعت خو الله تعالى ته اورسيدو ، تاسو چه تركومې پورې د دوی په نقش قدم باندې روان نه شئ ، صرف ددوی په اولاد كښې كيدل تاسوته دالله ﷻ سره هيڅ فائده او عزت نشی دركولې. ددوی په نيكو عملونو كښې ستاسو هيڅ حصه نشته دی.اوستاسو دبدو عملونو په دوی باندې هيڅ بوج نشته . چه څه كرئې هغه به ريبئ. تاسو چه ديو نبي تكذيب اوكړو نو لكه چه دټولونبيانو تكذيب مو اوكړو. او ائې خلقو خاص كر چه تاسو د نبي آخرالزمان په زمانه كښې يئ. نو تاسو باندې ډير وبال راغلو. تاسو دا نبي ﷺ په دروغه اوګڼړلو چه سيد الانبياء دې. چه رسول رب العالمين دې. چه دهغه رسالت ټولو انسانانو او جناتو طرفته دې. چه دده درسالت هر يو منلو والا او هر سړې مكلف دې.دالله تعالى بيشميره درود اوسلام دې وی په حضرت محمد ﷺ باندې ،اود نبي كريم ﷺ نه علاوه په ټولونبيانو باندې

الحمد لله دتفسير ابن كثير پښتو ترجمه اوله پاره ختمه شوه .

سَيَقُولُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰىهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا

اوبه وائي | ناپوهان | دخلقو نه | چې څه څيز اوګرزول دوی| دقبلې خپلې نه | هغه قبله| چې وو دوی

ناپوهه خلق به ضرر وائي چې په دوی څه اوشو چې دهغې خپلې هغې قبلې نه اوګرزيدل چې تراوسه

عَلَيْهَا ۗ قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۗ يَهْدِي مَنْ يَّشَآءُ

هغې طرفته| ورته اووايه| چې الله لره دي| مشرق | اومغرب | هدايت کوی | هغه چاته | چې خوښه ئې شي

پورې به ئې ورته مونځونه کول |ته ورته اووايه چې مشرق اومغرب ټول دالله دی|چې دچا په باره کښې ئې

إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ۝ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ أُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُونُوا

د لارې نيغې |اودارنګې |جوړکړئ مونږ تاسو | امت درميانه | دپاره ددې چې شئ

خوښه شي نوهغه په سمه لار روان کړي |او په دې خبره موتاسو غوره ټولې اوګرولې|چې تاسوبه (دقيامت

شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا ۗ وَمَا جَعَلْنَا

تاسو ګواهان | په خلقو | اوچې شي| رسول په تاسو | ګواه |اونه وه ګرزولې مونږ

په ورځ په نوروخلقو باندې ګواهان شئ|او پيغمبر په تاسو باندې ګواه شي | اومونږ هغه

الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنْتَ عَلَيْهَا إِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ

قبله | هغه | چې وې ته| هغې ته | مګر |دپاره ددې چې معلوم کړومونږ |چې څوک| تابعداری کوی

قبله چې تابه ورته(په مکه کښې) مونځ کولو په دې غرض بيا مقرر کړه| چې ښکاره کړو چې څوک د پيغمبر تابعداری

الرَّسُولَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ ۗ وَإِنْ كَانَتْ لَكَبِيرَةً إِلَّا

د رسول | دهغه چانه | چې واپس څي | په پوندو خپلو | او بيشکه | ووه| ډير ګران | مګر

کوی او څوک په اړولو پوند بيرته (کفرته) ګرځي |اودا خبره (د قبلې بدليدو) اګرچې ډيره ګرانه ده مګر

عَلَى الَّذِينَ هَدَى اللّٰهُ ۗ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ ۗ إِنَّ

په هغه چاباند|چې هدايت کړې وو هغه ته الله |او نه دې الله | چې ضائع کوی | ايمان ستاسو | بيشکه

چې الله چاته هدايت اوکړي هغوی ته ګرانه نه ده |اوالله ستاسو ايمان اوعمل هيڅرې نه ضائع کوی

اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ۝

چې الله| په خلقو باند| ډيرمهربان | رحم کونکې دی|

هغه په خلقو باندې ډير مهربان رحم کونکې دی |

**قوله تعالى:- سَيَقُولُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ**

**په دې بې وقوفانو کښې د عالمانو اقوال:-** ① وئيلې شی چه ددې بې وقوفو خلقو نه دعربو مشرکان مراد دی.② بو قول دادې چه د يهودوعلماء ترې مراد دی.③ اوداهم وئيلې شوی دی چه منافقين ترې مراد دی.

**د قبلې بدليدو حکم راتلل:-** په صحيح بخاری کښې دحضرت براء ﷺ نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ شپاړس يا اوولس مياشتوپورې بيت المقدس طرفته مونځ اوکړو،خو پخپله د نبی کريم ﷺ دا خواهش وو چه د دوی قبله دې خانه کعبه وی.نو دحکم ملاويدونه پس نبی کريم ﷺ دې طرفته مخ کړو او

رومبي رکعت ني دمازيګر ادا کړو.چه کومو خلقو نبي کريم ﷺ سره مونځ ادا کړو په هغوی کښې يو کس جماعت سره تير شو هلته خلق په رکوع کښې وو.دې سړي اوونيل چه په الله ﷻ مې دې قسم وی چه ما نبي کريم ﷺ پسې مکې طرفته مونځ ادا کړو.په دې آوريدوسره هغه خلق هم په هغه حالت کښې کعبې طرفته واوړيدل.

**قوله تعالى:-** ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ﴾

**د تحويل قبلې نه وړاندې وفات شوو خلقو د مونځونوحکم:-** او داسې خلق چه دقبلې د بدليدونه مخکښې وفات شو او ډير شهيدان شو.خلقو ته معلوم نه وو چه دهغوی د مونځونو باره کښې څه اووائی ؟ نو په دې باره کښې دا آيت ﴿وَمَا كَانَ﴾ نازل شو.يعني الله ﷻ به ستاسودخلقوايمان (مونځونه)ضائع نه کړي.

**د ايت شان نزول:-** په صحيح مسلم کښې دا روايت بل شان دې (۱)،يو ځل نبي کريم ﷺ بيت المقدس طرفته مونځ کولو،او اکثر به ئې آسمان طرفته ته کتل او دالله تعالى د حکم انتظار به ئې کولو.تر دې پورې چه دا آيت نازل شو.﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ الخ﴾ اوکعبة قبله مقرر شوه.په دې موقع په مسلمانانوکښې څه خلقو اوونيل چه کاش مونږ ته دهغه خلقو حال معلوم وې چه د قبلې د بدليدو نه مخکښې وفات شوی دی.په دې باندې الله ﷻ دا آيت کريمه نازل کړو ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ﴾.(۲)

**داهل کتابو په تحويل کعبه اعتراض :-** په اهل کتابو کښې بعضې بې وقوفو په دې بدلون باندې اعتراض اوکړو.نوالله ﷻ آيت ﴿سَيَقُوْلُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰىهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِيْ كَانُوْا عَلَيْهَا﴾ نازل اوفرمائيلو .کله چه نبي کريم ﷺ مدينې ته هجرت اوکړو نو دبيت المقدس قبله جوړولو حکم شوې وو.پدې باندې يهود ډير خوشحاله شو.خو نبي کريم ﷺ قبله ابراهيمي خوښوله.نو کله چه دبدلون حکم راغلو نو يهودو د حسدپه وجه اعتراضونه اوکړل.په دې باندې الله ﷻ دا آيت نازل اوفرمائيلو چه مشرق او مغرب ټول دالله ﷻ دی الخ (۳)

**خلاصه دکلام :-** دې باره کښې نور ډير احاديث روايت شوی دی.خلاصه د کلام دا شوه چه نبي کريم ﷺ به په مکه مکرمه کښې د دوؤ رکنونو ترمينځه بيت المقدس طرفته مونځ ادا کولو.کله چه دوی مدينې طرف ته هجرت اوکړو نو ددې دواړو جمع کول ناممکن شو.(ځکه چه په مکه کښې به نبي کريم په داسې طريقه مونځ کولو چه خانه کعبه او بيت المقدس دواړه به ئې مخې ته راتلل اوچه کله مدينې منورې ته لاړلو نو هلته بيا دا صورت ممکن نه وو ځکه چه د مدينې نه به يا کعبې ته مخ کيدو او يا بيت المقدس ته دواړو ته په يو وخت کښې مخ کيدل ممکن نه وو، ددې وجې الله ﷻ بيت المقدس طرفته دموخ کولو حکم اوفرمائيلو.

**نبي کريم ﷺ ته بيت المقدس ته د مخ کولو حکم په کومه ذريعه اوشو؟**په دې باره کښې اختلاف دې چه نبي کريم ﷺ ته ددې خبرې حکم دقرآن پاک په ذريعهورکړې شو يا څه په بله ذريعه.① بعضې وائي چه دا د نبي کريم ﷺ اجتهادی امر وو.او مدينې ته راتلو نه پس نبي کريم ﷺ په دې باندې عمل کولو.او دالله تعالى نه د تبديلئ خواستګار وو.بالآخر دعا قبوله شوه او بيت المقدس طرفته ئې ړومبې دمازيګر مونځ اداکړو.په بعضو روايتونوکښې دی چه هغه د ماسپخين مونځ وو.

**په مسجد القبليتين کښې د تحويل قبلې حکم راتلل:-** حضرت ابوسعيد ابن المعلى وئيلې دی چه ما او زما رور چه کوم مونځ کعبې طرفته مخ کولو سره ادا کړو هغه د ماسپخين مونځ وو.دبعضو مفسرينو

---

(۱) صحيح بخاري : کتاب التفسير سورة البقرة باب : ۱۷ ح:۴۴۸۶،صحيح مسلم: ۵۲۵)-
(۲) ابن اسحاق بسنده)-
(۳) الطبري: ۱۳۸/۲)-

وغیره بیان دي چه نبی کریم ﷺ باندې چه کله دقبلې دبدلون ایت نازل شو نو په هغه وخت کښې نبی کریم ﷺ په مسجد بنوسلمه کښې دماسپخین مونځ کولو او دوه رکعته ئې ادا کړی وو.بیا باقی دوه رکعته نبی کریم ﷺ بیت الله شریف طرفته ته ادا کړل.هم په دې وجه ددې جماعت نوم مسجدالقبلتین یعنی د دوؤ قبلو والا جماعت دی.

**د تحویل قبلې حکم په کوم مونځ کښې راغلې وو:-** حضرت نویله بنت مسلم رضی الله عنها فرمائی چه مونږ دماسپخین په مونځ کښې وو چه مونږ ته خبر ملاؤ شو او مونږ په مونځ کښې واوریدلو.سړی د ښځو په ځائې شول او ښځې د سړو ځائې ته راغلې وې.خو قبا والو ته په دویمه ورځ دا خبر اورسیدو.

په بخاری او مسلم کښې دحضرت عبدالله بن عمر نه روایت دې چه خلقو د سحر په وخت کښې په مسجد قبا کښې مونځ کولو.چه ناڅاپه یو کس راغلو او وې وئیل چه نبی کریم ﷺ باندې دشپې د قرآن پاك حکم نازل شو او کعبې طرفته دمونځ ادا کولو حکم ورته اوشو.نومونږ خلقوهم دشام طرف نه مخ واړولو او کعبې طرفته مو اوګرځولو([1]).

**یواستدلال:-** د دې حدیث نه هم معلومه شوه چه دناسخ حکم لازم کیدل په هغه وخت کښې وی چه کله ددې علم اوشی.اګر دا حکم مخکښې نازل شوې وو خکه چه دې حضراتو ته د مازیګر او ماښام او ماسپخین د مونځ د دوباره ادا کولو حکم اونه شو.والله اعلم.

**دخلقو اعتراضونه او د هغې جواب:-** اوس باطل پرست کمزورې عقیدې والو خبرې شروع کړې چه دا څه وجه ده.کله دې ته قبله وائی او کله هغې ته.هغوی ته جواب ورکړې شو چه حکم او تصرف او امر دالله ﷻ دې.چه تاسو کوم طرفته مخ کړئی هغه طرفته هغه موجود دې.ښه والې څه په دې کښې رانغلو بلکه اصلیت خو دایمان مضبوطیا ده.چه دهر حکم په منلو باندې مجبوره وی.او په دې کښې ګویا مومنانو ته ادب خودلې شوې دې.چه ددوی کار صرف د حکم منل دی.چه کوم طرفته دوی ته دمتوجه کیدلو حکم اوشی نو هغه طرفته به دوی متوجه کیږی.د اطاعت معنی دهغه لونې ذات حکم منل دی. که په یو ورځ کښې سل ځله مونږ ته د اوریدو یا تاویدو حکم اوشی نو مونږ به خوشحالئ سره داسې کوؤ ،مونږ دهغه پاك ذات غلامان یو،مونږ دهغه ماتحت یو،دهغه فرمانبردار یو،اودهغه پاك ذات خادمان یو.چه کوم طرفته هغه مونږ ته حکم راکوی مونږ به هغه طرفته مخ اړوؤ.په امت محمدی ﷺ باندې هم دالله ﷻ دا کرم دې چه دوی ته د خلیل الرحمان قبلې طرفته د مخ کولو حکم ا وشو.چه هغه هم دهغه پاك ذات په نوم باندې جوړه شوې ده او کومې ته ټول فضیلتونه حاصل دی.

**دیهودو د مسلمانانو سره د حسد وجه:-** دمسند احمد په یو مرفوع حدیث کښې دی چه یهودیانو ز مونږ سره په دې خبره ډیر زیات حسد دې ①چه مونږ ته الله ﷻ د جمعې د ورځې توفیق راکړو او دوی ددې نه واوریدل ②او په دې باندې چه خمونږ قبله دا ده اوهغوی ددې نه ګمراه شو.③ او دوی ته غټ حسد خمونږ په آمین وئیلو دې چه کوم امام پسې وئیلې کیږی.([2])

**قوله تعالی:-** لِتَكُونُوا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ

**دامت محمدی فضیلت:-** بیانې اوفرمائیل چه تاسو لره دې ښکلې قبلې طرفته متوجه کول ددې وجې نه دی چه تاسو پخپله هم ښکلې امت یئ او په نورو امتونو باندې د قیامت په ورځ ګواه هم ئې خکه چه هغوی ټول ستاسو فضیلت منی.

---

[1] صحیح بخاری : کتاب الصلوة باب ماجاء فی القبلة...٤٠٣،صحیح مسلم: ٥٢٦،ترمذی: ٣٤١،نسائی: ٧٤٣-

[2] احمد: ١٣٥/١،)-

**د وسط وضاحت:-** د **(وَسَطًا)** معنی دلته بهتر او ښکلې ده لکه څنګه چه ونیلې کیږی چه قریش دنسب په اعتبار سره وسط عرب دی.او وئیلې شوی دی چه نبی کریم ﷺ په خپل قوم کښې وسط وو یعنی اشرف نسب والا وو.او صلوة وسطی یعنی افضل ترین مونځ چه دمازیګر دې لکه څنګه چه په صحیح حدیث سره ثابت دی.او په ټولو امتونوکښې دا امت افضل او اعلی دې ځکه چه په شریعت کښې هم کامل دی او دوی ته لار هم بالکل صحیح ملاؤ شوه او دین ورته هم ښه واضحه ملاؤ شو.لکه څنګه چه فرمان دې چه **(هُوَ اجْتَبٰىكُمْ الخ)** الله ﷻ تاسو منتخب کړنی اوستاسو په دین کښې هیڅ تنګی نشته دې.ستاسودپلار دحضرت ابراهیم ؑ په دین باندې تاسو یئ اوهم هغه ستاسو نوم مسلمانان اینبودی دی. او ددې نه مخکښې هم او په دې کښې هم چه نبی کریم ﷺ په تاسوباندې ګواه وی.

**د امت محمدی د ګواهئ کیفیت:-** په مسند احمد کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمانی چه حضرت نوح ؑ به دقیامت په ورځ رابللو شی اودهغوی نه به تپوس اوشی چه آیاتازما پیغام خلقوته رسولې وو . حضرت نوح ؑ به اووائی چه آو اے الله ﷻ مارسولې وو.هغوی به صفا انکاراوکړی او وائی به چه مونږ ته هیڅوك ویرونکې نه وو راغلې.حضرت نوح ؑ ته به اووئیلې شی چه ستا امت انکار کوی ته ګواه پیش کړه.حضرت نوح ؑ به اووائی چه آو نبی کریم ﷺ امت زما ګواهان دی.هم دا مطلب ددې **(وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا)** دې.

د **(وسط)** معنی عدل ده.اوس به تاسوراوبلی اوتاسوبه ګواهی ورکونی(بخاری،ترمذی،نسائی ابن ماجه (1)

**دقیامت په ورځ د امت محمدی ګواهی:-** دمسند احمد په یو بل روایت کښې دی چه دقیامت په ورځ به نبیان علیهم السلام راشی او د هغوی سره به دهغوی دامت صرف دوه کسان وی اوددې نه زیات هم. د هغوی امت به راوبللې شی او هغوی ته به اووئیلې شی چه آیا دې نبی ؑ تاسو ته تبلیغ کړې وو؟.هغوی به انکار کوی.نبی به نې راوغوښتلې شی او تپوس به ترې اوکړې شی چه تاسو دوی ته تبلیغ کړې وو ،هغوی به اووائی چه آو.اوبه وئیلې شی چه ستا څوك ګواه شته دې،هغه به اووائی چه حضرت محمد ﷺ اود حضرت محمد ﷺ امت.نو حضرت محمد ﷺ او د حضرت محمد ﷺ امت به راوغوښتلې شی اود هغوی نه به دا سوال اوکړې شی چه آیا دې پیغمبر ؑ تبلیغ کړې وو؟ دوی به اووائی چه آو.دوی ته به اووئیلې شی چه تاسو ته څنګه معلومه ده ؟.دوی به جواب ورکړی چه مونږ ته خمونږنبی ؑ راغلو اوراته نې ﷺ خبر راکړې وو.چه انبیاء علیهم السلام تاسو پیغام خپلوخپلو امتونو ته رسولې دې.هم دا مطلب دې دالله ﷻ د فرمان **( وَكَذٰلِكَ )**.(2)

**د امت محمدی ګواهی:-** دمسنداحمد په یو بل روایت کښې د **(وسط)** معنی **(عدل)** راغلې ده (3)،ابن مردویه اوابن ابی حاتم کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څه او زما امت به دقیامت په ورځ په اوچته غونډئی باندې یو.په ټول مخلوق کښې به ښکاره یو او ټول به راته ښکاری.په هغه ورځ به ټوله دنیا تمنا کوی چه کاش هغوی دې په خمونږ کښې وې.چه دکوم کوم نبی قوم هغه لره په دروغه ګنړلې وو مونږ به د الله ﷻ په لونې دربار کښې ګواهی ورکوؤ چه دې ټولو نبیانو علیهم السلام د رسالت حق ادا کړې وو.

**څه واجب شو:** په مستدرك حاکم کښې یو حدیث دې چه دبنی سلمه د قبیلې دیوسړی په جنازه کښې مونږنبی کریم ﷺ سره وو.خلقو اووئیل چه دادیرنیك متقی اوپارسامسلمان وو.او نور نې هم ډیر

---

1) صحیح بخاری :کتاب التفسیر.سورة البقره باب : ۱۳،ح: ٤٤٨٧،وانظر: ۳۳۳۹،ترمذی: ۲۹۶۱،ابن ماجة: ٤٢٨٤)-

2) صحیح احمد: ۵۸/۳،ابن ماجة: کتاب الزهد باب صفة امة محمد ﷺ : ٤٢٨٤،صحیح بخاری: ۳۳۳۹ بلفظ آخر)-

3) احمد: ۹/۳،ترمذی: کتاب التفسیر باب ومن سورة البقره: ۲۹۶۱،وصحیح بخاری: ۷۳٤۹)-

تعریفونه اوکړل.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاسو دا څنګه وائې ؟ دې سړی اوونیل چه یارسول الله ﷺ د پټ علم خو الله ﷻ ته دې لیکن په ظاهره ددې سړی دا حالت وو.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دده دپاره واجب شو.بیا دبنو حارثه دیو سړی په جنازه کښې مونږ وو.خلقو اوونیل چه یارسول الله ﷺ دا ډیر خراب سړې وو.ډیر ژبه ور وو.اوبد اخلاقه وو.نبی کریم ﷺ چه ددې سړی خرابئ واوریدلې نو وې فرمائیل چه تاسو دا څنګه وائې ؟.دې سړی هم دا اوونیل.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واجب شو.محمد بن کعب رحمه الله چه دا حدیث واوریدو نو وې فرمائیل چه رسول الله ﷺ رښتونې دې.اوګورئ قرآن پاک هم فرمائی چه ﴿وَكَذَٰلِكَ الخ﴾ (١).

**د مړده د نیکئ ګواهی ورکولو نتیجه**:په مسند احمد کښې ابوالاسودفرمائی چه څه مدینې منورې ته راغلم نودلته بیماری وه.خلق زیات مړه کیدل.څه حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه سره ناست ووم چه دې کښې یو جنازه راووتله.اوخلقو دمرحوم نیکئ شمیرل شروع کړل.دوی اوونیل چه دده دپاره واجب شو ،په دې کښې دوئمه جنازه راووتله خلقوددې سړی بدئی شمیرل شروع کړل.دوی اوفرمائیل چه دده دپاره واجب شو.ما اوونیل چه یاامیرالمومنین رضی الله عنه څه واجب شو ؟.دوی اوفرمائیل چه ما هغه اوونیل چه څه نبی کریم ﷺ فرمائیلی ووچه د کوم مسلمان د نیکئ شهادت څلورو کسانو ورکړو نو الله ﷻ به دې جنت ته داخل کړی.مونږ اوونیل چه یارسول الله ﷺ که درې سړی ورکړی؟.نونبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه درې هم.مونږ اوونیل چه دوه سړی وی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دوه هم.مونږ دیو باره کښې سوال اونکړو (٢).

**ښه او بد پیژندل**:- ابن مردویه کښې یو حدیث کښې دې چه نزدې ده چه تاسو به ښه اوبد لره اوپیژنئ. خلقو اوونیل چه یارسول الله څنګه ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په ښه تعریف او خراب شهادت سره، تاسو په زمکه باندې دالله ﷻ ګواه یئ (٣)

**قوله تعالی**:- ﴿وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يَتَّبِعُ الرَّسُولَ مِمَّن يَنقَلِبُ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ﴾

**د قبلې بدلون امتحان دپاره وو**:: بیا فرمائی چه رومبئ قبله صرف د امتحان په طور وه.یعنی مخکښې بیت المقدس قبله مقرر شوه او بیا کعبة الله طرف ته د مخ اړولو حکم صرف ددې وجې وو چه معلومه شی چه رښتونې او تابعدار څوک دې ؟ او چرته چه ته توجو اوکړې نو هلته توجو کولو والا څوک دی؟او څوک دې چه شا کوی او مرتدکیږی.دا کار په حقیقت کښې ډیر ګران دې لیکن چه په کومو زړونوکښې ایمان اویقین دې او چه کوم کسان د نبی کریم ﷺ رښتونې پیروکار دی چه کومو ته معلومه ده چه نبی کریم ﷺ څه فرمائی نودارښتیا دی.اوچه دکومو کسانو عقیده ده چه څه الله ﷻ غواړی نوهغه کوی، خپلو بندګانو ته چه څه غواړی نوهغه حکم ورکوی او چه څوک ختمول غواړی نو هغوی ختموی،او چه څوک باقی پاتې کول غواړی نو هغوی پاتې کوی،د هغه پاک ذات په هر یو کار کښې حکمت دې او په هغوی باندې دده حکم منل هم مشکل نه دی.

اودا خوده چه بیمارو زړونووالو ته چه کوم حکم راغلو نو ددوی سره یو نوې درد پیدا شو.په قرآن پاک کښې یو بل ځائې کښې دې چه ﴿وَإِذَا مَا أُنزِلَتْ سُورَةٌ﴾ کله چه څه سورت نازلیږی نو ددې باره کښې بعضې تپوس کوی چه دې سره دچا ایمان زیات شو؟.اوبل ځائې کښې دی چه﴿قُلْ هُوَ لِلَّذِينَ آمَنُوا هُدًى وَشِفَاءٌ ۖ وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ فِي آذَانِهِمْ وَقْرٌ وَهُوَ عَلَيْهِمْ عَمًى﴾یعنی دایمان والو دپاره دا هدایت اوشفاء ده او بې ایمانه خلقو د

---

(١) حاکم: ٢٦٨/٢،)-

(٢) صحیح بخاری : کتاب الجنائز باب ثناء الناس علی المیت: ١٣٦٨،ترمذی: ١٠٥٩،نسائی: ١٩٣٦،احمد: ٤٥٢١)-

(٣) ابن ماجة کتاب الزهد باب الثناء الحسن: ٤٢٢١،وسنده حسن وصححه ابن حبان : ٢٠٥٩،والحاکم: ١٢٠/١،والذهبی)-

غوږونو دپاره بوج دي او د سترګو پټوالي دي.او په بل ځائي کښې فرمائي چه ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ وَلَا يَزِيْدُ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا خَسَارًا﴾ يعنې خمونږ نازل شوي قران پاك د مومنانو دپاره سراسر شفاء او رحمت دي.او د ظالمان په تاوان کښې زياتوی.

**د صحابه کرامو کاميابی:-** په دې واقعه کښې ټول بزرګان صحابه کرام ثابت قدم وو،اول سبقت کوونکی مهاجر ين اوانصار دواړو قبلو طرفته مونځ کوونکی وو.په پورته حديث کښې بيان شو چه هغوی څنګه مونځ کولواودې خبرآوريدوسره واوړيدل.(۱).په صحيح مسلم کښې روايت دې چه د رکوع په حالت کښې وو،پدې کښې کعبې طرفته ته واوړيدل.چه ددې نه ددوی کمال اطاعت او اعلی درجه تابعداری ثابته شوه.

قوله تعالی:-وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ ط

**الله بيت المقدس ته شوی مونځونه نه ضائع کوی:-** بياارشاد دې چه الله ﷻ به ستاسو ايمان ضائع نه کړی.يعنې تاسو چه کوم مونځونه بيت المقدس طرفته کړی دی هغه به نه ضائع کيږی.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه د دوی اعلی ايمانداری ثابت شوه.دوی ته به دواړو قبلو طرفته د مونځ کولو ثواب ملاويږی.دا مطلب هم بيان شوې دې چه الله ﷻ به د نبی کريم ﷺ اود دوی ﷺ د ملګرو اوړيدل ضائع نه کړی،

**دالله د مهربانۍ مثال:-** بيا ارشاد دې چه الله ﷻ روف رحيم دې (۲).په صحيح حديث کښې دی چه نبی کريم ﷺ يو قيدی ښخه اوليده چه ددې نه ددې بچې ورک شوې وو.اوهغې خپل بچې دليونو په شان تلاش کولو.او ترکومې پورې چه ورته هغه ملاؤ شوې نه وو نو په قيدکښې چې به دې کوم بچې ليدو هغه به نې راغاړې ويستلو.تر دې پورې چه ددې بچې پيدا شو.په خوشحالۍ خوشحالۍ دې اوچت کړو او سينې سره نې اولګولو.اوده ته نې يې ورکړل.په دې کتلو سره نبی کريم ﷺ صحابه کرام ته اوفرمائيل چه اووائې چه آيا دا به دا بچې اور ته واچوی.خلقو اووئيل چه يارسول الله ﷺ بالکل نه.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل په الله ﷻ قسم چه څومره دا مور په بچی باندې مهربانه ده ددې نه زيات الله ﷻ په خپلو بندګانو باندې روف و رحيم دې.

| | قَدْ | نَرٰى | تَقَلُّبَ وَجْهِكَ |
|---|---|---|---|
| | په تحقيق سره | وينو مونږ | بار بار ګرزولو مخ ستا |
| | | مونږ وينو چې ته (د وحی د راتلو په انتظار) بيا بيا آسمان | |

| فِي السَّمَآءِ ۚ | فَلَنُوَلِّيَنَّكَ | قِبْلَةً | تَرْضٰىهَا ص | فَوَلِّ |
|---|---|---|---|---|
| طرف د آسمان ته | نو خامخا به مونږ اوګرز وؤ تا | هغې قبلې ته | چې ته خوښوې هغه | نو اوګرزوه |
| طرف ته ګوري | (مونږ ستاخواهش پوره کوو)هغې قبلې ته دې ګرزؤ چې کومه ستاخوښه ده | | | نو خپل مخ |

| وَجْهَكَ | شَطْرَ | الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ط | وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ | فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| مخ خپل | طرف | د مسجد حرام ته | اوس چې په کوم ځائې کښې يئ تاسو | نو ګرزوئ مخونه خپل |
| مسجد حرام (کعبې) طرفته اوګرځوه | | | او (ددې نه پس) هرځائې کښې چې يئ نو مسجد حرام ته مخ کوئ | |

---

(۱) صحيح مسلم كتاب المساجد: باب تحويل القبلة: ۵۲۷)-

(۲) صحيح بخاری : كتاب الادب باب رحمة الولد: وتقبيله ومعانقته : ۵۹۹۹،صحيح مسلم: ۲۷۵۴)-

| شَطْرَهٗ | وَاِنَّ | الَّذِيْنَ | اُوْتُوا الْكِتٰبَ | لَيَعْلَمُوْنَ | اَنَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| طرف دهغې نه | او بیشکه | هغه کسان | چې ورکړې شوې دی ورته کتاب | خامخا پوهیږی | چې دا حکم |

اودا خلق چې دوی ته کتاب ورکړې شوې دې ( یه دې ډیر پوهیږی چې (دقبلې بدلولو) دا حکم

| الْحَقُّ | مِنْ رَّبِّهِمْ | وَمَا | اللّٰهُ | بِغَافِلٍ | عَمَّا | يَعْمَلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حق دې | دطرفه درب دهغوی نه | اونه دې | الله | ناخبره | دهغه کارونونه | چې هغوی ئې کوی |

دالله دطرفنه بالکل حق دې او کوم (دفساد) کارونه چې دوی کوی الله دهغې نه غافل نه دې

**قوله تعالى:- قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ**

**ابراهیمی قبله د رسول الله ﷺ خوښه وه**:: دحضرت ابن عباس رضی الله عنه بیان دې چه په قرآن پاك کښې دټولو نه اوله نسخه حکم دقبلې دې.نبی اکرم ﷺ مدینې منورې طرفته هجرت اوکړو اوددې ځائې اوسیدونکی یهودیان وو.الله ﷻ نبی اکرم ﷺ ته بیت المقدس طرفته د مونځ کولو حکم اوکړو.یهودیان په دې ډیر خوشحاله شو.نبی اکرم ﷺ ډیرې میاشتې دې طرفته مونځ کولو.خو پخپله د نبی اکرم ﷺ خوښه قبله ابراهیمی وه.نبی اکرم ﷺ به د الله ﷻ نه دعا کوله او نظرونه به ئې آسمان طرفته اوچتول.بالاخر آیت ﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ ۚ نه تر وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ﴾ نازل شو.په دې باندې یهودیانو اووئیل چه ددې قبلې نه ولې واوړیدو ؟ نو ددې په جواب کښې اووئیلې شو چه مشرق او مغرب دالله ﷻ دی او وې فرمائیل چه کوم طرفته ستاسومخ وی نوهغه طرفته ته دالله ﷻ مخ (ذات) دې اووې فرمائیل چه رومبې قبله د امتحان په طوروه([1])اوپه یو بل روایت کښې دی چه نبی اکرم ﷺ دمونځ نه پس به ئې خپل سرمبارك اسمان طرف ته اوچت کړونو پدې باندې داآیت نازل شواوحکم اوشوچه مسجدحرام طرفته ته کعبه کښې میزاب طرفته ته مخ کړه.جبریل علیه السلام امامت اوکړو.عبدالله بن عمر رضی الله عنه مسجد حرام کښې د میزاب مخکښې ناست وو اوداآیت مبارك ئې تلاوت اوفرمائیل چه میزاب کعبه طرفته دمخ کولو حکم دې ([2])

**د قبلې په حد کښې د امامانو مذاهب**:- د امام شافعی رحمه الله هم یوقول دې چه عین کعبې طرفته ته توجه کول مقصود دی.او دویم قول د دوی دا دې چه مخ کعبې طرفته کول کافی دی.او هم دا مذهب داکثرد ائمه کرامودې.حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه مراد دې طرفته مخ کول دی د ابوالعالیه رحمه الله،مجاهد رحمه الله، عکرمه رحمه الله،سعید بن جبیر رحمه الله،قتاده رحمه الله،ربیع بن انس رحمه الله وغیره هم دا قول دې ([3])،یو حدیث کښې دا هم دی چه د مشرق اومغرب په مینځ کښې قبله ده.([4]) په ابن جریج کښې حدیث دې چه نبی اکرم ﷺ فرمائی بیت الله قبله ده.دمسجد حرام والو او مسجد قبله ده اهل حرم والو لره او حرم قبله ده ټولې زمکې والو دپاره که هغوی په مشرق کښې وی اوکه هغوی په مغرب کښې وی د ټولو امتونو هم دا قبله ده.([5])

## د قبلې حدود کوم دی؟

**مسلک حنفی**:قبلې ته مخ کول هم دمونځ په شرطونو کښې یوشرط دې.دلیل دالله ﷻ ارشاد دې﴿فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ﴾وجه د استدلال داده.چه الله ﷻفرمائیلی دی.﴿فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰىهَا ﴾مونږ به تا ،ستا خوښې

---

[1] ابن ابی حاتم: ۱/۱۰۳)-
[2] حاکم: ۲/۲۶۹)-
[3] ابن ابی حاتم : ۱ / ۱۰۸)-
[4] ترمذی : کتاب الصلوة : باب ماجاء ان بین المشرق والمغرب قبلة: ۳۴۴،وهو صحیح ابن ماجة: ۱۰۱۱،نسائی: ۲۲٤٥)-
[5] قرطبی: ۲/۱۵۹،البیهقی: ۲/۹،)-

قبلې طرف ته واړوو. او بيا ئے مسجد حرام ته د مخ اړولو حکم اوکړلو.
بيا دمانځه دوه صورتونه دي. يا خو به دا په مکه مکرمه کښې ادا کوي. اويا به د مکې نه بهر په بل ځائې کښې ادا کوي. نو په اول صورت کښې عين کعبې ته مخ کول ضروري دي. ځکه چه نبي ﷺ به په مسجد حرام کښې مونځ کولو. نو عين کعبې ته به ئې مخ کولو. اوهم دا معمول د صحابه کرامو ﷺ او تابعينو ﷺ هم پاتې شوې دے. لکه چه په دے باندې اجماع ده. او په دويم صورت کښې قبلې طرف ته مخ کول فرض دي.
دليل ئې دا دې. چه نبي ﷺ او مسلمانان په مدينه منوره کښې وو. نو الله ﷻ هغوی ته مسجد حرام طرف ته د مخ کولو حکم کړې وو. کعبې طرف ته دمخ کولوحکم ئې نه وو کړې. نومعلومه شوه. چه کوم سړې د مکې نه بهر وي. دهغه دپاره عين کعبې ته مخ کول فرض نه دي. ځکه چه الله ﷻ بندګان د هغوی د طاقت مطابق مکلف کوي. د الله ﷻ ارشاد دے﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾ (تسهيل الهدايه (۱۱۰۸۳)-
په ابونعيم کښې دبراء نه روايت دې چه نبي اکرم ﷺ شپاړس اوولس مياشتې بيت المقدس طرفته مونځ اوکړوځو نبي اکرم ﷺ ته خوښه دا امر ووچې بيت الله شريف ته مونځ اوکړي. نو دالله ﷻ په حکم نبي اکرم ﷺ بيت الله شريف ته متوجه شو او د مازيګر مونځ ئې ادا کړو. بيا په مونځګذارو کښې يو سړې مسجد والو ته ورغلو اوهغوی په رکوع کښې وو، او وې وئيل چه زه حلفيه ګواهي کوم چه ما نبي اکرم ﷺ سره مکې طرفته مونځ اوکړو. په دې آوريدو سره هغوی چه هغوی په کوم حالت کښې وو هم په هغه حالت کښې بيت الله شريف طرفته اوګرزيدل.[1] عبدالرزاق کښې هم دا روايت څه قدر کمې زياتې سره مروی دې.[2]
نسائی کښې دحضرت ابوسعيد معلی نه روايت دې چه مونږ د صبا په وخت کښې مسجد نبوی ﷺ ته د نبي اکرم ﷺ په زمانه کښې تلو. او هلته به مو څه نفلونه کول. يو ورځ مونږ لاړو نو اومو کتل چه نبي اکرم ﷺ په منبر باندې ناست دی. ما اووئيل چه نن څه نوې خبره ضرور شوې ده. څه کېناستم نو نبي اکرم ﷺ دا آيت مبارك اولوستلوچه﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ ۚ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰىهَا﴾. ما خپل ملګری ته اووئيل چه رازه چه د نبي کريم ﷺ د فارغيدو نه پس ددې نوی حکم تعميل اوکړو. او اول فرمانبردار جوړشو. نومونږ يو طرفته لاړو. اودټولو نه مو مخکښې بيت الله شريف طرفته مونځ ادا کړو. بيا نبي اکرم ﷺ هم دمنبر نه راکوز شول او دې قبلې طرفته ئې اول مونځ دماسپخين ادا کړو.[3]
**رومبې مونځ بيت الله طرف ته ادا کول:-** په ابن مردويه کښې د ابن عمر ﷺ نه روايت دې چه رومبې مونځ چه کوم نبي اکرم ﷺ کعبې مبارکې طرفته اداکړو هغه دماسپخين مونځ وو. او هم دا مونځ صلوة وسطى دې. ليکن مشهور دی چه رومبې مونځ ئې کعبې طرفته د مازيګر ادا کړې وو او هم په دې وجه قبا والو ته په دويمه ورځ اطلاع اورسيده.
په ابن مردويه کښې په روايت د نويله بنت مسلم ﷺ موجود دی چه مونږ په مسجد بنوحارثه کښې بيت المقدس طرف ته دماسپخين يا مازيګر مونځ کولو او دوه رکعته مو ادا کړی ووچه په دې کښې څوك راغلل او دقبلې دبدلون خبر ئې راکړو. نو مونږ په مونځ کښې بيت الله شريف طرفته شو. اوباقی مونځ مودې طرفته ادا کړو. په دې مخ اړولوکښې سړی د ښځو او ښځې د سړيه ځائې کښې شوې. نبي اکرم ﷺ ته چه دا خبر اورسيدو نو خوشحاله شو او وې فرمائيل چه دوی ايمان بالغيب والا دی.[4]

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير، سورة البقرة باب: ۱۲، ح: ۴۴۸۶)-
[2] عبدالرزاق فی التفسير: ۱۱۲، صحيح بخاری: ۳۹۹)-
[3] السنن الکبری للنسائی: ۱۱۰۰۴، مجمع الزوائد: ۱۲/۲)-
[4] طبرانی: ۵۳۰/۲۴)-

**د رکوع په حالت کښې د قبلې بدلیدو خبر ملاویدل:**- په ابن مردویه کښې دعماره بن اوس ﷺ نه روایت دې چه د رکوع په حالت کښې مونږ ته اطلاع ملاؤ شوه او مونږ ټول ښځې سړی اوبچی هم په دې حالت کښې قبلې طرفته واوړیدل.[1]

**قوله تعالى:- وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ**

**دمسافر، او دمیدان جنګ دسپاهي مونځ:**: بیا ارشاد کیږی چه تاسو په کوم ځائې کښې هم یئ په مشرق یا مغرب کښې نو مخ قبلې طرفته کوئی. البته په سفر کښې په سورلئ باندې نفل کولو والا چه کوم طرفته مخ کوی نو هغه طرفته دې نفل اداکړی. دده دزړه توجه دې کعبې طرفته وی. همدارنګه په میدان جنګ کښې د مونځ کولووالا چه څنګه او کوم طرفته وی مونځ دې ادا کړی او داشان هغه سړی چه هغه ته د قبلې معلومات نه وی نوهغه دې په اندازې سره چه کوم طرفته د هغه غالب ګمان وی نومونځ دې اداکړی بیاکه دې خلقوقبلې طرفته مونځ نه وی کړې نوهم ددې خلقو مونځ اداشو. اودالله ﷻ په نیزدا معاف دې.

## د ویریدونکی دپاره د استقبال حکم

**مسلک حنفي:**- مسئله دا ده. که یوکس د ویرے د وجې قبلې ته په مخ کولو قادر نه وی. نو کوم طرف ته چه قادر وی. هغه طرف ته دے مخ کوی. ویره که مالي وی یا جاني وی. که د دشمن وی اوکه د ځناور وی. اوکه د ډاکو وی. مثلاً چه یو کس سره دا ویره وی. که زه اوخوزیدم. او قبلې ته مے مخ کړلو. نو دشمن ته به پته اولګی. نو دهغه دپاره په ناسته یا په ملاسته چه څنګه ممکنه وی. هغې طرف ته مخ کول جائزدی. مونځ دے اوکړی.

دغه شان دا حکم د هغه بیمارهم دې. چه قبلې طرف ته په اوړیدو باندې قادر نه وی. او داسې څوك هم نه وی. چه دے قبلې ته واړوی. دغه شان که یو کس په کشتئ کښې ناست وی. اوکشتئ ماته شوه. اوهغه په یوه تخته پاتې شو. اوهغه سره ویره وی. که قبلې ته مخ کوی. نو ډوبیږی. نودده دپاره جائز دی. چه کوم طرف ته ممکن وی. هغه طرف ته دے مونځ کوی.

دغه شان که په یوکس باندې د قبلې طرف مشتبه شی. او ورسره داسې څوك هم نه وی. چه هغه د قبلې دجهت نه خبر وی. اودهغه نه تپوس اوکړی. نوددے سړی دپاره تحری (اجتهاد) کول پکار (واجب) دی. نوچه کوم طرف ته ئې غالب ګمان راغلو. هغه طرف ته دے مونځ اوکړی.

که یو کس د قبلې خودونکې موجود وی. نودهغه نه دے تپوس اوکړی. په دے صورت کښې به تحری جائز نه وی.

اول خو دا ضروری ده. چه د چانه تپوس اوکړی. اودا تپوس کول څکه ضروری دی.) چه تپوس کول د تحری نه قوی دی. نو چه ترکومے پورې تپوس کول ممکن وی. ترهغه وخته پورې تحری کول ناجائز ده. او که خبرورکونکې څوك موجود نه وی. اوتپوس کول د تحری نه اوچت دی. نو تر څو پورې چه تپوس کول ممکن وی. نوترهغه وخته پورې تحری کول جائزنه ده.

که یوکس باندې د قبلې اشتباه راغلې وه. او هغه د قبلې د طرف معلوملو دپاره تحری اوکړه. اومونځ ئې اوکړلو. د مانځه نه پس ورته معلومه شوه. چه د قبلې طرف ترے خطا شوې وو. یعنی د قبلې نه علاوه بل طرف ته ئې مونځ کړې وو. (تسهیل الهدایه ۱/۲۸۲).

**دمونځ په حالت کښې دې نظر چرته لری؟**: مالکیانو ددې آیت نه استدلال کړې دې چه مونځګذار دې په حالت د مونځ کښې خپل نظرونه خپلې مخې ته ساتی د سجدې په ځائې نه لکه څنګه چه د حضرت

---

[1] مسند ابی یعلی: ۱۵۰۹، مجمع الزوائد: ۱۳/۲).

امام شافعي ﷫ اوحضرت امام احمد ﷫ اوحضرت امام ابوحنيفه رحمة الله عليه مذهب دې.خکه چه دآيت لفظونه دادی چه مخ مسجد حرام طرفته کوني،اوچې د سجدې په ځاني نظرونه ساتل غواړني نو په دې کښې لږ شان ټيټيدل دی اوداتکلف د کمال خشوع خلاف دې.دبعض مالکيانو دا قول هم دې چه دقيام په حالت کښې دې خپلې سينې طرفته ته نظرونه ساتي.

قاضي شريح واني چه د قيام په وخت کښې دې سجدې په ځاني نظرونه ساتي.لکه څنګه چه د جمهورو علماء کرامو قول دې،خکه چه دا پوره پوره خشوع اوخضوع ده،او يو حديث مبارك کښې هم دا مضمون راغلي دې.او د رکوع په حالت کښې دې د خپلو قدمونو په ځاني خپل نظرساتي،اود سجدې په حالت کښې دې پوزې ته نظر ساتي او دالتحيات په حالت کښې دې خپلې غيږې طرفته.

**په مانځه کښې د نظرساتلو مقام**

**مسلک حنفي:-** د قيام په حالت کښے د سجدے ځائے ته کتل ددے دپاره مستحب دی.چه نظر په بل څه نه لږی. نوپه دل جمعي سره به مونځ کوی.اوکه د سجدے ځائے ته نه ګوری.نودا احتمال شته.چه ګير چاپيره څيزونو کښے مشغول شی.او دمانځه خضوع ترے فوت شی.په متن کښے ئے ددے استثناء نه ده کړے.که خانه کعبے ته مخامخ وی.نودسجدے ځائے ته به نه ګوری.بلکه هغے ته به ګوری.ددے نه دا معلومه شوه.که خانه کعبے ته مخامخ وی.هم به په قيام کښے د سجدے ځائے ته ګوری.خکه چه د سجدے ځائے ته کتل د خضوع دپاره دی.چه يوخوا بل خوا ته ئے نظر نه لګی.اودا علت خانه کعبے ته په کتلوکښے هم شته.چه خانه کعبے ته ګوری.نوګيرچاپيره څيزونه به ورته ښکاری.او توجه به ئے هغه طرف ته خی. په رکوع کښے قدمونو ته او په سجده کښے د پوزے سر ته اوپه قعده کښے غيږے ته او په سلام کښے اوږو ته په کتلوکښے هم دا حکمت دے.چه دده توجه يو ځائے ته وی.اوپه نورو څيزونوئے نظر نه لګی.(مفتاح الفلاح شرح نور الايضاح فصل آداب الصلاة تاليف شاه فيصل)-

**قوله تعالى:-** وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ؕ

**د تحويل قبلې يهوديانو ته علم وو:-** بيا ارشاد کيږی چه يهوديان څه خبرې جوړول غواړی نو هغه دې جوړې کړی ليکن ددوی په زړونوکښې دا خبره ده چه د قبلې تبديلي دالله ﷻ د طرفنه ده اوبرحق ده. خکه چه دا پخپله ددوی په کتابونوکښې موجود دی.ليکن دا خلق دکفر اوعناد اوتکبر اوحسد په وجه دا پټوی.مګر الله ﷻ ددوی د کړو وړو نه بې خبره نه دې.

| وَلَئِنْ اَتَيْتَ | الَّذِيْنَ | اُوْتُوا الْكِتٰبَ | بِكُلِّ اٰيَةٍ | مَّا تَبِعُوْا |
|---|---|---|---|---|
| اوکه چرې راوړې ته | هغه کسانوته | اچې ورکړې شوې دې ورته کتاب | هر قسم نښه | اوبه ئے نه کړی تابعداری |
| اوکه دې اهل کتابو ته هرخومره دليلونه پيش کړې | اخودوی (د دې هرڅه باوجود) | | | ستا د قبلې تابعداری |

| قِبْلَتَكَ ۚ | وَمَآ اَنْتَ | بِتَابِعٍ | قِبْلَتَهُمْ ۚ | وَمَا بَعْضُهُمْ | بِتَابِعٍ | قِبْلَةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دقبلې ستا | اونه ته | تابعداری کونکې ئې | دقبلې دهغوئ | اونه بعضې دهغوئ | تابعداری کونکی دی | دقبلې |
| تابعداری نه کوی | اونه ته ددوی قبله قبلولې شې | اوپه دوئ کښې هم يوه ډله دبلې ډلې قبلې ته نه مخ کوی | | | | |

| بَعْضٍ ؕ | وَلَئِنِ | اتَّبَعْتَ | اَهْوَآءَهُمْ | مِّنْۢ بَعْدِ | مَا جَآءَكَ | مِنَ الْعِلْمِ ۙ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دبعضو | اوکه چرې | تابعداری اوکړه تا | دخواهشاتو دهغوئ | اروستودهغې نه | اچې راغلې دې تاته | دعلم نه |
| اوکه چرې ته ددې واضح علم (وحی) راتلونه پس هم ددوی په خواهشاتو پسې لاړې (اود دوی قبلې ته مه کوې) | | | | | | |

| اِنَّكَ | اِذًا | لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۘ |
|---|---|---|
| نو بیشکه چې ته به | په دغه وخت کښې | شې دظالمانو نه |
| نو په دغه وخت کښې به ته په ظالمانو کښې شمیر شې | | |

**قوله تعالی:- وَلَئِنۡ اَتَيۡتَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ بِكُلِّ اٰيَةٍ مَّا تَبِعُوۡا قِبۡلَتَكَ ۚ**

**حق پرینښودل او باطل پسې تلل ظلم دې:-** دیهودیانو دکفر، عناد اودمخالفت اودسرکشۍ بیان کیږي چه ددې باوجود چه دوی ته دالله ﷻ درسول ﷺ علم دې لیکن بیا هم دا حالت دې چه د هر قسمه دلیلونو پیش کیدونه پس هم حق طرفته نه رازي لکه یو بل ځائې کښې الله ﷻ فرمائي چه ﴿ اِنَّ الَّذِيۡنَ حَقَّتۡ عَلَيۡهِمۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ ۙ وَلَوۡ جَآءَتۡهُمۡ كُلُّ اٰيَةٍ حَتّٰى يَرَوُا الۡعَذَابَ الۡاَلِيۡمَ ﴾ یعني چه په کومو خلقو ستا درب خبره ثابته شوې ده هغوی ایمان نه راوړي. که دوی ته ټول دلائل هم راشي تردې چه دردناك عذاب اووینی

**قوله تعالی:- وَمَاۤ اَنۡتَ بِتَابِعٍ قِبۡلَتَهُمۡ ۚ**

**د نبی کریم ﷺ د هودیانو د تابعدارۍ نه کولو خبر:-** بیا دخپل نبی ﷺ استقامت بیان فرمائي چه څنګه دوی په ناحقه باندې ولاړ دی او هغه ځائې نه اخوا کیدل نه غواړي نودوی دې هم په دې پوهه شي چه څمونږ نبی داسې نه دې چه ددوی په خبرو کښې به راشي، او ددوی په لار به روان شي، هغه څمونږ تابع دې او څمونږ په مرضۍ عامل دې، هغه به ددوی د باطلو خواهشونو تابعداری بالکل اونه کړي. او نه دده نه دا کیدیشي چه څمونږه د حکم راتلو نه پس به ددوی قبلې طرفته متوجه شي. بیا خپل نبی ﷺ ته خطاب کوی او په اصل کښې عالمانو ته زورنه ورکوی چه د حق واضح کیدو نه پس چا پسې تګ او دخپل یا دنورو خواهش پوره کول سراسر ظلم دې

| اَلَّذِيۡنَ | اٰتَيۡنٰهُمُ الۡكِتٰبَ |
|---|---|
| هغه کسان | چې ورکړې دې مونږ هغوی ته کتاب |
| چاته | چې مونږ کتاب ورکړې دې |

| يَعۡرِفُوۡنَهٗ | كَمَا | يَعۡرِفُوۡنَ | اَبۡنَآءَهُمۡ ؕ | وَاِنَّ | فَرِيۡقًا مِّنۡهُمۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغوی پیژني قبله | لکه څنګه چې | پیژني هغوی | ځامن خپل | او بیشکه | یوه ډله ) دهغوی نه |
| هغوی دا (قبله) داسې پیژني لکه څنګه چې خپل ځامن په ښه شان پیژني اخو په دوی کښې یو ډله ده | | | | | |

| لَيَكۡتُمُوۡنَ الۡحَقَّ | وَهُمۡ | يَعۡلَمُوۡنَ ۞ | اَلۡحَقُّ | مِنۡ رَّبِّكَ | فَلَا تَكُوۡنَنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| خامخا پټوي حق | حالانکه هغوی | پوهیږی | دا حق امردې | دطرف درب ستانه | نوم ه کیږه ته |
| چې سره دپوهې حق پټوی | (دادقبلې بدلیدل) دالله دطرفنه حق حکم دې نو (اې مخاطبه) ته په دې باره | | | | |

| مِنَ الۡمُمۡتَرِيۡنَ ۞ |
|---|
| د شك کونکونه |
| د شك کونکو ځني مه کیږه |

**قوله تعالی:- اَلَّذِيۡنَ اٰتَيۡنٰهُمُ الۡكِتٰبَ يَعۡرِفُوۡنَهٗ كَمَا يَعۡرِفُوۡنَ اَبۡنَآءَهُمۡ ؕ**

**حق اود یهودو عالمانو کردار:-** ارشاد دې چه د اهل کتابو عالمان په رسول الله ﷺ باندې نازل شوې د حق خبرو حقانیت داسې پیژني لکه څنګه چې دوی خپل ځامن پیژني. دایو مثال ووچه دیقین کامل په وخت کښې به عربو ونیلو.

يوحديث كښي دی چه يوسړی سره يو وړوكي بچي وو،نبی كريم ﷺ دهغه نه تپوس اوكړو چه دا ستا بچی دی؟ هغه اووئيل چه آوانې نبی كريم ﷺ تاسو هم گواه اوسی:نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چه نه دی په تا باندي پټ دی اونه ته په ده باندي.(يعني تاسو دواړه يو بل ښه پيژنی) (۱)

**د عبدالله بن سلام ﷺ قول:**-قرطبی رحمه الله وائی چه يو ځل حضرعمر فاروق ﷺ دحضرت عبدالله بن سلام ﷺ نه تپوس اوكړو او عبدالله بن سلام د يهودو زبردست عالم وو،آيا ته نبی كريم داسي پيژنی لكه څنګه چه ته خپل اولاد پيژنی؟ جواب ني وركړو چه آو بلكه د دی نه هم زيات،ځكه چه د آسمانونو آمين فرښته دزمكي په امين بنده باندي نازله شوه،اوهغي دنبی اكرم ﷺ صحيح تعريف اوخودلو، يعني حضرت جبريل ﷺ حضرت عيسی ﷺ ته راغلو او بيا پروردګار عالم د دوی صفتونه بيان كړل چه هغه ټول په ټوله په نبی اكرم ﷺ كښي موجود دی.بيامونږ ته د نبی اكرم ﷺ په نبی برحق كيدو كښي څه شك دی؟مونږ دی ده لره په يونظر ولي اونه پيژنو؟ بلكه مونږته خمونږ د اولاد باره كښي شك كيدی شی اودنبی اكرم ﷺ دنبوت په باره كښي هيڅ شك نشته دی.(۲)غرض دا چه څنګه يو سړی د خلقو په يو لويه ډله كښي خپل بچي پيژنی داشان د نبی اكرم ﷺ صفات دومره ښكاره دی چه كوم د اهل كتابو په آسمانی كتابونو كښي دی هغه ټول صفات په حضور نبی كريم ﷺ كښي داسي ښكاره دی چه هر سړی نبی اكرم ﷺ په يو نظر سره پيژنی.

**قوله تعالی:**-اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ

**نبی كريم ﷺ ته د ثابت قدمئ حكم:**- بيا فرمائی چه ددی علم برحق باوجود بيا هم دا خلق هغه پټوی.بيا خپل نبی او مسلمانانو ته د ثابت قدمئ حكم وركوی چه خبردار تاسو هرګز په حق كښي شك مه كونی

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلِكُلٍّ | وِّجْهَةٌ | هُوَ | مُوَلِّيهَا |
| او دپاره دهرچا | يو طرف دی | چي هغه | مخ ګرزونكي دی هغې ته |
| دهر چا (امت د عبادت كولو) يو طرف وی چي مخ كونكي وی | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاسْتَبِقُوا | الْخَيْرٰتِ | اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا | يَاْتِ | بِكُمُ اللّٰهُ | جَمِيْعًا | |
| نو وراندشئ ديو بل نه | نيكو ته | هرچرته چي يئ تاسو | رابه ولی | تاسو الله | ټول | |
| نو تاسو دنيكوپه كارونو كښي د يوبل نه وړاندوالی كوئ | هرځائی كښي چي تاسوئ الله پاک به موپوځائی كړی | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّ اللّٰهَ | عَلٰى كُلِّ | شَيْءٍ | قَدِيْرٌ |
| بيشكه الله | په هر | څيز باند | قادردی |
| بيشكه الله پاک په هر كار باندي قدرت لری | | | |

**قوله تعالی:**-وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا

**دهرچا دپاره قبله ده**:ابن عباس ﷺ فرمائی چه مطلب دا دی چه هر مذهب والو دپاره يو قبله وی.ليكن رښتونی قبله هغه ده چه په هغی باندي مسلمانان دی(۳)دابوالعاليه رحمه الله قول دی چه ديهوديانو هم

---

(۱) ابوداود كتاب الترجل باب فی الخضاب : ۴۲۰۸،نسائی : ۴۸۳۶،مسند الحميد بتحقيقی: ۸۶۸،وسنده صحيح)-

(۲) قرطبی : ۱۶۳/۲)-

(۳) الطبری: ۱۹۳/۳)-

قبله شته د نصرانيانو هم قبله شته او ستاسو هم قبله شته،ليکن هدايت والا قبله هغه ده چه په کومه باندې مسلمانانو دی.(۱) حضرت مجاهد رحمه الله نه هم مروی دی چه هر هغه قوم چه قبله مني،هغه دې په نيکو کښې سبقت اوکړی.د (مُوَلِّيهَا) دويم قرات (مولاها) دې لکه څنګه چه (لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا) يعنی هر سړی سره دخپلې خپلې قبلې فکر دې.هر سړې په خپله خپله لار روان دې .فرمائي که ستاسو بدنونه او جسمونه مختلف شي،او تاسو اخوا ديخوا شئ ليکن الله ﷻ به تاسو به خپل قدرت کامله سره هم په دې زمکه کښې جمع کوی.

وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ

| اودکوم خاني نه| چي تيريږي ته| نوهم دهغه خاني نه| اوګرزوه

|اوکوم خائي نه چي ته په سفر وتلی يې دهغه خائي نه

وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۗ

مخ خپل| طرف | د مسجدحرام ته | خکه چي دا| حقه فيصله ده| دطرفه درب ستا نه|

مسجد حرام طرفته(په مونځ کښې) مخ کوه| خکه چي داستاسو د پاک رب دطرفه حقه فيصله ده

وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ۝ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ

اونۀ دی ے الله | ناخبره | دهغه کارونو نه| چي تاسو ئي کوئ| اودهرخائي نه| چي تېريږې ته

اوالله پاک ستاسودعملونو نه بې خبره نه دې | اوهر خائي نه چي ته روان شوې دهغه خائي نه (مونځ کښې)

فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ

نوګرزوه| مخ خپل | طرف | دمسجد حرام ته|او هر چرته چي يئ تاسو| نو ګرزوئ |مخونه خپل

مسجد حرام ته مخ کوه | اوراې مسلمانانو،هرخائي کښې چي تاسويئ نو دغې اړخ ته برابر مخونه ګرځوئ

شَطْرَهُ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ إِلَّا الَّذِينَ

طرفه دهغه ته | دپاره ددې چي نۀ وی|خلقو ته | په تاسو باندې| څه اعتراض | سوا | دهغه کسانو نه

چي (عامو) خلقو ته ستاسو خلاف هيڅ حجت(اوددليل)په ګوتو ورنشي |خو څوک چي ظالمان دی

ظَلَمُوا مِنْهُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي وَلِأُتِمَّ

چي ظلم ئي کړې دې | دهغوئ نه | خو مه يريږئ دهغوئ نه|اواويريږئ زمانه | او دپاره ددې چي پوره کړم زۀ

(نودهغوئ خولې څوک بندولې نشي) |نوتاسو دهغوئ نه مه ويريږئ اوزمانه اوويريږئ |اودې دپاره چه زه په تاسو

نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ۝

نعمت خپل|په تاسو باند|اوپه دې اميد چي تاسو| لاربيا مومئ |

باندې خپل نعمتونه ددې چي پوره کړم| اوشايد چي تاسودکاميابئ لار بيامومئ |

---

(۱) ابن ابي حاتم: ۱۲۱/۱)-

**قوله تعالى:- وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ**
**ديهودو د بې ځايه اعتراضونو پرواه مه کوئ:-** دا په دريم ځل باندې حکم کيږي چه په مخ د زمکې ټولو مسلمانانو لره د مسجد حرام طرفته په مونځ کښې مخ کول پکاردی.درې ځله تاکيد په دې وجه اوشو چه دا دتبديلئ حکم په ړومبی ځل واقع شوې وو.
**د تکرار وجه:-** ① فخرالدين رازی ددې وجه بيان کړې ده چه ړومبی حکم خود هغه چا دپاره دې چه کوم کعبې ته ګوري.دويم حکم دهغه چا دپاره دې کوم چه په مکه مکرمه کښې وي.ليکن کعبه دهغوی په مخکښې نه ده.په دريم ځل نې هغه چاته حکم ورکړو چه کوم په مخ دزمکې دی.② قرطبی يو توجيه داهم بيان کړې ده چه ړومبی حکم مکې والودپاره دې او دويم حکم نورو ښارونو والو دپاره دې او دريم مسافرو دپاره،③بعضې وائی چه د درېواړو تعلق د مخکښې روستو عبارتونوسره دې.په ړومبی حکم کښې خو د نبی اکرم ﷺ د طلب او بيادهغې دقبوليت ذکر دې،او دويم حکم کښې ددې خبرې بيان دې چه د نبی اکرم ﷺ خوښه هم زمونږ دخوښې مطابق وه.اوحق امرهم داوو،اوپه دريم حکم کښې ديهوديانو د حجت جواب دې چه ددوی په کتابونوکښې مخکښې نه موجود وو چه د نبی اکرم ﷺ قبله به کعبه مبارکه وی،هغه پيشن ګوئی هم پوره شوه.اودې سره دمشرکانو حجت هم ختم شو چه هغوی کعبې لره متبرکه اومشرفه ګنړله او اوس د نبی اکرم ﷺ توجه هم دې طرفته شوه.رازی رحمه الله وغيره دلته ددې حکم باره کښې د بيا بيا راوړلو د حکمتونوتفصيل بيان کړې دې.والله اعلم.
**قوله تعالى:- لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ**
**د اهل کتابو حجت ختمول:-** بيا فرمائی ددې دپاره چه داهل کتابو په تاسو باندې هيڅ حجت باقی پاتې نشی،هغوی ته پته وه چه ددې امت صفت کعبې طرفته مونځ کول دی.هرکله چه دا صفت اوموسی نودوی ته دشک ګنجائش نشی کيدې.ليکن کله چه هغوی اوکتل چه نبی اکرم ﷺ دې قبلې طرفته اوګرزيدو نواوس دوی ته شک نه دی کول پکار.اودا خبره هم ده چه کله هغوی تاسودې قبلې طرفته په مونځ اوګوری نو دوی سره به يوبهانه پيدا شی.ليکن کله چه ابراهيمی قبلې طرفته متوجې شئ هغوی به تش لاس پاتې شی.حضرت ابوالعاليه رحمه الله فرمائی چه د يهودو دا حجت وو چه نن دې خمونږ قبلې طرفته ته متوجې شو سبا ته به دې خمونږ مذهب ته هم راواوړی.ليکن کله چه نبی اکرم ﷺ د الله ﷻ په حکم اصلی قبله اختيار کړه نو د دوی په خواهش باندې اوبه توې شوې.
**قوله تعالى:- إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ**
**ظالمان به اوس هم د اعتراض نه نۀ منع کيږی:-** بيانې اوفرمائيل مګر څوک چه په دوی کښې ظالمان اوحجت باز دی اوپه مشرکانوباندې داعتراض په طوروائی چه دا سړې په ملت ابراهيمی باندې دکيدو دعوی کوی.ليکن چه ابراهيمی قبلې طرفته مونځ نه کوی نوګويا دوی ته جواب ملاؤ شو چه دا نبی ﷺ خمونږ د احکامو متبع دې.ړومبې ورته مونږ په خپل کمال حکمت سره بيت المقدس طرفته د مخ کولو حکم ورکړو لکه څنګه چه دوی پوره کړو،بيا مو ورته ابراهيمی قبلې طرفته د تاويدلو اووئيل او دا هم هغه پوره کړل.نو ته په هر حال کښې خمونږ د احکامو پابندئې
**قوله تعالى:- فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي**
**د استقامت حکم:-** بيا نې اوفرمائيل چه ددې ظالمانو دشک په وجه ته شک کښې مه پريوزه.ددې باغيانو په سرکشئ سره ته فکر مه کوه،د دوی د بې ځايه اعتراضونو ته بالکل پرواه مه کوه.اوصرف زما د ذات نه ويره کوه.صرف خمانه ويريږه.قبلې په بدليدو کښې يومصلحت داووچه دخلقوزړې بندې شی.نوبل طرفته داهم وه چه خه خپل نعمت په تاسو باندې پوره کړم.او قبلې په شان ستا هر شريعت پوره کړم.اوستادين به هر شان سره مکمل کړم.او په دې کښې يورازی هم وو چه دکومې قبلې نه

مخکښې امتونه اوخوښیدل، تاسو ددې نه اونه خئ. مونږ دا قبله خصوصیت سره تاسو ته درکړه، او په ټولو امتونو باندې مو ستاسو فضیلت او شرف او بزرګي ثابته کړه.

| أَرْسَلْنَا | كَمَآ |
|---|---|
| اولیږو مونږ | لکه څنګه چې |
| الکه څنګه چې مونږ په تاسو کښې | |

| وَيُزَكِّيكُمْ | آيَاتِنَا | عَلَيْكُمْ | يَتْلُوا | مِّنكُمْ | رَسُولًا | فِيكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او پاکوی تاسو | آیتونه زمونږ | تاسو ته | چې اوروی | ستاسو نه | یو رسول | په تاسوکښې |
| رسول اولیږلو چه ستاسو د قوم نه دې \| چې تاسو ته زمونږ آیتونه اوروی \| او تاسو د ګناهونو نه پاکوی | | | | | | |

| لَمْ تَكُونُوا | مَّا | وَيُعَلِّمُكُم | وَالْحِكْمَةَ | الْكِتَابَ | وَيُعَلِّمُكُمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې نه وئ تاسو | هغه خبرې | اوښائی تاسو ته | او د حکمت | کتاب | او تعلیم درکوی تاسو ته د |
| او د کتاب او حکمت خودنه درته کوی \| او په هغه خبرو مو پوهوی چې تاسو ترې نه پخوا | | | | | |

| وَلَا تَكْفُرُونِ ۝ | وَاشْكُرُوا لِي | أَذْكُرْكُمْ | فَاذْكُرُونِي | تَعْلَمُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| او مه کوئ ناشکری زما | او شکر اوباسئ زما | زه به یادوم تاسو | نو یادوئ ما | چې پرې پو هیدلی |
| خبر هم نه وئ \| نو تاسو ما یادوئ زه به تاسو یادوم \| او زما شکر اداکوئ او ناشکری مه کوئ | | | | |

**قوله تعالى:- كَمَآ أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِّنكُمْ**

**په امت محمدی باندې دبیش بها نعمت ذکر:** دلته الله ﷻ د خپل ډیر لوئې نعمت ذکر فرمائی چه هغه پاك ذات په مونږ کښې خمونږ د جنس نه یو نبی مبعوث کړو چه هغه( نبی ﷺ)خمونږ په وړاندې دالله ﷻ د نورانی اوروښانه کتاب تلاوت کوی.او مونږ د رذیلو عادتونو او د نفس د شرارتونونه او دجاهلیت د کارونونه منع کوی.اومونږ د ظلم اوکفر نه راوباسی اودایمان رڼاته مو راولی.اود کتاب اوحکمت یعنی دقران پاك او دحدیث مونږ ته تعلیم راکوی.او مونږ ته هغه رازونه ښائی چه ترننه پورې مونږ نه پټ وو.نوددوی په وجه هغه خلق چه هغوی د کلونو راسې په جهالت کښې وو،او هغوی دکلونو راسې په تیارو کښې وو،او په هغوی باندې کلونو راسې دښیګړې نمر هم نه وو لګیدلې،هم دغه خلق ددنیا زبردست علامه ګان جوړ شو.هغوی په علم کښې ژور،په تکلف کښې کم،د زړونوپاك،اود ژبې ریښتونی جوړشول.د دنیا دحالت دا انقلاب پخپله د نبی کریم ﷺ د رسالت دتصدیق یو شاهد عدل دې.او په بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾یعنی دداسې اولوالعزم پیغمبر په پیدائش په مومنانو باندې دالله ﷻ یو زبردست نعمت دې.ددې نعمت قدر نه کوونکو ته قران پاك وائی چه: ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا وَأَحَلُّوا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ﴾ یعنی آیا تاسو دوی ته اونه کتل چه دوی دالله ﷻ دنعمت په بدله کښې کفر اوکړو او خپل قوم ئې د هلاکت په کنده کښې واچولو.

**قوله تعالى:- فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ**

**د شکر ادا کولو حکم:-** دلته د الله ﷻ د نعمت نه مراد حضرت محمد ﷺ دې[1].ددې وجې په دې آیت کښې هم دخپل نعمت ذکر کوی،او خلقو ته دخپل یاد او د خپل شکر ادا کولو حکم کوی چه څنګه چه ما دااحسان په تاسو باندې اوکړو نو تاسو هم زمادشکرکولونه غفلت کښې مه پریوزئ.حضرت موسی

---

[1] صحیح بخاری: کتاب المغازی باب قتل ابی جهل : ۳۹۷۷)-

ﷻ خپل رب العزت ته عرض کوی چه یاالله ﷻ ستا شکرڅنګه ادا کړم ؟. ارشاد کیږی چه ما یادوه او ما مه هیروه. یادول شکر دی او هیرول کفردی.

د حضرت حسن بصری رحمه الله وغیره قول دی چه کوم سړی الله ﷻ یاد کړی، الله ﷻ هم هغه یادوی. او چه څوک د هغه شکر اداکړی نوهغه ته زیات ورکوی. او ناشکره ته عذاب ورکوی. دبزرګانو سلف نه مروی دی چه الله ﷻ نه پوره ویریدل دا دی چه دهغه اطاعت اوکړې شی. اودهغه نافرمانی اونه کړې شی. دهغه ذکر اوکړې شی. غفلت ترې اونکړې شی. ناشکری دې اونه کړې شی.

**الله ګناهګاران هم یادوی خو په بدئ سره:-** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه سوال کیږی چه آیا زانی، شرابی، غل او قاتل هم الله ﷻ یادوی ؟ وې فرمائیل په بدئی سره ئې یادوی. حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه مایادکړئی یعنی زما ضرروی احکامو باندې عمل اوکړئی خه به تاسو یادکړم. یعنی خپل نعمتونه به درکړم. سعید بن جبیر رضی الله عنه فرمائی چه تابه اوبښم. او خپل رحمتونه به په تاباندې نازل کړم.

**دالله ذکر د الله په نیز د بنده د یادولو سبب دې:-** عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائی چه الله ﷻ یادول ډیر غټ څیز دې. یو حدیث قدسی دې چه څوک ما په خپل زړه کښې یادوی، خه هم هغه په خپل زړه کښې یادوم. او چه څوک ما په یو ډله کښې یادوی خه هغه په بهترینه ډله کښې یادوم. [1] مسند احمد کښې دی چه هغه د فرښتو ډله ده. چه کوم سړې زما طرفته یو لیشت رازی نو خه هغه طرفته یولاس ورځم، او ائې بنی آدمه! که ته زما طرفته یو لاس راځې نو خه به ستا طرفته دوه لاسه درځم. که ته زما طرفته رازې نوخه ستاطرفته په منډه درځم. په صحیح بخاری کښې همداحدیث دې [2] حضرت قتاده رضی الله عنه فرمائی چه دالله ﷻ رحمت ددې نه هم زیات نزدې دې.

**قوله تعالی:- وَلَا تَكْفُرُونِ**

**د ناشکرئ نه منع کول:-** بیا فرمائی چه زما شکر اداکړئی او زما ناشکری مه کوئی. او په بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ﴾ یعنی ستاسو د رب د طرفنه دا اعلان کیږی که تاسو شکر کوئ نو زه په په هغې کښې نورزیادت اوکړم اوکه ناشکری کوئ نویادساتئ چه زما عذاب ډیرسخت دې. مسنداحمد کښې دی چه عمران بن حصین رضی الله عنه یو ځل په ډیرقیمتی شکل صورت کښې راغلو اووې فرمائیل چه الله ﷻ چه په چاباندې احسان کړې وی نودهغې اثرپه هغه باندې ښکاره کیدل پکار دی ( [3] )

| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اسْتَعِيْنُوْا | بِالصَّبْرِ | وَالصَّلٰوةِ ط | اِنَّ اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ایمان موراوړې دی | امداداوغواړئ | په صبرسره | اوپه مانځه سره | بیشکه چې الله |
| ائې مؤمنانو(په هره سخته کښې) په صبراومونځ سره (زما نه) مددحاصل کړئ بیشکه الله | | | | | |

| مَعَ الصّٰبِرِيْنَ۝ | وَلَا تَقُوْلُوْا | لِمَنْ | يُّقْتَلُ | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | اَمْوَاتٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| دصبرکونکو سره دی | او مه وایئ تاسو | هغه چاته | چې قتل کړې شی | په لار دالله کښې | مړه |
| دصبروکونکو ملګرې دی اوڅوک چې دهغه الله په لار کښې شهید کړې شوا نوهغوئ ته مړه مه وائې | | | | | |

| بَلْ اَحْيَآءٌ | وَّلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ۝ |
|---|---|
| بلکه ژوندی دی | لیکن نه پو هیږئ تاسو |
| هغوئ (په حقیقت کښې) ژوندی دی خوتاسو پرې نه پوهیږئ | |

[1] صحیح بخاری : کتاب التوحید: باب ۱۵ ح: ۷۴۰۵، صحیح مسلم: ۲۶۷۵)-

[2] احمد: حضرت/۱۳۸، صحیح بخاری: کتاب التوحید: باب ذکر الشئ...... ۷۵۳۶ مختصرا)-

[3] احمد: ۴۳۸/۴، وسنده صحیح)-

**قوله تعالی:- اسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ**

**بهترینه وسیله صبر او مونځ دي** :- شکرنه پس د صبر بیان کیږي او ورسره د مونځ ادا کولو ذکر کیږي او حکم کیږي چې دې لو یو لویو کارونو کښې ځومره نجات دې بنکاره خبره ده که انسان په ښه حالت کښې وي نودا د شکر موقع ده او که خراب حالت کښې وي نو دا موقع د صبر ده حدیث شریف کښې دي چه دمومن څه ښه حالت دې چه په هر کار کښې دده دپاره سراسر نیکي ده،ده ته راحت ملاویږي،که شکر کوي نو ده ته اجر ملاویږي (۱).تکلف ورته اورسي نو صبر کوي نوده ته اجر ملاویږي.

په آیت کښې دذې هم بیان دې چه مصیبتونو باندې صبر اوکړې شي او ددې (مصیبتونو) د تیرولو یا د برداشت کولو ذریعه صبر او مونځ دې لکه څنګه چه مخکښې تیرشو (وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ۚ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ) په صبر او مونځ سره مدد طلب کړئ.دایو ګران کارخو په ویریدونکو باندې ډیر آسان دی. حدیث شریف کښې دی چه کله به دیو کار په وجه نبي کریم ﷺ پریشانه شو نو نبي کریم ﷺ به مونځ شروع کړو.

**د صبر قسمونه**:- د صبر درې قسمونه دي(۲)① د حرامو او دګناهونو پرخودلو باندې صبر② د اطاعت اودنیکۍ په کارونوکولو باندې.داصبردرومبي صبر نه ډیر لونې دې.دریم په درداومصیبت باندې صبر کول دی،دا هم واجب دې لکه د ګناهونو نه استغفار کول واجب دی.حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه فرماني چه دالله ﷻ په فرمانبردارنی کښې مشغول اوسیدل په استقلال سره اګرچه په نفس باندې ګران وي او د طبیعت خلاف وي،زړه نه غواړي،یو صبر خو دا دې،دویم صبر دالله ﷻ دناخوښه کارونو نه منع کیدل اګر چه طبیعت هغې طرفته ورزي او خواهش راپاریږي.

**صابران به بې حسابه جنت ته ځي**:- امام زین العابدین رحمه الله فرماني چه د قیامت په ورځ به یو اواز کونکې آواز کوي چه صبر کونکي چرته دي؟ هغوی دې بغیر د حساب کتاب نه جنت ته لاړشي.څه خلق به پاسي او جنت طرفته به روان شي نو فرښتې چه کله دوی اووینی نو تپوس به ترې اوکړي چه چرته روان یئ؟دوی به اووانی چه جنت ته.هغوی به اووانی چه اوس خو لا حساب کتاب هم نه دې شوې.اویه واني چه آو،دحساب نه مخکښې.دوی به تپوس اوکړي چه آخر تاسو خلق څوك یئ؛جواب به ورکړي چه صابران یو.دالله ﷻ په فرمانبردانی کښې مشغول وواود هغه دنافرماننی نه بچ کیدو.ترمرګه مو په دې باندې مونږ صبراوکړواوپه دې باندې کلك ولاړ وو.فرښتې به اووانی چه بیا خوتاسو صحیح وایئ، بیشکه هم دا ستاسو بدله ده.اوتاسوهم ددې لائق یئ؛ځئ ورشئ جنت ته اوهلته مزې کوئ.د نیکو کارونو والو نیکه بدله وی.هم دا دقران پاك فرمان دې(إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ)یعنی (صابرانو ته به دهغوی پوره پوره بدله بې حساب ورکولې شي).مصداق دې

**د صابر تعریف**:- حضرت سعید بن جبیر رضي الله عنه فرماني چه د صبر دا معنی ده چه د الله ﷻ د نعمتونو اقرار اوکړي،اودمصیبتونو د بدلې هم د الله ﷻ نه د ثواب طمع ساتي،په هرې پریشانئ او د ویرې او مشکله موقع باندې استقلال کوي او دنیکئ امید باندې هغوی خوشحاله په نظر رازي.

**قوله تعالی:-وَلَا تَقُولُوا لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ**........

**دشهیدانو ژوند** :- بیا فرمانی چه شهیدانو ته مړه مه وانې بلکه هغوی خوداسې ژوند کښې دی چه هغه ستاسوپه پوهه کښې نه راځي.هغوی ته حیات برزخي حاصل دې او هغوی ته په هغه ځانې کښې روزي ملاویږي.

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الزهد باب المومن امره کله خیر: ۲۹۹۹)-

(۲) ابوداود کتاب الصلاة باب وقت قیام النبي ﷺ من اللیل : ۱۳۱۹،)-

**شهيدان به دنيا ته د واپس تلو تمنا کوي:-** په صحيح مسلم کښې دي چه دشهيدانو روحونه د شين رنګ مارغانو په قالب کښې دی.او جنت کښې چه چرته خې نو تلې شی.بيا به هغه مشالونو ته راځی او کينی کوم چه دعرش لاندې زړوند دی.ددوی رب دوی ته يو ځل اوکتلو اوددوی نه ئې تپوس اوکړوچه تاسو څه غواړئی؟ هغوی جواب ورکړو چه اے الله ﷻ مونږ ته خو تا هغه څه راکړی دی چه هيچا ته دې نه دی ورکړی.نو بيا مونږ ته دڅه څيز ضرورت دې؟ د دوی نه بيا د ا سوال اوشی.کله چه هغوی پوهه شی چه مونږ به اوس څه نه څه جواب ورکوو.نو اوبه وائی چه اے الله ﷻ مونږ غواړو چه ته مونږ دوباره دنياته اوليږې،ستاپه لار کښې جهاد اوکړو او بيا شهيدان شو او بيا تاته راشو اود شهادت دوچنده درجه اومومو.رب ذوالجلال به اوفرمائی چه دا نشی کيدې.دا خو ما ليکلی دی چه هېڅوک به د مرګ نه پس دنياته واپس نه ځی (۱)مسند احمد کښې يو روايت کښې دی چه دمومن روح يو مارغه دې چه دجنت په ونو باندې اوسيږی .او دقيامت په ورځ به هغه خپل جسم ته واپس رازی(۲).ددې نه معلوميږی چه دهرمومن روح هلته ژوندې دې.ليکن دشهيدانو روح ته يو قسم شرافت،کرامت،عزت او عظمت حاصل دی.

| |
|---|
| وَلَنَبۡلُوَنَّكُمۡ بِشَيۡءٖ مِّنَ الۡخَوۡفِ |
| اوخامخا مونږ آزمايوتاسوا پـه څه اندازه ا ډيرى نه |
| ا خوتاسو پرې نه پوهيږئ ااومونږبه په هرقسم ويرې سره |
| وَالۡجُوعِ وَنَقۡصٖ مِّنَ الۡاَمۡوَالِ وَالۡاَنۡفُسِ وَالثَّمَرٰتِ ؕ وَبَشِّرِ الصّٰبِرِيۡنَ ۙ﴿۱۵۵﴾ |
| او دلوږې نه او دکموالی ا د مالونونه ا اودنفسونو نه ا او دميوونه ا او زيرې ورکړه صبر کونکوته |
| اولوږې سره اومالی اوجانی نقصان سره اودميوو په کمی سره ستاسو امتحان اخلوا او صبر کونکو ته زيرې ورکړه |
| الَّذِيۡنَ اِذَاۤ اَصَابَتۡهُمۡ مُّصِيۡبَةٌ ۙ قَالُوۡۤا اِنَّا لِلّٰهِ |
| هغه صبر کونکی ا چې کله ا اورسيږی هغوئ ته مصيبتا نو وائی اچې بيشکه مونږ ا الله لره يو |
| داهغه کسان دی چې مصيبت پرې راشی نو (د ژړا فريادپه ځائې) وائی چې مونږ دالله ملکيت يو |
| وَاِنَّاۤ اِلَيۡهِ رٰجِعُوۡنَ ؕ﴿۱۵۶﴾ اُولٰٓئِكَ عَلَيۡهِمۡ صَلَوٰتٌ مِّنۡ |
| اومونږ ا هغه ته ا واپس ورتلونکی يوا دا کسان چې دیا په دوئ باندې به ا مهربانيان وی ا دطرفه د |
| اومونږ به هغه ته واپس کيږوا په دغې کسان باندې (چه په دې صفت موصوف وی)، د خپل رب د طرفه |
| رَّبِّهِمۡ وَرَحۡمَةٌ ۟ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُهۡتَدُوۡنَ ﴿۱۵۷﴾ |
| رب ددوئ نه ا او رحمت به وی ا او هم دغسې خلقا دی په نيغه لار ا |
| مهربانياني اورحمت وريږیا اوهم داکسان دی چه سمه لار ني بياموندې ده ا |

**قوله تعالى:-** وَلَنَبۡلُوَنَّكُمۡ بِشَيۡءٍ مِّنَ الۡخَوۡفِ وَالۡجُوۡعِ وَنَقۡصٍ مِّنَ الۡاَمۡوَالِ وَالۡاَنۡفُسِ وَالثَّمَرٰتِ ؕ

**آزميښت شرط دې:-** الله ﷻ فرمائی چه هغه په خپلو بندګانو ضرور آزميښت کوی.کله په پرمختګ سره اوکله په نيکئ اوکله په تنزل اوبرانی سره لکه فرمائی چه ﴿وَلَنَبۡلُوَنَّكُمۡ حَتّٰى نَعۡلَمَ الۡمُجٰهِدِيۡنَ مِنۡكُمۡ وَالصّٰبِرِيۡنَ﴾

---

[1] صحيح مسلم،كتاب الامارة باب بيان ارواح الشهداء فی الجنة: ۱۸۸۷)-.

[2] احمد : ۴۵۵/۳،ابن ماجة: كتاب الزهد باب ذكر القبر والبلى: ۴۲۷۱ :وهو صحيح بالشواهد عنداحمد: ۴۲۴/۶)-

یعنی مونږ به مجاهدین اوصبرکوونکی په ازمیښت سره معلوم کړو.اوپه بل ځای کښې فرمائی چه (فَأَذَاقَهَا اللَّهُ لِبَاسَ الْجُوعِ وَالْخَوْفِ) مطلب دادې چه لږ شان ویره،څه اولږه او څه دمال کمې اوڅه د خانونو یعنی دخپلواودغیرومرګ کله دمیوؤ او پیداوار نقصان وغیره سره الله ﷻ خپلو بندګانو باندې امتحان کوی او صبر کوونکوته نیك اجر او ښه بدله ورکوی.او بې صبره او جلد باز او ناامیدئی کوونکو باندې دده عذاب نازلیږی بعضو سلفو نه منقول دی چه دلته د ویرې نه مراد دالله ﷻ ویره ده،اولږې نه مراد د روژو اولږه ده،دمال دکمی نه مراد زکوة ورکول دی،دځان دکمې نه مراد بیمارئی اود میوؤ د کمی نه مراد اولاد دی.لیکن دا تفسیر لږ د غور طلب دې والله اعلم.

**قوله تعالی:-إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ**

**صابران څوک دي ؟** :اوس بیان کیږی چه دکومو صبر کوونکو د الله ﷻ په نیز قدر شته هغه کوم خلق دی؟نوفرمائی چه داهغه خلق دی چه د تنګئ اومصیبت په وخت کښې(إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ)وائی چه مونږدالله ﷻ ملکیت یو او دا چه کوم نقصان مونږ ته رسیدلې دې،هغه دالله ﷻ د طرفنه دې. او په دوی کښې هغه چه څنګه غواړی تصرف کوی.اوبیا الله ﷻ سره د دوی بدله شته او دوی به اخر هغه ته پیش کیږی.د دوی ددې قول په وجه د الله ﷻ بخششونه په دوی باندې نازلیږی.او دعذاب نه ورته نجات ملاویږی.اوهدایت ورته نصیب کیږی.امیر المومنین حضرت عمر بن الخطاب ؓ فرمائی چه دوه برابر څیزونه یو مهربانئ او یو رحمت او یو مینځنې څیز دې یعنی هدایت،دا صبر کوونکوته ملاویږی.

**د نعمت نعم البدل ملاویدو دعا:_** مسنداحمد کښې دی چه حضرت ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چه یو ورځ زما خاوندحضرت ابو سلمه ؓ دحضرت محمد ﷺ د صحبت نه واپس راغلو اوپه خوشحالئ خوشحالئ ئې اوونیل چه نن خو ما یو داسې حدیث آوریدلې دې چه څه نن ډیر زیات خوشحاله یم.هغه حدیث دا دې چه کوم یو مسلمان ته څه تکلیف اورسی اوهغه اووائی چه **(اللهم اجرنی فی مصیبتی واخلف لی خیرا منها)** یعنی ائې الله ﷻ ماته دې مصیبت کښې اجر راکړه او ماته ددې نه بهتر ه بدله راکړه نو الله ﷻ به ورته اجر اوبدله ضرور ورکوی.حضرت ام سلمه رضی الله عنهافرمائی چه ما دا دعا یاده کړه.

**د دې دعا په برکت نبی کریم ﷺ غوندې خاوند ملاویدل:-** کله چه حضرت ابوسلمه ؓ وفات شو نو ما (إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ) اوونیل زما خیال وو چه دابو سلمه نه افضل ماته کوم سړې ملاویدیشی؟ کله چه زما عدت تیر شو نو یو ورځ ما یو څرمن رنګ کوله چه په دې کښې نبی کریم ﷺ تشریف را وړو او د دننه راتلو اجازت ئې اوغوښتلو.ما خپل لاسونه وینځل او څرمن مې کیخوده.او نبی کریم ﷺ ته مې د دننه راتلو درخواست اوکړو.او نبی کریم ﷺ مې په یو ګدئی کینولو.نبی کریم ﷺ ماته د نکاح پیغام راکړو.ما اوونیل چه یارسول الله ﷺ دا خو زما دپاره د خوشحالئ خبره ده.لیکن اول خو څه یو غیرت منده ښځه یم.هسې نه ستاسو د طبیعت نه خلاف څه خبره اوکړم او الله ﷻ راته عذاب راکړی.دویم دا چه زما عمر زیات دې.دریم داچه زما بچی دی.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه واوره چه الله ﷻ به ستا بې ځایه غیرت لرې کړی او دعمر لحاظ سره څه هم کم نه یم او ستا بچی زما بچی دی.ماپه دې آوریدو سره اوونیل چه بیا خو یارسول الله ماته هیڅ عذر نشته دې.نو خمانکاح نبی کریم ﷺ سره اوشوه.او ماته الله ﷻ دهغه دعا په برکت سره زما د خاوند نه زیات بهتر خاوند راکړو یعنی نبی کریم ﷺ ئې راکړو(۱).فالحمد لله.صحیح مسلم کښې هم دا حدیث باختلاف الفاظ مروی دی.(۲)

**په کلمه د استرجاع اجر ملاویدل:-**مسنداحمد کښې دحضرت علی ؓ نه مروی دی چه نبی کریم ﷺ

---

(۱) احمد: ۲۷/٤،وسنده ضعیف وحدیث ابی داود : ۳۱۱۹،ومسلم: ۹۱۸،یغنی عنه)-

(۲) صحیح مسلم کتاب الجنائز باب مایقال عن المصیبة: ۹۱۸)-

اوفرمائيل چه كوم يو مسلمان ته څه تكليف اورسى اوپه دې باندې اګر چه زيات وخت تير شى اوده ته ياد شى اودې ﴿ إِنَّا لِلَّهِ ﴾ اووائى نو د مصيبت د صبر په وخت كښې چه كوم اجر ملاويدو،هم هغه به اوس هم ملاويږى.([1])

**په جنت كښې بيت الحمد جوړيدل:-** ابن ماجه كښې دى چه حضرت ابوسنان ﷺ فرمائى چه ما خپل يو بچې دفن كړو.اودهغه د قبر ايله راوتلې اووم چه ابو طلحه خولانى ﷺ زما لاس اونيولواو څه ني راوستلم اوماته ني اووئيل چه واوره چه څه تاته يو زيرى دركوم.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ ملك الموت ته تپوس كوى چه تا كله زما ديو بنده د خيګر ټكړه او دسترګو يخوالې واخستو نودهغه څه رد عمل وو؟ملك الموت وائى چه اني الله ﷻ هغه ستا تعريف اوكړو او انا الله ني اووئيل.الله ﷻ فرمائى چه دده دپاره جنت كښې يو كور جوړ كړئى او دهغې نوم بيت الحمد اوليكئ.([2])

| إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ |
|---|
| بيشكه صفا او مروه \| د |
| بيشكه صفا اومروه |
| شَعَآئِرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ |
| نښو د الله نه دى \| نوڅوك چې \| حج اوكړى \| دبيت الله \| يا عمره اوكړى \| نونشته ګناه \| په هغه باند \| |
| دالله(دين) په نښو كښې شامل دى \| نوڅوك چې دبيت الله(كعبې)حج ياعمره كوى \| نوپه دې كښې هيڅ حرج نشته |
| اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا ۗ وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ |
| چې سعى اوكړى \| په مينځ ددواړو كښې \| اوهغه څوك چې په خپله رضا اوكړى \| څه نيكى \| نو بيشكه الله |
| چې ددې دواړو خايونو مينځ كښې سعى (اوه خله تګ راتګ) اوكړى \| اوكړى اوهرڅ فرضو نه زياتى نيكى اوكړى \| نوالله |
| شَاكِرٌ عَلِيْمٌ ۞ |
| قدردان دى \| او ښه پوهه دى \| |
| دهغې قدركوى (خامخا به د هغې ثواب وركوى) \| |

**قوله تعالى:- فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا**

**دصفا مروه طواف او د هغې طريقه** :حضرت عروه رحمه الله نه حضرت عائشه رضي الله عنها تپوس اوكړو چه ددې آيت نه خو داسې معلوميږى چه په طواف نه كولو كښې هم څه حرج نشته دې.حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چه اني ورا ره تاته صحيح پته نشته دې.كه دا بيان مدنظر وې (يعنى كه د الله دا مقصود وې لكه څنګه چه ستا خيال دې) نو ﴿ ان لا يطوف بهما ﴾ به وې.واوره د آيت مبارك شان نزول دادې چه مشلل (دادبو خائې نوم دې) سره مناة بت وو.د اسلا م نه مخكښې انصاروبه هغې ته سجدې كولې.اوچه چا به دې بتانو ته لبيك اووئيل نو هغه به د صفا مروه طواف كښې حرج ګڼرلو.او اسلام نه پس دې خلقو نبى كريم ﷺ نه دصفامروه دطواف دحرج باره كښې سوال اوكړو نو داآيت نازل شو چه په دې كښې هيڅ حرج نشته دې.بيا نبى كريم ﷺ د صفا مروه طواف اوكړواوددې وجې مسنون شو او هيچا ته ددې خبرې

[1] احمد: ۲۰۱/۱،ح/۱۸۳٦،ابن ماجة: ۱٦۰۰)۔

[2] احمد: ٤۱۵/٤،الترمذى : كتاب الجنائز باب فضل المصيبة اذا احتسب : ۱۰۲۱)۔

همت اونشو چه دا پریږدي.(بخاري ومسلم) (۱)
ابوبکر بن عبدالرحمن چه کله دا آیت واوریدو نو وي فرمائیل چه بیشکه دا علمی خبره ده،ما خو دې نه مخکښې دا هډو آوریدلې نه وه.بعضې اهل علم فرمائی چه انصارو ونیلي وو چه مونږ ته د بیت الله دطواف حکم دې.د صفا او د مروه د طواف حکم نه دې.په دې باندې دا آیت نازل شو.ممکن دی چه ددې شان نزول دا دواړه وی.(۲) حضرت انس ﷺ فرمائی چه مونږد صفا مروه طواف لره دجاهلیت کارګنړلو او د اسلام حالت کښې به ددې نه بچ کیدو تر دې پورې چه دا آیت نازل شو.(۳)
حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه ددې دواړو غرونو په مینځ کښې ډیر بتان وو او شیطانانو به ټوله شپه ددې په مینځ کښې طوافونه کول.اسلام نه پس خلقو نبی کریم ﷺ نه ددې د طواف باره کښې مسئله اوپوښتله نو په دې باندې دا آیت نازل شو.(۴)
اساف نومې بت په صفا باندې وو.اونائله نومې بت په مروه باندې.مشرکانو به دا ښکلول او ګوتې به ني وراوړې.اسلام نه پس خلق د دې نه منع شو لیکن دا آیت نازل شو او دهغې نه ددې خائې طواف ثابت شو.سیرت محمد بن اسحاق کښې دی چه اساف اونائله دوه سړې او ښځه وو.دې بدکارو په کعبه کښې زنا کړې وه.الله ﷻ ددوی نه کانړې جوړ کړل.قریشو دا د عبرت دپاره د کعبې نه بهر کیخودل .لیکن څه زمانه پس خلقو ددې عبادت شروع کړو.او دائې راوړل او په صفا او مروه باندې ني اودرول اوددې طواف ني شروع کړو.
صحیح مسلم کښې یو اوږد حدیث کښې دې چه کله نبی کریم ﷺ دبیت الله طواف اوکړو نو رکن ته ني ګوتې ورا وړې او باب الصفا نه اووتلو او دا آیت مبارك ني تلاوت کولو.بیا ني اوفرمائیل چه څه د هغه خائې نه شروع کوم د کوم نه چې الله شروع کړې ده.یو روایت کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه تاسو شروع کړنی ددې نه چه د کومې نه الله ﷻ شروع کړه.یعنی د صفا نه اوخئ او مروه ته لاړشئ.(۵)
حضرت حبیبه بنت تجراة ﷺ فرمائی چه ما رسول الله ﷺ اولیدو چه د صفا مروه طواف ني کولو.خلق ددوی نه مخکښې وو او نبی کریم ﷺ دوی پسې وو.نبی کریم ﷺ به لږ تیز تګ کولو.او ددې وجې به د دوی تهبند (لنګ) د نبی کریم ﷺ د پوندو مبارکو مینځ کښې یو خوا بل خوا کیدو.او په ژبه مبارکه ني فرمائیل چه خلقو منډې وهئ الله ﷻ په تاسو سعی مقرر کړې ده (مسند احمد).(۶) هم په دې معنی کښې یو بل روایت هم دی.(۷) چه دا حدیث دلیل دې د هغه خلقو دپاره چه د صفا مروه سعی د حج رکن ګنړی.لکه څنګه چه د امام شافعی ﷫ او د دوی موافقینو مذهب دې.امام احمد ﷫ نه روایت هم دا شان دې.دامام مالك ﷫ مشهور مذهب همدادې.بعضې دې ته واجب وائی دحج رکن ورته نه وائی،که په قصد سره یا په هیره سره څوك دا پریږدی نو یو څناور به ذبح کوی.امام احمد ﷫ نه روایت دا شان مروی دې اویو بل جماعت هم دا شان وائی.او یو قول کښې دا مستحب دې.امام ابوحنیفه ﷫،ثوری ﷫،شعبی ﷫ او ابن سیرین ﷫ هم دا وائی.

**د صفا مروه حکم**

۱) صحیح بخاری : کتاب الحج باب وجوب الصفا والمروة: ۱۶۴۳،صحیح مسلم: ۱۲۷۷)-
۲) صحیح مسلم کتاب الحج،باب بیان ان السعی بین الصفا والمروة رکن: ۱۲۷۷)-
۳) صحیح بخاری : کتاب التفسیر سورة البقرة باب قوله تعالی ( ان الصفا والمروة ن شعائر الله ) : ۴۴۹۶،مسلم: ۱۲۷۸)-
۴) حاکم: ۲۷۱/۲)-
۵) صحیح مسلم کتاب الحج باب حجة النبی : ۱۲۱۸)-
۶) احمد: ۲/۶،البیهقی : ۹۷/۵،وسنده حسن )-
۷) احمد: ۲/۶،البیهقی : ۴۳۷/۶،وصحیح ابن خزیمة: ۲۷۶۵،وهو حسن)-

**مسلک حنفی** :- فاضل مصنف رحمه الله اګرچه امام ابوحنيفه رحمه الله ته د سعی د استحباب د قول نسبت کړی دی خو زمونږ د احنافو په ټولو مشهورو متونو کښې دی ته واجب وئیلی شوی دی او هم په دې باندې داحنافو عمل او فتوی صاحب هدایه فرمائی ثُمَّ السَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَاجِبٌ بیا سعی په مینځ دصفا اومروه کښې واجب ده وَلَيْسَ بِرُكْنٍ اورکن نه دی.(تسهيل الهدايه شرح هدايه (۲۰۴/۱۱)

حضرت انس رضی الله عنه،ابن عمر رضی الله عنه او حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه نه هم دا روایت دی.امام مالک رحمه الله نه عتبه کښې هم دا روایت دې دهغوی دلیل دا دی چه ( فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا) لیکن ړومبی قول زیات راجح دی څکه چه نبی کریم ﷺ په خپله د صفا مروه طواف اوکړو او وې فرمائیل چه د حج احکام زما نه زده کړئی.(۱) نو نبی کریم ﷺ چه په دې حج کښې څه کړی دی هغه واجب شو اود دې کول ضروری دی.که یوکار د څه خاص دلیل په وجه د وجوب نه بل طرف واوړی.نو دا بله خبره ده.والله اعلم.

ددې نه علاوه حدیث کښې راغلی دی چه الله ﷻ تاسو باندې سعی فرض کړه.غرض دلته بیانیږی چه د صفا مروه طواف هم د الله ﷻ شرعی احکاموڅنی دې چه کوم حضرت ابراهیم علیه السلام ته د حج دپاره خودلې شوی وو.دا مخکښې بیان شو چه ددې اصل سبب دحضرت هاجره رضی الله عنها په مقام منډې وهل دی څکه چه حضرت ابراهیم علیه السلام حضرت هاجره رضی الله عنها دلته ددې بچی سره پریښودې وه او دوی سره خوراک ختم شوې وو او بچی ته تکلیف وو.نو دې مور بی بی ډیر په بې قرارئی،بې بسئ،ویرې او پریشانئ سره ددې پاکو غرونو په مینځ کښې د الله ﷻ نه سوال اوکړو.تردې چه ددې غم او تکلیف او پریشانی ختمه شوه.

**حاجی دپاره عاجزی پکار ده** :- دلته طواف کوونکی حاجی ته هم پکار دی چه ډیر په عاجزئی او خشوع اوخضوع سره طواف اوکړی او خپله فقیری او عاجزی دالله ﷻ په مخکښې پیش کړی او دخپل زړه صلاحیت او دخپل حال هدایت اودخپلو ګناهونو بخشش اوغواړی.او نقائص او عیبونو نه دې پاکوالې اوغواړی اود نافرمانو نه د نفرت پیدا کولودپاره او دثابت قدمئ،نیکئ او فلاح و بهبود دپاره دې دعا اوکړی او الله ﷻ دې ته عرض اوکړی چه هغه پاک ذات نې د ګناهونو او دخرابو نه او د تنګئ لار نه اوساتی اود کمال اوغفران او دنیکئ توفیق ورته ورکړی.لکه څنګه چه الله ﷻ د حضرت هاجره رضی الله عنها نه تکلیف لرې کړو.

**قوله تعالى**:- وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا

**نفلی عبادات کول**:- بیا ارشاد کیږی چه کوم سړې په خپله خوښه په نیکئ کښې زیاتې اوکړی یعنی د اوو چکرو په ځائې اته چکرې اووهی یا نهه چکرې اووهی یا نفلی حج اوعمره کښې هم د صفا مروه طواف اوکړی اوبعضو داعام کړی دی یعنی په هره نیکئ کښې دې زیاتې اوکړی.والله اعلم.

**قوله تعالى**:- فَإِنَّ اللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ

**الله قدردان دی**:- بیا فرمائی چه الله ﷻ قدردان او علم والا دی یعنی په لږ کار باندې ثواب زیات ورکوی او د جزا صحیح مقدار ورته معلوم دی،نه هغه پاک ذات دده ثواب کښې کمې راولی او نه هغه پاک ذات د ذرې برابر ظلم کوی،خو دنیکئ ثواب زیات ورکوی او دخپل در نه ورته اجر عظیم ورکوی.فالحمدوالشکر لله.

| إِنَّ | الَّذِينَ | يَكْتُمُونَ | مَآ | أَنْزَلْنَا |
|---|---|---|---|---|
| ابیشکه | هغه کسان | چې پټوی | هغه | اچې نازل کړی دی مونږ |
| هغه په هرڅه پوهه دې اخوک چې زمونږ نازل کړی | | | | |

(۱) صحیح مسلم کتاب الحج باب استحباب رمی جمرة العقبة: ۱۲۹۷)-

مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالْهُدٰى مِنْۢ بَعْدِ مَا بَيَّنّٰهُ لِلنَّاسِ

دواضحه حكمونو| او هدايت نه | روستو | دهغې نه | چې بيان كړې دى مونږ | خلقو ته |

ښكاره آيتونه اوهدايت عمل پټوي| د دې نه پس چې مونږ دخلقو د(اخروى او دنيوى فائدې) دپاره

فِي الْكِتٰبِۙ اُولٰٓئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللّٰهُ وَيَلْعَنُهُمُ

په كتاب كښې | دغه كسان چې دى| لعنت وائي په هغوئ باند | الله |او لعنت وائي په هغوئ باند

پخپل كتاب كښې په ښه شان سره واضح كړې دې انو په هغوئ باندې دالله لعنت وريږي| اواولعنت ويونكي

اللّٰعِنُوْنَۙ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَاَصْلَحُوْا وَبَيَّنُوْا

لعنت ويونكي| مگرهغه كسان | چې توبه ني اوويستله|اودعمل اصلاح ني اوكړه| اوبيان ني كړو حق

پرې لعنت وائي| خوخوك چې توبه اوباسي اوخپل عمل صحيح كړي اوكوم تعليم چې مونږ وركړې دې هغه بيان كړي

فَاُولٰٓئِكَ اَتُوْبُ عَلَيْهِمْۚ وَاَنَا التَّوَّابُ

نو دغه كسان چې دى | زه به رجوع اوكړم په رحمت سره | په هغوئ باندې | او زه ډير معاف كونكې

نوزه به د دغه كسانو توبه قبوله كړم (خكه چه تول زما بندگان دى زما چا سره ضد نشته) او زه توبه قبلونكې

الرَّحِيْمُ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ

رحم كونكې يم| بيشكه| هغه كسان | چې دكفرعمل ني اختيار كړو| اومړه شول |حال دا چې وو هغوئ

مهربان يم| (ولې) چاچې كفر او كړو اوهم د كفر په حالت كښې مړه شول......

كُفَّارٌ اُولٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَۙ

كافران | دغه كسان چې دى | دې په هغوئ باند| لعنت دالله | اودفريښتو | او دخلقو تولو

په هغوئ باندې دالله پاك اودفريښتواوتولو بني آدم لعنتونه ونيلي شي (خكه چه دايمان ددولت نه محرومه شول)

خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ

هميشه به وي|په دې لعنت كښې| سپك به نه كړئ شي| دهغوئ نه| عذاب |اونه به هغوئ ته مهلت وركړې شي

هميشه به په لعنت كښې وي| نه به د دوئ په عذاب كښې څه سپكوالي كيږي اونه به ورته مهلت وركولې شي

**قوله تعالى:-** اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَآ اَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالْهُدٰى.....

**حق خبره پټونكي ملعون دي** :دې آيتونو كښې دهغه خلقو دپاره يو زبردسته تنبيه اودهمكى ده چه كوم د الله ﷻ خبرې او شرعي مسائل پټوي.اهل كتابو د نبي ﷺ صفتونه پټول نو په هغې باندې دا نازل شو چه حق پټونكي ملعون خلق دی.[۱] خنگه چه د هغه عالم دپاره چه كوم د رب العزت خبرې خوروي هر څيز استغفاركوي ترديې چه داوبه مهيان اود هوا مارغان هم،داشان په هغه خلقو باندې هرڅيز لعنت وائي چه كومو ته دا معلوم دی چه دا حق خبره ده او بياهم گونگيان او كانړه جوړيږي.

---

(۱) ابوداود كتاب العلم باب في فضل العلم: ۳۶۴۱،ترمذى: ۲۸۸۲،ابن ماجة: ۲۲۳)۔

**دحق پټونکی ته د اور واګې اوچول:-** صحیح حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دکوم یو سړی نه دیو شرعی خبرې باره کښې سوال اوکړې شواوهغه سړې دا خبره پټه کړه،د قیامت په ورځ به هغه ته د اورواګې اچولې شي.(۱) حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائی که دا آیت نه وې نازل شوې نو ما به یو حدیث هم نه وې بیان کړې.(۲)

حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمائی چه نبی کریم ﷺ سره مونږ په یو جنازه کښې وو،نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په قبر کښې کافر سټك سره په تندی داسې وهلې کیږی چه ټول ځناور دا دهماکه آورې سوا د جن وانس نه،بیا هغوی ټول په ده باندې لعنت کوی.هم دا معنی ده چه په دوی باندې دالله ﷻ او ټولو لعنت کوونکولعنت دې یعنی دټولو ځناورو.حضرت عطاء رحمه الله فرمائی چه د ﴿لاعنون﴾ نه مراد ټول ځناور او ټول جن وانس دی.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه کله خشك سالی شی اوباران نه کیږی نو ځناور وائی چه دا دبنی آدم د ګناهونو په وجه سره دې.الله ﷻ دې دبنی آدم په ګناهګارو باندې لعنت اوکړی.(۳) بعض مفسرین وائی چه ددې نه مراد فرښتې اومومنان خلق دی.حدیث کښې دی چه عالم دپاره هر څیز استغفار کوی تردې پورې چه د سمندر مهیان هم.(۴) په دې آیت کښې دی چه علم پټوونکی باندې الله ﷻ لعنت وائی.او فرښتې او ټول خلق او ټول لعنت کونکی یعنی هر ژبندارا اوبې ژبانه که په ژبان سره اووائی او قرائنو سره اودقیامت په ورځ هم ټول څیزونه په ده باندې لعنت کوی.والله اعلم.

**قوله تعالی:-** ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَبَيَّنُوا فَأُولَٰئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ﴾

**توبه ویستونکی د لعنت نه بچ دی:-** بیا ئې په دوی کښې هغه دخلقو استثناء اوکړه چه کوم ددې فعل نه منع شي اودخپلو عملونو پوره اصلاح اوکړی او چه څه ئې پټ کړی وی هغه ښکاره کړی نو د هغه خلقو توبه الله رب العزت قبلوی.ددې نه معلومه شوه چه کوم سړې کفر اوبدعت طرفته خلقو لره رابلونکې وی،هغه هم که په اخلاص سره توبه اوباسی نو دهغه توبه قبلیږی.

**قوله تعالی:-** ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ﴾

**د کفرپه حالت کښې مړه به همیشه لعنتی وی:-** بعضو روایتونونه معلومیږی چه مخکښې امتونوکښې د داسې زبردستو بدکارانو توبه نه وه قبوله شوې لیکن د نبی التوبة او نبی الرحمة نبی کریم ﷺ امت سره دامهربانی مخصوص ده.دې نه پس دهغه خلقو بیان کیږی چه کفر اوکړی،توبه ئې نصیب نه شی او د کفر په حالت کښې مړه شی نو په هغوی باندې دالله ﷻ او ټولو فرښتو او دټولو خلقو لعنت دې.دا لعنت هغوی پورې انخلې او تر قیامته پورې به ورسره وی.اودوی به د دوزخ اور ته بوځی.اوپه عذاب کښې به هم همیشه وی.اونه به ددوی په عذاب کښې څه کمې کیږی او نه به ترې موقوف کیږی بلکه همیشه به دوی په سخت نه سخت عذاب کښې وی.﴿نعوذبالله من عذاب الله﴾

حضرت ابوالعالیه رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه دقیامت په ورځ به کافران منع کړې شی بیا به الله ﷻ په هغوی لعنت اوکړی اوبیابه فرښتې اوبیا ټول خلق. په کافرو باندې لعنت لیږلوکښې دهیچا اختلاف نشته دې،حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه او ددوی نه پس ټول آئمه کرام ټول په ټولو به قنوت وغیره کښې په کافرو لعنت کولو،خو په یو معین کافر باندې په لعنت وئیلوکښې دعلماء کرامو یوه ډله وائی چه دا جائزنه دی ځکه چه دده دخاتمې هیچاته علم نشته دې،او د آیت دا قید چه تر مرګه به دوی کافر

---

(۱) ابوداود کتاب العلم باب کراهية العلم منع العلم: ۳۶۸۵،وهو حسن ترمذی: ۲۶۴۹،ابن ماجة: ۲۶۱)–
(۲) صحیح بخاری کتاب العلم باب حفظ العلم : ۱۱۸،صحیح مسلم : ۲۴۹۲)–
(۳) بن ابی حاتم: ۱/۱۷۵)–
(۴) ابوداود کتاب العلم باب فضل العلم : ۳۶۴۱،ترمذی: ۲۸۸۲،ابن ماجة فی المقدمة : ۲۲۳)–

وی دلیل دې په یو معین کافر باندې دلعنت نه لیږلو.او دویمه ډله ددې د جواز هم قائله ده لکه فقیه ابوبکر عربی مالکی رحمه الله.لیکن ددوی دلیل یو ضعیف حدیث دی،بعضو ددې حدیث نه هم دلیل راویستې دې چه نبی کریم ﷺ لره یو سړې بیابیا دنشې په حالت کښې راوستلې شو او په هغه باندې بیابیا حد جاری کړې شو نویو سړی اوونیل چه په ده باندې دې الله ﷻ لعنت وی بیا بیا شراب څښی په دې آوریدو سره نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په ده لعنت مه وایه.دې الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ لره دوستان شمیری.(۱)ددې نه ثابته شوه چه کوم سړې الله ورسول ﷺ سره دوستی نه کوی نو په هغه لعنت لیږل جائز دی.والله اعلم.

| وَإِلَٰهُكُمْ | إِلَٰهٌ | وَاحِدٌ | لَّا إِلَٰهَ | إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ | الرَّحِيمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومعبود ستاسو | بس) معبود | یو دی | نشته بل معبود | مگر هم هغه رحمن | او رحیم دی |
| (یادساتئ) چې ستاسو الله بس یوالله دی | | | دهغه نه سوابل څوک دعبادت لائق نشته | هغه رحم کونکې اومهربان دی | |

قوله تعالی:-وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ

**معبود برحق** :-یعنی الوهیت کښې هغه خانله دې،دهغه هېڅوک شریك نشته دې اونه دهغه په شان څوک شته دې.هغه پاك ذات واحد اواحددی.او یودې او صمد دې،دهغه نه سوا دعبادت لائق بل څوک نشته دې،هغه رحمن او رحیم دې.دسورة فاتحه په شروع کښې ددې دواړو نومونوتفسیر تیر شوې دې.نبی کریم ﷺ فرمائی چه اسم اعظم په دې دواړوکښې دې.یو دا آیت او بل آیت ﴿الٓمٓ ۝ اللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ۝﴾ (۲) دې نه پس دهغه پاك ذات د توحید دلائل بیانیږی،هغه هم توجه سره واورئ ،فرمائی :

| إِنَّ | فِي خَلْقِ | السَّمَاوَاتِ | وَالْأَرْضِ | وَاخْتِلَافِ | اللَّيْلِ | وَالنَّهَارِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه | په پیدا کولو | دآسمانونو | او دزمکې کښې | او په اختلاف | دشپې | اودورځې کښې |
| (ددې خبرې دلیل دادی)چې دآسمانونواودزمکې په پیداکولو کښې اودشپې اود ورځې په پرله پسې تګ راتګ کښې | | | | | | |

| وَالْفُلْكِ | الَّتِي | تَجْرِي | فِي الْبَحْرِ | بِمَا | يَنفَعُ | النَّاسَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او په کشتئ کښې | هغه کشتئ | اچې رواني وی | په دریاب کښې | سره دهغه څیزا | چې فائده رسوی | خلقو ته |
| او په هغه بیړو(کشتو) کښې چې په دریابونو کښې دخلقودفائدې سامانونه اوړی راوړی | | | | | | |

| وَمَا أَنزَلَ اللَّهُ | مِنَ السَّمَاءِ | مِن مَّاءٍ | فَأَحْيَا | بِهِ | الْأَرْضَ | بَعْدَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او په هغه څه کښې | چې نازل کړی دی الله | د اسمان نه | یعنی اوبه | نو ژوندئ کوی | په هغې اوبو سره | زمکه | روستو |
| او په هغې اوبو کښې چې الله پاك نې دپورته نه راوروی | | | | اوموږ(اوچه) زمکه پرې ژوندئ(آباده)کوی | | |

| مَوْتِهَا | وَبَثَّ | فِيهَا | مِن كُلِّ | دَابَّةٍ | وَتَصْرِيفِ | الرِّيَاحِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دمرګ دهغې نه | اوخوروی | په هغې کښې | هر قسم | دسا مخلوق | او په چلن | دهواګانو کښې |
| او(ددې انتظام په وجه) دزمکې په مخ تول زنده سر خوروی | | | او دسیلو(بادونو) په چلولو کښې اوپه هغه وریخو کښې | | | |

(۱) صحیح بخاری : کتاب الحدود،باب مایکره من لعن شارب الخمر: ۶۷۸۰۔

(۲) ابوداود کتاب الصلاة (اب،اب الوتر) باب الدعاء : ۱۴۹۶،وسنده حسن ترمذی : ۳۴۷۸،ابن ماجة: ۳۸۵۵۔

| وَالسَّحَابِ | الْمُسَخَّرِ | بَيْنَ | السَّمَاءِ | وَالْأَرْضِ | لَآيٰتٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| او په وريځ | فرمان منونكي كښي | په مينځ | دآسمان | و دزمكي كښي | خامخا نښي دي |
| چي دزمي اوآسمان په مينځ كښي زورندي ولاړي دي په دې ټولو كښي د هغه خلقو دپاره (د الله ﷻ د | | | | | |
| لِّقَوْمٍ | يَعْقِلُونَ ﴿١٦٤﴾ | | | | |
| دپاره دهغه قوم | چي دعقل نه كار اخلي | | | | | |
| وحدانيت ) نښي دي چه عقل لري ( | | | | | |

**قوله تعالى:-** إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

**د زمكي اواسمان په تخليق كښي دلائل وحدانيت:-** مطلب دا دي چه دهغه لوئي رب په ربوبيت او توحيد باندې خو يو دليل خودا آسمان دې.چه دهغه (آسمان) اوچتوالي،لطافت او فراخوالي او په هغې كښې اوسيدونكي اوتلونكي او روښانه ستوري تاسو وينئ:بيا دزمكي پيدائش چه دا يوكثيف څيز دې چه ستاسو د قدمونولاندې خوره شوې ده په دې كښې اوچتواوچتو څوكو والا غرونه دي،اويه دې كښې چپې وهونكي سمندرونه دي.په دې ډير قسمه ونې بوټي دي په دې كښې رنګ په رنګ پيداوار كيږي .چه په هغې باندې تاسواوسيږنې اودخپلې مرضۍ مطابق په دې باندې آرام اومكان جوړونې او اوسيږنې.او ددې نه ډيرې فاندې اوچتونې.

**قوله تعالى:-** وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ

**د شپې او ورځې په اختلاف كښې عبرت:-** بيا د ورځې شپې راتلل،شپه لاړه ورځ راغله،ورځ لاړه شپه راغله، نه هغه (ورځ) په دې (شپه)باندې سبقت كوى اونه دا (شپه) په (ورځ) باندې سبقت كوى.هر يو په خپله صحيح اندازې سره راځي او ځي.كله ورځې اوږدې او كله شپې اوږدې،كله د ورځې څه حصه شپه كښې لاړه شي اوكله دشپې څه حصه ورځ كښې راشي،

**قوله تعالى:-** وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ

**د كشتو فوائد:-** اوبيا كشتئ اوګورئ چه پخپله تاسو او ستاسو مال هال او تجارتي څيزونو لره اوړي او په سمندركښې يو طرفنه بل طرفته ځي.چه ددې په ذريعه مختلفو ملكونو سره رابطه او لين دين كولې شي:دهغه ځائي څيزونه دې طرفته او ددې طرف څيزونه هغه طرفته رسيدې شي.

وَمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا......

**دالله د وحدانيت نور ګڼر دلائل:-**بيا دالله ﷻ په خپل رحمت كامله سره باران ورول اودې سره مړه زمكه ژوندني كول،دې نه غله اوميوې پيداكول،روزي رسول،ددوى دپاره د خملاستلو.څريدلو ځايونه تيارول،هواګانو لره چلول،كله يخې اوكله ګرمې،كله كمې اوكله زياتې،وريځې دزمكې اوآسمان تر مينځه مسخر كول،هغه يو طرفنه بل طرفته بوتلل،د ضرورت په ځائې باران ورول وغيره دا ټول دالله ﷻ دقدرت نښې دي چه ددې نه عقل مند د خپل الله ﷻ وجود او د هغه وحدانيت معلوموي.

لكه څنګه چه بل ځائې كښې ارشاددې چه د زمكې اوآسمان پيدا كولواوشپې اوورځې په تلو راتلو كښې د عقلمندو دپاره نښې دي.چه هغه (خلق) په ناسته ولاړه يعنى هر وخت كښې د الله ﷻ نوم اخلي اود زمكې او آسمانونوپه پيدا كولوكښې غوروفكر كوى او وائى چه ائې زمونږ ربه تا دا بيكاره نه دي جوړ كړې،ستا ذات پاك دې ته مونږ د جنهم د اور نه اوساتې.

**دايت شان نزول:-**حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائي چه قريش رسول الله ﷺ لره راغلل او وې وئيل چه تاسودالله ﷻ نه دعا اوكړئي چه هغه صفا غر د سرو كړي.مونږ دې سره آسونه او وسله وغيره اخلو او

ستاسره ملګرتیا اوکړو او ایمان هم راوړو.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه داپخه وعده کونی ؟هغوی اوونیل چه آو پخه وعده ده.نبی کریم ﷺ دالله ﷻ نه دعا اوکره،حضرت جبریل ﷺ تشریف راوړو او وې فرمائیل چه ستادعا قبوله ده خوکه دې خلقو بیاهم ایمان راونړو نوبه دوی باندې به دالله ﷻ هغه عذاب راځی چه ددوی نه مخکښې په نورو خلقو باندې نه وواغلې.نبی کریم ﷺ په رېبېدو شو او عرض ئې اوکړو انې الله ﷻ ! ته دوی هم داسې پرېږده څه به دوی ستا طرفته راوبلم.څه خبر نن نه سبا او سبا نه نویله ورځ به دوی کښې څوك نه څوك ستا طرفته راشی.په دې باندې دا آیت نازل شو که دوی د قدرت نښې کتل غواړی نو آیا دا نښې کمې دی څه ؟

یو بل شان نزول هم مروی دې چه کله آیت ﴿ وَاِلٰهُكُمْ ...الخ ﴾ نازل شو نومشرکانو اوونیل چه یو الله ﷻ به دټول جهان بندوبست څنګه کوی نو دا آیت نازل شو چه هغه پاك ذات دومره قدرتونو والا دې.

بعضو روایتونو کښې دی چه کله ئې دیو الله ﷻ واوریدل نو دلیل ئې اوغوښتلو نو په دې باندې دا آیت نازل شو او په دوی باندې د قدرت نښې ښکاره کړې شوې.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

| دخلقو نه خینی | هغه دی | چې نیسی | په مقابله دالله کښې |

| (خوسره ددې) بعضې خلق دالله نه سوا........................

اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِيْنَ

شریکان | چې مینه کوی دهغوئ سره | لکه څنګه چې مینه پکارده | دالله سره | حالانکه هغه کسان

نورځیزون هغه سره په برابرئ نیسی | او دومره مینه ورسره ساتی څنګه چې د الله سره پکار ده | اودچا په

اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ؕ وَلَوْ يَرَى

چې ایمان ئې راوړې دې | زیات سخت دی | په مینه کولو کښې | دالله سرا | اوچرته | اولیدلې

په زړونو کښې چې ایمان وی هغوئ ته الله پاک د هرڅانه زیات خوښ دې | افسوس چه هغوی اوس لیدلې

الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ ۙ اَنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ

هغه کسانو | چې ظلم ئې کړې دې | څه وخت | چې به وینی | عذاب | چې بیشکه | طاقت | الله لره دې

(کوم چې به دوئ په ښه شان وینی) څه وخت چې عذاب اووینی (نودا به اووائی) چې هر قسم ټول طاقت د الله

جَمِيْعًا ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعَذَابِ ۝ اِذْ تَبَرَّاَ الَّذِيْنَ

ټول | اوبیشکه چې | الله | ډیر سخت دې | په عذاب ورکولو کښې | کله چې ابیزارشی | هغه کسان |

دې | اوهغه په عذاب ورکولو کښې ډیر زیات سخت دې | څه وخت چې دوئ عذاب اووینی | نود چا

اتُّبِعُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا وَرَاَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ

چې تابعداری نی شوی ده | دهغه کسانونه | چې تابعداری نی کړی ده | اووینی عذاب | او ختم به شی

تابعداری چه شوې وه | هغوئ به دخپلو تابعدارو (مریدانو) نه بیزاره شی | او ددوئ (ترمینځ) به د خپلولئ ټولې سلسلې

بِهِمُ الْاَسْبَابُ ۝ وَقَالَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا لَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً

دهغوئ اسباب | اواوبه وائی هغه کسان | چې تابعداری نی کړی ده | کاش چې وې مونږ لره | یو خل تلل بیادنیا ته

ختمې شی | او چا چې (په دنیا کښې) تابعداری کړې وه | هغوئ به وائی کاش که مونږ ته دواپس تلو یوه موقع راکړې شوې

| فَنَتَبَرَّاَ | مِنْهُمْ | كَمَا | تَبَرَّءُوْا | مِنَّا | كَذٰلِكَ | يُرِيْهِمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو زمونږ به بيزاره شوا ددوئ نه | | لكه څنګه چې | بيزاره شودوي | زمونږنه | هم دارنګي به | ښكاره كوي دوئ ته |
| نومونږ بهٔ هم ترينه بيزاره شو (نن) چې دوئ زمونږنه څنګه بيزاره شو | | | | | دغسې به الله ﷻ دوی ته د دوی | |

| اللهُ | اَعْمَالَهُمْ | حَسَرٰتٍ | عَلَيْهِمْ | وَمَا هُمْ | بِخٰرِجِيْنَ | مِنَ النَّارِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الله | عملونه ددوئ | سبب د افسوسونو | په هغوئ باندې | اونهٔ به وي دوئ | وتونكي | داور نه |
| بد عملونه دحسرت اودپښيمانئ سبب جوړ كړي، اوپه هيڅ صورت كښې به داور نه وتلي نشي | | | | | | |

**قوله تعالیٰ:- وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ اللّٰهِ**

**د الله ﷻ پشان محبت نورو سره؟ :-** په دې آيت كښې د مشركانو د دنياوي او اُخروي حال بيان دې.دوی الله ﷻ سره شريك جوړوي.او دهغه پاك ذات په شان نورګڼري.او بيا د هغوی محبت په خپلو زړونو كښې داسې كينوي چه څنګه دالله ﷻ پكار دی.حالانكه هغه معبود برحق صرف يو دې،هغه دشريك او ملګري نه پاك دې.

بخاري اومسلم كښې دابن مسعود ﷺ نه روايت دې فرمائي چه ما تپوس اوكړو چه يارسول الله ﷺ! د ټولو نه خرابه ګناه كومه يوه ده؟ نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چه د الله ﷻ سره شريك جوړول حالانكه هغه ذات دې پيدا كړې هم دې.([1])

**قوله تعالیٰ:- وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ**

**مومنان د الله په محبت كښې زيات دی:-** بيانې اوفرمائيل چه ايماندار د الله ﷻ په محبت كښې ډير سخت وی،دهغوی زړونه دالله ﷻ دعظمت نه ډك وی،هغوی دالله ﷻ نه سوا نورو سره د الله په شان محبت نه كوی او نه بل چا طرفته د الله پشان التجا كوی اونه دې نورو طرفته مائل كيږی او نه هغه پاك ذات سره بل څوك شريك كوی.بيا هغه مشركانو ته د عذاب خبر وركوی چه په خپلو ځانونو باندې دشرك په وجه ظلم كوی،اودې خلقو ته دعذابونو خبر وركوی اوكه چرې دوئ عذاب ليدلې وې نو دوئ به يقين كړې ووچه قدرتونو والاصرف الله دې،ټول څيزونه دهغه ماتحت اودهغه پاك ذات د حكم لاندې دی،اودهغه پاك ذات عذابونه هم ډير لوئې لوئې دی.لكه څنګه چه بل ځائې كښې ارشاد فرمائی چه په هغه ورځ به نه دهغه دعذاب په شان څوك عذاب وركولې شي اونه د هغه د رانيولو په شان څوك رانيول كولې شي،دويم مطلب داهم دې كه چرې دوئ ته ددې منظر علم وې نو دوی به په خپل شرك او كفر كلك نه وې ولاړ.

**قوله تعالیٰ:- اِذْ تَبَرَّاَ الَّذِيْنَ اتُّبِعُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا وَرَاَوُا الْعَذَابَ**

**د قيامت په ورځ د معبودانو د عابدانو نه بيزاري:-** چه كوم كوم خلقو خپل خپل پيشوايان جوړكړی وو په هغه ورځ به هغوی ټول ددوی نه بيل بيل شي،فرښتې به اووائي چه ائې الله ﷻ! مونږ ددوی نه بيزاريو دوی به زمونږ عبادت نه كولو.ائې الله ﷻ! ته پاك ذات ئې،هم ته زمونږ ولی ئې،دې خلقو خو به دجناتو عبادت كولو،اوهم په هغوی به ئې ايمان لرلو.داشان به جنات هم دهغوی نه د بيزارئې اعلان كوی او صفا صفا به دهغوی دښمنانان شي.اودعبادت نه به ئې انكار اوكړي.بل ځائې كښې ارشاد دې ﴿ كَلَّا سَيَكْفُرُوْنَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴾ چه كومو خلقو عبادت كولو،هغوی به ټول په ټوله دقيامت په ورځ ددوی د عبادت نه انكار كوی اودهغوی دښمنانان به جوړ شي.دحضرت ابراهيم ﷺ فرمان دې چه ﴿ اِنَّمَا

---

[1] صحيح بخاري : كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ( فلا تجعلوا لله اندادا) : ۷۵۲۰،صحيح : ۲۵۷)-

اتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا ﴾تاسو دالله ﷻ نه سوا دبتانو محبت په زړه کښې اچولې دې او د هغې عبادت مو شروع کړې دې.دقیامت په ورځ به هغوی ټول ستاسو دعبادت نه انکار کوی اوبه خپلو کښې به په یوبل لعنت وائی اوستاسو استوګنه به جهنم وی اوستاسوبه هیڅوك مددګار نه وی.داشان بل ځائې کښې فرمائی چه﴿وَلَوْ تَرٰى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ ﴾یعنی داظالمان به دالله ﷻ مخکښې ولاړ وی او خپلو پیشوایانو ته به وائی که چرې تاسو نه وې نومونږ به ایماندار جوړشوی وو.هغوی به اووائی چه ستاسو د شرك تعلیم مونږ راګیر کړو.اوس به ټول په زړه کښې پښیمانه وی او د هغوی په څټونو کښې به دهغوی دعملونو طوقونه وی.اوبه بل ځائې کښې دی چه په هغه ورځ به شیطان هم وائی چه ﴿اِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ وَوَعَدْتُّكُمْ ﴾یعنی الله ﷻ تاسو سره حقه وعده کړې وه او ما چه تاسو ته کوم شنه باغونه خودلی وو هغه محض دهوکه وه.په تاسو باندې خو زما هیڅ زور نه وو.البته دومره وه چې ماتاسوته ونیل اوکړو اوتاسو قبول کړه اوس په ماباندې ملامتیا مه وایې په خپلو ځانونو باندې لعنت او ملامته وایی نه څه ستاسو مدد کولې شم اونه تاسو زما مدد کولې شئ.څه ستاسو د شوی شرك نه انکاری کوم.او په دې پوهه شئ چه د ظالمانو دپاره یو دردناك عذاب دې.

**قوله تعالی:-** وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْاَسْبَابُ

بیابه هغوی عذاب اوګوری اوټول اسباب به منقطع شی،نه به څوك د تښتیدو په ځائې کښې وی اونه به څوك خلاصیدې شی،دوستئ په ختمې شی او رشتې به ماتې شی.

**قوله تعالی:-** وَقَالَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا لَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّاَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوْا مِنَّا ؕ

**دنیا ته د دوباره تلو ارمان:-** بلادلیله خبرې منلو والا اوبې وجه اعتقاد لرلو والا او سجدې کولو والا او اطاعت کولو والا چه کله خپل پیشوایان داشان بری الذمه اووینی اواو ګوری نو ډیر په حسرت سره به اووائی که اوس مونږته یو ځل دنیا ته دواپس کیدو موقع ملاؤ شی نومونږ به هم ددوی نه داشان بیزاره شو لکه څنګه چه دوی زمونږ نه شوی وو.نه به دوی طرفته توجه کوؤ اونه به ددوی خبره منو،اونه به دوی الله ﷻ سره شریك ګڼړو،بلکه د یوالله ﷻ خالص عبادت به کوؤ.که دوی واپس هم شی نوهغه به کوی چه کوم نې ددې نه مخکښې کړی وو لکه فرمائی چه ﴿وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ﴾ ددې وجې دلته فرمائی چه ددوی کرتوت به الله ﷻ داشان ښائی چه په هغې به دوی حسرت او افسوس کوی یعنی نیك اعمال چه کوم وو هغه هم ضائع شو لکه بل ځائې کښې دی چه ﴿وَقَدِمْنَآ اِلٰى مَا عَمِلُوْا﴾ او بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿ اَعْمَالُهُمْ كَرَمَادِ﴾ او بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿ اَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍ﴾ یعنی د دوی عملونه برباد دی،ددوی دعملونو مثال دهغه ایرې په شان دې چه تیزې هواګانې هغې والوزوی،ددوی عملونه د شګې په شان دی چه دلرې نه اوبه ښکاری خو کله چه نزدې ورشی نو شګه وی .بیا فرمائی چه دا خلق داوور نه وتلووالا نه دی.

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ كُلُوْا مِمَّا فِى الْاَرْضِ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ

اے خلقوا | خورئ | دهغه څیزونو نه | اچې په زمکه کښې دی | حلال | پاك |

انې خلقوا دزمکې په سر چې کوم حلال اوپاکیزه څیزونه موجود دی د هغې نه خوراك څکاك کوئ

وَّلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ۝

اوتابعداری مه کوئ یعنی مه ځئ|په قدمونو دشیطان پسې | بیشکه هغه ستاسو |دشمن | ښکاره دې

اودشیطان په جوړه کړې لارې پسې مه ځئ|..................هغه خوستاسوښکاره دشمن دې

| إِنَّمَا | يَأْمُرُكُمْ | بِالسُّوْءِ | وَالْفَحْشَاءِ | وَأَنْ | تَقُوْلُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه \| هغه حکم کوی تاسو ته \|په بدئ سره \| او دبې حیایئ په کارونو سره \| او دا چې \| اووایئ تاسو | | | | | |
| هغه خوبه تاسوته د بدو او قبیح کارونوحکم کوی\| اودابه درته وائی په الله ﷻ پورې داسې دروغ خبرې | | | | | |
| عَلَى اللهِ | مَا | لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ | | | |
| \| د الله په باره کښې \| هغه خبرې \|چې نه دی معلومې تاسو ته \| | | | | | |
| اوتړئ چې دهغې تاسو ته پخپله هم نشته \| | | | | | |

**قوله تعالی:- يَأَيُّهَا النَّاسُ كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ حَلٰلًا طَيِّبًا**

**حلال رزق خورئ** :مخکښې چونکه د توحید بیان شوې وو ددې وجې دلته دابیان کیږی چه د ټول مخلوق رازق هم هغه پاك ذات دې.فرمائی چه زما دا احسان هم مه هیرونی چه تاسو دپاره مې حلال څیزونه پاك کړل او هغه تاسو ته خوښ او لذیذ دی.او هغه نه بدن ته تکلیف رسوی او نه صحت ته او نه عقل ته.څه تاسو لره منع کوم چه تاسودشیطان په لار مه ځئ:لکه څنګه چه نور خلق په دې لار روان شو او حلال څیزونه ئې په خپل ځان حرام کړل.

**تحریم د حلالو د شیطان لمسه ده**:- صحیح مسلم کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه پروردګار عالم فرمائی چه ماکوم مال خپلوبندګانوته ورکړې دې هغه مې دهغوی دپاره حلال کړی دی.ما خپلو بندګان موحدین پیدا کړل مګر شیطان هغوی د دین حنیف نه واړول او زما حلال څیزونه ئې په هغوی باندې حرام کړل.([1])

**د سعدبن ابی وقاص ﷺ دعا قبلیدل**:- د نبی کریم ﷺ په وړاندې چه کوم وخت ددې آیت تلاوت اوشو نو حضرت سعدبن ابی وقاص ﷺ اودریدو او وې فرمائیل چه یارسول الله ﷺ ما دپاره دعا اوکړئی چه الله ﷻ زما دعاګانې قبلوی.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ائې سعد ﷺ !پاك څیزونه او حلاله لقمه خوره الله ﷻ به ستادعاګانې قبلوی،قسم دې په هغه پاك ذات چه دهغه په لاس کښې د محمدروح خان دې حرامه لقمه چه انسان په خپله خیټه کښې اچوی ددې په وجه دد ه څلویښت ورځې عبادت نه قبلیږی .چه د چا پرورش په حرامو اوشو هغه جهنمی دې.([2])

**قوله تعالی:- وَلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ۚ إِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ**

**شیطان د انسان دشمن دې**:- بیانې اوفرمائیل چه شیطان ستاسو ښکاره دښمن دې لکه څنګه چه بل ځائې کښې فرمائی چه شیطان ستاسو دښمن دې،تاسو هغه خپل دښمن اوګڼړئی اودده د ډلې خو دا خواهش دې چه خلق عذاب طرفته راولی.یو ځائې کښې فرمائی چه ﴿ أَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗ أَوْلِيَآءَ ﴾ آیا تاسو شیطان او دهغه اولادخپل دوستان جوړوئی حالانکه حقیقت کښې هغه ستاسو دښمن دې ،د ظالمانو دپاره خرابه بدله ده.

**دخطوات الشیطان نه مراد**:- خطوات الشیطان نه څه مراددې؟د﴿خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ﴾نه مرادالله ﷻ هره نافرمانی ده ([3])چه په کوم کښې د شیطان غلول وی.امام شعبی رحمه الله فرمائی چه یو سړی د نذر منخته اوکړه چه هغه به خپل هلك ذبح کوی.

---

[1]) صحیح مسلم،کتاب باب الصفا التی یعرف بها فی الدنیا:.....۲۸۶۵)-

[2]) الطبرانی فی الاوسط : ۶۴۹۱،وابن مردویه،)-

[3]) ابن ابی حاتم : ۱ /۲۲۱ )-

**د مسروق واقعه** :-دحضرت مسروق رحمه الله په علم کښې چه کله دا واقعه راغله نو دوی فتوی ورکړه هغه سړي دې ګډ ذبح کړی دا نذر د هلك ذبح کول د خطوات الشیطان نه دی.

**د حلال څيز حرامول يوه بله واقعه**:-ابن مسعود رضی الله عنه يو ورخ د چیلئ په ښکر باندې مالګه اچولې وه او خوړلونې.يو سړې چه دوی سره ناست وو پاسیدو اولرې کیښناستو.دوی اوفرمائیل چه اوخوره هغه اوونیل چه نه څه نې نه خورم.دوی ترېنه تپوس اوکړو چه ستاروژه ده څه.هغه اوونیل چه نه بلکه داما په ځان حرام کړی دی.دوی اوفرمائیل چه دا دشیطان په لار تګ دې.دخپل قسم کفاره ورکړه او دا اوخوره.

**د طلاق يوه مسئله**:- ابو رافع رضی الله عنه فرمائی چه يو ورخ څه د خپلې ښځې نه خفه شوم نو هغې اوونیل څه یو ورخ يهودنړه یم او یو ورخ نصرانيه او زما ټول غلامان آزاد دی که ته خپلې ښځې ته طلاق ورنکړې.نو څه حضرت ابن عمر رضی الله عنه ته ددې مسئلې د پوښتلو دپاره راغلم چه په دې صورت کښې څه اوکړم ؟ نو هغوی اوفرمائیل چه دا د شیطان په قدمونو تګ دې،بیا څه زینب بنت سلمه رضی الله عنها لره ورغلم او په هغه وخت کښې په مدینه منوره کښې د هغې نه زيات څوك فقیه ښځه نه وه.مادهغې نه هم ددې مسئلې تپوس اوکړو.ددې ځانې نه هم دا جواب ملاؤ شو.عاصم رضی الله عنه او ابن عمر رضی الله عنه هم دا فتوی ورکړه.دحضرت ابن عباس رضی الله عنه فتوی ده چه کوم قسم د غصې په حالت کښې اوخوړلې شی او چه کوم نذر په داسې حالت کښې اومنلې شي هغه دشیطان قدم تابعداری ده.ددې کفاره دې دقسم د کفارې برابر ورکړی.

قوله تعالی:-إِنَّمَا يَأْمُرُكُم بِالسُّوءِ وَالْفَحْشَاءِ

**شیطان د ګناه حکم کوی**:- بیا فرمائی چه شیطان تاسو ته د خرابو کارونو اوددې نه هم زیاته زناکاری او ددې نه زیات په الله جل جلاله باندې د هغه خبرو د جوړښت وانی چه د هغې علم تاسو ته نشته دې.هر کافر او بدعتی په دې کښې داخل دې چه هغه د بدئی حکم کوی او بدئی طرفته رابلل کوی.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ

| او کله چې | اوونیلې شی | دوی ته

اوکله چې دوی ته اوونیلې شی

اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ

چې تابعداری اوکړئ | دهغه حکمونو | چې نازل کړی دی الله | نو وائی دوی | بلکه مونږ تابعداری کوؤ

چې کوم حکمونه الله پاک نازل کړی دی په هغې روان شئ | نو وائی نه بلکه مونږ خو د هغه لارو (اوطريقو)

مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا ۚ أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ

دهغه طریقو | چې موندلی دی مونږ | په هغې باندې | پلاران خپل | اګر که وی | پلاران ددوی

تابعداری کوی په کومو چه مونږ خپل پلرونه اونیکونه موندلی دی | اګر که ددوی پلار نیکه

لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ۝ وَمَثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا

چې نه پو هیږی | په هیڅ څیز | اونه نې نیعه لاره موندلی وی | او مثال | دهغه کسانو | چې کافران دی

په هیڅ څیز نه پوهیدل اوسمه لار نې موندلې نه وی(خوبیابه هم د هغوی تابعداری کوی)ددې کافرانو مثال

| كَمَثَلِ | الَّذِيْ | يَنْعِقُ | بِمَا | لَا يَسْمَعُ | اِلَّا | دُعَآءً وَّنِدَآءً |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پشان دمثال | دهغه سړي دي | چي اواز كوي | هغه خناورته | چي هيڅ نه اوري | مګر | بلنه / اواواز |
| داسي دي لكه شپونكي چي خاوري ته اواز كوي / اوهغه سوا دبلني اواواز نه بل هيڅ نه اوري | | | | | | |

| صُمٌّ | بُكْمٌ | عُمْيٌ | فَهُمْ | لَا يَعْقِلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| كانړه دي | ګونګيان دي | ړاندي دي | نودوي | نه پو هيږي په خبره |
| (دوي د حق نه) كانړه دي، او (دحق وينانه) ګونګيان دي (اودحق ليدلونه) ړانده دي نودوي په هيڅ نه پوهيږي | | | | |

**قوله تعالى:-** وَإِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ.....

**ګمراهي او جهالت:** يعني دي كافرانو او مشركانو ته ونيلي كيږي چه كتاب الله اوسنت رسول ﷺ باندي تګ كوني اوخپل ضلالت اوجهالت پريږدئي، نو وائي چه مونږ خو دخپل مشرانو په لارروان يوچه د كوموخيزونو هغوي عبادت كولو مونږ كوو او بيابه ني هم كوو. نوددي په جواب كښي قران پاك وائي چه هغوي خو دفهم اوهدايت نه غافل وو. دا آيت ديهوديانو باره كښي نازل شوي دي.

**قوله تعالى:-** وَمَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا كَمَثَلِ الَّذِيْ يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ اِلَّا دُعَآءً وَّنِدَآءً......

**د مشركانو مثال:** بيا ددوي مثال وركوي چه څنګه څريدونكي خناور د خپل شپونكي يو خبره باندي صحيح نشي پوهيدي، صرف د هغه آواز ني غوږونوته رسي او د خبري د ښه والي او بدوالي نه بي خبره وي. داشان دا خلق هم دي دامطلب هم كيديشي چه دوي د الله ﷻ نه سوا د چا چا عبادت كوي اود هغوي نه خپل حاجتونه او مرادونه غواړي، هغوي نه آوري او نه په دي پوهيږي اونه ني كتلي دي. نه په دوي كښي ژوند يعني ساه شته دي اونه دوي ته څه احساس كيږي. دكافرو دا ډله دحق خبري آوريدو نه كانړه دي، د حق وينا نه ګونګيان او په تياره كښي دي، په حق نشي تلي ړانده دي. د عقل اوپوهي نه لري دي لكه بل خاني كښي ارشاد دي چه ﴿صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِي الظُّلُمٰتِ﴾ يعني خمونږ دخبروبه دروغه ګڼرلو والا كانړه اوګونګيان دي. چه الله څوك غواړي نو ګمراه كوي ني او چه څوك غواړي نو په نيغه لار ني راولي.

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
|---|
| اے هغه كسانو چي ايمان مو راوړي دي |
| اني ايماندارو! |

| كُلُوْا | مِنْ طَيِّبٰتِ | مَا رَزَقْنٰكُمْ | وَاشْكُرُوْا | لِلّٰهِ | اِنْ كُنْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| خوري | پاك هغه څيزونه | چي دركړي دي مونږ تاسو ته | او شكر اوباسئ | د الله | كه چري يئ تاسو |
| زمونږ دركړي پاكيزه (حلاله) روزي خورئي / اود الله شكر اوباسئ كه تاسو په ربنتيا صرف د الله ﷻ | | | | | |

| اِيَّاهُ | تَعْبُدُوْنَ | اِنَّمَا | حَرَّمَ | عَلَيْكُمُ | الْمَيْتَةَ | وَالدَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چي خاص هغه لره | عبادت كوئ | بيشكه | حرام كړل الله | په تاسو باندي | مرداره | او وينه |
| عبادت كوئ / بيشكه الله په تاسو باندي مرداره (چه په بغيرد ذبحي نه مړه شوي وي) او (بهيدلي) وينه | | | | | | |

| وَلَحْمَ | الْخِنْزِيْرِ | وَمَآ | اُهِلَّ | بِهٖ | لِغَيْرِ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوغوښه | دخنزير | او هرهغه څيز | چي نوم اغستلي شوي وي | په هغي باندي | سوا د الله |
| دخنزير غوښه اوداسي مذبوحه چي دالله نه بغير د بل چانوم پري (د ذبحي په وخت) ونيلي شوي وي حرام كړي دي | | | | | |

| وَّلَا عَادٍ | غَيْرَ بَاغٍ | اضْطُرَّ | فَمَنِ |
|---|---|---|---|

نو څوک اچي مجبوره کړي شوا په دې حال کښې چې قانون ماتونکي نۀ وي ا اونۀ دحد نه اوړيدونکي وي

خوڅوک چي دې حرامو څيزونونه محتاج شوا اوپه خوړلو کښې د خوند طلبګار نه وي ا اودحد نه زيات خوراک کونکي نه وي

| رَّحِيمٌ | غَفُورٌ | إِنَّ اللَّهَ | عَلَيْهِ | فَلَا إِثْمَ |
|---|---|---|---|---|
| مهربان دې ا | بښونکي ا | بيشکه چي الله ا | په هغه باندې ا | نونشته ګناه ا |

نوبيا (دې په خوراک کولو کښې) څه ګناه نشته ا بيشکه الله پاک بښونکي مهربان دې ا

**قوله تعالى:- يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ**

**حلال او حرام رزق څه څيز دې ؟:-** په دې آيت کښې الله ﷻ خپلو بندګانو ته حکم ورکوی چه تاسو پاك او صفااوحلال اوطيب څيزونه خورئ اوزما شکراداکوئ، حلاله نمړئ د عبادت د قبوليت سبب دې او حرامه نمړئ دعدم قبوليت سبب دې.

**قوله تعالى:- وَاشْكُرُوا لِلَّهِ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ**

**د حلال رزق خوړل او دهغې د شکر حکم:-** مسند احمد کښې حديث کښې دې چه نبی کريم ﷺ فرمائی چه انې خلقوا الله ﷻ پاك دې اوپاك څيزونه قبلوی.هغه رسولانواوايمان والو ته حکم کړې دې چه هغوی دې پاك څيزونه خوری اونيك عملونه دې کوی.فرمان دې چه ﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ ﴾ او فرمائی چه ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ﴾بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه يو سړې اوږد سفر کړې وی او دهغه ويښته بير وی اوپه هغه ګردوغبار وی اوخپل لاسونه ئې آسمان طرفته اوچت کړې وی او په ډيره زارئ سره الله ﷻ نه سوال کوی اودهغه لباس اوخوراك ټول حرام وی، ددې وجې دهغه په داسې وخت کښې داسې دعا هم نه قبليږی.[1]

**قوله تعالى:- إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ**

**د حرامو څيزونو بيان:-** دحلالو څيزونو ذکر کولو نه پس بيا دحرامو څيزونو بيان کيږی چه تاسوباندې مردارخناورچه په خپل مرګ مړه شوی وی اوهغه شرعی طور سره نه وی ذبح کړې شوې حرام دې.که چا هغه په مرئی خفه کولو سره مړ کړې وی يا ئې لرګی وغيره سره وهلې وی او مړشوې وی يا يوځائې نه راغوزيدلې وی اومړ شوې وی يا نورو خناورو دې په خپلوښکرونوسره مړکړې وی يا درنده دې مړ کړې وی، دا ټول په مرداره کښې داخل دی.او حرام دی.

**دسمندری مردارې حکم:-** ليکن په دې کښې د اوبو خناورمخصوص دی هغه اګر چه پخپله مړ شی خو بيا هم حلال دی.قران پاك فرمائی چه ﴿ أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ ﴾ ددې پوره بيان به ددې آيت په تفسير کښې انشاء الله راشی.دعنبر نومې خناور مړ ملاويدل او دحضرات صحابه کرامو ﷺ ددې خوړل،بيا نبی کريم ﷺ ته ددې خبر کيدل اودنبی کريم ﷺ ددې جائز ګنړل دا ټول په حديث کښې دی.يوحديث کښې دی چه د سمندر اوبه پاکې دی او ددې مړه حلال دی.[2]

يو بل حديث کښې دی چه حضرت رسول الله ﷺ فرمائی چه دوه مردارې او دوه وينې په مونږ حلالې دی [3]① مهې ②مولخ ③ کليجی ④توری.[4] په سورة مائده کښې به ددې بيان تفصيل راشی انشاء الله.

---

[1] احمد: ۳۲۸/۲،صحيح مسلم: کتاب الزکاة باب قبول الصدقة من الکسب الطيب: ۲۳٤٦)-

[2] صحيح بخاری کتاب المغازی باب غزوة سيف البحر : ٤۲٦۲،صحيح مسلم: ۱۹۳۵)-

[3] ابو داود کتاب الطهارة باب الوضوء بماء البحر : ۸۳،صحيح ترمذی :٦۹،نسائی : ۳۳٦)-

[4] ابن ماجة کتاب الاطعمة باب الکبد والطحال : ۳۳۱٤،وسنده ضعيف وروی البيهقی : ٤۸۰/۱)-

**د مردارې د پيو او اګئ حکم:-** د مردار څناور پئ او دهغې اګئ چه په هغې کښې وی نجس دی.دحضرت امام شافعی رحمه الله مذهب هم دادې،ددې وجې چه هغه هم د مردارې يو جزء دې.حضرت امام مالك رحمه الله نه يو روايت دا دې چې هغه پاك دی ليکن دمردارې دملاويدو په وجه نجس دی.

**د مردارې چرګې د اګئ حکم**

**مسلک حنفي:-** امام ابو حنيفه رحمه الله فرمائی دغه شان د دوی شاګردان ټول په دې متفق دی چه د مردارې چرګې اګئ پاکې دی هغه خوړې شی او په استعمال ئې راوستې شی.او د مردارې دپيو په باره کښې د امام ابو حنيفه رحمه الله قول دې چه پاک دی او صاحبين فرمائی چه مکروه دی (احکام القرآن للجصاص (۱۲۸/۱) شاه فيصل غفرله).

**د مردارې د وازګو حکم:-** دا شان دمردارې هغه وازګه (هغه پئ چه کله يو څناور پيداشی او دريو ورځو پورې دهغه بچې هغه پې څکی اوهغه ټينګ پئ وی) مشهورمذهب ددې بزرګانو په نيز دا دې چې دا ناپاك دی.اګر چه په دې کښې اختلاف هم دې.د صحابه کرامو رضي الله عنهم دمجوسيانو پنير خوړل اګر چه په هغوی باندې په طورد اعتراض واردکيديشی مګر جواب امام قرطبی رحمه الله دا ورکړې دې چه پئ ډير کم وی او يو بهيدونکې څيز چه کله داسې څيز زيات کښې پريوزی نو هيڅ حرج نشته دې.

**قرانی حلال او حرام:-** د نبی کريم ﷺ نه د غوړو،پنيرو او د ځنګلی خر متعلق تپوس کيږی نو نبی کريم ﷺ فرمائی چه حلال هغه دی چه کوم الله ﷻ په خپل کتاب کښې حلال کړی دی او حرام هغه دی چه کوم الله ﷻ په خپل کتاب کښې حرام کړی دی.او چه دکوم بيان نشته دې هغه ټول معاف دی.([1])

**قوله تعالى:-** وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ

**د خنزير د حرمت بيان :-** بيا ئې اوفرمائيل چه د خنزير غوښه هم حرامه ده که هغه ذبح هم کړې شی او که پخپله مړشوې وی.د خنزير د وازګې هم دا حکم دې،ددې وجې چونکه هغه اکثر غوښه وی او وازګه غوښې سره وی،نو غوښه حرامه شوه او وازګه هم حرامه شوه.دويم د دې وجې هم چه په غوښه کښې چربی شوې وی اود قياس اقتضا هم دا ده.

**قوله تعالى:-** وَمَآ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ

**د غير الله د تقرب دپاره ذبح شوې څناور حرام دې :-** بيا فرمائی چه کوم څيز د الله ﷻ نه سوا د بل چا په نوم مشهورکړې شی هغه هم حرام دې.د جاهليت په زمانه کښې کافروخلقو به دخپلوباطلو معبودانو په نوم څناور ذبح کول چه کوم الله ﷻ حرام کړل.

بوخل يوې ښځې د يو ې ګوډئې په نکاح کولو باندې يو څناور ذبح کړو نو حضرت حسن بصری رحمه الله فتوی ورکړه چه ددې خوراك کول نه دی پکار ځکه چه هغه ديو تصوير په نوم ذبح کړې شوې دې.

حضرت عائشه رضي الله عنها نه يوخل سوال کيږی چه عجم د خپلو تهوارونو او اخترونو په موقعو باندې چه څناور ذبح کوی او مسلمانانو ته هم ددې هديه ليږی دهغې غوښه خوړل پکار دی که نه.نو وې فرمائيل چه دهغه ورځې دعظمت دپاره چه کوم يوڅناور ذبح شی هغه مه خورئی،خو دهغوئ د ونو ميوې خورئی.([2])

**قوله تعالى:-** فَمَنِ اضْطُرَّ

**د مجبورئ په وخت کښې د حرامو خوړلو اجازت:-** بيا الله ﷻ د ضرورت او حاجت په وخت کښې چه بل څه د خوراك دپاره نه ملاويږی حرام څيزونه خوړل مباح کړی دی.ارشاد فرمائی چه کوم سړې بې بسه شی او هغه باغی او سرکشه کيدو والا نه وی نو په هغه باندې د دې څيزونو په خوراك کښې هيڅ ګناه

---

[1] ترمذی : کتاب اللباس باب ماجاء فی لبس الفراء: ۱۷۲۶،ابن ماجة باب اکل الجبن والسمن : ۳۳۶۷،المستدرک : ۳۷۵/۲،وهو حديث حسن)-

[2] القرطبی : ۲۲٤/۲)-

نشته دي.الله ﷻ بخښونکي مهربان ذات دي.

**قوله تعالى:- غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ**

**د باغ او عاد تفسير:-** دباغ اوعادپه تفسير کښې حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه ډاکو يا لاره شوکونکي ،په مسلمان بادشاه حمله کوونکې،داسلام د سلطنت مخالف او د الله ﷻ نافرمانئ کښې سفر کونکي مراددي.د داسې خلقو دپاره دداسې اضطراب په وخت کښې حرام څيزونه هم حرام وی.د غير باغ تفسيرحضرت مقاتل بن حيان رحمه الله چې دا هم کوی هغه دا حلال نه ګڼړی[1]او ددې نه دمزې اولذت اخستلو والا نه وی،ددې وريتول اوددې لذيذه کيدل او پخول اوبيا ددې خوراك نه دې پکار بلکه څنګه چه وی صرف د خان دبچ کيدو دپاره دې اوخوری او که خان سره اخستل غواړی نو صرف دومره دې واخلی چه دې پرې ژوندې پاتې شی.او د حلالو څيزونو ملاويدو پورې باقی پاتې نشی او کله چه حلال څيزونه ملاؤ شی نو بيا دې دا اوغورزوی.حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه دادې بنه په مړه خيټه نه خوری.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه کوم سړې ددې په خوراك مجبور کړې شی اوبې اختياره کړې شی نو دهغه هم دا حکم دې.

**په اضطراری حالت کښې مرداره خوړل که د بل چا څيز خوړل:-** يو سړې ډير اوږې شو اوبې بسه شو اوده ته يو مردار څناور په نظر راغلو او ورسره ئې يو بل حلال څيز هم اوليدو چه په هغې کښې نه درشتې ماتيدل وی او نه په دې کښې څه تکليف وی نو ده ته پکار دی چه دې دا بل څيز اوخوری مردار دې نه خوری،بيا آيا دهغه څيز قيمت يا هغه څيز به دده په ذمه وی يا نه.په دې کښې دوه اقوال دی،① يو دا چه وی به ② او دويم دا چه نه وی.داکوم قول کښې چې دا دی چې نه به وی يعنی اول قول نو ددې قول تائيد د ابن ماجه په حديث پاک کښې شته دې.

**د عهد نبوی يوه واقعه:-** حضرت عباد بن شرحبيل غزنوی رضي الله عنه وائی چه يو کال قحط راغلو،څه مدينې ته لاړم،اويو پټی نه مې څه وږی راوشوکول او هغه مې خوړل،لږ وږی مې په څادر کښې واچول او روان شوم.دپټی مالك څه اوليدم او څه ئې اونيولم او وې وهلم او زما نه ئې څادر واخستلو.څه نبی کريم ﷺ لره ورغلم او نبی کريم ﷺ ته مې ټوله واقعه بيان کړه.نو نبی کريم ﷺ هغه سړی ته اووئيل چه دې اوږی ته نه خو تا خوراك ورکړې دې او نه دې ددې دپاره څه بل کوشش اوکړو اونه دې دې پوهه کړو.دا بيچاره نادان وو اوږې وو،لاړشه اودده څادر واپس کړه او يو وسق يا نيم وسق ده ته غله ورکړه.( يو وسق د شلورو منو برابر وی).[2]په يو بل حديث کښې دی چه په ونوکښې د زوړندو ميوو په نسبت کښې د نبی کريم ﷺ نه تپوس اوشو نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم حاجتمند سړې دا اوخوری او خان سره دا يونسي نو په ده باندې څه ګناه نشته دې.الخ.[3]

حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه د آيت مطلب دادې چه د اضطرار او بې بسئ وخت کښې دومره خوړلو کښې هيڅ حرج نشته دې.دا هم مروی دی چه درې نمړو نه زياتې خوړل نه دی پکار.غرض داسې وخت کښې دالله ﷻ مهربانی اونوازش سره دا حرام دده دپاره حلال دی.

مسروق رحمه الله فرمائی چه د اضطرار په وخت کښې چه کوم سړې حرام څيز او نه خوری او مړشی هغه جهنمی دې.[4] دې نه معلومه شوه چه داسې وخت کښې داسې څيز خوړل ضروری دی.په دې کښې نه صرف اجازت دې،هم دا خبره زياته صحيح ده لکه د بيمار روژه پريښودل وغيره.

---

[1] ابن ابي حاتم: ۱/۲۳٦)-

[2] ابوداود كتاب الجهاد باب ابن السبيل ياكل من التمرة: ۲٦۲۰،وسنده صحيح: نسائي: ۵٤۱۱،ابن ماجة: ۲۲۹۸)-

[3] ابوداود كتاب للقطة باب التعريف باللقطة : ۱۷۱۰.وهو حسن ترمذى: ۱۲۸۹،نسائي: ٤۹٦۱)-

[4] بيهقى ۹/۵٦۳٤)-

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ |
| بيشكه هغه كسان |
| څوک چي |
| يَكْتُمُوْنَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ الْكِتٰبِ وَيَشْتَرُوْنَ بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا |
| چي پټوي اهغه اچي نازل كړي دي الله اچه كتاب دي ا او اخلي ا په هغې باندي ا پيسې لږې |
| دالله راليږلي شوي كتاب پټوي (د دي مسائل)...........................اوپدي باندي لږ قيمت (د دنيا) اخلي |
| اُولٰٓئِكَ مَا يَاْكُلُوْنَ فِيْ بُطُوْنِهِمْ اِلَّا النَّارَ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ |
| داكسان ا نه اچوي ا په خيټوخپلو كښي ا مګر ا اور ا او به نه كړي خبري دهغوئ سره الله |
| نوهغوئ په حقيقت كښي نور څه نه كوي خپلي خيټي په اورډكوي ا او الله به ورسره د قيامت په ورځ خبري |
| يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ |
| په ورځ دقيامت ا اونه به پاك كړي هغوئ ا اودهغوئ دپاره ا عذاب ا دردناك دي ا دا ا هغه كسان دي |
| نه كوي ا اونه به دوي دګناه نه پاك كړي ا ا ودوئ ته به دردناك عذاب وركولي شي ا داهغه كسان دي |
| اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ۚ |
| چي واني اخستله ا ګمراهي ا په بدل دهدايت كښي ا او واني اخستلوعذاب ا په بدله دبښاني كښي |
| چي دهدايت بدل كښي ئي ګمراهي اخستي ده ا او دبښني بدل كښي ئي عذاب په بيعه اخستي دي |
| فَمَآ اَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ۝ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ |
| نو عجيبه ده چي څه ځيز اصبرور كړو هغوئ له ا په اور باندي ا دا په دي وجه ا چي بيشكه الله ا |
| نودوي لره تعجب دي چه په اور باندي صبر كوي (څكه چه د دوي دا عمل سبب د اور دي) ا دا څكه چي الله پاك |
| نَزَّلَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ ۗ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِي الْكِتٰبِ |
| نازل كړو كتاب ا په حق سره ا او بيشكه هغه كسان ا چي اختلاف ئي كړي دي ا په كتاب كښي |
| خپل كتاب په حقه راليږلي دي ا اوچاچي د (الله پاك) دكتاب په مسئلو كښي ا ختلاف اوكړو |
| لَفِيْ شِقَاقٍۭ بَعِيْدٍ ۝ |
| په مخالفت كښي لري لاړل ا |
| هغوئ په جګړو كښي ډير لري لاړل ا |

**قوله تعالى:- اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ الْكِتٰبِ**

**بدترين علماء حق پټونكي**: چه كوم يهود د نبي كريم ﷺ دصفاتو آيتونه پټوي كوم چي په تورات كښي دي اوددې په بدله كښي دعريوخوشامندي كوي او عوامو نه تحفې او هديے اخلي او ددې فاني دنيا په بدله كښي خپل آخرت خرابوي، دوی ته ويره ده كه د نبي كريم ﷺ نبوت رښتوني اودنبي كريم ﷺ د دعوې تصديق آيتونه چه كوم په تورات كښي دي خلقو ته ښكاره شي نو خلق به د نبي كريم ﷺ ماتحت

شي او هغوی به پریږدی.دديٍ ویرې په وجه نې مغفرت او هدایت پریخودو اوضلالت او عذاب باندې خوشحاله شو.نو دديٍ وجي په هغوی باندې ددنیا او آخرت رسوائی نازله شوه.د آخرت رسوائی خو ښکاره ده اوپه دنیا کښې هم د هغه خلقو مکر ښکاره شو،وخت په وخت چه کوم څیزونه دې بدترینو عالمانو پټول هغه ښکاره شو.ددې نه علاوه د نبی کریم ﷺ معجزې او د حضرت پاك عادتونو خلق د نبی کریم ﷺ په تصدیق باندې آماده کړل اودهغوی هغه ډله دهغوی دلاس نه لاړه دکوم نه چه دوی دالله ﷻ کلام پټ کړې وو چه دهغوی نه لاس وینخی.دې خلقودنبی کریم ﷺ نه بیعت اوکړواو ایمان نې راوړو او نبی کریم ﷺ سره يو ځائې شو او د هغوی حق پټول ورته معلوم شو او هغوی سره نې باقاعده جهاد اوکړو.په قرآن پاك کښې دهغوی دداسې رازونو پټولو حرکتونو ځائې په ځائې بیان شوې دې.

**قوله‌تعالی:-** وَيَشْتَرُونَ بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۙ أُولَٰئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ...

**د کتمان حق په عوض کښې مال خوړل اور د جهنم دې:-** او فرمائی چه دا کوم مال چه تاسو خورئ او تاسو دالله ﷻ خبرو لره پټونې ادا په اصل کښې داور سکروټې دی اودا تاسو په خپلو خیټو کښې اچونې **دیتیمانو مالو خوړونکی ::** قرآن پاك د هغه خلقو باره کښې دا فرمانیلی دی چه کوم خلق د یتیمانو مالونه په ظلم سره خوری چه هغوی هم په خپلو خیټوکښې د جنهم اور اچوی.او د قیامت په ورځ به تیز اور ته داخلیږی.

**دسرو سپینو په لوښو کښې خوراك کول:-** صحیح حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه کوم سړې دسرو اوسپینو په لوښوکښې خوراك کوی هغه په خپله خیټه کښې د جهنم اور اچوی.(۱)

**قوله‌تعالی:-** وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ

**د قیامت په ورځ د الله خبرې نه کول:-** بیا الله ﷻ فرمائی چه الله ﷻ به دوی سره د قیامت په ورځ خبرې هم نه کوی،او نه به دوی پاك کړی بلکه دردناك عذابونو کښې به اخته وی.ځکه چه ددوی د کړو په وجه په دوی باندې دالله ﷻ عذاب نازل شو.او اوس دوی نه د رحمت نظر لرې کړې شو او دوی د ستائینې اوتعریف قابل نه دی.بلکه سزا به ورکولې شی او هلته به کړیږی.

**درې قسمه خلق بد نصیبه دی:-** حدیث کښې دی چه درې قسمه خلقو سره به الله ﷻ خبرې اترې نه کوی اونه به هغوی طرفته ګوری اونه به هغوی پاکوی او دهغوی دپاره به دردناك عذاب وی.بوډا زناکار ، دروغژن بادشاه،او متکبره فقیر.(۲)

**قوله‌تعالی:-** أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ

**دهدایت په مقابله کښې ګمراهی اخستل:-** بیافرمایی چه دې خلقودهدایت په بدله کښې ګمراهی اخستې ده.دوی ته پکار ووچه په تورات کښې کوم صفات دحضور نبی کریم ﷺ متعلق وو هغه نې بې خبرو خلقو ته رسولی وې.اود دې هدایت) په بدله کښې هغوی (د نبی کریم ﷺ د صفاتو) پټول کړی وو او پخپله ئې هم د نبی کریم ﷺ نه انکاری اوکړو.اودنبی کریم ﷺ تکذیب نې اوکړو.نوپه اظهار کولو سره دوی ته چه کوم نعمتونه اورحمتونه ملاویدو والا وودهغې په بدله کښې دوی عذابونه اوزحمتونه واخستل.

**قوله‌تعالی:-** فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ

بیافرمائی چه دوی ته به دردناك او حیران کن عذاب ورکولې شی چه کتونکې به حیران پاتې شی او دامعنی هم ده چه دوی د اورپه عذاب باندې کوم يو څيز آماده کړل چه دوی دالله ﷻ په نافرمانئ کښې مشغول شو.

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الاشربة باب انیة الفضة : ۵۶۳۴،صحیح مسلم: ۲۰۶۵)-

(۲) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان غلظ اسباب الازار: ۱۰۷)-

قوله تعالى:- ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ نَزَّلَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ ۗ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِي الْكِتٰبِ

**د عذاب سبب:-** بیا ارشاد فرمائي چه دوی د دې عذاب مستحق شو چه دې خلقو د الله ﷻ خبرې په خندا واړولې او هسې توقې ئې اوګڼلې. او دوئ ته چه دالله ﷻ کوم کتاب دحق او باطل واضح کولو دپاره نازل شوې دې، هغوئ ددې مخالفت اوکړو.. چه کومې خبرې ښکاره کول وو هغه دوئ پټې کړې، دانې دالله ﷺ نبي سره دښمني اوکړه. د نبي کريم ﷺ صفتونه ئې ښکاره نه کړل او حقیقت دادې چه ددې کتاب باره کښې اختلاف کوونکي په لرې ګمراهئ کښې پریوتل.

لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ

| نۀ ده | دا نیکی | چې اوګرځوئ تاسو | مخونه خپل |

| نیکی صرف دا نه ده چې تاسو (په مانځه کښې) خپل مخونه

قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ

طرف دمشرق | او مغرب ته | لیکن | نیکی داده چې | څوك | ایمان راوړې | په الله

مشرق ته یا مغرب ته اوګرزول | بلکه نیکي کونکي هغه کس دې | چې په الله ﷻ

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ ۚ وَاٰتَى الْمَالَ

| اوپه ورځ دآخرت | او په فرښتو | او په کتابونو | اوپه پیغمبرانو | او ورکړی مال

او د آخرت په ورځ او په فرشتو (دالله) اوپه کتابونو اوپه پیغمبرانو باندې پوخ یقین اوساتی || او دالله په

عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ۙ

په محبت دالله کښې | رشته دارانو ته | او یتیمانو ته | او مسکینانانو ته | اومسافرونه ته

محبت کښې خپل مالونه خپلوآنو ته............یتیمانو ته.......مسکینانو..........اومسافرو ته

وَالسَّآئِلِيْنَ وَفِي الرِّقَابِ ۚ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ۚ

او سوالګرو ته | اوخرچ کړی مال په آزادولو دغلامانو کښې | او قائم کړی مونځ | او ورکړی زکاة

اوسوالګرو ته اودغلامانو په آزادولو کښې خرچ کوی || او دمونځ پابندی کوی | اوزکاة ورکوی

وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا ۚ وَالصّٰبِرِيْنَ فِي الْبَاْسَآءِ

او پوره کونکی دی | وعدې خپلې لره | اکله چې او کړی وعده | او صبر کونکی دی | په سختو کښې

اوچې وعده اوکړی نو هغه په ښه شان سره پوره کوی | او په سختو او مرضونو او دجنګ په مشقتونو

وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ؕ وَاُولٰٓئِكَ

اوپه تکلیفونو کښې || اوپه وخت دجنګ کښې | داهغه کسان دی | چې رښتینې دی | اوهم دا کسان چې دی

باندې صبر کوی | هم دغه کسان (دایمان په دعوی کښې) رښتینې دی اوهم دغه خلق (په حقیقت کښې)

هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ۝

دوئ پرهیزګاران دی |

پرهیزګار دی |

**قوله تعالى:- لَيۡسَ الۡبِرَّ اَنۡ تُوَلُّوۡا وُجُوۡهَكُمۡ قِبَلَ الۡمَشۡرِقِ وَالۡمَغۡرِبِ**

**نیکی څه شیز دي ؟:-** دي آیت مبارک کښې د صحیح عقیدې او نیغې لارې تعلیم ورکړې کیږي.حضرت ابو ذر ﷺ چه کله حضور نبی کریم ﷺ نه د ایمان باره کښې سوال اوکړو چه ایمان څه شیز دی ؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ دا آیت مبارک تلاوت اوفرمانیلو.هغه بیا عرض تپوس اوکړو نو حضرت نبی کریم ﷺ بیا دا آیت مبارک تلاو ت اوفرمانیلو.بیا ئې هم دا سوال اوکړو.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمانیل واوره ؛ نیکی سره محبت او بدنی سره دبنمنی ایمان دې،( ابن ابی حاتم) خو ددې روایت منقطع دې.حضرت مجاهد ﷺ حضرت ابو ذر ﷺ نه دا حدیث پاک روایت کوی خو ددوی حضرت ابوذر ﷺ سره ملاقات نه دې شوې

**دایمان نښه :-** یو سړی حضرت ابوذر ﷺ نه تپوس اوکړو چه ایمان څه شیز دې ؟ نودوی هم دا آیت مبارک تلاوت کړو.هغه اوونیل چه صاحبه څه ستاسو نه د نیکئ باره کښې سوال نه کوم.څما سوال دایمان باره کښې دې.نو دوی ﷺ ا وفرمانیل چه واوره یو سړی حضرت نبی کریم ﷺ نه هم دا سوال کړې وو او حضرت نبی کریم ﷺ هم دا آیت مبارک تلاوت کړې وو.هغه (سړې ) هم ستا په شان راضی نه شو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمانیل چه کله یو مومن نیک کار کوی نو د دهٔ زړه خوشحالیږی اودهٔ ته دثواب امید وی او کله چه گناه کوی نو ددهٔ زړه غمگین کیږی او دعذاب نه ویریږی.( ابن مردویه).داروایت هم منقطع دې

**قوله تعالى:- وَلٰكِنَّ الۡبِرَّ مَنۡ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَالۡمَلٰٓئِكَةِ وَالۡكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ**

**د ایت مفهوم:-** اوس ددې ایت مبارک تفسیر وا ورئی.اول مومنانو ته حکم وو چه بیت المقدس ته مخ کوئی اومونځ کوی اوبیا دوی کعبې طرفته راوگرزولې شو.اویدې اهل کتاب او ځینې مومنان سخت خفه شو.نو الله ﷻ ددې حکمت بیانوی چه ددې اصل مقصد دالله ﷻ د فرمان اطاعت دې هغه پاک ذات چه کوم طرفته دمخ کولو اووائی نو هغه طرفته مخ کوئی.اصل تقوی،اصل نیکی ا و کامل ایمان دا دې چه د مالک حکم اومنی.که څوک مشرق طرفته مخ کوی یا مغرب طرفته مخ کوی ا ودا دالله ﷻ حکم نه وی نو دې سره به دې ایماندار نه وی،حقیقت کښې ایماندار هغه دې چه په هغه کښې دا اوصاف وی چه کوم دې آیت مبارک کښې بیان شو.قران پاک کښې یو ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿لَنۡ يَّنَالَ اللّٰهَ لُحُوۡمُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا﴾یعنی ستاسو دقربانئ غوښې اووینې الله ﷻ ته نه رسی بلکه هغه ته تقوی رسی.

حضرت ابن عباس ﷺ ددې آیت مبارک تفسیر کښې فرمائی چه تاسو مونځونه کوئی اونور اعمال مه کوئی، دا څه نیکی نه ده،دا حکم په هغه وخت کښې وو چه کله مکې نه مدینې منورې ته تلی وو.خو بیا دې نه پس نور فرائض او نور احکام هم نازل شو او په هغې عمل کول ضروری اوگرزولې شو.مشرق او مغرب په دې وجه خاص کړې شو چه یهودیان مغرب طرفته اونصرانیان مشرق طرفته مخ کوی.نو غرض دادې چه دا صرف د ایمان کلام دې اوحقیقت د ایمان عمل دې.حضرت مجاهد ﷺ فرمائی چه نیکی دا ده چه زړه کښې د اطاعت ماده وی،د فرض پابندئی سره ادا کول وی،دټولو نیکو عامل وی.حق دادې چه چا په دې آیت مبارک باندې عمل اوکړو نو هغه کامل اسلام واخستلو او د زړه دکومې نې اسلام قبول کړو.ددهٔ ایمان په الله ﷻ باندې دې.دهٔ ته دا معلوم دی چه معبود برحق الله ﷻ دې.د فرښتو وجود اودا خبره چه هغوئ د الله ﷻ پیغام دالله ﷻ مخصوص بندگانو ته راوړی اودا منی چې ټول آسمانی کتابونه حق دی.اودا هم منی چه قران پاک ټولو نه آخری کتاب دې او د مخکښنو کتابونو تصدیق کوونکې دې د ټولو نیکو جامع دې.په دې کښې د دین او دنیا سعادت دې.اودا شان اول نه آخر پو رې ټولو نبیانو باندې ایمان لری او خاص کر په حضرت نبی کریم ﷺ باندې هم.اگر چه ددهٔ مال سره محبت وی خو بیان هم دې مال دالله ﷻ لار کښې خرچ کوی.

**قوله تعالى:- وَاٰتَى الۡمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ**

**مال سره د محبت باوجود هغه صدقه کول:** - صحیح حدیث پاک کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه بهترینه صدقه داده چه ته د خپل صحت حالت کښې مال دالله ﷻ لار کښې خرچ کړې او ستا دې سره محبت هم وی. اودې باوجود چه ستا سره د مال د کمی اندیښنه اود زیاتی رغبت وی. [1] «بخاری ومسلم»
مستدرک حاکم کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ ﴿وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ﴾ اولوستو او وې فرمائیل چه ددې مطلب دادې چه ته دې د خپل صحت په حالت کښې صدقه ورکړې اوستا مال هم خوښ وی اود فقیرئی نه ویریږې او د مالدارئی خواهش لرې. خو ددې روایت موقوف کیدل زیات صحیح دی. اصل کښې دا فرمان د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دې.
قران پاک کښې سورة دهر کښې دی چه ﴿وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ﴾ مسلمان د خوراک د خوښوالی باوجود مسکینانو، یتیمانو او قیدیانو ته خوراک ورکوی او وائی چه مونږ تاسو ته دالله ﷻ درضا دپاره خوراک درکوو. نه ستاسو نه ددې بدله غواړو اونه شکریه. او بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿لَن تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ﴾ ترکومې چه تاسو خپل خوښې څیزونه دالله ﷻ په نوم ورنکړئی نو تاسو حقیقی نیکی نشئ موندئی. او یو ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾ د خپل ضرورت او حاجت باوجود دوی نورو ته په خپل نفس ترجیح ورکوی. ددې خلقو ډیره لویه مرتبه ده. ځکه چه اول قسم خلق دخپلې خوښې باوجود دالله ﷻ محبت کښې نورو ته ورکړه کوی خودې بزرګانو د خپلې خوښې هغه څیزونه چه دکوم دوی محتاج وو نوروته ورکړل او دخپلو حاجتونو خیال ئې هم اونکړو.
**قوله تعالى:** - ذَوِي الْقُرْبَىٰ
**د ذوی القربی مطلب:** - ذوی القربی هغو ته وئیلې شی چه کوم رشته دار وی، د صدقې ورکولو په وخت کښې دوی نورو نه زیات مقدم دی. حدیث پاک کښې دی چه مسکین ته ورکول یو ثواب لری او رشته دار مسکین ته ورکول دوه ثوابونه لری یو ثواب د صدقې او بل ثواب د صله رحمئی. [2]
**قوله تعالى:** - وَالْيَتَامَىٰ
**یتامی:** یتامی نه مراد هغه واړه ماشومان دی چه د هغوی پلار مړ شوې وی. اود دوی څوک ګټې والانه وی او نه دوی پخپله روزی ګټلې شی. حدیث پاک کښې دی چه بلوغت نه پس یتیمی پاتې نشی. [3]
**قوله تعالى:** - وَالْمَسَاكِينَ
**مساکین:** - مساکین هغه دی چه هغوئ سره دومره څه وی چه دهغوئ د خوراک څکاک او اغوستلو دپاره کافی وی. هغوئ سره دې هم حسن سلوک اوکړې شی چه په دې سره د هغوئ حاجت پورا شی اود فقر او فاقې اوذلت د عذاب نه بچ شی.
**مسکین څوک دې؟:** - بخاری اومسلم کښې د حضرت ابوهریره ﷺ نه مروی دی چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چه مسکینان هغه خلق نه دی چه هغوئ غوښتل کوی او یو یو دوه دوه کهجورې یا یو یو دوه دوه نمړئی د خوراک راوړی بلکه مسکینان هغه خلق دی چه هغوئ سره دومره مال نه وی چه دې سره دهغوئ ضرورتونه پورا شی. اونه هغوئ خپل حالت داسې جوړوی چه هغې سره خلقو ته د دوی د محتاجئ علم اوشی او خلق دوی ته څه ورکړی. [4]
**قوله تعالى:** - وَابْنَ السَّبِيلِ

---

[1] صحیح بخاری کتاب الزکوة باب فضل صدقة الشحیح الصحیح : ۱۴۱۹، صحیح مسلم: ۱۰۳۲)-
[2] ترمذی : کتاب الزکاة باب ماجاء فی الصدقة علی ذوی القرابة : ۶۵۸، وهو صحیح، نسائی : ۲۵۸۳، ابن ماجة : ۱۸۴۴)-
[3] ابوداود: کتاب الوصایا باب ماجاء متی ینقطع الیتیم : ۲۸۷۳)-
[4] صحیح بخاری کتاب الزکاة باب : ۵۳، ح: ۱۴۷۹، صحیح مسلم: ۱۰۳۹)-

**ابن السبيل:-** ابن السبيل مسافر ته وائی.دلته ترې مراد هغه مسافردی چه هغوئ د سفر خرچ ختم شوې وی، هغوئ ته دې دومره ورکړی چه دې سره هغوئ خپل وطن ته واپس اورسی.او داشان هغه سړې هم دې چه دالله ﷻ داطاعت دپاره سفر کوی او هغه ته د تلو راتلو خرچ ورکړې شی.میلمه هم دې حکم کښې داخل دې.حضرت عبدالله بن عباس ﷺ میلمه ته هم ابن السبيل وائی.اونورسلف خلق هم.

**قوله تعالى:-** وَالسَّآئِلِيْنَ

**سائلين:-** سائلين هغه خلق دی چه هغوئ خپل حاجت ښکاره کوی اوخلقو نه څه غواړی.دوی ته هم صدقه اوزکوة ورکول پکاردی حضرت نبی کریم ﷺ فرمانی چه دسائل حق دې اگر چه هغه په آس راشی (ابو داود) (۱)

**قوله تعالى:-** وَفِي الرِّقَابِ

**رقاب :-** في الرقاب نه مراد د غلامانو آزادی ده اگر چه دا هغه غلام وی چه هغوئ مالکانو سره د مقرر قيمت ورکولو ليکل کړی وی چه مونږ به تاسو ته دومره قيمت درکوؤ او مونږ به آزاد يو.خو اوس دوی سره د ورکولو دپاره هيڅ نه وی.نودوی سره مدد کول او دوی آزادول دی

دالرقاب اوددې په شان نورو مصارفو خلقو تفسيربه انشاء الله سورة براة کښې انما الصدقات لاندې راشی.

حضرت فاطمه بنت قيس ﷺ فرمائی چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائيل چه مال کښې زکوة نه سوا نورهم حق هم شته.بيا حضرت نبی کریم ﷺ دا آيت مبارک اولوستلو.ددې حديث پاک يو راوی ابوحمزه ميمون اعور ضعيف دی.

**قوله تعالى:-** وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ

**مونځ او زکوة ورکول :-** بيا فرمائی چې مونځ په وخت ادا کوئ اود دې رکوع،سجدې ټبه په اطمينان او خشوع اوخضوع سره کوئ .څنگه چه ددې د ادا کولو حکم شريعت ورکړې دی.او زکوة دې هم ورکوی يا دا معنی چه خپل نفس د خرابو او ذليل اخلاقو نه پاک کړئ.لکه فرمائی چه ﴿قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى﴾ يعنی خپل نفس لره پاکونکې کامياب شو او او چا چې نفس گنده او خرابو کارونو کښې مشغول کړونو هغه تباه شو.حضرت موسى ﷺ فرعون ته هم دا فرمائيلی وو چه ﴿هَلْ لَّكَ اِلٰٓى اَنْ تَزَكّٰى﴾ آيا ته نصيحت قبلوې؟او بل ځائې کښې دالله ﷻ فرمان دې چه ﴿وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ ۙ الَّذِيْنَ لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ﴾ يعنی د هغه مشرکانو دپاره ويل دې چه دوی زکوة نه ورکوی يا دا چه دوی خپل ځان د شرک نه نه پاکوی.نو دې پورتنی آيت مبارک کښې د زکوة نه مراد نفس يعنی خپل ځان د خرابو خصلتونو،شرک او کفر نه پاکول دی.اوممکن ده چه ددې نه مراد د مال زکوة وی که داسې وی نو بيا باقی نور احکام نفلی د صدقې متعلق دې اوگڼرلې شی.لکه پورته حديث بيان شو چه مال کښې د زکوة نه سوا نور حقونه دی.

**قوله تعالى:-** وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا

**د وعدې پوره کول:-** بيا فرمائی چه وعده پورا کولو والا لکه فرمائی چه ﴿يُوْفُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ﴾ الخ،دا خلق دالله ﷻ وعدې پوره کوی اووعدې نه ماتوی.

**دمنافق درې نښې :** وعدې ماتول دنفاق علامت دې.لکه حديث پاک کښې دی چه دمنافق درې نښې دی.خبرو کښې دروغ ونيل،وعده خلافی کول،امانت کښې خيانت کول،(۲) يو بل حديث پاک کښې دی چه د جنگ په وخت کښې کنځل کول.(۱)

---

(۱) ابوداود کتاب الزکوة باب حق السائل : ۱۶۶۵،وهو حديث حسن-

(۲) صحيح بخاری کتاب الايمان باب علامات المنافق : ۳۳،صحيح مسلم: ۵۹-

**قوله تعالی:-** وَالصّٰبِرِيْنَ فِي الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ

**په درې حالتونو کښې صبر کول:-** بیا فرمائی چه په فقراوفاقه کښې دمال دکمی په وخت کښې د بدن د بیمارئی په وخت کښې ددین دښمنانو سره دجهاد په وخت کښې صبر کولو والاو د فولاد پشان کلک ولاړخلق د﴿صَابِرِيْنَ﴾ نصب په طور د مدح دې.ددې مصیبتونو اوسختو په وخت کښې دصبرتعلیم ورکړې کیږې الله ﷻ دې زمونږ مددګار شی زمونږ په هغه پاک ذات بهروسه ده

**قوله تعالی:-** اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ

بیافرمائی چه ددې صفتونو والاخلق د مضبوط ایمان خاوندان دی.د دوی ظاهر او باطن قول اوفعل یو شان دی او هم دا متقیان دی ځکه چه دوی اطاعت کوی او نافرمانو نه بچ اوسی

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ

| اے هغه کسانو |چې ایمان مو راوړې دې |فرض کړې شوې دې| په تاسو باندې

|.... انې مؤمنانو ............................په ستاسو د قتل شوو کسانو په باره

الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى ؕ اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى ؕ

برابرې په مقدمه دقتل کښې|آزاد په آزاد قصاصیږی|اوغلام په غلام قصاصیږی| اوښځه په ښځه قصاصیږی

کښې برابری فرض شوې ده | دآزاد په بدله کښې آزاد او د غلام په بدله کښې غلام اوښځې په بدل کښې ښځه وژلې شی

فَمَنْ عُفِيَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ

نوهغه څوك|چې معافی اوشوه هغه ته|دطرفه د رورخپل نه|دڅه څیز|نومطالبه ددیت ده| په ښه طریقه

اوکه یوقاتل ته دخپل رور دطرفه څه قدر معافی وکړې شوه نود(خونبها)فیصله په مناسبه طریقه پکار ده

وَاَدَآءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ ؕ ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

او ورکول ددیت دی| معاف کونکی ته|په ښه سلوك سره| دا آسانتیا ده|دطرفه درب ستاسو نه

اوپه راستئ باندې (رقم)ادا کول پکار دی (اولیاؤ د مقتول ته) |دا ستاسو دپروردګار دطرفه آسانتیا

وَرَحْمَةٌ ؕ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝

اورحمت دې| نوهرچا چې| زیاتې اوکړو|روستو ددې فیصلې نه| نو ددې هغه دپاره| عذاب | دردناك

اومهربانی ده | نوڅوک چې ددې نه پس هم دخپل حد نه وړاندې تیر شی| نوهغه دپاره دردناک عذاب دې

وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يّٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ۝

اوستاسو دپاره | په قصاص کښې اژوند دې| اے خاوندانود عقلونو| امیدې چې تاسو|ځان اوساتئ

انې د عقل خاوندانو ستاسو دپاره قصاص اخستلوکښې ژوند دې|امیدې چې تاسوبه(قصاص په وجه) دقتل نه ځان ساتئ

**د ایت شان نزول:-** انې مسلمانانو ! دقصاص په وخت کښې د عدل نه کار اخلئ دازاد بدله کښې ازاد،د غلام بدله کښې غلام،دښځې بدله کښې ښځه قصاص کوئ دې باره کښې د حد نه مخکښې مه ځئ لکه څنګه چه به مخکښې خلقو کول اوداللهﷻ حکم نې بدل کړې وو.ددې آیت مبارک شان نزول دادې چه د جاهلت زمانه کښې بنو قریظه او بنو نضیرو کښې جنګ شوې وو.او په هغې کښې بنو نضیر غالب شوی

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الایمان باب علامات المنافق: ۳۴،صحیح مسلم: ۵۸)-

وو.اوس دا قانون جوړ شوې وو چه کله به دبنو نضير يو سړي د بنو قريظه سړې قتل کړو نو ددې بدله کښې به هغه نشو قتل کولې.بلکه سل وسق قجورې به په طور د ديت ورکړې کيدې او چه کله به د بنو قريظه يو سړې د بنو نضير يو سړې قتل کړو نو ددې قصاص کښې به هغه قتل کولې شو.اوکه ديت به اخستلې شو نو دوچنده ديت به اخستې شو يعنې دوه وسق قجورې به اخستلې شوې.نوالله ﷻ د جاهلت د زمانې دا رسومات ختم کړل.اود عدل او انصاف حکم ئې ورکړو.

**دويم شان نزول:-** د ابو حاتم روايت کښې ددې آيت مبارک شان نزول داشان بيان شوې دې چه دعربو دوو قبيلو کښې به جنګونه کيدل.اسلام نه پس ئې د بدلې اخستلو دپاره تيارې شروع کړو او وې وئيل چه خمونږ دغلام بدله کښې دې دهغوئ آزاد قتل کړې شي او د ښځې بدله کښې دې سړې اووژلې شي نو ددې باره کښې دا آيت مبارک نازل شو.اودا طريقه منسوخ شوه.قران پاک فرمائی چه ﴿النَّفْسَ بِالنَّفْسِ﴾ هر قاتل دې د مقتول بدله کښې وژلې شي که آزاد يو غلام قتل کړې وې اوکه ددې برعکس وې.او که سړې ښځه وژلې وی يا ددې په عکس وی.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دې خلقو به دښځې بدله کښې سړې نه قتل کولو.نو په دې ﴿النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ﴾ نازل شو.

**قوله تعالی:-** ﴿اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى﴾

**د ساه بدله کښې به ساه اخستلې شي:-** نو آزاد خلق ټول برابر دی،د ساه بدله کښې به ساه اخستلې شي که قاتل سړې وی او که ښځه وی.داشان که مقتول سړې وی اوکه ښځه وی.که يو آزاد سړی آزاد سړې قتل کړې وې نو هغه به وژلې شي.داشان به داحکم د غلام او وينځې باره کښې هم جاری کيږی او چه څوک د وژلو په اراده بل لره قتل کړی نوهغه به قصاص کښې قتل کولې شي.او هم دا حکم د قتل نه سوا نورو زخمونو کښې او نورو اندامونو کښې هم دې.

**د عالمانو مذاهب:-** امام مالک رحمه الله فرمائی چې دا آيت په ﴿النَّفْسَ بِالنَّفْسِ﴾ سره منسوخ شوې دې س.د امام ابوحنيفه رحمه الله،امام ثوری رحمه الله،ابن ابی ليلی رحمه الله اود داود رحمه الله هم دا مذهب دې که آزاد يو غلام قتل کړو نو ددې بدله کښې به هم هغه قتل کيږی.دحضرت علی ﷺ،حضرت ابن مسعود ﷺ،حضرت سعيد بن جبير ﷺ،حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله،حضرت قتاده رحمه الله او حضرت حکم رحمه الله هم دا مذهب دې دامام بخاری رحمه الله،علی مدينی رحمه الله،ابراهيم رحمه الله او د يو بل روايت مطابق دحضرت ثوری رحمه الله هم دا مذهب دې که يو مالک خپل يو غلام قتل کړی نو ددې بدله کښې به هغه قتل کيږی.([1]) دليل کښې داحديث پاک بيانوی او فرمائی چه حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه کوم سړې خپل غلام قتل کړی نو مونږ به هغه قتل کوؤ،څوک چه دخپل غلام پوزه پريکړی نو مونږ به دهغه پوزه پريکړو.او چه څوک هغه خصی کړی نو مونږ به هغه نه هم داشان بدله اخلو.

**د ازاد قاتل د غلام مقابله کښې قصاص**

**مسلک حنفی:-** دامام ابوحنيفه رحمه الله مسلک هم دغه دې کوم چه فاضل مفسر بيان کړې دې که قاتل آزاد وی نو دې به د غلام په قصاص کښې قتل کولې شي بيا فاضل مفسر رحمه الله اګرچه په امام ابوحنيفه رحمه الله باندې اعتراض کړې دې ليکن امام اعظم رحمه الله چه کوم مسلک اختيار کړې دې.چه مسلمان به د کافر په قصاص کښې قتل کولې شي.د هغې وضاحت دا دې.

① د قصاص د آيت په عموم استدلال:- امام اعظم رحمه الله د ټولو نه اول د قرآن په عموم باندې استدلال کوی ځکه چه قرآن کښې راغلی دی.﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى﴾ اوس،قتلی،عام دې که مسلمان وی که کافر هريو ته شامل دې نو مطلب د آيت دا شو چه کوم قاتل وی هغه به قتل کولې شي برابره که

---

[1] ابوداود كتاب الديات،باب من قتل عبده اومثل به : ٤٥١٥،وهوحديث حسن،الترمذی : ١٤١٤،نسائی : ٤٧٤٠،ابن ماجة: ٢٦٦٣)-

مقتول نارینه وی که زنانه، مسلمان وی که کافر وی ازاد وی که غلام. دغه شان دویم عموم دا هم دې چه ﴿الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْأُنثَىٰ بِالْأُنثَىٰ﴾ په دې کښې د مطلق حر، عبد او انثی ذکر دې. د مومن او کافر قید په کښې نشته نو د دې د عموم نه معلومه شوه چه قاتل به د مقتول په مقابله کښې قصاص کولې شی که قاتل مسلمان وی او که کافر وی

② **د صحابو په عمل باندې استدلال:-** د دې نه علاوه حضرت عمر، حضرت علي او حضرت عبدالله رضي الله عنهم هم د ذمی په مقابله کښې مسلمان قتل کړې دې د دې تفصیل تاسو په احکام القرآن للجصاص کښې کتلې شئ نو که چرته د کافر په مقابله کښې مسلمان نشو قتل کولې نو دې حضراتو ولې د نبی کریم ﷺ د احادیثو نه خلاف کړې دې او ولې نورو صحابورضی الله عنهم په دوی باندې اعتراض نه دې کړې خکه چه حضرات صحابو کرام کله هم د قرآن او حدیث په مقابله چاته خاموش او چپ نه دی پاتې شوی. نو معلومه شوه چه امام اعظم رحمه الله د حدیث د ظاهر نه اګرچه خلاف ښکاری خو په حقیقت کښې هم په حدیث عامل وو. خکه چه د نبی کریم په احادیثو چه څنګه حضرات صحابه کرام پوهیدل داسې روستو خلق نه پوهیدل. نو هر کله چه دغه درې جلیل القدر صحابو د دې حدیث د ظاهره خلاف کړې دې نو معلومیږی داسې چه د ذکرشوی حدیث مطلب او مفهوم او مراد هغه نه دې کوم چه نورو فقهاؤ اخستې دې بلکه دهغې مطلب به هغه وی کوم چه روستو مونږ بیانوو.

**د خصم د دلیل نه جواب:-** کوم حدیث چه د احنافو د مسلک په مخالفت کښې پیش کولې شی چې «لا یقتل مسلم بکافر» نو د دې تاویل او مطلب ته غوږ شئ (؟) جاری

① اول خو دا چه کافر په دوه قسمه دې یو کافر حربی یعنی هغه کافر چه د مسلمانانو سره جنګ کوی او بل کافر ذمی یعنی هغه کافر چه په اسلامی مملکت کښې اوسیږی او دهغې مطابق قوانین منی او تسلیموی. نو مونږ دا وایو چه په حدیث کښې د کافر نه مراد حربی کافر دې ذمی کافر مراد نه دې او احناف هم د دې قائل دی چې مسلمان به د حربی کافر د قتل په قصاص کښې نشی قتلولې. او په دې دعوی باندې دلیل دا دې چه د دې حدیث په یو روایت کښې دا جمله هم ده ﴿لایقتل مسلم بکافر ولاذوعهد فی عهده﴾ نو ګوره نو دلته دویمه جمله په اوله جمله باندې عطف ده او په معطوف او معطوف علیه کښې مغایرت ضروری وی. نو په اوله جمله کښې د کافر نه حربی کافر مراد دې او په دویمه جمله کښې د ذوعهد نه ذمی کافر مراد دې نو دا حدیث د احنافو د مسلک خلاف نشو. خکه چه احناف خو هم دا وائی که مسلمان حربی کافر قتل کړو. نو مسلمان به د هغې په مقابله کښې نشی قتل کولې

② په حدیث کښې چه د کوم کافر ذکر دې نو دهغې نه د جاهلیت د زمانې کافر مقتول مراد دې یعنی کوم مسلمان چې په زمانه د جاهلیت کښې څوک کافر قتل کړی وی نو د اسلام نه پس به مسلمان قاتل د جاهلیت د دور کافر مقتول په مقابله کښې نشی قتلولولې. او د دې دعوی دلیل دا دې چه نبی کریم دا حدیث د حجة الوداع په خطبه کښې فرمائیلی وو. هغه داسې چه د خزاعه قبیلې یو کس د هذیل قبیلې یو کس په زمانه د جاهلیت کښې قتل کړې وو. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ((الاان کل ذم کان فی الجاهلیة فهو موضوع تحت قدمی هاتین! الایقتل مسلم بکافر ولاذوعهد فی عهده)) دا ټول تفصیل د احکام القرآن للجصاص نه په تسهیل او اختصار سره ماخوذ دې (احکام القرآن (۱ جلد ۲۰۱، ۲۰۰)

**د جمهورو مسلک:-** خو د جمهورو مذهب ددې بزرګانو خلاف دې. دوی وائی چه آزاد به د غلام بدله کښې نشی قتل کولې خکه چه غلام مال دې که هغه په خطاء سره قتل کړې شی نو دیت نشته دې یعنی جرمانه به نه ورکوی صرف ددهٔ مالک ته به ددهٔ قیمت ورکوی. او داشان دده سره ددهٔ دپښو لاسونو وغیره دنقصان بدلې حکم نه دې راغلې.

**ایا مسلمان به د کافر بدله کښې قتل کولې شي ؟ :-** دې باره کښې دجهمور علماء کرامو مذهب دادې چه نه به شي قتل کولې او د تاویل دپاره د صحیح بخاری شریف دا حدیث پاک دې چه (لا یقتل مسلم بکافر) مسلمان به د کافر بدله کښې نشی قتلولې (۱) د دې حدیث نه یو حدیث هم خلاف نه دې او نه څه دلیل کیدې شي چه هغه ددې خلاف وی.خو بیا هم د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې چه دمسلمان بدله کښې دې کافر قتل کړې شي.

**مسلمان به د کافرپ مقابله کښې قصاص کولې شي**

**مسلک حنفی:-** فاضل مفسر رحمه الله اګرچه په امام ابوحنیفه رحمه الله باندې اعتراض کړې دې لیکن امام اعظم رحمه الله چه کوم مسلک اختیار کړې دې.چه مسلمان به د کافر په قصاص کښې قتل کولې شي.د هغې وضاحت دا دې.

① د قصاص د آیت په عموم استدلال:- امام اعظم رحمه الله د ټولو نه اول د قرآن په عموم باندې استدلال کوی ځکه چه قرآن کښې راغلی دی.﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ اوس، ،قتلی، ،عام دې که مسلماز وی که کافر هریو ته شامل دې نو مطلب د آیت دا شو چه کوم قاتل وی هغه به قتل کولې شي برابره که مقتول نارینه وی که زنانه،مسلمان وی که کافر وی آزاد وی که غلام.دغه شان دویم عموم دا هم دې چه ﴿اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى﴾ په دې کښې د مطلق حر،عبد او انثی ذکر دې.د مومن او کافر قید په کښې نشته نو د دې د عموم نه معلومه شوه چه قاتل به د مقتول په مقابله کښې قصاص کولې شي که قاتل مسلمان وی او که کافر وی

② **د صحابوٴ په عمل باندې استدلال:-** د دې نه علاوه حضرت عمر،حضرت علي اوحضرت عبد الله رضی الله عنهم هم د ذمی په مقابله کښې مسلمان قتل کړې دې د دې تفصیل تاسو په احکام القرآن للجصاص کښې کتلې شئ نوکه چرته د کافر په مقابله کښې مسلمان نشو قتل کولې نو دې حضراتو ولې د نبی کریم ﷺ د احادیثو نه خلاف کړې دې او ولې نورو صحابورضی الله عنهم په دوی باندې اعتراض نه دې کړې ځکه چه حضرات صحابو کرام کله هم دقرآن او حدیث په مقابله چاته خاموش او چپ نه دی پاتې شوی.نو معلومه شوه چه امام اعظم رحمه الله د حدیث د ظاهرنه اګرچه خلاف ښکاری خو په حقیقت کښې هم په حدیث عامل وو.ځکه چه د نبی کریم په احادیثو چه څنګه حضرات صحابه کرام پوهیدل داسې روستو خلق نه پوهیدل نوهرکله چه دغه درې جلیل القدر صحابو د دې حدیث د ظاهره خلاف کړې دې نو معلومیږی داسې چه د ذکرشوی حدیث مطلب او مفهوم او مراد هغه نه دې کوم چه نورو فقهاوٴ اخستې دې بلکه دهغې مطلب به هغه وی کوم چه روستو مونږ بیانوو.

**د خصم د دلیل نه جواب:** کوم حدیث چه د احنافو دمسلک په مخالفت کښې پیش کولې شي چې ﴿**لا یقتل مسلم بکافر**﴾ نو د دې تاویل او مطلب ته غور شئ

① اول خودا چه کافر په دوه قسمه دې یو کافر حربی یعنی هغه کافر چه د مسلمانانو سره جنګ کوی او بل کافر ذمی یعنی هغه کافر چه په اسلامی مملکت کښې اوسیږی او د هغې مطابق قوانین منی او تسلیموی.نو مونږ دا وایوچه په حدیث کښې د کافر نه مراد حربی کافر دې ذمی کافر مراد نه دې او احناف هم د دې قائل دی چې مسلمان به د حربی کافر د قتل په قصاص کښې نشی قتلولې.اوپه دې دعوی باندې دلیل دا دې چه د دې حدیث په یو روایت کښې دا جمله هم ده ﴿لایقتل مسلم بکافرولاذوعهدفی عهده﴾ نوګوره نودلته دویمه جمله په اوله جمله باندې عطف ده او په معطوف او معطوف علیه کښې

---

۱) صحیح بخاری،کتاب العلم باب کتابة العلم : ۱۱۱)-

مغایرت ضروري وي.نوپه اوله جمله کښې د کافر نه حربي کافر مراد دې او په دويمه جمله کښې د ذوعهد نه ذمي کافر مراد دې نو دا حديث د احنافو د مسلک خلاف نشو.ځکه چه احناف خوهم دا وائي که مسلمان حربي کافر قتل کړو.نو مسلمان به د هغې په مقابله کښې نشي قتل کولې

۲ په حديث کښې چه دکوم کافر ذکر دې نو دهغې نه د جاهليت د زماني کافر مقتول مراد دې يعني کوم مسلمان چې په زمانه د جاهليت کښې څوک کافر قتل کړی وی نو د اسلام نه پس به مسلمان قاتل د جاهليت د دور کافر مقتول په مقابله کښې نشي قتلولې.اود دې دعوی دليل دا دې چه نبي کريم دا حديث د حجة الوداع په خطبه کښې فرمائيلې وو.هغه داسې چه د خزاعه قبيلې يو کس د هذيل قبيلې يو کس په زمانه د جاهليت کښې قتل کړې وو.نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې ﴿الاان کل دم کان في الجاهلية فهوموضوع تحت قدمي هاتين! لايقتل مسلم بکافرولاذوعهدفي عهده﴾دا ټول تفصيل د احکام القرآن للجصاص نه په تسهيل او اختصار سره ماخوذ دې (احکام القرآن (۱جلد ۲۰۱، ۲۰۰)

**سړي د ښځه په بدله کښې قصاص کول:-** دحضرت حسن بصری رحمه الله او حضرت عطاء رحمه الله قول دادې چه سړې به د ښځې بدله کښې نشي قتلولې او د ليل پورتني آيت مبارک پيش کوی خود جمهورو علماء کرامو دې کښې اختلاف دې.ځکه چه سورة مائده آيت مبارک عام دې.هغې کښې دی چه (النَّفْسَ بِالنَّفْسِ).او ددې نه علاوه حديث پاک هم دې چه (المسلمون تتکافادماءهم) ([1])دمسلمانانو وينې خپلو کښې برابر دی.د حضرت ليث رحمه الله مذهب دې چه خاوند ښځه اووژنی نو خاص کر هغه دې د هغې بدله کښې نشی قصاص کولې

**سړې د ښځې بدله کښې قصاص کول**

**مسلک حنفي:-** د احنافو په نيز به د ښځې په مقابله کښې سړې قصاص کولې شی (التفسيرات الاحمدية (صفحه ۵۰).

**د يو مقتول په بدله کښې ټول قاتلان قصاص کول:-**د څلورو واړو امامانو او جمهورو مذهب دادې که ډيرو خلقو يو مسلمان قتل کړو نو ټول به ددې يوکس بدله کښې قتلولې شی دحضرت عمرفاروق رضي الله عنه دورخلافت کښې ډيرو کسانو يو سړې اووژلو نو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه هغه ټول ددې يو سړی بدله کښې قتل کړل او وې فرمائيل که د صنعاء کلی خلق ټول دې قتل کښې شريک وې نو ما به ټول وژل ([2])

ددوی ددې فرمان خلاف ددوی په دور کښې يو صحابي هم او نکړل.نو په دې خبره د ټولو اجماع شوه.خو د امام احمد رحمه الله نه مروی دی،دوی فرمائي چه ديو بدله کښې دې صرف يو قتل کړې شي زيات نه.حضرت معاذ رضي الله عنه،حضرت ابن زبير رضي الله عنه،حضر ت عبدالملک بن مروان رحمه الله،حضرت زهری رحمه الله،حضرت ابن سيرين رحمه الله،حبيب بن ابی ثابت رحمه الله نه هم دا مروی دی.ابن المنذری رضي الله عنه فرمائي چه صحيح قول هم دادې.د يو مقتول په بدله کښې ديو جماعت د قتل کولو دليل نشته دې اوحضرت ابن زبير رضي الله عنه نه داثابت دی چه هغوئ دامسئله نه منی.اوس چه کله صحابه کرامو کښې اختلاف شو نو مسئله زير غور شوه.

**قوله تعالیٰ:-** فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ

**د معافئ په صورت کښې فديه په کومه طريقې سره ادا کول:-** بيا فرمائي چه دا بله خبره ده چه يو قاتل ته د مقتول يو وارث څه حصه معاف کړی يعني د قتل بدله کښې هغه ديت قبول کړی يا ديت هم د خپلې حصې پريږدی اوصفا صفا معافی اوکړی.که هغه په ديت باندې راضی شی نو په قاتل دې مشکل نه راولی.بلکه په ښه طريقه دې وصول کړی او قاتل ته هم پکار دی چه په ښه طريقه دې ادا کړی حيلې

[1] ابوداود کتاب الجهاد باب فی السرية ترد علی اهل العسکر: ۲۷۵۱ وهو حديث حسن)-
[2] الموطا ۸۷۱/۲ ح/۱۶۸۸،وهو صحيح)-

اوبهاني دي نه کوي.

**د ديت په صورت کښې د قاتل رضا مندي:-** دامام مالک رحمه الله مشهور مذهب اود امام ابوحنيفه رحمه الله اوددوی د شاګردانو اواما. شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله دي روايت مطابق د دوی مذهب دا دې چه دمقتول اولياء ديت پرېږدي نوپه ديت راضي کيدل په هغه وخت کښې جائز دی چه کله قاتل پخپله هم په دې راضي وی.خو نور بزرګان فرمائي چه دې کښې دقاتل راضي کيدل شرط نه دی.

**په ديت ورکولو کښې د قاتل رضا شرط دې**

**مسلک حنفي:-** د احنافو مسلک دا دې ديت اخستل به هغه په هغه وخت کښې جائز وی چه قاتل په ديت ورکولو باندې هم راضي اوکه قاتل په ديت ورکولو راضي نه وی نو بيا د ديت اخستل جائز نه دی (احکام القرآن للجصاص (۱۰۱ / ۲)).

**د ښځې په معافئ سره د قصاص ساقطيدل:-** دسلفو يوجماعت وائي که ښځې قصاص معاف کړی او په ديت باندې راضي شي نو ددې اعتبار نشته دې.د حسن رحمه الله ،قتاده رحمه الله ،ابن شبرمه رحمه الله او اوزاعي رحمه الله همدا مذهب دې.خو باقي علماء دين ددې خلاف دی.هغوئ فرمائي که يو ښځې په ديت باندې رضامندي ظاهره کړه نو قصاص به ختم شي.

**د ښځې په معافئ سره د قصاص ساقطيدل**

**مسلک حنفي:-** په احکام القران کښې د عهد فاروقي يوه واقعه نقل شوې ده چه د عمر فاروق رضی الله عنه په دور خلافت کښې يو کس قتل اوکړو نو د مقتول اولياؤ د قصاص مطالبه اوکړه په دې کښې د مقتول خور راغله او وې وئيل چه ما قاتل معاف کړې دې په حقيقت کښې قاتل د مقتول اوښې يعني د خور خاوند وو نو عمر فاروق رضی الله عنه اوفرمائيل قاتل د قصاص نه بچ شو ددې نه معلومه شوه چه د ښځې په معافئ باندې هم قصاص ساقطيږی (احکام القران للظفراحمد عثماني (۱۱۱)).

**قوله تعالى:-** ذٰلِكَ تَخْفِيفٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ

**په قتل عمد کښې د ديت اخستلو جواز مهرباني ده:-** بيا فرمائي چه قتل عمد کښې ديت اخستل دا دالله ﷻ د طرفنه تخفيف او مهرباني ده.مخکښې امتونو ته دا اختيار نه وو.حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه بني اسرائيلو باندې قصاص فرض وو خوهغوئ ته دقصاص معاف کولو او ديت اخستلو اجازت نه وو.خو په دې امت باندې دا مهرباني اوشوه چه ديت اخستل هم جائز شو نو دلته درې څيزونه شو ،قصاص ديت او معافي.مخکښې امتونو کښې صرف قصاص او معافي وه ديت نه وو.ځيني خلق وائي چه اهل تورات دپاره صرف قصاص او معافي وه او اهل انجيل دپاره صرف معافي وه.

فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ

**د ديت اخستلو نه پس بدله اخستلو سزا -** بيا فرمائي چه کوم کس ديت يعني جرماني اخستلو نه پس يا ديت قبلولو نه پس زياتي اوکړی ـ هغه دپاره دردناک عذاب دې.لکه ديت هم واخلي او بيا د قتل کولو هم اراده اوکړي وغيره.

**د مقتول ولي يا مجروح ته د درې خبرو اختيار:-** حضرت نبی کريم ﷺ فرمائي چه دکوم کس مقتول يا مجروح وی نو هغه ته دريو خبرو کښې يو اختيارول پکاردی يا دې قصاص يعني بدله واخلي يا دې معافي اوکړی يا دې ديت يعني جرمانه واخلي اوکه بل څه کول غواړی نو هغه منع کړئ.دې کښې په يو

خیزباندې د رضامندنی نه پس چه څوک زیاتې اوکړی نو هغه دپاره همیشه جهنم عذاب دې.[1] بل روایت کښې دی چه چا دیت واخستلو اوبیا نې قتل اوکړو نو هغه نه به دیت نه اخلم بلکه هغه به قتل کوم.[2]

قوله تعالی:- وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ

**په قصاص کښې ژوند دې:** بیا فرمائی چه انې عقلمندو ستاسو دپاره قصاص کښې انسانی ژوند دې. دې کښې عظیم حکمت دې. اګر چه په ظاهره دامعلومیږی چه دیو بدله کښې یو قتل شی نو دوه مړۀ شول خو که تاسو په دې سوچ اوکړنی نو داد ژوند سبب دې. قاتل ته به پخپله خیال راشی که څه هغه قتل کړم نو بیا به زه هم قتلولې شم نو هغه به ددې فعل نه منع شی او دې سره به دوه سرې د قتل نه بچ شی. مخکښې کتابونو کښې هم دا خبره بیان شوې وه چه (القتل انفی للقتل) قتل قتل لره منع کوی. خو قران پاک کښې ډیر صفا او فصاحت او بلاغت سره دا مضمون بیان شوې دې.

**قصاص د ګناه نه د بچ کیدو سبب دې:-** بیا فرمائی چه دا ستاسو د بچ کیدو یو سبب دې. یو خو به دالله ﷻ د نافرمانئ نهبچ پاتې شئ او بل به یو کس بل نه قتلوی. په مخ دزمکې به امن وامان وی. تقوی دټولو نیکو کولو او ټولو بدو پریخودو نوم دې.

كُتِبَ | عَلَيْكُمْ | إِذَا حَضَرَ | أَحَدَكُمُ | الْمَوْتُ | إِنْ تَرَكَ خَيْرًا ۚ

فرض کړې شوې دې | په تاسو باندې | اکله چې حاضر شی | یو لتا سونه | مرګ | که پریښودونې مال

په تاسو فرض شوی دی که په تاسو کښې چاته د مرګ وخت راشی نو که مال ترې پاتې کیږی

الْوَصِيَّةُ | لِلْوَالِدَيْنِ | وَالْأَقْرَبِينَ | بِالْمَعْرُوفِ ۚ | حَقًّا

وصیت کول | دپاره دمور پلارا | او دپاره دنورو رشته دارانو | په ښۀ طریقې سره | داحق دې |

هغه دې د مورپلار او د (نورو) خپلوانو په حق کښې په مناسب طریقه وصیت کوی دا (حکم) ضروری دې

عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴿۱۸۰﴾ | فَمَنْ بَدَّلَهُ | بَعْدَمَا | سَمِعَهُ | فَإِنَّمَا

په پرهیزګارانو باند | نوچاچې بدل کړو داوصیت | روستو دهغې نه | چې وانې وریدو هغه | نوبیشکه چې

د پرهیزګارانو دپاره | بیاڅوک چې داوصیت د اوریدونه پس بدل کړی (او د خپل طرف نه په کمې زیاتې اوکړی

إِثْمُهُ | عَلَى الَّذِينَ | يُبَدِّلُونَهُ ۗ | إِنَّ اللَّهَ | سَمِيعٌ | عَلِيمٌ ﴿۱۸۱﴾

ګناه دهغې | په هغه چاباندې ده | چې بدلوی هغه وصیت | بیشکه چې الله | دهرڅه اوریدونکې | او په څه پوهه دې

نو ګناه به نې دبدلونکی په ذمه وی بیشکه الله هرڅه آوری (څوک ته وصیت پټولې نشی) او په هرڅۀ پوهه دې

فَمَنْ | خَافَ | مِنْ مُوصٍ | جَنَفًا | أَوْ إِثْمًا

البته هغه څوک | چې اویریدو | دوصیت کونکی نه | چې په خطاسره | یانې قصدابې انصافی کړی وی

خو که چا سره دا ویره وه چې وصیت کونکی (په قصد سره یا په غلطۍ کښې) ظلم یا ګناه کړې وه

فَأَصْلَحَ | بَيْنَهُمْ | فَلَا | إِثْمَ | عَلَيْهِ ۚ | إِنَّ اللَّهَ | غَفُورٌ

نوا صلاح نې اوکړه | په منځ دهغوئ کښې | نونشته | ګناه | په هغه باندې | بې شکه الله | ښښونکې |

او (دمیراث خورو) نې روغه راوسته نو په هغه هیڅ ګناه نشته | بیشکه الله ښښونکې (د ګناهونو دې)

[1]) ابوداود كتاب الديات باب الامام يأمر بالعفو في الدم : ٤٤٩٦)، ابن ماجة، كتاب الديات باب من قتل له قتيل فهو ٢٦٢٣)-

[2]) ابوداود كتاب الديات باب من قتل بعد اخذ الدية: ٤٥٠٧)-

| |
|---|
| رَّحِيمٌ ﴿۱۸۲﴾ |
| مهربان دی \| اے \| |
| مهربان دی \| |

**دوصیت حکم اومنسوخیت** :- دې ایت مبارک کښې مور پلار او رشته دارو دپاره د وصیت حکم بیانیږی د صحیح اقوالو مطابق دمیراث حکم نه مخکښې دا واجب وو. خود میراث احکامو د وصیت حکم منسوخ کړو. هروارث به د وصیت نه بغیر خپله مقرره حصه اخلی. سنن وغیره کښې حضرت عمرو بن خارجه ﷛ نه روایت دې، فرمائی چه ما حضرت نبی کریم ﷺ نه خطبه کښې واوریدل چه الله ﷻ هر حقدار ته دهغه حق رسولې دې. اوس وارث دپاره وصیت نشته دې.[1]

حضرت ابن عباس ﷛ د سورة بقره تلاوت کوی او کله چه دې آیت مبارک ته رارسی نو فرمائی چه دا آیت مبارک منسوخ دې. (مسند احمد).[2]

**د وصیت حکم منسوخ کیدل**:- حضرت ابن عباس ﷛ نه داهم مروی دی چه اول مور پلار سره بل څوک رشته دار وارث نه وو. باقی رشته دارو دپاره صرف وصیت وو. بیا د میراث آیت نازل شو. او یوه حصه مال کښې دوصیت اختیار باقی پاتې شو. ددې آیت مبارک حکم منسوخ کولو والاآیت ﴿لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ﴾ الخ دې. حضرت ابن عمر ﷛، حضرت ابوموسی ﷛، سعید بن مسیب ﷬، حسن ﷬، مجاهد ﷬، عطاء ﷬، سعیدبن جبیر ﷬، محمد بن سیرین ﷬ عکرمه بن زید ﷬، اسلم بن ربیع ﷬، انس ﷬، قتاده ﷬ سدی ﷬، مقاتل بن حیان ﷬، طاؤس ﷬، ابراهیم نخعی ﷬، شریح ﷬، ضحاک ﷬ اوزهری ﷬ داټول حضرات وائی چه دا آیت مبارک منسوخ دې. خو ددې باوجود تعجب دې چه امام رازی ﷬ خپل تفسیر کبیر کښې ابومسلم اصفهانی نه دا نقل کوی چه دا آیت مبارک نه دې منسوخ بلکه دا آیت مبارک د میراث د آیت تفسیر دې.

**قوله تعالى:- كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ**

**د وصیت د ایت مفهوم**:- اود ایت مبارک مطلب دادې چه تاسو باندې وصیت فرض کړې شوې دې او ددې بیان ایت ﴿يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ﴾ کښې دې. اوهم دا قول د اکثرو مفسرینو او فقهاء کرامو دې څینې وائی چه د وصیت حکم د وارثانو حق کښې منسوخ دې خو چه د چا حصه مقرر نه ده دهغوئ حق کښې ثابت ده. حضرت ابن عباس ﷛، حضرت حسن ﷬، مسروق ﷬، طاؤس ﷬، ضحاک ﷬، مسلم بن یسار ﷬ اوعلاء بن زیاد ﷬ نه هم دا مذهب منقول دې. خه وایم چه سعید بن جبیر، ربیع بن انس، قتاده او مقاتل بن حیان هم دا وائی خو ددې حضراتو دقول په بناء د روستو فقهاء کرامو اصلاح کښې دا آیت مبارک منسوخ نه دې خکه چه د میراث آیت سره هغه خلق خو دې حکم سره مخصوص شو چه دهغوئ حصه شریعت پخپله مقرر کړې ده. او چه کوم ددې آیت مبارک لحاظ سره وصیت کښې داخل وو خکه چه رشته دار عام دی که دهغوئ حصه مقرر وه او که نه. نو ا وس وصیت هغه چا دپاره شو چه کوم وارثان نه دی. اوچه کوم وارثان دی نودهغوئ حق کښې پاتې نشو. داقول اود څینې نورو حضراتو نه دا قول نقل دې چه د وصیت حکم داسلام شروع کښې وو اوهغه هم غیر ضروری، د دواړو مطلب تقریباً یو دې.

خوکوم خلق چه دوصیت دې حکم ته واجب وائی کوم چې د عبارت د روانۍ او سیاق کلام نه معلومیږی، د هغوی په نزد خو دا آیت مبارک منسوخ شوې دې لکه څنګه چه دا کثرو مفسرینو او فقهاء کرامو قول

[1] ترمذی کتاب الوصایا باب ماجاء لاوصیة لوارث : ۲۱۲۱، وهو حسن، نسائی : ۳۶۷۱)۔
[2] حاکم : ۲۷۳/۲، ح/۳۰۸۳، وسنن ابی داود: ۲۸۶۹ وسنده حسن)۔

دي.مور پلار او وراثت والو رشته دارو دپاره وصيت كول بالاجماع منسوخ دي بلكه ممنوع دي.حديث پاک کښې راغلي دی چه الله ﷻ هر حقدار ته دهغه حق ورکړې دې او اوس وراثت دپاره وصيت نشته دي.د ميراث د آيت مبارک حکم مستقل دي.او دالله ﷻ د طرفنه هغه واجب او فرض دي.د ذوی الفروض او عصبات حصه مقرر ده.او ددې نه ددې آيت مبارک حکم کلية ختم شو،

**د غير ذوی الفروض دپاره د وصيت جواز:-** باقي پاتې شوهغه رشته دار چه دهغوی د وراثت حصه مقرر نه ده نو هغوی دپاره دريمه حصه مال کښې وصيت کول مستحب دی.څه خو د دې حکم ددې آيت مبارک نه معلوميږی او څه حديث پاک کښې راغلی دی.

**د وصيت ليکلو حکم:-** بخاری شريف او مسلم شريف کښې حضرت ابن عمر ﷺ نه مروی دی چه حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه يو سړی مسلمان دپاره جائز نه دی چه هغه سره څه څيز وی اوهغه ددې وصيت کول غواړی نو دوه شپې دې هم بغير وصيت نه نه کوی.راوی دحديث دحضرت عمرفاروق ﷺ خوئي فرمائی چه ددې فرمان آوريدو نه پس خوما يو شپه هم بغير وصيت نه نه ده تيره کړې.(۱)

رشته دارو او خپلوانو سره سلوک باره کښې ډير آيتونه او احاديث موجود دی يو حديث پاک کښې دی چه الله ﷻ فرمائی چه ائې ابن آدم ته چه کوم مال خما لار کښې خرچ کوې نو څه به دهغې په وجه تا پاکوم او ستا د مرګ نه پس به هم تا دخپلو نيکوبندګانو د دعاګانو سبب جوړوم (۲)

**قوله تعالى:-** اِنْ تَرَكَ خَيْرًاۖۚ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ بِالْمَعْرُوْفِۚ

**د «خير» نه مراد:-** دلته د ﴿خَيْرًا﴾ نه مراد مال دې اکثر جليل القدر مفسرينو نه هم دا تفسير نقل دې د خينو مفسرينو خو دا قول دې چه مال که هغه ډير وی او که لږ وی دهغې وصيت مشروع دې لکه څنګه چه ميراث په لږ مال کښې هم دې او په ډير مال کښې هم.خينې وائی چه د وصيت حکم په هغه وخت کښې دې چه کله مال زيات وی.حضرت علی ﷺ نه ذکر کيږی چه يو قريشی مړ شوېدې اود هغه ميراث کښې درې څلور سوه ديناره دی.اوهغه څه وصيت نه دې کړې.دوی اوفرمائيل چه دا رقم د وصيت قابل نه دې.الله ﷻ ﴿اِنْ تَرَكَ خَيْرًا﴾ فرمائيلی دی.

يوبل روايت کښې دی چه حضرت علی ﷺ ديو بيمار تپوس ته ورغلو.هغه ته چا اوونيل چه وصيت اوکړه وصيت کښې خير دې.او ته خو لږ مال پريږدې او خپل اولاد دپاره ئې پريږدې.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه چا نه شپيته ديناره پاتې نشو نو هغه ﴿خَيْرًا﴾پرې نه خودو.يعنی په هغه وصيت نشته دي.طاوس اتيا ديناره وائی.قتاده يو زر ديناره ښائی.

**د معروف نه مراد:-** په ايت کښې د معروف نه مراد نرمی او احسان دې.حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه وصيت کول په هر مسلمان ضروری دې که وصيت جائز کو ی او که ناجائز.او وارثانو ته دې نقصان نه رسوی.اسراف او فضول خرچی دې هم نه کوی.

**د سعد بن ابی وقاص ﷺ اکثره حصه مال وصيت کولو درخواست:-** بخاری او مسلم شريف کښې دی چه حضرت سعد ﷺ اوونيل يارسول الله ﷺ څه مالدار يم او خما وارثه صرف يو جينۍ ده نو تاسو اجازت راکړئی چه څه د خپل دريو حصو مال وصيت اوکړم.حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه نه وې ونيل چه د نيم مال د وصيت اجازت راکړئی.حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه نه وې ونيل چه ديو حصې مال وصيت کولو اجازت راکړئی.حضرت نبی کريم ﷺ ا وفرمائيل چه خيردې د يوې حصې مال وصيت اوکړه

(۱) صحيح بخاری کتاب الوصايا باب الوصايا: ۲۸۳۸،صحيح مسلم: ۱۶۲۷)-
(۲) عبد بن حميد فی مسنده : ۷۲۹،ابن ماجة: ۲۷۱۰،وسنن الدار قطنی : ۱۴۸/۴)-

اودا هم ډیر دي.تاته پکار دی چه خپل خان نه روستو خپل وارثان مالدار پریږدې دا بهتر ده ددې نه چه نه هغوی فقیران پریږدې چه نورو ته لاس نیسی.(۱)

**په وصیت کښې د ابن عباس ﷺ رائې:-** صحیح بخاری کښې دی،حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه کاش خلق دریمې حصه پریږدی او څلورمې حصې ته راشی څکه چه حضرت نبی کریم ﷺ د یوې حصې اجازت ورکړې دې او دائې فرمائیلی دی چه دریمه حصه زیاته ده.(۲)

**دعهد نبوی یوه واقعه:-** مسند احمد کښې دی چه د حنظله بن حزیم بن خضیه نیکه خضیه دیو یتیم بچی دپاره چه هغه سره ئې پرورش شوې وو د سلو اوښانو وصیت اوکړو.ددوی په اولاد دا بنه او نه لګیدل.دا معامله حضرت نبی کریم ته راغله.حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نه نه صدقه کښې پنځه ورکړه،لس ورکړه،پنځلس ورکړه،شل ورکړه،پنځویشت ورکړه،دیرش ورکړه،پنځه دیرش ورکړه اوکه په دې هم نه منی نو بیا زیات نه زیات څلویښت ورکړه.الخ.(۳)

**قوله تعالی:-** فَمَنۢ بَدَّلَهٗ بَعْدَ مَا سَمِعَهٗ فَاِنَّمَاۤ اِثْمُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يُبَدِّلُوْنَهٗ

**د وصیت بدلولو ګناه:-** بیا فرمائی چه کوم سړې وصیت بدل کړی،هغه کمې زیاتې اوکړی یا وصیت پټ کړی نو ددې ګناه بدلولو والا باندې ده.د مرده اجر به د الله ﷻ په ذمه ثابت وی،الله ﷻ ته دوصیت کولو والا دوصیت اصلیت معلوم دې.اود بدلولو والا بدلون هم.نه خو هغه ذات نه څه آواز پټ دې او نه څه راز.دجنف معنی خطا یا غلطی ده.لکه یو وارث ته په څه طریقه زیات ورکول.لکه وې وئیل چه فلانې څیز دې په فلانې په دومره دومره قیمت خرڅ کړې شی و غیره.اوس که په طور د غلطئ او خطا وی یا د محبت او شفقت په وجه بغیر د څه ارادې نه داسې حرکت اوکړی یا دګناه په طور وی نو وصی ته دې بدلون کښې څه ګناه نشته دې.وصیت دې د شرعی احکامو مطابق جاری کړی چه مرده هم دالله ﷻ د عذاب نه بچ شی اوحقدارته حق هم ملاؤ شی.او دې سره به شرعی وصیت هم پو راشی.نوداسې حالت کښې په بدلولو والا باندې څه ګناه نشته یا حرج نشته،والله اعلم.

**دظالم صدقه نه قبلیږی:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی په ژوند کښې ظلم کولو نه پس دصدقې کولو والا صدقه به داشان واپس کیږی لکه څنګه چه د مرګ وخت کښې د مرده صدقه واپس کیږی،دا حدیث پاک ابن مردویه کښې هم مروی دې.

**د روایت تضعیف:-** ابن ابی حاتم فرمائی چه ولید بن یزید چه ددې حدیث پاک راوی دې هغه دې کښې غلطی کړې ده.اصل کښې داکلام د حضرت عروه دې،ولید بن مسلم د اوزاعی نه روایت کړې دې.او عرونه ئې مخکښې سند نه دې بوتلې.ابن مردویه هم یو مرفوع حدیث پاک کښې په روایت دابن عباس ﷺ بیان کوی چه دوصیت کمې زیاتې لویه ګناه ده.(۴)خوددې حدیث پاک مرفوع کیدوکښې کلام دې.

**د ګناه د وصیت خرابی:-** دې باره کښې د ټولو نه صحیح حدیث هغه دې چه کوم مسند عبد الرزاق کښې په روایت د حضرت ابوهریره ﷺ مروی دی چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه یو سړې اویا کالو پورې د نیکو خلقو په شان اعمال کوی خوپه وصیت کښې ظلم اوکړی اوپه بدود خاتمې په و چه جهنمی شی.او خینې خلق اویا کاله بدعملونه کوی خو وصیت کښې عدل اوانصاف کوی اودهغوی آخری عمل نیک شی اودې جنتی شی.بیا حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی که غوارئی نو د قران پاک دا آیت مبارک اولولئ:

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الوصایا باب ان یترک ورثته اغنیاء : ۲۷٤۲،صحیح مسلم: کتاب الوصایا: ۱۶۲۸)–

(۲) صحیح بخاری کتاب الوصایا باب ان یترک ورثته اغنیاء : ۲۷۷۳)–

(۳) احمد: ۶۷/۵،سنده حسن)–

(۴) النسائی ل الکبری : ۳۲۰/۶،بسند صحیح عن ابن عباس موقوفا والبیهقی : ۲۷۱/۶،وغیره مرفوعا)–

(تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا) يعنى دا د الله ﷻ مقرر شوى حدونه دي ددې نه مخکښې مه خئ.[1]

| يَٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | كُتِبَ | عَلَيْكُمُ | الصِّيَامُ |
|---|---|---|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | فرض کړې شوې | په تاسو باندې | روژې |
| اې مومنانو په تاسو روژه فرض کړې شوې ده (اود روژې فرضيت څه نوې خبره نه ده بلکه) | | | | |
| كَمَا | كُتِبَ | عَلَى الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِكُمْ | لَعَلَّكُمْ |
| لکه څنګه چې | فرض کړې شوې وې | په هغه کسانو باندې | چې مخکښې ستاسو نه ووځ | اميد دې چې تاسو |
| لکه چې ستاسو نه مخکښې په نورو امتونو باندې فرض کړې شوې وه | | | | اميد دې چې (په روژه ساتلو به) |
| تَتَّقُوْنَ | اَيَّامًا | مَّعْدُوْدٰتٍ | فَمَنْ | كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ |
| تقوى دار شئ | يو څو ورځې | شمارلې شوې | پس هغه څوك | چې وي ستاسو نه مريض يا په سفر |
| تاسو پرهيزګار شئ | روژې د شمير يو څو ورځې دي | نو که په تاسو کښې څوك ناجوړه وي يا په سفر کښې وي | | |
| فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ | وَعَلَى الَّذِيْنَ | يُطِيْقُوْنَهٗ | فِدْيَةٌ | طَعَامُ مِسْكِيْنٍ |
| نو شمار دور څو ورځو | او په هغه کسانو | چې طاقت لري د روژو نيولو | فديه ده | خوراك ديو مسکين |
| نو هغه دې په نورو ورځو کښې دغه شمير پوره کړې او څوك چې د روژې طاقت نه لري (اونه ئې نيسي) نو هغه دې فديه ورکوى (د يوې روژې په بدل کښې) يو مسکين ته (په مړه خيټه خوراك | | | | |
| فَمَنْ | تَطَوَّعَ | خَيْرًا | فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ | وَاَنْ تَصُوْمُوْا |
| او هغه څوك | چې په خپله خوښه اوکړې | څه نيکى | نو دغه بهتره ده دهغه دپاره | اوچې روژه اونيسئ |
| اوڅوك چې پخپله خيرات ورکوى | نو دا دهغه دپاره ډيره ښه ده | اوکه تاسو (د فديه په ځائې) روژه اونيسئ | | |
| خَيْرٌ | لَّكُمْ | اِنْ كُنْتُمْ | تَعْلَمُوْنَ | |
| دا بهتره ده | ستاسو دپاره | که چرې تاسو | پوهيږئ | |
| دا ستاسو دپاره ډيره غوره ده که تاسو (ددې په مصلحتونو) پوهيږئ | | | | |

**قوله تعالى:- يَٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ**

**دروژې فرضيت او مقصد:** الله ﷻ ددې امت ايماندار مخاطب کوى اودوى ته حکم کوى چه روژې نيسئ. دروژې معنى دالله ﷻ دفرمان منل خالص نيت سره اودخوراك څکاك اودجماع نه منع کيدل دي. پدې کښې دا فائده ده چه دانسان نفس پاك صفا شي. دخرابو کارونو او غلطو اخلاقو نه انسان بچ شي.

**قوله تعالى:- كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ**

**روژه په پخوانو امتونو هم فرض وه:-** دې حکم سره فرمائي چه دا حکم صرف په تاسو باندې نه دې بلکه ستاسو نه مخکښې خلقو ته هم د روژو حکم وو. ددې بيان نه دا هم مقصد دې چه دا امت په دې فريضه کښې د مخکښې امتونو نه روستو پاتې نشي. لکه فرمائي چه ( لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ) يعنى د

[1] سنن ابي داود : ۲۸۶۷، وغيره. وسنده حسن، شهر بن حوشب حسن الحديث )-

هریوامت دپاره مونږ یوه طریقه او لاره مقرر کړې ده.که الله ﷻ غوښتلي نو تاسو به ئې یوامت جوړ کړي وي.لیکن هغه تاسو باندې آزمیښت کوی اوتاسو ته پکار دی چه په نیکو کښې سبقت اوکړئی.دلته دا هم فرمائی چه په تاسو باندې روژې هغه شان فرض شوې دی چه څنګه ستاسونه مخکښې امتونو باندې وی.

**روژې سره نفساني خواهشات کمزوری کیږی:-** روژې سره بدن پاکیږی.اود شیطانی لارونه منع کیږی .بخاری او مسلم کښې دی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه ائې خوانانو ! په تاسو کښې چه دچا دنکاح کولو طاقت وی هغه دې نکاح اوکړی او چه دچا طاقت نه وی نو هغه دې روژې نیسی.څکه چه جوش سړوی.(۱)

**قوله تعالی:-اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ**

**د روژو شمیر:-** بیا د روژو مقدار بیانیږی چه دا څو ورځې وی چه هسې نه په دې سره تنګ شی او ددې د اداکولو نه عاجزه شی بلکه شوق سره دالله ﷻ دا فریضه اداکړی.مخکښې څو هره میاشت کښې د دریو روژو حکم اوشو،بیا هغه حکم منسوخ شو.ددې مفصل بیان رازی.انشاء الله.

**په مخکنو امتونوباندې د فرض روژو شمیر:-**① حضرت معاذ ﷺ،حضرت ابن مسعود ﷺ،حضرت ابن عباس ﷺ،حضرت عطاء رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله او دحضرت ضحاك رحمه الله فرمان دې چه د حضرت نوح ﷺ دزمانې نه په هره میاشت کښې د دریو روژو حکم وو.بیا د نبی کریم ﷺ دامت دپاره دا بدل کړې شو او په دې باندې ددې مبارکې میاشتې رمضان روژې فرض شوې.②حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه په مخکښنو امتونو باندې هم د یو میاشتې کاملې روژې فرض وې.یو مرفوع حدیث کښې دی چه درمضان روژې تاسو نه مخکښې امتونو باندې فرض وې.حضرت ابن عمر ﷺ فرمائی چه مخکښنو امتونو نه مراد اهل کتاب دی.

**قوله تعالی:-وَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْعَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ**

**د بیماراو مسافر دپاره د روژې رخصت:-** بیا بیان کیږی چه کوم سړې په میاشت د رمضان کښې بیمار وی یا په سفر کښې وی نو هغه دې په دې حالت کښې روژې پریږدی (یعنی روژې دې نه نیسی) مشقت دې نه اوچتوی اودې نه پس دې په نورو ورځو کښې چه کله هغه عذر ختم شی قضا راوړی.او دا سلام په شروع کښې چه کوم یو کس تندرست وو اومسافر نه وو نو هغه ته هم اختیار وو که هغه روژې نیسی او که نه نیسی څو فدیه کښې به یو مسکین ته خوراك ورکوی،که یو نه زیاتو ته خوراك ورکړې نو روژه نیول د فدیې ورکولو نه بهتررو.حضرت ابن مسعود ﷺ،حضرت مجاهد رحمه الله،حضرت طاوس رحمه الله او حضرت مقاتل رحمه الله وغیره هم دا فرمائی.

**په مانځه کښې درې تبدیلئ:-** مسند احمد کښې دحضرت معاذ بن جبل ﷺ نه روایت دې چه دمونځ او دروژې درې حالتونه بدل شو.① چه شپاړس میاشتو پورې نبی کریم ﷺ مدینه منوره کښې بیت المقدس طرفته مونځ اوکړو.بیا د ﴿ قَدْ نَرٰى ﴾ آیت نازل شو او مکې طرفته نبی کریم ﷺ مخ واړولو.② چه مونځ دپاره به یو سړی بل سړی رابللو او جمع کیدل به.لیکن آخر ددې نه عاجزه شو،بیا یو انصاری حضرت عبدالله بن زید ﷺ د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه یارسول الله ﷺ ما خوب کښې اولیدل او داسې لګه چه هغه خوب د بیدارئی حالت کښې وو،چه یو سړی د شین رنګ جامه اغوستې ده او قبلې طرفته متوجه دې او وائی چه ﴿ الله اکبر الله اکبر اشهدان لا اله الا الله ﴾،دوه ځل.غرض هم داشان اذان ئې پوره کړو،بیا لږ وخت پس هغه تکبیر اوونیل چه په هغې کښې ﴿ قدقامت

(۱) صحیح بخاری کتاب النکاح باب من لم یستطع الباءة فلیصم: ۵۰۶۶،صحیح مسلم: ۱٤۰۰-

الصلوة ﴾ هم دوه خل اوونيلي شو.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه بلال ته دا اوښائې هغه به اذان کوي.نو دتولو نه مخکښې حضرت بلال ﷺ اذان اوکړو.دویم روایت کښې دی چه حضرت عمر فاروق ﷺ هم راغلو او خپل خوب ئې بيان کړې وو ليکن ددې نه مخکښې حضرت زيد راغلې وو.

④ چه مخکښې دا دستور وو چه نبی کريم ﷺ به امامت کولو او يوسړي به راغلو او هغه به تپوس اوکړو چه څو رکعته شوی دی،نو هغه بل سړی به آواز ورکړو چه دومره رکعتونه شوی دی.نو هغه به (مخکښې شوی) رکعتونه ادا کړل اوبيا به د نبی کريم ﷺ سره شامل شو.حضرت معاذ ﷺ يو وار راغلو او وې وئيل چه څه نبی کريم ﷺ په کوم حالت کښې اووينم او کوم مونځ شوې وی نو هغه به د نبی کريم ﷺ دسلام نه روستو ادا کړم.نبی کريم ﷺ چه کله هغه اوکتلو نو وې فرمائيل چه معاذ ﷺ ستاسو دپاره دايو ښه طريقه راوښکله.تاسو هم اوس داسې کوئی.دادرې تبديلئ خو په مونځ کښې شوې اوس دروژو تبديلئ واورئ.

**په روژو کښې درې تبديلئ :-** ①چه نبی کريم ﷺ کله مدينې ته راغلو نو هره مياشت کښې به ئې درې روژې نيولې.او د عاشورې روژه به ئې نيوله.بيا الله ﷺ ﴿ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ ﴾ نازل کړو اود رمضان روژې فرض کړې شوې.② چه څوك غواړی نو روژې دې نيسي او که څوك غواړی نو نه دې نيسي او فديه دې ورکړی.بيا دا آيت نازل شو چه ﴿ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ﴾ تاسوکښې چه کوم سړې د رمضان په مياشت کښې دقيام په حالت کښې وی (يعنی په خپل مقام کښې وی) نو هغه دې روژې نيسي.چه کوم سړې مقيم وی،مسافر نه وی،تندرست وی،بيمار نه وی،په هغه باندې روژې نيول ضروری شو.خو د بيمار اومسافر دپاره اجازت دې او داسې بوډا چه معذور وی او د روژونيولو طاقت ئې نه وی نو هغه ته هم اجازت دې.③(د روژه ماتی نه پس)په شروع کښې خوراك څکاك او ښځو له ورتلل او ورسره څملاستل جائز وو،که څملاستو او بيا به د شپې هم پاسيدو نو د ده دپاره به خوراك څکاك او جماع حرامه وه.

**د ابوقيس ﷺ او حضرت عمر ﷺ واقعه:-** بياابو قيس صرمه نومې يو انصاری صحابی ﷺ ټوله ورځ کار اوکړو او ډير ستړې کور ته راغلو.دماسخوتن مونځ ئې ادا کړو او خوب ورغلو.او په سبا ئې په نهره روژه اونيوله،اودده حالت ډير خراب شو.نبی کريم ﷺ تپوس اوکړو چه څه خبره ده ؟ نو هغوی ورته ټوله واقعه بيان کړه.يو طرفته ده سره دا واقعه اوشوه او بل طرفته حضرت عمرفاروق ﷺ د اوده کيدو نه پس خپلې بی بی سره جماع اوکړه او د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضرشواو دخپل حسرت او افسوس اودخپل قصور اقرار ئې اوکړو،نو په دې باندې دا آيت چه ﴿ أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَآئِكُمْ ﴾ نه تر﴿ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ﴾پورې نازل شو.او ماښام نه واخله تر دصبا صادق پورې د رمضان په شپه کښې د خوراك څکاك او ښځې سره د جماع کولو اجازت ملاؤشو.

بخاری اومسلم کښې دحضرت عائشه ﷺ نه روايت دې چه مخکښې د عاشورې روژه به نيولې شوه .چه کله د رمضان فرضيت راغلو نو اوس ضروری نه ده،که څوک دا نيسي او که نه نيسي.دا دحضرت ابن عمر ﷺ او حضرت ابن مسعود ﷺ نه هم روايت دې.([1])

**د ډيربوډا او حامله او مرضعې دپاره د روژې حکم** ﴿ وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ ﴾ مطلب حضرت معاويه ﷺ دابيانوی چه د اسلام په شروع کښې چه به چا روژې نيول غوښتل روژه به ئې نيوله او چه چا به نه نيول غوښتل نو نه به ئې نيوله اودهرې ورځې په بدله کښې به ئې يو مسکين ته خوراك ورکولو.

**د ايت منسوخيت:-** حضرت سلمه بن اکوع ﷺ نه هم په صحيح بخاری کښې روايت راغلې دې چه ددې

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة البقرة باب ( يايهاالذين امنوا کتب عليکم الصيام........) : ۴۵۰۱،صحيح مسلم: ۱۱۲۵)-

ایت دنازلیدو نه پس چه کوم سړي غواړی افطار دې کوی او فدیه دې ورکوی تر دې پورې چه دې نه پس آیت ﴿ شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِیٓ﴾ نازل شو اود آیت ﴿ وَعَلَى الَّذِیْنَ یُطِیْقُوْنَهٗ﴾ منسوخ شو.حضرت ابن عمر ﷺ هم دې آیت ته منسوخ وائی.(۱)

**د ابن عباس ﷺ په نیز عدم منسوخیت:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه دا نه دې منسوخ،ددې نه مراد هغه بوډاسړي او ښځه ده چه دهغه د روژې طاقت نه وی..(۲) ابن ابی لیلی وائی چه څه په رمضان کښې عطاء ﷺ له ورغلم نو ما اوکتل چه هغه خوراك کوی،چه څه ئې اولیدم نو وې فرمائیل چه دحضرت ابن عباس ﷺ قول دې چه دې آیت ړومبې آیت منسوخ کړو او اوس دا حکم صرف ډیرزیات کمزوری بوډا دپاره دې.

**قوله تعالٰی:-** وَعَلَى الَّذِیْنَ یُطِیْقُوْنَهٗ فِدْیَةٌ طَعَامُ مِسْكِیْنٍ ؕ

**د شیخ فانی د روژې حکم:**حاصل دکلام دادې چه کوم سړې مقیم وی اوتندرست وی نو دهغه دپاره دا حکم نه دې بلکه هغه به روژې نیسی،خو که داسې بوډا،ډیر عمر والا کمزورئی وی چه دهغه د روژې نیولوطاقت نه وی نو هغه دې روژه نه نیسی اونه په هغه باندې قضا ضروری ده.لیکن که مالدار ه وی نو آیا هغه به کفاره ورکوی او که نه ؟ په دې کښې اختلاف دې.د حضرت امام شافعی ﷺ قول دې چه چونکه په ده کښې د روژې نیولو طاقت نشته نوپه دې وجه دې د بچی په شان دې.اوپه ده باندې کفاره هم نشته دې خکه چه الله ﷻ هیچا ته دهغه د طاقت نه زیات تکلیف نه ورکوی.دویم قول د حضرت امام شافعی ﷺ دا دې چه دده په ذمه کفاره ده اوداکثر علماء کرامو هم دا فیصله ده.حضرت ابن عباس ﷺ وغیره تفسیرونو نه هم دا ثابتیږی.

**په شیخ فانی چه مالدار وی کفاره شته**

**مسلک حنفی:-** احناف کثرالله سوادهم فرمائی چه چې شیخ فانی د فدیه ورکولو وس هم نه لری نو دې دې د الله ﷻ نه مغفرت او ښنه غواړی (الفقه الاسلامی وادلته (۲۸۷۱۲) ،واحکام القران للعثمانی ﷺ (۱۱۱)-

دحضرت امام بخاری خوښه مسئله دا ده چه هغه فرمائی چه ډیر عمر والا بوډا چه په هغه کښې د روژې نیولو طاقت نه وی نو هغه دې فدیه ورکړی،لکه څنګه چه حضرت انس بن مالك ﷺ په خپل بوډاوالی په آخری وختونوکښې وو.که بوډا کال دوه کاله پورې روژې او نه نیسی نود هرې ورځې په بدله کښې دې یومسکین ته خوراك تیار کړی او دیرشو مسکینانو ته دې ورکړی..(۳)

**د فدیه مقدار**

**مسلک حنفی:-** د احنافو په نیز د یوې ورځې فدیه نیم صاع غنم یا د دې قیمت دې نیم صاع زمونږ د مروجه سیر اتیا تولو په حساب سره تقریبا پوکم دوه سیر جوړیږی د دې بازاری قیمت دې معلوم کړې شی او یو مسکین ته دې مالکانه حیثیت سره ورکړې شی یعنی چه هغه ئې مالک جوړ کړی (معارف القرآن تالیف مفتی محمد شفیع m (۴۴۲۱۱)-

**د حاملې او مرضعې د روژې حکم:-** هم دا شان حمل والا ښځه اوپئ ورکوونکې ښځه چه کله ورته د خپل ځان یا د خپل بچی د ژوند ویره وی نودې باره کښې علماء کراموکښې اختلاف دې.(۱) بعضې وائی چه هغه دې روژه نه نیسی اوکله چه ویره ختمه شی نو دهغې قضا دې راوړی.(۲) بعضې وائی چه صرف فدیه کافی ده قضا دې نه راوړی.(۳) بعضې وائی چه قضا دې راوړی فدیه پرې نشته (۴) او

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب ( لمن شهد منکم الشهر....) : ۴۵۰۷،صحیح مسلم: ۱۱۴۵)-

(۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب قوله تعالی ( ایاما معدودات) : ۴۵۰۵،) -

(۳) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب قوله تعالی ( ایاما معدودات) : ۴۵۰۵،) -

دبعضو قول دې چه نه دې روژه نیسي او نه دې فدیه ورکوي او نه دې قضا راوړي. (امام ابن کثیر رحمه الله) دا مسئله په خپل کتاب الصیام کښې تفصیل سره واضحه کړې ده. فالحمدلله. (په ظاهره هم دا خبره دلائل ته زیاته نزدې په نظر راځي چه دا دواړه دې داسې حالتونو کښې روژه نه نیسي او دې نه پس دې قضا راوړي، فدیه دې نه ورکوي)

**د حاملې او مرضعې د روژې او کفارې حکم**

**مسلک حنفي:**- دابو حنیفه m مسلک دا دې چه مرضعه (تی ورکونکې زنانه) او حامله (حملداره زنانه) دې روژه نه نیسي بلکه کله چه د رضاعت او حمل تکلیف ختم شي نو قضاء به راوړي او په دوی باندې فدیه نشته.

① **په مریض باندې قیاس:**- حامله او مرضعه د مریض پشان ده لکه څنګه مریض د بیمارئ نه ټیک شي نو هغه به قضاء راوړي او کفاره پرې نشته دغه شان به حامله او مرضعه هم. امام حسن فرمائي چې د حمل نه زیات بل کوم مرض وي. نوهرکله چه په مریض باندې فدیه نشته نو دغه شان به په حامله او مرضعه باندې هم نه وي.

② **عدم حواز د جمع بین البدلین:**- قضاء روژه د مریض دپاره د اداء نه بدل دې دغه شان فدیه د شیخ فاني دپاره د روژې نه بدل دې. اوس که مونږ په حامله او مرضع باندې قضاء او فدیه دواړه واجب کړو نودا د دوو بدلونو جمع شوه او جمع د بدلین جائز نه ده. کذا في روائع البیان للصابوني (۱۰۱۱/۲)

شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيٓ أُنْزِلَ

| میاشت د رمضان | هغه ده | چې نازل کړې شو

رمضان هغه میاشت ده چې نازل شوې دې

فِيْهِ الْقُرْاٰنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى

په هغې کښې | قرآن | چې هدایت دې | دپاره دخلقو | او روښانه دلیلونه دي | دلارمونډلو

په دې کښې قران چې د خلقو دپاره سراسر هدایت دې | اود نیغې لارې واضح دلیلونه په کښې موجود دي

وَالْفُرْقَانِ ۚ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ۗ

اوحق لره دباطل نه جدا کولو | نوهغه چاچې | ابیا مونده | ستاسونه | دامیاشت | نوخامخا دروژې اونیسي دهغې

اوحق اوباطل په ښه شان سره جدا کوي | نوخوک چه په تاسو کښې دا میاشت بیا مومي | نوخواه مخواه روژې نیسي

وَمَنْ كَانَ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ۗ يُرِيْدُ اللّٰهُ

او هغه څوک چې وي | ناجوړه | یا | په سفر | نو شمار | دورخو | نورونه | غواړي الله

اوخوک چې ناجوړه وي | یا په سفر کښې وي | نوهغه دې په نورو ورځو کښې (دروژو) شمیر پوره کړي الله غواړي

بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيْدُ بِكُمُ الْعُسْرَ وَلِتُكْمِلُوا

په تاسوباندې | آسانتیا | اونه غواړي | په تاسو باندې | سختي | اودپاره ددې چې تاسو پوره کړئ

چې تاسوسره نرمي اوکړي اوپه تاسو سختي کول نه غواړي (اودا چل ورته ځکه ښائ) چې پوره کړئ تاسو

| الْعِدَّةَ | وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ | عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ | وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ |
|---|---|---|---|
| شمار | او چې لوئي بيان كړئ دالله | په دې چې هدايت ئې كړې دې تاسو ته | او دپاره ددې چې تاسو شكراو باسئ |
| شمير د روژو | او چې په دې هدايت باندې دالله لوئي بيانوئ | اود دې دپاره چې دهغه شكر ادا كړئ | |

**قوله تعالى:-شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْاٰنُ**

**د اسماني كتابونو نزول په رمضان كښې**:-درمضان د مياشتې فضيلت او بزرگي بيانيږي چه هم په دې مباركه مياشت كښې قران پاك نازل شوې وو.مسند احمد كښې حديث دې چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه د ابراهيمي صحيفې د رمضان په ړومبئ شپه كښې نازله شوې وې او توراة په شپږم تاريخ،اوانجيل په ديارلسم تاريخ او قران پاك په خليريشتم تاريخ نازل شو.([1]) يو بل روايت كښې دى چه زبور په دولسم تاريخ اوانجيل په اتلسم تاريخ.مخكښې ټولې صحيفې او توراة،انجيل،او زبور وغيره چه په كوم كوم پېغمبر باندې نازل شوې وې په يو ځل نازل شوې وې ليكن قران كريم بيت العزة نه دنياوى اسمان ته خو په يو ځل نازل شوې دې او بيا وخت په وخت د ضرورت په وخت زمكې ته نازل شو.هم دا مطلب دې د﴿ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ ﴾ او﴿ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ ﴾ او﴿اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْاٰنُ ﴾.قرآن كريم په يو ځل اول آسمان نه د رمضان المبارك په مياشت كښې ليلة القدر كښې نازل شو.او هم دې (ليلة القدر) ته ليله مباركه وائي.

**د قران پاک دنياوى اسمان ته په يو ځل نازليدل**:- حضرت عبدالله بن عباس ﷜ نه هم دا روايت دې. هركله چه دوى نه دا سوال اوشو چه قران پاك خو مختلفو مياشتو كښې،كالونوكښې،مكمل شو نو بيا په رمضان كښې او هغه هم ليلة القدر كښې د دې نه نزول څه مطلب دې ؟ نو حضرت عبدالله بن عباس ﷜ هم دا مطلب بيان كړو،ابن مردويه وغيره.د دوى نه هم دا روايت كړې دې چه د رمضان په مينځ كښې قران پاك دآسمان نه دنياوى آسمان ته نازل شو.پدې كښې ډيرآيتونه دكفارو په جواب كښې نازل شو.دكفارو اعتراض هم دا وو چه دا قران پاك په يوځل ټول په ټوله ولې نازل نه شو.نو ددې په جواب كښې اوونيلې شو چه﴿لِنُثَبِّتَ بِهٖ فُؤَادَكَ وَرَتَّلْنٰهُ تَرْتِيْلًا﴾داپدې وجه چه ستازړه برقرار اومضبوط اوساتو، وغيره.

**قوله تعالى:-هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى وَالْفُرْقَانِ**

**قران هدايت دې**:- بيا د قرآن پاك په تعريف كښې بيان كيږي چه دا د خلقو دزړونودپاره هدايت دې.او په دې كښې واضح او روښانه دليلونه دى.څوک چې په دې تدبر او غوروفكر كوى نو هغه صحيح او نيغه لار مونديشي. دا( قرآن پاك) حق او باطل،حرام اوحلال كښې فرق كوونكې دې،هدايت اوگمراهئ اورشدوهدايت كښې فرق كوونكې دې.

**صرف د رمضان وئيلو حكم**:- د بعضو سلفو نه منقول دى چه صرف رمضان ونيل مكروه دى.شهررمضان يعنى درمضان مياشت ونيل پكار دى.حضرت ابوهريره ﷜ نه روايت دې چه رمضان مه وائې،دا دالله ﷻ نوم دې.شهر رمضان يعنى د رمضان مياشت وائې.حضرت مجاهد ﷫ او محمد بن كعب ﷫ نه هم دا روايت دې.د حضرت ابن عباس ﷜ او حضرت زيد بن ثابت ﷜ مذهب ددې خلاف دې.د رمضان نه ونيلو باره كښې يو مرفوع حديث هم دى.ليكن دسند لحاظ سره هغه صحيح نه دې.حضرت امام بخارى ﷫ هم ددې په رد كښې باب قائم كړې دې او ډير احاديث ئې بيان فرمائيلى دى.يو حديث كښې دى چه كوم سړې درمضان المبارك روژې ايمان او صحيح نيت سره اونيسى نو دده مخكښې او

---

[1] احمد : ۱۰۷/٤،

روستی گناهونه بخښلي شي.وغيره.(¹)

**قوله تعالی:-** وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ

**بيمار او مسافر دپاره اجازت :-** غرض ددې آيت نه دا ثابته شوه چه کله درمضان مياشت په نظر راشي نوكه يوسړې په خپل كوركښې وی،په سفر كښې نه وی،او تندرست هم وی،هغه باندې روژې نيول لازمي اوضروری دی.مخکښې داسې قسمه خلقو ته د روژې نه نيلو اجازت وو خو هغه ختم شو.ددې بيان فرماني اودبيمار اومسافرداجازت بيان كوی چه دا خلق دې دروژې په ورځوكښې دې روژې نه نيسی.اوددې قضا دې روستو راوړی.يعنی چه دچا په بدن كښې څه تكليف وی چه د هغې په وجه په روژه كښې مشقت وی يا ورته تكليف وی يا په سفر كښې وی نو افطار دې كوی او چه څومره روژې اوخوری نو روستو دې ددې قضا راوړی.

**قوله تعالی:-** يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ

**الله د اسانتيا اراده لری:-** بيا ارشاد كيږی چه په دې حالتونوكښې رخصت يا اجازت عطاء فرماني چه تاسودمشقت نه بچ کړی اوداټول څمونږ د رحمت ظهور دې،او د اسلام په احكاموكښې آسانی ده. اوس دلته څو مسئلې واورئ.

**اوله مسئله::** دسلفو ديوې ډلې خيال دې چه كوم سړې په خپل كور كښې مقيم وی يا درمضان المبارك مياشت راوخيژی،بيا دې په رمضان كښې په سفر باندې روان شي نو دې كه روژه نيسی نو دا جائز دی.ځكه چه داسې خلقو ته د روژې نيولو صفا حكم په قران پاك كښې موجود دې.اوكه داسې خلق (يعنی مسافر)د سفر په حالت كښې روژه نه نيسی نو دا هم جائز دی.اوددې خلقو دپاره په سفر كښې روژه نه نيول جائز دی خوچه درمضان مياشت راشي.خو دا غريب قول دې.ابومحمد بن حزم رحمه الله په خپل كتاب(المحلی)كښې دصحابه او تابعينو يو ډلې نه هم دا مذهب نقل كوی.ليكن په دې كښې كلام دې والله اعلم.

نبی كريم ﷺ رمضان المبارك كښې د فتح مكه دپاره اووتل،دروژې مياشت وه،كديد ته په رسيدو ئې روژه افطار كړه،او نورو خلقو ته ئې هم دروژې ماتولو حكم اوفرمائيلو. (بخاری ومسلم). (²)

## دوئمه مسئله

**په سفر كښې روژه نه نيول واجب دی:-** دصحابه كرامو ﷺ او تابعينو يوه ډله وائی چه په سفر كښې روژه ماتول واجب دی ځكه چه قران پاك كښې دی چه ﴿فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ليكن صحيح قول دجمهورو دې، هغه دا دې چه سړی ته اختيار دې كه روژه نيسی اوكه نه نيسی.ځكه چې كله به خلق په مياشت د رمضان كښې نبی كريم ﷺ سره په سفر وتل نو بعضو به روژې نيولې او بعضو به نه ساتلې.نو هغوی به په بل باندې څه قدغن نه لګولو.(³)كه افطار واجب وې نو په روژه ساتونكو به انكار وې بلكه پخپله نبی كريم ﷺ نه په حالت دسفر كښې روژه ساتل ثابت دی.بخاری اومسلم كښې دی چه حضرت ابودرداء فرمائی چه رمضان المبارك كښې سخته ګرمی وه مونږ حضرت نبی ﷺ سره په يو سفر كښې وو، د ګرمئ د زيات والی په وجه به مو په سرونولاسونه راښكل.مونږ كښې هيڅوك روژه دار نه وو سوا د نبی كريم ﷺ او دحضرت عبدالله بن رواحه ﷺ نه.(⁴)

## دريمه مسئله

---

¹) صحيح بخاری كتاب الايمان باب صوم رمضان احتسابا من الايمان : ۳۸،صحيح مسلم: ۷۶۰)-

²) صحيح بخاری كتاب الصوم باب من افطر فی السفر ليراه الناس: ۱۹۴۸،صحيح مسلم: ۱۱۲۲)-

³) صحيح بخاری كتاب الصوم باب لم يعب اصحاب النبی بعضهم بعضا فی الصوم والافطار صحيح مسلم: ۱۱۱۶)-

⁴) صحيح بخاری كتاب الصوم باب رقم : ۳۵،ح/۱۹۴۵،صحيح مسلم: ۱۱۲۲)-

**په سفر کښې روژه د عدم روژې نه غوره دی:-** د علماء کرامو دیو جماعت دا خیال دې (چه په دوی کښې حضرت امام شافعی رحمه الله هم شامل دې ) چه په سفر کښې روژه ساتل،د نه ساتلونه افضل دی.ځکه چه نبی کریم ﷺ نه په حالت دسفر کښې روژه ساتل ثابت دی.دیو بل جماعت خیال دې چه روژه نه ساتل افضل دی.ځکه چه په دې کښې په اجازت باندې عمل دې.اویوبل حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ نه دسفری روژې په باره کښې تپوس اوشو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څوك روژه ماته کړی نوهغه ښه اوکړل او چه چا ماته نه کړه نو په هغه باندې هیڅ ګناه نشته دی.([1])یو بل حدیث کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دالله ﷻ د رخصتونه کوم چې هغه پاك ذات تاسو ته درکړی دی هغه قبول کړئ([2])

**سفر کښې روژې ساتل اونه ساتل برابردی:-** د دریم جماعت قول دې چه ساتل نه ساتل دواړه برابر دی.ددوی دلیل دحضرت عائشه رضی الله عنها حدیث دې چه حضرت حمزه بن عمرو اسلمی رضی الله عنه اوونیل چه یارسول الله ﷺ څه اکثر روژې ساتم نو آیا اجازت شته دې چه په سفرکښې روژې اونیسم.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه که غواړې نو ساته او که غواړې نو مه ساته (بخاری ومسلم).([3])

**که مشقت وی نه افطار غوره دې:-** د بعضو خلقو قول دې که روژې سره دتکلیف ویره وی نو افطار کول افضل دی.حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ یو سړې اولیدو چه په هغه باندې سیورنی کړې شوې وو.نبی کریم اوفرمائیل چه دا څه خبره ده.خلقو اوونیل چه یارسول الله ﷺ ! دده خو روژه ده.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په سفر کښې روژه نیول نیکی نه ده.(بخاری ومسلم) ([4])

داخیال دې وی چه کوم سړې دسنتو نه مخ واړوی او روژه پریښودل دسفر په حالت کښې هم مکروه ګڼړی نو په هغه باندې افطار کول ضروری دی.او روژه نیول حرام دی.

**په سفرکښې د روژې افضیلت که تکلیف نه ورکوی**

**مسلک حنفی:-** د احنافو مسلک دا دې که په سفر کښې ورته روژه تکلیف نه ورکوی نو روژه نیول افضل او غوره دی اوکه تکلیف او مشقت کښې اخته کیږی نو نه نیول ورله افضل دی (احکام القران للعثمانی (۱۱۱۱ ۱۸۲)-_

مسند احمد وغیره کښې حضرت ابن عمر رضی الله عنه اوحضرت جابر رضی الله عنه وغیرنه روایت دې چه کوم سړې رخصت قبول نه کړی په هغه باندې دعرفات دغرونو برابر ګناه ده.([5])

**څلورمه مسئله:-په قضاءراوړلوکښې دتسلسل حکم:-**څلورمه مسئله داده چه آیاد قضاروژودپاره متواترې روژې نیول ضروری دی او که جدا جدا هم اوساتلې شی نو په دې کښې به هیڅ باك نه وی

(۱)یومذهب دبعضو خلقو دادې چه قضاد ادا په مثل پورا کول پکار دی.جدا جدا نه بلکه متواتر روژې نیول پکاردی.(۲)دویم داچه قضاروژې متواترې ساتل ضروری نه دی.اوکه جدا ئې نیسی(۳)د جمهورو سلفواوخلفو همدا قول دې اودا دلائلو سره هم ثابت دې رمضان المبارك کښې متواتر روژې ساتل ددې وجې دی چه هغه میاشت د ادا کولو ده او د رمضان وتلونه پس خوصرف هغه شمیر پورا کول دی.که هره یوه ورځ وی.ددې وجې د قضا د حکم نه پس الله ﷻ د آسانتیا نعمت بیان کړې دې.

**قوله تعالی:-** يُرِيْدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيْدُ بِكُمُ الْعُسْرَ

---

[1] صحیح مسلم کتاب الصوم باب الصیام،باب التخیر فی الصوم والفطر فی السفر: ۱۱۲۱)-

[2] صحیح مسلم کتاب الصوم باب الصیام،باب جواز الصوم والفطر فی شهر رمضان: ۱۱۱۵)-

[3] صحیح بخاری کتاب الصوم فی السفر والافطار : ۱۹٤۳،مسلم: ۱۱۲۱)-

[4] صحیح بخاری کتاب الصوم باب قول ا لنبی صلی الله علیه وسلم (( لم ظلل علیه.....) صحیح مسلم: ۲٦۱۲)-

[5] احمد: ۲/۷۱)-

**په دین کښې اسانتیا ده:-** مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه بهترین دین هغه دی چه هغه آسانتیا والا وی.[۱] مسند احمد کښې یو حدیث کښې دی چه ابوعروه ﷺ وائی چه مونږ د نبی کریم ﷺ یو خل انتظار کولو.هرکله چه نبی کریم ﷺ تشریف راوړونو د نبی کریم ﷺ د سرمبارك نه اوبه څڅیدلې.معلومیدله چه نبی کریم ﷺ غسل یا اودس کړې او راغلی دی.هرکله چه مونځ نه فارغ شو نو خلقو ددوی نه سوالونه شروع کړل چه یارسول الله ﷺ آیا په فلانی کار کښې څه باك شته دې ؟ فلانی کار کښې څه باك شته دې؟ نوآخرکښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دالله ﷺ دین آسانتیا والا دې،درې خل نبی کریم ﷺ دا اوفرمائیل.[۲]

دمسند احمد په یو بل حدیث کښې دی چه حضرت نبی کریم صلی ا لله علیه وسلم فرمانی چه په خلقو آسانئ راولئ سختئ نه،تسکین ورکړئ نفرت نه.[۳]دبخاری ومسلم کښې په حدیث کښې هم دی چه نبی کریم ﷺ حضرت معاذ ﷺ او حضرت ابوموسی ﷺ یمن طرفته لیږل نو وې فرمائیل چه تاسو دواړه خوشحالئ ورکوئی،نفرتونه مه ورکوئی،آسانئ ورکوئی او سختئ مه کوئی،په خپلو کښې اتفاق سره اوسیږئ اختلاف مه کوئی.[۴]سنن او مسانید کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه زه یوطرفیزه د نرمئ او آسانئ په دین سره لیږلې شوې یم.[۵]

محجن بن ادرع ﷺ فرمائی چه نبی کریم ﷺ یو سړې اولیدو چه هغه مونځ کولو.نبی کریم ﷺ هغه ته غورسره کتل،بیا نې اوفرمائیل چه تاسو ده ته ګورئ چه په رښتیا سره مونځ ادا کوی.خلقواووئیل چه یارسول الله ﷺ دې په ټولو مدینې والوکښې د ټولو نه زیات مونځګذار دې.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ده ته دا مه وائې هسې نه چه دا د ده دهلاکت سبب جوړشي.واورئ دالله ﷺ اراده دې امت سره د آسانتیا ده.دسختئ نه ده.[۶] نو دآیت مبارك مطلب دا شو چه مریض اومسافر وغیره ته رخصت (اجازت) ورکول او هغه ته معذوره وئیل ددې په وجه دی چه دالله ﷺ اراده د آسانئ ده،دسختئ نه ده.او دقضا حکم د شمیر پورا کولو دپاره دی.او په دې رحمت،نعمت،هدایت،اوعبادت باندې تاسو ته پکاردی چه دالله ﷺ ذکر او لوئی بیان کړئی.لکه څنګه چه یو بل ځائې کښې دحج په موقع باندې فرمائی چه﴿فَإِذَآ أَفَضۡتُم مِّنۡ عَرَفَٰتٖ فَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ﴾یعنی کله چه تاسو د حج احکام ادا کړئی نو دالله ﷺ ذکر کوئی.یوبل ځائې کښې د جمعې دادا کولو نه پس فرمائی چه کله مونځ پوره شی نو په زمکه کښې خواره شئ او رزق تلاش کړئی،او دالله ﷺ ذکر زیات کوئی چه تاسوته فلاح ملاؤ شی.او بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿فَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ﴾یعنی دنمر راختلو نه مخکښې،دنمر ډوبیدو نه مخکښې ، د شپې، او د سجدونه پس دالله ﷺ تسبیح کوئی.هم دا مسنون طریقه ده چه دهر فرض مونځ نه پس دالله ﷺ حمد او تسبیح او تکبیر اووئیلې شی

حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه مونږ به د نبی کریم ﷺ د مونځ نه فارغیدل صرف د الله اکبر په آوازونو سره پیژندل.[۷] دا آیت دلیل دې ددې امر چه عیدالفطر کښې تکبیرونه وئیل پکار دی.د داؤد بن علی اصبهانی ظاهری رحمه الله مذهب دې چه ددې آیت په رڼا کښې اختر کښې تکبیرونه وئیل واجب

---

[۱] احمد: ۴۷۹/۳،وهو حسن وله طریق اخر عند احمد: ۳۳۸/٤ وسنده حسن)-
[۲] احمد: ٦۹/۵،وسنده ضعیف)-
[۳] احمد: ۱۳۱/۳،صحیح بخاری: کتاب الادب باب قول النبی صلی ا لله علیه وسلم ( یسرو ولا تعسروا) : ٦۱۲۵،صحیح مسلم: ۱۷۳٤)-
[۴] صحیح بخاری کتاب المغازی باب بعث ابی موسی ومعاذ.....٤۳٤٤،صحیح مسلم: ۱۷۳۳)-
[۵] صحیح بخاری کتاب الایمان باب الدین یسر تحت رقم : ۱۹،تعلیقا ترمذی کتاب المناقب باب مناقب معاذ بن جبل : ۳۷۹۳)-
[۶] احمد : ۳۲/۵)،-
[۷] صحیح بخاری کتاب الاذان باب الذکر اجر الصلاة : ۸٤۲،صحیح مسلم: ۵۸۳)-

دې خکه چه په دې ځائې کښې صيغه د امر ﴿وَلِتُكَبِّرُوااللّٰهَ﴾ ده. اوداحنافو مذهب ددې خلاف دې هغوی وائی چه په اختر کښې تکبيرونه وئيل مسنون دی. باقی بزرګان ورته مستحب وائی. اګر چه بعضو تفصيلاتو کښې اختلاف دې.

## د اختر په مونځ کښې دتکبيرونو حکم

**مسلک حنفی:-** په عامو مونځونو کښې تکبيرونه وئيل سنت دی خو په اخترونو کښې د زوائدو تکبيرونو وئيل واجب دی لکه صاحب د هدايه چه واجبات د مانځه شميری نو په هغې کښې دا هم فرمائی وَتَكْبِيرَاتُ الْعِيدَيْنِ او په عيدينو کښې تکبيرونه. (تسهيل الهدايه (۳۰۵/۱)-

**د شکر حکم:-** بيا فرمائی چه تاسو شکر کوئی. يعنی دالله ﷻ احکام پوره کولو باندې. اود هغه فرائضو پوره کولو باندې، اود هغه حرام شوی کارونو نه بچ کيدو باندې، د هغه د حدودو حفاظت والا جوړ شئ.

| أُجِيبُ | قَرِيبٌ ط | فَإِنِّي | عَنِّي | عِبَادِي | سَأَلَكَ | وَإِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قبلوم زه | زه نزدې يم | انو بيشکه | په باره زما کښې | بندګان زما | تپوس اوکړی ستانه | اوکله چې |

(ائې پيغمبره) هر کله چې زما بندګان زما باره کښې ستانه تپوس اوکړی (ور ته اووايه) چې زه (هغوی ته) ډيرنزدې يم کله چه

| لِي | فَلْيَسْتَجِيبُوا | دَعَانِ لا | إِذَا | الدَّاعِ | دَعْوَةَ |
|---|---|---|---|---|---|
| زما | نو پکار دی چې هغوی قبوله کړی بلنه | اوغواړی زمانه | کله چې | دغوښتونکې | دعا |

زمانه څوک دعا اوغواړی نو دهغه دعا قبلوم انو پکار ده چې دوی زما حکمونه اومنی (او په هغې عمل اوکړی

| يَرْشُدُونَ ۞ | لَعَلَّهُمْ | وَلْيُؤْمِنُوا بِي |
|---|---|---|
| نيغه لار بيامومی | شايد چې هغوی | او ايمان راوړی په ما |

او په ما باندې يقين اوکړی (د دې دپاره چه دوی په سمه لار روان شی)

**د ايت شان نزول:-** يواعرابی تپوس کړې ووچه يارسول الله ﷺ خمونږ رب نزدې دې ؟ که نزدې وی چه مونږ هغه سره خبرې اوکړو، ياکه لرې وی نو چه مونږ هغه په زوره زوره آوازونوسره راوبلو. نبی کريم ﷺ خاموش شو. په دې باندې دا آيت نازل شو. (ابن ابی حاتم).

**قوله تعالی:-** وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ ط

يوروايت کښې دی چه د صحابه کرامو ؓ په دې سوال باندې چه خمونږ رب چرته دې ؟ دا آيت نازل شو. (ابن جرير). حضرت عطاء فرمائی چه کله آيت ﴿ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ ط﴾ نازل شو يعنی ما بلئ خه به ستاسو دعاګانې قبلوم. نو خلقو تپوس اوکړو چه دعا په کوم وخت کښې کول پکار دی. نو په دې باندې دا آيت نازل شو. (ابن جريج).

**په ذکر او دعا کښې اخفاء کول:-** دحضرت ابو موسی اشعری ؓ بيان دې چه مونږ نبی کريم ﷺ سره يو غزوه کښې وو، په هره اوچته باندې دختلو په وخت، هر خوړ ته ته دکوزيد په وخت کښې به مونږتکبير وئيلو. نبی کريم ﷺ مونږ ته تشريف راوړو او وې فرمائيل چه انې خلقو په خپلو ځانونوباندې رحم اوکړئ، تاسو څه کم آوريدونکی يا لرې ذات نه رابلئ بلکه چه تاسو کوم ذات رابلئ هغه پاك ذات ستاسو د سورلو څټونو نه هم تاسوته زيات نزدې دې. انې عبدالله بن قيس واورئ د جنت خزانه ﴿ لا حول ولا قوة الا بالله ﴾ ده (مسند احمد).[1]

**الله د بنده سره وی:-** حضرت انس ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه الله ﷻ فرمائی چه زما بنده ما

---

[1] احمد : ۴۰۲/۴، صحيح بخاری کتاب الدعوات باب اذا علاعقبة : ۶۳۸۴، صحيح مسلم: ۲۷۰۴)-

سره ښکنګه عقیده ساتي،څه هم هغه سره هغه شان کوم،هرکله چه هغه زما نه دعا غواړي نو څه هغه سره یم (مسند احمد).([1])

حضرت ابو هریره ﷛ فرمائي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زما بنده چه کله مایادوي او دده شونډې زما په یادکښې خوزې نو زه ده سره یم (رواه الامام احمد).([2]) ددې مضمون آیت قرآن پاك کښې هم دې،فرمان دې چه ﴿ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوا وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ ۝﴾ چه کوم تقوی او احسان او خلوص والا خلق دي هغوي سره الله ﷻ دې.حضرت موسی ﷺ اوحضرت هارون ﷺ ته ئې اوفرمائیل چه ﴿ قَالَ لَا تَخَافَا إِنَّنِي مَعَكُمَا أَسْمَعُ وَأَرَىٰ ۝﴾ څه تاسو دواړو سره یم،ستاسو آورم او تاسو وینم

**قوله‌تعالی:-أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ**

**الله دعا قبلوي:-** مقصد دا دې چه الله ﷻ ددعا کونکو دعا نه رد کوی او نه داسې کیږی چه هغه پاك ذات ددې دعا نه غافله پاتې شي،اودا واونرئ.دې کښې دعا کولو طرفته رغبت ورکړې شوې دې اوددې نه ضائع کیدو وعده کړې شوې ده.حضرت سلمان فارسي ﷛ فرمائي چه نبي کریم ﷺ فرمائي چه بنده کله دالله ﷻ مخکښې لاس پورته کړي او دعا غواړي نو هغه پاك ذات ارحم الراحمین ددې نه شرمیږي چه دده لاسونه خالي اوبې کاره راواپس کړي (مسند احمد).([3])

**دعا عبث نه ځي:-** حضرت ابو سعید خدري ﷛ فرمائي چه نبي کریم ﷺ فرمائیلي دي چه کوم یو بنده دالله ﷻ نه څه دعا کوي چه په هغې کښې نه څه ګناه وي،نه دې سره څه رشتې وغیره ماتیږي،نوده ته دالله ﷻ په دریوخبرو کښې یو ضرور ورکوي. ❶ دده دعا په هغه وخت کښې قبوله کړې او هم په هغه وخت کښې د هغه مراد پوره کوي. ❷ دا(دعا )دده دپاه ذخیره کړي او ده دپاره ئې ساتي او په آخرت کښې ورته د هغې ثواب ورکوي. ❸ ددې (دعا) په وجه څه راتلونکې مصیبت او بلا ترې لرې کړي.خلقو چه دا واوریدل نو وې وئیل چه مونږ به ډیرې دعاګانې کوؤ،نبي کریم ﷺ اوفرمائیل،چه بیا الله ﷻ سره د څه کمې دې.(مسند احمد).([4])

**ناجائزه دعا نه قبلیږي:-** حضرت عباده بن صامت ﷛ فرمائي چه نبي کریم ﷺ فرمائیلي دي چه په مخ د زمکې کوم مسلمان دالله ﷻ نه دعا اوغواړي نو الله ﷻ هغه قبلوي یا دده چه څه مراد وي نو هغه ده ته ملاویږي یا دده نه هغه شان څه مصیبت لرې شي خو په دې شرط چه ده د رشته دارئي د پریښودو دپاره دعا نه وی کړې (مسند احمد).([5])

**په دعا کښې تلوار نه دې کول پکار:-** حضرت ابو هریره ﷛ نه روایت دې چه نبي کریم ﷺ فرمائیلي دي چه ترڅو پورې څوك په دعا کښې تیزي اونه کړي نوددده دعا ضرور قبلیږي.تیزي کول دادي چه اووائي چه ما خو ډیرې دعاګانې اوغوښتلې خو قبولې نشوې.(موطا امام مالك).([6])په بخاري شریف کښې روایت دي چه په ثواب کښې جنت ورکړې کیږي.صحیح مسلم کښې دا هم دي چه هغه دې دنه قبلیدو خیال د زړه نه اوباسي او دعا دې اوغواړي،دا تیزي کول دي.([7]) د ابوجعفر طبري ﷫ په تفسیر کښې دي چه دا قول د حضرت عائشه ﵂ بیان کړې شوې دې.

---

[1]) احمد : ۲۱۰/۲،وسنده صحیح)-

[2]) احمد : ۵٤۰/۲،ابن ماجة کتاب الادب باب فضل الذکر : ۳۷۹۰،وهو حدیث صحیح )-

[3]) احمد : ٤۳۸/۵،ابوداود کتاب الصلاة (الوتر) باب الدعاء : ۱٤۸۸،ترمذی: ۳۵۵۶،ابن ماجة: ۳۸۶۵)-

[4]) احمد : ۱۸/۳ ،ح/۱۱۱۳۳ ،وسنده حسن)-

[5]) احمد : ۳۲۹/۵،کتاب الدعوات باب في انتظار الفرج : ۳۵۷۳،وهو حدیث حسن)-

[6]) صحیح بخاری کتاب الدعوات باب یستجاب للعبد ما لم یعجل : ٦۳٤۰)-

[7]) صحیح مسلم کتاب الذکر والدعاء باب بیان انه یستجاب للداعی ما لم یعجل: ٦۳٤۰)-

**د غافله دعا نه قبلیږي:-** حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ فرمائي چه حضرت رسو ل اکرم ﷺ فرمانیلي دي چه زړونه په مثال دلوښو دي، بعضې بعضو نه زیات نګرانی کولو والا وي. انې خلقو ا تاسو چه کله دالله ﷻ نه دعا غواړی نو دقبلیدو یقین ترې ساتئ. واورئ د غافله زړه خاوند دعا الله ﷻ نه قبلوی. (مسند احمد). ([1])

حضرت عائشه صدیقه ﵂ یو ځل رسو ل اکرم ﷺ نه ددې آیت باره کښې تپوس اوکړو، نو حضرت رسول اکرم ﷺ دعا اوکړه چه انې الله ﷻ ا دحضرت عائشه ﵂ ددې سوال ځه جواب دې. حضرت جبریل ﵇ تشریف راوړو او وې فرمائیل چه الله ﷻ تاسو ته سلام کوي. اوفرمائي چه مراد ددې نه هغه سړې دې چه نیك عملونو کولو والا وی او رینښتونی نیت سره ما راوبلی نو ځه لبیك ورته وایم او دهغه حاجت ضرور پوره کوم. (ابن مردویه). دا حدیث د اسنا په لحاظ سره غریب دې.

**یوه جامع دعا:-** یوبل حدیث کښې دی چه حضرت رسو ل اکرم ﷺ ددې آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو، بیا ئې اوفرمائیل چه انې الله ﷻ تا ددعا حکم کړې دې او د اجابت وعده دې فرمانیلې ده، ځه حاضر یم، یا الهی ځه حاضر یم، حاضر یم، اې لا شریك الله ﷻ ځه حاضریم. تعریفونه نعمتونه او بادشاهی ستا دپاره ده، تا سره هیڅوك شریك نشته دې، ځه ګواهی ورکوم چه ته احد ئې، او بې مثل ئې، او یو ئې، ته پاك ذات ئې، د اهل وعیال نه لرې ئې، نه ستا څوك همسر شته دې او نه ستا ذات سره څوك برابر شته دې اونه ستا په شان څوك شته، ځه ګواهي ورکوم چه ستا وعده رښتونې ده، ستا ملاقات حق، جنت او دوزخ حق، او دوباره ژوند دا ټول برحق کارونه دی. (ابن مردویه ).

**په یو څیز کښې د الله او د بنده شراکت:-** حضرت انس ﷺ نه روایت دې چه حضرت رسو ل اکرم ﷺ فرمانیلی دی چه د الله ﷻ ارشاد دې چه انې ابن آدم یو څیز خوستا دی، یو زما دې، او یو زما اوستا په مینځ کښې تقسیم دې. خالص زما حق دادې چه هم یو زما عبادت اوکړې، او زما سره څوك شریك نه جوړوی. ځما سره مخصوص دا دې چه ستا دهر هرعمل پورا پورا بدله به ځه تاته ضرور درکوم او ستا هیڅ نیکی به نه ضائع کوم. په مینځ کښې چه کوم یو څیز دې هغه دا دې چه ته دعا کوه او ځه به ئې قبلوم. دعا کول ستا کار دې او دعا قبلول زما کار دی. ([2]) (بزار)

**دعا حکم د روژو د احکامو په مینځ کښې:-** ددعا ددې آیت د روژو د احکامو په مینځ کښې دراوړو حکمت دادې چه د روژو ختمیدو نه پس خلقو ته د دعا کولو ترغیب وی بلکه هره ورځ د افطار په وخت کښې هغوی ډیرې دعاګانې کوی. حضرت رسول اکرم ﷺ فرمانیلی دی چه روژه دار د افطار په وخت کښې کومه دعا کوی الله ﷻ هغه قبلوی.

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ به د افطار په وخت کښې خپل کور والا او بچی راغوښتل او دعا به ئې کوله (ابو داؤد طیالسی). ([3]) ابن ماجه کښې هم دا روایت دې او په هغې کښې دصحابه کرامو ﷺ دا دعا منقول ده. (اللهم انی اسئلك برحمتك التی وسعت کل شیٔ ان تغفرلی) ([4]) یعنی انې الله ﷻ ځه تاته ستا رحمت یادوم، چه هغه ټولو څیزونه راګیر کړی دی، او ستا نه سوال کوم چه زما ګناهونه معاف کړه).

**د درې کسانو دعا نه رد کیدل:-** اویو بل حدیث کښې دی چه د درې قسمه خلقو دعا نه رد کیږی. ① د عادل بادشاه ② دروژه داردعا ③ او د مظلوم هغه به د قیامت په ورځ الله ﷻ اوچت کړی. دمظلوم بددعا

---

[1] احمد : ۱۷۷/۲.
[2] البزار ۱۸/۱.
[3] ابو داود الطیالسی: ۲۲۶۲.
[4] ابن ماجة کتاب الصیام باب فی الصائم لا ترددعوته : ۱۷۵۳، وهو حدیث حسن.

دپاره د اسمان دروازې پرانیستې شي.او الله ﷻ فرمائي چه خمادې په خپل عزت قسم وي چه خه به ستا مدد ضرور کوم،اګر چه زر نه وي.(مسند ،ترمذي،نسائي او ابن ماجه).([1])

أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ

| حلال کړې شوې دي| ستاسو دپاره| په شپه | د روژو کښې

| تاسو دپاره د روژو په شپه کښې

الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ ۚ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ عَلِمَ اللَّهُ

کوروالي| د ښځو خپلو سره | هغوئ| جامې دي | ستاسو دپاره| اوتاسو | جامې يئ د هغوئ دپاره | معلوم دي الله ته

خپلو ښخو ته نزدیکت مباح شوې دي| هغوئ ستاسو جامې دي او تاسو د هغوئ جامې يئ| الله ته معلومه ده چې

أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا

چې بیشکه| تاسو | خیانت اوکړو | د خانونو خپلو سره| نو رجوع د رحمت ئې اوکړه| په تاسو باندې| او معافي ئې اوکړه

تاسو د خپلو خانونو سره (پټ پټ) خیانت کړې دې| نو هغه ستاسو توبه قبوله کړه| او تاسو ئې معاف کړئ

عَنكُمْ ۖ فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ

تاسو ته | نو اوس | د شپې جماع کوئ د هغوئ سره| اوغواړئ کړئ| هغه اولاد| چې لیکلې دې الله

نو اوس ورسره (د شپې) کوروالي کوئ| او کوم (خوند او اولاد) چې الله ستاسو دپاره مقرر کړې دي هغه حاصلوئ شئ

لَكُمْ ۚ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ

ستاسو دپاره| او خورئ | او څکئ | تر هغې پورې | چې ښکاره شي| تاسو ته | تار

......(د دې نه سوا) د شپې خوراک او څکاک هم کوئ| تر دې چې را ښکاره شي سپین تار

الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۖ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ۚ

سپین | د تار | تورنه | یعنی صبا | بیا | پوره کړئ| روژه | د شپې پورې

(د صبا رڼا) د رته د شپې د تور تار (د شپې تیارې) نه او صبا راوخيژي| نو بیا تر ماښام پورې روژه پوره کوئ

وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ ۗ تِلْكَ

او کوروالي مه کوئ د ښځو سره | کله چې تاسو| اعتکاف کوونکي يئ| په جوماتو نو کښې| دا

او د بله داچې) ښخو ته مه ورنزدې کیږئ کله چې تاسو په جماتونو کښې اعتکاف کښې ئی | دا

حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ

حدونه د الله دي | نو مه نزدې کیږئ هغې ته| هم دارنګې| بیانوی | الله | آیتونه خپل| دپاره د خلقو

د الله (مقرر کړې) حدونه دی | نو دې ته نزدې نزدې مه ګرځئ الله خلقو ته خپل حکمونه وضاحت سره بیانوی

---

[1] احمد:۲/۴۴۵،کتاب الدعوات،باب سبق المفردون : ۳۵۹۸،ابن ماجة : ۱۷۵۲،(وسنده حسن)۔

| لَعَلَّهُمْ | يَتَّقُونَ ﴿١٨٧﴾ |
|---|---|
| امید دې چې هغوئ | ځان اوساتي دغلطو طريقو نه |
| چې هغوئ دغلط کارونو نه بچ شي | |

**قوله تعالى:-أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ**

**په رمضان کښې خوراک څکاک او جماع** :د اسلام په شروع کښې دا حکم وو چه دافطارنه پس خوراك څکاك اوجماع کول د ماسخوتن مونځ پورې جائز وو.اوکه څوك به ددې نه مخکښې اوده شو اوهغه ته به خوب ورغلو نو هرڅه به پرې حرام شو.په دې کښې صحابه کرام ﷺ ته لږ شان مشقت وو.او په دې باندې د اجازت دا آيتونه نازل شو.او دآسانئ حکم راغلو.

**قوله تعالى:-الرَّفَثُ إِلَى نِسَآئِكُمْ**

**د رفث نه مراد:-** ﴿ الرَّفَثُ ﴾ نه مراد دلته جماع ده.حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ،مجاهد رحمه الله،عطاء رحمه الله، سعيدبن جبير رحمه الله،طاوس رحمه الله،سالم بن عبدالله رحمه الله،عمرو بن دينار رحمه الله،حسن رحمه الله،قتاده رحمه الله، زهری رحمه الله،ضحاك رحمه الله،ابراهيم نخعي رحمه الله،سدی رحمه الله،عطاء خراساني رحمه الله،مقاتل بن حيان رحمه الله هم دا فرمائي.

**قوله تعالى:-هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ**

**د لباس نه مراد:-** دلباس نه مرادسکون دې،ربيع بن انس رحمه الله دلحاف معنى بيانوی چه دښځې خاوند خپلوکښې تعلقات داقسمه دی چه هغوی ته په شپوکښې هم دتعلق ساتلواجازت ورکولې شي. مخکښې حديث تير شوې دې چه ددې آيت شان نزول څه دې ؟.هغې دا بيان شوی دی چې کله دا حکم ووکه دافطار نه مخکښې به څوك څملاستل اوبيا به د شپې پاسيدل نو هغه دپاره خوراك څکاك کول جائز نه وو.بلکه ده به دا شپه او سبا ورځ تيره کړه او د ماښام نه پس به ددهٔ دپاره خوراك څکاك کول حلال وو.

**د قيس بن صرمه ﷺ واقعه:-** حضرت ابوقيس بن صرمه انصاری ﷺ ټوله ورځ په پټو کښې کار اوکړو او کورته واپس راغلو،ښځې ته ئې اوونيل چه دخوراك څه شته دې ؟جواب ملاؤ شو چه هيڅ نشته دې،خه ځم اوخه راوړم،نو هغه لاړه او دده سترګې ورغلې،هرکله چه راغله او وې کتل نوډير افسوس ورته اوشو چه اوس به دې دا شپه او سبا ورځ اوږې وی اودا به څنګه تيروی.نوکله چه نيمه ورځ تيره شوه نو حضرت قيس بن صرمه ﷺ د لوږې د وجې بې هوشه شو حضرت رسول اکرم ﷺ سره دده ذکر اوکړې شو نو په هغه وخت کښې دا آيت نازل شو او مسلمانان ډير خوشحاله شو.(١)

**د بعضې صحابوٴ نه کوتاهي کيدل:-** يوروايت کښې دی چه صحابه کرام ﷺ به ټول رمضان کښې ښځو ته نه ورتلل،ليکن بعضو خلقو نه داسې څه خطاګانې کيدلې نو په دې باندې دا آيت نازل شو.(٢) يوبل روايت کښې دی چه دا قصور د ډيروحضراتو نه شوې وو.چه هغوی کښې حضرت عمرفاروق ﷺ هم وو.نوپه دې باندې دآيت نازل شو.يو روايت کښې دی چه حضرت عمر فاروق ﷺ چه هغوی د ماسخوتن مونځ نه پس خپلې بی بی سره مباشرت کړې وو.بيائې دربارنبوت کښې شکايت اوکړو او درحمت دا آيت نازل شو.يوروايت کښې دی چه کله حضرت عمر فاروق رضى الله عنه راغلو ا و دا واقعه ئې واوروله نو حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائيل چه ائې عمر ﷺ ا ستاسو نه خو دا اميد نه وو.هم په هغه وخت کښې دا آيت نازل شو.

---

(١) صحيح بخاری کتاب الصوم باب قول الله تعالى : ( احل لكم ليلة الصيام....) ١٩١٥،ابوداود : ٢٣١٤،ترمذی: ٢٩٦٨،نسائي: ٢١٧٠)-

(٢) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة البقرة باب ( احل لكم ليلة الصيام......) ٤٥٠٨)-

يو روايت كښې دى چه حضرت قيس ﷺ د ماسخوتن مونځ نه پس رابيدار شوې وو او خوراك څكاك نې كړې وو.او سحر د حضرت رسول اكرم ﷺ په خدمت كښې حاضر شوې وو او خپل قصور نې ورته بيان كړې وو.يو روايت كښې دى چه كله حضرت عمرفاروق ﷺ د مباشرت كولواراده اوكړه نو بى بى ورته اووئيل چه ماله خوب راغلې دې خو هغوى ﷺ ګمان اوكړو چه ګنى دا بهانه كوى.په دې شپه حضرت عمر فاروق ﷺ تر ډيره پورې مجلس نبوى ﷺ كښې ناست وو او ډير ناوخته كورته واپس شو.اويو روايت كښې دى چه حضرت كعب بن مالك نه هم دا قصور شوې وو.[1]

**قوله تعالى:-** وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللهُ لَكُمْ

**د كتب نه مراد:-** ﴿ مَا كَتَبَ اللهُ ﴾ نه مراد اولاد دې.[2] بعضو وئيلى دى چه ليلة القدر ترې مراد دې.قتاده ﷺ وانى چه ددې نه مراد رخصت دې.تطبيق په دې ټولو اقوالوكښې داشان كيدې شى چه د عموم په طورهم ټول مراد دى.دجماع رخصت نه پس د خوراك څكاك اجازت ملاويږى چه تر صباصادق پورې د دې اجازت دې.

**دپشنمى او افطارى متعلق مسائل :-** : صحيح بخارى كښې دى چه حضرت سهل بن سعد ﷺ فرمائى چه مخكښې د ﴿ مِنَ الْفَجْرِ ﴾ لفظ نه وو نازل شوې نو څه خلقو به خپلو پښو سپين او تور تارونه اوتړل و تركومې پورې چه به په سپينوالى او توروالى كښې نې فرق نه وو كړې نو ترهغه به نې خورك څكاك كولو.دې نه پس معلوم شو چه ددې نه مراد شپه او ورځ دى.[3]

**دعدى بن حاتم ﷺ واقعه:-** مسند احمد كښې دى چه حضرت عدى بن حاتم ﷺ فرمائى چې ما هم دوه تارونه سپين او تور دخپلې تكيه لاندې كيخودل او تركومې چه به مې ددې په رنګ كښې تميز اونه كړې شو نو ترهغه وخته پورې به مې خوراك څكاك كولو.سحر مې حضرت رسول اكرم ﷺ ته دا ذكر اوكړو.نو حضرت رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل چه ستا تكيه خو ډيره اوږده راووتله.ددې نه مراد خو د سبا سپين والى،دشپې توروالې دې.دا حديث په مسلم او بخارى كښې هم دې.[4] د حضور نبى كريم صلى الله عليه وسلم ددې قول مطلب دادې چه په آيت كښې خو د تارونو نه مراد د ورځې سپين والى او دشپې توروالى دې.نو كه ستا د تكيه لاندې دا دواړه ( توروالى او سپين والى) راخى نو ګويا چه ددې اوږدوالى مشرق او مغرب پورې دې .صحيح بخارى كښې دا تفسير هم روايتاً موجود دې.[5]

بعضو روايتونوكښې دا لفظ هم دې چه بيا خو ته ډير اوږد څټ والا نې.[6] بعضو خلقو ددې معنى بيان كړې ده چه كند ذهن يې،ليكن دا معنى غلطه ده،بلكه مطلب د دواړو جملو هم دا يو دې څكه چه تكيه دومره لويه ده نو څټ به هم دومره لوئې وى.والله اعلم.بخارى شريف كښې د حضرت عدى ﷺ هم دا شان سوال او د حضرت رسول اكرم ﷺ هم داشان جواب تفصيل سره راغلې دې.د آيت د دې الفاظو نه د پشنمى خوړلو استحباب هم ثابت دې.څكه چه د الله ﷻ په اجازتونو باندې عمل كول هغه ته خوښ دى.

**قوله تعالى:-** وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ

**د پيشمنى حكم:-** دحضرت رسول اكرم ﷺ فرمان دې چه پشنمې كوئ څكه چه په دې كښې ډيربركت دې.

---

[1] احمد: ۳/٤٦۰،ددې سند حسن دې.

[2] ابن ابى حاتم: ۱/۳۷۷.

[3] صحيح بخارى كتاب التفسر سورة البقرة باب (كلو واشربوا.....) : ٤٥۱۱،صحيح مسلم: ۱۰۹۱.

[4] احمد: ۳/۳۷۷،صحيح بخارى كتاب التفسر سورة البقرة باب (كلو واشربوا.....) : ٤٥۰۹،صحيح مسلم: ۱۰۹۰.

[5] صحيح بخارى كتاب التفسر سورة البقرة باب (كلو واشربوا.....) : ٤٥۱۰.

[6] صحيح بخارى كتاب التفسر سورة البقرة باب (كلو واشربوا.....) : ٤٥۱۰.

(بخاری ومسلم).([1]) زمونږ او د اهل کتابو په روژو نیولو کښې هم د اد پشمنی خوړلو فرق دې (مسلم).([2]) پشمنې خوړل برکت دې.دامه پرېږدئ اګر چه څه ملاؤ نشی اګر چه د اوبو یو ګوټ ولې نه وی.الله ﷺ او د هغه فرښتې په پشمنې کونکو باندې رحمت لیږی.(مسند احمد).([3]) داشان نور ډېر احادیث هم دی.

پشمنې ناوخته خوړل پکار دی په داسې وخت کښې چه د فارغیدو نه پس صبا صادق شی.حضرت انس ﷺ فرمائی چه مونږ به پشمنی خوړلو نه پس مونځ دپاره اودریدو ،د اذان او پشمنی په مینځ کښې به دومره فرق وو چه پنځوس آیتونه به لوستلې شو.(بخاری ومسلم).([4]) حضرت رسول اکرم ﷺ فرمائی چه ترکومې پورې زما امت په افطارکښې تیزی کوی او په سحری خوړلوکښې تاخیر کوی نو هغه پورې به په ښیګړه کښې وی.(مسند احمد ).([5]) دا هم حدیث مبارک نه ثابت دی چه حضرت رسول اکرم ﷺ ددې نوم غداء مبارکه اینبودې دې.([6])

**د صبا راختو نه وړاندې پورې پیشمنې کول:-** مسنداحمد وغیره کښې حدیث دې چه حضرت خذیفه ﷺ فرمائی چه مونږ حضرت رسول اکرم ﷺ سره پیشمنې اوکړو په داسې وخت کښې چه ګویانمر راختلو والا وو.([7]) لیکن په دې کښې یو راوی عاصم بن ابونجود منفردې او ددې نه مراد نیزدیکت دې لکه د الله ﷺ فرمان دې چه ﴿فَإِذَابَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ﴾ یعنی کله چه هغه ښځې خپل نیتې ته اورسی،مراد دا دې چه کله دعدت موده نزدې شی.هم دا مراد د دې حدیث هم دې چه هغوی پیشمنې اوکړو اود صبا صادق یقین نه وو.لیکن داسې وخت وو چه چا به وئیل چه صبا شو،چا به وئیل چه صبا شوې نه دې د اکثرو صحابه کرامو ﷺپیشمنې روستو کول اوتر آخره پورې خوراك کول ثابت دی لکه حضرت ابوبکرصدیق ﷺ، حضرت عمر فاروق ﷺ،حضرت علی ﷺ،حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ،حضرت حذیفه ﷺ،حضرت ابوهریره ﷺ،حضرت ابن عمر ﷺ،حضرت عبدالله بن عباس ﷺ،حضرت زید بن ثابت ﷺ.او د تابعینو د یولوئې ډلې نه هم صبا صادق ته نزدې د پیشمنې خوراك مروی دې.لکه محمد بن علی بن حسین ﷫،ابومجلز ﷫،ابراهیم نخعی ﷫،ابوالضحی ﷫،او ابو وائل ﷫ وغیره شاګردان د ابن مسعود ﷺ،او عطاء ﷫ او حسن ﷫ او حاکم بن عینیه ﷫ او مجاهد ﷫ او عروه بن زبیر او ابوالسعاء جابر بن زید ﷫ او د اعمش ﷫ او جابر بن راشد ﷫.هم دا مذهب دې دې په دې ټولویاندې د الله رحمتونه نازل کړی.مونږ ددوی ټولو اسنادو یومستقل کتاب د کتاب الصیام په نوم باندې بیان کړې دې.والله اعلم.

**یو ضعیف قول:-** ابن جریر ﷫ په خپل تفسیر کښې دبعضې خلقو نه هم دا نقل کړی دی چه نمر ختلو پورې خوراك څکاك جائز دی لکه څنګه چه ډوبیدو سره افطار کول.لیکن داقول یو علم والا نشی قبلولې.څکه چه د نص قران پاك خلاف دې.قران پاك کښې د(خیط ) لفظ موجود دې.د بخاری اومسلم حدیث کښې دی چه حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چه د (حضرت ) بلال ﷺ په اذان آوریدو سره تاسو خوراك څکاك مه بندونی،هغه په هغه وخت کښې اذان کوی چه لا شپه باقی وی.تاسو خوراك څکاك کونی.ترکومې چه (حضرت) عبدالله بن ام مکتوم ﷺ اذان اونکړی هغه اذان نه کوی تر څو چه سحر نه

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الصوم باب برکة السحور من غیر ایجاب: ۱۹۲۳،صحیح مسلم: ۱۰۹۵)-

[2]) صحیح مسلم کتاب الصیام باب فضل السحور وتاکید استحبابه: ۱۰۹٦)-

[3]) احمد: ۳/٤٤)-

[4]) صحیح مسلم کتاب الصوم باب قدر کم بین السحور وصلاة الفجر: ۱۹۲۱،صحیح مسلم: ۱۰۹۷)-

[5]) احمد: ۳/٤٤)-

[6]) ابوداود کتاب الصیام باب من سمی السحور الغداء : ۲۳٤٤،وسنده حسن : نسائی: ۲۱٦٥)-

[7]) احمد ۵/۳۹٦،نسائی: کتاب الصیام باب تاخیر السحور: ۲۱۵٤،ابن ماجة: ۱٦۹۵،وهو حدیث حسن)-

وی راختلي.(۱)
مسند احمد کښې حدیث دې چه حضرت رسول اکرم ﷺ فرمائي چه سحرهغه نه دې چه د آسمان په لمنو کښې ښه خور شي.بلکه دا (سحر) خو هغه سرخی د ه چخه دآسمان په (کناور) غاړو کښې ښکاره شی (۲)ترمذی کښې حدیث کښې دی چه په هغې کښې دی چه دا ږومبې صبا کوم چې راخیژی،ددې په لیدو سره خوراك څکاك مه بندوئی،تردې پورې چه (دآسمان په) لمنو کښې سورالې راوخیژی.(۳)
یو بل حدیث کښې ئې د صباکاذب اود حضرت بلال ﷛ د اذان ذکر یو ځاې بیان فرمائیلی دې.(۴)یو بل روایت کښې دی چه د صبا کاذب سپین والی ته ئې د ستنوپشان ونیلی دی.(۵) دویم روایت کښې ئې ددې ږومبی اذان چه ددې موذن حضرت بلال ووداوجه بیان کړې ده چه هغه داوده خلقو د رابیدارولو او او تهجدو د مونځ دپاره کیږی.دې سره صبا نه رازی.ترکومې پورې چه داشان نه وی ؟ یعنی دا نه چه په آسمان کښې اوچت راوخیژی بلکه په کنارو کښې ظاهرشی.(۶)یو مرسل حدیث کښې دی چه صبا دوه دی،یو د شرمخ د لکئ په شان،په دې سره په روژه دار باندې
هیڅ څیز نه حرامیږی.اودویم هغه صبا چه دآسمان په کنارو کښې ظاهر شي،هغه د سحر دمونځ وخت دې.اود روژه دار د خوراك څکاك موقوف کولو وخت دې.(۷)حضرت عبدالله ابن عباس ﷛ فرمائي چه کوم سپین والې د آسمان د لاندې نه راپورته کیږی د هغې مونځ حلت اودروژې حرمت سره هیڅ کار نشته دې.بلکه کوم صبا چې د غرونو په څوکونوباندې پرقیږی هغې سره خوراك څکاك حرامیږی
.حضرت عطاء نه مروی دی چه آسمان کښې اوږدې اوږدې راختلو والا رڼاګانې دی نه خو په روژه دار باندې خوراك څکاك حرامیږی،او نه دې سره دمونځ وخت معلومیدې شی،نه حج فوت کیږی.لیکن کوم سبا چه د غرونو په څوکو باندې خوریږی هغه سحر دې چه په روژدارو باندې ټول څیزونه حراموی.او د مونځګذار دپاره مونځ حلالوی.او حج فوت کیږی.د دې دواړو روایتونو سندصحیح دې او دیروسلفو نه دا منقول دی،الله ﷻ دې په هغوی باندې خپل رحمتونه نازل کړی.

**د جنابت په حالت کښې صبا کولو حکم:-** چونکه د جماع او خوراك څکاك آخری وخت الله ﷻ د روژې دار دپاره صبا صادق مقرر کړې دې.ددې نه په دې مسئله باندې استدلال کیږی چه د صبا په وخت کښې کوم سړې جنبی پاسی هغه دې غسل اوکړی اوخپله روژه دې پوره کړی.د څلور واړو ائمه کرامو او د سلفو او خلفو جمهور علماء کرامو هم دا مذهب دې.بخاری اومسلم کښې د حضرت عائشه ﷞ او حضرت ام سلمه ﷞ نه روایت دې چه حضرت رسول اکرم ﷺ د شپې په وخت کښې جماع کوله.د صبا صادق په وخت کښې به جنب پاسیدل،بیابه ئې غسل اوکړو او روژدار به وو.د دوی د جنب کیدل داحتلام په سبب نه وو.حضرت ام سلمه ﷞ والا روایت کښې دی چه بیا به نه حضرت رسول اکرم ﷺ افطار کولو اونه به ئې قضا راوړه.(۸)
صحیح مسلم کښې دی چه حضرت عائشه ﷞ نه روایت دې چه یو سړی اووئیل چه یارسول الله ﷺ څه

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الاذان باب الاذان قبل الفجر : ۶۲۲،صحیح مسلم: ۲۵۳۶)-
(۲) احمد: ۲۳/۴)-
(۳) ابوداود کتاب الصیام باب بیان ان الدخول فی الصوم.......: ۷۰۵،و سنده حسن)-
(۴) صحیح مسلم کتاب الصیام باب فی بیان ان الدخول فی الصوم: ۱۰۹٤)-
(۵) صحیح مسلم کتاب الصیام باب فی بیان ان الدخول فی الصوم: ۱۰۹٤)-
(۶) صحیح مسلم کتاب الاذان باب الاذان قبل الفجر : ۶۲۱،صحیح مسلم : ۱۰۹۳)-
(۷) الطبری فی تفسیره: ۳۰۳،وهو حسن بالشاهد الذی فی المستدرک : ۱۹۱/۱.وسنده حسن)-
(۸) صحیح بخاری کتاب الصوم باب الصائم یصبح جنبا : ۱۹۲۵،صحیح مسلم: ۱۱۰۹)-

مونږ ته راتلو پورې جنب یم نو ایا خه روژه اوساتم ؟ حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چه هم دا خبره ماسره هم کیږی او خه روژه ساتم.ده اووئیل چه یارسول الله ﷺ مونږ خو ستاسو په شان نه یو.الله ﷻ خوستاسو ټول مخکښې روستي ګناهونه معاف کړی دی.حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چه والله ماته خوامید دې چه څه ستاسو نه زیات دالله ﷻ نه ویریږم او ستاسو نه زیات د تقوی نه خبر یم.(۱)
مسند احمد کښې یو حدیث دې چه کله د صبا صادق آذان اوشي او تاسو کښې څوک جنب وی نوهغه دې په هغه ورځ روژه نیسی.ددې اسناد ډیر ښه دی.او داحدیث د شیخینو په شرط باندې دې لکه چه ظاهر دی.داحدیث بخاری او مسلم کښې هم دحضرت ابوهریره ﷺ نه مروی دې.هغه فضل بن عباس ﷺ نه روایت کوی،هغه د حضرت رسول اکرم ﷺ نه.(۲) سنن نسائی کښې داحدیث په روایت دحضرت ابوهریره دې،هغه د اسامه بن زید ﷺ او فضل بن عباس ﷺ نه روایت کوی او مرفوع کوی.د بعض علماء قول دې چه په دې حدیث کښې د اعلت دې چه دا مرفوع نه دې اود ځینې نورو علماء کرامو هم دامذهب دې.ابوهریره ﷺ،سالم رحمه الله،عطاء رحمه الله،هشام بن عروه رحمه الله او حسن بصری رحمه الله هم دا فرمائی.
بعضې خلق وائی که جنب ځملاستو او سبا صادق راختلو باندې ئې سترګې اوغړیدې نو دې روژه کښې هیڅ نقصان نشته دې.دحضرت عائشه رضی الله عنها او حضرت ام سلمه رضی الله عنها والا حدیث همدا مطلب دې.
اوکه ده په ښه طریقې سره غسل اونکړو او هم په دې حالت کښې صبا شو نو دده روژه اونشوه.حضرت عروه رحمه الله،طاؤس رحمه الله او حسن رحمه الله هم دا فرمائی.
بعضې وائی چه فرض روژه وی نو پوره،دې کړی لیکن قضا ئې لازم ده.او که نفلی روژه وی نو هیڅ حرج نشته دې.ابراهیم نخعی رحمه الله هم دا وائی.خواجه حسن بصری رحمه الله نه هم دا یو روایت دې،بعضې وائی چه حضرت د ابوهریره ﷺ حدیث حضرت عائشه رضی الله عنها په حدیث سره منسوخ دې،لیکن حقیقت کښې دتاریخ پته نه لګی چه هغې سره دا منسوخ ثابت شی.ابن حزم رحمه الله فرمائی چه ددې ناسخ د قران پاك دا آیت دې.لیکن دا هم لرې خبره ده ځکه چه دې آیت نه پس نازلیدل ثابت نه دی بلکه ظاهرخو دا ده چې دا حدیث هم ددې نه پس دې.
بعضې خلق وائی چه د حضرت ابوهریره ﷺ حدیث کښې لا نفی دکمال ده.یعنی ددې سړی روژه کامله نه ده.ځکه چه د حضرت عائشه رضی الله عنها او دحضرت ام سلمه رضی الله عنها والا حدیث نه جواز ښکاره ثابتیږی.هم دامسلك صحیح دې اود نورو ټولو اقوالو نه دا قول بهتر دې او داسې وئیلو سره په دواړو روایتونو کښې د تطبیق صورت هم راوزی.والله اعلم.

## دجنابت روژې سره منافات نشته

**مسلك حنفی:** داحنافو په نیز که جنب په حالت دجنابت کښې صبا کړی نو دده روژې ته هیڅ نقصان نه رسی.برابره ده که د ناراستیا د وجې ئې د جنابت په حالت کښې صبا کړی وی او که دغه شان اوده پاتې شوې وی (مسائل روزه صفحه ۷۰ بحواله فتاوی دارالعلوم دیوبند (۲/۴۱۴)-

**قوله تعالی:-** ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ

**د روژې د افطار وخت:-** بیا فرمائی چه روژه تر شپې پورې پورا کړئی.د دې نه دا ثابته شوه چه نمر پریوتلو سره روژه افطار کول پکار دی.بخاری اومسلم کښې دامیر المومنین حضرت عمر بن خطاب ﷺ نه مروی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د یو طرفنه شپه راشی اود بل طرفنه نه ورځ ختمه شی نو روژې افطار کونی.(۳)بخاری اومسلم کښې حضرت سهل بن سعد ساعدی ﷺ نه روایت دې چه حضرت

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الصیام باب صحة صوم من طلع علیه الفجر وهو جنب: ۲۵۹۲)-
(۲) احمد: ۳۱٤/۲،صحیح بخاری کتاب الصوم باب الصائم یصبح جنبا: ۱۹۲۵،صحیح مسلم: ۱۱۵۹)-
(۳) صحیح بخاری کتاب الصوم باب متی یحل فطر الصائم : ۱۹٥٤،صحیح مسلم: ۱۱۰۰)-

رسول اکرم ﷺ فرمائیلی دی چه خوپوري خلق په افطار کولو کښې تیزی کوی نو په خیر به وی.(۱)
مسنداحمد کښې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي چه حضرت رسول اکرم ﷺ فرمائي چه دالله ﷻ ارشاد دي چه ماته ډیر خوښ هغه خلق دی چه په روژه افطار کولوکښې تیزی کوی.امام ترمذی رحمه الله دي حدیث ته حسن غریب ونیلی دی.(۲)

**د صوم الوصال ممانعت**:- د مسند یو حدیث کښې دی چه د بشیر بن خصاصیه رضی الله عنه بی بی حضرت لیلی رضی الله عنها فرمائي چه ما دوه روژې بغیر د افطار نه یو کول غوښتل نو زما خاوند خه منع کړم اوویې ونیل چه حضرت رسول اکرم ﷺ ددې نه منع فرمائیلې ده او فرمائیلي ئې دی چه داکار د نصرانیانو دي.تاسو خو روژې داشان ساتئ چه څنګه دالله ﷻ ارشاد دي چه دشپې روژه افطار کوئی.(۳)او نورهم ډیرو احادیثو کښې د روژې یو ځائې کولو نه منع فرمائیلې شوې ده.

دمسند یو حدیث کښې دی چه حضرت رسول اکرم ﷺ فرمائي چه روژې مه یوځائې کوئی.نوخلقو اوونیل چه یارسول الله ﷺ ! چه تاسو خو په خپله یو ځائې کوئی.نو حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چه زه ستاسوپه شان نه یم خه شپه تیروم او زما رب ماته خوراك څکاك راکوی.خو خلق بیا هم ددې نه منع نشو.نو حضرت رسول اکرم ﷺ د دوه ورځو اودوه شپو برابر روژه اونیوله،بیا میاشت په نظر راغله نو حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل که چرې میاشت نه وې ښکاره شوې نو ما خو داشان روژې یو ځائې کولې.نوحضرت رسول اکرم ﷺ خپله عاجزی ظاهرول غوښتل.بخاری اومسلم کښې هم یو حدیث داشان دي.(۴)

اودا شان روژه بغیر د افطار کولو نه چې د شپې د خوراك څکاك نه بغیر بله روژه اونیسی د دې نه د نبی کریم ﷺ ممانعت په بخاری اومسلم کښې دحضرت انس رضی الله عنه،حضرت ابن عمر رضی الله عنه،او حضرت عائشه رضی الله عنها نه هم مرفوع احادیثو مروی دی.(۵)نو ثابت شو چه امت منع کړې شوې دي او د حضرت رسول اکرم ﷺ ذات مبارك سره دا روژه نیول مخصوص وه.د حضرت رسول اکرم ﷺ ذات مبارك کښې ددې طاقت ور.او دالله ﷻ د طرفنه په دې باندې د حضرت رسول اکرم ﷺ سره مدد کیدو.

دادې هم خیال وی چه حضرت رسول اکرم ﷺ چې دا اوفرمائیل چه زما رب ماته خوراك څکاك راکوی، ددې نه مراد په حقیقت کښې خوراك څکاك نه دې خکه چه بیا خو یوه روژه بلې روژې سره یو ځائې نشوه.بلکه دا صرف روحانی طور مدد وو لکه د عربو یو شاعریو شعر کښې وائی چه :

لها احادیث من ذکراك تشغلها
عن الشراب تلهیها عن الزاد

(ترجمه) هغه ته ستاپه ذکر او خبروکښې هغه دلچسپی ده چه د خوراك څکاك نه بې پرواه کیږی.

**د یو پیشمنی نه بل پیشمنی پورې روژه نیول**:- خوکه څوك دویم پیشمنی پورې خوراك څکاك بندول غواړی نو دا جائز دی.د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه والا حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه وصال مه کوئی،چه څوك کول غواړی نو پیشمنی پورې دې کوی.خلقواوونیل چه تاسو خو وصال کوئی.حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چه زه ستاسو په شان نه یم.ماته خو د شپې خورونکې خوراك

---

۱) صحیح بخاری کتاب الصوم باب تعجیل الافطار : ۱۹۵۷،صحیح مسلم: ۱۰۹۸)-
۲) مسند احمد: ۲۳۷/۲،ترمذی کتاب الصوم باب ما جاء فی تعجیل الافطار : ۷۰۰)-
۳) احمد : ۲۲۵/۵،وسنده صحیح مجمع الزوائد : ۱۵۸/۳)-
۴) احمد : ۲۸۱/۵،صحیح بخاری کتاب الصوم باب التنکیل لمن اکثر الوصال: ۱۹۶۵،صحیح مسلم: ۱۱۰۳)-
۵) صحیح بخاری : ۱۹۶۱،صحیح مسلم : ۱۱۰۲)-

راکوی او څکونکي را باندې څکاک کوی (بخاری ومسلم) (۱)یوبل روایت کښې دی چه یو صحابیه ښځه حضرت نبی کریم ﷺ ته راغله او حضرت رسول اکرم ﷺ پیشنمي کولو .حضرت رسول اکرم ﷺ ورته اوفرمائیل چه رازه ته هم اوخوره.هغې اووئیل چه زما روژه ده.حضرت رسول اکرم ﷺ ورته اوفرمائیل چه ته روژه څنګه نیسې ؟ هغې بیان اوکړو نو نبی کریم (ص) اوفرمائیل د ال محمد پشان د یو پیشمنی د وخت نه واخله تر بل پیشمنی وخته پورې مسلسل روژه ولې نه نیسې (۱) (ابن جریر) حضرت رسول اکرم ﷺ به دیو پیشمنې نه تر بل پشنمی پورې روژه نیوه.

**د نفس د ریاضت په طور د صوم الوصال حکم:-** ابن جریرکښې حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ وغیره سلف صالحین نه مروی دی چه هغوی به څو څو ورځو پورې پرله پسې روژه نیوله بغیر د څه خوراك څکاك نه.بعضې خلق وائی چه دعبادت په طور نه وو بلکه د نفس د مړ کولو د ریاضت په طور وو،والله اعلم.

او دا هم ممکن دی چه هغوی داګنړلی وی چه دحضرت رسول اکرم ﷺ ددې نه منع کول صرف د شفقت او مهربانۍ په طور وو دې ته د ناجائز ونیلو په طورنه وو،لکه څنګه چه حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه په تاسو خلقو ئې د رحم کولو په طور فرمائیلی وو.

**د صوم الوصال نه منع د شفقت په وجه:-**نو ابن زبیر ﷺ او ددوی څوئې عامر ﷺ او ددوی په لار تلونکو به په خپل نفس کښې قوت لرلو،او روژې به ئې ډیرې نیولې.دا هم مروی دی چه کله به هغه افطار اوکړو دوی به مخکښې غوړی او تریخ ګوند خوړلو چه هسې نه غذا رسیدو سره کولمې او شلیږی. مروی دی چه حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ اووه اووه ورځو پورې پرله پسې روژې نیولې او په دې دوران کښې به ئې څه خوراك نه کولو.او بیا به په اوومه ورځ ښه تندرست او صحت مند او دټولو نه به زیات قوی لیدې شو.ابوالعالیه ﷺ فرمائی چه الله ﷺ د ورځې روژه فرض کړه،په هغه شپه که څوك خوراك کوی او که نه کوی.

قوله تعالی:-وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ

**په اعتکاف کښې د جماع ممانعت:-** بیا فرمائی چه د اعتکاف په حالت کښې ښځو سره مباشرت مه کوئی.دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ قول دې چه کوم سړې په جمات کښې اعتکاف ته ناست وی که په رمضان کښې وی او که نورو میاشتوکښې وی،په ده باندې د ورځې او د شپې په وخت کښې خپلې ښځې سره جماع کول حرام دی،ترکومې چه دې اعتکاف پوره کړې نه وی حضرت ضحاك ﷺ فرمائی چه مخکښې به خلقو د اعتکاف په حالت کښې هم جماع کوله،نوپه دې باندې دا آیت نازل شو.او په جمات کښې اعتکاف والا باندې دا کار حرام کړې شو.مجاهد ﷺ او قتاده ﷺ هم دا فرمائی.(۲)

**د اعتکاف څو مسائل:-** د علماء کرامو متفقه فیصله ده چه اعتکاف کونکې که څه د ضروری حاجت دپاره کور ته لاړشی،لکه وړوکی اودس ماتی اویا غټ اودس ماتی یا خوراك دپاره نوددې کار نه د فارغیدو نه پس دې جمات ته لاړشی.اوکور کښې ایساریدل جائز نه دی او نه خپلې بی بی سره بوس وکنار وغیره جائزدی.او نه داعتکاف نه علاوه په څه بل کار کښې مشغولیدل دده دپاره جائز دی.بلکه دبیماردتپوس دپاره هم تګ جائزنه دې.اودابله خبره ده چه په تلوتلوکښې ئې تپوس اوکړی. د اعتکاف نور هم ډیر احکام دی.بعضو کښې اختلاف هم دې.دا ټول مونږ په خپل مستقل کتاب ( کتاب الصیام) آخر کښې بیان کړی دی.(ولله الحمد والمنة).

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الصوم باب الوصال: الی السحر : ۱۹۶۷،ابوداود: ۲۳۲۱)–

(۲) الطبری: ۵۴۱/۳)–

**د اعتکاف اهمیت:-** چونکه قران پاك کښې د روژو نه پس داعتکاف ذکر دې،هم ددې وجې مصنفینوهم په خپلو خپلو کتابونوکښې دروژې نه پس داعتکاف احکام بیان کړی دی.په دې کښې دې خبرې طرفته اشاره ده چه اعتکاف دروژې په حالت کښې کول پکار دی یا درمضان په آخرکښې.حضرت رسول اکرم ﷺ به درمضان په آخرکښې اعتکاف کولو.تردې پورې چه حضرت رسول اکرم ﷺ وفات شو. حضرت رسول اکرم ﷺ نه پس به امهات المومنین رضی الله عنهن به اعتکاف کولو (بخاری ومسلم).(۱)

**د اعتکاف حالت کښې خپلې بی بی سره هسې ملاقات کول:-**صحیحینو کښې دی چه حضرت صفیه بنت حیی ﷺ دحضرت رسول اکرم ﷺ په خدمت کښې د نبی کریم ﷺ د اعتکاف په حالت کښې حاضریده اوکه څه د ضرورت خبره به وه نو دهغې تپوس به ئې کولو اوواپس به شوه.یو خل چه کله د شپې لاړه نو چونکه دکور نه مسجد نبوی ﷺ پورې فاصله وه،ددې وجې حضرت رسول اکرم ﷺ د هغې کور ته د رسولو دپاره هغې سره تشریف یوړو.په لار کښې ورسره دوه صحابه کرام ملاو شو.او چه د حضرت رسول اکرم ﷺ سره ئې بی بی اولیده نود شرم د وجې ئې قدمونه اودرول اوواپس تلل چه حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل اودریږئې واوریئ دا زما بی بی صفیه ﷺ ده.هغوی اوونیل چه سبحان الله ( آیا مونږ ته څه بل خیال هم کیدیشی).حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چه شیطان دانسان په رګ رګ کښې ګرزی،ماته خیال اوشو چه هسې نه هغه ستاسو په زړه کښې څه بدګمانی پیدا کړی.(۱)

**د تهمت نه ځان ساتل:-** حضرت امام شافعی ﷺ فرمائی چه حضرت رسول اکرم ﷺ په دې واقعه خپل امت ته سبق ورکوی چه هغوی دې د تهمت لګیدو نه خان لرې ساتی.ګنی دا خو ناممکن دی چه صحابه کرام ﷺ به دحضور ﷺ باره کښې څه بد خیال په زړه کښې راولی.اوداهم ناممکن دی چه حضرت رسول اکرم ﷺ د هغوی متعلق دا خیال په زړه کښې راولی.والله اعلم.

**په اعتکاف کښې د جماع د اسبابو نه ځان ساتل:-** په آیت کښې د مباشرت نه مراد جماع او ددې اسباب دی.لکه کوکې اخستل وغیره،ګنی یو بل ته دیو څیز اخستل اوورکول ټولې خبرې جائز دی.حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه حضرت رسول اکرم ﷺ به د اعتکاف په حالت کښې زما په مخکښې سر ټیټولو او مابه د حضرت رسول اکرم ﷺ سر مبارك کښې ږمنځ وهله حالانکه څه به په حیض کښې ووم حضرت رسول اکرم ﷺ به د اعتکاف په حالت کښې کور ته دڅه ضرورت نه علاوه تشریف نه راوړو حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه داعتکاف په حالت کښې به ما په تلو تلوکښې دکور دبیمار تپوس کولو (۲)

**قوله تعالی:-تِلْكَ حُدُودُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا**

بیاالله ﷻ فرمائی چه دا خمونږ بیان شوې خبرې دی او فرض کړې شوی احکام دی اومقرر شوی حدونه دی.روژې اود روژو احکام اوددې مسائل،په دې کښې چه کوم کارونه جائز او کوم ناجائز دی، هغه ټول خمونږ حدبندئی دی،خبردار دې ته نزدې مه ورځئ او مه ددې نه تجاوز کوئی او مه ددې نه مخکښې تګ کوئی. بعضې وائی چه داحد داعتکاف په حالت کښې دمباشرت نه لرې اوسیدل دی.بعضې وائی چه ددې آیتونو نه څلور احکام مراد دی.

**قوله تعالی:-ذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ**

بیا فرمائی چه څنګه روژې ددې احکام،مسائل او ددې تفصیل مونږ بیان کړو،داشان نور احکام هم مونږدخپل بنده اورسول ﷺ دمعرفت ټول جهان دپاره بیانوو چه (داجهان والا) دامعلومه کړې شی چه هدایت څه دې او اطاعت څه ته وائی.اوپه دې بناء هغوی متقیان جوړ شی.لکه بل ځائې کښې فرمائی

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الاعتکاف باب الاعتکاف فی العشر الاواخر: ۲۰۲۶،صحیح مسلم: ۱۱۷۲)-

(۲) صحیح بخاری کتاب الاعتکاف باب زیارة المرأة زوجها فی اعتکافه : ۲۰۳۴،صحیح مسلم: ۲۱۷۴)-

(۳) صحیح بخاری کتاب الاعتکاف باب لا یدخل البیت الا لحاجة: ۲۰۲۹،صحیح مسلم: ۲۹۷،ابوداود: ۲۴۶۸،ابن ماجة: ۱۷۷۶)-

چه ﴿هُوَ الَّذِيْ يُصَلِّيْ عَلَيْكُمْ وَمَلٰٓئِكَتُهٗ لِيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ؕ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا﴾ یعني هغه الله ﷻ چه په خپل بنده باندې روښانه آيتونه نازل فرمائي چه تاسو د تيارونه راوباسي او رنړاګانو ته مو راولي.الله ﷻ په تاسو باندې رحمت او نعمت نازل کړي.

| |
|---|
| وَلَا تَأْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ |
| او مه خورئ تاسو \| مالونه خپل \| په خپلو کښې |
| او تاسو په خپل مينځ کښې د يو بل مالونه په ناحقه طريقه مه خورئ |
| بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوْا بِهَآ اِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوْا فَرِيْقًا مِّنْ اَمْوَالِ النَّاسِ |
| په ناروا طريقه \| او مه وړئ \| هغه \| حاکمانو ته \| د پاره ددې چې تاسو او خورئ څه حصه \| د مالونو د خلقو نه |
| .......او حاکمانو ته ئې هم مه اوړئ (مثلاً چه هغوی ته رشوت ورکړئ) چې (بيدې چل) د خلقو د مالونو نه |
| بِالْاِثْمِ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۸﴾ |
| په ګناه او په زياتي سره \| او تاسو \| پوهيږئ \| |
| څه حصه سره د پوهې نه په ناجائزه طريقه را الاندې کړئ |

**قوله تعالٰی:-وَلَا تَأْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ**

**ديو بل په مال باندې ناجائزه قبضه کول حرام دي:** حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه دا آيت دهغه سړي باره کښې دې چه دبل سړي مال باندې په ناحقه قبضه اوکړي.اوچه کوم اصل حقدار وي هغه سره د شهادت يا دليل څه نه وي چه دا مال زما دې او په ناحقه قبضه کوونکې د دې انکار اوکړي او حاکم ته ورشي اوبرې شي.حالانکه هغه (ناحقه قبضه کوونکې)ته معلوم وي چه په دې باندې ددې د اصل مالك حق دې.اودې مال خوري او حرام خوري او خپل ځان په ګناهګاروکښې شاملوي.[۱] مجاهد رحمه الله، سعيد بن جبير رحمه الله ،عکرمه رحمه الله ،حسن رحمه الله ،قتاده رحمه الله ،سدي رحمه الله ،مقاتل بن حيان رحمه الله ، عبدالرحمن بن زيد بن اسلم رحمه الله هم دا فرمائي د دې باوجود چه ته ظالم ئې جګړه مه کوه.[۲]

**قوله تعالٰی:-وَتُدْلُوْا بِهَآ اِلَى الْحُكَّامِ**

**دقاضي فيصله ناحق نشي حق کولې:-** بخاري اومسلم کښې دحضرت ام سلمه نه مروي دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زه انسان يم،انسانان ما ته راځي اوځه جګړه وغيره راوړي شايد يوسړې دبل نه زيات حجت باز وي،څه چه دهغه د چالاکۍ خبرې واورم نو دهغه په حق کښې فيصله کوم.(حالانکه په حقيقت کښې زمافيصله د واقعې خلاف وي) نو پوهه شئ چه دچاپه حق کښې داسې فيصلې څه يومسلمان ته حق ورکړم،هغه داور يو ټکړه ده که هغه قبلوی اوکه نه ئې قبلوی.[۳]

**د ابن کثير تبصره:-** زه وايم چه دا آيت اوداحديث په دې امر باندې دليل دې چه دحاکم حکم په څه معامله کښې دشرعيت حقيقي حيثيت نشي بدلولې.في الواقع هغه د قاضي فيصلې سره حلاليدې او حراميدې نشي.دقاضي فيصله صرف ظاهري وي،باطن کښې نه شي نافذکيدې.اوکه هغه في الواقع هم د نفس الامر مطابق وي نو خير،ګني حاکم ته به هم اجرملاويږي.ليکن ددې فيصلې په بناء حق لره ناحق اوناحق لره حق جوړولو والا به د رب مجرم شي.

[۱] الطبری: ۵۵۰/۳)-
[۲] ابن ابی حاتم: ۳۹۳/۱)-
[۳] صحيح بخاری کتاب المظالم باب اثم من خاصم فی باطل وهو يعلم: ۲٤۵۸،صحيح مسلم: ۱۸۱۳)-

اودې به ګناهګار وی او په دې باندې پورته ایت مبارک ګواه دې چه تاسو چه تاسو ته ددې خبرې علم وی چې خما وعده باطله او غلطه ده او دخلقو مال خورلودپاره (داسې مه کوئ چې) په دروغه مقدمې جوړې کړئ،ددروغو ګواه راولئ،په ناجائزه طریقوسره حاکمانو ته دهوکې ورکوئ نو دسره تاسو خپلې دعوې مه ثابتوئ.

حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه انې خلقو اپوهه شئ چه قاضي تاسو دپاره حرام حلالولې نشی.او نه باطل حق کولې شی.قاضي خو د خپل عقل اوپوهې اودګواهانو د ګواهئ مطابق،د ظاهرې حالاتو مطابق فیصله کوی.او هغه هم انسان دې،ممکن دی چه خطا اوکړی اوممکن دی چه خطانه بچ شی.نو پوهه شئ که فیصله د قاضي د واقعې نه خلاف اوشی نو تاسو صرف هغه فیصله اوګنړئ نور پوهه شئ چه هغه جائزمال مه ګنړئ داجګړه باقي ده.تردې چه دقیامت په ورځ به دواړه جمع کړی اوباطل والوباندې به د حق صاحب ته غلبه ورکړی اوهغوی ته د هغوی حق ورکړی او په دنیا کښې چه کومه فیصله شوې وه هغه به ظاهره کړی او هغه ته به نیکو کښې دهغه بدله ورکړی.[1]

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَسْـَٔلُوْنَكَ | عَنِ | الْاَهِلَّةِ ؕ | قُلْ هِيَ |
| تپوس کوی ستانه | په باره | دسپوږمو کښې اوړته | اووایه چې دا |
| خلق ستانه دسپوږمئ باره کښې تپوس کوی ورته | | | اووایه چې دا |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَوَاقِيْتُ | لِلنَّاسِ | وَالْحَجِّ ؕ | وَلَيْسَ الْبِرُّ | بِاَنْ تَاْتُوا | الْبُيُوْتَ |
| نښې دی دوختونومقررولو | دپاره دخلقو | اودحج | اونه ده دانیکی | اچې ورځئ تاسو | کورونوته |
| د خلقو دپاره دتاریخ پیژندلواودحج دوخت معلومولو نښې ده | | | داهیڅ نیکی نه ده چې خپلوکورونوته | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ ظُهُوْرِهَا | وَلٰكِنَّ | الْبِرَّ | مَنِ اتَّقٰى ۚ | وَاْتُوا الْبُيُوْتَ | |
| دشاګانو دهغې نه | لیکن | نیکی داده اچې خوك خان اوساتی دناراضګئ دالله نه | | او ر ځئ کورونو ته | |
| دشاګانو د طرفه ورځئ | بلکه صاحب د نیکئ هغه دې چې خان دحرامونه بچ کړی | | | نو کورونو ته ورځئ | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ اَبْوَابِهَا ۠ | وَاتَّقُوا | اللّٰهَ | لَعَلَّكُمْ | تُفْلِحُوْنَ ۞ |
| په دروازه دهغې نه | اوویریږئ | دالله نه | شاید چې | تاسو ته کامیابی نصیب شی |
| نیغ په دروازو باندې | اوپه ټولو حکمونو کښې ، دالله نه ویره کوئ چې کامیاب شئ | | | |

**قوله تعالى:- يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ ؕ قُلْ هِيَ مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ ؕ**

**سپوږمئ دمیاشې او کال د تعین دپاره دی** :حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم نه خلقو دمیاشتې باره کښې تپوس اوکړو.نو په دې باندې دا آیت نازل شو چه دې سره د قرض وغیره او وعدومیعاد معلومیږی.دښځوعدت وخت معلومیږی،د حج وخت معلومیږی.[2] د مسلمانانو د روژې دافطار تعلق هم دې سره دې.

مسند عبدالرزاق کښې حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه الله جل جلاله میاشت د خلقود وخت معلومولو دپاره جوړه کړې ده.دې ته ګورئ اوروژه نیسئ،دې ته

[1] ) الطبری: ۳/۵۵۰)-
[2] ) الطبری: ۳/۵۵٤)-

گورني او اخترکوني، که د بادوباران په وجه میاشت او نه گورني نو دیرش ورځي پوره کړنی.(۱)

**قوله تعالی:-** وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَىٰ ۗ وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا

**کورونو ته په دروازو راتلل:-** دې روایت ته حضرت امام حاکم رحمه الله صحیح ونیلی دی.(۲) دا حدیث نورو سندونوسره هم مروی دی.علی رضي الله عنه نه یو موقوف روایت کښې هم دامضمون راغلې دې. مخکښې ارشاد دې چه نیکی کور ته د شا طرفنه په راتلوکښې نه ده بلکه نیکی په تقوی کښې ده، کورونو ته په دروازو سره راځئ.صحیح بخاری کښې دی چه دجاهلیت په زمانه کښې دا دستور وو چه څوک به په احرام کښې به وونو کورته به د شا دطرف نه راتلل نوپه دې باندې دا آیت نازل شو.(۳)ابوداود طیالسی کښې هم دا روایت دې.(۴)

**د ایت شان نزول:-** دانصارو عام دستور وو چه د سفر نه به واپس راتلل نو کور ته به د کور په دروازه نه راتلل.دراصل دا هم دجاهلیت زمانه کښې د قریشو خپل خان دپاره یو امتیاز وو چه خپل نوم هغوی حمس اینبودې وو.داحرام په حالت کښې خودوی براه راست کورونوته راتلې شو لیکن باقی ټول خلق داسې نه وو.حضرت رسول اکرم ﷺ یوباغ کښې وو،هلته نه دوی دهغې دروازې نه راوتل،د حضرت رسول اکرم یو صحابی حضرت قطبه بن عامر رضي الله عنه هم دوی سره دروازې نه راووتلو.په دې باندې خلقو نبی کریم ﷺ ته اووئیل چه یارسول الله ﷺ دا خو یو تجارت پیشه سړې دې،دې تاسو سره ستاسو په شان د دروازې نه ولې راووتلو ؟ هغوی جواب ورکړو چه نبی کریم ﷺ په کوم عمل اولیدو نو ما هم هغه شان ا وکړل.اومادا اوگڼړل چه د حضرت رسول اکرم ﷺ تعلق،،حمس،،سره دې لیکن څه خو هم د حضرت رسول اکرم ﷺ په دین باندې یم،نو په دې باندې داآیت نازل شو.(ابن ابی حاتم ).حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه وغیره نه هم دا روایت مروی دې

حضرت حسن بصری رحمه الله فرمانی چه د جاهلیت په زمانه کښې د ډیروقومونو دا رواج وو چه کله به هغوی دسفر په اراده اووتل نو بیا به ئې سفر نیمگړې پرینبودو اگر چه په څه وجه به واپس شو نو دکور دروازې سره به نه راتلل.بلکه د روستو نه به راتلل.نوپه دې آیت سره هغوی منع کړې شو.(۵)

**د اعتکاف په حالت کښې د غلط رواج تردید:-** محمدبن کعب رضي الله عنه فرمانی چه د اعتکاف په حالت کښې هم دادستور وو اسلام دا ختم کړو.عطاء رحمه الله فرمانی چه د مدینې د خلقو په اخترونوکښې هم دا دستور وو خو اسلام دا ختم کړو

بیافرمانی چه دالله ﷻ حکمونه پوره کول،چه کومو کارونونه الله ﷻ منع کړې ده دهغې نه منع کیدل، د هغه پاك ذات ویره په زړه کښې ساتل،دا څیزونه دی چه په اصل کښې به په هغه ورځ په کار راځی چه په کومه ورځ به هر سړې دالله ﷻ په مخکښې پیش کیږی او پوره پوره اجر به ورته ملاویږی.

| إِنَّ اللَّهَ | وَلَا تَعْتَدُوا | لَكُمْ | يُقَاتِلُو | الَّذِينَ | فِي سَبِيلِ اللَّهِ | وَقَاتِلُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه الله | اومه کوئ زیاتي | تاسوسره | چې جنگ کوی | دهغه کسانوسره | په لاردالله کښي | اوجنگ کوئ |

اوجنگ کونی دالله په لارکښې هغه کسانو سره څوک چې تاسوسره جنگ کوی اوزیاتي مه کونی بیشکه الله

(۱) منصف عبدالرزاق : ۱۵٦/٤،ح/۸۳۰٦،صحیح ابن خزیمة: ۱۹۰٦،وسنده حسن،بیهقی: ۲۰۵/٤)-

(۲) المستدرک للحاکم: ٤۲۳/۱،ح/۱۵۲۹)-

(۳) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب ( ولیس البر بان تاتوا.....) : ٤۵۱۲،صحیح مسلم: ۳۰۲٦)-

(٤) مسند الطیالسی : ۷۱۷،وسنده صحیح)-

(۵) ابن ابی حاتم: ٤۰۱/۱)-

لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿١٩٠﴾ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ

نه خوښوي | زياتي کونکی | اوجنګيږئ دهغوئ سره | هرخاني کښې چې | تاسوېيامومئ هغوئ لره

زياتي کونکی کسان نه خوښوي | اوهغوئ (مشرکان) وژنئ کوم خاني کښې چې ني بيامومئ

وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ وَالْفِتْنَةُ

اواوباسئ هغوئ | دهغه خاني نه | دکوم خاني نه چې ايستلی يئ هغوئ تاسو | او فتنه (کفر)

اوبهر ني راؤباسئ دکوموخايونونه چې ني تاسو ويستلی يئ | او (دکفر) فتنه

اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ۚ وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى

زيات بدکاردي | دقتل نه | اوجنګ مه کوئ دهغوئ سره | په خوا کښې دمسجدحرام | ترهغې

دقتل نه زياته سخته (ګناه) ده | اودمسجدحرام (کعبې) په خوا کښې ورسره جنګ مه کوئ ترڅو

يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ ۚ فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ ۗ

چې اوجنګيږی هغوئ تاسوسره | په هغې کښې | نوکه چری جنګ وکړوهغوئ ستاسوسره | نو تاسو هم وژنئ هغوئ

چې تاسو سره جنګ نه کوی | اوکه چرې هغوئ هغه خاني (حرم) کښې هم تاسو سره جنګيږی | نو تاسو هم هغوی قتلوئ

كَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٩١﴾ فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ

هم دا | سزا دا کافرانوده | اوکه چری منع شو هغوئ | نو بيشکه چې الله | معاف کونکې

داسې کافرولره هم دغسې سزا پکار ده | بيا که هغوئ (دجنګ نه) منع شی نو الله پاک ښښونکې

رَّحِيْمٌ ﴿١٩٢﴾ وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ

رحم کونکې دې | او جنګ کوئ دهغوئ سره | ترهغې پورې | چې پاتې نشی | فتنه | اوشی

مهربان دې | اوتاسو ورسره ترهغې وخته پورې جنګيږئ چې فتنه (کفر اوشرک) پاتې نشی او شی

الدِّيْنُ لِلّٰهِ ۗ فَاِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٩٣﴾

دين خالص الله لره | نوکه چری منع شول هغوئ | نو بيا نۀ دې جائز زياتې | مګر جائز دې په ظالمانو باندې

دين صرف د يو الله | نوکه هغوئ منع شو | نو دظالمانونه بغير په بل چا لاس اوچتول پکار نه دی

قوله تعالی:- وَقَاتِلُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ

**د جهاد حکم:** حضرت ابوالعاليه رحمه الله فرمانی چه مدينه منوره کښې دجهاد ړومبې حکم هم دې خائې کښې نازل شوې دې.حضرت رسول اکرم ﷺ ددې آيت د حکم په رڼا کښې صرف هغه خلقو سره جهاد کولو چه کومو به حضرت رسول اکرم ﷺ سره.د جنګ کولو او چه کومو به د حضرت رسول اکرم ﷺ سره جنګ نه کولو نو حضرت رسول کريم ﷺ به پخپله هغوئ سره جنګ نه کولو..تر دې چه سورة برات نازل شو[1] بلکه عبدالرحمن بن زيد بن اسلم رحمه الله خو تردې فرمانی چه دا آيت منسوخ شوې دې.او ناسخ آيت ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ﴾ دې.يعنی کوم خائې کښې چه تاسومشرکان وينئ هغوی قتل

[1] الطبری: ۵٦١/٢)-

﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ﴾ دي. يعني كوم خائ كښې چه تاسومشركان وينئ هغوى قتل کړئ.ليکن په دې باره کښې اختلاف دې،ځکه چه په دې کښې خوصرف مسلمانانو ته رغبت ورکول او هغوى آماده کول دی چه دې دښمنانوسره ولې جهاد نه کوئ چه کوم ستاسواوستاسو ددين ښکاره دښمنان دی.چه څنګه هغوى تاسوسره جنګ کوی تاسوهم ورسره جنګ کوئ،بل خائ کښې فرمائی چه ﴿وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً﴾ يعني يوموټئ شئ او مشرکانوسره جهاد کوئ چه څنګه هغوى يو موټئ دی اوتاسوسره جنګ کوی.نو په دې آيت کښې هم فرمائی چه هغوى قتل کړئ [1] چه کوم خائ کښې هم تاسوهغوى وينئ اوهغوى د هغه خائ نه اوباسئ چه کوم خائ نه ئې تاسو ويستلى وئ. مطلب دادې چه څنګه دهغوى اراده تاسودقتل کولو ده او ستاسو د جلاوطنئ ده،ستاسو هم د هغوى باره کښې هم دا اراده پکار ده.

قوله تعالى:-وَلَا تَعْتَدُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ

**په جهاد کښې د ممنوع څيزونو فهرس:-** بيافرمائی چه تجاوز کونکی الله ﷻ نه خوښوی.يعني دالله ﷻ نافرمانی مه کوئ.پوزه،غوږ وغيره مه پريکوئ.خيانت او غلا مه کوئ،ښځې او بچی مه قتل کوئ،دا بوډاګان،کمزوری او بې وسه خلق مه وهئ ځکه چه دوی نه جنګ کولې شی او نه په جنګ کښې شرکت کولې شی.درويشان او تارك الدنيا خلق هم مه قتل کوئ.بلکه بغير د څه مصلحت نه مه جنګ کوئ او مه ونې وهئ اومه حيوانان ضائع کوئ.حضرت عبدالله بن عباس ﷺ،حضرت مقاتل بن حيان ﷺ،حضرت عمر بن عبدالعزيز ﷺ وغيره ددې آيت مبارك هم دا تفسير کړې دې.

صحيح مسلم کښې دې چه نبی کريم ﷺ به مجاهدينو ته فرمائيل چه دالله ﷻ په لار کښې جهاد کوئ خيانت مه کوئ،وعده خلافئ نه ځان ساتئ،پوزه،غوږ اندامونه وغيره مه پريکوئ،ماشومان او زاهدان خلق چه په عبادت کښې مشغول وی مه قتل کوئ.[2]مسند احمد کښې يو روايت کښې دی چه نبی کريم ﷺ به فرمائيل چه دالله ﷻ نوم واخلئ او اوځئ،دالله ﷻ په لارکښې جهادکوئ،کافرو سره جنګ کوئ،ظلم او زياتې مه کوئ،چالته دهوکه مه ورکوئ ،ددښمن دبدن اندامونه مه پريکوئ، درويشان مه قتل کوئ.[3]

بخاری شريف او مسلم شريف کښې دی چه يو ځل يو غزوه کښې يو ښځه قتل کړې شوې اوموندې شوه،حضرت رسول اکرم ﷺ دا ډير بداوګڼړلو او د ښځو اوماشومان قتل کولو نه ئې منع اوفرمائيله.[4]

**ظلم د الله د خفګان سبب دې:-** مسند احمد کښې دی چه حضرت رسول اکرم ﷺ يو ، درې، پنځه، اووه، نهه،اويولس مثالونه ورکړل اويو ئې ښکاره کړو او باقی ئې پريښودل.وې فرمائيل چه څه خلق کمزوری اومسکينان وو،په هغوى باندې زورور او مالدار دښمن حمله اوکړه.الله ﷻ دهغه ضعيفانو مدد اوکړو او په دې زورور ئې دوی ته برې ورکړو.نو بيا خلقو په هغوى ظلم او زياتې کول شروع کړو.چه ددې په وجه الله ﷻ ددوی نه تر قيامته پورې خفه شو.[5] ددې حديث سند صحيح دې.مطلب دادې چه کله دا کمزورې قوم غالب شو نو دوی ظلم اوزياتې شروع کړو.اودالله ﷻ د حکم نې هډو هيڅ پروا اونکړه په دې وجه الله ﷻ ددوی نه خفه شو په دې باره کښې ډير احاديث او آثار موجود دی.چه دهغې نه صفا ظاهريږی چه ظلم اوزياتې الله ﷻ نه خوښوی.او دداسې خلقو نه الله ﷻ خفه وی.دجهاد په احکامو کښې

---

[1] الطبری: ۵۶۲/۳-

[2] صحيح مسلم كتاب الجهاد باب تامير الامام الامراء على البعوث: ۱۷۳۱،بدون ( ولا اصحاب....الصوامع)-

[3] احمد: ۳۰۰/۱،وسنده ضعيف والحديث السابق يغنى عنه)-

[4] صحيح بخارى كتاب الجهاد باب قتل الصبيان فى الحرب: ۳۰۱۴،صحيح مسلم: ۱۷۴۴،ابوداود: ۲۶۶۸،ترمذى: ۱۵۶۹)-

[5] احمد: ۴۰۷/۵)-

په ظاهره قتل و قتال دي.ددې وجې نې اوفرمائيل که يو طرفته خوقتل وقتال دې نو بل طرفته دالله ﷻ سره کفراوشرک دې،اودمالک د لارې نه مخلوق منع کول دی.اودافتنه او فسادقتل نه ډيرزيات سخت دي.ابومالک رحمه الله فرماني چه ستاسود خطاګانو او بدکارونو نه داقتل زيات نقصان ورکونکې دې.

**قوله تعالى:-** وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ

**حرم کښې د قتال ممانعت:** بيا فرماني چه په بيت الله شريف کښې دوی سره جنګ مه کونی.لکه څنګه چه بخاری اومسلم کښې دی چه نبی کريم ﷺ فرماني چه دا ښارحرمت والا دې،د زمکې او آسمان د پيدائښ نه واخله ترقيامته پورې به حرمت والا وی.صرف دلږ وخت دپاره الله ﷻ دا زما دپاره حلال کړې وو.ليکن دانن په دې وخت کښې هم حرمت والا دې.او تر قيامته به ددې دا احترام او بزرګی باقی وی. ددې ونې مه پريکونی.ددې ازغزی هم مه شوکونی.که څوک په دې کښې جنګ جائز ګڼړي اوزما جنګ دليل جوړوی نو تاسو ورته اووائې چه الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته اجازت ورکړې وو.ليکن تاسو ته ددې اجازت نشته دې.(۱)

**فتح مکه:-** دحضرت رسول اکرم ﷺ د فرمان نه مراد د فتح مکه ورځ ده.چه په کومه ورځ حضرت رسول اکرم ﷺ مکې والوسره جهاد کړې وو.او مکه نې فتح کړې وه.څو مشرکان وژولې شوی وو.بعضې علماء کرام داهم وائی چه مکه صلح سره فتح شوې وه.حضرت رسول اکرم ﷺ صفا ارشاد فرمائيلې دې چه کوم يوسړې خپله دروازه بنده کړی هغه په امن کښې دې.او چه څوک جمات ته لاړشی هغه په امن کښې دې.او چه څوک دابوسفيان کور ته داخل شی هغه په امن کښې دې.(۲) او بيانې اوفرمائيل که هغوی تاسوسره په دې ځائې هم جنګ کول غواړی نو تاسوهغوی سره جنګ اوکړئ چه ظلم ختم شی.

**صلح حديبيه:-** حضرت رسول اکرم ﷺ دحديبيه په ورځ دجنګ کولودپاره د خپلو صحابه کرامو ﷺ نه بيعت واخستلو.قريش اوددوی ملګری يو شوی وو او حمله نې کړې وه.او نبی کريم ﷺ د ونې لاندې د خپلو صحابه کرامو ﷺ نه بيعت واخستلو.بيا الله ﷻ دا جنګ دفع کړو.ددې نعمت بيان په آيت ﴿ وَهُوَ الَّذِىْ كَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ ﴾ کښې دې.

**قوله تعالى:-** فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ

**د کفر نه توبه ويستل د ګناهونو معاف کيدل دی:-** بيا ارشاد فرمانی که دا کفار په حرم کښې جنګ کول بندکړی اوددې نه منع شی اواسلام طرفته راوګرزی نو الله ﷻ به ددوی ګناهونه معاف کړی.اګر چه دوی په حرم کښې مسلمانان قتل کړی وی.خوبيا به هم الله ﷻ ددوی داسې لونې ګناهونه معاف کړی.

**قوله تعالى:-** وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ

**ترڅوپورې جهاد کوئ؟:-** بيا حکم فرمانی چه دې مشرکانو سره جهاد جاری ساتئ؛ ترڅو چې د شرک دا فتنه ختمه شی.او دالله ﷻ دين په نورو ټولو دينونوباندې غالب او اوچت شی.لکه څنګه چه بخاری شريف اومسلم شريف کښې دحضرت ابوموسی ﷺ نه روايت دې چه حضرت رسول اکرم ﷺ نه تپوس اوشو چه يو سړې د خپلې بهادرئی دپاره جنګيږی يو سړې غيرت وغيره دپاره جنګ کوی او يو سړې د خودنې دپاره جنګ کوی نو اووائې چه په دوی کښې کوم يو سړې دالله ﷻ په لار کښې جهاد کولو والا دې ؟.حضرت رسول اکرم ﷺ اوفرمائيل چه د الله ﷻ په لار کښې جهاد کولو والا هغه کس دې چه دې دپاره جنګ کوی چه دالله ﷻ خبره اوچته شی او دهغه دين سربالاشی.(۳)بخاری او مسلم کښې يوروايت

---

۱) صحيح بخاری کتاب جزاء الصيد باب لايعضد شجر الحرم: ۱۸۳۲،صحيح مسلم: ۱۳۵۳)-

۲) صحيح مسلم: کتاب الجهاد باب فتح مکة: ۱۷۸۰،مختصرا بغير ذکر المسجد ابوداود: ۳۰۲۲)-

۳) صحيح بخاری کتاب التوحيد باب قوله تعالى ( ولقد سبقت کلمتنا....) ۷۴۵۸،صحيح مسلم: ۷۴۵۸،ابوداود: ۲۵۱۷،ترمذی: ۱۶۴۶، نسائی : ۳۱۳۸،ابن ماجة: ۲۷۸۳)-

دي چه ماته حکم شوې دې چه څه دې خلقو سره جهاد جاري اوساتم تر دې چه هغوی ﴿لا اله الا الله﴾ اووائی.هرکله چه هغوی دا اووائی نود هغوی د جان اومال حفاظت به خما په ذمه وی خو په اسلامی حدودو کښې (لکه که قتل اوکړی نو قصاص کولې به شی که غلا اوکړی نو لاس به ئې کټ کولې شی) اود هغوی باطنی حساب د الله ﷻ په ذمه دی.(۱)

**قوله تعالى:-فَإِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ إِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ**

**څوک چې جنګ نه کوی تاسو ورسره جنګ مه کوئ:-** بیانې فرمائی که دا کفارد شرك اوکفر اوتاسو سره د جنګ کولو نه منع شی نو تاسو هم جنګ مه کونې،دې نه پس چه څوك قتال کوی،هغه به ظالم وی او ظالمانوته سزا ورکول ضروری دی.یعنی د مجاهد رحمه الله ددې قول معنی دا شوه چه څوك جنګ کوی هم هغوی سره جنګ کونی.یا مطلب دادې که دوی ددې حرکتونونه منع شی نو هغوی د ظلم یعنی شرك نه منع شو،بیا هیڅ وجه نشته دې چه تاسو دوی سره جنګ اوکړنی.

**دعدوان مهفوم:-**دلته لفظ ﴿عُدْوَانَ﴾ دې اودا د زیاتئ په په مقابله کښې دزیاتئ کولو بدل دپاره دې.په حقیقت کښې زیاتې نه ده.لکه فرمانی چه ﴿فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ﴾ یعنی تاسو باندې چه څوك زیاتې کوی تاسو هم هغه سره هغه شان زیاتې کونی.اوبل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا﴾ یعنی دبدئ بدله ددې پشان بدی ده.اوبل ځائې کښې فرمان دې چه ﴿وَاِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ﴾ یعنی.که تاسو دوی ته عذاب او سزا ورکونی نو دومره ورکونی چه څومره نې تاسو ته دررکړې ده.نو په دې درې واړو ځایونوکښې زیاتې،بدې او سزا په طور د بدله ونیلې شوی دی. کنی په حقیقت کښې هغه زیاتې،بدې اوسزانه ده.عکرمه رحمه الله او قتاده رحمه الله بیان فرمائی چه اصل ظالم هغه دې چه د ﴿لا اله الا الله﴾ نه انکاری وی.(۲)

**د عبدالله بن عمر رضی الله عنه د فتنې په زمانه کښې د جنګ کولو نه انکار:-** صحیح بخاری کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه ته دوه سړی راغلل او په عبدالله بن زبیر رضی الله عنه باندې خلقو حمله کړې وه.او راغلل او وې ونیل چه خلق قتل کیږی،تاسو خو دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه ځونې یې،دحضرت رسول اکرم ﷺ صحابی یې،تاسو ولې په دې جنګ کښې حصه نه اخلئ؟ دوی اوفرمائیل چه واورنې ا الله ﷻ په مسلمان باندې دمسلمان وینه حرامه کړې ده.هغوی اوفرمائیل چه آیا دا دالله ﷻ فرمان نه دې چه تاسو هغوی سره جنګ کونی تر دې چه فتنه اوفساد باقی پاتې نشی؟.دوی اوفرمائیل چه مونږ خو جنګیدو تردې پورې چه فتنه ختمه شوه او دالله ﷻ خوښ دین غالب شو.لیکن تاسو اوس غواړنې چه جنګ اوکړنی او فتنه پیدا شی اونور مذهبونه غالب شی.

یو بل روایت کښې دی چه چا دوی ته اوونیل چه انې ابوعبدالرحمن تاسو دالله ﷻ په لار کښې جهاد ولې پرېښودې دې.او څه مو اختیار کړی دی چه حج پسې حج کونی.په هر دویم کال حج ته ځئی.اوتاسو د جهاد فضائل پټ کړی دی.دوی اوفرمائیل چه ورازه واوره ا د اسلام پنځه بناء ګانې دی ① په الله ﷻ اودهغه په رسول ﷺ باندې ایمان راوړل.② پنځه وخته مونځ اداکول ③درمضان روژې ساتل ④زکوة ورکول ⑤ دبیت الله حج کول.دوی اوفرمائیل چه آیا تاسو د قران پاك دا حکم نه دې آوریدلې که د ایماندارو دوه ډلې په خپلو کښې جنګ کوی نو تاسو ددوی په مینځ کښې صلح کونی.که یوه ډله په بل باندې غالبه شی نوباغی ډلې سره جنګ کونی.تردې پورې چه دالله ﷻ فرنانبرداره جوړه شی.او په بل

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الایمان باب ﴿فان تابوا واقاموا الصلاة......﴾ ۲۵،صحیح مسلم: ۲۲)-

(۲) الطبری: ۸۷۳/۳)-

خاتې کښې ارشاد دې چه تاسو دوی سره جنګ کونې تر دې چه فتنه ختمه شي.دوی اوفرمائيل چه مونږ د حضرت رسول اکرم ﷺ په زمانه کښې ددې حکم تعميل اوکړو او په هغه وخت کښې اسلام کمزورې وو.اومسلمانان لږ وو.چه چا به اسلام قبلولوپه هغه به فتنه راتله.يا خو به قتل کولې شو يا به په سخت عذاب کښې اخته شو.ترډې پورې چه دا پاك دين خورشو.اوددې ملګرى ډير زيات شو اوفتنه ختمه شوه.دوی اوونيل چه اوس اوفرمائې چه دحضرت علي ﷺ او دحضرت عثمان ﷺ باره کښې ستاسو څه خيال دې ؟ وې فرمائيل چه حضرت عثمان ﷺ الله ﷺ معاف کړې دې اګر چه ته به دا معافي بده ګنړې او حضرت علي ﷺ دنبی کريم ﷺ د تره خونې اوزوم وو،او دا اوګوره دهغه مکان دا شو چه ستا د سترګو وړاندې دې.(۱)

| اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ | بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ | وَالْحُرُمٰتُ | قِصَاصٌ ؕ | فَمَنِ |
|---|---|---|---|---|
| مياشته حرامه | په بدله دمياشتې دحرامې کښې ده | اوټول عزتونه | په برابرئ دى | نو چاچې |
| معززه مياشت د معززې مياشت په بدله کښې ده | | اودټولو محترموڅيزونو خيال برابر ساتل دى | | نو که چا |

| اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ | فَاعْتَدُوْا | عَلَيْهِ | بِمِثْلِ | مَا | اعْتَدٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| زياتي اوکړو په تاسو | نو زياتي اوکړئ تاسو | په هغه باندې | پشان | دهغې | چې زياتي ئي کړې وو |
| په تاسو ظلم اوکړو | نوتاسوهم په هغه باندې هومره قدرې زياتي اوکړئي | | | څومره زياتي چې هغه په تاسو | |

| عَلَيْكُمْ ۪ | وَاتَّقُوا اللّٰهَ | وَاعْلَمُوْٓا | اَنَّ اللّٰهَ | مَعَ | الْمُتَّقِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په تاسو باندې | اواويريږئ دالله نه | اوپوهه شئ | بيشکه چې الله | ملګرې دى | دپرهيزګارانو |
| باندې کړې وى | اودالله نه ويره کوئ | اوپه دې پوهه شئ چې الله د | دهغې پرهيزګاروملګرې دى | | چې تجاوز نه کوى |

**قوله تعالى:- اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ ؕ**

**دحرمت مياشتې:**ذى القعده شپږمه هجرئى کښې حضرت رسول اکرم ﷺ عمرې دپاره خپلوصحابه کرامو ﷺسره مکې طرفته راون شو.خومشرکانو حضرت رسول اکرم ﷺدحديبيه په ميدان کښې ايسار کړو. او آخريه دې خبره باندې صلح اوشوه چه راتلونکى کال دې حضرت رسول اکرم ﷺ سره عمره اوکړى اوپېدې کال دې واپس لاړشي.دذى القعدى مياشت هم دحرمت والامياشت ده،ددې وجې داآيت نازل شو.

**دصلح حديبيه واقعه:**- مسند احمدکښې حديث دې چه حضرت رسول اکرم ﷺ به حرمت والا مياشتو کښې جهادنه کولو.خو که چابه دوی سره جنګ کولو نو دا بله خبره وه.بلکه که دجنګ دوران کښې به حرمت والامياشت راغله نو حضرت رسول اکرم ﷺ په جنګ اودرولو.(۲) دحديبيه په ميدان کښې هم کله چه حضرت رسول اکرم ﷺ ته دا خبر راورسيدو چه حضرت عثمان غني ﷺ مشرکانو شهيد کړواو دوی دنبی کريم ﷺ پيغام هلته اوړلې وو،نو حضرت رسول اکرم ﷺ دخپلوخوارلسوسوؤ صحابه کرامو ﷺ نه ديوونې لاندې دمشرکانوخلاف دجهادکولوبيعت واخستلو.بيامعلومه شوه چه داخبرغلط دې. نوحضرت رسول اکرم ﷺ خپله اراده ملتوى کړه اوصلح طرفته مائل شو.بيا چه کومه واقعه وه هغه اوشوه (يعنى د صلح حديبيه واقعه اوشوه).

(۱)صحيح بخارى كتاب التفسير باب قوله تعالى : ( وقاتلوهم حتى لا تكون فتنة....): ۴۵۱۳)–
(۲) احمد : ۳/۳۴۵،وسنده صحيح على شرط مسلم مجمع الزوائد : ۶۶/۶)–

**د هوازن واقعه:-** داشان هرکله چه حضرت رسول اکرم ﷺ د هوازن جنګ نه دحنین په ورځ فارغ شو او مشرکان طائف ته لاړل او په قلعه کښې بند شو نو حضرت رسول اکرم ﷺ دهغوی محاصره اوکړه. ځلویښتو ورځو پورې دامحاصره وه.اوبالآخر دځو صحابه کرامو ﷺ د شهادت نه پس دا محاصره حضرت رسول اکرم ﷺ ختمه کړه او مکې طرفته واپس شو.او مقام جعرانه نه حضرت رسول اکرم ﷺ د عمرې احرام اوتړلو.همدلته دحنین غنیمتونه تقسیم شو.اودا عمره حضرت رسول اکرم ﷺ په ذی القعده اتمې هجرئی کښې اوکړه.په حضرت رسول اکرم ﷺ باندې دې د الله ﷻ درودو سلام وی.(۱)

**قوله تعالى:-** فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ

**څوک چه په تاسو زیاتې کوی نوتاسو هم بدله اخلئ:-** بیا فرمائی چه څوک تاسوباندې زیاتې اوکړی نو تاسوهم په هغوی زیاتې کوئ.یعنی مشرکانوسره هم دعدل خیال ساتئ.دلته هم دزیاتئ بدلې اخستلو نه په زیاتئ سره تعبیر داسې دې لکه څنګه چه په یو مقام باندې د عذاب او سزا په بدله کښې د سزا لفظ بیان شوې دې.اود بدئ په بدله کښې دبدئ لفظ بیان شوې دې.

**د ایت په نسخ کښې دوه اقوال:-** حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی چه دا آیت مکه کښې نازل شویدې دې اوپه مکه کښې دمسلمانانو څه شان شوکت نه وو.اونه دجهاد حکم وو.بیا دا آیت مدینه منوره کښې دجهاد حکم سره منسوخ شو.لیکن ابن جریر رحمه الله ددې خبرې تردید کوی او فرمائی چه دا آیت مدنی دې.د عمره قضا نه پس نازل شوې دې.دحضرت مجاهد رحمه الله هم دا قول دې.

**قوله تعالى:-** وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ:: بیا فرمائی چه دالله ﷻ اطاعت او پرهیزګاری اختیار کړئی او په دې پوهه شئ چه داسې خلقو سره دین اودنیا کښې الله ﷻ نصرت کوی.

| وَاَنْفِقُوْا | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | وَلَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ | اِلَى التَّهْلُكَةِ | وَاَحْسِنُوْا |
|---|---|---|---|---|
| او خرچ کوئ | په لار د الله کښې | او مهٔ غورزوئ (خانونه) په لاسونو خپلو | هلاکت ته | او احسان کوئ |
| اود الله په لار کښې (مال) خرچ کوئ | | او خپلو لاسونو خان هلاکت ته مه غورزوئ | | او اعمال کوئ |
| اِنَّ اللّٰهَ | يُحِبُّ | الْمُحْسِنِيْنَ | | |
| بیشکه الله | خوښوی | احسان کونکی | | |
| بیشکه الله نیکان خلق خوښوی | | | | |

**قوله تعالى:-** وَاَنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

**د الله ﷻ په لار کښې خرچ کول:-** حذیفه ﷺ فرمائی چه داآیت دالله ﷻ په لارکښې دخرچ کولوپه باره کښې نازل شویدې (بخاری شریف)(۲) اونوروبزرګانوددې آیت په تفسیرکښې هم دابیان فرمائیلی دی.

**قوله تعالى:-** وَلَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ

**په ایت کښې دهلاکت نه مراد:-** حضرت ابوعمران رحمه الله فرمائی چه مهاجرینو کښې یو سړی د قسطنطنیه په جنګ کښې دکفارو په لښکر باندې دلیرانه حمله اوکړه.اودهغوی صفونه ئې څیرې کړل او په هغوی کښې داخل شو.نوبعضو خلقو اووئیل چه اوګوره کنه دې دخپله لاسه خپل ځان په هلاکت کښې اچوی.حضرت ابوایوب ﷺ چه کله دا واوریدل نو وې فرمائیل چه ددې آیت صحیح مطلب مونږ ته ښه معلوم دې،واورئی ادا آیت هم زمونږ باره کښې نازل شوې دې.مونږ حضرت رسول اکرم ﷺ سره په صحبت کښې پاتې شو،او دحضرت رسول اکرم ﷺ سره په جنګ او جهاد کښې شریك شو،د حضرت

(۱) فتح الباري: ۳/۷۰۱ –

(۲) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة البقرة باب قوله تعالى: ( وانفقوا في سبيل الله....) ۴۵۱۶ –

رسول اکرم ﷺ دمدد لاندې مونږ پاتې شو،تردې پورې چه اسلام ظاهر شو او مسلمانان غالب شو.نويوځل مونږ انصاريه خپلوکښې جمع شو اومشوره مو اوکړه مونږ الله ﷻ د حضرت رسول اکرم ﷺ په صحبت مشرف کړو.مونږ دحضرت رسول اکرم ﷺ په خدمت کښې حاضرياتې شو.د حضرت رسول اکرم ﷺ په نګرانئ کښې مو جهاد اوکړو.اوس الحمد لله اسلام خور شو اومسلمانان غالب شو.جنګ ختم شو،په دې (تيرې)ورځوکښې نه مونږ د خپل اولاد خبر واخستلو اونه مو د مال څه خيال اوساتلو.او نه مو د پټو او باغونو څه خيال اوساتلو.نو اوس مونږ ته پکار دی چه خپل کورنی معاملاتو طرفته توجه ورکړو.په دې باندې دا آيت نازل شو،نو جهاد پرېښودل اوپه خپل بچو او تجارت کښې اخته کيدل دخپله لاسه خپل ځان په هلاکت کښې اچول دی.(ابو داود،ترمذی،نسائی،وغيره).([1])

**د قسطنطنيه د جنګ يوه واقعه:**- يوبل روايت کښې دی چه د قسطنطنيه په جنګ کښې دمصريانو سردار حضرت عقبه بن عامر ؓ وو،او دشاميانو سردار يزيد بن فضاله بن عبيد ؒ وو.([2])حضرت براء بن عازب ؓ نه يو سړی تپوس اوکړو که څه يوازې د دښمن صفونوباندې حمله اوکړم،او هغوی ما ګير کړی اوماقتل کړی نوآيا ددې آيت مطابق څه خپل ځان په هلاکت کښې اچولو والا يم ؟ دوی جواب ورکړو چه نه،الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته فرمائی چه ﴿ فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ لَا تُكَلَّفُ اِلَّا نَفْسَكَ ﴾ اې نبی ﷺ د الله ﷻ په لار کښې جنګ کوه،ته د خپل ځان مالک ئې،هم دې ته تکليف وانې.دا آيت دالله ﷻ په لار کښې دخرچ کولو نه منع کيدونکو باره کښې دی.( ابن مردويه وغيره)

**د هلاکت دويم تفسير:**- د ترمذی په يو روايت کښې دومره زياتوالې هم دې چه د سړی په ګناه باندې ګناه کول او توبه کول،دا د خپله لاسه خپل ځان په هلاک کښې اچول دی.ابن ابی حاتم کښې دی چه مسلمانانو د دمشق محاصره اوکړه او د ازرشنوه د قبيلې يو سړی جرآت اوکړو او دښمنانوباندې ئې حمله اوکړه.اودهغوی صفونه ئې مات کړل اوهغې کښې داخل شو.خلقوداً بد اوګڼړل او حضرت عمروبن عاص ؓ ته ئې ددې شکايت اوکړو نو حضرت عمرو بن عاص ؓ دوی راوبلل او وې فرمائيل چه په قران پاک کښې دی چه خپل ځانونه په هلاکت کښې مه اچوئی.حضرت عبدالله ابن عباس ؓ فرمائی چه په جنګ کښې داشان بهادری خودل دا خپل ځان په بربادئی کښې نه دی اچول،بلکه دالله ﷻ په لارکښې مال نه خرچ کول هلاکت کښې اچول دی.حضرت ضحاک بن ابوجبيره فرمائی چه انصارو به دالله ﷻ په لار کښې خپل مالونه زړه نه خرچ کول.خو يو کال قحط راغلو اوپه دې موقع هغوی دغه خرچونه اونه کړل،نوپه دې باندې دا آيت نازل شو.

حضرت امام حسن بصری ؒ فرمائی چه ددې نه مراد بخل کول دی.حضرت نعمان بن بشير فرمائی چه ګناهګار دالله ﷻ درحمت نه نااميده کيدل داهلاکت دی.اوبعضو مفسرينو دا هم فرمائيلی دی چه ګناه اوشی اوبيا دبخښنې نه نا اميده کيدل او په ګناهونو کښې اخته کيدل،دا دخپله لاسه خپل ځان په هلاکت کښې اچول دی.د ﴿ تهلكة ﴾ نه مراد دالله ﷻ عذاب هم بيان شوې دې.

د قرطبی ؒ وغيره نه روايت دې چه خلق به حضرت رسول اکرم ﷺ سره په جهاد کښې شريکيدل او خپل ځان سره به ئې څه خرچ نه اخستلو،چه يا خو دوی د اولږې مړه شی يا ددوی بوج په نورووی،نو دوی ته په دې آيت کښې فرمائيلې کيږی چه الله ﷻ تاسو ته څه درکړی دی دهغه ذات په لار کښې خرچ کوئی او دخپله لاسه خپل ځان په هلاکت کښې مه اچوئی چه اولږې،تندې يا پيدل تلوسره مړهٔ شئ.

په دې دې سره هغه خلقوته حکم کيږی چه تاسو احسان کوئی چه الله ﷻ تاسو دوستان جوړ کړی.دنيکئ په هرکارکښې خرچ کوئی اوخاص کر د جهاد په معامله کښې دالله ﷻ په لار کښې خرچ کولو نه روستو

[1] ابو داود کتاب الجهاد باب ل قوله تعالى ( ولا تلقوا بايديكم.....) ۲۵۱۲ ،وسنده صحيح ترمذی : ۲۹۷۲)۔

[2] ترمذی کتاب التفسير باب ومن سورة البقرة : ۲۹۷۲ ،وسنده صحيح)۔

کیږي مه، داپه حقیقت کښې ستاسو هلاکت دی. نو احسان د اعلی درجې اطاعت دی. چه دهغې حکم کیږي او ورسره دا هم بیانیږي چه احسان کوونکی د الله ﷻ دوستان دي.

| وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ؕ |
|---|
| او پوره کړئ \| حج \| او عمره \| د پاره د رضا د الله |
| او چې د الله د رضا د پاره د حج او عمرې نیت او کړئ نو هغه پوره کوئ |
| فَاِنْ اُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَیْسَرَ مِنَ الْهَدْیِ ۚ وَلَا تَحْلِقُوْا |
| او که چرې \| بند کړې شوئ تاسو \| نو هغه چې \| آسانه وي \| د قربانئ نه \| او مه خرئ |
| او که چرې (په لار کښې) ایسار کړې شئ \| نو هر څه قربانی چې موندې شئ هغه ورکړئ \| او مه خرئ |
| رُءُوْسَكُمْ حَتّٰی یَبْلُغَ الْهَدْیُ مَحِلَّهٗ ؕ فَمَنْ |
| سرونه \| خپل \| ترهغه پورې \| چې اورسیږي \| خاروې قربانی \| ځائې د حلالې خپلې ته \| خو هغه څوک |
| خپل سرونه تردې چې قرباني خپل ځائې ته اورسي \| په تاسو کښې |
| كَانَ مِنْكُمْ مَّرِیْضًا اَوْ بِهٖۤ اَذًی مِّنْ رَّاْسِهٖ فَفِدْیَةٌ مِّنْ صِیَامٍ اَوْ |
| چې وي \| ستاسو نه \| مریض \| یا وي په هغه \| څه تکلیف \| د طرفه د سر د هغه نه \| نو فدیه ده \| د روژونه \| یا |
| چې ناروغه وي یا په سر کښې ئې څه تکلیف وي (او سرنشي خرنیلې) \| نو د فدې په طور دې روژې اونیسي یا دې |
| صَدَقَةٍ اَوْ نُسُكٍ ۚ فَاِذَاۤ اَمِنْتُمْ ۥ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ اِلَی الْحَجِّ |
| د صدقې نه \| یا د قربانئ نه \| نو هر کله چې \| په امن شئ تاسو \| نو هغه چا \| چې فائده واغستله \| په عمرې سره \| د حج دور خو |
| صدقه ورکړي یا قرباني \| بیا هر کله چې په امن کښې شئ نو څوک چې د حج د وخت نه مخکښې د عمرې نه فائده اوچته کړي |
| فَمَا اسْتَیْسَرَ مِنَ الْهَدْیِ ۚ فَمَنْ لَّمْ یَجِدْ فَصِیَامُ ثَلٰثَةِ اَیَّامٍ |
| نو هغه \| چې آسانه وي \| د قربانئ نه \| نو هغه چا چه \| اونه مونده قرباني \| نو روژې دي \| درې ورځې |
| نو د خپل وس مطابق دې قرباني اوکړي \| او که د چا وس نه کیږي \| نو درې روژې دې اونیسي |
| فِی الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ ؕ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ یَكُنْ |
| په ورځو د حج کښې \| او اوه روژې دي \| کله چې \| او اپس راشئ کورته \| دا \| لس \| پوره \| دا د پاره د هغه چا دی \| چې نه وي |
| د حج په وخت کښې \| او اووه دې اونیسي چې (کورونو ته) واپس شي \| دا پوره لس روژې شوې دا حکم هغو د پاره دې |
| اَهْلُهٗ حَاضِرِی الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْۤا اَنَّ اللّٰهَ |
| عیال د هغه \| او سیدونکی \| د مسجد \| حرام \| او اویریږئ د الله نه \| او پوهه شئ \| چې الله \| |
| چې د هغوئ کورنئ مسجد حرام سره خوا وشا کښې وي \| او د الله نه ویره کوئ \| او پوهه شئ چې الله |
| شَدِیْدُ الْعِقَابِ ۝ |
| سخت عذاب ورکونکې دې \| |
| په عذاب ورکولو کښې ډیر سخت دې \| |

**قوله تعالى:-وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ**

**حج اوعمره پوره کول څه دي؟:-** پورته د روژو د بيان ذکر وو،بيا د جهاد بيان اوشو،اوس د حج بيان کيږي اوحکم فرمائي چه حج او عمره پوره کوئي.دظاهري الفاظونه معلوميږي چه حج اوعمره شروع کولو نه پس پوره کول پکار دي.ټول علماء په دې خبره متفق دي چه حج او عمره شروع کولو نه پس ددې پوره کول لازم دي.اګر چه د عمرې په وجوب او مستحب کيدو کښې دعلماء کرامو دوه اقوال دي.اوهغه مونږ پوره تفصيل سره په کتاب الاحکام کښې بيان کړې دی **(فلله الحمد والمنة)**.

**په پوره کولو کښې اقوال:-** ① حضرت علی ﷺ فرمائي چه پوره کول دا دي چه تاسو دخپل کور نه احرام اوتړئ.② حضرت سفيان ثوری رحمه الله فرمائي چه ددې پوره کول دا دی چه تاسو دخپل کور نه احرام اوتړئ.ستاسو دا سفر دحج اوعمرې په غرض وي.ميقات ته په رسيدو سره لبيک ونيل شروع کړئ.او د تجارت يا څه دبل دنياوي غرض په ارادې سره نه ئې وتلې چې د خپل کار دپاره اوځئ او مکې ته نزدې رسيدو سره خيال کښې راولئ چه راځه حج اوعمره به هم اوکړو چه دا شان حج او عمره به هم اوشي.ليکن دا پوره کول نه دی،پوره کول دا دی چه صرف په دې ارادې سره دکور نه اوځئ.③ حضرت مکحول رحمه الله فرمائي چه ددې پوره کول دادی چه دا دميقات نه شروع کړئ.④ حضرت عمر ﷺ فرمائي چه پوره کول دادي چه ددې دواړو اراده جدا جدا اوکړی.او عمره د حج په ورځو کښې ادا نه کړئ،ځکه چه په قران پاک کښې دی چه **(الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَٰتٌ)** دحج مياشتې مقرر دي[1] ⑤ قاسم بن محمد رحمه الله فرمائي چه د حج په مياشتو کښې عمره کول پوره کيدل نه دی.دوی نه تپوس اوشو چه محرم کښې عمره کول څنګه دي؟دوی اوفرمائيل چه خلق خودې ته پوره وائي ليکن پدې قول کښې نظر دې

**د نبی کريم ﷺ څلور عمرې:-** ځکه چه دا ثابت شوې خبره ده چه نبی کريم ﷺ څلور عمرې کړې وې اوڅلور واړه ئې په ذی القعده کښې کړې وې.يو په شپږمه هجرئي کښې دذی القعدی په مياشت کښې،دويمه اوومه هجرئي کښې دذی القعده په مياشت کښې عمرة القضاء،دريمه ذوالقعدی اتمې هجرئي کښې عمرة الجعرانه،څلورمه لسمه هجرئ کښې ذوالقعده کښې حج سره.([2]) ددې څلورو عمرو نه سوا د هجرت نه پس نبی کريم ﷺ بله عمره نه ده کړې.

**په رمضان کښې د عمرې فضيلت:-** نبی کريم ﷺ ام هانی ته فرمائيلی وو چه په رمضان کښې عمره کول ماسره دحج کولو برابر دی([3]) دا نبی کريم ﷺ په دې وجه فرمائيلی ووچه دې مور بی بی نبی کريم ﷺ سره دحج کولو اراده کړې وه.ليکن د سورلئ په وجه نې اونکړې شو.لکه څنګه چه په بخاری شريف کښې دا پوره واقعه موجوده ده.حضرت سعيد بن جبير رحمه الله خو صفا فرمائي چه دا ددې مور بی بی دپاره خاص حکم وو،والله اعلم.

**دحج اوعمرې احرام نه پس د دې پوره کول :-** حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائي چه دحج او عمرې احرام تړلو نه پس ددې د پورا کيدو نه بغير پريخودل جائز نه دی.حج په هغه وخت کښې پورا کيږی چه کله دقربانئ په ورځ دجمره عقبه کاڼړی اوولی او دبيت الله شريف طواف اوکړی او دصفا اومروه په مينځ کښې سعی اوکړی نوهله حج پورا شي.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه حج دعرفات نوم دې.او عمره طواف دې.دحضرت عبدالله ﷺ قرآت دا دې **( وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ إِلَى الْبَيْتِ )** عمره بيت الله شريف ته په

---

[1]) ابن ابی حاتم:(۱/۴۳۷)-

[2]) صحيح بخاری کتاب العمرة باب کم اعتمر النبی صلی الله عليه وسلم: ۱۷۷۸،صحيح مسلم: ۱۲۵۳،ابوداود: ۱۹۹۳،ترمذی: ۸۱٦،ابن ماجة: ۳۰۰۳)-

[3]) صحيح بخاری کتاب العمرة باب عمرة فی رمضان: ۱۷۸۲،صحيح مسلم: ۱۲۵٦،عن ابن عباس)-

تلو سره پوره شوه.(۱)
حضرت سعید بن جبیر ﷺ ته چه کله دا ذکر اوشو نو هغوئ اوفرمائیل چه د حضرت ابن عباس ﷺ قرآت هم دا وو.حضرت علقمه رحمه الله هم دا فرمائی.حضرت ابراهیم رحمه الله نه هم مروی دی.( وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ الى البيت )دشعبی رحمه الله په قرآت کښې والعمرة دې،هغوئ فرمائی چه عمره واجب نه ده او ددې خلاف هم دهغوئ نه مروی دی.

**د نبی کریم حج حج تمتع وو:-** ډیرو احادیثو کښې ډیرو سندو سره حضرت انس ﷺ او دصحابه کرامو ﷺ یو جماعت نه روایت دې چه رسول الله ﷺ حج او عمره دواړه یو ځائې ادا اوفرمائیل.او په صحیح حدیث کښې دی چه نبکریم ﷺ خپلو صحابه کرامو ﷺ ته اوفرمائیل چه چا سره د قربانئ ځناور شته دې هغوئ دې د حج او عمرې په یو ځائې احرام اوتړی.(۲)یو بل حدیث شریف کښې دی چه عمره په حج کښې تر قیامته پورې داخله شوه.(۳)ابن ابی حاتم رحمه الله په خپل کتاب کښې یو روایت نقل کړې دې چه یو سړې نبی کریم ﷺ ته راغلو او دهغه نه دزعفرانو خوشبو راتله.هغه تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ زما د احرام باره کښې مو څه حکم دې.په دې باندې دا آیت نازل شو.نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چه هغه سائل چرته دې ؟ هغه اووئیل چه یارسول الله ﷺ څه موجود یم.وې فرمائیل چه خپلې زعفرانی کپړې اوباسه اوبنه طریقې سره غسل اوکړه او څه چه پخپل حج کښې کوې هغه په عمره کښې هم اوکړه.دا حدیث غریب دې اوداعجیبه سیاق دې.بعضو کښې دغسل اوددې آیت د نزول ذکر نشته دې.یو روایت کښې دده نوم یعلی بن امیه ﷺ راغلې دې،دویم روایت کښې صفوان بن امیه ﷺ دې.والله اعلم (۴)

**قوله تعالیٰ:-** فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ

**دمحصر حکم :-** بیا فرمائی که تاسو ګیر شئ نو چه کومه قربانی درسره وی نو هغه اوکړئ.مفسرینو ذکر کړې دی چه دا آیت په شپږمه هجرئ کښې د حدیبیه په میدان کښې نازل شو او مشرکانو نبی کریم ﷺ مکې معظمې ته دتلو نه منع کړې وو.او هم په دې باره کښې پوره سورة فتح نازل شو.اود نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته رخصت ملاؤ شو چه هغوئ دې خپلې قربانئ په هغه ځایونو کښې ذبح کړی.نواویا اوښان ذبح کړې شو.سرونه اوخرئیلې شو. اواحرامونه پرانیستې شو.په رومبی ځل د نبی کریم ﷺ فرمان خلقو واوریدو اوخلق لږ شان ایسار شو اوهغوئ ته دبل حکم انتظار وو چه شاید څه ناسخ حکم راشی.تردې چه پخپله حضرت رسول اکرم ﷺ بهرتشریف راوړو اوخپل سرمبارك نې اوخرئیلو.بیاټول خلق راضی شو.بعضو سرونه اوخرئیل او بعضو نوکونه پریکړل.په دې باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ دې په سر خرئیلو والوباندې رحم اوکړی.خلقو عرض اوکړو چه یارسوالله ﷺ سر کموونکودپاره هم دعا اوفرمائې.(۵)نبی کریم ﷺ هم دسر خرئیلو والودپاره دعا اوکړه.په دریم ځل نې دسرکموونکو دپاره دعا اوفرمائیله.اووه اووه کسان په یو اوښ کښې شریك وو.ټول صحابه کرام ﷺ خوارلس سوه وو.(۶)دحدیبیه میدان کښې ایسار شوی وو.دادحرم دحد نه بهر وو.اودا هم مروی دی چه دحرم په کناره باندې وو،والله اعلم.

---

(۱) الطبری: ۷/٤-
(۲) صحیح بخاری کتاب الحج باب کیف تهل الحائض والنفساء : ۱۵۵٦،صحیح مسلم: ۱۲۱۱)-
(۳) احمد: ۱۷۵/٤،صحیح مسلم: کتاب الحج باب حجة النبی صلی الله علیه وسلم: ۱۲۱۸،عن جابر)-
(٤) صحیح بخاری کتاب العمرة باب یفعل بالعمرة مایفعل بالحج: ۱۷۸۹،صحیح مسلم: ۱۱۸۰)-
(۵) صحیح بخاری کتاب الحج باب الحلق والتقصیر عند الاحلال: ۱۷۲۷،صحیح مسلم: ۱۳۰۱)-
(٦) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة حدیبیة: ٤١٥١)-

**محصر صرف د دشمن د ویرې نه حصار ته وائي دې کښې اختلاف؟:-** دعلماء کرام په دې کښې اختلاف دې چه داحکم صرف د هغه خلقودپاره دې چه کوم دښمن راګیر کړی یا دبیمارئي وغیره نه څوک مجبورشي نو دهغه دپاره هم رخصت دې چه هغه به هم دهغه ځائې نه احرام پرانیزي او سر اوخرئي او قرباني اوکړي.ابن عباس ﷛ خوصرف دروميې قسم خلقو دپاره دا حکم ښائي.حضرت ابن عمر ﷛، طاوس ﷫،زهري ﷫ او زیدبن اسلم ﷫ هم دافرمائي.

لیکن مسند احمد کښې یو مرفوع حدیث کښې دي چه دکوم سړي لاس مات شي یا بیمار شي یا ګوډ شي نوهغه به حلال وي.هغه دې راتلونکي کال ته حج اوکړي.ددې حدیث راوي وائي چه ما ابن عباس ﷛ اوابوهریره ﷛ ته ذکر کړې دې نو هغوئ هم اوفرمائیل چه دا ربښتیا دي.په سنن اربعه کښې هم دا حدیث دې.([1])

**د دشمن ویره او بیماري وغیره عذرونه د احصار په حکم کښې برابر دي**

**مسلک حنفي:-** داحنافو په نیز ددشمن ویره اود دغه شان بیماري وغیره په حکم کښې برابر دي نولکه څنګه چه د دشمن په وجه څوک د حج یا عمرې کولو نه ایسار شي هغه به قرباني حرم ته اولیږي او چه کله هغه په حرم کښې ذبح کړې شي نو دې به آزاد شي دغه شان د بیمارئ په وجه چه څوک ایسار شي نوهغه به هم دغه شان کوي (احکام القرآن للجصاص (۳۲۸/۱) شاه فیصل غفرله).

حضرت ابن مسعود ﷛،حضرت ابن زبیر ﷛،علقمه ﷛،سعید بن مسیب ﷛،عروه بن مجاهد ﷫، نخعي عطاء ﷫،مقاتل بن حیان ﷫ نه هم دا روایت دې چه بیماریدل او ګوډیدل عذر دې.

سفیان ثوري ﷫ هر مصیبت او تکلیف کښې هم داسې وائي.بخاري اومسلم کښې یو حدیث دې چه دحضرت زبیر بن عبدالمطلب ﷫ لور ضباعه ﵂ رسول الله ﷺ نه تپوس کوی چه زما اراده د حج ده. خوځه بیماره یمه،حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه حج ته لاړه شه او شرط اوکړه چه زما د احرام نه دفارغیدو به هم هغه ځائې وي چه په کوم ځائې کښې ځه د بیمارئي نه روغه شوم.([2])

ددې حدیث په بناء باندې بعضې علماء کرامو فتوی ورکوی چه په حج کښې شرط لګول جائز دي.امام شافعي ﷫ هم فرمائي که دا حدیث صحیح وي نو زما قول هم دا دې،امام بیهقي ﷫ فرمائي چه داحدیث بالکل صحیح دې،نو د امام صاحب مذهب هم دا دې،فالحمدلله.

بیا ارشادفرمائي چه کومه قرباني تاسو سره وي هغه قرباني اوکړئي.حضرت علي ﷛ فرمائي چه یو چیلئ دې ذبح کړي.([3]) حضرت ابن عباس ﷛ فرمائي چه اوښ،غوا،چیلئ،ګډه یا ددې نران که وي،په دې اتو قسمونوکښې چه کوم یو غواړي ذبح دې کړي.([4])حضرت ابن عباس ﷛ نه صرف چیلئ مروي ده.او نورو ډیرومفسرینو هم دا فرمائیلي دي.اود څلورو وارو امامانو هم دا مذهب دې.

**په اوښ غوا میخه او ګډ چیلئ باندې د قربانئ جواز**

**مسلک حنفي:-** په څلوروامامانو کښې یو حضرت امام اعظم ﷫ دې د هغوی هم دا مذهب دې لکه څنګه چې فاضل مفسر ﷫ فرمائیلي دي یعني اوښ غوا میخه او ګډیا چیلئ به قرآني کوی اودا په هدی کښې شامل دي (احکام القرآن للجصاص (۳۷۲/۱) شاه فیصل غفرله).

---

[1]) احمد: ۴۵۰/۳،ابوداود: كتاب المناسک باب الاحصار: ۱۸٦۲،ترمذی: ۹۴،نسائی: ٦۸٦۳،ابن ماجة: ۳۰۷۷،وهو حدیث صحیح)-

[2]) صحیح بخاری کتاب النکاح باب الاکفاء فی الدین: ۵۰۸۹،صحیح مسلم: ۱۲۰۷)-

[3]) موطا امام مالک کتاب الحج باب مااستیسر من الهدی: ۳۹۵/۱،ح/۸۸٦)-

[4]) موطا امام مالک کتاب الحج باب مااستیسر من الهدی: ۳۹۵/۱،ح/۸۸٦)-

حضرت عائشه رضي الله عنها او حضرت ابن عمر رضي الله عنه وغيره فرمائي چه ددې نه مراد صرف اوښ او غوا ده.غالباً ددوی دليل د حديبيه واقعه ده.په دې کښې صحابي نه د چيلۍ ذبح کول منقول نه دی.غوا او اوښان دې بزرګانو قرباني کړې دی.بخاری اومسلم کښې حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې چه مونږ ته دالله ﷺ نبي حکم اوکړو چه اووه اووه کسان دې په اوښ او غوا کښې شريک شی.(۱)حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه هم دا منقول دی چه دکوم يو خناور د ذبح کولو طاقت نې وی هغه دې ذبح کړی.که مالدار وی نو اوښ اوکه ددې نه نې حيثيت کم وی نو غوا کنې بيا چيلۍ.(۲)

حضرت عروه رحمه الله فرمائي چه په ګران او ارزان نرخونوباندې موقوف دی.دجمهورو ددې قول چه چيلۍ کافی ده دا دليل دې چه قرآن پاك دآسانۍ ذکر کړې دې يعنی کم نه کم هغه څيز چه کوم باندې قرباني اوکړې شی.او دقربانۍ خناور اوښ،غوا،چيلۍ او ګډې دی لکه څنګه چه ترجمان قرآن د رسول الله ﷺ دتره ځوئې دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمان دې.بخاری او مسلم کښې يو حديث کښې دی چه نبی کريم ﷺ يو ځل دچيلۍ قرباني اوکړه.(۳)بيا نې اوفرمائيل چه ترکومې پورې قرباني خپل ځائې ته اونه رسی تاسو سرونه مه خرئی.

ددې عطف ﴿ وَأَتِمُّوا الْحَجَّ ﴾ باندې دې په ﴿ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ ﴾ باندې نه دې.دلته دابن جرير نه سهوه شوې ده،وجه داده چه نبی کريم ﷺ دحديبيې په کال چه مشرکان ورته رکاوټ جوړ شو او نبی کريم ﷺ نې حرم شريف ته نه پريخودونو دحرم نه بهر ټولو سرونه هم اوخرئيل او قربانۍ نې هم اوکړې.(۱) ليکن دامن په حالت کښې چه حرم ته رسيدلې شی نو دا جائزنه دې ترکومې پورې چه قرباني خپل ځائې ته اونه رسی.او حاجی د حج او عمرې دخپلو ټولو کارونو اواحکامونه فارغ نشی.که هغه دحج او عمرې په يو ځائې احرام تړلې وی نو يا په دې کښې يو کولو والا وی يا ده صرف د حج اراده کړې وی اواحرام نې تړلې وی،يا نې خامخا د تمتع نيت کړې وی.

بخاری اومسلم کښې دی چه ام المومنين حفصه رضي الله عنها رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه ټولو احرامونه پرانيستل اوتاسو لاپه احرام کښې يئ:نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ماخپل سرخرئيلې دې او دقربانۍ دځاروی په غاړه کښې مې نښه اچولې ده ترکومې چه دا ذبح نه شی نو څه احرام نه شم پرانيستې.(۵)

**قوله تعالى:-﴿ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ ﴾**

**دبيمار سرې حکم:-** بيا حکم کيږی چه بيمار اود سر تکليف والا دې فديه ورکړی.صحيح بخاری کښې دی چه عبدالله بن مغفل رضي الله عنه وائی چه څه دکوفې په جمات کښې کعب بن عجره رضي الله عنه سره ناست ووم.ما دهغوی نه ددې آيت باره کښې تپوس اوکړو نو هغوئ ماته اوفرمائيل چه څه خلقو اوچت کړم او نبی کريم ﷺ ته نې بوتلم او زما په څوله باندې سپږې روانې وې.نبی کريم ﷺ چه ماته اوکتل نو وې فرمائيل چه زما دا خيال نه وو چه ته به دې حالت ته رارسې.آيا ستادومره وس نشته دې چه ته يو چيلۍ ذبح کړې،ما اووئيل چه يارسول الله ﷺ ! څه خو غريب سړې يم،نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه بنه لاړ شه خپل سر اوخريه اودرې روژې اونيسه يا شپږو مسکينانو ته نيم نيم صاع (تقريباً پاؤ باندې يوسير او پاؤ باندې يو چټاکئ) غله ورکړه.نودا آيت زما باره کښې نازل شوې دې اود حکم اعتبار سره هر يو داسې معذوره سړې دپاره دې.(۱)

---

(۱) صحيح بخاری کتاب الحج باب جواز الاشتراک فی الهدی: ۱۳۱۸)-
(۲) الطبری: ۳۰/٤)-
(۳) صحيح بخاری کتاب الحج باب جواز الاشتراک فی الهدی: ۱۷۰۱)-
(٤) صحيح بخاری کتاب المحصر باب اذا المعتمرة: ۱۸۰۷،مسلم: ۱۲۳۱)-
(۵) صحيح بخاری کتاب الحج باب التمتع والقران : ۱۵٦٦،صحيح مسلم: ۱۲۲۹)-

یو بل روایت کښې دی چه کتونی پسې مې اور بلولو چه نبی کریم ﷺ زما دا حالت اوکتلو اوماته نې دامسئله بیان کړه.(۲)یو بل روایت کښې دي چه دا واقعه دحدیبیه ده.ا وزما په سر باندې لونې لونې وبینته وو په هغې کښې ډیرې سپږې وې.(۳)د ابن مردویه په روایت کښې دی چه بیا ما سر اوخرئیلواو یو چیلۍ مې ذبح کړه.یو بل حدیث کښې دی چه ﴿ نسك﴾ یعنی قربانی یو چیلۍ ده او روژې که نې اوساتلې نو درې دی.او که صدقه ورکړی نو یو فرق (پیمانه) شپږو مسکینانو باندې تقسیمول دی.حضرت علی ﷺ،محمد بن کعب ﷺ،علقمه ﷺ،ابراهیم ﷺ،ﷺمجاهد ﷺ،عطاء ﷺ،سدی ﷺ اوربیع بن انس ﷺ نه هم دافتوی نقل ده.د ابن ابی حاتم په حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ حضرت کعب ابن عجره ﷺ ته درې واړه مسئلې خودلې وې او فرمائیلی نې وو چه په دې کښې ته په کوم باندې غواړې عمل پرې اوکړې نو کافی دی.(۴)

حضر ت ابن عباس ﷺ فرمائی چه کوم ځائې کښې دوه درې طریقې په لفظ د "او" سره بیان شوی وی نو په هغه ځائې کښې اختیار وی چه کوم یو غواړې نو وېکړه.حضرت مجاهد ﷺ،حضرت عکرمه ﷺ،حضرت عطاء ﷺ،حضرت طاوس ﷺ،حضرت حسن ﷺ،حمید ﷺ،حضرت اعرج ﷺ،حضرت ابراهیم نخعی ﷺ او حضرت ضحاك ﷺ نه هم دا مروی دی.د آئمه اربعه او داکثرو عالمانو هم دا مذهب دې که غواړی نو روژې دې نیسی او که غواړی نو صدقه دې ورکړی او که غواړی نو قربانی دې اوکړی.روژې درې دی.صدقه یو فرق یعنی درې صاع ( یعنی اته سیرو نه نمیه چټاکۍ کمه) ده،په شپږو مسکیانو دې تقسیم کړی.او قربانی یو چیلۍ ده.په دې دریو واړو صورتونو کښې چه کوم یو غواړې نو اودې کړی.الله رب العزت ته دې ځائې کښې رخصت ورکول وو ددې وجې نې ړومبې درژې بیان اوکړو چه دا دټولو نه آسانه ده.بیانې دصدقې بیان اوکړو،بیانې د قربانۍ بیان اوکړو.او نبی کریم ﷺ ته په افضل باندې عمل کول وو،نو ددې وجې نې ړومبې د چیلۍ د قربانئی ذکر اوکړو.بیا نې شپږو مسکینانو باندې دخوراك کولو،بیا نې د دریو روژو ساتلو.سبحان الله د دواړو خایونو اعتبار سره دواړه ترکیبونه،څومره درست او برمحل دی.فالحمدلله.

حضرت سعید بن جبیر ﷺ نه ددې آیت د مطلب باره کښې تپوس اوشو نو وې فرمائل چه دغلې حکم به کولې شی.که ده سره وی نو یو چیلۍ دې واخلی،ګنی دچیلۍ قیمت به د درهمونو سره اولګولې شی او ددې دې غله واخلی او صدقه دې ورکړی،ګنی دهر نیم صاع په بدله کښې دې یو روژه اونیسی.

حضرت حسن ﷺ فرمائی چه کله دیو محرم په سر کښې تکلیف وی نو وینته دې اوخرئی او په دې دریو واړوکښې دې یو فدیه ورکړی.لس روژې نیول دی لسومسکینانو ته صدقه ورکول دی.هر یو مسکین ته یونیم صاع کهجورې ( چې موجوده وخت کښې ترې تقریبا دوه کلو جوړیږی)،او یویوصاع غنم او په قربانۍ کښې چیلئی.حسن ﷺ او عکرمه ﷺ هم لسو مسکینانوته خوراك ورکول بیانوی

**د قولونو تضعیف**:-خودا اقوال صحیح نه دی.ځکه چه په مرفوع حدیث کښې راغلی دی چه روژې درې دی اوخوراك دشپږو مسکینانو دې او پدې دریو واړو صورتونوکښې اختیار دې چه چیلۍ قربانی کوی که روژې نیسی اوکه شپږو مسکینانو ته خوراك ورکوی.اودا ترکیب په احرام کښې ښکار کوونکی دپاره هم دې.دا قربانی او صدقه دې په مکه کښې اوکړی او روژې چه چرته نیسی نو اودې نیسی لکه څنګه چه قران پاك الفاظ دی او د فقهاء کرامو اجماع ده.لیکن دلته ترتیب ضرروی نه دې،اختیار

---

(۱)صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب قوله تعالی ( فمن کان منکم مریضا.....) (۴۵۱۷)-

(۲)صحیح بخاری کتاب المرضی باب ما رخص للمریض:۵۶۶۵،صحیح مسلم: (۱۲۰۱)-

(۳)صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة حدیبیة: ۴۱۹۱)-

(۴)ابو داود کتاب المناسک باب فی الفدیة: ۱۸۶۱،نسائی: ۲۸۵۴،وهو صحیح)-

دې.طاوس رحمه الله فرمائي چه دا قرباني اودا صدقه دې په مکه کښې اوکړی او روژې چه چرته نيسي نو اودې نيسي.
يو روايت کښې دی چه ابو اسماء چه دابن جعفر مولي دې فرمائي چه حضرت عثمان بن غفان ﷺ حج ته لاړو.دوی سره حضرت علی ﷺ او حضرت حسين ﷺ هم وو.خه ابن جعفر سره اووم.مونږ اوکتل چه يوسړي ملاست دې او دده اوښه دده سر ته ترلي شوې ده.ما هغه راپاسولو نو هغه حضرت حسين ﷺ وو.ابن جعفر چه هغه اوليدو نو لاړو تر دې چه مونږ سقيا ته اورسيدو،هلته مونږ شلو ورځو پورې د هغوی په تيمار دارئې کښې وو.يو خل حضرت علی ﷺ تپوس اوکړو چه څه حال دې ؟.نو حضرت حسين ﷺ خپل سر طرفته اشاره اوکړه.حضرت علی ﷺ ورته اوفرمائيل چه سر اوخرئيه او بيا اوښ راوغواړه اوهغه ذبح کړه.نو که د اوښ د احرام نه د حلاليدو دپاره وو نو خير او که دا د فديه دپاره وو نو ظاهره شوه چه دا قرباني د مکې نه بهر شوې وه.
**قوله تعالى:-** فَإِذَآ أَمِنتُمْ فَمَن تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ
**تمتع حج کوونکو دپاره احکام:** بيا ارشاد فرمائي چه تمتع حج کولو والا سړې دې هم قرباني اوکړی.که دحج او عمرې احرام په يو ځائې ترلې وی يا ئې دعمرې احرام ترلې وی او ددې نه فارغ شی او د حج احرام ئې ترلې وی.اصل تمتع هم داده.اود فقهاء کرامو په کلام کښې مشهور هم دا دې.او عام تمتع په دې دواړو قسمونوکښې شامل دی.لکه څنگه چه صحيح حديث په دې باندې دلالت کوی.(بعض راويان وائی چه نبی کريم ﷺ په خپله تمتع کړې وو.بعضې وائی چه نبی کريم ﷺ قارن وو.او دا خبره هم ټول راويان وائی چه نبی کريم ﷺ سره دقربانئ ځناور وو.نو په دې آيت کښې دا حکم دې چه تمتع کولو والا چه په کومه قربانئ باندې قادر وی هغه دې اوکړی.ددې ادنی درجه يو چيلئ قرباني کول دی.يعنی دغوا قرباني هم کولې شی.نبی کريم ﷺ دخپلو ښځو د طرفنه د غوا قرباني کړې وه چه ټولې تمتع والا وې.([1]) ( ابن مردويه).ددې نه ثابته شوه چه تمتع هم مشروع دې.
حضرت عمران بن حصين ﷺ فرمائي چه د تمتع آيت هم په قران کښې نازل شويدې او مونږ نبی کريم ﷺ سره تمتع کړې وو.بيا خو نه په قران پاك کښې ددې ممانعت راغلو او نه نبی کريم ﷺ ددې نه منع اوفرمائيله.خو خلقو په خپله رائې سره دا ممنوع اوگرځولو.
حضرت امام بخاری رحمه الله فرمائي چه ددې نه مراد غالبا حضرت عمر فاروق ﷺ دې.([2])حضرت امام المحدثين دا خبره بالکل صحيح ده.حضرت عمر فاروق ﷺ نه منقول دی چه هغوئ به ددې نه خلق منع کول او فرمائيل به ئې که مونږ کتاب الله اوگورونو په دې کښې هم دحج او عمرې پوره کولو حکم موجوددې ( أَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ) خو ياد ساتئ چه دا ممانعت دحضرت عمر فاروق ﷺ په نيز حرام نه وو بلکه ددې وجې وو چه خلق په کثرت سره دبيت الله شريف د حج او دعمرې کولو قصداوکړی لکه څنگه چه حضرت عمر ﷺ نه ښکاره مروی دی.
**قوله تعالى:-** فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ
**دقربانئ په بدله کښې روژې نيول:-** بيا فرمائي چه کوم سړې قرباني اونه کړې شی نو هغه دې درې روژې اونيسی په حج کښې او اووه روژې په هغه وخت کښې چه کله دې د حج نه واپس شی.دا پوره لس روژې شوې.يعنی د قربانئ طاقت د چا نه وی نو هغه دې روژې اونيسی،درې خو په ايام حج کښې او باقی اووه دې نه پس،خو په دې کښې

[1] ابو داود کتاب المناسک باب فی هدی البقرة: ۱۷۵۱،ابن ماجة: ۳۱۳۳)۔
[2] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة البقرة باب ( فمن تمتع بالعمرة الی الحج) :۴۵۱۸،صحيح مسلم: ۱۲۲۶)۔

**روژې د عرفې نه وړاندې نیول:-** د علماء کرامو فرمان دې چه اولی دا دی چه دا روژې د عرفې نه مخکښې د ذی الحجه په ورځو کښې اونیسی. د حضرت عطاء رحمه الله قول هم دا دې. یا د احرام ترلو سره دې اوساتی. د حضرت ابن عباس رضی الله عنه وغیره هم دا قول دې ځکه چه د ((فِي الْحَجِّ)) لفظ دې.

**په شوال کښې د روژو نیولو حکم:-** حضرت طاوس رحمه الله، حضرت مجاهد رحمه الله وغیره هم دا فرمانی چه شوال کښې هم دا روژې جائزدی. حضرت شعبی رحمه الله وغیره فرمانی که دې روژو سره د عرفې د ورځې روژه هم شامله کړې شی نو دا هم ورته اختیار دې. حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه دا هم منقول دی که دعرفې نه مخکښې دوه روژې اونیسی اودریمه دعرفې په ورځ وی نو دا هم جائز دی. حضرت ابن عمر رضی الله عنه هم فرمانی چه یو روژه دیوم الترویه نه مخکښې، یود یوم الترویه او یو دعرفې.

**په ایام التشریق کښې روژې نیول:-** د حضرت علی رضی الله عنه فرمان هم دا دې.([1]) که دیو سړی نه دا درې واړه روژې یا دوه پاتې شی او هغه په ایام التشریق یعنی د لوئې اختر نه پس چه درې ورځې راشی. حضرت عائشه رضی الله عنها او حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمانی چه هغه په دې ورځو کښې هم دا روژې نیولې شی. (بخاری). د امام شافعی رحمه الله قول هم دا دې. حضرت علی رضی الله عنه، حضرت عکرمه رضی الله عنه، حسن بصری رحمه الله، او عروه بن زبیر رحمه الله نه هم دا مروی دی.([2]) اوددې دلیل دادې چه فی الحج عام دې. او دا ورځې هم په کښې شاملې دی. د حضرت امام شافعی رحمه الله جدید قول دا دې چه په دې ورځو کښې دا روژې نیول ناجائز دی. ځکه چه په صحیح مسلم کښې حدیث دې چه ایام تشریق د نه خوراك څکاك او دالله ﷻ د ذکر کولو ورځې دی.([3])

## په ایام التشریق کښې د روژو نیولو حکم

**مسلك حنفی:-** په ایام التشریق کښې روژه نیول حرام دی ځکه چې دا د الله ﷻ د میلمستیا ورځې دی لکه حدیث مبارك کښې چې دی ((أَلَا لَا تَصُومُوا فِي هَذِهِ الْأَيَّامِ فَإِنَّهَا أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ وَبِعَالٍ)) (تسهیل الهدایه ۲/ ۳۳۵)

**قوله تعالی:-** وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ

**د اووه روژو وخت:-** بیا اووه روژې وخت د واپس کیدو، ددې نه مراد دا دې چه کله واپس شی او خپل خانې ته اورسی، او کله چه واپس کیږی نو په لاره کښې هم دا روژې نیولې شی. مجاهد رحمه الله، او عطاء رحمه الله هم دا فرمانی. یا مراد ترې وطن ته تګ دې. دا ابن عمر رضی الله عنه فرمانی. او نور هم ډیرو تابعینو نه هم دا مذهب روایت دې بلکه ابن جریر رحمه الله خو په دې قول اجماع بنانی.

صحیح بخاری یو طویل حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ حجة الوداع کښې دعمرې حج سره تمتع اوکړه او قربانی نې اوکړه. ذوالحلیفه نه نبی کریم ﷺ خان سره قربانی اخستې وه. عمره نې اوکړه او بیا نې دحج تهلیل اوکړو. خلقو هم دوی سره تمتع اوکړو. بعضوخلقو خو خان سره قربانی اخستې وه، بعضو سره دقربانی خناور نه وو. مکې ته په رسیدو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه چا سره دقربانی خناور شته هغوئ دې حج ختمیدو پورې په احرام کښې اوسی او چه چا سره قربانی نشته هغوئ دې دبیت الله شریف طواف اوکړی او د صفا مروه سعی دې اوکړی او احرام دې پرانیزی، سرونه دې اوخرنی یا دې ویښته واړه کړی، بیا دې د حج احرام اوتړی. که د قربانئ طاقت نې نه وی نو درې روژې دې اونیسی په حج کښې او اووه روژې چه کله خپل وطن ته واپس اورسی نو بیا دې اونیسی. (بخاری ومسلم).([4]) ددې

---

[1] الطبری: ۴/۹۴)-

[2] الطبری: ۴/۹۴)-

[3] صحیح بخاری کتاب الصیام باب تحریم صوم ایام التشریق:.....۱۱۴۱، ابوداود: ۲۸۱۳)-

[4] صحیح بخاری کتاب الحج باب من ساق البدن معه: ۱۶۹۱، صحیح مسلم: ۱۲۲۷)-

نه دا خبره ثابتيږي چه دا اووه روژې وطن ته واپس كيدو نه پس دي.

**قوله تعالى:- تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ**

**لس ورځې روژې برابرول:-** بيا فرمائي چه دا پوره لس دي.دا فرمان تاكيد دپاره دې لكه څنګه چه عربو كښې ونيلې كيږي،ما خپلو سترګو سره اوكتل،په غوږونومې واوريدل،په لاسونو مې اوليكل او قران پاك كښې هم دا دي چه ﴿وَلَا طَٰٓئِرٖ يَطِيرُ بِجَنَاحَيۡهِ﴾ نه يو مارغه چه خپلو دواړو وزروسره الوزي.بل ځائې كښې فرمائي چه(ولاتخطه بيمينك)ته پخپل ښي لاس سره نه ليكې.او بل ځائې كښې دي چه مونږ حضرت موسى ﷺ نه د ديرشوشپو وعده اخستې وه او په نورو لسو ورځو سره مو پوره كړل او د رب ﷻ مقرر خلوبښت ورځې مو پوره كړې.نو په دې ټولو ځايونو كښې تاكيد دې هم داشان دا جمله هم د تاكيد په طوراستعمال شوې ده.او داهم ونيلې شوي دي چه دا حكم دې د تمام اوكمال.د ﴿كَامِلَةٌ﴾ مطلب داهم بيان شوې دې چه دا د قربانۍ بدله كښې كافي ده.

**د تمتع حج حكم د چا د پاره دې:-** دې نه پس فرمائي چه دا حكم دهغه خلقو دپاره دې چه دمسجد حرام اوسيدونكى نه وي.په دې باندې اجماع ده چه حرم والا تمتع نشي كولې.حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي بلكه ددوى نه مروى دي چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه انې د مكې خلقو تاسو تمتع نه شئ كولې.تمتع بهر والو دپاره دې.دې دپاره به تاسو لږ شان لرې څئ.لږه شان مزل اوكړئ او بيا د عمرې احرام اوتړئ.د طاؤس په تفسير كښې هم دا دي.[1]

خوعطاء فرمائي چه ميقات يعني چه كوم خلق د احرام تړلو ځائې ته نزدې وي هغوئ هم په دې حكم كښې دي چه دهغوئ دپاره هم تمتع كول جائز نه دي.مكحول رحمه الله هم دا فرمائي.نو دعرفات والو،مزدلفه والو،عرفه والو،اود رجيع اوسيدونكو دپاره هم دا حكم دې.

زهري رحمه الله فرمائي چه دمكې نه ديو ورځې مسافت فاصله هومره وي،يا دې ته نزدې وي نو هغه تمتع كولې شي.اونور خلق نشي كولې.حضرت عطاء رحمه الله فرمائي چه دا مزل دوه ورځې دې.د حضرت امام شافعي رحمه الله مذهب هم دادې چه اهل حرم او چه كوم خلق په دومره فاصله كښې وي چه هلته مكې والو دپاره مونځ قصر كول جائز نه وي.ددوى ټولو دپاره هم دا حكم دې،ځكه چه ټول به حاضر ګڼلې شي.ددې نه علاوه ټول مسافر،او ددوى ټولو دپاره حج كښې تمتع كول جائز دي.والله اعلم.

**د حاضر المسجدالحرام نه څوك مراد دې؟**

**مسلك حنفي:** چه كوم خلق د حرم اواحرام دميقاتو ترمينځه وي هغوى حاضر المسجد الحرام كښې داخل دي دغه دميقات اوسيدونكي هم په حاضرالمسجد الحرام كښې داخل دي.[2]

**د تقوى حكم:-** بيا فرمائي چه الله ﷻ نه ويريږئ چه دهغه پاك ذات چې كوم احكام دي هغه پوره كړئ چه دكومو كارونونه هغه ذات منع كړې يئ نود هغې نه منع شئ او يقين اوكړئ چه هغه ذات نافرمانو ته سخته سزا وركوي.

| فَرَضَ | فَمَن | مَّعۡلُومَٰتٞ | أَشۡهُرٞ | ٱلۡحَجُّ |
|---|---|---|---|---|
| چه فرض كړو | نوهغه چا | معلومې دي | خو مياشتې | حج |
| د حج مياشتې (ټولو ته) معلومې دي نو څوك چې فرض كړي | | | | |

[1] الطبرى: ۱۱۱/٤-

[2] (احكام القران للعثمانى (۱۱۱/ ۳۳۰)-

| فِي الْحَجِّ ط | وَلَا جِدَالَ | وَلَا فُسُوقَ لا | فَلَا رَفَثَ | الْحَجَّ | فِيهِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| په دوران دحج کښې\| | اونه جګړې | اونه ګناهونه \| | اونه دې کوي جماع\| | حج | په دې میاشتو کښې\| |
| په دغه ورځو کښې په ځان حج \| نو هغه دې خبرشي چې په حج کښې کوروالي ګناهونه او جګړې (خاص طورسره) منع دي | | | | | |
| فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ | وَتَزَوَّدُوا | يَعْلَمْهُ اللَّهُ ط | مِنْ خَيْرٍ | تَفْعَلُوا | وَمَا |
| بهتره توښه | اوبیشکه\| | دخان سره واخلئ\|اوتوښه | پوهیږي په هغې الله\| | څه نیک کار | اوهغه\|چې کوئ تاسو\| |
| او هر څه نیک کارچې تاسو کوئ هغه الله په هغې پوهه دی\|اوځان سره توښه اخلئ بیشکه \|چې دټولونه نه توښه | | | | | |
| | | يَأُولِي الْأَلْبَابِ ۝ | وَاتَّقُونِ | | التَّقْوَىٰ ز |
| | | اے عقلمندو \| | اوځان اوساتئ دنافرمانئ زما نه \| | | پرهیزګاري ده\| |
| د سوال نه ځان ساتل دي\|او ائې هوښیارانوزما د(عذاب)نه ځان بچ کړئ\| | | | | | |

قوله تعالى:- اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ

**د حج دپاره د احرام میاشتې:** عربی دان وائی چه ددې جملې مطلب دادې چه حج، حج دې، دا میاشتې چه معلومې اومقرر دی. نو د حج په ورځو کښې احرام تړل، دنورو میاشتو داحرام تړلو نه زیات کامل دی. اګر چه د نورومیاشتو احرام تړل هم صحیح دی. حضرت امام مالك رحمه الله، حضرت ابوحنیفه رحمه الله، حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله، حضرت اسحاق رحمه الله، حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله، حضرت ثوری رحمه الله، حضرت لیث رحمه الله، فرمائی چه په ټول کال کښې چه په کومه میاشت کښې غواړی نو د حج احرام تړلې شی. ددې بزرګانو دلیل دادې چه ﴿يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ ط﴾ الخ. دویم دلیل دادې چه حج او عمره دواړو ته نسك وئیلې شوې دې او دعمرې احرام په هره میاشت کښې تړلې شی نو د حج احرام هم چه کله اوتړی نو صحیح به وی.

حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی چه د حج ا حرام د حج په میاشتوکښې تړل صحیح دی. آو که په نورو میاشتو ئې د حج احرام اوتړلو نو دابه صحیح نه وی لیکن دې سره عمره هم کولې شی یا نه ؟ په دې کښې د امام صاحب رحمه الله دوه اقوال دی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه، حضرت جابر رضی الله عنه، حضرت عطاء رحمه الله، او حضرت مجاهد رحمه الله نه هم دا مذهب مروی دې چه د حج احرام د حج میاشتو نه سوا نورو میاشتو کښې تړل غیر صحیح دی او په دې باندې دلیل ﴿اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ﴾ دې.[1]

اودعربی دان حضراتو یو جماعت وائی چه د آیت ددې الفاظو مطلب دا دې چه حج دپاره خاص دوه میاشتې مقرر دی. نوثابته شوه چه ددې میاشتو نه مخکښې چه څوك احرام اوتړی نو هغه به صحیح نه وی. چه څنګه دمونځ د وخت نه مخکې څوك مونځ اوکړی. حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی چه مونږ ته مسلم بن خالد خبر راکړې دې چه هغوئ ابن جریج نه واوریدل، هغوئ ته عمرو بن عطاء رحمه الله اووئیل، هغوئ ته عکرمه رضی الله عنه ذکر اوکړو چه حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائی چه یو سړی دپاره لائق نه دی چه دحج میاشتو نه سوا دحج احرام اوتړی ځکه چه الله ﷻ فرمائی چه ﴿اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ﴾ ددې روایت نور هم سندونه شته دې. یو سند کښې دی چه سنت هم دا دی. صحیح ابن خزیمه کښې هم دا روایت منقول دې. اصل کتابونو کښې دا مسئله شوې ده چه د صحابی فرمان چه په حکم کښې د مرفوع حدیث په شان دی.

---

[1] الطبری: ۱۱۵/٤)

## د حج د میاشتو نه وړاندې د حج دپاره د احرام تړل

**مسلک حنفي**:- د حج د میاشتو نه وړاندې که څوک د حج دپاره احرام اوتړي نو په دغه احرام باندې حج کیږي خو داسې کول مکروه تحریمي دی (کذافي معلم الحجاج للسعید احمد صفحه ۹۲، شاه فیصل غفرله).

نودا حکم به درسول ﷺ وی او صحابي هم دلته هغه صحابي دې چه کوم مفسر قران او ترجمان القران دې.ددې نه علاوه د ابن مردویه یو مرفوع حدیث کښې دی.نبی کریم ﷺ فرماني چه د حج احرام تړل دحج دمیاشتونه سوا تړل هیڅا لره لائق نه دی،ددې اسنادهم ښه دی.لیکن حضرت امام شافعي رحمه الله او امام بیهقي رحمه الله نه روایت دې چه ددې حدیث راوی حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه تپوس اوکړې شو که د حج دمیاشتو نه مخکښې د حج احرام اوتړلې شي،نو دوی اوفرمائیل چه نه.(۱)دا موقوف حدیث زیات ثابت او زیات صحیح دې.او د صحابي ددې فتوې تقویت دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه ددې قول نه هم کیږي چه سنت داشان دی.والله اعلم.

﴿اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ﴾ نه مراد حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرماني چه دشوال،ذی القعده او د ذی الحجه لس ورځې دی.(بخاري).(۲) دا روایت ابن جریر او مستدرك حاکم کښې هم دې.او امام حاکم رحمه الله دې ته صحیح وائي.(۳)حضرت عمر رضي الله عنه،حضرت علي رضي الله عنه،حضرت ابن مسعود رضي الله عنه،حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه،حضرت ابن عباس رضي الله عنه،نه هم دا مروی دی.حضرت عطاء رحمه الله،حضرت مجاهد رحمه الله،حضرت ابراهیم نخعي رحمه الله،حضرت شعبي رحمه الله،حضرت حسن رحمه الله،حضرت ابن سیرین رحمه الله،حضرت مکحول رحمه الله،حضرت قتاده رحمه الله،حضرت ضحاك بن مزاحم رحمه الله،حضرت ربیع بن انس رحمه الله،حضرت مقاتل رحمه الله هم دا فرماني.(٤)او حضرت امام شافعي رحمه الله،حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله،حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله،حضرت امام ابویوسف رحمه الله،او ابوثور رحمه الله نه هم دا مذهب مروی دې.امام ابن جریر رحمه الله هم دا خوښوي.

## د حج میاشتې

**مسلک حنفي**:- ځنګه چه فاضل مصنف فرمائیلي دي نو هم دغه شان ده یعني داحنافو په نیز هم د حج د میاشتو نه د شوال او ذو القعدې پوره میاشت اود ذو الحجې اولنۍ لس ورځې مراد دی لکه ځنګه چې صاحب دقدروی شیخ ابوالحسن رحمه الله فرماني.چه دحج میاشتې شوال ذوالقعده اولس ورځې د ذوالحجه دی (تسهیل الهدایه ۲/۴۸۳).

د ﴿اَشْهُرٌ﴾ لفظ جمع دې.نوددې اطلاق دوه پوره میاشتو او د دریمې په بعضې حصه باندې هم کیدې شي.لکه ځنګه چه عربۍ کښې وئیلې شي ماهغه په دې کال یا په دې نن ورځ کښې لیدلې دې.نوپه حقیقت کښې خونې ټول کال یا ټوله ورځ نه وی لیدلې بلکه دکتلو وخت خولږ شان وی.مګر تقریبا داسې وئیلې کیږي.داشان دلته هم تقریبادریمې میاشتې ذکر دې.په قران پاك کښې هم دی چه ﴿فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ﴾ حالانکه دا زردیونیمې ورځې وی.مګر په شمیر کښې دوه ورځې اووئیلې شوې.د حضرت امام مالك،حضرت امام شافعي رحمه الله رومبی قول دادی چه شوال،ذوالقعده او د ذوالحجه پوره میاشت ده.حضرت ابن عمر رضي الله عنه،ابن شهاب رحمه الله،عطاء رحمه الله،جابر بن عبدالله رحمه الله،طاؤس رحمه الله،مجاهد

---

(۱) کتاب الام : ۲/۱۳۲،بیهقي ٤/۳٤۳)-

(۲) صحیح بخاری کتاب الحج باب قوله تعالی ( الحج اشهر معلومات) تعلیقا قبل حدیث: ۱۵٦۰،وصحیح ابن خزیمة: ۲۵۹٦)-

(۳) حاکم : ۲/۲۷٦،وسنده صحیح)-

(٤) ابن ابي حاتم: ۲/٤۸٦)-

رحمه الله اوعروه بن الزبير. ربيع رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله نه هم دا مروی دی.يو مرفوع حديث کښې دا هم راغلی دی ليکن هغه موضوع دې ځکه چه ددې راوی حصين بن مخارق دې.او په هغه باندې د احاديثو د وضع کولو تهمت دې بلکه ددې مرفوع کيدل ثابت نه دی،والله اعلم.

دامام مالك رحمه الله ددې قول منلو نه پس داثابتيږی چه د ذوالحجه په مياشت کښې به عمره کول صحيح وی،دامطلب نه دې چه دلسمې ذی الحجې نه پس هم حج کيدېشی.نو حضرت عبدالله رضی الله عنه نه روايت دې چه د حج په مياشتو کښې عمره درست نه ده.امام ابن جرير رحمه الله د دې قول هم دا مطلب اخلی چه د حج زمانه خو د منی د ورځې تيريدو نه پس تيره شوه.د محمد بن سيرين بيان دې چه زما په علم کښې خو څوك داسې اهل علم نشته دې چه د حج د مياشتو نه علاوه،عمره کولو د‌ې مياشتو کښې دننه عمره کولو نه افضل منلو کښې شك کوی.حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت عثمان رضی الله عنه هم د حج د مياشتو نه علاوه په نورو مياشتو کښې عمره کول خوښ منقول دی بلکه په دې مياشتو کښې عمره کولو نه منع کول.والله اعلم.(ددې نه دمخکې آيت په تفسير کښې تير شوی دی چه نبی کريم ﷺ ذوالقعده کښې څلور عمرې ادا اوفرمائيلې اوذوالعقده هم د حج مياشت ده.نو دحج په مياشتو کښې عمره کول جائز شو والله اعلم).

**قوله تعالى:-** فَمَنْ فَرَضَ فِيهِنَّ الْحَجَّ

**د فرض نه مراد:-** بيا ارشاد فرمائی چه کوم سړې په دې مياشتو کښې حج مقرر کړی يعنی د حج احرام اوتړی نو دا پوره کول لازم دی.فرض نه دلته مراد واجب اولازم دی.[۱] حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه ددې (فرض) نه د حج او عمرې احرام تړلووالا مراد دې.عطاء رحمه الله فرمائې چه د فرض نه مراد احرام دې.ابراهيم رحمه الله اود ضحاك رحمه الله هم دا قول دې.[۲] حضرت ابن عباس رحمه الله فرمائی چه احرام تړلو او لبيك وئيلو نه پس يوځائې کښې پاتې کيدل صحيح نه دی.اود بزرگانو هم دا قول دې.بعضې بزرګانو دا وئيلی دی چه د فرضو نه مراد لبيك وئيل دی.

**قوله تعالى:-** فَلَا رَفَثَ

**د رفث نه مراد:** د ﴿ رَفَثَ ﴾ نه مراد جماع ده لکه څنګه چه بل ځائې کښې قران پاك کښې فرمائی چه ﴿ أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَآئِكُمْ ﴾ يعنی روژې په شپوکښې ستاسو خپلو بيبيانوسره جماع کول موحلال کړی دی.د احرام په حالت کښې جماع او ددې ټول کارونه حرام دی.لکه مباشرت کول، ښکلول، د ښځو په موجودګئ کښې ددې خبرې کول اګر چه بعضو د سړو په ډله کښې داسې خبرې په (رَفَثَ) کښې داخلې کړی دی.خو دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه ددې خلاف مروی دی. هغوئ يوځل څه داسې شعر اووئيلو اوددوی نه په تپوس کولودوی اوفرمائيل چه دښځو په مخکې داسې خبرې کول (رَفَثَ).دې د (رَفَثَ) ادنی درجه داده چه د جماع وغيره ذکر اوکړې شی.فحش خبرې کول،په خبرو کښې داسې اشارې کول،په اشارو کنايوکښې دجماع ذکر کول،خپلو بيبيانو ته وئيل چه احرام لرې شی نوجماع به کوی،چيړچاړ،مساس،وغيره دا ټول په ﴿ رَفَثَ ﴾ کښې داخل دی.اوداحرام په حالت کښې دا ټولې خبرې حرامې دی.

**قوله تعالى:-** وَلَا فُسُوقَ

**دفسوق مفهوم:-** د مختلفومفسرينودمختلفواقوالومجموعه داده چه دفسوق معنی عصيان او نافرمانی ،ښکار،کنځل،وغيره بدزبانی ده.لکه حديث کښې دی چه مسلمان ته کنځل کول فسق دې.او دده قتل

---

[۱] الطبری: ۱۲۱/٤)-

[۲] ايضا: ۱۲۳/٤)-

کول کفر دي.(۱)الله ﷻ نه سوا د نورو د تقرب دپاره څناور ذبح کول هم فسق دي لکه قران پاك کښې دی چه ﴿ أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ ﴾ خلق په بدو القابو سره یادول هم فسق دي.قران پاك فرمائی چه ﴿وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ﴾مختصر داچه دالله ﷻ هره نافرمانی په فسق کښې داخله ده اګر چه فسق هروخت حرام دی. لیکن حرمت والا میاشتو کښې ددې حرمت نور هم زیاتیږی.الله ﷻ فرمائی چه ﴿فَلَا تَظْلِمُوا فِيهِنَّ أَنفُسَكُمْ﴾ دې حرمت والامیاشتو کښې په خپلو ځانونوباندې ظلم مه کوئی.داشان حرم کښې هم ددې حرمت زیاتیږی.ارشاد دې چه ﴿ وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ یعنی حرم کښې چه د څوک د الحاد او بې دینۍ اراده اوکړی دې نو مونږ به ورته دردناك عذاب ورکوؤ.امام ابن جریر ﷫ فرمائی چه دلته مراد د فسق نه هغه کارونه دی چه داحرام په حالت کښې منع دی لکه ښکار کول،ویښته خریل یا وازه کول،نوکونه پریکول وغیره.حضرت ابن عمر ؓ نه دا هم مروي دی لیکن بهترین تفسیر هم هغه دې چه کوم مونږ بیان کړو یعنی هرې ګناه نه منع کیدل.والله اعلم.(۲)بخاری او مسلم کښې دی چه کوم سړې ددې بیت الله حج کوی،او هغه دې کښې نه رفث اوکړی،اونه فسق اوکړی،نو هغه د ګناهونو نه داسې پاك راوزی لکه څنګه چه د خپل پیدائش په ورځ وو.(۳)

**قوله تعالی:- وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ**

**د جګړو ممانعت**:بیا ارشاددې چه په حج کښې جنګ مه کوئی یعنی دحج په وخت کښې دحج په ارکانو کښې جنګ مه کوئی.ددې پوره پوره بیان الله ﷻ بیان اوفرمائیلو.دحج میاشتې مقرر شوی دی .په دې کښې کمې زیاتې مه کوئی.د حج موسم مخکښې روستو مه کوئی لکه څنګه چه دمشرکانو طریقه وه.او ددې مذمت قران پاك په بل مقام کښې کړې دې.دا شان قریش به مشعر الحرام سره مزدلفه کښې پاتې کیدل او باقی عرب به عرفات کښې پاتې کیدل.بیا به نې خپلو کښې جګړې کولې.او یوبل ته به نې وئیل چه مونږ په صیحح لار یو او طریق ابراهیمی باندې یو.نوددې نه په دې مقام کښې ممانعت اوشو چه الله ﷻ دخپل نبی ﷺ په لاس د حج وخت،د حج ارکان او د حج ځایونه مقرر کړی دی.اوس تاسوپه یوبل باندې فخر مه کوئ.او نه د حج ورځې وړاندې روستو کوئ.او اوس دا جنګ ختم کړئی. والله اعلم.

دا مطلب هم بیان شوې دې چه د حج په سفر کښې په خپلو کښې جګړې مه کوئی.اومه یو بل ته غصې کوئی.اومه یو بل ته کنځل کوئی.د ډیرو مفسرینو دا قول هم دې او د ډیرو مفسرینو رومبې قول هم دې.حضرت عکرمه ؓ فرمائی چه دچا خپل غلام ته غصه کول په دې کښې داخل نه دی.خو وهی دې نه.لیکن څه وایم که غلام اووهی هم نو هیڅ ویره نشته دې.

مسند احمد کښې حدیث دې چه مونږ نبی کریم ﷺ سره په سفرحج کښې وو.او عرج کښې پاتې شوی وو.حضرت عائشه ؓ نبی کریم ﷺ سره ناسته وه.او حضرت اسماء ؓ خپل والد حضرت ابو صدیق ؓ سره ناسته وه.د حضرت ابوبکر صدیق ؓ او د نبی کریم ﷺ د اوښانو سامان د حضرت ابوبکر صدیق ؓ خادم سره وو.حضرت ابوبکرصدیق ؓ دده انتظار کولو.لږ وخت پس هغه راغلو.او دده نه نې تپوس اوکړو چه اوښ چرته دې ؟.هغه اووئیل چه پرون شپې راسې غیب دې.دوی خفه شو او وې فرمائیل چه یو اوښ دې هم سنبال نه کړو.په دې وینا سره دوی هغه (غلام) اووهلو.نبی کریم ﷺ خندل او فرمائیل نې چه اوګورئی د احرام په حالت کښې دې څه کوی ؟.دا حدیث ابوداود او ابن ماجه کښې هم

(۱) صیحح بخاری کتاب الایمان باب خوف المومن من ان یحبط عمله.....٤٨،صحیح مسلم: ٦٤)-
(۲) درفث متعلق د مفسرینو اقوال اوګورئی: طبری: ۱۲۲/۴)-
(۳) صحیح بخاری کتاب الحج المبرور: ۱۵۲۱،صحیح مسلم: ۱۳۵۰)-

دي.(۱)
بعضو سلفو نه هم دا مروی دی چه د حج پوره کیدو کښې (څوک نه وهل) دا هم دی.لیکن دا خیال ساتل پکار دی چه د نبی کریم ﷺ دحضرت ابوبکر صدیق ؓ په دې کار باندې دا فرمائیل.په دې کښې ډیر لطافت سره یو قسم انکار دې.نو مسئله دا شوه چه دا پرینښودل اولی دی.والله اعلم
مسند عبد بن حمید کښې دی چه کوم سړي خپل حج پوره کړی او دده دلاسه مسلمان په تکلیف کښې نه شی نو دده ټول مخکښنې روستی ګناهونه معاف کیږی.(۲)
**قوله تعالی:-وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ يَعْلَمْهُ اللهُ**
**الله په هره نیکئ عالم دې:-** بیا فرمائی چه تاسو څه نیکی کوئی نودهغې علم الله ﷻ ته دې.چونکه پورته ئې دهرې بدئی نه منع فرمائیلې وه چه نه دې څوک بدکار کوی او نه دې بده خبره کوی نودلته د نیکئ رغبت ورکولې شی چه دهرې نیکئ به د قیامت په ورځ پوره پوره بدله ورکولې شی.
**قوله تعالی:-وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى**
**خان سره توښه اخستل:-** بیا ارشاد فرمائی چه خان سره توښه او د سفر خرچ اوړئی.حضرت ابن عباس ؓ فرمائی چه خلق به بغیرد توښې نه حج ته تلل.بیا به ئې خلقو نه سوال کولونو په دې باندې دا حکم نازل شو.(۳) حضرت عکرمه ؓ،حضرت ابن عیینه رحمة الله عليه هم دا فرمائی.بخاری او نسائی وغیره کښې دا روایتونه مروی دی،یو روایت کښې دا هم دی چه دیمن خلقو به داسې کول.او خپل ځان ته به ئې متوکلین وئیل.(۴)دحضرت عبدالله بن عمر ؓ نه هم دا روایت دې چه کله به ئې احرام تړلو نو څه توښه چه به ورسره وه ټوله به ئې غورزولې وه او نوې نوې سامان به ئې اخستلو.نو په دې باندې دا حکم نازل شو چې داسې مه کوئی.اوړه او ستوان وغیره ځان سره په توښه کښې اخلئ.(۵) نورو ډیرو معتبرو مفسرینو هم داشان وئیلی دی.بلکه ابن عمر ؓ دا هم فرمائی چه د انسان عزت په دې کښې دې چه ځان سره دې ښه سامان واخلی.نبی ﷺ به خپلو ملګرو سره د زړه نه دخرچ اخستلو شرط لګولو.(یعنی چه تاسو د زړه نه خرچ کوئی)
**قوله تعالی:-فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى**
چونکه ددنیاوی توښې حکم ئې اوفرمائیل نودې سره فرمائی چه د آخرت د توښې هم تیارې کوئی یعنی قبر ته ځان سره دالله ﷻ ویره هم یوسئ:لکه بل ځائې کښې د لباس ذکر فرمائی او ارشاد فرمائی چه ﴿وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ذٰلِكَ خَيْرٌ﴾ د پرهیزګارئی لباس بهتر دې.یعنی دخشوع،خضوع،طاعت او تقوی باطنی لباس نه دې هم خالی نه وی.بلکه دا لباس د ظاهری لباس نه زیات بهتر او نفع ورکونکې دې.یو حدیث کښې دا هم دی چه دنیا کښې که خرچ کوئی نو په آخرت کښې به هغه مومئ:ددې ځائې توښه به هغه ځائې کښې فائده درکوی.(طبرانی).(۶)ددې حکم په آوریدو یو مسکین صحابی ؓ نبی کریم ﷺ ته عرض اوکړو چه یارسول الله ﷺ مونږ سره خو هیڅ نشته دې.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دومره خو پکار ده چه د چا نه سوال اونه کړې شی.او بهترینه توښه دالله ویره ده (ابن ابی حاتم)
**قوله تعالی:-وَاتَّقُونِ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ**

---

(۱) احمد: ۳٤٤/٦،ابوداود المناسک الحج المبرور یودب غلامة: ۱۸۱۸،ابن ماجة: ۲۹۳۳،)-
(۲) مسند عبد بن حمید: ۱۱۵۰،)-
(۳) صحیح بخاری کتاب الحج باب قوله تعالی :( وتزودوا فان خیر الزاد التقوی ) ۱۵۲۳)-
(۴) صحیح بخاری کتاب الحج باب قول الله تعالی :( وتزودوا فان خیر الزاد التقوی ) ۱۵۲۳ ابوداود: ۱۷۳۰)-
(۵) الطبری: ۱۵٦/٤)-
(٦) الطبرانی فی الکبیر: ۲۲۷۱،)-

بیا ارشاد فرمائی چه انې عقل مندوا زما نه ویرېږئ، یعنی زما د عذاب نه او زما د رانیولو نه، زما د گرفت نه، زما د سزاګانو نه اوویرېږئ. او زما احکام منئ: زما د حکم خلاف مه کوئ چه تاسو ته نجات ملاوشي. هم دا عقلي امتیاز دې.

| |
|---|
| لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ |
| نشته \| په تاسو باندې \| څه ګناه |
| اوهیڅ ګناه نشته په تاسوباندې |
| أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ ۖ فَإِذَآ أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَٰتٍ فَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ |
| چې تلاش کړئ \| څه رزق \| درب خپل \| بیاچې کله \| روان شئ تاسو \| د عرفات نه \| نو یاد کړئ الله |
| (دحج په سفر کښې) دخپل پروردګار فضل اوغوارئ \| نوهرکله چې دعرفات نه راواپس شئ \| نو الله یادوئ |
| عِندَ ٱلْمَشْعَرِ ٱلْحَرَامِ ۖ وَٱذْكُرُوهُ كَمَا هَدَىٰكُمْ وَإِن |
| د مشعر حرام سره \| اویاد کړئ هغه \| لکه څنګه چې نې \| هدایت کړې دې تاسوته \| او بیشکه |
| مشعرحرام (مزدلفې) سره اوپه هغه شان دالله ذکر کوئ لکه چې هغه درته طریقه خودلې ده \| اګر که |
| كُنتُم مِّن قَبْلِهِۦ لَمِنَ ٱلضَّآلِّينَ ۝ |
| چې وئ تاسو \| مخکښې ددې نه \| دګمرا هانونه \| |
| ددینه وړاندې تاسو دګمراهانو په ډله کښې شمیروئ \| |

قوله تعالی: لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَبْتَغُوا فَضْلًا مِّن رَّبِّكُمْ ۖ

**په حج کښې تجارت کول:** - صحیح بخاری کښې ددې آیت تفسیر حضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه مروی دی چه د جاهلیت په زمانه کښې د عکاظ، مجنه او ذوالمجاز نومې بازارونه وو. داسلام نه پس صحابه کرامو ﷺ دحج په ورځو کښې تجارت ګناه ګڼړله او ویریدل. نو په دې ایت سره دوی ته اجازت ملاؤ شو چه ایام حج کښې تجارت کول څه د ګناه کار نه دې.[1] یو روایت کښې داهم دی چه دا مسئله د نبی کریم ﷺ نه اوپښتلې شوه. نو په دې باندې د آیت نازل شو چه دحج په ورځوکښې احرام نه مخکښې یا احرام نه پس حاجی لره اخستل خرڅول حلال دی. د حضرت ابن عباس ﷺ قرات کښې د ﴿ مِّن رَّبِّكُمْ ﴾ نه پس د ﴿فی مواسم الحج﴾ لفظ راغلې دې. دابن زبیر نه هم دا مروی دی. اوبعضو نورو مفسرینو ددې تفسیر هم داشان کړې دې.

**دابن عمر ﷺ فتوی:** - دحضرت ابن عمر ﷺ نه تپوس کیږی چه یو سړې حج ته ځې او دې تجارت هم کوی نو دده باره کښې څه حکم دې نو دوی دا آیت تلاوت اوفرمائیلو. (ابن جریر).[2] دمسند احمد په روایت کښې دی چه ابوامامه تیمی رحمه الله حضرت ابن عمر ﷺ ته اوفرمائیل چه مونږ په حج کښې خناور په کرایه باندې ورکوو نو آیا خمونږ هم حج کیږی ؟ نو دوی اوفرمائیل چه آیا تاسو احرام نه تړئ ؟ آیا تاسو عرفات کښې نه پاتې کیږئ ؟ آیا تاسو شیطانان په کاڼړو نه اولئ ؟ آیا تاسو سرونه نه خرئ؟ نو دې سړی اووئیل چه مونږ خودا ټول کارونه کوو. نو دوی اوفرمائیل چه واورئ ! یو

---

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة: باب ( لیس علیکم جناح ان تبتغوا...) ۴۵۱۹)-

[2] الطبری: ٤/١٦٥)-

سرې داسوال د نبی کریم ﷺ نه کړې ووا ودې په جواب کښې حضرت جبریل ﷺ دا (لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ) آیت مبارك راوړې وو.اونبی کریم ﷺ هغه سړې راوغوښتلو او ورته ئې اوفرمائیل چه ته حاجی ئې ستا حج اوشو.(۱)مسند عبدالرزاق او تفسیر عبدبن حمید وغیره کښې هم دا روایت دې،بعضو روایتونو کښې دالفاظو څه کمې زیاتې سره هم دی.یو روایت کښې دا هم دی چه آیا تاسو احرام نه تړنی ؟

**د عمر ﷺ قول:-** د امیر المومنین حضرت عمر فاروق ﷺ نه سوال کیږی چه آیا تاسو به د حج په ورخو کښې تجارت هم کولو؟ نو دوی اوفرمائیل چه او هغه خو لا دتجارت موسم هم نه وو.(۲)

**قوله تعالی:-** فَإِذَآ أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَٰتٍ

**د عرفات غیرمنصرف دې:-** (عرفات) لره منصرف وئیلې شوې دې.اود غیر منصرف کیدو دوه وجې په دې کښې موجوددی.یعنی اسم علم او اوتانیث ځکه چه داپه اصل کښې جمع ده.لکه مسلمات او مومنات،دیو خاص ځائې نوم مقرر کړې شوې دې ددې وجې د اصلیت رعایت کړې شوې دې او منصرف وئیلې شوې دې.(۳)

**عرفه څه ته وائی:-** عرفه هغه ځائې دې چه په هغې ایساریدل د حج بهترین کار دې.مسند احمد وغیره کښې حدیث دې چه حج عرفات دې.درې ځل نبی کریم ﷺ هم دا اوفرمائیل.چه څوك دنمر ختلو نه مخکې عرفات ته اورسیدو نو ده حج اوکړو.په منې کښې په دوو ورځو کښې تیزی کونکې یا دریمې ورځې ته ایساریدونکی باندې څه ګناه نشته دې.(۴)

**د وقوف عرفات وخت:-**د ایساریدو وخت د عرفې د ورځې د نمر ختلو نه پس نه واخله تر د اختر د صبا صادق راختلو پورې دې.نبی کریم ﷺ حجة الوداع کښې د ماسپخین دمونځ نه پس نمر پریوتلو پورې دلته ایسار وو.او فرمائیلی ئې وو چه زما نه د حج طریقې زده کړئی.(۵)دامام مالك رحمه الله،حضرت امام شافعی رحمه الله او حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله هم دا مذهب دې چه د لسم تاریخ د صبا صادق ختلو نه مخکې چه کوم سړې عرفات ته اورسی نو دهغه حج اوشو.

**د اختر د ورځې د صبا نه لږ غوندې روراندې په عرفه کښې قیام هم معتبر دې**

**مسلك حنفی:-** داحنافو مسلك هم دغه شان دې ځکه چه فاضل مفسر فرمائیلی دی یعنی که یوکس د ذو الحجې د لسم تاریخ صبا راختو نه وړاندې عرفات کښې لږ ساعت هم ایسارشو نو دده وقوف عرفات اوشو.او چې وقوف عرفات اوشو نو حج هم اوشو(معلم الحجاج صفحه (۱۲۲))-

**یوه واقعه:-**امام احمد رحمه الله فرمائی چه د ایساریدو وخت دعرفې دورځې دشروع نه دې،ددوی دلیل هغه حدیث دې چه په هغې کښې دی چه نبی کریم ﷺ مزدلفه کښې مونځ دپاره اووتل،نو یو سړې حاضر شو اوهغه تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ څه د طی غرونه نه راغلې یم،ما خپله سورلی ډیره ستړې کړه.او په خپل نفس مې ډیر زیات مشقت اوکړو.والله په هر هر غر باندې ایساریدو سره راغلې یم،آیا زما حج اوشو ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې مونږ سره په دې مونځ کښې حاضر شی او مونږ سره دتلو وخت پورې ایسار وی او ددې نه مخکې هغه عرفات کښې ایسار شوې وی که د ورځې وی اوکه دشپې وی نو دهغه حج پوره شو اوهغه دفریضې نه فارغ شو(مسند احمد وسنن)امام ترمذی دې ته صحیح

---

(۱) احمد: ابوداود کتاب المناسک باب الکری: ۱۷۳۳،وسنده صحیح)-

(۲) الطبری: ۱۶۸/٤)-

(۳) الطبری: ۱۷۱/٤)-

(۴) حمد: ۳۰۹/٤،ابوداود کتاب المناسک باب من لم یدرک عرفة : ۱۹٤۹،وسنده صحیح ترمذی : ۸۸۹،نسائی: ۳۰٤۷،ابن ماجة: ۳۰۱۵)-

(۵) صحیح مسلم: کتاب الحج باب استحباب رمی جمرة العقبة: ۱۲۹۷)-

وائی.(۱)
اميرالمومنين حضرت علی ﷺ نه مروی دی چه حضرت ابراهيم ﷺ ته الله ﷻ حضرت جبريل ﷺ اوليږلو.او هغوئ په دوی ﷺ باندې حج اوکړو.هرکله چه عرفات ته اورسيدو نوتپوس نی اوکړو چه (عرفت) آيا تا اوپيژندو.حضرت خليل الله ﷺ جواب ورکړو (عرفت)ما اوپيژندو.خکه چه دې نه وړاندې دې ځائې ته راغلې وو.خکه ددې ځائې نوم عرفه شو(۲)حضرت عطاء رحمه الله،حضرت ابن عباس ﷺ، حضرت ابن عمر ﷺ اوحضرت ابومجلز رحمه الله نه هم دا مروی دی.(۳)والله ا علم.

**د ميدان عرفات نور نومونه**:دعرفات نوم مشعر الحرام،مشعرالاقصی،او الال هم دې.اودې غر نه عرفات وائی.اوددې په مينځ کښې جبل الرحمة دې.دابوطالب يو مشهوره قصيده کښې هم يو شعر په دې معنو کښې دې اهل جاهليت به هم عرفات کښې پاتې کيدل.او کله چه به ګرمی په غرونو باندې داشان باقی پاتې شوه لکه څنګه چه د سړی په سرباندې پټکې وی نو هغوئ به دهغه ځائې نه وتل.خو نبی کريم ﷺ ددې ځائې نه په هغه وخت کښې تشريف يوړو چه کله نمر بالکل پريوتلو.مزدلفې ته په رسيدو ئې هلته قيام اوکړو اوسحر سبائې بالکل په اول وخت کښې دشپې په تياره کښې او دسحر په سپوږمۍ کښې ( يعنی ډير وختی وو) په دې ځائې د سحر مونځ ادا کړو او کله چه رڼرا صفا شوه نو د سحر مونځ نې آخرې وخت کښې ادا کولو نه پس د دې ځائې نه کوچ اوکړو.

حضرت مسور بن مخرمه ﷺ فرمائی چه نبی کريم ﷺ مونږ ته په عرفات کښې خطبه راکړه او حسب عادت نې دحمدو ثناء نه پس امابعد اوفرمائيل او وې فرمائيل چه حج اکبر هم نن ورځ دې،اوګورئ بت پرست او مشرکان به ددې ځائې نه هله تلل چه کله به ګرمی د غرونو په سرونو باندې داسې شوه چه څنګه دخلقو په سرونو باندې پټکې وی نو واپس کيدل به.دنمر پريوتلو نه مخکې ليکن مونږ به د نمر پريوتلو نه روستو ددې ځائې نه خو.اودمشعر الحرام نه به هغوئ نمر راختلو نه پس ددې ځائې نه تلل .ليکن مونږ به دهغه ځائې نه د نمر راوتلو نه مخکې مخکې خو.خمونږ طريقه د مشرکانو د طريقې خلاف ده.(ابن مردويه ومستدرك حاکم).امام حاکم رحمه الله دې ته په شرط شيخينو او بالکل صحيح وئيلی دی.

**د مسور ﷺ د نبی کريم نه د روايت کولو ثبوت**:- ددې نه هم ثابته شوه چه حضرت مسور ﷺ د نبی کريم ﷺ نه آوريدلی دی.ددې خلقو قول صحيح نه دې چه وائی چه حضرت مسور ﷺ حضرت نبی کريم ﷺ ليدلې دې ليکن د نبی کريم ﷺ نه ئې آوريدلی نه وو.

دحضرت معرورين سويد رحمه الله بيان دې چه ما حضرت عمر ﷺ د عرفات نه په واپس کيدوباندې اوليدو داسې ده لکه چه هغه منظر اوس هم زما په وړاندې دې.ددوی د سر په مخکښ حصه باندې وينښته نه وو،په خپل اوښ باندې وو ،اوفرمائيل ئې چه مونږ صفارڼرا کښې واپس شو.

**د عرفات نه روانيدل**:- صحيح مسلم کښې يو روايت د حضرت جابر ﷺ نه دې او دا ډير اوږد حديث دې په هغې کښې دحجة الوداع پورا بيان دې،په هغې کښې هم دی چه رسول الله ﷺ نمر پريوتلو پورې عرفات کښې وو.هرکله چه نمر پريوتلو او لږ شان زيړوالئ پکښې راغلو نو د نبی کريم ﷺ په سورلۍ باندې خپل ځان پسې حضرت اسامه ﷺ سور کړو اود اوښ واګې نې رانښکلې تر دې پورې چه ددوی

(۱)احمد: ۳۰۹/٤،ابوداود کتاب المناسک باب من لم يدرک عرفة : ۱۹٤۹،وسنده صحيح لرمذی : ۸۸۹،نسائی: ۳۰٤۷،ابن ماجة: ۳۰۱۵)-
(۲)مصنف عبدالرزاق: ۹٦/۵)-
(۳)ابن ابی حاتم: ۵۱۹/۲،الطبری: ۱۸۳/٤)-

سر مبارك پالان ته نژدې شو.او په ښي لاس سره ئې خلقو ته اشاره فرمائيله چه اني خلقو ! په مزه مزه،اطمينان سره،سكون،نرمۍ او د دل جمعۍ سره ځئ.هركله چه به يو غر راغلو نو واګې به ئې لږې شان سستې كړې چه خناور په آسانۍ سره اوخيژي.مزدلفې ته په راتلو نبی كريم ﷺ د ماښام او ماسختن مونځ (يو ځائې ) ادا كړو.او د دواړو مونځونو تكبيرونه (اقامت) ئې بيل بيل اوكړل.د ماښام دفرضو اودماسوختن دفرضو په مينځ كښې ئې سنت او نوافل اونه كړل.بيا اوده شول.صبا صادق راختلو نه پس د سحر مونځ ئې اداكړو چه په هغې كښې اذان او اقامت اوشو.بيا په قصواء نومې اوښه باندې سور شو او مشعرالحرام ته ئې تشريف راوړو.قبلې طرفته متوجه شول اودعا كښې مشغول شول.او دالله اكبر او دلااله اله الاالله توحيد بيانولو كښې مشغول شو ترڅې پورې چه ښه رڼا شوه.او د نمر مخكښې نبی كريم ﷺ دډې ځائې نه روان شول.(۱)

حضرت أسامه ﷺ نه سوال كيږې چه نبی كريم ﷺ كله دډې ځائې نه روان شول په كوم چال كښې تلل ؟ وې فرمائيل چه په درميانه او رو چال سره سورلۍ باندې تلو اوكله چه به ئې په لاركښې فراخوالۍ اوليدو نو تيز به تللو.(بخاري ومسلم).(۲)

**قوله تعالى:- فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ**

**د عرفات نه روانيدل او دالله ذكركول:-** بيانې فرمائي چه عرفات نه په واپس كيدو مشعر الحرام كښې دالله ﷻ ذكر كوئي.يعني دلته دواړه مونځونه جمع كوئي.عمرو بن ميمون،حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه دمشعر الحرام باره كښې تپوس اوشو نو دوی خاموش شول.هركله چه قافله مزدلفې ته اورسيدله نو وې فرمائيل چه سائل چرته دې،دا دې مشعرالحرام.ددوی نه داهم مروی دی چه دمزدلفه ټوله علاقه، غرونه اوددې چاپير چل مشعرالحرام دې.(۳) دوی اوكتل چه خلقو په قزح باندې بيړه جوړه كړې ده.نو دوی اوفرمائيل چه دې خلقو دلته ولې بيړه جوړه كړې ده.ددې ځائې دا ټول ځايونه مشعرالحرام دې.او نوروډيرو مفسرينو نه دا مروی دی چه د دواړو غرونو مينځ كښې ټول ځائې مشعرالحرام دې.(۴)

حضرت عطاء ﷺ نه سوال كيږې چه مزدلفه چرته ده ؟ دوی اوفرمائيل چه هركله د عرفات نه روان شو او دميدان عرفات دواړه غاړې ئې پريښودې بيا مزدلفه شروع شوه،وادی محسر پورې چه كوم ځائې كښې غواړئ ايسار شئ.ليكن څه د قزح نه اخوا اوسيدل خوښوم چه دلارې نه يو خواته يم.مشاعروانی ظاهري نښو ته وائي.مزدلفه ته مشعر الحرام په دې وجه وائي چه دا په حرم كښې داخل دی.

د سلف صالحين يو ډله او بعض شافعي اصحاب لكه دقفال،او ابن حزيمه خيال دې چه دلته پراؤ كول دحج ركن دې.دلته نه ايساريدو سره حج نه كيږي.څكه چه يوحديث كښې دی چه حضرت عروه بن مضرس ﷺ نه ددې معنی مروی ده.بعضې وائي چه دلته پراؤ كول واجب دی.دحضرت امام شافعي ﷺ قول دا هم دې كه چا په دې ځائې كښې پراؤ اونكړو نو قرباني به كوي.د امام صاحب دويم قول دادې چه مستحب دی.كه پراؤ اونكړي نو هيڅ حرج نشته دې.نودا درې اقوال دی.مونږ دلته دې بحث ته زيات طول وركول نه غواړو.والله اعلم.

**په مشعر حرام كښې د ايساريدو حكم**

**مسلك حنفي:-** صاحب د هدايه فرمائي اوچا چه پريخودو وقوف د مزدلفې نوبه ده دم دې څكه چه دا د واجباتو څني دې.ددې عبارت نه معلومه شوه چه په مزدلفه كښې شپه تيرول واجب دې (تسهيل الهدايه ۲۴۳/۲)-

---

۱) صحيح مسلم كتاب الحج باب حجة النبي : ۱۲۱۸)-

۲) صحيح بخاري كتاب الحج باب السير اذا دفع من عرفة: ۱۶۶۶،۳صحيح مسلم: ۱۲۸۶)-

۳) الطبري: ۱۸۶/٤)-

۴) ابن ابي حاتم ۵۲۱/۲)-

**په وادی محسر کښې د ایساریدو حکم** - یو مرسل حدیث کښې دی چه دعرفات ټول میدان د پړاؤ کولو ځائي دې.دعرفات نه هم پورته شه او ټوله مزدلفه د پړاؤ کولو ځائي دې.خو وادئ محسر نه ده. دمسند احمدیوحدیث کښې ددې نه پس دی چه دمکې ټولې کوڅې دقربانۍ ځایونه دی.اوایام تشریق ټول په ټوله دقربانۍ ورځې دی.(۱)خودا حدیث هم منقطع دې.ځکه چه سلیمان بن موسی اشدق جبیر بن مطعم نه وو لیدلي.خوددې نور سندونه هم شته دې.والله اعلم.

**قوله تعالیٰ:-** وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰىكُمْ ۚ وَاِنْ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الضَّآلِّيْنَ

**دسنت طریقې مطابق ذکر کول:-** بیا ارشاد فرمائي چه دالله ﷻ ذکر کوئی لکه څنګه چه هغه پاك ذات تاسوته هدایت کړې دې چه دحج احکام ئې په وضاحت سره بیان اوفرمائیل.اودخلیل الله ؑ هغه سنت ئې واضح کړه حالانکه ددې نه مخکښې تاسو ته ددې خبر نه وویعنی ددې هدایت نه مخکښې یا ددې قرآن نه مخکښې یا ددې رسول ﷺ نه مخکښې،فی الواقع ددې دریو واړو خبرو نه مخکښې دنیا ګمراهئ کښې وه.فالحمد لله.

| ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ | حَيْثُ اَفَاضَ | النَّاسُ | وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ؕ |
|---|---|---|---|
| بیا واپس شئ دهغه ځائي نه \| دکوم ځائي نه چې واپس کیږي \| نور خلق | | | \| اومعافي غواړئ دالله نه \| |
| بیا تاسو دهغه ځائي نه واپس شئ چې دکوم ځائي نه نور خلق واپس کیږي \| اوالله نه بښنه غواړئ | | | |
| اِنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۝ | |
| بیشکه الله \| معاف کونکې \| رحم کونکې دې \| | | | |
| بیشکه الله بخښونکې مهربان دې \| | | | |

**قوله تعالیٰ:-** ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ

**عرفات نه واپس شئ:-** ﴿ثم﴾ دلته د خبریه خبر باندې د عطف اچولو دپاره دې چه ترتیب برابر شی.لکه چه عرفات کښې پړاؤ کولو دپاره حکم ملاؤ شو چه دلته نه مزدلفې ته لاړشی چه مشعرالحرام سره دالله ﷻ ذکر اوکړې شی او دا ئې هم اوفرمائیل چې په عرفات کښې پړاؤ اوکړ.لکه څنګه چه عامو خلقو به دلته پړاؤ کولو.البته قریشو دفخر اوتکبر او امتیازی نښې په طور دا طریقه اختیار کړې وه هغوئ به حرم نه بهر نه تلل.اود حرم په آخری حد کښې به ئې پړاؤ کولو او وئیل به ئې چه مونږ الله ﷻ والا یو.د هغه د ښار مشران یو.اود هغه د کور منجوران یو.صحیح بخاری کښې دی چه قریش او ددوی هم خیال خلق به په مزدلفه کښې ایساریدل.او خپل نوم به ئې حمس اېښودو.باقی ټول عرب به عرفات ته تلل.اودهغه ځائي نه به واپس کیدل.ددې وجې اسلام حکم ورکړو چه دکوم ځائي عام خلق راګرزی تاسو هم دهغه ځائي نه راګرزئی.(۲)

حضرت ابن عباس ؓ،حضرت عطاء رحمه الله،حضرت مجاهد رحمه الله،حضرت قتاده رحمه الله او حضرت سدی رحمه الله وغیره فرمائی.(۳)امام ابن جریر هم دا تفسیر خوښوی او په دې اجماع نقل کوی.مسند احمد کښې دی چه حضرت جبیر بن مطعم فرمائی چه زما اوښ عرفات کښې ورك شوې وو.زه دهغې تلاش کښې اووتلم.نو ما هغه ځائي کښې نبی کریم ﷺ اولیدو.ما ترې تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ څه خبره ده چه

---

(۱) احمد: ۸۲/۴)۔

(۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب ( ثم افيضوا من حيث افاض الناس) ۴۵۲۰،صحیح مسلم: ۱۲۱۹)۔

(۳) الطبری: ۱۸۶/٤)۔

تاسو، حمس، کښې يې اوبيا دلته حرم نه بهر ايسار شونی.(۱)

**د افاضه نه مراد:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه دافاضه نه دلته مراد د رمی جمار دپاره منی ته تلل دی.(۲) ( والله اعلم).

**د «الناس» نه مراد:-** او د الناس نه مراد حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ دي. بعضي واني چه مراد ترې امام دې. ابن جرير رحمه الله فرمائي که ددې خلاف د اجماع حجت نه وې نو هم دا قول راجح وو.

**قوله تعالى:-** وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ

**د استغفار حکم:-** بيا داستغفار ارشاد فرمائي چه عموما دعبادات نه پس فرمائي. نبی کريم ﷺ چه به د فرض نه فارغ شو نو درې ځل به ئې استغفار کولو.(۳)(مسلم). نبی کريم ﷺ به خلقو ته د سبحان الله، الحمدلله، الله اکبر درې ديرشو خلو ونيلو حکم فرمائيلو(۴) (بخاری ومسلم). داهم مروی دی چه دعرفې په مابنام نبی کريم ﷺ دخپل امت دپاره استغفار اوکړو.(ابن جرير). د نبی کريم ﷺ دا هم ارشاد مروی دې چه ټولو استغفارو سردار دا استغفار دې.

**سيدالاستغفار:-** ﴿اللهم انت ربي لا اله الا انت خلقتني وانا عبدك وانا على عهدك ووعدك ما استطعت اعوذبك من شرما صنعت ابوءلك بنعمتك علي وابوء بذنبي فاغفرلي فانه لا يغفر الذنوب الا انت﴾. نبی کريم ﷺ فرمائي چه کوم سړې دا د شپې په وخت کښې اووائی او په شپه کښې مړ شی نو بالکل جنتی دې. او کوم سړې چه دا د ورځې اووائی او په دغه ورځ کښې مړ شی نو جنتی دې.(۵) (بخاری).

حضرت ابوبکرصديق ﷺ يو ځل اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ ماته څه دعا اوښائي چه څه ئې دهر مونځ نه پس وايم، حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا وايه. ﴿اللهم انی ظلمت نفسی ظلما کثيرا ولا يغفر الذنوب الا انت فاغفرلی مغفرة من عندك وارحمنی انك انت الغفور الرحيم﴾.(۶) (بخاری ومسلم). داستغفار باره کښې نور احاديث هم شته.

| فَاِذَا قَضَيْتُمْ |
|---|
| بيا چې کله \| ادا کړئ تاسو \| |
| بياچې پوره کړنی \| |
| مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ |
| ارکان دحج خپل \| نو ياد کړئ الله \| پشان د يادولو ستاسو \| پلرونو خپلو لره \| بلکه ډيرزيات ددې نه |
| دحج کارونه \| نو الله يادوئ لکه وړاندې چې به مو پلار نيکه نومونه يادول \| داشان اوس دالله نوم يادوئ بلکه زيات |
| ذِكْرًا ؕ فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا |
| په يادولو سره \| خو بعضي \| دخلقونه \| هغه څوك دی \| چې وائی اے ربه زمونږ \| راکړې مونږ ته \| په دنيا کښې |
| دهغې نه \| (خو په الله يادونکو هم ډيرفرق دې) ځينې خلق وائی چې ائې زمونږ ربه مونږ ته په دنيا کښې (هرڅه) راکړې |

---

۱) حمد: ۴/۸۰، صحيح بخاری: كتاب الحج باب الوقوف بعرفة : ۱۶۶۴، صحيح مسلم: ۱۲۲۰)-

۲) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة البقرة: باب ( ثم افيضوا من حيث افاض الناس) ۴۵۲۱)-

۳) صحيح مسلم كتاب المساجد باب استحباب الذكر بعد الصلاة: ۵۱۹)-

۴) صحيح بخاری كتاب الاذان باب الذكر بعد الصلاة: ۸۴۳، صحيح مسلم: ۵۹۵)-

۵) صحيح بخاری كتاب الدعوات باب افضل الاستغفار : ۸۴۳، ترمذی: ۳۳۹۴)-

۶) صحيح بخاری كتاب الاذان باب الدعاء قبل السلام : ۸۴۳، صحيح مسلم: ۲۷۰۵، ترمذی: ۳۵۳۱، ابن ماجة: ۳۸۳۵)-

وَمَا لَهٗ | فِي الْاٰخِرَةِ | مِنْ خَلَاقٍ۝ | وَمِنْهُمْ | مَّنْ | يَّقُوْلُ

او نشته هغه لره | په آخرت کښې | څه حصه | او ځینې دخلقو نه | هغه څوك دی | چې وائی |

او داداسې خلق دی | چې په آخرت کښې د دوی هیڅ حصه نشته | او بعضې وائی چې

رَبَّنَآ | اٰتِنَا | فِي الدُّنْيَا | حَسَنَةً | وَّفِي الْاٰخِرَةِ | حَسَنَةً

اے ربه زمونږ | اراکړې مونږته | په دنیا کښې | توفیق د نیکئ | او په آخرت کښې هم | توفیق د نیکئ

انې زمونږه ربه مونږ ته په دنیا کښې هم نیکی (پاکیزه نعمتونه) راکړه | او په آخرت هم نیکی (لوئی لوئی نعمتونه) راکړه

وَّقِنَا | عَذَابَ | النَّارِ۝ | اُولٰٓئِكَ | لَهُمْ | نَصِيْبٌ مِّمَّا | كَسَبُوْا

او اوساتې مونږ | دعذاب | د اور نه | دا کسان چې دی | وی به د دوی دپاره | حصه دهغې نه | چې گټلی دی دوی

او مونږ داور دعذاب نه بچ کړه | دغه خلق دخپلو عملونو په وجه (په دنیا او آخرت کښې) برخه واخلی

وَاللّٰهُ | سَرِيْعُ الْحِسَابِ۝

او الله | زراغستونکې دی دحساب |

او الله ډیرزر حساب کونکې دې |

**قوله تعالى:** فَاِذَا قَضَيْتُمْ مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا

**د حج نه پس دالله ﷻ د ذکرحکم:**- دلته الله ﷻ د ذکر حکم فرمائی او ورسره د ذکر کولو طریقه فرمائی چه داشان دالله ﷻ ذکرکونی لکه څنګه چه خپل موریلار یادونی. بله معنی داده چه اهل جاهلیت به د حج په موقع باندې راجمع کیدل. چا به وئیل چه زما پلار ډیر لوئې میلمه دوست وو، چا به وئیل چه هغه دخلقو دحج کارونه کول، سخاوت او بهادرنی کښې بې مثاله وو، وغیره وغیره. نو الله ﷻ فرمائی چه دا فضول خبرې پریږدنی. او دالله ﷻ ذکر او لونی او عظمتونه او عزتونه بیانونی. اکثرو مفسرینو هم دابیان کړې دې. غرض دا چه دالله ﷻ ذکر کثرت سره کونی، ځکه په ﴿اشد﴾ باندې زبر دتمیز په بناء باندې راوړې شوې دې. یعنی داشان الله ﷻ یادونی لکه څنګه چه په خپلو مشرانو باندې فخر کونی.

د ﴿او﴾ تحقیق:- ﴿او﴾ نه دلته دخبردمثلیت تحقیق ثابتول دې. لکه ﴿ اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً ﴾ او ﴿اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً﴾ او ﴿او يزيدون﴾ کښې ﴿اَوْ اَدْنٰى﴾ په دې ټولو مقاماتو کښې لفظ د ﴿او﴾ بالکل شك دپاره نه دې. بلکه د مخبر عنه (دکوم څیز باره کښې چې خبرورکوی) تحقیق دپاره دې. یعنی د هغه ذکر دې دومره وی بلکه ددې نه دې هم زیات وی.

**قوله تعالى:-** فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ

**دا دین او دنیادپاره دعاء:**- بیا ارشاد فرمائی چه دالله ﷻ ذکر کثرت سره کونی اودهغه نه دعاګانې غواړنی. ځکه چه داموقع د قبولیت ده، ورسره د هغه خلقو بدنی هم بیانیږی چه دالله ﷻ نه سوال کوی او صرف دنیا غواړی. او آخرت طرفته نظر نه کوی. فرمائی چه ددې (خلقو) په آخرت کښې هیڅ حصه نشته دې. حضرت ابن عباس ﷺ بیان فرمائی چه بعض اعرابی دلته راتلی اوصرف هم دادعا کوی چه انې الله ﷻ په دې کال کښې باران اوکړه چه ښه غلې پیداشې. او اولاد کثرت سره وی وغیره. خو د مومنانو دعاګانې د دواړو جهانونو د ښیګړې دپاره وې نوددې وجې دهغوی تعریف اوکړې شو. په دې دعا کښې د دنیا اوآخرت ټولې ښیګړې جمع کړی دی اود ټولو بدو نه ئې بچ کیدل خودلی دی. ځکه چه ددنیا په ښیګړه کښې عافیت، راحت، آسانی، تندرستی، کور، ښځه، بچی، روزی، علم، عمل، ښه سورلی،

نوکران،وینځي غلامان،عزت اوابرو وغیره ټول څیزونه راغلل.اود اخرت په ښیګړه کښې دحساب آسانیدل،د ویرې نه نجات موندل اود عمل نامې په ښی لاس ملاویدل او کامیابی،اوعزت سره جنت ته داخلیدل،ټول په دې کښې راخي.
بیادې نه پس د جهنم دعذاب نه نجات غواړي.دې نه مطلب دادې چه داسې اسباب الله ﷻ مهیا کړي.لکه حرامو نه اجتناب،دګناهونو اوبدو نه منع کیدل وغیره.قاسم رحمه الله فرمائي چه چاته شکر ګزار زړونه او ذکر کولو والا ژبې او صبر کولو والا بدنونه ملاؤ شو نو هغه ته ددنیا او آخرت کامیابی ملاؤ شوه.او دعذاب نه ورته نجات ملاؤ شو.([1])
**د نبی کریم ﷺ زیاته دعا:** بخاری شریف کښې دی چه نبی کریم ﷺ به اکثر دا دعا ونیله.په دې حدیث کښې﴿ ربنا ﴾ نه مخکښې ﴿ اللهم﴾ هم دې ([2]).حضرت قتاده رحمه الله دحضرت انس رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه نبی کریم ﷺ به زیاته کومه یوه دعا غوښتله.نو دوی جواب کښې هم دا دعا اوخودله.(احمد).([3])
حضرت انس ﷺ به پخپله هم چه کله دعاغوښتله نو دا دعا به ئې نه پریښودله.حضرت ثابت ﷺ یو خل اووئیل چه حضرت ستاسودا رونړه غواړي چه تاسو د دوی دپاره دعا اوکړئی.نو دوی هم دا دعا اوفرمائیل چه ﴿ اللهم رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا ﴾ الخ.بیا څه وخت ناستې او خبرواترو نه پس چه کله هغه تلو نو بیائې ورته ددعادرخواست اوکړو.دوی اوفرمائیل چه آیاجدا کول غواړې.پدې دعاکښې خو ټولې ښیګړې راغلې.(ابن ابی حاتم).
**بیمار ته د دې دعا تلقین کول:**- نبی کریم ﷺ دمسلمان د عیادت دپاره تشریف یوړو.وې کتل چه هغه بالکل مانده او کمزورې وو صرف د هډوکو ډهانچه پاتې شوې ده.دوی تپوس اوکړو چه آیا څه دعا هم دالله ﷻ نه غوښتله.هغوئ اوفرمائیل چه آو.دا دعا وه چه ائې الله ﷻ ته کوم یو عذاب ماته په آخرت کښې راکول غواړې هغه په دنیا کښې راکړه.دوی اوفرمائیل چه سبحان الله ! په چا کښې دهغې د برداشت کولو طاقت هم شته دې.آیاتا دا دعا ﴿ ربنااتنا ﴾ تر آخره پورې نه ده ونیله؟ نو بیمار هم دا دعا ونیل شروع کړه او الله ﷻ هغه ته شفا ورکړه.(احمد) ([4]).
د رکن بنی جمح او رکن اسودمینځ کښې به نبی کریم ﷺ دا دعا ونیله.(ابن ماجه وغیره) خو ددې په سندکښې ضعف دې.والله اعلم.
نبی کریم به فرمائل چه کله په دوی رکن سره تیریږم نو ګورم چه هلته فرښته ده او هغه آمین وائی.تاسو چه کله دلته نه تیریږئی نو ﴿ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا﴾ الخ وائی (ابن مردویه ) ([5])
**دا بن عباس ﷺ نه تپوس:**- حضرت ابن عباس ﷺ نه یو سړی تپوس اوکړو چه څه یوې قافلې سره نوکر شوم په دې اجرت باندې چه هغوئ به ما خپل ځان سره په سورلئ سور کړي.اود حج په موقع به ما ته رخصت راکړي چه حج ادا کړه او په نورو وختونوکښې دهغوئ خدمت اوکرم،نوتاسو اوفرمائي چه داشان به زما حج اوشي،نو دوی اوفرمائیل چه آو،بلکه ته خو دهغه خلقونه ئې چه د چا باره کښې فرمان دې چه ﴿ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيْبٌ مِّمَّا كَسَبُوْا (الخ) ﴾ (مستدرک حاکم).([6])

---

[1] ابن ابی حاتم: ۵٤۲/۲)-
[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب ( ومنهم من یقول ربنا)(٤۵۲۲)-
[3] احمد: ۱۰۱/۳،صحیح مسلم: کتاب الذکر والدعاء باب فضل الدعاء باللهم اتنا فی الدنیا حسنة: ۲٦۹۰،ابوداود :۱۵۱۹)-
[4] احمد: ۱۰۱/۳،صحیح مسلم: کتاب الذکر والدعاء باب کراهة الدعاء بتعجیل العقوبة فی الدنیا:۲٦۸۸،ترمذی: ۳٤۸۷)-
[5] ابوداود کتاب المناسک باب الدعاء فی الطواف : ۱۸۹۲،وسنده حسن ابن ماجة: ۲۹۵۷،)
[6] حاکم: ۲۷۷/۲،)-

| |
|---|
| وَاذْكُرُوا اللَّهَ فِيٓ أَيَّامٍ مَّعْدُودَٰتٍ ۚ فَمَن |
| او یادکړئ الله \| په ورځو دشمار کښې \| نو هغه چاچې |
| او دشمیر په دغه ورځو کښې (چه د حج ورځې دی) الله یادوئ نو څوک |
| تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَمَن تَأَخَّرَ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ ۙ |
| تلوار او کړه په دوو ورځو کښې \| نو نشته گناه \| په هغه باند \| او هغه څوك \| چې روستو پاتې شو \| نو نشته گناه \| په هغه باند |
| چې په دوه ورځو کښې مخکښې واپس شی \| نو هیڅ گناه پرې نشته \| او څوك چې دوه ورځې روستو ایسار شی نو هم هیڅ حرج نشته |
| لِمَنِ اتَّقَىٰ ۗ وَاتَّقُوا اللَّهَ |
| دا بې گناهی هغه چالره ده \| چې پرهیزگاری ئې کړې وی په دې ورځو کښې \| او ځان ساتئ د نافرمانئ د الله نه |
| په دې شرط چې دغه ورځې ئې په پرهیزگارئ کښې تیرې کړې وی \| او د الله د نافرمانئ نه ځان او ساتئ |
| وَاعْلَمُوٓا أَنَّكُمْ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ۝ |
| او پوهه شئ چې \| بیشکه تاسو به \| هغه ته \| ورغونډ یږئ \| |
| اودا یاد لرئ چې یوه ورځ به تاسو دهغه په وړاندې راجمع کیږئی \| |

**قوله تعالی:- وَاذْكُرُوا اللَّهَ فِيٓ أَيَّامٍ مَّعْدُودَٰتٍ ۚ**

**د ایام نه مراد:-** ﴿أَيَّامٍ مَّعْدُودَٰتٍ ۚ﴾ نه مراد ایام تشریق او ایام معلومات نه مراد دذی الحجه لس ورځې دی ([1]) د ذکرالله نه مراد دا دې چه ایام تشریق کښې دفرض مونځونو نه پس ﴿ الله اکبر الله اکبر﴾ او وائی ([2])

**دایام تشریق د ورځو حیثیت:-** نبی کریم ﷺ فرمائی چه دعرفه ورځ دقربانئ ورځ ده. او ایام تشریق خمونږ یعنی داهل اسلام د اختر ورځ ده. او دا ورځې د خوراك څکاك دی. (احمد). او یو حدیث کښې دی چه ایام تشریق دخوراك څکاك او دذکرالله کولو ورځې دی. (احمد) ([3]). مخکښې داحدیث هم بیان شوې دې چه عرفات ټول دایساریدو ځائې دې. او ایام تشریق ټولې دقربانئ ورځې دی او دا حدیث هم مخکښې تیر شوې دې چه دمنی ورځې درې دی. د دوو ورځو تیزئ کولو باندې هیڅ گناه نشته دې.

ابن جریر کښې یو حدیث دې چه ایام تشریق دخوراك او دالله ﷻ د ذکر ورځې دی ([4]). نبی کریم ﷺ حضرت عبدالله بن خذافه اولیږلو چه هغه په منی کښې گیرچاپیره دا آواز اوکړی چه په دې ورځو کښې دې روژه نه نیسی. داورځې د خوراك څکاك او دالله ﷻ د ذکر کولو ورځې دی. یو بل مرسل روایت کښې دومره زیاتوالئ دې خو چه په چاباندې د قربانئ په بدله کښې روژې وی نو دهغه دپاره دازیاته نیکی ده. یو بل روایت کښې دی چه دا اواز کونکې بشیر بن سحیم ﷺ وو ([5]). حضرت علی ﷺ د نبی کریم ﷺ په سپینه خچره باندې سور شو او شعب انصار کښې اودریدل او دا حکم ئې اوفرمائیلو چه ائې خلقو دا ورځې د روژو نه دی بلکه دخوراك څکاك او ذکر الله دی. ([6])

---

[1] قرطبی: ۳/۳)۔

[2] ابن ابی حاتم: ۲/۵٤۵)۔

[3] ابوداود کتاب الصیام باب صیام ایام تشریق : ۲٤۱۹، وسنده حسن، ترمذی: ۷۷۳، نسائی: ۳۰۰۷)۔

[4] ابن جریر:)۔

[5] داحدیث پاک مرسل دې)۔

[6] الطبری: ۳۹۱۹)۔

حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه ایام معدوات ایام تشریق دی اودا څلور دی.لسمه ذی الحجه او درې ورځې ددې نه پس یعنی لسمې نه دیارلسمې پورې (۱)حضرت ابن عمر ﷺ،حضرت ابن زبیر ﷺ، حضرت ابوموسی ﷺ،حضرت مجاهد ﷺ،حضرت سعید بن جبیر ﷺ،حضرت ابومالك ﷺ،حضرت ابراهیم ﷬،حضرت نخعی ﷬،حضرت یحیی بن ابی کثیر ﷬،حضرت حسن ﷬،حضرت قتاده ﷬،حضرت سدی ﷬،حضرت زهری ﷬،حضرت ربیع بن انس ﷬،حضرت ضحاك ﷬،حضرت مقاتل بن حیان ﷬،حضرت عطاء خرسانی ﷬،حضرت امام مالك ﷬ وغیره هم دا فرمائی (۲).

**د قربانئ ورځې:-** حضرت علی ﷺ فرمائی چه دا درې ورځې دی،لسمه،یولسمه،او دولسمه.په دې کښې چه کله غواړئ نو قربانی کوئ.خو افضل ړومبئ ورځ ده.خومشهور قول ړومبې دې.اوقرآن کریم د الفاظ ظاهری دلالت په دې باندې دې،څکه چه د دوو ورځو تیزی او روستوالئ معاف دې.نو ثابت شو چه داختر نه پس درې ورځې پکار دی.او په دې ورځوکښې دالله ﷻ ذکر کول د قربانی د ذبح کولو وخت دې.اوهم دا بیان مخکښې تیر شوې دې چه راجح مذهب په دېکښې د حضرت امام شافعی ﷬ دې چه دقربانئ وخت د اختر د ورځې نه دایام تشریق د ختمیدو پورې دې.اوددې نه مراد د مونځونو نه پس مقرر ذکر هم دې.او هسې هم عام طور دالله ﷻ ذکر مراد دې.اوددې په مقر وخت کښې د علماء کرام اختلاف دې.لیکن زیات مشهور قول چه په هغې باندې عمل هم دې دادې چه عرفه دسحر نه واخله دایام تشریق د آخری ورځې د مازیګر مونځ پورې ده.په دې باره کښې یو مرفوع حدیث هم دارقطنی کښې دې،لیکن دهغې مرفوع کیدل ثابت نه دی،والله اعلم.

**ذکر نه مراد :-** حضرت عمر فاروق ﷺ به په خپله خیمه کښې تکبیرونیلو او ددوی په تکبیر باندې به د بازار والوتکبیر وئیلو،تردې پورې چه دمنی میدان کښې به راوتمبیدو (۳).داشان دامطلب هم دې چه شیطان په کاڼړو دویشتلویه وخت کښې دې تکبیر او ذکرالله اوکړې شی او دابه د ایام تشریق په هره ورځ وی.ابوداود وغیره کښې حدیث دې چه د بیت الله شریف طواف،صفا مروه سعی،شیطان ویشتل، دا ټول دالله ﷻ ذکر قائمولو دپاره دی (۴)ددې وجې نې ارشاد اوفرمائیلو چه الله ﷻ نه ویریږئ اویقین ساتئ چه ستاسو پیشی به دهغه پاك ذات مخکښې کیږی.هغه ذات تاسو زمکه کښې خواره کړئ او هم هغه ذات به مو راغونډوی.بیا هم هغه ذات طرفته به راجمع کیدل وی.چه چرته هم یئ نو دهغه ذات نه ویریږئ.

| وَمِنَ النَّاسِ | مَنْ |
| --- | --- |
| اوبعضې دخلقو نه | هغه څوك دی |
| اوبعضې خلق داسې دی | |

| يُّعْجِبُكَ | قَوْلُهُ | فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَيُشْهِدُ اللّٰهَ | عَلٰى |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| چې په تعجب کښې اچوی تا | خبری دهغه | په ژوندد دنیا کښې | اوګواه کوی الله | په هغه نیت باند |
| چې د دنیا په حقله به دهغه خبرې تاسو حیرانوی | | | اوستا د باور پیدا کولو دپاره هغه الله ګواه نیسی | |

(۱) الطبری: ۲۱۳/٤)-.
(۲) ابن ابی حاتم: ۵٤۷/۲)-
(۳) صحیح بخاری کتاب العیدین باب التکبیر ایام منی : تعلیقا قبل حدیث : ۸۷۰)-
(٤) ابوداود کتاب المناسک باب فی الرمل : ۱۸۸۸،وسنده حسن ترمذی: ۹۰۲)-.

مَا فِيْ قَلْبِهٖ ۙ وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ۝ وَاِذَا

چي په زړه دهغه کښې دي | او په حقیقت کښې هغه | سخت | دشمن وی دحق | اوکله چي

پخپلې نیک نیتۍ باندې | خو په حقیقت کښې هغه په دشمنا نو کښې غټ دشمن دې | اوهر کله

تَوَلّٰى سَعٰى فِي الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا وَيُهْلِكَ

ورته واپس شی (ستا نه) | نوکوشش کوی | په زمکه کښې | دپاره ددې چې فساد اوکړی | په هغې کښې | اوتباه کوی

چې ستا د مجلس نه واپس شي | په معاشره کښې د فساد خورولو کوشش کوی | او پانمال کوی

الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ؕ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ۝ وَاِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ

فصل | اونسل | اوالله | نه خوښوی | فساد | اوکله چې | اوونیلې شی هغه ته | چې اوویریږه دالله نه

فصلونه اودنبی آدم نسل هلاکوی | اوحال دادې چې الله فساد نه خوښوی | او چې ورته اوونیلې شی چې دالله ویریږ

اَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ؕ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ۝

نیسی هغه لره | غرور دعزت | په ګناه باند | نوکافی دې هغه لره | دوزخ | اودیر خراب | ځائې دې دآرام

نودخپلې پښتو خیال نې په ګناه کلک ټینګ کړی نوداسې سړی لره دوزه بس دې اوهغه ډیر خراب ځائې دې

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِيْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ؕ

اوخینی | دخلقونه | هغه څوک دی | چې خرڅوی | خان خپل | دپاره دطلب | د رضا دالله |

او (بل طرفته) خینې خلق داسې نیکان دی | چې خپل سرونه دالله درضا دپاره ورکوی

وَاللّٰهُ رَءُوْفٌ بِالْعِبَادِ ۝

اوالله ډیر مهربان دې | په داسې بندګانو باندې |

اوالله پاک پخپلو نیکو بندګانو ډیر مهربان دې |

قوله تعالی:- وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

**د ایت شان نزول:** -سدی رحمه الله فرمانی چه دا آیت د اخنس بن شریق ثقفی باره کښې نازل شوې دې. دا یومنافق سړې وو. په ظاهر کښې مسلمان وو. لیکن باطن کښې مخالف وو([1]) حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمانی چه دا ایت د منافقانو باره کښې نازل شوې دې. چه هغوئ دحضرت خبیب او دهغوئ د ملګرو بدئ بیان کړې وې چه په رجیع کښې شهیدان شوی وو نو ددې شهداء په تعریف کښې ﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِيْ ﴾ الخ والا آیت نازل شو او دمنافقانو مذمت باره کښې ﴿ مَنْ يُّعْجِبُكَ ﴾ والا آیت نازل شو. بعض وانی چه دا آیت عام دې. د ټولو منافقانو باره کښې او ړومبې او دویم آیت دې. او دټولو مومنانو تعریف باره کښې دریم آیت دې. ([2]) د حضرت قتاده رحمه الله وغیره قول هم دا دې او هم دا صحیح دې.

**د نوف بکالی بیان:**- حضرت نوف بکالی رحمه الله چه دتورات اوانجیل هم عالم وو فرمانی چه خه ددې امت

---

[1] الطبری: ۲۲۹/٤)-.

[2] الطبری: ۲۳۰/٤)-.

دبعضو خلقو بدنى دالله ﷻ نازل شوى كتاب كښې ګورم،مرقوم دى چه بعضې خلق ددين په حيلې سره دنيا ګټى.ددوى ژبې خو په شهدو سره خوږې دى ليكن د مصبرنه هم زياتې ترخې دى.خلقو دپاره د چيلو څرمنې اغوندى ليكن ددوى زړونه د درندګانو په شان دى.الله ﷻ فرمائى چه آيا دوى په ماباندې جرات كوى او ماسره دهوكه كوى.زما دې په خپل ذات قسم وى چه څه به دوى باندې داسې فتنې نازل كړم بردبار خلق به هم حيران شى.قرطبى رحمه الله ليكى چه ما غور سره اوكتل نو معلومه شوه چه دا دمنافقانو وصف دې او قران پاك كښې هم دى.اووائې آيت ﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَن يُعْجِبُكَ ﴾ الخ ([1]).حضرت سعيد رحمه الله هم چه كله دا خبره د نورو كتابونو حوالې سره بيان كړه نو حضرت محمد بن كعب رحمه الله هم دا فرمانيلى وو چه دا په قرآن پاك كښې هم دى او ددې آيت تلاوت نې كړې وو.سعيد اوونيل چه ماته معلوم دى چه دا آيت دچا باره كښې نازل شوې دې.ليكن د حكم اعتبار سره عام دې.

**قوله تعالى:- وَيُشْهِدُ اللَّهَ عَلَىٰ مَا فِي قَلْبِهِ**

**د الله ګواه ګول:-** دابن محيصن رحمه الله قرات كښې ﴿ وَيَشْهَدُ اللَّهُ ﴾دې معنى به دا وى چه هغوى په خپلوژبو سره څه وائى.خوددوى د زړونوحال الله ﷻ ته معلوم دې.بل ځائې كښې ارشادفرمائى چه﴿إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ﴾ الخ.يعنى كله چې تا ته منافقان راشى اوستا دنبوت ګواهى وركوى.الله ﷻ ته معلومه ده چه ته د هغه رسول يې ليكن د رب ګواهى ده چه دا منافقان يقينى طور دروغژن دى.خود جمهورو قرات ﴿ وَيُشْهِدُ اللَّهَ ﴾ دې نو معنى دا شوه چه د خلقو مخكښې خوددوى خپل خباثت پټوى ليكن دالله ﷻ مخكښې د دوى د زړونو كفراونفاق ظاهر دې.لكه څنګه چه بل ځائې كښې فرمائى چه ﴿ يَسْتَخْفُونَ مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُونَ مِنَ اللَّهِ ﴾ الخ.يعنى دخلقو نه پټوى ليكن د الله ﷻ نه نې نشى پټولې.حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا معنى بيان كړې ده چه دخلقو مخكې اسلام ظاهروى او ددوى مخكې قسمونه خورى او دوى ته باور وركوى چه څه ددوى په ژبوباندې دى هغه ددوى په زړونوكښې هم دې.صحيح معنى د آيت دا ده. عبدالرحمان بن زيد رحمه الله او مجاهد رحمه الله نه هم دا مروى دى.([2])ابن جرير رحمه الله هم دا خوښ كړى دى.

**قوله تعالى:-وَهُوَ أَلَدُّ الْخِصَامِ**

**د«الد» معنى:-** د ﴿أَلَدّ﴾معنى لغت كښې ده،سخت كوږلكه بل ځائې كښې فرمائى چه ﴿ وَتُنذِرَ بِهِ قَوْمًا لُّدًّا ﴾ يعنى چې ته په دې قران باندې سركښه قوم اويروې هم دا حالت دمنافقانو دې چه په خپل حجت كښې دروغ وائى اودحق نه روستوكيږى.نيغه خبره پريږدى او افتراء او بهتان لګوى او كنځل كوى .صحيح حديث كښې دى چه دمنافق درې نښې دى(۱)كله چه خبرې كوى نو دروغ وائى(۲)كله چه وعده اوكړى نوماتوى نې(۳)كله چه جګړې كوى نو كنځل كوى ([3]).يو بل حديث كښې دى چه دټولو نه زيات بد سړې د الله ﷻ په نيز هغه دې چه ډيرې جګړې كوى ([4])،ددې ډير سندونه دى.

**قوله تعالى:- وَإِذَا تَوَلَّىٰ سَعَىٰ فِي الْأَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيهَا**

**په زمكه كښې د فساد كوشش:-** بيا ارشاد فرمائى چه څنګه چه دوى خراب اقوال والا دى داشان ددوى افعال هم بدترين دى.قول خودادې ليكن فعل سراسر ددې خلاف دې.عقيده بالكل فاسده ده.

**د سعى نه مراد:-** دسعى نه مراد دلته قصد دې لكه څنګه چه بل ځائې كښې ارشاد فرمائى چه ﴿ثُمَّ أَدْبَرَ يَسْعَىٰ﴾الخ.اوفرمان دې چه ﴿فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ ﴾يعنى دجمعې دمونځ قصد او اراده كونى،دلته سعى د

---

[1]) الطبرى: ٢٢٩/٤)-

[2]) الطبرى: ٢٣٣/٤)-

[3]) صحيح بخارى كتاب الايمان باب علامات المنافق: ٣٣،صحيح مسلم: ٥٩)-

[4]) صحيح بخارى كتاب المظالم باب قوله تعالى( وهوالدالخصام) صيحح مسلم: ٢٦٦٨)-

منډې په معنی کښې نه ده خکه چه مونځ دپاره منډه وهل ممنوع دي.حديث کښې دی چه کله تاسو مونځ دپاره راځئ نو په منډه مه راځئ بلکه سکون او وقار سره راځئ.(۱)

**قوله تعالى:- وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ**

**د فصلو اوڅارو تباه کول:**-غرض دادې چه ددې منافقانو قصدپه زمکه کښې فساد خورول دی، کرکروندې دزمکې پیداوار او دحیوانو نسل بربادول وی.د حضرت مجاهد ﷺ نه دا معنی هم مروی ده چه ددې خلقو د نفاق او دبدکردارپه وجه الله ﷻ باران نه ورروی،چه دې سره پټو ته او ځناورو ته نقصان رسی.الله ﷻ داسې خلق چه د فساد مشران وی ناخوښوی.

**قوله تعالى:- وَإِذَا قِيلَ لَهُ اتَّقِ اللَّهَ أَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْإِثْمِ فَحَسْبُهُ جَهَنَّمُ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ**

**د نصيحت قبلولو نه تكبر كول:**- دا بدكردار چه كله د وعظ په ذريعې پوهولې شي نو دوی باندې نور هم اور لګی او دمخالفت په اور کښې په ګناهونو کولوباندې راضی کیږی لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ تَعْرِفُ فِي وُجُوهِ الَّذِينَ كَفَرُوا الْمُنْكَرَ﴾ الخ.يعنی دالله ﷻ کلام چه کله ددوی مخکښې تلاوت کیږی نو داکافران غصه کیږی او په ویونکی باندې حمله کوی.واورئی او ښه واورئی ! دکفارو دپاره خمونږ فرمان جهنم دې اودا بدترین ځائې دې.دلته هم دا فرمائی چه ددوی دپاره جهنم کافی دې یعنی سزا کښې او دا بدترین ځائې دې.

**قوله تعالى:- وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْرِي نَفْسَهُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ**

**د صهيب رومی خريداری:**-دمنافقانو مذموم خصلتونه بيانولو نه پس اوس دمومنانو تعريفونه کوی.دا آيت دحضرت صهيب بن ستان رومی ﷺ حق کښې نازل شو دې په مکه کښې مسلمان شوې وو.هر کله چه ده مدينې ته هجرت کول اوغوښتل نو کافرانو ده ته اووئيل چه مونږ تاته مال نه درکوو.که ته مال پريښودل غواړې نو تاته اختيار دې.ده ټول مال پريښودلواوکافرانو په دې قبضه اوکړه.ده هجرت اوکړو نويه دې باندې دا آيت نازل شو.حضرت عمر بن خطاب ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ يو جماعت د دوی د استقبال دپاره حره پورې راغلل اومبارکی ئې ورکړه چه تا خو ډيره ښه خريداری اوکړه.ډير دنفع تجارت دې اوکړو.ددې په آوريدو دوی اووئيل چه الله ﷻ دې ستاسو مالونه هم نقصان نه بچ اوساتی.هرکله چه نبی کريم ﷺ لره راغلو نو نبی کريم ﷺ ورته هم مبارکی ورکړه.

قريشودوی ته ووئيلی وو چه کله ته مکې ته راغلې نو تا سره مال نه وو،دا ټول مال دې هم دلته اوګټلو .اوس دې مونږ دې مال سره نه پريږدو.نو دوی مال پريښودلو او دين ئې واخستو او د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.يوروايت کښې دا هم دی چه هرکله دوی د هجرت ارادې سره اووتل او کافرانوته معلومه شوه نو ټولو دې راګير کړو.دوی دخپل ترکش نه غشی راوخکل او وې فرمائيل چه ائې د مکې والوا تاسوته ښه معلومه ده چه زه څنګه تيرانداز يم.زما يو نښه هم خطا نه ځی.ترکومې چه دا غشې ختم نه شی نو خه به تاسو کښې سوری اوکړم.او ددې نه پس به خه تاسوسره په توره جنګ کوم.او په دې کښې هم تاسو کښې خه د چا نه کم نه يم.کله چه توره هم ماته شی نو بيا تاسو ماته راتلئ شئ او خه چه کوئ نو اوکړئ.که دا تاسو ته منظور وی نو بسم الله ګنی واورئی خه تاسو ته خپل مال درکوم.دا ټول واخلئ او ما پريږدئ.نوهغوئ مال اخستلو باندې راضی شو.او دا شان دوی هجرت اوکړو.نبی کريم ﷺ ته د رسيدو نه مخکې هلته دوحی په ذريعه دا خبر رسيدلې وو.نو نبی کريم ﷺ دوی سره دملاقات کولو په وخت کښې دوی ته مبارکی ورکړه.

**د ايت د عموميت قائلين:**- داکثرو مفسرينوهم دا قول دې چه دا آيت عام دې.دهرمجاهد فی سبيل الله په شان کښې دې.لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنْفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾

(۱) صحيح بخاری کتاب الاذان باب لا يسعی الی الصلاة:...۶۳۶،صحيح مسلم: ۶۰۲،ابوداود: ۵۷۲،ترمذی: ۳۲۷،نسائی: ۸۶۲)-

الخ.يعنی الله ﷻ دمومنانو خانونه او مالونه اخستی دی.او ددې بدله کښې نې دوی ته جنت ورکړې دې.دوی دالله ﷻ په لار کښې جهاد کوی او وهل کوی او شهیدان کیږی الله ﷻ نه زیات رښتونې وعدې والا به بل څوك وی.نو اې ایمان والو تاسودې اخستو خرڅولو او بدلو باندې خوشحاله شئ:هم دا لويه کامیابی ده.حضرت هشام بن عامر ؓ چه کله دکافرو په صفونو باندې يکې تنها حمله کړې وه نو بعضو خلقو دا خلاف شرع ګڼرلی وو.لیکن حضرت عمر ؓ او حضرت ابوهریره ؓ وغیره ددې تردید اوکړو او ددې آیت ﴿ إِنَّ اللّٰهَ اشْتَرٰی ﴾ تلاوت نې اوکړو.

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا |
|---|
| اے هغه کسانو \| اچی ایمان مو راوړې دی\|داخل شئ |
| \| انې مؤمنانو په دین اسلام کښې پوره پوره داخل |
| فِي السِّلْمِ كَآفَّةً وَّلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ |
| په اسلام کښې \|پوره \|او تابعداری مه کوئ \| دقدمونو دشیطان \| بیشکه هغه \| ستاسودپاره\| دشمن |
| شئ \|..................اود شیطان په جوره کړې لار مه ورځئ \| هغه ستاسو ښکاهر دشمن دې |
| مُّبِيْنٌ۝ فَاِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ |
| ښکاره دې\| نوکه چرې\| اوخونیدئ تاسو\| روستو \| دهغې نه \|چی راغلی دی تاسو ته\|ښکاره دلائل |
| ..........کچرې ددې واضحو دلیلونو دراتلو نه پس هم تاسواوخونیدئ (یعنی ګمراه شوئ) |
| فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ۝ |
| نو ښه پوهه شئ\| چی الله \| غالب دې\| اوحکمت خاوند دې\|\| |
| یادلرئ چې الله پاک په هر چا باندې غالب اودیر دانا دې \| |

قوله تعالی:- يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِي السِّلْمِ كَآفَّةً

**د ایت شان نزول:-** الله ﷻ په خپل ذات باندې ایمان راوړلو والو او د خپل نبی ﷺ تصدیق کولو ته ارشاد فرمانی چه هغوئ دې ټول احکام پوره کړی.او دټولو ممنوعاتو نه دې خان بچ اوساتی.او په کامل شریعت باندې دې عمل اوکړی.﴿سلم﴾ نه مراد اسلام دې،اطاعت او صلح هم مراد ده.د ﴿کافة﴾ معنی د ټولونه پوره.دحضرت عکرمه ؓ قول دې چه حضرت عبدالله بن سلام،حضرت اسدبن عبید ؓ،ثعلبه ؓ وغیره چه دیهودو نه مسلمانان شوی وو،هغوئ نبی کریم ﷺ ته درخواست اوکړو چه مونږ ته د خالی د ورځې د عزت او د شپې د وختونو په تورات باندې دعمل کولو اجازت راکړئی.نو په دې باندې دا آیت نازل شوچه اسلامی احکاموباندې پوره عمل کوئی.لیکن پدې کښې په دې کښې دحضرت عبدالله نوم څه صحیح نه معلومیږی،هغه د اعلی درجې عالم وو او پوره مسلمان وو.هغه ته کامل طور سره معلوم وه چه د خالی د ورځې عزت منسوخ شوې دې.ددې په ځانې اسلامی اختر د جمعې په ورځ مقرر شوې دې.بیاناممکن دی چه هغه داسې خواهشونوکښې نورو سره مدد اوکړی.

بعضو مفسرینو﴿کافة﴾ ته حال وئیلې دې.یعنی تاسو ټول په ټوله اسلام کښې داخل شئ.خو زومبئ خبره زیاته صحیح ده.یعنی دخپل وس مطابق داسلام ټول احکام اومنئ.د نبی کریم ﷺ بیان دې چه بعضې اهل کتاب د اسلام قبلولو باوجود د تورات بعضو احکام باندې عمل پیرا وو.دوی ته وئیلې کیږی چه محمدی دین کښې پوره داخل شئ،ددې هیڅ یو عمل مه پریږدئی،تورات باندې صرف ایمان لرئی.

**قوله تعالی:- وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ**
**دشیطان د تابعدارئ ممانعت:-** بیا فرمان دي چه دالله ﷻ اطاعت کوئی، دشیطان مه مني: هغه تاسو ته د بدئی، بدکارئی اورب باندې د بهتان لګولو وائی. دده اودده د ډلې خواهش دې چه تاسو دوزخیان شئ. هغه ستاسو ښکاره دښمن دې.
**قوله تعالی:- فَاِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ**
**دعلم نه پس ګمراه کیدل:-** که تاسو دلائلو معلومیدو نه پس بیا هم دحق نه مخ اړوئی نو په دې پوهه شئ چه رب هم په بدله اخستلو کښې غالب دې. نه څوك دهغه نه تښتیدې شی، نه په هغه باندې څوك غالب کیدیشی، هغه په خپل کار جاری کولوکښې د حکمتونو خاوند دې. هغه غالب دې په خپلو نیولو کښې. هغه حکیم دې په خپل امر کښې. هغه په کافرو باندې غلبه موندونکې دې. او عذر او حجت پریکولو کښې حکمت لری.(¹)

| هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ |
| --- |
| آیادوئ انتظار کوی ابس دې خیری ته |
| او اوس هم دوی نه منی او په دې انتظار کښې ناست دی |
| يَّاْتِيَهُمُ ‎ اللّٰهُ ‎ فِىْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ ‎ وَالْمَلٰٓئِكَةُ ‎ وَقُضِىَ الْاَمْرُ |
| چې راشي دوئ ته \| الله \| په سورو د وریځو کښې \| او فرښتې هم \| اوفیصله شي دکار \| |
| چې الله پاک ورته دوریځې د چت لاندې دفرښتو په مینځ کښې راشي \| اوټوله خبره خلاصه شي |
| وَاِلَى اللّٰهِ ‎ تُرْجَعُ ‎ الْاُمُوْرُ |
| او الله ته به هسې هم \| واپس کیږی \| ټول معاملات \| |
| اوآخرنه هسې هم ټولې معاملې هغه ته پیش کیږی \| |

**قوله تعالی:- هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ فِىْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ**
**دالله د عذاب انتظار:-** په دې آیت کښې الله ﷻ کافروته زورنه تنبیه ورکوی چه آیادوی دقیامت انتظار کوی چه په کومه ورځ به حق سره فیصلې کیږی او هر سړی ته به دخپلو کړومطابق بدله ملاویږی لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چه (كلا اذا دكت الارض) الخ. هرکله چه زمکه ریزې ریزې والوزی او ستا رب پخپله راشی او فرښتې په صفونو کښې اودریږی اوجهنم هم راوستلې شی، په دغه ورځ به داخلق عبرت او نصیحت حاصل کړی. خود هغې نه بیا څه فائده ؟ بل ځائې کښې ارشاد فرمائی چه (هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ) الخ. یعنی آیادوی ددې خبرې په انتظار کښې دی چه دوی ته به فرښتې رازی یا پخپله الله ﷻ به دوی ته راشی، یا د هغه بعضې نښې به راشی، که دا اوشو نو بیا نه د ایمان څه فائده شته دې او نه داعمالو وخت دې.
**د نبی کریم شفاعت کول:-** امام جریر رحمه الله دلته یو اوږد حدیث لیکلې دې چه په هغې کښې د صور وغیره تفصیلی بیان دې. اودهغې راوی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې. مسند وغیره کښې دا حدیث دې، په هغې کښې دی چه کله خلق اوویریږی اوپاسی نونبیانو علیهم السلام نه دبه شفاعت طلب اوکړی. حضرت آدم علیه السلام نه واخله ته یو یو پیغمبر علیه السلام ته به ورځی او دهغه ځائې نه ورته صفا جواب ملاویږی

¹) ابن ابی حاتم: ۲/۵۹۱)۔

.تردې پورې چه نبی کریم ﷺ ته به راشي.نبی کریم ﷺ به جواب ورکړي چه څه تيار يم.هم څه ددې اهل يم، بيا به نبی کريم ﷺ لاړ شي او دعرش لاندې به سجده اوکړي او الله ﷻ ته به سفارش اوکړي چه هغه د بندګانو په مينځ کښې فيصله کولو دپاره تشريف راوړي.

**ميدان حشر لګيدل:-** الله ﷻ به ددوی شفاعت قبول کړي او هلته به د وريځو سيوري جوړ شي.د دنيا آسمان به مات شي.اودهغې ټولې فرښتې به راشي.بيا به دويم هم مات شي اودهغې فرښتې به هم راشي.داشان اووه واړه آسمانونه به مات شي او دهغې فرښتې به راشي.بيا به الله ﷻ دعرش نه راکوز شي او بزرګې فرښتې به نازلې شي.او پخپله هغه جبار الله ﷻ به تشريف راوړي.

**د قيامت په ورځ دفرښتو تسبيح:-** ټولې فرښتې به په تسبيح کښې مشغولې شي.هغه وخت کښې به دهغوئ تسبيح دا وی چه ﴿ سبحان ذي الملك والملكوت سبحان ذي العزة والجبروت سبحان الحی الذی لا يموت سبحان الذی يميت الخلائق ولا يموت سبوح قدوس رب الملائكة والروح سبوح قدوس سبحان ربنا الاعلى سبحان ذي السلطان والعظمة سبحانه سبحانه ابدا ابدا ﴾ (۱)حافظ ابوبکر ابن مردويه رحمه الله هم ددې آيت په تفسير کښې ډير احاديث راوړي دی خو په هغې کښې غرابت دې،والله اعلم.

**د الله ﷻ دفيصلې دپاره راتلل:** په هغې کښې يو دادې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ به ټول مخکی روستی راجمع کړي.چه دهغې وخت مقرردې،هغوئ به ټول په ټوله اودريږي.سترګې به نې فيصلې ته نيولی وی.هر يو به د فيصلې په انتظار کښې وی.الله ﷻ به د وريځې په سيوری کښې د عرش نه کرسئ ته نزول اوفرمائي.(۲)

**الله او فرښتې به د وريځې په سيوری کښې نازليږي:-** ابن ابی حاتم کښې دی عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمائي کوم وخت کښې چې الله ﷻ نزول اوفرمائي نود مخلوق اودهغه په مينځ کښې به د نور اويازره پردې وی اوداوبو پردې به وی اود اوبو نه داسې آوازونه راځي چه هغې سره به زړونه ويريږي.

زهير بن محمد رحمه الله فرمائي چه هغه د وريځو سيورې به د ياقوتو جوړه وی او دجوهرو او زبرجدو پشان آوازونه به ترې رازي.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه دا وريځې به عامې وريځې نه وی بلکه دا به هغه وريځې وی چه کومې دبنی اسرائيلو په سرونو باندې په وادی تيه کښې وې.ابوالعاليه رحمه الله فرمائي چه فرښتې به هم د وريځو په سيوروکښې راځي.او الله ﷻ چه څوک غواړي نو هغه به راولی.په بعضو قراتونوکښې داسې هم دی چه ﴿ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن يَأْتِيَهُمُ اللَّهُ فِي ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلَائِكَةُ ﴾ لکه بل ځائې کښې فرمائي چه﴿ وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَاءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ الْمَلَائِكَةُ تَنزِيلًا ﴾ يعنی په هغه ورځ به آسمان د په وريځو سره اوشليږي او فرښتې به نازلې شي.

| سَلْ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ كَمْ |
|---|
| ا تپوس اوکړه ا دبنی اسرائيلونه ا چې څومره ا |
| ا دبنی اسرائيلونه تپوس اوکړه چې څومره |
| آتَيْنَاهُم مِّنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ وَمَن يُبَدِّلْ نِعْمَةَ اللَّهِ مِن بَعْدِ |
| ور کړي دی مونږ هغوئ ته ا نښې ا څرګندې ا وهغه څوک ا چې بدلوی ا نعمت دالله ا روستودهغې نه |
| سرګندې نښې مونږ هغوئ ته راليږلی دی ا او (داتپوس ترې هم اوکړه) چې څوک دالله ورکړي نعمتونه بدل کړي |

(۱) ابن جرير : ۴۰۴۲-

(۲) الحاکم: ۳۸/۲ وسنده حسن-

| مَا جَآءَتْهُ | فَإِنَّ اللّٰهَ | شَدِيْدُ | الْعِقَابِ۝ | زُيِّنَ |
|---|---|---|---|---|
| چې راغلي وي هغه ته | نو بيشکه چې الله | سخت | عذاب ورکونکي دی | ښائسته کړې شوې دې |

نو بيشکه الله ﷻ په عذاب ورکولو کښې ډير سخت دې | ......................ښائسته شوې دې

| لِلَّذِيْنَ | كَفَرُوا | الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا | وَيَسْخَرُوْنَ | مِنَ الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| هغه کسانو ته | چې کفر ئې کړې دې | ژوند د دنيا | او توقې کوی | په هغه کسانو پورې |

کافرانو ته ژوند د دنيا......................| او نن ورخ هغوئ توقې کوی په

| اٰمَنُوْا | وَالَّذِيْنَ | اتَّقَوْا | فَوْقَهُمْ | يَوْمَ |
|---|---|---|---|---|
| چې ايمان ئې راوړې دې | خو هغه خلق | چې خان ئې اوساته د کفرنه | د پاسه به وی | په هغوئ | په ورخ |

مؤمنانو پورې | او دغه پرهيزګاران به د هغوئ نه د قيامت په ورخ (په درجو کښې) پورته وی

| الْقِيٰمَةِ | وَاللّٰهُ | يَرْزُقُ | مَنْ | يَّشَآءُ | بِغَيْرِ حِسَابٍ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| دقيامت | او الله | رزق ورکوی | هغه چاته | چې خوښه ئې شی | بې حسابه |

(او په دنيا کښې) الله پاک چې چاته غواړی نو بې حسابه رزق ورکوی (د مومن او کافر فرق نه کوی)

**قوله تعالى:- سَلْ بَنِيْٓ إِسْرَآءِيْلَ كَمْ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ اٰيَةٍ بَيِّنَةٍ**

**د بنی اسرائيلو احسان هيرول او د صدقه کولو بدله:** الله ﷻ بيان فرمائی چه اوګورئی بنی اسرائيلو ته ما ډيرې معجزې اوخودلې، د حضرت موسی ﷺ د لاس همسا، د هغه د لاس رڼرا، د هغوئ دپاره د درياب شليدل، په هغوئ باندې په سخته ګرمئ کښې باران ورول او من وسلوی نازلول وغيره وغيره، د دې نه ښکاره معلوميده چه زه مختار فاعل کل يم، او زما د نبی حضرت موسی ﷺ نبوت ښکاره تصديق وو.

**قوله تعالى:- وَمَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ فَإِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ**

**د بنی اسرائيلو ناشکری:-** خودې خلقو زما د نعمتونو کفر ناشکری اوکړه او د ايمان راوړلو په ځائې دوې کفر اوکړو نو دوی به زما د عذابونو نه څنګه بچ کيږی ؟ هم دا خبر د قريشو د کافرو باره کښې هم بيان شوې دې. ارشاد کيږی چه ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا﴾ الخ. آيا تاسو هغه خلق اونه کتل چه هغوئ د الله ﷻ نعمت په کفر سره بدل کړو او خپل قوم ئې د هلاکت کور يعنی د جهنم پښان بدترين ځائې ته اورسول.

**قوله تعالى:- زُيِّنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَيَسْخَرُوْنَ مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا**

**دنيا سره د محبت مذمت:-** بيان فرمائی چه د اکفار صرف په دنياوی ژوند پسې ليونی دی. مال جمع کول او د الله ﷻ په لار کښې خرچ کولو نه بخل کول هم د دوی رنګ دې. بلکه کوم ايماندار چه د دې دنيا نه ماړه دی او د الله ﷻ د رضا دپاره خپل مالونه خرچ کوی، نو دا (کافران) د هغوئ پورې خنداګانې کوی. خو حقيقی نصيب والا هم دا خلق دی. د قيامت په ورخ چه به د دې خلقو مرتبې اوګوری نو د کافرانو سترګې به اوغړيږی، په هغه وخت کښې به په خپلې خرابئ او بدنصيبئ باندې پوهه شی. روزی ورکول چه الله ﷻ څومره اوغواړی نو ورکوی، چه چاته اوغواړی بې حسابه ورکوی بلکه چه چاته اوغواړی نو دلته هم ورکوی او بيا هلته هم.

**دالله په لار کښې د خرچ فضيلت:-** حديث شريف کښې دی چه انې بنی ادم ! ته زما په لار کښې خرچ کړه ،څه به تاته درکوم.(^۱^)نبی کريم ﷺ حضرت بلال ﷺ ته اوفرمائيل چه دالله ﷻ په لار کښې خرچ کوه او دعرش والا نه دتنګئ ويره مه کوه.(^۲^)قران پاك کښې دی چه ﴿ وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن شَىْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُۥ ﴾ تاسو چه څه خرچ کړی د هغې بدله به الله ﷻ تاسو ته درکوی.

**هرصبا د فرښتې راکوزيدل:-** صحيح حديث کښې دی چه هر سحر دوه فرښتې راکوزيږی،يو دعا کوی انې الله ﷻ ستا په لار کښې خرچ کولو والو ته برکت ورکړه،دويمه وائی چه انې الله ﷻ دبخيل مال لره برباد کړې (^۳^).

**د انسان د نظر دهوکه:-** اوحديث کښې دی چه انسان وائی چه زما مال زما مال زما مال،حالانکه ستا مال هغه دې چه کوم تا اوخوړو،هغه خو فنا شو،او چه کوم تاواغوستلو هغه زوړشو،خو چه کوم دې صدقه کړو هغه تا باقی اوساتلو.دهغه سوا چه څه دی هغه به ته دنورو دپاره روستو پريږدې او لاړبه شې.(^۴^)مسند احمد کښې حديث دې چه دنيا دده کور دې،چه دچا کور نه وی دنيا دهغه کور دې.چه د چا مال نه وی ددنيا دپاره مال جمع کوی چه دچا عقل نه وی.(^۵^)

كَانَ النَّاسُ
| په اول کښې وو تول خلق
،اول اول خلق

أُمَّةً وَّاحِدَةً ۗ فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۖ وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ
تولې يو | نو رااوليږل الله | پيغمبران زيرې ورکونکی| اويرونکی | او نازل نې کړو| دهغوئ سره| کتاب
په يولارروان وو | اوالله پيغبران راوليږل چې زيرې ورکونکی اوويرونکی وو اوهغوئ سره نې کتاب نازل کړې وو

بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۭ
په حق سره|دپاره ددې چې فيصله اوکړئ| په منځ دخلقو کښې |په هغه کار کښې|چې اختلاف کړې دې هغوی| په هغې کښې
په حق سره | چې د خلقو د اختلافاتو په باره د هغوی په مينځ کښې (په انصاف سره) فيصلې اوکړی

وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ اِلَّا الَّذِيْنَ اُوْتُوْهُ مِنْۢ بَعْدِ
اواونه کړواختلاف| په هغې کښې|مګر |هغه کسانو |چې ورکړې شوې وو هغوئ ته دغه دحق علم| روستو
او په دې کښې (عاميانونه)بلکه هغه چا اختلاف شروع کړې وو چې کتاب ورته ورکړې شوې وو د

مَا جَاۗءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ۚ فَهَدَى اللّٰهُ
دهغې نه چې راغلې وو هغوئ ته|روښانه هدايت| صرف د زياتی کولو په وجه| په خپل منځ کښې| نواوښودله الله
سرګنده دليلونود راتلو نه پس | په خپل مينځ کښې د حسد په وجه |نو الله لار اوخودله

---

^۱^) صحيح بخاری کتاب النفقات باب فضل النفقه علی لاهل : ۵۳۵۲،صحيح مسلم: ۹۹۳)-
^۲^) الطبرانی : ۱۰۲۰،وسنده للحديث شواهد ضعيفه ل الصحيحة للالبانی: ۲۶۶۱)-
^۳^) صحيح بخاری کتاب الزکوة قول الله تعالی ( فامامن اعطی واتقی): ۱۴۴۲،صحيح مسلم: ۱۰۱۰)-
^۴^) صحيح مسلم: کتاب الزهد باب الدنيا سجن المومن: ۲۹۵۸)-
^۵^) احمد: ۷۱/۶،)-

| الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لِمَا | اخْتَلَفُوْا | فِيْهِ | مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه کسانو ته | چې ایمان ئې راوړو | هغه لار | چې اختلاف کړې وو خلقو | په هغې کښې | چه حقه لار ده حکم خپل سره |

په خپل حکم سره په اختلافي خبرو کښې هغه چاته چې ایمان ئې راوړې وو.......

| وَاللّٰهُ | يَهْدِيْ | مَنْ | يَّشَآءُ | اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ |
|---|---|---|---|---|
| او الله | ښائي | هغه چاته | چې غواړي | نيغه لار |

اوچاته چه الله اوغواړي نوهغوئ په سمه لار روان کړي

**قوله تعالى:-** كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً

**ټول خلق يو امت وو:-** دحضرت ابن عباس ﷠ بيان دې چه دحضرت نوح ؈ او حضرت آدم ؈ په مينځ كښې لس زمانې وې.ددې زمانو خلق دحق او دشريعت پابند وو.بيا اختلاف شروع شو.نو الله ﷻ نبيان عليهم السلام رالېږل شروع كړل.بلكه ددې قرات داشان هم دې چه ﴿ كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ بَعَثَ﴾ الخ [1] دحضرت ابى بن كعب ﷠ قرات هم دادې [2] حضرت قتاده ﷫ ددې تفسير داشان كړې دې چه كله په دوى كښې اختلاف پيدا شو نو الله ﷻ خپل ړومبې پيغمبر اولېږلو يعنى حضرت نوح ؈.حضرت مجاهد هم دا فرمائي.[3]

حضرت ابن عباس ﷠ نه يو روايت مروى دې چه مخكې ټول په ټوله كافروو.ليكن اول قول د معنى او سند اعتبار سره زيات صحيح دې.نو دې پيغمبرانو ايمان والو ته زيرى وركړل.او كومو چه ايمان نه وو راوړې هغوئ ئې ويرول.هغوئ سره دالله ﷻ كتاب هم وو چه د خلقو د هر اختلاف فيصله قانون الهى سره اوكړې.خوددې دلائلو نه پس هم صرف پخپلو كښې حسداوبغض،تعصب اوضداو نفسانيت په وجه بيا په كښې اتفاق رانغلو.خوايماندار پوهه شو اوددې اختلاف دچكرنه اووتل او په نيغه لار روان شو.

**امت محمدى به د اخرى باوجود اول جنت ته ځى:-** حضرت رسول الله ﷺ فرمائى چه مونږ دنيا ته دراتلو اعتبار سره خو دټولو نه روستو يو خو دقيامت په ورځ به جنت ته دتلو اعتبار سره د ټولو نه مخكښې يو.اهل كتابو ته الله ﷻ كتاب خمونږ نه مخكې وركړې وو.مونږ ته دې نه پس راكړې شو.خو هغوئ په دې كښې اختلاف اوكړو او الله ﷻ خمونږ رهنمائى اوكړه.

**د امت محمدى د هدايت كارونه:-** ① د جمعې دې ورځې په باره كښې هم په دوى كښې اختلاف وو ليكن مونږته داهدايت نصيب شو.ټول اهل كتاب پدې لحاظ سره خمونږ نه روستو دى،جمعه خمونږ ده،هفته ديهودو ده،او اتوارا دنصرانيانو[4]. ② زيد بن اسلم ﷫ فرمائى چه دجمعې نه علاوه دقبلې باره كښې هم دا اوشو.نصرانيانو مشرق لره قبله جوړه كړې وه.يهودو بيت المقدس لره.او امت محمديه كعبه قبله مقرر كړه. ③ داشان په مونځ كښې هم،په هغوئ كښې د بعضوكتابونو كښې ركوع شته دې او سجده نشته دې،بعضو كښې سجده شته دې ركوع نشته دې.بعضې په مونځ كښې خبرې كوى،بعضې ګرزى.خود امت محمديه مونځ سكون او وقار والا دې.نه په كښې خبرې كوى او نه په كښې ګرزى.داشان په روژو كښې هم اختلاف اوشو او په هغې كښې هم امت محمديه ته هدايت نصيب شو.

---

[1] حاكم ۲/۵٤٦)-
[2] الطبرى: ٤/۷۸)-
[3] عبدالرزاق: ۱/۷۲)-
[4] صحيح بخارى كتاب الجمعة: باب فرض الجمعة: ۱۸۷٦،صحيح مسلم: ۸۵۵)-

په هغوئ کښې خو بعضې د ورځې څه حصه کښې روژه ساتی او بعضې ډلې څه قسمه خوراکونه پریږدی، خو خمونږ روژه هرقسمه کامله ده. او په دې کښې حق لاره خودلې شوې ده. ﴿۴﴾ دا شان دحضرت ابراهیم ﷺ باره کښې یهودواوونیل چه هغه یهودی وو، نصرانیانو اوونیل چه هغه نصرانی وو لیکن دراصل هغه مسلمان وو. نو په دې باره کښې هم خمونږ رهبری اوشوه. او دخلیل الله ﷺ متعلق مونږ ته صحیح خیال راورسیدلو. ﴿۵﴾ حضرت عیسی ﷺ لره هم یهودو په دروغه اوګنړلو. اوددوی دمور بی بی متعلق ئې بدکلامی اوکړه. نصرانیانو دوی ته دالله ﷻ خوئې اوونیلو. لیکن مسلمانان ددې کمې زیاتې نه بچ کړې شو. او دوی ئې روح الله او کلمة الله او نبی برحق اومنلو. (۱)

ربیع بن انس رحمه الله فرمائی چه مطلب دا دې چه څنګه په شروع کښې خلق ټول په ټوله د رب واحد دعبادت کولو او دنیکو عاملان او د هرې بدئی نه پرهیزګاران وو، په مینځ کښې په کښې اختلاف راپیداشو. نودا آخری امت ئې د اول امت په شان داختلاف نه یو طرفته کړواو په صحیح لارئې روان کړو دا امت به په نورو امتونوباندې ګواه وی. تر دې پورې چه دحضرت نوح ﷺ په امت به هم دوی ګواهی ورکوی. دقوم هود، قوم صالح، قوم شعیب، اود آل فرعون حساب کتاب به هم ددوی په ګواهئ باندې کیږی. هغوئ به اووائی چه دې پیغمبرانو تبلیغ اوکړو اودې امتونو تکذیب اوکړو. حضرت ابی بن کعب ﷺ قرات دې چه ﴿ولیکونو شهداء علی الناس یوم القیامة﴾ الخ. مخکې دالفظ هم دې چه ﴿والله یهدی﴾. ابو العالیه رحمه الله فرمائی چه په دې آیت کښې ګویا حکم دې چه شک نه، ګمراهئ نه او فتنونه بچ کیدل پکار دی. داهدایت درب علم او رهبرئی سره اوشو. چه چاته اوغوارې نو استقامت ورته ورکړی.

**د هدایت سوال:-** بخاری او مسلم کښې دی چه حضرت نبی ﷺ چه به کله دشپې تهجدو دپاره پاسیدلو نودادعابه ئې کوله چه: ﴿اللهم رب جبریل ومیکائیل واسرافیل فاطر السموات والارض عالم الغیب والشهادة انت تحکم بین عبادك فیما کانو فیه یختلفون اهدنی لما اختلف فیه من الحق باذنك انك تهدی من تشاء الی صراط مستقیم﴾ (۲) یعنی اې الله ﷻ ! دجبرئیل، مکائیل او اسرافیل ربه، اې دآسمانونو او زمکې پیدا کولووالا، اې دپټو او ښکاره (رازونو) پیژندو والا الله هم ته دخپلو بندګانو په خپلو کښې داختلاف فیصله کوې، زما دعا ده چه په کوم څیز کښې دوی اختلاف اوکړی نو ماته په هغې حقه خبره رااوښایه، ته چه چاته اوغواړې نو نیغه لار ورته ښائې.

**د هدایت دویمه دعا:-** د نبی کریم ﷺ نه یو دعا دا هم منقول ده چه: ﴿اللهم ارنا الحق حقا وارزقنا اتباعه وارنا الباطل باطلا وارزقنا اجتنابه ولا تجعله ملتبسا علینا واجعلنا للمتقین اماما﴾ یعنی اې الله ! مونږ ته حق حق اوښایه، او ددې تابعداری راته نصیب کړه، او باطل راته باطل اوښایه، او ددې نه مو بچ کړې هسې نه چه مونږ حق او باطل کښې ګډوډ شواومونږاوخوځیږو. اې الله ﷻ ازمونږ دپاره نیکان، پرهیزګارخلق پیشوایان جوړ کړې

| اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ |
|---|
| آیا ګمان کوئ تاسوچې تاسو به ننوځئ جنت ته |
| استاسو دا خیال دې چې جنت ته به داخل شئ |

| وَلَمَّا | يَأْتِكُمْ | مَّثَلُ | الَّذِيْنَ | خَلَوْا | مِنْ قَبْلِكُمْ ط |
|---|---|---|---|---|---|
| اوحال دا چې نه | دی راغلی په تاسوباند | سختیاني په شان | دهغه کسانو | چې تیرشوی دی | مخکښې ستاسونه |

اوترا اوسه پورې درباندې هغه شان سختئ نه دی تیرې شوې خنګه په پخوانو خلقو تیرې شوې وې

---

(۱) الطبری: ۲۸۴/٤ -.

(۲) صحیح مسلم: کتاب صلاة المسافرین باب الدعاء فی صلاة اللیل: ۷۷۰، ابوداود: ۷٦۷، ترمذی: ۳٤۲۰، النسائی: ۱٦۲٦، ابن ماجة: ۱۳۵۷)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَسَّتۡهُمُ | الۡبَاۡسَآءُ وَالضَّرَّآءُ | وَزُلۡزِلُوۡا حَتّٰى | يَقُوۡلَ الرَّسُوۡلُ | وَالَّذِيۡنَ |
| چې رسيدلې وې هغوئ ته | سختئ او مصيبتونه | او جړقولې شو تردې چې | اووئيل رسول | او هغه كسانو |
| په هغوئ دومره سختئ او داسې مصيبتونه راغلي وو او جړقولي شوي ووا چې (دهغه وخت) پيغمبر | | | | |
| اٰمَنُوۡا | مَعَهٗ | مَتٰى نَصۡرُ اللّٰهِ ؕ | اَلَاۤ اِنَّ نَصۡرَ اللّٰهِ | قَرِيۡبٌ ۞ |
| چې ايمان ئې راوړې ووا | دهغه سره | كله به وى مدد دالله | واورئ چې مدد دالله | نژدې دې |
| اودهغه ايماندارو ملګر به چغې كړې چې دالله مدد به كله راځي خبر شئ چه دالله پاك مدد ډيرنژدې دې | | | | |

**قوله تعالى:-** اَمۡ حَسِبۡتُمۡ اَنۡ تَدۡخُلُوا الۡجَنَّةَ وَلَمَّا يَاۡتِكُمۡ مَّثَلُ الَّذِيۡنَ خَلَوۡا مِنۡ قَبۡلِكُمۡ ؕ

**په ايماندارو امتحانونه:**-مطلب دادې چه د آزمېښت او امتحان نه مخكې دجنت خواهش صحيح نه دې. دمخكو ټولوامتونو امتحان هم واخستلې شو.په هغوئ هم بيمارئ اومصيبتونه راغلل.د ﴿بَاۡسَآءِ﴾ معنى ده فقيرى[1] او د ﴿ضَرَّآءِ﴾ معنى ده بيمارى. ﴿زُلۡزِلُوۡا﴾ د دښمنانو ويره دومره شوه چه غريبانانو رپيدل.په دې ټولو سختو امتحانونو كښې هغوئ كامياب شو او د جنت وارثان شو.

**د اسلام د غلبې پيشګوئى:**- صحيح حديث كښې دى چه يو ځل حضرت خباب بن ارت ﷺ اوفرمائيل چه يارسول الله ﷺ تاسو خمونږ د امداد دعا نه كوئى ؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه بس اوس نه ويريدلې يې.واوره،ستاسو نه مخكې موحدين نيولې شوى وو او د هغوئ په سرونوباندې آرې راښكلې شوى دى.او څيرې كړې شوى وو او دوه ټكړې شوى وو.خو بيا هم هغوئ د توحيد نه واونړيدل.د اوسپنې په ږمنځو سره د هغوئ نه څرمنې اوښكلې شوې خو بيا ئې هم دالله ﷻ دين پرې نښودو.په الله ﷻ مې دې قسم وى چه هغه پاك ذات به زما دا دين دومره پورته كړى چه د صنعاء نه واخله تر حضرموت پورې سفر به هر سړې بغير ويرې كوى.او ده ته به سوا دالله ﷻ نه د بل چا ويره نه وى.البته زړه كښې داخيال كيدل خو بله خبره ده چه هسې نه زما چيلو باندې شرمخ راشى،ليكن افسوس چه تاسو تيزى كوئى.[2]

قران پاك كښې صحيح هم دا مضمون په بل ځائې كښې بيان شوې دې چه ﴿أَحَسِبَ النَّاسُ أَن يُتۡرَكُوٓا﴾ الخ. آيا خلقو داګڼرلې ده چه هغوئ صرف دايمان په اقرار كولو سره پريښودې شى او په دوى باندې به آزمېښت نه وى،مونږ په مخكو (خلقو) باندې هم آزمېښت اوكړو.ريښتونى او دروغژن به حقيقت كښې بيل بيل كړو.نوداشان د صحابه كرام ﷺ پوره آزمېښت يوم الاحزاب كښې يعنى جنګ خندق كښې اوشو.لكه څنګه چه قران پاك پخپله ددې نقشه راښكلې ده،فرمان دې چه ﴿إِذۡ جَآءُوكُم مِّن فَوۡقِكُمۡ﴾ الخ.يعنى كافرو چه تاسو لره د پورته نه او روستو نه ګير كړئى،او سترګې مو اوبريښيدلې ،زړونه مو ويريدل اوالله ﷻ سره موګمان اوكړو.په دې ځائې كښې دمومنانوپوره آزمېښت اوشواوښه پوره نچونړ كړې شو.اومنافق و كمزورى ايمان والواووئيل چه انې دالله اود رسول ﷺ وعدې خوصرف غرور وې.

**د هرقل قول:**- هرقل چه كله د ابوسفيان نه دهغه د كفر په حالت كښې تپوس كړې وو چه ستاسو څه جنګ هم دې دنبوت دعويدار سره شوى دې.ابوسفيان اووئيل چه آو.تپوس ئې ترې اوكړو چه څه رنګ وو.وې وئيل چه كله مونږ غالب وو او كله هغه.نو هرقل اووئيل چه دنبيانو عليهم السلام هم داشان آزمېښت كيږى.خوآخرى غلبه هم دهغه خلقو وى.[3]

---

[1] ابن ابي حاتم: ۲/۲۱۶)-

[2] صحيح بخارى كتاب المناقب باب علامات النبوة فى الاسلام: ۳٦۱۲)-

[3] صحيح بخارى كتاب الجهاد باب قول الله ( قل هل تربصون بنا...) ۲۸۰٤،صحيح مسلم: ۱۷۷۳)-

د مثل معنى دطريقې ده. لکه بل ځاى کښې فرمائى چه ﴿ فَأَهْلَكْنَآ أَشَدَّ مِنْهُم بَطْشًا وَمَضَىٰ مَثَلُ الْأَوَّلِينَ ﴾ مخکې مومنانو سره دخپلو نبيانو په داسې وخت کښې د الله ﷻ نه مدداوغوښتلو اودسختئ اوتنګئ نه نجات اوغوښتلو. نو هغوئ ته جواب ملاؤ شو چه امداد ډير نزدې دې. لکه بل ځاى کښې فرمائى چه ﴿فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾ يقيني طور سختئ سره آسانى ده. بدنى سره بدى ده. يو حديث کښې دى چه بنده کله ناامیده شي نو الله ﷻ تعجب کوى چه زما مدد راورسيدو والا دې او دې ناامیده کيږى. نو الله ﷻ ددوى جلدبازى او دخپل رحمت په نزدې والى باندې خاندى.

يَسْـَٔلُونَكَ | مَاذَا | يُنفِقُونَ | قُلْ | مَآ أَنفَقْتُم
دا خلق تپوس کوى ستانه | چې څه څيز | خرچ کړى هغوئ | اورته اووايه | څه چې خرچ کوئ تاسو
(اې زما محبوبه!) ستانه خلق تپوس کوى چې څه خيرات کړو؟ ورته اووايه چې هرڅه دخپل وس مطابق په

مِّنْ خَيْرٍ | فَلِلْوَالِدَيْنِ | وَالْأَقْرَبِينَ | وَالْيَتَٰمَىٰ | وَالْمَسَٰكِينِ
دمال نه | نوخرچ کړئ دپاره دمور پلار | اودپاره درشته دارانو | اودپاره ديتيمانو | اودپاره دمسکينانو
خيرات کښې ورکوئ | نو مورپلار، .........خپلوخپلوانو، ......يتميانو، ..........مسکينانو

وَابْنِ السَّبِيلِ | وَمَا تَفْعَلُوا | مِنْ خَيْرٍ | فَإِنَّ اللَّهَ | بِهِ عَلِيمٌ
او دپاره دمسافرانو | اوهغه چې کوئ تاسو | د نيکئ نه | نوبيشکه الله | په هغې خبردې
اومسافروته ئې ورکوئ | اوتاسو چې دنيکئ په غرض څه ورکوئ نوهغه الله ته معلوم وى

قوله تعالى: - يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ ۖ قُلْ مَآ أَنفَقْتُم مِّنْ خَيْرٍ

**دخيرات حقدار:** حضرت مقاتل رحمه الله فرمائى چه داآيت دنفلى خيرات باره کښې دى. (١) حضرت سدى رحمه الله فرمائى چه داآيت د زکوة آيت منسوخ کړو. خودا قول لږدغور طلب دې. مطلب د آيت دا دې چه اې نبى ﷺ! خلق تاسو نه تپوس کوى چه هغوئ څنګه خرچ کړى. تاسو دوى ته اووائې چه تاسو هغه خلقو سره ښه سلوك اوکړئ چه دکوم بيان اوشو. حديث شريف کښې دى چه خپلې مور سره ښه سلوك اوکړه، اوخپل پلار سره او خپلې خور سره او خپل رور سره، بيا درجه په درجه نزدې خلقو سره. (٢)

حضرت ميمون بن مهران رحمه الله چه کله دا حديث بيان کړو نو دا آيت ئې تلاوت اوفرمائيلو. او وې فرمائيل چه هم دا خلق دى چه دوى سره مالى سلوك کول پکار دى او په دوى باندې خرچ کول پکاردى. او په ډولکو، باجو، تصويرونووالو، او په ديوالونو باندې کپړې آويزانده کولو والو باندې (مه خرچ کوئى). (٣)

قوله تعالى: - وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ

بيا ارشاد فرمائى چه تاسو کوم يو نيك کار کوئى دهغې علم الله ﷻ ته دې اوپه دې باندې بهترينه بدله به هغه پاك ذات درکوى. هغه ظلم نه کوى.

كُتِبَ | عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ | وَهُوَ | كُرْهٌ | لَّكُمْ | وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا
فرض کړې شوې دې | په تاسو باندې جهاد | او داحکم | ناخوښه دې | تاسو ته | اوکيدې شى چې تاسو نه خوښوئ
تاسوته دجهاد حکم درکړې شوې دې | حال دا چه دا ستاسوناخوښه دې | اوتاسوبه يو څيزبد ګڼرئ

(١) ابن ابى حاتم: ٢/٦١٩.
(٢) حاکم: ٣/٦١١.
(٣) ابن ابى حاتم: ٢/٦٢٠.

| شَيْئًا | وَّهُوَ | خَيْرٌ | لَّكُمْ | وَعَسٰٓى | اَنْ تُحِبُّوْا شَيْئًا | وَّهُوَ | شَرٌّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| یو څیز | حالانکه هغه | بهتر وی | ستاسو دپاره | او کیدی شی | چی تاسو خوښوئ یو څیز | حالانکه هغه | شروی |

....خو هغه به ستاسو دپاره بهتر وی | او تاسو به یو څیز خوښ ګڼړئ خو هغه به ستاسو دپاهر بد وی

| لَّكُمْ | وَاللّٰهُ | يَعْلَمُ | وَاَنْتُمْ | لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۱۶﴾ |
|---|---|---|---|---|
| ستاسو دپاره | او الله | پوهیږی | او تاسو | نه پوهیږئ |

....او الله پاک ښه پوهیږی | او تاسو نه پوهیږئ |

**قوله تعالی:- كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ**

**د جهاد فرضیت**:-داسلام دښمنانو نه دین اسلام بچ کولو دپاره دجهاد فرضیت په دې آیت کښې فرض کیږی.حضرت زهری رحمه الله فرمائی چه جهاد په هر سړی باندې فرض دې.که جنګ ته اوځی اوکه اونه خی یاناست وی.په ناستی والو باندې لازم دی چه کله ددوی نه مدد اوغوښتلې شی نودوی مددکوی. هرکله چه دوی ته فریاداوکړې شی نو دوی فریاد آوری.هرکله چه دوی لره میدان ته راوبللې شی نو دوی راوځی.صحیح حدیث کښې دی چه کوم سړې مړشی او ده جهاد نه وی کړې او نه ئې په خپل زړه کښې دجهاد اراده کړې وی نودې به د جاهلیت په مرګ باندې مری.(۱) اوحدیث کښې دی چه د فتح مکه نه پس هجرت پاتې نشو،خو د جهاد نیت موجود دې،اوکله چه تاسو ته جهاد ته دوتلو دپاره اووئیلې شی نو د جهاد دپاره اوځئ:دا حکم نبی کریم ﷺ د فتح مکه په ورځ فرمائیلې وو.(۲)

**قوله تعالی:- وَعَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْئًا وَّهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ**

**په جهاد کښې ستاسو کامیابی ده**:- بیا فرمائی چه تاسو باندې به دجهاد حکم ګران وی او په دې کښې به تاسوته مشقت او تکلیف وی،ځکه چه ممکن ده چې تاسو قتل هم کړې شئ،ممکن دی چه زخمی شئ،بیا د سفر تکلیف اود دښمنانو ویره وغیره.لیکن په دې پوهه شئ چه ممکن دی چه تاسو به یو څیز بداوګڼړئ اوستاسودپاره به هغې کښې خیر وی.ځکه چه هم پدې به ستاسوغلبه وی اودښمن شکست وی.ددوی مالونه،ددوی ملک،بلکه ددوی بچې به ستاسو قدمونوته راشي.او دا هم کیدیشی چه تاسو خان دپاره یو څیز ښه اوګڼړئ او هغه ستاسو دپاره ښه نه وی.عام طور داسې کیږی انسان یو څیز لره خوښوی لیکن فی الواقع نه په هغې کښې مصلحت وی او نه په کښې خیروبرکت وی.دا شان تاسو جهاد ښه نه ګڼړئ لیکن په اصل کښې هغه ستاسو دپاره زبردسته کامیابی ده.ځکه چه په دې سره به په دښمن غالب راشئ:او دنیا کښې به تاسو ته د قدم کیخودو ځائې هم ملاویږی.دټولو کارونود انجام علم صرف الله ﷻ ته دی.هغه ته پته ده چه کوم یو کار ستاسو دپاره د انجام لحاظ سره ښه دې.او کوم یو خراب دې.هغه د هغه کار تاسوته حکم کوی چه کوم کښې ستاسو د دوارو جهانونو بهتری وی .تاسو د هغه ذات احکام زړه سره قبول کړئ.او د هغه ذات هر حکم په خوشحالئ سره اومنئ:او هم په دې کښې ستاسو بهتری ده.

| يَسْـَٔلُوْنَكَ | عَنِ | الشَّهْرِ الْحَرَامِ |
|---|---|---|
| دا خلق تپوس کوی ستانه | په باره | دمیاشتې معززې کښې |

| ستانه خلق تپوس کوی چې د په معززو میاشتو کښې |

۱) صحیح مسلم کتاب الامارة ذم من مات ولم یغزو: ۱۹۱۰،بلفظ (( مات علی شعبة من نفاق) ابوداود: ۲۵۰۲،نسائی: ۳۰۹۹)-

۲) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب لفضل الجهاد والیسر: ۲۷۸۳،صحیح مسلم: ۱۸٦٤،ابوداود: ۲٤۸۰،ترمذی: ۱۵۹۰،نسائی: ٤۱۷٤)-

قِتَالٍ فِيهِ ؕ قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ ؕ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيلِ اللهِ
دجنگ کولو| په دې کښې |ورته اووايه| چې جنګ کول| په دې کښې| لويه ګناه ده|خو منع کول | دلارې دالله نه
جنګ کول څنګه دی| ورته اووايه چې پدې مياشتو کښې جنګ کول ډېر سخت جرم دې |خودالله دلارې نه خلق منع کول

وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۙ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ
اوکفر کول دالله سره| او منع کول خلقو لره دمسجد حرام نه| اوويستل د وسيدونکو دحرم|دحرم نه زياته لويه ګناه
اودالله نه انکار کول اودمسجد حرام(کعبې) لاربندول اودهغه خاني خلق(دملک نه)شړل ډېرلوئې جرم دې

عِنْدَ اللهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ؕ وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ
ده په نزدالله | او فتنه(شرک) |زياته سخته ګناه ده |دجنګ نه|او هميشه به هغوئ |چه جنګيږې به تاسو سره
دالله په نزد(دجنګ نه) | اودا فتنه د قتل نه ډېره لويه ده| اودوی خوبه درسره برابر ترهغه وخت جنګيږي

حَتَّى يَرُدُّوكُمْ عَنْ دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا ؕ وَمَنْ
تردې پورې| چې واپس کړي تاسو|د دين ستاسو نه| که وس اورسي دهغوئ| او هغه څوک
.که وس ئې اوشي نو چې ددين (اسلام)نه مو واړوئ| اويادساتئ څوک

يَرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُولَٰئِكَ
چې واپس شو| ستاسو نه | ددين خپل نه|او هغه مړ شو | او حال دا چې هغه کافر وو|نو دغسې کسان چې دی
چه په تاسو کښې دخپل دين نه اوګرځيدو | اوبيا په حالت د کفر کښې مړشي| نو دهغوئ

حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۚ وَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۚ
ضائع شول | عملونه دهغوئ | په دنيا | او په آخرت کښې| او دغه کسان| خاوندان | داور دی
عملونه په دنيااوآخرت کښې ضائع شول |............دغه خلق دوزخيان دی

هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۞ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ
هغوئ به | په هغې کښې| هميشه وی|بيشکه چې کومو خلقو| ايمان راوړي دې| او چې کومو خلقو
اوټول عمر به دوزخ کښې پراته وی|.........بيشکه چاچې ايمان راوړي دې ........اوچاچې

هَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللهِ ۙ أُولَٰئِكَ يَرْجُونَ
هجرت کړې دې | او جهاد ئې کړې دې | په لار دالله کښې| دغه کسان | اميد لری|
دالله په لار کښې وطن پريخودې دې اوجهادئې کړې دې |..........هغوئ.........برابر اميد لری

رَحْمَتَ اللهِ ؕ وَاللهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۞
درحمت دالله | اوالله معاف کونکې دې|رحم کونکې دې|
دالله پاک دمهربانئ|اوالله پاک بښونکې اومهربان دې|په هغوئ به رحمتونه ورو‌ی |

**قوله تعالي:- يَسْئَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ**

**د ايت شان نزول:**-نبی کريم ﷺ يو جماعت اوليږلو اوددې امير ئې حضرت ابوعبيده بن جراح ﷛ مقرر کړو.هرکله چه روانيدلو نو دنبی کريم ﷺ په جدائی ئې اوژړل.نبی کريم ﷺ دې ايسار کړو او دده په ځائې ئې حضرت عبدالله بن جحش ﷛ دلښکر سردار مقرر کړو.او هغوئ ته ئې يو ليکلې خط ورکړو اووې فرمائيل چه تر کومې پورې بطن نخله ته اونه رسې نو دا خط مه وايه.او هلته رسيدو سره دا مضمون اووايه او خپلو ملګرو کښې هيڅوك خان سره په تلو مه مجبوروه.حضرت عبدالله بن جحش ﷛ دايومختصر شان جماعت واخستلو او روان شو او هغه مقام ته اورسيدو او فرمان نبوی ﷛ ئې اووئيلو او ((انا لله)) ئې اووئيل او وې وئيل چه ما د نبی کريم ﷺ فرمان لره اووئيلو.او څه فرمانبردارئ دپاره تيار يم.اوبيائې خپلو ملګرو ته بيان کړواو واقعه ئې ورته بيان کړه.دوه سړی خو واپس لاړل.ليکن باقی ټول ورسره په تګ راضی شو.مخکې چه لاړل نو ابن الحضرمی دوی اوليدو.او دوی ته علم نه وو چه دا د جمادی الاخری آخری ورځ ده،يا درجب ړومبئ ورځ ده نو دوی په هغه باندې حمله اوکړه.په دې حمله کښې ابن الحضرمی اووژلې شو.اود صحابه کرامو ﷛ يو جماعت هلته نه واپس شو.اوس مشرکانو په مسلمانانو اعتراض کول شروع کړو چه اوګورئ مسلمانانو د حرمت په مياشتو کښې جنګ او قتل هم اوکړو.نو دې باره کښې دا آيت نازل شو.(ابن ابی حاتم) (¹)

**د دې وړلې شرکاء:**-يو بل روايت کښې دی چه پدې جماعت کښې حضرت عماربن ياسر ﷛،حضرت حذيفه بن عتبه بن ربيعه ﷛،حضرت سعد بن ابی وقاص ﷛،حضرت عتبه بن عزوان سلمی ﷛ او حضرت سهيل بن بيضاء ﷛ او حضرت عامر بن فهيره ﷛ اوحضرت واقدبن عبدالله يربوعی ﷛ وو.

**د عبدالله بن جحش ﷛ اعلان:**- بطن نخله ته په رسيدو حضرت عبدالله بن جحش ﷛ صفا فرمائيلی وو چه کوم سړې دشهادت خواهش مند وی نوهغه دې رامخکښې شی.دلته نه واپس تلونکو کښې حضرت سعدبن ابی وقاص ﷛ او عتبه ﷛ وو.دوی سره د نه تلو وجه داوه چه ددوی اوښ ورك شوې وو اوددې په لټون کښې پاتې شو.مشرکانو کښې حکم بن کيسان،عثمان،عبدالله وغيره وو.دحضرت واقد دلاسه عمروقتل شو او دې جماعت مال غنيمت واخستلواو واپس شو.داړومبې غنيمت ووچه مسلمان صحابه کرامو ﷛ ته ملاوشو.اودا بهادر جماعت دوه قيديان او مال غنيمت سره واپس شو.مشرکانو د مکې د قيديانو فديه ورکول اوغوښتل او هغوئ دا اعتراض ئې اوکړو چه اوګورئ که نه د حضرت نبی ﷺ دعوی خو دا ده چه هغه د رب العالمين اطاعت ګزار دې.ليکن د حرمت دمياشتو هيڅ حرمت نه ساتی.اود رجب په مياشت کښې جنګ جګړې کوی.مسلمانانوئيل چه مونږ رجب کښې قتل نه دې کړې.بلکه جمادی الاخری کښې مو جنګ کړې دې.حقيقت دا دې چه هغه د رجب ړومبئ شپه او د جمادی الاخری آخری شپه وه.رجب شروع کيدوسره توری په خپلو ميانونو کښې وې.د مشرکانو ددې اعتراض جواب په دې آيت کښې ورکولې شی چه دا رښتيا دی چه په دې مياشتو کښې جنګ حرام دې ليکن ائې مشرکانوستاسو بدئ خو په دې کښې نورې هم زياتې دی.تاسودالله ﷻ نه انکار کوئی او زما نبی او د هغه ملګری د مسجد نه منع کوئی.او تاسو هغوئ د هغه ځائې نه اوويستل نو په خپلو بدو باندې نظر واچوئی چه دا څومره بدترين کارونه دی.هم په دې حرمت والامياشتو کښې مشرکانو مسلمانان د بيت الله شريف نه منع کړې وو.او نبی کريم ﷺ مجبوراً واپس شوې وو.راتلونکې کال کښې هم په دې حرمت والا مياشتو کښې الله ﷻ دخپل نبی ﷺ په لاس مکه فتح کړه.اودمسلمانانو پوره قبضه هلته راغله.اوس اعتراض کوی او دوی ته په دې باندې جواب ورکړې شو.عمروبن الحضرمی چه

---

(¹) ابن ابی حاتم: ۲/٦۲۸،ح/۲۰۲۲)-.

قتل شوې وو دې دطائف نه مکې ته راتلو.اګر چه درجب میاشت راختلې وه خو صحابه کرامو ﷺ ته معلوم نه وو.او دوی دا ګنړل چه دا جمادی الاخری آخری شپه ده.

یویل روایت کښې دی چه حضرت عبدالله بن جحش ﷺ سره اته کسان وو.اووه خو هغه چه دکومو نومونه پورته بیان شو.اتم حضرت رباب اسدی ﷺ وو.دوی د بدراولی نه په واپسی نبی کریم ﷺ لیږلی وو.داټول مهاجر وو.په دوی کښې یو هم انصاری نه وو.د دوو ورځو سفر نه پس د نبی کریم ﷺ خط مبارك نې لوستلې وو.چه په هغې کښې تحریر وو چه څمادا خط اولوله او مکې او طائف مینځ ته ورشه اوهلته ایسار شه اودقریشود قافلې انتظار اوکړه او دهغوئ خبرونه معلوم کړه او ماته نې راورسوه. هر کله چه دا بزرګان ددې ځائې نه روان شو نو ټول په ټوله روان شوی وو.دوه صحابه کرام ﷺ چه داوښ لټولودپاره ایسار شوی وو،هغوئ هم دلته نه ورسره روان شو.خودفرع دپاسه معدن علاقې ته اورسیدل او نجران کښې دوی داوښانو تلاش کولوپه وجه هغوی ایسار شو.دقریشو دې قافلې سره دزیتون وغیره تجارتی سامان وو.دمشرکانو نه علاوه چه دکومو نومونه پورته بیان شو،نوفل بن عبدالله وغیره هم وو.مسلمانان مخکښې خو ددوی په کتلو سره ویریدل خو بیائې دا مشوره اوکړه که دوی پرېښودې شی نو دې شپې نه پس به دحرمت والا میاشت راشی نو مونږبه بیا هیڅ اونکړې شو .دوی شجاعت او خوانمردئی سره حمله اوکړه.

**د عمروبن خضرمی قتل:-** حضرت واقد بن عبدالله ﷺ خو عمرو حضرمی په داسې غشی اوویشتلو چه هغه بالکل ددې دنیا نه لاړو.عثمان او حکم ئې قید کړو.اومال وغیره ئې راوړل او دحضرت نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.په لار کښې ورته دلښکر سردار ونیلی وو چه په دې مال کښې خو پنځمه حصه د الله ﷺ درسول ﷺ ده.او داحصه بیله کیخودې شوه.او باقی صحابه کرامو ﷺ باندې تقسیم کړې شو.ترهغه وخته پورې داحکم نه وو نازل شوې چه غنیمت مال نه به پنځمه حصه ویستل پکار دی هرکله چه دالښکر دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نو نبی ﷺ ددوی په واقعه آوریدو سره خفه شو.او وې فرمائیل چه ما تاسو ته دحرمت په میاشتو کښې د جنګ کولو کله ونیلی وو ؟ نو تاسو خو نه د قافلې څه مال واخستواونه مویو قیدی اونیولو.د حضرت نبی ﷺ په دې قول او فعل سره مسلمان ډیرپښیمانه شول.او دخپلو ګناهونو یقین ورته اوشو.

**د قریشو پیغور ورکول:-**بیاورته قریشو پیغورورکول شروع کړل چه انې محمد ﷺ تاسواو ستاسو ملګری دحرمت په میاشتو کښې هم د جنګ جګړو نه نه منع کیږی.بل طرفته یهود یو بد فال ویستلو،چونکه عمرو قتل کړې شوې وو نو هغوئ اونیل چه ﴿ عمرت الحرب﴾ جنګ به تر ډیرې مودې پورې وی.دده دپلار نوم حضرمی وو.ددې نه دوی فال ویستلو چه ﴿ حضرت الحرب ﴾ د جنګ وخت راغلو.د قاتل نوم واقد ﷺ ور.دوی اوونیل چه ﴿ اوقدالحرب ﴾ دجنګ اور اولړیدو.لیکن قدرت ددې خلاف اوکړل.او نتیجه دټولو مشرکانو خلاف شوه.او د دوی د اعتراض په جواب کښې دا آیت نازل شو.فرض که جنګ د حرمت په میاشتو کښې هم شوې وی نو ددې نه ستاسو بدکارئی ډیرې زیاتې دی.ستاسو دا فتنه چه تاسو دالله ﷺ ددین نه دمسلمانان دمرتد کولو ډیرې هلې ځلې کوئی،دا ددې قتل نه هم زیات دی.حالانکه تاسو نه ددې کارونو نه منع کیږی،او نه توبه اوباسئ او نه په دې باندې شرمیږئی.

**د ایاتونو د نزول نه پس عمل:-** ددې آیتونو دنازلیدو نه پس مسلمانان د غم نه آزاد شول.او نبی کریم ﷺ قافله اوقیدیان په خپله قبضه کښې واخستله.قریشوبیا نبی کریم ﷺ ته قاصداولیږلو ددې دواړو قیدیانو فدیه واخلې:خو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه زما دواړه صحابه کرام حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ او حضرت عتبه بن غزوان ﷺ چه کله راشی نو بیا راشئ،ماته ویره ده چه هسې نه تاسو هغوئ ته تکلیف اورسوئی.هرکله چه هغوئ راغلل نو نبی کریم ﷺ فدیه واخستله او دواړه قیدیان ئې

پرېښودل.حکم بن کیسان ﷺ خو مسلمان شو او د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې پاتې شو.او د بئر معونه په جنګ کښې شهید شو.او عثمان بن عبدالله واپس شو او هم هلته د کفر په حالت کښې مړ شو دې غازیانو چه دا آیت مبارك واوریدو نو ډیر خوشحاله شو او ددوی غم لرې شو کوم چه د نبی کریم ﷺ د خفګان په وجه ووچه دوی دحرمت په میاشت کښې بې ادبی کړې وه،اودنورو صحابه کرام ﷺ په سترګوکښې هم ددوی عزت جوړ شواودکفارو دپیغور نه هم خلاص شو.اوس دوی سره داغم شو چه مونږته به اُخروی اجرملاویږی که نه.مونږ په غازیانوکښې شمیرلې شو که نه.هرکله چه دنبی کریم ﷺ نه داسوالونه اوشو نوددې په جواب کښې دا آیت ﴿ إِنَّ الَّذِينَ ﴾ الخ نازل شو [1]او ددوی امیدونه زیات شو.
داسلام او کفر مقابله کښې دټولو نه مخکښې هم دا حضرمی وژلې شوې وو.دکافرانو وفد د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو.او سوال ئې اوکړو چه دحرمت په میاشتو کښې قتل کول جائز دی که نه.په دې باندې دا آیت ﴿يَسْئَلُونَكَ﴾ الخ نازل شو.هم دا د غنیمت مال وو.چه دټولو نه مخکې دمسلمانانو په لاس راغلو او دټولو نه مخکې پنځه حصه حضرت عبدالله بن جحش ﷺ اوویستله اودا په اسلام کښې باقی وه او دالله ﷻ هم داسې حکم نازل شو.او همدا دوه قیدیان چه د ټولو نه مخکې مسلمانانو قید کړل.دا واقعه په یو نظم کښې هم ادا کړې شوې ده.بعضې وائی چه دا اشعاردحضرت ابوبکر صدیق ﷺ دی،لیکن دا هم ونیلې شوی دی چه دا اشعار پخپله حضرت عبدالله بن جحش ﷺ ونیلی دی چه ددې مختصر لښکر سردار وو،الله ﷻ دې د نه راضی شي.

| يَسْئَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ |
|---|
| دا خلق تپوس کوی ستانه \| په باره دشرابو |
| دوی ستاسونه تپوس کوی د شرابو |
| وَالْمَيْسِرِ قُلْ فِيهِمَآ إِثْمٌ كَبِيرٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ |
| اودجوارئ کښې\| ورته اووایه\|چې په دې دواړوکښې\| ګناه ده\| لویه \|اوفائدې هم دې \| دپاره دخلقو |
| اود جوارئ په باره کښې\| ورته اووایه چې په دې دواړو کښې ډیرغټ نقصان دې \|اود خلقودپاره فائدې هم دی |
| وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا وَيَسْئَلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ قُلِ |
| خو ګناه ددې دواړو\| ډیره زیاته ده \|دفائدې ددې دواړو نه \| او تپوس کوی ستانه\| چې څه خرچ کړی \| ورته اووایه |
| خوددې دواړو نقصان دفائدونه ډیرزیات دې \|اودوی ستاسونه تپوس کوی چې د الله په لار کښې ، څه خرچ کړی ورته اووایه |
| الْعَفْوَ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ |
| چې څه زیات وی \| دارنګې ابیانوی الله \| ستاسو دپاره \| حکمونه دې دپاره چې تاسو\| فکراوکړئ \| |
| هرڅومره چې په آسانتیاکولې شئ\|دغه شان الله پاك تاسوښکاره ښکاره حکمونه بیانوی\|چې تاسو دغوراوفکرنه کاروا خلئ |
| فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَيَسْئَلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَىٰ قُلْ إِصْلَاحٌ |
| په دنیا \|او په آخرت کښې\| اوتپوس کوی ستانه\| په باره دیتیمانوکښې\|ورته اووایه\|چې دخیر ښیګړی کار |
| ددنیااوداَخرت دواړوپه معامله کښې \|اوستانه دیتیمانو په باره کښې تپوس کوی \|ورته اووایه چې څه کښې د هغوئ خیردی |

[1] ابن هشام: ۲/۲۵۲-

| لَهُمْ | خَيْرٌ | وَإِنْ | تُخَالِطُوهُمْ | فَإِخْوَانُكُمْ | وَاللَّهُ | يَعْلَمُ | الْمُفْسِدَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دهغوئ دپاره | ابهتر دي | او كه چري | تاسو شريك شئ سره | انو رونړه دي ستاسو | او الله | اپيژني | فسادكونكي |
| هغه كار بنه دي او كه تاسو خرڅ كښې شريک شئ نو خير دي هغوئ هم ستاسو رونړه دي او الله بدخواه د نيک خواه | | | | | | | |

| مِنَ الْمُصْلِحِ | وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ | لَأَعْنَتَكُمْ | إِنَّ اللَّهَ | عَزِيزٌ |
|---|---|---|---|---|
| داصلاح كونكي نه او كه غوښتلي الله | | انو سختی به ئي كړي وي په تاسو باند | ابيشكه الله | غالب دي |
| نه پيژني ا او كه الله پاک غوښتلي نو تاسو ته به ئي دا خبره سخته كړي وي ابيشكه الله پاک داختيار | | | | |

| حَكِيمٌ ﴿۲۲۰﴾ |
|---|
| اوحكمت والا دي ا ا |
| اوحكمت خاوند دي ا |

**قوله تعالى:-** يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ

**د شرابو حرمت:-** هركله چه د شرابو حرمت والا آيت نازل شو نو حضرت عمر ﷺ اووئيل چه اني الله ﷺ د دي واضح بيان اوفرمايا. په دي باندي دا آيت نازل شو چه ﴿ يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ ﴾ الخ. حضرت عمر ﷺ لره راوبللي شو او هغوئ ته دا آيت مبارك واوروليي شو. حضرت عمر ﷺ بيا هم دا دعا اوكړه چه اني الله ﷺ خمونږ دپاره نور زيات صفا بيان اوكړه. په دي باندي دا آيت نازل شو چه ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى ﴾ الخ. اود هر مونځ په وخت كښې به آواز كيدو چه نشي والا خلق دي مونځ ته نزدي نه راځي. حضرت عمر ﷺ لره راوبللي شو او هغوئ ته دا آيت مبارك واوروليي شو. دوی بيا هم دا دعا اوفرمائيله چه اني الله ﷺ خمونږ دپاره واضح بيان اوفرمايا. په دي باندي د سورة مائده آيت ﴿ إِنَّمَا الْخَمْرُ ﴾ نازل شو. هركله چه فاروق اعظم ﷺ راوبللي شو او ورته دا آيت مبارك واوروليي شو او هركله چه دهغوئ غوږونو ته دا آخري الفاظ ﴿فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ﴾ اورسيدل نودوی اوفرمائيل چه﴿انتهينا انتهينا﴾ مونږ منع شو مونږ منع شو([1])اوګورئ مسند احمد، ابوداود، ترمذی اونسائي وغيره. په ابن ابی حاتم او مردويه كښې هم داروايت دي، ليكن دهغي راوی ابوميسره دي چه دهغه نوم عمرو بن شرحبيل همداني كوفي دي. ابوزرعه رحمه الله فرمائي چه دهغه سماع دحضرت عمر فاروق ﷺ نه ثابته نه ده. والله اعلم.

امام علي بن مديني رحمه الله فرمائي چه ددي اسناد صالح او صحيح دی. امام ترمذی رحمه الله هم دي ته صحيح وائي. ابن ابی حاتم د حضرت عمر فاروق ﷺ نه د ﴿انتهينا انتهينا﴾ قول نه پس دا هم نقل كوی چه شراب مال لره بربادونكي اوعقل لره خبط كوونكي څيز دي. دا روايت او دي سره د مسند روايت دحضرت ابوهريره ﷺ والا به په تفصيل سره دسورة مائده آيت ﴿ إِنَّمَا الْخَمْرُ ﴾ الخ په تفسير كښې راځي، انشاء الله تعالى. اميرالمومنين حضرت عمر فاروق ﷺ فرمائي چه خمرهغه څيز دي چه عقل لره بدل كړي ([2]). ددي پورا بيان به هم په سورة مائده كښې انشاء الله راشي.

**د جوارئ حرمت:-** ﴿ ميسر ﴾ وائي جوارئي ته، ددي ګناه اُخروی وبال دي. اوددي فائده صرف دنياوی ده چه بدن ته څه فائده نفع اورسوی. يا غذا پري هضم شي يا فضله راشي يا بعضي ذهن تيز شي يا يو شان

---

[1] احمد: ۵۳/۱، ابو داود: كتاب الاشربة باب تحريم الخمر: ۳۲۷۰، وسنده ضعيف، ابو اسحاق مدلس راوی اوسماع كښې صراحت نشته دي، ترمذی: ۳۰۴۹، نسائي: ۵۵۴۲).

[2] صحيح بخاری كتاب التفسير باب قوله ( انما الخمر والميسر والانصاب) ۴۶۱۹)-

سرور حاصل شي لکه څنګه چه د حسان بن ثابت دجاهلیت د زماني اشعار دي چه شراب څکلو سره مونږ بادشاهان اودلیرجوړیږو.اودا شان ددې په اخستلو خرڅولوکښې هم نفع اود دې په تجارت کښې هم نفع ده.اودا شان ممکن چه په جوارني کښې ګټه اوشي خو ددې د فوائدو په مقابله کښې د دې نقصانات ډیر دی.څکه چه دې سره دعقل تلل،هوش وحواس بې کاره کیدل ضروري دي.اودې سره د دین بربادیدل هم دی.

دا آیت اګر چه د شرابو دحرمت پیش خیمه وو خوبیا هم په دې کښې صفا صفا حرمت نه دې بیان شوې .ددې وجې حضرت عمر فاروق ﷺ غوښتل چه ښکاره لفظونو کښې دشرابو حرمت نازل شي.او آخر د سورة مائده آیت مبارك کښې صفا نازل شوچه شراب او جواری او بتان او غشی سره فال اخستل ټول حرام اوشیطانی کارونه دی.آئې مسلمانانو که تاسو د نجات غوښتونکی یئ نو ددې نه منع شئ.د شیطان تمنا ده چه د شراب او جوارئ په ذریعه تاسو کښې دشمنی او بغض راولی.او تاسو د ذکر الله اومونځ نه منع کړي.اوس به هم تاسو دشیطانی کارونو نه منع شئ؟ ددې پوره بیان به انشاء الله په سورة مائده کښې راشی.تابعین مفسرین فرمائی چه دشرابو باره کښې رومبې دا آیت نازل شو،بیا دسورة نساء آیت نازل شو.بیا دسورة مائده آیت نازل شو او شراب مکمل طور حرام شو.(۱)

**قوله تعالی:-** وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ ۖ قُلِ الْعَفْوَ ۗ

**دعفو معنی:-** د(قُلِ الْعَفْوَ) یو قرات داهم دې او دواړه قراتونه صحیح دی.معنی ئې نزدې نزدې او یو کیدې شي.حضرت معاذبن جبل ﷺ او حضرت ثعلبه ﷺ رسول الله ﷺ لره راغلل او تپوس ئې اوکړو چه یارسول الله څمونږ غلامان هم دی او بچی هم دی،او مونږ مالدار هم یو،نو څه دالله ﷺ لار کښې خرچ کړو؟نوددې په جواب کښې (قُلِ الْعَفْوَ) اوونیلې شو.یعنی څه چه دبچو دخرچ نه پس پاتې شی،ډیر صحابه کرامو ﷺ اوتابعینو نه د دې هم داتفسیر مروی دې.حضرت طاؤس ﷺ فرمائی چه په هر څیز کښې لږ لږ دالله ﷺ په لار کښې خرچ کوئی.ربیع ﷺ فرمائی چه افضل او بهتر مال دالله ﷺ په لار کښې خرچ کوئی.دټولو اقوالو خلاصه داده چه دضرورت نه زیات څیز دالله په لار کښې خرچ کوئی.

**په انفاق فی سبیل الله کښې میانه روی:-** حضرت حسن ﷺ فرمائی چه داسې مه کوئی چه هر څه خرچ کړئی.بیا پخپله سوال کوئی.صحیح مسلم کښې دی چه یو سړی نبی کریم ﷺ ته اوونیل چه یارسول الله ﷺ! ماسره یو دینار دې،نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په خپل کار کښې ئې راوله.هغه سړی اوونیل چه ماسره یو بل هم دې.نبی کریم ﷺ اوونیل چه په خپله ښځئ ئې خرچ کړه.هغه اوونیل چه یو بل دې،نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په خپلو بچو ئې خرچ کړه.هغه اوونیل چه یوبل هم دې.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوس ته خپله خصمانه کولې شې.(۲)

**دخرچ کولو طریقه:-** مسلم شریف کښې یو بل حدیث دې چه نبی کریم ﷺ یو سړی ته اوفرمائیل چه دخپل نفس نه شروع کړه.رومبې په هغه باندې خرچ کړه.بیا که پاتې شی نو په بچو باندې،بیا که پاتې شی نوپخپلو رشته دارو باندې،بیاکه هم پاتې شی نو په نورو حاجتمندو باندې.(۳)په دې کتاب کښې یو بل حدیث دې چه دټولو نه افضل خیرات هغه دې چه هغه انسان دخپل خرچ مطابق کوی او باقی پاتې څیز دالله ﷺ لار کښې خرچ کړی.او پورتنې لاس دلاندې لاس نه افضل دې.مخکې هغوئ ته ورکړه چه دڅوم خرچ ستا په ذمه دې.(۴)

---

۱) الطبری: ۳۳۱/۳-

۲) ابوداود کتاب الزکاة باب فی صلة الرحم: ۱۶۹۱،وهو حسن مسلم: ۹۹۵،نحوالمعنی)-

۳) ابوداود کتاب الزکاة باب الابتداء فی النفقة بالنفس : ۹۹۷،نسائی: ۴۶۵۶)-

۴) صحیح بخاری کتاب النفقات باب وجوب النفقة علی الاهل....۵۳۵۵،من حدیث ابی هریرة صحیح مسلم: ۱۰۳۴،عن حکیم بن حزام

**بنيادم ته خطاب:-** يو بل حديث كښې دى چه انې ابن ادم ! چه څه تاسره دخپل ضرورت نه زيات دى هغه دالله ﷻ په لار كښې خرچ كړه دا ستا دپاره بهتر ده.او ددې ايسارول ستا دپاره نقصان دې.او د خپل ضرورت مطابق خرچ كولو كښې په تاسو باندې هيڅ ملامتيا نشته دې.(۱) د حضرت ابن عباس ﷺ يو قول هم مروى دې چه دا حكم دزكوة حكم سره منسوخ شو.حضرت مجاهد ﷫ فرمائى چه د زكوة آيت گويا ددې آيت تفسير او ددې واضح بيان دې،صحيح قول هم دا دې.

**قوله تعالى:-** كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ۙ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ

**دنيا او اخرت كښې فكر كول:-** بيا ارشاد فرمائى چه څنگه دا احكام واضح شو،او ښكاره ښكاره مونږ بيان اوفرمائيل،داشان مونږ باقى احكام هم وضاحت او تشريح سره بيانوو.وعده باندې او وعيد هم صفاطور ښكاره بيان شى.چه تاسو دفانى دنيا نه بې رغبته شئ او آخرت طرفته متوجه شئ چه هميشه باقى پاتې كيدونكې دې.حضرت حسن ﷺ ددې آيت تلاوت اوكړواو وې فرمائيل چه والله چه څوك غور اوتدبر كوى چه دنيا د مصيبتونو كور دې او د دې انجام فنا ده او آخرت د جزا كور او بقا كور دې.حضرت قتاده ﷫ فرمائى چه غور او فكر كولو سره ښكاره معلوميږى چه دنيا ته په آخرت باندې څومره فضيلت حاصل دې.نو عقل مندو ته پكار دى چه د آخرت دښيگړې جمع كولو كوشش كښې مشغول اوسى.

**قوله تعالى:-** وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى ؕ قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ ؕ

**ديتيم د مال حفاظت او حكم:-** بيا ديتيم باره كښې احكام نازليږى،حضرت ابن عباس ﷺ فرمائى چه دا حكم شوې وو چه ﴿وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ اِلَّا بِالَّتِىْ هِىَ اَحْسَنُ﴾ يعنى ديتيم مال ته نزدې مه ورځئ مگر په دې طريقه چه بهترينه وى او فرمائيلې شوى وو ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا اِنَّمَا يَاْكُلُوْنَ فِىْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا ؕ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيْرًا۝﴾ يعنى چه كوم خلق ظلم سره ديتيم مال خورې.هغوئ په خپلو خيټو كښې اور اچوى.او نزدې ده چه په لمبه شوى اور كښې به واچولې شى.ددې په آوريدو سره هغه خلقو ديتيمانو ديتيمانو خوراك كول اودهغې څكل اود خپل كور خوراك څكاك او اوبه جدا كړې.اوس كه به د هغوئ دكور خوراك پاتې شو نو هغه خو به نې يا هلته پريښودو او يا به خراب شو او داشان به يتيمانوته نقصان اوشو.بل طرفته د يتيمانو واليان هم تنگ شو چه تركومې به داشان په كوركښې كيخودل راكيخودل كوى.نودې خلقو نبى كريم ﷺ ته عرض اوكړو نوپه دې باندې دا آيت نازل شو چه ﴿ قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ ﴾ الخ.او نيك نيتئ او ديانتدارئى سره دهغوئ مال خپلو مالونو سره يو ځائې كولو دپاره اجازت دې.ابوداود اونسائى وغيره كښې دا موجود دى (۲)او دسلفو يو لوئې جماعت ددې شان نزول هم دا فرمائى.

حضرت صديقه ﷝ فرمائى چه د يتيم دمال د ذرې ذرې مال پرورش كول سخته خبره ده چه دهغه خوراك بيل كړې شى،دهغه څكاك بيل كړې شى.د﴿ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ ﴾ نه هم دا جداوالې مراد دې.ليكن بيا ﴿وَاِنْ تُخَالِطُوْهُمْ﴾ فرمائى او دخوراك څكاك د يو ځائې كيدو اجازت وركړې شو.ځكه چه هغوئ هم دينى رونړه دى.خو نيت نيك پكار دې.قصد او اراده كه يتيم ته نقصان رسول وى نو هغه هم دالله ﷻ نه پټ نه دى.اوكه مقصد ئې ديتيم سره ښيگړه وى او دهغه دمال نگرانى وى نو داهم الله ﷻ ته ښه پته ده.

**قوله تعالى:-** وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَعْنَتَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ۝

**الله خپل مخلوق مشقت كښې نه اچوى:-** بيا فرمائى چه الله ﷻ تاسو لره په مشقت او تكليف كښې نه

---

(۱) ......نسائى: ۲۵۴۴)-

(۱) ابوداود كتاب الزكاة باب بيان ان اليد العلياء خير من اليد السفلى : ۱۰۳۶،ترمذى: ۲۳۴۴)-

(۲) ابو داود كتاب الوصايا باب مخالطة اليتيم فى الطعام: ۲۸۷۱،،نسائى: ۳۶۹۹)-

اچوي. چه کومه تنګی اومشکل تاسو باندې دیتیم د مال په جدا ایښودلو کښې وو هغه الله ﷻ لرې کړه اوتاسو باندې ئې آسانتیا راوسته.او یوه کټوئ ساتل او یو ځائې کار کول ستاسو دپاره مباح اوګرزولې شو.بلکه دیتیم سرپرستی که فقیر اومسکین محتاج وی نوددستور مطابق پخپل خرچ کښې راوستلې شي.او که یو مالدار دضرورت په وخت کښې دهغه څیز استعمال کړو نو بیا دې ادا کړي. دا مسائل به انشاء الله وضاحت سره دسورة نساء په تفسیر کښې راشي.

وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ ۭ وَلَاَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ

اومه اخلئ په نکاح|مشرکی ښځې| تر هغې پورې| چې ایمان راوړي| اوویںځه مومنه|

|اومشرکو ښځو سره ترهغې وخته نکاح مه کوئ ترڅوچې ایمان رانه وړي|اومؤمنه وینځه

خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكَةٍ وَّلَوْ اَعْجَبَتْكُمْ ۚ وَلَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ

بهتره ده|دمشرکی ښځې نه|اګرکه هغه ډیره خوښه وی ستاسو|اومه ورکوئ په نکاح| مشرکانو سړو له

ښه ده دمشرکې نه |اګرکه هغه (دمال او ښائست په وجه)ستاسوخوښه وی| اوخپلې جیونکۍ مشرکانو ته نکاح کوئ

حَتّٰى يُؤْمِنُوْا ۭ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ وَّلَوْ اَعْجَبَكُمْ ۭ

تردې پورې| چې ایمان راوړي|او یو غلام مومن | بهتردې| دمشرك سړي نه| اګرکه هغه ډیرخوښ وی ستاسو

ترڅوچې ایمان رانه وړی| اومؤمن دمشرک(سیال) نه ښه دې اګر که په څه وجه ستاسوخوښ وی

اُولٰٓئِكَ يَدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ ښ وَاللّٰهُ يَدْعُوْٓا اِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِاِذْنِهٖ ۚ وَيُبَيِّنُ

داکسان| رابلی خلق| اور ته | او الله| رابلی خلق جنت ته| اومغفرت ته| په حکم خپل سره | اوبیانوی

دغه مشرکان(ددوزخ) اور ته بلنه ورکوی |اوالله پخپل حکم سره جنت اواسبابود مغفرت ته بلنه ورکوی

اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۲۱﴾

حکمونه خپل| خلقو ته | دپاره ددې چې هغوئ | نصیحت قبول کړي

اوهغه خلقوته حکمونه بیانوی چې هغوئ ترې نه سبق واخلی|

**قوله تعالی:-** وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ ۭ

**مشرکو ښځو سره د نکاح حرمت:-** بت پرستی،مشرکو ښځو سره نکاح کول،ددې حرمت بیانیږی.یعنی د آیت عموم یو خومشرکو ښځوسره دنکاح کولوممانعت باندې دلالت کوی خوبل ځائې کښې فرمان دې چه﴿ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ ﴾ الخ.یعنی ستاسو نه مخکښې چه کوم کتابونه ورکړې شوی وو،دهغوئ پاکو ښځو سره چه نکاح کول جائز دی خو په دې شرط چې د زنا کارئی نه بچ کیدونکې وی دهغوئ مهر ادا کولو نه پس هغوئ سره نکاح کول ستاسو دپاره حلال دی.

حضرت ابن عباس رضی الله عنه قول هم دا دې چه دې مشرکو ښځو نه اهل کتابو مخصوص دی ([1])حضرت مجاهد رحمه الله،حضرت عکرمه رحمه الله،حضرت سعید بن جبیر رحمه الله،حضرت مکحول رحمه الله،حضرت حسن رحمه الله،حضرت ضحاک رحمه الله،حضرت قتاده رحمه الله،زید بن اسلم رحمه الله او ربیع بن انس رحمه الله نه هم دافرمان نقل شوې دې.([2])بعضې وائی چه دا آیت صرف د بت پرستو مشرکوښځو دپاره نازل شوې دې.دا شان وائې

---

[1] الطبری: ۴/ ۳۵۰)-.

[2] ابن ابی حاتم: ۲/ ۶۶۹)-

که هغه شان مطلب نې هم یو دې.والله اعلم.
ابن جریرکښې دی چه نبی کریم ﷺ څو قسمه ښځو سره نکاح کول ناجائز کړی دی سوا د ایماندارو هجرت کوونکو نه.اول خاص کر هغه ښځو سره چه دبل مذهب پابندې وی،هغوئ سره نکاح کول حرام دی.(۱) قران پاك کښې دی چه ﴿ وَمَنْ يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ ﴾ یعنی دکافرانو اعمال برباد دی.
یو روایت کښې دی چه حضرت طلحه بن عبیدالله رحمه الله یو یهودی ښځې سره نکاح کړې وه او حضرت حذیفه بن یمان یو نصرانیه ښځې سره نکاح کړې وه.او په دې باندې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ډیر خفه شو تر دې چه نزدې وو چه هغوئ ته کوړې ورکړی.دې دوارو اوونیل چه انې امیر المومنین تاسو مه خفه کیږی مونږ به هغوئ ته طلاق ورکړو.دوی اوفرمائیل که طلاق ورکول حلال وې نو بیا خو نکاح هم حلال کیدل پکار دی.خه به هغوئ ستاسو نه په زور واخلم او ستاسو نه به نې بیلې کړم.خو دا حدیث غریب دې.اود حضرت عمر فاروق رضی الله عنه نه خو بیخې غریب دې.

**د اهل کتابوښځو سره د نکاح جواز**:- امام بن جریر رحمه الله داهل کتابو ښځې سره نکاح کولو باندې اجماع نقل کړې ده.اودحضرت عمر فاروق رضی الله عنه ددې اثر باره کښې نې تحریر کړی دی چه دا صرف دسیاسی مصلحت لاندې وو چه خلق د مسلمانانو ښځونه بې رغبتی اونکړی اوپه دې عمل کښې څه بله حکمت عملی وه.یو روایت کښې دا هم دی چه کله حضرت حذیفه رضی الله عنه ته دا فرمان ملاؤ شو نو جواب کښې نې اولیکل چه آیا تاسو دا حرام ګنړئ،خلیفة المسلمین جواب ورکړو چه حرام خو ورته نه وایم مګر ماته ویره ده چه هسې نه تاسو مومنو ښځو سره نکاح کول پریږدئ،ددې روایت اسناد صحیح دی.(۲)

**مسلمان کتابیه سره نکاح کولې شی نه د دې په عکس**:- یویل روایت کښې دی چه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه اوفرمائیل چه مسلمان سړې نصرانی ښځې سره نکاح کولې شی.لیکن نصرانی سړې مسلمانې ښځې سره نکاح نه شی کولې.ددې روایت اسناد دمخکې روایت نه زیات صحیح دی.ابن جریر کښې دا مرفوع حدیث هم په سند سره مروی دې وائی چه مونږ اهل کتابو ښځو سره نکاح کوو.لیکن اهل کتاب سړی مسلمانو ښځو سره نکاح نه شی کولې.(۳)ددې سند څه کمزورې دې.خودامت په دې باندې اجماع ده.ابن ابی حاتم کښې روایت دې چه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه داهل کتابو نکاح نه خوښوله او ددې آیت تلاوت به نې فرمائیلو.حضرت امام بخاری رحمة الله علیه دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه دا قول نقل کوی اوفرمائی چه څه ددې شرك نه زیات غټ شرك نه ګورم چه هغه ښځه وائی چه عیسی ددې الله دې (۴).حضرت امام احمد رحمه الله نه ددې آیت مطلب اوپوښتلې شو نو دوی اوفرمائیل چه ددې نه مراد دعربو هغه مشرکې ښځې دی چه بت پرستې وې.

**قوله تعالی**:- وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ

**د مشرک اصیل نه مسلمان غلام ښه دې**:-بیا ارشاد فرمائی چه ایماندارې وینځې سره نکاح د مشرکو آزادو ښځو نه زیاتې ښه ده.دا فرمان حضرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنه باره کښې نازل شوې دې.دده یو تور رنګې وینځې سره واده شوې وو.یو ځل ده په غصه کښې هغه په څپیړه اووهله.بیا دې ویریدو او د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې نې ټوله واقعه بیان کړه.نبی کریم ﷺ ورته اوونیل چه دهغې څه حال دې وې ونیل چه یارسول الله ﷺ ا هغه روژه نیسی،مونځ کوی،ښه طریقې سره اودس کوی،دالله ﷻ دوحدانیت او ستاسو درسالت ګواهی ورکوی.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه انې ابوعبدالله بیا خو هغه ایمانداره

---

(۱) ترمذی: کتاب التفسیر القران باب ومن سورة الاحزاب: ۳۲۱۵،وسنده حسن)-
(۲) ابن جریر: ۲/۲۲۲)-
(۳) الطبری: ۴/۳۲۲)،-
(۴) صحیح بخاری کتاب الطلاق باب قول الله تعالی ( ولا تنکحوا المشرکات.....) ۵۲۵۰)-

ده.ده اوونیل چه انې دالله ﷻ رسوله ﷺ،قسم په هغه الله چه ته نې حق سره رسول لیږلې نې.خه به هغه آزاده کړم او صرف دومره نه بلکه هغې سره به نکاح هم کوم.نو هم داشان اوشو.په دې باندې بعضو مسلمانانو دوی ته پیغور ورکړو.هغوئ غوښتل چه ددې نکاح مشرکانو سره اوکړی او دوی ته خپلې لونړه هم ورکړي چه د نسب شرافت قائم پاتې شي.په دې باندې دا فرمان نازل شو چه مشرکې آزادې ښځې نه خومسلمانه وینځه بدرجها بهتر ده.اوداشان مشرك آزاد سړی نه خو مسلم غلام ډیر زیات بهتر دې.

**په نکاح کښې دینداریٔ ته کتل پکاری دی:-** مسند عبدبن عبید کښې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه صرف دښځو په حسن باندې مه لیونی کیږئ او هغوئ سره ددې په وجه نکاح مه کوئی،ممکن دی چه ددوی حسن دوی لره مغروره کړي.د ښځو د مالداریٔ په وجه هغوئ سره نکاح مه کړئی ممکن دی چه د هغوئ مالداری دوی لره سرکشه کړي.کله چه نکاح کوئی نو دینداری ګورئی.بدصورته توررنګې وینځه هم که دینداره وي نو ډیره بهتر ده.خو ددې حدیث په راویانو کښې افریقي ضعیف دې.

**په نکاح کښې څلور خصلتونو ته کتل:-** بخاري او مسلم کښې دحضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه نبي کریمﷺاوفرمائیل چه یوښځه کښې څلورخبرې ګورئی بیاهغې سره نکاح کوئی.یومال،دویم حسب ،دریم جمال او ښائست،څلورم دین.تاسو دیندارئی ته ترجیح ورکوئی.مسلم شریف کښې دی چه دنیا ټول په ټوله یو متاع ده او د دنیامتاع کښې دټولو نه افضل څیز نیك بخته ښځه ده.

قوله تعالی:- وَلَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِينَ حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا

**خلقو ته احکام بیانول:-** بیا فرمان دې چه مشرکانو سړو ته مسلمانې ښځې په نکاح مه ورکوئی.لکه څنګه چه بل ځانې کښې ارشاد دې چه ﴿ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ ﴾ نه کافرې ښځې مسلمان سړو دپاره دی او نه مسلمان سړي دکافرو ښځو دپاره دی.

قوله تعالی:- وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ

**مومن غلام دمشرک نه افضل دې:-**بیا فرمان دې چه مومن سړی اګر چه غلام وي خوبیا هم هغه د رئیس اوسردار آزادکافرنه بهتر دې.ددې خلقوسره میل جول،ددوی صحبت،ددنیامحبت،ددنیا حفاظت،او ددنیاغوښتنه او دنیاته په آخرت باندې ترجیح ورکول ښائی.اوددې انجام جهنم دی.اودالله ﷻ د فرمان پابندی دهغه داحکام منل دجنت رهبری کوی.دګناهونو دمغفرت ذریعه جوړیږی،الله ﷻ دخلقود وعظ او نصیحت او پندوعبرت دپاره خپل آیتونه واضح طور سره بیان فرمانیلي دي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَسْأَلُونَكَ | عَنِ الْمَحِيضِ | | | |
| او تپوس کوی ستانه | داحکامو دحیض | | | |
| دوئ ستانه دحیض په باره کښې دحکم تپوس کوی | | | | |
| قُلْ | هُوَ أَذًى | فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ | فِي الْمَحِيضِ | وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ |
| ورته اووایه | چې دا حالت دګندګئ دې | نوجدا وسی دښځو نه | په وخت دحیض کښې | اومهٔ نزدې کیږئ هغوئ ته |
| ته ورته اووایه چې دا ګنده څیزدې | نو دحیض په وخت کښې دښځونه په اړخ اوسیږئ | اونزدې کیږئی ورته مه | | |
| حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ | فَإِذَا تَطَهَّرْنَ | فَأْتُوهُنَّ | مِنْ حَيْثُ | أَمَرَكُمُ اللَّهُ |
| تردې پورې چې پاکې شي هغوئ | نوکله چې پاکې شي هغوئ | نو ورځئ هغوئ ته | څنګه چې احکم کړې دې تاسو ته الله | |
| تردې چه پاکې شي | نوهرکله چې ښې پاکې شي | نو بیا ورته د هغه ځائې نه ورځئ | د کوم نه چې درته الله حکم کړې دی | |

| إِنَّ اللَّهَ | يُحِبُّ | التَّوَّابِينَ | وَيُحِبُّ | الْمُتَطَهِّرِينَ۝ | نِسَآؤُكُمْ | حَرْثٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بېشکه الله | خوښوي | توبه ویستونکي | او خوښوي | خان پاك ساتونكي | ښځې ستاسو | خانې دکروندې دي |
| بېشکه الله پاك (دګناهونو نه) توبه ویستونکي کسان خوښوي اوجه پاك اوسيږي استاسوښځې ستاسوپټي دي | | | | | | |

| لَّكُمْ | فَأْتُوا | حَرْثَكُمْ | أَنَّى شِئْتُمْ | وَقَدِّمُوا | لِأَنفُسِكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ستاسو دپاره | نو ورځئ | خانې دکر خپل ته | څه رنګې چې خوښه وي ستاسو | او وړاند فکر کوئ | دپاره دخانونو خپلو |
| نوخپل پټي ته څنګه چې غواړئ هغه شان ورتلې شئ اوخپل خانونو د پاره توبنه مخکښې اولېږئ | | | | | |

| وَاتَّقُوا اللَّهَ | وَاعْلَمُوا | أَنَّكُم | مُّلَاقُوهُ | وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اوخان ساتې دنافرمانۍ دالله نه | اوپوهه شئ | چې تاسو | ملاقات کونکي يئ دهغه سره | اوزېرې ورکړه حکم منونکو ته |
| اوداالله نه ویره کوئ اوپوهه شئ چې تاسو به هغه ته پېښې کيږئ اوداې پيغمبره! مومنانوته دنجات زیرې ورکړه | | | | |

**قوله تعالى:-** وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ ۖ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ فِي الْمَحِيضِ ۖ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ

**د ايت شان نزول:-** حضرت انس ﷺ فرمائي چه يهوديانو به نه حائضه ښځه خان سره خوراك ته پرېښوده اونه به ئې خپل خان سره پرېښوده.حضرات صحابه کرامو ﷺ دې باره کښې دحضرت نبی ﷺ نه تپوس اوکړو،نو ددې په جواب کښې دا آيت نازل شو او حضرت نبی ﷺ اوفرمائيل چه سوا دجماع نه نور هر څه حلال دی.يهودو چه دا واوريدل نو وې وئيل چه د نبی کريم ﷺ غرض خو صرف خمونږ مخالفت دې. حضرت اسيد بن حضير ﷺ اوحضرت عباد بن بشر ﷺ د يهودو دا کلام نقل کړاو وې وئيل چه انې نبی کريم ﷺ بيا خو مونږ ته د جماع اجازت هم راکړئ.ددې په آوريدو سره ددوی مخ مبارك متغير شو .تردې پورې چه نورو صحابه کرامو ﷺ داخيال اوکړو چه ګنې نبی کريم ﷺ ددوی نه خفه شو.هرکله چه دا بزرګان روان شو نو نبی کريم ﷺ ته چا په تحفه کښې پئ راوړل.نبی کريم ﷺ هغوئ پسې سړې اوليږلو چه هغوئ راوبله او هغه پئ په هغوئ باندې اوڅکوه.معلومه شوه چه هغه غصه ختمه شوه ( مسلم )(۱) نو ددې فرمان چه تاسو د ښځو نه بيل اوسئ دحيض په حالت کښې دامطلب شو چه جماع ورسره مه کوئ،څکه چه نورهرڅه حلال دی.داکثرعلماءکرام مذهب دې چه سوا دجماع نه مباشرت جائز دې.

**د جماع نه سوا نور هرڅهٔ کولې شي:** احاديثو کښې دی چه نبی کريم ﷺ به هم په داسې حالتونوکښې ازواج مطهرات سره ملاويدلو ليکن هغوئ به لنګ ترلې وو.(ابوداود) (۲)دعماره ﷺ ترور د حضرت عائشه ﷺ نه سوال کوی که ښځه دحيض په حالت کښې وی او کورکښې د ښځې خاوند يو بستره وی نوڅه به کوی ؟يعنې داسې حالت کښې هغې سره خاوندڅملاستلې شی که نه ؟دوی اوفرمائيل چه واوره!يوځل نبی کريم ﷺ کور ته تشريف راوړو،راتلو سره دخپل مونځ په خانې اودريدلو او په مونځ کښې مشغول شول.ډير وخت تير شو او په دې دوران کښې ماته خوب راغلو،د نبی کريم ﷺ يخنی اوشوه نو نبی کريم ﷺ ماته اوفرمائيل چه دلته راشه،ماورته اووئيل چه انې حضور ﷺ څه خو حيض کښې يم.نو نبی کريم ﷺ ما ته حکم اوکړم چه په خپلو څنګونو باندې کپړه واچوه او بيا زما په پټون باندې ئې خپل رخسار اوسينه مبارکه کيخودله او څملاستو.څه هم په دوی باندې راتيته شوم.نو يخنی

---

(۱) صحيح مسلم كتاب الحيض باب جواز غسل الحائض راس زوجها: (۳۰۲)-

(۲) ابوداود كتاب الطهارة باب فى الرجل يصيب منها مادون الجماع: ۲۷۲،(وسنده حسن)-

څه کمه شوه.او په دې ګرمنى کښې نبى کريم ﷺ ته خوب راغلو.(۱)صلى الله عليه وازواجه واصحابه وسلم.

**د مسروق تپوس**:- حضرت مسروق رحمه الله يو ځل حضرت عائشه رضي الله عنها ته ورغلو او وې وئيل چه (السلام عليکم على النبى وعلى اهله)حضرت عائشه رضي الله عنها جواب کښې اووئيل چه ﴿ مرحباً مرحباً ﴾ او دننه دراتلو ئې اجازت ئې ورکړو.دوى اوفرمائيل چه اې مور بى بى ديوې مسئلې تپوس کوم خو ماته شرم راځى.دوى ورته اوفرمائيل چه واوره څه ستا مور يم او ته زما د ځوئې په ځائې ئې،چه څه تپوس کوې نو تپوس اوکړه،وې وئيل چه سړى لره دخپلې حائضې بى بى سره څه حلال دى ؟ دوى اوفرمائيل چه سوا د شرمګاه نه هر څه جائز دى ( ابن جرير).اونورسندونوکښې هم مختلف الفاظو سره دحضرت ام المومنين رضي الله عنها دا قول مروى دې.د حضرت ابن عباس ﷺ،حضرت مجاهد رحمه الله،حضرت حسن رحمه الله اوحضرت عکرمه رحمه الله فتوى هم دا ده.مقصد دادې چه حائضه ښځې سره ناسته پاسته،ملاسته،خوراك څکاك وغيره امور بالاتفاق جائز دى.

**د عائشې رضي الله عنها حکايت**:- حضرت عائشه رضي الله عنها نه منقول دى چه ماد نبى کريم ﷺ سر مبارك وينځلو.نبى کريم ﷺ زما په غيږې کښې وو او دقران پاك تلاوت ئې کولو.حالانکه څه په حيض کښې اووم.(۲)ما هډوکې چوپلو او حضرت نبى ﷺ هم هغه هډوکې چوپولو.چه ما به اوبه اوڅکلې نو پياله به مې حضرت نبى ﷺ ته ورکړه اوهغوئ به هم په دې پياله سره اوبه اوڅکلې او څه به په هغه وخت کښې حائضه اووم.(۳) ابوداود کښې روايت دى چه زما دحيض دشروع په ورځوکښې حضرت نبى ﷺ ماسره به په يو څادر کښې اوده کيدل.که چرته به د نبى کريم ﷺ کپړه خرابه شوه نو نبى کريم ﷺ به هم هغه هومره ځائې وينځلو.که په بدن مبارك به ئې څه لګيدل نو هغه به ئې هم وينځل.اوبيا به ئې هم په هغه کپړو کښې مونځ کولو.(۴)

**د يو روايت توجيح**:- او دابوداود په يو روايت کښې هم دادى چه حضرت صديقه رضي الله عنها فرمائيل چه کله به څه په حيض کښې اوم نو بسترې نه به اخوا شوم او بورنې ته به راغلم.نبى کريم ﷺ به ما ته نزدې هم نه راتلو ترکومې چه به څه پاکه شوې نه اوم.(۵)نودا روايت محمول دې چه دوى به پرهيز او احتياط کولو.نه داچه محمول وى،حرمت او ممانعت باندې.

**د لنګې دپاسه فائده اخستل**:- بعضې حضرات دا هم فرمائى چه لنګ سره دې فائده اوچتوى.حضرت ميمونه بنت حارث هلاليه رضي الله عنها فرمائى چه نبى کريم ﷺ چه کله خپلې بى بى سره دحيض په حالت کښې ملاويدو نو هغوى ته به ئې حکم کولو چه لنګ اوتړنى.(بخارى).(۶) داشان بخارى اومسلم کښې هم دا حديث حضرت عائشه رضي الله عنها نه مروى دې.نبى کريم ﷺ نه يو سړې سوال کوى چه زما ښځې سره ماله دحيض په حالت کښې څه حلال دى ؟ نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه ته لنګ دپاسه هر څه (ابو داود وغيره) (۷)يو روايت کښې دى چه ددې هم بچ کيدل بهتر دى.(۸) د حضرت عائشه رضي الله عنها،حضرت ابن عباس ﷺ،

---

[۱]) ابوداود کتاب الطهارة باب فى الرجل يصيب منها مادون الجماع: ۲۷۰)-

[۲]) صحيح بخارى کتاب الحيض باب قراة الرجل فى حجر امراته : ۲۹۷،صحيح مسلم: ۳۰۱)-

[۳]) صحيح مسلم کتاب الحيض باب جواز غسل الحائض راس زوجها : ۳۰۱.ابوداود: ۲۶۰،نسائى: ۲۷۴،ابن ماجة: ۶۳۴)-

[۴]) ابو داود کتاب الطهارة باب فى الرجل يصيب منها دون الجماع: ۲۶۹،وسنده حسن نسائى: ۲۸۵)-

[۵]) ابو داود کتاب الطهارة باب فى الرجل يصيب منها دون الجماع: ۲۷۱)-

[۶]) صحيح بخارى کتاب الحيض باب مباشرة الحائض : ۳۰۲،صحيح مسلم: ۲۹۴)-

[۷]) ابو داود کتاب الطهارة باب فى المذى: ۲۱۲ ،وسنده حسن)-

[۸]) (ابو داود : ۲۱۳)-

حضرت سعید بن مسیب رحمه الله، او حضرت شریح رحمه الله مذهب هم دادې.حضرت امام شافعي رحمه الله نه دې باره کښې دوه اقوال دی،چه په کښې يو دا هم دی.داکثرو عراقيانو وغيره هم دا قول دې.دا حضرات فرماني چه دا خو متفقه فيصله ده چه جماع حرام ده،ځکه چه ددې د نزدې والي نه هم بچ کيدل پکار دی چه په حرمت کښې د واقع کيدو نه بچ شی.

**د لنګ دپاسه د فائدې اخستلو حکم**

**مسلک حنفي:-** په تسهيل الهدايه کښې شرح هدايه کښې دی باقی پاتې شوه دا خبره چه دجماع نه سوا دې دښځې نه مزه اخستې شی که نه؟①نوپه دې باره کښې د امام ابوحنيفه،امام ابويوسف،امام شافعی اوامام مالك رحمهم الله مذهب دا دې.چه د نوم نه لاندې تر ګنډو پورې نفع اخستل حرام دی.②او امام محمد اوامام احمد رحمهما الله فرمانی.چه د فرج نه علاوه د بدن هيڅ يوه حصه هم حرامه نه ده.(تسهيل الهدايه (١١ ١٩١)-

**په حيض کښې جماع کولو سره د کفارې حکم:-** دحيض په حالت کښې دجماع حرمت او ددې کار کولو والا امر خو يقيني امر دې.لکه څنګه چه توبه او استغفار کول لازمی دی.ليکن دې سره به کفاره هم ورکوی که نه ؟په دې کښې دعلماء کرام دوه اقوال دی.يو خو دا چه کفاره هم شته دې.مسنداحمد اوسنن کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمانيل چه کوم سړې خپلې حائضې ښځې سره نکاح اوکړی نو هغه دې يو دينار يا نيم دينار صدقه ورکړی.ترمذی کښې دی که وينه سره وی نو يو دينار او زيړه وی نو نيم دينار[1]مسند احمد کښې دی که وينه روستو شوې وی او اوسه پورې لا ښځې غسل نه وی کړې او په دې حالت کښې ددې خاوند دې سره يو ځائې شی نو نيم دينار ګنی پوره دينار.([2])

دويم قول دادې چه کفاره هم نشته دې،صرف د الله ﷻ نه دې استغفار غواړی.د حضرت امام شافعی رحمه الله آخری قول زيات صحيح دې.او صحيح مذهب هم دادې.او جمهور علماء کرام هم ددې قائل دی.چه کوم احاديث پورته بيان شو دهغې نسبت دا حضرات فرمانی چه ددې مرفوع کيدل صحيح نه دی بلکه صيحح هم دادی چه دا موقوف دی.نودا حديث روايتاً مرفوع او موقوف دواړولحاظ سره مروی دې.ليکن داکثرو علماء کرامو تحقيق دې چه صحيح خبره داده چه دا موقوف دې دا فرمان چه تر پورې ښځې پاکې نشی هغوئ لره نزدې مه ورځئ:دا تفسير د دې فرمان نه چه ښځو سره د هغوئ دحيض په حالت کښې بيل اوسئ:ددې نه معلوم شو چه کوم وخت کښې حيض ختم شی بيا نزديکت حلال دې.حضرت امام ابوعبدالله احمد بن محمد بن حنبل رحمه الله فرمانی چه طهر يعنی پاکی دلالت کوی چه اوس دوی سره نزديکت جائز دې.د حضرت ميمونه رضی الله عنها او حضرت عائشه رضی الله عنها دا فرمانيل چه په مونږکښې به کومه يوه هم په حيض کښې وه نو تهبند به نې تړلو.او حضرت نبی ﷺ سره به په څادر کښې اوده کيدله.دا خبره ثابتوی چې دکوم نزديکت نه منع کړې شوې هغه جماع ده.هسې اوده کيدل،کښناستل وغيره ټول جائز دی.

**په حيض کښې جماع کولو باندې د کفارې حکم**

**مسلک حنفي:-** اوکه په حالت دحيض کښې نې وطی اوکړله.①نوتوبه پرې واجب ده.او يودينار يا نيم دينار به صدقه کوی.② اوبعضو فرمائيلی دی.که د حيض په اول کښې نې وطی اوکړله.نو يو دينار به ورکوی.اوکه په آخر دحيض کښې نې وطی کړې وی.نونيم دينار به ورکوی.(تسهيل الهدايه (١١ ١٩١)-

---

[1] احمد: ۳٦۳/۱،ابوداود كتاب الطهارة: باب في اتيان الحائض : ۲٦٤،وهو حصيح ترمذی: ۲۹۰،ابن ماجة: ٦٥٠)-
[2] احمد: ۳٦۷/۱)-

**قوله تعالی:-** فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللَّهُ
**د حیض نه پس د جماع حکم:-** دې نه پس دا فرماني چه د دوی د پاکیدو نه پس دوی ته ورځئ،په دې کښې ارشاد دې چه ددوی د غسل کولو نه پس دوی سره جماع کوئي.امام ابن حزم رحمه الله فرماني ده حیض د پاکوالي نه پس جماع کول واجب دی.ددې دلیل دا لفظ ﴿ فَأْتُوهُنَّ ﴾ دې.چه په دې کښې حکم دې لیکن دا دلیل څه پوخ نه دې.دا امر صرف دحرمت لرې کیدو اعلان دې.او ددې نه سوا هیڅ دلیل دوی سره نشته دې.
**دلته امر د جوب دپاره نه دې:-** علماء اصول کښې بعضې واني چه امر یعنی حکم د مطلق وجوب دپاره دې.ددې خلقو دپاره دامام ابن حزم جواب ډیر مشکل دې.بعضې واني چه دا امر صرف د اباحت دپاره دې.اوددې نه مخکښې ممانعت وارد شوې دې.دا قرینه ده چه امر د وجوب نه واروی.لیکن دا خبره د غور طلب ده،دلیل نه چه کومه خبره ثابت ده هغه داده چه داسې موقع باندې یعنی مخکې منع وه بیا حکم دې نو ړومبې حکم به په خپل اصلی حالت باندې وی.یعنی کومه خبره چه منع کیدونه مخکې پشان وه هم هغه شان به اوس هم وی.لکه قران پاك کښې دی چه ﴿ فَإِذَا انْسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ ﴾ یعنی کله چه حرمت والا میاشتې تیرې شی نو مشرکانو سره جهاد کوئی.او که هغه کار د ممانعت نه مخکې مباح وو نو اوس به هم هغه مباح وی.لکه ﴿ وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا ﴾ کله چه تاسو احرام پرانیزئی نو ښکار کوئی او بل ځای کښې دی چه ﴿ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَوٰةُ فَانْتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ ﴾ یعنی کله چه تاسو مونځ پورا کړئی نو په زمکه کښې خواره شئ.
**تطبیق:-** ددې علماء کرامو دا فیصله ددوی دا مختلف اقوال هم جمع کوی چه امر دوجوب وغیره باره کښې دی.امام غزالی وغیره هم دا بیان کړی دی.اوبعضو آئمه متاخرین هم دا خوښ کړی دی او هم دا صحیح دی.
دامسئله هم یاد ساتل پکار دی چه دټول امت دعالمانو اتفاق دې چه کله د حیض وینه راتلل بندشی موده تیره شی،بیا هم ددې د خاوند دې سره جماع کول حلال نه دی تر څو پورې چه هغه غسل اونکړی خو که معذور وی او د غسل په بدله کښې تیمم کول دې لره جائز وی نو تیمم دې اوکړی.دې نه پس ددې خاوند دې ته ورتلې شی.البته امام ابوحنیفه رحمه الله ددې ټولو عالمانو خلاف دې.هغوئ فرمائی چه کله حیض دزیاتو نه زیاتو ورځو میعاد یعنی لس ورځو باندې بند اوشی او بند شی نو ددې دخاوند دې سره صحبت کول حلال دې اګر چه دې غسل نه وی کړې،والله اعلم.

**په اکثره موده د حیض بندیدو نه پس د غسل نه وړاندې د جماع جواز**

**مسلک حنفی:-** فاضل مفسر رحمه الله چه امام ابوحنیفه ته د کوم قول نسبت کړې دې نو دا صحیح دې البته امام ابوحنیفه ولې دا قول اختیار کړې دې نو د دې دپاره زه د خپل تالیف تسهیل الهدایه عبارت نقل کوم دا په غور سره اوګورئ
اوکه په لسمه ورځ وینه اودریدله.نو دې سره د غسل نه وړاندې وطی کول جائزدی.ځکه چه د حیض وینه د لسو ورځو نه زیاته نه وی.نو معلومه شوه.چه حیض ختم شوې دې.البته دومره ده.چه دغسل نه وړاندې وطی کول مستحب نه دی.دهغه ممانعت دوجې کوم چه په قراءت د تشدید کښې راغلې دې.په قراءت د تشدید کښې یعنی ﴿ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطَّهَّرْنَ ﴾ (دطاء او هاء په شد سره) په دې قراءت کښې مبالغه مطلوب ده.(چه دوی ښه پاکې شی.) او مبالغه (یعنی ښه پاکې) به هله راشی.چه د وینې بندیدونه پس غسل هم اوکړی.دا قراءت اګرچه دواړو صورتونو ته شامل دې.که لس ورځې وی اوکه د لسو نه کمې وی.لیکن فرق به دا وی.که د لسو نه کمه موده باندې وینه اودریدله.غسل به ضروری

وي.دغسل نه وړاندې ورسره وطی کول جائز نه ده.اوکه په لسمه ورځ اودریدله.نو دغسل نه وړاندې هم وطی جائزده.لیکن مستحب دا ده.چه غسل اوکړی.(کذا في تسهيل الهدايه شرح هدايه ۱/۱۹۳).

حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل خو لفظ دې ( یطهرن ) ددې نه مراد دحیض وینه بندیدل دی.او ( تطهرن) نه مراد غسل دې.مجاهد ،حسن،مقاتل،لیث بن سعد رحمهم الله وغیره هم دا فرمائی.([1])

**په مخکښې طرف کښې جماع کول:-** بیا ارشاد دې چه دهغه ځائې نه رازئی چه کوم ځائې درته الله تعالی حکم کړې دې.ددې نه مراد مخکښې والاځائې (فرج) دې.([2]) حضرت ابن عباس رضی الله عنه،حضرت مجاهد رحمه الله وغیره ډیرو مفسرینو ددې هم د امعنی کړې ده چه ددې نه مراد دبچو دپیدائش ځائې دې.ددې نه علاوه بل ځائې یعنی د پاخانې ځائې حرام دې.داسې کولو والاحد نه تیریدونکی دی.صحابه کرام او تابعینو نه هم دا مروی د ی چه ددې مطلب د ادې چه کوم ځائې نه تاسو دحیض حالت کښې منع کړې شوی وې اوس هغه ځائې تاسولره حلال دې.ددې نه صفا ظاهر دی چه د پاخانې ځائې کښې وطی کول حرام دی ددې مفصل بیان هم رازی انشاء الله.

دا معنی هم شوې ده چه دپاکوالی حالت کښې رازئی کله چه هغوئ حیض نه پاکې شی په دې وجه دې نه پس جمله کښې دی چه ګناهونو نه توبه کونکی دې حالت کښې جماع نه د بچ کیدونکی الله تعالی خوښوی او ګندونو او ناپاکو نه بچ کیدونکی د حیض حالت کښې خپلو ښیبیانوسره نه ملاویدونکی دا شان بل ځائې نه بچ کیدونکی دوی سره خپل پروردګاسره محبت ساتی.

قوله تعالى:- نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ

**په مخکښې طرف کښې جماع کول:-** بیا فرمائی چه ستاسو ښځې ستاسو پټی دی یعنی د اولاد ځائې دی.تاسوخپلو پټو کښې څنګه چه هم غواړئی رازئی یعنی ځائې به هم دا وی که څوک روستو نه کوی یا ددې خلاف.

**د یهودیانو غلطه عقیده:-** صحیح بخاری کښې دی چه یهودو به وئیل چه کله ښځې سره مجامعت مخامخ په مخامخ اونکړې اوددې حمل شی نوهغه بچې کانړې وی.([3])ددې په تردید کښې داجمله نازله شوه چه سړی ته اختیار دې.ابن ابی حاتم کښې دی چه یهودیانو دا خبره مسلمانانوته هم کړې وه.ابن جریج رحمه الله فرمائی چه د دې آیت د نازلیدو نه پس نبی کریم ﷺ اختیار ورکړو که څوک دمخې نه جماع کوی اوکه د روستو نه لیکن ځائې به یو وی.([4])

حدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ نه یوسړی تپوس اوکړو مونږ خپلو ښځو ته څنګه ورشو او څنګه ئې پریږدو؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه ستاپټې دې،چه څنګه غواړې ورځه،خوهغه په خوله مه وهه،زیاتې خبرې ورته مه کوه.اوددې نه مه مروریږه او بیلیږه مه.یو کور کښې ورسره اوسه.الخ (احمد و سنن).([5])

ابن ابی حاتم کښې دی چه د حمیر قبیلې یو سړی حضرت نبی ﷺ نه سوال اوکړو زما خپلې ښځې سره ډیر زیات محبت دې.نوماته ددې باره کښې احکام اوښائې.په دې باندې دا حکم نازل شو.مسند احمدکښې دی چه څو نصرانیانو نبی کریم ﷺ نه تپوس کړې وو([6]) د طحاوی کتاب مشکل الحدیث

---

[1]) ابن ابی حاتم : ۲/۲۸۲)-
[2]) ایضا : ۲/۲۸٤)-
[3]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب ( نساء کم حرث لکم) : ٤٥٢٨،صحیح مسلم: ١٤٣٥)-
[4]) ابن ابی حاتم ( ۲/۲۹۳)-
[5]) احمد: ۵/۳،ابوداود : کتاب النکاح باب فی حق المرأة علی زوجها: ۲۱٤۳،وسنده حسن)-
[6]) احمد : ۱/۲۶۸).-

کښې دی چه یو سړی خپلې ښځې سره الټه الټه مباشرت کړې وو.خلقو ده ته بدرداوونیل.نو دا آیت نازل شو.

**د یوې انصارې واقعه:**-ابن جریر کښې دی چه حضرت عبدالله بن سابط،حضرت حفصه بنت عبدالرحمن بن ابی بکر ﷺ ته راغلو او وې ونیل چه دیو مسئلې تپوس کوم.خو څه شرمیږم.وې فرمائیل چه ورا ره ته مه شرمیږه او چه څه تپوس کول غواړې نو اووایه.وې ونیل چه ښځو سره دروستو طرفنه جماع کول جائز دی ؟ وې فرمائیل چه واوره ماته حضرت ام سلمه ﷺ فرمائیلی دی چه انصارو به ښځولږ الټه څملولې او یهودو به ونیلې چه داشان کولو سره بچې کاڼړې پیداکیږی.کله چه مهاجرینو مدینې ته تشریف راوړ او دلته دِدوی.ددې خاڼې ښځو سره نکاح اوشوه اوهغوئ هم دا کول غوښتل نو یوې ښځې د خپل خاوند دا خبره اونه منله او وې ونیل چه ترکومې پورې داوقعه نبی کریم ﷺ ته بیان نه کړم نوستا خبره به اونه منم.نوهغه دحضرت نبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه.ام سلمه ﷺ هغه کینوله اوورته نې اوونیل چه اوس به حضرت نبی ﷺ راشی.هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ تشریف راوړو نو دې انصاریه ښځه خو د شرم دلاسه تپوس کولو ته نه جوړیده او واپس شوه.خو موربی بی د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو.حضرت نبی ﷺ اوفرمائیل چه دا انصاریه ښځه راوبله.بیا دا آیت نې ورته تلاوت کړو او وې فرمائیل چه خاڼې به هم یو وی.(۱)

مسند احمد کښې دی چه یو ځل حضرت عمر بن خطاب ﷺ نبی کریم ﷺ ته اوونیل چه اې دالله رسوله ﷺ څه خو هلاك شوم.نبی کریم ﷺ ترې تپوس اوکړو چه څه خبره ده.وې فرمائیل چه ما دشپې خپله سورلې الټه کړه.نبی کریم ﷺ ورته څه جواب ورنکړو.هم په دې وخت کښې دا آیت نازل شو.نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه دمخې طرف نه ورځه اود روستو نه هم،تاته ا ختیار دې.خود حیض په حالت کښې مه ورځه او پاخانې د خاڼې نه هم مه ورځه.(۲)

**په روستو طرف کښې د جماع ممانعت:**- د انصاری والا واقعه لړه شان تفصیل سره ده.او په هغې کښې داهم دی چه حضرت عبدالله بن عمر ﷺ دې الله اوبخښی هغه ته څه وهم شو،خبره دا ده چه د انصاریانو جماعت مخکې بت پرست وو اویهودیان اهل کتاب وو.بت پرست خلق ددوی د علمیت او فضیلت قائل وو.اواکثرو افعالو کښې به نې دهغوئ خبره منله.یهودیان به هم په یوطریقه ښځو سره ملاویدل غوښتل نو ملاویدل به.داسلا م نه پس کله چه مهاجرین مدینې ته راغلل او دلته آبادشو نو یومکی مهاجر سړی یو مدنی انصاریه ښځې سره نکاح اوکړه او خپله طریقه نې کول غوښتل.ښځې ترې انکار اوکړو اوورته نې صفا اوونیل چه هم د دې یو مقررې طریقې نه علاوه د بلې طریقې اجازت نه درکوم.او دا خبره نبی کریم ﷺ ته راورسیدله.او دا فرمان نازل شو.نو د مخې روستو طرفنه تاسو ته اختیار دې چه څنګه غواړنې کونی خو خاڼې به یو وی.(۳)

حضرت مجاهد ﷺ فرمانې چه ما د حضرت ابن عباس ﷺ نه قران پاك زده کړو.اول نه تر آخره پورې مې واوریدلو.د یویو آیت تفسیر او مطلب مې تپوس اوکړو.دې آیت ته چه راورسیدم نو ددې د مطلب تپوس مې اوکړو نو هغوئ هم دا آیت تلاوت اوفرمائیلو.( چه کوم پورته تیرشو).د حضرت ابن عمر ﷺ دا ګمان وو چه بعضوروایتونو کښې دی چه دوی به کله دقران پاك تلاوت کولونو هیڅچا سره به نې خبرې نه کولې.او یو ورځ چه دوی تلاوت کولو او دې آیت ته راورسیدل نو خپل شاګرد حضرت نافع ﷺ

(۱) احمد: ۳۰۵/٦،ترمذی: کتاب التفسیرالقران باب ومن سورة البقرة : ۲٦،وهو صحیح)-

(۲) احمد: ۳۰۵/٦،ترمذی: کتاب التفسیرالقران باب ومن سورة البقرة : ۲۹۸۰،وهو حسن)-

(۳) ابو داود کتاب النکاح ٢١٦٤)-

ته نې اوفرمائيل چه تاته پته ده چه دا ايت څه باره کښې نازل شوې دې ؟ هغوئ اوئيل چه نه.وې فرمائيل چه دا د ښځو سره بل خائې کښې وطی کولو باره کښې نازل شوې دې.يو روايت کښې دی چه دوی اوفرمائيل چه يو سړی خپلې بی بی سره دروستو طرفنه وطی کړې وه نوپه دې باندې دا آيت نازل شو او دې رخصت ورکړې شو.[1]

ليکن يو خو په دې کښې محدثينو څه علت بيان کړې دې.دويم ددې معنی داهم کيدېشی چه دروستو طرفنه نې مخکې خائې کښې کړې وو.او دا پورته حديث چه دې هغه هم دسند لحاظ سره صحيح نه دې.بلکه هم ددې حضرت نافع ﷺ نه مروی دې چه دوی ته اوونيلې شو چه تاسو دا وائې چه حضرت ابن عمر ﷺ وطی دبر جائز کړې ده.نو وې فرمائيل چه خلق دروغ وائی.بياهم هغه د انصاريه او مهاجر سړی والا واقعه نې بيان کړه او وې فرمائيل چه حضرت عبدالله ﷺ خو به ددې آيت هم دا مطلب بيانولو.ددې روايت سندهم صحيح دې.او ددې خلاف والاسندصحيح نه دې.معنی مطلب نې داهم کيدېشی او حضرت ابن عمر ﷺ نه ددې خلاف هم مروی دی.هغه به نزدې بيانيږی،انشاء الله،په هغې کښې دی چه حضرت ابن عمر ﷺ فرمائی چه دا (په شا طرف کښې جماع کول) نه مباح ده او نه حلال بلکه حرام ده.

دا قول يعنې د جوازقول د مدينې بعضې فقهاو وغيره طرف ته هم منسوب دې.او بعضې خلقو خو دا امام مالك رحمه الله طرفته منسوب کړې ده.ليکن اکثر خلق ددې نه انکار کوی.او فرمائی چه دا د امام صاحب رحمه الله قول بالکل نه دې.صحيح روايات په کثرت سره ددې فعل حرمت باندې وارد شوی دی.يو روايت کښې دی چه انې خلقو ! شرم اوکړنی،حيا اوکړنی،الله ﷻ دحق خبرې کولو نه شرميږی.ښځو سره دپاخانه په خائې کښې وطی مه کونی.[2]دويم روايت کښې دی چه دوی خلق ددې حرکت نه منع اوفرمائيل ( مسند احمد ) [3].روايت کښې دی چه کوم سړې يو ښځې يا سړی سره داکار اوکړی نو د الله ﷻ د رحمت په نظر دې سړی ته نه گوری (ترمذی).[4] حضرت ابن عباس ﷺ نه يو سړی ددې مسئلې باره کښې تپوس اوکړو نو دوی اوفرمائيل چه آيا ته دکفر باره کښې تپوس کوې ؟ [5] يو سړې راغلو او دوی ته نې اوونيل چه ماد﴿ اَنّٰى شِئۡتُمۡ ﴾ دا مطلب اخستې دې.او ما په دې باندې عمل اوکړو نو دوی ډير خفه شو او هغه ته نې بدرد اوونيل او وې فرمائيل چه ددې مطلب دادې که په ولاړه وی اوکه په ناسته وی او که په اړخ وی اوکه دروستونه وی.(مسند احمد) [6] حضرت ابودرداء فرمائی چه داکار دکافرو دې.دحضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ﷺ هم دا قول دې.او هم دا زيات صحيح دې.
والله اعلم.

**اووه قسمه خلقو ته د رحمت په نظر نه کتل:-** نبی کريم ﷺ فرمائی چه اووه قسمه خلق دی چه دقيامت په ورځ به الله ﷻ هغوئ ته درحمت په نظر نه گوری.اونه به هغوی پاکوی هغوی ته به اوفرمائی چه جهنميانوسره جهنم ته لاړشئ.① يوخو اغلام بازی کولو والا که هغه پورته کولو والا (فاعلی) وی او که لاندې کولو والا(مفعول ) وی ②او خپل لاس سره حاجت پورا کولو والا (موټی وهلووالا)③ او ځناور سره دا کار کولو والا ④اودښځې دبر کښې وطی کولو والا⑤او د ښځې د لور سره نکاح کولو والا

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة البقرة باب ( نساء کم حرث لکم......) ٤٥٢٦)-
[2] الحسن عرفه )-
[3] احمد: ٢١٥/٥،ابن ماجة: کتاب النکاح باب النهی عن اتيان النساء فی ادبارهن : ١٩٢٤)-
[4] ترمذی : کتاب الرضاعة باب ماجاء فی کراهية اتيان النساء فی ادبارهن: ١١٦٥،وهو حسن)-
[5] عبد بن حميد وسنده صحيح)-
[6] احمد: ٢١٠/٢،وسنده صحيح)-.

⑨او د خپل ګواندي ښځې سره زنا کولو والا ⑩او هغه کس چه خپل اوګواندي تنګوي اوهغه په دی لعنت اووائی (١) ليکن ددې په سند کښې ابن لهيعه او دده استاد دواړه ضعيف دی.دمسند په يو بل حديث کښې دی چه کوم سړې خپلې بی بی سره بله لاره کښې وطی کوی نو الله ﷻ ده ته د رحمت په نظر نه ګوري.(مسند ).(٢)

مسند احمد او سنن کښې دی چه کوم سړې حائضه ښځې سره جماع اوکړی يا په غير ځائی ( دبر) کښې جماع اوکړی يا کاهن ته ورشی او هغه رښتيا اوګڼړی نو ده په هغه څيز باندې کفر اوکړو کوم چه حضرت محمد ﷺ باندې نازل شويدې.(٣) امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دې حديث ته ضعيف وائی.ترمذی کښې روايت دې چه ابو سلمه رضی الله عنه هم د دبر وطی ته حرام وائی.

حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائی چه دخلقو خپلو بيبيانو سره دا کار کول کفر دې ( نسائی).يو مرفوع حديث کښې هم د دې دا معنی مروی ده.ليکن زيات صحيح ددې موقوف کيدل دی.روايت کښې دی چه دا ځائی (روستو طرف) حرام دې.حضرت ابن مسعود رضی الله عنه هم دا فرمائی.حضرت علی رضی الله عنه نه چه کله تپوس اوشو نو دوی اوفرمائيل چه هغه سړې ډير کمينه دې. قرآن پاك کښې دی چه د لوط عليه السلام قوم ته اووئيلې شو چه تاسو هغه بدکار کوئ چه ستاسو نه مخکې دې کار طرفته دچا هډو سوچ هم نه وو.نو د صحيح آحاديثو نه او د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه په ډيرو سندونو سره ددې فعل حرمت مروی دې.

**ابن عمر رضی الله عنه ته غلط نسبت:-** دا دې هم ياد وی چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه هم دې ته حرام وائی.په دارمی کښې دی چه يو ځل دوی نه دا سوال اوشو نو دوی اوفرمائيل چه آيا مسلمان هم داسې کولې شی؟(٤)ددې اسناد صحيح دی او د حرمت حکم هم ښکاره دې.نو غير صحيح او مختلفو معنووالا روايتونه ونيل او دومره لوئې جليل القدر صحابی طرفته داسې ګنده مسئله منسوب کول صحيح نه دی.اګر چه دآسې قسم روايتونه هم ملاويږی.

**امام مالک رحمه الله ته غلط نسبت:-** پاتې شو حضرت امام مالك رحمه الله نو هغوئ طرفته ددې مسئلې منسوب کول صحيح نه دی بلکه معمر بن عيسی فرمائی چه امام صاحب دې ته حرام وائی.اسرائيل بن روح د امام مالك رحمه الله نه يو ځل تپوس اوکړو نو دوی اوفرمائيل چه ته ناپوهه نې.کر په پټی کښې کولې شی،خبردار دشرمګاه نه سوا بل ځائې نه ځان ساتل پکار دی.سائل اووئيل چه حضرت خلق خو وائی چه تاسو دا فعل جائزګڼړی.دوی اوفرمائيل چه دروغژن دی،ماباندې تهمت لګوی.امام مالك رحمه الله نه ددې حرمت ثابت دې.

**روستو طرف کښې وطی کول د فقهاؤ په نظر کښې:-** حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله،حضرت امام شافعی رحمه الله،امام احمد رحمه الله،او ددوی شاګردان،سعيد بن مسيب رحمه الله،ابوسلمه رحمه الله عکرمه رحمه الله طاؤس رحمه الله عطاء رحمه الله سعيدبن جبير رحمه الله،عروه بن زبير رحمه الله،مجاهد رحمه الله حسن رحمه الله وغيره سلف صالحين ټول دې ته حرام وائی او دې باره کښې ډير تشدد کوی.بلکه بعضې خو دې ته کفر وائی.د جمهورعلماء کرامو هم په دې باندې د حرمت اجماع ده.اګر چه د بعضې فقهاء مدينه او امام مالك رحمه الله نه ددې حلت هم نقل دې.خو دا صحيح نه دی.دعبدالرحمان بن قاسم رحمه الله قول هم دادې چه ما هيڅ يو داسې ديندار کس اونه ليدو چه ددې په حرمت کښې شك کوی.اوبيا ئې ﴿نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ﴾ اووئيل.پخپله دا لفظ هم حرث دې.او ددې دحرمت ظاهرولو دپاره کافی دې.ځکه چه هغه بل ځائې د پټی نه دې،پټی ته دتلو

(١) جعفر الفريابي)-
(٢) احمد: ٢٧٢/٢،كتاب النكاح باب النهي عن اتيان النساء في ادبارهن : ١٩٢٣،ابوداود :٢١٦٢،وهو حسن)-
(٣) احمد: ٤٠٨/٢،ابوداود: كتاب الطب باب في الكهان : ٣٩٠٤،ترمذي: ١٣٥،ابن ماجة: ٦٣٩،وهو حسن)-
(٤) الدارمي: ١١٤٧ وسنده حسن صحيح)-

طريقه كښي اختيار دي د خاني د بدلون اختيار نه وي.اګر چه دامام مالك رحمه الله نه ددي مباح كيدل هم منقول دى.خو د هغې په اسنادو كښي سخت ضعف دي.والله اعلم.

هم داشان يوروايت خلقو حضرت امام شافعي رحمه الله ته منسوب كړي دي.حالانكه هغوئ په خپلو شپږو كتابونو كښي په ښكاره لفظونوسره دې ته حرام ونيلى دى.

## ښځې سره په دبر كښې د جماع حرمت

**مسلك حنفي:-** فاضل مفسر چه امام ابوحنيفه رحمه الله ته د شا طرف نه د بى بى سره د حرمت كوم قول منسوب كړي دي دا بالكل صحيح دي د هغوى په نيز هم په دبر كښې جماع كول حرام ده (احكام القران للعثماني (۱۱۱/۲۰۱)).

**قوله تعالى:-** وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُم مُّلَاقُوهُ بيا فرمائى چه خان سره څه مخكې هم اوليږئى.يعنى د ممنوعاتو نه خان اوساتئى.نيكئ كوئى چه ثواب مو مخكې لاړشى.دالله ﷻ نه ويريږئى،هغه سره به مو ملاقات كيږئى.هغه به درسره حساب كتاب كوى.ايماندار دې په هر حال كښې خوشحالى كوى.

**د بچى د شيطان نه د بچ كيدو دعا:-** حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه ددې دا مطلب هم دې چه كله د جماع اراده اوكړئى نو دا دعا وائى چه (بسم الله اللهم جنبنا الشيطن وجنب الشيطن مارزقتنا) يعنى اې الله ﷻ ته مونږ او خمونږ اولاد لره د شيطان نه بچ اوساتې[1].نبى كريم ﷺ فرمائى كه ددې نطفې نه بچې جوړ شو نو دا بچې به شيطان نه محفوظ وى اوده ته به بالكل ضرر نه رسوى.

| وَتَتَّقُوا | أَن تَبَرُّوا | لِّأَيْمَانِكُمْ | عُرْضَةً | اللَّهَ | وَلَا تَجْعَلُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| او نه به پرهيزګارى كوئ | چى نه به نيكى كوئ | دپاره دقسمونو خپلو | نشانه | نوم دالله | او مه ګرځوئ |
| اودالله نوم دخپلو قسمونودپاره نښه مه ګرځوئ(چه په هره خبره قسم خورئ مثلاً) چى تاسو به نيكى اوپرهيزګارى | | | | | |

| لَّا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ | عَلِيمٌ | سَمِيعٌ | وَاللَّهُ | بَيْنَ النَّاسِ | وَتُصْلِحُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| نه نيسى تاسو الله | او په هرڅه پوهه دي | هر څه اوريدونكي | او الله | په منځ دخلقو كښي | اونه به روغه كوئ |
| اود خلقو په مينځ كښي روغه نه كوئ | الله پاک هرڅه آورى او په هرڅه پوهه دي | ............الله پاک تاسو په لغو | | | |

| وَاللَّهُ | قُلُوبُكُمْ | بِمَا كَسَبَتْ | وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم | فِي أَيْمَانِكُمْ | بِاللَّغْوِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او الله | وى دهغې ازړونو ستاسو | په هغه قسم چى قصد كړي | ليكن نيسى تاسو | | په بې مطلبه قسمونو ستاسو |
| بې ارادې قسمونو نه نيسى بلكه صرف په هغه (قسمونو)مونيسى دكومو چه ستاسو زړونو قصد كړي وى اوالله پاک | | | | | |

| حَلِيمٌ | غَفُورٌ |
|---|---|
| صبر ناك دي | معاف كونكي |
| معاف كونكي اوصبرناک دي | |

**قوله تعالى:-** وَلَا تَجْعَلُوا اللَّهَ عُرْضَةً لِّأَيْمَانِكُمْ أَن تَبَرُّوا وَتَتَّقُوا وَتُصْلِحُوا بَيْنَ النَّاسِ ۚ

**د ناجائزه قسم د ماتولو حكم:-** الله ﷻ فرمائى چه نيكى او صله رحمى پريښودلو دپاره دالله ﷻ قسمونه نښه مه جوړوئى.لكه بل خاني كښي فرمائى چه ( وَلَا يَأْتَلِ أُولُو الْفَضْلِ مِنكُمْ وَالسَّعَةِ ) الخ.هغه خلق چه

[1] صحيح بخارى كتاب الوضوء باب تسمية على كل حال وعند الوقاع : ۱۴۱،صحيح مسلم: ۱۴۳۴)-

اميراومالدار دی،هغوئ دې رشته دارو ته اومسکينانو ته اودالله ﷻ په لارکښې هجرﷺ کوونکوته په نه ورکړه باندې قسمونه نه خورئي،هغوئ ته پکار دی چه د معاف کولو عادت خپل کړی. آيا ستاسو خپل خواهش نه دې چه الله ﷻ تاسو ته معافی آوکړی که څوك دا سې قسم اوخوری نو هغه ته پکار دی چه هغه مات کړی اوکفاره ورکړی.د صحيح بخاری حديث کښې دی چه مونږ روستو راتلونکی امت يو.ليکن دقيامت په ورځ د ټولو نه مخکښې (جنت ته) تلونکی يو.فرمائی که په تاسو کښې څوك داسې قسم اوخوری اوکفاره ورنکړی او په دې باندې کلك ولاړ وی نو هغه ډير لوئې ګناهګار دې.[1] دا حديث په نورو ډيرو سندونو سره په ډيرو کتابونو کښې مروی دې.حضرت عبدالله بن عباس ﷺ هم ددې په تفسير کښې هم دا فرمائی.حضرت مسروق ﷫ وغيره او ډير نور مفسرينونه هم دا مروی دی.د جمهورو د دې قول تائيد ددې حديث نه هم کيږی چه نبی کريم ﷺ فرمائی چه په الله قسم ! که خه يو قسم اوخورم او ماته دهغې په ماتولو کښې بنيګړه په نظر راځی نو خه بالکل هغه قسم ماتوم او ددې قسم کفاره به ادا کوم.[2] نبی کريم ﷺ يو ځل حضرت عبدالرحمن سمره ﷺ ته اوفرمائيل چه انې عبدالرحمان ! دسردارئی،امامت او امارت غوښتنه مه کوه،که ستا دغوښتنې نه بغير درکړې شی نو دا به دالله ﷻ دطرفنه وی او په دې کښې به ستا مدد کولې شي.اوکه تا پخپله اوغوښته نو دا به تاته حواله کيږی.که څوك قسم اوخوری او ددې خلاف کښې څه بنيګړه اوګوری نو خپل قسم دې مات کړی او ددې کفاره دې ورکړی او هغه نيك كار دې اوکړی.[3]

صحيح مسلم کښې دی چه کوم سړې قسم اوخوری اوبيا ورته ددې نه سوا په بله خبره کښې خيرپه نظر راشی نوده ته پکاردی چه هغه خير والا کار اوکړی اوخپل قسم دې مات کړی اوددې کفاره دې ورکړی [4]مسنداحمد کښې يوحديث دی چه ددې پريښودل کفاره دی.[5]ابوداود کښې دی چه نذر او قسم په هغه څيز کښې نشته دې چه دانسان په ملکيت کښې نه وی اونه دالله ﷻ نافرمانئ کښې وی اونه درشتو ماتولوکښې وی.چه کوم سړې قسم اوخوری او نيکی ددې په کولو کښې نه وی نو هغه دې قسم پريږدی او دنيکئ کار دې اوکړی.ددې قسم پريښودل ددې کفاره ده.

امام ابوداود ﷫ فرمائی چه ټولو صحيح احاديثو کښې دا لفظ دې چه دخپل داسې قسم کفاره دې ورکړی.[6]يو ضعيف حديث کښې دی چه دخپل داسې قسم پورا کول هم دا دی چه هغه مات کړی او ددې نه رجوع اوکړی.حضرت ابن عباس ﷺ،حضرت سعيد بن مسيب ﷫،حضرت مسروق ﷫ او حضرت شعبی ﷫ هم ددې قائل دی چه دداسې سړی په ذمه کفاره نشته دې.

**د ناجائزه قسم ماتولو د کفارې حکم**

**مسلک حنفی:-** که سړې په مستقبل کښې د يو کار په کولو يا نه کولو باندې قسم اوخوری او بيا دې دغه قسم مات کړی نو په ده باندې د حنفيانو په نيز کفاره واجب ده (احکام القران للعثمانی

---

[1]) صحيح بخاری کتاب الايمان والنذور باب قول الله تعالى ( لايواخذكم الله با للغو...) : ٦٦٢٤)-

[2]) صحيح بخاری کتاب فرض الخمس باب ومن الدليل على ان الخمس للنواب المسلمين: ٣١٢٣،صحيح مسلم: ١٦٤٩،نسائی: ٣٨١١،ابن ماجة: ٢١٠٧)-

[3]) صحيح بخاری کتاب الكفارات الايمان باب الكفارة قبل الحنث وبعده : ٦٧٢٢،صحيح مسلم: ٦٧٢٢،ترمذی: ١٥٢٩،ابوداود: ٣٢٧٧،نسائی: ٣٧١٣)-

[4]) صحيح مسلم کتاب الايمان باب من حلف يمينا: ١٦٥١،ترمذی: ١٥٣٠)-

[5]) احمد: ١٨٥/٢،مسند الطيالسی: ٣٢٧٤،ابوداود: ٣٢٧٤،وهو حسن)-

[6]) ابوداود کتاب الايمان النذور باب اليمين فی قطيعة الرحم : ٣٢٧٤،باب لايحلف باللات والعزی: ٦٦٥٠،صحيح مسلم: ١٦٤٧،ابوداود:٣٢٤٧ ترمذی: ١٥٤٥)-

۴۲۹/۱۱۱).

**قوله تعالى: - لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيٓ أَيْمَانِكُمْ**

**د لغو قسم حكم: -** بيا فرمائي چه كوم يو قسم ستاسو دخولې نه بغير ستاسو د ارادې اوقصد نه اوځي دعادت په طور نو په هغې باندې نيول نشته دې.بخاري او مسلم كښې حديث دې چه كوم سړې دلات او عزى قسم اوخورى هغه دې (لااله الاالله) اووائي.دا ارشاد نبى كريم ﷺ هغه خلقوته كړې وو كوم چې نوى مسلمانان شوى وو اود جاهليت قسمونه دهغوئ په خوله باندې وو،نو هغوئ ته ئې اوفرمائيل كه چرې د عادت په مو داسې الفاظ د خولو نه اوځى نو زر كلمه توحيد وائې چه بدل راشي.

**قوله تعالى: - وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ**

**په كوم قسم نيول شته : -** بيا فرمائي چه كوم قسمونه د زړه پخې ارادې او قصد سره اوشي نو په هغې باندې نيول شته دې.دويم آيت كښې د (بِمَا عَقَّدتُّمُ الْأَيْمَانَ) الفاظ دى.ابو داود كښې حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه مرفوع حديث مروى دې چه دا په نورو روايتونو باندې موقوف وارد شوې دې چه دا لغوقسمونه دى چه دا انسان خپل كور كښې بچو ته وائ:چه آؤ په الله قسم اونه په الله قسم [1] غرض دا په طور دتكيه كلام اوزى او په زړه كښې د دې پوخوالئ او خيال نه وى حضرت عائشه رضي الله عنها نه داهم مروى دى چه دا هغه قسمونه دى چه په خندا خندا كښې د انسان د خولې نه اوځى،په هغې باندې كفاره نشته دې.خو چه كوم ارادې سره قسم وى،او بيا ددې خلاف اوكړى نو كفاره به وركوى.د (عائشه رضى الل عنها) نه علاوه نورو ډيرو صحابه كرامو ﷺ او تابيعنو هم دا تفسير ددې آيت مبارك كړې دې.او دا هم مروى دى چه يوسړې په خپل تحقيق باندې بهروسه اوكړى او ديو معاملې نسبت كښې قسم اوخورى اوحقيقت كښې هغه معامله داسې نه وى نو دا قسمونه لغوه دى.دامعنى هم دنورو حضراتو نه مروى ده.

يو حسن حديث كښې دى چه مرسل دې چه يو ځل حضرت نبى ﷺ د تيراندازو يو جماعت لره ورغلو او اودريدلو،هغوئ تيراندازى كوله.او سړى به كله ونيل چه په الله قسم دده غشئ دې په نښه باندې اولگى.كله به ونيل چه په الله ﷻ قسم دادې خطا شي.د نبى كريم ﷺ يو صحابى ﷺ اوونيل چه يارسول الله ﷺ اوگورئى دده دقسم خلاف اوشو.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه دده قسمونه لغو دى او په ده باندې څه كفاره نشته دې.او نه ده دپاره څه عذاب دې.([2])

بعضې بزرگان وائى چه دا داسې قسمونه دى چه انسان ئې خورى اوبيا ورته ددې خيال نه وى.يا يوسړې خپل خان دپاره د يو كار په نه كيدو د بددعائى كلمه دخپلې ژبې نه اوباسى هغه هم لغو كښې داخل دى.يا د غصې او غضب په حالت كښې بې ساخته د ژبې نه اوباسې يا حلال لره حرام يا حرام لره حلال كړى نو ده ته پكارى دى چه ددې قسمونو پرواه نه كوى.او دالله ﷻ داحكامو خلاف دې نه كوى.حضرت سعيد بن مسيب ﷺ نه مروى دى چه د انصارو دوه كسان خپلوكښې رونړه وو.ددوى په مينځ كښې دميراث څه مال وو.نويو بل ته اوونيل چه اوس دا مال تقسيم كړه.بل اوونيل كه اوس تا د مال د تقسيم اوونيل نو زما ټول مال د كعبې خزانه ده (يعنى دكعبې فنډ كښې به جمع كيږى).حضرت عمر ﷺ دا واقعه واوريده او وې فرمائيل چه كعبه دداسې مال نه غنى ده.دخپل قسم كفاره وركړه او خپل ورور سره خبرې اترې كوه.ما د نبى كريم ﷺ نه آوريدلى دى چه دالله ﷻ نافرمانى د رشتو په

---

[1] ابوداود كتاب الايمان والنذور باب لغو اليمين : ۳۲۵۴،عن عائشه مرفوعا.صحيح بخارى : ۶۶۶۳،عن عائشه صديقه موقوفا وهو الصواب .

[2] الطبرى: ۴۴۲۱.دا روايت مرسل دې).

ماتولو کښې ده.او چه په کوم څيز کښې ملکيت نه وی نو په هغې کښې قسم نشته دې او نه پکښې نذر شته دې.([1])

**قوله تعالی:-** وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ

**د زړه په قصد باندې نيول:-** بيافرمائی چه ستاسو زړه څه اوکړی نو په هغې باندې نيول شته دې.يعنی د خپل دروغو ورته علم وی او بيا هم درغ اووائی.بل ځائې کښې ارشاد دې چه ﴿ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ﴾ يعنی تاسو چه کوم مضبوط تائيد او تاکيدوالا قسمونه اوخورئی،په هغې باندې الله ﷻ تاسو نيسی الله ﷻ خپلو بندګانو لره بخښونکې دې او په دوی باندې رحم کونکې دې.

| |
|---|
| لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ |
| دې دپاره دهغه کسانو \| چی قسم خوری دتعلق نه ساتلو \| دښځو خپلو سره \| انتظار |
| \| څوک چې دخپلوښځو(د نزيکت) نه قسم اوخوری هغوئ ته مهلت دې |
| اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ فَاِنْ فَآءُوْ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ وَاِنْ |
| دڅلورو مياشتو \| نوکه چرې \| واپس شول هغوئ \| نو بيشکه الله \| معاف کونکې \| رحم کونکښې دې \| او که چرې |
| څلورومياشتوپورې \| که واپس نشو(خپلو بيبيانو ته) نو الله معا ف کونکې مهربان دې \| ......او که د |
| عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَاِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝ |
| هغوئ قصد کړې وی \| د طلاق \| نو بيشکه الله \| هرڅه اوری \| په هرڅه پوهيږی \| |
| ښځې پرېخودلو کلک نيت لری \| نو پوهه دې شی) چې الله هرڅه آوری او په هرڅۀ پوهه دې \| |

**قوله تعالی:-** لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ

**د ايلاء تعريف او قسمونه:-** ايلاء وائی قسم ته.که سړې خپلې ښځې سره د يو مودې دپاره د مجامعت کولونه قسم اوخوری نو ددې دوه صورتونه دی.① يا به هغه صورت د څلورو مياشتو نه کم وی يا به زيات وی.که کم وی نو هغه موده دې پورا کړی.او دې دوران کښې دی ښځه هم صبر اوکړی.اودده نه مطالبه اوسوال نه شی کولې.بيا دې ښځه خاوند خپلو کښې يو ځائې شی لکه څنګه چه صحيح مسلم کښې حديث دې چه نبی کريم ﷺ يو مياشتې دپاره قسم خوړلې وو.او پورا يو کم ديرش ورځې بيل وو.او وې فرمائيل چه مياشت د يو کم ديرشو ورځو هم وی.([2]) ②او که د څلورو مياشتو نه زيات قسم اوخوری نو څلور مياشتې پس ښځې ته حق حاصل دې چه هغه تقاضه او مطالبه اوکړی چه يا ورسره خاوند يوځائې شی اويا ورته طلاق ورکړی.او حاکم به په دې دوؤ خبرو کښې په يو باندې دې مجبوروی چه ښځې ته ضرر اونه رسی.

**ايلاء د ښځو نه کيږی نه چې د وينځو نه:-** همدا بيا دلته کيږی چه کوم خلق خپلو بيبيانو سره ايلاء اوکړی يعنی هغوئ سره د مجامعت نه کولو قسم اوخوری،ددې نه معلوم شو چه دا ايلاء خاص ده د بيبيانودپاره دوينځو دپاره نه.همدا مذهب دجمهور علماء کرام دی.داخلق خو څلورو مياشتو پورې آزاد دی او دې نه پس به دوی لره مجبورولې شی چه هغوئ خو يا خپلو بيبيانو سره ميل ملاپ اوکړی او يا ورته طلاق ورکړی.دا نه چه اوس دې هم دا بيبيانې هم دغه شان پريږدی.

---

[1]) ابوداود كتاب الايمان والنذور باب اليمين ل قطعية الرحم : ۳۲۷۲،وسنده حسن)-

[2]) صحيح مسلم كتاب الطلاق باب ل الايلاء : ۱۴۷۵،صحيح بخاری عن ام سلمة: ۱۹۱۰)-

قوله تعالی:- فَإِنْ فَاءُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ
په موده د ایلاء کښې رجوع کول:- بیا که هغوئ راواپس شی نو دا کنایه ده د جماع کولونه،نو الله ﷻ به اوبخښی او چه کوم تقصیر ددوی نه د ښځو په حق کښې شوې دې هغه به خپلې مهربانئ سره معاف کړی.[1] په دې کښې دلیل دې دهغه علماء کرامو چه وائی چه په دې صورت کښې دخاوند په ذمه هیڅ نشته دې.د حضرت امام شافعی رحمه الله هم اول قول (قدیم قول) دا وو.ددې تائید ددې حدیث نه هم کیږی چه کوم ددې نه مخکښې آیت په تفسیر کښې تیر شوچه قسم خوړلو والا که خپل قسم ماتولو کښې نیکی وینی نو هغه دې قسم مات کړی او ددې هم دا کفاره ده.او دعلماء کرام د یو بل جماعت دا مذهب دې چه ددې قسم کفاره به ورکوی.

**په ایلاء کونکی باندې د کفارې حکم**

**مسلک حنفی:-** کله مولی په موده د ایلاء کښې رجوع اوکړی نو په ده باندې د جمهورو په نیز باندې کفاره شته په جمهورو کښې حنفیان هم راغلل (تفسیر مظهری ۱/۳۲۵)-

قوله تعالی:- وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَإِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ
بیا فرمان دې که څلور میاشتې تیریدو نه پس دې طلاق ورکولو قصد اوکړی.نوددې نه ثابتیږی چه څلورمیاشتو تیریدوسره به طلاق واقع نه وی.دجمهور متاخرین هم دا مذهب دې.اګر چه یو بل جماعت دا هم وائی که جماع کولو نه بغیر څلور میاشتې تیرې شی نو طلاق به واقع شی.دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه،حضرت عثمان غنی رضی الله عنه،حضرت علی رضی الله عنه،حضرت ابن مسعود رضی الله عنه،حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه،ابن عمر رضی الله عنه،حضرت زید بن ثابت او بعضو تابعینو نه هم دا مروی دی.

**د ایلاء مودې تیریدو سره د طلاق د واقع کیدو حکم**

**مسلک حنفی:-** که خاوندپه موده د ایلاء کښې ښځې سره وطی اونکړې شوه.تردې چه موده د ایلاء یعنی څلورمیاشتې تیرې شوې.نوداحنافوعالمانو رحمهم الله په نیزدا ښځه په یوطلاق سره بائنه شوه.(تسهیل الهدایه ۳/٤٠٣)-

بیا بعضې وائی چه طلاق رجعی به واقع وی.بعضې وائی چه بائن به واقع وی.چه کوم خلق د طلاق واقع کیدو قائل دی هغوئ فرمانی چه دې نه پس به دا عدت هم تیروی.خو حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه او حضرت ابوالشعثاء رحمه الله فرمانی که دې میاشتو کښې ددې ښځې درې حیضه راغلل نو په دې باندې عدت نشته دې.د حضرت امام شافعی رحمه الله هم دا قول دې.لیکن د جمهور متاخرین فرمان هم دادې چه ددې مودې تیریدو نه پس به طلاق واقع نه وی.بلکه اوس به ایلاء کولو والا تنګولې شی چه یا خو هغه خپلې بی بی ته طلاق ورکړی او یا خپل قسم مات کړی.موطا امام مالك رحمه الله کښې حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنه نه هم دا مروی دی.[2]صحیح بخاری کښې هم دا روایت موجود دې.[3] حضرت امام شافعی رحمه الله خپل سند سره حضرت سلیمان بن یسار رحمه الله نه روایت کوی چه ما د لسو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه آوریدلی دی چه هغوئ به وئیل چه د څلور میاشتو نه پس ایلاء کولو والا به اودرولې شی.نو کم نه کم دا دیارلس صحابه کرام رضی الله عنهم دی.حضرت علی رضی الله عنه نه هم دا منقول دی.حضرت امام شافعی رحمه الله فرمانی چه خمونږ مذهب هم دا دې.او حضرت عمر فاروق رضی الله عنه،حضرت ابن عمر رضی الله عنه،حضرت عائشه رضی الله عنها،حضرت عثمان رضی الله عنه،حضرت زید بن ثابت او د لسو نه زیات نور صحابه کرامو رضی الله عنهم نه هم دا مروی دی.دار قطنی کښې دی چه حضرت ابوصالح فرمانی چه ما ددولسو صحابه کرامو رضی الله عنهم

---

[1] الطبری : ٤/٤٦٦-
[2] موطا امام مالک کتاب الطلاق باب الایلاء :١٨،وسنده حسن-
[3] صحیح بخاری کتاب الطلاق باب قول الله تعالی ( للذین یولون من نسائهم...) : ٥٢٩٠-

ﷺ نه ددې مسئلې تپوس اوکړو نو ټولو هم داجواب راکړو، حضرت عمر ﷺ، حضرت عثمان ﷺ، حضرت علی ﷺ، حضرت ابوالدرداء، حضرت ام المومنین عائشه صدیقه ﷺ، حضرت ابن عمر ﷺ او حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه هم دا فرمائی. حضرت سعید بن مسیب ﷺ، حضرت عمر بن عبدالعزیز ﷺ، حضرت مجاهد ﷺ، حضرت طاوس ﷺ، حضرت محمد بن کعب ﷺ او حضرت قاسم ﷺ نه هم دا قول منقول دې. او حضرت امام مالك ﷺ، حضرت امام شافعی ﷺ، حضرت امام احمد بن حنبل ﷺ اوددوی دملګروهم دامذهب دې. امام ابن جریر ﷺ هم دا قول خوښ کړې دې. حضرت لیث ﷺ، حضرت اسحاق ﷺ، حضرت ابن راهویه ﷺ، حضرت ابوعبیده ﷺ او حضرت ابوثور، حضرت امام ابوداود ﷺ هم دا فرمائی. دا ول حضرات فرمائی که څلورمیاشتې پس هم دې رجوع اونکړی نو دې به په رجوع کولو مجبورولې شی. که طلاق ورنکړی نو حاکم به پخپله دده طرفنه طلاق ورکوی. او دا به طلاق رجعی وی. عدت کښې دننه د رجعت حق خاوند ته حاصل دې. خو صرف حضرت امام مالك ﷺ فرمائی چه ده لره رجعت جائز نه دې، تر دې پورې چه عدت کښې جماع اوکړی. لیکن داقول ډیر غریب دې.

**ایلاء چې طلاق رجعی شی په دې کښې د عدت حکم**

**مسلک حنفی:-** احقر شاه فیصل د هدایه په شرح تسهیل الهدایه کښې په دې مسئله کښې وائی البته په دې ښځه باندې عدت په اتفاق سره واجب دې. دلیل ورانډې تیرشوې دې. چه درحم د مشغولیت ګمان وی. ددې وجې استحساناً د احتیاط دپاره عدت واجب کړې شو. (تسهیل الهدایه ۴۹۱۱۳)-

**د څلور میاشتو حکمت:-** دلته چه د څلورو میاشتو د تاخیر اجازت ورکړې شوې دې، دهغې مناسبت کښې موطا امام مالك کښې د حضرت عبدالله بن دینار ﷺ په روایت سره دحضرت عمر ﷺ یوواقعه عموماً علماء کرام ذکرکوی چه حضرت عمرفاروق ﷺ به عام طور دمدینې منورې په کوڅو کښې د شپې ګشت کولو. یو شپه اووتل نو دوی واوریدل چه یو ښځه دخپل خاوند په یاد کښې څه اشعار وائی او هغه په سفر تلې وو. چه دهغې ترجمه داده :

(افسوس چه دې تورو تورو اوږدو شپو کښې زما خاوند نشته دې چه هغه سره اوخاندم او خبرې اوکړم، قسم په الله که دالله ﷻ ویره نه وې نو دې وخت کښې به دپالنګ پښې حرکت کښې وې).

دوی خپلې لور بی بی حضرت حفصه ﷺ لره راغلل او ورې فرمائیل چه زیات نه زیات ښځه د خپل په جدائی کښې څومره صبر کولې شی ؟ وې فرمائیل چه شپږ میاشتې یا څلور میاشتې. دوی اوفرمائیل چه اوس به څه حکم کوم چه مسلمان مجاهدین دې سفر کښې ددې نه زیات نه اوسی. بعضو کښې څه زیاتې دې. او ددې ډیر سندونه دی اودا واقعه مشهوره ده.

<table>
<tr><td colspan="8">وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ</td></tr>
<tr><td colspan="8">| اوطلا قې شوې ښځې دې انتظار کوی</td></tr>
<tr><td colspan="8">||وطلاقې شوې ښځې دې انتظار کوی</td></tr>
<tr><td>بِأَنْفُسِهِنَّ</td><td>ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ</td><td>وَلَا يَحِلُّ</td><td>لَهُنَّ</td><td>اَنْ يَّكْتُمْنَ</td><td>مَا خَلَقَ اللّٰهُ</td><td>فِيْٓ</td></tr>
<tr><td>په خانونو خپلو</td><td>درې حیضه</td><td>اونه دی جائز</td><td>دهغوئ دپاره</td><td>چې پټ کړی</td><td>هغه چې پیدا کړی دی الله</td><td>په</td></tr>
<tr><td colspan="8">تر درېو حیضو پورې | اوطلاقو شوو ښځو دپاره جائزنه دی چې پټ کړی هغه چې الله د هغوی په بچه دانئ</td></tr>
</table>

| |
|---|
| اَرۡحَامِهِنَّ اِنۡ كُنَّ يُؤۡمِنَّ بِاللّٰهِ وَالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ ؕ وَبُعُوۡلَتُهُنَّ اَحَقُّ |
| رحمونو دهغوئ كښې \| كه وى هغوئ ايمان لرونكى \| په الله او په ورځ دآخرت\| اوخاوندان دهغوئ \| حق دارِدى |
| كښې څه پيدا كړى دى \|كه هغوئ(په رښتيا)په الله او په ورځ دآخرت ايمان لرى\| اوپه عدت كښې دهغوئ خاوندان |
| بِرَدِّهِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ اِنۡ اَرَادُوۡۤا اِصۡلَاحًا ؕ وَلَهُنَّ |
| په واپس ښخوكولودهغوئ \| په دې عدت كښې \|كه اراده ئې لرله \| دصحيح تعلقاتو ساتلو \| او شته ښخو لره حقونه |
| زيات حقدار دى چه هغوى ته واپس شى \|كه دوئ خپل كور جوړ ساتل غواړى \| او دښخو هم |
| مِثۡلُ الَّذِىۡ عَلَيۡهِنَّ بِالۡمَعۡرُوۡفِ ۪ وَلِلرِّجَالِ عَلَيۡهِنَّ |
| په شان دهغې حقونو\|لكه چې دسړوحقونه دى په ښخوباند\|دمعلومې طريقې مطابق\| البته نارينولړه\|په ښخو باند |
| ددستور مطابق هغه شان حقونه دى لكه چې د(سړو) په هغوئ باندې دى \|اود سړو درجه په ښخو باندې اوچته ده |
| دَرَجَةٌ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيۡزٌ حَكِيۡمٌ ﴿۲۲۸﴾ ع |
| يوه درجه زياته حاصله ده\| او الله غالب دې \|اوحكمت والادې\| |
| ............او الله غالب دې په هركار كښې حكمت لرى \| |

**قوله تعالى:-** وَالۡمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصۡنَ بِاَنۡفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوۡٓءٍ ؕ

**د طلاق عدت:-** هغه ښځې چه خاوند سره يو ځاې شوى وى او بالغې وى حكم كيږى چه د طلاق نه پس درې حيضو پورې ايسارې شى.بيا كه غواړى نو بله نكاح كولې شى.

**د وينځې تخصيص:-** خو څلورو واړه امامانو په دې كښې وينځه مخصوص كړې ده،هغه به دوه حيضه تيروى.ځكه چه وينځه په دې معاملاتو كښې د آزادې ښځې نه نيمه ده.ليكن دحيض موده په دوه نشى تقسيميدې،ددې وجې دا به دوه حيضه تير كړى.يو حديث كښې دى چه وينځې دپاره طلاقونه هم دوه دى.او ددې عدت هم دوه حيضه دې.( ابن جرير).خو ددې راوى مظاهر ضعيف دې.داحديث ابوترمذى او ابن ماجه كښې هم دې.([1]) امام حافظ دارقطنى رحمه الله فرمائى چه صحيح خبره دا ده چه دا د حضرت قاسم بن محمد رحمه الله خپل قول دې.ليكن حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه دا روايت مرفوع دې.اګر چه ددې نسبت هم امام دارقطنى رحمه الله ته دې،هغوئ هم دا فرمائى چه دا دحضرت عبدالله خپل قول دې.هم داشان خليفة المسلمين حضرت عمرفاروق رضي الله عنه نه هم مروى دى.بلكه صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې هم په دې مسئله كښې اختلاف وو.خو بعضې سلفو نه دا مروى دى چه دعدت باره كښې آزاده او وينځه برابر دى.ځكه چه آيت دخپل عموميت لحاظ سره دواړوته شامل دې.او ددې وجې چه دا فطرى امر دې.نو وينځه او آزاده ښځه په دې كښې برابر دى.د حضرت محمد بن سيرين رحمه الله،اودبعضې اهل ظاهرهم دا قول دې.ليكن دا ضعيف دې.غريب سند والا حديث كښې دى چه حضرت اسماء بنت زيد بن سكن انصاريه رضي الله عنها باره كښې دا آيت نازل شوې دې.ددې نه مخكښې د طلاق عدت نه وو.د تولو نه مخكې د عدت حكم ددې د طلاق نه پس نازل شو.([2])

### د وينځې عدت څومره دې؟

[1]) ابودارد كتب الطلاق باب ل طلاقه الامة عدتها: ۲۰۷۹)-

[2]) ابودارد كتاب الطلاق باب عدة المطلقة : ۲۲۸۱،وسنده حسن)-

**مسلک حنفي:-** په تسهيل الهدايه کښې ضمنا دا مسئله ماته ملاو شوه چه د وينزې عدت دوه حيضه دي ځکه د ا ادې ښځې عدت درې حيضه دې اوچونکه حيض نيم کيدې نشي د دې وجې به د وينځې عدت دوه حيضه وي د تسهيل عبارت اوګورئ دريم دليل دنبیﷺ ارشاد دې.دویﷺ فرمائيلي دی.﴿طلاق الأمة تطليقان وعدتها حيضتان﴾ نوداحديث ددې آيت بيان واقع شوې دې.(تسهيل الهدايه (۳/ ۴۹۸)-

**د قروء نه مراد طهرونه دي:-** دقروء معنى کښې د سلفو اوخلفو برابر اختلاف دې.يو قول دادې چه ددې نه مراد طهر يعنى پاکى ده.د حضرت عائشه ﷺ هم دا فرمان دې.نو هغوئ دخپل رور حضرت عبدالرحمان دلورحضرت حفصه لره چه کله هغې درې طهره تير کړل او دريم حيض شروع شو نو حکم ني ورته اوکړو چه هغه دې مکان بدل کړی.حضرت عروه رحمه الله چه کله دا روايت بيان کړونو د صديقه ﷺ دويمه وريره ده عمره هم ددې واقعې تصديق اوکړو او وې فرمائيل چه خلقو په حضرت عائشه ﷺ باندې اعتراض هم اوکړو نودوی اوفرمائيل چه مراد طهر دې.( موطا امام مالك).([1]) بلکه موطا کښې د حضرت ابوبکر ابن عبدالرحمان داقول هم مروی دې چه ما د پوهه عالمانو نه دا قول هم آوريدلې دې چه د قروء تفسير طهر دې.( موطا امام مالك).([2])حضرت عبدالله بن عمر ﷺ هم دا فرمائي چه کله دريم حيض شروع شو نو دخپل خاوند نه برى شوه.او ددې نه خاوند بيل شو.( موطا امام مالك).([3]) حضرت امام مالك رحمه الله فرمائي چه خمونږ په نيز متحقق امر هم دا دې.حضرت عبدالله ابن عباس رضى الله عنه،زيد بن ثابت رحمه الله،ثابت بن سالم رحمه الله،عروه رحمه الله،سليمان بن يسار رحمه الله،ابوبکر بن عبدالرحمان رحمه الله،ابان بن عثمان رحمه الله،عطاء بن ابى رباح قتاده رحمه الله،زهري رحمه الله،اوباقى د اووه وارو فقهاء کرامو هم دا قول دې.د حضرت امام مالك رحمه الله،حضرت امام شافعى رحمه الله هم دامذهب دې.داود رحمه الله او ابوثور رحمه الله هم دا فرمائي.حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم يو روايت داشان مروى دې.
ددې دليل هغه بزرګانو د قران پاك دا آيت هم بيان کړې دې چه ﴿ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ ﴾ يعنى دوی ته په عدت کښې طلاق ورکړئ،يعنى طهر کښې د پاکوالى په حالت کښې،چونکه طلاق په طهرکښې ورکړې کيږي نو هغه هم په شمير کښې راځى.ددې نه معلوم شو چه پورته آيت کښې د قروء نه مراد حيض نه سوا يعنى د پاکئ حالت دې.ددې وجې دا حضرات فرمائي چه کله دريم حيض شروع شي نو ښځه د خپل خاوند د عدت نه بهر شوه.او ددې دکم نه کم عدت دوه ديرش ورځې دی اودوه لحظې دی.دعربو شاعرانو په شعرونو کښې هم دا لفظ د طهر دپاره استعمال شوې دې.

**د قروء نه مراد حيضونه دي:-** دويم قول دادې چه ددې نه مراد درې حيضه دی.او ترکومې چه هغه د دريم حيض نه پاکه نه شى نو دا په عدت کښې ده.اوبعضو ترغسل پورې ونيلى دی.اوددې دکم نه کم عدت درې ديرش ورځې او يو لحظه ده.ددې دليل کښې يو خودحضرت عمرفاروق ﷺ دا فيصله ده چه چرته نه ماته يو مطلقه ښځه راغله او وې ونيل چه زما خاوند ماته يو يا دوه طلاقه راکړی وو،بيا هغه مالره په هغه وخت کښې راغلو چه کيږې ويستلې وې او دروازه مې بنده کړې وه (يعنى دريم حيض نه مې لامبل ).نو اوفرمائي چه څه حکم دې يعنى رجوع به اوشى اوکه نه ؟ دوی اوفرمائيل چه زما خيال دې چه رجوع به اوشى.حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ددې تائيد اوکړو.حضرت ابو بکرصديق ﷺ،حضرت عمرفاروق ﷺ،حضرت عثمان ذى النورين ﷺ،حضرت على ﷺ،حضرت ابوداود رحمه الله،حضرت عباده ابن صامت رحمه الله،حضرت انس بن مالك رحمه الله،حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ،حضرت معاذ رحمه الله،حضرت

---

[1]) موطا امام مالک کتاب الطلاق باب ماجاء في الاقراء.....۵۴)-
[2]) موطا امام مالک کتاب الطلاق باب ماجاء في الاقراء.....۵۵)-
[3]) موطا امام مالک کتاب الطلاق باب ماجاء في الاقراء.....۵۸)-

ابی بن کعب ﷛، حضرت ابوموسی ﷬، حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه، نه هم دا قول مروی دی. سعید بن مسیب ﷬، علقمه ﷬، اسود ﷬، ابراهیم ﷬، مجاهد ﷬، عطاء ﷬، طاؤس ﷬، سعید بن جبر ﷬، حضرت عکرمه ﷬، محمد بن سیرین ﷬، حسن ﷬، قتاده ﷬، شعبی ﷬، ربیع ﷬، مقاتل بن حیان ﷬، سدی ﷬، مکحول ﷬، ضحاك ﷬، عطاء خراسانی ﷬، هم دافرمانی. حضرت امام ابوحنیفه ﷬ اوددوی اصحاب نه هم دا مذهب منقول دی.

حضرت امام احمد بن حنبل ﷬ نه زیات صحیح روایت هم دا مروی دی. دوی فرمانی چه د حضرت نبی کریم ﷺ لوئي لوئي صحابه کرامو ﷡ نه هم دا مروی دی. ابو ثور ﷬، اوزاعي ﷬، ابن ابی لیلی ﷬، ابن شرمه ﷬، حسن بن صالح ﷬، ابوعبدالله ﷬ او اسحاق بن راهویه ﷬ نه هم داقول نقل دي. یو حدیث کښې دا هم دی چه حضرت نبی کریم ﷺ حضرت فاطمه بنت ابی جحش فرمانیلی وو چه مونځ لره دخپلو اقراء په ورځو کښې پریږدئی. [1] نو معلوم شو چه د قروء نه مراد حیض دی. خو ددې حدیث یو راوي منذر مجهول دې او مشهور نه دې. خو ابن حبان ﷬ ده ته ثقه وائي. امام ابن جریر فرمانی چه لغتا (قروء) وائی دهرهغه څیز تلو راتلو وخت ته چه دهغې تلو راتلو وخت مقرر وی. ددې نه معلومه شوه چه ددې لفظ دوه معنې دي. دحیض هم او د طهر هم، اوبعضې اصولی حضراتو نه هم دامسلك نقل دی. والله اعلم.

اصمعی ﷬ فرمانی چه قرء وائي وخت ته، ابوعمرو بن علاء وائی چه عربو کښې حیض او طهر دواړو دپاره قرء استعمالیده. دابو عمر ابن عبدالبر قول دې چه د اهل عرب او د فقهاء په دې کښې اختلاف نه دې چه طهر او حیض دواړو ته قرء وائي. خود آیت معنی مقرر کولو کښې یو جماعت دې طرفته مائل دې او بل دې بل طرفته.

**د قروء نه مراد حیض دي**

**مسلك حنفي:-** صاحب دهدایه ﷬ د ﴿قروء﴾ په لفظ باندې بحث کوی. اوفرمانی. چه دا قروء لفظ د حیض اوطهردواړو په معنی کښې حقیقت دی. ځکه چه دا لفظ د اضدادوځنی دې. دلغت داامام ابن السکیت رائې هم دا ده. چونکه دا لفظ په دوو متضاد معانیوکښې مشترك دې. ځکه په یو وخت کښې دواړه معانی مراد نشی اخستلې. نودقروء دلفظ نه زمونږ په نیزحیض مراد دي (تسهیل الهدایه ٣/٤٩٧)-.

**قوله تعالی:-** وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ إِن كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۚ

**د رحمونو حالت پټولو ممانعت:-** بیا فرمانی چه ددوی په رحم کښې چه څه دی دهغې پټول حلال نه دی یعنی حمل نو هم او حیض راشی نو هم. چه که دوی په الله ﷻ او دقیامت په ورځ باندې ایمان ساتی. دې کښې دوی ته زورنه ده چه دحق خلاف مه کوئی. او ددې نه معلومیږی چه په دې خبره کښې به ددوی د خبرې اعتبار کولې شی. ځکه چه په دې باندې څه بیرونی شهادت نشی قائمیدلې. ددې وجې دوی خبرداري کړې شوې چه د عدت نه د زر وتلو دپاره حیض نه وی راغلې. او دوی اونه وائی چه د دوی حیض راغلې دې یا د عدت د زیاتوالی دپاره راغلې وی اوداپټ نه کړی، داشان دحمل هم خبر ورکړې شو.

**قوله تعالی:-** وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِي ذَٰلِكَ إِنْ أَرَادُوا إِصْلَاحًا ۚ

**په عدت کښې دننه خاوندانو ته د رجوع اجازت:-** بیا فرمانی چه ددې ښځې خاوند ته چه کوم دې ته طلاق ورکړې وو، د واپس کیدو پورا حق حاصل دی. ترکومې پورې چه طلاق رجعی وی یعنی یو طلاق نه پس هم او دوه طلاقو نه پس هم. باقی پاتې شو طلاق بائن یعنی درې طلاقه چه کله اوشی نو یادساتل پکار

[1] ابو داود کتاب الطهارة باب فی المرأة تستحاض.... ٢٨٠، نسائی: ٣٥٨، ابن ماجة: ٦٢٠)-

دی چه کله دا آیت نازل شوي دي نو هغه وخت پورې طلاق بائن نه وو بلکه هغه وخت کښې که سل طلاقه به ورکړې شو نو ټول به رجعی وو. طلاق بائن خو روستو د اسلام په احکامو کښې راغلو که درې طلاقه اوشی نو د واپس کیدو حق ورته نشته دې.هرکله چه دا خبره په خیال کښې وی نو د دې نه د اصولو د عالمانو د دې قاعدې ضعف هم معلومیږی چې د ضمیر په واپس کولو سره د مخکښې عام لفظ تخصیص کیږی که نه ددې وجې ددې آیت په وخت کښې دویم شکل نه وو. دطلاق هم یو صورت وو ،والله اعلم.

**قوله تعالی:- وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِىْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ**

**د ښځې خاوند خپلوکښې یوبل باندې حقوق:** بیا فرمائی چه لکه څنګه په دې ښځو باندې د سړو حقوق دی هم دغه شان ددې ښځو په سړو باندې حقوق دی.هریو ته پکار دی چه د بل لحاظ او خیال ساتی.

صحیح مسلم کښې دی چه حضرت جابر ﷺ نه روایت دې چه حضرت نبی کریم ﷺ د حجة الوداع په موقع باندې خپله خطبه کښې اوفرمائیل چه انې خلقوا دښځو باره کښې دالله ﷻ نه ویریږئی،تاسو د الله ﷻ امانت سره دوی اخستې دی،ا و د الله ﷻ کلمې سره مو د دوی شرمګاهونه حلال کړی دی.ښځو باندې ستاسو حق دې چه هغوئ دې ستاسو کور ته داسې څوك نه راولی چه هغې سره تاسو خفه شئ. که هغوئ داسې اوکړی نو تاسو هغوئ اووهئ چه (خلقو ته ) ښکاره شی.دهغوئ په تاسو باندې حق دې نو هغوئ ته د خپل بساط مطابق خوراك ورکړئ،هغوئ باندې اوڅکاك کوی هغوئ ته اغوستلو دپاره جامې ورکړئ.([1])

یو سړی د حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه خمونږ د ښځو په مونږ څه حق دې ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کله چه تاسو خورئ نو هغوئ ته هم ورکړئ،کله چه تاسو اغوندئ نو هغوئ ته هم ورکړئ،هغوئ په مخ مه وهئ،هغوئ ته کنځل مه کوئ،د هغوئ نه مه خفه کیږئ او هغوئ چرته مه لیږئ،او په کور کښې ئې ساتئ.([2]) ددې آیت په تلاوت کولو به حضرت ابن عباس ﷺ فرمائیل چه خه خوښوم چه دخپلې بی بی دخوشحالولو دپاره خپل ځان ښائسته کړم لکه څنګه چه هغوئ خپل ځان ښائسته کوی.([3])

**قوله تعالی:- وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ**

بیافرمائی چه سړی ته په هغوئ باندې فضیلت حاصل دې،بدنی حیثیت سر ه هم،اخلاقی حیثیت سره هم،دمرتبې حیثیت سره هم،دحکمرانئ حیثیت سره هم،دخرچ او اخراجات حیثیت سره هم،پرورش او نګرانئ حیثیت سره هم.غرض دنیاوی اودینی فضیلت هراعتبارسره،لکه څنګه چه فرمائی چه﴿اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ﴾ الخ.یعنی سړی دښځو سرداران دی.الله ﷻ یو یو ته فضیلت ورکړې دې.او ددې وجې هم دوی مال خرچ کوی.

**قوله تعالی:-وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ**

بیا فرمائی چه الله ﷻ دخپلو نافرمانو نه بدله اخستلو کښې غالب دې او خپلو احکامو کښې حکمت والا دې.

| اَلطَّلَاقُ | مَرَّتٰنِ | فَاِمْسَاكٌ | بِمَعْرُوْفٍ |
|---|---|---|---|
| طلاق | دوه خله دی | نو یا ساتنه ده | په صحیح طریقې سره |
| طلاق دوه خله دې بیا خو یا په روغ زړه ساتل دی | | | |

[1] صحیح مسلم کتاب الحج باب حجة النبی ﷺ : ۱۲۸۰)-

[2] ابوداود کتاب النکاح بآب فی حق المراة علی زوجها : ۲۱۴۲،ابن ماجة: ۱۸۵۰،وسنده صحیح)-

[3] الطبری: ۵۳۲/۴،ابن ابی حاتم: ۷۵۰/۲)-

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَوْ تَسْرِيْحٌ | بِاِحْسَانٍ ؕ | وَلَا يَحِلُّ | لَكُمْ | اَنْ تَاْخُذُوْا | مِمَّآ |
| یا پرېښودل دی \| په ښه طریقې سره \| او جائز نه دی \| ستاسو دپاره \| چې واخلئ تاسو \| دهغه مال نه کوم چې | | | | | |
| او یا په ښه طریقه رخصتول دی \| اوتاسودپاره جائزنه دی چې څه (مهروغیره) موهغوئ ته ورکړې وی | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اٰتَيْتُمُوْهُنَّ | شَيْئًا اِلَّآ | اَنْ يَّخَافَآ | اَلَّا يُقِيْمَا | حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ | فَاِنْ |
| تاسو ورکړې هغوئ له \| هیڅ څیز \| مګر \| که یریدل دواړه ښځه خاوند \| چې اوبه نشی ساتلې \| حدونه دالله \| نو که چرې | | | | | |
| دهغې نه څه حصه واپس اخلئ \| البته یوصورت دی که دواړه په دې ویرېږي چې دالله په مقررکړو حدونو به قائم پاتې نشی نو که | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خِفْتُمْ | اَلَّا يُقِيْمَا | حُدُوْدَ اللّٰهِ ۙ | فَلَا جُنَاحَ | عَلَيْهِمَا |
| داسې وه چې یریدئ تاسو \| چې قائم به پاتې نشی هغوئ دواړه \| په حدونو دالله \| نو نشته هیڅ ګناه \| په ښځه خاوند دواړو باند | | | | |
| تاسو سره داویره وی چې هغوئ دواړه (ښځه خاوند) به دالله په حدودو قائم پاتې نشی \| نو هیڅ ګناه | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِيْمَا | افْتَدَتْ بِهٖ ؕ | تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ | فَلَا تَعْتَدُوْهَا ۚ |
| په ورکولو یا اغستلو دهغه مال کښې \| چې په فدیه کښې ورکړی ښځه هغه \| داحدونه دالله دی \| نو مه اوړئ دهغې نه | | | |
| نشته په دې کښې که ښځه څه عوض ورکړی او خان خلاص کړی \| دغه دالله پاک مقرر کړی حدونه دی نود هغې نه وړاندې مه | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ يَّتَعَدَّ | حُدُوْدَ اللّٰهِ | فَاُولٰٓئِكَ هُمُ | الظّٰلِمُوْنَ ۝ | فَاِنْ | طَلَّقَهَا |
| او څوک چې واوړېدل \| دحدونو دالله \| نو هم هغوئ \| ظالمان دی \| بیا که چرې \| سړی طلاق ورکړو ښځې ته | | | | | |
| تیرېږي او څوک چې دالله پاک حدود مات کړی \| نو هم دغه کسان ظالمان دی \| نو که چرې خاوند ښځې له دریم طلاق هم ورکړو | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَا تَحِلُّ | لَهٗ | مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى | تَنْكِحَ | زَوْجًا | غَيْرَهٗ ؕ | فَاِنْ |
| نو نه حلالیږي دا ښځه \| هغه له \| روستو ددې نه تردې پورې \| چې په نکاح واخلی دغه ښځه \| خاوند \| بل \| بیا که چرې | | | | | | |
| نو بیا دغه ښځه هغه دپاره نه حلالیږي اترڅوچې دبل خاوند سره نکاح اونه کړی \|............بیا که | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| طَلَّقَهَا | فَلَا جُنَاحَ | عَلَيْهِمَآ | اَنْ يَّتَرَاجَعَآ | اِنْ ظَنَّآ |
| دې دویم خاوند طلاقه کړه ښځه \| نو نشته ګناه \| په دواړو باند \| چې یو بل ته رجوع وکړی دواړه \| هله چې پوخ خیال وی ددواړو | | | | |
| هغه دویم خاوند ورته طلاق ورکړی \| نو هیڅ حرج نشته که دواړه (رونبی ښځه خاوند) بیا یوځائې شی \| هله که دواړه داګمان کوی | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْ يُّقِيْمَا | حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ | وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ | يُبَيِّنُهَا | لِقَوْمٍ | يَّعْلَمُوْنَ ۝ |
| چې نیننګ به وسیرېږي دواړه \| په حدونو دالله \| اودغه حدونه دالله دی \| چې بیانوی نې الله \| دپاره دهغه خلقو \| چې پوهیږی | | | | | |
| چې دالله پاک په مقررو حدودو به (اوس) قائم پاتې شی \| اودا دالله پاک مقرر کړی حدونه دی \| چې د پوهانو دپاره نې واضحه | | | | | |

**قوله تعالی:- اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ۪ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ؕ**

**د رجوع قابل دوه طلاقه دی:** داسلام نه مخکښې دادستور ووچه خاوند څومره غواړی طلاقونه ورکوی او عدت کښې رجوع کوی. دې سره ښځې د سړو په ګرفت کښې وې چه طلاق به نې ورکړو او عدت ته به نزدې شوې نو رجوع به نې اوکړه، بیا به نې طلاق ورکړو، دا شان به نې ښځې تنګولې. نو اسلام حدبندی اوکړه چه داشان طلاقونه صرف دوه کیدیشی، دریم طلاق نه پس د واپس کیدلو حق پاتې نه وی.

**د ایت شان نزول:-** سنن ابوداود کښې باب دې چه درې طلاقونونه پس مراجعت منسوخ دې.بیا دا روایت راوړی چه حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه هم دا فرمائی.([1])ابن ابی حاتم کښې دی چه یو سړی خپلې ښځې ته اوونیل چه نه به خه تا اوسوم اونه به دې پریږدم.دې اوونیل چه دا څنګه ؟ وې ونیل چه طلاق به درکړم او کله چه دعدت ختمیدو وخت راشی نو رجوع به اوکړم،او هم دا شان به کوم.هغه ښځه حضرت نبی کریم ﷺ ته راغله خپل دا تکلیف ئې ورته بیان کړو او په ژړا شوه،دې باندې دا آیت مبارك نازل شو.

یو بل روایت کښې دی چه ددې آیت نازلیدو نه پس اوس خلقو په نوې طریقې سره دطلاق خیال کړل شروع کړل او پوهه شو.([2])او دریم طلاق نه پس خاوند ته د واپس کیدو حق پاتې نشو.او وې فرمائیل چه تاسوته خودوه طلاقو اختیار دې چه داصلاح نیت سره خپلې بی بی ته ورکړئ او بیا واپس شئ که هغه په عدت کښې دننه وی.اودا هم اختیار دې چه واپس نه شئ،او عدت تیر کړئ چه بلې نکاح سره واپس شئ،اوکه دریم طلاق ورکول غواړئ نو هغه هم احسان او ښه سلوك سره ورکړئ،نه دهغې څه حق وهئ او نه په هغې باندې ظلم کوئی،او نه هغې ته څه ضرر رسونی.

**د خلعې جواز:-** یو سړی حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه دوه طلاقونه خو په دې آیت مبارك کښې بیان شو،د دریم طلاق ذکر چرته دې ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ﴿أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ﴾ کښې.کله چه ددریم طلاق اراده اوکړئی نو ښځه تنګول،په هغې باندې سختی کول چه هغه خپل حق پریږدی او په طلاق باندې راضی شی،دا په سړو باندې حرام دی.لکه بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿ وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ ﴾ یعنی ښځو لره مه تنګوئی چه تاسو هغوئ ته څه ورکړی دی هغې نه څه واخلئ،اودا بله خبره ده چه ښځه خپلې خوشحالئ سره څه درکړ ی او طلاق طلب کړی.لکه فرمائی چه ﴿ فَإِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَرِيئًا ﴾ یعنی که ښځې په خپلې خوشحالئ سره تاسو ته څه پریږدی نو بیشکه هغه ستاسو دپاره حلال او طیب دی.او کله چه ښځې اوخاوند کښې بې اتفاقی زیاته شی او ښځه دهغه نه خوشحاله نه وی او دخاند حقوق نه پوره کوی نو داسې صورت کښې هغه دې څه واخلی اودخپل خاوند نه دې طلاق حاصل کړی.نودخاوندپه ورکړه او د ښځې په اخستو کښې هیڅ ګناه نشته دې.

**قوله تعالی:-** وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا إِلَّا أَنْ يَخَافَا أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ

**بغیر د څه وجې خلع کول:-** دا هم یادساتئ که ښځه بغیر د څه وجې نه دخپل خاوند نه خلع طلب کړی نو هغه سخته ګناهګاره ده.په ترمذی وغیره کښې حدیث دې چه کومه ښځه خپل خاوندنه بغیر د څه وجې نه طلاق طلب کړی نو په هغې باندې د جنت بوی حرام دې ([3]) او بل روایت کښې دی چه دجنت خوشبو د څلویښتو کالو په مسافت سره هم وی ([4])،او یو روایت کښې دی چه دا ښځه منافقه ده.([5])

**د خلعې په حکم کښې مذاهب:-** ① د سلفو امامانو د یوې لوئې ډلې دا فرمان دې چه خلع صرف په هغه صورت کښې ده چه نافرمانی او سرکشی صرف د ښځې طرفنه وی.په هغه وخت کښې سړې فدیه واخلی او دا ښځه آزاده کړی.لکه څنګه چه دقران پاك دې آیت کښې دی چه ددې نه سوا هیڅ یو

---

[1]) ابوداود کتاب الطلاق باب نسخ المراجعة بعد التطليقات الثلاث : ۲۱۹۵،نسائی: ۲۵۷٤،وسنده حسن)-

[2]) ترمذی : کتاب الطلاق باب رقم: ۱٦ح/۱۱۹۲ وهو حسن)-

[3]) ابوداود کتاب الطلاق باب فی خلع : ۲۲۲٦،ترمذی کتاب الطلاق باب ماجاء فی المختلعات : ۱۱۷۸،ابن ماجة: کتاب الطلاق باب کراهیة الخلع للمرأة: ۲۰۵۵،وهو صحیح)-

[4]) ابن ماجة: کتاب الطلاق باب کراهیة الخلع للمرأة: ۲۰۵۵،وهو صحیح)-

[5]) ترمذی کتاب الطلاق باب ماجاء فی المختلعات :۱۱۷٦ )-

صورت کښې دا جائز نه دی ③بلکه حضرت امام مالك رحمه الله فرمائی که ښځې ته تکليف رسوی او ددې په حق کښې کمې کوی چه دا مجبوره کړې شی او مال واپس راکړی نو ددې واپس کيدل واجب دی.④ حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی چه په حالت داختلاف کښې جائز ده نو په حالت د اتفاق کښې به په طريقه اولی سره جائزوی.⑤بکر بن عبدالله وائی چه خلع بالکل منسوخ ده.ځکه قران پاك کښې دی چه ﴿وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا﴾ يعنی که تاسو خپلو بيبيانوته يوخزانه هم ورکړې نوبياهم دهغې نه څه مه اخلئ؛ليکن دا قول ضعيف او مردود دی.

**دحبيبه بن سهل واقعه:-** اوس دآيت شان نزول واورئ.موطا امام مالك کښې دی چه حبيبه بنت سهل انصاريه دحضرت ثابت بن قيس بن شماس رضی الله عنه ښځه وه.يو ورځ حضرت نبی کريم ﷺ په تياره کښې د سحر مونځ دپاره اووتلو نووې کتل چه په دروازه کښې حبيبه ولاړه ده.حضرت نبی کريم ﷺ ترې تپوس اوکړو چه څوك ئې ؟ نو وې وئيل چه څه حبيبه بنت سهل يم.حضرت نبی کريم ﷺ ترې تپوس اوکړو چه څه خبره ده ؟ وې وئيل انې دالله رسوله ﷺ څه د ثابت په کور کښې نشم اوسيدلې.يا به هغه نه وی يا به څه نه يم.حضرت نبی کريم ﷺ چه دا واوريدل نو خاموش شو.هرکله چه حضرت ثابت رضی الله عنه راغلو نو حضرت نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه ستابی بی څه وائی.حضرت حبيبه اووئيل چه اې دالله رسوله ﷺ ! زما خاوند چه ماته څه راکړی دی هغه ټول ماسره دی.او څه ده ته واپس کول غوارم.حضرت نبی کريم ﷺ ،ثابت رضی الله عنه ته اووئيل چه هر څه واخله،نو هغه واخستل او حضرت حبيبه رضی الله عنها آزاده شوه. ([1])

يو روايت کښې دی چه حضرت ثابت رضی الله عنه هغه وهلې وه او دې وهلو سره دهغې هډوکې مات شوې وو.حضرت نبی کريم ﷺ چه کله هغه ته دا اوفرمائيل نو په هغه وخت کښې هغه تپوس اوکړو چه آيا څه دا مال اخستې شم.حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه آو.وې فرمائيل يارسول الله دې ته دوه باغونه ورکړی وو.دا ترې ماته واپس کړه.نو دمهرهغه دواړه باغونه واپس کړې شو او بيلتون راغلو.([2])

يو روايت کښې دی چه حضرت حبيبه رضی الله عنها دا هم فرمائيلی وو چه څه دهغه په ديندارئ او اخلاقو کښې عيب نه لټوم.ليکن په اسلام کښې کفرکول نه خوښوم.نو حضرت ثابت رضی الله عنه مال واخستلو او طلاق ئې ورکړو.([3])

بعضو روايتونو کښې دهغې نوم جميله هم راغلې دې.([4])بعضو روايتونوکښې داهم راغلی دی چه څه غصه او غضب نشم برداشت کولې.يو روايت کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه واخله خو زيات مه اخله.([5])يو روايت کښې دی چه حضرت حبيبه رضی الله عنها فرمائيلی وو چه هغه په صورت کښې هم څه ښه نه دې.([6])اوبل روايت کښې دی چه دا دعبدالله بن ابی خور وه.او دا په اسلام کښې د ټولو نه رومبئ خلع ده.

يو روايت داهم بيان شوې دې چه يارسول الله ﷺ ! مايو ځل دخيمې پرده اوچته کړه نو اومې کتل چه زما خاوند څو کسانو سره راروان دې او په هغه ټولو کښې دې تور او لنډې قدوالا بدصورته وو.د حضرت نبی کريم ﷺ په دې فرمان چه دده باغ واپس کړه،حضرت حبيبه رضی الله عنها فرمائيلی وو چه يارسول الله ﷺ که تاسو وائې نو څه نور څه ورکولو ته هم تياره يم.او يو روايت کښې دی چه حضرت حبيبه رضی الله عنها

---

[1]) موطا امام مالک کتاب الطلاق باب ماجاء ل الخلع : ٣١ ابوداود: ٢٢٢٧،وسنده صحيح نسائی: ٣٤٩٢،)-

[2]) ابوداود کتاب اطلاق باب ل الخلع : ٢٢٢٨،وسنده حسن)-

[3]) صحيح بخاری کتاب الطلاق باب الخلع وکيف الطلاق فيه: ٥٢٧٣)-

[4]) صحيح بخاری کتاب الطلاق باب الخلع وکيف الطلاق فيه: ٥٢٧٧)-

[5]) ابن ماجة کتاب الطلاق باب المختلعة تاخلمااخلاعطاها: ٢٠٥٦،وهون صحيح)-

[6]) ابن ماجة کتاب الطلاق باب المختلعة تاخلمااخذاعطاها: ٢٠٥٦،وهون صحيح)-

دا هم ونیلی وو چه یارسول الله ﷺ ! که دالله ﷻ ویره نه وې نو مابه دده په مخ توکلې وې.( ۱ )

**په خلع کښې د مهر نه زیات اخستلو د جواز قول حکم:-** ①دجمهورو مذهب خودادې که په خلع دښځې نه دهغه مال نه زیات هم واخلي چه کوم ئې ورکړې وی نو دا جائز دی.څکه چه قران پاك ﴿فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ﴾ فرمائيلی دی.حضرت عمر فاروق ؓ ته یوه ښځه راغله چه دخپل خاوندنه خفه وه. عمر فاروق ؓ اوفرمائيل چه دا ښځه په داسې کور کښې قید کړه چې په هغې ګندګي وی.بیا ئې دا دقید خانې نه راوبلله او ورته ئې اونیل چه څه حال دې ؟ هغې اوونیل چه په ماباندې دآرام شپې په ژوند کښې هم دا تيرې شوي.دوی دهغې خاوندته اوونیل چه دې ته خلع ورکړه اګر چه د غوږ د والۍ بدله کښې وی.

یو روایت کښې دی چه هغه ئې درې ورځې هغه ځائې کښې قید کړې وه.یو بل روایت کښې دی که دا تاته خپل معمولی سامان هم درکړی نو دا پريږده.

**د خلافت عثمانی واقعه:-** حضرت عثمان ؓ فرمائی چه ددې ټولو نه سوا هم خلع کیدیشی.ربیع بنت معوذ بن عفراء فرمائی چه زما خاوند به کله موجود وو نو بیا به ئې هم ماسره سلوك کښې کمې کولو اوکه چرته به لاړو نو بالکل به ئې محرومه کولم.یو خل ورته ما په جنګ کښې اوونیل څه چه زما په ملکیت کښې دی هغه ټول واخله او ماته خلع راکړه.هغه اوونیل چه آو او بیا دا فیصله اوشوه.خو زما تره حضرت معاذ بن عفراء دا واقعه حضرت عثمان ؓ ته اوکړه.حضرت عثمان ؓ هم دا فیصله برقرار اوساتله او وې فرمائیل چه ددې د امعمولی سامان پريږده اونور هر څه واخله.نوددې ( ۲ ) واقعاتو دا مطلب دې چه دا دلیل دی په دې خبره باندې چه ښځې سره څه وی هغه هر څه ورکولې شی او خلع اخستې شی.او خاوند دخپل ورکړی شوی مال نه زيات اخستې شي او خلع ورکولې شي.حضرت ابن عمر ؓ،حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه،حضرت مجاهد رحمه الله،حضرت عکرمه رحمه الله،حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله،حضرت قبیصه بن ذویب رحمه الله،حضرت حسن بن صالح رحمه الله،اوحضرت عثمان ؓ هم دا قول فرمائیلې دې.دحضرت امام مالك رحمه الله،حضرت لیث رحمه الله،حضرت امام شافعی رحمه الله،او ابوثور رحمه الله هم دا مذهب دې.ابن جریر رحمه الله هم داسند خوښوی.

② اود اصحاب حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله هم دا مذهب دې که ضرر او قصور د ښځې طرفنه وی نو خاوندلره جائز دی چه ده څه ورکړی وی هغه واپس واخلي او ددې نه زيات اخستل جائز نه دی.خو که زيات واخلي نو بیا هم د قضا په وخت کښې جائز دی.اوکه دخاوند دخپل طرفنه زیاتې وی نو بیا هیڅ هم اخستل جائز نه دې.د سعید بن مسیب رحمه الله،عطاء عمرو بن شعیب رحمه الله،زهری رحمه الله،طاوس رحمه الله،حسن رحمه الله،شعبی رحمه الله،حمادبن ابوسلیمان رحمه الله او ربیع بن انس رحمه الله نه هم دا مذهب منقول دې.معمر رحمه الله او حاکم رحمه الله وائی چه دحضرت علی ؓ هم دا فیصله ده.د اوزاعی رحمه الله بیان دې چه د قاضیانو هم دا فیصله ده چه هغوئ د ورکړی شوی مال نه زیات اخستل ښه نه ګنړی.ددوی دمذهب دلیل هغه حدیث هم دې چه کوم پورته بیان شو.اوپه هغې کښې دی چه خپل باغ واخله او ددې نه زيات مه اخله.مسند عبد بن حمید کښې هم یو مرفوع حدیث دې چه حضرت نبی کریم ﷺ خلع اخستونکی ښځې نه دخپل (مال نه ) زيات اخستلو لره مکروه کړی دی.( ۳ )

او په دې صورت کښې چه څه فدیه هغه ورکړی،دا لفظ په قران پاك کښې هم دې نو ددې معنی به دا وی چه د ورکړې شوی (مال ) نه څه ورکړی څکه چه ددې نه مخکې دا فرمان موجود دې چه تاسو دوی

---

[1] ) ابن ماجة كتاب الطلاق باب المختلعة تاخذمااعطاها: ۲۰۵۷)-

[2] ) صحيح بخارى كتاب الطلاق باب الخلع وكيف الطلاق فيه حديث: ۵۲۷۳)-

[3] ) عبد بن حميد وسنده)-

ته څه ورکړی دی هغې نه څه مه اخلئ.الخ.دربیع په قرات کښې د (به) نه پس د (منه) لفظ هم دې.

**په خلع کښې د مهر نه زیات څه اخستلو حکم**

**مسلک حنفی:-** د احنافو یعنی امام ابوحنیفه ابویوسف محمد او زفر رحمهم الله په نیز که زیاتې د ښځې وی نو د خاوند دپاره د هغې دمهر نه زیات واپس اخستل جائز دی خوکه زیاتې د سړی د طرفه وی نو بیا دده دپاره د مهر نه زیات څیز واپس اخستل جائز نه دی خو که واپې اخستل نو قضاء بیا هم جائز دې (احکام القرآن للجصاص (۵۳۵۱۱) شاه فیصل غفرله).

**قوله تعالی:-** تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَعْتَدُوهَا ۚ وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ:: بیافرمانی چه داد الله ﷻ حدود دی،ددې نه تجاوز مه کوئی اوچه څوك تجاوز کوی نوهغه به ګناهګار وی

**خلع طلاق فسخ ده:-** خلع بعضې حضرات په طلاق کښې نه شمیری.هغوی فرمانی که یو سړی خپلې ښځې ته دوه طلاقه ورکړی وی،بیا نې دې ښځې سره خلع کړې وه نو که خاوند غواړی نو دې سره بیا نکاح کولې شي،او ددې باندې دلیل دا آیت دې.دا قول د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه دې. عکرمه رحمه الله هم فرمائی چه دا طلاق نه دې.اوګورئی اول آخر د طلاق ذکر دې،اول د دوؤ طلاقو او بیا په آخر کښې د دریم طلاق او په مینځ کښې د خلع ذکر دې.

نومعلوم شو چه خلع طلاق نه دې بلکه فسخ ده.دحضرت عثمان رضی الله عنه،حضرت ابن عمر رضی الله عنه،حضرت طاؤس رحمه الله،حضرت عکرمه رحمه الله،حضرت امام احمدبن حنبل رحمه الله،حضرت اسحاق بن راهویه رحمه الله، حضرت ابوثور رحمه الله،حضرت داود ظاهری رحمه الله هم دا مذهب دې.د حضرت امام شافعی رحمه الله هم زوړ مذهب دادې.او د آیت ظاهری الفاظ هم دادی.

**خلع طلاق بائن دې:-** بعضې نور بزرګان فرمائي چه خلع طلاق بائن دې.او که دیو نه زیاتو نیت وی نو هغه هم معتبر دې.یو روایت کښې دی چه ام بکر اسلمیه خپل خاوند عبدالله بن خالد نه خلع واخستله ،او حضرت عثمان رضی الله عنه ده ته دیو طلاق فتوی ورکړې وه،او ورسره نې فرمائیلی وو که څه سامان دې اخستې وی نو هغه به هم وی لیکن دا ضعیف اثر دې،والله اعلم.

دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه،حضرت علی رضی الله عنه،حضرت ابن مسعود رضی الله عنه،حضرت ابن عمر رضی الله عنه،حضرت سعیدبن مسیب رحمه الله،حضرت حسن رحمه الله،حضرت عطاء رحمه الله،حضرت شریح رحمه الله،حضرت شعبی رحمه الله، حضرت ابراهیم رحمه الله،حضرت جابر بن زید رحمه الله،حضرت مالك رحمه الله،حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله،او ددوی ملګری حضرت ثوری رحمه الله،حضرت اوزاعی رحمه الله،او ابوعثمان بتی رحمه الله هم دا قول دې چه خلع طلاق دې.د حضرت امام شافعی رحمه الله نوې قول هم دادې.خو حنفیه وائی که ددوؤ طلاقونو نیت خلع کولو والا دې نو دوه به وی.اګر چه څه لفظ اونه وائې.او که مطلق خلع وی نو یو طلاق بائن به وی.که ددریو نیت وی نو درې به وی،د حضرت امام شافعی رحمه الله یو بل قول هم دې چه که د طلاق لفظ نه وی او نه بل څه دلیل یا شهادت نو بالکل هیڅ نشته دې.

**خلع طلاق دې**

**مسلک حنفی:-** دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز باندې خلع طلاق دې لکه څنګه چه فاضل مفسر رحمه الله فرمائیلی دی (تفسیر مظهری (۳۴۲۱۱)).

**د خلع عدت درې حیضه دی:-** ① دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله،حضرت امام شافعی رحمه الله،حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله،حضرت اسحاق بن راهویه رحمه الله مسلك دادې چه دخلع عدت د طلاق عدت دې.د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه،حضرت علی رضی الله عنه،حضرت ابن مسعود رضی الله عنه او حضرت سعید بن مسیب رحمه الله،حضرت سلیمان بن یسار رحمه الله،حضرت عروه رحمه الله،حضرت سالم رحمه الله،حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله،ابن شهاب رحمه الله،حضرت حسن رحمه الله،حضرت شعبی رحمه الله،حضرت ابراهیم رحمه الله،حضرت نخعي

رحمه الله، حضرت ابوعياض رحمه الله، حضرت فلاس بن عمرو رحمه الله، حضرت سفيان ثوري رحمه الله، حضرت اوزاعي رحمه الله، حضرت ليث بن سعد رحمه الله او ابوعبيده رحمه الله هم دا فرمان دې.امام ترمذي رحمه الله فرمائي چه اکثر اهل علم دې طرفته تلې دی.هغویٰ وائي چه چونکه طلاق دې نو ددې عدت هم د طلاق پشان دې.

**د خلع عدت حيض دې:-** ② دويم قول دا دې چه صرف ديو حيض غدث به ددې وی.حضرت عثمان رضی الله عنه هم دا فيصله کړې وه.اګر چه حضرت ابن عمر رضی الله عنه د دريو حيضونو فتوی ورکوله.ليکن ورسره ئي فرمائيلي وو چه حضرت عثمان رضی الله عنه مونږ نه بهتر دې اوځمونږ نه زيات لوئې عالم دې.او ابن عمر رضی الله عنه نه ديو حيض عدت هم مروی دې.حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه،حضرت عکرمه رحمه الله،حضرت ابان بن عثمان رحمه الله،او ټول هغه خلق چه دکومو نومونه پورته ذکر شوی دی چه خلع ته فسخ وائي ضروری دی چه ددې ټولو قول هم داوی.د ابوداود او ترمذی په حديث کښې دی چه ربيع بنت معوذ ته هم د خلع نه پس ديو حيض تيرولو فرمان حضرت نبی کريم ﷺ ورکړې وو.([1]) حضرت عثمان رضی الله عنه خلع والا ښځې ته فرمائيلي وو چه تاباندې هيڅ عدت نشته دې.خو که نزدې زمانه کښې خاوند سره يو ځائې شوې ئي نو يو حيض راتلو پورې هغه سره اوسه.مريم مغالبه باره کښې حضرت نبی کريم ﷺ چه کومه فيصله کړې وه د هغې تابعداری حضرت امير المومنين اوکړه.([2])

**مسلک حنفی:-** د مختلعه عدت د هغه مطلقې پشان دې د چا عدت چې درې حيضه وی که دا ښځه د ذوات الحيض نه وی (احکام القران للعثمانی (۱۱۲/ ٤٩٩)_

**مخلوعه ښځې ته د رجوع کولو حکم:-** ①دجمهور علماء کرامو او د څلورو واړو امامانو په نيز خلع والاښځې ته درجوع حق خاوند ته نه دې حاصل،ځکه چه دې خاوند ته مال ورکړې وو او خپل ځان ئې آزاد کړې وو.② د عبدالله ابن ابی اوفی رحمه الله،ماهان حنفی رحمه الله،سعيد رحمه الله او زهری رحمه الله قول دې که هغه د مهر مال واپس اخستې وی او واپس ئې کړی،نو د رجوع حق حاصل دې.بغير د ښځې د رضا نه هم رجوع کولې شی.③ سفيان ثوری رحمه الله فرمائي که خلع کښې دطلاق لفظ نه وو،نو صرف جدائی ده او د رجوع کولو حق نشته دې.او که د طلاق نوم ئې اخستې وی نو بې شکه هغه د رجوع پوره پوره حقدار دې.داود ظاهری رحمه الله هم دا فرمائي.خو په دې خبره باندې دټولو اتفاق دې که دواړه رضامند وی نونوې نکاح عدت کښې دننه دننه کولې ④ ابن عبدالبر رحمه الله ديو فرقې يو قول دا هم روايت کوی چه د عدت دوران کښې چه څنګه دې سره بل څوک نکاح نشی کولې هم داشان خلع ورکوونکې خاوند هم نشی کولې.ليکن دا قول شاذ اومردود دې.

**په عدت کښې د دويم طلاق واقع کيدو حکم:-** په دې ښځه باندې عدت کښې دننه دننه دويم طلاق هم واقع کيديشی يا نه.په دې کښې دعلماء کرام درې اقوال دی.① يو دا چه نه ځکه چه هغه ښځه دخپل نفس مالکه ده.او دې خاوند نه بيله شوې ده.د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه،حضرت ابن زبير رضی الله عنه،حضرت عکرمه رحمه الله،حضرت جابر بن زيد رحمه الله،حضرت حسن بصری رحمه الله،حضرت امام شافعی رحمه الله،حضرت احمد رحمه الله،حضرت اسحاق رحمه الله،حضرت ابوثور رحمه الله هم دا قول دې.② دويم قول د حضرت امام مالك رحمه الله دې که خلعې ورکولو سره چپ پاتې نشو نو بلکه طلاق ئې هم ورکړو نو دا به واقع شی.ګنی نه.ددې تائيد د هغې قول نه کيږی کوم چې د حضرت عثمان رضی الله عنه نه مروی دې.③ دريم قول دا دې چه عدت کښې به طلاق واقع کيږی.د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله اصحاب حضرت ثوری رحمه الله،حضرت اوزاعی رحمه الله،حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله،حضرت شريح رحمه الله،حضرت طاؤس

[1] ابوداود کتاب الطلاق باب فی الخلع : ۲۲۲۹،وسنده حسن ترمذی: ۱۱۸۵)_

[2] نسائی کتاب الطلاق باب عدة المختلعة : ۳۵۲۸،ابن ماجة: ۲۰۵۸،وسنده حسن)_



رحمه الله ،حضرت ابراهيم او زهري رحمه الله ،حضرت حاكم رحمه الله ،حضرت حكم رحمه الله ،حضرت حماد رحمه الله نه هم دا قول منقول دي.حضرت ابن مسعود رضی الله عنه او ابوالدرداء رضی الله عنه نه هم دا مروي دى ليكن ثابت نه دى.
بيا فرماني چه دا د الله ﷻ حدونه دى.الخ.صحيح حديث كښي دى چه د الله ﷻ حدونو نه مخكښي مه ځئ، فرائض مه ضائع كوئى،دمحارمو بي حرمتي مه كوئى،چه دكوم څيزونو شريعت كښي ذكر نشته دي تاسو هم په هغي باندې خاموش شئ ځكه چه الله ﷻ دهيرې نه پاك دې.([1]) دې آيت نه د هغه خلقو استدلال دې چه وائى چه درې طلاق په يو ځائي وركول حرام دى.د مالكيه او ددوى دموافقينو هم دا مذهب دې.ددوى په نيز سنت طريقه هم داده چه طلاق دې يو يو وركړې شى.ځكه چه ﴿اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ﴾ ونيلي شوى دى.
قوله تعالى:- تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا
**دالله د حدود نه د تجاوز كولو حرمت**:- بيا فرماني چه داحدونه دى دالله ﷻ ددې حدونو نه تجاوز مه كوئى.ددې تقويت ددې حديث نه هم شوې دې چه كوم په سنن نسائى كښي دې چه حضرت نبى كريم ﷺ ته يو خل دا معلومه شوه چه يو سړي خپلي ښځي ته درې طلاق په يو ځائي وركړې دى.حضرت نبى كريم ﷺ ډير په غصه شو او اودريدلو او وې فرمانيل چه زما په موجودګئ كښي به د الله ﷻ كتاب سره ټوقي كولي شي.تر دې چه يو سړي اودريدواو وې ونيل كه حضرت نبى كريم ﷺ اجازت اوكړي نو خه به هغه سړي قتل كړم،([2])خو ددې روايت سند انقطاع دې.
قوله تعالى:- فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ
**دطلاق مغلظ** :- بيا ارشاد دې چه كله يو سړي خپلي ښځي ته د دوه طلاقو وركولو نه پس دريم طلاق هم وركړى.نو هغه به په ده باندې حرامه شى.تر دې چه بل خاوند سره باقاعده نكاح اوكړي،هم بسترى اوكړي،بيا هغه مړشى يا طلاق وركړي.نو كه بغير د نكاح نه لكه وينځه ئې جوړه كړي او وطى ورسره اوكړي نو دابه هم د مخكښي خاوند دپاره حلاله نه وى.دا شان اګر كه باقاعده نكاح شوي وى اودې دويم خاوند ورسره مجامعت نه وى كړې نو بيا هم رومبى خاوند دپاره حلاله نه ده.
**سعيد بن مسيب ته د يوقول نسبت**:- اكثرو فقهاء كښي مشهور دى چه حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله ، مجرد عقد ته حلال وائى اګر چه يوځائي شوى نه وى.خو دا خبره د هغوئ نه ثابته نه ده.يو حديث كښي دى چه حضرت نبى كريم ﷺ نه سوال اوشو چه يو سړي يو ښځي سره نكاح كوي او د دخول نه مخكښي طلاق بته ورته وركوى،او هغه بله نكاح كوى او هغه ورته هم د دخول نه مخكښي طلاق وركوى،نو آيا دا په رومبي خاوند باندې حلاله ده.حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمانيل چه نه بلكه تر څو چه هغه ددې نه او دې دهغې خوند وانخلي.(مسنداحمد ،ابن ماجه وغيره ).([3]) ددې روايت راوى حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه پخپله حضرت امام سعيد بن مسيب رحمه الله دې.نودا څنګه ممكن ده چه هغه دې روايت هم كوى او بيا دې مخالفت هم كوى.او بيا بلادليل هم.
يو روايت كښي دى ښځه رخصت شى لاړه شى او يو مكان كښي ښځه خاوند يوځائي شى،پرده واچوى ليكن صحبت اونه كړي نوبيا هم دا حكم دې.([4]) پخپله ددوى په زمانه كښي هم دا شان واقعه شوې وه.ددوى نه تپوس اوشو خو دوى ورته د رومبى خاوند اجازت ورنكړو.(بخارى و مسلم ).([5])

[1] الحاكم ل المستدرك: ١١٥/٤)-
[2] نسائى كتاب الطلاق باب الثلاث المجموعة وما فيه من التغليظ : ٣٤٣٣،وسنده حسن)-
[3] احمد : ٨٥/٢،كتاب الطلاق باب احلال المطلقة ثلاثا: ٣٤٤٣،ابن ماجة : ١٩٣٣،وهو صحيح)-
[4] احمد : ٨٥/٢،كتاب الطلاق باب احلال المطلقة ثلاثا: ٣٤٤٣،ابن ماجة : ١٩٣٣،وهو صحيح)-
[5] صحيح بخارى كتاب الطلاق باب من جوز الطلاق الثلاث : ٥٦١٠،صحيح مسلم: ١٤٣٣)-

يو روايت كښې دى چه د حضرت رفاعه قرظى رحمه الله بى بى صاحبه تميمه بنت وهب ته چه دريم او آخرى طلاق وركړو نو ددوى نكاح حضرت عبدالرحمان بن زبير رضي الله عنه سره اوشوه ليكن دا دوباره شكايت سره دحضرت نبى صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضره شوه او وې وئيل چه هغه دښځې په معيار پوره نه دې ماته اجازت راكړئى چه خه خپل ړومبى خاوند كره لاړه شم.حضرت نبى كريم ﷺ ورته اوفرمائيل چه دانشى كيدلې تر څو چه ستا نكاح بل خاوند سره اونشى.اوهغه سره مجامعت اونشى.[1] ددې احاديثو ډير سندونه دى او مختلفو الفاظو سره مروى دى.

**فصل:**

**د دويم خاوند سره د نكاح شرعى طريقه:-** دا يادساتل پكار دى.چه د دويم خاوندنه مقصد دادې چه پخپله هغه سره رغبت وى او هغه هميشه دښځې ساتلو خواهش مند وى.ځكه چه دنكاح مقصد هم دادې.دانه چه مخكې خاوند دپاره صرف حلاله شى او بس.

**دتحليل جماع به شرعى طريقې سره وى:-** بلكه حضرت امام مالك رحمه الله فرمائى چه دا شرط دې چه دا مجامعت هم مباح او جائز طريقې سره وى لكه ښځه روژه داره نه وى،د احرام حالت كښې نه وى ،د اعتكاف حالت كښې نه وى،دحيض يا نفاس حالت كښې نه وى.دا شان خاوند هم روژه دار نه وى، محرم يا معتكف نه وى،كه په طرفينو كښې يوكښې هم دې حالت كښې وى اوبياوطى هم اوشى،بيا هم ړومبى خاوند باندې حلاله به نه وى.داشان كه دويم خاوند ذمى وى نو بيا به هم ړومبى خاوند دپاره حلاله نه وى.ځكه چه د امام مالك صاحب رحمه الله په نزد دكافرو په خپلو كښې نكاح باطل ده.

**د تحليل په جماع كښې د انزال شرط:-** امام بصرى رحمه الله خو دا شرط هم لګوى چه انزال هم وى ځكه چه د حضرت نبى كريم ﷺ الفاظو نه په ظاهره كښې دا معلوميږى چه تركومې پورې هغه ستا نه اوته دهغې نه مزه وانخلې او كه هم دا حديث ددې پيش نظر وى نو پكار دى چه دښځې طرفنه هم دا شرط معتبر وى ليكن دحديث لفظ ﴿عسيلة﴾ نه منى مراد نه ده دا ياد ساتئى ځكه چه مسند احمد او نسائى كښې حديث دې چه عيسله نه مراد جماع ده.[2] كه د دويم خاوند اراده ددې نكاح نه دا وى چه دابښځه دړومبى خاوند دپاره حلاله شى نو دداسې خلقومذمت بلكه ددې د ملعون كيدو تصريح په حديثو كښې راغلې ده.

**په حلاله كونكى باندې لعنت:-** مسند احمد كښې دى چه بدن كښې ستنې سره رانجه لګول،اونورو لره داسې كولو والا ښځې او ويښته يو ځائې كولو والا ښځو باندې لعنت وئيلې شوى دې.حلاله كولو والا اوچه دچا دپاره چه حلاله كوى،په هغوئ هم دالله ﷻ غصه.سودخور او سود وركولو والا هم لعنتى دى.[3] امام ترمذى رحمه الله فرمائى چه دصحابه كرامو رضي الله عنهم هم دا عمل دې.حضرت عمر فاروق رضي الله عنه،حضرت عثمان رضي الله عنه،حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه هم دا مذهب مروى دې.تابعين فقهاء هم دا وائى.على ابن مسعود رضي الله عنه او حضرت عبدالله ابن عباس رضى الله عنه هم دا فرمان كوى.

**لعنتى خلق:-** او يو روايت كښې دى چه د سودګواهى وركولو والو او ددې دليكلو والو باندې هم لعنت دې.زكوة نه وركونكى او په اخستو كښې زياتى كولو واله باندې دالله ﷻ لعنت دې.هجرت نه پس

---

[1] دا روايت چه دې كښې د رفاعه د بى بى صراحت دې،دا امام مالك موطا كتاب النكاح،باب النكاح المحلل وما اشبهه : ۱۷ كښې ذكر كړې دې وهو صحيح،ياد ساتئ روايت كښې دى حضرت نبى كريم صلى الله عليه وسلم حاضريدو والا حضرت رفاعه پخپله دې ددا بى بى نه لكه څنګه چه صحيح مسلم كښې دى : ۱۴۳۳)۔

[2] احمد: ۶/۶۲)۔

[3] احمد : ۱/۴۴۸ كتاب النكاح باب ماجاء فى المحلل والمحلل له: ۱۱۱۹،النسائى: ۳۴۴۵)۔

واپس کیدو والو دپاره هم غضب دی.نوحه کول هم ممنوع دی.([1])یو حدیث کښې دی چه خه تاسو ته اووایم چه قرض اخستونکې سنډا څنګه دی.خلقواووئیل چه آو.وې فرمائیل چه څوك حلاله کوی یعنی طلاق والا ښځې سره ددې وجې نکاح اوکړی چه هغه د مخکې خاوند دپاره حلاله شی نو په ده باندې دالله ﷺ لعنت دې.او چه څوك دخپل خان دپاره داسې اوکړی هغه هم ملعون دی.(ابن ماجه ).([2]) یو روایت کښې دی چه دداسې نکاح په حقله د حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوشو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا خو هډو نکاح نه ده چه په دې کښې مقصود یو وی او ظاهر بل څه وی.چه په هغې کښې دالله ﷺ کتاب سره ټوقې شوې وی.نکاح صرف هغه ده چه رغبت سره وی.([3]) مستدرک حاکم کښې دی چې یو سړی عبدالله بن عمر ﷺ ته سوال اوکړو چې یو سړی خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل.دې نه ددهٔ رور دې ښځې سره په دې نیت نکاح اوکړه چې دا خماً رور دپاره حلاله شی نو آیا دا نکاح ده دوئ اوفرمائیل چې بالکل نه.مونږ خو به دې ته د نبی کریم ﷺ زمانه زنا وئیله.نکاح هغه ده چې په هغې کښې رغبت وی.د دې حدیث دې روستنۍ جملې دا موقوف کړې دې اګرچې په حکم کښې مرفوع کړې دې.بلکه یو روایت کښې دی چه امیر المومنین حضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائیل که څوك داسې کوی یا بل چاباندې ئې کوی نو خه دواړو باندې د زنا حد لګوم.یعنی هغوئ به رجم کوم.([4]) خلیفه حضرت عثمان ﷺ هم داسې نکاح کښې تفریق اوکړو.داشان حضرت علی ﷺ او حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه وغیره ډیرو صحابه کرام ﷺ نه هم دا مروی دی.

قوله تعالی:- فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يَتَرَاجَعَا إِنْ ظَنَّا أَنْ يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ

بیا فرمان دې که دویم خاوند دنکاح او وطی کولو نه پس طلاق ورکړی نو رومبی خاوند سره ددې ښځې په نکاح کولو کښې هیڅ ګناه نشته دې.خو چه دا ښه طریقې سره وخت تیروی.او دا دې وی چه هغه دویمه نکاح صرف نکاح دهوکه اومکروفریب نه وو.بلکه حقیقت وو.دا دی د الله ﷺ شرعی احکام چه د عالمانو دپاره الله ﷺ واضح کړی دی.

**د یو طلاق نه پس عدت ختمیدل او بل سره نکاح کول:-** امامان په دې کښې اختلاف لری چه یو سړی خپلې ښځې ته دوه یا یوطلاق ورکړو اوبیا ئې هم پریږدی،تردې چه هغې باندې عدت تیرشو.بیا دې بل سره نکاح اوکړه.او هغه سره ئې هم بستری اوکړه،اوبیا ورته هغه هم ورته هم طلاق ورکړو اود دې عدت ختم شو،بیا ئې هغه رومبی خاوندسره نکاح اوکړه نو آیاهغه ته به دریو کښې چه کوم طلاقونه یعنی یو یادوه باقی وو صرف د هغې اختیار به وی او که رومبی درې طلاقونه به د شمیر نه ساقط شی.او ده ته به دوباره د دریو طلاقو حق حاصل وی.رومبې مذهب دحضرت امام مالك رحمه الله ،حضرت امام شافعی رحمه الله او حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله او د صحابه کرامو ﷺ یو جماعت دې او دویم مذهب دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله ،اوددوی دملګرو دې.اوددوی دلیل دادې چه کله دریم طلاق په شمیر کښې رانغلو نو رومبی او دویم به څنګه راشی.والله اعلم.

**په طلاق رجعی کښې زوج ثانی سره د نکاح نه پس زوج اول د څو طلاقو مالك دې؟**

**مسلك حنفی:-** په ذیر بحث مسئله کښې د امام ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله په نیز زوج اول چه دوباره نکاح اوکړی نو دې د درې طلاقو مالک شو او امام محمد رحمه الله فرمائی چه په اوله چې ورسره د څو طلاقو اختیار باقی پاتې شوې وو صرف هغه به باقی وی مثلاً که په اوله نکاح کښې ئې

---

[1] نسائی کتاب الزینة: باب الموتشمات......:۵۱۰۵)-

[2] ابن ماجة کتاب النکاح باب المحلل والمحلل له : ۱۹۳۶،وهو حسن)-

[3] الحاکم : ۱۹۹/۲ وسنده صحیح)-

[4] الطبری: ٥۹۸/٤)-

دوه طلاقه ورکړې وو نو اوس به ورسره صرف یو طلاق وی اوکه په اوله نکاح کښې ئې یو طلاق ورکړې وو نو اوس به ورسره دوه طلاقه وی (التفسیر المظهری (۳۴۷/۱)-

| وَإِذَا | طَلَّقْتُمُ | النِّسَاءَ | فَبَلَغْنَ | أَجَلَهُنَّ | فَأَمْسِكُوهُنَّ | بِمَعْرُوفٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او کله چې | طلاق ورکړئ تاسو | ښځوته | او نزدې شوې هغوئ | نیتې دعدت خپل ته | نو یا اوساتئ هغوئ | په ښه طریقې سره |
| بیانوې او هرکله چې تاسو ښځوته طلاق ورکړئ او هغوئ خپلې نیتې ته نزدې شی انو یا خوئې په روغ نیت ایساری کړئ | | | | | | |
| أَوْ سَرِّحُوهُنَّ | بِمَعْرُوفٍ | وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ | ضِرَارًا | لِتَعْتَدُوا | وَمَنْ | |
| یا پریږدئ هغوئ | په ښه طریقې سره | او مه ساتئ هغوئ | دپاره دضرر رسولو | چې زیاتې اوکړئ | او هغه څوک | |
| اویائې په ښه طریقه رخصت کړئ | دتنګولو دپاره ئې مه ایساروئ | دا ظلم دې | اوڅوک چې | | | |
| يَفْعَلْ | ذَٰلِكَ | فَقَدْ | ظَلَمَ | نَفْسَهُ | وَلَا تَتَّخِذُوا | آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا |
| چې کوی | داسې کار | په حقیقت کښې | هغه ظلم اوکړو | په خپل خان | او مه نیسئ | آیتونه دالله | په ټوقو سره |
| داسې کار اوکړی | هغه په خپل خان ظلم اوکړل |.....................اود الله پاک دآیتونو نه لوبې مه جوړونې | | | | | |
| وَاذْكُرُوا | نِعْمَتَ اللَّهِ | عَلَيْكُمْ | وَمَا | أَنْزَلَ | عَلَيْكُمْ | |
| او یاد کړئ | نعمت دالله | چې کړې ئې دې په تاسو باند | او هغه | چې نازل کړې دې الله | په تاسو باند | |
| اوپه تاسو چه دالله پاک کوم نعمتونه دی هغه یادساتئ | اوڅه چه ئې په تاسو د کتاب او حکمت نه نازل | | | | | |
| مِنَ الْكِتَابِ | وَالْحِكْمَةِ | يَعِظُكُمْ | بِهِ | وَاتَّقُوا اللَّهَ | وَاعْلَمُوا | |
| چه کتاب | او حکمت دې | نصیحت کوی هغه تاسو ته | په هغې سره | او اوویریږئ دالله نه | او پوهه شئ | |
| کړی دی په هغې سره تاسو ته نصیحت کوئ |.....................اوالله پاک نه ویره کوئ اوخبر شئ چې | | | | | | |
| أَنَّ اللَّهَ | بِكُلِّ شَيْءٍ | عَلِيمٌ | | | | |
| چې بیشکه الله | په هر څیز | خبر دې | | | | |
| الله پاک په هرڅه پوهه دې | | | | | | |

قوله تعالی:- وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ

**په طلاق ورکولو کښې ښه طریقه اختیار کړئ**:-سرو ته حکم دې چه کله هغوئ خپلو بیبیانوته طلاق ورکوی نوچه په کومو طلاقونو کښې هغوئ ته دواپس کیدو حق حاصل وی او عدت نزدې وی نو یا خودې ښه طریقې سره واپس کړی یعنی رجعت باندې دې ګواه مقرر کړی او ښه طریقې سره دې د اوسولونیت اوکړی او یا دې هغوئ ښه طریقې سره پریږدی.اوعدت ختمیدو نه پس دې دخپل خانې نه بغیرد دښمنئ او جنګ نه اوباسی.د جاهلیت دا دستور اسلام ختم کړوچه کوم په هغوئ کښې وو چه طلاق به ئې ورکړو او عدت ختمیدو ته نزدې به ئې بیا رجوع اوکړه،بیابه ئې طلاق ورکړو اوبیا به ئې رجوع اوکړه.اوداشان به ئې ښځه همیشه دپاره تکلیف کښې ساتله چه نه په نکاح کښې پاتې وه اونه او کونده وه.نوالله ﷻ ددې نه ئې منع اوفرمائیل او وې فرمائیل چه داسې کولووالا ظالم دې.

قوله تعالی:-وَلَا تَتَّخِذُوا آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا

**دالله ﷻ په ایاتونو پورې د ټوقو ممانعت** - بیا ئې فرمائی چه د الله ﷻ آیتونه مذاق مه جوړونې.یوځل حضرت نبی کریم ﷺ داشعر قبیلې نه خفه شو نو حضرت ابوموسی اشعری ؓ راغلو او د خفګان تپوس

ني اوکړو.حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه داخلق ولې دا واني چه ما طلاق ورکړواوما رجوع اوکړه.
ياد ساته د مسلمانانو دا طلاقونه نه دی،ښځو ته د عدت مطابق طلاقونه ورکوني.(١) اودا مطلب هم اخستې شوې دې چه دا هغه سړې دې چه ښځې ته د ضرر رسولو دپاره طلاق ورکړی اودهغې عدت اوږدولو دپاره رجوع کوی.(٢) دا هم ونيلې شوی دی چه دا هغه سړې دې چه هغه طلاق ورکړی او بيا ني آزاده کړی يا نکاح اوکړی.بيا اووائی چه ما خودا په ټوقو ټوقو کښې اوکړل.نوداسې صورت کښې به په حقيقت کښې دا واقع کيږی.
حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرمانی چه يو سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړو بيانې اوونيل چه ما خو ټوقې کولې.نو په دې باندې دا آيت نازل شو او حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا طلاق اوشو.(ابن مردويه ).حضرت حسن بصری رحمه الله فرمانی چه خلقو به طلاق ورکولو او ښځې به نې آزادولې او نکاح به نې کوله او بيا به نې وئيل چې دا مونږ هسې زړه خوشحالولو دپاره اوکړل نو په دې دا آيت مبارک نازل شو او نبی ﷺ اوفرمائيل چه څوک طلاق ورکړی يا غلام آزاد کړی يا نکاح اوکړی يا بل چالره نکاح اوکړی که پخه نکاح وی اوکه هسې په ټوقول ټوقو کښې وی نو داټول اوشو ( ابن ابی حاتم ).دا حديث مرسل اوموقوف ډيرو سندونوسره مروی دې.
**د درې څيزونو ټوقې هم حقيقت دې:-** ابوداود،ترمذی،ابن ماجه کښې داحديث دې چه درې څيزونه داسې دی که هغه پخې ارادې سره وی يا ټوقو ټوقو کښې وی نودرې واړه به ثابت وی،① نکاح ② طلاق ③ رجعت.ترمذی رحمه الله دې ته غريب حسن وانی.
**قوله تعالى:-** وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمَا أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنَ الْكِتَابِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهِ
**دالله د نعمت يادولو حکم:-**بيافرمائی چې دالله ﷻ نعمت يادکړئ چه هغه رسول اوليږلو،هدايت او دليلونه نې نازل کړل اوکتاب اوسنت نې اوخودلو،حکم نې هم اوکړو اومنع نې هم اوکړه.وغيره وغيره چه څه کارونه کونې او د څه نه منع شئ هريو کښې د الله ﷻ نه ويريږئ او پوهه شئ چه الله ﷻ هر پټ او هر ښکاره ښه پيژنی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَبَلَغْنَ | النِّسَاءَ | طَلَّقْتُمُ | وَإِذَا |
| او اورسيږی هغوئ | ښځوله | تاسو | او کله چې \| طلاق ورکړو |
| \|\|وهغوئ خپله نيته ،عدت پوره کړی | | | \|\|اوهر کله چې تاسو ښځوته طلاق ورکړئ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِذَا | أَزْوَاجَهُنَّ | أَنْ يَنْكِحْنَ | فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ | أَجَلَهُنَّ |
| کله چې | خاوندانو خپلو سره\| | چې نکاح اوکړی\| | نو مه منع کوئ هغوئ\| | مودې خپلې ته \| |
| کله چې | | | خاوندانوسره دنکاح کولو نه ني مه منع کوئی\|.......... | نودخپلو ،اولنو، |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ | بِهِ | يُوعَظُ | بِالْمَعْرُوفِ ذَٰلِكَ | بَيْنَهُمْ | تَرَاضَوْا |
| هغه چاته | په دې سره\| | نصيحت کيدې شی\| | په ښکلې طريقه\|دا حکم | په خپل منځ کښې\| | هغوئ خوښ وی\| |
| هغوئ د رواج مطابق خپلو کښې راضی وی\| په دې خبروستاسونه هغه چاته نصيحت کولی شی چې هغه | | | | | |

(١) الطبری: ١٤/٥-
(٢) الطبری: ١٨/٥-

| كَانَ | مِنْكُمْ | يُؤْمِنُ | بِاللّٰهِ | وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ | ذٰلِكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي وي | ستاسونه | چي ايمان راوړي | په الله باندي | او په ورځ دآخرت باندي | دا حكم تاسو ته |

په الله پاك اوپه ورځ د آخرت ايمان ساتي |..........او داستاسو دپاره

| اَزْكٰى | لَكُمْ | وَاَطْهَرُ | وَاللّٰهُ | يَعْلَمُ | وَاَنْتُمْ | لَا تَعْلَمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چه زيات غوره دي | ستاسو دپاره | او زيات پاك | او الله | پوهيږي | او تاسو | نه پوهيږئ |

ډيره غوره اوپاكيزه طريقه ده | اوالله پاك په هرڅه ښه پوهيږي اوتاسونه پوهيږئ |

**قوله تعالى:-** وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ اِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ

**د ولي نه بغير د نكاح كولو حكم:-** په دې آيت كښې دښځو د ولي او وارثانو دې خبرې نه ممانعت دې چه كله يوه ښځه طلاقه شي اوعدت ئې هم تير شي او بيا ښځه خاوند خپلو كښې رضامند وي او نكاح كول غواړي نوهغوئ مه منع كوئي.په دې آيت كښې دليل دې ددې امر چه ښځه خپله نكاح پخپله نشي كولې اونكاح بغيرد ولي نه نشي كيدلې.ابن جرير او ترمذي ددې آيت تفسير كښې داحديث وارد كړې دې چه ښځه د ښځې نكاح نشي كولې.او ښځه خپله نكاح په خپله نشي كولې.او نكاح بغير د ولي نه نشي كيدې.هغه ښځې زناكارې دي چه خپله نكاح په خپله كوي.([1]) دويم حديث كښې دي چه نكاح بغيرد دوه رهبرانو نه او دوه عادلانونه نشته دې.([2])اګر چه په دې مسئله كښې اختلاف دې. ليكن دا د دې دبيان ځائې نه دې.مونږ په كتاب الاحكام كښې ددې بيان كړې دې. ﴿فالحمدلله﴾

**ښځه بغير د ولي نه نكاح كولې شي**

**مسلك حنفي:-** حنفيان وائي چه بغير د ولي نه نكاح جائز ده ځكه چرته د ولي نه بغير جائز نه وه هو الله تعالى به د نكاح كولو نسبت ولې كړې وې زوجينو به ئې نه كولو هركله چه الله «حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ» اوفرمائيل نو معلومه شوه چه په خپل اختيار سره سرې (احكام القران للعثماني ٥٠٩/١١٢).

**د ايت شان نزول:-**دا آيت دحضرت معقل بن يسار ؓ،او ددوى د خور ؓ باره كښې نازل شوې دې.صحيح بخاري كښې ددې تفسيرپه بيان كښې دې چه حضرت معقل بن يسار ؓ فرمائي چه زما خور لره به رشتې راتلې.ما ددې نكاح اوكړه.هغه ورته څو ورځې پس طلا ق وركړو.بيا عدت تيريدو نه پس ئې دنكاح درخواست اوكړو،ما انكاراوكړو،نو په دې باندې دا آيت نازل شو.چه ددې په آوريدو سره حضرت معقل ؓ د قسم خوړلو نه باوجود چه خه به ئې ستا په نكاح درنكړم اونه به راضي شم،دې راضي شو او وې ونيل چه ما دالله ﷻ فرمان واوريدو او ماأومنلو.او خپل اوخوئي مې راوبللو او دوباره ورسره نكاح اوشوه او دقسم كفاره مې وركړه.([3]) دهغې نوم جمل بنت يسار وو.ددې دخاوند نوم ابوالبداح وو،بعضو ددې نوم فاطمه بنت يسار خودلې ده.سدي رحمه الله فرمائي چه دا آيت دحضرت جابربن عبدالله ؓ او دده د تره لور باره كښې نازل شوې دې.خو رومبئ خبره صحيح ده.

**قوله تعالى:-** ذٰلِكَ يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

**په شرعي احكامو كښې دمخلوق ښيګړه ده :-** بيافرمائي چه د دهغه چا دپاره نصيحت او وعظ چه څوك په شريعت ايمان راوړي،دالله ﷻ نه ويريږي،د قيامت ويره وي ورسره،هغوئ ته پكار دي چه دهغوئ په

---

[1] ابن ماجة كتاب النكاح باب لانكاح الا بولى : ١٨٨٢)-

[2] الاوسط للطبراني نحو المعنى : ٥٢٥)-

[3] صحيح بخارى كتاب النكاح باب من قال لا نكاح الا بولى : ٥١٣٠،ابوداود : ٢٠٨٧،ترمذى: ٢٩٨١)-

ولایت کښې کومې ښځې دی هغوئ په داسې خالت کښې منع نه کړې دنکاح کولو نه.دشریعت اتباع
دې کوی،او داسې ښځې ددوی د خاوندانو په نکاح کښې ورکوی او خپل غیرت او پښتو چه دشریعت
ماتحت کول ستاسو دپاره بهتره ده اود پاکوالي سبب دې.ددې مصلحتونو علم الله ﷻ ته دی.تاسوته
ددې علم نشته دې چه په کوم یو کار کښې ښیګړه ده او د کوم یو کار په پرېښودلو کښې ښیګړه ده د
علم حقیقت الله ﷻ ته دې.

وَالْوَالِدٰتُ

او میندي |

اوطلاقې شوې میندي

يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ؕ

به يئ ورکوی | اولاد خپل ته | دوه کاله | پوره | دپاره دهغه پلارا چې غواړي| چې پوره کړي | دئي ورکولو موده

دې خپل اولاد ته پوره دوه کاله تئ ورکوی اکوم(پلاران) چې د(اولاد)د تی موده پوره کول غواړي

وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ لَا

او دی په پلار دبچی باند|خوراك ورکول میندوته| اوجامې ورکول میندوته| په معلومې طریقې سره| نه دی پکار

اودماشوم په پلار باندې ددغې ښځې نان نفقه اوجامې د رواج مطابق مقرر دی | هيڅا ته د هغه د وس

تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا

بوج اچول په هیچاباند|مگر مطابق | د طاقت دهغة| تکلیف دې نشی ورکولي |مورته| په سبب دبچی دهغې| اونه

نه زیات تکلیف نشی ورکولي | نه دې مور ته د هغې په بچي باندې ضرر رسولي شي (چې دا ستاخوني دې ونه نې ساته، اونه

مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ ۗ وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ ۚ فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا

پلاردهغه ته|په سبب دبچي دهغه|اوپه وارث باند|په شان ددغې|خوکه چرې|اوغواړي دواړه پریکول دبچي د تی نه

دې پلار ته د هغه په بچي باندې |اودغسې حق دماشوم په وارث باندې هم شته | خوکه پریکول غواړي دتی

عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ؕ وَاِنْ اَرَدْتُّمْ اَنْ

په رضا د دواړو سره| او په مشورې خپلې سره| نو نشته گناه| په دواړو باند| او که چرې غواړئ تاسو|چې

دواړه په خپلې رضا او صلاح مشورې سره |نوهیڅ ګناه نشته په دواړوباندې| اوکه تاسو نیول غواړئ نی

تَسْتَرْضِعُوْٓا اَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِذَا سَلَّمْتُمْ

دتی ورکولو په غرض اونیسئ: بله ښځه |د اولاد خپل دپاره | نو نشته گناه | په تاسو باند|کله چې ورکړئ تاسو هغه مزدوری

خپل اولاد دپاره بله دائي(مرضعه) | نوهیڅ گناه نشته خو چه ادا کوئ هغه (وظیفه)

مَّآ اٰتَيْتُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِمَا

چې مقرر کړې وی تاسو| په معلو مه طریقه | اواوبریږئ دالله نه| اوپوهه شئ| چې الله| په هغه کارونو

چې تاسومقرر کړې وی په ښه طریقه |............اوالله پاک نه ویره کوئ | اوخبر شئ چې الله پاک

| تَعْمَلُوْنَ | بَصِيْرٌ ﴿۲۳۳﴾ |
| --- | --- |
| چې کوئ ئې تاسو | نظر لرونکی دی |
| ستاسو کارونه وینی | |

**قوله تعالی:- وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ**

**بچی ته د پئيو ورکولو موده:**-دلته الله ﷻ دبچو والو ښځو باره کښې ارشاد فرمائی چه دپئيو ورکولو موده دوه کاله ده.دوه کالونه پس دپئيو ورکولو هيڅ اعتبار نشته دې.دې نه پس پئ ورکول ثابت نه دی .او نه پرې حرمت رضاعت ثابتيږی.د اکثرو ائمه کرام هم دا مذهب دې.

**د رضاعت موده:**- په ترمذی کښې باب دې،،چه د رضاعت حرمت هغه رضاعت ثابتوی چه د دوه کالو نه مخکې وی([1]) بيا حديث راوړی چه حضرت نبی کريم ﷺ فرمائی چه هغه رضاعت حراموی چه کومې کولمې ډکې کړی او د پئيو خلاصولو نه مخکې وی.داحديث حسن صحيح دې.او اکثر اهل علم صحابه کرام ﷺ وغيره هم په دې باندې عمل کوی چه ددوو کالونه مخکې رضاعت معتبر دې.دې نه پس رضاعت معتبر نه دې.ددې حديث راوی په شرط د صحيحينو دې.حديث کښې د ﴿فی الثدی﴾ لفظ راغلې دې.ددې معنی هم دمحل رضاعت يعنی ددوو کالونه مخکې دې.هم دا لفظ حضرت نبی کريم ﷺ په هغه وخت کښې فرمائيلی وو چه کله ددوی د خوئې حضرت ابراهيم وفات شوې ووچه د پئيو څکلو په موده کښې وفات شوې وو او هغه ته پئيو څکلو والا جنت کښې مقرروه.([2])دحضرت ابراهيم ﷺ عمر په هغه وخت کښې يو کال اولس مياشتې وو.دارقطنی کښې يو حديث کښې دې چې د دوو کالومودې نه پس رضاعت معتبر نه دې.([3]) حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه هم فرمائی چه دې نه پس هيڅ څيز نشته دې.د ابوداود طيالسی روايت کښې دی چه د پيئو پريښودلونه پس رضاعت نشته دې.د بلوغت نه پس د يتيمئ حکم نشته دې.([4])

پخپله قران پاك بل ځائې کښې فرمائی چه ﴿ فصاله فی عامين ﴾ الخ.د پئيو پريښودلوموده دوه کاله ده.بل ځائې کښې دی چه ﴿وَحَمْلُهٗ وَفِصٰلُهٗ﴾ يعنی حمل او پئ د دواړو موده ديرش مياشتې ده.اودا قول چه ددوو کالونه پس پئ ورکول او څکلو سره درضاعت حرمت نه دې ثابت،ددې ټولو حضرات ( هم دا قول ) دې.حضرت علی ﷺ،حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه،حضرت ابن مسعود ﷺ،حضرت جابر ﷺ،حضرت ابوهريره ﷺ،حضرت ابن عمر ﷺ،حضرت ام سلمه رضی الله عنها،حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله،حضرت عطاء رحمه الله او دجمهورو هم دامذهب دې.امام محمد رحمه الله او امام مالك رحمه الله نه هم دا مذهب منقول دې.يو حديث کښې دی چه د حضرت امام مالك رحمه الله نه دوه کاله او دوه مياشتې هم مروی دی.اويو روايت کښې دوه کاله او درې مياشتې هم مروی دی.حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دوه نيم کاله ښائی.زفر اوزاعی رحمه الله نه هم دا روايت دې.امام اوزاعی رحمه الله نه يو روايت کښې دی که ديو بچې دو کالو نه مخکې موده کښې پئ بند کړې شی،بيا دې نه پس ديو ښځې پئ اوڅکی نو بيا هم حرمت نه ثابتيږی.څکه چه اوس دا دخوراك قائمقام شو.امام اوزاعی رحمه الله نه دا روايت دا دې چه حضرت

---

[1]) ترمذی کتاب الرضاع باب ماجاء ان الرضاعة لا تحرم الا : ۱۱۵۲،وهو صحيح)۔

[2]) صحيح بخاری کتاب الجنائز باب ما قيل فی اولاد المسلمين : ۱۳۸۲،صحيح مسلم: ۲۳۱۶)۔

[3]) دارقطنی : ۱۷٤/٤،موطا امام مالک کتاب الرضاع باب رضاعة الصغير ح/٤،بيهقی : ۷ /٤٦۲،داروايت ابن عباس رضی الله عنه پورې موقوفا صحيح دې)۔

[4]) الطبرانی فی الکبير: ١٤/٤،ح/٣٥٠٢،وسنده حسن)۔

عمرفاروق ﷺ او حضرت علی ﷺ نه مروی دي چه د پنيو بندولو نه پس رضاعت نشته دي.ددې قول دوه مطلبه کيدېشي يعني يا خو دا چه د دوو کالو نه پس يا دا چه کله هم دې نه مخکې پې بندکړې شی.دې نه پس ځنګه چه دامام مالک رحمه الله فرمان دې.والله اعلم.

**د رضاعت د مودې بيان**

**مسلک حنفي:**-دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز باندې د رضاعت موده دوه نيم کاله دی او د امام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نيز دوه کاله ده لکه ځنګه چه د جمهورو قول دې او فتوی هم د صاحبينو په قول ده يعني د رضاعت موده دوه کاله ده که د دوو کالو نه پس ئې چا ته تې ورکړو په هغې باندې د رضاعت احکام نه مرتب کيږی (احکام القران للعثمانی (۱۱۲/۵۵۵)-

**د دوو کالو نه پس د رضاعت ثبوت:**- خو صحيح بخاری او صحيح مسلم کښې عائشه رضی الله عنها نه مروی دی چه هغه ددې (دوو کالو) نه پس بلکه د لوئې سړی رضاعت په حرمت کښې موثر ګڼړی (۱) عطاء رحمه الله او ليث رحمه الله نه هم داقول منقول دې.حضرت عائشه رضی الله عنها چه به د کوم سړی يو ځائې ته تګ راتګ ضروری ګڼړل نوپه داسې صورت کښې به ئې حکم ورکولو چه ښځې دې هغه ته خپل پې ورکړی.او ددې حديث نه به ئې دليل اخستلو چه حضرت سالم ﷺ چه دحضرت حذيفه مولی وو،حضرت نبی ﷺ ورته حکم کړې وو چه هغه دې دده د ښځې پې اوڅکی.حالانکه د ډيرې مودې وو.او په دې وجه هغه بيا تلو راتلو.ليکن دحضرت نبی کريم ﷺ نورې بيبيانې ددې نه انکار کولو او وئيل به ئې چه دا واقعه د هغه دپاره وه،دهر سړی دپاره دا حکم نه وو.(۲) يعنی د جمهورو مذهب دې يعنی دڅلورو وارو امامانو،او فقهاء،دټولو صحابه کرامو او د ټولو امهات المومنين سوا د حضرت عائشه رضی الله عنها نه دا دې چه د دوو کالو نه پس رضاعت نه ثابتيږی او ددوی دليل هغه حديث دې چه کوم بخاری او مسلم کښې دې چه حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه ستا رور څوک دې،رضاعت په هغه وخت کښې دې چه کله پې اولره ختموی(۳) باقی د رضاعت پوره پوره مسئله د ﴿وَأُمَّهَٰتُكُمُ ٱلَّٰتِيٓ أَرۡضَعۡنَكُمۡ﴾ تفسيرکښې به انشاء الله راشی.والله اعلم.

**قوله تعالی:**- ﴿وَعَلَى ٱلۡمَوۡلُودِ لَهُۥ رِزۡقُهُنَّ وَكِسۡوَتُهُنَّ بِٱلۡمَعۡرُوفِۚ لَا تُكَلَّفُ نَفۡسٌ إِلَّا وُسۡعَهَاۚ﴾

**د رضاعت د اجرت بيان:**-بيا فرمان دې چه د بچو د مور نان نفقه دبچو په پلار باندې ده.د خپلو ښارونولازدستور مطابق دې ادا کړی او نه دې زياتې کوی او نه دې کمې کوی بلکه د وس مطابق دې درميانه خرچ ورکړی.لکه فرمائی چه﴿ لِيُنفِقۡ ذُو سَعَةٖ﴾يعنی فراخئ والا دې دخپلې فراخئ مطابق او غريب دې دخپلې غريبئ مطابق ورکړی،الله ﷻ دطاقت نه زيات تکليف نه ورکوی.نژدې ده چه الله ﷻ به د سختئ نه پس آسانی راولی.حضرت ضحاک رحمه الله فرمائی چه يو سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړی او دې سره بچې هم وی،نو ددې بچې دپئو ورکولو پورې خرچ په دې سړی باندې واجب دې.

**قوله تعالی:**- ﴿لَا تُضَآرَّ وَٰلِدَةُۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوۡلُودٞ لَّهُۥ بِوَلَدِهِۦۚ﴾

**ښځې او خاوند ته د ښه سلوک حکم:**-بياارشاد فرمائی چه ښځه دې بچی ته دپئو ورکولونه انکار نه کوی اودې سره دې دبچې پلارته تکليف نه ورکوی بلکه بچی ته دې پې ورکوی.څکه چه همداددې د ژوندتيريدوذريعه ده.هرکله چه بچې پنيو نه بې نيازه شی نوبيشکه بچې دې ورکړی.خوبيادې هم د نقصان رسولواراد نه کوی.داشان خاوند دې ددې نه بچې نه بيلوی چه دې سره هغې غريبې ته تکليف

(۱) صحيح مسلم کتاب الرضاع باب رضاعة الکبير: ۱۴۵۳)-

(۲) صحيح مسلم کتاب الرضاع باب رضاعة الکبير: ۱۴۵۳،ابو داود: ۲۰۶۱،نسائی: ۳۳۲۱،ابن ماجة: ۱۹۴۳)-

(۳) صحيح بخاری کتاب النکاح باب من قال لا رضاع بعد حولين: ۵۱۰۲،صحيح مسلم: ۱۴۵۵،ابوداود: ۲۰۵۸،نسائی: ۳۳۱۴)-

اورسي.

**قوله تعالی:- وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ**

**په وارث باندې د رضاعت خرچه:-** وارث ته هم داپکاردی چه دبچی مورته خرچ ورکولو کښې دا نه تنګوی.ددې حقوق خیال دې ساتي.او دې ښځې ته دې ضرر نه وروکوی.حنفیه او حنابله کښې چه کوم خلق ددې قائل دی چه رشته دارانو کښې دبعضو نان نفقه بعضو باندې واجب ده.هغوئ هم ددې آیت نه استدلال کړې دې،حضرت عمربن خطاب ﷺ او جهمور سلف صالحین نه هم دا مروی دی.حضرت سمره والا مرفوع حدیث نه هم دا واضح دی په هغې کښې دی چه کوم سړې دخپل یو رشته دار محرم شی نو هغه به آزاد وي.(۱)

دا هم یاد ساتل پکار دی چه دوه کالو نه پس پئ څکول عام طور بچی ته نقصان رسوی.یا جسمانی یا دماغی.حضرت علقمه ﷺ یوه ښځه اولیده چه د دوه کالونه ئې زیات بچی ته پئ ورکول نو دوی هغه منع کړه.

**قوله تعالی:- فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَن تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا**

**په رضامندئ سره د تی پرې کولو جواز:-** بیافرمائی چه دارضامندئ او مشورې سره دوه کالو کښې دننه دننه چه کله هم پئ بندول غواړی نو په هغه باندې هیڅ حرج نشته دې.خو دیو خوښې نه بغیر به د بل رضامندی ناکافی وی.دا دبچی دنګرانئ ترکیب دې.اوګورئ چه الله ﷻ په خپلو بندګانو باندې څومره زیات مهربان او رحیم دې چه د وړوکی بچی مور پلار ئې د هغه کارونو نه منع کړل چه په هغې کښې د بچی د بربادئ ویره وه اوهغه حکم ئې ورکړو چه په هغې یو طرفته دبچی حفاظت دې او بل طرفته دمور پلارهم اصلاح ده.

**قوله تعالی:- وَإِنْ أَرَدتُّمْ أَن تَسْتَرْضِعُوا أَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُم مَّا آتَيْتُم بِالْمَعْرُوفِ**

**د دائنړې نیولو اجازت:-**سوره طلاق کښې فرمائی چه ﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ﴾ که ښځې بچو ته پئ ورکوی نوتاسودهغوئ اجرت ادا کوئ.او خپلوکښې ښه معامله ساتئ دا بله خبره ده چه دتنګئ په وخت کښې ورته دبل چا پئ ورکړی.نو دلته هم فرمائی که مور او پلار متفق وی اودڅه عذر په وجه دبل چا پئ ورکول شروع کړی.او مخکښې دې پلار ددې ماشوم مور ته اجرت ورکړی.نو بیا هم په دواړو باندې څه ګناه نشته دې.او اوس دې د بلې نوکرې پئ ورکړی.

**قوله تعالی:- وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ**

**د الله نه د ویرې حکم:-**انې خلقو ! الله ﷻ نه هرامرکښې اوویرېږئ اوپوهه شئ چه ستاسوټولو افعالو اواقوالو نه هغه ښه واقف دې.

| وَيَذَرُونَ | مِنكُمْ | يُتَوَفَّوْنَ | وَالَّذِينَ |
|---|---|---|---|
| اوپریږدی هغوئ | استاسو نه | چې مړه شي | اوهغه کسان |
| | اوهغوی بیبیانې | اوچې په تاسو کښې څوک مړ شي | |

| فَإِذَا | وَعَشْرًا | أَشْهُرٍ | أَرْبَعَةَ | بِأَنفُسِهِنَّ | يَتَرَبَّصْنَ | أَزْوَاجًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیا چې کله | اولس ورځې | میاشتې | څلور | خانونه خپل | هغوئ دې په انتظارکښې اوساتي | ښځې |
| بیا هرکله چې | | | | | نوهغوئ دې څلور میاشتې او لس ورځې انتظار کوی(مثلا بله نکاح دې نه کوی) | پریږدی |

(۱) ابو داود کتاب العتق باب فیمن ملک ذارحم محرم : ۳۹٤۹،وسنده حسن : ترمذی: ۱۳٦۵،ابن ماجة: ۲۵۲٤)-

| بَلَغْنَ | اَجَلَهُنَّ | فَلَا جُنَاحَ | عَلَيْكُمْ | فِيمَا | فَعَلْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اورسیږی هغوئ | نیتي خپلي ته | نو نشته گناه | په تاسو باند | په هغه کار کښي | اچي اوکړي هغوئ |
| نیته (ځلورمیاشتي، پوره کړي خپله | | نو په تاسو هیڅ ذمه داري نشته | | په هغه کار کښي چي اوکړي هغوئ | |

| فِيٓ اَنْفُسِهِنَّ | بِالْمَعْرُوْفِ ؕ | وَاللّٰهُ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| په باره دخانونو خپلو کښي | په معلومي طریقي سره | اوالله | په هغه کارونو باند | چي کوئ ئي تاسو |
| په مناسب شرعی طریقه د خپلوخانونو پحقله | ............ | | ا والله ستاسو دهر کارنه | |

| خَبِيْرٌ ۝ |
|---|
| خبرداري |
| خبر دي |

**قوله تعالى:-** وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا يَّتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا

**دخاوند دوفات نه پس د عدت موده:-** په دې آيت کښې حکم کيږی چه ښځې دې دخپلو خاوندانو د وفات نه پس ځلورمياشتې لس ورځې تيرې کړی.که دوی سره مجامعت کړی وی اوکه نه.په دې خبره باندې اجماع ده.دليل ددې خو يو ددې آيت عموم او دويم هغه حديث چه کوم په مسنداحمدکښې اوسنن کښې دې.لکه چه امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه سوال اوشوچه يوسړې يو ښځې سره نکاح اوکړه اوهغې سره ئې مجامعت نه وی کړې اونه مهر مقرر شوې وو چه دده انتقال اوشو.اوفرمائې چه دده باره کښې څه فتوی ده.هرکله چه هغه ځوخل لاړو راغلو نو دوی اوفرمائيل چه خپلې رائې سره فتوې ورکوم که صحيح وی نو الله ﷻ د طرفنه نه ئې اوګنړه اوکه غلطه وی نو زما خطا به وی او دا زما اود شيطان د طرفنه اوګنړه.الله او رسول ﷺ د دې نه برې دې.زما فتوی دا ده چه دې ښځې ته به پوره مهر ملاويږی چه څه ددې دخاوند دستور وی اودې کښې به کمې زياتې نه وی.اودا ښځه به پورا عدت تيروی او دې ته به وراثت هم ملاويږی.دې آوريدو سره حضرت معقل بن يسار اشجعی رضی الله عنه اودريدو او وې فرمائيل چه د بروع بنت واشق رضی الله عنها باره کښې داالله ﷻ رسول هم دا فيصله ورکړې وه.حضرت ابن مسعود رضی الله عنه چه دا واوريدل نو ډير خوشحاله شو.بعضو روايتونوکښې دې چه د اشجع دا واقعه ډيرو خلقو روايت کړې دې.[1]

**د غير مدخول بها متوفى عنها زوجها عدت**

**مسلک حنفي:-** مسئله داده چه متوفی عنها زوجها عدت ځلور مياشتې اولس ورځې دی.برابرده که دا ښځه د ذوات الحيض ځنی وی اوکه دغير ذوات الحيض،که مسلمانه وی اوکه کتابيه وی.که بالغه وی اوکه نابالغه وی.که مدخول بها وی اوکه غير مدخول بها وی.که آ نيسه وی اوکه غير آنيسه وی که ددې خاوند آزاد وی اوکه غير آزاد وی.(تسهيل الهدايه (۱۳/۰۰۵)-

**د حملدار عدت وضع د حمل ده:-** خوکه يو ښځه د خپل خاوند د وفات په وخت کښې حمل کښې وی نو دهغې دپاره داحکم نه دې.دهغې عدت وضع د حمل ده.اګرچه د انتقال نه يوساعت پس اوشی.قران پاک کښې دی چه﴿ وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ ﴾ دحمل والو (ښځو ) عدت وضع د حمل ده خو حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه وضع حمل او ځلور مياشتو لسو ورځوکښې چه کوم روستو عدت دې

[1] ابو داود کتاب النکاح باب فيمن تزوج ولم يسم لها صداقا حتى مات: ۲۱۱٤،وهو صحيح،ترمذی: ۱۱٤٥،نسائی: ۳۳۵٦،ابن ماجة: (۱۸۹۱

هغه د حاملي عدت دی.دا قول ډېر ښه دی او د دواړو ایتونو په مینځ کښې د تطبیق دپاره ډېر ښه دی.

**د عهد نبوی واقعه:-** لیکن ددې خلاف بخاری او مسلم کښې یو صفا اوصریح حدیث موجود دی چه په هغې کښې دی چه د حضرت سبیعه اسلمیه رضي الله عنها خاوند مړ شو او په هغه کښې دا حملداره وه.او څو شپې تیرې شوې وې چه بچې پیدا شو.هرکله چه نې غسل اوکړو او جامې نې واغوستلې نو حضرت ابوالسنان ابن بعکك چه دا اوکتله نو وې فرمائیل آیا ته نکاح کول غواړې،په الله قسم ترڅو چه څلور میاشتې لس ورځې نه وی تیرې شوی نو ته نکاح نه شوې کولې.حضرت سبیعه رضي الله عنها چه دا واوریدل نو خاموشه شوه.او ماښام د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او ددې مسئلې تپوس نې ترې اوکړو.حضرت نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل لکه ستا بچې پیدا شو نو ته هم په هغه وخت کښې د عدت نه اووتلې.اوکه ته غواړې نو بیشکه نکاح کولې شې.[۱]دا هم مروی دی چه حضرت عبدالله ته کله ددې حدیث علم اوشو نو دوی هم دخپل قول نه رجوع اوکړه.ددې تائید ددې نه هم کیږی چه دحضرت عبدالله شاګردانو او ملګرو به هم ددې حدیث مطابق فتوې ورکولې.

**د ام ولد متوفی عنها عدت:** د وینځې عدت دومره نه دی بلکه ددې نه نیم دی.یعنی دوه میاشتې او پنځه ورځې.د جمهورو مذهب هم دادې چه څنګه د وینځې حد زنا د آزادې ښځې نسبت سره نیم دی داشان عدت هم دی.ابن سیرین رحمه الله اوبعضې نور علماء ظاهریه د وینځې او آزادې ښځې په عدت کښې دبرابرئ قائل دی.دهغوئ دلیل خود آیت عموم دی او بل داچه عدت یو جبلی امر دی چه په دې کښې ټولې ښځې برابرې دی.سعید بن مسیب رحمه الله،ابوالعالیه رحمه الله،وغیره فرمائی،دې عدت کښې حکمت دادې که ښځې ته حمل وی نو دې موده کښې به بالکل ظاهر شی.

**دعدت په موده کښې حکمت:-** د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه صحیحین والا مرفوع حدیث کښې دی چه د انسان دپیدائش دا حال دی چه څلویښت ورځې خو دمور په رحم کښې نطفه شکل کښې وی.بیا د وینې یو ټوټه غوندې شی تر څلویښتو ورځو پورې،بیا تر څلویښتو ورځو پورې د غوښې یو ټکړه وی .بیا الله ﷻ فرښته راولیږی او ده کښې روح واچوی.[۲]نو دا شپږ شلې ورځې شوې یعنی څلور میاشتې .لس ورځې احتیاط نې نور اوساتلو ځکه چه بعضې میاشتې د یوکم دیرشو ورځو وی.او هرکله چه په کښې روح واچولې شونواوس دبچی حرکت محسوسیږی.اوحمل بالکل ظاهرشی.ددې وجې دومره عدت مقرر شو.والله اعلم.سعیدبن مسیب رحمه الله فرمائی چه لس ورځې ددې دپاره دی چه روح هم په دې ورځوکښې اچولې شی.ربیع بن انس رحمه الله هم دا فرمائی.

**د متوفی عنها زوجها وینځې په عدت کښې اقوال:-** ① حضرت امام احمد رحمه الله نه یو روایت کښې دا هم مروی دی چه دکومې وینځې بچې پیدا شی نود هغې عدت هم د آزادې ښځې برابر دی.ځکه چه دا د دوی(فراش یعنی) دکور ښځې شوې او ددې وجې هم چه مسنداحمد کښې حدیث دی چه حضرت عمروبن العاص رضي الله عنه اوفرمائیل چه مونږ باندې سنت نبوی ﷺ مه ګډو وډ کوئ د اولاد والا وینځې عدت چه کله ددې سردار مړ شی څلورمیاشتې اولس ورځې دی.[۳] داحدیث یو بل طریق سره هم ابوداود کښې مروی دی.[۴]امام احمد رحمه الله دې حدیث ته منکر وائی او فرمائی چه ددې یو راوی قبیصه د خپل استاد نه دا روایت نه وو آوریدلې.حضرت سعید بن مسیب رحمه الله،حضرت مجاهد رحمه الله،حضرت سعید بن جبیر رحمه الله،حضرت حسن رحمه الله،حضرت ابن سیرین رحمه الله،حضرت ابوعیاض رحمه الله،حضرت زهری

---

[۱] صحیح بخاری کتاب المغازی باب رقم: ۱۰: ح/۳۹۹۱،صحیح مسلم: ۱۴۸۴)-

[۲] صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة صلوات الله علیهم : ۳۲۰۸،صحیح مسلم: ۲۶۴۳،نسائی: ۳۵۴۹،ابن ماجة: ۲۰۲۸)-

[۳] احمد: ۲۰۳/۴،ابوداود: ۲۳۰۸،وابن ماجة: ۲۰۷۳،)-

[۴] ابوداود کتاب الطلاق باب فی عدة ام الولد : ۲۳۰۸،ابن ماجة: ۲۰۷۳،)-

رحمه الله، او حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله نه هم دامنقول دی یزید بن عبدالملك مروان چه امیرالمومنین وو هم دا حکم کړی وو.حضرت اوزاعی رحمه الله،حضرت اسحاق بن راهویه رحمه الله،حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه همدا روایت منقول دی.④ خو طاوس رحمه الله،حضرت قتاده رحمه الله ددی عدت نیم بنائی یعنی دوه میاشتی او پنځه ورځې.④ حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله اوددوی ملګری حسن بن صالح بن حیی رحمه الله فرمائی چه دری حیضه عدت دی تیر کړی.دحضرت علی رضی الله عنه،حضرت ابن مسعود رضی الله عنه،حضرت عطاء رحمه الله،حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله قول همدا دی.⑤ د حضرت امام مالك رحمه الله،حضرت امام شافعی رحمه الله او حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله مشهور روایت کښې دی چه ددی عدت یو حیض دی.حضرت ابن عمر رضی الله عنه،شعبی رحمه الله،مکحول رحمه الله،حضرت لیث رحمه الله،حضرت ابوعبیده رحمه الله،ابوثور رحمه الله او دجمهورو مذهب هم دا دی.⑤حضرت لیث رحمه الله فرمائی چه یو میاشت او دری ورځې ماته زیاتی خوښې دی،والله اعلم.

**په ښځه د خاوند د غمرازی اهمیت**:-دی نه پس چه کوم ارشاد فرمائی دهغی نه معلومیږی چه دا غمرازی واجب ده.بخاری او مسلم کښې حدیث دی چه کومه ښځه په الله ﷻ باندی او د قیامت په ورځ باندې ایمان لری نو هغې ته پکار دی چه د دریو ورځونه زیات دې په یو مړی باندې غم نه کوی.خکه چه دا حرام دی.خویه خاوند باندې څلورمیاشتې لس ورځې غمرازی ده.([1])

یوې ښځې حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو چه زما دلور خاوند مړ شوی دی اوددې سترګه کښې مرض دی،څه دهغې سترګه کښې رانجه اولګوم.نو حضرت نبی کریم ﷺ جواب ورکړو چه نه.هغې دوه دری ځل دا سوال اوکړو او حضرت نبی کریم ﷺ هم دا جواب ورکړو.آخر ئې اوفرمائیل چه دا خو څلور میاشتې اولس ورځې کښې (یعنی عدت کښې) ده،جاهلیت کښې به تاسو کال کال عدت تیرولو.([2])

حضرت زینب بنت ام سلمه رضی الله عنها فرمائی چه مخکښې به کله دیو ښځې خاوند مړ شو نو هغه به ئې یو جونګړه کښې واچوله.هغې به ډیرې خرابې کپړې اغوستې.خوشبو وغیره به ئې نه لګوله.او ټول کال به داشان خرابه او خچنه وه او د پوره کال نه پس به راووتله اود اوښ خاشنړه به ئې واخستل او هغه به ئې اوویشتل،اویو ځناور لکه خر یا چیلۍ یا یو مارغه جسم سره به ئې خپل بدن مخلو،او اکثر به مړه هم شوه.([3])داجاهلیت د زمانې رسومات وو.دا آیت ددې نه روستو چې کوم آیت راځی د هغې دپاره ناسخ دی،چه په هغې کښې دی چه داسې ښځې دې ټول کال ایسارې وی.حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه وغیره همدا فرمائی خو په دې کښې نظر دې او ددې تفصیل به انشاء الله نزدې راشی.

**د غمرازۍ د حکم عمومیت**:- مطلب دا دې چه دې زمانې کښې کوندې ښځې لره زیب زینت اوخوشبو لګول او پړق پړوق والا جامې اچول او کالی وغیره استعمالول منع دی،او دا غمرازی واجب ده.یو قول کښې دا هم دی چه دطلاق رجعی عدت کښې دا واجب نه دی.او کله چه طلاق بائن اوشی نو د وجوب اوعدم وجوب دواړه اقوال دی.د فوت شوې خاوند په بیبیانو باندې خو دا ټوله غمرازی واجب ده.که هغه بالغه وی اوکه هغه ښځه وی چه دحیض وغیره نه پاتې شوې وی،او که آزاده ښځه وی،او که وینځه وی،که مسلمانه ښځه وی اوکه کافره وی.خکه چه دا آیت عام دی.

**په کافره او نابالغه ښځې غمرازی نشته**:- خو ثوری رحمه الله،او حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دکافرې ښځې د غمرازۍ قائل نه دی.اشهب رحمه الله او ابن نافع رحمه الله نه هم دا قول منقول دی.ددوی دلیل هغه حدیث دې چه په هغې کښې دی چه کومه ښځه په الله ﷻ او دقیامت په ورځ باندې ایمان لری (الخ).نومعلوم شو

---

([1])صحیح بخاری کتاب الطلاق باب تحد المتوفی عنها اربعة اشهر وعشرا:۵۳۳٦،صحیح مسلم:۱۴۸٦،ابو داود:۲۲۹۹،ترمذی:۱۱۹۵،نسائی:۳۵۰۲
([2])صحیح بخاری کتاب الطلاق باب تحد المتوفی عنها اربعة اشهر وعشرا:۵۳۳٦،صحیح مسلم:۱۴۸٦،ابو داود:۲۲۹۹،ترمذی:۱۱۹۵،نسائی:۳۵۰۲
([3])صحیح بخاری کتاب الطلاق باب تحد المتوفی عنها اربعة اشهر وعشرا:۵۳۳٦،صحیح مسلم:۱۴۸٦،ابو داود:۲۲۹۹،ترمذی:۱۱۹۵،نسائی:۳۵۰۲

چه دا حکم تعبدی دی.حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله او ثوري رحمه الله کم عمره نابالغه ښځي دپاره هم دا فرماني.خکه چه هغه غیر مکلفه ده.حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله اوددوی ملګری په دی کښي مسلمانه ښځه شاملوی.لیکن ددي مسائلو دتصفیه کولو دا موقع نه ده.والله الموافق بالصواب﴾.

**په کافره اونابالغې متوفی عنها زوجها د غمرازئ عدم وجوب**

**مسلک حنفي:-** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په کافره او نابالغه باندې د خاوند د وفات عدت نشته (احکام القران للعثماني رحمه الله (۵۸۱/۱۱۲).

**قوله تعالى:-** فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ

**دعدت تیرویدو نه پس ازادي:-** بیا فرماني چه کله ددوی عدت تیرشی نو ددوی په اولیاء باندې هیڅ ګناه نشته دی چه هغه ښځي ډول سنګار کوی یا نکاح کوی،دا ټول دوی دپاره حلال اوطیب دی.حسن رحمه الله ،زهری رحمه الله او سدی رحمه الله نه هم دا شان مروی دی.

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِ
| او نشته ګناه| په تاسو باند| په هغه کار کښې| چې اشاره کوئ تاسو| په هغې سره
او هیڅ حرج نشته که تاسو (په پټه دننه) خبره په اشاره کنایه کښې څرګنده کړئ

مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ أَوْ أَكْنَنْتُمْ فِي أَنْفُسِكُمْ ۚ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ
یعنی دغوښتلو اراده| ددغه ښځو|یا پټ ساتئ تاسو هغه|په زړونو خپلو کښې| معلوم دی الله ته| چې تاسو به خامخا
هغوئ ته د کوژدنې اویاداخواهش په خپلوزړونو کښې پټ اوساتئ الله ته معلوم دی چې تاسو به

سَتَذْكُرُونَهُنَّ وَلَٰكِنْ لَا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّا
یادوئ دغه کونډې ښځې ته| لیکن | چې اونه کړئ وعدې دهغوئ سره|پټې پټې | ماسوا ددې نه|
ددغه (کونډو)ښخوذکر کونی خو پټې وعدې اولوظونه ورسره مه کوئ مګر

أَنْ تَقُولُوا قَوْلًا مَعْرُوفًا ۚ وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىٰ
چې خبری اوکړئ ورسره |خبری | د رواج طریقې| اومه کوئ اراده| دتړولو دنکاح | تر دې پورې
که خبره ورسره کوئ نوپه سمه طریقې سره کولی شئ اوترهغې دنکاح کولو قصد مه کونی

يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي أَنْفُسِكُمْ
چې اورسیږی| مقرروخت |نیتې خپلې ته| او پوهه شئ| چې الله | پوهیږی| په هغه څه | چې په زړونو ستاسو کښې دی
چې نیته (عدت) پوره نشی اوپوهه شئ چې الله پاک ستاسو د زړونو په رازونو ښه خبر دی

فَاحْذَرُوهُ ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿۲۳۵﴾
نو اویریږئ دهغه نه| او پوهه شئ| چې الله |معاف کونکې | ډیر صبرناك دی
اودهغه نه ویره کونی | | وخبرشئ چې هغه ښنونکې صبرناک دی |

**قوله تعالى:-** وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ

**دنکاح دپیغام طریقه**:: مطلب دادې چه صراحت نه بغیر دنکاح دغوښتنې داظهار ښه طریقې سره عدت کښې دننه کولوکښې څه ګناه نشته دې.لکه داسې ونیل چه نکاح کول غواړم[1]څه داسې ښځه خوښوم.څه غواړم چه الله ﷻ زما جوړه هم جوړه کړی.انشاء الله څه به ستا نه بغیر بلې ښځې سره دنکاح کولو اراده نه لرم.څه یو دینداري ښځې سره نکاح کول غواړم.داشان هغه ښځې لره چه هغې ته طلاق بائن ورکړې شوې وي عدت کښې دننه داسې الفاظ ونیل جائز دی.لکه څنګه چه حضرت نبی کریم ﷺ فاطمه بنت قیس ﷞ ته فرمانیلی وو.(حالانکه ددې خاوند ابو عمرو بن حفص دې ته آخری طلاق ورکړې وو).کله چه ستا عدت ختم شي نو ماته خبر اوکړه.دعدت موده حضرت عبدالله ابن ام مکتوم ﷜ سره تیره کړه.هر کله چه دفاطمه ﷞ عدت ختم شو نو دعدت ختمیدو نه پس ني حضرت نبی کریم ﷺ ته اطلاع ورکړه.نودې دحضرت نبی ﷺ نه د اسامه بن زید ﷜ سره نکاح غوښتلی وه هغه سره نې نکاح اوکړه.([2]) خو درجعی طلاق په موده کښې هیچا ته دا حق نه دې حاصل سوا ددې دخاوند نه چه هغه کنایه یا اشاره کښې رغبت ظاهر کړی.والله اعلم.

دافرمان چه تاسو خپلو نفسونوکښې پټونی یعنی دکویژدنې خواهش،او بل ځائې کښې دی چه ستا رب ته ددوی د سینو او ښکاره کارونو پته ده.او بل ځائې کښې دی چه څه ستاسو پټو اوښکاره کارونو نه خبر یم.نو الله ﷻ ته ښه پته ده تاسویه خپلو زړونوکښې ضرور ذکر کونې.نودې وجې الله ﷻ تنګی لرې کړه خو دې ښځو سره پټې وعدې مه کونې یعنی زناکارۍ نه ځان اوساتئ.دوی ته دا مه وائې چه څه په تا عاشق یم،اوته هم وعده اوکړه چه ځمانه سوابه بل چاسره نکاح نه کوې وغیره.([3])عدت کښې داسې الفاظ ونیل حلال نه دی.نه دا جائز دی چه پټ په پټه عدت کښې اوکړی او عدت تیریدو نه پس ددې نکاح اظهار اوکړی.نو داټول اقوال ددې آیت په عموم کښې راتلې شی.نو ددې وجې فرمان اوشو مګر دا چه تاسو دوی ته ښه خبره اوکړنی لکه ولی ته ونیل چه تیزی نه کوی،ماته دعدت د تیریدو خبر راکړه.وغیره.ترکومې چه عدت ختم نشی تر هغه پورې نکاح مه کوئی.([4])

دعلماء کرام اجماع ده چه عدت کښې دننه دننه نکاح کول صحیح نه دی.که چا اوکړه اودخول هم اوشو نو بیابه هم په دوی کښې بیلتون کولې شی.آیا دا ښځه به ده باندې همیشه دپاره حرامه شی یا بیا دعدت تیریدو نه پس هغې سره نکاح کولې شی.په دې کښې اختلاف دې.جمهور وائی چه کولې شی لیکن حضرت امام مالك ﷫ فرمانی چه هغه ده باندې همیشه دپاره حرامه شوه.ددوی دلیل دادې چه حضرت عمرفاروق ﷜ فرمانی چه د کومې ښځې نکاح عدت کښې دننه دننه اوشی،که ددې خاوند دې سر د نه وې ملاو شوې نو دواړه به جدا کولې شی.او کله چه ددې د ړومبی خاوند عدت تیر شی نو دا سړې د نورو سړیشان دې ته دنکاح پیغام ورکولې شی.

اوکه دواړو کښې ملاپ هم شویدې نو بیا به هم جدائی راوستلې شی او دړومبی خاوند عدت به تیرکړی او بیا به ددویم خاوند عدت ثیروی.اوبیا به دې سړی سره نکاح هرګز نه کوی.([5])ددې فیصلې ماخذنه دامعلومیږی چه هرکله دې سړی تیزی اوکړه او داالله ﷻ دمقرر شوې حدونو لحاظ نې اونه ساتلو نو ده ته ددې خلاف ورزنی سزا ورکړې شوه چه هغه ښځه ده باندې همیشه دپاره حرامه کړې شوه .لکه قاتل چه دخپل مقتول وارثانو نه محرومولې شی.حضرت امام شافعی ﷫ د حضرت امام

---

[1]) صحیح بخاری کتاب النکاح باب قول الله تعالی ( ولا جناح علیکم فیما تراضتم....) ٥١٢٤)-

[2]) صحیح مسلم کتاب الطلاق باب المطلقة البائن لا نفقة لها: ١٤٨٠)-

[3]) الطبری : ١٠٧/٥)-

[4]) ابن ابی حاتم: ٨٣١/٢)-

[5]) الموطا: ٥٣٦/٢،ح/١١٦٢،وهو صحیح)-

مالك رحمه الله نه دا اثر روايت کړې دې.

امام بيهقي رحمه الله فرمائي چه رومبي قول خو د امام صاحب رحمه الله هم دا وو ليکن ددوی جديد قول دادې چه دده نه هم نکاح کول حلال دی. ځکه چه د حضرت علي رضي الله عنه هم دا فتوی ده. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه والا دا اثر منقطع دې بلکه حضرت مسروق رحمه الله فرمائي چه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ددې نه رجوع کړې ده. او فرمائيلي ئې دی چه مهر دې ورکړې او د عدت نه پس که دا دواړه غواړی نو نکاح کولې شي.

**قوله تعالى:- اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ۭ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ سَتَذْكُرُوْنَهُنَّ**

**الله د زړونو په پټو رازونو خبر دې:-** بيا فرمائي چه پوهه شئ چه الله جل جلاله ستاسو د زړونو په پټو خبرو باندې خبر دې. دهغه پاك ذات لحاظ او ويره کوئ، خپلو زړونوکښې د ښځو متعلق دالله جل جلاله فرمان خلاف خيال هم په زړه کښې مه راولئ، هميشه زړونه صفا ساتئ. خراب خيالات نه دا پاك ساتئ. د ويرې او خوف حکم سره ئې دخپل رحمت د طمع او لالچ هم ورکړې دې او فرمائي چه رب عالمين جل جلاله د خطاګانو معاف کولووالا او حلم او کرم والا دې.

| لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ | اِنْ طَلَّقْتُمُ | النِّسَآءَ | مَا | لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ |
|---|---|---|---|---|
| نشته ګناه په تاسو باند | که تاسو طلاق ورکړئ | ښځو له | تر څو | چې تاسو ګوتې نهٔ وی وروړی هغوئ ته |
| په دې کښې په تاسو هيڅ ګناه ګناه نشته | چې هغه ښځو ته طلاق ورکړئ چې نه مو لاس وراوړې وی | | | |

| اَوْ تَفْرِضُوْا | لَهُنَّ | فَرِيْضَةً ۚ | وَّمَتِّعُوْهُنَّ ۚ |
|---|---|---|---|
| او که نهٔ وی مقرر کړې تاسو | دهغوئ دپاره | مهر | اودخرچ څه سامان ورکړئ هغوئ له |
| او نه مود هغوی دپاره مهرمقرر کړې وی | .........(پداسې صورت کښې) څه نه څه مال متاع ورته وکړئ | | |

| عَلَى الْمُوْسِعِ | قَدَرُهٗ | وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ ۚ |
|---|---|---|
| واجب ده ورکړه په مالدارباند | په اندازه دمالدارئ دهغهٔ | اوپه غريب باندپه اندازه دغريبئ دهغهٔ |
| په مالدار باندې د هغه د حيثيت مطابق ورکړه ده | .........اوپه غريب باندې د هغه حيثيت مطابق | |

| مَتَاعًاۢ | بِالْمَعْرُوْفِ ۚ | حَقًّا | عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| څه سامان | مطابق د معلومې طريقې | داحق دې | په نيکانو خلقو باند |
| په مناسب طريقې سره مال متاع ورکړئ | اودا په نيکانو باندې يومقرر حق دې | | |

**قوله تعالى:- لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِيْضَةً**

**د دخول نه وړاندې د طلاق واقع کيدل:** دعقد نکاح نه پس ددخول نه مخکې هم طلاق ورکول مباح کيږي. مفسرين فرمائي چه دلته مراد د (مس) نه نکاح دې.(١) ددخول نه مخکښې طلاق ورکول چه لا مهر نه وی مقرر شوې نوطلاق ورکول هم جائز دی اګر چه په دې کښې دې ښځې ته ډير تکليف رسی. ددې وجې حکم کيږی چه د خپل وس مطابق سړی ته پکار دی چه ښځې سره سړې ښه سلوك اوکړی.

**قوله تعالى:- وَّمَتِّعُوْهُنَّ ۚ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ ۚ مَتَاعًاۢ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ**

**د متعې په تعين کښې اقوال:** ① حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه ددې اعلی حصه

(١) ابن ابي حاتم ٢/[illegible]

خادم دې.او ددې نه کمه حصه سپین زر دی اوددې نه کمه حصه جامې دی.یعنی که مالدار وی نو غلام وغیره او که مفلس وی نو کم نه کم دري جوړې کپړې دې ورکړي.③امام شعبی رحمه الله فرمانی چه درمیانه درجه دفائده رسولو داده چه قمیص،لوپټه او لحاف او څادر دې ورکړي.③ شریح رحمه الله فرمانی پنځه سوه درهم دی.حسن بن علي رضي الله عنه لس زره ورکړې وې خو هغه بی بی بیا هم ونیل چه ددې د مقبول محبوب د جدائی په مقابله کښې داحقیرڅیز هیڅ نه دې.④حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرمانی که دواړه ددې فائدې په مقدار کښې په جنګ شی نو ددې دخاوند دمهر نه دې نیم رقم ورکړې شی.⑤ حضرت امام شافعی رحمه الله فرمانی چه په یو خاص څیز باندې خاوند لره نه شی مجبورولې.بلکه کم نه کم څیزچه هغې ته متعه یعنی فائده او اسباب ونیلې شی هغه به کافي وی.زما په نیز دومره کپړه متعه ده چه په څومره باندې مونځ کول جائز دی.اګر چه ړومبې قول د حضرت الامام دا وو چه ماته ددې صحیح اندازه معلوم نه ده لیکن زما په نیز دا بهتر دی چه کم نه کم دیرش درهمه پکار دی.لکه څنګه چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه مروی دی.

**هرې مطلقې ته څه ورکول پکار دی:-** دې باره کښې هم ډیر اقوال دی چه هرې طلاق والا ښځې ته څه نه څه ورکول پکار دی.یا صرف هم دې ښځې ته چه هغې سره میل ملاپ نه وی شوې.بعضې خو دټولو دپاره وائی ځکه چه قران پاك کښې دی چه ﴿وَلِلْمُطَلَّقٰتِ﴾ الخ.نوددې آیت دعموم د ټولو دپاره ثابتوی.
داشان دهغوئ دلیل دا آیت هم دې چه ﴿فَتَعَالَيْنَ﴾ یعنې اې نبی ﷺ ! خپلو بیبیانو ته اووایه که ستاسو غوښتنه د دنیا ژوند او ددې زیب وزینت دې نو راشئ چه څه تاسو ته څه اسباب هم درکړم اوتاسو په ښه طریقې سره پریږدم.الخ.نو دا ټولې ازواج مطهرات هغه وې چه دهغوئ مهر مقرر وو او د حضرت نبی کریم ﷺ په نکاح کښې راغلې وې.د سعید بن جبیر رحمه الله ،ابوالعالیه رحمه الله ،حسن بصری رحمه الله هم دا قول دې.د حضرت امام شافعی رحمه الله هم یو قول دادې اوبعضې خو وائی چه ددوی نوې او صحیح قول هم دادې،والله اعلم.
بعضې وائی چه داسبابو ورکول دهغه طلاق والا دپاره ضروری دې چه هغې سره خلوت نه وی شوې اګر چه مهر نه وی ورکړې شوې.ځکه چه قران پاك کښې دی چه ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ﴾ یعنی اې ا یمان والو ! تاسو چه کله ایماندارو ښځو سره نکاح اوکړئی اوبیا هغوئ ته دلاس لګولو نه مخکې طلاق ورکړئ نوبه هغوئ باندې ستاسو د طرفنه هیڅ عدت نشته دې چه کوم عدت تیروی هغه دې تیر کړی،تاسو هغوئ ته څه مال اسباب ورکړئی او ښه طریقې سره نې پریږدئی.د سعید بن مسیب رحمه الله قول دې چه د سورة احزاب دا آیت دسورة بقره آیت سره منسوخ شوې دې.سهیل بن سعید رضي الله عنه او ابواسید رضي الله عنه فرمانی چه حضرت نبی کریم ﷺ حضرت امیمه بنت شرحبیل رضی الله عنها سره نکاح اوکړه.هرکله چه رخصت شوه او راغله نو حضرت نبی کریم ﷺ ورته لاس مبارک وړاندې کړو خوهغې بد اومنلو.حضرت نبی کریم ﷺ اسید رضي الله عنه ته اوفرمائیل چه دې ته دوه رنګینې کپړې ورکړه او دا رخصت کړه.([1])
دریم قول دادې چه صرف هم په دې صورت کښې په طور د فائدې اسباب ومتاع ورکول ضروری وی چه د ښځې رخصت نه وی شوې.اومهر هم نه وی مقرر شوې.اوکه دخول شوې وی نو مهرمثل یعنی د خاندان د دستور مطابق ورکول ضروری دی.که مقرر نه وی،اوکه مقرر وی او د رخصتئ نه مخکې طلاق ورکړې نو بیا به نیم مهر ورکوی.او که رخصتی شوې وی نو پوره مهر به ورکوی.او هم دا د متعه عوض دې.او ددې مصیبت والو ښځو دپاره متعه ده.چه هغوئ سره نه ملاپ شوې وی او نه مهر مقرر

[1]) صحیح بخاری کتاب الطلاق باب من طلق وهل یواجه الرجل امرائه باالطلاق : : ۵۲۵۶)-

شوې وي او طلاق ورته ملاؤ شي.ابن عمر ؓ او مجاهد ؒ نه هم داقول منقول دې.

## د مطلقې قبل الدخول دپاره د متعې حکم

**مسلک حنفي**:- کومې ښځې چې د دخول نه وړاندې طلاق ورکړې شي او دې سره صحبت هم نه وی شوې نو د دې دپاره متعه د حنفیانو په نیز باندې متعه واجب ده (احکام القران ٢٠١/١١٢).

اګرچه بعضې علماء کرام دا مستحب ګڼړي چه هرې طلاقې شوې ښځې ته څه نه څه ورکول پکار دی د هغې مهر نه علاوه چه کوم مقر شوې نه وی او د ښځې خاوند میل ملاپ شوې وی.هم دا مطلب دسورة احزاب دآیت تخیر دې چه ددې نه مخکې هم ددې آیت په تفسیر کښې بیان شوې دې.او ددې وجې چه دلته دهغه خاص صورت دپاره فرمائیلې شوې دې چه مالدار دې دخپل وس مطابق ورکړی اوکه غریب دې دخپل وس مطابق الخ.حضرت شعبی ؒ نه سوال کیږی چه د اسباب نه ورکولو والا به ګرفتارولې شي.نو دوی اوفرمائیل چه دخپل وس مطابق دې ورکړی.په الله ﷻ قسم چه په دې باره کښې به هیڅ خوک نشی ګرفتارولې،او که دا واجب وې نو قاضیانو به ضرور داسې سړې قید کولې.

وَاِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ

| او که چرې طلاق ورکړئ تاسو هغوئ له

| اوکه طلاق مو ورکړو

مِنْ قَبْلِ | اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ | وَقَدْ فَرَضْتُمْ | لَهُنَّ | فَرِيْضَةً | فَنِصْفُ

مخکښې ددې نه | چې تاسو مسه کړئ هغوئ | او مقرر کړې وؤ تاسو | دهغوئ دپاره | مهر | نو ورکړئ نیم |

لاس وراوړلو نه مخکښې او حق مهرمو ورته مقرر کړې وی | نوکوم مهر چه تاسو مقرر کړې وی

مَا | فَرَضْتُمْ | اِلَّآ | اَنْ يَّعْفُوْنَ | اَوْ يَعْفُوَا الَّذِیْ

دهغه مهر | چې مقرر کړې وؤ تاسو | ماسوا ددې نه | چې معاف کړی ښځه مهر خپل | یا نرمی اوکړی هغه سړې

د هغې نه نیم مهر ورکړئ | البته که ښځه ښښنه اوکړی (اومهرنه اخلی نو دا بیله خبره ده) یا د کوم سړی

بِيَدِهٖ | عُقْدَةُ النِّكَاحِ ط | وَاَنْ تَعْفُوْٓا | اَقْرَبُ | لِلتَّقْوٰى ط

چې په لاس دهغه کښې | اختیاردې دنکاح (اوټول مهر ورکړی | او چې معافی اوکړئ تاسو | دادیره نزدې ده | تقوی نه

لاس کښې چې دنکاح غوټه وی هغه ښخښنه اوکړی | اوکه تاسو زیات مال ورکړئ نوداخبره تقوی سره ډیره مناسبه ده

وَلَا تَنْسَوُا | الْفَضْلَ | بَيْنَكُمْ ط | اِنَّ اللّٰهَ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | بَصِيْرٌ

اومهٔ هیروئ | فضل (احسان) | په منځ کښې | بیشکه الله | هغه کارونو لره | چې کوئ ئې تاسو | لیدونکې دی

اوپه خپل مینځ کښې احسان کول مه هیروئ | .....الله پاک ستاسو هر کار وینی ګوری

**قوله تعالیٰ:-** وَاِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيْضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ

**دطلاق قبل الدخول نه پس نیم مهر**: آیت په دې خبره ښکاره دلالت کوی چه رومبی آیت کښې دکومو ښځودپاره متعه مقرر شوې وه،هغه صرف هغه ښځې دی چه دهغوئ ذکر په دې آیت کښې شوې دې. ځکه چه په دې آیت کښې بیان شوی دی چه دخول نه مخکې چه کله طلاق ورکړې شوې وی او مهر مقرر شوې وو نو نیم مهر به ورکولې شي.که دلته هم ددې نه سوا څه نوره متعه واجب وې نو ضررو به ذکر کولې شو،ځکه دا دواړه صورتونه پرله پسې بیانیږی.،نیم مهر باندې دعلماء کرامو اجماع

ده. لیکن د دریو په نیز پوره مهر به په هغه وخت کښې واجب وی چه کله خلوت شوې وی. یعنی د ښځې خاوند د تنهائي حالت کښې یو مکان کښې جمع شوې وی. اګر چه هم بستري نې نه وی کړې. د حضرت امام شافعی رحمه الله قول هم دادې او دخلفاء راشدینو هم دا فیصله ده. (۱) خو امام شافعی رحمه الله فرمائی چه څه هم دا وایم. اودکتاب الله ظاهری الفاظ هم دا دی. امام بیهقی فرمائی چه ددې روایت یو راوی لیث بن ابی سلیم اګرچه د سند نیولو قابل نه دې. خو بیاهم ابن ابی طلحه نه د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه دا روایت مروی دې چه ددې نه معلومیږی چه ددوی فرمان همدا دې. (۲)

**قوله تعالی:- إِلَّآ أَن يَعْفُونَ**

**د مهر معاف کولو حکم:-** بیا فرمائی که ښځې پخپله داسې حال کښې خپل نیم مهرهم خاوندته معاف کړی نودا بله خبره ده. په دې صورت کښې به خاوند ته ټول معاف شی. حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه ثیبه ښځه که خپل حق پریږدی نو ورته اختیار دې. (۳) د دیرو مفسرینو تابعینو همدا قول دې. محمد بن کعب قرظی رحمه الله فرمائی چه ددې نه مراد دښځو معاف کول نه دی بلکه دسړو معاف کول دی. یعنی سړې دې خپله نیمه حصه پریږدی. او پوراه مهر دې ورکړی. لیکن دا قول شاذ دې. څکه چه څه بل قول ددې تائید نه کوی.

**قوله تعالی:- أَوْ يَعْفُوَا الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ**

**د معاف کونکی نه څوک مراد دې؟:-** ① بیا فرمائی چه یا دې هغه (ښځه) مهر معاف کړی یا چه دچا په اختیار کښې نکاح وی. ① یو حدیث کښې دی چه ددې نه مراد خاوند دې. (۴) حضرت علی رضی الله عنه نه سوال اوشو چه ایا ددې نه مراد آیا د ښځې اولیاء دی ؟ نو وې فرمائیل چه نه بلکه ددې نه مراد خاوند دې. او نورو مفسرینو نه هم دا مروی دی. د حضرت امام شافعی رحمه الله قول جدید هم دادې. د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله وغیره هم دا مذهب دې. ددې وجې حقیقت کښې نکاح باقی ساتل او ماتول وغیره ټول د خاوند په اختیار کښې دی. اوځنګه چه ولی ته ددې (ښځې) د طرفنه ددې د مال ورکول جائز نه دی نو داشان ورته د ددې دمهر معاف کولو اختیارهم نشته دې. ② دویم قول په دې باره کښې دادې چه دې نه مراد دښځې پلار، رور او هغه خلق دی چه دهغوئ د اجازت نه بغیر ښځه نکاح نشی کولې. حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه، حضرت علقمه رحمه الله، حضرت عطاء رحمه الله، حضرت طاوس رحمه الله، حضرت زهری رحمه الله، حضرت ربیعه بن اسلم رحمه الله، حضرت امام مالك رحمه الله، حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله، حضرت عکرمه رحمه الله او محمد بن سیرین رحمه الله نه هم دا مروی دی. ددې دواړو بزرګانو نه هم دا مروی دی. د حضرت امام مالك رحمه الله او حضرت امام شافعی رحمه الله قدیم قول هم دا دې. ددوی دلیل دا دې چه هم ولی ددې حق حقدارجوړ کړې شوې وو نو په دې کښې د تصرف کولو اختیار هم ورته شته دې. اګر چه په نور مال کښې ورته د تصرف کولو اختیار نشته دې.

حضرت عکرمه رحمه الله فرمائی چه الله ﷻ دمعاف کولو اجازت ښځې ته ورکړې دې. او که هغه بخیله وروکې زره والا وی نو ددې ولی نې هم معاف کولې شی اګر چه ښځه پوهه وی. حضرت شریح رحمه الله هم دا فرمائی. لیکن چه کله شعبی رحمه الله انکار اوکړو نو دوی دې نه رجوع اوکړه او وې فرمائیل چه ددې نه مراد هم خاوند دې. بلکه هغه په دې خبره مباهلې ته تیار وو.

**قوله تعالی:- وَأَن تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ**

---

(۱) الشافعی ۱)-

(۲) د ابن ابی طلحه رضی الله روایت منقطع کیدو په وجه ضعیف دې)-

(۳) ابن ابی حاتم : ۸۳۹/۲)-

(۴) ابن ابی حاتم : ۸۴۲/۲)-

**معاف کول تقوی ته نژدې دي:-** بیا فرمائي چه ستاسو معاف کول تقوی ته زیات نژدې دي.ددې نه مراد ښځې اوسړي دواړه دي.یعنې دواړو کښې ښه هغه دې چه کوم یو خپل حق پریږدي یعنې ښځه خو یا خپله نیمه حصه خپل خاوندته معاف کړي.یا خاوندهغې ته دنیم مهر ورکولوپه ځائې پوره مهر ورکړي.

**قوله تعالی:-** وَلَا تَنسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ

**یوبل سره احسان مه هیروئ:-** خپلو کښې فضیلت یعنې احسان لره مه هیروئی اودوی لره مه بیکاره کوئی،بلکه هغه کار کښې راولئ.

دابن مردویه یو روایت کښې دي چه حضرت نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه خلقو باندې به یو سخت وخت رازي.مومن به د خپل لاسونو څیزونه په خوله کښې نیسي.او فضیلت او بزرګی به هیره کړي.حالانکه دالله ﷻ فرمان دې چه خپلو کښې فضل لره مه هیروئي.خراب دي هغه خلق چه دیو مسلمان بې بسئ او تنګدستئ په وخت کښې دې نه د آرزان څیزونه اخلي.(۱) حالانکه حضرت نبي کریم ﷺ ددې بیع نه منع فرمائیلې ده.اګر چه تا ته په کښې نفع وی نو خپل رور ته هم ښیګړه ورکړه.دده په هلاکت کښې حصه مه اخله.یو مسلمان د بل مسلمان روردې.نه دې هغه ته تکلیف ورکوی او نه دې ورته غم رسوی او نه دې هغه د ښیګړو نه محرومه کوی.

عون ﷺ احادیث بیانول ژړل ئې او دومره ئې اوژړل چه اوښکې ئې په ږیره مبارکه راروانې شوې او وې فرمائیل چه خه دمالدارو په صحبت کښې کښناستم او ما اوکتل هر وخت به ملامته اوم،ځکه چه کوم طرفته به مې نظر کولو نو هر یو به مې د ځان نه په ښه کپړو کښې اوښه خوشبو کښې او ښه سورلئ باندې کتلو.خو مادمسکینانو په محفل کښې ډیر راحت اوموندلو.الله ﷻ فرمائي چه دیو بل فضیلت مه هیروئی.چالره هم چه یوسائل راشي او هغه سره څه نه وي نو دده دپاره دالله ﷻ نه دخیر دعا کوئی. الله ﷻ ستاسو داعمالو نه خبر دې.په هغه ذات باندې ستاسو کاراوستاسو حال بیخي ښکاره دې. او نژدې دده چه هغه هر یو عامل ته دهغه بدله ورکوی.

| قَٰنِتِينَ | لِلَّهِ | وَقُومُوا | وَالصَّلَوٰةِ الْوُسْطَىٰ | عَلَى الصَّلَوٰتِ | حَٰفِظُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| فرمان منونکی | الله ته | اوودریږئ | او خصوصا په مانځه منځنی | په مونځونو باند | ساتنه اوکړئ |
| دټولو مونځونوډیرخیال ساتئ او خاص کردمینځنی مونځ اوالله پاک ته ډیرپه ادب اودریږئ | | | | | |

| فَاذْكُرُوا اللَّهَ | آمِنتُمْ | فَإِذَا | أَوْ رُكْبَانًا | فَرِجَالًا | فَإِنْ خِفْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو یادوئ الله | په امن شئ تاسو | نو کله چې | یا په سورلئ باند | نو مونځ کوئ پیاده | نو که پریدئ تاسو |
| نوکه چرې دردښمن ویره وی نوپیاده یا په سورلئ څنګه چې کیدیشي مونځ کوئ اوکله چې په امن کښې شئ نو بیا الله یادوئ | | | | | |

| تَعْلَمُونَ | لَمْ تَكُونُوا | مَّا | عَلَّمَكُم | كَمَا |
|---|---|---|---|---|
| خبرد هغې نه اول | چې نه وئ تاسو | هغه طریقه | هغه ښودلې ده تاسو ته | لکه څنګه چې |
| لکه څنګه چې ئې تاسوته هغه څه خودلې دي چه تاسوپرې نه پوهیدئ | | | | |

حَٰفِظُوا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلَوٰةِ الْوُسْطَىٰ

**د مونځ د حفاظت حکم:-** دالله ﷻ حکم کیږی چه دمونځونو په وخت کښې دوختونوحفاظت کوئی.د دې د حدودو نګرانی کوئی.او اول وخت کښې ئې اداکوئی.حضرت نبی کریم ﷺ نه حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ سوال کوی چه کوم یو عمل افضل دې ؟حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه مونځ په وخت

---
(۱) ابن مردویه.

کول.بیائي تپوس اوکړو چه بیا کوم یو ؟ حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دالله ﷻ لار کښې جهاد کول.بیائي تپوس اوکړو چه بیا کوم ؟نوحضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه مور پلار سره نیکی کول.حضرت عبدالله رضی الله عنه فرمائی که ما دنور څه تپوس کړې وې نو حضرت نبی کریم ﷺ به ماته نور جوابونه هم راکړی وې.(بخاری ومسلم).(۱) حضرت ام فروه رضی الله عنها چه بیعت کوونکو ښځو کښې ده،فرمائی چه ما د حضرت نبی کریم ﷺ نه واوریدل چه،حضرت نبی کریم ﷺ د اعمالو ذکر کولو،په دې کښې حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ ته دټولو نه زیات خوښ عمل په اول وخت کښې دمونځ اداکولوکوشش کول دي. (مسنداحمد)(۲) امام ترمذی رحمه الله ددې حدیث راوی عمر لره غیر قوی ګڼړی،

**د صلاة وسطی نه مراد:-** بیا د صلوة وسطی نور تاکید کیږی.د سلفو اوخلفو په دې کښې اختلاف دې چه صلوة وسطی دکوم یو مونځ نوم دې.① دحضرت علی رضی الله عنه او حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه وغیره قول دې چه ددې نه مراد د سحر مونځ دې.(۳) حضرت ابن عباس رضی الله عنه یو ځل مونځ کولو، او په هغې کښې لاس اوچتوی او قنوت کوی.بیا ئې اوفرمائیل چه هم دا د وسطی مونځ دې چه په دې کښې د قنوت حکم شوې دې.دویم روایت کښې دی چه دا واقعه د بصرې دجماعت ده.اوقنوت دوی د رکوع نه مخکښې اداکړی وو.ابوالعالیه رحمه الله فرمائی چه مابصره کښې حضرت عبدالله بن قیس پسې دسحر مونځ کولو،بیامایو صحابی نه تپوس اوکړو چه صلوة وسطی کوم یو دې ؟ وې فرمائیل چه هم دا د صبا مونځ دې.او یوروایت کښې دی چه په دې مجمع کښې ډیر صحابه کرام رضی الله عنهم وو او ټولو هم دا جواب ورکړې وو.جابر بن عبدالله نه هم دا روایت دې او د ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو هم دا مسلك دې.حضرت امام شافعی رحمه الله هم دا فرمائی.ځکه چه دهغوئ په نزد سحر مونځ کښې قنوت دې.②بعضې وائی چه ددې نه مراد د ماښام مونځ دې ځکه چه ددې نه مخکښې هم څلور کعته مونځ دې اودې نه پس هم څلور رکعتو والا مونځونه دی اوسفرکښې ددوارو قصر دې.لیکن مغرب پورا کیږی،دا وجه هم کیدیشی چه دې نه پس دوه مونځونه د شپې یعنی دماسختن او دسحر دی.چه په هغې کښې اوچت آواز سره قرات ونیلې کیږی.او دوه مونځونه ددې نه مخکښې د ورځې هغه دی چه په هغې کښې قرات په پټه ونیلې کیږی.یعنی دماسپخین اومازیګر مونځونه.③ځینې وائی چه دا د ماسپخین مونځ دې.یو ځل څو کسان دحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه په مجلس کښې ناست وو،هلته هم دامسئله اوچیړلې شوه،خلقو یو سړې اولیږلو چه دحضرت اسامه رضی الله عنه نه تپوس اوکړی.هغوئ اوفرمائیل چه دا دماسپخین مونځ دې او دا به حضرت نبی کریم ﷺ په اول وخت کښې کولو.(طیالسی).زید بن ثابت رضی الله عنه فرمائی چه ددې (ماسپخین مونځ) نه زیات ګران مونځ صحابه کرام رضی الله عنهم باندې بل نه وو،ځکه دا آیت نازل شو او ددې نه مخکښې هم دوه مونځونه دی او دې نه روستو کښې هم دوه مونځونه رازی.(۴)

هم ددوی نه مروی دی چه قریشو یوه ډله لیږلې وه چه هغوئ د زید بن ثابت نه هم دا سوال اوکړی نو ددې په جواب کښې دوی اوفرمائیل چه حضرت نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه هغه دمازیګر مونځ دې.بیا دوه نورو سړو تپوس اوکړو نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه دماسپخین مونځ دې.بیا دوی دوارو حضرت اسامه رضی الله عنه نه تپوس اوکړو نو دوی اوفرمائیل چه دادماسپخین مونځ دې دوی د نمر دزوال نه پس کولو.او په مشکله یو یا دوه صفه خلق راتلل.څوك به اوده وو او څوك به کاروبار کښې

---

۱) صحیح بخاری الادب باب البر والصلة : ۵۹۷۰،صحیح مسلم: ۸۶)-

۲) احمد: ۳۷۵/۶،ابوداود کتاب الصلاة باب المحافظ علی الصلوات : ۴۲۶،ترمذی: ۱۷۰،وهو صحیح)-

۳) موطا امام مالک کتاب الصلاة الجماعة باب الصلاة الوسطی : ۲۸،بلاغا وهو صحیح عن ابن عباس ( ابن ابی شیبة ۱۵۰۶/۲) وسنده صحیح)-

۴) احمد : ۱۸۳/۲،ابوداود : ٤١١ وسنده صحیح)-

وو. نو په دې باندې دا ایت نازل شو. او حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل که دا خلق ددې نه منع نشو نو خه به ددوی کورونه اوسیزم. (۱) خو ددې راوی زبرقان دصحابه کرامو ﷺ سره ملاقات نه وو شوې. لیکن حضرت زید ﷺ نه یو بل روایت کښې هم ثابت دی چه ددې نه مراد دماسپخین مونځ دی. یو بل مرفوع روایت کښې داهم دی. (۲) حضرت ابن عمر ﷺ، حضرت ابوسعید ﷺ، حضرت عائشه ﷺ وغیره نه هم دامروی دی. د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ نه هم یو روایت د دې دې.

② بعضې وائی چه ددې نه مراد د مازیګر مونځ دی. اکثر علماء کرام وغیره نه همدا قول منقول دې. اوجمهورو تابعینو هم دا قول دې اواکثر اهل اثر بلکه جمهوروخلقونه هم، حضرت حافظ ابومحمد عبدالمومن دمیامی په دې باره کښې یومستقله رساله تصنیف کړې ده چه دهغې نوم ﴿کشف الغطاء فی تبیین الصلوة الوسطی﴾ دې. په هغې کښې یو فیصله داهم ده چه صلوة وسطی دمازیګر مونځ دې. حضرت عمر فاروق ﷺ، حضرت علی ﷺ، حضرت ابن مسعود ﷺ، حضرت ابوایوب ﷺ، حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ، حضرت سمره بن جندب ﷺ، حضرت ابوهریره ﷺ، حضرت ابو سعید ﷺ، حضرت حفصه ﷺ، ام سلمه ﷺ، حضرت ابن عمر ﷺ، حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه او حضرت عائشه ﷺ نه هم دا فرمان نقل دې. او ددې حضراتو نه هم دا مروی دی او دډیرو تابعینو نه هم دا مروی دی. د حضرت امام احمد بن حنبل ﷫ او حضرت امام شافعی ﷫ هم دا مذهب دې. د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ صحیح مذهب هم دا دې. دامام محمد ﷫ او امام ابویوسف ﷫ نه هم دا مروی دی. ابن حبیب مالکی ﷫ هم دا فرمانی. ددې قول دلیل واورنې. حضرت نبی کریم ﷺ په جنګ احزاب کښې اوفرمائیل چه الله ﷻ دې ددې مشرکانو زړونه او کورونه د اور نه ډک کړی چه هغوئ دمازیګر مونځ نه منع کړو. (مسند احمد). (۳)

حضرت علی ﷺ فرمائی چه مونږ ددې نه مراد دسحر یا د مازیګر مونځ اخستلو. تر دې چه جنګ احزاب کښې مو د حضرت نبی کریم ﷺ نه دا واوریدل. الله دې د دوی کښې قبرونه د اور نه ډک کړی ‹او دا دمازیګر مونځ وو› مسند احمد کښې دی چه حضرت نبی کریم ﷺ دا آیت مبارك تلاوت کړو او وې فرمائیل چه دا د مازیګر مونځ دې. (۴) ددې حدیث ډیر طرق دی. او ډیرو کتابونوکښې مروی دی. حضرت ابوهریره ﷺ نه یو ځل دې باره کښې سوال اوشو نو حضرت ابوهریره ﷺ اوفرمائیل چه مونږ هم یو ځل په دې کښې اختلاف کړې وو نوابو هاشم بن عتبه ﷺ د حضرت نبی کریم ﷺ د صحبت نه پاسیدو او د حضرت نبی کریم ﷺ کورته راغلو. اجازت ئې اوغوښتلو او دننه داخل شو. او د حضرت نبی کریم ﷺ نه ئې معلوم کړل او بهر راووتلو او مونږ ته ئې اووئیل چه دا دمازیګر مونځ دې. (ابن جریر). دعبدالعزیز بن مروان ﷫ په مجلس کښې یو ځل هم دا مسئله اوچیړلې شوه. نو دوی اوفرمائیل چه لاړشئ اود فلانی صحابی نه تپوس اوکړئ. نو یو سړی اووئیل چه زما نه تپوس اوکړئ خه حضرت ابوبکر صدیق ﷺ او حضرت عمرفاروق ﷺ په وړوکوالی ددې مسئلې دتپوس کولو دپاره حضرت ﷺ ته لیږلې اوم. دوی زما وړې ګوتې اونیولې او وې فرمائیل چه دا خو دسحر مونځ دې. بیائې دې سره نزدې ګوته اونیوله او وې فرمائیل چه دا د ماسپخین مونځ دې بیا ئې غټه اونیوله او وې فرمائیل چه دا خود مابنام مونځ دې. بیا ئې خماد شهادت ګوته اونیوله او وې فرمائیل چه دا د ماسخوتن مونځ دې. بیا ئې زما نه تپوس اوکړو چه کومه ګوته پاتې شوه نوما ورته اووئیل چه دمینځ والا. حضرت نبی

---

(۱) احمد: ۲۰۶/۲،)-

(۲) موطا امام مالک کتاب الصلاة الجماعة باب الصلاة الوسطی: ۲۷، ابوداود: کتاب الصلاة باب وقت العصر: ۴۱۱، وهو صحیح)-

(۳) صحیح بخاری کتاب الدعوات باب الدعاء علی المشرکین: ٦۳۹٦، صحیح مسلم: ٦۲۷)-

(۴) احمد: ۸/٥، صحیح مسلم: المساجد باب الدلیل لمن قال الصلاة الوسطی هی صلاة العصر: ٦۲۸، ترمذی: ۱۸۲، مختصرا)-

كريم ﷺ اوفرمائيل چه كوم يومونځ باقى پاتې دې.نو مااوونيل چه دمازيگر نو حضرت نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چه هم دا صلوة وسطى دې.(ابن جرير).ليكن دا روايت ډير غريب دې.غرض د صلوة وسطى نه دمازيگر مونځ مراد كيدل د ډيرو احاديثو نه ثابت دى.چه په هغې كښې څه حسن دى او څه صحيح اوڅه ضعيف او ترمذى،مسلم ([1]) وغيره كښې هم دا موجود دى.

**د مازيگر مونځ باره كښې تاكيد:-** بيا ددې مونځ باره كښې دحضور نبى ﷺ تاكيد اوسختى ثابت ده.يو حديث كښې دى چه چا نه دمازيگر مونځ قضا شى نو دا داسې دى لكه چه دده كورنئ تباه شوه او دده كور تباه شو.([2])يو حديث كښې دى چه د وريځې په ورځ مونځ په اول وخت كښې كوئى.واورئى چه كوم يوسړى د مازيگر مونځ پريښودو نو دده اعمال خراب شو ([3]).يو خل حضرت نبى كريم ﷺ د مازيگر مونځ دبنى غفار په يو وادئى كښې ادا كړو او ددې وادئى نوم حمص وو.بيا ئې اوفرمائيل چه همدا مونځ ستاسونه مخكښې خلقو باندې پيش كړې شوې وو.خو هغوئ ضائع كړو.واورئى ددې كوونكى ته دوچنداجر ملاويږى.ددې نه پس هيڅ مونځ نشته دې تر څوچې تاسو ستورى اونه وينئ:(مسند احمد).([4]) حضرت عائشه رضي الله عنها خپل يو آزاد شوى غلام ابويونس ﷺ ته فرمائى چه زما دپاره قران پاك اوليكه.اوچه كله دې آيت ﴿حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ﴾ ته راورسې نو ماته اطلاع اوكړه.نو كله چه دوى ته اطلاع وركړې شوه نو دوى اوفرمائيل چه ﴿وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ نه پس ﴿صلوة العصر﴾ اوليكه.او وې فرمائيل چه ما پخپله دحضرت نبى كريم ﷺ نه هم دا آوريدلى دى.(مسند احمد ).يو روايت كښې دى چه ﴿ هى صلوة العصر﴾ لفظ هم دې (ابن جرير).د حضرت نبى كريم ﷺ بى بى حضرت حفصه رضي الله عنها عمربن رافع باندې دا آيت هم داشان ليكلې وو او (عمرابن رافع ) كاتب قران وو.(موطا امام مالك).([5]) ددې حديث هم ډيرې طريقې دى او په ډيرو كتابونو كښې مروى هم دى چه ام المومنين اوفرمائيل چه ما د حضرت نبى كريم ﷺ نه هم دا الفاظ آوريدلى دى.

**د،واو،،قراءات:-**حضرت نافع رحمه الله فرمائى چه ما دا قران پاك په خپلو سترگو ليدلې دې هم دا عبارت ،،واو،، سره وو،حضرت عبدالله ابن عباس رضى الله عنه او عبيدبن عسير هم دا قرات دې.دا آيتونه مدنظر ايږدى او ځينې حضرات وائى چه چونكه واو عطف دپاره وى او معطوف معطوف عليه كښې مغايرت وى نو ثابته شوه چه ﴿ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ بل دى او ﴿صلوة العصر ﴾ بل دې. ليكن ددې جواب دا دې كه هغه بطور حديث اومنلې شى نو حضرت على والاحديث ډير زيات صحيح دې او په هغې كښې صراحت سره موجود دى.پاتې شو واو نو ممكن دى چه زائدوى عاطفه نه وى.لكه ﴿ وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِيْنَ سَبِيْلُ الْمُجْرِمِيْنَ﴾ او ﴿ وَكَذٰلِكَ نُرِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ كښې يا واو عطف صفت دپاره وى او ذات دپاره نه وى لكه ﴿ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ﴾ كښې اولكه﴿ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلَى الَّذِيْ خَلَقَ فَسَوّٰى وَالَّذِيْ قَدَّرَ فَهَدٰى﴾ كښې ددې مثالونه او نورو ډيرو شعرونو كښې هم دا خبره موندې شى.سيبويه چه د نحويانو امام دې فرمائى چه﴿ مررت بأخيك وصاحبك﴾ وئيل درست دى حالانكه صاحب او اخ نه مراد يو سړې دې والله اعلم.
او كه ددې قرات دا قران الفاظ په طور دقران اومنلې شى نو ظاهر دادى چه دې خبر واحد سره قرات قرانى نه ثابتيږى تركومې پورې چه تواتر ثابت نه وى.ځكه حضرت عثمان ﷺ په خپل قران كښې دا

---

[1]) صحيح مسلم : ٦٢٨،ترمذى: ١٨١)-
[2]) صحيح بخارى كتاب مواقيت باب اثم من فاته اصلاة : ٥٥٢،صحيح مسلم: ٦٢٦)-
[3]) صحيح بخارى كتاب مواقيت باب من ترك العصر:: ٥٥٣)-
[4])احمد:٦/٣٩٧،صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين باب الاوقات التى نهى عن صلاة فيها: ٨٣٠)-
[5])احمد:٦/٣٩٧،صحيح مسلم كتاب المساجد باب الدليل لمن قال: الصلاة الوسطى هى صلاة العصر: ٦٢٩.ابو داود: ٤١٠،ترمذى: ٢٩٨٢)-

قرات نه دي اخستي.اونه د اووه واړه قراء په قرات كښې دا لفاظ شته بلكه نه خو دا د څه معتبر قاري قرات كښې موندې شوى دى.ددې نه علاوه يو حديث كښې دى چه دهغې نه معلوميږى چه ددې قرات منسوخ كيدل ثابت دى.صحيح مسلم كښې دى چه دا آيت نازل شو ﴿وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى وصلوة العصر﴾ نو مونږ يو مودې پورې دا آيت مبارك د حضرت نبي كريم ﷺ مخكې لوستلو.بيا دا تلاوت منسوخ شو.او آيت داسې پاتې شو چه ﴿حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى﴾ يو سړى دراوى حديث حضرت شقيق ﷺ ته اووئيل چه بيا آيامونځ د عصر دې څه.وې فرمائيل چه ماخو درته اووئيل چه څنګه دا آيت نازل شو او څنګه منسوخ شو.(۱)نو په دې بناء داقرات دحضرت عائشه ﷺ او حضرت حفصه ﷺ روايت والا يا خو لفظي منسوخ وى اوكه مغايرت دپاره اومنلې شي نودلفظ اودمعني دواړه اعتبار سره به منسوخ وى.

④ بعضې وائى چه ددې نه مراد دماښام مونځ دې.د حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ عنه نه هم دا مروى دى ليكن د هغې سند كښې كلام دې.دبعضې نورو حضراتو هم دا قول دې.ددې وجه دا بيان شوې ده چه نور فرض مونځونه يا څلور ركعته دى يا د دوو ركعتونو دې او ددې درې ركعته دى.نو مينځنې مونځ شو اودويمه وجه دا هم كيديشى چه د فرض مونځونو دا وتر دى.او ددې وجې هم چه ددې فضيلت ډير زياتو احاديثو كښې هم وارد شوى دى.⑤ بعضې خلق ددې نه مراد د ماسخوتن مونځ هم اخلى.⑥ بعضې وائى چه په پنځه وختونو كښې يو وخت مونځ دې.ليكن مونږ نشو معين كولې.ځكه چه داشان مبهم دې.لكه څنګه چه ﴿لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾ پورا كال يا پورا مياشت كښې يا روستو ورځو كښې مبهم ده.⑦ بعضې حضرات وائى چه ددې نه د پنځو مونځونو مجموعه مراد ده.⑧ اوبعضې وائى چه د ماسختن مونځ او سحر مونځ ترې مراد دې.⑨ او دبعضو قول دې چه دا د جمعې مونځ دې.⑩ څوك وائى چه داختر مونځ مراد دې.(۱۱) څوك وائى چه صلوة الضحى مراد دې.(۱۲) اوبعضې وائى چه مونږ توقف كوو او د هيڅ يو قول هم قائل نه جوړيږو.ځكه چه دليلونه مختلف دى.وجه د ترجيح معلومه نه ده.په هيڅ يو قول باندې اجماع نشته دې.بلكه د صحابه كرامو ﷺ زمانې نه واخله نن پورې اختلاف دې.لكه څنګه چه حضرت سعيد ابن مسيب ﷺ فرمائى چه د صحابه كرامو ﷺ دې باره كښې اختلاف وو.بيا ئې ګوتو كښې ګوتې وركړې.ليكن دا ياد ساتل پكار دى چه دامخكې ټول په ټوله اقوال ضعيف دى.اختلاف صرف د سحر او مازيګر مونځ كښې دې او دصحيح احاديثو نه دمازيګر مونځ صلوة وسطى ثابتيږى.نو لازم شو چه مونږ ټول اقوال پريږدو او دا عقيده اولرو چه د صلوة وسطى نه مراد دمازيګر مونځ دې.

امام ابومحمد عبدالرحمان بن ابوحاتم رازى ﷺ نه په خپل كتاب فضائل شافعى ﷺ كښې روايت دې چه حضرت امام صاحب ﷺ به فرمائيل چه ﴿كل ماقلت فكان عن النبي ﷺ بخلاف قولي مما يصح لحديث النبي ﷺ اولى ولا تقلدوني﴾.يعنى زما يوقول كه د يو حديث خلاف وى نو حديث اولى دې،خبردار زما تقليد مه كوئ.د حضرت امام شافعى ﷺ دا فرمان امام ربيع ﷺ،امام زعفرانى ﷺ،او حضرت امام احمد بن حنبل ﷺ هم روايت كوى.او موسى ابوالوليد بن جارود ﷺ،حضرت امام شافعى ﷺ نه نقل كوى چه دوى اوفرمائيل چه ﴿اذا صح الحديث وقلت قولا فأنا راجع عن قولي وقائل بذالك﴾ يعنى زما يو خبره چه دحديث خلاف وى نو څه دهغې خپلې خبرې نه رجوع كوم،او صفا وايم چه زما مذهب هم هغه دې چه حديث كښې دې.

دا دامام صاحب امانتدارى او سردارى ده اوددوى پشان آئمه كرامو كښې هم هر يو هم دا فرمائيلى دى چه دهغوئ اقوال دې دين اونه ګڼرلې شى.ددې وجې قاضى ماوردى ﷺ فرمائى چه د امام صاحب

(۱)صحيح مسلم كتاب المساجد باب الدليل لمن قال الصلاة الوسطى هى صلاة العصر:(٦٣٠)-

ﷺ د صلوة وسطى باره كښې هم مذهب ګنړل پكار دى چه هغه دمازيګر مونځ دې.اګر چه د امام صاحب ﷺ خپل نوې قول دادې چه هغه عصرنه دې.مګر ددوى د فرمان مطابق دحديث خلاف دا قول مونږ پرېښودو.امام شافعى ﷺ اودمذهب ډېر نورمحدثين هم دا فرمائى.(فالحمدلله).بعضې فقهاء شافعى وائى چه د امام صاحب صرف هم دا يو قول دې چه هغه د سحر مونځ دې.ليكن د دې ټولو خبرو كولو دپاره دا تفسير مناسب نه دې،د دې بيان ما كړې دې ( فالحمدلله ).

قوله تعالى:-وَقُوْمُوْالِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ

**په مانځه كښې د عاجزئ حكم:-** بيا فرمائى چه دالله ﷻ مخكې خشوع وخضوع،ذلت اومسكينتوب سره اودرېږئ،اود دې دپاره دا لازم ده چه انسانى خبرې دې نه وى.هم ددې وجې د حضرت ابن مسعود ﷺ دسلام جواب حضرت نبى كريم ﷺ په مونځ كښې ورنكړو.او دې نه پس ئې جواب وركړو.او وې فرمائيل چه مونځ د مشغوليت ځيز دې (۱)

اوحضرت معاويه بن حكم مونځ كولو او دوئ سره خبرې اوشوې نو وې فرمائيل چه مونځ كښې انسانى خبرې نه دى كول پكار دا صرف تسبيح او تكبير او د الله ذكر دې.(مسلم ) (۲)

مسند احمدوغيره كښې دى چه ددې آيت دنازليدو نه مخكې خلقو به ضرورى خبرې هم په مونځ كښې كولې.هركله چه دا آيت نازل شو نو دچپ اوسيدو حكم اوشو.(۳)ليكن په دې حديث كښې يو اشكال دا دې چه دعلماء كرامو ديوې ډلې په نيز مونځ كښې د خبرې كولو حرمت د حبشې د هجرت نه روستو او دمدينې منورې د هجرت نه مخكې مكه معظمه كښې نازل شوې وو.

صحيح بخارى كښې دى چه حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائى چه دحبشې دهجرت نه مخكې مونږ به حضرت نبى كريم ﷺ ته سلام كولو او كه حضرت نبى كريم ﷺ به په مونځ كښې وو نو بيا به ئې هم ځمونږ دسلام جواب راكولو.هركله چه مونږ د حبشې د هجرت نه واپس شو نو حضور ﷺ ته ما په مونځ كښې سلام اوكړو نو حضور ﷺ جواب رانكړو.په هغه وخت كښې زما څه حال وو تپوس ئې مه كوه.مونځ نه چه حضرت نبى كريم ﷺ فارغ شو نو وې فرمائيل چه عبدالله نوره هيڅ خبره نه وه څه په مونځ كښې اووم.په دې وجه مې جواب درنكړو. الله ﷻ چه څه غواړى نو نوې حكم نازل كړى.هغه دا نوې حكم نازل فرمائيلې دې.چه مونځ كښې خبرې مه كوئى نو دا واقعه دهجرت نه مخكې شوې ده.(۱)

او دا آيت مبارك مدينه منوره كښې نازل شوې دې.او بعضې وائى چه د زيد ابن ارقم ﷺ د قول مطلب جنس كلام دې او د دې حرمت باندې دا آيت مبارك استدلال هم پخپله دده فهم دې.والله اعلم.بعضې وائى چه ممكن دى چه دوه ځل حلال وى او دو ځل ممانعت شوې وى.ليكن دا رومبئ واقعه زياته ظاهره ده.

حضرت ابن مسعود ﷺ والا حديث چه مسندابى يعلى كښې دې په هغې كښې دى چه د حضرت نبى كريم ﷺ جواب نه راكولو څه په ويره كښې واچولم چه شائد زما باره كښې څه حكم نازل شوې دې. حضرت نبى كريم ﷺ چه كله د مونځ نه فارغ شو نو وې فرمائيل ( عليك السلام ايها المسلم ورحمة الله ) كله چه ته په مونځ كښې ئې نو خاموشه اوسه.اود مونځونو دپوره حفاظت كولو حكم نازل شوې وو.

---

(۱) صحيح بخارى كتاب العمل فى الصلاة باب ماينهى من الكلام فى الصلاة: ۱۱۹۹،صحيح مسلم: ۵۳۸)-

(۲) صحيح مسلم: كتاب المساجد باب تحريم الكلام فى الصلاة : ۵۳۷)-

(۳) احمد : ۳۶۸/۴،صحيح بخارى كتاب العمل فى الصلوة باب ماينهى من الكلام فى الصلاة : ۱۲۰۰،صحيح مسلم: ۵۳۹)-)

(۴) ابوداود كتاب الصلاة،باب ردالسلام فى الصلاة وسنده حسن نسائى: ۱۲۲۲)-

| فَاذْكُرُوا اللّٰهَ | اٰمِنْتُمْ | فَاِذَآ | اَوْ رُكْبَانًا | فَرِجَالًا | فَاِنْ خِفْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو يادوئ الله | په امن شئ تاسو | نو كله چې | يا په سورلئ باند | نو مونځ كوئ پياده | نو كه پريدئ تاسو |

نوكه چرې د دښمن ويره وي نو پياده يا په سورلئ ځنګه چې كيديشي مونځ كوئ هركله چې په امن كښې شئ نو بيا الله يادوئ

| تَعْلَمُوْنَ | لَمْ تَكُوْنُوْا | مَّا | عَلَّمَكُمْ | كَمَا |
|---|---|---|---|---|
| خبرد هغې نه اول | چې نه وئ تاسو | هغه طريقه | هغه ښودلې ده تاسو ته | لكه ځنګه چې |

لكه ځنګه چې ئې تاسو ته هغه څه خودلی دی چه تاسو پرې نه پوهيدئ

**قوله تعالى:- فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا**

**د ويرې په وخت كښې د صلاة الخوف حكم:**- ددې وجې اوس هغه حالت بيانيږی چه په هغې كښې د تولو آدابو او رعايتونو خيال عام طور نه ساتلې كيږی يعنی ميدان جنګ كښې چه كله دښمن مو په سر وی نو فرمائی چه تاسو ته ځنګه ممكن وی، سواره، پيدل قبلې طرفته مخ كونی او مونځ ادا كونی.

حضرت ابن عمر ﷺ ددې آيت مطلب بيانوی، بلكه نافع فرمائی چه ماته پته ده چه دا مرفوع دې. يعنی ابن عمر دا خبره د نبی كريم ﷺ نه اوريدلې ده) [1] مسلم شريف كښې دی چه د سختې ويرې په وخت كښې اشارې سره مونځ كونی اګر چه تاسو سورلئ باندې سواره يئ: [2] عبدالله بن انيس ﷺ چه كله حضرت نبی كريم ﷺ دخالد بن سفيان د قتل دپاره اوليږلو نو دوی هم داشان دمازيګر مونځ كړې وو. الخ (ابوداود). نو په دې كښې ئې په خپلو بندګانو باندې آسانی كړې ده او د دوی بوج ئې سپك كړې دې.

**دصلوة خوف بيان:**- صلوة خوف يو ركعت هم راغلې دې. حضرت عبدالله ابن عباس ﷺ فرمائی چه الله ﷺ ستاسو دنبی ﷺ په خوله دحضر په حالت كښې څلور ركعته فرض كړی دی او دسفر په حالت كښې دوه او د ويرې په حالت كښې يو (مسلم) [3]

امام احمد ﷫ فرمائی چه دا دهغه وخت خبره ده چه كله زيانی ويره وی. حضرت جابر بن عبدالله ﷺ او ډير نور بزرګان صلوة خوف يو ركعت ښائی. امام بخاری ﷫ په صحيح بخاری كښې يو باب ذكر كړې دې چه دقلعه ګانو دفتح كولو په موقع باندې او دښمن سره دجنګ په موقع باندې مونځ ادا كول. [4]

اوزاعی ﷫ فرمائی كه فتح نزدې وی او مونځ كولو باندې قدرت نه وی نو هر سړې دې خانله خانله په اشاره مونځ اوكړی. كه دومره وخت هم ملاؤ نشی نو تاخير دې اوكړی. تر دې پورې چه جنګ ختم شی او آرام نصيب شی نو دوه ركعته دې ادا كړی ګنی يو ركعت كافی دې. ليكن صرف تكبير وئيل كافی نه دی بلكه تاخير دې اوكړی تر دې پورې چه امن شی.

**د سختې ويرې په وخت په يو ركعت اكتفاء جائز نه ده**

**مسلك حنفی:**- د سختې ويرې په وخت كښې په يو ركعت يا صرف په تكبير تحريمه اكتفاء جائز نه ده بلكه پوره مونځ به كوی البته كه مسافر وی نو سفرانه مونځ به كوی (تفسيرمظهری ۱/٤٣٨).

حضرت مكحول ﷫ هم دا فرمائی. حضرت انس بن مالك ﷫ فرمائی چه د تستر قلعې په جنګ كښې ځۀ هم فوج كښې شامل ووم. د صبا صادق په وخت كښې جنګ ډير شديد شو، مونږ ته وخت ملاؤ نشو

[1] صحيح بخاری كتاب التفسير: سورة البقرة باب قوله: (فان خفتم فرجالا او ركبانا): ٤٥٣٥)-

[2] صحيح مسلم كتاب الصلوة صلاة المسافرين باب صلاة الخوف: ٨٣٩)-

[3] ابوداود كتاب التطوع باب صلاة الطالب: ١٢٤٩: وهو حسن -

[4] صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها: ٦٧٨)-

چه مونږ مونځ کړې وي.ښه نمر راوختلو اوبيا مونږ دهغې ورځې مونځ اداکړو.که دمونځ بدله کښې ماته دنيا او څه چه په دې کښې دی ماته ملاؤ شی نوخه پرې خوشحاله نه يم.(۱) دې نه پس حضرت امام المحدثين رحمه الله ددې حديث نه استدلال کړې دې.په هغې کښې دی چه جنګ خندق کښې نمر پريوتو پورې حضرت نبی کريم ﷺ دمازيګر مونځ اونکړو.(۱)

بيادويم حديث کښې دی چه حضرت نبی کريم ﷺ کله خپل صحابه کرام رضي الله عنهم بنی قريظه ته دجنګ دپاره اوليږل نودوی ته ئې فرمائيلی وو چه تاسو کښې هېڅوک د بنوقريظه نه د رسيدو نه وړاندې د مازيګر مونځ نه کوی.اوس کله چه د مازيګر د مونځ وخت راغلو نو بعضو خو هم هلته په لار کښې مونځ ادا کړو او وې ونيل چه د حضرت نبی کريم ﷺ مطلب دا وو چه مونږ دې ډير زر لاړشو چه د مازيګر مونځ د مازيګر په وخت کښې اداکړو اوبعضو خلقو اونه کړو تردې پورې چه نمر پريوتلو.او بنو قريظه ته په رسيدلو ئې مونځ اداکړو (۲)

حضرت نبی کريم ﷺ ته چه کله ددې علم اوشو نو حضرت نبی کريم ﷺ دصحابه کرامو رضي الله عنهم دواړو ډلو کښې يو ته هم څه اونه ونيل.نوددې نه حضرت امام بخاری رحمه الله دا مسئله ثابتوی اګرچه جمهور ددې خلاف دی.هغوئ وائی چه سورة نساء کښې چه د ويرې دمونځ کوم حکم دې او چه دکوم مونځ د مشروعيت اوطريقه احاديثوکښې وارد شوې ده هغه دجنګ خندق نه پس ده،لکه څنګه چه ابوسعيد رحمه الله وغيره روايت کښې صراحت سره بيانوی.

ليکن دامام بخاری رحمه الله،امام مکحول رحمه الله،او امام اوزاعی رحمه الله جواب دادې چه ددې مشروعيت نه پس کيدل ددې د جواز خلاف کيدلې نشی څکه چه دا دې هم جائز وی او هغه طريقه دې هم وی.څکه چه داسې حالت کښې شاذ اونادر کله کله هم کيږی او پخپله صحابه کرامو رضي الله عنهم د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په زمانه کښې د فتح تستر په موقع په دې عمل باندې عمل کړې وو او هيچا انکار اونکړو،والله اعلم.

قوله تعالیٰ:- فَإِذَآ أَمِنتُمْ فَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ كَمَا عَلَّمَكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا۟ تَعْلَمُونَ ۝

بيا فرمان دې چه دامن په حالت کښې د حکم پوره کولو خيال ساتنی،څنګه چه تاسو ته ما دايمان لار اوخودله او د جهل نه پس مو علم درکړو نو تاسو ته پکار دی چه ددې په شکريه کښې دالله ﷻ ذکر په اطمينان سره کوئی لکه څنګه چه ئې صلاة خوف بيان کولو نه پس او فرمائيل چه کله اطمينان شی نو مونځونه په ښه طريقه کوئی څکه چه مونځ مومنانو باندې په وخت باندې مقرر شوې دې.دصلوة خوف پوره بيان به انشاء الله په سورة نساء کښې په آيت (کنت فيهم) کښې راشی.

| مَّتَاعًا | لِّأَزْوَٰجِهِم | وَصِيَّةً | أَزْوَٰجًا | وَيَذَرُونَ | مِنكُمْ | يُتَوَفَّوْنَ | وَٱلَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دخرڅې ورکولو | له دپاره دښځو خپلو | دی وصيت کول هغوئ | ښځی پکار | او پريږدی | ستاسونه | چې وفات کيږی | او هغه کسان |
| چې ورته تر يو کاله پورې خرڅه | دې وصيت اوکړی | انو دخپلو ښځودپاره | درنه مړهٔ کيږی اوښځې (کوندې) پريږدی | | | | اوڅوک چې |

۱) صحيح بخاری قبل حديث رقم: ۹٤٥)-
۲) صحيح بخاری کتاب صلاة الخوف باب الصلاة عند مناهضة.....تعليقا قبل حديث : ۹٤٥)-
۳) صحيح بخاری کتاب صلاة الخوف باب الصلاة عند مناهضة.....تعليقا قبل حديث : ۹٤٥)-

إِلَى الْحَوْلِ | غَيْرَ إِخْرَاجٍ | فَإِنْ | خَرَجْنَ | فَلَا جُنَاحَ | عَلَيْكُمْ

دیو کال پوري | بي د ویستلو (دکورونو نه) | بیا که چرې | وخي هغوئ پخپله | نو نشته گناه | په تاسو باند

ورکولې شي اودکوره دې بهر نشي ویستلې | اوکه بخپله بهر اوزي نو دهغې ذمه داري په تاسونشته چې

فِي مَا | فَعَلْنَ | فِي أَنْفُسِهِنَّ | مِنْ مَّعْرُوفٍ | وَاللَّهُ | عَزِيزٌ

په هغه کار کښې | چې کوي نې هغوئ | په باره دخانونو خپلو کښې | دمعلومې طریقې نه | او الله | غالب دې

په خپل خان باندې چې هغوئ په سمه شرعي طریقه هرڅه کوي|.................او الله داختیارخاوند دې

حَكِيمٌ | وَلِلْمُطَلَّقَاتِ | مَتَاعٌ | بِالْمَعْرُوفِ | حَقًّا

حکمت والا دې | او دطلاقو کړې شوې ښځو دپاره | څه خرچه ورکول دي | په مناسب طریقې سره | دا حق دې

اوپه هرحکم کښې حکمت لرې| او د ټولوطلاقو شوؤښځودپاره په مناسب طریقه څه نه څه ورکول دي| دا حق په

عَلَى الْمُتَّقِينَ | كَذَٰلِكَ | يُبَيِّنُ | اللَّهُ | لَكُمْ | آيَاتِهِ | لَعَلَّكُمْ

په پرهیز گارانو باندې | دارنگې | بیانوي | الله | تاسو ته | ایتونه خپل | دپاره ددې |

پرهیزگارانو باندې حق دې|داشان الله پاك تاسو خپل حکمونه ښکاره بیانوي| امید چې تاسوبه

تَعْقِلُونَ

چې دعقل نه کار واخلئ |

دعقل نه کار واخلئ | (

**قوله تعالى:- وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِأَزْوَاجِهِمْ مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ**

**دکونړو دپاره د یو کال عدت حکم:-** داکثرو مفسرینو دا قول دې چه دا آیت ددې نه مخکښې آیت یعنی دڅلورومیاشتو اولسوورځو عدت والا آیت سره منسوخ شوې دې.صحیح بخاری کښې دی چه حضرت ابن زبیر ﷺ حضرت عثمان ﷺ ته اوونیل چه هرکله دا آیت منسوخ شو نوبیا تاسو دا په قران پاك کښې ولې لیکئ ؟دوی اوفرمائیل چه څنگه مخکښې په قران پاك کښې موجود دي دلته به هم موجود وی. مونږ په دې کښې هیڅ کمې زیاتې نشو کولې.(۱)

**د یو کال د عدت منسوخیت:-** حضرت ابن عباس ﷺ فرمانی چه مخکښې خودا حکم وو چه ټول کال پورې به نان نفقه به کونډې ښځې ته دسړی دمال نه وکولې شوه،او هم په دې کور کښې به هغه اوسیدله.بیا د میراث والا آیت دا آیت منسوخ کړو او دخاوند نه د مال په صورت کښې دمال متروکه اتمه حصه او که اولاد ئې نه وی نو بیا څلورمه حصه مال به په وراثت کښې ورکولې شی.او عدت پوره څلور میاشتې اولس ورځې مقرر شوې دې.(۲)داکثرو صحابه کرامو ﷺ او تابعینو نه مروی دی چه دا آیت منسوخ شوې دې.سعید بن مسیب وائي چه د سورة الاحزاب دا آیت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنَاتِ﴾ سره منسوخ شوې دی.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چه اووه میاشتې شل ورځې چه دی نو دا د اصلی عدت څلور میاشتو لسو ورځو نه سوا دی.په دې آیت کښې دهغه مودې حکم بیانیږی،عدت خوواجب دې.خودا زیاتی موده ښځې ته اختیار دې.که کښینی او دا موده تیروی او که څی.دمیراث آیت د کورو

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب ( واللذین یتوفون منکم.....) : ٤٥٣٥)-

(۲) ابن ابی حاتم : ۸۷۱/۲)-

اوسیدول هم منسوخ کوی.هغه چه چرته غواړی نو عدت دې تیر کړی،دکورخرچ دخاوند په ذمه نه دې (۱)
نوددې اقوالو نه معلومه شوه چه دې آیت دټول کال عدت واجب نه کړو.بیا د منسوخ کیدو څه معنی ده ؟دا خو د خاوندوصیت دې او که دا هم ښځه پوره کول غواړی نوپوره دې کړی ګنی په دې باندې څه جبر نشته دې.

(وصية) نه مراد دا دې چه الله ﷻ تاسو ته وصیت کوی لکه څنګه چه ﴿يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ﴾ ددې نصب (فتوصوهن) لره محذوف منل دی.نو که ښځې ټول کال د خپل فوت شوی خاوند په کور کښې اوسیږی نو دوی به نه شی ویستلې.اوکه هغوی عدت تیرول غواړی نو په هغوی باندې هیڅ جبر نشته دې.امام ابن تیمیه رحمه الله هم دا قول اختیاروی.او نور ډیر خلق هم دا قول اختیاروی اوباقی جماعت دا منسوخ ګنړی.نو که دهغوی اراده داصلی عدت نه پس زمانه منسوخ کیدل دی نو خیر دې ګنی په دې باره کښې د آئمه اختلاف دې.هغوی وائی چه دخاوند په کور کښې عدت تیرول ضروری دی.او ددوی دلیل د موطا امام مالك دا حدیث دې چه د حضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنه خور فریعه بنت مالك رضی الله عنها رسول الله ﷺ ته راغله او وې وئیل چه خمونږ غلامان تښتیدلی وو اودهغوی د تلاش کولودپاره زما خاوند لاړو. قدوم کښې ئې دې غلامانوسره ملاقات اوشو خو هغوی دې قتل کړو.دهغه څه مکان نشته دې چه څه به هغې کښې عدت تیر کړم.او نه راسره د خوراك څکاك څه شته دې.که تاسو اجازت راکوئی نو څه به خپلې څخرګنۍ کره لاړه شم او هلته به عدت پوره کړم.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اجازت دې،څه واپس شوم،څه لا په حجره کښې اووم چې نبی کریم ﷺ څه راوغوښتلم او وې فرمائیل چه تا څه اووئیل،ما ورته بیا خپله ټوله قصه بیان کړه.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه په خپل کور کښې اوسیږه تر دې چه ستا عدت پوره شی.نوما هم هلته د عدت زمانه تیره کړه یعنی څلور میاشتې لس ورځې.حضرت عثمان رضی الله عنه څه په خپل دورحکومت کښې راوبللم او مانه ئې دامسئله اوپوښتله.ما ورته خپله ټوله واقعه اود نبی کریم ﷺ فیصله واوروله.حضرت عثمان رضی الله عنه هم ددې پیروی اوکړه او هم دا فیصله ئې اوکړه.(۲) دې حدیث ته امام ترمذی رحمه الله حسن وائی.

قوله تعالى:-وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ

**طلاقو شوو ښځو ته د متاع ورکولو حکم:-** طلاقه شوې ښځې ته د متاع ورکولو باره کښې به خلقو وئیل که مونږ غواړو نووربه کړو اوکه مونږ نه غواړو نو نه به ورکوو.نو په دې باندې دا آیت نازل شو.(۳)
هم ددې آیت نه بعضو خلقو هرې طلاقې شوې ښځې ته څه نه څه ورکول واجب ګرزولی دی.او بعضې نورو بزرګانو دا هغه ښځو سره مخصوص کړی دی چه دکومو مخکې بیان اوشو.یعنی چه کومو ښځو سره صحبت نه وی شوې او مهر هم نه وی مقرر شوې او طلاق ورکړې شی،لیکن د ړومبی جماعت جواب دادې چه په عام کښې دخاص صورت ذکر کول هم دې سورت سره دا حکم نه مخصوص کوی لکه مشهور او منصوب مذهب دې.والله اعلم.

قوله تعالى:-كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ

بیافرمائی چه الله ﷻ داشان خپل حلال اوحرام اوفرائض وحدود او امراونهی باره کښې واضح او مفسر بیان کوی چه تاسو ته دهیڅ قسمه ابهام او اجمال پاتې نشی چه دضرورت په وخت کښې تذبذب کښې اخته نه شئ بلکه دومره قدرې صفا بیان کیږی چه هرسړې پرې پوهیږی.

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب ( والذین یتوفون منکم...) : (٤٥٣١)-
(۲) موطا امام مالک کتاب الطلاق باب مقام المتوفی عنها زوجها : ۸۷،ابوداود: ۲۳۰۰،ترمذی: ۱۲۰٤،نسائی : ۳۵۵۸،ابن ماجة: ۲۰۳۱، وهو صحیح)-
(۳) الطبری: ٢٦٤/٥)-

| اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ |
|---|
| آيا تا نهٔ ليدلي حال دهغه \| كسانو اچي وتلي وو \| د كورونو خپلو نه \| او هغوئ |
| (اې پيغمبره!) تا دهغه كسانو په حال غوروفكر كړې دې اچې دخپلو كورونو نه اووتل |
| اُلُوْفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا ثُمَّ اَحْيَاهُمْ |
| په زرګونو وو \| ديرې دمرګ نه \| نو اووئيل \| هغوئ ته الله \| چې مړه شئ \| بيائې (دوباره) ژوندي كړل هغوئ |
| اود زرګونو په تعداد كښې وو \| خكه چې دمرګ نه ويريدل \| نو الله پاک اووئيل مړه شئ نو بيا ئې ژوندي كړل |
| اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا |
| بيشكه الله \| خامخا خاوند دفضل دې \| په خلقو باندې \| وليكن \| زيات خلق \| نه |
| بيشكه الله ﷻ جل شانه په خلقو ډير مهربان دې \|...............خو زيات خلق د الله شكر نه |
| يَشْكُرُوْنَ ۝ وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝ |
| اوباسي شكر \| او جنګ كوئ \| په لار دالله كښې \| او پوهه شئ \| چې الله \| اوريدونكي \| او پوهه دې |
| ......ادا كوي \| او (مسلمانانو) تاسو دالله په لار كښې جهاد كوئ \| اوداياد لرئ چې الله هرڅهٔ اوري \| او به هرڅهٔ پوهه دې |
| مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ اَضْعَافًا |
| څوک دې هغه كس \| چې قرض وركړي الله ته \| قرض ښكلي \| نو زيات به ئې كړي \| هغه لره \| په زياتوالي |
| څوک چې الله پاک ته قرض حسنه وركړي \| الله پاک به ورته څوڅوچنده دهغې بدله واپس وركوي |
| كَثِيْرَةً ۭ وَاللّٰهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ ۠ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ |
| ډير سره \| اوالله \| تنګوي (رزق) \| او فراخه كوي (رزق) \| او خاص هغه ته به \| واپس كيږئ تاسو \| |
| اوالله دچا روزي زياتوي اودچا كموي \| اوهغه ته به تاسو خواه مخواه واپس كولي شئ \| |

**قوله تعالى:- اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ اُلُوْفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا ثُمَّ اَحْيَاهُمْ الخ**

**ژوند او مرګ دالله ﷻ په لاس كښې دې** :-د وبادخانې ته مه خانې.او هلته نه مه اوخئ.حضرت ابن عباس ؓ فرمائي چه داخلق خلور زره وو.او يو روايت كښې دى چه اته زره وو.بعضو كښې نهه زره وئيلې شوى دى.بعضې څلوېښت زره ښائي.بعضې د ديرشو زرو نه زيات ښائي.دا خلق د ذاوردان يا زرو روان والا كلي وو.او دا د واسط طرفته دې.

**ديو كلي د هلاكت واقعه:-** بعضې وائي چه ددې كلي نوم اذرعات وو.داخلق د طاعون په وجه دخپل ښار نه تښتيدلي وو.يو كلي ته چه اورسيدل نو هلته دالله ﷻ حكم سره ټول مړه شول.اتفاق سره هلته يونبى تيريدو.دهغه دعاسره الله ﷻ هغوئ بيازوندى كړل.بعضې وائي چه يوخوشى اوصفاميدان كښې استوګن شوى وو.او د دوو فرښتو په چغو سره هلاك شوى وو.هركله چه يو ډيره موده تيره شوه نو د دوى هډوكى هم ايره شو.او په دې خائې يو كلي جوړ شو.بيا حزقيل نومې يو سړي هغه خائې كښې تير شو اوهغه دعا ئې اوكړه اوالله ﷻ قبوله كړه.او حكم ئې اوكړوچه ته اووايه چه اې رستو هډوكو تاسو ته الله ﷻ حكم كوى چه تاسو ټول جمع شئ:نود هر بدن ډهانچه اودريدله.بيا ورته الله ﷻ اوفرمائيل چه ته اووايه چه اې هډوكوتاسوته الله ﷻ حكم كوى چه تاسو غوښنه،رګونه اوپټې اونيسئ:نودالله ﷻ دنبى په كتو سره دا هرڅه اوشو.اوهغوئ چه څنګه يو خائې مړه شوى وو داشان په يو خائې راژوندى شول.او

دهغوئ د ژبونه بې اختياره اووتل چه (سبحانك لااله الاانت) اې الله ﷻ! ته پاك يې،ستا نه سوا بل څوك معبودنشته دې.دا دليل دې دقيامت دورځې،هم دې بدن سره دوباره د راپاسيدلو.

**قوله تعالى:-** إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ

**دخلقو ناشكري:-** بيافرمائي چه دالله ﷻ په دې خلقو باندې ډير احسان او فضل دې چه هغه دخپل قدرت پوره نښې اودخپل قدرت نښې ښائي.خو دديې باوجودخلق بې قدره اوناشكره دی.(١)

ددې نه معلومه شوه چه دالله ﷻ نه سوا بل ځائې دپناه نشته دې.دا خلق دوباء نه تښتيدلی وو او دژوند حريص وو اوددې خلاف عذاب كښې راګير شو او زر هلاك شو.

د مسند يو حديث كښې دی چه كله حضرت عمر بن خطاب ﷺ شام طرفته اووتلواو سرغ (ديوځائې نوم دې) ته اورسيدلو نو حضرت ابوعبيده بن جراح ﷺ وغيره د لښكر سردارانوسره ملاوشو او ورته نې اووئيل چه په شام كښې نن سبا وباء ده.نو په دې كښې اختلاف پيدا شو چه آيا هلته لاړشو اوكه نه. بالاخرحضرت عبدالرحمان بن عوف ﷺ راغلو او وې فرمائيل چه مادرسول الله ﷺ نه آوريدلی دی چه كله يوځائې كښې وباء راشي اوتاسوته دهغه ځائې پته اولګی نو تاسوېداسې حالت كښې هلته مه ځائې.حضرت عمرفاروق ﷺ چه واوريدل نودالله حمدوثنائې بيان كړه اوبيادهغه ځائې نه نې تشريف يوړو.(بخاري ومسلم).(٢) يو بل روايت كښې دی چه دا دالله ﷻ عذاب دې چه په مخكو امتونو باندې راغلې وو.الخ.(٣)

**قوله تعالى:-** وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ

**مرګ په نيټه دې:-** بيا فرمائي چه څنګه دهغه خلقو تښتې هغوئ د مرګ نه بچ نه كړې شول.داشان دجهاد نه مخ اړول هم بيكاره دی.اجل اورزق دواړه په قسمت كښې مقرر شوی دی.رزق نه زياتيږی او نه كميږی او مرګ نه مخكې كيږی اونه روستو كيږی.اوبل ځائې كښې ارشاد دې چه كوم خلق دالله ﷻ د لارې نه پاتې شواوكښيناستل او خپلوملګرو ته هم وائي كه د جهاد شهيدان هم خمونږ په شان پاتې شوی وې نونه به مړه كيدل.دوی ته اووايه چه لږ خودې خپلوځانونونه هم مرګ نه لرې كړی كه تاسو رينښتونی يئ.بل ځائې كښې وائی چه اې الله ﷻ په مونږ دې جنګ ولې فرض كړلواومونږ ته دې ولې يو وخته پورې فرصت رانكړو.نوددې په جواب كښې فرمائی چه مضبوط برج هم دمرګ په مخكې هيڅ نه دې.

**په جهاد كښې مرګ ضروری نه دې:-** په دې موقع داسلامی لښكر نډر سردار او دبهادرانو مشر دالله ﷻ توره او داسلام پشت پناه دابوسليمان بن خالد بن وليد فرمان نقل كول بالكل مناسب وخت باندې به وی چه كوم دوی د انتقال نه مخكې فرمائيلي وو.چه د مرګ نه ويريدونكی،اود جنګ نه مخ اړونكی نامرد،هغوئ دې اوګوری چه زما جوړ جوړ د الله ﷻ په لار كښې زخمي شوې دې.په ټول بدن كښې مې داسې ځائې پاتې نه دې چه هغه ځائې په توره يا نيزه باندې نه وی لګيدلې.اوګوره چه خه نن په خپله بستره باندې مركيږم په ميدان جنګ كښې نه.

**قوله تعالى:-** مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا

**دالله په لار كښې د خرچ كولو حكم:-** بيا پروردګار عالم خپلو بندګانو ته په خپله لار كښې دخرچ كولو ترغيب وركوی او دا ځائې په ځائې وركوی.حديث نزول كښې هم دی چه څوك دی چه داسې الله ﷻ ته

---

(١) الطبري: ٢٦٦/٦)-

(٢) احمد:١٩٤/١،صحيح بخاري كتاب الطب باب مايذكرفي الطاعون:٥٧٢٩،صحيح مسلم:٢٢١٩)-

(٣) احمد:١٩٣/١وهو صحيح بالشواهد)-

قرض ورکړي چه نه مفلس دې او نه ظالم دې (١)،

**د ابو الدحداح ﷺ مال صدقه کول:-** د دې آيت په باره کښې حضرت ابوالدحداح انصاري ﷺ ونيلي وو چه يارسول الله ﷺ چه آيا الله ﷻ خمونږ نه قرض غواړي.نبی کريم ﷺاوفرمائيل چه آو.وې ونيل چه ته خپل لاس راکړه.بيا ئې لاس کښې لاس واخستلو او عرض ئې اوکړو چه يارسول الله ﷺ ما خپل باغ الله ﷻ ته قرض ورکړو او په دې کښې شپږ سوه د کهجورو ونې دی.او دهغه خانې نه نيغ خپل باغ ته راغلل.او بهر اودريدو او خپلې ښځې ته ئې آواز ورکړو بچی راوخله او بهر راوخه،ما دا باغ دالله ﷻ په لار کښې ورکړو.(ابن ابی حاتم ).

**د قرض حسنه نه مراد:-** قرض حسنه نه مراد دالله ﷻ په لارکښې خرچ کول دی.او په بچو باندې خرچ کول دی.او تسبيح او تقديس هم دی.

**قوله تعالی:-** فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗٓ اَضْعَافًا كَثِيْرَةً

**دثواب دوچنده کول:-** بيا فرمائی چه الله ﷻ به دا دوچنده اوخلور چنده زيات کړی.لکه بل خائې کښې فرمائی چه﴿ مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ ﴾ الخ يعنی دالله ﷻ لار کښې دخرچ کولو مثال دهغه دانې په شان دې چه هغې کښې اووه وږی راوخی او په هر وږی کښې اووه دانې وی او الله ﷻ چه چا دپاره غواړی زياتوی الخ.ددې آيت تفسير به هم عنقريب راخی انشاء الله.

**يوپه دوه لاکهه اجر ملاويدل:-** ابوهريره ﷺ نه ابوعثمان نهدی تپوس اوکړو چه ما آوريدلی دی چه ديو نيکئ بدله د دوه لاکهو برابرده.دوی ورته اوفرمائيل پدې کښې څه تعجب دې مادنبی کريم ﷺ نه اوريدلی دی چه د يوې نيکئ بدله يوپه دوه لاکهه باندې ملاويږی (مسند احمد) خو داحديث غريب دې ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت ابوعثمان دی ﷫ فرمائی چه زما نه زيات به دحضرت ابوهريره په خدمت کښې هيڅوک نه وی پاتې شوی.دوی حج ته لاړل.بيا وروستو هم لاړم.بصرې ته چه اورسيدو نو ما واوريدل چه هغه خلقو دحضرت ابوهريره ﷺ روايت نه پورتنې حديث بيانوی.ما هغوئ ته اوونيل چه په الله قسم ستاسو تولو نه څه دحضرت ابوهريره ﷺ په صحبت کښې زيات پاتې شوې يم.ما خو هيڅکله د هغوئ نه دا حديث نه دې آوريدلې.بيا زما زړه کښې راغلل چه څه دحضرت ابوهريره ﷺ نه ددې پوښتنه اوکړم.نو څه صرف ددې يو حديث په خاطر مکې ته لاړم،هلته مې دوی سره ملاقات اوکړو،ما اوونيل چه دا بصرې والا ستاسو نه څنګه روايت کوی.دوی اوفرمائيل چه په دې کښې د تعجب څه خبره ده،بيا ئې هم دا آيت اولوستلو او وې فرمائيل چه دا دالله ﷻ قول اولوله.﴿ فَمَا مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا قَلِيْلٌ ﴾ يعنی د تولې دنيا اسباب داخرت مقابله کښې حقير اوکنړئی .په الله قسم ما درسول الله ﷺ نه آوريدلی دی چه ديو نيکئ بدله کښې الله ﷻ دوه لاکهه نيکئ ورکوی.(٢)هم ددې مضمون په ترمذی کښې دا حديث هم دې چه کوم سړې بازار ته لاړ شی ﴿لااله الاالله وحده لاشريك له الملك وله الحمد وهو على كل شئ قدير﴾ اووائی نو الله ﷻ د هغه دپاره يو لاکهه نيکئ نيکی.اويولاکهه ګناهونه ئې معاف کوی.(٣)الخ.ابن ابی حاتم کښې دی چه﴿مَثَلُ الَّذِيْنَ ﴾ الخ.والا آيت نازل شو نو نبی کريم ﷺ دعا اوکړه چه اې الله ﷻ ا زما امت لره نور زيات ورکړه.نو د﴿مَنْ ذَا الَّذِيْ ﴾ والا آيت نازل شو. نبی کريم ﷺ هم دادعا اوکړه نو﴿ اِنَّمَا يُوَفَّى الصّٰبِرُوْنَ اَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ آيت نازل شو .(٤)

---

١) صحيح مسلم، كتاب الصلاة المسافرين باب الترغيب في الدعاء:٧٥٨)-

٢) ابن ابي حاتم:)-

٣) ترمذی كتاب الدعوات باب ما يقول اذا دخل السوق : ٣٤٢٨،ابن ماجة: ٢٢٣٣،)-

٤) ابن ابي حاتم :)-

**د سورة اخلاص ثواب:-** حضرت كعب احبار نه يوسړي تپوس اوكړو چه ما يو سړي نه دا اوريدلي دي چه وم سړي سورة ﴿قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ﴾ يو خل اوواني نو دده دپاره د غمو او ياقوتو لس لاكهه محلات دجنت جوړيږي آيا څه دا رښتيا اوګڼړم ؟ دوی اوفرمائيل چه په دې كښې د تعجب څه خبره ده بلكه شل لاكهه دجنت محلونه جوړيږي.آيا څه دا رښتيااومنم.دوی اوفرمائيل چه په دې كښې د تعجب څه خبره ده بلكه شل لاكهو محلونه په جنت كښې جوړيږي بلكه شل لاكهه نور هم اوديرش لاكهه نور هم اودومره چه دهغې شمير دالله ﷻ نه سوا هيچا ته معلوم نه وی،بيا دوی دا آيت تلاوت اوفرمائيلو او وې فرمائيل چه كله الله ﷻ ﴿اَضْعَافًا كَثِيْرَةً﴾ فرمائي نو بيادامخلوق دهغې دشميرطاقت څنګه اولری ؟

**قوله تعالى:-** وَاللّٰهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُّطُ ۠ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ

**رزق كمول او زياتی كول:-** بيافرمائي چه درزق كمې بيشې دالله ﷻ د طرفنه ده،د الله ﷻ لار كښې خرچ كولو سره بخيلي مه كوئي،چه څه درکړی په هغې كښې حكمت دې،او چه چاته ورنكړی نو په هغې كښې هم مصلحت وی،تاسو ټول به دقيامت په ورځ هغه طرفته واپس كيږئي.

| |
|---|
| اَلَمْ تَرَ اِلَى الْمَلَاِ مِنْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ مِنْ بَعْدِ مُوْسٰى ۘ اِذْ قَالُوْا لِنَبِيٍّ |
| ايا تا نه دي ليدلي حال دهغه سردارانو\| دبني اسرائيلو \| روستو د موسى نه\|كله چې اووئيل هغوئ\| يو نبى خپل ته\| |
| اوتاپه هغې واقعې هم غور كړی دی چې موسی ؑ نه پس دبنی اسرائيلو يوډلي ته پيښه شوې وه\|چې هغوئ خپل پيغمبر ته اووئيل |
| لَّهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ |
| چې مقرر كړه مونږله\| يوباچا \|چې جهاد اوكړو\| په لاردالله كښې \|اووئيل نبي\|آيا داسې خويه نه وی\| |
| مونږ دپاره يو بادشاه مقرر كړه\|چې دالله پاک لار كښې جهاداوكړو\|پيغمبر ورته اووئيل چې آيا داسې خويه نه وی |
| اِنْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ اَلَّا تُقَاتِلُوْا ؕ قَالُوْا وَمَا لَنَآ |
| كه چرې فرض كړې شی\|په تاسو باندې \| جهاد \| اوبيا جهاد اونكړئ \|اووئيل هغوئ\|اوڅه شوی دی په مونږ |
| چې جهاد درباندې فرض شی\| اوبيا نې تاسو اونكړې شئ\| هغوئ اووئيل چې واه داڅنګه كيديشي |
| اَلَّا نُقَاتِلَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَقَدْ اُخْرِجْنَا مِنْ دِيَارِنَا |
| چې اوبه نه كړو جهاد\|په لار دالله كښې \|اوحال داچې ويستلې شوی يو مونږ\| دكورونو خپلو نه |
| چې مونږ دالله په لار دجهاد اونه كړو\|د دې باوجود چې مونږ ايستلې شوی يو دخپل وطن |
| وَاَبْنَآئِنَا ؕ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا اِلَّا |
| اودخامنو خپلو نه\|خو چې كله\|فرض كړې شو\|په هغوئ باندې\|جنګ \|نو پښا شول (ټول)\| سوا \| |
| اوبال بچ نه\|خوچې جهاد پرې فرض كړې شو نوروټولو ورته شاكړه\| بغيرد |
| قَلِيْلًا مِّنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝ |
| دلږو كسانو \| دهغوئ نه \|او الله \| پيژني\| داسې ظالمان\| اواوو |
| يوڅو كسانو نه\| اوالله پاک هغه كسان ډيرښه پيژني چې په خان ظلم كوی\| |

**قوله تعالى:-** اَلَمْ تَرَ اِلَى الْمَلَاِ مِنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى ۘ اِذْ قَالُوْا لِنَبِيٍّ لَّهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ

**د یو پیغمبر واقعه:-** چه د کوم نبی ﷺ دلته ذکر دې دهغه نوم حضرت قتاده رحمه الله یوشع بن نون بن افرائم بن یوسف بن یعقوب علیهم السلام خودلې شوې دې.لیکن داقول صحیح نه معلومیږی.خکه چه دا واقعه دحضرت موسی ﷺ نه پس دحضرت داود ﷺ د زمانې ده.لکه څنګه چه صراحت سره منقول دی اودحضرت داود ﷺ اوحضرت موسی ﷺ په مینځ کښې زروکالونه زیاته فاصله ده.والله اعلم.د سدی قول دې چه دا پیغمبر حضرت شمعون ﷺ دې.(۱) مجاهد رحمه الله وائی چه دا شمویل بن یایالی بن علقمه بن صفیه بن علقمه بن ابو هاشف بن قارون بن یصهر بن فاحث بن لاوی بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم خلیل الله دې.

**د بنی اسرائیلو ګمراه کیدل او مغلوبه کیدل:-** قصه څه دا رنګ ده چه دحضرت موسی ﷺ نه پس بنی اسرائیل څه وخته پورې په حق لار روان وو.بیا په شرك او بدعت کښې اخته شو.مګر بیا هم دوی ته پرله پسې نبیان علیهم السلام راتلل تر دې پورې چه دبنی اسرائیل بې باکئ د حده زیاتې شوې.اوس الله ﷻ ددوی دښمنان په دوی باندې غالب کړل.ډیر وهل ئې اوخوړل او در په دیکې شو.اول د توراة موجودګی او د تابوت د سکینه موجودګی چه کوم دحضرت موسی ﷺ نه دوی ته وراثت کښې ملاؤ شوې وو،ددوی دپاره دغلبې باعث جوړشوې وو،خو ددوی دسرکشئ او د بدترین ګناهونوپه وجه الله ﷻ ددوی نه دانعمت واخستلو اوددوی د کورنئ نه نبوت هم ختم کړې شو.

**د شمعون ﷺ پیدائش:-** دلاوی کوم اولادکښې چه نبوت راروان وو،هغه ټول په ټوله په جنګونوکښې ختم شو.په دوی کښې صرف یو حامله ښځه پاتې شوې وه.ددې خاوند هم قتل شوې وو.اوس د بنی اسرائیلو نظرونه په دې ښځه باندې وو.ددوی خواهش وو چه الله ﷻ دې ته هلك ورکړی اوهغه هلك نبی جوړ شی.پخپله به دې ښځې هم شپه ورځ دا دعا کوله اوالله ﷻ هغه دعا قبوله کړه او دې ته ئې هلك ورکړو او دده نوم شمویل یا شمعون وو.ددې معنی ده چه الله ﷻ زما دعا قبوله کړه.دنبوت عمر ته په رسیدو الله ﷻ ده ته نبوت ورکړو.

**د بادشاه مقرر کولو مطالبه:-** هرکله چه دوی دنبوت اعلان اوکړو نو قوم دده نه مطالبه اوکړه چه تاسو مونږ لره یو بادشاه مقرر کړئ چه دهغه په نګرانئ کښې جهاد اوکړو.بادشاه خو ښکاره شوې وو لیکن پیغمبر ورته خپل تریخ بیان اوکړو چه هسې نه تاسو د جهاد نه انکاری شئ.قوم ورته جواب ورکړو چه زمونږ نه زمونږ ملك اخستې شوې دې،زمونږ بچې ګرفتار کړې شوی دی.اوبیا به هم مونږ داسې بې غیرتې کوو او د مرګ نه به ویریږو.نو جهاد فرض شو او حکم اوشو چه ددې بادشاه په نګرانئ کښې (جهاد ته تیار شئ) په دې اوریدو سره دوی حق دق شو او سوا د څه خلقو نه باقی ټولو مخ واړولو او دا څه نوې خبره نه وه چه ددې الله ﷻ ته علم نه وو.

| | | |
|---|---|---|
| وَقَالَ | لَهُمْ | نَبِيُّهُمْ |
| او اووئیل | هغوئ ته | پیغمبر دهغوئ |

اودهغوئ خپل پیغمبرورته اووئیل

| إِنَّ اللَّهَ | قَدْ بَعَثَ | لَكُمْ | طَالُوتَ | مَلِكًا | قَالُوٓا | أَنَّىٰ يَكُونُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه چې الله | مقرر کړې دې | ستاسو دپاره | طالوت لره | باچا | اووئیل هغوئ | څه رنګ به وی |

چې الله پاک طالوت ستاسوبادشاه مقرر کړې دې دوئ اووئیل چې،هانې داڅه وائې،هغه کله

(۱) الطبری: ۲/۲۸۳-

لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ اَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ

ده لره | باچاهي | په مونږ باندې | حال دا چې مونږ | ازيات حقدار يو | په باچاهئ سره | دهغه نه |

په مونږ بادشاهي كولې شي |............دهغه نه خومونږزيات دبادشاهئ حقدار يو

وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ ۭ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىهُ عَلَيْكُمْ

او نه ده وركړې شوې هغه ته | فراخي | د مال نه | اوونيل پيغمبر | بيشكه الله | غوره كړې دې هغه | په تاسو باندې

اوهغه خويومالدار سړې هم نه دې | پيغمبر ورته اوونيل چې الله پاک ستاسو په مقابله هغه مقرر كړې دې

وَزَادَهٗ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ ۭ وَاللّٰهُ يُؤْتِيْ مُلْكَهٗ

او زيات كړې ئې دې هغه لره | په فراخئ سره | په علم كښې | او په بدن كښې | او الله | وركوي | باچاهي خپله

اوپه علم اوجسم دواړو كښې ئې بر كړې دې | اودالله پاک اختيار دې چې خپل حكومت

مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ۝ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ اِنَّ اٰيَةَ

هغه چاته چې خوښ ئې شي | او الله | فراخه دې (فضل دهغه) | ايو هه دې | او اوونيل | هغوئ ته | نبي دهغوئ چې نښه

چاته غواړي هغه ته ئې سپاري | هغه دوسعتونو مالک دې | اوپه هرڅه ښه پوهيږي | دهغوئ پيغمبرورته اوونيل چې نښه

مُلْكِهٖٓ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ التَّابُوْتُ فِيْهِ سَكِيْنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

دباچاكيدودهغه | (داده) چې رابه شي تاسو ته | هغه صندوق | چې په هغې كښې | د زړه اطمينان دې | دطرفه درب ستاسو

دطالوت دحكومت داده | چې هغه صندوق به ورته واپس راشي چې په هغې كښې دالله پاک دطرفه د اطمينان سامان پروت دې

وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ اٰلُ مُوْسٰى وَاٰلُ هٰرُوْنَ تَحْمِلُهُ الْمَلٰۗىِٕكَةُ ۭ اِنَّ

او باقي پاتې | اهغه څيزونه | چې پريښودې دي | آل موسى | او آل دهارون | اراوړي به هغه | فرښتې | بيشكه چې

اوپه كښې دموسى اودهارون عليهما السلام داولاد پاتې شوې تبركات پراته دي | اوهغه دفرښتو په حفاظت كښې دى

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ۧ

په دې كښې | نښه ده | ستاسو دپاره | كه يئ تاسو | مومنان | |

داستاسو دپاره (دطالوت دبادشاهئ) يو څرګنده نښه ده كه تاسو په رښتيا مومنان يئ |

**قوله تعالى:-** وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوْتَ مَلِكًا ۭ

**دبادشاه تقرري** :-مطلب دادې چه كله دبادشاه جوړيدو خواهش ئې اوكړواودا ئې خپل پيغمبرته اوونيل ،نوپيغمبردالله ﷻ په حكم سره طالوت پيش كړو چه دده تعلق شاهي خاندان سره نه وو بلكه يو لښكري وو.شاهي خاندان د يهودا وو.او دده تعلق دهغې نه نه وو.نوقوم پرې اعتراض اوكړو چه دده نه مونږ زيات د بادشاهت حقدار يو.بيا بله خبره داده چه ده سره مال هم نشته دې او يو غريب دې.بعضې وائي چه دې اوبه څكونكئ وو،چا ونيلي دى چه ده به باغ ښكلې كولو يعني مالي وو.نو د نبي د حكم نه ددوى رومبئ سركشي داعتراض په صورت كښې وه.پيغمبر دوى ته جواب وركړو چه دا مقررتيا زما د طرف نه نه ده چه په دې كښې به دوباره غور اوكړم،دا خو د الله ﷻ حكم دې.اوددې پوره كول ضروري دى.بيا ظاهره كښې خوهغه تاسو كښې لوئې عالم اوطاقتورانسان دې.او ښكلې او شجاع دې.او جنګي

طریقو نه هم واقف دي.دلته هم دا ثابته شوه چه د بادشاهئ دپاره د قوت او طاقتور او لوئي زړه او دماغو والا پکار دي.

**قوله تعالی:- وَاللّٰهُ يُؤْتِي مُلْكَهُ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ**

**د بادشاهئ ورکړه د الله ده :**-بیا فرمائي چه اصلي او حقیقي مالک الله ﷻ دي.د ملك حقیقي مالك هم هغه پاك ذات دي.چه چا ته اوغواړي نو ملك ورکوي او چه چاته اوغواړي نو حکمت ورکوي او هغه رحمت والا دي.دچا مجال دي چه هغه لوئي ذات نه تپوس اوکړي،چه څه غواړي کوي،دټولو نه تپوس کونکي څوك نه څوك شته دي.خو پروردګار ددي نه مستثنی دي.هغه ذات د لوئي فضل مالک دي او د خپلو نعمتونه چه چاته ورکوي نوهغه ددي دپاره مخصوص کوي،هغه ذات علم والا دي ښه په هر څه پوهه ذات دي چه څوك دکوم يوڅيز مستحق دي او څوك مستحق نه دي.

**قوله تعالی:- وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ أَن يَأْتِيَكُمُ التَّابُوتُ فِيهِ سَكِينَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ**

**دسکینه نه مراد :**- نبي (شمویل یا شمعون ) ؑ فرمائي چه د طالوت د بادشاهت ړومبی د برکت ښه دا ده چه تاسو ته به ورك شوي تابوت سکینه ملاؤ شی چه په هغې کښې به وقار او عزت اوجلالت او رحمت وی.په هغې کښې دالله ﷻ ښښې دی اوتاسو دا ښه پیژنئی.① دبعضو قول دي چه سکینه د سرو یو رکیبئ وه.چه په هغې کښې به دنبیانو علیهم السلام زړونه مبارك وینځلي شو اودا حضرت موسی ؑ ته ملاؤ شوي وو.او په دې کښې دتورات تختې وې.② چا وئیلی دی چه ددې خله هم وه لکه څنګه چه دانسان خوله وی.او روح هم وو.اوهواهم وه.دوه وزرې ئې وې.اولکئ هم وه.③ وهب وائی چه د مړې پشو سر وو پکښې.هرکله چه به هغې د تابوت نه خبرې اوکړې نو دوی ته به د نصرت یقین اوشو او جنګ کښې به ورته فتح نصیب شوه.④ دا قول هم دې چه يو روح وو چه دالله ﷻ طرفنه،کله چه به بنی اسرائیلو کښې اختلاف پیدا شو په څه خبره باندې او دوی ته به اطلاع نه وه نو دې به خبرې کولې.دحضرت موسی ؑ اوحضرت هارون ؑ دباقی وراثت نه مراد لرګې او دتورات تختې او مالوچ او څه کپړې او پیزار وو.

**د تابوت تفصیل:**- حضرت عبدالله ابن عباس ؓ فرمائي چه فرښتو د زمکې او آسمان په مینځ کښې دا تابوت نیولی وو اوطالوت بادشاه ته ئې مخکښې کړو،ددې تابوت په کتلو سره هغوی ته د نبی د نبوت او دطالوت د بادشاهت یقین اوشو.دا هم وئیلې شی چه دا د غوا دپاسه راوړلې شو.بعضې وائی چه کفارو کله یهودیانو باندې غلبه اوکړه نو دوی نه تابوت،سکینه واخستلې شو.او اریحان ته یوړو.او دخپل لوئي بت شاته ئې کیخودو.هرکله چه الله ﷻ دا بنی اسرائیلو ته واپس کول غوښتل نو بیا کفار ئې دسحریه وخت کښې بت خانې ته بوتلل نو وې کتل چه بت لاندې پروت دې او تابوت پرې دپاسه دې.هغوی بیا بت دپاسه کړو لیکن په بل سحر ئې اوکتل چه بیا هم هغه معامله ده،دوی بیا بت پاس کړو.سحر چه کله لاړل نو وې کتل چه بت يو طرفته مات پروت دې.نو یقین ورته اوشو چه دا دالله ﷻ کرشمې دی.نو دوی داتابوت اوچت کړو او یو بل کلی ته ئې یوړو او هلته ئې کیخودو.هغه خائې کښې یو وبائی مرض خور شو،د بنی اسرائیلو یو ښځه هغه خائې کښې قید وه،هغې دوی ته اووئیل چه دا واپس هغه خائې ته یوسئ نو تاسو ته به ددې خبرې نه نجات ملاؤ شی.دې خلقو په دوؤ غواګانو باندې تابوت کیخودو او واپس ئې بنی اسرائیلو ته اولیږلو،ښار ته نزدې په رسیدو غواګانو رسئ اوشلولې اواوتښتیدې.او تابوت هم هغه خائې کښې پاتې شو چه کوم بنی اسرائیلو راوړو.بعضې وائی چه دا دوؤ خوانانو اورسولو.والله اعلم.(لیکن دقران پاك په الفاظو کښې دا موجود دی چه دا فرښتو راوړې وو.مترجم) دا هم وئیلې شوي دی چه دا د فلسطین يو کلی کښې وو او دهغې نوم ازدوه وو.

**قوله تعالی:- إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ**

**دنبوت او بادشاهت دلیل:-** بیا فرمائي چه زما دنبوت دلیل او دطالوت بادشاه دلیل هم دي چه تابوت به فرښتي راوړي، که تاسو په الله ﷻ او دقیامت په ورځ یقین لرئی.

فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ

| بیاچي کله| روان شو طالوت |

ابیاهرکله چي طالوت روان شو

بِالْجُنُودِ ۙ قَالَ إِنَّ اللَّهَ مُبْتَلِيكُم بِنَهَرٍ ۚ فَمَن شَرِبَ مِنْهُ

دلښکر سره |نو وي وئیل| چي الله | امتحان کونکي دي ستاسو | په یو دریاب سره|نوهغه چاچي|اوڅکلي اوبه|دهغي نه

دلښکرو سره|نواعلان ني اوکړوچي الله پاک دیونهرپه ذریعه ستاسو امتحان اخلي اچا چي دهغه دریاب نه اوبه اوڅکي

فَلَيْسَ مِنِّي ۚ وَمَن لَّمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهُ مِنِّي إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ

نو نه دي ملګري زما |او هغه چاچي اونه څکلي اوبه| نو هغه ملګري دي زما|مګر| هغه څوک چي وي څکلي

نوهغه زما ملګري نه دي |اوچا چي دغه اوبه اونه څکلي انو هغه زما ملګري دي امګر هغه څوک چي یو چونګ

غُرْفَةً بِيَدِهِ ۚ فَشَرِبُوا مِنْهُ

یو لپه اپه لاس خپل سره(هغه زما د ملګرتیا نه اوځي)اخواوڅکلي هغوئ تولو په مړه خیټه|دهغي دریاب نه

په خپل لاس سره اوبه اوڅکي|......... نودیو څوکسانو نه علاوه باقي نورو ټولو د هغي

إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۚ فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا

ما سوا دلږوکسانو |دهغوئ نه|نو کله چي اپوري وتو دهغه دریاب نه |هغه|او هغه کسان | چي ایمان ني راوړي وو

نه اوبه اوڅکلي |...........کله چي هغه اودهغه ایماندار ملګرى د دریاب نه تیر شول

مَعَهُ ۙ قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ ۚ قَالَ

دهغه سره|اووئیل هغوئ| نشته طاقت | زمونږ|نن ورځ|د(مقابلي) جالوت اودلښکردهغه سره| اووئیل

...........نو هغوئ اووئیل نن خومونږ کښي دجالوت اودهغه لښکرسره دمقابلي طاقت نشته|اوهغه

الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو اللَّهِ ۙ كَم مِّن فِئَةٍ

هغه کسانو| چي یقین ني وو (په دې ) |چي هغوئ|مخامخ کیدونکي دی دالله سره|ډیر خله ډله

کسانوچي په دې خبره پوهه وو چي دالله سره به مخامخ کیږواووئیل|..........چي ډیرکم کرته

قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿٢٤٩﴾

لږه | اغالب شوي ده|په ډله لویه باندي | په حکم دالله سره| او الله|ملګري دي|دصبرناکو خلقو

وړه ډله د الله په حکم سره په لویه ډله باندي غالبه شوي ده|........اوالله پاک دصبر کونکو ملګري دي

**قوله تعالى:-** فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِالْجُنُودِ ۙ قَالَ إِنَّ اللَّهَ مُبْتَلِيكُم بِنَهَرٍ ۚ فَمَن شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّي ۚ

**دنهر نه د اوبو نه څکلو امتحان:-** اوس واقعه بیانیږي چه کله دي خلقو دطالوت بادشاهت قبول کړو او هغوی دوی جهاد ته بوتلل.دحضرت سعدی رحمه الله دقول مطابق ددوی تعداد اتیا زره وو.[۱] په لار کښي

---

(۱) الطبری: ۵/۳۴۰-

طالوت اوونیل چه الله ﷻ ستاسو ازمیبنت په یو نهر سره کوی.دحضرت عبدالله ابن عباس ؓ دقول مطابق دانهردااردن اوفلسطین په مینځ کښې وو.(۱)ددې نهر نوم الشریعه وو.طالوت دوی هوښیار کړل چه ددې نهراوبه مه څکئ:او که چا اوڅکلې نو ماسره دې نه خی.که چا یو ګوټ نیم اوڅکلې نو هیڅ باك نشته دې.خوهرکله چه هلته اورسیدل نوډیرتږی وو،په نهر وربریوتل او ښه ډیرې اوبه نې اوڅکلې خوډیرلږ خلق داسې پوخ ایمان والا وو چه هغوی اوبه اونه څکلې خو یو یو لپه.د حضرت عبدالله ابن عباس ؓ دقول مطابق دیو لپې څکلو والو تنده ماته شوه اوهغوی په جهاد کښې شریك شو.او چه کومو ښه ډیرې اوبه څکلې وې دهغوی تنده نه ماتیده او نه هغوی په جهاد کښې شریك شو.حضرت سدی رحمه الله فرمائی چه په اتیاؤ زرو کښې شپږ اویا زرو اوبه اوڅکلې او صرف څلورو زرو سړو اوبه اونه څکلې او فرمانبردار جوړ شو.

قوله تعالى:- قَالَ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوا اللّٰهِ كَمْ مِّنْ فِئَةٍ قَلِيْلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيْرَةًۢ بِاِذْنِ اللّٰهِ

**د عالمانو نصیحت**:- حضرت براء بن عازب ؓ فرمائی چه د حضرت نبی کریم ﷺ اصحابو ؓ به اکثر فرمائیل چه دبدر په ورځ زمونږ شمیر هغه هومره وو چه څومره شمیر د حضرت طالوت بادشاه اودهغه دفرمانبردارو وو چه هغوی سره نهر نه پورې وتلی وو(۲)یعنی درې سوه دیارلس (۳۱۳).ددې خائې نه پورې وتل دې نافرمانو ډیر زیاتې اوکړو او دوی ډیر په بزدلانه فعل سره د جهاد نه انکار اوکړو.او د دښمن زیات شمیر ددوی حوصلې ماتې کړې اوصفا جواب نې ورکړو چه نن خوپه مونږ کښې دجالوت لښکر سره د جنګ کولو طاقت نشته دې.اګر چه دوی ته علماء ډیرې د همت وعظ او حوصلې خبرې ورکړې او ورته نې اوفرمائیل چه په قلت او کثرت باندې فتح موقوف نه ده،په صبر اونیك نیتې باندې ضرور دالله ﷻ مدد ملاویږی.ډیر ځل داسې شوی دی چه یو موټې خلقو لویولویو جماعتونه «ډلې»راپرزولې دی.تاسوصبر اوکړئی اوبه طبیعت کښې استقلال راولئ او عزم اوساتئ دالله ﷻ په وعدو باندې،ددې صبر په بدله کښې به الله ﷻ تاسو سره مدد اوکړی،خو دهغوی کلك زړونه نرم نشو او دهغوی بزدلی لرې نشوه.

| وَلَمَّا | بَرَزُوْا | لِجَالُوْتَ وَجُنُوْدِهٖ | قَالُوْا | رَبَّنَآ | اَفْرِغْ |
|---|---|---|---|---|---|
| او کله چې | اووتل مقابلې ته | دجالوت او دلښکر دهغه سره | نو وې وئیل | اے ربه زمونږ | رااوروی |

اوهرکله چې هغوئ دجالوت اودهغه دلښکرمقابلې ته راووتل نو دعائې اوکړه چې ائې زمونږه ربه:

| عَلَيْنَا | صَبْرًا | وَّثَبِّتْ | اَقْدَامَنَا | وَانْصُرْنَا | عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په مونږ باند | صبر | او کلك کړه | قدمونه زمونږ | او مدد اوکړه زمونږ سره | خلاف د کافر قوم |

مونږ له ډیر صبر راکړه اوزمونږ قدمونه مضبوط کړه اود کافروپه مقابله کښې زمونږ مدد اوکړې

| فَهَزَمُوْهُمْ | بِاِذْنِ اللّٰهِ | وَقَتَلَ | دَاوٗدُ | جَالُوْتَ | وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو مسلمانانوماتې ورکړه هغوئ ته | په حکم دالله | او قتل کړو | داؤد | جالوت لره | او ورکړه هغه ته الله |

نود الله په حکم نې هغوئ اوتښتول اوداود علیه السلام جالوت لره مرکړو..........................اوالله پاک حضرت

---
(۱) صحیح بخاری،کتاب المغازی باب عدة اصحاب بدر: ۳۹۵۷-
(۲) ابن جریر وسنده جدا-

الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهُ مِمَّا يَشَاءُ ط وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ

باچاهي | او حكمت | اووي ښودل هغه ته | هغه څه چي غوښتل الله | او كه چري نه وي ختمول دالله

داؤد ﷺ ته بادشاهي او حكمت اوچي څه ني مناسب ګڼړل هغه وركړل | اوكه الله بعضي خلق د بعضي

النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لا لَّفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ

خلقو لره | بعضي دهغوئ نه | په بعضي نور سره | نو خامخا خراب شوې وو | نظام دزمكي | ليكن | الله

نورو خلقو په لاس نه دفع كول | .................نو دزمكي انتظام به خراب شوې وو | خو الله پاك

ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ ۝ تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ط

خاوند دفضل دې | په خلقو باندې | داآيتونو دالله دى | چي مونږ ني اور ووْ | تاته | په حقه سره

په خپل مخلوق ډيرزيات مهربان دې (چي دامن انتظام ورله كوى) | داد الله آيتونه دى چي مونږ ني تاسوته په حقه بيانوو

وَإِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ۝

اوبيشكه ته | اد رسولا نوځني ني |

اوبيشكه ته دپيغمبرانو نه (يولوئي) پيغمبر ني

وَلَمَّا بَرَزُوا لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالُوا رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا

**د حضرت داود ﷺ د لاسه د جالوت مرګ** :- يعنى چه كوم وخت كښې دمسلمانانو دې مختصر جماعت دكفارو غټ لښكر اوكتلو نو دالله ﷻ په دربار كښې ني عرض اوكړو چه ائي الله ﷻ مونږته صبر نصيب كړه او مونږ ثابت قدم كړه. اود جنګ په وخت كښې زمونږ قدمونه مضبوط كړې. دمخ اړولو او تيښتې نه مونږ اوساتې، او په دې دښمنانو باندې مونږ غالب كړې. ددوى دا عاجزانه اومخلصانه دعاګانې قبليږى او دالله ﷻ مدد نازليږى او دمسلمانانو دا يوموټى جماعت هغه لوئې لښكر تهس نهس كوى. او دحضرت داود ﷺ دلاسه د مخالفو سردار جالوت اوو‍ژلې شى. اسرائيلي روايتونو كښې دا هم روايت دى چه حضرت طالوت ﷺ دوى سره وعده كړې وه كه تاسو جالوت لره قتل كړنى نو څه به تاسو ته خپله لور په نكاح كړم. او خپل نيم مال به تاسو ته دركړم. او په حكومت كښې به مو هم شريك كړم. نو حضرت داود ﷺ كاڼړنى په مچونړه كښې كيخودو او جالوت طرفته ني اوويشتلو او هم په دې هغه مړ شو. حضرت طالوت ﷺ خپله وعده پورا كړه اوبالآخر د سلطنت مستقل بادشاه هم دوى شو. او دالله ﷻ دطرفنه هم ورته نبوت غوندې لوئې نعمت ملاؤ شو. اودحضرت شموئيل ﷺ نه پس دوى پيغمبر اوبادشاه جوړشو. دحكمت نه مراد نبوت دې. اوډير خاص علوم هم چه كوم الله ﷻ غوښتل او خپل نبى ته ني اوخودل.

قوله تعالى:- وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ

**د جهاد د فرضيت حكمت**:- بيا ارشاد فرمائى كه الله ﷻ داشان د لاندې خلقو حالت نه بدلولې لكه څنګه چه د بنى اسرائيلو طالوت غوندې جابر او مدبر بادشاه او د حضرت داود ﷺ پشان دلير سپه سالار وركړل او بدلون ني راوستلو او كه داسې ني نه كولې نو خلق به هلاك شوى وو. بل ځائې كښې ارشاد دى چه ﴿ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا ﴾ يعنى كه داسې دبل لرې كول نه وې نوعبادت خانې او هغه مسجدونه چه په هغې كښې د الله ﷻ نوم په كثرت سره اخستې شى مات كړى شوى وې ).

**د نیک انسان برکت:-** حضرت رسول اکرم ﷺ فرمائي چه دیونیك بخت ایماندار په وجه ده چاپیر چل کنبي الله ﷻ دسلو سلو کورونو نه مصیبتونه لري کوی.بیا راوی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه هم ددې آیت مبارك تلاوت اوکړو.(ابن ماجه) لیکن ددې حدیث سند ضعیف دې.دابن جریر یو بل غریب روایت کنبي دی چه الله ﷻ دیو رینبتونی مسلمان په وجه ده او د اولاد،اولاد او د ده کور واله اود ده چاپیر چل کورونه بنائسته کوی او دده تر موجودګئ پورې هغوی دالله ﷻ په حفاظت کنبي وی.

د ابن مردویه یو روایت کنبي دي چه قیامته پورې به تاسو کنبي اووه کسان ضرور داسې وی چه دهغوی په وجه به تاسو سره مددکیږی اوپه تاسوبه باران کیږی او تاسو ته به روزی ملاویږی.د ابن مردویه په یوبل روایت کنبي دی چه زما په امت کنبي به دیرش ابدال وی چه دهغوی په وجه به تاسو ته روزئی ملاویږی،تاسو باندې به بارانونه ورولې شی او ستاسو مدد به کولې شی.داحدیث قتاده رحمه الله بیان کړې دې او فرمائي چه زما خیال دې چه حضرت حسن رضی الله عنه هم ددغې ابدالو نه وو.

**قوله تعالی:-** تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۗ وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ

**د نبی د رسالت حقانیت:-** بیافرمائی چه انې الله ﷺ دا نعمت او ستا احسان دې چه هغه یو په بل سره دفع کوی.هم هغه ذات رینبتوني دې او دهغه پاك ذات ټول کارونه د حکمت دی.هغه خپل دلیلونه په خپلو بندګانو باندې واضح کوی.هغه پاك ذات په ټول مخلوق باندې فضل او رحم کوی.دا ټول واقعات او دا ټولې حق خبرې انې نبی صرف زمونږ د وحی په ذریعه تاته معلومې شوې.ته زما رینبتونې رسول نې،زما ددې خبرو او پخپله ستا دنبوت رینبتینوالی علم هغه خلقوته هم دې چه د چا په لاس کنبي کتاب دې.دلته الله ﷻ ډیر په تاکیدسره قسم خوری او دخپل نبی د نبوت تصدیق کوی.

الحمدلله د دویمې پارې تفسیر ختم شو

تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۘ مِنْهُمْ مَّنْ

دغه رسولان | فضیلت ورکړې وو مونږ | بعضو دهغوی نه | په بعضو باندې | دهغوی | هغه خوك دی

داپیغمبران داسې دی چې مونږ دوئ له دیوبل نه اوچتې مرتبې ورکړی دی |اوپه دوئ کنبي

كَلَّمَ اللّٰهُ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ ؕ وَاٰتَيْنَا

چې خبری کړی دی الله دهغوئ سره | اوپورته ئې کړل | بعضې دهغوئ | په درجوسره | اوورکړې مونږه

الله پاک چاسره خبرې کړی دی| اوچاله ئې(په بل شان)اوچتې مرتبې ورکړی دی| اوورکړی دی مونږ

عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ

عیسی | ځوئ | دمریم ته | ښکاره نښې | اوقوی کړومونږه هغه | په پاك روح | او که چری | غوښتلې الله

دبی بی مریم ځوئې عیسی علیه السلام ته ځرګنده نښې |اوپه پاك روح سره موهغه مضبوط کړې وو| اوکه الله ته منظور وې

مَا اقْتَتَلَ الَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ

نه به وو کړې جنګ | هغه کسانو | چې روستو | ددې نه وو | پس دهغې نه | چې راغلې وې هغوئ ته

نودهغوئ نه پس خلقو به دداسې ځرګندونښو دراتلونه پس په کور جنګونه کولې ........

الْبَيِّنٰتُ وَلٰكِنِ اخْتَلَفُوْا فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ

روښانه نښې | لیکن | هغوئ اختلاف اوکړو | نو بعضې دهغوئ نه | هغه څوك دی | چې ایمان ئې راوړو

........خوالله پاك په چا جبرنه کوی | نودوئ جدا جدا شوا چاپه کنبي ........

| وَمِنْهُم | مَّنْ | كَفَرَ | وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ | مَا اقْتَتَلُوْا |
|---|---|---|---|---|
| او بعضي دهغوئ نه | هغه څوك دي | چې دكفر لارئې اختياركړه | او كه غوښتلي الله | نو هيڅرې به نۀ جنګيدلي |
| كښې ايمان راوړ اوچا په كښې كفر خوښ كړو اوكه الله پاك ته دا منظور نودوئ به جنګونه نه كول | | | | |

| وَلٰكِنَّ اللّٰهَ | يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ |
|---|---|
| ليكن الله | كوى هغه كار چې غواړى |
| خو الله تعالى چې څه غواړى هغه كوى | |

**قوله تعالى:- فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ**

**د نبيانو عليهم السلام درجات** :-دلته دا بيان كيږى چې رسولانو كښې هم د مرتبو په لحاظ فرق وو.لكه بل ځائې كښې فرمائى چې ﴿وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ النَّبِيّٖنَ عَلٰى بَعْضٍ وَّاٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا﴾ مونږ بعضو نبيانو ته په بعضو نورويانديې فضيلت وركړو.او داود ﷺ ته مونږ زبور وركړو.دلته هم ددې بيان دې.په دوى كښې بعضې داسې هم دى چې هغوئ سره مونږ خبرې هم كړې دى.لكه موسى ﷺ او محمد ﷺ او آدم ﷺ.

صحيح ابن حبان يو حديث مبارك كښې نقل كړې دې چې په هغې كښې د معراج بيان سره دا هم وارد شوى دى چې دكوم يو نبى سره د نبى كريم ﷺ په كوم آسمان كښې ملاقات اوشو.او دا د هغوئ د مرتبو د كم و بيش دليل دې.

اويو حديث كښې دى چې د يومسلمان او يو يهودى څه خبرې اترې اوشوې.نو هغه يهودى اووئيل چې قسم په هغه الله ﷻ چې هغه پاك ذات موسى ﷺ ته په ټول جهان فضيلت وركړو.مسلمان دا برداشت نۀ كړې شو اوهغۀ ئې يو څپيړه اووهلو او وې وئيل چې ائې خبيثه،آيا زمونږ نبى محمد ﷺ نه هم هغه افضل دې؟.هغه يهودى نبى كريم ﷺ ته ددې شكايت اوكړو.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې ماته په نبيانو باندې فضيلت مۀ راكوئ د قيامت په ورځ به ټول بې هوشه شى.د ټولو نه مخكښې به زۀ هوش كښې راځم.نو زۀ به ګورم چې موسى ﷺ به د الله ﷻ دعرش پښه نيولې وى.ماته معلوم نۀ دى چې هغه زما نه مخكښې هوش كښې راغلو.يا هډو بې هوشه شوې نۀ وو.او د كوه طور د بې هوشئ بدله كښې ددې ځائې د بې هوشئ نه بچ كړې شو.نوماته په نبيانو عليهم السلام باندې فضيلت مۀ راكوئ.[1]

**د تعارض شبه:**- يو بل روايت كښې دى چې د پيغمبرانو مينځ كښې ماته فضيلت مۀ راكوئ.[2] نو دا حديث په ظاهره د قرآن پاك د دې آيت خلاف معلوميږى،

**دلائل د پاره د دفع د تعارض:**-①ليكن دراصل څه تعارض نشته.ممكن دى چې د نبى كريم ﷺ دا فرمان ددې نه مخكښې وو چې كله نبى كريم ﷺ ته د فضيلت علم شوې وو.خو دا قول لږ د فكر قابل دې.

②دويم جواب دادې چې نبى كريم ﷺ دا صرف د تواضع اوعاجزئ په وجه وئيلې وو د حقيقت په طور نه

③دريم جواب دادې چې داسې جګړې،اختلافات او يو ته په بل باندې فضيلت وركول د بل شان كمول دى.ددې وجې نبى كريم ﷺ منع فرمائيلې وو.

④څلورم جواب دادې چې تاسو ورته فضيلت مۀ وركوئ يعنى خپلې رائې،خپل خيال اوخپل ذهنى تعصب سره خپل نبى ﷺ ته په بل نبى فضيلت مۀ وركوئ.

⑤پنځم جواب دادې چې دفضيلت اوتكريم فيصله ستاسو بس كښې نۀ ده.بلكه داد الله ﷻ د طرفنه ده.چې هغه پاك ذات چاته فضيلت وركوى نوتاسو هغۀ اومنئ،ستاسو كار منل او ايمان راوړل دى.

---

[1]) صحيح بخارى كتاب احاديث انبياء باب قول الله تعالى ( وان يونس لمن المرسلين) : ٣٤١٤، صحيح مسلم: ٢٣٧٣)-

[2]) ايضا-

قوله تعالى:- وَاٰتَيْنَا عِيْسَى

**ذكر د خاص پس د عام نه**:-بيا فرمايئ چې مونږ عيسى ﷺ ته واضح دليلونه او داسې حجتونه ورکړي وو چې د هغې په ذريعه بني اسرائيلو ته دا خبره ښهٔ صفا واضحه شوه چې د نبى کريم ﷺ رسالت بالکل رښتونې دې.او دا حقيقت هم په بنى اسرائيلو باندې ښهٔ واضحه شو چې عيسى ﷺ هم نورو بندګانو پشان د الله ﷻ يو عاجزه بنده او بې وسه غلام دې.او د روح القدس يعنى جبرائيل ﷺ په ذريعه مونږ د دوى امداد اوکړو بيافرمائى چې د روستو خلقو اختلافات هم زمونږ د ﷻ فيصلې او د تقدير يوه نمونه ده او زمونږ شان دادې چې څه غواړو کوئ.زمونږ د څه ارادې نه جدا مراد نه دى.

**د مشرکانو د شفاعت د تصور ترديد**

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْۤا | | | | | | |
| اې هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | | | | | | |
| ...............ائې مسلمانانو............. | | | | | | | |
| اَنْفِقُوْا | مِمَّا | رَزَقْنٰكُمْ | مِّنْ قَبْلِ | اَنْ | يَّاْتِيَ | يَوْمٌ | لَّا |
| خرچ کړئ | دهغه مال نه | چې درکړې دې مونږه تاسوته | مخکښې | ددې نه | چې راشى | هغه ورځ | چې نهٔ به وى |
| مونږ چې کوم مال متاع درکړې ده | دهغې نه خيراتونه ورکړئ | مخکښې ددينه چې هغه ورځ راشى | | | | | |
| بَيْعٌ | فِيْهِ | وَلَا خُلَّةٌ | وَّلَا شَفَاعَةٌ ؕ | وَالْكٰفِرُوْنَ | | | |
| اغستل خرڅول | په هغې کښې | اونه به دوستى پکارراځى | او نهٔ به سفارش چليږى | او کافران خلق | | | |
| چې نه په کښې دمال اخستل خرڅول وى | اونه به دوستى وى | اونه بهٔ سفارش چليږى | او چې کفر ئې غوره کړې دې | | | | |
| هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۝ | اَللّٰهُ | لَاۤ اِلٰهَ | اِلَّا هُوَ ۚ | اَلْحَيُّ | | | |
| هغوئ په اصل کښې ظالمان دى | الله | نشته لائق دعبادت | مګرهغه دې | هميشه ژوندې دې | | | |
| هم هغوئ ظالمان دى | الله چې لائق دعبادت هيڅوک نشته يواځې هغه دې | تل ژوندې دې | | | | | |

الله ﷻ خپلو بندګانو ته حکم کوى چې دوى دې نيکو لارو کښې خپل مالونه خرچ کړى چې الله ﷻ سره د دوى ثواب جمع وى.او فرمائى چې په خپل ژوند کښې خيراتونه او صدقې کوئ.د قيامت په ورځ خو به نهٔ اخستل خرڅول وى او نهٔ به په دې خلاصيدل وى چې د ير سرهٔ زر ورکړى.او نهٔ به د چا نسب او دوستى په کار راځى.لکه بل ځائې کښې فرمائى چې ﴿فَاِذَا نُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَلَاۤ اَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَّلَا يَتَسَآءَلُوْنَ﴾ يعنى کله چې شپيلئ اووهلې شى نو په هغه ورځ به نهٔ نسب وى او نهٔ به چا سره څه سامان وى.او په هغه ورځ به د سفارشيانو سفارش په کار نهٔ راځى.

قوله تعالى:- وَالْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۝

بيا فرمائى چې کافران ظالمان دى.يعنى پوره او پاخهٔ ظالمان هغه دى.چې هم د کفر په حالت کښې الله ﷻ سره ملاقى شى.عطاء ابن دينار رحمة الله عليه فرمائى چې شکر دې چې الله ﷻ کافرانو ته ظالمان اوونيل خو ولې ظالمانو ته ئې کافران او نهٔ ونيل.(۱)

(۱) ابن ابى حاتم : ۳/۹٦٦)

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اَلْحَيُّ

| الله | نشته لائق دعبادت| مگرهغه دی | همیشه ژوندي دی|

| الله چي لائق دعبادت هیڅوک نشته یواځي هغه دی | تل ژوندي دی

اَلْقَيُّوْمُ لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ لَهٗ مَا

ټول کائنات دهغه په اختیار کښي دي| نه نیسی هغه باندي| پرکالي | اونه خوب | دهغه دی | هغه څه

اوډټول مخلوق انتظام کوی | ..............نه پرې پرکالي راځي |اونه خوب | دهغه ملکیت، دي څه چي

فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ

چي په آسمانونو کښي دی| اوهغه څه چي په زمکه کښي دی | څوک دی | هغه کس | چي سفارش به اوکړي

په آسمانونو کښي او څه چي په زمکه کښي دی | .........څوک دی چي د(چا)سفارش اوکړي

عِنْدَهٗٓ اِلَّا بِاِذْنِهٖ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

هغه سره | مگر په اجازت دهغه سره | معلوم دی هغه ته| هر هغه څه | چي دخلقو په وړاند دی

دهغه په دربار کښي دهغه داجازت نه بغیر| پوهه دی په هغه خبروچي خلقو ته ښکاره دی |

وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖٓ اِلَّا

اوهغه څه |چي پناه دی دخلقو نه | او نشی احاطه کولي داخلق |په هیڅ څیز|دعلم دهغه نه | مگر

اوپه هغه خبروچي دخلقونه پټي دی | اودوی؛ دهغه معلوماتونه په هیڅ باندي احاطه نشی کولي |مگر

بِمَا شَآءَ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَلَا يَئُوْدُهٗ

په هغه چي اوغواړي هغه| اوخوردي| حکومت دهغه| په آسمانونو او په زمکه کښي| اونه ستړي کوی هغه لره

په هغي چي الله پاک ئي اوغواړي| دهغه حکومت په زمکه اوآسمانونو باندي خور دي |اونه ستړي کیږی ددي

حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ

حفاظت ددي دواړو|اوهغه اوچت دی| او لوئ دی|

دواړوپه ساتنه|اوهغه اوچت او لوئي ذات دی|

**د آیت الکرسی فضیلت**: دا ایت ایت الکرسی دی.او دا ډیر عظمت والا دی.ابی بن کعب نه نبی کریم ﷺ تپوس اوکړوچي کتاب الله کښي دټولونه زیات عظمت والا آیت کوم یو دی؟هغوئ جواب ورکوی چي الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ ته د دي زیات علم دي.نبی کریم ﷺ همدا سوال بیا کوی.د څو واړي پښتني نه پس بیا نبی کریم ﷺ په خپله جواب ورکوی چي آیت الکرسی.نبی کریم ﷺ فرمائي چي ائي ابو المنذر الله ﷻ دي تا ته ستا علم مبارک کړي.په هغه الله ﷻ مي دي قسم وی چي د هغه په قدرت کښي زما سا ده،د دي به ژبه وی او شونډي به ئي وی او دا به د حقیقی بادشاه پاکی بیانوی او د عرش پښي سره به لګیدلي وی.(مسند احمد).([1])

[1] احمد: ١٤١/٥، صحیح مسلم: کتاب صلاة المسافرین باب فضل سورة الکهف وایة الکرسی : ٨١٠، ابوداود: ١٤٦٠، دحدیث پاک آخری حصه،( والذی نفسی بیده ان له لسانا) منکر دي )-

صحيح مسلم کښې هم داحديث دې.ليکن د دې دا روستې قسمه جمله په هغې کښې نشته.ابی ابن کعب ﷺ فرمائی چې ماسره دکهجورو يو بورئ وه،ما کتل چې ورځ په ورځ دهغې نه کهجورې کميدلې.يو شپه زۀ ټوله شپه ويښ ووم او د دې نګرانی مې کوله.ما اوکتل چې يو ځناور د يو ځوان هلك په مثال راغلو.ما هغۀ ته سلام اوکړو،هغه زما د سلام جواب راکړو.ما ورته اووئيل چې تۀ انسان نې که جن؟هغه اووئيل چې زۀ جن يم.ماورته اووئيل چې لږخپل لاس خوماته راکړه.هغه لاس را اوږد کړو.ما چې د هغه لاس واخستلو نو د هغۀ لاس د سپی پشان وو.او د دۀ په لاس کښې دسپی پشان ويښته وو.ما ورته اووئيل چې آيا جنات پيدائشی داسې وی؟ هغۀ اووئيل چې په ټولو جناتو کښې د ټولونه زيات طاقت والا هم زۀ يم.ما ورته اووئيل چې بيا تۀ په څيزونو پټولو باندې څنګه قادر شوې؟ هغه اووئيل چې ما ته پته ده چې تۀ صدقه کول خوښوې،مونږ اووئيل چې مونږ ولې دې نه محروم يو؟ ماورته اووئيل چې ستاسودشر نه بچ کيدو والا کوم يو څيز دې؟هغه اووئيل چې آيت الکرسی.سحر چې کله زۀ د نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر شوم او نبی کريم ﷺ ته مې ټوله واقعه اووئيله نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې هغه خبيث خو داخبره رښتيا کړې ده.( ابويعلی ) ([1])

**ايت الکرسی د قران څلورمه حصه ده .**

هرکله چې نبی کريم ﷺ مهاجرينو ته تشريف يوړو نو هغوئ تپوس اوکړو چې په قرآن پاك کښې کوم يو آيت لوئې دې؟نو نبی کريم ﷺ ورته آيت الکرسی واورولو ( طبرانی).نبی کريم ﷺ يو خل صحابه کرام ﷺ کښې يو نه تپوس اوکړو چې تا نکاح کړې ده که نه ؟ هغه اووئيل يارسول الله ﷺ ما سره مال نشته نو نکاح به څنګه اوکړم.نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې تا ته﴿قُلْ هُوَ﴾ياد نۀ دې؟هغه اووئيل چې دا خو راته ياد دې.نو نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې څلورمه برخه قرآن پاك خو شو.آيا تاته ﴿قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْكَٰفِرُونَ﴾ياد نۀ دې؟هغه اووئيل چې ولې نه دا راته ياد دې.نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې څلورمه حصه قرآن پاك دا شو.بيا نې ورته اوفرمائيل چې تاته ﴿إِذَا زُلْزِلَتِ﴾ ياد نۀ دې؟هغه اووئيل چې ياد دې راته.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې څلورمه حصه قرآن پاك خو دا شو.نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې ﴿إِذَا جَآءَ نَصْرُ ٱللَّهِ﴾ درته ياد دې؟هغه اووئيل چې يا دې راته.نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې څلورمه حصه قرآن پاك داشو.نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې آيت الکرسی درته ياده ده ؟ هغه اووئيل چې ياده ده.نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې څلورمه حصه قرآن پاك داشو.(مسند احمد)([2])

**په نورو ايتونو د ايت الکرسئ بزرګی**

ابوذر ﷺ فرمائی چې زۀ يو خل دنبی اکرم ﷺ خدمت کښې حاضر شوم.نبی کريم ﷺ په جمات کښې ناست وو.زۀ راغلم کښيناستم.نبی کريم ﷺ راته اوفرمائيل چې تا مونځ کړيدې.ما اووئيل يارسول الله نۀ مې دې کړې.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې پاسه مونځ اوکړه.ما مونځ اوکړو او بيا راغلم کښيناستم.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې د انسانانو اوپيريانو د شيطان نه پناه غواړه.ما اووئيل چې يارسول الله ﷺ چې آيا انسانی شيطان هم وی؟نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې هو.ما اووئيل چې د مونځ متعلق څه ارشاد دې.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې مونځ سراسر خير دې.که د چا خوښه وې نو لګه حصه دې ترې واخلی او چې د چا خوښه وی نو زياته حصه دې ترې واخلی.ما اووئيل چې يارسول الله ﷺ د روژې په حقله وايئ؟نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې کفايت کولو والا باندې فرض ده او د الله ﷻ په نيز زياتی ده.ما اووئيل چې يارسول لله صدقه‌انبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ډيره او څو چنده زياته بدله

[1] حاکم : ٥٦٢/١، عمل اليوم والليلة للنسائي: ٩٦٠، وهوحديث حسن وصحيح ابن حبان الاحسان : ٧٨١)-.
[2] احمد : ٢٢١/٣، ترمذی: کتاب فضائل القرآن باب ماجاء فی اذا زلزلت : ٢٨٩٥ )-.

ورکولو والاعمل دي.ما اوونيل چې يارسول الله د ټولو نه افضله صدقه کومه يوه ده؟نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې د لږ مال لرونکی زړهٔ کول په صدقه يا په پټه صدقه ورکول محتاج ته.ما سوال اوکړو چې رومبې نبي څوك دې؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې آدم ﷺ ما اوونيل چې هغه نبی وو؟نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې نبی او الله ﷻ سره خبرې کونکې وو.ما تپوس اوکړو چې درسولانو شمير څهٔ دې؟نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې سل او څه دپاسه لس ډيره غټه ډله.يو روايت کښې د دريو سوو پنځلسو لفظ دې.ما تپوس اوکړو چې يارسول الله ﷺ د ټولو نه زيات بزرګئ والا کوم يو آيت دې؟نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې آيت الکرسی ﴿اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اَلْحَيُّ الْقَيُّوْمُ﴾.(مسند احمد) ([1]).

**ايت الکرسی د مال د حفاظت ذريعه ده**

ابوايوب انصاری ﷺ فرمائی چې زما د خزانو نه به جناتو غلا کوله.ما نبی کريم ﷺ ته د دې شکايت اوکړو.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې تهٔ کله هغه اووينې نو اووايه چې ﴿ بسم الله اجيبی رسول الله ﴾.هرکله چې هغه راغلو نوما هم دا اوونيل او هغه مې اونيولو.هغه اوونيل چې بيا به زهٔ نهٔ راځم.ما هغه پرېښودو.زهٔ د نبی اکرم ﷺ خدمت کښې حاضر شوم.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ستا قيدی څه اوکړل؟ ما اوونيل چې ماهغه اونيولواوبيامې پرېښودو ځکه چې هغه اقراراوکړو چې بيابه نهٔ راځم.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې هغه به بيا هم راځی.ما هغه دوه درې ځل اونيولو او د اقرار کولو نه پس به مې هغه بيا پرېښودو.ما بار بار نبی کريم ﷺ ته د دې ذکر اوکړو او نبی کريم ﷺ به بار بار دا فرمائيل چې هغه به بيا راځی.آخری ځل چې ما هغه اونيولو نو ما نهٔ پرېښودو نو هغه اوونيل چې ما پرېږده زهٔ تا ته يو داسې څيز ښايم چې تا لره به د هغې په وجه هېڅ يو شيطان او جن نهٔ راځی.ما اوونيل چې ښه اووايه هغه څه څيز دې ؟ هغه اوونيل چې آيت الکرسی.ما نبی کريم ﷺ ته ددې ذکر اوکړو نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې هغه دا رښتيا ونيلی دی او هغه دروغژن دې.(مسند احمد) ([2])

صحيح بخاری کښې کتاب فضائل القرآن کښې او کتاب الوکالة او صفة ابليس په بيان کښې هم داحديث د ابوهريره ﷺ نه مروی دې.په هغې کښې دی چې ما د رمضان د زکوة څوکيداری کوله چې شيطان راغلو او مال نه ئې خپل څادر ډکولو.دريم ځل دهٔ اوونيل که تهٔ د شپې دځملاستو په وخت کښې دا آيت وائې نو د الله ﷻ د طرفنه به په تاباندې محافظان مقرر وی.او تر سحر پورې به شيطان تالره نزدې نه راځی.(بخاری شريف)([3])دويم روايت کښې دی چې داکهجورې وې او هغه يو موټئ اوړې وې.او رسول اللهﷺ ورته اوفرمائيل چې که تهٔ هغه نيول غواړې نوچې کله هغه دروازه بيرته کوی نو په هغه وخت کښې تهٔ دا اووايه چې ﴿سبحان من سخرك محمد﴾.شيطان عذردا ښودلې وو چې ماديو غريب پيری دبچو دپاره ما دا اوړل.(ابن مردويه).نوداواقعه ددريو صحابه کرامو ﷺ شوه.دابی ابن کعب ﷺ ،دابوايوب انصاری ﷺ اود ابوهريره ﷺ.

**دآيت الکرسئ برکتونه**

**ايت الکرسی دکوردحفاظت ذريعه:-** حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی چې ديو انسان اوجن ملاقات اوشو.جن ورته اوونيل چې ما سره به پرځول اوکړې.که تا زهٔ راغوزار کړم نو تا ته به زهٔ يو داسې آيت اوښايم چې کله تهٔ کور ته لاړ شې او دا اووائې نو شيطان به دې کورته نهٔ راځی.پرځول اوشو او دې سړی هغه جن راوپرځولو.دې سړی اوونيل چې تهٔ نحيف او ويريدونکې ئې اوستا لاسونه د سپی په

---

[1] ( احمد : ٥/٩، ٥٥٠،نسائی مختصرا )-
[2] احمد: ٤٢٣/٥، ترمذی : کتاب فضائل القرآن باب رقم : ٣، حديث ابی ايوب فی الغول : ٢٨٨٠. وهو حسن)-
[3] صحيح بخاری کتاب الوکالة باب اذا وکل رجلا فترک الوکيل .... ٢٣١١)-

شان دی.ایا جنات داسې وی،یا صرف ته داسې نې؟هغه اوونیل چې زۀ په ټولو کښې قوی یم.بیا دوباره کشتی اوشوه ا و په دویم خل هم هغه سړی دې راوپرځولو.جن اوونیل چې هغه آیت الکرسی ده.کله چې یو سړې کور ته څی او دا اووانی نو شیطان د هغه کور نه داسې په چغو اوځی لکه څنګه چې خر چغې وهی.دا سړې عمرفاروق ﷜ وو.(کتاب الغریب).

**ایت الکرسی د نورو ایتونو سردار دې:-** نبی کریم ﷺ فرمانی چې په سورت بقرة کښې یو آیت دې چې هغه د قرآن پاک د ټولو آیتونو سردار دې.چې دا په کوم کور کښې اوونیلې شی نوشیطان د هغه کور نه تښتی.هغه آیت الکرسی دې.( مستدرك حاكم).(١)

ترمذی شریف کښې دی چې د هر څیز د پاره یو اوچتوالې او لوړوالې وی اودقرآن پاک اوچتوالې سورة بقره دې.او په دې کښې آیت الکرسی د ټولو آیتونو سردار دې.(٢) د عمر فاروق ﷜ په سوال باندې چې په قرآن پاک کښې د ټولونه زیات بزرګی والا آیت کوم یو دې؟نو عبدالله بن مسعود ﷜ اوفرمانیل چې ما ته معلوم دی.ما د نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چې هغه آیت آیت الکرسی دې.(ابن مردویه).

**د اسم اعظم په ایت الکرسئ کښې کیدل:-** نبی کریم ﷺ فرمانې چې په دې دواړو آیتونوکښې د الله ﷻ اسم اعظم دې.یو خو آیت الکرسې دې او بل ﴿اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ ۙ﴾ (٣)(مسند احمد).

اوحدیث شریف کښې دی چې داسم اعظم په برکت سره چې کومه دعا اوغوښتلې شی هغه قبلیږی.هغهٔ اسم په دې دریو سورتونو کښې دې.❶ سورة بقره ❷ سورة آل عمران ❸ سورة طه.(ابن مردویه).هشام بن عمار خطیب د دمشق فرمانی چې اسم اعظم په سورت البقرة کښې په آیت الکرسئ کښې دې.او په آل عمران کښې په ړومبی آیت کښې او په سورت طه کښې په آیت ﴿وَعَنَتِ الْوُجُوْهُ لِلْحَیِّ الْقَیُّوْمِ ؕ﴾ کښې دې.اوحدیث کښې دی چې کوم سړې د هر فرض مونځ نه پس آیت الکرسی لولی نو هیڅ څیز دې جنت ته د تلو نه نهٔ شی منع کولې سوا د مرګ نه.(٤)(ابن مردویه).دا حدیث امام نسائی هم په خپل کتاب ﴿عمل الیوم واللیلة﴾ کښې نقل کړې دې.او ابن حبان هم په خپل کتاب کښې نقل کړې دې.(٥)د دې حدیث سند په شرط د بخاری باندې دې.خو ابوالفراج ابن جوزی دې ته موضوع وائی.والله اعلم.په تفسیر ابن مردویه کښې هم دا حدیث شته دې.خو د هغې اسناد ضعیف دی.د ابن مردویه یو بل حدیث کښې دی چې الله تعالی موسی ﷺ طرفته وحی اولیږله چې د هر مونځ نه پس آیت الکرسی وایه.چې کوم سړې دا وانی نو زۀ به هغهٔ ته شکر ګزاره زړهٔ او ذکر کولو والا ژبه ورکړم.او هغهٔ ته به د انبیاء ثواب او د صدیقانو عمل ورکړم.په دې باندې صرف نبیان همیشه پاتې کیږی یا صدیقین یا هغه سړې چې د هغه زړهٔ ما ایمان سره آزماو کړې وی یا هغه په خپل لار کښې شهید کول غواړم.خو دا حدیث ډیر منکر دې.دترمذی په حدیث کښې دی چې کوم سړې سورة ﴿حم المومن﴾ لره ﴿الیه المصیر﴾ پورې او آیت الکرسی د سحر په وخت کښې اووانی نو هغه تر ماښامه پورې د الله ﷻ په حفاظت کښې وی.او چې څوك نې ماښام اووانی نوترسحره پورې د الله ﷻ په حفاظت کښې وی.خو دا حدیث هم غریب دې.(٦)ددې آیت په فضیلت کښې نور هم ډیر حدیثونه دی،لیکن یو خو دا چې د هغې سندونه ضعیف دی او بل دا چې مونږ د اختصار نه کار اخلو.مونږ هغه دلته راونړل.

---

١) المعجم الكبير للطبراني: ١٨٢/٩، ح/٨٨٢٤)-

٢) حاكم : ٥٦٠/١)-

٣) ترمذی كتاب فضائل القرآن باب ماجاء فى سورة البقرة واية الكرسى : ٢٨٧٨)-

٤) عمل اليوم والليلة للنسائى: ١٠٠ وهوحسن)-

٥) ابن حبان فى الصلاة كما قال الحافظ فى اتحاف المهر: ٢٥٩/٦ برقم: ٦٤٨٠)-

٦) ترمذی كتاب فضائل القرآن: ٢٨٧٩)-

**تقسیم د ایت الکرسیٔ په اعتبار د جملو سره:-** په دې ایت مبارك کښې لس مستقل جملې دی.په ړومبۍ جمله کښې دالله ﷻ د وحدانیت بیان دې چې دټول مخلوق صرف هم هغه یوالله ﷻ دې.دوئمه جمله کښې دی چې هغه ژوندې دې اوهغه پاك ذات ته هیڅکله مرګ نۀ راځی او نورو لره قائم ساتلو والا دې.د﴿قیوم﴾ بل قرات ﴿ قیام ﴾ هم دې.نو ټول موجودات د هغه پاك ذات محتاج دی.او دټولو نه بې نیاز دې.هیڅوك هم د هغه د اجازت نه بغیر د هیڅ څیز سنبالښت والا نشته بل ځائې کښې فرمانی چې﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ تَقُوْمَ السَّمَاۗءُ وَالْاَرْضُ بِاَمْرِهٖ﴾ یعنی د هغه د نښو نه یو نښه دا ده چې آسمان او زمکه د هغه په حکم سره قائم دی.

بیا فرمانی چې نۀ په هغه باندې څه نقصان راځی او نۀ هغه د خپل مخلوق نه غافله کیږی او نۀ ترې بې خبره دې بلکه د هر سړی په اعمالو باندې هغه حاضر او د هرسړی په احوالو باندې هغه ناظر.د زړۀ د هرې خطرې نه هغه واقف دې،د مخلوق یوه ذره هم د هغه پاك ذات د حفاظت او علم نه بهر نۀ ده.هم دادې پوره قیومیت.پرکالی،او غفلت نه،خوب او بې خبرئ نه د هغه ذات پاك دې.صحیح حدیث کښې دی چې یوځل نبی کریم ﷺ خپلو صحابه کرام ﷺ ته څلور خبرې اوښودلې.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ نۀ اوده کیږی، نۀ هغه ذات د خوب لائق دې.هغه د میزان محافظ دې.چې د چا دپاره غواړی نو درنه ئې کړی اوچا دپاره چې اوغواړی نو سپکه ئې کړی.د ورځې اعمال د شپې نه او د شپې اعمال د ورځې نه مخکښې پورته اوچتولې شی.د هغه مخکښې د نور یا د اور پردې دی.که هغه لرې شی نو د هغه د مخ د تجلیٔ په وجه به هغه ټول او- وزوی چې ترکومې پورې د هغه نظر رسی.(۱۷)

**موسیٰ علیه السلام او د بنی اسرائیلو څه غریب او ضعیف احادیث:-** مسند عبدالرزاق کښې عکرمه ﷺ نه روایت دې چې موسی علیه السلام د فرښتو نه تپوس اوکړو چې آیا الله ﷻ اوده کیږی هم.نو الله ﷻ فرښتو ته وحی اولیږله چې موسی علیه السلام لره درې ورځې بیدار اوساتئ.هغوئ هم دا اوکړل او هغوئ ئې اوده کیدو ته پرې نښودل.او بیا ئې هغوئ له لاس کښې دوه بوتلې ورکړې او ورته ئې اووئیل چې دا خپلو لاسونو کښې اونیسه.خبردار چې دا ستاسو نه غوزار نشی او نۀ مات شی.موسی علیه السلام هغه اونیول،خو هغوئ شوګیره کړې وه،خوبولې شو او پرکالی پرې راغله او سترګې ئې ورغلې او دې کښې بیا بیدار شو خو ترکومې به داسې کیدل؟یو ځل دوی علیه السلام له خوب راغلو او هغه بوتل د دوی علیه السلام د لاس نه پریوتلو.نو موسی علیه السلام ته اووئیلې شو چې هرکله ستاسو نه د پرکالیٔ په وجه دوه بوتلې سنبالې نۀ شوې نو که الله ﷻ اوده شی یا پرې پرکالی راشی نو د آسمان او زمکې حفاظت به څنګه کوی.(۱) خودا د بنی اسرائیلو خبره ده او زړۀ ئې نۀ منی.ددې وجې دا ممکن نۀ دی چې د موسی علیه السلام پشان جلیل القدر او عارف بالله د الله ﷻ د صفت نه واقف نۀ وی.او هغۀ ته په دې کښې شك وی چې الله ویخ وی که اوده کیږی.او د دې نه زیات غریب هغه حدیث دې چې ابن جریر کښې دې چې نبی کریم ﷺ دا واقعه په منبر باندې بیان کړه.دا حدیث ډیر زیات غریب دې او په ظاهره معلومیږی چې ددې فرمان پیغمبر نه ثابتیدل صحیح نۀ دی بلکه د بنی اسرائیلو خبره ده.عبدالله ابن عباس ﷺ نه هم دا شان مروی دی چې بنی اسرائیلو د موسی نه سوال کړې وو او بیا ئې دوی ته بوتلې ورکړې وې او د خوب په وجه دوی علیه السلام هغه سنبال نۀ کړې شو.او نبی کریم ﷺ باندې دا آیت نازل شو.(۲) او د آسمان او زمکې ټول څیزونه د هغۀ په غلامیٔ کښې اود هغۀ ماتحت دی او د هغۀ په سلطنت کښې دی .لکه فرمانی چې ﴿اِنْ كُلُّ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ الخ.یعنی د زمکې او آسمان ټول څیزونه د الله ﷻ په غلامیٔ کښې حاضریدو والا دی.دا ټول الله ﷻ یو

---

(۱) تفسیر عبدالرزاق : ۳۲۱، وسنده حسن الی عکرمة لکنه من الاسرائیلیات)-

(۲) ابن جریر )-

یو شمیرلی دی.او د هغهٔ په قبضه کښې دی.ټول مخلوق به بیل بیل هغهٔ ته حاضریږی.هیڅوک نشته دې چې دهغهٔ د اجازت نه بغیر د هغهٔ په مخکښې د چا سفارش اوکړی یا شفاعت اوکړی لکه ارشاد دې چې ﴿وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ فِي السَّمٰوٰتِ﴾

**شفاعت به د الله ﷻ حکم سره وی:-** یعنی آسمان کښې ډیرې فرښتې دی لیکن د هغوی د شفاعت کولو هیڅ فائده نشته.او دا بله خبره ده چې د الله ﷻ خوښه او رضا په کښې شامله شی.بل خائې کښې دی چې ﴿وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى﴾ هغوی یعنی فرښتې د هیچا شفاعت نهٔ کوی مګر د هغه چا شفاعت کوی چې د هغهٔ نه الله ﷻ خوشحاله وی.نو دلته هم د الله ﷻ عظمت او د هغهٔ جلال او د هغهٔ د لوئې بیان دې چې بغیردهغهٔ د اجازت اورضا نه د هیچا همت نشته چې دهغهٔ په مخکښې د چا سفارش اوکړی.

حدیث مبارك کښې هم دی نبی کریمﷺ فرمائی چې زهٔ به د الله ﷻ د عرش لاندې لاړ شم او سجده به کوم،الله ﷻ به ما هم په سجده کښې پریږدی.ترکومې چې هغه پاك ذات غواړی.بیا به اوونیلې شی چې خپل سر اوچت کړه.وایه شفاعت کوه ستا شفاعت به قبلولې شی.نبی کریم ﷺ فرمائی چې بیا به زما دپاره حد مقرر کړې شی او زهٔ به هغه جنت ته بوځم.(۱) هغه پاك ذات چې هغه د تیر شوی او راتلونکو حالاتو نه خبر دې.د هغه علم ټول مخلوقاتو باندې دې.لکه بل خائې کښې د فرښتو قول دې چې ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ﴾ الخ.مونږ ستا د رب د حکم نه بغیر نهٔ شو کوزیدې،زمونږ مخکښې روستو ټول څیزونه د هغهٔ په ملکیت کښې دی او ستا رب د هیرې وغیره نه پاك دې.

**د کرسئ باره کښې د مفسرینو موقف:-** د عبدالله بن عباس ؓ د قول مطابق د کرسئ نه مراد علم دې،د نورو بزرگانو نه دواړه پښې ایښودل منقول دی.

**دالله ﷻ په صفتونو بغیر د تاویلونو او کیفیتونو پیژندلو نه ایمان ساتل ضروری دی**

**د کرسئ په حقله مختلف اقوال:-** یو مرفوع حدیث کښې هم دا دی چې د دې اندازه د الله ﷻ د ذات نه بغیر بل چا ته نهٔ ده معلومه،پخپله عبدالله ابن عباس ؓ نه هم دا مرفوعًا مروی دی لیکن رفع ثابت نهٔ ده.(۲)ابومالك رحمة الله علیه فرمائی چې کرسئ د عرش لاندې ده.سدی ﷫ فرمائی چې آسمان او زمکه د کرسئ په مینځ کښې دی.او کرسئ عرش ته مخامخ ده.ابن عباس ؓ فرمائی چې اووهٔ زمکې او اووهٔ آسمانونه که خوارهٔ کړې شی او ټول یو خائې کړې شی نو دا به د کرسئ مقابله کښې داسې وی لکه یوحلقه په یو خوشې میدان کښې.ابن جریر نه یو مرفوع حدیث کښې منقول دی چې اووهٔ آسمانونه او کرسئ داسې دی لکه اووهٔ درهمه په ډهال کښې.اوحدیث کښې دی چې کرسئ د عرش مقابله کښې داسې ده لکه د اوسپنې کړه په یو خوشې میدان کښې.(۳)ابو ذر غفاری ؓ یو ځل د کرسئ باره کښې تپوس اوکړو نو نبی اکرم ﷺ قسم اوخوړ او هم دا ئې اوفرمائیل.او وې فرمائیل چې دعرش فضیلت په کرسئ باندې هم داسې دې.(۴)یو ښځې نبی اکرم ﷺ ته درخواست اوکړو چې زما د پاره درخواست اوکړه الله تعالی ماجنت ته داخله کړی.نبی اکرم ﷺ د الله ﷻ عظمت بیان کړو او وې فرمائیل چې د هغهٔ کرسئ د زمکې او آسمانونواحاطه کړې ده خو لکه څنګه چې نوې پالان چینګار کوی نو دا شان هغه کرسئ د الله ﷻ د لوئې او عظمت د وجې نه چینګیږی.(۵) داحدیث په ډیرو کتابونو کښې په ډیرو

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی ( وجوه یومئذ ناظرة...) ۷٤٤، صحیح مسلم: ۱۹۳)۔

(۲) داروایت مرفوعا اوموقوفا دواړو طریقو سره ضعیف دې،سفیان ثوری مدلس دې۔

(۳) موضوع روایت دې،عبدالرحمان بن زید بن اسلم خپل پلار نه موضوع روایتونه بیانوی اوسند ئې هم منقطع دې۔

(۴) داروایت د قاسم بن محمد الثقفی په وجه ضعیف دې۔

(۵) السنة لابن ابی عاصم : ۵۷٤)۔

سندونو سره روایت کړې شوې دې خو ولې چې اوکتلې شی نو د بعضې حدیث په سند کښې بعضې راوی غیر مشهوردې.بل خوا چې اوکتلې شی نو په بعضو کښې ارسال دې یا بعضې موقوف دی او بعضې غریب دی او په بعضو کښې حذف دې او د دې ټولو نه زیات غریب د جبیر ﷜ حدیث دې چې په ابوداود کښې روایت کړې شوې دې.(۱) او هغه روایتونه هم دی چې په هغې کښې د قیامت په ورځ د کرسۍ د فیصلو د پاره ایښودل مروی دی.ښکاره خبره داده چې په دې آیت کښې دا ذکر نشته.والله اعلم.

**د کرسۍ په حقله د علم هیئت د علماء خیالات او اقوال:-** مسلمانانو کښې هیت دان متکلمین وانی چې کرسۍ اتم آسمان دې.او هغې ته فلك ثوابت وانی.چې په هغې باندې نهم آسمان بل دې اوهغې ته فلك ایثر وانی او اطلس هم.

**د متکلمینو د قول تردید:-** لیکن نورو خلقو د دې تردید کړې دې.حسن بصری رحمة الله علیه فرمانی چې کرسۍ هم عرش دې.لیکن صحیح خبره داده چې کرسۍ بیل مخلوق دې اوعرش بیل .او هغه(عرش) د دې(کرسۍ) نه ډیر غټ دې.لکه څنګه چې په احادیثو کښې راغلې دی.علامه ابن جریر﷫ خو دې باره کښې د عمر فاروق ﷜ نه نقل کړې شوی روایت باندې منګولې لګولې دی،خو ولې زما په خیال ددې په صحت کښې کلام شته دې.والله اعلم.

**د زمکې او اسمانونو حفاظت کونکې الله تعالی دې:-** بیافرمانی چې الله ﷻ باندې ددې حفاظت بوج اوګران نۀ دې بلکه آسان دې.هغه د ټولو مخلوقاتو په اعمالو باندې خبر دی،په ټولوځیزونوباندې نظر ساتونکې دې،هیڅ یو ځیز د هغۀ نه پټ نۀ دې،ټول مخلوقات د هغۀ مخکښې سپک، ذلیل، پست، محتاج او فقیر دی.هغه غنی او حمید دې.چې څه کول غواړې نو هغه کوی هیڅوك په هغۀ پاك ذات باندې حاکم نشته دې.د هغه پاك ذات نه تپوس کونکې هیڅوك نشته.په هر ځیز باندې هغه غالب دې.د هر ځیز حافظ او مالك دې او هغه پاك ذات اوچت او لونې دې.د هغۀ نه سوا د عبادت لائق بل څوك نشته .اونۀ دهغه نه سواځوك زیات خبرلرونکې شته اونۀ د هغۀ نه علاوه څوك پالونکې شته.هغۀ د فخراودلونې خاوند دې.هم دا شان فرمانی چې﴿ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ﴾ هغۀ ډیر اوچت دې اودلونې اود عظمت خاوند دې،دا آیتونه او ددې پشان نور آیتونه او صحیح احادیث دالله ﷻ باره کښې چې نازل شوی دی،په هغې ټولوایمان راوړل بغیر د څه کیفیت معلومولو نه او بغیر د مشابه کولو نه.چې په کومو الفاظو سره هغه تشبیه وارد شوې وی په هغې ضروری دی.او هم دا طریقه زمونږ د سلفو﷭ وه.

لَآ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ ۙ قَدْ تَّبَيَّنَ
نشته دې زور|په دین کښې|په تحقیق سره ښکاره شوی ده
|په دین کښې هیڅ قسم زورزیاتې نشته|ښکاره شوی دی
الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَيُؤْمِنْ بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ
نیغه لار |دګمراهۍ نه| پس هغه چاچې| انکار اوکړو| د طالوت نه |اوایمان ئې راوړو| په الله | نو وې نیوله
سمې خبرې د غلطونه | نوڅوك چې دطاغوت نه منکر شي | اوپه الله ایمان راوړی |هغه لاسونه واچول
بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ۚ لَا انْفِصَامَ لَهَا ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝
کړۍ مضبوطه |چې نشته ماتیدل هغې لره | اوالله |اوریدونکې |اوپوهه دې
مضبوطې کړۍ ته |چې هیڅ کله دهغې پریکیدل نشته |اوالله پاك هرڅۀ آوری او په هر څه پوهه دې

[1]) ابوداود کتاب السنة باب فی الجهیمة : ۴۷۲۶)).

**اسلام قبلولو د پاره چا باندې جبر مه کوئ:-** دلته دا بیان کیږي چې هیڅوك اسلام کښې جبر سره مه داخلوئ.د اسلام حقانیت واضح او روښانه شوې دې.د دې دلیلونه او براهین بیان شوی دی.بیا چا باندې د ظلم اوجبرکولو څه ضرورت دې؟چې چاته الله ﷻ هدایت ورکوی،چې د چا سینه فراخه او روښانه اوسترګې بینا وی نو هغه به پخپله د دې شیدا او مجنون شی.روند زړهٔ لرونکی،د کڼو غوږنو خاوند.او د پټو سترګو خاوند به ددې نه لرې وی.بیا که دوی په زوره په اسلام کښې داخل هم کړې شی نو ددې څه فائده؟په هیچا باندې په دې سلسله کښې ظلم مهٔ کوئ چې هغه دې اسلام قبول کړی.

**د دې ایت شان نزول:-** ددې آیت شان نزول دادې چې د مکې د مشرکو ښځو به کله اولاد نهٔ کیدل نو هغوئ به نذر منلو که زمونږ اولاد اوشی نو مونږ به هغه یهودی کوو او یهودیانو ته به نې ورکوو.دا شان د هغوئ ډیر بچی یهودیانو سره وو.کله چې دا خلق مسلمانان شو او د الله ﷻ د دین مددګار جوړ شو نو دیهودیانو سره د دوی جنګ راغلو.او آخر ده هغوئ د داخلی سازشونو او دهوکو نه د خلاصی موندلودپاره نبی اکرم ﷺ داحکم جاری کړو چې ددې بنی نضیر یهود دملک نه اوشړئ.په هغه وخت کښې د انصارو بچی هغوئ سره وو هغه بچې نې د هغوئ نه اوغوښتل چې د خپل اثر لاندې نې راولی اومسلمان نې کړی،نو په دې باندې دا آیت نازل شو چې په چا باندې په اسلام کښې د داخلولو د پاره زور زیاتی مهٔ کوئ.(۱)

**د شان نزول باره کښې دویم روایت:-** یوروایت کښې دا هم دی چې د انصارو قبیله بنو سالم بن عوف یو حصینی ﷺ نومې سړې وو.او د هغه دوه خامن وو چې نصرانیان وو.او دا سړې په خپله مسلمان وو.دهٔ یوځل د نبی اکرم ﷺ خدمت کښې عرض اوکړو ماته اجازت راکړئ چې زهٔ دا دواړه خامن مسلمانان کړم خکه چې هغوئ خو د عیسائیت نه نهٔ اوړی.نو په دې باندې دا آیت نازل شو.او منع اوکړې شوه،او روایت کښې دومره زیاتوالې هم دې چې دنصرانیانو یو قافلې دشام ملك نه دتجارت دپاره اوسکې (کشمش) راوړی وو او د هغوئ په لاس دا دوه هلکان نصرانیان شوی وو.د دوی پلار نبی اکرم ﷺ ته د دې ذکر اوکړو او وې ونیل که تاسو اجازت راکوئ چې زهٔ هغوئ ته څه تکلیف ورکړم چې اسلام قبول کړی.او په زوره سره نې مسلمانان کړم.ګنی نو بیا به تاسو له هغوئ پسې خپل سړی لیږل پکار وی.نو په دې باندې دا آیت نازل شو.

**د عمرﷺ خپل غلام سره عمل:-** دعمرفاروق ﷺ غلام اسبق نصرانی وو،دوی چې به کله دهٔ ته د اسلام قبلولو اوونیل نو هغهٔ به انکار کولو.نو دوی به ورته اوونیل چې څه خیر دې ستا خوښه چې اسلام نهٔ راوړې خکه چې اسلام د ددین په معامله کښې د زور زیاتئ نه منع کړې ده.

**د عامو علماؤ خیال:-** دعلماء کرامو د یو لونې ډلې دا خیال دې چې دا آیت د هغه اهل کتابو حق کښې نازل شوې وو چې کوم د انجیل او تورات منسوخ کیدو نه مخکښې عیسایان وو او په جزیه ورکولو رضامند شوې وو.

**دا ایت منسوخ دې:-** بعضې نور وانی چې دا آیت د قتال آیت منسوخ کړې دې.ټولو انسانانو ته ددې پاك دین دعوت ورکول ضروری دی.که څوك انکار اوکړی اودمسلمانانو ماتحتی نهٔ اختیاروی اونهٔ جزیه ورکول قبلوی نوبیشکه مسلمانان به هغوئ سره جهاد کوی.لکه بل خانې ارشاد دې چې ﴿سَتُدْعَوْنَ إِلَىٰ قَوْمٍ﴾ نزدې ده چې تاسو به دې قوم طرفته راوبللې شئ چې کوم ډیر جنګیالیان دی یا تاسو به هغوئ سره جنګ کوئ یا به هغوئ اسلام قبلوی.او بل مقام باندې دی چې انې نبیﷺ! دې کافرانو او منافقانو سره جهاد اوکړه اوپه دوی سختی اوکړه.یو بل خانې کښې ارشاد دې چې انې ایماندارواخپل چاپیر چل

(۱) الطبری : ۵۸۱۳، ابوداود : کتاب الجهاد باب ف الاسیر یکره علی الاسلام : ۲٦٨٢، وسنده صحیح)-

کښې کفارو سره جهاداوکړئ چې تاسو کښې هغوئ سختی بیامومی اویقین ساتئ چې الله ﷻ متقیانو سره دې.
صحیح حدیث کښې دی چې ستا رب ته په هغه خلقو باندې تعجب دې چې هغوئ په زنځیرونو کښې تړلې جنت طرفته راوستلې شي(۱)یعنی هغه کفار چې د میدان جنګ نه ګرفتارکړې شي او قیدیان جوړکړې شي اوپه زولنو او زنځیرونو کښې دخوا ته راوستلې شي،بیا هغوئ اسلام قبول کړې او د هغوئ ظاهر اوباطن ښه شي.او جنت ته د تلو لائق شي.مسنداحمد کښې حدیث دې چې یو سړی ته نبی اکرم ﷺ اوونیل چې مسلمان شه،هغه اوونیل چې حضرت!زما زړهٔ نهٔ غواړی چې مسلمان شم.نبی اکرم ﷺ ورته اوفرمائیل اګر چې ستا زړهٔ نهٔ غواړی.(۲)دا حدیث ثلاثی دې.یعنی نبی اکرم ﷺ پورې دې کښې درې راویان دی.لیکن د دې نه دا نهٔ دی ګڼړل پکارچې نبی اکرم ﷺ هغه مجبور کړو،مطلب دا چې تهٔ کلمه اووایه،بیا یو ورځ به راشی چې الله ﷻ به ستا زړهٔ روښانه کړی او تهٔ به د اسلام عاشق شې.اوتاته به حسن نیت او اخلاص عمل نصیب شي.چې کوم سړې بتان،اوثان اوباطل معبودان پریږدی اوشیطان کلام قبلول پریږدی،د الله ﷻ د توحید اقرار اوکړی اوعامل جوړ شي،نو هغه په نیغه او صحیح لار باندې شو.

**قوله تعالی:-فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ**

**د طاغوت مفهوم:-** عمرفاروق ﷛ فرمائی چې دجبت نه مراد جادو دې او د ﴿طَاغُوْتِ﴾ نه مراد شیطان دې.د ځوان مردئ او بزدلئ مثال د اوښ د کجاوې د دوو اندو دې،هغه ځوان مردی او بزدلی کومه چې په خلقو کښې موندلې شي،یو غیرتی او بهادر سړې د یو ناپیژندګلو سړی دپاره خپل خان وژنی.خو یو بزدل او ویریدونکې سړې دخپلې مورپه خاطر هم یو قدم مخکښې نهٔ خی.د انسان حقیقی عزت د دهٔ دین دې.د انسان ربښتونې نسب د دهٔ ښهٔ اخلاق دی.که هغه فارسیبان وی اوکه نبطی.

**د حضرت عمر ﷛ د طاغوت د معنې فائدې:-** عمرفاروق ﷛ د طاغوت نه د شیطان مراد اخستل ډیر بهتر دی.خکه چې داپه هر هغه غلط او بدکار لره ورشامليږی چې د جاهلیت په زمانه کښې وو.د بت عبادت کول،هغوئ نه حاجتونه غوښتل،او دسختئ په وخت کښې د هغوی نه امداد طلب کول وغیره.

**قوله تعالی:-بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى د**

**دعروه وثقی،نه څه مراد دی؟:-** بیا فرمائی چې هغه سړی مضبوطه کړئ اونیوله یعنی هغه ددین اعلی اوقوی سبب اونیولو چې نهٔ خو دا ماتیږی او نهٔ شلیږی او ډیره مضبوطه او مستحکم او قوی وی.عروه وثقی نه مراد ایمان،اسلام،توحید د الله ﷻ،قرآن پاك اود الله ﷻ د لارې محبت دې.او د هغه پاك ذات دپاره دښمنی کول دی.دا کړئ به هیڅکله نهٔ ماتیږی یعنی ددهٔ جنت ته رسیدلو پورې.اوبل ځائې کښې فرمائی چې ﴿إِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِأَنْفُسِهِمْ﴾ الله ﷻ د یو قوم حالت نهٔ بدلوی تر څو چې هغه قوم خپل حالت په پخپله بدل نهٔ کړی.

**د عروة الوثقی د مفهوم په باره کښې یو حدیث مبارک:-** د مسند احمد یو حدیث کښې دی چې قیس بن عباده ﷛ فرمائی چې زهٔ په مسجد نبوی کښې ووم یو سړې راغلو او چې هغه ډیر زړهٔ سواندې وو.دوه وارهٔ رکعته مونځ ئې اداکړو،خلقو د ده په کتلو اوونیل دې جنتی دې.هرکله چې بهر راووتلو نو زهٔ هم هغه پسې شوم او خبرې مې ورسره کولې.هر کله چې هغه متوجه شو نو ما ورته اوونیل چې کله تاسو تشریف راوړو نو خلقو ستاسو متعلق داسې ونیلی وو.وې ونیل سبحان الله! هیچا ته هغه ویناکول نهٔ دی پکار چې د هغې علم هغهٔ ته نه وی.البته داسې خبره شته دې چې ماد نبی اکرم ﷺ په ژوند کښې

(۱) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الاسازی فی السلاسل: ۳۰۱۰-
(۲) احمد: ۱۰۹/۳)-

يو خوب ليدلې وو چې په يو شين باغ كښې يم،د دې په مينځ كښې د اوسپنې ستن ده.چې زمكې نه آسمان پورې ختلې ده.ددې په سر باندې يو كړه ده.ماته اوونيلې شو چې دې باندې اوخيژه.ما ورته اوونيل چې زۀ خو دې باندې نۀ شم ختلې.نو يو سړى زۀ اونيولم او زۀ په آسانۍ سره اوختلم.او هغه كړه مې اونيوله.هغه اوونيل چې ګورې دامضبوطه اونيسه.بس هم په دې حالت كښې زما سترګې اوغړيدې چې هغه كړه زما لاس كښې وه.ما نبى اكرم ﷺ ته دا خوب بيان كړو نو نبى اكرم ﷺ اوفرمائيل باغ اسلام دې.او ستن د دين ستن ده.او كړه عروه الوثقى ده،نو تۀ به ترمرګه پورې په اسلام قائم يې.دا سړې عبدالله بن سلام ﷠ دې.([1])دا حديث بخارى اومسلم دواړوكښې موجود دې.دمسند په دې حديث كښې دى چې په دغه وخت كښې دوى بوډا شوى وو.اوپه همسا مسجد نبوى ته راغلى وو.او يو ستنې سره ئې مونځ كړې وو.او د سوال په جواب كښې ئې فرمائيلى وو چې جنت د الله ﷻ څيز دې چې چا لره اوغواړى نو هغه دې ته داخلوى.د خوب ذكر كښې فرمائى چې يو سړې راغلو او زۀ ئې روان كړم اويو اوږد اوصفا ميدان ته ئې اورسولم.ما اوغوښتل چې ددې ګس طرفته لاړ شم.خو هغۀ راته اوونيل چې داسې نه.زۀ ښى طرفته روان شوم.نو په دې كښې يو خويندار غر مې اوليدو،هغه زما لاس اونيولو او پورته ئې اوخيژولم.او زۀ د هغې سر ته اوختلم.هلته ما يو اوچته ستن اوكتله چې د اوسپنې وه او د هغې يو طرف ته د سرو زرو كړه وو.زۀ هغه دې ستنې ته اوخيژولم تر دې چې ما هغه كړه لاس كښې اونيوله.هغه راته اوونيل چې ښۀ مضبوطه دې اونيوله؟ما اوونيل چې آو.هغه زور سره ستن په خپله پښه اووهله او هغه اووتله او كړه زما لاس كښې پاتې شوه.هركله چې ما دا نبى اكرم ﷺ ته بيان كړل نو نبى اكرم ﷺ اوفرمائيل چې تا ښۀ بهتر خوب ليدلې دې.هغه ميدان دحشر ميدان دې.ګس طرفته لارد جهنم لار ده.تۀ د هغه خلقو نه نۀ ئې.د ښى طرفته لار د جنتيانو لار ده.خونيدونكې غر د شهيدانو منزل وو.كړه د اسلام كړه ده.تر مرګه پورې په دې باندې مضبوط اوسه.دې نه پس عبدالله ﷠ اوفرمائيل چې زما دا طمع ده چې الله ﷻ به ما جنت ته داخل كړي.

اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ

| الله دوست دې | دهغه كسانو

|الله ملګرې دې

اٰمَنُوْا يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ؕ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا

چې ايمان ئې راوړې دې| هغه رااوباسى هغوئ| دتيرونه | رنړاته | اوهغه كسان |چې دكفر په لار راوان شوى دى

دمؤمنانوچې د(كفرد) توروتيرو نه ئې (دايمان) رنړا طرفته راوباسى| اودكافرو

اَوْلِيٰٓـُٔهُمُ الطَّاغُوْتُ ۙ يُخْرِجُوْنَهُمْ مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ ؕ اُولٰٓئِكَ

دوستان دهغوئ|طاغوتيان دى | چې رااوباسى هغوئ| درنړا نه | تياروته | داكسان|

دوستان هغه شيطانان دى چې د(ايمان) رنړا نه ئې د(كفر)تيرو ته راوباسى|.................. هم دغه

اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝

صاحبان د اور دى | هغوئ به په هغې كښې | هميشه وى |

دوزخيان دى| اوټول عمر به په دوزخ كښې پراته وى

[1] حمد: ٤٥٢/٥، صحيح بخارى كتاب مناقب الانصار باب مناقب عبدالله بن سلام : ٣٨١٣، صحيح مسلم: ٢٤٨٤)-

**قوله تعالى:- اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا**

**دمومنانو ولي الله ﷻ او د كفارو ولي شيطان دي:-** الله ﷻ خبر وركوي چي څوك د هغهٔ پاك ذات د رضا طلبګار وي نو الله ﷻ هغهٔ ته لار ښائي.او هغه د كفر او شرك د شك او شبهې دتيارو نه راوباسي او هغه ته دحق رڼا نصيب كوي.د كفارو ولي شيطان دي.اوهغوئ د جهالت او ضلالت تيارو ته راكاږي او د ايمان او توحيد نه ئې منع كوي.او داشان ئې د حق د رڼا نه لرې كړې وي د ناحق په تيارو كښې ئې داخلوي.هم دا كافران دي او هميشه به دوي په جهنم كښې پراتهٔ وي.(۱)

**قوله تعالى:- يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ**

**حق يو دې او د باطلو اير قسمونه دي:-** لفظ نور لره واحد راوړل او د ظلمات جمع راوړل د دې وجې دى چې د حق او ايمان او رښتونې لاره يو ده.او د كفر ډير قسمونه دي.د كفر ډير شاخونه دي.او هغه ټول په ټوله باطل او ناحق دي.لكه بل ځائې كښې دي چې ﴿وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيْمًا قَدْ فَصَّلْنَا﴾ زما نيغه لار هم دا ده تاسو د دې تابعدارى اوكړئ او نورو لارو باندې مهٔ ځئ ګني ورك به شئ،دا وصيت ستاسو د بچ كيدو دپاره اوكړې شو او بل ځائې كښې دي چې ﴿وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ﴾ نورهم دا قسمه ډير آيتونه دي چې هغې نه ثابتيږي چې حق يو دې او باطل ډير دي.ايوب بن خالد رحمه الله فرمائي چې خواهش پرست يا د فتنې خاوندان به راوچت كړې شي چې څوك ايمان غواړي نو د هغهٔ مخ به روښانه اوصفا او نوراني وي او چې څوك كفر غواړي نو هغهٔ به تور او تيارو والا وي.بيادوي د مذكور آيت تلاوت اوكړو.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْ
| آيا نهٔ دي كړي غورتا | په حال دهغه سړي
| (اې پيغمبره!)ته دهغې سړي په قيصه غور نه كوې

حَآجَّ اِبْرٰهٖمَ فِيْ رَبِّهٖٓ اَنْ اٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ
چې جګړه ئې كړې وه | دابراهيم سره | په باره درب دهغه كښې|په دې وجه چې وركړې وه الله هغه ته| حكومت
چې ابراهيم عليه السلام سره ئې دالله پحقله بحث كړې وو|ځكه چې الله ﷻ هغه سړي ته بادشاهي وركړې وه

اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّيَ الَّذِيْ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ قَالَ اَنَا
كله چې اوونيل| ابراهيم عليه السلام | چې رب زما هغه دي|چې ژوندي كول كوي | او مړه كول كوي | اوونيل هغه| زهٔ
هركله چې ابراهيم عليه السلام ورته اوونيل |چې زما رب ژوندي كول او مړهٔ كول كوي |نوهغه اوونيل چې زه هم

اُحْيٖ وَاُمِيْتُ قَالَ اِبْرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ يَاْتِيْ بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ
ژوندي كول كوم | او مړه كول كوم|اوونيل ابراهيم عليه السلام | چې بيشكه | الله | راخيژوي | نمر | دمشرق نه |
ژوندي كول او مړهٔ كول كوم | نوابراهيم عليه السلام ورته اوونيل چې الله داسې دي چې نمردمشرق نه راخيژوي

فَاْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِيْ كَفَرَ
نو رااوخيژوه ته هغه| د مغرب نه | نو حيران پاتې شو| هغه كس|چې دحق نه ئې انكاركړې وو |
نو(ښه ده ) ته ئې دمغرب نه راوخيژوه| .........نو(په دې خبره)هغه كافر حيران پاتې شو

---

(۱) احمد: ۳/۵، صحيح مسلم: كتاب فضائل الصحابة باب من فضائل عبدالله بن سلام : ۲۴۸۴)-

| وَاللّٰهُ | لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ | الظّٰلِمِيْنَ ⓷ |
|---|---|---|---|
| او الله | نهٔ ښائي لار نيغه | قوم | ظالم ته |

الله پاک د ظالمانو ډله په سمه لار نه بوزي

قوله تعالى:- اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْ

**د ابراهيم عليه السلام اونمرود ترمينځه مناظره:-** دهغه بادشاه نوم نمرود بن كنعان بن كوس بن سام بن نوح وو. دهٔ بادشاهت بابل كښې وو.دهٔ په نسب نامه كښې څه اختلاف هم دې.مجاهد رحمة الله عليه فرمائي چې هغه خلق څلور دی چې كومو مغرب نه تر مشرقه پورې حكومت كړې وو.چې په هغوئ كښې دوه مسلمانان او دوه كافر وو.دوه مسلمانانو كښې يو سليمان عليه السلام بن داود عليه السلام او بل ذوالقرنين او دوو كافرو كښې يو نمرود او دويم بخت نصر وو.(۱) د ﷻ د طرفه فرمان دې چې اې نبي ﷺ !تا د زړهٔ نه هغه كس ته اونهٔ كتل چا چې د ابراهيم عليه السلام سره د الله تعالى د وجود په حقله بحث و مباحثه اوكړه.دې سړی پخپله د الله كيدو دعوى كوله لكه څنګه چې دهٔ نه پس فرعون هم په خپل قوم كښې د خدائي دعوى كړې وه چې زهٔ خان نه سوا هيڅوك ستاسو الله نهٔ منم.د يو لوئي مودې نه د دې سړي دا بادشاهت راروان وو.د دې وجې د دهٔ په مازغو كښې كبر او انا وه.سركشئ او كبر او فخر او غرور دده په طبيعت كښې اثر كړې وو.بعضې خلق وائي چې دهٔ څلور سوه كاله حكومت كړې وو.

قوله تعالى:- اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّيَ الَّذِيْ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ

**د ابراهيم عليه السلام نه د الله تعالى په وجود د دليل غوښتنه:-** ابراهيم عليه السلام نه چې كله دهٔ د الله ﷻ د وجود دليل اوغوښتلونو ابراهيم عليه السلام ورته د نيش نه د شته كيدو اودشته نه د نيشت كيدو دليل وركړو.او دا يو ښكلې اودنمر پشان روښانه دليل وو دا موجودات مخكښې نهٔ وو بيا پيدا شو او بيا به ختميږی او بيا به پيداكيږی دا ټول دليلونه دی د الله ﷻ د موجود كيدو.

قوله تعالى:- قَالَ اَنَا اُحْيٖ وَاُمِيْتُ

نمرود جواب كښې اووئيل چې دا خو زهٔ هم كوم.دې وينا سره دهٔ دوه سړی راوغوښتل چې واجب القتل وو يو ئې قتل كړو او بل ئې پريښودو.(۲)اصل كښې دا جواب او دا دعوى څومره سپكه ده او خرابه ده،ددې د بيان ضرورت نشته.

**د نمردو د جواب وضاحت:-** ابراهيم عليه السلام صفاتو د الله كښې يو صفت،پيدا كول او بيا نيش كيدل بيان كړی وو.او دا خو نهٔ دهٔ(نمرود) پيدا كړی دی اونهٔ پخپل مرګ اوحيات باندې قدرت لری.ليكن د جاهلانو د راپارولو د پاره،اوپه هغوی باندې خپل علميت ثابتولو د پاره باوجود د خپلې غلطئ نه او سره د علم ددهٔ نه په دې خبره باندې چې دا د بحث او مباحثې د اصولو نه تيښته ده دهٔ بس صرف يوه خبره جوړه كړه.

قوله تعالى:- قَالَ اِبْرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ يَاْتِيْ بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَاْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ،

**د ابراهيم عليه السلام يو بل دليل او د نمرود عاجزی:-** ابراهيم عليه السلام هم په هغهٔ پوهه شو.او ابراهيم عليه السلام هغه كم عقل په مخكښې يو داسې دليل پيش كړو چې دصورت لحاظ سره هغه ددې مشابهت اونكړی شی.نو وې فرمائيل چې هركله چې ته دپيدائش او مرګ اختيار لرې نو په مخلوق باندې ستا تصرف پكار دې.زما الله ﷻ خودا تصرف لری چې نمر ته ئې حكم كړې دې چې هغه دمشرق طرفنه راوباسی نوهغه راوخی. اوس تهٔ حكم وركړه چې د مغرب نه راوخی.

(۱) لطبری: ٥/٤٣٣)-
(۲) الطبری:٤٣٣)-

**قوله تعالى:- فَبُهِتَ الَّذِي كَفَرَ**
هغه ددې څه مات ګوډ جواب هم ورنکړو.او عاجزه شو او دخپلې عاجزئ اظهار ئې اوکړو.او د الله ﷻ حجت په دې باندې پوره شو.ليکن هدايت ورته نصيب شوې نۀ وو نو د دين په لار رانغلو،داسې خراب خلق الله ﷻ په څه دليل باندې نۀ پوهوی او هغوئ هروخت دحق په مقابله کښې ولاړوی.په هغوئ باندې دالله ﷻ غضب او غصه او ناراضګی وی.اودهغوئ دپاره پدې جهخان کښې هم سخت عذاب وی.
**د بعضې حکماوُ خيال:-** بعضو منطقيانو ونيلي دي چې خليل الله ﷺ دلته د يو واضح دليل نه پس بل دليل ددې نه هم زيات واضح پيش کړو.ليکن حقيقت کښې داسې نۀ ده بلکه رومبی دليل د دونم مقدمه وه اودې دواړو سره د نمرود د دعوې باطليدل واضح شو.اصل دليل هم پيدائش اومرګ دې.اګر چې د دې دعوی دې ناپوهه هم اوکړه نو لازم وو چې څوك په جوړولو او ورانولو باندې قادر وی هغه دې د جوړولو او ورانولو خالق هم وی دا نه چې صرف په جوړولو او ورانولو دې قادر وی،او دا چې د هغۀ ملکيت ټول په ټوله په ښۀ طريقې سره د هغۀ په قبضه کښې وی.او څنګه چې د مرګ او ژوند احکام جاري کوی داشان نور احکام دې هم جاري کوی.نو بيا به څه وجه وی چې نمر ددۀ تابعداری اونکړی څکه چې هغه هم يومخلوق دې او د دۀ په وينا دې د مشرق په ځاني د مغرب نه راونۀ ځی؟.نو ابراهيم ﷺ په دې باندې ښکاره غلبه حاصله کړه او هغه ئې بالکل لاجواب کړو .فالحمدلله.
**دا مناظره کله شوې وه؟:-** سدی رحمه الله فرمانی چې دا مناظره د ابراهيم ﷺ د اور د راوتلو نه پس وه.د دې نه مخکې د ابراهيم ﷺ دې ظالم بادشاه سره ملاقات نۀ ووشوې.
**دابراهيم ﷺ معجزه:-** د زيدبن اسلم رحمه الله قول دې چې قحط وو،خلق به نمرود له تلل او غله به ئې ترې نه راوړه.خليل الله ﷺ هم لاړو او هلته دا مناظره اوشوه.هغه بدبخت ابراهيم ﷺ ته غله هم ورنکړه.او ابراهيم ﷺ خالی لاسونه واپس راغلو.کور ته چې نزدې شو نو ابراهيم ﷺ دواړه بورئ د شګې نه ډکې کړې چې کور والو ته پته اولګی چې کور ته ئې څه راوړې دی.راتلو سره ئې بورئ کيخودې.د دوی بی بی ساره پاسيده او بورئ ئې پرانيستې نو په هغې کښې ډيره ښکلې غله وه.روټئ ئې پخه کړه او د ابراهيم ﷺ هم سترګې اوغړيدلې نو وې ونيل چې روټئ تياره ده.تپوس ئې اوکړو چې غله د چرته نه راغله؟ورته اوونيلې شوچې دهغه بورو نه چې کومې تاسو راوړې وې دهغې نه موغله راوويستله. ابراهيم ﷺ پوهه شو چې دا د الله ﷻ د طرفنه د هغۀ لوئې برکت او رحمت دې.
**نمرود باندې د الله ﷻ عذاب:-** الله ﷻ دې نافرمان بادشاه ته يو فرښته اوليږله او هغه فرښتې ورته د توحيد دعوت ورکړو ليکن دۀ قبول نۀ کړو.دوباره ئې دعوت ورکړو ليکن انکار ئې اوکړو.په دريم خل ئې الله ﷻ طرفته راوبللو نو بيا هم دۀ انکار اوکړو.د څو څو وارې انکار کولو نه پس فرښتې دۀ ته اوونيل چې ښه ده خپل لښکرتيار کړه زۀ هم خپل لښکر راولم.نمرود يو لوئې لښکر تيار کړو او يو زبردست فوج سره دنمر ختلو نه مخکښې مخکښې ميدان ته راووتلو،بل طرفته الله ﷻ د ماشو دروازه بيرته کړه، غټ غټ ماشي دومره زيات راغلل چې خلقو ته نمر هم نۀ ښکاريدو.دا رباني فوج د نمرود فوج باندې حمله آور شو.اولږ وخت کښې د هغوی وينه څه چې د هغوئ غوښه ئې هم ټوله اوخوړله.او ټول په ټوله هلته هلاك شو.د هډوکو ډهانچې باقي پاتې شوې.په ماشو کښې يو دنمرود پوزه کښې ننوتو او څلورسوه کاله پورې ئې ددۀ دماغ خوړل.هغۀ به داسې عذاب کښې اخته وو چې د هغې نه مرګ په سل درجې بهتر وو.خپل سر به ئې ديوالونو او کاڼو سره وهلو،څټکونو سره به ئې ټکولو،او هم دې عذاب کښې هلاك شو.(اعاذناالله).

| مَرَّ عَلٰى قَرْيَةٍ | اَوْ كَالَّذِيْ |
|---|---|
| چې تيرشوا په يو کلی | يا اوګوره مثال دهغه سړی ته |
| چې په يو ښارباندې تير شو | (يادمثال په طور) دهغه چاقصه واوره |

وَّهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا ۚ قَالَ اَنّٰى يُحْيٖ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعْدَ

او هغه | راپريوتي وو | په چتونو خپلو باند | هغه اوونيل | څنګه به | ژوندي کوی | دا کلي | الله | روستو

چې چتونه ئې پرمخې راپريوتی وو | نوې وې ونيل چې دا ښاربه الله پاک څنګه ژوندي کوی | د داسې

مَوْتِهَا ۚ فَاَمَاتَهُ اللّٰهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهٗ ؕ قَالَ

دمرګ دهغې نه | نومړ کړو هغه لره | الله | سل كاله | بيا نی | ژوندي کړو هغه | ورته اوونيل الله

هلاکت نه پس | نو الله پاک هغه سل کاله مړ کړو | اوبيائې راژوندي کړو | ...............ورته ئې اوونيل

كَمْ لَبِثْتَ ؕ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ؕ قَالَ

څومره وخت تير كړو تا | اوونيل هغه | ما وخت تير كړو | يوه ورځ | يا څه حصه دورځې | اوونيل الله

چې څومره موده دې تيره کړه | هغه اوونيل چې يوه ورځ يا د دې نه وخت به مې تير کړی وی | الله ورته

بَلْ لَّبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ فَانْظُرْ اِلٰى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ ۚ

بلکه تا وخت تير كړو | سل كاله | نراوګوره | خوراك خپل ته | او څکاک خپل ته | چې نۀ دی خراب شوی

اوفرمائيل نه بلکه سل کاله دې تير کړل | اوس دخپل خوراک څکاک سامان ته اوګوره | چې سخا شوی نه دی

وَانْظُرْ اِلٰى حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ اٰيَةً لِّلنَّاسِ وَانْظُرْ اِلَى الْعِظَامِ

اواوګوره | خر خپل ته | اودپاره چې جوړ کړو تا لره | يوه نمونه | دپاره دخلقو | اواوګوره | هډوکو ته |

اوخپل خرته اوګوره (چې څنګه ښاروې شوې دې) | او چې مونږ تا دخلقو دپاره نمونه اوګرځو | اودخر هډوکو ته اوګوره

كَيْفَ نُنْشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوْهَا لَحْمًا ؕ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗ ۙ قَالَ

چې څرنګه را اوچتوو مونږ هغه | بيا | اغوندوو هغې ته | غوښه | نو هر كله چې | ښكاره شو | هغه ته | نو اوونيل هغه

چې څنګه ئې يوځائې کوؤ | اوبيا څنګه ورته غوښه اغوندوو | او چې ټول حقيقت ورته ښکاره شو | نووې ونيل

اَعْلَمُ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝

پوهيږم زۀ | چې الله | په هر څيز باندې | قادر دې

څۀ اوس ډير ښه پوهه شوم چې الله په هر څه قدرت لری

**د قدرت لويه نښه دسلو كالو نه پس دوباره ژوندی كيدل**:پورته چې كومه واقعه دابراهيم ﷺ دبحث تيره شوه ،په هغې باندې ددې عطف دې.

**دا تيريدونكې څوک وو**:- دا تيريدونكې خو يا عزير ﷺ وو([1])لكه څنګه چې مشهور دی او يا ارميا بن حلقيا وو.او دا نوم د خضر ﷺ دې يا خزقيل بن بورا وو يا بنی اسرائيلو كښې يوسړې وو،دا كلې بيت المقدس وو.اوهم دامشهورقول دې.بخت نصر چې كله داكلې وران ويجاړ كړواوددې خانې اوسيدونكی

---

[1]) بن ابي حاتم: ۱۰۰۹/۳، الطبری: ٤٣٩/٥)-

نې قتل کړل او کورونه ئې ورله شاړ کړل.او دا اباد کلې بالکل خوشې شو.نو دې نه پس دابزرګ دې خانې باندې تیر شو،هغوئ اوکتل چې ټول کلې تباه شوې دې نۀ په کښې کورونه شته دې او نۀ په کښې اوسیدونکې شته،

**قوله تعالى:- قَالَ أَنَّىٰ يُحْيِي هَٰذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا**

نو هغه خانې کښې ایسار شو او سوچ کښې پریوتلو چې دا ښکلې ښار به بیا څنګه آباد شي؟

**قوله تعالى:- فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ**

الله ﷻ په هغه باندې مرګ راوستلو دلته دې په دې حالت کښې وو،او بل خوا اویا کاله پس بیا بیت المقدس آباد شو.تښتیدلې بنی اسرائیل هم بیا راغلل او دا ښار ښۀ آباد شو.او په دې کښې بیا هغه د مخکښې په شان خوشحالی او ګنړه شوه.په دې کښې سل کاله پوره شو،دې نه پس الله ﷻ هغه ژوندې کړو.اوډېولو نه مخکښې دده په سترګو کښې روح راغلو.چې پخپله خپل راژوندی کیدل اوګوری. هر کله چې ټول بدن کښې روح واچولې شو

**قوله تعالى:- قَالَ كَمْ لَبِثْتَ**

نو الله ﷻ د فرښتې په ذریعه ترې تپوس اوکړو ته څومره موده مړ وې ؟دده په جواب کښې هغه اووئیل چې لا خو یوه ورځ هم نۀ وه پوره شوې.

**دا جواب ولې ورکړې شو:**-ددې وجه دا وه چې د سحر په وخت کښې دده نه روح وتلې وواو سل کاله پس چې کله ژوندې شو نو دماښام وخت وو.دده خیال راغلو چې دا هم هغه ورځ ده.

**قوله تعالى:- قَالَ بَل لَّبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ فَانظُرْ إِلَىٰ طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ**

نو الله ﷻ اوفرمائیل چې تۀ سل کاله مړ وې.اوس زمونږ قدرت اوګوره ستاتوښه چې کومه تاسره وه هغه شان ده،نۀ خوسخا شوې ده او نه خرابه شوې ده.

**دا توښه څه څیز وو؟:**- داتوښه انګور،انځران او شیره وه.نۀ خوشیرا خرابه شوې وه او نۀ انځران سخا شوی وو اونۀ انګوران سخا شوې وو.بلکه صحیح او خپل اصلی حالت کښې وو.

**قوله تعالى:- وَانظُرْ إِلَىٰ حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِّلنَّاسِ**

اوس ئې اوفرمائیل چې داستا د خر سخا او ایره شوې هډوکی ستا مخې ته پراتۀ دی.دې ته ګوره مونږ ستاوراندې داژوندی کوو.مونږ ستا ذات لره نورو خلقو دپاره یو دلیل جوړوو چې ترقیامته پورې د دوی په زړۀ کښې دایقین وی چې دوباره به ژوندی کیږو.نوددۀ وړاندې هغه هډوکی یوبل سره یو ځائې شواوراپاسیدل.مستدرك حاکم کښې دی چې د نبی اکرم ﷺ قرات﴿ نُنشِزُهَا﴾ زاء سره دی[1] او دا ﴿نُنشِرُهَا﴾ راء سره هم لوستلې شوې دی یعنی ژوندی به ئې کړو.د مجاهد رحمه الله قرات هم دا دې.[1] سدی رحمه الله وائی چې داهډوکی ددوی ګیرچاپیره پراتۀ وو او د ورستیدو په وجه د دې سپین والې پرقیدو،هوا کښې یو ځائې شو او بیا هر یو هډوکې خپل خپل ځائې ته اورسیدواو ددې نه پوره ډهانچه جوړه شوه او په دې باندې غوښه نۀ وه.بیا الله ﷻ دې(ډهانچې )ته غوښه،رګونه،او پټې ورکړې.بیا فرښته ئې اولیږله او هغه فرښتې د دې په پوزه کښې پوك وهل.نودالله ﷻ حکم سره هم هغه وخت کښې هغه ژوندې شو.او آواز ئې اوکړو.([2])

**قوله تعالى:- فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ**

داټولې خبرې عزیر عليه السلام کتلې.او د قدرت ټوله کاریګری د هغۀ د سترګو وړاندې اوشوه.هرکله چې دا

---

[1]) حاکم: ۲/۲۳٤، اسماعيل حاکم دا صحیح ګرزولې دې خو ذهبی اسماعیل بن قیس لره ضعیف ګرزولې دې)-

[2]) الطبری: ٥/٤٧٦)-

[3]) الطبری: ٥/٤٦٨)-

تول هر څه ني اوکتل نو وې وئیل چې ددې خبرې علم خو ما ته وو چې الله ﷻ په هر څیز باندې قادر دې.خو ولې اوس ما په خپلو سترګو سره اوکتل.نو زۀ په خپله زمانه کښې دتبولو نه زیات علم و یقین لرونکی یم.بعضو خلقو﴿ اعلم ﴾(صیغه د متکلم)لره﴿ اعلم ﴾(یعنی صیغه د امر) هم لوستلې دې یعنی الله ﷻ اوفرمائیل چې پوهه شه چې الله ﷻ په هر څیزقادر دې.

| وَاِذْ | قَالَ اِبْرٰهٖمُ | رَبِّ | اَرِنِيْ |
|---|---|---|---|
| او هر کله چې | اووئیل ابراهیم ﷺ | اې ربه زما | اوښایه ماته |

| او هغه واقعه یاده کړه چې ابراهیم اووئیل اني خدایه ماته اوښایه |
|---|

| كَيْفَ | تُحْيِ الْمَوْتٰى | قَالَ | اَوَلَمْ تُؤْمِنْ | قَالَ | بَلٰى | وَلٰكِنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې څنګه | ته ژوندی کوې مړی | اووئیل الله | آیا ته ایمان نۀ لرې | اووئیل (ابراهیم | ولې نه | لیکن |

| چې ته مړی څنګه ژوندی کوې | الله پاک ورته اوفرمائیل چې ولې ته یقین نه کوې | هغه ابراهیم اووئیل یقین لرم خو |
|---|---|---|

| لِيَطْمَئِنَّ | قَلْبِيْ | قَالَ | فَخُذْ اَرْبَعَةً | مِّنَ الطَّيْرِ | فَصُرْهُنَّ اِلَيْكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې مطمئن شي | ازړه زما | اووئیل الله | نواونیسه | څلور | دمرغانو نه | اونزدې کړه هغه | خان ته |

| دزړه اطمینان غواړم | الله ورته اووئیل (ښه ده)، نوڅلورمارغان راونیسه | اوخان سره نې اموخته کړه |
|---|---|---|

| ثُمَّ اجْعَلْ | عَلٰى كُلِّ جَبَلٍ | مِّنْهُنَّ | جُزْءًا | ثُمَّ | ادْعُهُنَّ | يَاْتِيْنَكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیا کیږده | په هر یو غر باند | دهغوئ نه | یوه یوه حصه | بیا | آواز اوکړه هغوئ ته | رابه شي تاته |

| بیا دهغوئ نه یوه یوه ټوټه په یو یو غرباندې کیږده | بیا ني خان ته راوبله | نو رابه شي تاته |
|---|---|---|

| سَعْيًا | وَاعْلَمْ | اَنَّ اللّٰهَ | عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝ |
|---|---|---|---|
| په منډه | او پوهه شه | چې الله | غالب او حکمت والا دې |

| په منډه | اوپوهه شه چې الله داختیار اوحکمت خاوند دې |
|---|---|

**قوله تعالى:- وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اَرِنِيْ كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتٰى**

**ابراهیم ﷺ او دحصې حصې شوئ څلورو مارغانو ژوندی کیدل:-** دابراهیم ﷺ ددې سوال ډیرې وجې وې. ❶یوداچې دا هم دلیل ابراهیم ﷺ د نمرود مردود مخکښې پیش کړې وو نو ابراهیم ﷺ اوغوښتل چې د علم الیقین سره عین الیقین هم حاصل کړي.هسې خو زۀ په دې پوهیږم خو چې په سترګو نې هم اوګورم.صحیح بخاری کښې د دې آیت په موقع باندې یو بل حدیث دې چې په هغې کښې دی چې مونږ د ابراهیم ﷺ په نسبت زیات د شک حقدار یو،هرکله چې هغوئ اووئیل چې﴿رَبِّ اَرِنِيْ﴾(¹) نو دې نه دې یو جاهل دا نۀ ګڼړی چې ابراهیم خلیل الله ﷺ ته د الله ﷻ په دې صفت کښې شك وو.ددې شوی حدیث ډیر جوابونه دی.چې په هغې کښې یو دادې.( کیدې شي چې دا وی چې باوجود د دې چې مونږ د ابراهیم خلیل الله ﷺ نه په ایمان کښې کمزوری یو او مونږ د الله تعالی په دې صفت کښې شک نۀ کوو نو خلیل الله ﷺ به ولې شك کوی(مترجم).

**قوله تعالى:- قَالَ فَخُذْ اَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ اِلَيْكَ**

رب العالمین خالق کل فرمانی چې څلور مارغان واخله.مفسرینو نه دې باره کښې ډیر اقوال منقول دی

(¹) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة البقرة باب ( واذا قال ابراهیم رب....) : ۴۵۳۷، صحیح مسلم: ۱۵۱)-

چې کوم مارغان ابراهیم ﷺ اخستي وو.لیکن ظاهر دادی چې ددې علم مونږ ته څه فائده نه شي راکولې او د دې نه پیژندل مونږ ته څه نقصان نه رسوي.څوك وائي چې هغه طاوس او کونتره وه.څوك وائي چې هغه بطخه اودسیمرغ بچي اوچرګ او تاوس وو.څوك وائي چې کونتره چرګ اوکارغه وو. بیادغه مارغان ټکړې ټکړې کړه.

**د الله تعالی په قدرت سره د مارغانو راژوندي کیدل:** - ابن عباس ﷺ هم دا فرمائي او یوروایت کښې دي چې دا خان سره کیده.هرکله چې تاسره اموخته شي نو بیا ئې حلال کړه،بیا دا ټکړې ټکړې بیلې بیلې کړه.نو ابراهیم ﷺ څلور مارغان واخستل او دا ئې ټکړې ټکړې کړل.او بیا ئې مختلفې ټکړې خپلو کښې یوځائې کړې.

**قوله تعالی:** -ثُمَّ اجْعَلْ عَلٰى كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا

بیائې په څلورویااووه غرونو باندې دا مارغان کیخودل.او د ټولو مارغانو سرونه ئې په خپل لاس کښې کیخودل.

**قوله تعالی:** -ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِيْنَكَ سَعْيًا

بیا ابراهیم ﷺ د الله ﷻ په حکم هغه راوبلل.چې کوم مارغه ته به ئې آواز کولو نو د هغه مارغه خورې شوې وزرې به یو ځائې نه بل ځائې ته را الوتلې او خپلو کښې به یوځائې کیدلې،دا شان وینه به وینې سره یو ځائې کیدله او نور اجزاء هم چې په کوم غر وو خپلو کښې به یو ځائې کیدل او هغه مارغه به را الوتلو او ابراهیم له به راتلو.که ابراهیم ﷺ به دبل مارغه سر ورکول نوهغې به نه قبولو.که پخپله به ئې د هغې سر ورکولونو قبلولو به ئې.(١) تر دې چې یو یو دا ټول مارغان ژوندي شو او والوتل.او د الله ﷻ د قدرت او د مړو د ژوندي کیدو نظاره خلیل الله پخپله اوکتله.

**قوله تعالی:** -وَاعْلَمْ أَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ

بیا فرمائي چې پوهه شه الله ﷻ غالب دې،هیڅ یو څیز هغه عاجز کولې نشي.چې کوم یو کار هغه پاك ذات کول غواړي نو هغه بغیر دڅه بندیز نه کیږي.هر څیز د هغه په قبضه کښې دې.هغه په خپلو اقوالو او احکامو کښې حکیم دې،او دا شان په خپل انتظام او شریعت مقرر کولو کښې.

**د امید او طمع زیاتونکې ایت:** - عبدالله بن عباس ﷺ به فرمائیل چې د ابراهیم خلیل الله ﷺ نه د الله ﷻ دا سوال کول چې آیا تا ایمان نه دې راوړې؟او دابراهیم ﷺ دا جواب ورکول چې ولې نه ایمان خو مې راوړې دې لیکن د زړه د اطمینان د پاره داسې کول غواړم،دا آیت ما له د نورو آیتونو په نسبت امید اوطمع نوره هم زیاتوی،مطلب دادې که د یو ایماندار په زړه کښې څه وسوسه پیدا شي نو په هغې باندې څه نیول نشته دې.یوځل دعبدالله بن عباس ﷺ او عبدالله بن عمرو ابن العاص ﷺ ملاقات کیږي نوتپوس کوي چې په قرآن پاك کښې د ټولو نه زیات امید زیاتولو والا کوم یو آیت دې.عبدالله بن عمر بن عاص ﷺ فرمائي چې(لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ) والا آیت چې په هغې کښې ارشاد دې چې انې زما ګناهګار بندګانو ازما د رحمت نه مه ناامیده کیږئ زه ټول ګناهونو لره بښونکې یم.ابن عباس ﷺ فرمائي چې زما په نیز خو ددې امت د پاره دټولونه زیات امید اوسهاره جوړولو والا آیت د حضر ابراهیم ﷺ دا قول او بیا د رب العزت دا سوال او د دوی جواب دې.(عبدالرزاق ابن ابی حاتم وغیره).(٢)

| | | |
|---|---|---|
| مَثَلُ | الَّذِيْنَ | يُنْفِقُوْنَ |
| مثال | دهغه کسانو | چې خرچ کوي |
| دهغه کسانومثال چې خیرات کوي | | |

(١) القرطبي: ٣/٣٠٠-

(٢) ابن ابي حاتم: ١٠٣٢/٣،ذهبي تلخيص المستدرك:٦٠/١ کښې فرمائي چه پدې کښې انقطاع ده نو دا سندضعیف دې۔

| |
|---|
| أَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ |
| مالونه خپل \| په لار دالله کښي \| په شان ديوې داني دې \| چي زرغون کړي \| اوه \| وږي |
| مالونه خپل دالله پاک په لار کښې \|..................د هغې دانې پشان دې چي اوه وږي زرغون کړي \| او په هر |
| فِيْ كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ ؕ وَاللهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللهُ |
| چي په هر وږي کښي \| اسل \| دانې وي \| او الله \| زياتوي \| دپاره دهغه چا \| چي اوغواړي \| او الله |
| وږي کښي سل دانې وي \| داشان الله پاک چاته چي اوغواړي نولږعمل په څوڅوچنده زياتوي \| اوالله پاک |
| وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ۝ |
| فراخه دې \| او پوهه دې \| |
| د فراخو مالک دې \| |

قوله تعالى:- مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ أَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ

**د صدقاتو اجروثواب:-** په دې آيت کښې بيان کيږي چې کوم سړې د الله ﷻ د رضامندئ طلبګار وي او خپل مال خرچ کوي نوهغه ته ډير برکتونه او ډير ثوابونه ملاويږي.او نيکئ ورته اووه سوه چنده کيږي.

**في سبيل الله نه مراد:-** نوفرماني چې کوم خلق د الله ﷻ لار کښې يعنې دالله ﷻ فرمانبردارئ کښې،جهاد کښې،د اسونويه ساتلوکښې،د وسلې اخستلو اوخرڅولو کښې،حج کولوکښې وغيره کښې خرچ کوي. دالله ﷻ په نوم چې کوم يو څيز ورکړې شي دهغې مثال په داسې صفائئ سره بيانيږي چې سترګې يحونکې اوزړه ته کوزيدونکې دې.يودم داسې فرماني چې ديو بدله کښې به درته اووه سوه ملاويږي. ددې نه ډير زيات لطافت په دې مثال او په دې کلام کښې دې.

قوله تعالى:- وَاللهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللهُ

اوبيا ارشاد فرماني چې نيکو اعمالو کښې د الله ﷻ په دربار کښې زيادت راځي.لکه څنګه چې ستاسوکرلې شوې تخم پټي کښې پروت وي او زياتيږي.د مسنداحمد په حديث کښې دې چې نبي اکرم ﷺ فرماني چې کوم سړې خپل خان نه بچ شوې څيز دالله ﷻ په لار کښې خرچ کوي نو هغه ته اووه سوه چنده ثواب ملاويږي.او چې کوم سړې ئې په خپل خان او په خپل اهل وعيال باندې خرچ کړي نو هغه ته لس چنده ثواب ملاويږي.او د بيمار د تپوس کولو هم لس چنده ثواب ملاويږي.روژه ډهال دې ترکومې چې دا خرابه نۀ کړې شي.چې په کوم سړي باندې څه بدني بيماري او مصيبت او غم درد راشي نو هغه دده ګناهونه رژوي.([1])دا حديث ابو عبيده ﷛ په هغه وخت کښې فرمائيلې وو چې کوم وخت کښې دوی سخت بيمار وو او خلق د دوی د تپوس کولو د پاره راتلل.د دوی بي بي صاحبه د دوی سر ته ناسته وه.د هغې نه ئې تپوس اوکړو چې شپه څنګه تيره شوه ؟ هغې اوونيل چې ډيره سخته.د دوی مخ په دغه وخت کښې ديوال طرفته وو.په دې آوريدو سره ئې مخ خلقو طرفته راواړلو او وې فرمائيل چې په ما دا شپه سخته تيره نشوه خکه چې ما د نبي اکرم ﷺ نه دا آوريدلې دی.د مسنداحمد يو بل حديث کښې دی چې يو سړی نکيل والا اوښه خيرات کړه نو نبي اکرم ﷺ اوفرمائيل چې ده ته به د قيامت په ورځ اووه سوه نکيل والا اوښې ملاويږي.([2]) مسند احمد په يو بل حديث کښې دی چې الله ﷻ د ابن آدم يوه نيکی د لسو نيکو برابره کړې ده.او بيا هغه زياتيږي تر اووه سوو پورې.

---

[1]) احمد: ۱۹۵/۱، وسنده حسن النسائي: مختصر: ۲۲۳۵)-

[2]) احمد: ۱۲۱/٤، صحيح مسلم: كتاب الامارة باب فضل الصدقة في سبيل الله تعالى: ۱۸۹۲، نسائي: ٤۹۱٦)-

**روژه زما د پاره ده:**- خو د روژې باره کښې الله ﷻ فرمائي چې دا زما دپاره او زه به د دې اجر ورکوم.د رژوه دار د پاره دوه خوشحالئ دی یو د افطار په وخت کښې او بله د قیامت په ورځ.د روژدار د خولې بوئ الله ﷻ ته د مشکو د بوئی نه زیات خوښ دې.بل حدیث کښې دومره زیاتوالې دې چې روژه دار خپل خوراك څښاک زما دپاره پریږدی،آخر کښې دی چې روژه ډهال ده.([1])مسند احمد یو بل حدیث کښې دی چې مونځ،روژه،ذکرالله،د الله ﷻ په لار کښې خرچ کولو باندې اووه سوه چنده کیږی

**د الله په لار کښې د خرچ کولو فضیلت:**- ([2])د ابن ابی حاتم یو حدیث کښې دی چې کوم یو کس جهاد کښې مالی مدد اوکړی او پخپله جهاد کښې شامل نشی نو د یو بدله کښې ورته اووه سوه چند ثواب ملاویږی.اوکه پخپله هم شریك وی نو د یو درهم بدله کښې ورته د اووه لاکهه درهمو خرچ کولو ثواب ملاویږی.بیانبی اکرم ﷺ ددې آیت مبارك تلاوت اوفرمانیلو﴿وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ﴾دا حدیث غریب دې ([3])

**د دې امت خاص فضیلت:**-د ابوهریره ﷺ والا حدیث ﴿مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ﴾تفسیر مخکښې تیر شوې دې،په هغې کښې دی چې د یو بدله کښې دوه کروړه دوچند ثواب ملاویږی.([4]) ابن مردویه کښې دی چې کله دا آیت نازل شو نو نبی اکرم ﷺ هم دا دعا اوکړه چې انې الله!زما امت له نور زیات ورکړه.نو ﴿مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ﴾ والا آیت نازل شو.([5]) نبی اکرم ﷺ بیا هم دا دعااوکړه.نو دا آیت﴿إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ نازل شو نوثابت شو چې څومره په عمل کښې اخلاص زیات وی نو هومره به ثواب زیات وی.الله ﷻ وسیع فضل و کرم والا دې.هغه ته هم پته ده څوك څومره مستحق دې اوڅوک مستحق نۀ دی.﴿فسبحان الله والحمدلله﴾.

| ثُمَّ لَا | فِي سَبِيلِ اللَّهِ | أَمْوَالَهُمْ | يُنْفِقُونَ | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|
| بیا نۀ | په لار د الله کښې | مالونه خپل | چې خرچ کوی | هغه کسان |
| اوپه هرڅه پوهه دې \| څوک چې خپل مالونه د الله په لار کښې خیرات کوی \| بیا | | | | |

| عِنْدَ رَبِّهِمْ | أَجْرُهُمْ | لَهُمْ | وَلَا أَذًى | مَنًّا | أَنْفَقُوا | مَا | يُتْبِعُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په نزد د رب دهغوی | بدله دهغوی | دپاره ده دهغوی | اونۀ ضرر | احسان | چې خرچ کړې نی دی | په هغه څیز پسې | وریسې کوی |
| پخپل خیرات پسې زباتل اوآزار نه رسوی \| ......نو دهغوی اجر خپل الله سره مقرر دې | | | | | | | |

| خَيْرٌ | وَمَغْفِرَةٌ | قَوْلٌ مَعْرُوفٌ | يَحْزَنُونَ | وَلَا هُمْ | عَلَيْهِمْ | وَلَا خَوْفٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بهتره ده | او عفوه | یوه خبره نیکه | غمژن کیږی | اونۀ به هغوی | په هغوی باند | اونۀ به وی یره |
| اونه هغوی دپاره څۀ خطره شته \| اونه به هغوی غمژن وی(فقیرته) اخوږې خبرې کول اوپه نامناسبه خبره سترګې پټول ښه دی | | | | | | |

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | حَلِيمٌ | غَنِيٌّ | وَاللَّهُ | أَذًى | يَتْبَعُهَا | مِنْ صَدَقَةٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ای هغه کسانو | صبرناك دې | بې پرواه دې | او الله | تکلیف | چې په هغې وریسې وی | دهغه خیرات نه |
| دهغې صدقې نه چې وریسې د(ژباتنې) آزار وی \| والله پاک بې پرواه اوصابردې \| انې مسلمانانو | | | | | | |

[1]) احمد: ۴۴۶/۱، صحیح مسلم کتاب الصیام باب فضل الصیام : ۱۱۵۱)-

[2]) احمد : ۴۳۸/۳، مختصرا ابوداود کتاب الجهاد باب فی تضعیف الذکر فی سبیل الله عزوجل : ۲۴۹۸، وسنده ضعیف )-

[3]) بن ابی حاتم)-

[4]) احمد : ۲۹۶/۲)،-

[5]) ابن مردویه و ابن حبان الاحسان : ۴۶۲۹)،-

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اٰمَنُوْا | لَا تُبْطِلُوْا | صَدَقٰتِكُمْ | بِالْمَنِّ | وَالْاَذٰى | |
| چې ایمان مو راوړی دی | مه باطلوئ | خپلې صدقې | په احسان زیاتولو | او په تکلیف ورکولو سره | |
| تاسو خپلې صدقې په زباتلو او تکلیف رسولو باندې مه خرابوئ ........ | | | | | |
| كَالَّذِيْ | يُنْفِقُ | مَالَهٗ | رِئَآءَ النَّاسِ | وَلَا يُؤْمِنُ | بِاللّٰهِ |
| پشان دهغه سړی | چې خرج کوی | مال خپل | دپاره دښودني خلقو ته | او نه ایمان راوړی | په الله |
| لکه دهغه چاپشان چې خپل مالونه دنوم دپاره لګوی ........ او نه په الله ایمان لری | | | | | |
| وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ | فَمَثَلُهٗ | كَمَثَلِ | صَفْوَانٍ | عَلَيْهِ | تُرَابٌ |
| داخرت باندې | نومثال دخرج دهغه | پشان دمثال | د هموارې ګټې دی | چې په هغې باندې | خاوره وی |
| اونه په ورځ داخرت | دهغه (دخیرات) مثال دهغې هموار ګټ دی | چې دپاسه پرې خاوره پرته وی | | | |
| فَاَصَابَهٗ | وَابِلٌ | فَتَرَكَهٗ | صَلْدًا | لَا يَقْدِرُوْنَ | عَلٰى شَيْءٍ |
| نواورسی هغې ته | تیز باران | نو پریږدی هغه | صفا | نهٔ به قادریږی داسې خلق | په هیڅ خیز باندې |
| تیزباران شیبه پرې راشی اوهوار صفا ئې پریږدی | او هیڅ لاس نه توریږی ........ | | | | |
| مِّمَّا | كَسَبُوْا | وَاللّٰهُ | لَا يَهْدِي الْقَوْمَ | الْكٰفِرِيْنَ | |
| دهغه نیکئ نه | چې هغوئ کسب کړی ده | او الله | نهٔ ښائی نیغه لار | قوم | کافر ته |
| ددغه خلقو پخپله ګټه باندې ........ | والله پاک دکافرو ډلې ته هدایت نه کوی ........ | | | | |

قوله تعالى:- اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُوْنَ مَآ اَنْفَقُوْا مَنًّا وَّلَآ اَذًى

**دهغه صدقې فضیلت چې په هغې کښې احسان او ریاء نه وی:-** الله ﷻ د خپلو هغه بندګانو مدح او تعریف کوی چې کوم خیرات اوصدقې کوی او بیاپه دې باندې په چا باندې احسان نه کوی.او نه خپلې ژبې سره او نه خپل یو فعل سره اونه هغه سړی ته څه نقصان رسوی.بیا هغوئ ته د خیر د جزاء وعده کوی چې ددوی اجر و ثواب د الله ﷻ په ذمه دی.

قوله تعالى:- وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ

په دوی باندې به د قیامت په ورځ هیڅ ویره او خفګان نه وی.او نه به د دنیا او نه د بچو د نقصان خطره وی،دوی ته به هیڅ غم نه وی،ددې وجې چې هلته په رسیدو سره به دوی ته ددې نه بهترخیزونه ملاویږی.

قوله تعالى:- قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ وَّمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّنْ صَدَقَةٍ يَّتْبَعُهَآ اَذًى

**د ښهٔ خبرې فضیلت:-** بیا فرمائی چې کلمه دخیر د ژبې نه اوښکل د یومسلمان رور دپاره دعاکول،او معافی کول اودهغه خطا معاف کول د هغه صدقې نه زیات بهتر دی چې په هغې کښې تکلیف وی.ابن ابی حاتم کښې دی چې نبی اکرم ﷺ فرمائیلی دی چې هیڅ یو صدقه د نیک کار نه افضل نه ده.آیا تاسو دالله ﷻ فرمان ﴿قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ﴾ نه دې آوریدلې؟[1] الله ﷻ د خپلو مخلوقاتونه بې نیاز دې.اوټول مخلوق دهغه ذات محتاج دې.هغه حلیم اوبردبار دې.ګناهونو ته ګوری اوهغه شان حلم اوکرم کوی.

[1] دامرسل روایت دې)-

بلکه معاف کوی او بخشش کوی.

**درې قسمه خلقو سره به الله ﷻ خبرې نهٔ کوی.** صحیح مسلم کښې دی چې درې قسمه خلقو سره به الله ﷻ دقیامت په ورځ خبرې نه کوی اونه به هغوئ طرفته ګوری د رحمت په نظر،اونه به هغوئ لره پاکوی بلکه د هغوئ دپاره دردناك عذاب دې،یو خو د احسان زباتنه کوونکې او دویم د پوندو نه لاندې پرتوګ اود تهبندلره زوروندونکې،او دریم خپلې سودا لره دخرڅولو دپاره قسمونه خوروونکې(۱)ابن ماجه وغیره کښې په حدیث کښې دی چې دموریلارنافرمان،صدقې سره چاباندې احسان کونکې، شرابی او په تقدیر ایمان نه لرونکې به جنت ته نه داخلیږی.(۲)نسائی کښې دی چې درې کسانو ته به الله ﷻ دقیامت په ورځ نه ګوری،د مور پلار نافرمانه،شرابی،اوپس د احسان کولو نه د هغې زباتونکې.(۳)

دنسائی یو بل حدیث کښې دی چې دا درې واړه سړی به جنت ته نه داخلیږی.(۴)د دې وجې نه په دې آیت مبارك کښې هم ارشاد دې چې پس د احسان کولو نه په زباتولو او چې چا سره مو احسان کړې وی هغه ته په تکلیف رسولو سره خپلې صدقې او خیراتونه مه بربادوئ ځکه چې د احسان زباتولو سره او د احسان نه پس تکلیف ورکولو سره د هغه احسان او صدقې ثواب باقی نهٔ پاتې کیږی.

قوله تعالی:-يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُم بِالْمَنِّ وَالْأَذَىٰ

بیا مثال ورکوی چې احسان او تکلیف ورکولو سره د صدقې خرابیدلو مثال د هغې صدقې پشان دې چې کوم د خودنې په طور خلقو ته ورکړې شی،دخپل سخاوت او فیاضئ او دنیکئ د شهرت دپاره ورکړې شی چې خلق دده تعریف اوکړی اوخلق دې خوښ کړی.صرف دالله ﷻ د رضامندئ دپاره نه وی،اونه د هغه پاك ذات نه د ثواب حاصلولو په نیت وی،ددې وجې دې جملې نه پس الله ﷻ فرمائی

قوله تعالی:-وَلَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

چې د قیامت په ورځ او په الله تعالی د چا ایمان نه وی نو د دې ریاکارئ نه ډکې،د احسان د زباتنې او د تکلیف رسونکی د صدقې مثال داسې دې،

قوله تعالی:-فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا

لکه چې خوشې میدان او دکاڼو غر وی،چې په هغې باندې خاوره وی،بیا سخت باران اوشی او ځنګه چې ددې کاڼی نه تولـه خاوره لاړه شی او په دې باندې هیڅ باقې پاتې نشی نو دا شان ددې دواړو خلقودخرچ کیفیت دې اګرچې خلق ګڼړی چې ددې صدقې به نیکی وی چې ځنګه په ظاهره په دې کاڼی باندې خاوره په نظر راځی.لیکن کله چې باران اوشی نو د دې نه خاوره لاړه شی،دا شان د دې احسان او تکلیف رسولویاخودنې کولو والا ثواب هم لاړشی.او کله چې دا الله ﷻ ته اورسی نو د دې به ورته هیڅ بدله نهٔ ملاویږی.

قوله تعالی:-لَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوا::

اوبخپلواعمالو کښې به ورته هیڅ څیز نه ملاویږی اوالله ﷻ دکافرانوخلقو نیغې لارې طرفته رهنمائی نه کوی.

---

۱) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان غلظ تحریم اسبال الازار: ۱۰۶،ابوداود : ۴۰۸۷، ترمذی: ۱۲۱۱، نسائی: ۴۴۶۳)-

۲) حمد: ۴۴۱/۶، ابن ماجة کتاب الاشربة باب من شرب الخمر فی الدنیا : ۳۳۷۶، وسنده حسن)-

۳) نسائی کتاب الزکاة باب المنان بمااعطی : ۲۵۶۳، وسنده حسن)-

۴) نسائی فی الکبری : ۴۹۲۱، ؟؟وسنده ضعیف)-

| وَمَثَلُ الَّذِيْنَ | يُنْفِقُوْنَ | اَمْوَالَهُمُ | ابْتِغَآءَ | مَرْضَاتِ اللهِ |
|---|---|---|---|---|
| او مثال دهغه کسانو | چې خرچ کوي | مالو نه خپل | دپاره دتلاش | درضا د الله |
| اودهغې کسانو مثال چې خپل مالونه دالله درضادپاره خرچ کوي ...................... | | | | |

| وَتَثْبِيْتًا | مِّنْ اَنْفُسِهِمْ | كَمَثَلِ جَنَّةٍ | بِرَبْوَةٍ | اَصَابَهَا |
|---|---|---|---|---|
| او په ثبات او مضبوتيا سره | دطرفه دنفسونو خپلونه | په مثال ديو باغ دې | چې په اوچت ځائې وي | چې اورسيږي هغې ته |
| اوپه مضبوط زړه ئې لګوي | دهغه باغ پشان دې چې ايوه لوړه زمکه کښې لګيدلې وي | چې راشي پرې | | |

| وَابِلٌ | فَاٰتَتْ | اُكُلَهَا | ضِعْفَيْنِ | فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ | فَطَلٌّ |
|---|---|---|---|---|---|
| تيز بارانانو ورکړي | ميوه خپله | دوه چنده | اوکه اونه رسيږي هغې ته | تيز بارانانو نرې پشم ورله هم کافي وي | |
| دشيبوبارانونوميوه دوچنده اوکړي | اوکه چرې باران پرې اونه وريږي انوکم نه کم پربنه خو پرې وريږي | | | | |

| وَاللهُ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | بَصِيْرٌ |
|---|---|---|---|
| او الله | په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | نظر ساتونکې دې |
| اوالله پاک ستاسوکارونه وينې ګوري | | | |

قوله تعالى:-وَمَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللهِ وَتَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ

**کومه صدقه چې دالله ﷻ دپاره ورکړې شي** :- دا مثال دمومنانو د صدقې ورکولو دې چې د کومو نيتونه الله ﷻ لره خوشحالول وي.او دوی ته دهغې دبدلې ملاويدو پوره پوره يقين وي.لکه حديث مبارك کښې دی چې کوم سړی درمضان روژې ايماندار سره اوساتلې او د دې د ثواب ملاويدو يقين ئې وي.[1] ربوه وائي اوچتې زمکې ته چرته چې نهرونه بهيږي،دا لفظ﴿بِرُبْوَةٍ﴾ او ﴿بِرِبْوَةٍ﴾ هم لوستلې شوې دې.

قوله تعالى:-اَصَابَهَا وَابِلٌ فَاٰتَتْ اُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ

د﴿وَابِلٌ﴾ معنی دسخت باران ده.هغه دوچنده ميوه راوباسی يعنی د نورو باغونو په نسبت ددې باغ ميوه ښه وي.

قوله تعالى:-فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ

داباغ داسې دې اوداسې ځائې کښې دې که باران اونشي نوبياهم صرف پرخې سره هم ددې پالنه کيږي دا ناممکن دی چې موسم خالي لاړشي.دا شان د ايماندار داعمالو هم هيڅ کله بې ثوابه نه پاتې کيږي اودهغې بدله ورته ضرور ملاويږي.خو صرف د دې په جزاء کښې فرق وي اودا دايماندار په خلوص او نيت او د نيك کار اهميت اعتبار سره زياتيږي.

قوله تعالى:-وَاللهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ

الله ﷻ نه د خپلوبندګانو هيڅ يو عمل پټ نه دې.

| اَيَوَدُّ | اَحَدُكُمْ | اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ |
|---|---|---|
| آيا خوښوی | يوله تاسونه | چې وي | هغه لره |
| آيا په تاسو کښې به د چا دا خوښه شي چې دهغه ...................... | | |

[1] صحيح بخاری کتاب الايمان باب صوم رمضان ايمانا واحتسابا..... ۳۸، صحيح مسلم: ۷۶۰)-

| فِيهَا | لَهُ | الْأَنْهٰرُ | مِنْ تَحْتِهَا | تَجْرِيْ | وَّاَعْنَابٍ | مِّنْ نَّخِيْلٍ | جَنَّةٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په دغه باغ کښې | وی هغه لره | نهرونه | چې بهيږی لاندې د ونو هغې نه | | او دانګورو | دڅجورو | يو باغ |

يو باغ وی دکهجورو او دانګورو چې دهغې لاندې ولې بهيږی د هغه دپاره په هغې کښې

| فَاَصَابَهَآ | ضُعَفَآءُ | ذُرِّيَّةٌ | وَلَهٗ | الْكِبَرُ | وَاَصَابَهُ | الثَّمَرٰتِ | مِنْ كُلِّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او ورسيږی هغه باغ ته | كمزوری | بچې | او وی هغه لره | بوډاوالې | او رسيدلې وی هغه ته | ميوې | هر قسم |

هر قسم ميوې نيولې وی او دې پخپله بوډا وی او واړه واړه ماشومان خامن ئې وی او راشی په هغه باغ

| الْاٰيٰتِ | لَكُمُ | يُبَيِّنُ اللّٰهُ | كَذٰلِكَ | فَاحْتَرَقَتْ | فِيْهِ نَارٌ | اِعْصَارٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| آيتونه | تاسو ته | بيانوی الله | دا رنګې | او هغه او سوزوی | چې په هغې كښې اوروی | برېوقې دسخت باد |

دا ور پشان يو ګرمه برېوقې او هغه دميوو نه ډك باغ اوسوزوی داشان الله پاك تاسو ته خپل قدرتونه ښائی

| لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۶۶﴾ |
|---|
| دپاره ددې چې تاسو فكر اوكړئ |

چې تاسو فكر اوكړئ

**حسن عاقبت او خاتمه بالخير:-** صحيح بخاری كښې دی چې امير المومنين عمر بن خطاب ﷛ يوورځ د صحابه كرامو ﷡ نه تپوس اوكړو چې تاسوته پته ده چې دا آيت د چا باره كښې نازل شويدې دې؟ هغوئ اوفرمائيل چې الله ﷻ ته زياته پته ده.عمرفاروق ﷛ خفه شو او وې فرمائيل چې تاسو ته پته شته اوكه نشته ما له صفا او جواب راكړئ.ابن عباس ﷛ اوفرمائيل چې ائې امير المومنين ﷛ زما زړه كښې يو خبره ده،عمرفاروق ﷛ ورته اوفرمائيل چې وايه ورارۀ او خپل نفس لره دومره مه سپكوه.وې فرمائيل چې د يو عمل مثال وركړې شويدې.تپوس ئې اوكړو چې هغه كوم يو دې؟وې فرمائيل چې يو مالدار سړې چې د الله ﷻ د فرمانبردارئ دپاره كار كوی،بيا شيطان ده لره غلوی،او هغه ګناه كښې مشغول شی او خپل نيك اعمال ترې لاړشی(۱)نو دا روايت د دې آيت پوراتفسير دې.په دې بيانيږی چې يو سړی د شروع نه ښه اعمال اوكړل،بيا دې نه پس دده حالت خراب شو اوپه ګناهونو كښې اخته شو،اوهغه نيكئ ئې تباه كړې چې كومې ده كړې وې.او آخری وخت كښې چې كله ده ته دنيكو ډير زيات ضرورت وو نو دې خالی لاسونه پاتې شو.

**قوله تعالى:-** اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

لكه څنګه چې يو سړی يو باغ اولګوی او د هغې نه ميوې اخلی،

**قوله تعالى:-** وَاَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهٗ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَآءُ

خوهركله چې بوډا توب ته اورسيدو او دده واړه بچی هم د ده څه پكاررانغلل.اوس دده دارومدار صرف په دې باغ باندې دې

**قوله تعالى:-** فَاَصَابَهَآ اِعْصَارٌ فِيْهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ

چې په دې يو طوفان راغلو او په هغې كښې اور هم وو،او هغه شين باغ ايره ايره شو.

داشان داسړې دې چې مخكښې ئې نيكئ اوكړی ليكن بياچې كله ئې بدئ شروع كړی او خاتمه دده ښه نه وی نو كله چې دده دنيكو د بدلئ وخت راغلو نو دې خالی لاس پاتې شو.كافرسړې هم چې كله

(۱) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة البقرة باب قوله ( ايود احدكم .... ) : ۴۵۳۸-

الله ﷻ لره ورشي نو هلته هيڅ طاقت نه چليږي لکه څنګه چې دې بوډها چې څه جمع کړي وو. هغه لره د کفر والا اور هلاك کړو. او اوس د روستو نه دهٔ ته فائدې ورکولو والا هيڅوك نشته. لکه څنګه چې ددې بوډا ماشومان اولاد دهٔ ته هيڅ فائده نه رسوی. مستدرك حاکم کښې دی چې نبی اکرم ﷺ يو دعا کړې وه ﴿اللهم اجعل اوسع رزقك على دكبر سني وانقضاء عمري﴾ [1] يعنی ائې الله ﷻ! خپله روزئ ماته په هغه وخت کښې راکړه چې کله زما عمر زيات شی او ختميدو ته نزدې شی.

قوله تعالى: - كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ

الله ﷻ ستاسو مخکښې دا مثالونه بيان کړل چې تاسو هم غور و فکر اوکړئ او سوچ اوکړئ او پوهه شئ او نصيحت حاصل کړئ. لکه څنګه چې فرمائی ﴿وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا يَعْقِلُهَآ اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ۝﴾ يعنی دا مثالونه مونږ خلقو دپاره بيان کړل او به دې باندې علماء کرام ښه پوهيږی.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا

| اې هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | خرچ اوکړئ | دپاك مال نه | هغه

| ائې مومنانو (دالله په لار کښې) پاک (حلال) څيز خيرات کوئ | دهغې

كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا لَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ ۠ وَلَا تَيَمَّمُوا

چې ګټلې دې تاسو | او دهغې نه | چې را ايستلې دی مونږ | ستاسو دپاره | دزمکې نه | او مهٔ کوئ قصد

مال نه چې تاسو ګټلې وی | او دهغې پيداوارنه چه مونږ ستاسو دپاره دزمکې نه راويستی دی | او درد دی مال قصد

الْخَبِيْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ وَلَسْتُمْ بِاٰخِذِيْهِ

دخراب څيز | دهغې نه | چې خرچ کوئ نې تاسو | او حال دا چې نهٔ يئ تاسو | اغستونکی دهغې

مه کوئ | چې تاسو د هغې نه خيراتی برخه اوباسئ | داسې چې تاسو پخپله دهغې اخستوته تيار نه يئ

اِلَّآ اَنْ تُغْمِضُوْا فِيْهِ ؕ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ

امګر | چې سترګې پټې کړئ | په اغوستو دهغې کښې | او پوهه شئ | چې الله | محتاجه نهٔ دې

مګر دا چې سترګې پټې کړئ | او پوهه شئ چې الله پاک (د خلقو د خيراتونونه) بې پرواه دې

حَمِيْدٌ ۝ اَلشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَاْمُرُكُمْ

ستايلې شوې دې په ښو صفتونو | شيطان | يروی تاسو | دغريبئ نه | او حکم کوی تاسو ته |

او په هر صفت ستائيلې شوې دې | شيطان تاسو د غريبئ نه يروی | او تاسو ته حکم کوی

بِالْفَحْشَآءِ ۚ وَاللّٰهُ يَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا ؕ وَاللّٰهُ

په شر مناکو کارونو سره | او الله | وعده کوی ستاسو سره | د ښښنې | دخپل طرفنه | او دفضل | او الله

دبې حيائې د کارونو | او الله پاک درسره د خپلې ښښنې او مهربانئ وعده کوی | ............ ...او الله پاک

[1] حاکم ۵۴۲/۱، ؟؟ (سنده ضعيف جدا) –

| وَاسِعٌ | عَلِيمٌ | يُؤْتِي | الْحِكْمَةَ | مَنْ يَّشَآءُ | وَمَنْ | يُّؤْتَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فراخ دسته | او پوهه دې | هغه ورکوي | حکمت | هغه چاته چې اوغواړي | او هغه چاته | چې ورکړې شو |

دفراخۍ مالک او په هرڅه پوهه دې | چې چاته اوغواړي نو هغه ته حکمت اوښائي | او چاته چې

| الْحِكْمَةَ | فَقَدْ | أُوتِيَ خَيْرًا | كَثِيرًا | وَمَا يَذَّكَّرُ | إِلَّآ | أُولُوا الْأَلْبَابِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حکمت | نو په حقيقت کښې | ورکړې شو خير | ډير | او نۀ قبلوي نصيحت | مګر | اخاوندان دعقل |

حکمت اوخودلې شو ا نو هغه ته ډيرلوئي خيرورکړې شوا او صرف دعقل خاوندان ددې خبرونه سبق اخلي

**قوله تعالى:-** يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا كَسَبْتُمْ

**صدقه کښې پاک او طيب څيزورکوئ:-** الله ﷻ خپلو بندګانو ته د صدقې کولو حکم کوي چې تاسو ته الله ﷻ کوم مال درکړې دې يعنی د تجارت مال،سرۀ زر سپين زر او ميوې او غلې وغيره چې هغه پاک ذات تاسو لره د زمکې نه راويستی دی نو په هغې کښې بهترين او ښه او خوښ څيزونه د الله ﷻ په لار کښې خرچ کړئ.

**قوله تعالى:-** وَلَا تَيَمَّمُواْ ٱلْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِـَٔاخِذِيهِ إِلَّآ أَن تُغْمِضُواْ فِيهِ

ردی،خراب،سخاشوی،بيکاره څيزونه او فضول څيزونه د الله ﷻ په لار کښې مه خرچ کوئ.الله ﷻ خپله پاك دې او خبيث لره نه قبلوی.اوتاسو د هغه پاك ذات په نوم خراب څيزونه ورکوئ.
که داسې څيزونه تاسو ته درکولې شو نوتاسو به نه قبلول.بيا الله ﷻ به ئې څنګه قبول کړی.دابيله خبره ده چې تاسو اووينئ چې دا مال خو درنه روان دې نو تاسو د خپل حق په بدله کښې بيا هغه بې کاره څيز هم قبول کړئ خو د مجبورئ نه.

**قوله تعالى:-** وَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ

خوالله ﷻ داسې مجبور هم نه دې،هغه پاك ذات په هيڅ حالت کښې داسې خراب څيز نه قبلوی.د دې نه دا هم مطلب دې چې داسې مه کوئ چې تاسو حلال څيزونه پريږدئ او د حرام مال نه او حرامو څيزونو نه خيرات اوکړئ.

**الله ﷻ د روزئ سره سره اخلاق هم تقسيم کړې دی:-** مسند احمد کښې دی چې نبی اکرم ﷺ فرمائی چې چې څنګه الله ﷻ تاسوکښې ستاسو روزئی تقسيم کړی دی،ستاسو اخلاق هم ئې تاسو کښې تقسيم کړی دی.دنياخو الله ﷻ خپلو دوستانو ته هم ورکوی او د ښمنانو ته هم.دين صرف خپلو دوستانو ته ورکوی.چې چا ته کامل دين ملاؤ شی نو هغه د الله ﷻ محبوب دې.په الله ﷻ مې دې قسم وی د چا په قدرت کښې چې زما سا ده چې هيڅ يو بنده تر هغه وخته پورې مسلمان نۀ شی کيدې تر کومې پورې چې دده زړه او د ده ژبه مسلمانه نشی،او هيڅ يو بنده مومن نه شی کيدې ترکومې چې د ده ګوانډيان د ده د تکليف نه خلاص نه وی،

**د تکليف نه مراد څه دی؟:-** د خلقو په سوال باندې نبی اکرم ﷺ اوفرمائيل چې د تکليف نه مراد دهوکه ورکول او ظلم دې.چې کوم سړې حرامې طريقې سره مال حاصل کړی،په هغې کښې الله ﷻ برکت نه اچوی.اودده صدقې اوخيرات نه قبلوی.بلکه بدئ لره نيکئ سره رفع کوی.خباثت سره خباثت نه ختميږی.نودوه اقواله شو يو ردی څيز دويم حرام مال،آيت کښې رومبې قول مراد اخستل ښه دی اوښه معلوميږی.(۱)

**د دې ايت شان نزول:-** براء بن عازب فرمائی چې دکهجورو موسم کښې انصارودخپل توفيق مطابق

(۱) احمد:۱/۳۸۷، وسنده؟؟ ضيعف)-

دکهجورو غنچې راوړې او د دوؤ ستونو په مینځ کښې دوه رسئ زوړندې وې په هغې کښې به نې زوړندولې او هغه به اصحاب صفه او مسکین مهاجرینو د اولږې په وخت کښې خوړلې.یو کس کښې د صدقې رغبت کم وو نو هغه د کهجورو یو خرابه خوشه راوړه او دې کښې نې زوړنده کړه نو په دې باندې دا آیت نازل شو.که تاسو ته داسې څیز په صدقه کښې درکړې شی نو تاسو به نې بالکل قبول نه کړنې.خوکه د شرمه نې واخلئ نو دا بله خبره ده.ددې آیت نازلیدو نه پس به مونږ د ښه نه ښه څیزونه د الله ﷻ لار کښې خرچ کول.(ابن جریر).[1]

ابن ابی حاتم کښې دی چې خلقو به خرابې کهجورې او سخا کهجورې راوړې نو په دې باندې دا آیت نازل شو او نبی اکرم ﷺ د داسې څیزونو صدقه ورکول منع کړل.[2] عبدالله بن مغفل ﷛ فرمائی چې دمومن ګټه هیڅ کله خبیثه نه وی.مراد دادې چې بیکاره څیز صدقه کښې مه ورکوئ.مسند احمد کښې حدیث دې چې نبی اکرم ﷺ لره د ګوه غوښه راوړې شوه.نبی اکرم ﷺ هغه اونه خوړه او نه نې څوك د خوراك نه منع کړل.نو عائشه ﷝ ورته اوفرمائیل چې دا چا مسکین ته ورکړئ ؟ نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې ستا څه خوښ نه وی او هغه ته نه خوښوې نو بل چاته به نې څنګه ورکړې؟ (۳)

**د الا ان تغمضو فیه مطلب:** - براء ﷛ فرمائی چې کله ستاپه چا باندې څه حق وی او هغه تا ته هغه څیز درکړی چې د هغې هیڅ قدروقیمت نه وی نوته به وانخلې.مګر په هغه وخت کښې چې کله تاته خپله بربادی ښکاری نو ته به په څیز سترګې پټې کړې او هغه به واخلې.ابن عباس ﷛ فرمائی چې ددې مطلب دادې چې تا چا ته ښه مال ورکړو او د ادا کولو په وخت کښې هغه سړی تالره ناقص مال راوړی نو ته به نې بالکل وانخلې.او که هغه اخلې نو د هغې قیمت به کموې.نو تاسو چې کوم څیز د ځان د پاره نه خوښ نو هغه د الله ﷻ لار کښې څنګه ورکوې؟نو بهترین اومرغوب مال د هغه پاك ذات په لار کښې خرچ کړئ او هم دا معنې ده د آیت ﴿ لَن تَنَالُوا الْبِرَّ ﴾ هم ده.

**قوله تعالی:** - ﴿ الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُم بِالْفَحْشَاءِ ﴾

**د صدقې په وخت کښې دشیطان وسوسه اچول:** - بیا الله ﷻ تاسو ته په خپله لار کښې د خرچ کولو او د ښه څیز د ورکولو حکم کوی،هسې نه ددې نه دا اوګنړئ چې ګنی الله ﷻ محتاج دې.نه نه هغه پاك ذات خو بې نیازه دې او تاسو ټول د هغه پاك ذات محتاج یئ.دا حکم صرف د دې دپاره دې چې غریبانان هم د دنیا د نعمتونو نه محروم پاتې نشی.لکه بل ځائې کښې د قربانئ د حکم نه پس فرمائی چې﴿ لَن يَنَالَ اللَّهَ ﴾الله ﷻ نه ددې وینه اخلې او نه غوښه،هغه ستاسود تقوی آزمیښت کوی.هغه دفراخه فضل خاوند دې.دهغه پاك ذات په خزانه کښې هیڅ کمې نشته دې.صدقه د خپل ښکلی مال نه ورکوئ اودالله ﷻ په فضل،بخشش،کرم اود هغه په سخاوت باندې نظر ساتئ.او هغه پاك ذات به تاسو ته ددې نه زیاته بدله درکړی.هغه مفلس نه دی،هغه ظالم نه دې،ټول اقوال او افعال د تقدیر شریعت ټول د هغه تعریف کښې دی.د هغه نه سوا د عبادت لائق نشته دې،هغه د ټولو جهانونو پالونکې دې،د هغه پاك ذات نه سوا هیڅوك پرورش نه کوی،حدیث مبارك کښې دی چې یو کس لره شیطان دهوکه کوی او یو لره توفیق او رهبری یو فرښته ورکوی،شیطان خو په ورانئ باندې او حق لره په دروغه ګڼړلو باندې سړې راړوی او فرښته نیکئ باندې او دحق په تصدیق باندې سړې راړوی او چې د چا په زړه کښې دا خیال راشی هغه دې دالله ﷻ شکر اداکړی او په دې دې پوهه شی چې داد الله ﷻ د طرفه

---

[1] ترمذی کتاب التفسیر القرآن باب ومن سورة البقرة: ۸۷، ابن ماجة: ۱۸۲۲، وسنده حسن)-

[2] ابواود کتاب الزکاة باب ما لا یجوز من الثمرة فی الصدقة :۱۶۰۷، مختصرا وسنده ضعیف نسائی: ۲۴۹۴، وسنده حسن وهو یغنی عنه)-

[3] احمد: ۱۰۵/۶، ؟؟وسنده ضعیف حماد بن ابی سلیمان وابراهیم النخعی عنعنا)-



دی.او چې دچا په زړه کښې هغه وسوسه پیدا شي نو هغه دې (اعوذبالله) اووائي،بیا نبی اکرم ﷺ دا آیت مبارك تلاوت کړو﴿اَلشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ﴾.(ترمذی).(۱)

**یو د الله حکم دې او یو د شیطان حکم دې:-** داحدیث د عبدالله بن مسعود ﷺ نه موقوف هم مروی دې.د آیت مطلب دادې چې شیطان دالله ﷻ په لارکښې دخرچ کولونه منع کوی اودسړی په زړه کښې وسوسې اچوی چې دې سره به ته فقیر شې.ددې نیکو کارونو نه ئې منع کوی او ده لره بدوکارونو طرفته رغبت ورکوی.ګناهونو باندې، نافرمانو باندې،حرامو کارونو باندې او مخالفت باندې ده لره راپاروی.

**قوله تعالی:-**﴿وَاللّٰهُ يَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا ۗ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ﴾

الله ﷻ تاسو ته د دې خلاف حکم کوی چې د الله ﷻ په لار کښې د خرچ کولو نه مه روستوکیږئ او د شیطان د دهمکئ نه خلاف فرمائی چې ددې صدقې په بدله کښې به ستاسو خطاګانې معاف کړم.او داچې تاسو دفقیرئ نه ویروی نوددې مقابله کښې به تاسو ته خپل فضل درکړم.زما نه زیات رحم کولو والا اووسیع فضل والا او دیوکار د انجام علم لرلووالا بل څوك نشته دې او نه چا ته دا حاصلیدې شی.

**قوله تعالی:-**﴿يُّؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَآءُ﴾

**د حکمت مفهوم:-** د حکمت نه مراد دلته د قرآن پاك او د حدیث مبارکه پوره مهارت دې چې دې سره دناسخ او منسوخ،متشابه،مقدم او موخر حلال او حرام د مثالونو معرفت حاصل شی.(۲)

**قوله تعالی:-**﴿وَمَنْ يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ اُوْتِيَ خَيْرًا كَثِيْرًا﴾

دا خو هرڅوك وائی لیکن د دې تفسیر او د دې پوهه حکمت دې چې کوم الله ﷻ چاته غواړی نو ورکوی.(۳)هغه اصل مطلب باندې پوهه شی او د خبرې بیخ ته اورسی.او ژبې سره ددې صحیح مطلب ادا شی.ریښتونې علم او ریښتونې پوهه عطا شي،د الله ﷻ ویره د ده زړه کښې وی.یومرفوع حدیث کښې دی چې د حکمت سر د الله تعالی ویره ده.(۴)

**اصلی مهارت:-** داسې خلق هم دی چې د دنیا د علم ډیر ماهران هر دنیوی امر بنه عقل مندنی نه پیژنی.خو دین کښې بالکل ناپوهه دی.اوداسې خلق هم دی چې دنیوی علم کښې کمزوری دی لیکن علوم شرعی کښې ډیر ماهران دی.نو دا هغه حکمت دې چې الله ﷻ دوی ته ورکړې دې او د دې نه ئې محروم اوساتل.

**دلته د حکمت نه مراد نبوت دې:-** سدی رحمة الله علیه وائی چې دلته د حکمت نه مراد نبوت دې.لیکن صحیح دادی چې د حکمت لفظ دې ټولو څیزونو لره شامل دې او نبوت هم ددې اعلی او بهترینه حصه ده.او دا د دې نه بالکل یو خاص څیز دې او دا د نبیانو نه سوا بل چاته حاصل نه دې.د دی تابع خلقو ته د الله ﷻ طرفنه محرومی نشته.دوی هم د بنه او بهتر دولت نه ډك وی.بعضو احادیثو کښې دی چې چا قرآن پاك حفظ کړو نو د ده د دواړو لاسونو مینځ کښې نبوت راوختو.خو هغه صاحب وحی نه دې.(۵)لیکن بلې طریقې سره هغه ضعیف منقول دې چې دا د عبدالله بن عمرو ﷺ خپل قول دې.د مسنداحمد حدیث کښې دی چې قابل رشك صرف دوه سړی دی چې چاته الله ﷻ مال ورکړې وی او خپل لار کښې ئې دخرچ کولو توفیق ئې ورکړې وی.او چاته چې الله ﷻ حکمت ورکړی او دې سره ئې

---

(۱) ترمذی کتاب التفسیر باب ومن سورة البقرة : ۲۹۸۸، ؟؟وسنده ضعیف عطاء بن السائب مختلط راوی دې-

(۲) الطبری: ۵/۵۷۶)-

(۳) دې سند کښې جویبر متروك دې (المیزان : ۴۲۷/۱، دضحاك بن مزاحم د ابن عباس رضی الله عنه سره ملاقات ثابت نه دې)-

(۴) ابن مردویه وسنده ضعیف)-

(۵) الحاکم :۵۵۲/۱، وسنده حسن،وله شاهد موقوف حسن عند ابی عبیدفی فضائل القرآن : ص/۵۳)-

ده ته د فیصلې کولو او د تعلیم ورکولو توفیق ورکړو.(۱)پندونصیحت هغه څانته رسولې شي چې کوم د عقل نه کار اخلي.پوهه لري.خبره یاده ساتي،او مطلب باندې نظر لري.

| وَمَآ اَنْفَقْتُمْ | مِّنْ نَّفَقَةٍ | اَوْنَذَرْتُمْ | مِّنْ نَّذْرٍ | فَاِنَّ اللّٰهَ | يَعْلَمُهٗ ط |
|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه چې خرچ کړئ تاسو | دنفقې نه | یااومنئ په خان | يو نذر | نو بیشکه | الله ته معلوم دې هغه |

اوهرڅه خیرات چې تاسو کوئ | یاهرڅۀ منخته چې تاسو کوئ | ..............نوهغه الله ته معلوم ده

| وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ | مِنْ اَنْصَارٍ۞ | اِنْ تُبْدُوا | الصَّدَقٰتِ | فَنِعِمَّا هِيَ ج | وَاِنْ تُخْفُوْهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| اونشته دپاره دظالمانو | څوك مدد گار | كه تاسو ښكاره وركوئ | صدقې | نو ښۀ كار دې دا | او كه پټ ساتئ هغه |

اوظالمانو هیڅوک مددګارنشته | که تاسوخپلې صدقې څرګنده ورکوئ نوداهم ښه خبره ده | او که پټ په پرده کښې

| وَتُؤْتُوْهَا | الْفُقَرَآءَ | فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ط | وَيُكَفِّرُ عَنْكُمْ |
|---|---|---|---|
| او وركوئ هغه | فقيرانو ته | نو دا بهتره ده ستاسو دپاره | او لرې كوى ستاسونه |

نې فقیرانو ته ورکوئ نو دا ستاسودپاره ډیر ه بهتره ده | اوالله پاک به معاف کړي

| مِّنْ سَيِّاٰتِكُمْ ط | وَاللّٰهُ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | خَبِيْرٌ۞ |
|---|---|---|---|---|
| گناهونه ستاسو | اوالله | په هغه كارونو | اچې كوئ ئې تاسو | خبردار دې | نشته |

گناهونه ستاسو | اوالله پاک ستاسوپه عملونوښۀ خبر دې |

قوله تعالی:-وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ نَّفَقَةٍ اَوْنَذَرْتُمْ مِّنْ نَّذْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُهٗ ط

**ستاسو نذرونه او صدقې د الله ﷻ علم کښې دي:-** الله تعالی خبر ورکوي چې هر یو خرچ او نذر او هر نیک عمل لره الله ﷻ ښه پیژني.او هغه خپل نیک بندګان چې د هغه پاک ذات حکم پوره کوي او د هغه نه د ثواب طمع ساتي،دهغه وعدې رېښتیا ګڼړي،د هغه فرمان باندې یقین ساتي نو الله ﷻ به ده ته بهترینه بدله ورکوي.

قوله تعالی:-وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ۞

اوچې کوم خلق د الله ﷻ د حکم خلاف کوي او د ګناهونو کارونه کوي او د الله ﷻ احکامو لره په دروغه ګڼړي او د الله ﷻ سره عبادت کښې نورو لره شریکوي نو داخلق ظالمان دي،د قیامت په ورځ به دوی ته رنګ په رنګ او بدترین عذابونه ورکولې شي او هیڅوك به د دوی لره خلاصونکې نه وي او نه به د دوی څوك امداد کونکې وي.

قوله تعالی:-اِنْ تُبْدُوا الصَّدَقٰتِ فَنِعِمَّا هِيَ ج وَاِنْ تُخْفُوْهَا وَتُؤْتُوْهَا الْفُقَرَآءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ط

**په پټه صدقه ورکول افضل دی خو نورو ته د ترغیب دپاره وی نو بیا بله خبره ده:-** بیا فرمائي چې په ښکاره صدقه ورکول هم ښه دي او په پټه فقیرانو او مسکینانو ته ورکول هم ښه دي.ددې وجې دوی د ریاکارئ نه په میلونو لرې وو،دا بله خبره ده چې ښکاره کولو کښې څه دیني مصلحت یا دیني فائده وی لکه دې دپاره چې نور خلق هم ورکړي وغیره.حدیث مبارك کښې دي چې په ښکاره صدقه ورکول داسې دي لکه چې یوکس په اوچت آواز سره د قرآن پاك تلاوت کوي او د صدقې په پټه ورکول داسې دي لکه چې یو سړې په رو آواز سره قرآن پاك لولي.(۲)

---

(۱) احمد: ۱/ ٤٣٢، صحیح بخاری کتاب العلم باب الاغتباتی فی العلم والحکمة : ۷۳، صحیح مسلم: ۸۱٦)-

(۲) ابوداود کتاب الصلاة باب رفع الصوت بالقراءة صلاة اللیل: ۱۳۳۳، وهو حسن،ترمذی: ۲۹۱۹، نسائی : ۲٥٦۲ )-

**اووه خوش بخته کسان:-** نو ددې ايت نه د پټې صدقې ورکول ثابت شو.بخاری شريف او مسلم شريف کښې د ابوهرير ﷺ روايت دې چې نبی اکرم ﷺ فرمائيلی دی چې اووه کسانوته به الله ﷻ دقيامت په ورځ د خپل رحمت سيوری لاندې ځائې ورکوی.او په هغه ورځ به ددې سيوری نه سوا بل سيوری نه وی.❶ عادل بادشاه ❷ هغه ځوان چې ځوانی د الله ﷻ عبادت او د شريعت مطابق تيره کړی❸ هغه دوه سړی چې د الله ﷻ دپاره خپلوکښې محبت کوی او په دې جمع کيږی او هم په دې جدا کيږی❹ هغه سړی چې د هغه زړه په مسجدکښې لګيدلې وی د داخليدو د وخت نه تر د وتلو وخت پورې❺ هغه سړی چې په خلوت کښې د الله ﷻ ذکرکوی او ژاړی❻ هغه سړی چې هغه ته يو ښکلې ښځه د بدکارئ دعوت ورکړی او دې اووائی چې زهٔ د الله ﷻ نه ويريږم❼ او هغه سړی چې صدقه په پټه ورکوی چې ده ګس لاس هم دده نه خبر نه شی.([1])

**انسان د غرونو،اور،او اوبو نه هم زيات سخت دې:-** مسند احمد کښې حديث دې چې کله الله ﷻ زمکه پيداکړه نو زمکه په خوزيدو شوه.الله ﷻ په دې باندې غرونه پيدا کړل او دې کښې ئې ښخ کړل چې دې سره د زمکې خوزيدل بند شو.فرښتو ته دغرونو په داسې سنګين پيدانش باندې تعجب اوشو نو دالله رب العزت نه ئې تپوس اوکړو چې ستا په مخلوق کښې د غرونو نه هم زيات سخت څوك شته دې؟ نو الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې آو ددې نه سخت اور دې او ددې(اور نه)سختې اوبه دی او ددې(اوبو نه)سخته هوا ده.بيا ئې تپوس اوکړو چې ددې نه زيات سخت څوك دی نو رب ذوالجلال اوفرمائيل چې ابن آدم،هغه داسې صدقه ورکوی چې دده ګس لاس هم د ښی لاس نه نهٔ خبريږی ([2])د آيت الکرسی په تفسير کښې هغه حديث تير شوې دې چې په هغې کښې دی چې بهترينه صدقه هغه ده چې په پټه ورکړې شی يو حاجتمند ته.او ددې باوجود چې د مال قلت هم وی او بيا هم د الله ﷻ په لارکښې خرچ کوی.بيائې د دې آيت تلاوت اوفرمائيلو.( ابن ابی حاتم ).([3])

**د الله تعالی د غصې د ختميدو سبب:-** يوحديث شريف کښې دی چې پټه صدقه ورکول د الله ﷻ غضب لره ختموی.([4])

**د دې ايت شان نزول:-** شعبی رحمة الله عليه فرمائی چې دا آيت د ابوبکرصديق ﷺ او د حضرت عمرفاروق ﷺ باره کښې نازل شوې دې.عمر ﷺ خو خپل نيم مال د نبی اکرم ﷺ خدمت کښې حاضر کړو او ابوبکرصديق ﷺ خپل ټول مال راوړو.نبی اکرم ﷺ ترې تپوس اوکړو چې د خپل کور والو دپاره دې څه پرينښودې دی؟عمرفاروق ﷺ جواب ورکړو چې هم دومره مې هغوی ته پرينښودې دې.ابوبکرصديق ﷺښکاره کول نه غوښتل.او پټ په پټه ئې هر څه نبی اکرم ﷺ ته حواله کړل.خو کله چې د ابوبکرصديق ﷺ نه تپوس اوشو نو ابوبکرصديق ﷺ جواب کښې اوفرمائيل چې د الله ﷻ وعده او د رسول الله ﷺوعده کافی ده.عمر فاروق ﷺ چې کله دا واوريدل نو په ژړا شو او وې فرمائيل چې په الله تعالی مې دې قسم وی چې د نيکئ کوم يوکار ته مونږ وراندې شوی يو نو ائې ابوبکرصديق ﷺ تهٔ مونږ په هغې کښې د ټولو نه مخکښې موندلې ئې([5])

**د نفلی او فرضی صدقې په ورکړه کښې فرق:-** د آيت الفاظ عام دی چې صدقه که فرض وی اوکه نفلی

---

[1]) صحيح بخاری کتاب الاذان باب من جلس فی المسجد ينتظر الصلاة: ٦٦٠، صحيح مسلم: ١٠٣١)-

[2]) احمد: ١٢٤/٣، ترمذی کتاب تفسير القرآن باب حکمة خلق الجبال فی الارض ... ٣٣٦٩، وسنده حسن)- .

[3]) احمد: ١٧٨/٥، مختصرا وسنده ضعيف جدا)-

[4]) ترمذی کتاب الزکاة باب ماجاء فی فضل الصدقة : ٦٦٤،؟؟ وسنده ضعيف عبدالله بن عيسی الخزاز ضعيف راوي دې)-

[5]) ترمذی کتاب المناقب : ٣٦٧٥، وسنده حسن)-.

زکوٰة یا خیرات په پټه ورکول د ښکاره ورکړې نه افضل ده. لیکن ابن عباس ﷛ نه مروی دی چې نفلی صدقه په پټه ورکولوکښې اویا چنده فضیلت دی. لیکن فرض زکوٰة په ښکاره ورکول پنځویشت چنده فضیلت لري.

قوله تعالی:- وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّـَٔاتِكُمْ ؕ

بیا فرمائی چې د صدقې بدله کښې به الله ﷻ ستاسو ګناهونه معاف کړي او خاص کر په هغه وخت کښې کله چې داپه پټه ورکړېشي. تاسوته به ډیرې نیکۍ ملاویږي، ستاسودرجې به اوچتیږي او ستاسو د ګناهونو کفاره به جوړیږي. ﴿يُكَفِّرُ﴾(په ضمې د را سره)لره ﴿يُكَفِّرْ﴾ په سکون د را سره)هم لوستلې شوې دې. په دې صورت کښې به دا د جواب شرط په محل باندې عطف وی چې ﴿فَنِعِمَّا هِيَ ۚ﴾ دې لکه ﴿فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن مِّنَ الصَّالِحِينَ﴾ کښې ﴿وَأَكُن﴾.

قوله تعالی:- وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ

الله ﷻ باندې ستاسو هیڅ یو نیکی اوبدی، سخاوت او بخیل توب، پټوالی او اظهار، نیک نیت او د دنیا طلب کول پټ نه دی هغه به درله پوره پوره بدله درکوی.

لَيْسَ عَلَيْكَ

| نشته | په تاباند ذمه واری

اوپه تاهیڅ ذمه واری نشته خلقو ته

هُدٰىهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ

دهدایت کولو هغوی ته | لیکن الله | هدایت کوی | هغه چاته | چې اوغواړی | اوهغه چې تاسو ئې خرج کوئ | دمال نه

دهدایت ورکولو | بلکه الله چې چاته اوغواړی نو هغه ته هدایت اوکړی | اوتاسوچې هرڅه خیرات کوئ

خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ ؕ وَمَا تُنْفِقُوْنَ اِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ اللّٰهِ ؕ وَمَا تُنْفِقُوْا

نو بهتر دی | دپاره دنفسونو ستاسو | اونۀ خرج کوئ تاسو | مګردپاره دحاصلولو | درضا دالله | اوهغه چې خرج کړئ تاسو

نودخپلې ښیګړې دپاره ئې کوئ | اوداخیراتونه خوتاسوځکه کوئ چې الله درنه رضا شي | اوهغه چې تاسوخرج کوئ

مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ۝ لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا

دمال نه | پوره به درکړې شی تاسو ته | اوستاسونه به کمې نشی کولې | امداددې دپاره دفقیرانو | هغوچې بند کړې شوی دی

دمال خپل نه هغه به درته پوره پوره واپس درکړې شی | اوپه تاسوبه ظلم نه کیږی | داخیراتونه دهغه فقیرانو حق دی چې بندی

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِي الْاَرْضِ ؗ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَآءَ

په لار دالله کښې | چې طاقت نۀ لری | دګرزیدلو | په زمکه کښې | ګمان کوی په هغوئ | ناخبره خلق | دمالدارانو

شوی وی دالله په لار کښې (دکاروباردپاره)، چرته تلې راتلې نشی | ناخبره سړې پرې دمالدارو ګمان کوی

مِنَ التَّعَفُّفِ ۚ تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ۚ لَا يَسْـَٔلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا ؕ

دوجې دنه سوال کولو نه | ته به پیژنې هغوئ | په نښو دهغوئ سره | نۀ کوی سوال دخلقونه | په سختئ سره

دسوال نه کولوپه وجه | ته ددوئ دمخونو نه اصلی حال معلومولې شې | دخلقو نه په سخته سوالونه نه کوی

| وَمَا تُنْفِقُوْا | مِنْ خَيْرٍ | فَاِنَّ اللّٰهَ | بِهٖ عَلِيْمٌ | اَلَّذِيْنَ | يُنْفِقُوْنَ | اَمْوَالَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه چي خرج کړئ تاسو | دمال نه | انو بيشکه الله | په هغې باند خبر دي | هغه کسان | چې خرج کوی | مالونه خپل |
| اوتاسوچې هرڅه مال خيرات کوئ انوالله پاک په هغې باندې ښه خبردې \| څوک چې خپل مالونه خرچ کوی | | | | | | |
| بِالَّيْلِ | وَالنَّهَارِ | سِرًّا | وَّعَلَانِيَةً | فَلَهُمْ | اَجْرُهُمْ | عِنْدَ رَبِّهِمْ |
| دشپې | اودورځې | په پټه | اوپه ښکاره | نودې دهغوئ دپاره | اجر دهغوئ | په نزددرب دهغوئ |
| دشپې اود ورځې په پټه اوپه څرګنده نو د هغوئ اجر خپل رب سره مقرر دې | | | | | | |
| وَلَا خَوْفٌ | عَلَيْهِمْ | وَلَا هُمْ | يَحْزَنُوْنَ | | | |
| اونه به وی يره | په هغوئ باندې | اونه به هغوئ | غمژن کيږی | | | |
| اونه به پرې چرې ويره راځی \| اونه به غمژن کيږی | | | | | | |

**قوله تعالى:- لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۗءُ**

**غير مسلمه رشته دارو سره صله رحمي:-**

**د دې ايت شان نزول:-** حضرت عبدالله بن عباس ﷠ فرمائی چې مسلمانانو به خپلومشرکانو رشته داروسره ښه سلوك کول نه خوښول.بيا حضرت نبی کريم ﷺ نه سوال اوشو او دا آيت نازل شو او هغوئ ته اجازت ورکړې شو.([1])

**د نبی کريم ﷺ د ايت نه وړاندې او وروستو عمل مبارک:-** فرمائی چې نبی اکرم ﷺ به فرمائيل چې صدقه دې صرف مسلمانانو ته ورکړې شی،هرکله چې دا آيت نازل شو نو حضرت نبی اکرم ﷺ اوفرمائيل چې سائل ته ورکوئ اګرچې هغه د هر مذهب وی.(ابن ابی حاتم )([2]) اسماء ﷠ والا روايت به د آيت ﴿لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ﴾ تفسير کښې راشي انشاء الله.

**قوله تعالى:- وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ**

**ستاسو نيکی ستاسو د خپل ځان د پاره ده:-** دلته فرمائی چې تاسو کومه نيکی کوئ خپل ځان دپاره به ئې کوئ.لکه چې فرمائی چې﴿مَنْ عَمِلَ صٰلِحًا فَلِنَفْسِهٖ﴾او ددې پشان نور آيتونه هم ډير دی.حسن بصری رحمة الله عليه فرمائی چې د ايماندارو هر خرج د الله ﷻ دپاره وی.اګر چې هغه پخپله خوری.

**قوله تعالى:- وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ**

**د نيت ښه والې:-** عطاء خراسانی دا مطلب بيانوی چې کله تاسو د الله ﷻ د رضا دپاره ورکړه اوکړه نو بيابرابره خبره ده چې اخستونکې ئې که هرڅوك وی اوڅنګه هم وی او څنګه اعمالووالاوی نووی دې.دا مطلب هم ډير ښه دې،حاصل دادې چې د ښه.نيت سره ورکولو والا اجر خو دالله ﷻ په ذمه ثابت شو،اوس که هغه مال نيك ته په لاس ورشی اوکه بد ته،مستحق ته يا غير مستحق ته د خپل قصد او خپل نيك نيت ثواب ملاؤ شو.حال دا چې ده د خپل مال خيال اوساته او بيا ده غلطی اوکړه نو دې سره د دهٔ ثواب نه ضائع کيږی،ددې وجې د آيت آخر کښې د بدلې ملاويدو بشارت دې.

**په ښهٔ نيت سره د صدقې ورکولو فائده:-** د بخاری شريف او مسلم شريف يو حديث کښې راغلی دی چې يو سړی قصد اوکړو چې نن شپه کښې به زهٔ صدقه ورکوم.اودا ئې واخستله او پټه ئې يو ښځې ته ورکړه او واپس راغلو.سحر دا خبره مشهوره شوه چې بيګاه يو سړی بدکارې ښځې ته خيرات ورکړې

[1]) النسائی فی التفسير: ۷۲، وسنده ضعيف الثوری ولاعمش مدلسان وعنعنا)-

[2]) ابن ابی حاتم: وسنده حسن)-.

دي.ده هم واوریدل او د الله ﷻ شکر ئې اداکړو.او بیا ئې خپل زړه کښې اوونیل چې بیګاه ته به بیا صدقه ورکوم.او صدقه ئې واخستله او اووتلو او يو سړی ته هغه صدقه لاس کښې کیخودله او واپس شو.سحر مشهوره شوه چې بیګاه چا يو مالدار سړی ته صدقه ورکړې ده.ده بیا الحمد الله اووئیل او اراده ئې اوکړه چې بیګاه له به په دریم خل صدقه ورکوم.بیا ئې د شپې صدقه ورکړه او ده ته معلومه شوه چې هغه غل وو.نو وې وئیل چې اې الله ﷻ زۀ ستا شکر ادا کوم زانیه ښځې ته په ورکړه،مالدار سړی ته په ورکړه،او دې غل ته په ورکولو.څه ګوری چې يو فرښته راغله او ده ته وائی چې ستا درې واړه صدقې قبولې شوې.شاید چې بدکاره ښځه مال اخستلو سره د بدکارئ نه منع شی،او شاید چې مالدار ته عبرت حاصل شی او هغه کښې هم د صدقې ورکولو عادت راشی او شاید چې غل د غلا نه منع شی.(۱)

قوله تعالى:- لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ

**سپین ایرئ ضرورت مند د صدقیګ زیات مستحق دي:-** بیا فرمائی چې صدقه دهغه مهاجرینوحق دې چې دنیاوی تعلقات ئې ختم کړې دی او وطن ئې پرېښودې دې او د خپلې قبیلې او خاندانونو نه ئې مخ اړولې دې او د الله ﷻ د رضا د پاره د پیغمبر ﷺ د خدمت دپاره راغلی دی او د دوی د معاش څه ذریعه نشته دې

قوله تعالى:- لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِي الْاَرْضِ

او نه دوی سفر کولې شی چې لاړشی او خپل ځان دپاره روزی اوګټی.د«ضرب في الارض»معنی سفر ده لکه چې څنګه په «وَاِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْاَرْضِ»او په «يَضْرِبُوْنَ فِي الْاَرْضِ» کښې ده.

قوله تعالى:- يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ

د دوی د حالاتو نه چې څوك واقف نه دی،هغوئ د دوی د لباس او ظاهری حال او خبرو اترو نه دوی مالدار ګنړی.

**د مسکین پیژندګلنه:-** يو صحیح حدیث کښې دی چې مسکین صرف هغه نه دې چې در په در ګرځی او چرته نه وزته يو دوه کهجورې ملاؤ شی او يو نمړئ نیمه ورته ملاؤ شی او چرته نه ورته د يو وخت نیم روټئ ملاؤ شی بلکه مسکین هغه هم دې چې هغه سره دومره نه وی چې هغې سره دې بې پرواه شی او دۀ خپل حالت هم داسې نه وی جوړکړې چې دې سره هر سړې د ده دضرورت احساس اوکړی اوڅه احسان ورسره اوکړی اونه سوال کولو د هغوی عادت دې.(۲)نو دوی به د دوی د حالت نه پیژنی.دا په صاحب بصیرت باندې پټه نه ده.لکه بل ځائې کښې فرمائی چې«سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ»د دوی نخښې د دوی په مخونوباندې دی او فرمائی چې «وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِيْ لَحْنِ الْقَوْلِ»تاسو به دوی ددوی دلب لهجې نه اوپیژنئ.

**مومن د خدائې په نور سره کتل کوی:-** سنن کښې يو حدیث کښې دی چې د مومن د دانائی نه بچ اوسئ هغه د الله ﷻ د نورسره ګوری.(۳) واورئ دقرآن پاك فرمان دې چې «اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِيْنَ»يقین سره دې کښې د بصیرت والو دپاره نخښې دی،دا خلق په هیڅا باندې بوج نه دی.

[لَا يَسْـَٔلُوْنَ النَّاسَ]او ځانه په زړورتیا سره سوال نه کوی.او بیا هم ځانه نه غواړی چې کله دوی سره څه وی.او چې چاسره څه وی او بیا هم هغه سوال کوی نو هغه ته خلقو پسې انختیدونکې وئیلې شی.

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب اذا تصدق علی غنی وهو لا یعلم : ۱۴۲۱، صحیح مسلم: ۱۰۲۲)-

(۲) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب قول الله تعالی ( لا یسئلون الناس الحافا.....) ۱۴۷۶، صحیح مسلم: ۱۰۳۹)-

(۳)ترمذی کتاب تفسیر باب ومن سورة الحجر ۳۱۲۷، وهو ضعف عطیه عوفی راضی ضعیف دې)-

**قوله تعالى:-** ﴿لَا يَسْـَٔلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا﴾

**اصل مسکین څوک دي:-** نبی اکرم ﷺ فرمانی چې یو دوه کهجورې او یو دوه نمړئ اخستلو والا مسکین نه دې بلکه حقیقت کښې مسکین هغه دې چې باوجود حاجت نه خود داره دې او سوال نه بچ اوسی. ګورئ قرآن پاك وانی چې﴿لَا يَسْـَٔلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا﴾دا حدیث ډیرو کتابونوکښې ډیرو سندونو سره مروی دې.(۱)

**د سوال نه کولو فضیلت:-** د قبیله مزینه یو سړی ته د هغه مور فرمانی چې ته هم لاړشه او د نبی اکرم ﷺ نه څه اوغواړه لکه څنګه چې نور خلق غواړی. هغه فرمانی چې کله زه لاړم نو نبی اکرم ﷺ خطبه ورکوله او فرمانیل ئې چې کوم سړې د سوال نه ځان بچ کړی نو الله ﷻ به هم هغه د سوال نه بچ کړی. او چې کوم سړې بې پرواهی اختیاروی نو الله ﷻ به هم دې بې نیازه کړی. چې کوم سړی سره د پنځو اوقیو برابر مال وی او بیا هم هغه سوال کوی نو دا خلقو پورې انختو والا سوالګرې دې. ما زړه کښې اوونیل چې مونږ سره خو یو اوښه شته دې او د پنځو اوقیو نه ډیره زیاته بهتره ده. یو اوښه غلام سره ده او هغه هم دپنځواوقیو نه زیاته ده. نو زه د سوال کولو نه بغیر واپس شوم.(۲)او یو روایت کښې دی چې دا واقعه دابوسعید ﷺ ده، په هغې کښې دی چې نبی اکرم ﷺ ماته اوفرمانیل چې څوك دخلقو نه ډډه کوی (یعنی سوال ترې نه نه کوی ) نو الله ﷻ به ده لره کافی شی. اوچې څاسره یو اوقیه وی او هغه سوال کوی نو هغه خلقو پورې انختو والا سوالګرې دې. د هغه د اوښې نوم یاقوته وو.(۳)

**یو اوقیه څومره وی:-** یو اوقیه د څلویښتو درهموبرابر وی. اوڅلویښت درهمه تقریبًا د یوکم سلو روپو. یو حدیث کښې دی چې څوك د بې پرواهئ لائق وی او هغه بیا هم سوال کوی نو د قیامت په ورځ به دده په مخ د دهٔ دا سوال زخم(په شکل کښې موجود)وی. او د ده خوله به لاتدې وی. خلقو اوونیل چې څومره ورسره وی نو؟ نو وې فرمانیل چې پنځوس درهمه یاددې قیمت سرهٔ زر(۴)داحدیث ضعیف دې.

**د ابوذر ﷺ عمل:-** شام کښې یو قریشی وو چې کله هغه ته معلومه شوهٔ چې ابوذر ضرورت مند دې نو درې سوه اشرفئ ئې دوی ته اولیږلې. دوی خفه شو او وې فرمانیل چې هغه د الله ﷻ بنده ته بل څوك مسکین ملاؤ نشو چې دا ئې ماته راولیږلې. ما خو د نبی اکرم ﷺ نه آوریدلی دی چې چا سره څلویښت درهمه وی او هغه بیا هم سوا ل کوی نو دې خلقو پورې انختو والا سوال ګرې دې. او د ابوذرﷺ کور والو سره خوڅلویښت درهمه شته دې. څلویښت چیلئ هم ورسره شته دې او دوه غلامان هم ورسره شته دې.(۵)یو روایت کښې دی چې نبی اکرم ﷺ دا الفاظ هم فرمانیلی دی چې چا سره څلویښت درهمه وی او هغه سوال کوی نو دې الحاف کولو والا او د شګې پشان دی (۶)،

**قوله تعالى:-** ﴿وَمَا تُنفِقُوا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ﴾

بیا فرمانی چې ستاسو صدقات د الله ﷻ علم کښې دی او کله چې تاسو پورا محتاج شئ، الله ﷻ به هغه وخت کښې تاسو ته بدله درکوی او د هغه پاك ذات نه هیڅ څیز پټ نه دې.

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب قول الله تعالی ( لا یسئلو الناس الحافا..) : ۱٤۷٦، صحیح مسلم: ۱۰۳۹)-

(۲) احمد : ٤/۱۳۸، وسنده حسن)-

(۳)ابوداود کتاب الزکاة باب ومن یعطی صدقة .. ۱٦۲۸، وسنده حسن نسائی:کتاب الزکاة باب ومن الملف:۲۵۹٦،وسنده حسن)-

(٤) ابوداود کتاب الزکاة باب من یعطی من الصدقة وحدالغنی : ۱٦۲٦، وسنده حسن حکیم بن جبیر ضعیف راوی دې ،ترمذی : ٦۵۰، نسائی: ۲۵۹۳، ابن ماجة: ۱۸٤۰)-

(۵) الطبرانی فی الکبیر : ۱٦۳۰،؟؟ سنده ضعیف لا نقطاع)-

(٦) نسائی کتاب الزکاة باب من الحلف : ۲۵۹، وهوحسن او نسائی کښې ( الحاف کولو والا په مثل دشګې دې )والا الفاظ نشته )-

**قوله تعالی:-الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُم بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَعَلَانِيَةً**
**شپه ورځ په پټه او ښکاره د الله ﷻ لار کښې خرچ کوی:-** بیا د هغه خلقو تعریفونه بیانیږی چې هغوئ هر وخت د الله ﷻ لار کښې د الله ﷻ د فرمان مطابق خرچ کوی نو هغوئ ته به اجر ملاویږی

**قوله تعالی:-وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ**
او دوی به د هرې ويرې نه امن کښې وی.د بچو په پرورش به هم دوی ته ثواب ملاویږی.لکه څنګه چې د بخاری شریف او مسلم شریف روایت کښې دی.

**د خرچ کولو ثواب:-** د مکې د فتح په کال چې کله نبی اکرم ﷺ دسعد بن ابی وقاص ﷺ پوښتنې له ورغلو نو دا ئې اوفرمائیل،یو روایت کښې دی چې دا ئې د حجة الوداع په کال فرمائیلی وو.چې ته څه د الله ﷻ د رضا د پاره خرچ کوې نو د هغې بدله کښې به الله ﷻ ستاسو درجې اوچتې کړی تر دې چې ته خپلې بی بی ته د خوراك دپاره څه ورکړې د هغې بدله هم.(۱) مسند احمد کښې دی چې مسلمان څه د ثواب په نیت خپلو بچو باندې خرچ کوی نو هغه صدقه ده.(۲)

**د دې ایت شان نزول:-** نبی اکرم ﷺ فرمانی چې ددې آیت شان نزول د مسلمان مجاهدینو هغه خرچ دې چې په خپلوآسونو باندې خرچ کوی.(۳)ابن عباس ﷺ نه هم دا مروی دی.

**د شان نزول په حقله دویم روایت:-** جبیر رحمة الله علیه فرمانی چې علی ﷺ سره څلور درهمه وو.چې په هغې کښې ئې یو د الله ﷻ په لار کښې ورکړو.یو ئې د ورځې ورکړو یو ئې د شپې ورکړو یو ئې په ښکاره ورکړو او یو ئې په پټه ورکړو دا آیت نازل شو.دا روایت ضعیف دې(۴)دویم سند سره هم مروی دې.د الله ﷻ اطاعت کښې چې دې خلقو کوم مال خرچ کړو د هغې بدله به د قیامت په ورځ د خپل پرودګار د طرفنه ورته ملاویږی.بې ويرې او بې غمه دا خلق دی.

| الَّذِينَ | يَأْكُلُونَ | الرِّبٰوا |
|---|---|---|
| هغه کسان | اچې خوری | سود |

څوک چې سودخوری

| لَا يَقُومُونَ | إِلَّا | كَمَا | يَقُومُ | الَّذِي | يَتَخَبَّطُهُ | الشَّيْطٰنُ | مِنَ الْمَسِّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نه ودریږی هغوئ | مګر | لکه څنګه چې | اودریږی | هغه کس | اچې پاګل کړې وی هغه لره | شیطان | په لاس وروړلو سره |

هغوئ به نه پاسی خودهغه چاپه شان چې شیطان په لاس لګولو سره خبطی کړې وی

| ذٰلِكَ | بِأَنَّهُمْ | قَالُوا | إِنَّمَا الْبَيْعُ | مِثْلُ | الرِّبٰوا | وَأَحَلَّ اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دا | په دې وجه | چې هغوئ | وائی | چې تجارت | په شان | دسود دې | اوحال دا چې حلال کړې دې الله |

داخکه چې دوئ وائی چې سوداګری(خوهم)دسود په شان ده |اودا عجیبه ده چې الله سوداګری حلاله

---

(۱) صحیح بخاری کتاب کتاب الوصایا باب ان یترک ورثته اغنیاء خیر: ۲۷۴۲، صحیح مسلم: ۱۶۲۸)-
(۲) احمد: ۱۲۰/٤، صحیح بخاری کتاب النفقات باب فضل النفقة علی الاهل: ۵۳۳۱، صحیح مسلم: ۱۰۰۲)-
(۳) ابن ابی احاتم :؟؟ وسنده ضعیف جدا)-
(۴) ددې سند کښې ارسال دې اوددې سند کښې ابن مجاهد عبدالوهاب راوی دې او ده ته امام احمد ضعیف وئیلی دی،امام بخاری او وکیع وائی چه دده خپل پلار نه سماع نشته دې (المیزان : ۶۸۲/۲) نو دا سخت ضعیف دې)-

| الْبَيْعَ | وَحَرَّمَ | الرِّبٰوا | فَمَنْ | جَآءَهٗ | مَوْعِظَةٌ | مِّنْ رَّبِّهٖ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| سوداګرۍ | اوحرام کړې ئې دې | سود | نو هغه څوک | چې راشي هغه ته | نصيحت | د طرفه درب هغه نه |
| کړې ده | اوسود ئې حرام کړې دې | ....نوچاته چې دخپل رب د طرفه نصيحت راغلو | | | | |
| فَانْتَهٰى | فَلَهٗ | مَا | سَلَفَ | وَاَمْرُهٗٓ | اِلَى اللّٰهِ | |
| نو منع شوا | نو دې هغه لره | هغه | چې مخکښې ئې اغستې دې | او معامله دهغه | حواله ده الله ته | |
| اوهغه(دسود اخستونه) منع شوا | نو(پخواني سود)ورته معاف شوا | اودهغه معامله الله پاک ته اوسپارلې شوه | | | | |
| وَمَنْ | عَادَ | فَاُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ | النَّارِ | هُمْ | فِيْهَا |
| اوهغه څوک | چې بيا ئې اوکړوسودا | نوهغوئ | خاوندان | د اوردي | هغوئ به | په هغې کښې |
| اوچاچې سودي کاروبار ته بيا واپس اوکړه | نو هم هغوی دوزخيان دي | هميشه به په کښې پراته وي | | | | |
| خٰلِدُوْنَ۝ | | | | | | |
| هميشه وي | | | | | | |

قوله تعالى:- اَلَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ الرِّبٰوا

**د سود خورو عبرتناک انجام:-** مخکښې د هغه خلقو بيان وو چې نيکان دي او صدقه ورکوي او زکوة ورکوي او دحاجت مندو اود رشته داروخبر اخلي،هرحال کښې او هروخت کښې د نورو په کار راځي.نو اوس دهغه خلقو بيان دې چې دنيا لره يو طرفته او غصب کونکي او ظلم سره او په ناحقه د خپلو او پردو نه په زور اخستونکي او د خلقو مال لره په ناجائزه اخستونکي دي.

قوله تعالى:- لَا يَقُوْمُوْنَ اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِيْ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ

فرماني چې کله داسود خواره خلق د قبرونو نه راپورته کيږي نو د ليونو او پاګلانو او بې هوشو خلقو په رنګ به راپورته کيږي.ليوني او ديوانه به وي او دوی به اودريدلې هم نه شي.﴿مِنَ الْمَسِّ﴾نه پس د ﴿يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾لفظ هم يو قرات کښې راغلې دې.

**الله سره جنګ ته تيار شئ:-** او دوی ته به اووئيلې شي چې اوس وسله واخلئ او خپل رب سره د جنګ دپاره تيار شئ.

**د سود خورو حال احوال په حواله د شب معراج:-**شب معراج کښې نبی اکرم ﷺ څه خلق اوکتل چې د هغوئ خيټې د چاټو په شان غټې وې نو تپوس ئې اوکړو چې دا کوم خلق دي؟ورته اووئيلې شو چې داسود خواره دي[1]او يو روايت کښې دي چې د دوی په خيټو کښې ماران وو چې د بهر نه په نظر راتلل.[2]او يو طويل حديث کښې دي چې کله مونږ يوسور رنګه نهر ته اورسيدو اود هغې اوبه د وينې په شان سرې وې نو ما اوليدل چې په هغې کښې څه هغه خلق دي چې په مشکله به غاړې ته راتلل او فرښتو په کاڼړو ويشتل او واپس کول به ئې.هغوئ به د دوی خولې وازولې او په دې کښې به ئې يو کاڼړې کيخودلو،بيا به هغوئ اوتښتيدل او بيا به داشان کيدل.رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چې دا کوم خلق دي نو ورته اووئيلې شو چې دا د سودخورو ډله ده.[3]

---

[1] البيهقي وسنده ضعيف جدا مردود)-.

[2] ابن ماجة كتاب التجارات باب التغليظ في الربا: ۲۲۸۳،وسنده ضعيف ابو الصلت مجهول اوعلي بن زيد ضعيف راوی دې)-

[3] صحيح بخاری كتاب التعبير باب تعبير الرويا بعد صلاة الصبح : ۷۰۴۷)-

قوله تعالی:- ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْۤا اِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا
دا وبال په دوی باندې په دې وجه دې چې دوی به وئیل چې تجارت هم د سودپشان دې،دا اعتراض ددوی په شریعت باندې او احکام الهی باندې وو.او دوی به دې سود ته بیع حلال وئیله.یاد ساتئ چې دوی به د سود قیاس په بیع باندې نه کولو ځکه چې مشرکانو هم دې بلې طریقې سره د بیع کولو د مشروعیت قائل نه وو.اوددې وجې هم که دوی قیاس کولې نوداسې به نې وئیل سودپه مثال دبیع دې.ددوی مطلب دا ووچې دواړه یو شان څیزونه دی ،بیا څه وجه ده چې یودې حلال اوبل دې حرام وی.
قوله تعالی:- وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا
نو دوی ته جواب ورکولې شی چې دا حلت او حرمت صرف دالله په حکم کیږی او دا هم ممکن دی چې دا جمله هم د کافرو دقول دې نو دوی ته لطافت سره یو بل جواب ورکولې شی چې د دې خبرې د علم لرلو نه باوجود چې دا الله ﷻ حرام کړې دې نوبیا څنګه اعتراض کوئ؟ علیم او حکیم دالله ﷻ احکامو باندې اعتراض کولو والا تاسو څوك یئ؟ د هغه پاك ذات نه د تپوس کولو والا څوك دې،
**د ټولو کارونو اصلیت الله ﷻ معلوم دې:-** دټولو کارونو اصلیت او د دې عالم اصل خو هغه پاك ذات دې.هغه پاك ذات ته ښه معلوم دی چې د بندګانوحقیقی نفع په څه کښې ده او نقصان په کوم څیزکښې دې،نوهغه پاك ذات نفع والا څیز حلالوی او نقصان والا ټول څیزونه حراموی.هیڅ یو مور به په خپل بچی رودونکی بچی دومره مهربانه نه وی چې څومره الله ﷻ په خپلو بندګانو مهربان دې.که هغه پاك ذات منع کول کوی(د یو څیز نه)نو په هغې کښې مصلحت وی اوکه حکم کوی نو په هغې کښې هم مصلحت وی.چې څوك د الله ﷻ احکام واوری نو د هغه مخکښې روستی ټول ګناهونه معاف کیږی لکه فرمانی چې﴿عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ﴾او څنګه چې رسول الله ﷺ د فتح مکې[1] په موقع فرمائیلی وو چې د جاهلیت ټول سودونه زمادپښولاندې برباد شو،رومبې سود چې زۀ نې ختمول غوارم هغه د عباس سود دې ([2])نو په جاهلیت کښې چې کوم سودونه اخستې شوی دی د هغې دواپس کولو حکم نشته دې.
قوله تعالی:- فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ
یو روایت کښې دی چې د زیدبن ارقم ؓ ام ولده ام بحنه عائشه ؓ لره راغله او وې وئیل چې ما زید باندې یوغلام په اته سوه درهمه خرڅ کړې وو اوما ورته وئیلی وو چې کله هغه سره رقم راشی نوماته دې را کړی.دې نه پس هغه ته د نقدو ضرورت شو نو هغه د وخت نه مخکښې بیا ماباندې په شپږ سوه خرڅ کړو.عائشه صدیقه ؓ ورته اوفرمائیل چې تا او هغه دواړو ډیر بد اوکړل.او دا بالکل د شرع خلاف دی.ورشه او زید ته اووایه که هغه توبه نه کوی نو د هغه جهاد به هم خراب شی ( یعنی د جهاد ثواب به ورته هم نه ملاویږی)چې کوم(جهاد)هغه رسول الله ﷺ سره کړې وو.نو ما اووئیل که زۀ هغه نه هغه دوه سوه پریږدم چې کومې به هغه ماته راکوی.او صرف شپږ سوه ترې واخلم چې ماته زما پورا اته سوه درهم ملاؤ شی.نو عائشه ؓ اوفرمائیل چې بیا په کښې څه خبره نشته.بیا عائشه ؓ ﴿فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ﴾آیت اولوستلو.(ابن ابی حاتم)([3]) دا اثر مشهور دې او دلیل دې د هغه خلقو چې د عینة مسئلې

[1] اصل نسخه کښې داسې دې خو صحیح دادی چه حضرت نبی کریم ﷺ دحجة الوداع په موقع دا ارشاد فرمائیلې وو لکه څنګه چه مخکښې سورة بقره کښې ایت نمبر ۲۷۸ کښې دابن الاحوص روایت کښې ددې صراحت موجود دې)-

[2] صحیح مسلم کتاب الحج حجة النبی ﷺ : ۱۲۱۸ ابوداود کتاب البیوع باب فی وضع الربا: ۳۳۳٤ ترمذی: ۳۰۸۷، ابن ماجة: ۳۰۵۵، ابن حبان: ۹٤٤۹)-

[3] ابن سعد : ٤٦۸۷، دارقطنی : ۵۲/۳، ح/۲۱۱، او وې فرمائیل چه ام محبة او عالیه مجهول او ناقابل احتجاج دی داروایت صحیح سند سره بیهقی : ۳۲۳/۵ کښې موجود دې)-

ته حرام واني.په دې باره کښې نور هم احاديث دی او هغه په کتاب الاحکام کښې دی.والحمدلله.

**قوله تعالى:-** وَمَنْ عَادَ فَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ

**دسودحرمت او قسمونه:-** بيا فرمائي چې چا د سود مسئله واوريده اوبيا هم هغوئ سود اخلی نو هغوئ د سزا مستحق دی.هغه به هميشه جهنم کښې وی،

**سودخور سره د الله د رسولﷺ دجنګ کولو اعلان:-** هرکله چې داآيت نازل شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې څوک اوس هم مخابره نه پرېږدی نو هغه دې د الله رسول ﷺ سره جنګ د پاره تيار شی.(ابوداود) [۱]

**مخابره:-** مخابره دې ته واني چې يو کس دبل کس زمکه اوکری او دا شرط په کښې کيږدی چې د زمکې ددې حصې نه څومره (فصل) اوشو هغه زما او باقی به ستاوی.

**مزابنه:-** مزابنه دې ته واني چې په اونه کښې څومره کهجورې دی هغه زما به ددې بدله کښې تاته دخپل طرفنه نورې تيارې کهجورې درکړم.

**محاقله:-** او محاقله دې ته واني چې په پتی کښې په وږوکښې څومره غله ده د هغې بدله کښې د خپل طرفنه څه غله ورکول او هغه اخستل،دا ټول صورتونه شريعت حرام کړی دی چې سود بالکل د مونږه اوباسی.څکه په دې صورتونو کښې صيح طور سره نشی معلوميدې.بعضې علماء کرامو ددې څه علتونه راويستی دی او بعضو څه.يو جماعت خپل علت باندې قياس اوکړو او دهغه ټول کاروبار نه ئې منع اوکړه چې په کوموکښې داعلت مونديې شو.اوبل جماعت دبل علت په وجه.حقيقت دادې چې مسئله لږه مشکل ده او تر دې عمر بن خطاب ﷺ فرمائي چې افسوس دريومسئلو باندې زۀ پورا اونه رسيدم.د نيکه دميراث د کلاله مسئله او د سود صورتونو باندې.[۲]

**چې په کومو څيزونوکښې د سود يا د حرامو شک وی نو د هغې بچ کيدل:-** يعنی بعضې کاروبارونه په دې صورتونوکښې چې په هغې کښې د سود شك وی،بيا چې کوم وسائل هغې ته د رسيدو دپاره دی، هر کله چې دا حرام دی نو هغه وسائل به هم حرام وی لکه څنګه چې هغه څيز واجب کيږی چې د هغې نه بغيرڅه واجب پورا کيدو والا نه وی.د بخاری شريف او مسلم شريف حديث کښې دی چې حلال ښکاره دی اوحرام هم ښکاره دی.ليکن څه کارونه مينځنی د شک دی،دې شك والا څيزونو نه بچ کيدو والا خپل دين او خپل عزت بچ کړو.او دې شکی څيزونو کښې پريوتونکې حرامو کښې پريوتونکې دی.لکه څنګه چې يو شپونکې په يو صحرا کښې خپل څناور څروی،ممکن دی چې يو څناور دې صحرا ته هم ورشی.[۳]سنن کښې حديث دې چې کوم څيز تا په شك کښې اچوی نو هغه پرېږده او هغه څيز اختيار کړه چې دشك نه پاك وی.[۴] اوبل حديث کښې دی چې ګناه هغه ده چې زړه ئې اونه منی اوپه طبيعت کښې شك پيدا کړی.او خلق ددې په خبريدو ښه نه ګڼړی [۵]، يو روايت کښې دی چې د خپل زړه نه د فتوئ تپوس اوکړه اګر چې خلق هم فتوئ ورکوی.[۶]

ابن عباس ﷺ فرمائي چې د سود حرمت د ټولو نه آخر کښې نازل شو.( بخاری ) [۷]

**د سود باره کښې د عمرﷺ قول:-** عمر فاروق ﷺ به دا فرمائيل چې ماته ددې پورا تفسير راونه رسيدو او

---

[۱]) ابو داود کتاب البيوع باب فی المخابرة:۳٤٠٦، وسنده ضعيف،ابوالزبير مدلس راوی دې او تصريح بالسماع ثابت نه دی،

[۲]) صحيح بخاری کتاب الاشربة باب ماجاء فی ان الخمر ما خامر العقل من شراب : ۵۵۸۸، صحيح مسلم: ۳۰۳۲)-

[۳]) صحيح بخاری کتاب الايمان باب فضل من استبرالدينة : ۱۵۲، صحيح مسلم: ۱۵۹۹، ابوداود: ۳۳۲۹)-

[۴]) ترمذی کتاب صفة القيامة باب حديث اعقلها وتوکل .... : ۲۵۱۸، وسنده صحيح،نسائی: ۵۷۱٤)-

[۵]) صحيح مسلم کتاب البر والصلة باب تفسير البر والاثم : ۲۵۵۳، ترمذی: ۲۳۸۹)-

[۶]) احمد: ۲۲۸ ؟؟وسنده ضعيف )-

[۷]) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة البقرة باب ( واتقوا يوما ترجعون فيه الی الله ) : ٤۵٤٤)-

رسول الله ﷺ وفات شو. اني خلقو اسود هم پريږدئ او هغه څيز هم پريږدئ چې په هغې کښې شك وي. ( مسند احمد ) (۱). عمرفاروق ؓ يو خطبه کښې اوفرمائيل چې شايد زۀ تاسو د هغه څيزونو نه منع کړم چې ستاسو دپاره نفع بخش وي. او ممکن دي چې تاسو ته داسې احکام درکړم چې ستاسو د مصلحت خلاف وي. واورئ! قرآن پاك کښې د ټولو نه آخري حرمت د سود نازل شو او دې نه پس د نبي کريم ﷺ وفات اوشو، افسوس چې دا ئې مونږ ته وضاحت سره بيان نه کړل. نو تاسو هر هغه څيز پريږدئ چې په کومې کښې شك وي. (ابن ماجه ). (۲)

**د سود گناه، د سود اسباب، او د سودي کاروبار سره پيوسته خلق:-** يو حديث کښې دي چې د سود درې اويا (۷۳) گناهونه دي چې په هغې کښې د ټولو نه وړه گناه داده چې انسان خپلې مور سره زنا اوکړي. د ټولو نه لوئې سود د مسلمان بې عزتي کول دي. ( مستدرك حاكم) (۳) فرمائي چې داسې زمانه به راشي چې خلق به سود خوري، صحابه کرامو ؓ تپوس اوکړو چې ټول په ټوله. وې فرمائيل چې څوك ئې نه خوري هغه ته به هم ددې گردوغبار خو اورسي. (مسنداحمد) (۴) نوگردوغبار نه د بچ کيدو دپاره هغه اسبابو ته نزدې ورتلل نه دي پکار چې کوم دې حرامو کارونو طرفته د تلو دپاره لار صفا کوي.

عائشه ؓ نه مروي دي چې کله دسورة بقره آخري آيت د سود باره کښې نازل شو نو نبي کريم ﷺ جمات کښې دا تلاوت کړو او د شرابو کاروبار او د شرابو تجارت ئې حرام اوگرځولو. (۵) بعض آئمه وائي چې دا شان شراب او د دې دکاروبار هر رنگ اخستل خرڅول وغيره هغه ټول وسائل ئې ختم کړل چې کوم دې ته رسي هغه رسول اکرم ﷺ حرام کړل.

**حرامو لره د حلالولو د حيلې او کوشش نه منع:-** صحيح حديث کښې دي چې الله ﷻ يهوديانو باندې لعنت اوکړو خکه چې کله هغوئ باندې چربي حرامه شوه نو هغوئ حيلې جوړې کړې او چربي به ئې ويلې کوله او خرڅوله به ئې او د دې قيمت به ئې خوړلو (۱). غرض دا چې دهوکې او حيلې سره حرام لره حلالولو کوشش هم حرام دې او موجب لعنت دې. داشان مخکښې حديث هم تير شوې دې چې په هغې کښې دي چې کوم يو سړې يو دريو طلاقووالا ښځې سره نکاح په دې غرض اوکړي چې د رومبي خاوند د پاره حلاله شي نو په ده باندې او په هغه خاوند دواړو باندې د الله ﷻ لعنت او غضب دې. د آيت ﴿تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ تفسير اوگورئ.

**د سود سره متعلق په هر يو څيز باندې د الله ﷻ لعنت:-** حديث شريف کښې دي چې سود خور باندې او په نورو خورونکي باندې او په دې باندې شهادت ورکونکي باندې او په دې باندې گواهي کوونکي باندې او ددې ليکونکي باندې د الله ﷻ لعنت دې (۲)، نو ظاهردي چې کاتب او شاهد ته خه ضرورت وو چې خامخا د الله ﷻ لعنت کښې خان راولي. مراد دادې چې په ظاهره د يو شرعي عقد په صورت

---

(۱) احمد: ۳٦/۱، ابن ماجة كتاب التجارات باب التغليظ في الربا: ۲۲۸٦؟؟ وسنده ضعيف قتاده مدلس اووده دسماع تصريح نشته دې)-

(۲) ددې سند کښې هياج بن بسطام دې اوده ته امام احمد صاحب متروك وئيلي دي (الميزان ۳۱۸/۴ رقم ۹۲۸۷، ابن ماجة كتاب التجارات باب التغليظ في الربا : ۲۲۷۵، مختصرا وهو حسن حاكم : ۳۷/۲)-

(۳) احمد: ٤۹٤/۲، ابو داود كتاب البيوع باب في اجتناب الشبهات : ۳۳۳۱، نسائي: ٤٤٦۰، ابن ماجة: ۲۲۷۸، ؟؟وسنده ضعيف حسن بصري مدلس دې او ددوي دابوهريره رضي الله عنه نه سماع ثابت نه ده)-

(۴) احمد: ٤٦/٦، صحيح بخاري كتاب الصلاة باب تحريم تجارات الخمر في المسجد: ٤۵۹، صحيح مسلم: ۱۵۸۰، ابوداود: ۳٤۹۰، ابن ماجة: ۲۳۸۲)-

(۵)

(۶) صحيح بخاري كتاب احاديث الانبياء باب ماذكر عن بني اسرائيل : ۳٤٦۰، صحيح مسلم: ۱۵۸۲)-

(۷) صحيح مسلم كتاب المساقاة باب لعن اكل الربا وموكله: ۱۵۹۷)-

راوړلو سره حیله اوکړي او سود لیکی او لولی خو ولي بيا هم ملعون دي.علامه امام ابن تيميه رحمة الله عليه ددې حيلو حوالو رد کښې يو مستقل کتاب د ابطال التحليل په نوم ليکلي دې.اودا په دې موضوع باندې يو بهترين کتاب دې.الله ﷻ دې په هغوئ رحمتونه نازل کړي او هغوئ نه دې راضی شي.

| يَمۡحَقُ اللّٰهُ | الرِّبٰوا | وَيُرۡبِي الصَّدَقٰتِ ؕ | وَاللّٰهُ | لَا يُحِبُّ | كُلَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| ختموی الله | سود | او زیاتوی صدقې | او الله | نه خوښوی | هر انسان |
| الله تعالى سود كموى | | اوصدقې زياتوى | ...........او دالله پاک | هيڅ | ناشکره بدعمله ... |

| كَفَّارٍ اَثِيۡمٍ | اِنَّ الَّذِيۡنَ | اٰمَنُوۡا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ |
|---|---|---|---|---|
| ناشکره بدعمله | بیشکه هغه کسان چې | ایمان راوړي | او اوکړي عمل نیک | او قائم کړي مونځ |
| سړي نه خوښوی | ...........اوخوک چې | ایمان را وړي | او نیک کارونه کوی | او دمونځ پابندی کوی |

| وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ | لَهُمۡ | اَجۡرُهُمۡ | عِنۡدَ رَبِّهِمۡ ۚ | وَلَا خَوۡفٌ | عَلَيۡهِمۡ | وَلَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوورکړي زکاة | ده دهغوئ | دپاره بدله دهغوئ | په نزد درب دهغوئ | اونه به وي يره | په هغوئ | اونه به هغوئ |
| اوزکاة ورکوی | نودهغوئ اجر | بیشکه خپل الله تعالی سره دې | | نه به په هغوئ څه قسم | ويره راشی | اونه |

| هُمۡ يَحۡزَنُوۡنَ |
|---|
| غمژن شی |
| بنه هغوئ غمژن شی |

**قوله تعالى:- يَمۡحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرۡبِي الصَّدَقٰتِ ؕ**

**سودی کاروبار د خیر وبرکت نه خالي وی:-** الله ﷻ فرمائی چې هغه سود لره بربادوی یعنی یا خو هغه بالکل تباه کوی یاددې خير و برکت ختموی،دنیا کښې هم هغه د تباهئ باعث جوړيږی او آخرت کښې هم د عذاب سبب جوړيږی.لکه بل ځائې کښې فرمائی چې ﴿ قُلۡ لَّا يَسۡتَوِي الۡخَبِيۡثُ وَالطَّيِّبُ ﴾ يعنی ناپاک او پاک برابر نه دی اگر چې تاسو لره ناپاک زياتئ کښې واچوی. او بل ځائې کښې فرمائی چې ﴿ وَيَجۡعَلَ الۡخَبِيۡثَ بَعۡضَهٗ عَلٰى بَعۡضٍ فَيَرۡكُمَهٗ جَمِيۡعًا فَيَجۡعَلَهٗ فِيۡ جَهَنَّمَ ؕ ﴾ يعنی خباثت والا څيزونو لره کوډ کولو والا به جهنم ته داخلولی شی. اوبل ځائې کښې دی چې ﴿ وَمَاۤ اٰتَيۡتُمۡ مِّنۡ رِّبًا ﴾ يعنی ستاسو ورکړې شوی سود سره چې تاسو کوم مال زياتول غواړئی هغه دراصل نه زياتيږی.همداشان عبدالله بن مسعود رضی الله عنه والا روايت کښې دی اگر چې سود کښې زياتې اوشی نو د دې انجام کمې وی.(مسند احمد).(١)

**د ذخیره اندوزئ ممانعت:-** دمسند يو بل حديث کښې دی چې اميرالمومنين عمرفاروق رضی الله عنه دمسجد نه راوتلو نو غله ئې اوکتله چې خوره وره پرته ده،تپوس ئې اوکړو چې دا غله چرته نه راغله ؟ نو خلقو ورته اووئيل چې د خرڅ دپاره راغلې ده.عمرفاروق رضی الله عنه دعا اوکړه چې ائې الله ﷻ ! په دې کښې برکت واچوې،خلقو اووئيل چې دا غله په گران نرخ خرڅولو دپاره جمع کړې شوې وه،تپوس ئې اوکړو چې چا جمع کړې وه؟خلقو اووئيل چې يو خو فروخ چې د عثمان رضی الله عنه مولى دې او بل ستاسو آزاد شوې

---

(١) احمد: ٣٩٥/١، ابن ماجة كتاب التجارات باب التغليظ فى الربا: ٢٢٧٩، وسنده صحيح )-

غلام.عمرفاروق ﷺ دواړه راوغوښتل او ورته ئې اوفرمائيل چې تاسو داسې ولې اوکړل؟هغوئ جواب کښې اووئيل چې مونږ ئې په خپلو مالونو اخلو چې کله غواړو نو اخلو به ئې او چې کله غواړو نو خرڅوو به ئې،مونږ ته اختيار دې.عمر فاروق ﷺ اوفرمائيل واورئ!اما د رسول الله ﷺ نه آوريدلی دي چې کوم کس مسلمانانو باندې په زيات نرخ خرڅولو د پاره غله ګيرډی(جمع کړي)نو الله ﷻ به هغه مفلس کړي يا به ئې جذامي کړي.په دې آوريدو سره فروخ خو اوفرمائيل چې زما توبه ده،زۀ الله ﷻ سره وعده کوم چې بيا به داکار نه کوم.ليکن د عمرفاروق ﷺ غلام هم دا اووئيل چې مونږ خو ئې په خپل مال اخلو او ددې نه نفع اوچتوو او خرڅوو ئې.په دې کښې څه حرج دې.د حديث راوی يحيی رحمة الله عليه فرمائي چې ما اوکتل چې هغه غلام په جذام مرض پريوتو.او د جذام مرض کښې به ګرزيدو.(١)ابن ماجه کښې دی چې کوم سړې دمسلمانانو غله په ګران نرخ خرڅولودپاره جمع کړي نوالله ﷻ به هغه مفلس او جذامی کړی (٢)

**قوله تعالى:- وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ**

بيا فرمائي چې هغه صدقه زياتوی.﴿ يربی﴾(بغير د تشديد د با ) کښې دويم قرات ﴿ يربی ﴾(په تشديد د با) هم دې.

**د پاکې ګټې صدقه الله ﷻ په خپل ښی لاس کښې اخلي:-** صحيح بخاری کښې حديث دې چې کوم سړې د خپلې پاکې ګټې نه يو کهجوره هم خيرات کړي نو هغه الله ﷻ په خپل ښی لاس کښې اخلی،بيا پالی لکه څنګه چې تاسو خلق بچی پالئ او د دې ثواب د غر برابر جوړوی.(٣)او پاکو څيزونو نه سوا ناپاك څيزونه قبول نه فرمائي.

**د يوې کهجورې د صدقې کولو ثواب د احد د غر برابر:-** يو بل روايت کښې دی چې د احد د غر برابر ورته ديوې کهجورې ثواب ملاويږی.(٤)اويو بل روايت کښې دی چې يولقمه ورته داحد دغربرابر ملاويږی.(٥) نو تاسو خيرات او صدقات ورکوئ.

بيا فرمائي چې کافران،نافرمان،زبان درازه،اوبدوکارونو کوونکو لره الله ﷻ نه خوښوی.مطلب دادې چې کوم خلق صدقې او خيرات نه ورکوی او الله ﷻ چې کومه وعده کړې ده په هغې صبر او شکر نه کوی او مال جمع کوی او بدو او خلاف شرع طريقو سره ګټه کوی او د خلقو مالونه باطلو او ناحقو طريقو سره خوري،دا د الله ﷻ دښمنان دی او دې ناشکرو او نافرمانو سره الله ﷻ محبت نه کوی.

**قوله تعالى:- إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ**

بيا د هغه بندګانوتعريف کوی چې د خپل رب احکام مني.مخلوق سره نيکي او احسان کوی.مونځونه کوی اوزکوة ورکوی او د قيامت په ورځ به دئولو تکليفونو او غمونو نه په امن کښې وی،هيڅ ويره به د دوی په زړه کښې نه وی بلکه دوی ته به الله ﷻ ډير انعامات ورکوی.

| يَاأَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | اتَّقُوا اللَّهَ | وَذَرُوا | مَا بَقِيَ |
|---|---|---|---|---|
| اي هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | اويريږئ دالله نه | او پريږدئ | هغه چې باقي پاتې دي |
| اي مؤمنانو | دالله تعالى نه ويريږئ | ................. | باقي سود ونه پريږدئ | |

(١) احمد : ٢١/١، ابن ماجة كتاب التجارات باب الحكرة والجلب: ٢١٥٥، مختصرا وسنده حسن خو د ذخيره کولو حرمت ددې سياق نه علاوه نورو رواياتو نه هم ثابت دی او ګورئ: صحيح مسلم: ١٢٠٥، ابوداود: ٣٤٤٧)-

(٢) احمد : ٢١/١، ابن ماجة كتاب التجارات باب الحكرة والجلب: ٢١٥٥، مختصرا وسنده حسن)-

(٣) صحيح بخاری كتاب الزكاة باب الصدقة من كسب طيب : ١٤١٠، صحيح مسلم: ١٠١٤)-

(٤) صحيح مسلم كتاب الزكاة باب قبول الصدقة من الكسب الطيب وتربيتها: ١٠١٤، ترمذی: ٦٦١، نسائی: ٢٥٢٦، ابن ماجة: ١٨٤٢)

(٥) ترمذی كتاب الزكاة باب ماجاء فی فضل الصدقة: ٦٦٢)-

مِنَ الرِّبٰوٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا فَاْذَنُوْا بِحَرْبٍ مِّنَ اللّٰهِ

دسو د نه | كه يئ تاسو | مومنان | خو كه اونه كړو تاسو | نوخبر شئ | په جنګ سره | د طرفه د الله نه

...... | كه تاسو په رښتيا مومنان يئ | او كه داسې مو اونه كړل نو د الله تعالى او د هغه د رسول د طرفه جنګ ته

وَرَسُوْلِهٖ ۚ وَاِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوْسُ اَمْوَالِكُمْ ۚ لَا تَظْلِمُوْنَ وَلَا

او د رسول د هغه نه | او كه تاسو توبه كړه | نو شته تاسو لره | اصل | د مالونو ستاسو | مه تاسو ظلم كوئ | او نه دې

جنګ ته تيار شئ | او كه تاسو (منع شئ) او توبه اوباسئ | نو خپل اصلي رقم ستاسو حق دې | مه ظلم كوئ او مه

تُظْلَمُوْنَ ۝ وَاِنْ كَانَ ذُوْ عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ اِلٰى مَيْسَرَةٍ ۚ وَاَنْ تَصَدَّقُوْا

په تاسو ظلم اوشي | او كه وو قرض اغستونكي | خاوندان د نادارئ | نو انتظار | د فراخئ پورې | او كه صدقه ئې كړئ تاسو

ظلم زغمئ | او كه د قرض دار لاس تنګ وي نو د لاس آزاديدو پورې ورته اوګورئ | او صدقه وركول

خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ

نو دا بهتره ده | ستاسو د پاره | كه تاسو | پوهيږئ | او اويريږئ | د هغه ورځې نه | چې واپس كيږئ به تاسو په هغې كښې

ستاسو د پاره ډير بهتر دي | كه تاسو پوهيږئ | او د هغې ورځې نه اويريږئ چې په هغې كښې به الله تعالى ته

اِلَى اللّٰهِ ۗ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝

الله ته | بيا به پوره وركړې شي | هر نفس ته | بدله د هغه عمل چې كړې ئې وي | او په هغوئ به | هيڅ ظلم نه كيږي

مخامخ كيږئ | بيا به هرچا ته د خپل كار (بدله) پوره پوره وركولې شي | او هيڅ زياتې به ورسره نشي كولې

**د الله ﷻ د اصل مال د اخستلو او د سود د پريخودلو حكم:-** الله ﷻ ايماندارو ته د تقوى حكم كوى او د هغه كارونو نه ئې منع كوى چې په هغې سره هغه ناراضه شي او رضامندى ئې لرې شي.

قوله تعالى:- يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَذَرُوْا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰوٓا

نو فرمائي چې د الله ﷻ لحاظ اوساتئ او تولو كارونو كښې د الله ﷻ نه ويريږئ كوم سود چې ستاسو په خلقو باندې باقي دې نو خبردار كه تاسو مسلمانان يئ نو اوس هغه مه اخلئ، هغه حرام شو.

**د ايت شان نزول:-** دا آيت نازل شو. د ثقيف قبيلې عمرو بن عمير او د بنو مخزوم قبيلې بنو مغيره باره كښې د جاهليت په زمانه كښې د دوى د سود كاروبار وو. د اسلام نه پس بنو عمرو د بنو مغيره نه خپل سود اوغوښتلو او هغوئ اووئيل چې دا خو اوس مونږ د اسلام راوړلو نه پس نۀ ادا كوو. په دې خبره جنګ زيات شو، د مكې مكرمې نائب عتاب بن اسيد رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته دا خبره اوليكله نو په دې باندې دا آيت نازل شو او رسول الله ﷺ ورته دا آيت اوليكلو او هغوئ ته ئې اوليږلو او هغوئ د پاره ئې زيات شوې سود اخستل حرام اوګرځولو، نو هغوئ توبه ګار شو او خپل سود ئې بالكل پريښودو.

(۱) په دې آيت كښې زبردست وعيد دې په هغه خلقو باندې چې د سود د حراميدو علم لرى او د دې باوجود بيا هم د دې نه نۀ منع كيږى.

قوله تعالى:- فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا فَاْذَنُوْا بِحَرْبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ

**سودخورى الله ﷻ او رسول ﷺ سره جنګ دې:-** ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چې سود خور ته به د قيامت په ورځ اووئيلې شى چې خپله وسله واخله او د الله ﷻ او رسول ﷺ سره د جنګ د پاره تيار شه.

**د سود خور نه دې څنګ پريكړې شي:-** عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائي چې امام وخت باندې فرض دى كه

---

(۱) ابن ابي حاتم : ۳/۱۱٤۰)-

سود خواره سود لره نه پریږدی نو په هغوئ دې توبه اوباسی.او که توبه نه کوی نو د دوی څټونه دې اووهی.[1] د حسن رحمة الله علیه او ابن سیرین رحمة الله علیه فرمان هم دا دې.
قتاده ﷺ فرمائی چې اوګورئ الله ﷻ هغوئ ته د هلاکیدو دهمکی ورکړه.او د ذلیله کیدو نې قابل کړل.خبردار سود نه او د سود لین دین نه بچ اوسئ.حلال څیزونه او حلال خریدوفروخت ډیر څه دی.لوګې تندې تیرې کړئ خو د الله ﷻ د معصیت نه لرې اوسئ.هغه روایت به درته هم یاد وی چې کوم مخکښې تیرشو چې عائشه ﷺ په یو معامله کښې د زید بن ارقم ﷺ باره کښې فرمائیلی وو چې د هغه جهاد برباد شو څکه چې د هغه په معامله کښې د سود نسبت وو.او دا څکه چې د الله ﷻ د دښمنانو سره د مقابلې کولو نوم جهاد دې.اوسودخوری الله ﷻ سره مقابله کول دی،خو د دې اسناد کمزورې دی

**قوله تعالی:- وَإِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ**

**صرف مال اخلئ:-** بیا ارشاد کیږی که توبه مو اوویسته نوخپل اصل مال ترې بې شکه واخلئ.چې کوم مو په چا قرض وی مه په زیات اخستلو سره په هغه باندې ظلم کوئ او نه دې هغه تاسو باندې په نه درکولو یا په کمو درکولو ظلم کوی،رسول الله ﷺ د حجة الوداع په موقع باندې فرمائیلی وو زهٔ د جاهلت د زمانې ټول سود ختموم.اصل رقم واخلئ او سود مه اخلئ.او مه په چا باندې ظلم کوئ چې کم ورکړئ او زیات ترې اخلئ.د عباس بن عبدالمطلب ټول سود زهٔ بربادوم.[2]

**قوله تعالی:- وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ**

**غریب مفلس قرضداری ته وخت ورکول او د قرض دمعاف کولو اجر و ثواب.-** بیا ارشاد فرمائی که یو مفلس سړې وی اوهغه سره دومره مال نه وی چې هغه ستاسوقرض ادا کړی نو هغه ته مهلت ورکړئ او چې خیر دې څه موده پس نې راکړه.داسې مه کوئ چې هغې پسې سود جمع کوئ او څه موده تیره شې اوبیاورته اووائې چې دومره دومره سودراکړه بلکه بهتردادی چې غریبانانوته خپل سود معاف کړئ.[3]

**قرض داری ته د وخت ورکولو فضیلت:-** د طبرانی حدیث کښې دی چې څوک د قیامت په ورځ د الله ﷻ د عرش لاندې سیورې غواړی نو هغه ته پکار دی چې داسې سړی ته دې مهلت ورکړی یا دې معاف کړی.دمسند احمدیو حدیث کښې دی چې یو سړې یو مفلس کس سره خپل قرض وصلولو کښې نرمی اوکړی او هغه ته مهلت ورکړی نو څو ورځو پورې چې هغه رقم ادا نکړی ده ته د هغه رقم برابر هره ورځ د خیرات کولو ثواب ملاویږی.او یو روایت کښې دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې هره ورځ د خیرات کولو دوچنده ثواب ملاویږی.په دې آوریدو سره بریده ﷺ اوفرمائیل چې یارسول الله ﷺ چې تاسو خو مخکښې یو چنده ثواب وئیلې وو اوس دوچنده څنګه شو.نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې او کله میعاد ختم شوې نه وی نو یو چنده ثواب او کله چې میعادختم شی نو دوچنده ثواب ملاویږی.[4]

**د قتاده ﷺ عمل.-** د قتاده ﷺ یو سړی باندې قرض وو،دوی به هره ورځ هغه سړی نه د قرض تقاضا کوله.خو هغه سړې به پټیدو او دهٔ سره به اکثر نه ملاویدو.یوه ورځ یو ماشوم راووتلو نو د هغه نه نې تپوس اوکړو،هغه ورته اووئیل چې په کور کښې دې او روټئ خوری.نو قتاده ﷺ هغه ته اوچت آواز اوکړو او ورته نې اووئیل چې ماته معلوم شو چې ته کور کښې موجود نې.بهر راوزه او ماسره سوال جواب اوکړه.هغه غریب بهر راووتلو،دوی ورته اووئیل چې چرته پټ شوې نې؟هغه سړی ورته اووئیل

---

[1] الطبری : ۲۵/٦)-
[2] ابوداود کتاب البیوع باب فی وضع الربا : ۳۳۳٤، وسنده حسن ترمذی: ۳۰۸۷، ابن ماجة: ۳۰۵۵، ددې شواهد د پاره اوګورئ: صحیح مسلم ۱۲۱۸، ابوداود ۱۹۰۵، ابن حبان ۹۴۴-
[3] الطبری: ۸۹۹،)-
[4] احمد: ۳٦۰/۵، ابن ماجة: کتاب الصدقات باب انظار المعسر: ۲٤۱۸، وهو صحیح)-

چې خبره داده چې زهٔ غريب يم او ماسره په دې وخت کښې رقم نشته دې او د شرم د لاسه نه راوزم او تاسو سره نه ملاويږم.دوی ورته اوونيل چې قسم اوخوره،هغه قسم اوخوړو.دوی په ژړا شو او وې ونيل چې ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلی دی چې کوم څوك يو غريب قرضداری ته مهلت ورکړی او يا ورته خپل قرض معاف کړی نو هغه به د قيامت په ورځ د الله ﷻ د عرش د سيورې لاندې وی.(صحيح مسلم)(۱)

**غريب قرض داری ته وخت ورکول جنت ته د تلو سبب دې:-** ابويعلى يو حديث روايت کړې دې چې رسول الله ﷺ فرمانيلی دی چې د قيامت په ورځ به يو بنده الله ﷻ ته حاضر کړې شی،الله ﷻ به د هغه نه سوال اوکړی اووايه تا زما دپاره څه نيکی کړې ده.دې به اووانی چې انې الله ﷻ ! ما د يو ذرې برابر داسې څه نيکی نه ده کړې چې زهٔ نن د هغې بدله اوغواړم،الله ﷻ به ترې نه بيا تپوس اوکړی نو دې به همدا جواب ورکړی چې انې الله ﷻ ماته يو وړه شان خبره ياده ده چې تا د خپل فضل نه ما ته څه مال راکړې وو او ما به تجارت کولو.او خلقو به زما نه قرض اخستلو.کله چې به ما اوکتل چې دا سړې غريب دې او قرض په وعده نشی رسولې نو ما به هغه ته څه نور مهلت ورکړو او په مالدارو به مې سختی نه کوله.اوکه څوك به مې اوليدو چې ډير زيات غريب دې نو هغه ته به مې قرض معاف کړو.بيا به الله ﷻ اوفرمانی چې بيا دې ولې زهٔ په تا باندې آسانی اونکړم او زهٔ خو د ټولو نه زيات لوئې اسانی کونکې يم.ما تهٔ اوبښلې او جنت ته داخل شه (۱)

**د عرش د سيورې د لاندې کيدو سبب او ذريعه:-** مستدرك حاكم کښې دی چې کوم سړې دالله ﷻ لار کښې د جهاد کونکی غازی مدد اوکړی يا د هغه سړی مدد اوکړی چې مال ورسره نه وی او قرضدار وی يا د هغه غلام مدد اوکړی چې د هغه آقا ونيلی وی چې دومره رقم راکړه نو تا به آزاد کړم،نو الله ﷻ به دهٔ ته په هغه ورځ سيورې ورکړی چې په کومه ورځ بل سيوری نهٔ وی(۳)

**د دعا د قبليدو او د تکليف د لرې کيدو سبب او ذريعه:-** مسنداحمد کښې دی چې کوم سړې غواړی چې د هغه دعا دې قبوله شی او دده نه تکليف اومصيبت لرې شی نوهغه ته پکار دی چې دهغه خلقو سره مدد اوکړی چې کوم په تنگئ کښې اخته وی.(۴)

**د عرش د سيوری لاندې کيدو په حقله يو بل حکايت:-** عباد بن وليد رحمة الله عليه فرمانی چې زهٔ او زما پلاردعلم حاصلولو دپاره اووتلو.او مونږ اوونيل چې انصارو نه به احاديث لولو.دټولو نه مخکښې زمونږ ملاقات ابواليسر ﷺ سره اوشو او هغوئ سره د هغوئ غلام وو.او د هغه په لاس کښې يو رجستر وو.او د غلام او آقا يو شان لباس وو.زما پلار اوونيل چې ترهٔ ته خو غصه کښې ښکاری.نوهغه اوونيل چې آؤ واوره فلانی سړی باندې زما قرض وو او د قرض موده پوره شوې وه.زهٔ هغه ته ورغلم چې خپل قرض ترې وصول کړم سلام مې اوکړو او تپوس مې اوکړو چې هغه کور کښې شته دې.د کور نه جواب ملاؤ شو چې نه،اتفاق سره د هغه يو بچې د کور نه راووتلو،ما د هغه نه تپوس اوکړو چې ستا پلار چرته دې؟هغه اوونيل چې ستاسو آواز آوريدو سره دکټ لاندې شو.ما ورته بيا آواز اوکړو او ورته مې اوونيل چې ماته معلوم شو چې پټ شوې ئې.پټيږه مه راشه جواب راکړه،هغه راغلو نوما ورته اوونيل چې ولې پټ شوې ئې؟هغه اوونيل چې صرف ددې وجې چې ماسره په دې وخت کښې پيسې نشته دې،ما وې که تاسره ملاؤ شم نو يا خو به څه د دروغو بهانه کوم يا به غلطه وعده کوم نو ددې وجې تا

---

(۱) صحيح مسلم: ۱۵۶۳)-.

(۲) صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب ماذکر عن بنی اسرائيل:۳۴۵۱، صحيح مسلم: ۱۵۶۰، ابن ماجة: ۲۴۲۰، بالفاظ مقاربة)

(۳) حاکم: ۲/۲۱۷، احمد: ۳/۴۸۷)-.

(۴) احمد : ۳/۲۳، زيدعمی ضعف (الميزان: ۲/۱۰۲، رقم: ۳۰۰۳) اودسند دانقطاع په وجه دا روايت ضعيف دې،

ته د مخامخ کیدو نه ویریدم.تاسو د رسول الله ﷺ صحابي يئ تاسو ته به څه دروغ اوواېم.ما ورته اووئيل چې ته رښتيا وائې او ستا دې په خدائې قسم وی چې تاسره رقم نشته دې نو هغه اووئيل چې په الله قسم ماسره رقم نشته دې.ما ورته درې ځل قسم ورکړو او د رجسټر نه مې د هغه نوم کټ کړو.او رقم مې جمع کړو او هغه ته مې اووئيل چې ځه ستا نوم کټ کوم.اوس که تاسره راشي نو رابه نې کړې او که نه وی معاف دی درته.واوره‌ازما دې دواړو سترګو کتلی دی او زما دې دواړو غوږونو اوریدلی دی او زما دې زړه ښه یاد کړی دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې څوك په سخته کښې چا ته مهلت ورکړی یا ئې معاف کړی نو الله ﷻ به هغه ته په خپل سیوری کښې ځائې ورکړی.([1])

**غريب قرض داری سره نرمی کوونکې به د دوزخ د ګرمئ نه اوساتلې شي:-** مسند احمد کښې يو روايت کښې دی چې رسول الله ﷺ مسجد ته راغلو او زمکې طرفته ئې اشاره اوکړه او وې فرمائيل چې څوك يو نادار سړی سره آسانی اوکړی يا هغه معاف کړی نوالله ﷻ به هغه دجهنم دګرمئ نه اوساتی.واورئ ! دجنت کارونه مشقت والا دی او د خواهش خلاف دی او د جهنم کارونه آسانئ والا دی او د نفس د خواهش مطابق دې،نيك بخت هغه خلق دی چې د فتنو نه بچ شی.هغه ګوټ چې انسان په غصه کښې اوڅکی د هغې نه زيات الله ﷻ ته خوښ ګوټ بل نشته.د داسې کوونکو زړه الله ﷻ دايمان نه ډکوی.([2])

**په مفلس رحم کول د ګناهونو د ښښنې سبب:-**طبرانی کښې دی چې کوم سړې يومفلس باندې رحم اوکړی دخپل قرض په وصولولوکښې او په هغه باندې سختی اونه کړی نوالله ﷻ هم دې په ګناهونو باندې نه نيسی تردې پورې چې هغه توبه اوکړی ([3])

قوله تعالى:- وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ

دې نه پس الله ﷻ خپلو بندګانو ته نصيحت کوی او دوی ته د دنيا د زوال او د مال د فنا کيدو او د آخرت راتلل او د الله ﷻ طرفته واپس تلل.

قوله تعالى:- ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ

اودخپلو اعمالو حساب ورکول اوبيا دې ټولو اعمالو جزااوسزا ملاويدل يادوی.او هغوئ د خپلو عذابونو نه ويروی.

**د قران کريم د ټولو نه وروستنی ايت:-** دا هم مروی دی چې د قرآن پاك د ټولو نه آخری آيت هم دادې.د دې آيت نازليدو نه پس رسول الله ﷺ صرف نهه شپې ژوندې وو.او د ربيع الاول په دويم تاريخ د پير په ورځ د رسول الله ﷺ وفات اوشو([4]) ﴿اللهم صل وسلم عليه﴾.ابن عباس رضي الله عنه نه يو روايت کښې دی چې دې نه پس رسول الله ﷺ يوديرش ورځې ژوندې وو.ابن جريج رحمة الله عليه فرمائی چې د سلفو قول دادې چې دې نه پس رسول الله ﷺ نهه ورځې ژوندې وو او د هفتې ورځې نه شروع اوشوه او د پير په ورځ وفات شو ([5]) الغرض قرآن پاك کښې د ټولو نه آخری آيت هم دا نازل شوې دې.

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | إِذَا تَدَايَنتُم | بِدَيْنٍ | إِلَىٰ أَجَلٍ | مُّسَمًّى |
|---|---|---|---|---|---|
| اې هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | کله چې تاسو ديو بل سره معامله کوئ | په قرض سره | دنيټې | مقررې پورې |

انې مومنانو! هرکله چې تاسوتريومقررې نيټې پورې دقرض لين دين کوئ! ..............

[1] صحيح مسلم كتاب الزهد باب حديث جابر الطويل : ۳۰۰۶)-

[2] احمد: ۳۲۷/۱ وسنده موضوع نوح بن ابي مريم مجروح )-

[3] المعجم الكبير : ۱۱۳۰. المعجم الاوسط: ۲۲۳۸)-.

[4] سنده ضعيف ددې سند کښې ابن لهيعه مختلط دې (التقريب ۱۴۴/۱ ، رقم: ۵۷۴) اود سعيد بن جبير د ابن دينار نه سماع ثابت نه ده،ددې روايت اولنئ حصه صحيح بخاری ۴۵۴۴ کښې ثابت ده)-

[5] الطبری: ۲۳۱۲ ، داروايت ضعيف او معضل دې)-

فَاكْتُبُوهُ ط وَلْيَكْتُبْ بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ ص وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ

نواوليکئ هغه | او اودي ليکی ستاسو ترمنځه | يو ليکونکي | په انصاف سره | اونۀ دي کوي انکار | ليکونکي

نوهغه ليکئ | اوستاسو ترمينځه دې يو ليکوال په انصاف سره ليکل اوکړي | او ليکوال دې انکار نه کوي

اَنْ يَّكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللّٰهُ فَلْيَكْتُبْ ج وَلْيُمْلِلِ الَّذِيْ عَلَيْهِ

دليکلونه | لکه څنګه چي | ښودنه کړې هغه ته | الله | نو يکاردي چي اوليکي | او بيان دې اوکړي | هغه سړې چي په هغه باندې

دليکلونه | لکه څنګه چې الله ورته خودنه کړې ده دغه شان دې اوليکي | اوعبارت دې ورته هغه (قرض دار) وائي

الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا ط فَاِنْ كَانَ الَّذِيْ

حق دی | او اودي يريږي | د الله نه | چي رب دهغه دي | او نۀ دي کموي | د حق نه | هيڅ څيز | نو که چرې وي | هغه څوک

چه په چاحق وي | اوهغه دې دخپل رب نه ويره اوکړي | او په معامله کښې دې هيڅ کمي نه کوي | نوکه چرې هغه څوک

عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيْهًا اَوْ ضَعِيْفًا اَوْ لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يُّمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ

چي په هغه باندې وي حق | ناپوهه | يا کمزورې | يا نۀ لري طاقت | چي بيان اوکړي هغه | نو بيان دې اوکړي

چې په هغه باندې حق وي کم عقل يا کمزورې وي | يا ليکلوال ته په خپله سم عبارت نشي ونيلې | نوخودنه دې اوکړي

وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ ط وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ ج

ولي دهغه | په انصاف سره | او ګواهان کړئ تاسو | دوه ګواهان | دسړو خپلو نه (يعني مسلمانان) |

واکدار دهغه په انصاف سره | اوپه خپلو سړو کښي پرې دوه کسان (عادلان) ګواهان جوړ کړئ

فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتٰنِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ

نوکه چرې نۀ وو | دوه سړي | نو يو سړې | او دوه ښځې دوي | دهغه کسانو نه | چې تاسو پرراضي يئ

اوکه دوه کسان نه وي | نويو سړې اودوه ښځې دې شي | .........څوک چې ستاسو خوښ وي

مِنَ الشُّهَدَآءِ اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىهُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰى ط

د ګواهانونه | که هير شي | ديوې ښځې نه په دې دواړو کښې | نو ورياد به کړي | هغه يوه ددې دواړونه | بلې نه

دګواهانو نه | څکه که يوې ښځې نه (ګواهي) خطاشي | ...............نويوه به ئې بلې ته ياده کړي

وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا ط وَلَا تَسْئَمُوْٓا اَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا

اونۀ دې کوي انکار | ګواهان کله چي اوبللې شي | او مۀ کوئ سستي | له دې چي اوليکئ | که لږ وي |

اوچې ګواهان (دګواهۍ دپاره) راوبللې شي نوانکار دې نه کوي | اوپه ليکښې سستيا مه کوئ چې وړه

اَوْ كَبِيْرًا اِلٰٓى اَجَلِهٖ ط ذٰلِكُمْ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ وَاَقْوَمُ

اوکه ډير وي | دنيتي دهغې پورې | داليکل ستاسو | ډيره دانصاف طريقه ده | په نيز د الله | او زياته صحيح ده

بالويه معامله ده دنيتي سره اوليکئ | دا طريقه د الله پاک په نيزد ښه انصاف طريقه ده | او دمضبوطيا ذريعه ده

لِلشَّهَادَةِ وَاَدْنٰٓى اَلَّا تَرْتَابُوْٓا اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً

دپاره دگواهۍ | او زياته نزدې ده | چې تاسو په شك كښې پرينوځئ | مگر | كه وي | تجارت

دگواهۍ پحقله | اودشک شبهې نه بچ کيدوته زياته نزدې ده | مگر دا كه خرخول اخستل

حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ

لاس په لاس | چې چلوئ ئې تاسو | په خپل منځ كښې | او نشته | په تاسو باندې | ځه گناه

لاس په لاس په خپل مينځ كښې كوئ | نو په تاسو باندې هيڅ گناه نشته | چې (په داسې صورت كښې)

اَلَّا تَكْتُبُوْهَا ؕ وَاَشْهِدُوْٓا اِذَا تَبَايَعْتُمْ ص وَلَا

كه اونه ليكئ هغه | اوونيسئ گواهان | كله چې تاسو ديوبل سره تجارت كوئ | اونه دې

كه هغه اونه ليكئ | اخو د خرولو اخستلو په وخت كښې ځوك نه ځوك گواهان جوړوئ | اونه دې

يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ ؕ وَاِنْ تَفْعَلُوْا فَاِنَّهٗ فُسُوْقٌۢ بِكُمْ ؕ

وركړې كيږي تكليف | ليكونكى ته | اونه گواه ته | اوكه اوكړو تاسو | نو بيشكه داگناه ده | ستاسو دپاره

ليكوال ته اونه گواه ته تكليف وركولى شي | كه داسې كوئ نو دابه ستاسو نافرمانى گڼلې شي

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝

او خان ساتئ دغضب دالله نه | اوتعليم دركوي تاسوته | الله | اوالله | په هر ځيز باندې | خبر دې |

اوالله نه ويره كوئ | او الله پاك تاسوته خپل (حكمونه) ښائي اوالله په هرڅه باندې پوهه دې |

**د آدم ﷺ او داود ﷺ خونده وره واقعه:-** دا آيت د قرآن پاك د ټولوآيتونو نه لوئې آيت دې.سعيد بن مسيب فرمائى چې ماته دا خبره رارسيدلې ده چې دقرآن پاك دټولو نه لوئې آيت عرش سره هم آيت ﴿الدين﴾ دې.(١)دا آيت چې كله نازل شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې د ټولو نه انكاركولو والا آدم ﷺ دې.الله ﷻ چې كله آدم ﷺ پيدا كړو نو دهغه په شا ئې لاس رابنكلو او د ده په شاه كښې ئې تر قيامته پورې اولاد واچولو.

حضرت آدم ﷺ خپل اولاد اوليدو،يو سړې ئې اوكتلو چې د هغه ځهره ښه نورانى او ترو تازه ده.تپوس ئې اوكړو چې انې الله ﷻ ! دده څه نوم دې؟نو الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې دا ستا ځوئې داود ﷺ دې.تپوس ئې اوكړو چې انې الله ﷻ دده څومره عمر دې.الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې دده عمر شپيته كاله دې آدم ﷺ ورته اوفرمائيل چې د ده عمرلږ زيات كړه.الله ﷻ ورته اوفرمائيل نه،كه ته ورته د خپل عمر نه څه وركول غواړې نو وركړه.آدم ﷺ اوفرمائيل چې انې الله ﷻ زما د عمر نه دۀ ته څلويښت كاله وركړه.نو دا وركړې شو.د آدم ﷺ اصل عمر زر كاله وو،او دا لين دين اوليكلې شو او فرښتې په دې باندې گواه كړې شوې.هركله چې آدم ﷺ ته مرگ راغلو نو وې فرمائيل چې انې الله ﷻ زما عمر كښې خو لا اوس هم څلويښت كاله باقى دى.

الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې هغه تا خپل ځوئې داود ﷺ ته وركړې وو.نو آدم ﷺ انكار اوكړو.نودوى ته هغه ليكل اوخودلې شو او فرښتو پرې گواهى اوكړه.او په بل روايت كښې دې چې الله ﷻ د آدم

(١) الطبرى: ٦/٣٢٥)-

ﷺعمر بیا زر کاله کړو.او د داود ﷺ ئې سل کاله.(مسند احمد) (۱)لیکن داروایت ډیر ضعیف او غریب دي.ددې دراوی علي بن جدعان احادیث منکر دی.مستدرك حاکم کښې هم دا روایت شته دې.

قوله تعالی:- يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوهُ

**د قرض او تجارت احکام:-** په دې آیت کښې الله ﷻ خپلو ایماندارو بندګانوته ارشاد فرمائي چې هغوئ دې د قرض معاملات لیکی.چې دې سره رقم او موده ښه یاده وی.او ګواه هم غلط نشی.او د دې نه په یو وخت باندې د قرض واپس کول هم ثابت شی.ابن عباس ﷺ به فرمائیل چې د قرض موده مقرر وی نو دې سره دقرض لین دین کښې آسانی وی.صحیح بخاری کښې دی چې د مدینې د خلقو د قرض لین دین کتلو باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې ناپ تول یا وزن کوئ نو په دې کښې موده مقرر کوئ.(۲)

**په کتاب او سنت کښې تعارض او تطبیق:-** قرآن پاك حکم کوی چې دا لیکئ او حدیث مبارك کښې دی چې مونږ لیك لوست والا نه یو اونه حساب کتاب کولې شو (۳)په دې دواړو تطبیق دا شان دې چې دینی مسائل او شرعی امورو خو بالکل ضرورت نشته دې،دا د الله ﷻ د طرفنه ډیرآسان او واضح شوی دی.د قرآن پاك حفظ او د احادیثو حفظ خلقو ته قدرتی طور آسان دی لیکن د دنیاوی وړوکو لویو لین دین او معاملات چې کوم د قرضونو صورت کښې وی،د هغې د لیکلو بیشکه حکم اوشو او دا دې هم یاد وی چې دا حکم وجوبا نه دې،نو نه لیکل د دینی امورو دی.او لیکل د دنیاوی امورو دی.بعضې خلق دې وجوب طرفته هم تلی دی.ابن جریج رحمة الله علیه فرمائی چې کوم قرض دوی ورکوی هغه دې اولیکی او کوم څه چې دوی خرڅ کړی نو د دې دې ګواه وی.

**د مظلومیت باوجود د سوال نهٔ قبلیدل:-** ابوسلیمان مرعشی رحمة الله علیه د کعب په صحبت کښې ډیر پاتې شوې وو،هغوئ یو ورځ خپلو نزدې خلقو ته اووئیل چې تاسو ته هغه مظلوم معلوم دې چې د الله ﷻ نه سوال کوی او د ده دعا نه قبلیږی،خلقو اووئیل چې دا څنګه ؟وې فرمائیل چې هغه سړې دې چې یو مودې دپاره قرض ورکړی او نه ګواه لری او نه ئې لیکلی وی،او کله چې موده تیره شی نو خپل قرض غواړی خوهغه سړې ترې انکار کوی.اوس دې دالله ﷻ نه دعاکوی لیکن الله ﷻ دده دعا نه قبلوی.ځکه چې دا کار ده د هغه د فرمان خلاف کړې دې.او د خپل رب نافرمان شو.

دابوسعید شعبی،ربیع بن انس او د حسن بن جریج او ابن زید وغیره ﷺ قول دې چې مخکښې خو دا واجب وو،بیا ددې وجوب منسوخ شو.او وې فرمائیل که یو ته په بل اطمینان وی نو چې چا له امانت ورکړې شوې دې هغه له پکار دی چې ادا ئې کړی او د دې دلیل داحدیث دې.اګرچه دا واقعه د مخکښې امت ده.لیکن بیاهم د هغوئ شریعت زمونږ شریعت دې.تر کومې چې زمونږ شریعت د هغې نه منع نه وی کړې.په دې واقعه کښې چې کومه مونږ اوس بیانوؤ دلیکلو او لوستلو د نهٔ کیدو او د ګواه په نهٔ مقررولو باندې شارعﷺ انکار نهٔ دې کړې

**د قرض اخستلو او د ادا کولو عجیبه واقعه -**مسند کښې دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې بنی اسرائیلو کښې یو سړی دبل سړی نه زر دیناره قرض اوغوښتل،هغه اووئیل چې ګواه راوله.جواب ئې ورکړو چې ګواهی د الله ﷻ کافی ده.وې وئیل چې ضمانت راوړه نو وې وئیل چې دالله ﷻ ضمانت کافی دې.وې وئیل تاربښتیا اووئیل او د واپس کولو موده ئې مقرر کړه او ورته ئې زر دیناره ورکړل دې

---

(۱) احمد: ۲۵/۱ ،وسنده ضعیف او شواهد دپاره اوګورئی حدیث دابوهریره رضی الله عنه،ترمذی ۳۰۷۲، حاکم ۳۲۵/۲،

(۲) صحیح بخاری کتاب البیوع باب السلم فی وزن معلوم : ۲۲٤۰، صحیح مسلم: ۱٦۰٤، ابوداود: ۳٤٦۳، ترمذی: ۱۳۱۱، نسائی: ٤٦۲۰)-

(۳) صحیح بخاری کتاب کتاب الصوم بآب قول النبی لا نکتب ولا نحسب : ۱۹۱٤، صحیح مسلم: ۱۰۸۰)- .

د سمندر په سفر روان شو او خپل کار ئې اوکړو.هرکله چې موده پورا شوه نو دې د سمندر غاړې ته لاړو چې کشتئ ملاؤ شی او په هغې کښې سور شی او لاړ شی رقم اداکړی.خو هيڅ يو جهاز ملاؤ نشو.هرکله چې ده اوکتل چې په وخت نشی رسيدې نو ده يو لرګې واخستو چې هغه په مينځ کښې ئې وو او په هغې کښې ئې زر ديناره کيخودل او يو کاغذ ئې اوليکلو او بيا ئې د هغې خوله بنده کړه او د الله ﷻ نه ئې دعا اوکړه چې ائې الله ﷻ! تاته ښه معلوم دی چې ما د فلانی سړی نه زر ديناره قرض اخستی وو او هغه زما نه ضمانت غوښتلې وو او ما ورته تهٔ ضمانت کښې ورکړې وې او هغه په دې باندې خوشحاله شوې وو.او ګواه ئې اوغوښتلو نوما ورته ته په ګواهئ کښې ورکړې.اوبه دې باندې هغه خوشحاله شو.اوس وخت مقرر پورا کيدونکې دې نو ما خو ډير کوشش اوکړو چې کشتئ اوګورم او لاړم شم او هغه ته د هغه قرض ورکړم ليکن کشتئ ملاؤ نشوه.اوس زه دا رقم تاته سپارم او سمندر کښې ئې اچوم او دعا کوم چې دا رقم هغه ته اورسی.بيا ئې دا لرګې سمندر کښې واچولو او لاړو. ليکن بيا هم د کشتئ تلاش کښې وو چې ملاؤ شی نو چې لاړم شم.بل طرفته هغه سړی چې اوکتل چې د قرض واپس کولو وخت پورا شوې دې او نن هغه ته راتلل پکار دی نو هغه هم د سمندر غاړې ته راغلو چې نن به هغه راځی او زما رقم به واپس کوی يا به ئې د چا په لاس راليږی.خو هرکله چې ماښام شو او هيڅ کشتئ رانغله د هغه طرفنه نو دې واپس شو،د سمندر په غاړه ئې يو لرګې اوليدو،ده اوونيل چې هسې هم خالی روان يم راشه دا لرګې هم خان سره واخله،دا اوچ کړه،د بلولو د پاره خو به پکار راشی.هرکله چې کور ته اورسيدو نو دا لرګې ئې اوځيرولو نو ددې نه اشرفئ راوتلې،هرکله چې ده اوشميرلې نو پورا زر ديناره وو.په پرچه باندې ئې نظر پريوتلو او هغه ئې هم اوکتله.بيا يو ورځ هغه سړې راغلو او ده ته ئې زر ديناره پيش کړل او ورته ئې اوونيل چې دا واخله ستا رقم،معاف کړه ما ډير کوشش اوکړو چې وعده خلافی اونشی خوکشتئ ملاؤ نشوه اوبدې کښې وخت تير شو.نن راته کشتئ ملاؤ شوه او ستا رقم حاضر دی.هغه تپوس اوکړو چې ولې تا زما رقم ليږلې نه دې څه،ده اوونيل چې ماخو درته اوونيل که نه چې کشتئ ملاؤ نشوه.هغه ورته اوونيل چې خپل رقم واپس واخله او په خوشحالئ خوشحالئ واپس شه،تا چې کوم لرګی کښې رقم راليږلې وو اوهغه دې ﴿ توکل‌علی‌الله ﴾ سره سمندر کښې اچولې وو او الله ﷻ هغه ماته رارسولې دې.اوما خپل رقم وصول کړې دې.ددې حديث سند صحيح دی،صحيح بخاری کښې اووه خايه داحديث راغلې دې (١).

قوله‌تعالی:-وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللهُ فَلْيَكْتُبْ

**ليک لوست والا سوبګ دې د ليکلو نه انکار نه کوی:-** بيا فرمائی چې ليکلو والا دې عدل او حق ليکلو سره په کتابت کښې په چا باندې ظلم نه کوی.

قوله‌تعالی:-وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا

اونه دې څه کمې بيشې کوی.بلکه لين دين والا دواړه فريق چې څه ليکی نوهغه دې اوليکی.ليک لوست والا سړې دی دمعاملې ليکلو نه انکار نه کوی هرکله چې ده ته د ليکلو اوونيلې شی.لکه څنګه چې دالله ﷻ په ده باندې احسان دې چې ده ته ئې ليکل اوخودل نو دغه رنګې دې په هغه خلقو احسان اوکړی چې کوم ليکل نشی کولې.او د هغوئ معامله دې اوليکی.

**د چا سره مدد کول هم صدقه ده:-** حديث مبارك کښې دی چې دا هم صدقه ده چې چا سره مدد اوکړې شی.او د چا محتاجه سړی کار دې اوکړې شی.(٢)

---

١) صحيح بخاری : ١٤٩٨)-

٢) صحيح بخاری کتاب العتق باب ای الرقاب افضل : ٢٥١٨، صحيح مسلم: ٨٣)-

**د علم په پټولو وعید:-** اوحدیث مبارك کښې دي چې چاسره علم وي او دې بیا هغه پټ کړي،د قیامت په ورځ به ده ته د اور واښې اچولې شي.(۱)مجاهدﷺ او عطاءﷺ فرماني چې په کاتب باندې لیکل ددې آیت لحاظ سره واجب دی.چې دچا په ذمه حق وي نو هغه دې اولیکي.او د الله ﷻ نه دې اوویریږي اوکمې بیشې دې نه کوي او نه دې خیانت کوي.

**قوله تعالى:-** فَإِن كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا

اوکه داسړې ناپوهه وي داسراف وغیره په وجه منع شوې دې یاکمزورې دې یا ماشوم دې یا دده حواس صحیح نه دی یا د جهالت او ناپوهۍ په وجه لیکل هم نۀ پیژني نو کوم چې دده ولي او مشر وي هغه دې اولیکي.

**قوله تعالى:-** فَإِن كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا

بیافرمانی چې کتاب سره شهادت هم پکار دې چې معامله ښه او مضبوطه اوبالکل صفا وي.دوه سړي دې په دې ګواه کړي

**قوله تعالى:-** فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ

اوکه دوه سړي ملاؤ نشي نو خیر دې یو سړې او دوه ښځې دې ګواه کړي.دا حکم د مال او مقصود مال باره کښې دی.

**قوله تعالى:-** أَن تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَىٰ

**د دوؤ ښځو ګواهي د یو سړي برابر ده:-** دوه ښځې د یو سړي برابر په دې وجه دی چې د ښځو عقل پورا نه وي.لکه مسلم شریف کښې حدیث مبارك دې چې رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چې اې ښځو! صدقه ورکوئ او استغفار ډیر وائې،ما لیدلې دی چې تاسو به جهنم ته زیاتې ځئ.یو ښځې تپوس اوکړو چې یارسول الله ﷺ! دا ولې؟رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې تاسو لعنت زیات کوئ او د خپل خاوند ناشکري کوئ.ما نه دی لیدلې چې تاسو د عقل او پوهې لرلو نه باوجود دسړو دعقل نه زیات یئ.هغې تپوس اوکړو چې یارسول الله ﷺ امونږ کښې د دین او عقل څنګه کمی ده؟وې فرمائیل چې دعقل کمی خو ظاهر ده چې د دوو ښځو ګواهي د یو سړي برابر ده او د دین کمی دادې چې چې په ایام حیض کښې مو نۀ مونځ وي او نه روژه.(۲)

**د ګواهۍ د پاره عدالت شرط دې:-** د ګواهانو باره کښې فرمانی چې دا شرط دې چې هغه عدالت والا وي،د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دې چې قرآن پاك کښې چرته هم د ګواهانو ذکر دې نو هلته دعدالت شرط ضروري دی.اګر چې هلته لفظونوکښې نه وي.او چې کومو خلقو د دوی ګواهي رد کړې ده چې د کومو عادله کیدل معلوم نه وي د هغوئ دلیل هم داآیت دې.وانی چې ګواه دې عادل او خوښ سړي وي.د دوو ښځو مقرر کولو حکمت ئې هم بیان کړو که یو نه ګواهي هیره شي نو چې بله ورته یادوي.﴿فَتُذَكِّرَ﴾ (په فتحې د را سره)بل قرات ﴿فَتُذْكِرَ﴾(په ضمې د راسره)هم دې،چې کوم خلق وانی چې ددې شهادت دې سر ه یو ځائې شي نو د سړي د شهادت پشان به شي نو هغوئ تکلف اوکړو، صحیح خبره هم رومبۍ ده.والله اعلم.

**قوله تعالى:-** وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا

ګواهانو ته پکار دی چې کله هغوئ راوبلی نو دوی دې انکار نه کوي.یعنی کله چې دوی ته اوونیلې شی چې راشئ معامله کښې ګواه جوړ شئ نودوی ته انکار نه دې پکار.لکه څنګه چې دکاتب باره

---

(۱) ابوداود کتاب العلم باب کراهیة منع العلم : ۳٦٥۸، وسنده حسن ترمذی: ۲٦٤۹، ابن ماجة: ۲٦۱)-

(۲) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان نقصان الایمان بنقص الطاعات : ۷۹، عن ابن عمر رضی الله عنه ح/۸۰، عن ابن سعید رضی الله عنه، امام مسلم دعلامه ابن کثیر والا روایت بغیر متن نه ذکر کړې دې اوفرمانی چه : بمعنی حدیث ابن عمر ......)-

کښې هم فرمائیلې شوی دی.دلته هم دا فائده حاصله شوه چې ګواهي ورکول هم فرض کفایه دی.دا هم ونیلې شوی دی چې د جمهورو مذهب هم دا دې.او دا معنی هم بیان شوې ده چې کله ګواه د ګواهۍ ورکولو دپاره راوغوښتلې شی یعنی کله چې دده نه د واقعې تپوس اوشی نو نه دې منع کیږی.

**د یو خل ګواه جوړیدو نه پس ګواهي لازمی ده**:- ابومجلز رحمه الله او مجاهد رحمه الله وغیره فرمائی چې کله تاسو د ګواه جوړیدو د پاره راوبللی شئ نو تاسو ته اختیار دې که ځئ او که نه ځئ لیکن کله چې ګواه جوړ شئ او بیامو د ګواهۍ دپاره راوبلی نو ضرور به ځئ.(۱).

**ښهٔ او بد ګواه** - صحیح مسلم او سنن کښې حدیث دې چې ښه ګواهان هغه دی چې د تپوس نه بغیر ګواهي ورکړی(۲)د بخاری او مسلم بل حدیث کښې راغلی دی چې بدترین ګواه هغه دې چې هغوئ نه ګواهی اوغوښتلې شی او هغوئ ګواهی ورنکړی.

**خراب خلق**:- او هغه حدیث چې په هغې کښې دی چې بیا به داسې خلق راشي چې د هغوئ قسمونه به په ګواهۍ باندې او ګواهۍ به ئې په قسمونو باندې مخکښې مخکښې وی (۳)او روایت کښې دی چې د هغوئ ګواهی به نه شی قبلولې.خو بیا به هم هغوئ ګواهی ورکوی.(۴)نو یاد ساتئ چې دا سپکاوې د دروغو د ګواهۍ ورکونکو دې اوهغه تعریف د رښتیا ګواهۍ والو دې.او هم دا تطبیق دې او په دې مختلفو احادیثوکښې ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چې دا آیت دواړو حالتونو لره شامل دې یعنی ګواهی ورکولو دپاره هم او ګواه جوړیدو د پاره دې هم انکار نه کوی.

**قوله‌تعالی**:-وَلَا تَسْـَٔمُوٓا۟ أَن تَكْتُبُوهُ صَغِيرًا أَوْ كَبِيرًا إِلَىٰٓ أَجَلِهِۦ
بیا فرمائی معامله وړه وی او که لویه د لیکلو نه مه روستوکیږئ او موده وغیره لیکئ.

**قوله‌تعالی**:- ذَٰلِكُمْ أَقْسَطُ دا زمونږ حکم دې او دا عدل او انصاف والا اوګواهۍ لره ښه ثابتولووالا دې خکه چې خپل لیکل ښوك اوګوری نو هغه ته هیره خبره هم یادیږی،که لیکلې شوی نه وی نو ممکن دی چې هیر شی لکه څنګه چې اکثر کیږی.

**قوله‌تعالی**:-وَأَدْنَىٰٓ أَلَّا تَرْتَابُوٓا۟
اویه دې کښې د شك نه کیدو زیاته موقع په لاس رازی.خکه چې د اختلاف په وخت کښې تحریر کتلې شی او بغیر د شك نه فیصله کیدې شی.

**قوله‌تعالی**:-إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَـٰرَةً حَاضِرَةً
بیا فرمائی چې کله نقداخستل خرڅول وی نو که دا اونه لیکلې شی نو په دې کښې د څه جګړې احتمال نه وی.نو کتابت خو ئې لرې شو اوس پاتې شو شهادت نو سعید بن مسیب رحمه الله فرمائی چې قرض وی یا نه وی هرحال کښې خپل حق باندې ګواه ساتئ د نورو بزرګانو نه دا مروی دی چې ﴿فَإِنْ أَمِنَ﴾ الخ،فرمائیلو سره ئې دا حکم هم لرې کړو.

**د معاملې لیکلو حکم استحبابی دې وجوبی نهٔ دې**:- دا هم یادساتل پکار دی چې د جمهورو په نیز دا حکم واجب نه دې بلکه د استحباب په طور د ښیګړې دپاره دې.او ددې دلیل هغه حدیث دې چې په هغې کښې صفا ثابت دی چې رسول الله ﷺ خریدوفروخت اوکړل او ددې څه ګواه نه وو.نومسنداحمد کښې دی چې رسول الله ﷺ یو اعرابی نه یو اس واخستلو او هغه اعرابی رسول الله ﷺ پسې روستو روستو راغلو.رسول الله ﷺ خو زر راووتلو او په مزه مزه راتلو،خلقو ته معلوم نه وو چې دا اس خرڅ شوې

---

(۱) ابن ابی حاتم : ۱۸۱/۳، الطبری: ۷۱/۶)-
(۲) صحیح مسلم : کتاب الاقضیة باب بیان خیر الشهود : ۱۷۱۹ ابوداود : ۳۵۶۹، ترمذی : ۲۲۹۶)-.
(۳) صحیح بخاری کتاب الشهادات باب لایشهد علی شهاة جور اذا اشهد: ۲۶۵۲، صحیح مسلم: ۲۵۳۳)-
(۴) صحیح بخاری کتاب کتاب الرقاق باب ما یحذر من زهرة الدنیا والتنافس فیها: ۶۴۲۸، صحیح مسلم: ۲۵۳٤)-

دي.هغوئ ددې قيمت لګول شروع کړل نو دې چې په څه قيمت ده د رسول الله ﷺ نه دا اخستې وو د هغې نه زيات قيمت باندې خرڅيدو.د اعرابي نيت خراب شو او هغه رسول الله ﷺ ته آواز اوکړو چې يارسول الله ﷺ يا خو دا واخلئ يا نې زۀ خرڅوم.رسول الله ﷺ چې کله دا واوريدل نو وې فرمائيل چې تا په ماباندې خرڅ کړې دې،دا ته څه وائې،هغه اووئيل چې نه په الله قسم ما تا باندې دا نه دې خرڅ کړې.رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چې ته غلط وائې زما او ستا ترمينځه بيعه شوې ده.اوس خلقو يو خوا بل خوا نه شور شروع کړو نو دې سړې اووئيل چې بنه ده ګواه راوله چې ما تا باندې دا خرڅ کړې دې.مسلمانانو ورته ډير اووئيل چې انې بدبخته دا خو پيغمبر دې د دوی د زبان مبارك نه دروغ نه اوځې بلکه حق ترې اوځې.خو هغه هم دا وئيل چې ګواه راوله اوګواه پيش کړه.په دې کښې خزيمه ﷺ راغلو اود اعرابي قول اوريدو سره نې اوفرمائيل چې زۀ ګواهي ورکوم چې تا دا خرڅ کړې دې او رسول الله ﷺ دا اخستې دې.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې ته څنګه ګواهي ورکوې؟خزيمه ﷺ اوفرمائيل چې درسول الله ﷺ د تصديق اودرښتينوالي په وجه.نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې نن دخزيمه ﷺ ګواهي د دوؤ ګواهانو برابر ده.(۱)نو ددې حديث نه په خريدو فروخت باندې ګواهي ضروري پاتې نشوه.

**احتياط په ګواه قائمولو کښې دې:-** ليکن احتياط په دې کښې دې چې تجارت باندې دې هم ګواه اولرې.ځکه چې ابن مردويه او حاکم کښې دی چې درې سړی دی چې د الله ﷻ نه دعا کوی او الله ﷻ دده دعا نه قبلوی.يو خو هغه کس دې چې د هغه په کور کښې بداخلاقه ښځه وی او دې ته طلاق ورنکړی.دويم هغه سړې چې ديويتيم مال د هغه د بلوغت نه مخکښې هغه ته اوسپاری.دريم هغه سړې چې چاته مال ورکړی او په هغې ګواه اونه لری.(۲)امام حاکم دې ته په شرط د بخاری او مسلم باندې صحيح وائی.بخاری او مسلم د دې د پاره راونړو چې د شعبه شاګرد دا روايت د ابوموسی اشعری ﷺ باندې موقوف ښائی.

**قوله تعالی:-وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ ۚ**

بيا فرمائی چې کاتب ته پکار دی چې د ليکلو خلاف اونه ليکې اوګواه ته پکار دی چې دا واقعې خلاف ګواهي ورنکړی.او نه دې ګواهي پټوی.حسن ﷫ او قتاده ﷫ وغيره هم دا قول دې.ابن عباس ﷺ دامطلب بيانوی چې دې دواړو ته دې ضرر او نه رسولې شی.لکه دهغه د راوستلو دپاره څوك لاړشی او هغه خپل کار کښې مصروف وی نو دې ورته اووائی چې نا باندې دا فرض دی چې ته خپل کار پريږده او راځه نو دوی ته دا حق نشته،او ډيرو نورو بزرګانو نه دا مروی دی.

**قوله تعالی:-وَإِنْ تَفْعَلُوْا فَإِنَّهٗ فُسُوْقٌۢ بِكُمْ ۗ**

بيا ارشاد دې چې دا بدکاری ده چې د کومو نه مو منع کړم هغه کوئ او چې د کومو درته حکم اوکړم هغه نه کوئ.او ددې سزا به ستاسو نه نۀ ختميږی.

**قوله تعالی:-وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۖ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ۗ**

بيا فرمائی چې دالله تعالی نه ويريږئ او د هغه فرمانبرداری اوکړئ او د هغه کارونو نه منع شئ چې د کومو نه نې منع کړی يئ.الله ﷻ تاسو پوهوی لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چې ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تَتَّقُوا اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّكُمْ فُرْقَانًا﴾ يعنی انې ايمان والو که تاسو دالله ﷻ نه ويريږئ نو هغه به تاسو ته دليل درکړی.

بل ځائې کښې دی چې انې ايمان والو دالله تعالی نه ويريږئ او دهغه په رسول ﷺ باندې ايمان راوړئ.هغه ذات به تاسو ته دوچند رحمتونه درکړی او تاسوته به هغه نور درکړی چې دهغې په رڼړا کښې به تاسو روان يئ.

---

(۱) احمد: ۲۱۶/۵، ابوداود کتاب القضاء باب اذا علم الحاکم صدق شهادة الواحد: ۳۶۰۷، وهو صحيح نسائی: ٤٦٥١)-

(۲) حاکم: ۳۰۲/۲، وسنده صحيح )-

قوله تعالى: -وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمٌ

بيا فرمائی چې د ټولو کارونو د انجام او د حقیقت د مصلحتونو نه الله ﷻ خبر دې. د هغه پاك ذات نه هیڅ یو څیز پټ نه دې، د هغه پاك ذات علم کائنات باندې خور دې او د هر څیز د حقیقت علم هغه ذات ته دې.

وَاِنۡ كُنۡتُمۡ

| او كه یئ تاسو

|او كه تاسو

عَلٰى سَفَرٍ وَّلَمۡ تَجِدُوۡا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقۡبُوۡضَةٌ ؕ فَاِنۡ اَمِنَ بَعۡضُكُمۡ

په سفر باندې|او بیا نۀ موندلو تاسو | لیكونكې | نو ګانړه قبض كړې شوې | نو كه امانتګراوګنړوا بعضو ستاسو

په سفر كښې یئ | او لیكوال موندی نشئ | نود قبضې سره په ګانړه (معامله) كوئ | نو هر كله چې اعتبار اوكړی یو تن

بَعۡضًا فَلۡيُؤَدِّ الَّذِى اؤۡتُمِنَ اَمَانَتَهٗ وَلۡيَتَّقِ اللّٰهَ

بعضو لره| نو ادا دې كړی | هغه كس | چې امانتګر ګنړلې شوې دې | امانت دهغه | او اودې یریږی | دالله نه

په بل تن باندې| چې په چا اعتبار شوې وی هغه دې خپل امانت پوره پوره ادا كوی| او د الله نه دې ویره كوی

رَبَّهٗ ؕ وَلَا تَكۡتُمُوا الشَّهَادَةَ ؕ وَمَنۡ يَّكۡتُمۡهَا فَاِنَّهٗۤ اٰثِمٌ

چې رب دهغه دې| او مۀ پټوئ | ګواهی | او هغه چا چې پټه كړه ګواهی| نو بیشكه ګنهګار دې|

چې پالونكی ئې دې |او ګواهی هیڅرې مه پټوئ |او چا چې ګواهی پټه كړه نو (پوهه شه چې) ګناهګار دې

قَلۡبُهٗ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ عَلِيۡمٌ

زړۀ دهغۀ | او الله |په هغه كارونو | چې كوئ ئې تاسو | خبردار دې |

زړه دهغه | او الله پاك ستاسو په كارونو ښۀ پوهیږی |

قوله تعالى: -وَاِنۡ كُنۡتُمۡ عَلٰى سَفَرٍ وَّلَمۡ تَجِدُوۡا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقۡبُوۡضَةٌ ؕ

**یو څیز ګانړه ایخودل او قرض اخستل:-** یعنی د سفر په حالت كښې كه د قرض اخستلو لین دین راشی او څوك لیكلو والا نه وی یا ملاؤ شی خو قلم دوات یا كاغذ نه وی نو رهن كوئ او چې كوم څیز تاسو رهن كښې ایږدئ هغه د حقدار قبضه كښی وركوئ د ﴿مَّقۡبُوۡضَةٌ﴾ دلفظ نه استدلال كړې دې. رهن چې كله پورې قبضه كښې رانشی نو دا نه لازمیږی لكه د امام شافعی رحمة الله علیه او جمهورو مذهب دې مګرنوروا استدلال كړې دې چې درهن دمرتهن لاس كښې وركول ضروری دی، امام احمداو یو بل جماعت نه همدا منقول دی. د یو بل جماعت قول دې چې رهن صرف په سفر كښې مشروع دې. لكه مجاهد رحمة الله علیه وغیره، لیكن صحیح بخاری او صحیح مسلم او مسندشافعی كښې دی چې رسول الله ﷺ كله فوت شو نو په هغه وخت كښې رسول الله ﷺ زغره د مدینې یو یهودی ابوالشحم سره د دیرشو وسقو اوربشو په بدله كښې ایخودې وه او هغه (وسقونه ) رسول الله ﷺ د خپل كور والو د خوراك دپاره اخستی وو.[1] د دې مسئلو د زیات وضاحت ځائې تفسیر نه دې بلكه ددې احكامو لونې

[1]) صحیح بخاری كتاب البیوع باب شراء النبی علیه السلام بالنسیئة : ٢٠٦٩، عن انس رضی الله عنه صحیح مسلم: ١٦٠٣ عن عائشة رضی الله عنها ترمذی: ١٢١٥، نسائی: ٤٢٩٦، ابن ماجة: ٢٤٣٧، مسند شافعی : ٦١٩، او د مسند شافعی روایت مرسل دې).

لوني كتابونه دي.﴿ولله الحمد والمنة وبه المستعان﴾ دي نه پس جملي ﴿فان امن﴾ الخ كښې ابوسعيد خدري ﷺ فرمائي چي ددې نه مخكښې حكم منسوخ شو (١)، شعبي رحمه الله فرمائي چي هركله دا ويره نه وى چې دا به رانكړى نو ليكلو او گواه جوړولوكښې هيڅ باك نشته.(٢)چې چاته امانت وركړې شى هغه ته پكار دى چې دالله تعالى ويره لرى.رسول الله ﷺ فرمائي چي د نهٔ ادا كولو ذمه وارى په لاس باندې ده كوم چې دهٔ واخستل تر څو پورې ئې چې ادا نهٔ كړى گواهى مهٔ پټوئ مه په دې كښې خيانت كوئ او مه خوك د دې د ښكاره كولو نه منع كوئ. (٣)

قوله تعالى:-وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ۚ

**شهادت پټولو والا گناهګار دې**:- ابن عباس ﷺ وغيره فرمائي چې د دروغو شهادت يا د شهادت پټول گناه كبيره ده (٤)دلته هم اوفرمائيلې شو چې ددې پټولو والا گناهګار دې. لكه بل مقام باندې دى چې ﴿وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللَّهِ إِنَّا إِذًا لَّمِنَ الْآثِمِينَ﴾ يعنى مونږ د الله ﷻ شهادت نه پټوو،كه مونږ داسې اوكړو نو يقيناً مونږ به گناهګار يو.

بل ځائې كښې ارشاد دې چې ائې ايمان والو عدل او انصاف او رباني گواهو باندې ثابت قدم اوسئ اگر چې تاسو ته ددې بدى اورسى،يا ستاسو مور پلار يا رشته دارو خاندان والو ته كه هغوى مالداره وى نو هم او كه غريبانان وى نو هم،الله ﷻ ددې دواړو نه اولى دې،خواهشاتو پسې عدل مه پرېږدئ،كه تاسو حق نه وائې يا ترې ډډه كوئ نو پوهه شئ چې الله ﷻ ستاسو د اعمالو نه خبر دې.

﴿فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ ۗ﴾ داشان دلته هم فرمائي چې گواهى مه پټوئ،ددې پټولو والا گناهګار دې اوالله ﷻ ستاسو اعمالو باندې ښه خبر دې.

| |
|---|
| مَا لِلَّهِ ٤ |
| الله لره دى\| هغه څه چې \| |
| دالله پاک ملكيت دې هغه څه چې \| |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَإِنْ تُبْدُوا مَا |
| په آسمانونو كښې دى \| او هغه څه چې په زمكه كښې دى \| او كه ښكاره كړئ تاسو\| هغه |
| په آسمانونو كښې دى \| اوڅه چې په زمكه كښې دى \| اوكه تاسو ښكاره كړئ |
| فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ ۗ |
| چې په زړونو ستاسو كښې دى \| يا پټ اوساتئ هغه \| حساب به كوى تاسوسره\| دهغې\| الله |
| نيتونه خپل يائې پټ اوساتئ \| نو الله پاک به درسره (خواه مخواه) د هغې حساب كوى |
| فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ |
| نومعاف به كړى\|هغه څوك \| چې خوښه ئې شى\| اوعذاب به وركړى\|هغه چاته\|چې اوغواړى\| او الله |
| نوچې دچادپاره ئې خوښهٔ شى هغه به اوبښى \|او چې دچادپاره چه اوغواړى نو عذاب به وركړى\| اوالله |

---

(١) ابن ابى حاتم : ٣/١٢٠٢)-
(٢) ابن ابى حاتم : ٣/١٢٠٣)-
(٣) ابو داود كتاب البيوع باب فى تضمين العارية : ٣٥٦١، ترمذى: ١٢٦٦ ، ابن ماجة. ٢٤٠٠)-
(٤) الطبرى: ٦/١٠٠)-

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٢٨٤﴾ اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ

په هر خيز باندی| قادر دی| ايمان راوړی دی| رسول |به هغه حكمونواچي نازل كړي شوي دي| هغه ته

په هر خيز باندې قدرت لری| پيغمبرپه هغه كتاب ايمان راوړی دی چي هغه ته د خپل رب د طرفه

مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ط كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ

درب دهغه نه | او مومنان هم| دوی ټولو| ايمان راوړی دی| په الله| او په فريښتو دهغه| او په كتابونو دهغه

راغلي دي| اومومنانو هم| .... ټولو ايمان راوړی دی په الله پاک دهغه په فرښتو دهغه په كتابونو

وَرُسُلِهٖ قف لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ قف وَقَالُوْا سَمِعْنَا

او په رسولانو دهغه| چي نه كوو فرق مونږه|په منځ ديو رسول |درسولانو دالله كښي| اوواني |اواوريدو مونږه حكم

او په پيغبرانو. ادوی وانی چي مونږ دهغه په پيغمبرانو كښي هيڅ قسمه فرق نه كوو اووانی چي مونږدالله حكمونه

وَاَطَعْنَا ق غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ﴿٢٨٥﴾ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا

او قبول مو كړو|غواړو ببښنه ستانه|اي ربه زمونږه|اوخاص تاته دی| درتلل | نه وركوی تكليف الله | هيچاته

واوريدل اوقبول موكړل |اني زمونږ ربه مونږ ستا نه ببښنه غواړو|اوتاته به آخر درخو| الله هيچاته تكليف نه وركوی

اِلَّا وُسْعَهَا ط لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ط

مگر|دهغه دوس مطابق|هغه لره دي ثواب|دهغه عمل|چي وي ني كړو|اوسزا ده په هغه باندې| دهغه عمل| چي وي ني كړو

دهغه طاقت نه زيات |چي چاڅه نيكي اوكړه دهغي ثواب به واخلي| اوچاچي گناه اوكړه دهغي سزا به وخكي

رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ج رَبَّنَا

اي ربه مونږه | مه نيسه مونږه | كه هير شي زمونږنه | يا په خطا سره اوشي گناه زمونږ نه | اي ربه زمونږه

«نوداسي دعا كوئ»اني زمونږ ربه كه زمونږ نه هير شي ايامونږ خطاشونږدي مومه نيسه |اني زمونږه ربه

وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ج

اومه باركوه |په مونږ باندې | درون بار| لكه چي بار كړې وو تاهغه| په هغه كسانو | چي مخكښې زمونږنه وو

په مونږدومره دروندبوج مه اچوه| لكه زمونږنه مخكښې په نورو خلقوچي دي اچولي وو

رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ج وَاعْفُ عَنَّا سكتة

اي ربه زمونږه | او مه باركوه په مونږ |هغه بوج | چي نه وی طاقت | زمونږ | په هغې | او معاف كړه مونږه

اني زمونږه ربه داسي دروند بار راته مه په سر كوه| چي مونږني داوچتولو طاقت نه لرو| اوزمونږ گناهونه معاف كړه

وَاغْفِرْ لَنَا سكتة وَارْحَمْنَا سكتة اَنْتَ مَوْلٰىنَا فَانْصُرْنَا

او ببښنه اوكړه مونږته |او رحم اوكړه په مونږه |ته مولا ني زمونږه | نو امداد اوكړه مونږ سره

اومونږ اوببښه |اوپه مونږ رحم اوكړه | ته زمونږ كارسازني | او مونږ ته غلبه راكړه

عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ع ﴿٢٨٦﴾

خلاف دقوم كافر

دكافرانو په مقابله كښي

قوله‌تعالى:- ﴿لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ ؕ﴾

**دزړه د وسوسو په محاسبې باندې د صحابه کرامو ﷺ پریشا نې ختمول**:- یعني د زمکې او آسمان مالك الله ﷻ دې،د غټو او وړو هغه عالم دې.د هر پټ او ښکاره به هغه حساب اخلي.او لکه څنګه چې بل ځائې کښې دی چې ﴿قُلْ اِنْ تُخْفُوْا مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ اَوْ تُبْدُوْهُ يَعْلَمْهُ اللّٰهُ ؕ﴾ الخ.یعني اووایه چې ستاسو سینو کښې څه دی که هغه تاسو پټ هم کړئ یا ئې ښکاره کړئ الله ﷻ ته د هغې علم شته دې،هغه د زمکو او آسمانونو د هر څیز مالك او علم لرونکې دې او په هر څیز قادر دې.

اوبل ځائې کښې فرمائی چې هغه پاك ذات پټ او ښکاره ټولو لره ښه پیژنی.په دې معنی نور هم آیتونه دی،دلته ئې دې سره دا اوفرمائیل چې هغه به حساب اخلي.

**ددې نه د وروستنی ایت شان نزول**:-هرکله چې داآیت نازل شو نوصحابه کرامو ﷺ ته ډیرسخت محسوس شو چې دوړولویو ټولو څیزونو حساب به وی اودخپل ایمان دزیاتوالی اودیقین د مضبوط والی په وجه دوئ اویریدل.نو رسول الله ﷺ ته راغلل او ورته ئې ددې باره کښې اوونیل او وې وئیل چې یارسول الله مونږ ته د مونځ،روژې،جهاد او صدقې باره کښې حکم اوشو اوهغه زمونږ په طاقت کښې وو،خو اوس چې کوم یو آیت نازل شوې دې دهغې مونږ کښې طاقت نشته.نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې آیا بیا تاسو د یهودیانو اونصرانیانو په شان وائې چې مونږ واوریدل او دا مونږ نه منو،تاسوته پکار دی چې اووائې چې مونږ واوریدل او مونږ منو،ائې الله ﷻ ! مونږ ستا بخښش غواړو او ائې زمونږه ربه مونږ به ستاطرفته واپس کیږو.نوصحابه کرامو ﷺ دا تسلیم کړه او په ژبو ئې دا کلمات جاری شول نو﴿اٰمَنَ الرَّسُوْلُ﴾ نازل شو او الله ﷻ دا تکلیف لرې کړو.او آیت ﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ﴾ نازل شو (مسند احمد) ([1]) صحیح مسلم کښې دا حدیث دې په هغې کښې دی چې الله ﷻ دا تکلیف اوچت کړو او آیت ﴿ لا یکلف الله ﴾ نازل شو ([2])او هرکله چې مسلمانانواوونیل چې ائې الله ﷻ مونږ زمونږ په هیرو او په خطاګانو باندې مه نیسه.نوالله ﷻ اوفرمائیل چې﴿ نعم ﴾یعني هم دا به کوم،هغوئ اوونیل چې ﴿وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ﴾الخ ائې الله ﷻ مونږ باندې هغه بوج مه اچوه چې کوم دې زمونږ نه مخکښې خلقو باندې اچولې وو نوالله ﷻ اوفرمائیل چې داهم قبول دی ،بیا ئې اوونیل چې﴿ وَلَا تُحَمِّلْنَا﴾ ائې الله ﷻ مونږ باندې زمونږ د طاقت نه زیات بوج مه اچوه.نو الله ﷻ اوفرمائیل چې دا هم قبول دې.بیا ئې دعااوغوښتله چې ائې الله ﷻ مونږ معاف کړه او زمونږ ګناهونه اوبخښه او په کافرو باندې مونږ سره مدد اوکړه.الله ﷻ دا هم قبول کړل،داحدیث نورو طریقو سره هم مروی دې.

**دنفس په وسوسو او د زړه په خیالاتو باندې نیول نشته**:- یو روایت کښې دا هم دی چې مجاهد رحمه الله وائی چې زهٔ ابن عباس ﷺ لره ورغلم او هغوئ ته مې دا واقعه بیان کړه چې عبدالله بن عمر ددې آیت﴿وَاِنْ تُبْدُوْا الخ﴾تلاوت اوفرمائیلو او ډیر ئې اوژړل،هغوئ اوفرمائیل چې هم دا حال د صحابه کرام ﷺ د دې آیت د نازلیدو په وخت کښې شوې وو اوبه دې سخت غمګین شوې وو.او دا ئې هم اوونیل چې ائې د زړونو مالکه که زمونږ د زړونو په خیالاتو هم مونږ اونیسې نو دا به ډیر مشکل وی.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې﴿سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا﴾اووائې.نوصحابه کرامو ﷺ اوونیل.اوبیا دې نه پس والا آیتونه نازل شو.اوبه عمل باندې نیول شته دې لیکن د زړه په خیالاتو او د نفس په وسوسو باندې نیول نشته دې.

([3]) بل طریق سره دا روایت د ابن مرجانه نه هم دا شان مروی دې.او په هغې کښې دی چې قرآن پاك فیصله اوکړه چې تاسو به ستاسو په نیکو او بدو عملونو باندې نیولې کیږئ.که هغه زبانی وی او که د

---

[1]) احمد: ۴۱۲/۲ ،وسنده صحیح ورواه مسلم: )-.
[2]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان تجاوز الله تعالى من حدیث النفس:۱۲۵ ،مسند ابی عوانه ۷۶/۱، ابن حبان : ۱۳۲۹)-
[3]) صحیح بخاری کتاب العتق باب الخطاء والنسیان فی العتاقة: ۲۵۲۸، صحیح مسلم: ۱۲۷)-

اندامونو نه وی.لیکن د زړه وسوسي معاف دی.او د نورو ډیرو صحابه کرام ﷺ نه او تابعینو نه د دې منسوخ کیدل مروی دی،صحیح حدیث کښې دی چې الله ﷻ زما د امت په غلطو خیالاتو معافی کړې ده او نیول په هغې دی چې کوم دوی اوکړی یا اووائی.[۱]

**د نیکۍ په ارادې کولو سره ثواب لیکلې کیږی او په ګناه کښې داسې نهٔ کیږی:-** بخاری اومسلم کښې دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ فرمائی چې کله زما بنده د بدنی اراده اوکړی نو هغه مه لیکئ تر کومې چې هغه اونکړی اوکه وې کړی نو یو بدی نې لیکئ او کله چې د نیکئ اراده اوکړی نو صرف ارادې سره ئې یو نیکی لیکئ اګر چې نیکی ئې نه وی کړې.او د یو نیکئ په بدله کښې ورته لس نیکئ لیکئ.(مسلم) [۲]او یو روایت کښې دی چې دیو نیکئ بدله کښې د دوی دپاره اووه سوه نیکئ لیکلې کیږی.[۳]او یو روایت کښې دی چې کله یو بنده د بدئ اراده کوی نو فرښتې د الله ﷻ دربار کښې عرض کوی چې اې الله ﷻ ا ستا بنده د بدئ اراده کوی نو الله ﷻ فرمائ چې صبر اوکړئ ترکومې چې دې دا اونکړی،دا د ده په نامه اعمال کښې مهٔ لیکئ:که وې کړی نو یو بدی ئې اولیکئ:او که دا پریږدی نو یو نیکی ئې څکه چې دا ده زما د ویرې پریښودې ده.

**د یوې نیکئ ثواب د لسو نه تر اووه سوو پورې:-** رسول الله ﷺ فرمائی چې څوك پوخ او پورا ایمان والا مسلمان جوړ شی نو د هغه د یو یو نیکئ ثواب د لسو نه واخله تر اووه سوؤ نیکو پورې زیاتیږی.او بدی نه زیاتیږی [۴]اویو روایت کښې دی چې داووه سوو نیکونه هم نیکی زیاتیږی.[۵]یو بل روایت کښې دی چې ډیر بربادونکی هغه دې په ده باندې د رحم وکرم کولو نه باوجود هم دې برباد شی.[۶]

**د صریح ایمان علامه:-** یو ځل حضرات صحابه کرام ﷺ راغلل او وې فرمائیل چې یارسول الله ﷺ ! کله کله زمونږ په زړونوکښې داسې وسوسې راپورته شی چې په ژبې سره د هغې بیانول هم مشکل دی نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې داسې کیدل شروع شو؟.هغوئ اوفرمائیل چې آو،نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې دا صریح ایمان دې.(مسلم وغیره)[۷]

**د زړه د وسوسو په محاسبه باندې عذاب لازم نه دې:-** ابن عباس ﷺ نه مروی دی چې دا آیت منسوخ شوې نه دې بلکه ددې مطلب دادې چې د قیامت په ورځ چې کله ټول مخلوق الله ﷻ مخکښې جمع شی نو فرمائی چې زه به تاسو ته ستاسو د زړونو رازونه ښایم او په هغې به زما فرښتې هم خبر نه وی.مومنان به په دې باندې خبر کړې شی او هغوئ به معاف کړې شی او منافقان او شك شبه کونکی خلقو لره به د دوی د تکذیب اطلاع ورکړې شی او دوی ته به سزا ورکړې شی.لکه بل ځائې کښې فرمائی چې ﴿وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ﴾یعنی الله ﷻ به تاسو لره ستاسو د زړونو په کړو باندې نیسی یعنی د زړه په شك او نفاق باندې.

حسن بصری رحمة الله علیه هم دې ته منسوخ نه وائی.امام ابن جریر رحمة الله علیه هم دا قول خوښ کړې دې او فرمائی چې حساب بل څیز دې او عذاب بل څیز.حساب اخستلو نه پس دا نه لازمیږی چې حساب نه پس ممکن دی چې معاف به شی اوممکن دی چې عذاب ورکړی او سزا ورکړی.

---

[۱] صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی ( یریدون ان یبدلوا کلام الله ...) ۷۵۰۱، صحیح مسلم: ۱۲۸، ترمذی: ۱۱۸۳، نسائی: ۳۴۶۳، ابن ماجة: ۲۰۴٤)-

[۲] صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی ( یریدون ان یبدلوا کلام الله ...) ۷۵۰۱، صحیح مسلم: ۱۲۸،)-

[۳] صحیح مسلم کتاب الایمان باب اذا هم العبد بحسنة: ۱۲۸)- ؟؟

[۴] صحیح مسلم کتاب الایمان باب اذا هم العبد بحسنة ۱۲۸، صحیح بخاری : ٤۲ قوله ( اذا احسن احدکم سلامه.

[۵] صحیح مسلم کتاب الایمان باب اذا هم العبد بحسنة ۱۲۸، صحیح بخاری ٤۲ قوله ( اذا احسن احدکم سلامه..

[۶] صحیح مسلم کتاب الایمان باب اذا هم العبد بحسنة ۱۲۸، صحیح بخاری : ٤۲ قوله ( اذا احسن احدکم سلامه

[۷] صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان الوسوسة فی الایمان : ۱۳۲)-.

**د الله تعالی د خپل بنده پرده پوشي:-** نو په يو حديث مبارک کښې دي چې مونږ طواف کولو چې يو سړی د عبدالله بن عمر ﷺ نه تپوس اوکړو چې تاسو رسول الله ﷺ نه د پټې خبرې متعلق څه آوريدلی دی. نو هغوئ اوفرمائيل چې الله ﷻ به ايماندار راوبلی اوتردې چې په هغوئ به خپل لاس کيږدی او بيابه اوفرمائي چې اووايه تافلانئ فلانئ ګناه په فلانئ فلانئ ورځ کړې وه؟هغه غريب به اقرار کوی.هرکله چې ګناهونه ډير زيات شی نوالله ﷻ به اوفرمائي چې واوره،په دنيا کښې هم ما ستا په عيبونو باندې پرده پوشی کړې وه او نن هم ستا ټول ګناهونه معاف کوم.او بيا به هغه ته د هغه د نيکواعمال نامه د هغه په ښی لاس کښې ورکړې شي،البته کافرانواومنافقانو لره به جمع کړی اودهغوئ مخکښې به کيږدی او هغوئ به رسوا کړی اودهغوئ ګناهونه به ښکاره کړی.او ورته به اووئيلې شي چې داهغه خلق دی چې دوی په الله ﷻ باندې دروغ اوتړل او په دې ظالمانو باندې د الله ﷻ غضب دې.(۱)

**په دنياوي ورړوکی نه ورړوکی تکليف باندې د ګناه معاف کيدل:-** حضرت زيدﷺ يو خل دې آيت باره کښې عائشه ﷺ نه سوال اوکړو نو هغوئ اوفرمائيل چې کله ما ددې آيت باره کښې د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو نو د هغه وخت نه واخله تر دې وخت پورې زما نه هيچا تپوس نه دې کړې،نن تاسو تپوس اوکړو واوره! ددې نه مراد د بنده دنياوی تکليفونه لکه تبه وغيره چې کوم بنده ته رسی.تر دې چې ده يو جيب کښې رقم ايښودې دې اوخيال ئې راغلو چې دده په بل جيب کښې دې نو ده بل جيب ته لاس دننه کړو او هغه جيب کښې نه وو اوپه دې باندې دده زړه پريوتو،بيا ئې بل جيب ته لاس دننه کړو او هلته ملاؤ شو نو په دې باندې هم دده ګناهونه معاف کيږی.تر دې چې د مرګ په وخت کښې هغه ګناهونه دا شان پاکيږی لکه خالصه تک سرۀ،سرۀ زر( ترمذی وغيره) دا حديث غريب دې.(۲)

**د سورۀ بقره د آخری دوو آيتونو فضيلت:-** ددې دوارړو آيتونو فضيلت بيانيږی.صحيح بخاری کښې دی چې کوم سړې دا دواړه آيتونه د شپې هغه دپاره دا دواړه کافی دی.(۳)

**د عرش د لاندې د خزانې نه د دې ايتونو ورکړه:-** مسند احمد کښې دی چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چې ماته دسورۀ بقره آخری دوه آيتونه د عرش لاندې خزانې نه راکړې شوی دی او زما نه مخکښې هيڅ يو نبی ته دا نه وو ورکړې شو(۴)

**دا دوه ايتونه په شب معراج کښې ملاو شوي دي:-** صحيح مسلم شريف کښې دی چې کله رسول الله ﷺ معراج ته تشريف يوړو او رسول الله ﷺ سدرة المنتهی ته اورسيدلو،سدرة المنتهی په اووم آسمان کښې ده،چې کوم يو څيز آسمان طرفته خيژی هغه هم دلته رسی او دلته نه واخستې شي او چې کوم څيز پورته نه راکوزيږی هغه هم ددې ځانې نه راکوزيږی،بيا د دې ځانې نه رازی.په دې باندې د سرو زرو مولخان وو.بيا نبی ﷺ ته درې څيزونه ورکړې شو.❶پنځه وخته مونځ❷د سورۀ بقرې آخری آيتونه❸او د توحيد والو دپاره د ټولو ګناهونو بخښش (۵)

مسندکښې دی چې عقبه بن عامر ﷺ ته رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې د سورۀ بقره آخری دوه آيتونه وايه چې د عرش د لاندې خزانې نه راکړې شوی دی (۶)

**مونږ ته په خلقو باندې درې فضيلتونه راکړې شوې دي:-** ابن مردويه کښې دی چې مونږ ته خلقو باندې

---

۱) صحيح بخاری کتاب المظالم باب قول الله تعالی ( الا لعنة الله علی الظالمين)۲٤٤١، صحيح مسلم: ۲۷٦۸)-
۲) ترمذی : کتاب التفسيرالقرآن : باب ومن سورة البقرة: ۲۹۹۱)-
۳) صحيح بخاری کتاب فضائل القرآن باب فضل سورة البقرة : ۵۰۰۹، صحيح مسلم : ۸۰٦، ابوداود: ۱۳۹۷، ترمذی: ۲۸۸۱، ابن ما جة: ۱۳٦۹)-
۴) احمد: ۱۵۱/۵، وسنده «ضعيف»)-.
۵) صحيح مسلم کتاب الايمان باب فی ذکر سدرة المنتهی : ۱۷۳، السنن الکبری للنسائی: ۳۱۵)- .
٦) احمد: ۱٤۷/٤،)-.

درې فضيلتونه راکړې شوی دی.د سورة بقرة دا اخری ايتونه،او دا د عرش د لاندې خزانې نه راکړې شوی دی،او دا زما نه مخکښې بل چاته نه وو ورکړې شوی او نه به ورکړې شي.[1]

**زما يقين نه دې چې څوک به د دې وئيلو نه بغير اودهٔ شي:-** ابن مردويه کښې دي چې علی ﷺ فرمائی چې زما يقين نه دې چې يو اسلام والا سړې به د آيت الکرسی او سورة البقره دآخری آيتونو وئيلونه بغير اوده شي.دا هغه خزانه ده چې ستاسونبی ﷺ ته د عرش د لاندې نه ورکړې شوې ده.[2]

**دا دوه ايتونه د زمکې او اسمان نه دوه زره کاله مخکښې ليکلې شوې دی:-** او د ترمذی حديث کښې دی چې الله ﷻ د زمکې او آسمان پيدا کيدونه دوه زره کاله مخکښې يو کتاب اوليکلو چې د هغې نه دا دوه آيتونه ئې رانازل کړل.چې په کوم کور کښې د شپې دا دوه آيتونه اولوستلې شی،هغه کور ته شيطان هم نزدې نه رازی.[3] امام ترمذی رحمة الله عليه دې ته غريب وائی.ليکن حاکم مستدرك حاکم کښې دې ته صحيح وئيلې شوی دی.

**نبی کريمﷺ به د دې د تلاوت په وخت مسکې کيدو:-** ابن مردويه کښې دی چې کله به رسول الله ﷺ د سورة بقرة آخری آيتونه او آيت الکرسی وئيله نو خندل به ئې او فرمائيل به ئې چې دا دواړه د رحمان د عرش د لاندې خزانې نه دی.اوکله چې به ئې آيت﴿مَنْ يَعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ﴾او آيت﴿وَاَنْ لَّيْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰىۙ وَاَنَّ سَعْيَهٗ سَوْفَ يُرٰى﴾لوستلو نو د ژبې مبارکې نه به ئې﴿ انا لله ﴾ وتل.اويه مزه به شو.[4] ابن مردويه کښې دی چې ماته سورة فاتحه او دسورة بقرې آيتونه دعرش دلاندې نه راکړې شوی دی.او د مفصل سورتونه نور زيات دی.[5]

**تاسو ته دوه نورونه درکړې شو:-** اوحديث شريف کښې دی چې مونږ رسول الله ﷺ سره ناست وو ،جبريل ﷺ هم وو.اچانك د آسمان نه د يو دهشت ناکې دهماکې آواز راغلو.جبريل ﷺ پورته سترګې اوچتې کړې او وې فرمائيل چې د آسمان دا دروازه بيرته شوه او نه پورې دا هيڅکله نه وه خلاصه شوې،ددې نه يو فرښته نازله شوه،هغې نبی کريم ﷺ ته اوونيل چې تاسوته دوه نورونه درکړې کيږی.او ستاسونه مخکښې هيچا ته نه وو ورکړې شوی. ❶سورة فاتحه❷او د سورة بقرة آخری آيتونه،په دې کښې به په يو يو حرف باندې تاسوته نور درکولې شی.(مسلم)[6].نو دا لس احاديث د دې مبارکو آيتونو فضيلت دی.

قوله تعالى:-اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ؕ

**أسمانی کتابونه چې څومره نازل شوی دی په هغې ايمان ساتل:-**دآيت مطلب دادې چې رسول يعنی محمد ﷺ په هغه (څيزونو)باندې ايمان راوړو چې کوم هغوئ طرفته دالله ﷻ دطرفنه نازل شوی دی،ددې په آوريدو سره رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې هغه د ايمان راوړو پورا مستحق وو[7]اونورو ايماندارو هم ايمان راوړو.دې ټولو اومنلو چې الله ﷻ يو دې،هغه واحد لاشريك دې،هغه بې نياز دې.د هغه نه سوا د عبادت لائق بل څوك نشته.نه د هغه نه سوا څوك پاللو والا شته دې.دوی ټول نبيان ﷺ منی.په ټولو رسولانو باندې ايمان لری.دوی په نبيانو ﷺ کښې فرق نه کوی چې يو منی اوبل نه منی

---

[1]) احمد: ۳۸۳/۵، وسنده صحيح)-.
[2]) داروايت موقوف دې او دوادړو سندونو سره ضعيف دې)-.
[3]) ترمذی کتاب فضائل القرآن باب ماجاء فی اخر سورة البقرة : ۲۸۸۲، وسنده حسن)-
[4])دې الفاظو سره داروايت ډيرضعيف دې،ددې سند کښې ابوبکربن ابی؛مريم ضعيف راوی دې (الميزان٤/٤٩٨، رقم: ١٠٠٦)-
[5]) المعجم الکبير للطبرانی : ٢٢٥/٢٠، مطولا بهذا اللفظ حاکم : ٥٥٩/١، وسنده ضعيف )-
[6]) صحيح مسلم کتاب صلاة المسافرين باب فضل الفاتحة وخواتيم سورة البقرة : ٨٠٧)-
[7]) داروايت مرسل دې امام ذهبی دا منقطع ګرځولې دې).

بلکه ټولو لره ربنتیامني.او ایمان لرې چې هغه ټول پاك باز او رشد و هدایت والا او د خلقو د خیرخواهۍ د پاره دی.بعضې احکام د هر نبی په زمانه کښې بدلیدل رابدلیدل.تر دې چې د رسول الله ﷺ شریعت ټولو لره منسوخ کړل.دوی ختم الانبیاء والمرسلین دی.تر قیامته به د رسول الله ﷺ شریعت باقی وی او یو جماعت به د دې اتباع کوی.هغوئ هم اقرار اوکړو چې مونږ کلام الله واوریدو او د الله ﷻ احکام مو اومنل.دوی اوونیل چې انې الله ﷻ مونږ ته مغفرت،رحمت او لطف عطا کړه وې فرمائیل چې هم ستا طرفته به مونږ واپس کیږو یعنی د حساب کتاب په ورځ،جبریل ؑ اوفرمائیل چې انې د الله رسولهادلته ستا او ستا د امت فضیلت بیانیږي،تاسو په دې موقع دعا اوکړئ هغه به قبلیږي.اوغواړئ چې الله تعالی هغوئ ته تکلیف ورنکړي.(۱)

قوله تعالی:- لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ؕ

بیا فرمائی چې هیچا ته د هغه د طاقت نه زیات تکلیف الله ﷻ نه ورکوی،دا د هغه پاك ذات احسان او انعام دې.صحابه کرام ؓ چې ویریدلی وو او په هغوئ باندې چې کوم حکم مشکل لګیدلې وو چې د زړه خیالاتو باندې به حساب اخستې شی.هغه تکلیف دې آیت سره ختم شو.مطلب دادې چې حساب وکتاب به وی لیکن چې کوم څیز د طاقت نه بهر دې په هغې باندې عذاب نشته دې خکه چې په زړه کښې اچانك د یو خیال راتلل نشی بندیدې.بلکه حدیث مبارك نه دا هم معلوم شو چې داسې وسوسې بنه نه ګنړل د ایمان دلیل دې.بلکه چې څه کړې هغه به ریبې.چې نیك اعمال کوئ نو ښه جزاء به نې مومئ.که غلط اعمال کوئ نوسزا به مومئ.

قوله تعالی:- رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ

بیا ئې د دعا تعلیم او د دې د قبولیت وعده اوفرمائیله چې انې الله زمونږ نه چې په هیره اوشی او کوم احکام رانه پاتې شی یا چې کوم کارونه شوی دی یا شرعی احکاموکښې څه غلطی شوې ده یا چې کوم مونږ د شریعت خلاف کړی دی هغه معاف کړه.د صحیح مسلم حوالې سره حدیث تیرشوې دې چې ددې دعا جواب کښې الله ﷻ فرمائی چې ما قبوله کړه او ما هم دا اوکړل (۲)

**زما د امت هیره معاف ده:-** او حدیث کښې راغلی دی چې زما د امت هیره معاف ده.او چې کوم احکام زبردستئ سره پرې اوکړې شی هغه هم معاف دی.(ابن ماجه) (۳)

قوله تعالی:- رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۚ

انې الله ﷻ ! مونږ باندې د مشکل اوسخت اعمال مشقت مه اچوه.لکه څنګه چې مخکښې دین والو باندې سخت احکام وو.او کله چې رسول الله ﷺ د رحمت والا نبی راولیږلې شو نو هغه ختم شو.او رسول الله ﷺ ته یو آسان دین ورکړې شو.دا هم الله ﷻ قبول اوفرمائیل.حدیث مبارك کښې هم دی چې زهٔ یکسوئی والا اوآسان دین والا رالیږلې شوې یم (۴).

قوله تعالی:- رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ

انې الله ﷻ امونږ باندې هغه تکلیفونه اومشکلات مه راوله چې دهغې برداشت مونږ کښې نه وی. (۵)

مکحول ؒ فرمائی چې ددې نه مراد فریب او غلبه دشهوت ده.ددې جواب کښې هم د قبولیت اعلان د الله ﷻ د طرفه اوشو او زمونږ خطاګانې معاف کړه چې کومې ستاسو لار کښې شوی دی،او زمونږ ګناهونه اوبخښه د په بدعملونو او غلطو باندې پرده واچوه،مونږ باندې رحم وکرم اوکړه چې بیا زمونږ

---

۱) الطبری:۶۴۹۸، عن حکیم عن جابر، داروایت مرسل ضعیف دې-
۲) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان تجاوز الله تعالی ۱۲۵،۰۰۰۰۰-
۳) ابن ماجة کتاب الطلاق باب الطلاق المکره والناسی: ۲۰۴۳، عن ابی ذر رضی الله عنه وهوصحیح بالشواهد)-
۴) احمد: ۲۶۶/۵)-
۵) ابن ابی حاتم: ۱۲۳۵/۳)-

نه ستا د مرضۍ خلاف او نشي.

**گناه کار ته د درې خبرو ضرورت دې** ددې وجې د بزرگانو قول دې چې گناهگار ته د دريو خبرو ضرورت دې①يود الله ﷻ د معافۍ چې د عذاب نه ورته نجات ملاؤ شي② دويم پرده پوشي چې د رسوائۍ نه بچ شي.③دريم عصمت چې هغه دوباره گناه کښې مبتلاء نشي.نو په دې باندې هم الله تعالى د قبوليت اعلان اوکړو.

**قوله تعالى:- أَنْتَ مَوْلٰىنَا فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ**

ته زمونږ ولي او ناصر ئې او هم ستا په پاك ذات باندې زمونږ بهروسه ده.او هم ستا نه مونږ مدد غواړو،هم ته زمونږ سهارا ئې،ستا نه سوا بغير بل څوك زمونږ مدد نشى کولې،او نه مو څوك د بدنى نه بچ کولې شي،ته زمونږ خلقو سره مدد اوکړه د هغه خلقو مقابله کښې چې کوم ستا د دين نه منکر دی او ستا وحدانيت نه مني.او ستا د نبي ﷺ نبوت نه مني،ستاسره د نورو عبادت کوی او مشرکان دی.ائې الله ﷻ ته مونږ غالب کړه په هغوئ باندې په دين او دنيا کښې،الله ﷻ د دې جواب کښې فرمائلي چې آو ما دا هم اوکړل،حضرت معاذ ﷺ چې به کله دا آيت ختمولو نو آمين به ئې وئيلو.(ابن جرير) (۱).

## د سورة آل عمران تفسير (۴)جاري

دا سورت مدنى دې،د دې د شروع درې اتيا آيتونه د عيسايانو د وفد باره کښې نازل شوی دی چې کوم په نهمه(۹)هجرئ کښې د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شوی وو.او د هغې مفصل بيان د مباهلې آيت(قُلْ تَعَالَوْا)په تفسيرکښې به نزدې راشي.انشاء الله د هغې فضيلت او احاديث چې کوم وارد شوی دی هغه د سورت بقره تفسير کښې په شروع کښې بيان شوی دی.

| اياتونه | | سورة آل عمران مدني دې | | ركوع گانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۲۰۰ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ۲۰ |

الٓمّٓ ۝ اللهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ۝

ال م | الله | نشته دې لائق دعبادت | مگرهم هغه دې | هميشه ژوندي دې | دټول کائنات اختيارمندي دي

الم::::: الله پاك چې بې دهغه نه بل معبود نشته | ..........ژوندي دې ټول مخلوق سنبال ساتي

نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ

هغه نازل کړو په تاباندې | دا کتاب | دحق سره | تصديق کونکې دې | دهغه کتابونو | چې مخکښې دده نه دی

هغه په تادا کتاب په حقه نازل کړې دې اچې دهغې کتابونوتصديق کوی کوم دې نه وړاندې راغلي وو

وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ۝ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ

او نازل ئې کړو تورات | او انجيل | مخکښې دده نه | هدايت کونکې | خلقو ته | اونازل ئې کړو

اودينه وړاندې ئې تورات اوانجيل دخلقو دهدايت دپاره نازل کړې | ..........او راليږلي ئې دي

---

(۱)الطبرى: ۶/۱۴۶،وسنده ضعيف،ابو اسحاق مدلس راوى دې،اودسماع صراحت نشته دې اوسند کښې رجل مجهول دې،

| بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | كَفَرُوْا | اِنَّ الَّذِيْنَ | الْفُرْقَانَ ۗ |
|---|---|---|---|
| دآيتونو دالله نه | انكار ني اوكړو | بيشكه هغه كسان اچي | فرق كونكي په حق او باطل كښي |

دحق اوباطل فرق كونكي ا ...............نو څوک چي (اوس هم) دالله پاک دحكمونومنلونه انكار كوي

| ذُوانْتِقَامٍ ۝ | عَزِيْزٌ | وَاللّٰهُ | شَدِيْدٌ ط | عَذَابٌ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بدله اغستونكي دي | غالب دي | اوالله | سخت | عذاب | دي هغوئ لره |

نوهغوئ دپاره سخت عذاب مقرر دي ا ....... اوالله داختيارخاوندي ا اودبدوكارونو سزا وركوي ا

**دريو ايتونوكښي اسم اعظم:**- د ايت الكرسئ دتفسير په بيان كښي مخكښي داحديث تير شوې دې چې اسم اعظم دې آيت او آيت الكرسي كښي دي.او د﴿الٓمّٓ ﴾تفسير د سورة بقره په شروع كښي بيان شوې دې د دوباره ليكلو دلته ضرورت نشته دې.﴿ اللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ﴾تفسير هم د آيت الكرسئ تفسير كښي مونږ ليكلي دي.

**قوله تعالى:**- نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ

بيا فرماني چې انې محمد ﷺ تاسوباندې قرآن كريم حق سره نازل كړې دې.اوپه دې كښي هيڅ شك نشته.بلكه يقيناً دا دالله ﷻ دطرفنه دې.او دا ني خپل علم سره نازل كړې دې.او فرښتې په دې باندې گواه دى.او د الله تعالى شهادت كافى دې.داقرآن پاک دمخكښي كتابونو تصديق كوونكئ دې.اوهغه كتابونه ددې قرآن د رښتينوالى دليل دى.ځكه چې په هغې كښې د دې نبى ﷺ او د قرآن پاک د راتلو خبر وو،هغه رښتيا ثابت شو.

**قوله تعالى:**- وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ۙ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ

هم هغه ذات موسى بن عمران ﷵ باندې توراة نازل كړو،عيسى بن مريم ﷵ باندې ني انجيل نازل كړو.هغه دواړه(كتابونه)د هغه زمانې د خلقو دپاره هدايت وو.

**قوله تعالى:**- وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ۗ

هغه پاک ذات فرقان نازل كړو چې دا حق و باطل او ضلالت او گمراهئ او په نيغه لار كښي فرق كونكي دې،د دې واضح او ورښيانه دليلونه او زبردست برهان هر يو لره كافى كيدونكي دى.

**د فرقان نه مراد څه دى؟:**-د قتاده ﷫ او ربيع بن انس بيان دې چې د فرقان نه مراد دلته قرآن پاک دې.اگر چې دا مصدر دې.خو ولې د قرآن پاک ذكر د دې نه مخكښي تير شوې دې،د دې وجې دلته ني فرقان اوفرمائيل.ابوصالح نه دا هم مروى دى چې د دې نه مرادتورات دې مگر دا ضعيف دې.ددې وجې نه چې د تورات ذكر ددې نه مخكښي تير شوې دې.والله اعلم.

**قوله تعالى:**- اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۭ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُوانْتِقَامٍ ۝

دقيامت په ورځ به په منكرانو او باطل پرستوباندې سخت عذاب وى،الله ﷻ غالب دې،لوئې شان والا دې،اعلى وسعت والا دې.انبياء ﷸ او رسولان ﷸ د مخالفانو او د الله ﷻ د آيتونو تكذيب والو نه به الله ﷻ سخت انتقام اخلى.

| هُوَالَّذِيْ | وَلَا فِي السَّمَآءِ ۝ | فِي الْاَرْضِ | شَيْءٌ | عَلَيْهِ | اِنَّ اللّٰهَ لَا يَخْفٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| اهغه هم هغه دي | او نه په آسمان كښي ا | په زمكه كښي ا | هيڅ څيز | په هغه | بيشكه الله چې دي نه دې پټ |

دالله پاک نه دزمكي او آسمانونو هيڅ څيزهم پټ نه دي ا ............ الله پاک هغه ذات دي

| الّاهُوَ | لَآ اِلٰهَ | كَيۡفَ يَشَآءُ | فِي الۡاَرۡحَامِ | يُصَوِّرُكُمۡ |
|---|---|---|---|---|
| مگرهم هغه | نشته لائق دعبادت | څنګه چې غواړي هغه | په رحمونو کښې | چې جوړوي صورتونه ستاسو |
| چې ستاسو صورتونه دمیندو په رحمونو کښې هغې جوړوي څنګه چې ئې خوښ وي دهغه نه سوا بل څوک دعبادت لائق نشته | | | | |
| الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ ۝ | | | | |
| غالب او حکیم دی | | | | |
| په هرڅا غالب او دحکمت خاوند دی | | | | |

قوله تعالی:- اِنَّ اللّٰهَ لَا يَخۡفٰى عَلَيۡهِ شَىۡءٌ فِى الۡاَرۡضِ وَلَا فِى السَّمَآءِ

**دمور په خیټه کښې تصویر جوړولو والا الله ﷻ دی:-** الله ﷻ فرمائي چې هغه د آسمان او زمکې عیبونو لره ښه پیژني.د هغه پاك ذات نه هیڅ څیز پټ نه دی،

قوله تعالی:- هُوَ الَّذِىۡ يُصَوِّرُكُمۡ فِى الۡاَرۡحَامِ كَيۡفَ يَشَآءُ

تاسو ته ستاسو د مور په خیټه کښې ستاسو صورتونه جوړونکې دی څنګه چې هغه پاك ذات غواړي ښه یا خراب نیک یا بد.

قوله تعالی:- لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ ۝

د هغه پاك ذات نه سوا هیڅو ك د عبادت لائق نشته دی.هغه لوئې ذات غالب او حکمت والا دی.او هم هغه یو ذات تاسو جوړ کړئ او تاسوئې پیداکړئ،بیا تاسو د نورو عبادت ولې کوئ؟هغه لوئې ذات لازوال عزتونو والا،غیرفاني حکمتونو والا،محکم حکمونو والا دی،په دې کښې اشاره بلکه وضاحت دی چې عیسی ؑ لره هم الله ﷻ پیدا کړې وو او عیسی ؑ د هغه پاك ذات عبادت کوونکې وو لکه څنګه چې ټولو انسانان دی او په دوی کښې یو حضرت عیسی ؑ هم دو.هغه هم د مور په رحم کښې جوړ کړئ شو او زما د پیدا کولو حکم سره پیدا شو.بیا الله ﷻ څنګه شو.لکه څنګه چې دې لعنتی جماعت ګنړلې دی.حالانکه هغه پاك ذات خودیوحالت نه بل حالت ته انسان په رګونو کښې اړوی راړوی.،لکه بل ځائې کښې ارشاد دې چې﴿يَخۡلُقُكُمۡ فِىۡ بُطُوۡنِ اُمَّهٰتِكُمۡ خَلۡقًا مِّنۡۢ بَعۡدِ خَلۡقٍ فِىۡ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ﴾ :یعنی الله ﷻ تاسو د ستاسو دمور په خیټو کښې پیدا کوی،د یو د پیدائش نه پس په بل انداز کښې جوړول په دریو دریو تیارو کښې کیږی.

| اٰيٰتٌ | مِنۡهُ | الۡكِتٰبَ | عَلَيۡكَ | اَنۡزَلَ | هُوَ الَّذِىۡۤ |
|---|---|---|---|---|---|
| آیتونه | بعضې له دې نه | دا کتاب | په تا باندې | چې نازل ئې کړو | هم دغه الله دی |
| هغه الله دی چې په تائې کتاب نازل کړې دی په دې کښې،دوه قسمه آیتونه | | | | | |

| فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ | فَاَمَّا الَّذِيۡنَ | مُتَشٰبِهٰتٌ | وَاُخَرُ | هُنَّ اُمُّ الۡكِتٰبِ | مُّحۡكَمٰتٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې په زړونو دهغوئ کښې | نو هر هغه کسان | متشابهات دی | او بعضې نور | اصل دکتاب دی | دا محکمات دی |
| دی، بعضې محکمات چې هغه دکتاب بنیادي آیتونه دی اونور مشتبهات دی انو چاپه زړونو کښې | | | | | |

| الۡفِتۡنَةِ | ابۡتِغَآءَ | مِنۡهُ | مَا تَشٰبَهَ | فَيَتَّبِعُوۡنَ | زَيۡغٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| دفتنې | دپاره دطلب | دهغې نه | چې متشابه وی | دهغه آیتونو | کوږوالې دی انو هغوئ تابعداری کوی |
| چې کوږوالې وی انو هغوئ د فتنې جوړولو په کوشش کښې په متشابه آیتونو لتون کوی | | | | | |

وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ ۚ وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ إِلَّا اللَّهُ ۗ

او دپاره دطلب | دبدلې معنی دهغې | او حال دا چی نۀ پوهیږی|په حقیقت مطلب دهغې | ماسوا | دالله نه

اودهغې دمعنومعلومولو کوشش کوی | .........اودهغې په سم مطلب خو صرف الله پاک پوهیږی

وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ ۙ كُلٌّ

او هغه کسان | چی پاخه دی په علم کښې | اوایئ هغوئ | ایمان راوړی دې مونږه| په دې | دا ټول

اوڅوک چې د مضبوط علم خاوندان دی | نوهغوئ وائی چې مونږ ایمان راوړی دې |دا ټول

مِّنْ عِندِ رَبِّنَا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ ۝ رَبَّنَا لَا تُزِغْ

دطرفه د رب زمونږ نه دی |او نۀ قبلوی نصیحت | مګر|خاوندان دعقلونو | اې ربه زمونږه | مۀ کږوه |

زمونږ درب دطرفه دی |او(دنیغې لارې نه خو)بس هوښیار خلق سبق اخلی| (اووائی چې)انې زمونږه ربه!

قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً ۚ

زړونه زمونږه | روستو ددې نه |چی تاهدایت کړې دې مونږ ته|اوبښنه اوکړه مونږته|دطرفه خپل نه رحمت

زمونږه زړونه د هدایت نه پس په ګاږه نکړې |...... ........اومونږته دخپل طرفه رحمتونه راکړه

إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ ۝ رَبَّنَا إِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ

بیشکه ته|خاص هم ته|ډیر بښونکې نې | اې ربه زمونږه|بیشکه ته| راجمع کونکې دخلقو نې| په داسې ورځ

خکه چې هم ستاذات بښونکې دې | انې زمونږ ربه بیشکه ته په هغه ورځ ټولوخلقو لره راجمع کونکې نې

لَّا رَيْبَ فِيهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ ۝

چی نشته شك |په هغې کښې| بیشکه چی الله | نۀ کوی خلاف| دوعدې نه |

چې دهغې په راتلو کښې هیڅ شک نشته| اوالله پاک هیڅکله هم دخپلې وعدې نه خلاف نه کوی |

قوله تعالی:- هُوَ الَّذِي أَنزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ

دلته بیان کیږی چې قرآن پاك کښې داسې آیتونه هم دی چې د هغې بیان بالکل واضح،صفا او ښکاره دې.هر سړې د هغې مطلب ته رسیدې شی.او بعضې آیتونه داسې دی چې د هغې مطلب ته عام ذهنونه نه شی رسیدې.اوس چې کوم خلق د دویم قسم آیتونه ړومبی قسمه آیتونو باندې قیاس کوی یعنی د کومې مسئلې وضاحت چې په کوم آیت کښې اومومی هغه وضاحت واخلی نو دا خلق په صحیح لار دی او چې څوک ښۀ صفا او ښکاره آیتونه پریږدی او داسې آیتونه د ځان د پاره دلیل جوړ کړی چې د هغوی د پوهې نه پورته وی او په هغې کښې اونخلی نو دا خلق پرمخې پریوتل.ام الکتاب یعنی اصل اصول دکتاب دالله صفااوواضحه آیتونه دی.شکوکو شبهاتو کښې مه پریوزی اوپه ښکاره احکامو عمل اوکړئ اوهم دا فیصله کوونکی اومنئ او چې کوم پوهه کښې رانشی نو هغه هم ددې نه اوګڼړئ. او داسې آیتونه هم شته دې چې د هغې معنی یوشان وی چې ظاهری د آیتونو سره موافق وی او ممکن دی چې ددې نه سوا معنې هم راوزی اګر چې هغه لفظ د ترکیب اعتبار سره نه وی او نه واقعی طور،نو په دې غیر ظاهر معنوکښې مه اخته کیږئ.

قوله تعالی:- مِنْهُ آيَاتٌ مُّحْكَمَاتٌ هُنَّ أُمُّ الْكِتَابِ وَأُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ ۖ

**دمحکمات او متشابهاتو وضاحت:-** د سلفونه د محکم او متشابه ډیرې معنې منقول دی ابن عباس ﷺ فرمائي چې محکمات هغه دی چې ناسخ دی چې په هغې کښې د هغې د حلالو، حرامو، احکامو، حکم، ممنوعات،حدونو او د اعمالو بیان وی او دا شان د دوی نه دا مروی دی چې ﴿قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ﴾ او دې نه پس احکامو والا آیتونه محکمات دی.او ﴿وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا﴾او دې نه پس درې آیتونه دی.فاطمه ﷺ فرمائي چې دا د سورتونو په شروع کښې دی.یحیی بن یعمر ﷺ فرمائي چې دا فرائض او احکام او ممنوعات او حلال وحرام والا آیتونه دی سعید بن جبیر ﷺ وائي چې دې ته اصل کتاب په دې وجه وائي چې دا په ټولو کتابونوکښې دی.مقاتل ﷺ فرمائي چې دا په دې وجه دی چې ټولومذهبونو والا دا منی.متشابهات هغه آیتونو ته وائي چې منسوخ دی.او چې کوم مخکښې دی او چې کوم روستو دی.او په هغې کښې مثالونه ورکړې شوی دی او قسمونه په کښې خوړلې شوی وی.اوپه هغې باندې صرف ایمان راوړلې شی د عمل دپاره نه وی.

ابن عباس ﷺ نه همدا فرمان نقل دې.مقاتل ﷺ چې د دې نه مراد د سورتونو شروع کښې حروف مقطعات دی.د مجاهد ﷺ قول دې چې دا د یوبل تصدیق کوونکی دی [۱]لکه بل ځائې کښې فرمائي﴿كِتَابًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ﴾ اودا هم مذکور دی چې دا هغه کلام دې چې دیو طرز ماتحت وی اومثانی هغه دی چې په هغې کښې د دوو مقابلو څیزونو ذکر وی.لکه د جنت صفت او د دوزخ حال او د نیکوا و بدو حال وغیره وغیره.په دې آیت کښې متشابه د محکم په مقابله کښې دی،ددې وجې صحیح مطلب هم هغه دې چې کوم مونږمخکښې بیان کړو.همدا فرمان دې دمحمدبن اسحاق بن یسار ﷺ، دوی فرمائي چې دا د رب حجت دې او په دې کښې د بندګانو بچ کیدل دی.د جګړو فیصله ده د باطل مذمت دې او هغه هیڅوك د صحیح او اصل مقصد نه نه شی بدلولې.اونه د هغې معنوکښې څوك ردوبدل کولې شی.د متشابهاتو په په رښتنولیٔ‌کښې هیڅ کلام نشته دې.او نه په کښې څه تصریف او تاویل کول پکار دی.دې سره الله ﷻ د خپلو بندګانو دایمان آزمیښت اخلی.لکه خلقو لره حلال او حرام سره آزمائي او دوی ته پکار دی چې باطل طرفته لاړنشي.

**قوله تعالى:-** ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ﴾

**اهل بدعت هم د متشابهاتو نه استدلال کوی:-** بیافرمائي چې په کومو زړونوکښې کوږوالې او ګمراهی او د حق نه باطل طرفته تلل دی هغوئ متشابهات آیتونه واخلی او دې سره خپل بدترین مقاصد پورا کول غواړی.او د لفظی اختلافاتو نه ناجائز فائده اوچتوی او خپل طرفته ئې راړوی.او چې کوم محکم آیتونه دی په هغې کښې د دوی مقصدونه نه پورا کیږی.ځکه چې د هغې الفاظ بالکل صفا او واضح دی.نه خو دوی دا اخوا کولې شی او نه په دې کښې خپل ځان دپاره څه دلیل مومی،د دې وجې فرمان دې چې ددې نه د دوی مقصد فساد وی چې کوم خلق د دوی منی چې هغوئ هم ګمراه کړی او د خپل بدعتونو دلیل دقرآن پاك نه راوړی حالانکه قرآن پاك خو د بدعتونو تردید کوی.لکه څنګه چې عیسایانو دلیل نیولې دې.عیسی ﷺ د الله ﷻ خوئې دې،په دې باندې دقرآن پاك الفاظ روح الله اوکلمة الله نه دوی متشابه آیتونو لره اخلی اوداصفا آیت چې په هغې کښې دی چې﴿إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ﴾ یعنی عیسی ﷺ د الله ﷻ غلام دې او په ده باندې د الله ﷻ انعام دې،بل ځائې کښې دی چې ﴿إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ﴾ الخ: یعنی د عیسی ﷺ مثال د الله ﷻ په نیز دآدم ﷺ پشان دې چې هغه الله ﷻ د خاورې نه پیدا کړو اوبیائې اووئیل چې شه نو هغه شو.هم داشان نور هم صریح آیتونه دی،هغه ټول ئې پریښودل او متشابه آیتونه ئې دعیسی ﷺ د الله ﷻ د خوئې باندې دلیل او نیول حالانکه عیسی ﷺ

[۱] صحیح بخاری کتاب التفسیر،تعلیقا قبل رقم: ٤٥٤٧-

د الله ﷻ مخلوق دي اود هغه بنده دي او د هغه پاك ذات رسول دي.

**قوله تعالىٰ:- اِبْتِغَآءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَآءَ تَاْوِيْلِهٖ**

**دغلط تاويل او تحريف غندنه:-** بيا فرمائي چي د دوى بل غرض د آيت تحريف وى چي دا د خپل خاني نه لري كري.رسول الله ﷺ دا آيت اولوستلو او وې فرمائيل چې كله تاسو دا خلق اوګورئ چي په متشابه آيتونو كښې په جنګ دى نو دوى لره پريږدئ.هم دا خلق په دې آيت كښې مراد اخستې شوى دى(١)دا حديث مختلفو طريقو سره په ډيرو كتابونو كښې مروى دې.صحيح بخارى كښې هم دا حديث د دې آيت په تفسير كښې مروى دې.اوګورئ كتاب القدر(٢)

**په متشابه كښې جګړه كوونكي خوارج دي:-** يو بل حديث كښې دى چې دا خلق خوارج دى.(مسند احمد)(٣)كه دا حديث زيات نه زيات موقوف اوګڼلې شى خو د دې مضمون صحيح دې خكه چې ړومبې بدعت خوارجو كړې وو.

**دا دنيا پرسته فرقه ده:-**دا فرقه صرف د د دنياوى غم په وجه د مسلمانانو نه بيله شوه.كله چې رسول الله ﷺ د حنين په موقع د غنيمت مال تقسيم كړو نو دې خلقو اوونيل چې دا خلاف عدل دى او په هغوئ كښې ذوالخويصره نومې سړې راغلو اورسول الله ﷺ ته نې په مخامخ اوونيل چې انې حضرت اعدل اوكره ،تاسو په دې تقسيم كښې انصاف اونكړو.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې زۀ خو الله ﷻ امين جوړكړې يم،كه زۀ عدل اونكړم نو بيا خو هر څه برباد شو او نقصانى شول.هركله چې هغه واپس شو نو عمر فاروق رضي الله عنه عرض اوكړو چې يارسول الله ماته حكم اوكړئ دې اوژنم.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې دې پريږده،د ده دجنس نه به داسې خلق پيدا شى چې تاسو خلق به خپل مونځونه د دوى د مونځونو مقابله كښې او خپل قرآن خوانى به ددوى د قرآن خوانئ باره كښې حقير اوګڼئ.اصل كښې دوى به د دين نه داسې اوزى لكه څنګه چې نيزه د ښكار نه اوزى.تاسو چې چرته هم دوى وينئ نو قتل كوئ نې.د دوى قتل كونكى ته به زيات ثواب ملاويږى (٤).د حضرت على رضي الله عنه د خلافت په زمانه كښې دا خلق پيدا شول.او دوى په نهروان كښې هغوئ قتل كړل.بيا په هغوئ كښې نااتفاقى راغله او په هغوئ كښې مختلف الخيال خلق پيدا شو.او نوى نوى بدعتونه دين كښې پيدا شول او د الله ﷻ د نيغې لارې نه اووتل.

**د نبى ﷺ د وينا رښتيا كيدل:-** دې نه پس د قدريه فرقې ظهور اوشو.بيا معتزله راوتل او بيا جهميه وغيره پيدا شول.او د رسول الله ﷺ دا پيشنګونى پورا شوه چې په امت كښې به نزدې درې اويا فرقې پيدا شى.ټولې به جهنمى وى سوا ديو دلې نه.صحابه كرامو رضي الله عنهم تپوس اوكړو چې يارسول الله ﷺ هغه به كوم خلق وى؟رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې هغوئ به په هغه څيز وى چې په كومې زۀ يم او زما اصحاب( مستدرك حاكم ) (٥).د ابويعلى حديث كښې دى چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې زما په امت كښې به يو قوم وى چې قرآن پاك به وانى خو دا شان به نې غورزوى لكه څنګه چې د كهجورو ګتكى غورزوى.ددې به غلط مطلبونه بيانوى.(٦)

**قوله تعالىٰ:- وَمَا يَعْلَمُ تَاْوِيْلَهٗٓ اِلَّا اللّٰهُ**

---

(١) احمد: ٤٨/٦، ابن ماجة: ٤٧، الترمذى: ٢٩٩٣ (وهو صحيح)-

(٢) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة ال عمران باب منه ايات محكمات : ٤٥٤٧، صحيح مسلم: ٢٦٦٥، ابوداود ٤٥٩٨، ترمذى: ٢٩٩٣)-.

(٣) احمد: ٢٦٢/٥، وسنده حسن لذاته)-.

(٤) صحيح بخارى كتابى المناقب باب علامات النبوة فى الاسلام: ٣٦١٠، صحيح مسلم: ١٠٦٤)-

(٥) حاكم : ١٢٩/١، وسنده ضعيف )-

(٦) اتحاف الخيرة المهر للبوى صيرى : ٨٠٣٠، وسنده ضعيف )-

بیا ني اوفرمائیل چې ددې حقیقي تاویل او واقعي مطلب الله ﷻ ته معلوم دې،
**په کلمې د الله باندې وقف شته که نه:** په کلمې د الله ﷻ باندې وقف دې که نه؟ په دې کښې اختلاف دې.
**وقف کوونکې جماعت،**
**تفسیر په څلور قسمه دې:-** ابن عباس ﷺ فرمائي چې تفسیر په څلور قسمه دې❶یو هغه چې د هغې په پوهیدوکښې څوک معذوره نه وي هر یو سړې پرې پوهیږي. ❷ یو هغه تفسیر چې هغه عرب د خپل لغت په وجه پیژني❸یو هغه تفسیر چې په هغې باندې لوئې علماء او د پوره علم خاوندان پوهیږي❹او یو هغه چې د هغې معلومات د الله ﷻ نه سوا بل چا ته نه وي.(۱)دا روایت مخکښې هم تیر شوې دی.
**زۀ په خپل امت د درېو خبرو نه ویریږم:-** د عائشه ﷺ وغیره نه هم دا منقول دی.په معجم کبیر کښې حدیث دې چې ماته د خپل امت په درېو خبرو باندې ویره ده. ❶د مال دکثرت،چې ددې په وجه به حسد او بغض پید اشي او خپلو کښې به یو بل له سر ماتوي❷ دویم دا چې د کتاب الله تاویل پسې به شي.حالانکه دهغې اصلي مطلب الله ﷻ ته معلوم دې.او ژور علم والاوائي چې زمونږ پدې باندې ایمان دې.الخ ❸دریم دا چې علم به حاصل کړي اوهغه به بې پرواهئ سره ضائع کړي.داحدیث غریب دې. (۲)
**د قران یو ایت د بل ایت نه مخالف نه دې:-** یو بل حدیث کښې دی چې قرآن پاك ددې دپاره نه دې نازل شوې چې یو آیت دې د بل آیت خلاف وي.چې تاسوته دکوم علم وي هغې باندې عمل اوکړئ او چې کوم متشابه وي په هغې ایمان راوړئ.( ابن مردویه)(۳)
**په متشابه د ژور علم خاوند هم نه شي پوهیدې:-** ابن عباس ﷺ،عمر بن عبدالعزیز ﷺ او مالك بن انس ﷺ نه هم دا مروي دی چې ژورعلم والا هم ددې دحقیقت نه نه شي خبریدې.خوپه دې ایمان راوړي.
**د متشابه د تاویل علم الله ته دې:-** ابن مسعود ﷺ فرمائي چې ددې د تاویل علم الله ﷻ ته دې پوخ علم والا وائي چې زمونږ په دې باندې ایمان دې.ابي ابن کعب ﷺ هم دا فرمائي.امام ابن جریر رحمة الله علیه هم دا خوښ کړې دی.دا خو هغه جماعت دې چې په ﴿إِلَّا اللَّهُ﴾باندې وقف کوي.اوددې نه پس جمله د دې نه بیلوي.
**وقف نه کوونکې جماعت(یعنی وصل کوونکی):-** اوڅه خلق په دې ځائې باندې وقف نه کوي،بلکه ﴿فِي الْعِلْمِ﴾ باندې وقف کوي.او اکثر مفسرین او اهل اصول هم دا وائي،د هغوئ دلیل دادې چې څه په پوهه کښې رانشي نو داسې خبره نه دی کول پکار.
ابن عباس ﷺ به فرمائیل چې زۀ په هغه راسخ علماء کښې یم چې په تاویل باندې پوهیږي.مجاهد ﷺ فرمائي چې راسخ علم والا تفسیرباندې پوهیږي.محمد بن جعفر بن زبیر ﷺ فرمائي چې اصل تفسیر او مراد باندې الله ﷻ پوهیږي.اومضبوط علم والا وائي چې زمونږ پدې باندې ایمان دې بیاد متشابهاتو آیتونو تفسیر محکماتو سره کوي.چې په هغې کښې د چا څه کار نشته.مضامینوکښې قرآن بالکل صحیح شي.عذر ظاهر شي،باطل ختم شي،او کفر لرې شي.
**د نبیﷺ د عبدالله بن عباسﷺ د پاره دعا:-**حدیث مبارك کښې دی چې رسول الله ﷺ ابن عباس ﷺ د پاره دعا اوکړه چې اې الله ﷻ اده ته ددین پوهه ورکړه او دتفسیر علم ورته ورکړه(۴)بعضې علماء کرامو نه هم دا تفصیل شوې دې.
**د تاویل په قران پاک کښې په دوو معنو کښې راغلې دې:**او فرمائي چې تاویل دوؤ معنوکښې قرآن پاك

---

(۱) الطبری: ۵۷/۱)-
(۲) طبرانی : ۳٤٤۲)-
(۳) ابن مردویه وابن سعد : ۱۹۲/٤، وسنده حسن)-.
(٤) احمد: ۲٦٦/۱ وسنده حسن)-

کښې راغلې دې،

**اوله معنی**.-یو معنی خو داده چې د هغې نه د لفظ اصلي حقیقت او درست حقیقت معلومیږي.لکه قرآن پاك کښې دی چې﴿وَقَالَ يَٰٓأَبَتِ هَٰذَا تَأْوِيلُ رُءْيَٰىَ﴾ انې زما پلاره زما د خوب تاویل هم دا دې او بل ځاې کښې فرمائی چې﴿هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا تَأْوِيلَهُۥ ۚ يَوْمَ يَأْتِى تَأْوِيلُهُۥ﴾کافرو ته صرف ددې د ظاهریدو انتظار دې چې په کومه ورځ د دې مصداق راشی.نو په دې دواړو ځایونوکښې مراد تاویل نه حقیقت دې،که دې آیت کښې د تاویل نه مراد هم دا تاویل واخستې شی نو﴿ الاالله ﴾باندې وقف ضروری دې،ځکه چې دټولو کارونو حقیقت او اصلیت سوا د الله ﷻ نه بل چاته نه دی معلوم.نو﴿وَٱلرَّٰسِخُونَ فِى ٱلْعِلْمِ﴾به مبتدا، وی او ﴿يَقُولُونَ ءَامَنَّا بِهِۦ﴾به خبر وی او دا جمله بالکل بیله ده.

**دویمه معنی د تاویل**:- دویمه معنی د تاویل،هغه تفسیر او بیان او د یو څیز تعبیر په بل څیز سره کول دی،لکه قرآن پاك کښې دی چې﴿نَبِّئْنَا بِتَأْوِيلِهِۦٓ﴾مونږ ته ددې تاویل یعنی تفسیر اوښایه.که مذکوره آیت کښې تاویل مرادواخستې شی نو﴿فِى ٱلْعِلْمِ﴾ باندې وقف کول پکار دی،ددې وجې پوخ علم والا عالمانو ته پته ده او پوهیږی ځکه چې خطاب هم دوی ته دې.اګر چې د حقائقو علم دوی ته هم نشته،نو په دې بنا،﴿ءَامَنَّا بِهِۦ﴾ به حال وی او دا هم کیدیشی چې معطوف وی بغیر د معطوف علیه نه لکه بل ځاې کښې فرمائی چې﴿لِلْفُقَرَآءِ ٱلْمُهَٰجِرِينَ﴾نه﴿رَبَّنَا ٱغْفِرْ لَنَا﴾پورې او بل ځاې کښې دی چې﴿وَجَآءَ رَبُّكَ وَٱلْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا﴾یعنی﴿ وَجَآءَ الملائکة صفوفاً صفوفاً﴾ او د دوی د طرفنه دا خبر دې چې مونږ په دې باندې ایمان راوړو او د دې معنی ده چې مونږ په متشابه باندې ایمان راوړو.

بیا اقرار کوی چې دا ټول یعنی محکم او متشابه حق او صدق دی او په دې کښې هر یو د بل تصدیق کوی.او ګواهی ورکوی دا ټول د الله ﷻ د طرفنه دی.په دې کښې هیڅ اختلاف نشته دې او تضاد نشته دې لکه بل ځاې کښې فرمائی چې﴿أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ ٱلْقُرْءَانَ ۚ وَلَوْ كَانَ مِنْ عِندِ غَيْرِ ٱللَّهِ لَوَجَدُوا۟ فِيهِ ٱخْتِلَٰفًا كَثِيرًا﴾ :یعنی آیا داخلق قرآن پاك کښې غورو فکر نه کوی،که دا د الله تعالی نه سوا د بل چا د طرفنه وې نو په دې کښې به ډیر اختلاف وې.

**قوله تعالی**:-﴿وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُو۟لُوا۟ ٱلْأَلْبَٰبِ﴾ .

د دې وجې فرمائی چې په دې باندې عقل مند خلق پوهیږی.چې څوك په دې باندې غور کوی.چې کوم صحیح سالم عقل والا دی.او چې د کومو دماغ درست دې.

**دپوخ علم خاوندان څوك دی**:-رسول الله ﷺ نه سوال کیږی چې پوخ علم والا څوك دې؟رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې:

①د چا قسم رېښتونې وی. ② او چې د چا ژبه صحیح چلیږی. ③او چې دچا زړه سلامت وی. ④ او چې د چا خیټه د حرامو نه بچ شوې وی. ⑤ اوچې د چا شرمګاه د زنا کارئ نه بچ شوې وی. ⑥ هغه مضبوط علم والا دی ( ابن ابی حاتم).([1])

**د قران کریم په ایتونو کښې جګړه د هلاکت سبب دې**.- او یوحدیث مبارك کښې دی چې رسول الله ﷺ څه خلق اوکتل هغوئ دقرآن پاك باره کښې په جګړه وو ،رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې واورئ! ستاسو نه مخکښې خلق هم دا شان هلاك شوی وو چې هغوئ دکتاب الله آیتونولره دیو بل خلاف ګرځه او په

[1] ) الطبری: ٦٦٣٥، طبران : ٧٦٥٨، ددې سند کښې عبدالله بن یزید ابن آدم القرشي دې او دا سخت ضعیف راوي دې،امام احمد صاحب وائی چه ددوی روایت موضوعه دې اوګورئی مجمع الزوائد ۳۲۴/۲، المیزان: ۵۲۲/۲، رقم ۴۲۹۸.

دي كښې نې جګړې كولې.حالانكه الله ﷻ فرمائي چې د كتاب الله ﷻ هر يو ايت د بل ايت تصديق
كوي.تاسو په دې كښې اختلاف مه راوباسئ او د يو بل متضاد كوئ نې مه.اوبه څه چې پوهيږئ نوهغه
وائې او چې په څه نه پوهيږئ نو هغه پوهيدونكو خلقو ته اوسپارئ.( مسند احمد ) ([1])

**قران كريم كښې جګړې كول كفر دي:**-بل حديث مبارك كښې دى چې قرآن پاك په اوو (۷) حرفونو
باندې نازل شو،قرآن پاك كښې جګړې كول كفر دي.قرآن پاك كښې اختلاف او تضاد پيدا كول كفر
دي،چې په څه پوهيږئ نو په هغې عمل كوئ،او چې په څه نه پوهيږئ نو هغه پوهه خلقو ته
اوسپارئ،يعنى الله جل جلاله طرفته( ابو يعلى ).([2])

**د راسخ فى العلم نه څوک مراد دى؟:**- رافع بن يزيد وائى چې راسخ فى العلم هغه خلق دى چې هغوى
متواضع او عاجزى كوونكى وى اوداالله ﷻ درضا غوښتونكى وى،د خپل خان نه د لويو نه ويريدونكى
نه وى او د خپل خان نه كمزورى خلق سپک نه ګڼړى.

رَبَّنَا لَا تُزِغْ .......إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ۝بيا فرمائى چې دا خلق دعا كوى چې اني الله ﷻ هركله چې تا زمونږ
زړونو ته هدايت راكړې دې نو دا د نورو زړونو په شان مه كوه چې متشابه پسې انخښتى وى او
خرابيږى بلكه مونږ په صراط مستقيم باندې قائم اوساته.او خپل مضبوط دين باندې مونږ قائم دائم
اوساته او مونږ باندې خپل رحمت نازل كړه او زمونږ زړونو لره ثابت قدمى وركړه او ګندګى ترې لرې
كړې،زمونږ ايمان او يقين زيات كړې بيشكه ته زياتونكې ئې.رسول الله ﷺ به دا دعا غوښتله چې﴿
يامقلب القلوب ثبت قلبى على دينك﴾يعنى اني د زړونو اړونكيه زما زړه په خپل دين باندې قائم اوساته.
بيا به ئې دا دعا ﴿رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا﴾ وئيله.([3])

**د هر انسان زړهٔ د الله تعالى د دوو ګوتو نه په دوو ګوتو كښې دې:**- حديث مبارك كښې دى چې رسول الله
ﷺ به دا دعا ډيره وئيله.﴿ اللهم مقلب القلوب ثبت قلبى على دينك ﴾.حضرت اسماء رضي الله عنها يو ورخ تپوس
اوكړو چې زړه هم اوړى راوړى كيږى؟رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې د هر انسان زړه د الله ﷻ د ګوتو نه
د دوو ګوتو ترمينځه دې،كه غواړى نو دا قائم ساتى او كه غواړى نو دا اړوى.([4])زمونږ دعا ده چې الله
ﷻ دې زمونږ زړونه د هدايت نه پس كاږه نه كړى او مونږ ته دې د خپل طرفنه رحمتونه راكړى هغه
ډيرې وركړې والادې.يوروايت كښې دى چې ما اوونيل چې يارسول الله ﷺ اماته څه داسې دعا اوښائې
هغه دعا زهٔ د خپل خان د پاره وايم،رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې دا دعا غواړه﴿اللهم رب محمد النبى
اغفرلى ذنبى واذهب غيظ قلبى واجرنى من مضلات الفتن ﴾ : يعنى اني الله ﷻ ا اني د محمد ﷺ ربه!زما
ګناهونه معاف كړه زماد زړه غصه اوغم اوسختنى لرې كړې اوماد ګمراه كونكو د فتنې نه اوساتې
([5])حضرت عائشه رضي الله عنها هم چې دا دعا﴿يامقلب القلوب﴾واوريدله نو د اسماء رضي الله عنها په شان ئې سوال اوكړو
او رسول الله ﷺ ورته هم دا دعا اوخودله.اوبيا ئې ورته دقرآن پاك دا دعا اوخودله.([6]) دا حديث غريب
دې ليكن د آيت قرآنى نه بغير بخارى او مسلم شريف كښې هم مروى دې.([7]).

---

[1] احمد: ۱۸۵/۲، منصف عبدالرزاق : ۲۰۳۶۷، ابن ماجه: كتاب السنة باب فى القدر : ۸۵، شعب الايمان : ۲۲۵۸، وسنده حسن الموساعات الحديثية: ۳۵٤/۱۱)-

[2] احمد: ۳۰۰/۲، مسند ابى يعلى : ٦٠١٦، وهو صحيح)-

[3] ترمذى كتاب الدعوات باب دعاء يامقلب القلوب : ۳۵۲۲، باختلاف يسير وسنده حسن)-

[4] احمد:٦/۳۰۲ وسنده حسن)-

[5] الطبرى: ٦٦٤۹، ددې سند كښې مثنى بن صباح ضعيف راوى دې)-

[6] ابن مردويه)-

[7] صحيح مسلم كتاب القدر باب تصريف الله تعالى القلوب كيف شاء: ۲٦۵٤)-

د نبي كريم ﷺ د شپې د اوده كيدو په وخت كښې دعا نسائي وغيره كښې دى چې رسول الله ﷺ به كله د شپې اوده كيدو نو دا دعا به ئې وئيله.

﴿لا اله الا انت سبحانك استغفرك لذنبي واسئلك رحمة اللهم زدني علما ولاتزغ قلبي بعد اذ هديتني وهب لي من لدنك رحمة انك انت الوهاب﴾: (۱) يعني اې الله ﷻ ا ستا نه سوا بل څوك د عبادت لائق نشته دې.زه ستانه د خپلو ګناهونو پناه غواړم،او ستا نه ستا د رحمت سوال كوم،اې الله ﷻ ازما علم كښې زياتې اوكړه او هر كله چې تا زما زړه ته هدايت كړې دې نو بيا ئې مه ګمراه كوه او ماته د خپل طرف نه رحمت راكړې ته ډير وركړې والا ئې.

ابوبكر صديق ﷺ د ماښام مونځ اوكړو،په رومبنى دوؤ ركعتو كښې ئې الحمد شريف نه پس ئې د مفصل واره دوه سورتونه اووئيل او دريم ركعت كښې ئې الحمد شريف نه پس هم دا آيت اولوستلو.ابوعبدالله صنابحي رحمه الله فرمائي چې زۀ په هغه وخت كښې هغوئ ته نزدې شوې ووم،تردې چې زما كپړې د هغوئ كپړو سره لګيدلې وې.او ما پخپله په خپلو غوږونو د ابوبكر ﷺ نه دا واوريدل.(عبدالرزاق).عمر بن عبدالعزيز رحمه الله چې تركومې دا حديث نه وو آوريدلې نو هغوئ به په دې ركعت كښې سورة اخلاص وئيلو ليكن د دې حديث آوريدو نه پس ا مير المومنين هم دا وئيل شروع كړل.او هيڅكله ئې نه وو پريښودې.

قوله تعالى:-﴿رَبَّنَآ إِنَّكَ جَامِعُ ٱلنَّاسِ لِيَوۡمٍ لَّا رَيۡبَ فِيهِۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُخۡلِفُ ٱلۡمِيعَادَ﴾

بيا ئې اوفرمائيل چې هغوئ دا هم وائي چې اې الله ﷻ اته د قيامت په ورځ ټول خپل ټول مخلوق لره جمع كوونكې ئې او په هغوئ كښې حكم او فيصله كولو والا ئې.او د دوى اختلاف ختمولو والا ئې،او د هر چا په نيك او بد عمل بدله وركوونكې ئې،د هغه ورځې په راتلو او ستا په وعدو كښې هيڅ كلام نشته دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّ ٱلَّذِينَ | | | | |
| بيشكه هغه كسان | | | | |
| بيشكه كوم خلقو | | | | |
| كَفَرُواْ | لَن تُغۡنِيَ | عَنۡهُمۡ | أَمۡوَٰلُهُمۡ | وَلَآ أَوۡلَٰدُهُم |
| چې د كفر لارئې اختيار كړې ده | هرګز به لرې نۀ كړي | د هغوئ نه | مالونه د هغوئ | او نه اولاد د هغوئ |
| چې كفر كړې دې | ..................هغوئ ته د هغوئ مال او اولاد هيڅ فائده نشي رسولې | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنَ ٱللَّهِ | شَيۡـٔٗاۖ | وَأُوْلَٰٓئِكَ | هُمۡ | وَقُودُ ٱلنَّارِ | كَدَأۡبِ ءَالِ |
| د الله نه | هيڅ خيز | او دا كسان چې دې | دوئ | خشاك د اور دې | حال د دوئ پشان د حال د ملګرو |
| په مقابله د الله پاک كښې | | او هم دا خلق د دوزخ خشاک دې | | | (د هغوئ انجام به) |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِرۡعَوۡنَ | وَٱلَّذِينَ | مِن قَبۡلِهِمۡۚ | كَذَّبُواْ | بِـَٔايَٰتِنَا |
| د فرعون | او د هغه كسانو دې | چې وړاندې د هغوئ نه وو | | هغوئ دروغ اوګڼړل ايتونه زمونږه |
| د فرعون د پيروكارو او د هغوئ نه هم د مخكښو نافرمانو خلقو پشان شي | | | چې زمونږ ايتونه ئې دروغ ګڼړل | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَأَخَذَهُمُ | ٱللَّهُ | بِذُنُوبِهِمۡۗ | وَٱللَّهُ | شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ |
| نو اونيول هغوئ لره | الله | په سبب د ګناهونو د هغوئ | او الله | سخت عذاب وركوونكې دې |
| نو الله پاک هغوئ د هغوئ د ګناهونو په سبب راونيول | | | او الله پاک په عذاب وركولو كښې ډير سخت دې | |

(۱) ابوداود كتاب الادب باب مايقول الرجل اذاتعار من الليل : ۵۰۶۱، وسنده حسن السنن الكبرى للنسائي : ۱۰۷۰۱-

**قوله تعالى:- إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُم مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا**

**دكافرو مال او اولاد به هيڅ پكار نه راځي**:.فرماني چې كافرد جهنم خشاك اوددې لرګى دى.د دې ظالمانو به په هغه ورځ هيڅ عذر نه قبليږى.نو په دوى باندې لعنت دې،او د دوى دپاره خراب كور دې.د دوى مال،د دوى اولاد به هم د دوى هيڅ پكار نه رازى.او نه به هغوئ د الله ﷻ دعذابونو نه بچ كړى.لكه بل ځائې كښې فرمائى چې ﴿فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ﴾ نو د دوى په مال او اولاد باندې تعجب مه كوئ.د الله ﷻ اراده په دوى باندې د دې په ذريعه د عذاب وركولو ده او دوى نه به ساه په كفر كښې اوزى.دا شان ارشاد فرمائى چې داكافران په ښارونو كښې ګرزى راګرزى نو تاسو دې دا په تعجب كښې نه اچوى،دا خو هسې يو فائده شان ده،بيا د دوى ځائې خو جهنم دې او څه بد ځائې دې.داشان دلته هم فرمان دې چې دالله ﷻ كلام لره په دروغه ګنړلو والا،د الله ﷻ رسولانو نه منكر،د هغه پاك ذات د كتاب خلاف،د هغه لونې ذات د وحي نافرمانه،هغوئ دې د خپل مال او اولاد نه هيڅ د ښيګړې توقع نه ساتى

**قوله تعالى:- وَأُولَٰئِكَ هُمْ وَقُودُ النَّارِ**

دوى د جهنم لرګى دى.او دى سره به جهنم بلولې شى لكه بل ځائې كښې ارشاد دې چې﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ تاسو او ستاسو معبودان د جهنم لرګى دى.

**د جهنم خشاك**:- ابن ابى حاتم كښې دى چې د عبدالله بن عباس ﷺ مور بى بى ام فضل ﷺ بيان كوى چې مكه معظمه كښې يو شپه رسول الله ﷺ اودريدلو او اوچت آواز سره ئې اوفرمائيل چې انې خلقو! آيا ما د الله ﷻ خبرې تاسو ته اورسولې؟ انې خلقو!آيا ماتبليغ اوكړو؟انې خلقو آيا وحدانيت او رسالت مې اورسولو؟ عمر فاروق ﷺ اوفرمائيل چې آو يارسول الله ﷺ ابيشكه تاسو د الله تعالى دين مونږ ته راورسولو.بياچې كله صبا شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې واورئ په الله ﷻ قسم چې اسلام به غالب وى او ښه به خور شى تر دې پورې چې كفر به په خپل ځائې پټ شى،مسلمانان به اسلام خورولو دپاره سمندرونو نه هم تير شى او د اسلام اشاعت به كوى.ياد ساتئ هغه زمانه هم راتلونكې ده چې خلق به قرآن پاك زده كوى او لولى به ئې( بيا به د تكبر او لونې په طور)وائى چې مونږ قاريان يو،عالمان يو،زمونږ نه څوك لونې شته دې؟خلقو تپوس اوكړو چې په هغه خلقو كښې به لږه هم ښيګړه وى؟ او يا رسول الله ﷺ هغه به كوم خلق وى؟رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې هغه به تاسو مسلمانانو نه شميرلى شى.ليكن ياد ساتئ هغوئ به د جهنم خشاك وى.(1)

ابن مردويه كښې هم داحديث دې،په هغې كښې دى چې عمر فاروق ﷺ اوفرمائيل چې آو يارسول الله تاسو خو ډير په اخلاص او حرص سره تبليغ اوكړو.او تاسو خو ډيرې هلې ځلې اوكړې او مونږ سره مو ډيره ښيګړه اوكړه.(2)

**قوله تعالى:- كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ**

بيا فرمائى چې څنګه حال د فرعونيانو وو او څنګه كړه چې د هغوئ وو،لفظ (داب )د همزه جزم سره هم رازى.او د همزه زير سره هم رازى.لكه ﴿نَهْرٌ﴾ او ﴿ نَهَرٌ ﴾،ددې معنى شان، عادت،حال،طريقې،دى او د امراؤالقيس په اشعارو كښې هم دا شان لفظ هم په دې معنى كښې راغلې دې.د آيت كريمه مطلب دا دې چې كفارو لره به د دوى اولاد او مال هيڅ په كار نه رازى.لكه چې د فرعونيانو او د دې نه مخكښې لره چې هيڅ پكار رانغلو.

**قوله تعالى:- فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ ۗ وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ**

---

(1) ابن مردويه)-

(2) طبرانى : ٢٧/٢٥)،-

د الله ﷻ نیول سخت دی، د هغه پاك ذات عذاب دردناك دې. هیڅ یو کس په هیڅ طاقت سره د دې نه نشی بچ کیدلې. او نه هغه بندولې شی. چې څه غواړی کوی او هر څیز د هغه پاك ذات په وړاندې دې او د هغه نه بغیر بل څوك معبود نشته دې او نه رب

قُلْ لِّلَّذِیْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ وَتُحْشَرُوْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ ؕ

اووایه اې محمده| هغه کسانو ته| چې انکار نې کړې دې | زربه په تاسوغلبه اوکړې شی| او جمع به کړې شی| دوزخ ته

ته هغه کسانو ته اووایه چې ستانه نې انکار کړې دې | چې تاسوبه ډیر زر مغلوبه شئ| اودوزخ ته به راجمع کړې شئ

وَبِئْسَ الْمِهَادُ ۝ قَدْ كَانَ لَكُمْ اٰیَةٌ فِیْ فِئَتَیْنِ الْتَقَتَا ؕ

او ډیر بد خانې دې|داستوګنې | بیشکه وه ستاسو دپاره| نښه دعبرت|په هغه دووډلوکښې| چې مخامخ شوې دیو بل سره

اوهغه داستوګنې دپاره ډیرخراب خانې دې |ستاسودپاره په هغه دوه ډلو کښې عبرت وو| چې په بدر کښې یوبل سره جنګیدلې

فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَاُخْرٰى كَافِرَةٌ یَّرَوْنَهُمْ مِّثْلَیْهِمْ

یوه ډله|جنګیدله|په لارد الله کښې | اوبله ډله| کافره وه | لیدل به دوی هغوی لره |دو چند دخان نه

وې| یوې ډلې دالله په لار کښې جهادکولو |او بله ډله دکافرو وه |اودوی به هغوی لره دخپل خان نه دوچنده لیدل

رَاْیَ الْعَیْنِ ؕ وَاللّٰهُ یُؤَیِّدُ بِنَصْرِهٖ مَنْ یَّشَآءُ ؕ اِنَّ فِیْ

په لیدلو دسترګو سره |او الله | قوت ورکوی|په امداد خپل سره| هغه چاته چې اوغواړی| بیشکه به دې کښې

اودا لیدل په خپلوسترګو وو|خوددې نتیجه دا ثابته شوه، چې الله دچا دپاره غواړی نوبخپل مددسره هغه مضبوطوی

ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِی الْاَبْصَارِ ۝

خامخا عبرت دې| دپاره دخاوندانو دسترګو |

په دې واقعه کښې دعقلمند دپاره ډیر عبرت دې |

**قوله تعالی:- قُلْ لِّلَّذِیْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ وَتُحْشَرُوْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ ؕ وَبِئْسَ الْمِهَادُ**

**جنګ بدر کښې د الله ﷻ قدرت او نصرت.-** الله ﷻ فرمائی چې انې محمد ﷺ اکافرانو ته اووایه تاسوبه دنیا کښې هم پست او مغلوب شئ او بیلات والا اوماتحت به جوړیږئ او دقیامت په ورځ به هم په چغو چغو جهنم کښې جمع کیږئ. اوهغه ډیر بد خانې دې.

**ددې ایت شان نزول:-** سیرت ابن اسحاق کښې دی چې کله رسول الله ﷺ د بدر جنګ نه کامران و کامیاب واپس شو نودبنو قینقاع بازارکښې نې یهود جمع کړل اوورته نې اوفرمائیل چې انې یهودیانو ددې نه مخکښې تاسو اسلام قبول کړئ چې تاسوذلت اورسوائی ته اورسئ چې کوم ته قریش اورسیدل. نودې سرکشه جماعت اوونیل چې قریش خوڅو کسان وو اودجنګ کولو نه ناآشنا وو، او هغوئ ته تاسو شکست ورکړو او دې سره تاسو کښې کبر راغلو؟که مونږ سره مو جنګ اوشو نو درته به اووایوچې جنګ دا شان وی. ستاسو مونږ سره اوسه پورې واسطه نه ده راغلې. په دې باندې دا آیت نازل شو ([1])

**قوله تعالی:- قَدْ كَانَ لَكُمْ اٰیَةٌ فِیْ فِئَتَیْنِ الْتَقَتَا ؕ**

---

[1]) السیرة لابن هشام: ۲/۲۷، دلائل النبوة للبیهقی ۳/۱۷٤)-

او وې فرمائيل چې د بدر فتحې ظاهر کړل چې الله ﷻ د خپل رښتونې او ښه او خوښ دين لره او د دې منلو والوته عزت ورکولو والا دې، هغه پاک ذات ستاسود رسول او ستاسو د تابعدار امت مددګار دې.هغه خپلو خبرولره ظاهرولو والا او غالب کولو والا دې.

قوله تعالى:- فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِي سَبِيلِ اللهِ

دوه ډلې جنګ کښې مخامخ شوې وې، يوصحابه کرام ﷺ او بل مشرکين د قريش.دا واقعه د جنګ بدر ده.په هغه ورځ مشرکانو باندې رعب غالب وو.

قوله تعالى:- وَأُخْرَى كَافِرَةٌ يَرَوْنَهُم مِّثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ

او الله ﷻ دخپلوبندګانو داشان مدد اوکړو او اګر چې مسلمانان د شمير يو څو کسان وو او مشرکان ډير زيات وو.خومشرکانوته مسلمانان د خپل خان نه ډيرزيات په نظر راغلل.مشرکانو د جنګ شروع کيدو نه وړاندې عمير بن سعد ليږلې وو.او چې راغلو نو دوی ته ئې اوونيل چې درې سوه دی څه کم يا زيات.او واقعه هم داشان وه چې صرف درې سوه لس يا څه کم وو.ليکن د جنګ شروع کيدو سره الله ﷻ خپلې زر فرښتې راوليږلې.يو معنی خو داده،دويم مطلب دا هم بيان شوې دې چې مسلمانانو ليدل چې مونږ دکفارو نه دوچند يو،بيا الله ﷻ د دوی مدد اوکړو.

حضرت ابن عباس ﷺفرمائی چې بدری صحابه کرام درې سوا ديارلس وو.اومشرکان شپږ سوه شپاړس وو.ليکن د تاريخ کتابونو کښې د مشرکانو تعداد نهه سوه نه زرو پورې بيان شوې دې.نو شايد چې د عبدالله دقرآن دالفاظو نه هم دا استدلال وی.د بنو الحجاج قبيلې کوم تور غلام چې نيولې شوې وو هغه نه رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چې اووايه د کفاور تعداد څومره دې؟نو هغه اوونيل چې ډير دی.رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چې اووايه روزانه څومره اوښان ذبح کيږی؟نو هغه اوونيل چې يو ورځ نهه او په دويمه لس،نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې بس هغوئ خو نهه سوه يا زر دی.پس مشرکان مسلمانانو نه درې چنده وو (۱)والله اعلم.

ليکن ياد ساتئ چې عربو داسې وائی چې ماسره خو زر دی ليکن ماته ضرورت دې د داسې دوه چندو دې او مراد ددې نه درې زره وی.نو څه مشکل باقی پاتې نشو.خويو سوال بل دې چې دا قرآن پاک کښې دی چې ﴿وَإِذْ يُرِيكُمُوهُمْ إِذِ الْتَقَيْتُمْ فِي أَعْيُنِكُمْ قَلِيلًا وَيُقَلِّلُكُمْ فِي أَعْيُنِهِمْ لِيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا﴾ يعنی يعنی هر کله چې تاسو يو بل ته مخامخ راغلئ نو الله هغوی تاسو ته کم ښکاره کړل او تاسو ئې د هغوی په سترګو کښې کم ښکاره کړئ دې د پاره چې الله کومه فيصله کړې ده هغه اوشی،پس د دې آيت نه دا معلومه شوه چې د خپل اصل تعداد نه هم کم ښکاره شول او د پورتنی آيت نه معلوميږی چې زيات بلکه دوچنده ښکاره شول نو په دې دواړو آيتونو کښې به تطبيق څه وی؟

ددې جواب دا دې چې د دې وخت بل وو،ابن مسعود ﷺ فرمائی چې د بدر په ورځ مونږ ته مشرکان زيات نه ښکاريدل،مونږ غور سره اوکتل نوهم دا معلوم شو چې هغوئ زمونږ نه زيات نه دی په شمير کښې.بل روايت کښې دی چې د مشرکانو تعداد مونږ ته دومره کم معلوم شو ما خان پورې يو سړی ته اوونيل چې دا خلق خو به اويا کسان وی،هغه اوونيل چې نه سل به وی.هرکله چې هغوئ کښې يو کس اونيولې شو نو د هغه نه د مشرکانو د شمير باره کښې تپوس اوشو نو هغه اوونيل چې زر دی.(۲) اوس کله چې دواړه فريق د يو بل مخامخ اودريدل.نو مسلمانانو ته معلوم شو چې مشرکان زمونږ نه دوچند دی،ددې وجې چې هغوئ ته د خپلې کمزورئ يقين اوشی.او دوی په الله ﷻ باندې بهروسه اوکړی.او دخپل رب نه د مدد غوښتلو د پاره د هغه نه دعا اوکړی.همداشان مشرکانوته د مسلمانانو تعداد

(۱) السيرة لابن هشام:۲/۲۷،)-،

(۲) الطبری: ٦/۲۳٦)-

دوچند معلوم شی چی په هغوئ باندې رعب او ویره راشي.او د هغوئ پریشانی او ویره زیاته شی .بیا چې کله دواړه ډلې وړاندې شو او جنګ اوشو نو هر فریق ته بل په خپل نسبت سره کم په نظر راتلو چې هر یو د زړه ښکاره حوصلې راوباسی.او الله ﷻ د حق او باطل فیصله صفا کړې.ایمان کفر باندې غالب راشي.مومنانو ته عزت او کفارو ته ذلت ملاؤ شی.لکه بل ځاې کښې دی چې﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ﴾یعنی البته الله ﷻ د بدر په ورځ ستاسو مدد اوکړو حالانکه تاسو په هغه وخت کښې کمزوری وئ.چې ددې دلته هم اوفرمائیل الله ﷻ چې چالره غواړی خپل مدد سره ئې قوی کړی.

قوله تعالی:-اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِي الْاَبْصَارِ

بیا فرمائی چې په دې کښې عبرت دې او نصیحت دې د هغه سړی دپاره چې کوم سترګو والا وی او د هغه دماغ صحیح سالم وی،هغه دالله ﷻ احکام پورا کوی اویوهه به شی چې الله ﷻ دخپلو خوښو بندګانو په دې جهان کښې هم مدد کوی او د قیامت په ورځ به هم دوی لره بچ کړی.

| |
|---|
| زُيِّنَ لِلنَّاسِ |
| ښائیسته جوړ کړې شوې دې \| خلقوته |
| ............ \| .......خلقو ته ښائسته کړې شوې دی |
| حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ |
| محبت دزړهٔ غوښتنکوخیزونو\| لکه ښځی \| او خامن \| او خزانې \| جمع شوی \| |
| نفسانی خواهشات لکه ښځې او خامن (شو) او کومې خزانې چې جمع شوی وی |
| مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ |
| دسرو زرو \| او دسپینو زرو \| او اسونه \| نښه دار \| او څاروی \| او دفصل زمکې \| |
| د سرو اوسپینو زرو (کالی شول) او آسونه (شول) څاروی او زمکې (پټی) |
| ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ قُلْ |
| دا \| سامان دې \| دژوند د دنیا \| او الله چې دې \| دې دهغه سره\| ښهٔ ځاې \| د ورتلو \| ورته اوویه |
| دا د دنیادژوندسامان دې \|اوښه ځاې اوښهٔ سامان خوالله سره دې\| ...... راتې پیغمبره!) دوی ته اوویه |
| اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا |
| آیا زهٔ خبردرکړم تاسو ته\| د بهتر څیز \| د دغونه \| دی دپاره دهغه کسانو \| چې د تقوی لار ئې اختیار کړه |
| چې آیا خه تاسو ته ددې(مال واسباب)نه ښهٔ څیزاو ښایم اځوک چې پرهیزګار دی |
| عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا |
| په نیز \| درب خپل \| باغونه \| چې بهیږی به\| لاندې دهغې نه \| نهرونه \| چې همیشه به وی\| په هغې کښې |
| هغوئ دپاره دخپل رب سره داسې باغونه دی\|چې دهغې د ونو لاندې نهرونه بهیږی\|هغه ځاې کښې به همیشه اوسیږی |
| وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَّرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِالْعِبَادِ |
| اووی به بیبیانې\| پاکې \| او رضا \| دطرفه دالله نه \| او الله \| نظر لرونکې دې \| په بند ګانو |
| اوپاکې بیبیانې به ئې وی \|اوالله پاک به ترې راضی وی\| اوالله پاک دخپلو بندګانو عملونه وینی کوری |

**قوله تعالى:-** زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ

**د دنيا مال واسباب عارضی او فانی دي:-** الله ﷻ بيان فرمائی چې ددنيا ژوند کښې رنګ په رنګ زينتونه ورکړې شوی دی.

**د ښځو فتنه:-** په دې ټولو څيزونوکښې ني د ټولو نه مخکښې دښځو بيان اوکړو،خکه چې ددې فتنه ډيره زبردسته ده،صحيح بخاری کښې حديث دې چې رسول الله ﷺ فرمائی چې ما د خان نه پس په سړو باندې د ښځو نه زياته ضررناکه فتنه بله نه ده پريښې.(۱)

**د دې دنيا بهترينه فائده ښځه ده:-** خو که يو سړې نکاح اوکړی او د ده نيت د زنا نه بچ کيدل وی او د اولاد کثرت وی نو بيشکه دا نيک کار دې.ددې رغبت شريعت ورکړې دې.او ددې حکم ني کړې دې او ډيرو ا حاديثو کښې دنکاح کولو فضيلت راغلي دې او په دې په امت کښې دټولو نه زيات بهتر سړې هغه دې چې دچا ښځې زياتې وی.(۲)رسول الله ﷺ فرمائی چې دنيا يو فائده ده او د دې بهترينه فائده نيکه ښځه ده (۳)چې کله خاوند دې طرفته اوګوری نو هغه خوشحاله کړی او کله چې دې ته حکم اوکړی نودائې پورا کوی او چې چرته لاړشي نو دخپل نفس او د خاوند دمال حفاظت کوی.(۴)بل حديث کښې دی چې ما ته ښځې او خوشبو ډير خوښ دی او زماد سترګو يخوالې په مونځ کښې دې.(۵)

**رسول الله ﷺ ته د ټولو نه زياتې خوښې ښځې وې.-** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چې رسول الله ﷺ ته دټولو نه زياتې خوښې ښځې وې.او آسونه ني ددې نه هم زيات خوښ وو.او روايت کښې دی چې د آسونونه رسول الله ﷺ ته زيات خوښ څيز بل څه نه وو آو صرف ښځې وې.(۶) نو د ښځو محبت ښه هم دې او خراب هم.دا شان د هلکانو که هغوئ د دوی کثرت غواړی چې پرې فخر او غرور اوکړی نودا خراب څيز دې اوکه ددې وجې د هغوئ زياتې غواړی چې نسل زيات شي او د موحد مسلمانانو شمير په امت محمد ﷺ کښې زيات شی نو بيشکه دا ښه څيز دې.

**محبت کوونکې او د زيات اولاد زيږونکو ښځو فضيلت:-** حديث مبارك کښې دی چې محبت والا او زيات اولاد والا ښځو سره نکاح اوکړئ.دقيامت په ورځ به زۀ ستاسو په زيات شمير فخر کوم.(۷)همداشان مال هم دې که ددې محبت پيدا شی اوددې په وجه خلقوته سپك ګوری او په غريبانانو اومسکينانو فخر اوکړی نو دا ډير خراب څيز دې.او که دمال محبت خپلو او پردو سره د ښه سلوك کولو.نيکئ کولو اوپه ښه لاروکښې د خرچ کولو دپاره وی نو همدا شان دا ښه او ډير ښه څيز دې.

**قوله تعالى:-** وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ

**قنطار څومره مقدار ته وئيلې شي:-** د﴿ قِنْطَار ﴾مقدار کښې د مفسرينو اختلاف دې.خو حاصل د کلام دادی چې ډيرزيات مال ته قنطار وئيلې شی.لکه د ضحاك رحمه الله قول دې او نور اقوال هم اوګورئ. زر ديناره،سل ديناره،دولس سوه ديناره،دولس زره ديناره،څلويښت زره ديناره،شپيته زره ديناره،اتيا زره دينار وغيره وغيره.د مسند احمد يو مرفوع حديث کښې دی چې يو قنطار د دولسو سوؤ اوقيو

---

(۱) صحيح بخاری كتاب النكاح باب ما يتقى من شوم المراة : ۵۰۹۶، صحيح مسلم: ۲۷٤۰، ترمذی: ۲۷۸۰، ابن ماجة: ۳۹۹۸)-

(۲) صحيح بخاری كتاب النكاح باب كثرة النساء:۵۰۶۹، موقوفا على ابن عباس رضى الله عنه )-

(۳) صحيح مسلم كتاب الرضاع باب خير متاع الدنيا المراة الصالحة: ۱٤۶۹)-

(۴) ابن ماجة كتاب النكاح باب فضل النساء : ۱۸۵۷، وسنده ضعيف جدا)-

(۵) نسائی كتاب عشرة النساء باب حب النساء : ۳۳۹۲، وسنده حسن)-

(۶) نسائی : كتاب عشرة النساء باب حب النساء: ۳۳۹۳، عن انس رضى ا لله عنه وسنده ضعيف . قتاده مدلس دې او د سماع صراحت نشته)-

(۷) احمد: ۱۵۸/۳، وسنده حسن ابن حبان : ٤۰۲۸، بيهقی: ۷/۳۶۶۰ )-

وی او هره اوقیه بهتر ده د زمکې او اسمان نه.(۱) (غالبا دلته مقدار د ثواب بیان شوې دې چې یو قنطار به ملاویږی والله اعلم).
حضرت ابوهریره ﷺ نه همدا شان یو موقوف حدیث مروی دې او هم دا زیات صحیح دې،همدا شان ابن جریر کښې د معاذ بن جبل او ابن عمر ﷺ نه مروی حدیث کښې دولس سوه اوقیه راغلی دی.(۲) لیکن هغه حدیث هم منکر دې،ممکن دی چې هغه د ابی ابن کعب ﷺ قول وی.لکه څنګه چې د نورو صحابه کرامو ﷺ هم دا فرمان دې.ابن مردویه کښې دی چې رسول الله ﷺ فرمائی چې کوم سړی سل آیتونه اووائی نو هغه به غافلانو نه نهٔ وی او چې څوا د سلو نه تر زرو پورې اوونیل،هغه ته به الله ﷻ یو قنطار اجر ورکړی او قنطار د لوئې غر برابر دې.(۳) مستدرك حاکم کښې دی چې د دې آیت د دې لفظ مطلب د رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې دوه زره اوقیه.(۴) امام حاکم دې ته صحیح او د شیخینو په شرط بنائی.بخاری او مسلم دا نه دې راوړې.طبرانی وغیره کښې دی چې زر دیناره (۵) حسن بصری رحمه الله نه موقوفا یا مرفوعا مروی دی چې دولس سوه دیناره.ابن عباس ﷺ نه هم دا مروی دی.ضحاك رحمه الله فرمائی چې بعضې خلق قنطار د دولسو سوؤ دینارو بنائی.لیکن صحیح دادی چې ابو سعید خدری ﷺ فرمائی چې د غوئی څرمن چې د سرو زرونه ډکه شی نو دې ته قنطار وائی.دا مرفوعا هم دې لیکن زیات صحیح موقوفا دې.
**د اسونو مینه لول:** -د اسونو محبت په درې قسمه دې.یو خوهغه خلق دی چې اسونه ساتی او د الله تعالی په لار کښې اوځی او په هغې جهاد کوی نو د داسې خلقو د پاره دا اسونه د اجر او ثواب ذریعه او سبب ګرځی،دویم هغه خلق چې د فخر او غرور د پاره ئې ساتی دا هغوی دپاره وبال دې.دریم قسم هغه خلق دی چې دسوال نه د بچ کیدو دپاره او ددې د نسل دحفاظت دپاره ئې پالی او د الله ﷻ حق نه هیروی،دا نه اجردې اونه عذاب.هم ددې مضمون حدیث په آیت﴿وَأَعِدُّوا لَهُم﴾ تفسیر کښې به راشی (انشاءالله تعالی).
د ﴿وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ﴾ معنی څریدو والا وغیره ده.رسول الله ﷺ فرمائی چې هر عربی اس سحر د مونځ په وخت کښې د الله ﷻ اجازت سره دوه دعاګانې کوی.وائی چې ائې الله ﷻ ! تا چې زهٔ د چا په لاس کښې ورکړې یم د هغه په زړه کښې د هغه د اهل وعیال نه زما محبت زیات کړی.(۶)
**قوله تعالی:** -وَالْأَنْعَامِ نه مراد اوښ،چیلۍ او غواګانې دی.
**قوله تعالی:** -وَالْحَرْثِ نه مراد هغه زمکه ده چې دکرد پاره یا د باغ لګولو دپاره تیاره کړې شی.د مسند احمد حدیث کښې دی چې د انسان بهترین مال زیات نسل والا اسونه دی او زیاتې میوه دارې د کهجورو ونې دی.(۷)
**قوله تعالی:** -ذَٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۖ وَاللَّهُ عِندَهُ حُسْنُ الْمَآبِ
بیا فرمائی چې داټول د دنیاوی فائدې څیزونه دی،د دې خائې زینت ،ددې محبت هغه څیزونه دی چې فانی او زوال والا دی.د بنه واپس کیدو خائې او دبهترین ثواب خائې الله ﷻ سره دې مسند احمد کښې دی چې کله دا آیت نازل شو نو عمربن خطاب ﷺ اوفرمائیل چې ائې الله ﷻ ! هر کله چې تا دې ته زینت ورکړو نو اوس د دې نه پس به څه وی؟نو دې نه پس په دې باندې راتلونکې آیت نازل شو

(۱) احمد: ۳۶۳/۲، ابن ماجة کتاب الادب باب برالوالدین: ۳۶۶۰، وسنده حسن)-
(۲) ابن جریر)-
(۳) ابن مردویه)-.
(۴) حاکم : ۱۷۸/۲،)-
(۵) اوګورئ حدیث سابق.-
(۶) نسائي : کتاب الخیل باب دعوة الخیل : ۳۶۰۹، وسنده صحیح)-
(۷) احمد: ۴٦۸/۳،)-

**قوله تعالى:- قُلْ أَؤُنَبِّئُكُم بِخَيْرٍ مِّن ذَٰلِكُمْ**

چې ائې پیغمبر ﷺ اورواېه دوی ته چې زۀ تاسوته ددې نه بهترین څیز اوښايم دا خو يو نه يو ورځ فاني کیدونکې دې او زۀ تاسو لره چې کوم طرفته بلم هغه نه صرف همیشګیر دې بلکه ټول عمر به باقي وی.واورئي دالله ﷻ نه ویریدنکو دپاره جنت دې،چې د هغې د ونو مینځ کښې به قسم قسم نهرونه بهیږی،د شهدو اوپئیو اوشرابو اودپاکو اوبو،او هغه نعمتونه چې نه یوغوږ اوریدلی وی او نه يو سترګې لیدلی وی اونه په يو زړه کښې دهغې خيال راغلې وی.په دې جنتونوکښې به دا خلق همیشه همیشه وی.نه خو دوی د دې نه ویستلې شی او نه به ددوی نعمتونه کم کړې شی.دوی ته به بیبیانې ملاویږی چې دخباثت او ګندګۍ نه به بالکل پاکې وی او نه هغوئ ته حيض رازی او نه نفاس بالکل پاکې به وی.او د دې ټولو نه زيات دا چې دوی ته به دالله ﷻ رضا حاصله شی.او داسې چې ددې نه پس به د دوی نه نه خفه کیږی،ددې وجې سورت توبه کښې يو آيت کښې فرمائ چې﴿وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ﴾د الله ﷻ د لږې رضامندئ حاصلیدل هم دټولو نه لوئې څيز دې.يعنی د ټولو نعمتونو نه اعلى او د رب د مرضئ مطابق نعمتونه.ټول په ټوله بندګان دالله ﷻ په نظر کښې دی او هغه پاك ذات ته ښه معلوم دی چې څوك د مهربانئ مستحق دې.

<table>
<tr><td>اَلَّذِيْنَ</td><td>يَقُوْلُوْنَ</td><td>رَبَّنَآ</td><td>اِنَّنَآ</td><td>اٰمَنَّا</td><td>فَاغْفِرْلَنَا</td></tr>
<tr><td>داكسان دی</td><td>چې وائي</td><td>اې ربه زمونږه</td><td>بيشکه مونږه</td><td>ایمان راوړو</td><td>نوښښنه اوکړه مونږته</td></tr>
<tr><td colspan="6">دا هغه خلق دی چې وائي ائې زمونږه ربه مونږ په تاایمان راوړې دې انومونږ ته اوښښه</td></tr>
<tr><td>ذُنُوْبَنَا</td><td>وَقِنَا</td><td>عَذَابَ النَّارِ</td><td>اَلصّٰبِرِيْنَ</td><td colspan="2">وَالصّٰدِقِيْنَ</td></tr>
<tr><td>دګناهونو زمونږه</td><td>او بچ کړه مونږه</td><td>دعذاب د اور نه</td><td>دا خلق صبر کونکي دی</td><td colspan="2">صادقان دی</td></tr>
<tr><td>ګناهونه زمونږ</td><td colspan="2">اودعذاب نه موږه امان کښې اوساته</td><td>.........دوئ صبر کونکي دی</td><td colspan="2">رښتوني دی</td></tr>
<tr><td>وَالْقٰنِتِيْنَ</td><td>وَالْمُنْفِقِيْنَ</td><td colspan="2">وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ</td><td colspan="2">بِالْاَسْحَارِ</td></tr>
<tr><td>او فرمان منونکي دی</td><td>او خرچ کونکي دی</td><td colspan="2">او ښښنه غوښتونکي دی</td><td colspan="2">په اخرد شپو کښې</td></tr>
<tr><td>تابعدار دی</td><td>خيراتونه ورکوی</td><td colspan="4">اود شپې په اخری حصه کښې دښښنې دعاګانې غواړی</td></tr>
</table>

**قوله تعالى:- اَلَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اِنَّنَآ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ**

**دسحر وخت کښې د استغفاروئيلو فضيلت:-** الله ﷻ د خپلو بندګانو اوصاف بيان فرمائي چې هغوئ وائي چې ائې الله ﷻ مونږ ستا په ذات باندې اوستا په کتاب اوستا رسول ﷺ باندې ایمان راوړې دې.ائې الله ﷻ ته زمونږ ګناهونه معاف کړه ستا په ذات باندې ددې ايمان او ددې شريعت په بدله کښې او مونږ د جهنم اور نه اوساتې،دا متقيان خلق د الله ﷻ اطاعت کوی او د حرامو څيزونو نه ځان ساتی.د صبر نه کار اخلی.او د خپل ايمان په دعوى کښې هم رښتوني دی.ټول اعمال د خير کوی اګر چې د دوی په نفس دا کول ګران وی.دوی اطاعت او خضوع او خشوع والا دی.خپل مال دالله ﷻ لار کښې خرچ کوی چې کوم ځاې کښې دوی ته حکم کیږی.صله رحمئ کښې،رشته دارئ لره باقی ساتلو کښې،د بدو نه منع کولوکښې،همدردی کولو کښې،اونيکئ کولو کښې،دحاجتمندو،مسکينانو اوفقيرانو سره احسان کولو کښې سخاوت کوی.اوسحر وخت کښې په روستئ شپه کښې پاسی او استغفار کوی.ددې نه معلوم شو چې په دې وخت کښې استغفار ډیر فضيلت والا دې.دا هم اوونيلې شو چې د قرآن پاك په هغه آيت کښې چې يعقوب ﷺ خپلو بچو ته فرمائيلی وو چې﴿قَالَ سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيْ﴾ يعنی اوس لږ وخت پس به زۀ تاسولره د خپل رب نه بخښنه غواړم ).

دې نه مراد هم د پیشمنی وخت دې خپل اولاد ته فرمائی چې زۀ به د پیشمنی په وخت کښې ستاسو د پاره استغفار کوم،

**په اخر د شپه کښې د الله ﷻ اسمان د دنیا ته راتګ** - بخاری اومسلم کښې یو حدیث کښې دی او دا حدیث د ډیرو صحابه کرامو ﷺ نه نقل دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل الله ﷻ هره شپه په آخر شپه کښې آسمان د دنیا ته راشي او فرمائی چې څوک سائل شته چې زۀ ورته ورکړم؟ څوک دعا غوښتلووالا شته دې چې زۀ ئې دعا قبوله کړم.څوک استغفار والا شته دې چې زۀ ئې اوبخښم.(۱)

**د رسول الله ﷺ وترو له اخرې حصې د شپې کښې کول**:-حافظ ابوالحسن دارقطنی رحمه الله په دې مسئله باندې یو مستقل کتاب لیکلې دې او په هغې کښې ئې دیو حدیث ټول سندونه اوټول الفاظ واردکړی دی.بخاری اومسلم کښې عائشه رضي الله عنها نه مروی دی چې رسول الله ﷺ اوله شپه اومینځنۍ شپه او آخری شپه کښې وتر کړی وو.د ټولونه آخری وخت د رسول الله ﷺ د وترو کولو هغه د پیشمنی وخت وو.(۲)

**په اخر د شپه کښې د بعضې صحابه کرامو ﷺ د استغفار معمول**:- عبدالله بن عمر ﷺ به د شپې تهجد کول او د خپل غلام نافع رحمه الله نه به ئې تپوس کولو چې سحر شو؟هرکله چې هغه اووئیل چې آو نو بیا به دوی تر صبا صادق پورې په دعااواستغفار کښې مشغول وو(۳)حاطب رحمه الله فرمائی چې د سحر په وخت کښې ما واوریدل چې یو سړی د مسجد په یوګوټ کښې وائی چې انې الله ﷻ ! تا ماته حکم اوکړو او ما اومنلو.دا د سحر وخت دې ما اوبخښه،ما اوکتل نو هغه عبدالله بن مسعود ﷺ وو.انس بن مالك ﷺ فرمائی چې مونږ ته به حکم کیدو چې مونږ د تهجد مونځ ادا کړو نو د سحر آخری وخت کښې اویا ځل استغفار کوو.او د الله ﷻ نه دعا اوغواړو.

شَهِدَ اللّٰهُ | اَنَّهٗ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ | وَالْمَلٰٓئِكَةُ

ګواهی کړی ده الله| په دې شان|چې نشته لائق دعبادت| مګر|هم هغه دې| او(دګواهی) فریښتو هم کړی ده

الله پاک په دې خبره ګواه دې | چې بغیردهغه نه بل څوک د عبادت لائق نشته | .............اوفرښتې

وَاُولُوا الْعِلْمِ | قَآئِمًا | بِالْقِسْطِ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ الْعَزِيْزُ

او خاوندان دعلم| مضبوط ولاړ دی | په انصاف |چې نشته دې هیڅوك لائق دعبادت|مګر|هم دغه غالب

اوعالمان په دې خبره ګواه دی| اوپه انصاف محکم ولاړ دی | بې دالله نه بل څوك معبود نشته | هغه

الْحَكِيْمُ ۝ | اِنَّ | الدِّيْنَ | عِنْدَ اللّٰهِ | الْاِسْلَامُ | وَمَا | اخْتَلَفَ | الَّذِيْنَ

اوحکیم دې| بیشکه| دین | په نیز دالله| صرف اسلام دې|اونه وو کړې| اختلاف| هغه کسانو|

غالب او صاحب د حکمت دې | دالله پاک په نیز(مقبول)ترین دین صرف اسلام دې | اواهل کتابو چې کوم

اُوْتُوا | الْكِتٰبَ | اِلَّا | مِنْۢ بَعْدِ مَا | جَآءَهُمُ | الْعِلْمُ | بَغْيًا

چې ورکړې شوې وو|ورته کتاب|مګر|روستودهغې نه |چې راغې هغوئ ته| علم |په وجه دزیاتی کولو

اختلف کړې دې هغه د علم راتلونه پس دې| دهغې وجه صرف داده چې پخپل مینځ کښې ئې ضد کولو

---

۱) صحیح بخاری کتاب التهجد باب الدعاء والصلاة من اخر اللیل : ۱۱٤٥، صحیح مسلم: ۷۵۷، ابوداود: ۱۳۱۵)-

۲)صحیح بخاری کتاب الوتر ساعات الوتر:۹۹٦، صحیح مسلم:۱۷۳٦، ابوداود: ۱٤۳۵، نسائی: ٦۸۲، ترمذی: ٤۵٦،ابن ماجة: ۱۱۸۵)

۳) ابن ابی حاتم : ۱٤۵/۲)-

بَيۡنَهُمۡ ؕ وَمَنۡ يَّكۡفُرۡ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ سَرِيۡعُ الۡحِسَابِ ۝

په خپل منځ کښې|اوڅوک چې انکارکوی |دآیتونو دالله نه| نو بیشکه الله| زرحساب اغستونکې دې

اوڅوک چې دالله پاک دآیتونونه انکاری وی |نو بیشکه الله پاک حساب اخستلو کښې ډیر تیز دې

فَاِنۡ حَآجُّوۡكَ فَقُلۡ اَسۡلَمۡتُ وَجۡهِىَ لِلّٰهِ

نوکه چری|جګړه کوی تا سره دا خلق | نو ورته اوویه چې | تابع کړې دې | خان خپل | الله ته

اوکه هم دوی تاسره جنګ کوی | نوته ورته اووایه چې ما خپل خان دالله پاک د حکم تابع کړې دې

وَمَنِ اتَّبَعَنِ ؕ وَقُلۡ لِّلَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ وَالۡاُمِّيّٖنَ

اوهغه څوک چې تابعداری کوی زما| اواوویه| هغه کسانو ته|چې ورکړې شوې دې کتاب| او امیانو ته

اوهغه چا هم چې زماتابعدار دی | او داهل کتاب او امیانونه (مشرکانو)نه تپوس اوکړه

ءَاَسۡلَمۡتُمۡ ؕ فَاِنۡ اَسۡلَمُوۡا فَقَدِ

آیا تاسو هم خان تابع کړې دې هغه ته| نو که هغوئ هم خان تابع کړو د الله | نوبیشکه|

چې آیاتاسوهم دهغه حکمونه منئ| ..............نوکه دوی تابعدار وی | نو یقینا

اهۡتَدَوۡا ۚ وَاِنۡ تَوَلَّوۡا فَاِنَّمَا عَلَيۡكَ الۡبَلٰغُ ؕ وَاللّٰهُ

چې وې موندله نیغه لار | اوکه | مخ ئې واړوو | نو بیشکه چې | په تا باندې|رسونه ده دپیغام | اوالله

سمه لار ئې بیاموندده | اوکه ددې نه ئې مخ اوګرزولو | نو ستاکارخوصرف(دحق آواز) رسول دی| اوالله

بَصِيۡرٌۢ بِالۡعِبَادِ ۝ ع

کتونکې دې | د معاملاتو دبندګانو |

دبندګانو کارونه وینې ګوری

**قوله تعالی:- شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ**

**الله ﷻ ته صرف دین اسلام مقبول دې:-** الله ﷻ پخپله شهادت ورکوی نود هغه پاك ذات شهادت کافی دې.هغه دټولونه زیات ربښتونې اوشاهد دې.د ټولو نه زیاته رښتونې خبره دهغه پاك ذات ده.هغه پاك ذات فرمانې چې ټول مخلوق د هغه پاك ذات غلام دې.او هغه ذات ټول پیدا کړی دی.او هم د هغه پاك ذات ټول محتاج دی.هغه دټولو نه بې نیاز دې.الوهیت کښې هغه یودې او لاشریك دې: هغه لونې ذات نه بل څوک دسجدې لائق نشته دې،لکه فرمان دې چې ﴿لٰكِنِ اللّٰهُ يَشۡهَدُ بِمَآ اَنۡزَلَ اِلَيۡكَ﴾ یعنی لیکن الله ﷻ د دې کتاب په ذریعه چې تا ته کوم علم د خپل طرفنه نازلوی(هغه د دې) ګواهی ورکوی او فرښتې هم ګواهې ورکوی او د الله ﷻ شهادت کافی دې.

**قوله تعالی:- وَالۡمَلٰۤئِكَةُ وَاُولُوا الۡعِلۡمِ قَآئِمًاۢ بِالۡقِسۡطِ ؕ**

**د علماء کرامو فضیلت**-بیا خپل شهادت سره د فرښتو او علماء کرامو شهادت یو ځائې کوی.دې ځائې کښې د علماء کرامود بر لونې فضیلت هم ثابتیږی.بلکه خصوصیت﴿ قَآئِمًا﴾د نصب د حال کیدو په وجه سره دې.هغه پاك ذات په هر حال او هر حالت کښې همداشان دې.بیا د تاکید په طور دوباره اشاره کوی چې معبود حقیقی صرف هغه پاك ذات دې اوهغه غالب او عظمت او لونې والا دې او هغه لونې ذات په خپلو اقوالو او افعالو قدرت او تقدیر کښې حکمتونو والا دې.

**د دې ایت په حقله د رسول الله ﷺ عمل مبارک:-** مسند احمد کښې دی چې رسول الله ﷺ د عرفات په ورځ د دې آیت تلاوت اوفرمائیلو او﴿ الحکیم ﴾ پورې ئې اولوستلو او وې فرمائیل چې﴿ وانا علی ذالك من الشاهدین یارب ﴾(۱) ابن ابی حاتم رحمه الله کښې دی چې رسول الله ﷺ دا شان اوفرمائیل چې﴿ وانا اشهد ای رب ﴾ (۲).طبرانی کښې دی چې حضرت غالب قطان رحمه الله فرمائی چې زهٔ کوفې ته د تجارت په غرض لاړم حضرت اعمش ته نزدې پاتې شوم،د شپې حضرت اعمش تهجدو د پاره پاسیدو او تهجد کولو کولو کښې چې کله ئې دا آیت﴿اِنَّ الدِّیْنَ عِنْدَاللّٰهِ الْاِسْلَامُ﴾اولوستلو نو وې فرمائیل﴿وانااشهد بما شهد الله به واستودع الله هذه الشهادة وهی لی عندالله ودیعة﴾ یعنی زهٔ گواهی ورکوم د هغه ذات چې د هغه شهادت الله ﷻ ورکړې دې او زهٔ دا شهادت الله ﷻ ته سپارم،دا زما امانت الله تعالی سره دې.
بیا ئې څو خل﴿اِنَّ الدِّیْنَ عِنْدَاللّٰهِ الْاِسْلَامُ﴾اووئیلو،ما زړه کښې خیال اوکړو چې شاید دې باره کښې دوی څه حدیث مبارک اوریدلې وی.سحر سحر حاضر شوم او عرض مې اوکړو چې ائې ابومحمد!څه خبره وه چې تاسو دا آیت باربار لوستلو.وې فرمائیل چې تاته ددې فضیلت نه دې معلوم؟ما اووئیل زهٔ څو توله میاشت ستاسو په خدمت کښې حاضر اووم لیکن تاسو څه حدیث نه دې بیان کړې.وې فرمائیل چې د الله ﷻ قسم چې زهٔ به ئې تول کال بیان نه کړم.ما د دې حدیث آوریدو دپاره یو کال انتظار اوکړو او د هغوئ دروازه باندې پروت ووم.هرکله چې هغه کال مکمل شو نو ما اووئیل چې ائې ابو محمد کال خو تیر شو.نو هغوئ اووئیل چې ښه ده واوره.ابو وائل حدیث بیان کړېدې او هغه د عبدالله نه اوریدلې دې .هغه فرمائی چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چې د دې ویوونکې به د قیامت په ورځ راوستلې شی اوالله ﷻ به اوفرمائی چې زما دې بنده زما نه وعده اخستې ده اوما وعده پورا کړه.زهٔ په وعده پوره کولو کښې د تولو نه زیات یم زما دابنده جنت ته داخل کړئ.(۳)

قوله تعالی:-اِنَّ الدِّیْنَ عِنْدَاللّٰهِ الْاِسْلَامُ
بیا الله ﷻ فرمائی چې هغه صرف اسلام لره قبلوی،اسلام په هره زمانه کښې د پیغمبر د وحی منلو نوم دې.د تولو نه آخری او د تولو رسولانو خاتم زمونږ پیغمبر محمد ﷺ دې،د رسول الله ﷺ نبوت نه پس تولې لارې بندې شوې،اوس چې کوم سړې د رسول الله ﷺ د شریعت نه سوا په بل خیز باندې عمل کوی نود الله ﷻ په نیز هغه دیندار نه دې لکه بل خائې کښې فرمائی چې﴿وَمَنْ یَّبْتَغِ غَیْرَ الْاِسْلَامِ دِیْنًا فَلَنْ یُّقْبَلَ مِنْهُ﴾چې کوم سړې د اسلام نه سوا بل دین لره خپل کړی نو هغه به نشی قبلولې.همداشان په دې آیت کښې د دین انحصار صرف په اسلام باندې دې.

**دان د همزې کسره او فتحه کښې اختلاف دې:-** د ابن عباس رضی الله عنه قرات کښې﴿شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ﴾د ان د همزې په کسرې سره)دې او﴿ ان الاسلام ﴾)په خائې د ان الدین) دې.نومعنی به دا وی چې پخپله الله ﷻ گواهی ورکړې ده او هغه فرښتو او ذی علم انسانانو چې الله ﷻ ته مقبول دین صرف اوصرف اسلام دې.د جمهورو قرات کښې دا زیر سره دې.او د معنی لحاظ سره دواړه صحیح دی لیکن د جمورو قول زیات ظاهر دې.والله اعلم.

---

۱) احمد: ۱۶۶/۱،طبرانی : ۲۵۰، مجمع الزوائد: ۳۲۸/۶، علم الیوم واللیلة لابن السنی: ۴۳۵، ابن ابی حاتم : ۲۴۶، ددې سند کښې جبیر بن عمروالقرشی ابوسعد الانصاری او ابو یحیی مولی آل زبیر مجهول راوی دې اوگورنی الموسوعة الحدیثیة ۳۷/۳ نو داحدیث پاک ضعیف دې)۔
۲) طبرانی: ۲۵۰، ددې سند کښې ابو سعید عمر بن حفص بن ثابت مجهول راوی دې نو دا حدیث پاک ضعیف دې)۔
۳) طبرانی : ۱۰۴۵۳، وسنده ضعیف علامه هیثمی رحمه الله مجمع الزوائد ۳۲۲/۲ ، کښې فرمائی چه ددې سند کښې عمر بن مختار ضعیف راوی دې)۔

**قوله تعالى:-** ﴿وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ﴾

بیاارشاد فرمائی چې مخکښینو اهل کتابو د خپلو پیغمبرانو په راتلواو او دالله ﷻ د کتاب نازلیدو نه پس اختلاف اوکړو.او د دې وجه صرف په خپل مینځ کښې بغض او کینه وه.چې څوك دا وائی نو زۀ د هغه خلاف یم اګر چې هغه حق وائی.

**قوله تعالى:-** ﴿وَمَنْ يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللَّهِ فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾

بیا ارشاد دې چې هرکله دالله ﷻ آیتونه نازل شو او څوك ددې انکار کوی او دا او نه منی نو الله ﷻ به هم هغه ته ددې تکذیب ډیره زرسزا ورکړی.او دوی ته به د کتاب الله په مخالفت عذاب ورکوی.او ده ته به ددې شرارت سزا ورکوی.

**قوله تعالى:-** ﴿فَإِنْ حَاجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلَّهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ﴾

بیا فرمائی که چرې دا خلق تاسره د خدائې د توحید په حقله جنګ کوی نو ته اووایه چې زۀ به خالص د الله ﷻ عبادت کوم او هغه لوئې ذات سره څوك شریك نشته دې اونه دهغه په شان څوك شته دې او نه د هغه اولاد شته دې او نه د هغه ښځه اوچې څوك هم زما امتی دې زما په دین دې،د دې ټولو قول هم دا دې لکه بل ځائې کښې فرمائی چې﴿قُلْ هَٰذِهِ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللَّهِ عَلَىٰ بَصِيرَةٍ أَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِي﴾یعنی همدا زما لار ده تاسو لره ښه په طریقه رابلم الله ﷻ طرفته زۀ هم او زما تابعدار هم.

**قوله تعالى:-** ﴿وَقُلْ لِلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ أَأَسْلَمْتُمْ﴾........

بیا حکم کیږی چې انې نبی ﷺ ! دې نصرانیانو او یهودو ته اووایه،چې د کومو په لاس کښې د الله ﷻ کتاب دې او دې مشرکانو ته اووایه چې ستاسو د ټولو هدایت اسلام کښې دې او که دوی نې اونه منی نو هیڅ خبره نه ده،تاسو خپل فرض د تبلیغ پورا کړو،الله ﷻ په ټولو ښه پوهیږی،ددې ټولو واپسی هغه لوئې ذات طرفته ده.چالره چې اوغواړی نو سمه لار ورته اوښائی او چالره چې اوغواړی نو ګمراه نې کړی.هغه پاك ذات ته خپل حکمت ښه معلوم دې.دهغه حجت خو پورا کیږی،ټول بندګان دهغه په نظر کښې دی،هغه ته ټول ښه معلوم دی،د هدایت مستحق څوك دې،دګمراهۍ مستحق څوک دې،د هغه پاك ذات نه هیڅوك تپوس کولو والا نشته دې.

دا آیت او ددې په شان نورو آیتونو نه دا خبره ښکاره ده چې رسول الله ﷺ ټول مخلوق ته الله تعالی خپل رسول جوړ کړې او رالیګلې دې.اوپخپله د دوی ددین احکام په دې باندې دلالت کوی.او په کتاب وسنت کښې ډیر آیتونه او احادیث په دې مضون راغلې دی.قرآن پاك کښې دی چې﴿قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا﴾یعنی انې خلقو ازۀ ستاسو ټولو طرفته د الله رسول یم.او یو بل آیت کښې دی چې ﴿تَبَارَكَ الَّذِي نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلَىٰ عَبْدِهِ لِيَكُونَ لِلْعَالَمِينَ نَذِيرًا﴾ یعنی بابرکت دې هغه الله ﷻ چې هغه په خپل بنده باندې قرآن پاك نازل کړو،چې دا د دنیا والو د پاره تنبیه کولووالا جوړ شی.

بخاری او مسلم وغیره کښې ډیر واقعات تواتر سره ثابت دی چې رسول الله ﷺ د چاپیر چل ټولو بادشاهانو ته او نورو خلقو ته خطونه اولیکل او وې لیږل او په هغې کښې رسول الله ﷺ هغوئ ته دعوت ورکړې وو که هغه عرب وو او که عجم،اهل کتاب وو او که بل مذهب والا وو،دا شان رسول الله ﷺ د تبلیغ فرض کمال ته اورسولو.(١)

**څوک چې د بې ایمانۍ په حالت کښې مړ شو هغه جهنمی دې:-** مسند عبدالرزاق کښې ابوهریره ﷛ نه روایت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې په هغه الله ﷻ مې دې قسم وی چې د هغه په قبضه کښې زما سا ده،چې د دې امت کوم یو سړی ته زما د نبوت آواز اورسیدو او هغه په راوړې شوی څیز باندې ایمان راونړو که هغه یهودی وی اوکه نصرانی او دې د دې بې ایمانۍ حالت کښې مړ شو نو دې بالکل

---

(١) صحیح بخاری کتاب العلم باب مایذکر فی المناولة وکتاب اهل العلم: ٦٥)-

جهنمی دي.(۱) مسلم شریف کښې هم یو حدیث دې زهٔ هر تور سپین طرفته د الله تعالی نبی جوړ کړې شوې راليږلې شوې یم.(۲)

**نبی ﷺ د ټولو انسانانو د پاره رسول دې:-** او یو حدیث پاک کښې دا هم دی چې هر نبی صرف خپل قوم ته راليږلې کیږی مګر زهٔ ټولو انسانانو د پاره نبی جوړې کړې شوې او لیږلې شوې یم.(۳)

**کلمه د شهادت د جهنم نه د خلاصی ذریعه ده:-** مسند احمد کښې انس ﷺ نه روایت دې چې یو یهودی هلك بیمار شو او دې هلك به دنبی ﷺ دپاره اوبه اینبودې او د دوی پیزار به نې راوړو. رسول الله ﷺ د هغه د بیمار پرسئ دپاره تشریف راوړو، په دغه وخت کښې د هغه پلار هم د هغه سر ته ناست وو. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې اني فلانيه﴿ لا اله الا الله ﴾اووایه. هغه خپل پلار طرفته اوکتل. پلار ورته اوکتل او ورته نې اووئیل چې د ابوالقاسم ﷺ خبره اومنه. نو هغه هلك اووئیل چې﴿ اشهد ان لا اله الا الله وانك رسول الله ﴾. رسول الله ﷺ د هغه خانې نه تشریف یوړو او دا نې اوفرمائیل چې د الله ﷻ شکر دې چې هغه لونې ذات دا هلك زما په وجه د جهنم د اور نه بچ کړو. دا صحیح بخاری کښې امام بخاری رحمة الله علیه راوړې دې.(۴) د دوی نه سوا نور هم ډیر صحیح احادیث او دقرآن پاك آیتونه دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | يَكْفُرُوْنَ | اِنَّ الَّذِيْنَ | |
| د ایتونو دالله نه | چې انکار کوی | بیشکه هغه کسان | |
| بیشکه کوم خلق چه د الله تعالی د آیاتونو نه انکارکوی | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِالْقِسْطِ | يَاْمُرُوْنَ | الَّذِيْنَ | وَّيَقْتُلُوْنَ | بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ | النَّبِيّٖنَ وَيَقْتُلُوْنَ |
| په انصاف کولوسره | چې حکم کوی | هغه کسان | او قتل کوی | په ناحقه | پیغمبران او وژنی |
| اوبه ناحقه پیغمبران قتلوی او هر هغه څوک قتلوی چې د (خلقو ترمینځ) دعدل اوانصاف کولو حکم کوی | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَبِطَتْ | الَّذِيْنَ | اُولٰٓئِكَ | اَلِيْمٍ ۝ | بِعَذَابٍ | هُمْ | فَبَشِّرْ | مِنَ النَّاسِ ۙ |
| چې ضائع شو | هغه کسان دی | هم دا | دردناك | عذاب | د | هغوئ ته | انوزیری ورکړه | دخلقو نه |
| چې عملونه نې ضائع شول | | داهغه بدبخته خلق دی | | نوداسې کسانوته د دردناک عذاب زیرې ورکړه | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ۝ | لَهُمْ | وَمَا | وَالْاٰخِرَةِ ۡ | فِي الدُّنْيَا | اَعْمَالُهُمْ |
| هیڅ مددګاران | دپاره دهغوئ | او نشته | آخرت کښې | په دنیا او په | عملونه دهغوئ |
| په دنیا اوآخرت دواړو کښې ...............اودوئ سره مدد کونکې څوک نشته | | | | | |

قوله تعالی:- اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

**د یهودیانو د کفر او خپلو پیغمبرانو لره د قتل کولو په وجه مذمت:-** دلته د هغه اهل کتابو مذمت بیانیږی چې کومو به د ګناه او حرمت کارونه کول. د الله ﷻ هغه خبرې نې دروغ ګڼړلې چې کومې هغه د مخکښې وروستو د خپلو رسولانو په ذریعه لیږلې وې. دومره نه بلکه پیغمبران به نې قتل کول. او دومر سرکش وو چې کومو خلقو به دوی ته د عدل و انصاف خبرې کولې هغوئ به نې ختمول. حدیث

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الایمان باب وجوب الایمان برسالة نبینا محمد: ۱۵۳)-
(۲) مسلم کتاب المساجد باب المساجد ومواضع الصلاة: ۵۲۱)-
(۳) صحیح بخاری کتاب التیمم باب رقم: ۱ ح/۳۳۵، صحیح مسلم: ۵۲۱، نسائی: ۴۳۲)-
(۴) احمد: ۱۷۵/۳، صحیح بخاری کتاب الجنائز باب اذا سلم الصبی فمات: ۱۳۵۶، ابوداود: ۳۰۹۵)-

کښې دی چې کبر و غرور هم دا دې چې حق نه منل او حق منونکو لره ذلیل کول.([1])مسند ابن ابی حاتم کښې دی چې ابوعبیده بن جراح ﷺ رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چې د ټولو نه زیات سخت عذاب به په چا وی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې په هغه چا چې چا نبی قتل کړو یا ئې یو داسې سړې قتل کړو چې هغه د نیکئ لار خودلو والا او د بدئ نه منع کولو والا وی.

قوله تعالی:- وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّنَ بِغَيْرِ حَقٍّ

بیا رسول الله ﷺ دا آیت مبارك تلاوت کړو او وې فرمائیل چې ائې ابوعبیده ﷺ ! بنی اسرائیلو درې څلویښت نبیان د ورځې په اوله حصه کښې یو ساعت کښې قتل کړل،بیا ئې یو سل اویا بنی اسرائیل ایماندار قتل کړل دا هغه ایمانداره وو چې دوی ئې د دې انبیاء د قتل نه منع کړې وو. او دوی ته به ئې نیغه لار خودله او د بدئ نه به ئې منع کول.او هغه ټول ئې د دې ورځې په آخری حصه کښې قتل کړل.په دې آیت کښې الله ﷻ دهغوئ ذکر کوی.([2])

ابن جریر کښې دی چې عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی چې بنی اسرائیلو درې سوه نبیان علیهم السلام د ورځې په شروع کښې قتل کړی وواوماښام سبزئ خرڅولو ته کښېناستل([3])نو ددې خلقو ددې سرکشئ په وجه الله ﷻ دوی په دنیا کښې خوار او ذلیل کړل.او آخرت کښې هم د دوی دپاره د رسوائئ بدترین عذاب تیار دې.

قوله تعالی:- فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ::ددې وجې فرمائی چې دوی ته د دردناك او ذلت والا عذاب خبر ورکړه.

قوله تعالی:- أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ......

ددوی اعمال په دنیاکښې هم خراب اوپه آخرت کښې هم برباد اوددوی به هیڅوك مددګاراوسفارشی نه وی.

| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يُدْعَوْنَ |
|---|
| آیاتااونه لیدل\| هغه کسان \| چې ورکړې شوې وه\| حصه \| دکتاب نه \|هغوئ چې اوبللې شی |
| آیا ته نه ګورې چې کوموخلقوته دالله د کتاب نه څه حصه ورکړې شوې ده \| دهغوئ داحال دې چې د الله |
| إِلَىٰ كِتَابِ اللَّهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ |
| کتاب دالله ته \| چې فیصله اوکړی هغه \| په منځ دهغوئ کښې \|بیا \| مخ اړوی \| یوه ډله |
| کتاب ورته ورکړې شوې دې\| په دې غرض چې ددوئ ترمینځه فیصله اوکړی\|.......... نوددوئ یوه ډله |
| مِّنْهُمْ وَهُم مُّعْرِضُونَ ۝ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَن تَمَسَّنَا |
| دهغوئ نه \| او هغوئ \| تل ډډه کونکی دحق نه \| دا کار څکه کوی چې بیشکه هغوئ\| وائی \| هرګز به اونه رسیږی مونږته |
| ددې نه ډډه کوی \| اودوئ همیشه د حق نه مخ ګرزولې دې \| دا څکه چې ددوئ داخیال دې چې |
| النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ ۖ وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِم مَّا |
| اور \| مګر \| یوڅو ورځې\| شمارلې شوی \| او دهوکه کړی دی هغوئ\|په دین خپل کښې\| هغه څیز |
| د شمیر دیوڅوورځونه بغیر مونږ ته به هیڅکله ددوزخ اور نه اونه رسی\| اوددین په باره کښې |

[1] صحیح مسلم کتاب الایمان باب تحریم الکبر وبیانه: ۹۱)-

[2] ابن ابی حاتم : ۲/۶،۱۶۲)-

[3] الطبری: ۲۷۷۷،)-

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ۝ | فَكَيْفَ | إِذَا | جَمَعْنٰهُمْ | لِيَوْمٍ |
| چې جوړول به ئې دخان نه | انو څه حال به وي | اکله چې | اراجمع کړومونږه هغوئ | د پاره دهغه ورځې |
| دوئ خپلو دروغژنو خیالونو غولولي دي انو څنګه عجیبه به وي چې مونږ دوئ ټول په هغه ورځ راجمع کړو | | | | |
| لَا رَيْبَ | فِيْهِ | وَوُفِّيَتْ | كُلُّ نَفْسٍ | مَّا كَسَبَتْ |
| چې نشته شك | په هغې کښې | اوپوره بدله به ورکړې شي | هر نفس ته | د هغه عمل چې کړې ئې وي |
| چې دهغې په راجمع کولو کښې هیڅ شک نشته | اوهریو کس ته دخپل عمل پوره پوره بدله ورکړې کیږي | | | |
| وَهُمْ | لَا يُظْلَمُوْنَ۝ | | | |
| او په هغوئ به | نه کیږي هیڅ ظلم | | | |
| اوپه دوئ به ظلم نه کیږي | | | | |

قوله تعالی:- اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُدْعَوْنَ اِلٰى كِتٰبِ اللّٰهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ........

**د یهودیانواو نصرا نیانو دعوې باطلې دی:-** دلته الله ﷻ فرمانی چې دا یهود و نصاری پخپله دعوی کښې هم دروغژن دی.چې د دوی په تورات او انجیل باندې ایمان دې څکه کله چې دوی ته د دوی د کتابونو د هدایت مطابق په نبی آخرالزمان باندې د ایمان راوړو اودرسول الله ﷺ تابعداریٔ طرفته راوبللې شی نو دوی مخ واړوی او تینتی.ددې نه د دوی سرکشی او تکبر او دښمنی او مخالفت ظاهریږی

قوله تعالی:- ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ

ددې حق په مخالفت او په دې بې ځایه سرکشئ دوی دې څیز(تکبر وغیره) زړور کړی دی چې دوی د الله ﷻ په کتاب کښې داسې خبرې جوړوی چې هغه د الله تعالی کتاب کښې نشته دې او دوی دخپل طرفنه بیانوی چې مونږ خو به لږې ورځې په اورکښې یو.یعنی صرف اووه ورځې د دنیا حساب سره.د هر زر کاله پس یو ورځ،د دې پورا تفسیر په سورة بقره کښې تیر شوې دې.په باطل او د خان جوړ شوې دین باندې دوی ولاړ وو.حالانکه دا د دوی خپل خیال دې،الله ﷻ نه داسې خبره کړې ده او نه د دوی څه کتابی دلیل دوی سره شته دې.

قوله تعالی:- فَكَيْفَ اِذَا جَمَعْنٰهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيْهِ

بیاالله ﷻ دوی رټی اودوی ته دهمکی ورکوی او فرمانی چې د دوی به دقیامت په ورځ څه حال وی؟ دوی په الله ﷻ باندې دروغ اوتړل او د رسولانو تکذیب ئې اوکړو او حق علماء ئې قتل کړل.یو یو به الله ﷻ ته جواب ورکوی اود یویو گناه سزا به مومی.دهغه ورځې په راتلوکښې هیڅ شك نشته دې.

قوله تعالی:- وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ

په هغه ورځ به هر سړی ته پورا پورا بدله ملاویږی.او په هیڅا به هیڅ ظلم نه کیږی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلِ | اللّٰهُمَّ | مٰلِكَ الْمُلْكِ | تُؤْتِي الْمُلْكَ | | | |
| اوو ایه | اې الله | مالکه دباشاهیٔ | ته ورکوې بادشاهي | | | |
| (راني پیغمبره)ته ورته اووایه چې ائې الله دبادشاهیٔ واکداره ورکوې بادشاهي | | | | | | |
| مَنْ تَشَآءُ | وَتَنْزِعُ | الْمُلْكَ | مِمَّنْ | تَشَآءُ | وَتُعِزُّ مَنْ | |
| هغه چاته چې ته اوغواړې | اواخلې | بادشاهي | دهغه چانه | چې ته اوغواړې | اوعزت ورکوې هغه چاته | |
| هغه چاته چې ته اوغواړې اوچانه چې اوغواړې نو حکومت اخلې ........... ....... او عزت ورکوې | | | | | | |

تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ ط بِيَدِكَ الْخَيْرُ ط اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ
چي ته اوغواړې| او ذليله کوې| هغه څوك| چي اوغواړې ته| په لاس ستا کښي خير دې| بيشکه ته| په هرڅيز باند
چاته چي دې خوښه شي| اوچاته چه اوغواړې نو ذليل ئې کړې| ټول خير ستا په لاس کښي دې| بيشکه ته په هرڅيز
قَدِيْرٌ۝ تُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ ز وَتُخْرِجُ الْحَيَّ
قادر ئې | ته ننباسې| شپه| په ورځ کښي| او ته ننباسې| ورځ | په شپه کښي| او ته راوباسې| ژوندی
قدرت لرې| ته شپه په ورځ کښي داخلوې| او ورځ په شپه کښي داخلوې| او مړی نه
مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ ز وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَآءُ بِغَيْرِ
د مړی نه | او ته را اوباسې| مړې | دژوندی نه | او ته رزق ورکوې| هغه چاته| چي اوغواړې ته | بې
ژوندې راوباسې| اود ژوندی نه مړی راوباسې| ......................اوچاته چي اوغواړې نو بې حسابه روزی
حِسَابٍ۝
حساب |
ورکوې |

قوله‌تعالى:- قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ

**د عزت،ذلت او د کائنات ټول نظم د الله تعالى په اختيار کښي دي:-** الله ﷻ فرمائی چي اني محمد ﷺ ! تاسودخپل رب دتعظيم په توګه اودهغه لوئې ذات دشکر ادا کولواوهغه عظيم ذات ته دکاروړنو سپارلو دپاره او په هغه پاك ذات باندې د پورا بهروسې په توګه په دې الفاظو د هغه لوئی بيان کړه چي کوم پورته بيان شول

قوله‌تعالى:- تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ

يعنى اني الله ﷻ مالك الملك هم ستا ذات دې چي ستا ملکيت کښي ټول جهان دې.چي چاته ته اوغواړې بادشاهی ورکوې او چي چاته ته اوغواړې نو اخلې ترې او هم ته ورکولو والا او اخستلو والا ئې.ته چي څه غواړې نو هغه کوې او څه چي نه غواړې نو هغه نشی کيدې.

په دې آيت کښي ددې خبرې هم تنبيه او د هغه نعمت د شکر ادا کولو هم حکم دې چي کوم رسول الله ﷺ ته او د رسول الله ﷺ امت ته ورکړې شو.او نبوت ئې دبنی اسرائيلو نه واخستو او محمد ﷺ ته ئې ورکړو.او رسول الله ﷺ على الاطلاق د نبيانو عليهم السلام خاتم او دټول جن و انس طرفته رسول جوړ شوې ليږلې شوې وو.د رسول الله ﷺ ذات مبارك کښي ټولې مخکنۍ خوبئ جمع دی.او رسول الله ﷺ ته هغه فضيلتونه ورکړې شو چي دکومو نه ټول نبيان عليهم السلام محروم وو،که هغه د الله ﷻ د طرفنه وو او که پخپله د دوی دشريعت معامله کښي وو اوکه راتلونکو خبرو متعلق وو.رسول الله ﷺ باندې ئې د آخرت ټول حقائق ښکاره کړل.د رسول الله ﷺ امت ئې د مشرق نه تر مغربه پورې خور کړو او د رسول الله ﷺ دين او مذهب ئې په ټولو مذهبونو باندې غالب کړو.د الله ﷻ درود و سلام دې وی په رسول الله ﷺ باندې او اوس نه واخله تر قيامته پورې ترکومې چي دشپې اوورځې تلل راتلل باقی وی.الله ﷻ دې په رسول الله ﷺ باندې رحمتونه نازل کړی هميشه هميشه دپاره.آمين.

قوله‌تعالى:- وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ

بيا فرمائی چي اووايه اني الله ﷻ ! هم ته په خپل مخلوق کښي ادلی بدلی کولې شې او چي څه غواړې نو هغه کوې.چي کوم خلق دا خبره کوی چي الله ﷻ په دې دواړو قبيلو کښي ولې په يو لوئې سړی

باندې خپل کلام نازل نه کړو؟ الله ﷻ د دې رد کښې فرمائي چې ﴿أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ﴾ :يعنې آيا ستا د رب د رحمت تقسيمونکي دوی دی.او د دوی د روزئ مالکان هم مونږ يو.چې چالره اوغواړونو کمه ورکړو او چا لره اوغواړو نو زياته.نو بيا مونږ باندې حکومت کولو والا دا څوك دې؟چې فلانۍ سړې نې ولې نبی جوړنکړو يا نبوت زمونږ د ملکيت څيز دې.مونږ ته پته ده چې دهغه د ورکړې قابل څوك دې.لکه بل ځائې کښې ارشاددې چې﴿اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ﴾يعنې چې چرته هم الله ﷻ خپل رحمت نازلوی نوهغه لونې ذات ته ښه معلوم وی.اوبل ځائې کښې فرمائي چې ﴿انظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ يعنې اوګوره چې مونږ څنګه دوی ته په يوبل باندې برتری ورکړه.

قوله تعالى:- تُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ

بيافرمائي چې هم ستا ذات دې چې د شپې اوږدوالي کموی او شپه ورځ برابروی.او د يو حصه بل ته ورکړې او کموی او اوږدوی ئې.بيا ئې برابروی.زمکه اوآسمان باندې،او نمر او سپوږمئ باندې ستا ټوله قبضه ده.دا شان ګرمئ نه پس يخنی اويخنئ نه پس ګرمی راوستل ستاپه قدرت کښې دی.په بهار اوخزان باندې هم ته قادر ئې.

قوله تعالى:- وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ

او هم ستا ذات دې چې دژوندی نه مړ او مړی نه ژوندی پيدا کوی.مومن دکافر نه او کافر نه مومن پيداکوې.چرګه د اګئ نه او اګئ نه چرګه پيدا کوې.اوداشان ټول څيزونه ستاپه قبضه کښې دی.

قوله تعالى:- وَتَرْزُقُ مَن تَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ

چا لره چې اوغواړې نو دومره مال ورکړې چې دشمير نه هم زيات وی.او چالره چې اوغواړې نو د لوږې ختمولو د پاره ورته روټئ هم نه ورکوې.مونږ ته پته ده چې دا ټول کارونه دحکمت دی.او ستا ارادې او ستاخوښې سره کيږی.د طبرانی حديث کښې دی چې د الله ﷻ اسم اعظم په دې آيت﴿قل اللهم﴾کښې دې ،هرکله چې دهغه پاك پروردګارپه نوم دهغه نه دعااوغوښتلې شی نوهغه قبلونکئ ذات ئې قبلوی. (١)

| مِن دُونِ | أَوْلِيَاءَ | الْكَافِرِينَ | الْمُؤْمِنُونَ | لَا يَتَّخِذِ |
|---|---|---|---|---|
| ماسوا | په دوستئ سره | کافرانولره | مؤمنان | نه دنيسی |
| ........... مؤمنان دې کافران د مؤمنانو سوا په دوستئ سره نه نيسی | | | | |

| أَن تَتَّقُوا | إِلَّا | فِي شَيْءٍ | فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ | وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ | الْمُؤْمِنِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ساتئ تاسو | مګر اکه خان | په هيڅ څيز کښې | نو نشته داالله سره | او هغه چا چې اوکړو داکار | دمومنانو |
| ......اوڅوك چې داسې اوکړی نو دهغه الله سره هيڅ تعلق پاتې نشو مګرکه تاسو دهغوئ نه خان بچ کولو دپاره | | | | | |

| مِنْهُمْ | تُقَاةً | وَيُحَذِّرُكُمُ | اللَّهُ | نَفْسَهُ | وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغوی | په خان ساتنه سره | او يروی تاسو | الله | دخپل خان نه | او خاص الله ته دی تلل ستاسو |
| دوستی کوی ......اوالله تاسو دخپل خان نه ويروی اوآخربه الله ته ورځئ | | | | | |

قوله تعالى:- لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ

**کافرو سره دوستی نه کول:**-په دې آيت کښې الله ﷻ د ترك موالات حکم فرمائي چې مسلمانانو دپاره جائز نه دی چې کافرو سره دوستانې اومحبتونه اوکړی،دوی ته پکار دی چې خپلوکښې ايماندارو سره محبتونه او ګډون اوساتی.

(١) طبرانی : ١٢٧٩٢، ددې سند کښې محمد بن زکريا الفلاح په وجه موضوع دې.

**قوله تعالى:- وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً**

بيا حكم فرمائي چې څوك داسې كوي نو دهغوئ نه الله ﷻ بالكل ويزاره دې لكه بل ځائې كښې فرمائي چې﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَعَدُوَّكُمْ اَوْلِيَآءَ﴾ يعنى اې ايمان والوازما اوخپلو دښمنانو سره دوستانه مه كوئ.اوبل ځائې كښې فرمائي چې اې مومنانوادا يهود ونصارى خپلوكښې دوستان دى.تاسو كښې چې څوك دوى سره دوستانه كوى نو هغه به د هغوئ نه وى.او يو بل ځائې كښې الله ﷻ د مهاجرينو او د انصارو خپلو كښې ددوستانې ذكر فرمائي چې كافرخپلو كښې ديوبل محب او محبوب دى ،كه تاسو داسې نه كوئ نو زمكه كښې به فتنه او فساد راشي.او يو زبردست فساد به خور شي خو هغه خلقو ته اجازت وركړې شو چې په يوښار كښې د دوى د بدئ او د دوى د خرابوالى نه ويرېږى او وختى طور په ظاهره څه ميل ملاپ ظاهر كړى.خوپه زړه كښې ددوى رغبت او دوى سره حقيقى محبت نه وى لكه صحيح بخارى كښې دابو درداء ﷺ نه مروى دې چې مونږ بعضو قومونو سره په پراخه تندى ملاويږو ليكن زمونږ په زړه كښې ددوى دپاره لعنت وى.([1])حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چې صرف په ژبه دې اظهار اوكړى ليكن په عمل كښې ددوى ملګرتيا داسې وخت كښې هم بالكل دې نه وى هم دا خبره نور مفسرينو نه هم مروى ده او د دې تائيد د الله ﷻ دا فرمان دې.﴿اِلَّا مَنْ اُكْرِهَ وَقَلْبُهٗ مُطْمَئِنٌّ بِالْاِيْمَانِ﴾ : يعنى چې څوك دخپل ايمان نه پس الله باندې كفر اوكړى سوا د هغو نه چې په هغوئ باندې زبردستي اوكړې شى او دهغه زړه ايمان سره مطمئن وى،بخارى شريف كښې دى چې حسن رحمة الله عليه فرمائي چې دا حكم قيامته پورې دې.([2])

**قوله تعالى:- وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ**

بيافرمائي چې الله ﷻ تاسو لره د خپل ذات بارى نه ويروى يعنى د خپلې دبدبې او خپلوعذابونو نه هغه سړې خبروى چې څوك د هغه د فرمان مخالفت كوى او د هغه دښمنانو سره دوستانه ساتى او دهغه دوستانو سره دښمنى كوى،

**قوله تعالى:- وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ**

بيافرمائي چې هم الله ﷻ طرفته تګ دې.هر عامل ته به د هغه دعمل بدله ملاويږى.معاذ ﷺ اودريدو او وې فرمائيل چې اې بنى اودازۀ تاسو ته د الله درسول ﷺ قاصد جوړ شوې اوتاسوطرفته راغلې يم، دا واورئ چې ټول به الله ﷻ طرفته واپس كيږئ،بيا خو به يا جنت يا جهنم ځائې وى.([3])

| قُلْ اِنْ تُخْفُوْا مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ اَوْ تُبْدُوْهُ يَعْلَمْهُ اللّٰهُ ۭ وَيَعْلَمُ |
|---|
| او ته اووايه كه تاسو پټ كړئ اهغه اچه سينوستاسو كښې دى ايابنكاره كړئ ا هغه معلوم دى ا هغه الله ته ااوخبريږى هغه |
| (اې پيغمبره)،ته ورته اووايه كه تاسودخپل زړه خبره پټه اوساتئ ا اوكه څرګنده ئې كړئ اخو الله پاك ته معلومه دهااو په |
| مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ وَاللّٰهُ |
| دهرهغه څيزونونه ا چه دى په آسمانونو كښې ااودهغې نه ا چې په زمكه كښې دى ا او الله ا |
| آسمانونو او زمكو كښې هر څه باندې هغه پوهه دې ا......................... اوالله پاك |

[1] صحيح بخارى كتاب الادب باب المدارة مع الناس تعليقا بصيغة تمريض قبل حديث : ٦١٣١،السلسلة الضعيفة: ٢١٦)-

[2] صحيح بخارى كتاب الاكراه قبل حديث : ٦٩٤٠)-

[3] ابن ابى حاتم)-

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَمِلَتْ | مَّا | كُلُّ نَفْسٍ | يَوْمَ تَجِدُ | قَدِيرٌ | كُلِّ شَيْءٍ | عَلَى |
| چه کړي ني وي | اهغه څه | هرنفس | په کومه ورځ چه اوبه مومي | قادر دي | څيز | په هر |
| په هر څه پوره پوره قدرت لري ............ ...هغه ورځ راتلونکي ده چه هر نفس به خپل | | | | | | |
| لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا | تَوَدُّ | مِنْ سُوءٍ | وَمَا عَمِلَتْ | مُّحْضَرًا | مِنْ خَيْرٍ | |
| چه کاش که په مينځ دده کښې | آرزوبه اوکړي | دبدي نه | اوهغه چې کړي ني وي | حاضر | دنيکئ نه | |
| نيک عملونه او بدعملونه خپلې مخې بيامومي داخواهش به کوي چې کاش زما او ددې ورځې | | | | | | |
| وَاللَّهُ | نَفْسَهُ | اللَّهُ | وَيُحَذِّرُكُمُ | أَمَدًا بَعِيدًا | وَبَيْنَهُ | |
| او الله | دخان خپل نه | الله | تاسو اويروي | فاصله وې لري | او په مينځ دعمل دده کښې | |
| ترمينځه يو لوئي اوږدميدان وې ...........اوالله پاک تاسو خپل خان نه ويروي اوالله پاک | | | | | | |
| بِالْعِبَادِ | رَءُوفٌ | | | | | |
| په بندگانو | ډير مهروبانه دې | | | | | |
| دخپلوبندگانوډيرزيات خيرخواه دې | | | | | | |

قوله تعالى:- قُلْ إِنْ تُخْفُوا مَا فِي صُدُورِكُمْ أَوْ تُبْدُوهُ يَعْلَمْهُ اللَّهُ

**الله ﷻ ته د ټولو پټو او ښکاره څيزونو پته ده - الله ﷻ فرمائي چې هغه پاك ذات ته ټول پټ او ښكاره** څيزونه معلوم دي.د هغه لوئي ذات نه هيڅ وړوکی نه وړوكې څيز هم پټ نه دې.

قوله تعالى:- وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ

د هغه علم ټولوڅيزونو لره په هر وخت کښې اوهره لحظه کښې گيره کښې اخستی دی.دزمكې هر گوټ کښې،سمندرونوکښې،آسمانونو کښې، هواگانو کښې، سورو کښې،غرض چې څه چرته دی ټول د هغه په علم کښې دی،

قوله تعالى:- وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ

بيا په هغه ټولو باندې دهغه لوئي ذات قدرت دې.چې څنگه ني غواړی نو هغه ساتی او سزا و جزا ورکوی،نو د دومرد لوئي علم والا،دومره زبردست قدرت والا نه هر سړی لره ويريدل پكار دی د هغه عظيم ذات په فرمانبردارئ کښې مشغوليدل پكاردي.اودهغه دنافرمانونه يو خواته كيدل پكار دی. هغه عالم هم دې او قادر هم دې.ممکن دی چې چاته ډيل ورکړی ليکن كله راڼيول شروع كړی نو بيا سم نيول وی.بيا به نه مهلت وی او نه اجازت.

قوله تعالى:- يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُحْضَرًا وَمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوءٍ

يو ورځ راتلو والا ده چې په هغه ورځ د ټول عمر ښه او بد کارونه به مخامخ كيخودې شی.چې نيکو ته خوك اوگوری نو خوشحاليږی به

قوله تعالى:- تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ أَمَدًا بَعِيدًا

او چې بدو ته اوگوری نو غاښونه به چيچی اوحسرت او افسوس به کوی.او غواړی چې ددې نه لرې وی.قرآن پاك کښې بل خائې کښې فرمان دې چې ﴿يُنَبَّأُ الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ : يعنی خبر به كړې شی انسان په هغه چې مخکښې نې کړی وی او روستو نې کړی وی.

شيطان چې دوى سره وو په دنيا كښې او دوى به ني بدو طرفته راپارول،د هغه نه به هم دوى په هغه ورځ ويزاره شي او وائي چې ﴿قَالَ يٰلَيْتَ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ الْقَرِيْنُ﴾ :يعنى څه ښه به وې اې شيطانه چې زما اوستا ترمينځه د مشرق او مغرب هومره فاصله وې.او هغه خو ډير بد ملګرې دې.

قوله تعالى:- وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۗ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ

تاسو لره د خپلو عذابونو نه ويروى،بيا الله ﷻ خپلو نيكانو بندګانو ته زيرى وركوى چې هغوئ د دې لطف او كرم نه هيڅ كله نه مايوسه كيږى،هغه پاك ذات خو ډير مهربان او رحم والا او محبت كولو والا دې.امام حسن بصرى رحمة الله عليه فرمائى چې دا هم د هغه مهربانه ذات سراسرمهربانى او لطف اومحبت دې چې هغه د خپل ذات نه بندګان اوويرول.(۱) او دا مطلب هم دې چې الله ﷻ پخپلو بندګانو رحيم دې،بندګانو ته هم پكار دى چې صراط مستقيم نه اخوا نشى،پاك دين نه پريږدى،د رسول الله ﷺ تابعدارى اوكړى او ددې نه مخ نه اړوى.

| قُلْ | اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ | اللّٰهَ |
|---|---|---|
| اې نبى اووايه | كه يئ تاسو چې محبت كوئ | دالله سره |
| (دوئ ته)اووايه كه تاسو په رښتيا د الله سره مينه كوئ | | |

| فَاتَّبِعُوْنِيْ | يُحْبِبْكُمُ | اللّٰهُ | وَيَغْفِرْ لَكُمْ | ذُنُوْبَكُمْ ؕ |
|---|---|---|---|---|
| نوتابعدارى اوكړئ زما | محبت به اوكړى تاسو سره | الله | او معاف به كړى تاسو ته | ګناهونه ستاسو |
| نوزما تابعدار شئ | الله پاک به تاسو سره مينه اوكړى | او ستاسو ګناهونه به معاف كړى | | |

| وَاللّٰهُ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۝ | قُلْ | اَطِيْعُوا اللّٰهَ | وَالرَّسُوْلَ ۚ | فَاِنْ تَوَلَّوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او الله | معاف كونكې | اورحم كونكې دې | اووايه | چې اطاعت كوئ دالله | او درسول | نو كه هغوئ مخ واړوى |
| اوالله ښښونكې مهربان دې | (دوئ ته)اووايه چې دالله اودرسول حكم منئ | نو كه دوئ ترينه په شنګ شو | | | | |

| فَاِنَّ اللّٰهَ | لَا يُحِبُّ | الْكٰفِرِيْنَ ۝ |
|---|---|---|
| نو بيشكه الله | نه خوښوى | انكاريان دتابعدارئ دالله نه |
| نو الله پاک نافرمان خلق هيڅكه نه خوښوى | | |

قوله تعالى:- قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ

**كه الله ﷻ سره محبت كوئ نو د رسول ﷺ تابعدارى اوكوئ:-** دې آيت فيصله اوكړه چې كوم سړې د الله ﷻ د محبت دعوى كوى او د هغه عقائد او افعال د فرمان نبوى ﷺ مطابق نه وى،او دې په طريقه محمدى ﷺ باندې نه وى نو دې په دې خپله دعوى كښې دروغژن دې.صحيح حديث كښې دى چې رسول الله ﷺ فرمائى چې كوم يو سړې داسې عمل اوكړى چې د هغې مونږ حكم نه وى كړې نو هغه مردود دې.(۲) ددې وجې دلته هم ارشاد دې كه تاسو الله تعالى سره د محبت ساتلو دعوه كوئ او په دې دعو كښې رښتونى يئ نوزما په سنتو عمل اوكړئ،بيابه الله ﷻ تاسو ته ستاسو د غوښتلو نه زيات دركړى.يعنى هغه به پخپله ستاسو سره محبت كوونكې جوړ شى.لكه چې بعضو حكيمانو علماء ونيلى دى چې ستا مينه كول څه څيز نه دې،خوند خو په هغه وخت كښې دې چې الله ﷻ تا سره محبت اوكړى.غرض د الله

(۱) الطبرى : ۶/۲۰۲-

(۲) صحيح بخارى كتاب الصلح باب اذا اصطلحوا على صلح جور فالصلح مردود: ۲۶۹۷، صحيح مسلم: ۱۷۱۸)-

ﷺ د محبت نښه داده چې په هر کار کښې اتباع سنت وي.ابن ابی حاتم کښې دي چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل دین صرف د الله ﷻ دپاره محبت او هم د هغه دپاره د دښمنۍ نوم دې.بیا رسول الله ﷺ ددې آیت مبارك تلاوت اوفرمائیلو.([1])لیکن دا حدیث د سند لحاظ سره منکر دې.

**قوله تعالی:-وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ط**

بیا فرمائي چې په حدیث باندې د تلو په وجه به الله ﷻ ستاسو ټول ګناهونه معاف کړي.

**قوله تعالی:-قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ ۚ**

بیا هر خاص و عام ته حکم کوي چې ټول د الله او د رسول ﷺ مني.

**قوله تعالی:-فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ**

چې څوك د الله ﷻ او د رسول ﷺ د اطاعت نه مخ واړي یعنی دالله ﷻ اورسول ﷺ د اطاعت نه روستو شي نو هغه کافر دې او الله ﷻ هغوئ سره محبت نه ساتي.

**د سنتو مخالف کافر دې:-** ددې نه ښۀ واضح شو چې د رسول الله ﷺ د طریقې مخالفت کفر دې.داسې خلق د الله ﷻ دوستان نشي کیدې.اګر چې د دوی دعوی وي لیکن کله پورې چې د الله ﷻ او د رسول ﷺ د سنتوتابعداری اونکړي نو هغه به دې خپله دعوی کښې دروغژن دې خکه رسول الله ﷺ خو د جن او انس دپاره نبی دې.محمد ﷺ خوهغه ذات دې که نن انبیاء علیهم السلام او رسولان وي او اوالعزم پیغمبران هم ژوندی وې نو محمد ﷺ باندې به ئې خامخا ایمان راوړو.ددې بیان به ښه وضاحت سره او تفیصیل سره د آیت﴿ واذ اخذالله میثاق النبین ﴾ په تفسیر کښې انشاء الله راشي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | إِنَّ اللَّهَ | اصْطَفَىٰ | آدَمَ |
| | بیشکه الله | غوره کړی وو | آدم علیه السلام |
| | | الله تعالی غوره کړی دې آدم ﷺ...... | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَنُوحًا | وَآلَ إِبْرَاهِيمَ | وَآلَ عِمْرَانَ | عَلَى الْعَالَمِينَ ۝ | ذُرِّيَّةً بَعْضُهَا | | |
| او نوح علیه السلام | او اولاددابراهیم علیه السلام | او اولاد دعمران | په ټولو خلقو باندې | اواولاد وودا ټول څني | | |
| نوح ﷺ اودال دابراهیم ﷺ اوال دعمران په نور ټول مخلوق باندې دایوې سلسلې خلق دی | | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| مِن بَعْضٍ ط | وَاللَّهُ سَمِيعٌ | عَلِيمٌ ۝ |
| دخینونه | اوالله هرڅه اوریدونکې | او په هرڅه پوهه دې |
| اودیوبل دکورنۍ نه دی | الله پاك هرڅۀ اوري اوپه هرڅۀ پوهه دې | |

**قوله تعالی:-إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰ آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِينَ**

**دڅو لویو لویو نبیانو ﷺ ذکر:-** یعنی الله ﷻ دې لویو لویو حضراتو ته په ټول جهان بزرګی ورکړه.حضرت آدم ﷺ ئې پخپل لاس پیداکړو.هغه کښې ئې خپل روح واچولو.هغه ته ئې د هر څیز نومونه اوخودل.جنت ته ئې استوګن کړو او بیا دخپل حکمت د اظهار دپاره ئې زمکې ته راولیږلو.هر کله چې په زمکه باندې بت پرستی قائمه شوه نو حضرت نوح ﷺ رومبې رسول راولیږلې شو بیا چې دهغه قوم سرکشی اوکړه.او د پیغمبر په هدایت ئې عمل او نکړو،حضرت نوح ﷺ هغوئ شپه ورځ په پټه او ښکاره الله ﷻ طرفته راوبلل خو هغوی د دوی خبرې ته غوږ نه ایخودو سوا د څو خلقو نه دا ټول باقی خلق ئې د اوبو په عذاب یعنی طوفان نوح سره تباه کړل.د حضرت ابراهیم ﷺ خاندان ته الله تعالی لوئی اوچت والې ورکړو او هم دې خاندان کښې سیدالبشر خاتم الانبیاء حضرت محمد ﷺ هم دې.د عمران خاندان هم الله ﷻ منتخب

[1]) الضعفاء للعقیلی : ۱۰۲٤، حاکم: ۲۹۱/۲)-

کړو عمران د حضرت مریم د پلار نوم دې او دا د حضرت عیسی ﷺ مور بی بی ده د دوی نسب نامه د محمد بن اسحاق په قول عمران بن هاشم بن میشا بن خرقیان بن ابراهیم بن غرایا بن ناوش بن اجرا بن بهوا بن نازم بن مقاسط بن ایشا بن ایاذ بن رخیعم بن سلیمان بن داود ،نو حضرت عیسی ﷺ هم د حضرت ابراهیم ﷺ د نسل نه دې ددې مفصل بیان به انشاء الله د سورة انعام تفسیرکښې راشي

إِذْ ‏ قَالَتِ ‏ امْرَأَتُ عِمْرَٰنَ

|کله چې| اووئیل | ښځې د عمران |

| (هغه آوریدل) څه وخت چې د عمران ښځې اووئیل

رَبِّ ‏ إِنِّي ‏ نَذَرْتُ لَكَ ‏ مَا ‏ فِي بَطْنِي

چې اې ربه زما | بیشکه ما | نذر کړې دې ستادپاره|هغه بچې اچې په ګیډه زما کښې دې

انې زما ربه ! زه (دهغې ماشوم) ستاپه نوم منخته کوم چې زما په خیټه کښې دې

مُحَرَّرًا ‏ فَتَقَبَّلْ مِنِّي ‏ إِنَّكَ ‏ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ‏ فَلَمَّا

تاته وقف دهرڅه نه آزاد|نوقبول کړه|دا نذر زمانه| بیشکه هم ته | اوریدونکې |اوپوهه نې | نوهرکله چې

هغه به ستادپاره آزاد وی | نوزمامنخته قبوله کړه| ته هرڅهٔ آورې او (خما په نیت) ښه پوهه یې|اوهرکله چې

وَضَعَتْهَا ‏ قَالَتْ ‏ رَبِّ إِنِّي ‏ وَضَعْتُهَا ‏ أُنثَىٰ ‏ وَاللَّهُ أَعْلَمُ

اوزیږوله هغې جینئ| وې وئیل| اې ربه زمابیشکه|بیشکه ما | اوزیږوله دا اجینئ | اوالله ته ښه معلوم وو

دهغې جینئ اوزیږوله | نو وې وئیل چې انې زما پروردګاره دا خومې لور اوشوه|| والله ته ښه معلومه ده

بِمَا ‏ وَضَعَتْ ‏ وَلَيْسَ ‏ الذَّكَرُ كَالْأُنثَىٰ ‏ وَإِنِّي ‏ سَمَّيْتُهَا ‏ مَرْيَمَ

هغه چې زیږولې وو | هغې | او نه وی انارینه پشان دزنانه|اوبیشکه ما| نوم کیښودو دهغې| مریم

چې هغې څه زیږولې وو| (هلک که جینئ) اونارینه دزنانه پشان نه وی|اوماپه دې باندې مریم نوم کیخودو

وَإِنِّي ‏ أُعِيذُهَا ‏ بِكَ ‏ وَذُرِّيَّتَهَا ‏ مِنَ الشَّيْطَانِ ‏ الرَّجِيمِ

او بیشکه زه| پناه غوارم د دې اپه تا سره |او اولاد ددې | د شیطان | رټلې شوی نه |

... ..اوزه داجینئ اوددې اولاد د لعنتي شیطان نه ستا په پناه کښې درکوم |

قوله تعالى:- إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرَٰنَ رَبِّ

**منخته صرف دالله ﷻ د نوم ده** - دعمران د بی بی نوم حنه بنت فاقوذ وو او دا د مریم علیها السلام مور وه.محمد بن اسحاق رحمه الله فرمائی چې د دې اولاد نه کیدو.یو ورځ نې یو مرغئ اوکتله چې هغې خپلو بچو ته د الوتلو چل خودلو.نو ددې زړه کښې جوش او ولوله پیدا شوه او هم په هغه وخت نې دالله ﷻ نه سوال اوکړو او خلوص سره نې د الله ﷻ نه غوښتنه اوکړه.الله ﷻ هم ددې دعاقبوله کړه او هم په دې شپه ددې حمل شو.

قوله تعالى:- إِنِّي نَذَرْتُ لَكَ مَا فِي بَطْنِي مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّي

هرکله چې ورته د حمل يقين اوشو نو دې نذر اومنلو چې الله ﷻ ماته کوم اولاد راکړی نو هغه به د بيت المقدس د خدمت دپاره آزادوم.بيا نې دالله ﷻ نه دعا اوکړه انې الله تعالی ته زما داخلاص دا نذر قبول کړې او ته زما دعا قبوله کړې.او تاته زما نيت هم ښه معلوم دې.

قوله تعالى:- فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَا أُنثَىٰ

اوس دې ته خو دانه وو معلوم چې هلك به کيږی اوکه جينۍ:هرکله چې پيدانش اوشو او وې کتل نو هغه جينۍ وه.اوجينۍ ددې قابله نه ده چې هغه دبيت المقدس خدمت اوکړی.ددې دپاره خو هلك پکاردې.نود عاجزۍ په طور نې خپله مجبوری الله ﷻ ته پيش کړه چې انې الله ﷻ ماخو دا حمل ستا په نوم وقف کړې وو.ليکن زما خو جينۍ پيدا شوه.

قوله تعالى:- وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ

قوله تعالى:- ﴿وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ﴾(په وضعت کښې د تا په ضمې سره) هم لوستلې شويدې.يعنی دا قول هم د حنه وو چې الله ﷻ ته ښه پته ده چې زما جينۍ پيداشوه او د تا جزم سره هم راغلې ده.يعنی د الله ﷻ دا فرمان دې چې الله ﷻ ته ښه معلوم دی څه اولاد شوې دې

قوله تعالى:- وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْأُنثَىٰ

او فرمانی چې ښځه د سړی برابر نه ده،

قوله تعالى:- وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ زۀ ددې نوم مريم ايږدم.

**دبچې په پيدائش نوم ايخودل او عقيقه کول:-** ددې نه ثابتيږی چې په کومه ورځ بچې پيدا شی هم په هغه ورځ ددې نوم ايښودل جائز دی.ځکه چې زمونږ نه د مخکښې خلقو شريعت زمونږ شريعت دې.او دا دلته بيان شو او ترديد اونه کړې شو بلکه دا ثابت اومقرر کړې شو.

**د پيدائش سره نوم ايخودلو په حقله د رسول الله ﷺ عمل:-** دا شان حديث شريف کښې هم دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې نن شپه زما هلك پيدا شو اومادهغه نوم دابراهيم ﷺ په نوم کيخودلو. اوګورۍ مسلم وبخاری.([1])

دانس بن مالك ﷺ رور چې کله پيدا شو نو هغه نې راوستو او محمد ﷺ خدمت کښې نې حاضر کړواو رسول الله ﷺ هغه ته په خپل لاس ګوټې ورکړه او د هغه نوم نې عبدالله کيخودلو.دا حديث هم بخاری اومسلم کښې موجود دې.([2])يو بل حديث کښې دی چې يو سړې راغلو او رسول الله ﷺ ته نې اووئيل چې يارسول الله زما هلك پيداشوې دې دهغه څه نوم کيږدم؟.رسول الله ﷺاوفرمائيل چې عبدالرحمان (بخاری) ([3]).يو بل حديث کښې دی چې د ابو اسيد بچې پيدا شو او ده دا د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر کړو چې رسول الله ﷺ په خپلو مبارکو لاسونو ده ته ګوټې ورکړه.رسول الله ﷺ بل طرفته متوجې شو او د بچې ورته خيال رانغلو.ابواسيد ماشوم کورته واپس اوليږلو.هرکله چې رسول الله ﷺ فارغ شونو بچې طرفته نې نظر اوکړو خو هغه نه وو.نو تپوس نې اوکړو او وې فرمائيل چې دهغه نوم منذر(يعنی ويرولو والا)کيږده.([4]) مسنداحمد او سنن کښې يو حديث کښې مروی دی چې امام ترمذی ﷫ صحيح وانی چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې هر بچې په خپله عقيقه باندې ګانړه دې،يعنی په اوومه ورځ دې عقيقه اوکړی څاروې دې ذبح کړی او دده نوم دې کيږدی اودبچې سردې اوخروی ([5]).يو

---

[1]) صحيح مسلم كتاب لفضائل باب رحمة الصبيان والعيال : ٢٣١٥، صحيح بخارى : ١٣٠٣)-

[2]) صحيح بخارى كتاب العقيقة تسمية المولود غدا يولد:.... ٥٤٧٠، صحيح مسلم: ٥٦١٢)-

[3]) صحيح بخارى كتاب الادب باب قول النبى صلى الله عليه وسلم سموابا سمى: ٦١٧٩، صحيح مسلم: ٢١٤٤)-

[4]) صحيح بخارى كتاب الادب باب تحويل الاسم الى اسم احسن منه: ٦١٩١، صحيح مسلم: ٢١٤٩)-

[5]) احمد:١٧/٥، ابوداود:كتاب الضحايا فى العقيقة: ٢٨٣٧، ٢٨٣٨،وهو صحيح،ترمذى:١٥٢٢، نسائى: ٤٢٢٥، ابن ماجة: ٣١٢٥)

روايت کښې دی چې وينه دې توې کړی (۱)اودازيات ثبوت والا اوزيات حفظ والاروايت دې.والله اعلم
ليکن د زبير بن بکار روايت کښې دی چې رسول الله ﷺ د خپل خوئې ابراهيم عقيقه اوکړه او د هغه نوم ني ابراهيم کيخودلو.دا حديث سند لحاظ سره ثابت نه دې.او صحيح حديث ددې خلاف موجود دې.ليکن تطبيق هم کيديشي چې ددې نوم شهرت په هغه ورځ شوې وی.والله اعلم.

**قوله تعالى:- وَإِنِّيٓ أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَٰنِ الرَّجِيمِ**

دمريم عليهاالسلام مور بی بی بيا خپل بچې او ددې کيدو والا اولاد دشيطان دشرنه دالله ﷻ پناه کښې ورکوی.الله ﷻ د موربی بی دا دعا قبوله کړه.

**شيطان د پيدائش په وخت کښې ماشوم سکونډی:-** نو مسندعبدالرزاق کښې دی چې رسول الله ﷺ فرمانی چې هر بچې ته شيطان د پيدائش په وخت کښې دګوتې يو اشاره ورکوی،هم هغه وخت کښې هغه په ژړا شی.ليکن مريم عليها السلام اوعيسی ﷺ ددې نه بچ شو،دا حديث ابوهريره ؓ اوفرمانيلو او وې فرمانيل که تاسو غواړئ نو دا آيت وائئ چې﴿ وَإِنِّيٓ أُعِيذُهَا بِكَ﴾دا حديث بخاری او مسلم کښې هم موجود دې.دا حديث نورو هم ډيرو کتابونوکښې مختلفو الفاظو سره مروی دې.(۲) په بعضو رواياتو کښې دی چې يو يا د دوه سکونډارې لګوی.(۳)يو حديث کښې صرف د عيسی ﷺ ذکر هم دې.شيطان په دوی هم سکونډئ لګول غوښتل ليکن وی نه لګولې شوه.(۴)

| وَّكَفَّلَهَا | نَبَاتًا حَسَنًا | وَّأَنْۢبَتَهَا | حَسَنٍ | بِقَبُولٍ | رَبُّهَا | فَتَقَبَّلَهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او سرپرستي اوکړه دهغې | په لويولوښو سره | اوولويه ني کړه هغه | ښو سره | په قبلولو | رب دهغې | نو قبوله کړه هغه |
| نو الله پاک هغه جينۍ په ښه شان سره قبوله کړه او ډيره نيکه ني لويه کړه ........ او دهغې کفالت | | | | | | |
| عِنْدَهَا | وَجَدَ | الْمِحْرَابَ | زَكَرِيَّا | دَخَلَ عَلَيْهَا | كُلَّمَا | زَكَرِيَّا |
| هغې سره | نو موندو به ني | محراب ته | زکريا | داخل شو په هغې | هر کله چې به | زکريا |
| زکريا ﷺ اوکړو هر کله چې به زکريا دهغې کوټې ته داخل شو نو هغه خانې کښې به ني دخوراک څه څيزونه اوموندل | | | | | | |
| مِنْ عِنْدِ اللَّهِ | هُوَ | قَالَتْ | هَٰذَا | يَٰمَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ | قَالَ | رِزْقًا |
| د طرفه دالله نه | دا | او به ونيل هغې | دا | اې مريم دکوم خانې نه دې تاله | او به ونيل هغه | خوراك |
| دهغې نه به ني تپوس اوکړو چې اې مريم دا درته دکوم خانې راغلي دي هغې به اوونيل چې دا دالله د طرفه راغلي دي | | | | | | |
| | | | بِغَيْرِ حِسَابٍ | مَنْ يَشَاءُ | يَرْزُقُ | إِنَّ اللَّهَ |
| | | دغلته | بې حسابه | هغه چاته چې اوغواړي | روزي ورکوي | بيشکه الله |
| بيشکه الله پاک چې چاته اوغواړي نو بې حسابه رزق ورکوي | | | | | | |

**قوله تعالى:- فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ وَأَنۢبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا**

---

(۱) ابوداود وسنده ضعيف: قتاده مدلس راوی دې اوتصريح بالسماع ثابت نه ده دا دروايت آخر کښې دی خو امام ابوداود (يدمی) لره همام رحمه الله مغالطه ګرزولې ده څکه چه سلام بن ابی مطيع عن قتاده نه (ويسمی) بيانوی اوداشان اياس بن دغفل او اشعث حسن نه (ويسمی) بيان کړی دی.السنن الکبری ۴۵۴۲. دې کښې ويسمی ذکر کړې شوې دې نو علامه ابن کثير رحمه الله دا (يدمی) لره اثبت او احفظ ګرزول محل نظر دی.

(۲) عبدالرزاق في التفسير: ۳۹۱، صحيح بخاری کتاب التفسير: سورة ال عمران باب ( وانی اعيذها بک.....) : ۴۵۴۷، صحيح مسلم: ۲۳٦۵)-

(۳) الطبری: ٦۸۸۷، ددې سند کښې الحمانی ضعيف راوی دې (الميزان : ۵۴۲/۲)-

(۴) صحيح بخاری کتاب بدء الخلق باب صفة ابليس وجنوده: ۳۲۸٦)-

**د مریم علیها السلام پرورش او دا چې ترور د مور په ځائې ده:-** الله ﷻ خبر ورکوي چې د حنه نذر الله ﷻ قبول کړو. او د هغې نشوونما ئې ښه طریقې سره اوکړه. ظاهري خوبې ئې ورته هم ورکړه او باطني خوبې ئې هم. اوخپلو نیکو بندګانو کښې ئې دهغې پرورش اوکړو چې د خیر علم او دین زده کړي.

**قوله تعالی:- وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا**

زکریا ﷺ ئې د هغې کفیل جوړ کړو.

**زکریا ﷺ ته د سپارلو وجه:-** ابن اسحاق فرمائي چې دا د دې وجې چې مریم یتیمه شوې وه. لیکن نور بزرګان فرمائي چې د قحط په وجه ددې کفالت زکریا ﷺ ته حواله شوې وو. او کیدیشي چې دواړه وجې وي. والله اعلم.

**د زکریا ﷺ او د مریم علیها السلام رشته:-** د ابن اسحاق وغیره روایت نه معلومیږي چې زکریا ﷺ ددې د ترورخاوند وو. اوبعضې وائي چې اوخې ئې وو. لکه چې د معراج والا صحیح حدیث کښې دی چې رسول الله ﷺ یحیی ﷺ او عیسی ﷺ سره ملاقات اوکړو او هغوئ دواړه خپلوکښې د ترور خامن وو.(۱) د ابن اسحاق په قول دا حدیث صحیح دې. ځکه چې دعربو په اصطلاح کښې د ترور خوئې ته هم رور ونیلې شي. نو ثابت شو چې مریم د خپلې ترور پرورش کښې وه. صحیح حدیث کښې دي چې رسول الله ﷺ د حمزه ﷺ لور عمره د هغې ترور د جعفر بن ابی طالب ښځې ته سپارلې وه. او دا ئې فرمائیلي وو چې ترور د مور په ځائې وي.(۲)

**قوله تعالی:- كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِندَهَا رِزْقًا**

**دحضرت مریم او نورو اولیاء کرامو کرامات:-** اوس الله ﷻ د مریم بزرګي او د هغې کرامات بیانوي چې زکریا ﷺ کله هم دهغې حجرې ته ورتلو نو غیر موسمي میوې به ئې هغې سره لیدلې. لکه په یخنئ کښې د ګرمئ میوې او په ګرمئ کښې د یخنئ میوې. مجاهد، عکرمه، سعید بن جبیر، ابی الشعثاء، ابراهیم نخعي، ضحاك، قتاده، ربیع بن انس، عطیه عوفي اوسدي ﷺ د دې آیت مبارك په تفسیر کښې هم دا فرمائي (۳). مجاهد ﷺ نه دا هم مروي دی دلته د رزق نه مراد علم او هغه صحیفې دي چې په هغې کښې به علمي خبرې وې. لیکن اول قول زیات صحیح دې. په دې آیت کښې د اولیاء الله د کرامتو دلیل دې. او د دې ثبوت کښې ډیر احادیث هم راغلي دي.

**قوله تعالی:- قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا**

زکریا ﷺ یو ورځ ترې تپوس اوکړو چې تالره دا روزي دکوم ځایه رازي.

**قوله تعالی:- قَالَتْ هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ**

مریم جواب ورکړو چې د الله تعالی د طرفنه،

**قوله تعالی:- إِنَّ اللَّهَ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ**

هغه رازق ذات چې چاته اوغواړي نو بې حسابه رزق ورکوي.

**د رسول الله ﷺ معجزه او د فاطمې ﷺ د بني اسرائیلو د ښځو سرداره ګرځیدل.-** مسند حافظ ابویعلی کښې حدیث دې چې رسول الله ﷺ باندې ډیرې ورځې بغیر د خوراك نه تیرې شوې. د اولږې نه رسول الله ﷺ ته تکلیف شروع شو. د خپلو ټولو بیبیانو کور ته راغلو خو چرته هم ورته څه ملاؤ نشو. فاطمه ﷺ کره راغلو او تپوس ئې اوکړو چې بچې تا کره څه شته دې چې زۀ ئې اوخورم؟ ځکه ډیر اوږې شوې یم. هلته نه ورته هم دا جواب ملاویږي چې یارسول الله ﷺ دلته هم څه نشته دې؟ رسول الله ﷺ دهغه ځائې نه راوتلو نو د فاطمه ﷺ نوکرې دوه روټۍ او څه لږه غوښه فاطمې ﷺ ته راولیږله. فاطمې ﷺ

---

۱) صحیح بخاری کتاب مناقب الانصار باب المعراج: ۳۸۸۷)-
۲) صحیح بخاری کتاب المغازی باب عمرة القضاء : ۴۲۵۱)-
۳) ابن ابی حاتم : ۲۲۷/۲)-

دا په یو لګن کښې واچوله او دا نې کیخوده او وې فرمائیل چې زما خاوند او بچې هم اوږی دی.مونږ ټول به فاقه تیره کړو او نن به دا د الله ﷻ رسول ﷺ ته ورکوم.بیا حسن ؓ او حسین ؓ نې د رسول الله ﷺ خدمت کښې اولیږل چې رسول الله ﷺ راوبلی.رسول الله ﷺ لا په لار کښې وو چې راواپس شو.فاطمه ؓ ورته اوفرمائیل چې د الله ﷻ د طرفنه څه راغلی دی او تاسو دپاره مې پټ کړی دی.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې راوړه لورې څه دی؟فاطمه ؓ چې اوکتل نو پورا لګن د ترکارنی نه ډك دې،فاطمه ؓ حیرانه شوه خو زر پوهه شوه چې الله ﷻ په دې کښې برکت اچولې دې.د الله ﷻ شکر نې ادا کړو او په نبی ﷺ باندې نې درود اولیږلو.او رسول الله ﷺ ته نې خوراك کیخودو.رسول الله ﷺ هم هغه خوراك اوکړو او د الله ﷻ شکر نې ادا کړو.بیا رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چې بچې د چرته نه راغلی وو؟نو فاطمه ؓ جواب ورکړو چې د الله ﷻ دطرفنه،بیشکه الله ﷻ چې اوغواړی نو بې حسابه رزق ورکوی.رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې د الله ﷻ شکردې،انې لورې الله ﷻ تا لره د بنی اسرائیلو د ټولو ښځو سرداره جوړه کړې ده.هغوئ ته چې به کله اووئیلې شو او هغوئ ته به څه څیز ورکړې شو او هغوئ نه به تپوس اوشو نو هغوئ به هم دا جواب ورکولو چې د الله ﷻ طرفنه دې.الله ﷻ چې چاته اوغواړی نو بې حسابه رزق ورکوی.بیا رسول الله ﷺ علی ؓ راوبللو او رسول الله ﷺ او علی ؓ او فاطمه ؓ او حسین ؓ او حسن ؓ او د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات او اهل بیت ښه په مړه خیټه خوراک اوکړو،بیا هم دومره باقی پاتې شوه چې څومره وه.او چاپیرچل کښې ګاونډیانو ته اولیږلې شوه.دا وو خیر کثیر او برکت د الله ﷻ د طرفنه.[1]

هُنَالِكَ دَعَا
| دغلته | دعا اوغوښتله
| نو په دغه وخت کښې

زَكَرِيَّا رَبَّهٗ ۚ قَالَ رَبِّ هَبْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ۚ
زکریا | درب خپل نه | وې وئیل اې ربه | راکړه ماته | دخپل قدرت نه | اولاد | پاك (نیك)
زکریا ؑ د خپل رب نه دعا اوکړه | وې وئیل چې انې زما ربه ماته دخپل در نه پاک اولاد راکړه

اِنَّكَ سَمِيْعُ الدُّعَآءِ ۝ فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ
بیشکه ته | اوریدونکې ددعا نې | نو آواز اوکړو ده ته | فریشتو | او هغه | ولاړ وو |
(ته دهرچا) دعاګانې آورې | ............ددې په جواب کښې ورته فرښتواووئیل اوهغه ولاړ وو

يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ ۙ اَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى مُصَدِّقًا
چې مونځ نې کوو | په اعبادتخانه کښې ابیشکه الله| زیرې درکوی تاته| دیحیی | چې تصدیق کونکې به وی
په کوټه کښې نې مونځ کولو| چې الله تاته دیحیی (دپیداکیدو) زیرې درکوی| چې هغه به د

بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَسَيِّدًا وَّحَصُوْرًا وَّنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝
| دیو فرمان| دطرفه دالله نه |او سردار به وی|او بزرګ به وی| او نبی به وی | دصالحانو نه |
دالله دیو کلمې (عیسی) تصدیق کوی|اوسرداربه وی|اوپه خپل نفس به نې قابو وی |پیغمبر به وی|اودنیکانونه به وی

---

[1] المطالب العالیة لمسندة : ۳۸۵۸،اتحاف الخیرة: ۹۶۷۰)-

| بَلَغَنِيَ | وَّقَدْ | غُلٰمٌ | لِيْ | اَنّٰى يَكُوْنُ | رَبِّ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رارسيدلې دې ماته | او په تحقيق سره | هلك | زما | دكوم خائې نه به اوشي | اې ربه زما | اووئيل زكريا |

(زكريا عليه السلام) په تعجب سره اووئيل اچې زما په څنګه خوئي اوشي؟.................. زۀ خو بوډا شوې يم

| يَشَآءُ۝ | مَا | يَفْعَلُ | اللّٰهُ | كَذٰلِكَ | قَالَ | عَاقِرٌ ط | وَامْرَاَتِيْ | الْكِبَرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه اچې اوغواړي | | كوي | الله | دارنګې | اووئيل فرشتې | شنډه ده | او ښځه زما | بوډا والى |

او ښځه مې هم شنډه ده (فرشتې ورته) اووئيل چې هم داشان به كيږي | الله پاك چې څه غواړي نو هغه كيږي

| اَلَّا تُكَلِّمَ | اٰيَتُكَ | قَالَ | اٰيَةً ط | لِّيْ | اجْعَلْ | رَبِّ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې نۀ به شې كولې خبرې تۀ | ستا دا ده | اووئيل فرشتې انښه | يوه نښه | ما لره | مقرر كړه | اې ربه | اووئيل زكريا |

زكريا عليه السلام اووئيل چې اني زما ربه ماته يوه نښه مقرر او ښايه | (فرښتې) اووئيل ستا د پاره دا ښه شوه چې

| بِالْعَشِيِّ | وَّسَبِّحْ | كَثِيْرًا | رَّبَّكَ | وَاذْكُرْ | اِلَّا رَمْزًا ط | ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ | النَّاسَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ماښام | او تسبيح وايه | ډير | رب خپل | اويا دوه | مګر په اشاره | درې ورځې | دخلقو سره |

درې ورځې داشارې نه بغير به چاسره خبرې نشې كولې | او الله ډير ياد وه او سحر ماښام د هغه تسبيح وايه

| وَالْاِبْكَارِ۝ |
|---|
| او سحر |

قوله تعالىٰ:- هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهٗ

**دحضرت زكريا عليه السلام دعا:** زكريا عليه السلام اوكتل چې الله تعالىٰ مريم عليها السلام ته بې موسمه ميوه وركوي. په ګرمئ كښې د يخنئ او په يخنئ كښې دګرمئ ميوې دې سره وى، نو دبوډا والى نه باوجود او د خپلې بى بى دشنډتوب نه باوجود زكريا عليه السلام هم د بې موسمه ميوې يعنى د اولاد طلب اوكړو او په ظاهره دا طلب يو ناممكن څيز وو، ددې وجې ډيره پټه ئې دا دعا اوغوښتله. لكه بل ځائې كښې دى چې ﴿نِدَآءً خَفِيًّا۝﴾

قوله تعالىٰ:- فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ يُّصَلِّيْ فِى الْمِحْرَابِ "اَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى

دوى خپل عبادت خانه كښې وو چې فرښتو ورته آواز اوكړو چې ستاسو هلك پيدا شوې دې او د هغه نوم يحيى كيږده. او ورسره ئې دا هم اوفرمائيل چې دا بشارت زمونږ دطرفنه نه دې بلكه د الله تعالىٰ د طرفنه دې.

قوله تعالىٰ:- مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ

**څه خبرې د يحيى عليه السلام په حقله:-** د يحيى نوم وجه داده چې د دوى حيات به ايمان سره وى. هغه به د الله تعالىٰ دكلمې يعنى دعيسى عليه السلام تصديق كوى. ربيع بن انس رحمه الله فرمائي چې د ټولو نه مخكښې دعيسى عليه السلام نبوت منلو والا يحيى عليه السلام دې. د قتاده رحمه الله قول دې چې يحيى عليه السلام بالكل د عيسى عليه السلام په طريقه باندې وو. ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې دا دواړه د ترور خامن وو. د يحيى عليه السلام مور به اكثر مريم سره ذكر كولو زما د خيټې هر څيز ستا د خيټې هر څيز ته سجده كوى. دا وو د يحيى عليه السلام تصديق دنيا ته د راتلو نه مخكښې، د ټولو نه مخكښې د عيسى عليه السلام دنبوت ګواهي يحيى عليه السلام وركړې وه. دوى د عيسى عليه السلام نه په عمر كښې زيات وو.

قوله‌تعالى:- وَسَيِّدًا: دسيد معنى حليم او برداشت كولو والا او په علم وعبادت كښې زيات، متقي پرهيزګار فقيه عالم په سيرت او دين كښې دټولو نه بهتر، چې هغه لره غصه او غضب مغلوبه كولې نشي، د شريف اوكريم په معنى دې.

قوله‌تعالى:- وَحَصُورًا.... دحصور معنى ده چې ښځو لره نه شي راتلې، چې د چا اولاد نه كيږي او نه په كښې د شهوت اوبه وي.

**د يحيى عليه السلام په حقله د رسول الله ﷺ څو احاديث:-** ددې يو معنى يومرفوع حديث كښې په ابن ابى حاتم كښې ده چې هركله رسول الله ﷺ دا لفظ ذكر كړو نو د زمكې نه ئې څه راوچت كړل او وې فرمائيل چې د هغه اندام ددې په شان وو.(١) عبدالله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه فرمائي چې په ټول مخلوق كښې به صرف يحيى عليه السلام الله تعالى سره بې ګناه ملاويږي. بيا رسول الله ﷺ دا الفاظ تلاوت اوفرمائيل او زمكې نه ئې څه راوچت كړل او وې فرمائيل چې حصور هغې ته وائي چې د هغې يو اندام ددې پشان وي. او يحيى بن سعيد قطان دخپلې مسواكې ګوتې سره اشاره اوكړه (٢) دا روايت چې مرفوع بيان شوې دې. ددې سند د هغه موقوف سند نه زيات صحيح دې او مرفوع حديث كښې دى چې رسول الله ﷺ يو كپړې طرفته اشاره اوكړه اووې فرمائيل چې داسې وو، او يو روايت كښې داهم دى چې رسول الله ﷺ دزمكې نه يومړاوې ډكې راوچت كړو اودهغې اړخ ته ئې اشاره اوكړه اودغه ئې اوفرمائيل.(٣)

قوله‌تعالى:- وَنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ دې نه پس زكريا عليه السلام ته بل بشارت وركولې شي چې ستا خونې به نبى وي. دا بشارت د ړومبنى بشارت نه هم زيات وو.

قوله‌تعالى:- قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّقَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ وَامْرَاَتِيْ عَاقِرٌ ط

هركله چې بشارت راغلو نو زكريا عليه السلام ته خيال راغلو چې په ظاهره اسباب خو ددې محال كيدل دى نو وې فرمائيل چې اې الله ﷻ زما به بچې څنګه پيدا كيږي. زۀ بوډا يم اوزما بى بى هم شنډه ده.

قوله‌تعالى:- قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ

فرښتې ورته په هغه وخت جواب وركړو چې دالله ﷻ امر دټولو نه لوئې دې. د هغه په كارخانه د قدرت كښې هيڅ څيز ناممكن نه دې. او نه هغه لوئې ذات ته څه كار ګران دې. او نه هغه څه كار نه عاجز دې. كله چې دهغه اراده اوشي نو هغه كار اوشي.

قوله‌تعالى:- قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْ اٰيَةً ط

اوس زكريا عليه السلام ددې علامت اوغوښتلو.

قوله‌تعالى:- قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا رَمْزًا ط

نو دالله ﷻ طرفنه ورته اشاره اوشوه چې دا نښه ده چې ته به درې ورځو پورې خلقو سره خبرې نشى كولې. اګر چې ته به تندرست او سالم ئې خو په ژبې به خلقو سره خبرې نشى كولې. صرف اشارو نه به كار اخلې. لكه بل ځائې كښې فرمائى چې ﴿ثَلٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا﴾ يعنى درې شپې د تندرستئ په حالت كښې.

قوله‌تعالى:- وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْاِبْكَارِ

بيا حكم وركړې شو چې تاته پكار دى چې ذكر او تكبير او تسبيح كښې زيات مشغول اوسې، سحر ماښام پدې كښې اخته يې. ددې دويمه حصه او پورا تفصيل سره بيان به دسورت مريم په شروع كښې

---

(١) ابن ابى حاتم ددې سند كښې سيد سليمان النشيطى په وجه ضعيف دې،

(٢) وسنده ضعيف)-

(٣) ابن ابى حاتم )-

راشي انشاء الله.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذْ قَالَتِ | الْمَلٰٓئِكَةُ | يٰمَرْيَمُ | اِنَّ اللّٰهَ | اصْطَفٰكِ | |
| او كله چې اوونيل | فرښتو | اې مريم | بيشكه الله | غوره كړې ته | |
| بيا (يو وخت راغلو) چې فرشتو اوونيل اې مريم ته الله پاک غوره کړې يې | | | | | |
| وَطَهَّرَكِ | وَاصْطَفٰكِ | عَلٰى نِسَآءِ | الْعٰلَمِيْنَ۝ | يٰمَرْيَمُ | اقْنُتِىْ |
| او پاكه نې اوساتلې ته | او غوره نې كړې ته | په ښځو | د ټولې دنيا باندې | اې مريم | فرمان منونكې وسه |
| او پاكه نې ساتلې يې \| او د ټول جهان په ښځو كښې نې ته (د خپل عبادت د پاره) غوره كړې نې \| اې مريم | | | | | |
| لِرَبِّكِ | وَاسْجُدِىْ | وَارْكَعِىْ | مَعَ الرّٰكِعِيْنَ۝ | ذٰلِكَ | مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ |
| د رب خپل | او سجده كوه | او ركوع كوه | د ركوع كونكو سره | دا | د خبرونو د غيبونه دی. |
| د خپل رب تابعداري كوه \| هغه ته سجده كوه \| او عاجزي كونكو سره عاجزي كوه \| (اې پيغمبره) دا د غيبو خبري دي | | | | | |
| نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ۭ | وَمَا كُنْتَ | لَدَيْهِمْ | اِذْ | يُلْقُوْنَ | اَقْلَامَهُمْ |
| چې مونږه نې د وحي په ذريعه ښايو تا ته | او نه وې ته | موجود هغوئ سره | كله چې | اغورزول هغوئ | قلمونه خپل |
| چې مونږ نې تا ته وحي كوؤ \| او ته هغه وخت حاضر نه وې چې (د هيكل هغه خادمانو) خپل خپل قلمونه په دې غرض اوغورزول | | | | | |
| اَيُّهُمْ | يَكْفُلُ | مَرْيَمَ ۠ | وَمَا كُنْتَ | لَدَيْهِمْ | اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ۝ |
| چې كوم يو د هغوئ | به سرپرستي كوي | د مريم | او نه وې ته | موجود د هغوئ سره | كله چې هغوئ جګړه كوله |
| چې څوک به د مريم سرپرستي كوي \| او نه ورسره په هغه وخت كښې حاضر وې چې هغوئ خپل مينځ كښې جګړه كوله | | | | | |

**قوله تعالى:- وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰكِ وَطَهَّرَكِ......**

**د حضرت مريم رضي الله عنها خديجه رضي الله عنها عائشه رضي الله عنها او د اسيه رضي الله عنها د فرعون د ښځې فضيلت** - دلته بيان كيږي چې د الله ﷻ حكم سره مريم ته فرښتو خبر وركړو چې ددې د زيات عبادت، ددنيا نه د بې رغبتۍ، ددې د شرافت او شيطاني وسوسو نه دلرې والي په وجه دخپل قرب خاص درجه وركړه. او د ټول جهان په ښځو نې دې ته فضيلت وركړو.

**جنتي ښځې:** - صحيح مسلم شريف وغيره كښې د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې، فرمائي چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې جنتي ښځې په اوښ باندې سورې ښځې دی. په دې كښې بهترې ښځې د قريشو دی چې په خپلو بچو ډيرشفقت كوی او دوی سره محبت كوی او دخپل خاوند دخېزونو پوراحفاظت كوونكې دی. مريم بنت عمران كله هم په اوښ نه وه سوره شوې.(¹)

**د دنيا په ښځو كښې د ټولو نه غوره ښځې:** - بخاري او مسلم كښې يو حديث دې چې په ښځو كښې د ټولونه بهتره ښځه مريم بنت عمران ده. اوپه ښځو كښې د ټولو نه بهتره ښځه خديجه بنت خويلد رضي الله عنها ده.(²) د ترمذي صحيح حديث كښې دی چې د ټولې دنيا ښځوكښې د ټولو نه بهترې ښځې مريم بنت عمران، خديجه بنت خويلد او فاطمه بنت محمد ﷺ او آسيه زوجه فرعون ده.(³) او په يو حديث كښې دی

---

¹) صحيح بخاری كتاب احاديث الانبياء باب قول تعالى : ( اذ قالت الملائكة يامريم......) : ۳۴۳۴، صحيح مسلم: ۲۵۲۷، آخری جمله (لم تركب مريم...... دابوهريره رضى الله عنه كلام دی)

²) صحيح بخاری كتاب احاديث انبياء باب قول ا لله تعالى ( قالت الملائكة يا مريم ...): ۳۴۳۳)-

³) ترمذی كتاب المناقب باب فضل خديجة رضى الله عنها : ۳۸۷۸، وهو صحيح )-

چې دا څلور واړه ښځې د ټولې دنيا په ښځو کښې افضل او بهتر دی.او حديث مبارك کښې دی چې په سړو کښې کامل سړی ډير دی.ليکن په ښځو کښې کمال والا ښځې صرف دريې دی.مريم بنت عمران،آسيه زوجه فرعون او خديجه بنت خويلد رضي الله عنهن.

**په نورو ښځو د عائشې رضي الله عنها فضيلت:-** او د عائشه فضيلت په ښځو باندې داسې دې لکه ثريد يعنی په غوښه کښې وره شوې روټۍ چې په ټولو خوراکونو بهتر ده.(١) داحديث سوا د ابو داود نه باقي ټولو کتابونوکښې دې.صحيح بخاری کښې دې حديث مبارك کښې د خديجه رضي الله عنها ذکر نشته،ما ددې حديث ټول سندونه او د هر سند الفاظ په خپل کتاب البداية والنهاية کښې دعيسی عليه السلام په ذکر کښې جمع کړې دی.﴿ ولله الحمدوالمنة﴾.

**قوله تعالى:-** يَٰمَرۡيَمُ ٱقۡنُتِي لِرَبِّكِ وَٱسۡجُدِي وَٱرۡكَعِي مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ

**د مريم عبادت او تابعداری:-** بيا فرښتې فرمانی چې انې مريمه په خشوع خضوع او سجده کښې اوسه،الله جل جلاله تاله د خپل دقدرت يو عظيم نښه جوړونکې دې،ددې وجې تاته پکار دی چې دخپل رب په رغبت کښې اوسې.

**د قنوت په معنی کښې بحث:-** د قنوت معنی اطاعت ده چې عاجزئ او زړه حاضرئ سره وی.لکه ارشاد دې چې ﴿بَل لَّهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۖ كُلّٞ لَّهُۥ قَٰنِتُونَ﴾يعنی دهغه ذات په ماتحتئ او مملکت کښې د زمکې او آسمان ټول څيزونه دی.ټول دهغه محکوم او تابع دی.

ابن ابی حاتم يو مرفوع حديث کښې دی چې قرآن پاك کښې چرته هم د قنوت لفظ راشی نو ددې نه مراد اطاعت دې.(٢)هم دا حديث ابن جرير کښې هم دې.ليکن په سند کښې ئې نکارت دې.مجاهد رحمه الله فرمانی مريم به په مونځ کښې دومره لونې قيام کولو چې دواړه ګيټئ به ئې اوپړسيدې.د قنوت نه مراد دلته مونځ کښې لونې لونې رکوعات دی.د حسن بصری رحمه الله قول دې چې ددې نه مراد د خپل رب عبادت کښې مشغوله اوسه او د رکوع او سجده کونکو نه شه.اوزاعی رحمه الله فرمانی چې مريم صديقه به خپله عبادت خانه کښې دومره په کثرت او خشوع اوخضوع سره مونځ کولو چې دواړه پښې به ئې زيړې شوې.﴿ رضی الله عنها وارضاها ﴾.(٣)

**قوله تعالى:-** ذَٰلِكَ مِنۡ أَنۢبَآءِ ٱلۡغَيۡبِ نُوحِيهِ إِلَيۡكَۚ

**خسنړې د زکريا عليه السلام په نوم راوتلو:-** دا اهم خبر بيانوی او الله جل جلاله فرمانی چې انې نبی!ددې خبرو علم تاته صرف زما د وحی په ذريعه اوشو ګنې تا ته څه خبر وو؟ته خو په هغه وخت کښې هغوئ سره موجود نه وې چې تاته ددې واقعاتو خبر دې؟ليکن د خپلې وحی په ذريعه مونږ تا ته دا ټول واقعات ښکاره کړل.دا داسې دی لکه چې تاسو په هغه وخت کښې موجود وئ.

**قوله تعالى:-** وَمَا كُنتَ لَدَيۡهِمۡ إِذۡ يُلۡقُونَ أَقۡلَٰمَهُمۡ .......

د مريم د پرورش د پاره هر يو وراندې وراندې کيدو اوهر يو غوښتل چې د ثواب موقع حاصله کړی.او دا اجر ماته ملاؤ شی.د دوی مور بی بی دا واخستله او دبيت المقدس مسجد سليمانی طرفته روانه شوه.د هغه خانې خادمان د هارون عليه السلام دنسل نه وو.دې اووئيل چې ما دا نذر د الله تعالی په نوم آزاد کړې دې.تاسو ته ئې سپارم.ماته پته ده چې دا جينئ ده او دا هم ماته پته ده چې د دې به حيض هم رازی او دا به په مسجد کښې وی او د حيض والا ښځې مسجد ته نشی راتلې خو اوس تاسو پوهه شئ

(١) صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى ( وضرب الله مثلا للذين امنوا.....) : ٣٤١١، صحيح مسلم: ٢٤٣١، نسائی: ٣٤٠٠، ابن ماجة: ٣٢٨٠)-

(٢) وسنده ضعيف )-

(٣) ددې سند کښې محمد بن يونس الکديمی متهم بالکذب دې (الميزان: ٧٤/٤)رقم ٨٣٥٣، نو دا روايت موضوع دې).

او ستاسو کار زۀ خو دا کورته نه بوځم ځکه چې دا ما د الله ﷻ په نوم نذر کړې ده.عمران ددې ځانې د مونځ امام وو.او د قربانو مهتمم وو.او دا د هغه لور وه.نو هر يو کس ددې غوښتنه کوله.بل طرفته زکريا ؊ اوونيل چې زۀ د دې رشته داريم او د دې د ترور خاوند يم.دا جينۍ ماته د پرورش دپاره ملاويدل پکار دی.خو نور خلق راضی نشو آخر قرعه اندازی اوشوه.اوبه قرعه اندازۍ دوی ټولو خپل هغه قلمونه واچول چې په کومو به ئې توراة ليکلو.نو قرعه اندازی د زکريا ؊ په نوم راووتله (۱)او هم دا دهغه سعادت شو.نورو مفصلو روايتونوکښې هم دا دی چې په نهر اردن کښې دا قلمونه واچولې شو.چې کوم قلمونه په اوبوکښې لاړل نو هغه نه دی.او چې د چا قلم اودريدو نو هغه به د مريم کفيل وی نو د ټولو قلمونه اوبو کښې لاړل.صرف د زکريا ؊ قلم اودريدو بلکه البته پاس راوختلو نو يو خو په خسنړی کښې د دوی نوم راوختلو او بل طرفته د دوی رشته داری وه،بيا زکريا ؊ پخپله د هغه ټولو سردار جوړ شو.صلوات الله وسلامه عليه.نو هم زکريا ؊ ته مريم اوسپارلې شوه.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِذْ قَالَتِ | الْمَلٰٓئِكَةُ | يٰمَرْيَمُ | اِنَّ اللّٰهَ | يُبَشِّرُكِ | بِكَلِمَةٍ | مِّنْهُ | اسْمُهُ |
| کله چې اوونيل | فرشتو | اې مريم | بيشکه الله | زيرې درکوی تاله | په يوفرمان | سره | د طرفه خيل نه | نوم دهغه به |
| څه وخت چې فرشتوورته اوونيل اچې انې مريم الله پاک تاته دخپلې کلمې زيرې درکوی دهغه نوم به | | | | | | | |
| الْمَسِيْحُ | عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ | وَجِيْهًا | فِي الدُّنْيَا | وَالْاٰخِرَةِ | وَمِنَ | | |
| مسيح | عيسى خوې دمريم وی | دعزت خاوند به وی | په دنيا | او په آخرت کښې | اووی به د | | |
| مسيح عيسى ابن مريم وی په دنيا اوآخرت دواړوکښې به د عزت خاوند وی | | | | | | | |
| الْمُقَرَّبِيْنَ | وَيُكَلِّمُ النَّاسَ | فِي الْمَهْدِ | وَكَهْلًا | وَّمِنَ الصّٰلِحِيْنَ | | | |
| نزديکانونه به وی | او خبرې به کوی دخلقو سره | په زانگو کښې | اوپه زوروالی کښې هم | اووی به دنيکانو نه | | | |
| اوالله ته به په نيزدې خلقو کښې شميروی اوخلقوسره به په ځانگو کښې اوبه زوروالی کښې خبر کوی اودنيکانونه به وی | | | | | | | |
| قَالَتْ | رَبِّ | اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ | وَلَدٌ | وَّلَمْ | يَمْسَسْنِيْ | بَشَرٌ | قَالَ |
| اوونيل هغې | اې ربه زما | څنګه به شی مالره | بچې | او حال دا چې | نه دې راوړې لاس ماته | هيڅ انسان | اوونيل فرښتې |
| مريم اوونيل چې انې زماپروردګاره زمابه څنګه خونې کيږی ماته چا نارينه لاس،قدرله هم راوړلی نه دی فرښتې اوونيل | | | | | | | |
| كَذٰلِكِ اللّٰهُ | يَخْلُقُ | مَا يَشَآءُ | اِذَا | قَضٰٓى | اَمْرًا | فَاِنَّمَا | يَقُوْلُ لَهُ |
| هم دارنګې الله | پيدا کوی | هغه چې اوغواړی | کله چې | فيصله اوکړی | ديوکار | نوبيشکه | وائی | هغه کارته |
| هم دغه شان به کيږی الله پاک چې څه اوغواړی هغه پيدا کوی اچې ديو کارفيصله اوکړی نوورته اووائی | | | | | | | |
| كُنْ | فَيَكُوْنُ | | | | | | |
| شه | نو هغه شی | | | | | | |
| چې موجد شه | | | | | | | |

قوله تعالىٰ:- اِذْقَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ

**د عيسى ؊ معجزانه پيدائش:-** فرښتې دا زيرې مريم ؓ ته آوروی چې د دې به يو هلك پيداکيږی او يو لونې شان والا به وی.اوصرف هغه ته به د الله ﷻ کلمه ونيلې کيږی.اوهم دا تفسير دې د الله ﷻ د

(۱) الطبری: ۲۵۱/۶)-

فرمان ﴿مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللهِ﴾لکه چې جمهورو ذکرکړو او ددې سلسله کښې بيان تير شويدې چې د هغه نوم به مسيح وی.عيسیٰ خوئې د مريم.هر مومن به ده لره په دې نوم پيژنی.د مسيح نوم وجه داده چې دې به په زمکه کښې ډيرزيات سيل کوی.د مور طرفته د منسوب کيدو وجه داده چې دده پلار نه وو.د الله ﷻ په نيز هغه دواړه په دې جهان کښې اوچت شان خاوندان وو.او د خاص مقربينو نه وو،په هغه به د الله ﷻ کتاب او شريعت نا زليږی.او په هغه به په دنيا کښې لوئې لوئې مهربانئ کيږی اويه آخرت کښې به هم.اود لويو لويو پيغمبرانو په شان د الله ﷻ حکم سره چې چا لره الله ﷻ اوغواړی نو شفاعت به کوی او هغه به قبليږی.﴿صلوات الله وسلامه عليهم اجمعين﴾.

قوله تعالى:- وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَّمِنَ الصّٰلِحِيْنَ

هغه به په خپله خانګو کښې اوپه کم عمرکښې خلقو سره خبرې کوی يعنی دالله وحده لاشريك دعبادت به خلقوته دعوت ورکوی او دا به دهغه معجزه وی.او په لوئې عمر کښې به هم کله چې الله ﷻ ده طرفته وحی اوليږی.او هغه به په خپل قول او فعل کښې صحيح علم لرلو والا او نيك عمل والا وی.يو حديث کښې دی چې په وړوکوالی کښې کلام صرف عيسیٰ ﷺ کړې دې او د جريج ملګری،يو بل حديث کښې د يو بل بچې نوم ذکرکړې دې.نو دا درې شو.(١)

قوله تعالى:- قَالَتْ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ وَلَدٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ

مريم چې کله دا زيرې واوريدو نو په خپلو مناجاتو کښې اخته شوه او وې فرمائيل چې انې الله ﷻ زما به څنګه بچې اوشی؟ما خونکاح هم نه ده کړې.اونه زما د نکاح کولو اراده شته دې.او نه داسې بدکاره ښځه يم.حاشالله.

قوله تعالى:- قَالَ كَذٰلِكِ اللهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ

دالله ﷻ طرفنه فرښتې جواب ورکړو چې د الله ﷻ امر ډير لوئې دې.هغه ذات لره هيڅ څيز نه شی عاجزه کولې.دا نکته خيال کښې ساتل پکار دی چې دزکريا ﷺ ددې سوال په جواب کښې هغه خائې کښې لفظ﴿يفعل﴾وو اودلته لفظ﴿يخلق﴾دې يعنی پيدا کوی.څکه چې باطلو ته څه موقع په لاس ورنشی او صفا لفظونوکښې مخلوق ته معلوم شی چې عيسیٰ ﷺ د الله ﷻ مخلوق دې.

قوله تعالى:- اِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ

او بيا نې د دې نور تاکيد اوفرمائيلو او وې فرمائيل چې هغه لوئې ذات کله هم يو کار کول اوغواړی نوصرف دومره فرمائی چې شه نو بس هغه اوشی.د هغه حاکم ذات د حکم نه پس ډهيل او وروستوالې نشته دې.لکه بل خائې کښې فرمائی چې﴿ وَمَآ اَمْرُنَآ اِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍۢ بِالْبَصَرِ﴾يعنی زمونږ صرف يو خل حکم سره بغير د تاخير نه زر د سترګو په رپ کښې هغه کار اوشی،مونږ ورته دوباره نه وايو.

| وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ﴿٤٨﴾ |
| --- |
| او زده به کړی هغه ته کتاب \| او حکمت \| اوتوراة \| او انجيل |
| نوهغه موجود شی\| اوهغه ته به الله کتاب او حکمت اود تورات علم ورکوی |
| وَرَسُوْلًا اِلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ اَنِّيْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ |
| او وی به رسول\| بنی اسراءيلو ته \|بيشکه زه \| راغلې يم تاسوته\| په نښې سره\| دطرفه |
| اودبنی اسرائيلودپاره به نې رسول مقرر کړی\| «چې ورته به وائی، ما دالله پاک دطرفه تاسو ته يوه لويه نښنه راوړې ده |

(١) ابن ابي حاتم : ٢٧٢/٢، صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب قوله تعالى (واذکر فی الکتاب مريم......) : ٣٤٣٦، صحيح مسلم: ٢٥٥٠)-

رَّبِّكُمْ ۙ اَنِّیْۤ اَخْلُقُ لَكُمْ مِّنَ الطِّیْنِ كَهَیْـَٔةِ الطَّیْرِ فَاَنْفُخُ

درب ستاسو نه| بیشکه زه| جوړوم | تاسو ته | دختې نه | پشان دشکل| دمارغه| او پوک کوم

چې زه ستاسو په مخکښې دختې نه دمرغۍ په شان یوشکل جوړوم|.......... بیا په کښې پوک وهم

فِیْهِ فَیَكُوْنُ طَیْرًۢا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَاُبْرِئُ الْاَكْمَهَ

په هغې کښې| نوشي به هغه| مارغه | په حکم دالله سره| اوروغوم زه | مورزاده ړوند|

نوهغه به د الله په حکم سره مرغۍ شي| ........... ....... .... او پیدائښې ړوند

وَالْاَبْرَصَ وَاُحْیِ الْمَوْتٰی بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا

او جذامي دبرګې مرض| او ژوندي کوم مړي| په حکم دالله | او خبر درکوم زه تاسو ته | دهغه څه

اوجذامي دواړو ته صحت ورکوم| اودالله په حکم مړي ژوندي کوم| اودا درته خودلې شم چې

تَاْكُلُوْنَ وَمَا تَدَّخِرُوْنَ ۙ فِیْ بُیُوْتِكُمْ ؕ اِنَّ فِیْ

چې تاسو ئې خورئ | اودهغه څه|چې تاسو ئې ذخيره کوئ| په کورونو خپلو کښې| بیشکه

......تاسوڅه خوړلې دي اوڅه مو په کورونو کښې ذخيره کړي دي ......... په دې کښې

ذٰلِكَ لَاٰیَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ ۟ۚ وَمُصَدِّقًا لِّمَا

په دې کښې|خامخا نښه ده| ستاسو دپاره | که يئ تاسو | مومنان | او تصدیق کونکې يم | دهغه کتاب

ستاسو دپاره (زما په رسالت باندې) لوئې دليل دې |که تاسو په دې يقين کوئ| ...... اوتصديق کوم

بَیْنَ یَدَیَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَلِاُحِلَّ لَكُمْ

چې زما په مخ کښې موجوددې| د توراة نه | اودپاره ددې چې زه حلال کړم| ستاسو دپاره|

دتورات چې زما په وخت کښې موجود دې | او(بله داچې) تاسو دپاره بعضې هغه څیزونه

بَعْضَ الَّذِیْ حُرِّمَ عَلَیْكُمْ وَجِئْتُكُمْ بِاٰیَةٍ

څینې هغه |چې حرام کړې شوي وو په تاسو باندې| او راوړې ده ما تاسو ته | يوه نښه |

چې په تاسو حرام شوي وو هغه حلالوم | ......... .... .... اوتاسو ته مې نښه راوړې ده

مِّنْ رَّبِّكُمْ ۫ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِیْعُوْنِ ۝ اِنَّ اللّٰهَ رَبِّیْ

دطرفه درب ستاسو نه | نو اویريږئ دالله نه| او تابعداری اوکړئ زما | بیشکه الله | رب زما دې |

چې هغه ستاسو د رب د طرفنه ده | او الله پاک نه ويريږئ |او زماتابعداری اوکړئ |الله زما هم رب دې

وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِیْمٌ ۝

او رب ستاسو دې | نو بندګي اوکړئ دهغه| دا | لاره ده | نيغه |

اوستاسو هم رب دې | نو(صرف) دهغه عبادت کوئ | اوهم دا نيغه لاره ده |

قوله تعالی:- وَیُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِیْلَ

**د عيسى ﷺ لوئې لوئې معجزې:** - فرښتې مريم ته وائي چې ستا دې خوښې ته به الله ﷻ ليکل اوښائي.او هغه ته به حکمت اوښائي.دلفظ حکمت تفسيرپه سورة بقره کښې تير شوې دې.اوهغه ته به توراة اوښائي چې کوم په موسى ﷺ باندې نازل شوې وو.او انجيل به ورته اوښائي چې په عيسى باندې نازل شو.دوی ته دا دواړه کتابونه ياد وو.

**قوله تعالى:** - وَرَسُولًا إِلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ

اوهغوئ ئې بنى اسرائيلوطرفته خپل رسول اوليږلو.ددې خبرې دويناد پاره چې دازمامعجزه ده اوګوره کنه خاوره مې واخسته او د هغې نه مارغه جوړ شو او بيا مو په دې کښې ساه واچوله او بيا هغه د ربښتياؤ مارغه شو او د خلقو مخکښې والوته.دا د الله ﷻ حکم سره او د هغه فرمان سره اوشو.عيسى ﷺ خپل قدرت سره نه دی کړی.دا يو معجزه وه چې د عيسى ﷺ د نبوت نښه وه.

**قوله تعالى:** - وَأُبْرِئُ الْأَكْمَهَ

﴿ اکمه ﴾هغه ړوند ته وائي چې هغه ته د ورځې ښکاری او د شپې ورته نه ښکاری.بعضو ونيلی دی چې﴿اکمه ﴾هغه نابينا ته وائي چې هغه ته د ورځې ښکاری مګر د شپې ورته نه ښکاری.بعضې وائی چې کوږ سترګې،او کاڼې ترې مراد دی.د بعضو قول دا هم دې چې کوم مور د رحم نه بالکل ړوند پيدا شی.دلته هم دا ترجمه مناسبه ده.ځکه چې په دې کښې د معجزې کمال دې او مخالفينو لره د عاجزه کولو دپاره دا صورت د نورو صورتونو نه اعلى دې.

**قوله تعالى:** - وَالْأَبْرَصَ وَأُحْيِ الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِ اللَّهِ سپين داغ ته وائي،داسې بيمار به هم د الله ﷻ حکم سره عيسى ﷺ روغول.او مړی به ئې هم د الله حکم سره ژوندی کول.

**مختلفو انبياء او رسولانو ﷺ ته د مختلفو معجزو د ورکړې حکمت** -د اکثرو عالمانو قول دې چې هر نبی ته به د هغه د زمانې مناسبت سره معجزې ملاويدې د الله ﷻ د طرفنه.

**د موسى ﷺ په زمانه کښې د جادو ډير شهرت وو:** - د موسى ﷺ په زمانه کښې د جادو ډير لوئې اثر وو.او د جادوګرو به ډير زيات قدر او تعظيم کيدو.نو الله ﷻ موسى ﷺ ته هغه معجزه ورکړه چې هغې سره د ټولو سترګې حق دق شوې.او هغوئ حيران شو.او هغوئ ته کامل يقين اوشو چې دا خو د الله ﷻ د طرفنه ورکړه ده.دا جادو بالکل نه دې.نو هغوئ سرونه ښکته کړل اوبه يو آواز اسلام کښې داخل شو.او د الله ﷻ مقرب بندګان جوړ شو.

**د عيسى ﷺ زمانه د طب او د طبيبانو د رفعت زمانه وه:** -دعيسى ﷺ په وخت کښې د طبيبانو او حکيمانو شهرت وو.کامل طبيبان اوماهر حکيمان او دعلم طبعيات پوره عالمان کامل الفن موجود وو.نو عيسى ﷺ ته هغه معجزې ورکړې شوې چې دهغې نه ټول عاجز وو.اودا د چا وس کښې دی چې د مور نه ړوند پيدا شوې دې بينا کړی،ابرص مرض والا روغ کړی اوهغوئ ته د دې مهلکې بيمارئ نه نجات ورکړی،او جمادات چې بې ساه څيزونه دی په هغې کښې ساه واچوی،او مړی د قبرونو نه راژوندی کړی.صرف د الله ﷻ د حکم په طور دعيسى ﷺ نه دا خبرې ظاهرې شوې وی.

**د محمد رسول الله ﷺ زمانه د فصاحت او بلاغت په اعتبار ډيره پورته وه:** - لکه څنګه کله چې زمونږ آقا محمد ﷺ تشريف راوړنو په هغه وخت کښې د فصاحت او بلاعت خبرې او اوچت خيالی او په خبروکښې د نزاکت اولطافت زمانه وه.په دې فن کښې اوچتو اوچتو شاعرانو داسې کمال حاصل کړی وو چې دنيا ورته ګوته په خوله وه.او نبی کريم ﷺ ته کتاب الله داسې ورکړې شو چې د هغه ټولو رنړا ګانې ټتې شوې.او د کلام الله نور دوی لاندې راوغورزول.او هغوئ ته يقين اوشو چې دا انسانی کتاب نه دې.او ټولې دنيا ته په څو کرتې دا اوونيلې شو چې څوك شته دې داسې چې ددې په شان کلام جوړ کړی؟يواځې يواځې نه بلکه ټول دې يو ځائې شی او صرف انسانان نه بلکه جنات دې هم ځان سره شامل کړی،اوبيا د ټول قرآن برابر نه صرف د لسو سورتونو برابر او دا هم نه بلکه د يو سورت پشان

سورت دې راوړي.خو ټول ناکام شول همتونه ئې پست شول،مرئ ئې ختمې شوې،په ژبه ګونګيان شول،اونه پورې ټولې دنيااونکړل او نه به کله اوکړي،چرته د الله ﷻ کلام اوچرته د مخلوق؟نود هغه زماني اعتبار سره دې معجزې خپل اثر اوخودلو او مخالفينو حوصلې بائيللې.او ډلې ډلې اسلام کښې داخل شو.

قوله تعالى:- وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ

بيادعيسى ﷺ بله معجزه بيانيږي دوی دا هم اوفرمائيل او وې خودل چې تاسوکښې نن څوك په خپل کورکښې خوراك اوکړې نو الله ﷻ په فضل سره هغه هم ښانيلې شم.او د سبا دپاره چې هغه کوم تيارې کړې دې هغه هم خودلې شم د الله ﷻ نه په معلومولوسره.

قوله تعالى:- إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ::په دې کښې زما د ريښتنولئ دليل دې چې تاسو ته زهٔ کوم تعليم درکوم هغه حق دې.که تاسو کښې ايمان وی.

قوله تعالى:- وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ

زهٔ دخپل رومبنی کتاب توراة لره هم منلووالا او د هغې د ريښتينولئ په دنيا کښې اعلان کوونکې يم.

قوله تعالى:- وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ الَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ

زهٔ په تاسوباندې بعضې څيزونو لره حلالولو دپاره راغلې يم چې هغه تاسوباندې مخکښې حرام کړې شوی وو.ددې نه ثابت شو چې عيسى ﷺ دتوراة بعضې احکام منسوخ کړی وو.اګر چې ددې خلاف هم د مفسرينو خيال دې ليکن در ست خبره هم داده.

بعضې حضرات فرمائی چې د تورات يو حکم هم نه وومنسوخ شوې.البته په بعضو څيزونوکښې چې اختلاف وواود دې اختلاف په زياتيدو زياتيدو چې د هغې په حرمت باندې اجماع شوې وه.عيسى ﷺ دهغې په حقيقت کښې بيان اوکړو او د دې په حلالېدو ئې مهر اولګولو.لکه قرآن پاك بل ځائې کښې فرمائی چې﴿وَلِأُبَيِّنَ لَكُم بَعْضَ الَّذِي تَخْتَلِفُونَ فِيهِ﴾يعنى زهٔ ستاسو دخه اختلافاتو باره کښې صفا فيصله کوم.والله اعلم.

قوله تعالى:- وَجِئْتُكُم بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ

بيافرمائی ماسره دخپلې سچائی ربانی دليلونه موجوددی.تاسو دالله ﷻ نه اوويريږئ او زما اومنئ

قوله تعالى:- إِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ

اوددې خلاصه داده چې دهغه پاك ذات عبادت اوکړئ چې ستاسواو زما پالولووالا دې.او نيغه او ريښتيا خو هم دا لار ده.

| فَلَمَّا | أَحَسَّ |
|---|---|
| نو هر کله چې | محسوس کړو |
| نوعيسى ﷺ محسوسه کړه | |

| عِيسَىٰ | مِنْهُمُ | الْكُفْرَ | قَالَ | مَنْ أَنصَارِي | إِلَى اللَّهِ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عيسى | دهغوئ نه | کفر | اوونيل | هغه څوك دی مددګاران زما | په طرف دالله | اوونيل |
| چې بنی اسرائيلوزما نه انکار کوی | نوهغه اوونيل چې د الله پاك په لار کښې زما څوك مددګاردې | | | | | |

| الْحَوَارِيُّونَ | نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ | آمَنَّا | بِاللَّهِ | وَاشْهَدْ |
|---|---|---|---|---|
| حواريانو | مونږه مددګار يودالله | ايمان راوړې دې مونږه | په الله باندې | اوګواه شه ته |
| حواريانواوونيل چې مونږدالله دپه لار کښې ستا)مددکونکې يو | مونږپه الله ايمان راوړې دې | اوته په دې خبره ګواه شه | | |

| بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ۝ | رَبَّنَآ | اٰمَنَّا | بِمَآ | اَنْزَلْتَ |
|---|---|---|---|---|
| چې مونږه مسلمانان یو | اې ربه زمونږه | اومنو مونږه | هغه فرمان | چې نازل کړې دې تا |
| چې مونږ دالله تابعدار این یو | (اودانې اوونیل)چې اې زمونږ ربه تاچې کوم فرمان نازل کړې دې هغه مونږ منلې دې | | | |
| وَاتَّبَعْنَا | الرَّسُولَ | فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ۝ | وَمَكَرُوْا | |
| او تابعداری اوکړه مونږه | درسول | نواولیکه مونږه | دګواهانو سره | او پټ تدبیرونه شروع کړل هغوئ |
| اوستاد پیغمبر تابعدار یو نومونږ په ګواهانو کښې شمیر کړه (اوبنی اسرائیلو دعیسی خلاف) پټ تدبیر اوکړو | | | | |
| وَمَكَرَ اللّٰهُ | وَاللّٰهُ | خَيْرُ | الْمٰكِرِيْنَ ۝ | |
| او پټ تدبیر اوکړو الله | او الله | بهترین | تدبیر کونکې دې | |
| اوالله پاک د هغې په جواب ورکړوا اوپه داسې کولو کښې الله تولو دپاسه دې | | | | |

**قوله تعالى:- فَلَمَّآ اَحَسَّ عِيْسٰى مِنْهُمُ الْكُفْرَ قَالَ مَنْ اَنْصَارِيْٓ اِلَى اللّٰهِ**

**دعیسی ؑ حواریان او د محمد ﷺ انصار:-** یعنې کله چې عیسی ؑ اوکتل چې دوی دخپل ضداو کوږوالی نه اوړیدونکی نه دی نو وې فرمانیل چې داسې هم څوک شته چې دې چې څوک زما تابعداری اوکړی نو الله ﷻ طرفته به اورسی [1] او دا مطلب هم بیان کړې شوې دې چې څوک شته دې چې د الله ﷻ سره زما مددګار جوړ شي. لیکن دومبې قول زیات قریب دې. په ظاهره معلومیږی چې دوی اوفرمانیل چې الله ﷻ لره بللو کښې څوک زما مدد کوونکې شته؟ لکه څنګه چې د هجرت نه مخکښې د حج موسم کښې مکه مکرمه کښې رسول الله ﷺ فرمانیلی وو چې څوک شته دې چې ماته ځانې راکړی چې د الله ﷻ کلام اورسوم؟ قریش خو ما د الله ﷻ د تبلیغ نه منع کوی.[2] تردې چې د مدینې منورې اوسیدونکی انصارو هم ددې خدمت دپاره ملاوتړله. او رسول الله ﷺ ته نې ځانې هم ورکړو. او د رسول الله ﷺ مدد نې هم اوکړو. او کله چې رسول الله ﷺ هغوئ ته ورغلو نو پورا خیرخواهئ سره او پورا همدردئ سره نې د رسول الله ﷺ ملګرتیا اوکړه. او د رسول الله ﷺ حفاظت او د رسول الله ﷺ د مقاصدو د کامیابئ د پاره مصروفه شول. (رضی الله عنهم وارضاهم).

**قوله تعالى:- قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ**

دا شان د عیسی ؑ په دې آواز باندې هم څو بنی اسرائیلو لبیك اوونیلو او په عیسی ؑ باندې نې ایمان راوړو. د دوی تائید اوتصدیق نې اوکړو اوپورا مدد نې ورسره اوکړو او ددې نور (رڼا) په اطاعت کښې اولګیدل چې کوم الله ﷻ دوی ته نازل کړې وو. یعنې انجیل،

**دا خلق څوک وو او دوی ته حواریان ولې اوونیلې شو؟:-** دا خلق دهوبیان وو او حواریان دوی ته د دوی د کپړو دسپین والی په وجه ونیلې شوی دی، بعضې وانی چې دا ښکاریان وو. صحیح دادی چې حواریان وانی مددګار ته. لکه بخاری او مسلم کښې حدیث دې چې د جنګ خندق په موقع باندې رسول الله ﷺ فرمانیلی وو چې شته دې څوک چې تیارشی؟ ددې آواز آوریدو سره زبیر ؓ تیار شو او رسول الله ﷺ دوباره هم دا اوفرمانیل، بیا هم زبیر ؓ تیار شو، نو رسول الله ﷺ اوفرمانیل چې د هر نبی حواریان وو او زما حواری زبیر ؓ دې.[3]

**قوله تعالى:- رَبَّنَآ اٰمَنَّا بِمَآ اَنْزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُوْلَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ**

---

[1] ابن ابی حاتم: ۳/۲۹۰-

[2] احمد: ۳/۳۳۹، وسنده حسن-

[3] صحیح بخاری کتاب الجهاد باب هل یبعث الطلیعة وحده: ۲۷۴۷، صحیح مسلم: ۲۴۱۵، ترمذی: ۳۷۴۵-

بيا دا خلق خپله دعا كښې واني چې مونږ په شاهدانو كښې اوليكه،ددې نه مراد د ابن عباس ﷺ په نيز امت محمديه كښې ليكل دي،ددې تفسير روايت سند ډير بهتر دې.

قوله تعالى:-وَمَكَرُوْا وَمَكَرَ اللّٰهُ ۖ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ

بيا د بني اسرائيلو دهغه ناپاكې ډلې ذكر كيږي چې د عيسى ؑ خاني دښمنان وو.او ددوى د مركولو او په سولئ باندې د خيژولو قصد ئې لرلو.او چې هغوئ د هغه زماني د بادشاه غوږونه د عيسى ؑ خلاف ډك كړي وو چې داسړي خلقو لره لمسوئ چې په ملك كښې بغاوت پيدا شي.او عواموكښې فسادپيداكوي.اوپلار خوني مينځ كښې فساد راولي.او دا خلق په خپل خباثت او خيانت كښې دومره لرې لاړل چې عيسى ؑ ته ئې(نعوذبالله)د زانيه خوني اوونيلو.او په دوى باندې ئې لوني لوني الزامونه اولګول تر دې چې بادشاه هم د دوى خلاف شو.او خپل فوځ ئې اوليږلو چې ده لره ګرفتار كړي او ورته سخته سزا وركړئ او پهانسى ورته هم وركړي.فوځ خي او چې كوم كور كښې عيسى ؑ اوسيدو د هغې نه ګيرا اچوي او بيا كور ته داخليږي.ليكن الله تعالى دوئ لره ددغه مكرونو نه امان وركوي او د دوئ د كور په روشندان ئې دوى پورته آسمان طرفته اوچت كړل.او د دوى په شكل ئې يو بل سړي په دې خاني كښې واچولو او هغه هم په دې كور كښې وو.دې خلقو هغه د شپې په تياره كښې عيسى ؑ اوګڼړلو او ګرفتار ئې كړو.د هغه سخت توهين كوي او په سر ورته د ازغونو تاج ايږدي او هغه په سولئ خيژوي.هم دا هغوئ سره د الله تعالى مكر وو چې هغوئ دا ګڼړل چې مونږ د الله تعالى نبى ته پهانسى وركړې ده خوالله تعالى خپل نبى ته نجات وركړو.او هغوئ ته ددې بدبختئ او بدنيتئ ثمره دا علاوه شوه چې د هغوئ زړونه هميشه دپاره سخت شو.اوپه دنيا كښې هم ذليل او خوار شو.او آخره پورې په دې ذلت كښې پراته وو.د دې بيان هم په دې آيت كښې دې.كه هغوئ مكر كوى نو آيا مونږ ته پته نشته دې،مونږ خو د دوى نه بهتر مكر كوونكي يو.

| إِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسٰٓى |
|---|
| كله چې \| اوونيل \| الله \| اې عيسى |
| كله چې الله اوفرمانيل اې عيسى |

| إِنِّيْ مُتَوَفِّيْكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ |
|---|
| بيشكه څه \| واپس اخستونكې يم تالره \| پورته كونكې يم تالره خان خپل ته \| او پاك كونكې يم تالره |
| زه تا واپس بوتلونكې يم \| او خپل خان ته دې پورته كونكې يم \| اوتا دهغه تهمت نه پاكونكې يم |

| مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَجَاعِلُ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْكَ فَوْقَ |
|---|
| دهغه كسانو نه \| چې انكار ئې كړې دې \| او جوړونكې يم \| هغه كسانو لره \| چې تابعدارى ئې كړې ده ستا \| دپاسه |
| كوم كا فرو په تا لګولي دې \| .................. اوستا تابعدار خلق ترقيامته پورې دهغه خلقو دپاسه |

| الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ |
|---|
| دهغه كسانو \| چې انكار ئې كړې دې \| دورځ دقيامته پورې \| بيا \| خاص ماته \| واپس راتلل دى ستاسو \| |
| كونكې يم چا چه كفر كړې دې \| ..........بيا ستاسود ټول خلقو ماته راتلل دى نوزه به پخپله |

| فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ۝ |
|---|
| نوزا به فيصله كوم \| په منځ ستاسو كښې \| په هغه خبرو كښې \| چې وئې تاسو \| په هغې كښې \| چې اختلاف به موكوئ |
| ستاسو په مينځ كښې په هغه اختلافي مسئلو كښې فيصله اوكړم كوم كښې چه تاسو اختلاف كوئ \| |

| |
|---|
| فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا |
| نوهرچي دی هغه کسان\|چي دانکار په لارروان دی\| نوسزابه ورکوم هغوئ له\| سزا \| سخته \| په دنیااو |
| نوکومو خلقو چي کفر کړي دي\| ........ ......... .........هغوئ ته زه په دنیا او په آخرت کښي سزا |
| وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ ۝ وَأَمَّا الَّذِينَ |
| په آخرت کښي\|اونه به وی دپاره دهغوئ \| هیڅوک مددګار \| \| او هر چي دی \| هغه کسان \| |
| ورکونکي یم\| اودوئ دپاره به هیڅوک مددګار نه وی\| ........ ......... ... ... او چا چي |
| آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ |
| چي ایمان ئي راوړي دي\|اوعملو نه ئي کړي دی نیک\|انو پوره به ورکړي الله هغوئ ته\| بدلې دهغوئ |
| ایمان راوړي دي \| اودنیکئ کارونه ئي کړي دی \| نوهغوئ ته بهٔ الله پوره پوره اجر ورکړي |
| وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ۝ ذَٰلِكَ نَتْلُوهُ عَلَيْكَ مِنَ الْآيَاتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيمِ ۝ |
| اوالله \| نهٔ خوښوی ظالمان \| دا چي تیرشو\|مونږه اولوستلو دا\| تاته \| دآیتونونه \| اودقرآن حکمت والانه |
| اوالله پاک بې انصافه خلق نه خوښوی \| داچي مونږ تاته آورو نو داټول آیتونه دحکمت او دذکر نه ډک دی |

**قوله تعالی:- إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَىٰ إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ**

### عیسی عليه السلام أسمانونو ته پورته کول

**د انی متوفیک معنی کښې د مفسرینو رحمهم الله مختلف تفسیرونه:_** قتاده رحمه الله وغیره مفسرین خو فرمائی چې مطلب دادې چې زهٔ به تاخپل طرفته اوچت کړم.بیا دې نه پس به تالره وفات کړم.ابن عباس رضی الله عنه فرمائی یعنی زهٔ تالره وژلو والا یم.وهب بن منبه فرمائی چې الله ﷻ تاسو لره د اوچتولو په وخت کښې د ورځې په شروع کښې درې ساعته پورې فوت کړې وو.ابن اسحاق رحمه الله فرمائی چې دنصرانیانو خیال دې چې الله ﷻ دوی لره تر اووه ساعته پورې وفات کړې وو او بیا ئې ژوندی کړو.وهب بن منبه رحمه الله فرمائی چې تر دریو ورځو پورې مړ وو اوبیا ژوندې شو او اوچت ئې کړو.مطر وراق فرمائی یعنی زهٔ تاته پورا پورا حق درکونکې یم.دلته وفات مراد نه دې،داشان ابن جریر فرمائی چې﴿ نوم ﴾نه دلته مراد دده رفع ده،او د اکثرو مفسرینو قول دې چې د وفات نه مراد دلته خوب دې او بل ځائې کښې قرآن پاک کښې دی چې﴿وَهُوَ الَّذِي يَتَوَفَّاكُمْ بِاللَّيْلِ﴾او الله ﷻ چې تاسو لره فوت کوی یعنی سملوی مو او بل ځائې کښې دی چې﴿اللَّهُ يَتَوَفَّى الْأَنْفُسَ حِينَ مَوْتِهَا وَالَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا﴾یعنی الله ﷻ خلقو لره فوت کوی،د دوی د مرګ په وخت کښې او چې کوم نه مری نو هغوئ لره اوده کوی.

رسول الله ﷺ چې به کله بیدار شو نو فرمائیل به ئې﴿ الحمد لله الذي احيانا بعد ما اماتنا ﴾ : یعنی دالله تعالی شکر دې چې هغه مونږ لره د مړ کولو نه پس ژوندی کړو[١]

بل ځائې کښې فرمائی چې﴿ وبکفرهم ﴾نه تر﴿ شهیدا ﴾ پورې اووایه.هلته فرمائیلې شوی دی چې د دوی د کفر په وجه او په مریم علیها السلام باندې د بهتان عظیم ترلو په وجه او په دې وجه چې وائی چې مونږ مسیح عیسی بن مریم رسول الله لره قتل کړو.حالانکه نه قتل شویدې او نه صلیب شویدې لیکن د دوی شک شو.د﴿موته ﴾ضمیر مرجع عیسی علیه السلام دې.یعنی ټول اهل کتاب به عیسی علیه السلام باندې ایمان

---

(١) صحیح بخاری کتاب الدعوات باب وضع الید علی الخد الیمنی : ٦٣١٤، صحیح مسلم: ٢٧١١، ابوداود: ٥٠٤٩، ترمذی: ٣٤١٧، عمل الیوم واللیلة للنسائی: ٧٤٧، ابن ماجة: ٣٨٨٠)-

راوړي.او هغه به د قيامت نه مخکښې زمکې ته راکوزيږي.د دې تفصيل به انشاء الله نزدې راشي.نو په هغه وخت کښې به ټول اهل کتاب په عيسى ﷺ باندې ايمان راوړي.ځکه چې نه خو به هغوئ جزيه قبلوى او نه به د اسلام نه سوا بل دين قبلوى ابن ابى حاتم کښې حسن رحمة الله عليه نه د ﴿إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ﴾تفسير دا مروى دې چې په دوى خوب باندې د خوب غلبه راغله او د خوب حالت کښې الله تعالى دوى لره اوچت کړل.حسن ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ يهوديانو ته اوفرمائيل چې عيسى ﷺ نه دې مړ شوې،هغه به تاسو طرفته د قيامت نه مخکښې رازى.(۱)

قوله تعالى:-﴿وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾

بيا فرمائي چې زهٔ تالره اوچتونکى او د کافرو نه پاکونکې يم.او ستا نه پس تابعدارو لره په کافرانو غالب کوونکې يم تر قيامته پورې.

**د عيسايانو مختلفې فرقې:-** نو دا شان اوشو چې کله الله ﷻ عيسى ﷺ آسمان ته پورته کړو نو دې نه پس د دوى ملګرى ډيرو فريقو کښې تقسيم شو.يو فرقه خو د دوى په نبوت باندې ايمان راوړونکى وه چې عيسى ﷺ دالله ﷻ بنده دې او دهغه رسول دې.اودهغه ذات د يو بنديګارۍ خوښې دې.بعضې هغه دى چې هغوئ دغلو نه کار واخستو اويدې کښې مخکښې لاړل اودوى ته نې دالله ﷻ خوئي اوونيلو او نورو خو دوى ته خدائي اوونيلو(نعوذبالله)،بعضو په دريو کښې يو خدائې دوى ته اوونيل. الله ﷻ د دې عقائدو ذکر په قرآن پاك کښې کوى.بيا ددې ترديد هم کوى.

**په عيسائيت کښې تحريف کوونکې:-** درې سوه کاله خو دوى دا شان وو.بيا د يونان بادشاهانو کښې يو بادشاه چې ډير فلسفى وو او دهغه نوم قسطنطين وو،ونيلې شى چې صرف د دين د نړولو دپاره په منافقانه طريقو او حيلو بهانوسره دې دين ته داخل شو يا جهالت سره داخل شو.بهر حال هغه دين مسيح بالکل بدل کړو.او په دې کښې نې ډيرتحريف او تغير اوکړو.اويه دې کښې نې کمې زياتې اوکړو.اويه دې دين کښې نې ډير قوانين ايجاد کړل.او امانت کبرى هم د ده ايجاد دې اودا په اصل کښې د رذيل توب خيانت دې.هم ده په خپله زمانه کښې خنزير حلا ل کړې وو.او هم دده په حکم عيسايانو مشرق طرفته مونځ شروع کړو.اوهم ده په ګرجو،کنيساګانو کښې،عبادت خانو کښې او خانقاهونوکښې تصويرونه جوړ کړل اودخپلې ګناه په وجه نې لس روژې په روژو کښې زياتې کړې. غرض داچې دهغه زمانې نه دين مسيح دمسيح دين پاتې نشوبلکه دين قسطنطين شو.ده ورته ظاهرى ښه رونق ورکړو،دولس زرو نه زيات عبادت خانې نې جوړ کړې.او په خپل نوم نې يو ښار جوړ کړو.ملکيه ډلې دده ټولې خبرې اومنلې ليکن ددې ګناهونو باوجود يهوديان دده د لاس لاندې وو او په اصل کښې د نورو په نسبت حق ته زيات نزدې وو اګرچه ټول په ټوله کافران وو په دوى باندې د الله ﷻ غضب وى.

**د ټولو انبياء ﷺ حقيقى منونکى:-** اوس کله چې زمونږ محمد مصطفى ﷺ لره الله ﷻ خپل برګزيده رسول جوړ کړو او د نياته نې راوليږلو نو په دوى باندې چې کومو خلقو ايمان راوړو د هغوئ ايمان په الله ﷻ باندې وو.او د هغه په فرښتو باندې وو او د هغه په کتابونو باندې وو او د هغه په ټولو رسولانوباندې وو.نو د نبيانو حقيقى تابعدار هم دا خلق وو يعنى امت محمديه ﷺ.ځکه چې دا د نبى امى عربى خاتم الرسل سيداولاد آدم ﷺمنلو والا وو او د رسول الله ﷺ تعليم د ټول حقانيت منلووالا وو.نو اصل کښې دهرنبى منونکى اوپه رښتيا د هغوى تابعدار اوپه صحيح معنو کښې د هغوى د امتى کيدو حقداره هم دوى دى.ځکه چې هغه خلقو چې خانونو ته په ئې عيسايان ونيل هغوى د عيسى ﷺ دين بالکل مسخ

---

(۱) الطبرى : ۷۱۲۹، داروايت مرسل دې،اودې کښې عبدالله بن ابى جعفر ناقابل احتجاج اوددوى والد سئ الحفظ دې(الميزان: ۴۰۴، رقم: ۴۲۵۲،نودا روايت ضعيف دې)۔

اوفسخ کړې وو.

**په کافرانو باندې د دې امت غلبه:-** د دې نه علاوه د پیغمبر آخرالزمان دین هم نورو ټولو وړاندینو شریعتونو لره ناسخ وو.بیا محفوظ پاتې کیدونکې وو.چې ددې یوحصه به هم تر قیامته پورې بدله نه شي.نو ددې آیت د وعدې مطابق الله ﷻ کافرانو باندې ددې امت غلبه اوکړه.او دوی مشرق نه واخله تر مغربه پورې غالب شول.او ټول ملکونه ئې فتح کړل او لوئې لوئې او غټې غټې کافران ئې جهنم ته اولیږل.او دولتونه د دوی پښو ته راغلل.او فتح اوغنیمت د دوی جولئ ته راغلل.او دوی د پخوانو پخوانو حکتومنونو تختونه واړول.د کسری عالی شان سلطنت،د هغه آتش کدې د دوی په لاس شاړې شوې.د قیصر تاج و تخت دوی ته ملاؤ شو او هغه ته د مسیح پرستئ ښه مزه ملاؤ شوه.او د هغه خزانې ئې د الله ﷻ د رضا دپاره او د هغه د ریښتونی رسول الله ﷺ [۱]د دین د اشاعت دپاره د زړه نه خرچ کړې.اود الله ﷻ وعدې او د رسول الله ﷺ وعدې د څوارلسمې سپوږمئ په شان ربښتیا شوې.دې خلقو اوکتل چې د مسیح نوم لره بدناموونکئ او د مسیح په نوم د شیطان عبادت کونکی د دې پاکو خلقو نه مجبور شول او د شام ښکلی باغونه او آباد ښارونه ئې دوی ته حواله کړل او لاړل غانب شول اوروم( ترکی)کښې استوګن شول.او بیا هم د هغه ځائې نه دا بې عزته ویستلې شو.او د خپل بادشاه خاص ښار قسطنطنیه ته اورسیدل لیکن بیا د هغه ځائې نه هم ذلیل و خوار اوویستلې شو او انشاء الله اسلام او اهل اسلام به تر قیامته پورې د دوی د پاسه وی.

**د رسول الله ﷺ زیرې:-** د ټولو ریښتونو سردار یعنی محمد ﷺ خبر ورکړې دې اودا خبر اټل دې،دا نه ده چې ګنی پورا به نشی نه خو به دې خبر کښې څه کمې بیشې راشی او نه به په دې کښې څه بدلون راشی نو رسول الله ﷺ فرمائی چې د دوی د امت آخری ډله به قسطنطنیه فتح کړی او د هغه ځائې ټولې خزانې به خپله قبضه کښې راولی.او د دوی به رومیانو سره یو عظیم جنګ اوشی او ددې په وجه به دنیا د هغوئ نه خالی شی.([۲])زمونږ دعا ده چې په هره زمانه کښې الله ﷻ د دې امت حامی او ناصر شی او په مخ د زمکې دې دا امت په کفارو باندې غالب کړی او هغوئ ته دې پوهه ورکړی چې نه خو دوی د الله تعالی نه سوا د بل چا عبادت اوکړی او نه د حضرت محمد ﷺ نه سوا د بل چا اطاعت اوکړی،هم دابنیاد دې د اسلام او هم دا د دنیوی اوچتوالی او رفعت چل دې)،ما داټول په یو بیل کتاب کښې جمع کړې دی.

**قوله تعالی:-** فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا.....

مخکښې قول باندې نظر واچوئ چې مسیح عیسی ؑ لره نه منونکو یهودیانو او د عیسی ؑ په شان کښې د خانه خبرو جوړونکو نصرانیانو ته د قتل او بندی کیدو او د مال او سلطنت د تباه کیدو سزا ورکړې شوه.او د آخرت عذاب ئې هم هلته اوګوره او هلته به هیڅوک د دوی بچ کولو والا نه وی او نه به ئې څوک مددګار وی.

**قوله تعالی:-** وَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ

او د دې برعکس ایماندارو ته به الله ﷻ پورا اجر ورکړی په دنیا کښې هم فتح او نصرت او عزت به ورکړی او عقبا کښې به هم دوی ته خاص رحمتونه او نعمتونه ملاویږی.الله ﷻ ظالمان نه خوښوی.بیا فرمائی چې انې نبی ادا هم حقیقت دې دعیسی ؑ او دهغوئ د ابتداء او پیدائش اودهغه دامر چې الله ﷻ دوی ته دخپلې وحی په ذریعه نازل کړو.اوپه دې کښې شك او شبه نشته دې لکه سورة مریم کښې فرمائی چې عیسی ابن مریم همدا دې،هم دې ربښتیا حقیقت دې،چې تاسو په دې کښې شك

[۱] صحیح بخاری کتاب فرض الخمس باب قول النبی (احلت لکم الغنائم) ۳۱۲۰ ،صحیح مسلم: ۲۹۱۸)-
[۲] صحیح مسلم کتاب الفتن باب فی فتح قسطنطنیه ....: ۲۸۹۷)-

کښې پریوتی یې. الله ﷻ لره لائق نه دی چې دهغه دې اولاد وی. هغه لوئې ذات ددې نه پاک دې. هغه چې څه کول غواړی نو چې اووائی نو هغه اوشی، اوس دلته هم ددې نه پس بیان کیږی.

اِنَّ مَثَلَ عِیۡسٰی عِنۡدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ اٰدَمَ ؕ خَلَقَهٗ مِنۡ تُرَابٍ

بیشکه | مثال دعیسی | په نیزد الله | پشان دمثال | دآدم دې | چی پیدائې کړو هغه | دخاورې نه |

دعیسی (د پیدائش) مثال دالله په نیز د آدم علیه السلام (د پیدائش) پشان دې اچې هغه ئې خاورې نه پیدا کړو

ثُمَّ قَالَ لَهٗ كُنۡ فَیَكُوۡنُ ۝ اَلۡحَقُّ مِنۡ رَّبِّكَ فَلَا تَكُنۡ مِّنَ الۡمُمۡتَرِیۡنَ ۝

بیا ئې اووئیل هغه ته | شه | نو هغه شو | دا حق دې | دطرفه درب ستا نه | نو مه کیږه ته | دشك کونکو نه

بیائې ورته اووئیل چې ژوندې شه | نو هغه ژوندې شو | دا حقیقت دې | چې ستا د رب دطرف دې | نو د شک کونکو نه مه کیږه

فَمَنۡ حَآجَّكَ فِیۡهِ مِنۡۢ بَعۡدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الۡعِلۡمِ

نو هغه څوك | چې جګړه کوی تا سره | په باره دهغه کښې | روستو دهغې نه | چې راغې تاته | علم

نو څوک چې تاسره په دې مسئله کښې دځرګند علم راتلونه پس هم جنګړه کوی ...... ......

فَقُلۡ تَعَالَوۡا نَدۡعُ اَبۡنَآءَنَا وَ اَبۡنَآءَكُمۡ وَ نِسَآءَنَا وَ نِسَآءَكُمۡ وَ اَنۡفُسَنَا

نو اووایه | راشئ | چې راوبلو | خامن خپل | اوخامن ستاسو | اوښځې خپلې | اوښځې ستاسو | اوخانونه خپل

نورته اووایه چې راځئ چې مونږ خپل خامن اوتاسو خپل خامن مونږ خپلې زنانه اوتاسو خپلې زنانه راوباسو | اومونږ

وَ اَنۡفُسَكُمۡ ۟ ثُمَّ نَبۡتَهِلۡ فَنَجۡعَلۡ لَّعۡنَتَ اللّٰهِ

اوخانونه ستاسو | بیا به | دعا اوغواړو په عاجزئ سره | اوواوبه لیږو | لعنت دالله

اوتاسو خپله هم راشو | بیا الله پاک ته په عاجزئ سره داسې سوال اوکړو | چې دالله لعنت

عَلَی الۡكٰذِبِیۡنَ ۝ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الۡقَصَصُ الۡحَقُّ ۚ وَ مَا مِنۡ اِلٰهٍ

په درغژنو باندې | بیشکه دا | خامخا دا | قصه | حقه ده | او نشته لائق دعبادت

په دروغژنو خلقو شی | دا بالکل د صداقت نه ډکې قصې دی | ...............او د الله تعالی نه سوا بل

اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَكِیۡمُ ۝ فَاِنۡ تَوَلَّوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ

مګرالله دې | اوبیشکه الله | هم هغه | غالب دې | صاحب د حکمت دې | نو که مخ واوړلودوی | نو بیشکه الله

خوک د عبادت لائق نشته | اوبیشکه الله په هرڅاغالب دې | اودحکمت خاوند دې | نوکه دوئ مخ اوګرزوی | نوالله ته

عَلِیۡمٌۢ بِالۡمُفۡسِدِیۡنَ ۝

خبر دې په حال | دفساد کونکو | |

فساد کوونکی خلق معلوم دی |

**قوله تعالی:- اِنَّ مَثَلَ عِیۡسٰی عِنۡدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ اٰدَمَ** عیسایانو ته دمباهلې دعوت او د هغوئ انکار:- الله ﷻ د خپل کامل قدرت بیان کوی چې د عیسی علیه السلام خو صرف پلار نه وو او ما هغه په خپله پیدا کړو پدې کښې څه عجب دی؟ ما آدم علیه السلام خو ددې نه مخکښې پیدا کړې وو حالانکه د هغه هم پلار نه وو. بلکه مور ئې هم نه وه.

**قوله تعالى:- خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ**
د خاورې نه مو بدن جوړ کړې وو او ورته نې اوونیل چې آدم شه نو هم په هغه وخت اوشو.بیا ما د پاره صرف د مور نه پیدا کول څه مشکل دی ؟ څکه چې ما بغیرد پلا راو مور نه پیدا کړی دی.نو هرکله چې عیسی ﷺ د دې مستحق دې چې ورته د الله ﷻ خوئې وائی نو آدم ﷺ خو په طریقه اولی دا حق لری.اوهغه تاسوپخپله هم نه مننئ.بیاعیسی ﷺ په طریقه اولی ددې درجې نه اخوا کول پکار دی. څکه چې د ابنیت د دعوې بطلان او فساد دلته ددې نه هم زیات ظاهر دې.دلته نه مور وه او نه پلار وو،دا ټول د الله ﷻ د کامل قدرت ظهور دې چې آدم ﷺ نې بغیر د پلار نه پیدا کړو ﷺاو حوا نې صرف دسړی نه،بغیر د ښځې نه پیدا کړه.او عیسی ﷺ نې صرف د ښځې نه پیدا کړو او باقی مخلوق نې دسړی او ښځی نه پیدا کړو.سورت مریم کښې فرمائی چې﴿ ولنجعله آية للناس ﴾ مونږ عیسی ﷺ لره خلقو د پاره د خپل قدرت نښه جوړ کړو.

**قوله تعالى:- الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُن مِّنَ الْمُمْتَرِينَ**
اودلته فرمائی چې د عیسی ﷺ باره کښې د الله ﷻ هم دا فیصله ریښتونې ده.ددې نه سوا د څه کمی او زیاتی ګنجائش نشته دې.څکه چې د حق نه پس ګمراهی وی.نو انې نبی!تاسوته پکار دی چې بالکل د دې شکیانو خلقو نه نشې.

**قوله تعالى:- فَمَنْ حَاجَّكَ فِيهِ مِن بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ**
الله ﷻ رب العالمین دې نه پس خپل نبی ته حکم کوی که دومره واضح او کامل بیان نه پس هم څوك سړې تاسره د امر عیسی باره کښې جنګ کوی نو هغوئ ته د مباهلې دعوت ورکړه چې مونږ فریقین سره د خپلو خامنو او ښځو دمباهلې د پاره اوزو او الله ﷻ ته به عاجزئ سره اووایو چې انې الله ﷻ مونږ دواړو کښې چې څوك دروغژن وی نو په هغه لعنت نازل کړه.

**شان نزول د دې ایتونو او د دې مباهلې د ایت:-** ددې مباهلې د نازلیدو او د سورت د نازلیدو نه واخله تر دې خائې پورې د ټولو آیتونو د نازلیدو سبب د نجران د نصرانیانو وفد وو.دا خلق راغلل او رسول الله ﷺ سره نې د حضرت عیسی ﷺ باره کښې خبرې اترې کولې چې عیسی ﷺ د الله ﷻ حصه دار او د الله ﷻ خوئې دې.د هغوئ تردید او د هغوئ جواب کښې دا آیتونه نازل شو.

**د نجران د عیسائی وفد تفصیل:-** ابن اسحاق خپل مشهور عام سیرت کښې لیکی او نوور مورخینو هم پخپلوکتابونو کښې لیکلی دی چې د نجران نصرانیانو د وفد په طور د نبی کریم ﷺ خدمت کښې د شپیتو کسانویو وفد لیږلې وو او په هغوئ کښې څوارلس کسان د هغوئ سرداران وو او د هغوئ نومونه دادی.① عاقب چې د ده نوم عبدالمسیح وو.②سید چې دده نوم ایهم وو.③ ابو حارثه ابن علقمه چې د بکر بن وائل رور وو.④ عبدالله ⑤ اویس بن حارث⑥زید او قیس⑦ یزید او دده ( ⑧ ⑨ ) دواړه خامن ⑩ خویلد (۱۱) عمر (۱۲) خالد (۱۳) محسن.دا ټول څوارلس سرداران وو او لیکن بیا په دوی کښې لونې سرداران درې سړی عاقب چې د قوم امیر وو او عقل مند ګڼړلې شو او صاحب د مشورې مشهور وو.او دا خلق به دده په رائې مطمئن کیدل.او سید چې د دوی مشر پادری وو او ابو حارثه چې مدرس اعلی وو او د بنو بکر بن وائل د عربو قبیلو نه وو خو نصرانی شوې وو او رومیانو به دده ډیر زیات خاطر کولو.او دده به نې ډیر زیات عزت او قدر کولو.[١] دا سړې د رسول الله ﷺ د صفتونو نه واقف وو او په مخکښنو کتابونو کښې نې د رسول الله ﷺ صفتونه لوستی وو،د زړه نه د رسول الله ﷺ دنبوت قائل وو.او نصرانیانوکښې چې دده عزت او قدر وو،او هلته چې دده کوم منصب او مقام ده ته حاصل وو،د هغې د تلو د ویرې دې د حق لارې نه یوطرفته وو.

[١] السیرة لابن هشام دلائل النبوة للبیهقی : ۳۸۲/۵، داروایت مرسل او ضعیف دې)۔

غرض دا چې دا وفد مدینه منوره کښې د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو او په هغه وخت کښې رسول الله ﷺ مازیګر مونځ نه فارغ ناست وو.دې خلقو نفیس ښکلې سپین لباس اغوستې وو.او ښکلې نرم څادرونه ئې اچولې وو.داسې معلومیدل لکه چې د بنو حارث بن کعب خاندان خلق وی.صحابه کرام ﷺ فرمائی چې د دوی پشان شان شوکت والا وفد بل رانغلو.هرکله چې د هغوئ د مونځ وخت شو نو رسول الله ﷺ اجازت سره ئې مشرق طرفته مونځ اوکړو.او په مسجد نبوی ﷺ کښې ئې د خپلې طر یقې مطابق مونځ ادا کړو.د مونځ نه پس ئې نبی کریم ﷺ سره خبرې اترې اوشوې.د هغه طرفنه خبرې کولو والا درې کسان ابو حارثه بن علقمه،عاقب یعنی عبدالمسیح او سید یعنی ایهم.اګر چې دوی په شاهی مذهب باندې وو لیکن څه کارونو کښې ئې اختلاف وو.مسیح نسبت درې واړه خیالات د دوی وو،یعنی هغه پخپله الله دې،او د الله ﷻ څوئې دې او د دریو نه دریم دې (نعوذبالله). الله ﷻ د دوی ددې ناپاك قول نه مبرا دې.او ډیر اوچت شان والا دې،

**د عیسایانو د عیسیٰ ﷺ د خدایئ دلیل:-** تقریبًا دټولو نصرانیانو هم دا عقیده ده چې د مسیح د الله کیدو دلیل دا وو چې هغه مړی ژوندی کوی او ړانده به ئې بینا کول،اوبیمارانو ته به ئې شفا ورکوله.د غیبو خبرې به ئې کولې،او خټې نه به ئې مرغئ جوړه کړه او بیا به ئې په هغې دم واچولو او هغه به والوتله.

**د دوی د دلیل جواب:-** د دې جواب دادې چې دا ټولې خبرې د الله ﷻ حکم سره کیدلې.څکه چې د الله ﷻ نبې د الله ﷻ په خبرو باندې د ربښتیا کیدو او د عیسی ﷺ په نبوت باندې قائمې شی(یعنی دلیل جوړ شی).

**کومو خلقو چې عیسیٰ ﷺ ته د خدائ څوئې وئیلو د هغوی دلیل:-** کوموخلقو چې عیسی ﷺ ته د الله تعالی څوئې وئیلو د هغوئ حجت دې چې د هغه په ظاهره څوك پلار نه وو.او په ځانګو کښې ئې خبرې کړې وې.دا خبرې داسې وې چې ددې نه مخکښې نه وې شوې.

**د دویمې ډلې د دلیل جواب:-** ددې جواب دادې چې دا هم د الله ﷻ د قدرت نښې دی چې خلق الله ﷻ لره داسبابو محکوم او عادت محتاج اونه ګڼړی.وغیره (مترجم).

**په دریو کښې د دریم ګڼړلو عقیدې دلیل:-** او دریو کښې دریم ګڼړئ به ئې ددې وجې وئیل چې هغوئ خپل کلام کښې فرمائیلی وو چې مونږ اوکړل او زمونږ امر او زمونږ مخلوق،مونږ فیصله اوکړه. وغیره. نوکه الله ﷻ یواځې وې نو داسې به نه وې.بلکه ماأوکړل اوماخپل مخلوق کښې فیصله اوکړه. وغیره.نو ثابت شو چې الله درې دی،پخپله الله او عیسی او مریم.

**د دریمې ډلې د عقیدې د دلیل جواب:-** ددې جواب دادې چې د زمونږ لفظ صرف د لوئې دپاره دې او عظمت د پاره دې(مترجم).الله ﷻ ددې ظالمانو او منکرو د قول نه پاك او اوچت دې.ددې د ټولو باطلو عقیدو بیان په قرآن پاك کښې اوشو.

هرکله چې دې درې واړو رسول الله ﷺ سره خبرې اترې اوکړې نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې تاسو مسلمانان شئ،هغوئ اوئیل چې مونږ خو منلو والا یو.نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې نه تاسوته پکار دی چې اسلام قبول کړئ.هغوئ اووئیل چې مونږ خو ستا نه مخکښې مسلمانان یو.نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چې نه ستاسو اسلام الله ﷻ ته قبول نه دې څکه چې تاسو الله ﷻ لره اولاد منئ او صلیب ته سجده کوئ،د خنزیرغوښه خورئ.

**شان نزول:-** هغوئ اووئیل چې ښه ده دا خو اووایه چې د عیسی ﷺ پلار څوك وو؟په دې رسول الله ﷺ خاموش شو.دې وخت کښې د سورة آل عمران د شروع نه تر دې ځانې پورې آیتونه ددې جواب کښې نازل شو.ابن اسحاق ددې مختصر تفسیر بیانوی او لیکی چې رسول الله ﷺ دا تلاوت کړل او

هغوئ ني پوهه کړل.د مباهلې دا ايت مبارك نې تلاوت کړو او وې فرمائيل که تاسونه منئ نو راځئ چې مباهله اوکړو.

**د عيسائي وفد د مباهلې نه تيخته:-** په دې آوريدو سره هغوئ ټولو اووئيل چې انې ابوالقاسم مونږ ته مهلت راکړه چې مونږ خپلو کښې مشوره اوکړو.نو بيا به تاسو ته ددې جواب درکړو.نو بيا هغوئ خانله کښيناستل او عاقب سره نې مشوره اوکړه هغه ډير هوښيار او عقل مند وو.هغه حتمي فيصله په دې الفاظوسره اوکړه چې انې د نصرانيانو ډلې تاسوته يقين سره معلوم شو چې محمدﷺ د الله ﷻ رينښتوني رسول دې.او تاسو ته دا هم معلوم دی چې دعيسی ؑ حقيقت هم هغه دې چې کوم تاسو د رسول الله ﷺ نه واوريدلو او تاسو ته ښه معلوم دی چې کوم يو قوم د نبی سره خلاف شی نو نه د هغوئ مشران باقی پاتې کيږی او نه کشران.بلکه ټول په ټوله ختم شی.ياد ساتئ که تاسو د مباحله کولود پاره مخکښې شوئ نو تاسو به تباه شئ.نو ياد ساتئ چې هم دا دين قبول کړئ او که نه نې منئ او د خپل دين او عيسی ؑ متعلق خپل خيالاتو باندې قائم اوسئ نو رسول الله ﷺ سره صلح اوکړئ او خپل وطن ته واپس شئ.

نو دې خلقو صلاح اومشوره اوکړه او بيا د نبی ﷺ دربار ته حاضر شو او وې ونيل چې انې ابوالقاسم ﷺ امونږ تاسو سره د مباهلې کولو دپاره تيار نه يو.تاسو په خپل دين اوسئ او مونږ به په خپلو خيالاتو يو.خو تاسو مونږ سره يو داسې صحابی اوليږئ چې هغه نه تاسو خوشحاله يئ او هغه زمونږ په مينځ کښې د مالی جګړو فيصله اوکړی.تاسو خلق مونږته ډير زيات ګران يئ.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې ښه ده تاسو ماسپخين بيا راشئ زۀ به تاسو سره يو امانتدار اوليږم.عمر فاروق ؓ فرمائی چې ما هيڅکله د سردار جوړيدو خواهش نه وو کړې سوا د هغه ورځې نه چې په کومه ورځ رسول الله ﷺ کوم تعريف کړې وونوما اووئيل چې ددې مصداق زۀ جوړ شم.ددې وجې زۀ په هغه ورځ وختی د ماسپخين مونځ ته لاړم.رسول الله ﷺ تشريف راوړو او د ماسپخين مونځ نې اوکړو،بيائې ښی طرفته نظر واچولو او بيا ئې ګس طرفته.زۀ به بار بار په خپل ځانې اوچت اوچت کيدم چې رسول الله ﷺ نظر په ما اولږی.رسول الله ﷺ ډير غور سره کتل او ابوعبيده بن جراح ؓ باندې نې نظر پريوتلو او هغه نې طلب کړو او ورته نې اوفرمائيل چې دوی سره لاړ شه او د دوی د اختلافاتو فيصله حق سره اوکړه.نو ابوعبيده بن جراح ؓ هغوئ سره تشريف يوړو.ابن مردويه کښې دا واقعه همداشان منقول ده ليکن په هغې کښې د سردارانو شمير دولس دې.او په دې واقعه کښې هم لږ شان طول دې او زياتې خبرې دی پکښې.

**ابو عبيده بن جراح ؓ د دې امت امين:-** صحيح بخاری کښې حذيفه ؓ نه روايت مروی دې چې نجرانی سردار عاقب او سيد د مباهلې ارادې سره رسول الله ﷺ لره راغلل.يو بل ته ئې اووئيل چې دا مه کوه،په الله قسم که دا نبی وی او مونږ ده سره مباهله اوکړه نو مونږبه سره د خپل اولاده تباه شو.بيا دواړه متفق شو او وې ونيل چې اتاسو چې مونږ نه څه طلب کوئ نو مونږ به هغه ادا کړو (يعنی د جزيې ورکول مو قبول دی).تاسو مونږ سره يو امين کس اوليږئ او هم امين به راسره ليږئ.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې ښه ده زۀ به تاسو سره پورا او کامل امين کس اوليږم.د رسول الله ﷺ صحابه کرام ؓ يو خوابل خوانه په کتلوسره شو څه ګوری چې رسول الله ﷺ څوك منتخب کوی.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې انې ابوعبيده بن جراح ؓ ته اودريږه.هرکله چې هغه اودريدو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې

دادې د دې امت امين.(۱)د صحيح بخارى يو بل حديث كښې دى چې د هر امت يو امين وى او د دې امت امين ابوعبيده بن جراح ﷺ دې.(۲)

**د ابو جهل،د يهوديانو،او د عيسايانو د وفد د عمل رد عمل په څه وو:-** مسند احمد كښې د ابن عباس ﷺ نه مروى دى چې ابوجهل ملعون اووئيل كه ما محمد ﷺ په كعبه كښې په مونځ اوليدو نو زۀ به ترې څټ اووهم.فرمائى چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل كه هغه داسې كړې وې نو تاسو ټولو به كتلى وې چې فرښتو به دهغه مرغټې خفه كړې وو.او يهوديانو چې كله قرآن پاك وئيلى وو چې راشئ چې د دروغژنو دپاره دعا اوكړو نو كه هغوئ دعا غوښتلې وې نو ټول په ټوله به هلاك شوى وو او خپل ځايونه به ئې په جهنم كښې كتلى وو.اوكومو نصرانيانو ته چې د مباهلى دعوت وركړې شوې وو كه هغوئ رسول الله ﷺ سره مباهله كړې وې نو په واپسئ كښې به د خپلو مالونو او اولاد نه خلاص شوى وو.په صحيح بخارى او صحيح مسلم كښې هم دا حديث شته دې.امام ترمذى دې ته حسن وائى (۳)امام بيهقى په خپل كتاب دلائل النبوت كښې د نجران د وفد قصه ډېر په تفصيل سره ذكر كړې ده.مونږ هغه دلته نقل كوو.خكه چې په هغې كښې ډېر زيات فوائد دى.اگر چې په هغې كښې غرابت هم دې.او دې مقام سره هغه ډيرزيات مناسبت لرى.سلمه بن عبديسوع دخپل نيكه نه روايت كوى اودې مخكښې نصرانى وو،بيا مسلمان شو چې رسول الله ﷺ دسورة طس (طاسين)قرآن پاك كښې د نازليدو نه مخكښې اهل نجران ته خط اوليكلو وو او د هغې عبارت دا وو چې:

﴿ بسم اله ابراهيم واسحاق ويعقوب من محمد ن النبى رسول الله الى اسقف نجران واهل نجران اسلم انتم فانى احمد اليكم اله ابراهيم واسحاق ويعقوب اما بعد فانى ادعوكم الى عبادة الله من عبادة العباد و ادعوكم الى ولاية الله من ولاية العباد فان ابيتم فالجزية فان ابيتم فقد اذنتكم بحرب والسلام ﴾:

**ترجمه:-** يعنى دا خط زۀ شروع كوم د ابراهيم ﷺ او اسحاق ﷺ او يعقوب ﷺ د رب د نوم نه،دا خط دې د محمد ﷺ د طرفنه چې د الله تعالى رسول دې او نبى دې،سردار د نجران او اهل نجران طرفته،زۀ ستاسو مخكښې د الله تعالى ثناء وايم چې د ابراهيم ﷺ او اسحاق ﷺ او يعقوب ﷺ معبود دې،بيا زۀ تاسو ته دعوت دركوم چې د بنده گانو عبادت پريږدئ او د الله ﷻ عبادت طرفته راشئ.او د بندگانو ولايت پريږدئ او د الله ﷻ ولايت طرفته راشئ،كه تاسو دا نه منئ نو جزيه ادا كړئ او ماتحتى قبوله كړئ او كه د دې نه هم انكار كوئ نو تاسو ته اعلان جنگ دې،والسلام.

**په دې خط د اسقف رد عمل:-** هركله چې دا خط اسقف ته اورسيدو نو هغه په دې ډيرزيات اوويريدو او په رپيدو شو او شرحبيل بن وراعه ئې راوغوښتو.او شرحبيل د قبيله همدان نه وو او د سلطنت مشير وو.هر كله چې به څه مشكل كار پيښ شو نو دې به دټولو نه مخكښې يعنى ايهم او سيد اوعاقب نه هم مخكښې راوغوښتلې شو او ده سره به مشوره كولې شوه.هركله چې دې راغلو نو اسقف ورته د رسول الله ﷺ خط مبارك وركړو،هركله چې هغه اولوستو نو اسقف ترې تپوس اوكړو چې څه خيال دې دې؟شرحبيل اووئيل چې بادشاه ته ددې خبرې ښه علم دې چې د اسماعيل ﷺ اولاد كښې د الله تعالى ديو نبى د راتلو وعده كړې شوې ده.څه پته لرى چې هغه هم دا نبى وى.د نبوت امر كښې زۀ څه رائې وركولې شم؟.كه په امور سلطنت كښې څه خبره وې نو ما به په خپلو دماغو باندې زور اچولې وو اوڅه خبره به مې كړې وه.اسقف هغه بيل كښينولواو عبدالله بن شرحبيل ئې راوغوښتو.دې دسلطنت مشيرانو كښې وو.اودحمير قبيلې نه وو.هغه ته ئې خط وركړو اوهغه اولوستو.د رائې تپوس ترې نه

---

(۱) صحيح بخارى كتاب المغازى باب قصة اهل نجران : ۴۲۲۰. صحيح مسلم : ۲۴۱۹،)-
(۲) صحيح بخارى كتاب المغازى باب قصة اهل نجران : ۴۳۸۲، صحيح مسلم: ۲۴۱۹،)-
(۳) احمد: ۲۴۸/۱، صحيح بخارى كتاب التفسير سورة اقرا باسم......۴۹۵۸، ترمذى: ۳۳۴۵)-،

اوشو نوهغه هم دا اونيل چې كوم مخكښې مشير ونيلي وو.هغه هم بادشاه لرې كښينولو.بياني جبار بن فيض راوبللو.اوهغه دبنوحارث قبيلې نه وو.هغه هم دااوونيل چې څه هغه دواړو مشيرانو ونيلي وو

**د بادشاه خپلو عوامو ته رجوع كول:-** هركله چې بادشاه اوكتل چې ددې درې واړو مشيرانو رائې يوشان ده نو حكم ئې اوكړو چې ناقوس دې اوغږولې شي،اور دې بل كړې شي،او ګرجو كښې دې بيرغونه اوچت كړې شي.د هغوى دا طريقه وه چې كله به د سلطنت څه اهم كار پيښ شو او د شپې جمع كيدل به پكار وو نو همدا به ئې كول.او كه د ورځې وخت به وو نو په ګرجو كښې به اور بل كړې شو او ناقوس به په زوره زوره سره غږولې كيدو.دې حكم سره ځلورو واړو طرفونو ته اور بل كړې شو.او د ناقوس آواز هر يو لره بيدار كړو.او كله چې ئې بيرغونه اوچت اوليدل نو ټول دې وادئ كښې راجمع شو او دا وادي دومره اوږده وه چې يو تيز رفتار سور به ددې ديو سر نه بل سر پورې د سحر نه ترمابنامه پورې رسيدو.په دې كښې درې اويا كلي وو.هركله چې دا ټول خلق جمع شو نو اسقف ورته د رسول الله ﷺ خط مبارك واورولو او تپوس ئې ترې اوكړوچې ستاسو څه رائې ده نوټولو عقل مندواوونيل چې شرحبيل بن وداعه،همدانى بن شرحبيل،اصبحى اوجباربن فيض لره په طور د وفد اوليږئ چې پوره معلومات راوړي.

**د دې وفد د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضريدل او رسول الله ﷺ استغنا**-اود دې ځائې نه دا وفد د درې واړو سردارئ كښې روان شو او مدينې منورې ته اورسيدو.هغوئ يو اوږد سفر اوكړو او هغوئ نقش و نګار والا د ريښمو اوږدې اوږدې جامې واغوستې او دسرو زورو ګوتې ئې په ګوتو كړې.او د خپلو ځادرونو پلوونه ئې اوتړل او رسول الله ﷺ خدمت كښې حاضر شو او سلام ئې اوكړو.خو رسول الله ﷺ ورته جواب ورنكړو،ډير وخت پورې ئې انتظار اوكړو چې رسول الله ﷺ څه خبره اوكړى خو د دې سرو زرو ګوتو او ريښمو جامو په وجه رسول الله ﷺ هغوئ سره خبرې اونكړې.بيا دا خلق د عثمان بن عفان ﷛ او عبدالرحمان بن عوف ﷛ تلاش كښې اووتل.او دې بزرګانو سره د هغوئ دا ړومبې ملاقات وو.دوى نى د مهاجرينواو انصارو يو ډله كښې اوليدل.هغوئ ته ئې واقعه بيان كړه چې رسول الله ﷺ مونږ ته خط ليكلې دې او مونږ د هغې جواب وركولو د پاره پخپله حاضر شوى يو.رسول الله ﷺ ته مو سلام اوكړو خو رسول الله ﷺ جواب رانكړو او ډير وخت پورې د رسول الله ﷺ خدمت كښې ناست وو خو هغوئ مونږ سره څه خبره اونكړه.او آخر مونږ ستړى واپس شو.تاسو اوفرمائې چې آيا مونږ همداسې واپس شو.دوى دواړو على بن ابوطالب ﷛ ته اوونيل چې تاسو هغوئ ته جواب وركړئ.على ﷛ اوفرمائيل چې زما خيال دې چې دا خلق د سرو ګوتمې او ريښمو جامې اوباسى او هم هغه سفر والا لباس واچوى او دوباره د رسول الله ﷺ خدمت كښې حاضرشى،نو هغوئ هم داشان اوكړل او په دې معمولى لباس كښې د رسول الله ﷺ خدمت كښې حاضر شو.سلام ئې اوكړو،رسول الله ﷺ ورته د سلام جواب وركړو،بيا ئې اوفرمائيل په الله ﷻ مې دې قسم وى دوى مخكښې هم ماته راغلى وو خو دوى سره شيطان وو.

اوس د سوال اوجواب خبرې اترې شروع شوې.رسول الله ﷺ به هم تپوس كولو او جواب به ئې هم وركولو.دا شان هغوئ هم سائل وو او هم مجيب.آخر كښې هغوئ تپوس اوكړو چې د عيسى ؑ باره كښې تاسو څه وائې؟چې هغه مونږ خپل قوم ته اووايو.مونږ په دې خوشحال يو تاسو نبى يئ او تاسو نه دا ستاسو په خوله مباركه واورو چې تاسو دعيسى ؑ باره كښې څه وائې.نورسول الله ﷺ اوفرمائيل چې ماسره خو ددې جواب نن نشته دې تاسو پاتې شئ زما رب چې ماته دې باره كښې څه اوفرمائى هغه به تاسو ته اووايم.

په دويمه ورځ هغوئ بياراغلل نو هم په هغه وخت كښې نازل شوې آيت﴿إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ﴾د﴿الْكَٰذِبِينَ﴾پورې تلاوت اوفرمائيلو،خو هغوى ددې خبرې منلو نه انكار اوكړو.په دويمه ورځ سحر سحر رسول

الله ﷺ حسن ﷺ او حسين ﷺ سره تشريف راوړو.دوی پسې فاطمه ﷺ راروانه وه.په هغه وخت کښې د رسول الله ﷺ ډيرې بيبيانې وې.شرحبيل اوونيل چې تاسو ته پته ده د نجران ټوله وادی زما منی او زما رائې صحيح منی.واورئ په الله قسم دا معامله ډيره لويه ده که دا سړې ﷺ مبعوث شوې وی نو دټولو نه مخکښې به دده په نظر کښې مونږ مطعون يو.او د ټولو نه مخکښې به مونږ دده ترديد کوونکی جوړ شو.دا خبره به د دوی او د دوی د ملګرو د زړه نه لاړه نشی او مونږ باندې به څه نه څه مصيبت راشی.عربو کښې د ټولو نه زيات دوی ته نزدې زۀ يم او واورئ که دا سړې مرسل دې نو د مباهلې کولو په صورت کښې به په مخ د زمکې به زمونږ يو ويښته او نوک هم پاتې نشی.دده دواړو ملګرو اوونيل چې انې ابو عامر ستاسو څه رائې ده؟ده اوونيل چې زما رائې ده چې مونږ هم دې حاکم جوړ کړو او چې څه حکم دې راکړی مونږ هغه منظور کړو.او دې به هيڅ کله خلاف عدل حکم نه راکوی. دې دواړو د ده خبره اومنله.نو شرحبيل رسول الله ﷺ ته ئې اوونيل چې زۀ د مباهلې نه بهتر څيز ستاسو په خدمت کښې پيش کوم.رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چې هغه څه څيز دې؟ د نن ورځې اوشپې او د صبا دپاره چې تاسو مونږ ته څه حکم راکوئ هغه مونږ ته منظور دې.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې شايد دا فيصله ستاسو نور خلق اونه منی.شرحبيل اوونيل چې تاسو دې باره کښې زما ددې ملګرو نه تپوس اوکړئ.رسول الله ﷺ دهغه دواړو نه تپوس اوکړو نو هغوئ جواب ورکړو چې د ټولې وادئ خلق د دوی په رائې روان دی.هلته يو کس هم داسې نشته دې چې دده فيصله اوغورزوی. نو رسول الله ﷺ دا درخواست قبول کړو او ورسره ئې مباهله اونه کړه.او هغوئ واپس شو.په دويمه ورځ هغوئ دوباره د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو نو رسول الله ﷺ هغوئ ته يو تحرير ورکړو چې په هغې کښې د بسم الله نه پس دا مضمون وو چې دا تحرير د الله ﷻ د نبی محمد رسول الله ﷺ د طرف نه د نجران اوسيدونکو دپاره دې.په دوی باندې د الله ﷻ د رسول ﷺ حکم جاری وو.هره لمحه کښې اوهر سپين او تور کښې او هر غلام کښې ليکن د الله رسول ﷺ دا ټول هغوئ ته ورکوی،دوی دې هر کال صرف دوه زره حلې ورکوی،يو زر رجب کښې او زر په صفر کښې وغيره وغيره ([1])

**د ټولو نه وړومبئ جزيه:-** پورا عهد نامه ئې هغوئ ته ورکړه،د ې نه معلوميږی چې د دوی دا وفد په نهمه هجرئ کښې راغلې وو.ددې وجې زهری فرمائی د ټولو نه مخکښې جزيه نجران والو رسول الله ﷺ ته ورکړې وه.او جزيه آيت د فتح مکې نه پس نازل شو.او هغه دا دې چې﴿قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ﴾.دې آيت کښې اهل کتابو نه د جزيې اخستلو حکم شوې دې.

**د مباهلې په صورت کښې د عذاب نازليدل:-** ابن مردويه کښې دی چې عاقب او طيب رسول الله ﷺ ته راغلل او رسول الله ﷺ هغوئ ته د مباهلې د پاره اوونيل.او په صبا حضرت نبی کريم ﷺ حضرت علی ﷺ،فاطمه ﷺ ،حسن ﷺ اوحسين ﷺ سره تشريف راوړو.او هغوی ته ئې خبر اوکړو خو هغوئ قبول نه کړو.او خراج ورکول ئې منظورکړل.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې په هغه ذات قسم چې هغه زۀ حق سره راليږلې يم،که دې دواړو نه وو وئيلې نو په دوی باندې به په دې وادئ کښې اور وريدلې وو.جابر ﷺ اوفرمائيل چې ﴿نَدْعُ أَبْنَاءَنَا﴾والا آيت د دوی باره کښې نازل شوې دې.﴿وَأَنفُسَنَا﴾ نه مراد پخپله رسول الله ﷺ اوعلی ﷺ.﴿أَبْنَاءَنَا﴾ نه مراد حسين ﷺ اوحسن ﷺ.﴿وَنِسَاءَنَا﴾ نه مراد فاطمه ﷺ ده ([2]) مستدرک حاکم وغيره کښې هم د دې معنی يو حديث مروی دې.([3])

---

[1] دلائل النبوة للبيهقی : ٣٨٤/٥، وسنده ضعيف.محمد بن ابی محمدمجهول دې )-

[2] دلائل لابی نعيم: ٢٤٤، ددې سند کښې بشر بن مهران او محمد بن دينار راوی ضعيف دې.(الميزان ٣٢٥/١،رقم: ١٢٢٤، رقم: ٧٥٠٤)-

[3] حاکم : ٥٩٣/٢،)-

قوله تعالى:- اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ
بیاد الله ﷻ ارشاد دې چې مونږ کوم د عیسی علیه السلام شان بیان کړو دا حق او رښتیا دی.په دې کښې لږ هم کمې زیاتې نشته دې.
قوله تعالى:- وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ۝
الله ﷻ د عبادت لائق دې بل څوك نشته دې.هم هغه غلبه والا او حکمت والا دې.
قوله تعالى:- فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ عَلِیْمٌۢ بِالْمُفْسِدِیْنَ
اوس هم که دوی مخ واړوی او په نورو خبرو پسې ځی نو الله ﷻ هم داسې مفسدان او باطلو لره ښه پیژنی.دوی ته به بدترینه سزا ورکوی.هغه ذات پوړا قوت والا دې د هغه نه هیڅوك نشی تښتیدې.او نه څوك د هغه مقابله کولې شی.او هغه لوئې ذات تعریفونو والا دې.مونږ دهغه دعذابونو نه نه شو بچ کیدې مونږ د هغه د عذابونو نه پناه غواړو.

| |
|---|
| قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ |
| \| اووایه\| چې اې اهل کتابوا راشئ \| یوې داسې خبرې ته |
| \| ته دوی ته اووایه چې ائې دکتاب(تورات اوانجیل)خاوندانو راشئ دې خبرې ته |
| سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ |
| چې یو شان ده\| په منځ زمونږ\|او په منځ ستاسوکښې\|هغه دا چې نه به کوؤ عبادت \| بغیر دالله نه دبل چا |
| چې کومه زمونږ اوستاسومینځ کښې برابره ده\| چې مونږ به دالله پاک نه سوا دبل هیچا عبادت نه کوؤ |
| وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا |
| او نه به شریکوؤ \| هغه سره \| هیڅ څیز \| او نه به نیسی \| بعضې زمونږ \| بعضو لره \| خدایان \| |
| اوهیڅ څیزبه هغه سره (په عبادت کښې) نه شریکوو\|.......اوپه خپل مینځ کښې به د الله نه سوا یو بل ته |
| مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ۝ |
| بغیر دالله نه\| نوکه هغوئ مخ واړوؤ\| نو ورته اووایئ\|چې گواهان وسئ \|په دې چې مونږه\| مسلمانان یو |
| رب نه وایو\|نوکه دوئ ترې نه مخ اوگرزولو \| نوتاسو اووائې چې (ښه ده) په دې خبره گواهان شئ چې مونږ تابعدار یو |

قوله تعالى:- قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ
**عیسایانوته دتوحید دعوت:-** یهودیانواو نصرانیانو او ددوی په شان خلقو ته داخطاب کیږی.دکلمې اطلاق په مفیده جمله باندې کیږی.لکه دلته کلمه وانی اوبیا ﴿سَوَآءٍ﴾ سره ددې صفت نې بیان کړې دې د﴿سَوَآءٍ﴾ معنی عدل او انصاف والا چې په دې کښې مونږ تاسو برابر یو.بیا ددې د تفسیر هغه خبره دا ده چې د یو الله ﷻ عبادت اوکړئ او د هغه پاك ذات سره هیڅ بت لره شریك مه جوړوئ.او مه د بتانو عبادت کوئ اومه د صلیب او نه د تصویر او نه د الله ﷻ نه سوا د بل چا او نه د اور او نه دبل څیز بلکه صرف دالله ﷻ وحده لاشریك عبادت کوئ،همدا دعوت د ټولونبیانو ﷺ وو.لکه فرمان دې چې ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِیْٓ اِلَیْهِمْ فَسْـَٔلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ۝﴾ یعنی ستاسونه مخکښې چې کوم کوم رسول مونږ اولیږودټولو طرفته مو هم دا وحی اوکړه چې زما نه سوا هیڅوك د عبادت لائق نشته دې نو تاسو ټول زماعبادت کوئ.بل ځائې کښې ارشاددې چې ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِیْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ ۚ﴾ یعنی مونږ هرامت ته رسول اولیږلو اودا اعلان مو اوکړو چې دالله ﷻ عبادت کوئ او دهغه نه سوا د بل چا د عبادت نه ځان بچ کړئ.

قوله تعالى: -﴿وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾

بيا فرمائي چې خپلو کښي دې هم مونږ دالله ﷻ نه سوا دبل څوک رب نه جوړوو ،ابن جريج رحمه الله فرمائي يعني د الله ﷻ نافرمانۍ کښې د يو بل اطاعت مه کوئ.حضرت عکرمه رحمه الله فرمائي چې د الله ﷻ نه سوابل چا ته سجده مه کوئ.بيا که دا خلق دا انصاف والادعوت قبول نکړي نودوی لره په خپل اطاعت ګزارئ باندې ګواه جوړکړئ.مونږ دبخاری شريف په شرح کښې ددې واقعې تفصيل سره ذکر کړې دې.په هغې کښې دی چې ابوسفيان کله د قيصر روم دربار ته راوبللې شو او شاه روم ترينه د رسول الله ﷺ د نسب تپوس اوکړو نو اګر چې هغه په هغه وخت کښې کافر او د رسول دښمن وو د رسول الله ﷺ د خاندانی شرافت اقرار ئې اوکړو.او دا شان د هر هر سوال ئې صفا صفا جواب ورکړو.دا واقعه د صلح حديبيه نه پس اوفتح مکه نه مخکښې شوې وه.ددې وجې قيصرروم دې سوال جواب کښې اوونيل چې﴿ آيا هغه ر سول ﷺوعده خلافی هم کوی؟.ابوسفيان اوونيل چې نه کوی ليکن اوس زمونږ هغه سره يومعاهده شوې ده،پته نشته چې په دې کښې به څه کوی؟دلته صرف مقصد دادې چې ددې ټولو خبرونه پس د رسول الله ﷺ نا مه مبارك پيش کيږی.چې په هغې کښې﴿ بسم الله ﴾الخ نه پس دا ليکلې کيږی چې دا خط د محمد د طرفه دې چې د الله ﷻ رسول ﷺ دې د هغه چا طرفته چې د روم بادشاه دې.د الله ﷻ طرفنه دې سلام وی په هغه چا باندې چې د رسالت متبع دې،دې نه پس د دې نه اسلام قبول کړه نو سلامتيا کښې به پاتې شې،اسلام قبول کړه الله ﷻ به تاته دوچند اجر درکړی او که تا مخ واړولو نو د ټولو رئيسانو بوج به په تا باندې وی.بيا ئې دا آيت مبارك اوليکلو.(۱)

امام محمد بن اسحاق وغيره ليکلی دی چې د دې سورت يعنی آل عمران نه واخله تر د اتياؤ نه زيات آيتونه د نجران د وفد باره کښې نازل شوی دی.امام زهری رحمه الله فرمائي چې د ټولو نه مخکښې جزيه هم دې خلقو اداکړې ده.او په دې کښې مطلقا خلاف نشته دې چې دا آيت د جزيې د فتح مکه نه پس نازل شوې دې،نودا اعتراض پيداکيږی چې هرکله دا آيت د فتح مکې نه پس نازل شوې دې،بيا د فتح نه مخکښې رسول الله ﷺ دا آيت مبارك هرقل ته څنګه اوليکلو.د دې جواب ډيرو طريقو سره ورکولې شی،يوداچې ممکن دی چې داآيت دوه ځل نازل شوې وی دحديبيه نه مخکښې اوفتح مکې نه وروستو.

دويم جواب دادې چې ممکن دی چې د نجران د وفد باره کښې دسورة د شروع نه واخله تردې آيت پورې نازل شوی وی اودا آيت ددې نه مخکښې نازل شوې وی.په دې صورت کښې ابن اسحاق دا اوفرمائيل چې د اتياؤ نه زيات آيتونه ددې وفد باره کښې نازل شوی دی دا محفوظ نه دی خکه چې د ابوسفيان والا واقعه بالکل ددې خلاف ده.دريم جواب دادې چې ممکن دی چې دنجران وفد د حديبيه نه مخکښې راغلې وی.اوهغوئ چې څه منظور کړی وو دا صرف د مباهلې نه د بچ کيدو دپاره په طوږد مصالحت ورکړی وی اوجزيه ئې نه وی ادا کړې.اودا د اتفاق خبره وی چې د جزيې دا آيت د د دې واقعې نه پس نازل شوې وی.چې دکومې سره داواقعه اتفاقا ملحقه شوه.لکه عبدالله بن جحش رضي الله عنه د بدرنه مخکښې غزوه کښې دغنيمت مال په پنځو حصوکښې تقسيم کړواوپنځمه حصه ئې باقی اوساتله او نورې حصې ئې لښکر کښې تقسيم کړې.بيادې نه پس د غنيمت والا آيت ددې مطابق نازل شو اوهم دا حکم اوشو.

څلورم جواب دادې چې کيديشی دا احتمال وی چې رسول الله ﷺ کوم خط هرقل ته ليکلې وو په هغه خط کښې ئې دا خبره پخپله ليکلې وی او بيا د رسول الله ﷺ الفاظ وحی کښې نازل شوی وی.لکه دعمرفاروق رضي الله عنه د پردې د حکم باره کښې هم دغه شان يو آيت نازل شوې وو او د بدر قيديانو باره

---

(۱) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة ال عمران باب ( قل يا اهل الکتاب تعالوا الی کلمة....) : ۴۵۵۳)-

کښې هم د هغوئ موافقت کښې د الله ﷻ فرمان نازل شو.او د منافقانو د جنازې نه کولو په حقله هم دا خبره قائمه شوه.او مقام ابراهیم لره د مصلی خائې جوړولو باره کښې هم وحی نازله شوه﴿عَسٰى رَبُّهٗۤ اِنْ طَلَّقَكُنَّ﴾هم د دوی په موافقت کښې نازل شو،نو دا آیت هم دا شان د رسول الله ﷺ د فرمان موافقت کښې نازل شو.او دا ډیر ممکن هم دی.

يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تُحَآجُّوْنَ فِیْۤ اِبْرٰهِیْمَ وَمَاۤ اُنْزِلَتِ

اې اهل کتابو | ولې جګړه کوئ تاسو | په | باره دابراهیم کښې | اونه دې نازل کړې شوې

انې دکتاب خاوندانو تاسو ولې مونږ سره دابراهیم ﷺ باره کښې جګړه کوئ | حال دا چه تورات او انجیل

التَّوْرٰىةُ وَالْاِنْجِیْلُ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِهٖ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝ هٰۤاَنْتُمْ هٰۤؤُلَآءِ

تورات | او انجیل | مګر | روستو دهغه نه | آیا نۀ لرئ | عقل تاسو | خبردار تاسو خو | هغه کسان یئ

خو دهغه نه(په زرګونو کلونو پس)نازل شوی دی | نو تاسو په دومره ښکاره خبره هم نه پوهیږئ | تاسو خو هغه خلق یئ

حَاجَجْتُمْ فِیْمَا لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ فَلِمَ

چې بحثونه مو اوکړل | په هغه څه کښې | چې وو تاسو لره | په هغې کښې | څه علم | نو ولې |

چې په هغه مسئلو کښې موهم ښه جګړې کړې دی دکوم چه تاسو ته لږ ډیر علم وو | نو اوس ولې

تُحَآجُّوْنَ فِیْمَا لَیْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَاللّٰهُ یَعْلَمُ

بحثونه کوئ | په هغې کښې | چې نشته | تاسو دپاره | په هغې باندې | هیڅ علم | او الله پوهیږی

په هغه مسئلو کښې بحثونه کوئ په هغه چې تاسو دهغې نه هډو خبر هم نه یئ | او الله پاک ډیر ښۀ پوهیږی

وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ مَا كَانَ اِبْرٰهِیْمُ یَهُوْدِیًّا وَّلَا نَصْرَانِیًّا وَّلٰكِنْ

او تاسو | نۀ پوهیږئ | نۀ وو | ابراهیم ﷺ | یهودی | اونۀ | عیسائی | بلکه

او تاسو نه پوهیږئ | ..........نه ابراهیم ﷺ یهودی ........وو .......اونه نصرانی وو هغه خو

كَانَ حَنِیْفًا مُّسْلِمًا ؕ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ ۝ اِنَّ اَوْلَى النَّاسِ

وو هغه | یو مخیزې مسلمان | او نۀ وو هغه | دمشرکانو نه | بیشکه | زیات نزدې | دخلقو نه

یو مخیز مسلمان وو | او دمشرکانو په ډله کښې هم شامل نه وو | بیشکه خلقو کښې د ټولونه زیات نیزدې

بِاِبْرٰهِیْمَ لَلَّذِیْنَ اتَّبَعُوْهُ وَهٰذَا النَّبِیُّ وَالَّذِیْنَ

ابراهیم ته | خامخا هغه کسان دی | چې تابعداری ئې کړې ده دهغه | او دا نبی دې | او هغه کسان دی

ابراهیم ﷺ ته هغه کسان دی چې دهغه تابعداری ئې کړې وه | ... ........ او دا پیغمبر او ټول

اٰمَنُوْا ؕ وَاللّٰهُ وَلِیُّ الْمُؤْمِنِیْنَ ۝

چې ایمان ئې راوړې دې | او الله دوست او مددګار دې | صرف دمؤمنانو |

مؤمنان ورته نزدې دی | ...............او الله پاک دمومنانو ملګرې دې |

**دیهودو او نصرانیانو د بې علمۍ په بنیاد جګړې**:-یهود ابراهیم ﷷ لره خپل خان او نصرانیان ابراهیم لره خپل خان ګڼړی اوخپلوکښې به ئې په دې باندې بحث کولو.الله ﷻ په دې آیت مبارك کښې ددواړو د دعوؤ تردید کوی.

**د ایت شان نزول**:-ابن عباس ﵄ فرمائی چې دنجران علماء لره د یهود علماء راغلل او د رسول الله ﷺ مخکښې د دوی جګړه شروع شوه.هر یوفریق به دا دعوی کوله چې ابراهیم ﷷ زمونږ نه وو(۱)نو په دې باندې دا آیت نازل شو.

**قوله تعالی**:-يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تُحَآجُّوْنَ فِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ وَمَآ اُنْزِلَتِ التَّوْرٰىةُ وَالْاِنْجِيْلُ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِهٖ
چې اې یهودو اتاسو ابراهیم ﷷ لره خپل خان نه ولې شمیرئ؟ حالانکه هغه زمانه کښې نه خوحضرت موسی ﷺ وو اونه انجیل اونه تورات.موسی ﷷ او دتورات کتاب خو خلیل الله ﷷ نه پس راغلی وو.دا شان اې نصرانیانو تاسو ابرا هیم ﷷ ته نصرانی څنګه ونیلې شئ ؟حالانکه نصرانیت خو د هغوئ نه ډیره موده پس ظاهر شوی دې.آیا تاسو دومره غټه خبره باندې هم نه پوهیږئ او عقل نه لرئ.

**قوله تعالی**:-هٰٓاَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ حَاجَجْتُمْ فِيْمَا لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ
اوبیادادواړه فرقې الله ﷻ د دوی دجګړو په وجه ملامته کوی.که تاسو دخپل دین باره کښې چې تاسو سره دې بحث مباحثه کوله نو د خیرخبره وه.تاسو خو د هغه باره کښې خبره کوئ چې تاسو ته ئې هم علم نشته دې.

**قوله تعالی**:-وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ
تاسوته پکاردی چې تاسو ته دکوم څیز علم نه وی هغه علیم ذات ته اوسپارئ څکه چې هغه علیم ذات دهرڅیز علم لری.نو ددې وجې الله ﷻ فرمائی چې الله ﷻ ته معلوم دی اوتاسو ته هیڅ خبر نشته .

**قوله تعالی**:-مَا كَانَ اِبْرٰهِيْمُ يَهُوْدِيًّا وَّلَا نَصْرَانِيًّا وَّلٰكِنْ كَانَ حَنِيْفًا مُّسْلِمًا
اصل کښې ابراهیم خلیل الله ﷷ خو نه یهودی وو اونه نصرانی،هغه خود شرك نه بیزاره او د مشرکو نه بیل او صحیح اوکامل ایمان والا وو.او هغه بالکل مشرك نه وو.دا آیت دسورة توبې آیت پشان دې چې کوم مخکښې تیر شوی دې﴿وَقَالُوْا كُوْنُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوْا﴾ یعنی دا خلق وائی چې یهودی یا نصرانی جوړیدو کښې هدایت دې.الخ.

**قوله تعالی**:-اِنَّ اَوْلَى النَّاسِ بِاِبْرٰهِيْمَ لَلَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ وَهٰذَا النَّبِيُّ...
بیافرمائی چې دټولو نه زیات د ابراهیم خلیل الله ﷷ د دین حقدار دهغوئ د زمانې خلق وواو اوس دا نبی حضرت محمد رسول الله ﷺ دې اوتاسو سره چې د مهاجرینو او انصارو ایماندارو کوم جماعت دې او په دوی کښې چې څوك هم ستاسو حمایت کوی قیامت پورې.
زما د زړه دوست:- اورسول الله ﷺ فرمائی چې د هر نبی د زړه دوستان د نبیانو نه وی زما د زړه دوستان نبیانوکښې زما پلار ابراهیم خلیل الله ﷷ دې.رسول الله ﷺ ددې آیت تلاوت اوفرمائیلو( ترمذی وغیره )(۲)

**قوله تعالی**:-وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ
بیا فرمائی چې څوك هم د الله ﷻ رسول باندې ایمان لری الله تعالی ولی د مومنانو دې.

| طَآئِفَةٌ | وَدَّتْ | |
|---|---|---|
| یوه ډله | خوښوی | |
| یوه ډله......... | | |

۱) ددې سند کښې محمد بن ابی محمدمجهول راوی دې( الضعفاء والمتروکین : ۹۲/۳، رقم: ۳۱۷۹)-
۲) ترمذی کتاب التفسیر: باب و من سورة آل عمران : ۲۹۹۵)-

مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ ؕ وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّآ

د اهل کتابو نه | چې په څه طريقه بې لارې کړي تاسو | او نه بې لارې کوي هغوئ | مګر

داهل کتابو داغواړي چې (په څه چل)تاسوګمراه کړي| خودوی صرف خپل خانونه ګمراه کوي

اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۶۹﴾ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

خانونه خپل| خو هغوئ نه پوهيږي | اې اهل کتابو | ولې| انکار کوئ تاسو | دآيتونو دالله نه

او په دې هم پوهه نه دی |............... اې اهل کتابوتاسوولې دالله دآيتونه نه انکار کوئ

وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ ﴿۷۰﴾ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَلْبِسُوْنَ

او حال دا چې تاسو | پخپله ګواهي کوئ | اې اهل کتابو | ولې| ګډوئ تاسو |

سره ددې چې تاسو ئې پخپله وينئ ګورئ| اې دکتاب خاوندانوولې تاسو حق د باطل سره ګډ وډ کوئ

الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۷۱﴾ وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ

حق دباطل سره | او پټوئ تاسو | حق | او تاسو | پوهيږئ | او اوونيل ايوې ډلې | د

.............او ولې سره دعلمه حق پټوئ| .......................اويوې ډلې د

مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اٰمِنُوْا بِالَّذِيْٓ اُنْزِلَ عَلَى الَّذِيْنَ

اهل کتابو نه | چې ايمان راوړئ | په هغه | چې نازل کړې شوې دی| په هغه کسانو |

داهل کتابو نه دا صلاح اوکړه چې ددې پيغمبرپه منونکو کوم کتاب نازل شوې دې ........

اٰمَنُوْا وَجْهَ النَّهَارِ وَاكْفُرُوْٓا اٰخِرَهٗ لَعَلَّهُمْ

چې ايمان ئې راوړې دې|په اول دورخ کښې | او انکار ئې اوکړو | په آخر دورخ کښې| دپاره ددے چې هغوئ

په هغې باندې سحروخت کښې ايمان راوړئ او ماښام بيا ترې نه انکار اوکړئ| اميد دې چې په دې به

يَرْجِعُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَلَا تُؤْمِنُوْٓا اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ ؕ قُلْ

واپس شي دايمان نه|اومه منئ خبره دهيچا |مګردهغه چا| چې تابعداری کوي| ددين ستاسو | اووايه اې نبي

نورخلق هم واپس شي | (اوپه خپلو کښې ئې اوونيل چې)دخپل مذهب دسړي نه بغير دچا خبره مه منئ ورته اووايه

اِنَّ الْهُدٰى هُدَى اللّٰهِ ۙ اَنْ يُّؤْتٰٓى اَحَدٌ مِّثْلَ مَآ اُوْتِيْتُمْ

بيشکه | اصل هدايت |هدايت دالله دې | چې ورکړې شي | يو کس ته |په مثال دهغې | چې ورکړې شوی وو تاسو

چې هدايت دالله هدايت دې |اودا د هغه ورکړه ده | چې چاته ورکړې شي | الکه چې مخکښې تاسو ته درکړې شوې وه

اَوْ يُحَآجُّوْكُمْ عِنْدَ رَبِّكُمْ ؕ قُلْ اِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ ۚ

يا قوي دليل راوړي خلق ستاسو خلاف|په پيشئ |درب ستاسو کښې|اووايه | چې بيشکه فضل | په اختيار دالله کښې دې

يا داسې خودنه اوشوه چې دالله په دربار کښې به په تاسو باندې غالب راشي| ورته اووايه چې فضل خودالله په لاس کښې دې

| يُؤْتِيهِ | مَنْ | يَّشَآءُ | وَاللّٰهُ | وَاسِعٌ | عَلِيْمٌ | يَّخْتَصُّ | بِرَحْمَتِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ورکوی هغه | هغه چاته | چې اوغواړي | او الله | فراخه نظر والا | پوهه دې | هغه خاص کوی | په رحمت خپل سره |
| چې په چاباندې اوغواړي نو فضل پرې اوکړي | | | اودالله رحمت فراخه دې | | هغه په هرڅه پوهه دې | اوپه خپل رحمت | |

| مَنْ | يَّشَآءُ | وَاللّٰهُ | ذُوالْفَضْلِ | الْعَظِيْمِ |
|---|---|---|---|---|
| هغه څوک | چې اوغواړي | او الله | خاوند دفضل | لوئي دې |
| سره هغه څوک خاص کوی چالره چه اوغواړي | | اودالله پاک فضل ډیرلوئي دې | | |

قوله تعالى:- وَدَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ......

**د يهوديانو د خرابو عادتونو ذكر**:-دلته د هغه يهوديانو بيان كيږي چې حسد كوى او دوى ته اوګوره چې مسلمانانو نه څنګه سوزي.د دوى د دهوكه كولو رنګ په رنګ پټ په پټه تركيبونه كوى اوڅنګه رنګ په رنګ دمكراوفريب جالونه خوروى.حالانكه اصل كښې ددې ټولو څيزونو وبال پخپله په دوى باندې دې ليكن دوى ته ددې شعور نشته دې،

قوله تعالى:- يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ......

بيادوى ته ددوى ذليل حركت يادوى چې رښتيا ورته معلوم دى اوحق ورته معلوم دى اوبيا هم دوى دالله تعالى د آيتونو نه منكر دى.

قوله تعالى:- يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَلْبِسُوْنَ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ

د علم نه باوجود په دوى كښې دا بد خصلت دې چې حق اوباطل لره خپلو كښې يوځاې كوى او د دوى په كتابونوكښې چې كوم خصلتونه دحضرت نبى كريم ﷺ دى هغه پټوى.

قوله تعالى:- وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ.....

ددهوكې وركولو چې كوم صورتونه جوړوى په هغې كښې يو دا بيانيږى چې په خپلوكښې مشوره كوى چې صبا به ايمان راوړو او مسلمانانو سره به مونځونه كوو او ماښام به بيا مرتد جوړ شو چې د جاهلو خلقو زړه كښې خيال راشي چې آخردا خلق چې مرتدشوى دى نو ظاهر دى چې هغوئ په دې دين كښې نقصان يا بدى اوګورى نو څه عجيبه ده چې دوى كښې څوك زمونږ طرفته راشي.(۱)دا يو حيله وه چې شايد داكمزورى ايمان والا واپس راشي چې داپوهه خلق چې كله دې دين ته راشي او مونځونه كوى،بيا چې كله دوى واپس دا دين پريږدى نو ضرور به ئې دلته څه خرابى او نقصان ليدلې وى.

قوله تعالى:- وَلَا تُؤْمِنُوْٓا اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ......

دې خلقو به وئيل چې بهروسه خپلو باندې كوئ مسلمانانو باندې مه كوئ او نه خپل رازونه هغوئ ته ښكاره كوئ اونه دخپل كتاب خبرې هغوئ ته ښكاره كوئ چې دې سره دوى ايمان راوړى.او الله تعالى سره هم د دوى دپاره مونږ باندې څه حجت جوړ شى.

قوله تعالى:- قُلْ اِنَّ الْهُدٰى هُدَى اللّٰهِ....

نوالله ﷻ فرمانى چې انې نبى ﷺ اووايه چې هدايت خودالله ﷻ لاس كښې دې اوهغه پاك ذات د مومنانوزړونو لره په دې څيزباندې دايمان راوړلودپاره راضى كوى چې كوم الله ﷻ نازل كړې دې.هغوئ ته دې باندې كامل ايمان نصيب كيږى اګر چې تاسودنبى امى ﷺ صفتونولره پټوئ.بيا به خوش قسمته خلق د رسول الله ﷺ د نبوت نښې په يو نظر اوپيژنى.

(۱) الطبرى: ۵۰۸/۶)-

قوله تعالى:- اَنْ يُّؤْتٰۤى اَحَدٌ مِّثْلَ مَاۤ اُوْتِيْتُمْ
داشان هغوئ به ونيل چې تاسو سره كوم علم دې هغه مسلمانانو ته مه ښكاره كوئ چې تاسو نه دا ازده كړي او ستاسو پشان شي.بلكه دخپل ايماني قوت په وجه ستاسونه مخكښې شي.
قوله تعالى:- اَوْ يُحَآجُّوْكُمْ عِنْدَ رَبِّكُمْ ؕ
ياد الله ﷻ مخكښې د دوى دليل اوحجت قائم شي.يعني پخپله ستاسو دكتابونو نه هغوئ تاسو باندې الزام اولگوى.او تاسوباندې ستاسو دليلونه او حجتونه قائم كړي.
قوله تعالى:- قُلْ اِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ ۚ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ؕ :الله ﷻ فرمائي چې ته اووايه چې فضل خو دالله ﷻ لاس كښې دې او چا لره اوغواړي نو د حق لارې نه ئې واړوى.او اسلام كلمې نه ئې كونړ كړي.او د صحيح پوهې نه ئې محروم اوساتي.د هغه ټول كارونه د حكمت نه ډك وى هغه پاك ذات وسعت علم والا دې.
قوله تعالى:- يَّخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ
چې چاته اوغواړي نو په هغه خپل رحمت خاص كړي اوهغه ډير لوئې فضل والادې،انې مسلمانانو!هغه پاك ذات تاسو باندې ډير زيات احسانات كړې دى،ستاسو نبیﷺ ته ئې په ټولو نبيانو ؑ باندې فضيلت وركړې دې او ډير كامل اوهر حيثيت سره پورا شريعت ئې تاسوته دركړو.

وَمِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ
| او داهل كتابونه |
|اوپه اهل كتابو كښې

مَنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُّؤَدِّهٖۤ اِلَيْكَ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ
خيني دغه څوك دى كه ته امين اوگرځوې هغه سره| ډيرمال |واپس به اداكوى هغه| تاته |اوخيني ددوئ نه| هغه څوك دى
داسې(امانت گر)هم شته | كه ته ورسره ډير مال امانت كيږدې | نوهغه به تاته پوره پوره دركړى| ا وڅوك

اِنْ تَاْمَنْهُ بِدِيْنَارٍ لَّا يُؤَدِّهٖۤ اِلَيْكَ اِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا ؕ
كه ته امين اوگرځوې هغه سره|يوه اشرفئ | نو نه به دركوى هغه| تاته |مگر اچې ئې هميشه ته|په سر دهغه ولاړ
په كښې داسې دى كه ديو دينار اعتبار پرې اوكړې نوترڅو چې ورته دسر دپاسه ناست نه ئې درنكړي ترڅو چې ورته دسر دپاسه ناست نه ئې

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَيْسَ عَلَيْنَا فِى الْاُمِّيّٖنَ سَبِيْلٌ ۚ
دا كار په سبب ددې دې چې بيشكه دوئ| وائي |چې نشته |په مونږ باندې|په حق داميانو كښې | څه لار دگرفت
داپه دې وجه چې ددوئ داخيال دې | چې داميانو(عربو مشركانو)په باره كښې مونږ نه هيڅ تپوس نه كيږى

وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ۝ بَلٰى مَنْ اَوْفٰى
اووائى دوئ| په الله باندې | دروغ |حال دا چې دوئ| پوهيږى | ولې به تپوس نه وى |هر چاچې پوره كړه
اودوئ په الله باندې دروغ وائى | او په دې پوهيږى | ..................آخرولې به تپوس نه كيږى هرڅوك

بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ۝
وعده خپله | او بچ ئې كړو خان دبدئ نه|نو بيشكه الله | خوښوى | پرهيزگار خلق|
چې خپله وعده پوره كوى اوخان دوعده خلافئ نه بچ ساتى، | نوپرهيزگار خلق دالله پاك خوښ دى |

**كثرت د يهوديانو خيانت كړووخو ولې بعضې په كښې امانت داره هم وو.**-الله ﷻ مومنان ديهودو په خيانت باندې متنبه كوى چې ددوى دهوكې پسې دې نه خى،

**قوله تعالى:**-وَمِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ مَنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُؤَدِّهٖۤ إِلَيْكَ ۚ

په دوى كښې خوبعضې امانتدار دى اوبعضې ډير لونې خانن دى.بعضې خو داسې دى كه دهغوئ په امانت كښې خزانې وى نوهغوئ به نې واپس كړى.نودوى به په ورو ورو ځيزونو كښې څنګه خيانت اوكړى؟

**قوله تعالى:**-وَمِنْهُمْ مَّنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِدِيْنَارٍ لَّا يُؤَدِّهٖۤ إِلَيْكَ إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا ۗ

اوبعضې داسې بدديانت دى چې يودينارهم نه واپس كوى اوكه دوى سره مو معامله راشى نو د برابرئ تقاضا كوئ او حق غوارئ نو شايد چې ستاسو امانت ترې راوزى ګنى دوى به نې هضم كړى.هركله چې دوى په يو ديناركښې بدديانتى كوى نوزيات رقم به څنګه پريږدى.دلفظ قنطار پوراتفسير د سورت په اول كښې تير شوې دې او دينار خو مشهور ځيز دې.

**د دينار وجه د تسميې:**- ابن ابى حاتم كښې دمالك بن دينار ﷫ قول مروى دې چې دينار ته په دې وجه ديناروائى چې هغه دين يعنى ايمان هم دې اونار يعنى اور هم.مطلب دا كه حق سره نې واخلې نو دين اوكه په ناحقه نې واخلې نو نار يعنى اور دې.

په دې موقع باندې حديث بيانول هم مناسب معلوميږى چې كوم په صحيح بخارى كښې خانې په خانې دى.او په كتاب الكفالة كښې پورا دى.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې بنى اسرائيلو كښې يو سړى دبل سړى نه زر ديناره قرض اوغوښتل،هغه اووئيل چې ګواه راوله.جواب نې وركړو چې ګواهى د الله ﷻ كافى ده.وې وئيل چې ضمانت راوړه نو وې وئيل چې د الله ﷻ ضمانت كافى دې.وې وئيل تا رښتيا اووئيل اود واپس كولو موده نې مقرر كړه او ورته نې زر ديناره وركړل.دې د سمندر په سفر روان شو او خپل كار نې اوكړو.هركله چې موده پوراً شوه نو دې د سمندر غاړې ته لاړو چې كشتئ ملاؤ شى او په هغې كښې سور شى او لاړ شى رقم اداكړى.خو هيڅ يو جهاز ملاؤ نشو.هركله چې ده اوكتل چې په وخت نشى رسيدې نو ده يو لرګې واخستو او هغه په مينځ كښې دډ وو او په هغې كښې نې زر ديناره كيخودل او يو پرچى نې اوليكله او بيا نې دهغې خوله بنده كړه او د الله ﷻ نه نې دعا اوكړه چې اې الله ﷻ اتاته ښه معلوم دى چې ما د فلانى سړى نه زر ديناره قرض اخستى وو او هغه زما نه ضمانت غوښتلې وو او ما ورته ته ضمانت كښې وركړې وې او هغه په دې باندې خوشحاله شوې وو.او ګواه نې اوغوښتلو نوما ورته ته په ګواهئ كښې وركړې.او په دې باندې هغه خوشحاله شو.اوس وخت مقرر پورا كيدو والا دې نو ما خو ډير كوشش اوكړو چې كشتئ تلاش كړم او لاړم شم او هغه ته د هغه قرض وركړم ليكن كشتئ ملاؤ نشوه.اوس زه دا رقم تاته سپارم او سمندر كښې ئې اچوم او دعا كوم چې دا رقم هغه ته اورسى.بيا نې دا لرګې سمندر كښې واچولو اولاړو.ليكن بيا هم دكشتئ تلاش كښې وو چې ملاؤ شى چې لاړ شم.بل طرفته هغه سړى چې اوكتل چې دقرض واپس كولو وخت پورا شوې دې او نن هغه ته راتلل پكار دى نو هغه هم د سمندر غاړې ته راغلو چې نن به هغه رازى او زما رقم به واپس كوى يابه نې د چا په لاس راليږى.خو هركله چې مابنام شو او هيڅ كشتئ رانغله د هغه طرفنه نو دې واپس شو،د سمندر په غاړه نې يو لرګې اوليدو،ده اووئيل چې هسې هم خالى روان يم راشه دا لرګې هم خان سره واخله،دا به اوچ كړم،د بلولو دپاره خو به پكار راشى.هركله چې كور ته اورسيدو نو دا لرګې نې اوخيرلو نو ددې نه اشرفئ راوتلې،هركله چې ده اوشميرلې نو پوره زر ديناره وو.چې پر چې نې اوكتله او هغه ئې اولوسته.بيا يو ورځ هغه سړې راغلو او ده ته نې زر د يناره پيش كړل او ورته نې اووئيل چې داواخله ستا رقم،ماته معافى اوكړه،ما ډير كوشش اوكړو چې وعده خلافى اونشى خو كشتئ ملاؤ نشوه اوپه دې كښې وخت تير شو.نن راته كشتئ ملاؤ شوه او ستا رقم حاضر دې.هغه

تپوس اوکړو چې ولې تازما رقم لیږلې نه دې څه،ده اوونیل چې ما خو درته اوونیل چې کشتئ ملاؤ نشوه.هغه ورته اوونیل چې خپل رقم واپس واخله اوپه خوشحالئ خوشحالئ واپس شه.تاچې کوم لرګی کښې رقم رالیږلې وو او هغه دې﴿ توکل علی الله ﴾سره سمندر کښې اچولې وو الله ﷻ ماته رارسولې دې.او ما خپل رقم وصول کړې دې.(١)داحدیث بخاری شریف کښې تعلیق سره هم دې لیکن د جزم صیغې سره او بعضو خایونو کښې نورو سندونو سره هم دې.او نورو کتابونو کښې هم روایت دې.

**قوله تعالى: ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ سَبِيلٌ**

بیا فرمائی چې امانت کښې خیانت کول،د حقدار حق نه ادا کول،په دې باندې راضی کوونکې ځیز د دوی غلط خیال دې چې د دې بد دینو او جاهلانو مال خوړولو کښې مونږ ته څه حرج نشته مونږ باندې دا مال حلال دې.

**قوله تعالى:- وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ**

نو په دې باندې الله ﷻ فرمائی چې دا په الله ﷻ باندې دروغ دی.او ددې علم هغوی ته پخپله هم شته دې.ځکه چې د دوی په کتابونو کښې الله ﷻ ناحق حرام کړی وو.لیکن دا بیوقوفان د خپل زړه منی او چې کومې خبرې د دوی زړه ته ښه لګی هغې ته د شریعت نوم ورکوی.

**د عبدالله بن عباس ﷺ نه په دې حقله د مسلمانانو پوهتنه**:- ابن عباس ﷺ نه خلق د مسئلې تپوس کوی که د ذمی کفارو چرګې چیلئ وغیره مونږ ته کله په غزوه کښې ملاؤ شی نو مونږ خیال کوؤ چې د دې په اخستلو کښې څه حرج نشته دې.نو ابن عباس ﷺ اوفرمائیل چې هم دغه شان خیال د اهل کتابو هم وو چې د امیانو مال اخستلو کښې مونږ باندې هیڅ حرج نشته.واورئ!هر کله چې هغوئ جزیه اداکوی نو د هغوئ تاسو باندې هیڅ مال حلال نه دې اوکه هغوئ ئې خوشحالئ سره درکوی نو خیر دې دا بله خبره ده.(عبدالرزاق) (٢)سعید بن جبیر ﷺ فرمائی چې کله اهل کتابو نه رسول الله ﷺ دا خبره واوریدله نو وې فرمائیل چې د الله ﷻ دښمنان دروغژن دی.دجاهلیت ټولې خبرې زما د پښو لاندې ختمې شوې خو امانت به د هر فاسق فاجر هم ادا کول غواړی.(٣)

بَلَىٰ مَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِ وَاتَّقَىٰ......

بیاارشاد فرمائی لیکن چې کوم سړې خپله وعده پورا کړی او ویریږی او اهل کتاب وی او بیا په رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړی او دا وعده ټولو نبیانو ﷺ کړې ده او ددې وعدې پابندی په دې ټول امت باندې هم ده بیا الله ﷻ چې کوم ځیزونه حرام کړی دی د هغې نه پرهیز اوکړی او د هغه دشریعت اطاعت اوکړی او د رسولانو خاتم او د نبیانو د سردار د محمد ﷺ پورا تابعداری اوکړی نو هغه متقی دې اومتقیان د الله دوستان دی.

| إِنَّ الَّذِينَ |
|---|
| بیشکه هغه کسان |
| بیشکه ځوک چې |

| يَشْتَرُونَ | بِعَهْدِ اللَّهِ | وَأَيْمَانِهِمْ | ثَمَنًا قَلِيلًا | أُولَٰئِكَ | لَا | خَلَاقَ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې اخلی | په وعده الله او په قسمونو خپلو باند | قیمت لږ | دا کسان چې دی | نشته | حصه | ددوئ دپاره | |

دالله پاک سره کړې وعده اوخپل قسمونه په لږو روپو خرڅ کړی نوهغوئ دپاره هیڅ حصه

(١) صحیح بخاری کتاب الکفالة باب الکفالة فی القرض : ٢٢٩١، تعلیقا )-
(٢) عبدالرزاق فی التفسیر: ٤١٩/١)-
(٣) الطبری : ٧٢٦٦، عن سعید بن جبیر، داروایت مرسل یعنی ضعیف دې )-

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي الْآخِرَةِ | وَلَا | يُكَلِّمُهُمُ | اللَّهُ | وَلَا | يَنظُرُ | إِلَيْهِمْ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ |
| په آخرت کښې | او نه به | خبرې اوکړي ددوئ سره | الله | او نه به | اوګوري | دوئ ته | په ورځ | دقيامت |

په آخرت کښې نشته | اوالله پاك په ورسره دقيامت په ورځ خبرې نه کوي | اونه به ورته ګوري

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَا | يُزَكِّيهِمْ | وَلَهُمْ | عَذَابٌ | أَلِيمٌ ﴿٧٧﴾ |
| اونه به | پاك كړي دوئ | اومقرر دي دوئ لره | عذاب | دردناك |

اونه به ئې «دګناهونونه» پاك كړي | اودداسې خلقو دپاره دردناك عذاب دې |

قوله تعالى:- إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا......

**درې خوش بخته او درې بد بخته سړي**:-يعنې چې كوم اهل كتاب د الله ﷻ د وعدې خيال نه ساتي اونه د رسول الله ﷺ اتباع کوي اونه د رسول الله ﷺ صفتونه خلقو ته بيانوي او نه د رسول الله ﷺ متعلق بيان کوي.او دا شان په دروغه قسمونه خوري او دې بدکارونو سره هغوئ ددې ذليلې اوفاني دنيا نه فائده حاصلوي.نو ددې خلقو دپاره آخرت کښې هيڅ حصه نشته.او نه به الله ﷻ دوی سره څه د محبت او مينې خبره اوکړي او نه به دوی ته د رحمت په نظر ګوري او نه به دوی لره د دوی د ګناهونو نه پاك كړي بلکه د دوی جهنم ته د داخليدو حکم به کوي.او دوی لره به هلته دردناك عذاب وی.ددې آيت متعلق ډير احاديث هم دی.چې په هغې کښې ډير کم دلته بيانيږي.

① مسند احمد کښې دی چې رسول الله ﷺ فرمائي چې درې قسمه خلق دی چې هغوئ سره به نه الله ﷻ کلام کوی اونه به د قيامت په ورځ ورته د رحمت په نظر ګوري او نه به هغوئ لره پاك كړي.ابوذر ﷺ چې داواوريدل نو وې وئيل چې دا كوم خلق دی،يارسول الله ﷺدوی خو ډير نقصان کښې دی.رسول الله ﷺ درې خل همدا اوفرمائيل اوبيا ئې جواب ورکړو چې ګيټو نه لاندې کپړا زوړندولوولا،په دروغه قسم خوړلو والا اوچا ته د ورکړې نه پس په هغه د احسان زباتنه.مسلم وغيره کښې هم دا حديث دې.(١)

②مسنداحمد کښې دی چې ابو احمس رحمه الله فرمائي چې زۀ ابوذر ﷺ سره ملاؤ شوم او هغوئ ته مې ذكر اوكړو چې ما اوريدلي دی چې تاسود امام احمد بن حنبل رحمه الله نه يوحديث بيانوئ.نو وې فرمائيل چې واوره زۀ خو رسول الله ﷺ باندې دروغ نشم وئيلې هر كله چې ما هغه د رسول الله ﷺ نه اوريدلې وی وايه هغه کوم حديث دې؟ما اووئيل چې درې قسم خلقو لره الله ﷻ دوستان کوی او درې قسمه خلقو سره دښمنی کوی.نووې فرمائيل چې او ما دا حديث بيان كړې هم دې او ما دا د رسول الله ﷺ نه اوريدلې هم دې.ماتپوس اوکړو چې کوموکومو خلقو لره دوستان کوی.نو وې فرمائيل چې هغه دې چې دالله ﷻ دښمنانوسره مقابلې د پاره جهاد کوی او دې شهيد شي يا فتح اومومي او واپس شي.دويم هغه سړې چې يو قافلې سره مسافر وی،د شپې ناوخته پورې قافله روانه وی تر دې چې ټول ستړی شي اويو ځائې پراؤ واچوی اوټول دستړوالي له کبله اوده شي خودا سړې ويښ وی او په مونځ کښې مشغول وی تر دې چې د تلو وخت کښې ټولو لره راپاسوی.دريم هغه سړې دې چې څوك ده ته تکليف اورسوی او دې په هغې باندې صبر اوکړی تر دې پورې چې ده ته مرګ راشي.ما اووئيل چې هغه درې کسان کوم دی چې د هغوئ نه الله ﷻ خفه وی؟وې فرمائيل چې ډيرقسمونو خوړلووالا تاجر،او کبر كولو والا فقير اوهغه بخيل چې د هغه د لاسه كله احسان اوشي نوبيا دهغې زباتنې ته کښينی.داحديث دې سند سره غريب دې..(٢)

(١) احمد:١٤٨/٥، صحيح مسلم کتاب الايمان باب بيان غلظ تحريم اسبال الازار :....: ١٠٦)-
(٢) احمد:١٥١/٥،وسنده ضعيف )-

③ مسند احمد کښې دی چې د کنده قبلې یو سړی امروالقیس بن عامر د یو حضرموتی سړی سره جنګ اوشو او د دوی دا جنګ د زمکې باره کښې وو.او دوی د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضرشو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې حضرمی دې ثبوت پیش کړی.ده سره هیڅ ثبوت نه وو نو بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې اوس دې کندی قسم اوخوری.نو حضرمی اوونیل چې یارسول الله ﷺ هر چې دده په قسم باندې فیصله کول دی نو په الله مې دې قسم وی چې بیا خو زما زمکه لاړه.نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې کوم کس د دروغو په قسم سره د بل مال خپل کړی نو دې چې کله د قیامت په ورځ الله ﷻ سره ملاؤ شی نو الله ﷻ به دده نه خفه وی.بیا رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړو نو امروالقیس اوونیل چې یارسول الله که څوک نې پریږدی نو هغه ته به څه اجر ملاویږی؟نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې جنت.نووې ونیل چې یارسول الله ﷺ تاسو ګواه اوسئ ما هغه ټوله زمکه د ده په نوم کړه.دا حدیث نسائی کښې هم دې..(۱)

④ مسنداحمد کښې دی چې رسول الله ﷺ فرمائی چې کوم سړی په دروغه قسم اوخوری چې په دې باندې دبل مال واخلی نو کله چې دې الله تعالی سره ملاویږی نو الله ﷻ به په ده باندې غصه وی.اشعث ﷺ فرمائی چې دا زما باره کښې دی.زما او د یو یهودی شریکه زمکه وه.هغه زما د زمکې نه انکار اوکړو.ما هغه رسول الله ﷺ لره راوستلو.رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل چې تاسره څه ثبوت شته دې.ما اوونیل چې نه.رسول الله ﷺ هغه یهودی ته اوونیل چې ته قسم اوخوره.ما اوونیل چې یارسول الله ﷺ دې به قسم اوخوری او زما مال به دې واخلی.نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو.دا حدیث بخاری او مسلم شریف کښې هم دې..(۲)

⑤ مسند احمد کښې دی چې حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائی چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چې کوم سړې دیومسلم مال بغیر د حق نه واخلی نو هغه به الله ﷻ سره په دې حال کښې ملاویږی چې الله ﷻ به دده نه خفه وی.هلته اشعث بن قیس ﷺ هم راغلواو وې فرمائیل ابوعبدالرحمان څه حدیث بیانوی؟مونږ ورته دوباره اوونیلو نو وې فرمائیل چې دا حدیث زما باره کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دې.زما د تره ځوئې سره زما په یو کوهی باندې جنګ وو او هغه کوهې د هغه په قبضه کښې وو.هرکله چې مونږ خپله مقدمه رسول الله ﷺ ته یوړه نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې ته خپل دلیل پیش کړه چې دا کوهې ستا دې ګنی دده قسم باندې به فیصله کیږی ما اوونیل چې یارسول الله ﷺ ماسره څو څه دلیل نشته دې او که دده په قسم باندې معامله پاتې شوه نو دې به زما کوهې واخلی.زما مقابله کښې یو فاجر سړې دې.په هغه وخت کښې رسول الله ﷺ داحدیث اوفرمائیلو او دې آیت تلاوت نې اوفرمائیلو.(۳)

⑥ مسنداحمدکښې دی چې رسول الله ﷺ فرمائی چې د الله تعالی څه بندګان داسې دی چې هغوئ سره به الله ﷻ دقیامت په ورځ خبرې نه کوی او نه به هغوئ طرفته ګوری تپوس ترې اوشو چې یارسول الله ﷺ هغه کوم سړی دی؟وې فرمائیل چې د خپل موریلار نه بیزاره شوې او د دوی نه بې رغبته جینئ او د خپل اولاد نه بیزاره او بیل شوې پلار.اوهغه سړې چې په هغه باندې دیو قوم احسان دې او هغه دده نه انکاری دې او ددې نه سترګې اړوی او ددوی نه یو طرفته درومی..(۴)

**د ایت شان نزول:-**

---

(۱) احمد:۵/۱۹۲، السنن الکبری للنسائی : ۵۹۹۶، وسنده صحیح)-

(۲) احمد:۵/۲۱۱،صحیح بخاری کتاب الشهادات باب سوال الحاکم المدعی : ...... ۲۶۶۶،صحیح مسلم: ۱۳۸)-

(۳) احمد:۵/۲۱۲)-

(۴) احمد:۵/۴۴۰ )-

⑦ ابن ابي حاتم کښي دي چې عبدالله بن ابي اوفى ﷺ فرماني چې يوسړي خپله سودا بازار کښي د خرڅولو دپاره کيخودله اوقسم ئې اوخوړو چې ددې ماته دومره دومره قيمت راکولو(خو ما خرڅه نه کړه)او دا ددې دپاره وو چې څوك مسلمان دهوکه شي.نو دا آيت نازل شو.صحيح بخاري کښې هم دا حديث شته دي.(١)

⑧مسند احمد کښي دي چې رسول الله ﷺ فرماني چې دريو سړو سره به الله ﷻ دقيامت په ورځ خبرې نه کوي او نه به هغوئ طرفته ګوري او نه به هغوئ لره پاك کړي.او د هغوئ دپاره دردناك عذاب دي.يو هغه سړي چې ده سره بچ شوې اوبه شته او دې ئې يو مسافرته نه ورکوي.دويم هغه چې مازيګر نه پس په دروغه قسم اوخوري اوخپل مال خرڅوي،دريم هغه چې مسلمان بادشاه نه بيعت کوي،څوکله چې هغه ده ته مال ورکوي نودې بيعت پورا کوي اوکه نه ورکوي نو دې بيعت نه پورا کوي.دا حديث ابوداود او ترمذي کښې هم دې.او امام ترمذي دې ته حسن وئيلي دي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| | | مِنْهُمْ | وَإِنَّ |
| | | بعضي ددوئ نه | او بيشکه |
| | | | او په دوئ کښي |
| لَفَرِيقًا يَلْوُنَ | أَلْسِنَتَهُمْ | بِالْكِتٰبِ | لِتَحْسَبُوهُ |
| خامخا يوه داسي ډله ده | چې اړوي ژبې خپلې | په لوستلو دكتاب | باندې | دپاره ددې چې ته اوګڼې هغه عبارت |
| يوه ډله داسې هم شته | چې د کتاب لوستلو په وخت کښې ژبه تاووهي | چې تاسوېږې د اصل کتاب ګمان |
| مِنَ الْكِتٰبِ | وَمَا هُوَ | مِنَ الْكِتٰبِ | وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ |
| د کتاب نه | حال دا چې نه وي هغه عبارت | د کتاب | اووائي دوئ | چې دا عبارت |
| اوکړئ | ...................... | اوهغه دکتاب خبره نه وي | ............. . اودوئ وائي چې (مونږ څه وابو) |
| مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَمَا هُوَ | مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَيَقُوْلُوْنَ | عَلَى اللّٰهِ | الْكَذِبَ |
| دطرفه دالله نه دې | حال دا چې نه وي هغه | دطرفه دالله نه | او وائي دوئ | په الله باندې | دروغ |
| هغه دالله دطرفنه راغلې خبره ده | اوهغه په حقيقت کښې دالله پاك دطرفنه نه وي راغلي | اودوئ په الله دروغ وائي |
| وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ⑥ | | | |
| او دوئ | ښه پوهيږي | | | |
| اودوئ ښه پوهيږي | | | |

قوله تعالى:- وَإِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيقًا يَلْوُنَ أَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتٰبِ لِتَحْسَبُوهُ مِنَ الْكِتٰبِ

**د يهوديانو كلام الله کښې تحريف** -دلته هم د دغه ملعونانو يهودو ذکرکيږي چې د هغوئ يو ډله داسې هم کوي چې کلام کښې بدلون کوي يعنې دابدلوي،اصل مطلب اوصحيح معنى پټوي اوجاهلان په دې چکر کښې اچوي چې کتاب الله هم دغه (ددوی تحريف شوې )دې.اوبيا دوی خپلو ژبو سره هم دې ته کتاب الله وائي اودجاهلانو خيال لره مضبوطوی.او په زوره په الله ﷻ باندې افتراء کوي او دروغ وائي.د ژبې اړولو نه مطلب تحريف کول دی.ابن عباس ﷺ نه صحيح بخاري کښې مروی دی چې دې خلقو به

(١)صحيح بخاري كتاب الشهادات باب اليمين بعدالعصر: ٢٦٧٢،صحيح مسلم ١٠٨، ابوداود: ٣٤٧٤، ترمذي: ٥٩٥، ابن ماجة: ٢٢٠٧)

تحريف کولو. اوازاله به نې کوله. مخلوق کښې څه داسې څوک خو نشته چې دکتاب الله يو لفظ هم بدل کړي. خو دا خبره ده چې دې خلقو به تحريف او بې ځايه تاويلونه کول[1]

وهب بن منبه رحمه الله فرمائي چې تورات اوانجيل کښې همداشان دی چې څنګه الله ﷻ نازل کړی دی، يوحرف هم په دې کښې بدل نه شو. خو دا خلق په تحريف او تاويل سره خلقو لره ګمراه کوي.

قوله تعالى:- وَيَقُولُونَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ

او چې کوم کتابونه دوی د خپل طرفنه اوليکل او دا د الله ﷻ طرفته منسوب کوي نو دې سره خلقو لره ګمراه کوي. حالانکه دا الله ﷻ دطرف نه نه دی. او د الله ﷻ اصل کتابونه خو محفوظ دي اوهغه نه دی بدل شوي. (ابن ابي حاتم).

وهب رحمه الله ددې فرمان دامطلب اخستې دې چې دوی سره کوم کتابونه دی نو مونږ په يقين سره وايو چې دا بدل شوي دی او تحريف په کښې شوې دې. او د زياتوالي اونقصان نه بالکل نه دی پاک. او چې کوم په عربۍ ژبه کښې مونږ سره دی په هغې کښې ډيرې غلطۍ دی. او ډيرې زياتۍ دی په کښې. اوپه دې کښې د اصل نه کمې هم زيات دې. او په دې کښې ښکاره ښکاره او صفاصفا غلطۍ دی. بلکه دې ته ترجمه شوي ونيل هم ښه نه دی. داخوتفسير اوهغه هم بې اعتباره تفسيردې. او بيا ددې ناپوهانو ليکلي شوې تفسير. اوبه دوی کښې خو اکثر بلکه ټول په ټوله ناپوهان دي. اوکه د وهب رحمه الله د فرمان دا مطلب وي چې د الله ﷻ رباني کتاب دا په حقيقت کښې دې نو دا به بيشکه مصئون وي او په دې کمې زياتې ناممکن دي.

| مَا كَانَ | لِبَشَرٍ | أَنْ يُؤْتِيَهُ | اللَّهُ | الْكِتَابَ |
|---|---|---|---|---|
| نه دې دا کار | ديو بشر | چې ورکړي هغه ته | الله | کتاب |
| دهيڅ انسان داکار نه دې چې الله خو ورته روغ کتاب ............ | | | | |

| وَالْحُكْمَ | وَالنُّبُوَّةَ | ثُمَّ يَقُولَ | لِلنَّاسِ | كُونُوا | عِبَادًا لِي |
|---|---|---|---|---|---|
| او حکم | اوپيغمبري | اوبيااووائي هغه | خلقو ته | چې شئ تاسو | اعبادت کونکي شئ زما |
| او خپل حکمونه اوپيغمبري ورکړي | اوبيا هغه خلقوته داوائي چې دالله په ځاني زما عبادتګذار شئ | | | | |

| مِنْ دُونِ اللَّهِ | وَلَٰكِنْ | كُونُوا | رَبَّانِيِّينَ | بِمَا | كُنْتُمْ | تُعَلِّمُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په ځاني دالله | ليکن (وائي به) | چې شئ تاسو | رباني خلق | په سبب دهغې | چې تاسو | زده کوئ |
| خو هغه به داوائي چې ټول په ربنتيا باني خلق شئ | که څنګه چې زده کوئ | | | | | |

| الْكِتَابَ | وَبِمَا | كُنْتُمْ | تَدْرُسُونَ | وَلَا يَأْمُرَكُمْ | أَنْ تَتَّخِذُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| کتاب | او په سبب دهغې | چې تاسو ئې | بل ته هم وايئ | اوحکم به کوي تاسو ته | چې اونيسئ تاسو |
| داکتاب | او نورو خلق ته ئې هم ښائې | ............ اوهغه به هيڅرې تاسو ته دا اونه وائي چې | | | |

| الْمَلَائِكَةَ | وَالنَّبِيِّينَ | أَرْبَابًا | أَيَأْمُرُكُمْ | بِالْكُفْرِ | بَعْدَ |
|---|---|---|---|---|---|
| فرشتې | اوپيغمبران | خدايان | آياهغه به حکم کوي تاسوته | دکفر | روستو دهغې نه |
| فرشتې او پيغمبر په خدائې اونيسئ | داکله کيديشي چې يوپيغمبر دې تاسو ته دکفر حکم | | | | |

[1] صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ( بل هو قرآن مجيد) تعليقا قبل حديث : ٧٥٥٧)-.

| إِذْ أَنتُم | مُّسْلِمُونَ ﴿٨٠﴾ |
|---|---|
| چي يئ تاسو | مسلمانان |
| د اسلام راوړلو نه پس درکوي | |

**د ایت شان نزول**

**د الله تعالی هیڅ یو نبی او هیڅ یوه فرښته هم خلقو ته د خپلې بندګئ دعوت نه شي ورکولی:-** هر کله چې نبی اکرم ﷺ سره دیهودو او د نجران نصرانیان علماء جمع شو او نبی اکرم ﷺ هغوئ ته د اسلام دعوت ورکړو نو ابو رافع قرظی اوونیل چې تاسو غواړئ چې څنګه نصرانیانو د عیسی بن مریم عبادت کړې وو مونږ هم ستا عبادت اوکړو؟د نجران یو نصرانی آنیس نومې کس اوونیل چې ستاسو هم دا خوښه ده؟او هم دا دعوت مودې؟نو نبی اکرم ﷺ اوفرمانیل معاذلله.نه خو مونږ د الله ﷻ نه سوا د نورو عبادت کوؤ،نه نورو ته د الله ﷻ نه سوا د بل چا د عبادت کولو تعلیم ورکوؤ.نه زما د پیغمبرئ دا مقصد دې او نه ماته د الله ﷻ دا حکم دې.په دې باندې دا آیت نازل شو (۱)

قوله تعالی:-مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُؤْتِيَهُ اللَّهُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ

چې هیڅ یو انسان لره دا لائق نه دی چې هغه د کتاب و حکمت اونبوت او رسالت ملاویدو نه پس خلق خپل عبادت طرفته راوبلي.هرکله چې نبیان ﷺ ددې لائق نه دی چې هغوئ خلقو ته اووائي چې د دوی عبادت اوکړي او خلقو ته د خپلې بندګئ تلقین اوکړي اګر چې د انبیاؤ ﷺ ډیرې غټې رتبې او فضیلت او منصب والا دی.امام حسن بصری رحمه الله فرمائي چې یو ادنی مسلمان هم دا نه شي کولې چې هغه خلقو ته د خپلې بندګئ دعوت ورکړي.دلته ئې دا په دې وجه اوفرمانیل څکه چې یهود اونصرانیان خپلو کښې دیو بل عبادت کوي.قرآن شاهد دې اوفرمائي چې﴿اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ :یعنی دې خلقو الله ﷻ پریښودې دې او خپل علماء او درویشان ئې خپل رب جوړ کړې دي.

د مسند او ترمذی هغه حدیث هم رازی چې عدی بن حاتم رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ خدمت کښې عرض اوکړو چې هغوی خو به د هغوئ(یعنی د خپلو علماؤ) عبادت نه کولو.نو نبی اکرم ﷺ ترې تپوس اوکړو چې ولې نه؟هغوی(علماؤ)په په هغوی باندې حلال حرامول او حرام به ئې پرې حلالول او دوی به د هغوی منل.هم دا دهغوئ عبادت وو.(۲)

نوجاهله درویشان او ناپوهه علماء او مشائخ په دې غندنه او غصه کښې داخل دی.د نبی اکرم ﷺ اتباع کوونکی علماء کرام ددې نه یو طرفته دی څکه چې هغوئ خو صرف د فرمان ربانی اوکلام رسول ﷺ تبلیغ کوي او د هغه کارونو نه خلق منع کوي چې د کومو نه به حضرات نبیانو ﷺ منع کوله.د الله ﷻ لیږلې شوی حضرات نبیان ﷺ خو د مخلوق په مینځ کښې سفیران دی.د رسالت حق ادا کوي او امانت ربانی احتیاط سره د الله ﷻ بندګانو ته رسوي.ډیر کمال،هوښیارئ،ښه نګرانئ او پوره حفاظت سره د پوره دنیا خیرخواهان وی.هغوئ ﷺ د الله ﷻ احکام رسوي.د رسولانو هدایت خو د

---

(۱) الطبری : ۷۲۹٤، دلائل النبوة للبیهقی: ۳۸٤/۵، وسنده ضعیف)-

(۲) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة التوبة: ۳۰۹۵،)-

خلقو د رباني كيدو د پاره وي.چې خلق دې حكمت او حلم والا جوړ شي او پوهه او عابدان او متقيان جوړشي.(۱) ضحاك رحمه الله فرمائي چې قرآن زده كونكوباندې حق دې چې هغوئ دې پوهه وي.﴿تَعْلَمُونَ﴾ او ﴿تُعَلِّمُونَ﴾ دواړه قراتونه دي،د ړومبې معنى ده پوهه او د دويم معنى ده تعليم وركولو والا د ﴿تَدْرُسُونَ﴾معنى الفاظ يادول ده.

بيا ارشاد فرمائي چې دوى هغه حكم نه كوي چې د الله ﷻ نه سوا د بل چا عبادت اوكړئ اګر چې هغه نبى وي،ليرلې شوې فرښته وي،د الله ﷻ قرب والا،دا خو هغه څوك كيديشي چې د الله تعالى نه سوا د بل چا د عبادت كولو دعوت وركوي.او چې چا داسې اوكړل نو هغه كفر اوكړو ،اوكفر كول د نبيانو كار نه دې.د هغوئ كار خو ايمان دې او ايمان نوم دې د واحد الله ﷻ عبادت كول او همدا د نبيانو ﷺ آواز دې.لكه څنګه چې پخپله د قرآن پاك ارشاد دې چې﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِىٓ إِلَيْهِ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعْبُدُونِ﴾ :يعنى ستاسو نه مخكښې هم مونږ رسولان ليرلى دى ټولوباندې دا وحى نازله شوه چې هغوئ دې زما نه سوا د بل چا عبادت نه كوي.تاسو ټول زما عبادت كوئ.بل ځائې ارشاد دې چې﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِى كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ وَٱجْتَنِبُوا۟ ٱلطَّٰغُوتَ﴾ يعنى مونږ هر امت كښې رسول اوليږلو چې تاسو د الله ﷻ عبادت كوئ او د الله ﷻ نه سوا د بل چا دعبادت كولو نه بچ اوسئ.

او بل ځائې كښې ارشاد دې چې تاسو نه مخكښې د ټولو رسولانو نه تپوس اوكړئ چې آيا مونږ د خيل ذات رحمان نه سوا د بل چا د عبادت دپاره څوك مقرر كړې وو؟د فرښتو طرفنه خبر كيږى چې ﴿وَمَن يَقُلْ مِنْهُمْ﴾په دوى كښې كه څوك اووائى چې زۀ معبود يم الله تعالى په ځائې،نو هغوئ ته هم د جهنم سزا وركړئ او داشان مونږ ظالمانو ته سزا وركوو.

| وَإِذْ | أَخَذَ ٱللَّهُ | مِيثَٰقَ | ٱلنَّبِيِّۦنَ | لَمَآ |
|---|---|---|---|---|
| او ياد كړئ كله چې | واخستلو الله | پخه وعده | د پيغمبرانو نه | چې كوم څيز |

او يادكړه چې الله پاك د پيغمبرانو نه وعده اخستې وه

| ءَاتَيْتُكُم | مِّن كِتَٰبٍ | وَحِكْمَةٍ | ثُمَّ | جَآءَكُمْ | رَسُولٌ | مُّصَدِّقٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ما دركړې دې تاسو ته | يعنى كتاب | او حكمت | بيا | راشي تاسو ته | بل رسول | تصديق كونكې |

چې ماتاسوته كتاب اوحكمت دركړې دې | نوبياتاسوته بل يوپيغمبر د دې تصديق كولو د پاره راشي

| لِّمَا | مَعَكُمْ | لَتُؤْمِنُنَّ | بِهِۦ | وَلَتَنصُرُنَّهُۥ |
|---|---|---|---|---|
| د هغه تعليم | چې ستاسو سره دې | نو خامخا به تاسو ايمان راوړئ | په هغې | او خامخا به تاسو امداد كوئ د هغه |

نوتاسو (خواه مخواه) په هغه ايمان راوړئ | او(خواه مخواه) هغه سره مدد كوئ

| قَالَ | ءَأَقْرَرْتُمْ | وَأَخَذْتُمْ | عَلَىٰ ذَٰلِكُمْ إِصْرِى | قَالُوٓا۟ |
|---|---|---|---|---|
| اووئيل | آيا تاسو اقرار وكړو | او واخسته تاسو | په دې باندې | ټينګه وعده زما | اووئيل هغوئ |

(بيا ترې)الله تپوس اوكړو چې ايا تاسو د دې اقرار كوئ | او په دې خبره زما د وعدې ذمه واري اخلئ | نو دوئ اووئيل چې

(۱) ابن ابى حاتم: ۲/٦٥ ۳٣،)

| اَقْرَرْنَاؕ | قَالَ | فَاشْهَدُوْا | وَاَنَا مَعَكُمْ | مِّنَ الشّٰهِدِیْنَ۝ | فَمَنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اقرار اوکړو مونږ | اووئیل الله | نو ګواهان اوسئ | او زه ستاسو سره | دګواهانو نه یم | نو څوک چې |
| مونږ اقرار کووا | الله ورته اووئیل چې تاسو په دې لوظ ګواهان اوسئ | او زه به هم تاسو سره ګواه یم | ....... څوک چې | | |

| تَوَلّٰی | بَعْدَ | ذٰلِكَ | فَاُولٰٓىِٕكَ | هُمُ | الْفٰسِقُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| واپس شو | روستو | ددې نه | نو دغه کسان چې دی | هم هغوئ | فاسقان دی |
| ددې نه پس دخپل لوظ نه اوګرځیدل | نو هم دغه خلق نافرمان دی | | | | |

**قوله تعالی:-** وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِیْثَاقَ النَّبِیّٖنَ لَمَآ اٰتَیْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ

**هر نبی ته د ځان نه پس په بل نبی باندې د ایمان راوړلو حکم** - دلته دا بیانېږی چې آدم عليه السلام نه واخله تر عیسی عليه السلام پورې ټول انبیاؤ عليهم السلام نه الله ﷻ وعده واخستله چې کله هم الله تعالی دوی کښې چاته کتاب اوحکمت ورکړې او لوې مرتبې ته اورسی نو،بیا دې نه پس هم دده په زمانه کښې رسول راشی نو په هغه باندې ایمان راوړل او د هغه نصرت او امداد کول دده فرض دی.دا نه چې په خپل علم او نبوت باندې نظر واچوی او ددغه نبی د اتباع او مدد نه روستو شی.

**قوله تعالی:-** ءَاَقْرَرْتُمْ وَاَخَذْتُمْ عَلٰی ذٰلِكُمْ اِصْرِیْ ؕ

دوی ته اووئیلې شو چې آیاتاسو اقرار کوئ؟اوزما عهدو اقرار قبلوئ؟ټولو اووئیل چې زمونږ اقرار دې.

**قوله تعالی:-** قَالُوْٓا اَقْرَرْنَا ؕ قَالَ فَاشْهَدُوْا وَاَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِیْنَ

نووې فرمائیل چې ګواه اوسئ او زهٔ هم ګواه یم.اوس چې ددې عهد ومیثاق نه څوک واوړی نوهغه قطعی فاسق دې،بې حکم او بدکار دې.

**د الله ﷻ د هر نبی نه د رسول الله ﷺ په حقله وعده اخستل**:-علی بن ابی طالب رضي الله عنه او عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائی چې الله ﷻ د هرنبی نه وعده واخستله که چرته ددوی په ژوندکښې الله ﷻ خپل نبی محمد مصطفی ﷺ اولیږلو نو په دوی باندې فرض دی چې هغوئ په نبی اکرم ﷺ باندې ایمان راوړی او د نبی اکرم ﷺ مدد اوکړی [1]او خپل امت ته هم هغوئ دا تلقین اوکړی چې هغوئ دې هم نبی اکرم ﷺ باندې ایمان راوړی او د نبی اکرم ﷺ تابعداری دې اوکړی.طاؤس،حسن بصری او قتاده رحمهم الله فرمائی چې نبیانو عليهم السلام نه الله ﷻ وعده واخستله چې دیو بل تصدیق اوکړی.څوک دې دا نه ګڼړی چې پورته تفسیر ددې تفسیر خلاف دې.بلکه دا د هغې تائید دې.ځکه چې د طاؤس رحمه الله نه د دوی د خونی یو روایت د علی رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه د روایت په شان هم مروی دې.

**زهٔ ستاسو دحصې نبی یم**:-مسند احمد کښې روایت دې چې عمر بن خطاب نبی اکرم ﷺ ته اوفرمائیل چې یارسول الله ﷺ ما یو قریظی یهودی دوست ته وئیلی وو چې ما ته د تورات څه جامع خبرې اولیکی نوکه تاسو فرمایئ چې هغه پیش کړم.د نبی اکرم ﷺ مخ مبارک متغیر شو عبدالله بن ثابت رضي الله عنه اوفرمائیل چې ته نه ګورې د نبی اکرم ﷺ د مخ مبارک څه حال دې؟نو عمرفاروق رضي الله عنه اوفرمائیل چې زهٔ په دې خبره خوشحاله یم چې الله ﷻ زما رب دې،محمد ﷺ زما رسول دې او اسلام زما دین دې.نو بیادمحمد ﷺ غصه لرې شوه او نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې په هغه الله ﷻ مې دې قسم وی چې دهغه په قبضه کښې زماسا ده که موسی عليه السلام تاسو کښې راشی اوتاسو دهغه تابعداری شروع کړئ اوما

[1] الطبری: ۶/۵۵۵)-

پریږدئ نوتاسو ټول به ګمراه شئ.په ټولو امتونو کښې زما د حصې امت تاسو يئ.او په ټولو نبيانو ﷺ کښې زۀ ستاسو دحصې نبی يم.(١)

**که موسیﷺ په تاسو کښې ژوندي وې نو زما تابعداری به ئې کوله:-** مسند ابویعلی کښې دی چې اهل کتابو نه هېڅ تپوس مه کوئ،پخپله ګمراهان دی تاسو به هم د نيغې لارې نه بې لارې کړی.بلکه ممکن دی چې تاسو به دیو باطل تصديق اوکړئ او د څه حق تکذيب به اوکړئ.په الله تعالی مې دې قسم وی که موسیﷺ هم په تاسو کښې ژوندي وې نو د هغه دپاره هم سوا زما د تابعدارئ نه هېڅ حلال نه وو. (٢)بعضو احاديثو کښې دی که موسیﷺ اوعيسیﷺ ژوندی وی نو هغوئ به هم سوازمادااتباع کولو نه بل څه نه کول.(٣)

**مقام محمود:-** نو ثابت شو چې زمونږ رسول محمدﷺ خاتم الانبياء دې او امام اعظم دې.چې په کومه زمانه کښې هم د نبی اکرم ﷺ نبوت وي نو نبی اکرم ﷺ واجب الاطاعت وو.او دټولو نبيانو ﷺ تابعدارئ باندې د نبی اکرم ﷺ تابعداری به مقدم وي.هم دا وجه وه چې د معراج په شپه بيت المقدس کښې د ټولو نبيانو سردار نبی اکرم ﷺ لره جوړ کړې شو.هم داشان ميدان حشر کښې به هم نبی اکرم ﷺ شفيع وی ددې خبرې چې الله ﷻ لره د فيصلو کولو دپاره راولی.هم دا مقام محمود دې چې د نبی کريم ﷺ نه سوا بل چاته نه دې ورکړې شوې.ټول نبيان ﷺ او ټول رسولان ﷺ به په هغه ورځ ددې کار نه انکار اوکړی او بالآخر نبی کريم ﷺ به په دې مقام اودرېږی.د الله ﷻ درود وسلام دې وی په نبی ﷺ هميشه هميشه اوترقيامته پورې،آمين.

| اَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ وَلَهٗۤ اَسْلَمَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ |
|---|
| ددين دالله نه \| دوی غواړی\|حال داچې خاص دهغه \|تابعدار دی \|هغه چا\| چې په آسمانونو کښې دی |
| ايا نو بغيردالله د دين نه علاوه دوئ بل دين لټوی\| ......او حال دا دې چې دآسمانونو |
| وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّاِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ۝ قُلْ |
| او په زمکه کښې دی \| په رضا \| اوپه زور \| او خاص هم هغه ته \| به واپس کولې شی ټول\| اووايه اې نبی |
| اوزمکې ټول مخلوق په خوښۀ ياپه زور هغه تابعدار دی \| اوټول به آخر هغه ته واپس کيږی \| ورته اووايه |
| اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ |
| چې مونږه ايمان راوړې دې \| په الله \| او په هغه \| چې نازل کړې شوې دې\| په مونږ \|او په هغه باند\| چې نازل کړې شوی دی |
| مونږ ايمان راوړې دې په الله پاک باندې\| اوپه هغه کتاب چې په مونږ نازل شوې دې \|اوپه هغه تعليم |
| عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِىَ |
| په ابراهيم باند \| او په اسماعيل \|\| په اسحاق\| او په يعقوب باندې\| او په اولاد ديعقوب باند \|اوپه هغه چې ورکړې شوی دې |
| چې ابراهيم،اسماعيل،اسحاق اويعقوب او دهغوئ اولادته ورکړې شوې دې\| اوپه هغه کتابونو چې موسی او عيسی |

---

(١)احمد:٢٦٥/٤،ددې سندکښې جابر بن يزيدالجعفی ضعيف راوی دې (القريب١٢٣/١) اوپدې وجه د اروايت سخت ضعيف دې)

(٢) احمد: ٣٣٨/٣، امسندابويعلی: ٢١٣٥)-

(٣) داروايت دسيدنا عيسی عليه السلام ذکر سره بې اصل اوباطل دې اود سيدنا موسی عليه السلام ذکر سره ضعيف ومردود دې)-

| مُوسٰى | وَعِيسٰى | وَالنَّبِيُّونَ | مِنْ رَّبِّهِمْ | لَا نُفَرِّقُ | بَيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| موسی ته | اوعیسی ته | او نورو پیغمبرانوته | دطرفه درب دهغوئ نه | نه کوؤ مونږ فرق | په منځ |

باندې د دوی د رب د طرف نازل شوی دی| مونږ ددې ټولو په مینځ کښې (په منلو اونه منلو) کښې هیڅ فرق نه کوؤ

| أَحَدٍ مِّنْهُمْ | وَنَحْنُ | لَهُ | مُسْلِمُونَ | وَمَنْ | يَبْتَغِ | غَيْرَ الْإِسْلَامِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دیو دهغوئ کښې | او مونږه | خاص دهغه | حکم منونکي یو | او هغه څوک | چې طلبوی | غیرد اسلام نه |

اومونږ دالله پاک حکم ته تابعدار یو| ..........................اوڅوک چې د اسلام نه بغیر بل دین اختیاروی

| دِينًا | فَلَنْ يُّقْبَلَ | مِنْهُ | وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ | مِنَ الْخٰسِرِينَ |
|---|---|---|---|---|
| بل دین انو | هر گز به قبول نشی | دهغه نه | اووی به هغه په آخرت کښې | دنقصان موندنکونه |

نو هغه دین به ترې هیڅرې قبول نه شي| اوهغه به په آخرت کښې تاواني وی |

قوله تعالى:- أَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ وَلَهٗٓ أَسْلَمَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

**د زمکې او اسمانونو هر څیز د الله ﷻ تسبیح کښې مشغول دې**:- د الله ﷻ د رینښتونی دین نه بغیر چې کوم هغه پخپلو کتابونو کښې دخپلو رسولانو ﷺ په ذریعه نازل کړې دې یعنی صرف د الله ﷻ وحده لاشریك عبادت کوئ او هېڅوك دې بل دین نه لټوی.او د هغې د منلو تردید دلته کیږی.

بیا فرمائی چې دآسمان او زمکې ټول څیزونه د هغه مطیع دی.که په خوشحالئ وی اوکه په خفگان.لکه الله ﷻ فرمائی چې ﴿وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا﴾ الخ.یعنی د آسمان او زمکې ټول مخلوق د الله ﷻ سجده کوی په خپله خوښه یا جبر سره،بل ځائې کښې دی چې ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا إِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ﴾ آیا دوی نه گوری چې د ټول مخلوق سیوری ښی اوگس طرفته ټیټیږی او الله تعالی ته سجده کوی.او صرف اوصرف الله تعالی ته سجده کوی.د آسمانونو ټولې فرښتې او د زمکې ټول مخلوقات او د آسمانونو ټول څیزونه.هیڅ یو هم تکبر نه کوی ټول په ټوله د خپل پورته رب نه ویریږی او چې کوم حکم ورته ورکړې شی هغه پوره کوی.نو دمومنانو ظاهر اوباطن او قلب وقالب دالله ﷻ مطیع او فرمانبرداردې.اوکافر هم دالله ﷻ په قبضه کښې دی او جبری طور الله تعالی طرفته ټیټ دې.د هغه پاك ذات ټول احکام په ده باندې جاری دی.او هغوئ په هرشان دالله ﷻ دقدرت اودخوښې لاندې دی.هیڅ یو څیز هم د هغه دغلبې نه اوقدرت نه بهر نه دې.

ددې آیت په تفسیر کښې یو غریب حدیث دا هم وارد شویدې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې آسمان والاخوفرښتې دی چې په خوشحالئ فرمانبردارې دی.اوزمکې والا هغه دی چې اسلام باندې پیدا شوی دی،او دوی هم په شوق ټول په ټوله د الله ﷻ فرمانبردار دی.او خفگان سره ماتحت هغه دی چې کوم خلق دمسلمان مجاهدینو دلاسه میدان جنگ کښې قید کښې راشی اوطوق اوزنځیرونوکښې راوستلې کیږی.دا خلق چې جنت طرفته راخکلې شی خو دوی نه غواړی.([1])

**د الله تعالی تعجب**:-یو صحیح حدیث کښې دی چې ستارب ته په دوی باندې تعجب دې چې دوی جنت طرفته راخکلې شی اوهغه هم په زنځیرونو کښې تړلې شی([2])ددې حدیث نور سندونه هم شته دې. خو

---

[1]) طبران: ۱۱٤۷۳، ددې سند کښې محمد بن محصن عکاش دې او دوی ته دارقطنی متروك او واضع ونیلی دی اوگورئی المیزان ( ۲۵/٤، رقم: ۸۱۲۰)- نودا روایت موضوع دې اوموقوفا حضرت ابن عباس ؓ نه هم ثابت نه دی والله اعلم-

[2]) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الاساری فی السلاسل: ۳۰۱۰)-

ددې آيت معنى هم دا قوى ده چې كومه مخكښې بيان شوه.مجاهد رحمه الله فرمائى چې دا آيت ددې آيت په شان دې چې ﴿وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ﴾ كه ته دوى نه تپوس اوكړې چې آسمانونه او زمكې چا پيدا كړې دى نو دوى به يقيناً هم دا جواب وركوى چې الله ﷻ.عبدالله ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چې ددې نه مراد هغه وخت دې چې په اول ورځ د ټولو نه ميثاق او وعده اخستې شوې وه.او ټول به هغه پاك ذات طرفته واپس كيږى يعنى د قيامت په ورځ.اوهر يو ته به د هغه د عمل بدله ملاويږى.

قوله تعالى:-قُلْ آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنزِلَ عَلَيْنَا وَمَا أُنزِلَ عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ.....

بيافرمائى چې ته اووايه چې مونږ ايمان راوړې دې په الله ﷻ باندې اوپه قرآن پاك باندې اوحضرت ابراهيم عليه السلام باندې اوحضرت اسماعيل عليه السلام،حضرت اسحاق عليه السلام،حضرت يعقوب عليه السلام باندې.اوچې كومې صحيفې اووحى نازله شوې ده مونږ په هغې باندې هم ايمان راوړې دې او ددوى په اولادباندې چې څه نازل شو په هغې زمونږ ايمان دې.

قوله تعالى:-وَالْأَسْبَاطِ

﴿أَسْبَاطِ﴾ نه مراددبنى اسرائيلو قبائل دى چې ديعقوب عليه السلام نسل نه وو.دا ديعقوب عليه السلام د دولسو خامنو اولاد وو.

قوله تعالى:-وَمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَالنَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ

موسى عليه السلام ته تورات وركړې شوې وو اوعيسى عليه السلام ته انجيل او نورو نبيانو عليهم السلام ته دالله ﷻ د طرفه چې څه ملاوشوى دى په هغې مونږ ايمان راوړې دې.مونږ په هغې كښې هيڅ تفريق اوجدائى نه كوو چې يومنو اوبل نه منو بلكه زمونږ په ټولو باندې ايمان دې.اومونږ د الله ﷻ فرمانبردار يو.نو ددې امت مومنان ټول نبيان او ټول الهى كتابونه منى،چا سره كفر نه كوى.هر نبى او هر كتاب رينښتونې ګڼړى.

قوله تعالى:-وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ

بيافرمائى چې دالله ﷻ ددين نه سواچې څوك په بل لار باندې روان شى نوهغه د قبوليت نه لرې دې.او هغه په آخرت كښې نقصانى شو.

**زمونږ د امر نه خلاف عمل مردود دې:**-لكه څنګه چې صحيح حديث كښې د نبى كريم ﷺ ارشاد دې چې كوم يو سړې داسې عمل اوكړى چې زمونږ امر په كښې نه وى نوهغه مردود دې.[1]

**د الله تعالى او د اعمالو مكالمه:**- مسند احمد كښې دى چې رسول الله ﷺ فرمائى چې دقيامت په ورځ به اعمال راشى،مونځ به اووائى چې اې الله ﷻ زهٔ مونځ يم.الله تعالى به ارشاد اوفرمائى چې ته ښه څيز نې.صدقه به راشى او وائى به چې اې پروردګاره زهٔ صدقه يم.جواب به ملاؤ شى چې ته هم د خير څيز نې.روژه به اووائى چې زهٔ روژه يم.الله ﷻ به ورته اوفرمائى چې ته هم بهتر نې.بيا به دا شان نور اعمال هم راشى او ټولو ته به هم دا جواب ملاويږى.بيا به اسلام راشى او اوبه وائى چې اې الله ﷻ ته سلام نې او زهٔ اسلام.الله ﷻ به اوفرمائى چې ته د خير څيز نې،نن ستا په وجه زهٔ نيول كوم او ستا په وجه به انعام وركوم.الله ﷻ خپل كتاب كښې فرمائى چې﴿وَمَن يَبْتَغِ﴾.دا حديث صرف مسند احمد كښې دې (٢)ددې د راوى حسن د ابوهريره نه آوريدل ثابت نه دى.

---

[1] صحيح بخارى كتاب الصلح باب اذا اصطلحوا على صلح جور ...... ٢٦٩٧ صحيح مسلم: ١٧١٨ (واللفظ له)-

[2] احمد: ٣٦٢/٢، وسنده ضعيف : مسندابى يعلى : ٦٢٣١، المعجم الاوسط للطبرانى: ٨٢٠٧، ددې سند كښې عباد بن راشد دې.او دوى ته ابن معين او ابوداود وغيره ضعيف وئيلى دى (الميزان : ٣٦٥/٢ رقم ٤١١٣)، او حسن بصرى ته د حضرت ابوهريره رضى الله عنه سماع ثابت نه ده اوپدې و جه داروايت

| كَيْفَ يَهْدِي | اللّٰهُ | قَوْمًا | كَفَرُوْا | بَعْدَ | اِيْمَانِهِمْ | وَشَهِدُوْٓا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| څنګه به اوښائي لارا | الله | هغه قوم ته | چې كفر ئې اوكړو | روستو | د ايمان راوړلو د هغوئ نه | حالانكه ګواهي كړې ده هغوئ |
| داڅنګه كيديشي چې الله هغه خلقوته هدايت اوكړي چاچې ايمان راوړلونه پس بيا كفر اختيار كړو حال داچې دوئ پخپله | | | | | | |

| اَنَّ الرَّسُوْلَ | حَقٌّ | وَّجَآءَهُمُ | الْبَيِّنٰتُ | وَاللّٰهُ | لَا يَهْدِي |
|---|---|---|---|---|---|
| چې دارسول | حق دې | او راغلي دې هغوئ ته | واضحه نښې هم | او الله | نه كوي هدايت |
| ګواهي وركړې ده چې داپيغمبر حق دې او څګنده دليلونه ورته هم راغلل او الله پاک ظالمانو خلقو ته هدايت نه كوي | | | | | |

| الْقَوْمَ | الظّٰلِمِيْنَ ﴿۸۶﴾ | اُولٰٓئِكَ | جَزَآؤُهُمْ | اَنَّ | عَلَيْهِمْ | لَعْنَةَ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قوم | ظالم ته | دا كسان چې دي | صحيح بدله ددوئ | داده چې | دې په دوئ باندې | لعنت د الله |
| ............دې خلقو سزا داده چې په دوی باندې د الله پاک او د فرشتو او د ټولو خلقو | | | | | | |

| وَالْمَلٰٓئِكَةِ | وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ﴿۸۷﴾ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا | لَا يُخَفَّفُ | عَنْهُمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| او د فرشتو | او د خلقو ټولو | هميشه به وي دوئ | په دې حالت كښې | نه به سپک كړې شي | ددوئ نه |
| لعنت وي ............دوئ به هميشه په دې حال كښې پراته وي | | | | | |

| الْعَذَابُ | وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿۸۸﴾ | اِلَّا | الَّذِيْنَ | تَابُوْا | مِنْ بَعْدِ |
|---|---|---|---|---|---|
| عذاب | اونه به دوئ له مهلت وركړې شي | مګر | هغه كسان | چې توبه ئې اوښكله | روستو |
| نه به ترينه عذاب سپكولې شي او نه به ورته مهلت وركولې شي خو هغه خلق (به بچ شي) چې ددې نه پس توبه اوباسي | | | | | |

| ذٰلِكَ | وَاَصْلَحُوْا | فَاِنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ﴿۸۹﴾ |
|---|---|---|---|---|
| ددې نه | او اصلاح ئې اوكړه | نو بيشكه الله | بخښونكې | مهربان دې |
| او دخپل خان اصلاح اوكړي بيشكه الله پاک بښونكې مهربان دې | | | | |

**شان نزول د ايت،**

**كه مرتد رښتونې توبه اوباسي:-** ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چې يو انصاري مرتد شو او مشركانو سره يو ځائې شو.بيا پښيمانه شو اوخپل قوم ته ئې اووئيل چې درسول الله ﷺ نه تپوس اوكړئ آيازما توبه قبليدې شي؟د هغوئ په تپوس كولو دا آيت نازل شو.د هغه قوم هغه ته اووئيل او هغه دوباره مسلمان شو او حاضر شو.( ابن جرير).نسائي،حاكم اوابن حبان كښې هم داروايت موجود دې(¹) امام حاكم دې ته صحيح الاسناد وائي.

مسندعبدالرزاق كښې دی چې حارث بن سويد رضی الله عنه اسلام قبول كړو،بياخپل قوم سره ملاؤ شو اواسلام ئې پريښودو.،نودې باره كښې دا آيت نازل شو.دهغه قوم هغه ته دا آيت واورلو نو هغه اووئيل چې زما خيال دې چې د الله تعالى قسم رېښتونې دې او د الله تعالى نبی خو ستا نه زيات رېښتونې دې.او الله تعالى دټولو رېښتونو نه رېښتونې دې.بيا هغه رسول الله ﷺ طرفته راغلو اواسلام ئې قبول كړو.او

ضعيف دې اوګورئی ( الموسوعة الحديثية : ۳۵۵/۱) او علامه هيثمي رحمه الله ددې حديث متن غريب او بې خبره وائي)-

¹) احمد: ۲٤۷/۱، ابن حبان : ٤٤٦٠، حاكم: ۱٤۲/۲، طبرى: ۷۳۵۸، دې ته حاكم صحيح وئيلی دی اوددې موافقت ئې كړې دې النسائي: ۱۰۷/۷ ، ح/۴۰۷۳، وسنده ضعيف)-

بنه پوخ مسلمان شو.(۱)

**قوله تعالی:- وَجَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ**

بَيِّنٰتُ نه مراد د رسول الله ﷺ تصديقونوباندې حجتونه او دليلونه بالكل واضح كيږي.نو چې كومو خلقو ايمان راوړو او د رسول الله ﷺ حقانيت ئې اومنلو او دليلونه ئې اوكتل او د شرك په تيارو كښې پټ شو دا خلق مستحق نه دی د هدايت خكه چې د ددوی سترګې شته دې او بياهم دوی اسلام نه خوښوی.الله تعالی د ناانصافوخلقو رهبری نه كوی اودهغه مخلوق هم،چې كوم لعنت دائمی دې نو نه خو به د دوی په عذابونوكښې څه كمې وی او نه به موقوف كيږی.

**قوله تعالی:- إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ وَأَصْلَحُوا.....**

بيا د خپل لطف او احسان ذكر كوی او فرمانی چې ددې بدترين جرم نه پس چې څوك زما طرفته راشی اودخپلو بدوعملونو اصلاح اوكړی نو زۀ هم هغه ته معافی كوم.

إِنَّ الَّذِينَ
| بيشكه | هغه كسان
| ..................بيشكه كومو

كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا لَّنْ تُقْبَلَ
چې كفرئي اوكړو|روستو| دايمان راوړلو خپلونه| بيا زيات شول|په كفركښې|هر ګز بۀ قبول نكړې شي
كسانو چه دايمان راوړو نه پس كفراوكړی | اوبياكفر كښې زيات شول | نودهغوئ توبه به هيڅ كله نه قبليږی نشی

تَوْبَتُهُمْ وَأُولٰٓئِكَ هُمُ الضَّآلُّونَ ۝ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا
توبه دهغوئ | او داخلق چې دی| هم دوی دی| پاخه ګمراهان| بيشكه| هغه كسان | چې كفرئې اوكړو
اوهم دغه كسان ګمراه دی ............... چاچې كفر اختيار كړو

وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِمْ مِّلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا
اومړشو| په داسې حال كښې چې وۀ هغوئ | كافران | نوهرګز به قبول نشی| يو دهغوئ نه |ډكوالې دزمكې | د سرو زرو
اوپه دې حالت كښې ورته مرګ راغلوانوكه په هغوئ كښې يويوكس ټوله زمكه دسرو زرونه ډكه كړی

وَّلَوِ افْتَدٰى بِهٖ ۗ أُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ
او اګر كه فديه وركړی دې| دغه ټول سره زر|دا كسان چې دی |دې ددوئ دپاره | عذاب | دردناك |
او دفدئې په طور ئې پيش كړی نو قبوله به ترې نشی | اودوئ دپاره عذاب دردناك دې

وَّمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِينَ ۝
او نۀ به وی دوئ دپاره | هيڅوك مددګار
اودوئ سره هيڅ مدد نشی كولې

**قوله تعالی:- إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا لَّنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ**

**دنزع په حالت كښې توبه قبوله نه ده:-** كوم خلق چې ايمان نه پس كفر اوكړی او بيا هم په دې حالت كښې

---

۱) تفسير: عبدالرزاق : ۱/۱۳۱﴾-

مره شي نو پروردګار هغوئ لره ويروي چي دمرګ په وخت کښې ستا توبه رب ته قبوله نه ده.لکه بل خائې کښې فرمائي چې﴿ وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِيْنَ﴾ آخر دم پورې يعنې دمرګ په وخت کښې چي کوم خلق په ګناه کښې اخته وي او هغوئ توبه اوباسي نو دغه الله ﷻ ته قبوله نه ده.او همدا دلته دی چې د دوی توبه بالکل قبوله نه ده.او هم دا هغه خلق دی چې دحق لارې نه بل طرفته روان دی.

**ددې ايت شان نزول**:-ابن عباس ﷺ فرمائي چې څه خلق مسلمانان شواوبيا مرتدشو،بيائې اسلام راوړو اوبيا مرتد شو.بيا ئې خپل قوم ته سړې اوليږلو چې آيا اوس به زمونږ توبه قبوله شي؟ هغوئ نبی اکرم ﷺ ته سوال اوکړو نو په دې باندې دا آيت نازل شو (بزار) ددې اسناد ډير ښه دی.(۱)

**قوله تعالى**:-اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ.....

بيافرمائي چې کوم خلق په کفرباندې مړه شي دهغوئ هيڅ نيکي قبوله نه ده.اګر چې ده دزمکې هومره د الله ﷻ په لار کښې خرچ کړې وی.نبی اکرم ﷺ نه تپوس اوشوچې عبدالله بن جدعان ډير زيات ميلمه دوست،غلام آزادولو والا،او خوراك ورکولو والا سړې وو،د هغه دا نيکی به د هغه په ښه رازی که نه؟نو نبی اکرم ﷺ اوفرمائيل چې ده ټول عمرکښې يو ځل هم﴿رب اغفرلی خطيئتی يوم الدين﴾ نه وو ونيلي.يعنی ائې الله ﷻ زما ګناهونه د قيامت په ورځ اوبخښه (۲). چې څنګه د هغوئ خيرات قبول نه دې داشان د هغوئ فديه اومعاوضه هم.لکه څنګه چې بل خائې کښې فرمائي ﴿وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ﴾ چې نه د دوی نه بدله مقبول ده اونه دوی ته دسفارش څه نفع شته.اوفرمائي (لابيع.......خلال) چې په هغه ورځ نه اخستل خرڅول شته دې اونه دښمني او نه محبت،بل خائې ارشاد دې چې﴿إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ يعنی که کافرو سره دومره هر څه وی چې څومره په دې زمکه کښې دی او دومره ورسره نورهم وی،اوبيا دوی دا ټول هر څه دقيامت په ورځ دالله ﷻ د عذابونو بدله کښې فديه ورکړی نو هغه هم قبول نه دی.دوی به دا دردناك لو المناك عذابونه ضرور څکی.هم دامضمون دلته بيان شويدې دې،بعضو﴿افْتَدَى﴾کښې واو لره زاندونيلې دی.او داولره عطف منل اوهغه تفسيرکول چې کوم مونږ کړيدې ډيربهتر دې.والله اعلم.

نو ثابت شو چې دالله ﷻ د عذابونو نه هيڅ څيز نشی بچ کولې.اګر چې دوی ډير ښه او خرچ کونکی دی.اګرچې ټولې زمکې هومره سونا دالله ﷻ لارکښې ورکړی يا دغرونو او غونډو او شګو او نرمې زمکې او سختې زمکې او لمدې زمکې برابر وزن سونا د الله ﷻ د عذابونوبدله کښې ورکړی.

**د الله تعالی جهنمی سره مکالمه**:-مسنداحمد کښې دی چې نبی اکرم ﷺ فرمائي چې جهنمی ته به د قيامت په ورځ اوونيلې شی چې زمکه کښې څه دی که هغه ستا شی نوآيا ته به هغه ټول ددې سزا بدله کښې ورکړې،هغه به اووائي چې آو.الله ﷻ به ورته اوفرمائي چې ماستانه په نسبت ددې زيات غوښتل،ماستا نه هغه وخت کښې وعده اخستې وه چې کله ته د خپل پلار آدم ﷺ په شا کښې وې چې زماسره هيڅوك شريك مه جوړوه.ليکن ته بغير د شرك نه پاتې نشوې.داحديث بخاری اومسلم شريف کښې نورو سندونوسره دې .(۳)

**د شهيد جنتي په جنت کښې ارمان**:- مسنداحمدکښې يوبل حديث کښې دی چې انس بن مالك ﷺ فرمائي چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائيل چې يو جنتی به راوستلې شی او هغه ته به الله ﷻ اوفرمائي چې اووايه تا څنګه ځائې اوموندو؟ هغه به جواب ورکړی چې ائې الله ﷻ ډير بهتر.الله ﷻ به اوفرمائي چې ښه ده چې ته څه غواړې نو هغه اوغواړه اوچې څه خواهش دې وی هغه اوکړه ،نو اوبه وائی چې ائې زماربه اصرف دا خواهش دې چې زمايو سوال دې ما بيا دنيا ته اوليږه چې زه ستا لار کښې جهاداوکړم

---

(۱) الدر المنثور : ۲/۲۵۸-

(۲) صحيح مسلم كتاب الايمان باب الدليل على ان من مات على الكفر،،،،،: ۲۱٤)-

(۳) احمد: ۳/۲۱۸، صحيح بخارى كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار : ۶۵۵۷، صحيح مسلم: ۲۸۰۵)-

اوبیا شهیدشم او بیاژوندې شم او بیا شهید شم.لس ځل داسې اوشي.ځکه چې هغه به د شهادت درجه او مرتبه کتلې وی.دا شان به یو جهنمی راوستلې شی او هغه ته به الله ﷻ اوفرمائی چې انې ابن آدم ! تا خپل ځائې څنګه اوموندو ؟هغه به اووائی چې ډیر خراب.الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې آیا ته دا خوښوې چې ددې عذابونو بدله کښې د زمکې هومره سونا ورکړې؟هغه به اووائی چې یاالله آو؟نو هغه به جهنم ته اولیږلې شي.([1])

أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ

نو دلته فرمائی چې ددوی دپاره تکلیف ورکونکی هغه عذاب دې او هیڅوك داسې نشته دې چې دوی د دې عذابونو نه خلاص کړی.

(الله تعالی دې مونږ ته د خپلو عذابونو نه نجات راکړی °° آمین ) .

(الحمدلله د تفسیر ابن کثیر پښتو ترجمه دریمه پاره ختمه شوه)

[1]) احمد: ۲۳۹/۳، وسنده صحیح : ابن حبان : ۷۳۵۰، حاکم: ۷۵/۲، امام حاکم دا دمسلم په شرط صحیح خودلې دې او امام ذهبی ددې موافقت کړې دې).